# توضیحات

پښتو شرح د

# مشکوٰۃ شریف

تالیف

حضرت مولانا فضل محمد یوسف زئی صاحب دامت برکاتہم

استاذ حدیث جامعة العلوم الاسلامیة بنوری ٹاؤن کراچی

پښتو ترجمه

مولانا محمد فیض الهادي "حقاني"

سابق مدرس مدرسه تعلیم القرآن والحدیث

چارسده روډ پشاور

مکتبة الاصلاح

محله جنګي پشاور

0314-9797200

0345-1977797

# توضيحات مشكوٰة شريف

پښتو شرح

(جلد اول)

الشيخ حضرت مولانا فضل محمد يوسف زئی صاحب دامت برکاتهم
علامه استاذ حديث جامعة علوم اسلامية بنوری ټاؤن کراچی

پښتو ترجمه:
مولوي فيض الهادي حقاني

## د توضيحات پښتو شرح مشكوة خصوصيات:

- په اول جلد کې د اصول حديث يوه مفيده مقدمه
- په متن باندې اعراب
- په تيبل کې تحت السطور بامفهومه ترجمه
- هر حديث ته مناسب عنوان ورکول
- د مشكوة المصابيح د آحاديثو تخريج د صحاح سته وغيره کتابونو نه کول
- د مشكوة المصابيح د مشکلو لغاتو حل کول
- په شرحه کې هر يو شاه ته مناسب عنوان ورکول
- د ائمه اربعو د مذاهبو بيان
- د مذاهبو دلائل بيانول
- د احنافو د مذهب د ترجيح وجوهات بيانول
- په شرح کې د مرقاة او د اشعة اللمعات د عباراتو حوالې ورکول
- د کتاب د هرې صفحې په سر د کتاب او باب خودنه
- د هر کتاب په اول کې د ضروري مباحثو بيان
- بين القوسين په اضافي قيوداتو سره مزيد وضاحت کول
- د مشکلو ابحاثو د سوال او جواب په ذريعه حل کول
- د جديد او قديم بعضې مسائلو استنباط
- په آحاديثو کې د تعارض په صورت کې بهترين مطابقت راوستل
- په اتم جلد کې د مشكوة المصابيح د حديثو د راويانو مفصل حالات

مکتبة الاصلاح
محله جنگی پشاور
0314-9797200
0345-1977797

خیر الناس من ینفع الناس

فضل محمد یوسف زئی

میں فضل محمد بن نور محمد اپنی کتاب توضیحات شرح مشکوٰۃ
کی اردو سے پشتو زبان میں ترجمہ کی اجازت مکتبہ اصلاح
پشاور کو دیتا ہوں یہ لوگ اس ترجمے کو چھاپ کر
شائع کریں گے ان کے علاوہ میں نے کسی کو اجازت نہیں دی

لہٰذا دوسرے احباب ناجائز کوشش سے اجتناب کریں
فقط فضل محمد بن نور محمد یوسف زئی
بنوری ٹاؤن کراچی

[illegible]

۱۰ ربیع الاول ۱۴۲۰ھ مطابق ۱۹



## درخواست

د الله تعالیٰ په فضل وکرم سره د کمپوزنګ نظرثاني او تصحیح نه علاوه
د چهاپ کولو او جلد سازئي په ټولو مرحلو کښې د ډیر احتیاط نه کار
اخستلی شوی دی خو بیا هم انسان کمزوری دی.
که ددې احتیاط باوجود هم څه غلطي په نظر درشي نو اطلاع راکړئ
ان شاء الله په راتلونکی چهاپ کښې به ئې تصحیح اوکړو.

مکتبة الاصلاح
محله جنګی پشاور
0314-9797200
0345-1977797

# انتساب

زه دا خپل محنت خپل مادرِ علمي او د عِلم عالَمي مركز

جامعة العلوم الاسلامية بنوري ټاؤن طرف ته منسوبوم

چې ددې د شفقت په سيورې كې

بنده د محدث العصر حضرت اقدس حضرت مولانا محمد يوسف البنوري رَحِمَهُ اللهُ

او صدر مدرس حضرت اقدس حضرت مولانا فضل محمد سواتي رَحِمَهُ اللهُ نه

د احاديثو مقدسو سند حاصل كړو.

فضل محمد يوسف زئي

روزِ محشر هر کسے باخویش دارد توشهء
من نیز حاضر میشوم توضیح مشکوة در بغل

وَ مِنْ مَذْهَبِيْ حُبُّ النَّبِيِّ وَ كَلَامِهٖ
وَ لِلنَّاسِ فِيْمَا يَعْشَقُوْنَ مَذَاهِبُ

بسم الله الرحمن الرحيم

# كَمِشْكٰوةٍ فِيْهَا مِصْبَاحٌ

# اَلْمِصْبَاحُ فِيْ زُجَاجَةٍ

# اَلزُّجَاجَةُ كَاَنَّهَا كَوْكَبٌ

# فهرست

## په مصطلحات حدیث کې د شیخ عبدالحق محدث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ مقدمه

د جمهورو محدثینو په اصطلاح کې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قول فعل او تقریر ته حدیث ویل شوي دي (د قول او فعل مطلب خو واضح دی، د تقریر معنی دا ده چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په موجودیت کې کوم کس کوم کار کړی وي یا یې څه ویلي وي نو د هغه نه یې نه منعه کړې وي او نه یې بد ګڼلی وي بلکې د سکوت په غوره کولو یې د هغه توثیق کړی وي) همدارنګه د صحابي او تابعي قول او فعل او تقریر باندې هم د حدیث اطلاق کیدی شي. کوم حدیث چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ورسیږي هغه ته مرفوع ویل کیږي او د کوم سند چې د صحابي پورې ورسیږي هغه ته موقوف ویل کیږي لکه چې وویل شي: **قال ابن عباس یا فعل ابن عباس یا قرر ابن عباس یا عن ابن عباس موقوف یا موقوف علی ابن عباس.** او د کوم حدیث سند چې صرف تر تابعي ورسیږي هغه ته مقطوع ویل کیږي.

بعضو حضراتو حدیث د مرفوع او موقوف پورې خاص کړی دی (مقطوع یې په حدیث کې نه دی شمار کړی چې مقطوع حدیث نه دی بلکه اثر ورته ویل کیږي او بعضې وخت په مرفوع حدیث باندې هم د اثر اطلاق شوی دی لکه څرنګه چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه منقولو دعاګانو ته ماثوره دعاګانې ویل کیږي، او لکه څنګه چې امام طحاوي د خپل کتاب نوم **معاني الآثار** ایښی دی کوم چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په احادیثو او د صحابه کرامو په آثارو باندې مشتمل دی، او د امام سخاوي په قول د امام طبراني یو کتاب د **تهذیب الآثار** په نوم سره دي، حالانکه هغه د مرفوع حدیثونو دپاره خاص شوی دی، او په هغه کې چې کوم موقوف روایتونه دي هغه خالص په ضمني طور ذکر شوي دي، خبر او حدیث په یوې معنی سره مشهور دي، بعضې حضرات حدیث صرف هغې ته وایي کوم چې له رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او صحابو او تابعینو نه منقول وي، او خبر هغه ته ویل کیږي کوم چې د بادشاهانو او د تیرې شوې زمانې په حالاتو او واقعاتو باندې مشتمل وي، په همدې وجه هغو خلکو ته کوم چې په سنت کې مشغول وي "**محدث**" او کوم چې په خبر کې مشغول وي اخباري ورته ویل شوي دي.

د حدیث مرفوع کیدل کله صراحةً وي او کله حکما وي:

د حدیث مرفوع صریحي درې قسمونه دي (اول) قولي (دویم) فعلي (دریم) تقریري.

**د صریح قولي مثال:** لکه چې صحابي ووایي: **سمعت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یقول**، چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا آوریدلي چې فرمایل یې، یا د صحابي غیر صحابي داوینا چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسې ارشاد فرمایلی (په دې کې د صحابي د سماع تصریح نشته) یا د **عن** په صیغې سره د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه منقول وي چې دوی داسې ارشاد فرمایلی ..........الخ.

**د صریح فعلي مثال** : لکه چې صحابي ووایي : **رأیت رسول الله ﷺ فعل کذا**، چې ما رسول الله ﷺ ولیدو چې داسې یې کول، یا د **عن** په صیغې سره منقول وي چې دوی داسې وویل یا صحابي غیر صحابي د دوی ﷺ کوم فعل نقل کړي او د **رفعه** یا **مرفوعاً** لفظ استعمال کړي.

**د صریح تقریري مثال** : لکه چې صحابي یا غیر صحابي ووایي چې **فلاني یا داسې ووایي چې کوم کس** د رسول الله ﷺ په موجودیت کې داسې وویل او دوی ﷺ یې منعه ونه کړه.

د حدیث مرفوع حکمي هم درې قسمونه دي (۱) قولي (۲) فعلي (۳) تقریري.

**د قولي حکمي مثال** : لکه چې یو داسې صحابي کوم سره چې د مخکنو کتابونو علم نوي د ماضي یا د مستقبل په امورو کې د کوم داسې امر خبر ورکړي په کوم کې چې د اجتهاد گنجایش نه وي، **د ماضي** امورو لکه د انبیاء کرامو حالات، د مستقبل امورو لکه د راتلونکو جنگونو او راتلونکو فتنو بیان، د قیامت ورځې د دهشت بیان، یا په کوم مخصوص فعل باندې د کومې مخصوصې سزا موندلو بیان چې د همدې شیانو علم د رسول الله ﷺ نه علاوه چاته حاصلیدی نه شي.

**د فعلي حکمي مثال** : لکه د صحابي کوم داسې فعل په کوم کې چې اجتهاد لره گنجایش نوي (ځکه چې همداسې فعل به د رسول الله ﷺ نه صادر شوی وي بل څوک یې نه شي کولی).

**د حکمي تقریري مثال** : لکه د صحابي ارشاد چې مونږ د رسول الله ﷺ په ژوند کې داسې کړي وو، دا هم د مرفوع په حکم کې دی، ځکه دا بدیهي خبره ده چې رسول الله ﷺ ته ضرور د دې خبرې علم وو (که علم نه وی نو دغه کار صحیح نه وی) نو د هغه په باره کې به وحې راغلې وه یا د صحابو دا وینا (**ومن السنة کذا**) چې د سنت نه یو عمل دا هم دی، ځکه چې ښکاره ده چې د سنت نه مراد سنت نبوي دی، اگر چې بعضو ویلي دي چې د سنت لفظ چونکه د سنت صحابو او سنت تابعینو دپاره ویل شوی دی، لهذا دا هم مراد کیدی شي.

## اول فصل د سند په بیان کې

سند د حدیث د طریقې نوم دی، یعنې هغه خلق کومو چې د هغه روایت کړی دی، اسناد هم په همدې معنی دی او کله دا د سند کولو او طریق متن کولو په معنی کې هم استعمال شوی دی، او متن هغه دی په کوم باندې چې د سند سلسله ختمه وي. که یې د مینځ نه کوم راوي ساقط شوی نوي نو هغه حدیث متصل دی، عدم سقوط ته اتصال ویل شوی دی، او که یو یا د یو نه زیات راویان ساقط شوي وي هغه حدیث منقطع دی، د همدې سقوط نوم انقطاع دی، او که چیرته دا سقوط د سند د ابتداء نه وي نو هغه ته معلق ویل کیږي او د همدې اسقاط نوم تعلیق دی، او ساقط کیدونکي کله یو وي او کله د یو نه زیات وي کله ټول سند حذف کیدی شي لکه چې د عامو مصنفینو عادت دی هغوی داسې روایت کوي

(**قال رسول الله صلی الله علیه وسلم**) رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي. د صحیح بخاري په تراجمو کې اکثر تعلیقات دي لیکن دا ټول تعلیقات د اتصال په حکم کې دي. ځکه چې امام بخاري په خپل دې کتاب کې د صحیح احادیثو راوړلو التزام کړی دی، لیکن له دې تعلیقاتو نه علاوه د کومو سندونه یې چې په خپل کتاب کې په بل ځای کې بیان کړي دي او تعلیقات د هغو مسانیدو په درجه کې نه دي او بعضو خلکو په دې کې دا فرق کړی دی چې کوم امام بخاري د جزم او یقین په صیغې سره بیان کړي دي او هغه دلالت کوي په دې خبره باندې چې د دې سند د امام بخاري په نزد ثابت دی نو هغه قطعاً صحیح دی لکه د امام بخاري رحمه الله وینا: **قال فلان او ذکر فلان**، فلاني ویلي فلاني ذکر کړي او که یې د مجهول او د تمریض په صیغه ذکر کړي لکه: **قیل یا یقال یا ذکر** یعنې وایي ویلي دي یا ذکر کړي دي نو د دې په صحت کې د ده په نزد کلام دی، لیکن کله یې چې په خپل کتاب کې راوړي دي نو د هغه اصل د ده په نزد ثابت دی، نو ځکه د محدثینو قول دی چې د بخاري تعلیقات متصل او صحیح دي.

او که چیرته د سند سقوط په اخیر کې او له تابعي وروسته وو نو هغه حدیث مرسل دی او د دې کار نوم ارسال دی، لکه چې کوم تابعي ووایي: **قال رسول الله صلی الله علیه وسلم** رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي، کله د محدثینو په نزد د مرسل او منقطع یو مفهوم کیدی شي لیکن اوله اصطلاح ډیره مشهوره ده.

د جمهورو علماو په نزد د مرسل روایت حکم توقف دی ځکه چې هغه غیر معلوم دی چې ساقطوونکی ثقه دی او که غیر ثقه، علاوه د دې نه که تابعي د بل تابعي نه روایت کوي او تابعیان ثقه او غیر ثقه دواړه دي. د امام ابو حنیفه رحمه الله او امام مالک رحمه الله په نزد مرسل مطلقاً مقبول دی، د دوي دلیل دا دی چې ارسال کوونکي د کمال وثوق او اعتماد په بناء ارسال کړی دی، ځکه چې خبرې اترې د ثقه راوي سره متعلق دي. که چیرته هغه تابعي د ارسال کوونکي په نزد صحیح نه وی نو هغه به ارسال نه وو کړی او نه به یې داسې ویلی وی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې ویلي دي. د امام شافعي رحمه الله په نزد مرسل او مسند اګرچه ضعیف دي، بیا هم که د دوي په کوم شي سره تایید وکړی شي نو مقبول کیږي، او د امام محمد رحمه الله نه په دې باره کې دوه قولونه منقول دي، دا اختلاف صرف په هغه صورت کې دی کله چې دا معلومه شي چې د تابعي عادت صرف له ثقاتو نه د ارسال دی او که چیرته د هغه عادت له کوم امتیاز کولو پرته د ثقاتو او غیر ثقاتو دواړو نه د ارسال کولو دی، نو بیا بالاتفاق د هغه حکم د توقف دی، په دې کې نور زیات تفصیلات دي کوم چې سخاوي په **شرح الفیه** کې ذکر کړي دي. که چیرته د سند سقوط په مینځ کې وي او پیوسته دوه روایان د مینځ کې ساقط وي نو داسې حدیث ته معضل (**بفتح الضاد**) ویل کیږي، که یو راوي ساقط وي یا د یو نه زیات وي لیکن پیوسته نه دي بلکې د مختلفو

ځايونو نه ساقط شوي دي نو ذېته منقطع ويلی شوی دی، په دې معنی کې منقطع د غير متصل حديث يو قسم جوړ شوی دی او کله منقطع مطلقا د غير متصل په معنی سره مستعمل شوی دی کوم چې ټولو اقسامو لره شامل دی، په دې صورت کې دا يو مقسم موندل شوی.د انقطاع او سقوط راوي حکم د راوي او مروي عنه په مينځ کې په عدم ملاقات سره شوی دی او عدم ملاقات د همعصر نه کيدو يا د اجتماع نه کيدو سبب شو، يا په دې وجه چې د حديث د روايت اجازت نه دی ملاو شوی او د دې ټولو شيانو علم د راويانو د پيدايښت تاريخ، د دوي د وفات تاريخ، د دوي د علم طلب او د سفر وختونو تعين سره کيدی شي، نو ځکه د محدثينو په نزد د تاريخ علم هم يو بنيادي او ضروري علم دی.

د منقطع حديث يو قسم **مدلّس (بضم ميم وفتح لام مشدده)** دی د هغه نوم تدليس او د هغه مرتکب **مدلِس (بکسر لام)** دی، د دې صورت دادی چې يو راوي د خپل هغه شيخ (استاذ) نوم خو وانه خلي د کوم نه چې ده حديث اوريدلی دی البته د هغه پورته راوي نه په همداسې الفاظو کې روايت وکړي د کوم چې دا وهم کيدی شي چې ده د هغه پورته راوي نه آوريدلی دی، لکه چې **عن فلان** يا **قال فلان** ووايي، د تدليس لغوي معنی د خرڅولو په وخت کې د عيب پټول دي، دا هم ويل شوي دي چې دا د دلس نه مشتق دی د کوم معنی چې په تيارې کې تلل دي، حديث ته مدلس په دې وجه ويل شوی دی چې په هغه کې هم داسې خفاء (تاريکي) ده. شيخ حافظ ابن حجر عسقلاني رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د چا نه چې تدليس ثابت شوی وي د هغه حکم دا دی چې د هغه حديث دې قبول نه کړی شي، تردې چې هغه د تحديث صراحت وکړي. امام شمني رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د فن د امامانو په نزد تدليس حرام دی، د امام وکيع رَحِمَهُ اللهُ په نزد کله چې تدليس په کپړو کې روا نه دی نو په حديث کې څنګه روا کيدلی شي، امام شعبي رَحِمَهُ اللهُ د دې ډېره زياته بدې بيان کړې ده.د مدلس روايت په قبلولو کې د علماؤ اختلاف دی، د اهل حديثو او د فقه يوې ډلې په نزد دا تدليس جرح (عيب) ده او د کوم کس متعلق چې معلومه شي چې هغه تدليس کړی دی د هغه حديث مطلقا غير مقبول دی، او د بعضو په خيال کې مقبول دی. د جمهورو قول دادی چې د همدې کس تدليس قابل قبول دی،د کوم متعلق چې معلومه شي چې هغه د ثقه نه تدليس کړی دی، لکه چې امام ابن عيينه رَحِمَهُ اللهُ او د هغه تدليس مردود دی کوم چې له ضعيف او غير ضعيف ټولو نه تدليس کړی دی، تردې چې هغه په الفاظ سماع سمعت يا حدثنا او اخبرنا په ذريعې سره د سماعت صراحت نه وي کړی.

**د تدليس مختلف اقسام دي** ، بعضې وخت د هغه د پردې شاته فاسد اغراض وي لکه چې کوم راوي د خپل شيخ (استاذ) د تازه عمر په وجه د خپلې سماع پټولو کوشش وکړي يا د دې وجې نه چې د ده شيخ به خلکو کې کوم خاص شهرت يا مقام او مرتبه نلري، او له بعضو اکابرو نه چې کوم تدليس واقع شوی دی نو د هغوي حيثيت همدا نه دی ، د هغه وجه صرف دا ده چې د هغه د حديث په صحت باندې کامل

اعتماد وو له شهرت وغيره نه هغه بې پروا وو. شمني رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي دا احتمال هم شته چې د ثقاتو د يو جماعت نه حديث آوريدل شوى وي او د دې كس نه هم، په همدې وجه د هغه ذكر كول د نورو خلكو له ذكر كولو نه مستغني كړى لكه چې په مرسل كې چې شوي دي. كه چيرته په اسناد يا متن كې د راويانو اختلاف د تقديم تاخير كمي يا زياتي په ذريعه وي، يوه راوي څو ځايه دويم راوي د يو متن پر ځاى دويم متن يا د سند اسماء يا د متن اجزاؤ كې تصحيف وي يا اختصار وي يا حذف وي همدارنګه نور شيان وي نو حديث مضطرب دى، كه چيرته د دوي په مينځ كې جمع او توثيق ممكن وي نو هغه مقبول دى كه نه نو د هغه حكم توقف دى. كه چيرته كوم راوي په كوم حديث كې خپل يا د صحابي يا د تابعي كلام په دې غرض درج كړى وي چې په دې سره د لغت مفهوم يا د معنى وضاحت يا مطلق تقييد وكړى شي نو دې حديث ته مدرج ويلي كيږي.

## دويم فصل : د روايت بالمعنى په بيان كې

**تنبيه :** ددې بحث نه په احاديثو كې د روايت بالمعنى بحث پيدا شوى دى، په دې كې كافي اختلاف دى، زياتر د دې قائل دي چې همداسې د هغه كس دپاره روا دي كوم چې د عربي ژبې عالم وى، د اسلوب كلام ماهر وي، د تركيبونو په ذريعه غلطي نكوى، بعضو ويلي دي چې دا په مفرد الفاظو كې روا دي په مركباتو كې ندي، د بعضو په نزد د هغه كس دپاره روا دي كوم ته چې د حديث الفاظ زيات ياد وي او په هغو په تصرف باندې كامل قادر وي. او بعضو ويلي دي چې دا د هغه كس دپاره روا دي كوم ته چې د احاديثو معناګانې يادې وي ليكن الفاظ يې هير شوي وي، حالانكه همداسې كول د احكامو د حاصلولو په بناء باندې ضروري دي، دا اختلاف په جواز او عدم جواز كې دى، تر كومه ځايه چې علاوه د كوم تصرف د احاديثو د الفاظو روايت كولو تعلق دى نو د هغو په افضليت كې د ټولو اتفاق دى، ځكه چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې الله تعالى دې هغه كس خوشحاله تر او تازه ولري كوم چې زما خبرې واوري، هغه يادې كړي او هغه تر نورو پورې ورسوي، يا لكه څنګه يې چې له ما آوريدلې دي، روايت بالمعنى په صحاح ستو او نورو كتابونو كې په كثرت سره موجود دى.

**عنعنة :** عن فلان عن فلان الفاظ سره حديث بيانولو ته **عنعنه** ويل كيږي، **معنعن** هغه حديث دى كوم چې د عنعنه په طور بيان كړى شي، په عنعنه كې د امام مسلم په نزد معاصرت (هم زمانه كيدل) د امام بخاري په نزد ملاقات شرط دي، او د نورو محدثينو په نزد حديث اخيستل شرط دي، امام مسلم دواړه دلې په شد او مد سره رد كړې دي، د مدلس عنعنه غير مقبول ده. هر هغه مرفوع حديث د كوم سند چې متصل وي مسند ورته ويلى شي د مسند همدا مشهور او معتمد عليه تعريف دى، د بعضو په نزد هر متصل السند مسند دى، كه موقوف وي كه مقطوع وي او د بعضو په خيال كې هر مرفوع مسند

دی که مرسل وي، که معضل وي که منقطع وي.

## دریم فصل :

شاذ، منکر او معلل هم د حدیث قسمونه دي.

**شاذ** په لغت کې هغې ته ویل کیږي کوم چې د جماعت نه بیل شوی او د هغه نه وتلی وي، او د محدثینو په اصطلاح کې هغه حدیث ته ویل کیږي کوم چې د ثقه راویانو د روایت خلاف وي، که چیرته د هغه راوي ثقه نوي نو هغه مردود دی، او د نورو وجوهو د ترجیحاتو په وجه ترجیح ورکول کیږي، د راجح نوم محفوظ او د مرجوح نوم شاذ دی.

**منکر** : هغه حدیث دی د کوم چې کوم ضعیف راوي روایت وکړي او هغه له ځان نه هم د ضعیف تر راوي د روایت خلاف وي، د منکر مقابل معروف دی، د منکر او معروف دواړو روایتونو راوي ضعیف وي لیکن یو راوي د بل نه زیات ضعیف کیدلی شي په شاذ او محفوظ کې راوي قوي وي، لیکن د یو بل نه زیات قوي کیدلی شي، شاذ او منکر مرجوح محفوظ او معروف راجح شوي دي.او بعضو په شاذ او منکر کې د مخالف کوم قید نه دی لګولی، هغه که ضعیف وي که قوي وي او دوی ویلي دي چې شاذ هغه حدیث دی کوم چې په ثقه روایت کې متفرد وي او د هغه په موافقت او حمایت کې کوم اصل هم نوي او دا په صحیح او ثقه باندې صادق راغلی دی، او بعضو د ثقه او مخالفت اعتبار نه دی کړی.

همدارنګه منکر دی چې هغه داسې صورت مذکوره سره خاص شوی نه دی او د هغه کس حدیث ته هم منکر ویل شوی دی کوم چې په فسق،زیات غفلت او کثرت اغلاطو سره مطعون وي، دا جدا جدا اصطلاحات دي په کومو کې چې هیڅ خبره نشته.

**معلل** : (**بفتح اللام**) هغه سند دی په کوم کې چې د حدیث د صحت د مجروح کوونکو علل او خفي اسباب موندل کیږي، کله معلل (**بکسر اللام**) عبارت په خپله دعوه باندې د دلیل په قائمولو کې قاصر اوسي لکه چې د دینار او درهم ماتولو کې صراف په خپله دعوه باندې دلیل نه شي وړاندې کولی.

یو راوي که چیرته کوم حدیث بیان کړي او بل راوي بل حدیث بیان کړي کوم چې د هغه موافق وي نو دې حدیث ته **متابع** (بصیغه اسم فاعل) ویل کیږي او محدثینو ویلي دي (**تابعه فلان**) او امام بخاري کوم چې په خپل صحیح کې اکثر ویلي او اکثر محدثین هم وایي چې (**وله متابعات**) نو د دې معنیٰ همدا ده، متابعت تقویت او تایید واجب کوي لیکن دا ضروري نه ده چې متابعت په مرتبه کې د اصل سره برابر وي، متابعت د کمې مرتبې باوجود د متابعت صلاحیت لري، متابعت هم کله په نفس راوي کې وي، او کله په هغه شیخ کې کوم چې د هغه نه پورته وي، ړومبی د دویم نه اکمل او اتم دی ځکه چې کمزوري اکثر په اول د اسناد کې وي.

متابع که چیرته په لفظونو کې د اصل موافق شي نو مثله او که په لفظونو کې نه وي صرف په معنی کې موافقت وشي نو (نحوه) ورته ویلی شي ، په متابعت کې دا شرط دی چې دواړه روایتونه د یو صحابي نه وي، که د دوه جدا صحابو نه وو نو هغه ته شاهد ویلی شي لکه چې ویل کیږي: **له شاهد من حدیث ابوهریرة**، یا ویل کیږي : **له شواهد**، یا **شهد به حدیث فلان** . او بعضو خلکو متابعت صرف په لفظونو کې موافقت او شاهد د معنوي موافقت سره خاص کړی دی برابره خبره ده که د یو صحابي نه منقول وو یا د دوو نه ، او کله شاهد او متابع په یوه معنی سره استعمالیدی شي. وجه د هغه ښکاره ده. د شاهد او متابع د پیژندلو په غرض طریقه حدیث د هغه د اسناد تتبع او لټون ته اعتبار ورکړی شوی دی.

## څلورم فصل : د حدیث د اقسامو په بیان کې

د حدیث اصل قسمونه دري دي : (۱) صحیح ، (۲) حسن ، (۳) ضعیف .

صحیح د ټولو نه اعلی مرتبه ده، ضعیف ادنی او حسن متوسط درجه ده. ټول هغه قسمونه کوم چې مخکې تیر شوي دي په همدې دریو قسمونو کې داخل دي.

**صحیح** : حدیث صحیح هغه دی د کوم نقل کوونکی چې عادل، تام الضبط وي کوم چې نه معلل وي نه شاذ وي. که چیرته همدا صفتونه علی وجه الکمال وموندل شي نو هغه صحیح لذاته دی. او که په هغې کې کوم قسم نقصان وي لیکن په کثرت طرقو سره د هغه نقصان تلافي وشي نو هغه صحیح لغیره دی و که چیرته د همدې نقصان د تلافي کولو کوم شی نوي نو هغه حسن لذاته دی.

**ضعیف** : هغه حدیث دی په کوم کې چې دوه شرطونه په کلي طور یا په جزئي طور ورک شي کوم چې صحیح دپاره معتبر دي، که چیرته ضعیف حدیث په متعددو طریقو سره مروي وي او د هغه د ضعف تدارک شوی وو نو هغه حسن لغیره دی، په ظاهره دا معلومه شوې چې هغه صفت کوم چې د صحیح دپاره ضروري دي هغه په حسن کې ناقص شوي دي، لیکن تحقیق دا دی چې په حسن کې د کوم نقصان اعتبار شوی دی هغه صرف خفت ضبط دی کنه باقي صفات به په خپل ځای باندې وي.

**عدالت** : د هغې ملکې نوم دی کومه چې انسان په تقوی او مروت التزام ته آماده کوي، او د تقوی نه مراد شرک فسق او بدعاتو په شان نا مناسبه اعمالو نه د ځان ساتل دي، د صغیره ګناه نه د اجتناب په باره کې اختلاف دی. غوره مذهب دا دی چې دا شرط نه دی ځکه چې د دې نه ځان ساتل د انساني طاقت نه بهر دی، علاوه د دې چې په هغې باندې اصرار وکړی شي چې په همدې شان هغه هم کبیره وګرځي، او مروت نه مراد د بعضو هغو خسیسو او ورو خبرو نه ځان ساتل دي کومې چې ګوایا کې مباح دي مګر د سړیتوب خلاف دي، لکه په بازار کې خوراک څښاک کول او په لار کې متیازې کول وغیره. یاد ساتل په کار دي چې د روایت عدالت د شهادت د عدالت نه عام دی، ځکه چې د شهادت عدل د ازاد دپاره مخصوص دی او د روایت عدل ازاد او غلام دواړو لره شامل دی. او د ضبط نه مراد دی اوریدلی شوې

شیان د ضیاع او ضرر نه داسې محفوظ ساتل چې ددې حاضرول ممکن وي ، د همدې ضبط دوه قسمونه دي، ضبط صدر او ضبط کتاب، پس ضبط صدر په زړه کې د محفوظولو نوم دی او نورو ته تر رسولو وخت پورې د هغه د محفوظ ساتلو نوم ضبط کتاب دی.

## پنځم فصل : د طعن دوجوهاتو په بیان کې

دعدالت سره متعلق د طعن وجوهات پنځه دي: (۱)کذب(۲)اتهام کذب(۳)فسق(۴)جهالت(۵)بدعت د راوي د کذب نه مراد دا دي چې په حدیث نبوي کې د هغه دروغ ثابت شي، دا د کذب ثبوت یا په خپله د حدیث راوړونکي په اقرار سره وي یا په نورو قرائنو سره وي، د همداسې مطعون بالکذب راوي حدیث ته موضوع ویل کیږي، لکه چې د شیخ متعلق دا ثابت شي چې هغه په حدیث کې قصدا د دروغو نه کار اخیستی لکه چې هغه په ټول ژوند کې یو ځل همداسې کړي او بیا د دې نه توبګار شوی هم وي بیا هم د هغه حدیث هیڅکله قابل قبول نه دی . په خلاف د دروغجن چې کله هغه توبه وباسي نو له دې وروسته د هغه قول مقبول دی، پس د محدثینو په اصطلاح کې د موضوع حدیث نه مراد همدغه دی (د کوم چې ذکر وکړی شو) نه د هغه راوي حدیث د کوم چې کذب ثابت شو او دهغه په خصوصي طور د همدې حدیث راوړل معلوم وي او دا مسئله ظني ده.د وضع او افتراء حکم په ظن غالب باندې دی په هغه کې قطعیت او یقین ممکن نه دي ، ځکه چې له دروغژن نه هم کله کله رښتیا ویل کیږي، په دې سره د هغه قول هم رد شوی چې د وضع حدیث علم د واضع په اقرار باندې دی ځکه چې امکان لري چې هغه په همدې اقرار کې هم کاذب وي، د هغه ښه والی د ظن غالب په بناء باندې ګڼل شوی، که چیرته همداسې نوي نو د قتل اقرار کوونکي قتل او د زنا اعتراف کوونکي رجم به روا نه شي .د راوي د کذب سره د متهم کیدو صورت دا دی چې د خلکو سره په عامو خبرو اترو کې د هغه دروغژنوالی مشهور وي، بیا هم که په نبوي احادیثو کې د هغه کذب ثابت نه شي په دې حکم کې د همداسې کسانو روایتونه هم داخل دي کوم چې د شریعت د ضروري او معلومو قواعدو خلاف وي، د دې قسم راوي نوم متروک دی لکه چې ویل کیږي دا حدیث متروک دی او فلانی متروک الحدیث دی، که چیرته همدا کس د زړه په صدق سره توبه وکړي او د صدق نښانې د هغه په طرز عمل کې ښکاره شي نو د هغه د حدیث سماع روا ده، او د هغه کس د کوم نه چې نبوي حدیث نه علاوه په خبرو کې کله کله کذب واقع کیږي نو دا د هغه د حدیث د متروک یا موضوع کیدو د پاره نه کافي کیږي اګر که (په عامو خبرو کوم وخت هم کذب ویل) معصیت دی.د فسق نه مراد عملي فسق دی اعتقادي فسق نه دی ، اعتقادي فسق خو په بدعت کې داخل دی، اکثر د بدعت استعمال په اعتقاد کې کیږي او کذب اګر که په فسق کې داخل دی لیکن هغه جدا او مستقل اصل شمار شوی دی ځکه چې کذب انتهائي شدید طعن دی.

د راوي جهالت هم په حدیث کې د طعن سبب دی ځکه کله چې د راوي نوم او د هغه ذات معلوم نه وي نو د هغه حالات کله هم معلومیدی نه شي او نه د هغه د ثقه او غیر ثقه درک لګیدی شی، لکه کوم کس چې

ووایي (**حدثني رجل یا اخبرني شیخ**) ماته کوم کس حدیث بیان کړی دی یا ماته شیخ خبر ورکړی دی) نو د هغه نوم مبهم دی او مبهم حدیث غیر مقبول دی، مګر دا که راوي صحابي وو، ځکه چې صحابه کرام ټول عادلان دي.

که چیرته تعدیل په الفاظو سره بیان کړي لکه چې یو څوک ووایي (**اخبرني عدل یا حدثني ثقة**) په دې کې اختلاف دی، لیکن صحیح خبره دا ده چې مقبول دی، ځکه امکان لري چې د راوي په خیال کې خو عادل وي، لیکن په نفس الامر کې عادل نوي، البته که حاذق امام یې بیان کړي نو مقبول دی.
د بدعت نه مراد دا دی چې د دین د مشهورو خبرو خلاف او د هغې نه خلاف کوم چې د رسول الله ﷺ او د دوي د صحابه کرامو نه منقول دي **امر محدث** (نوی پیدا شوی کار) اعتقاد د شبه او تاویل په بنیاد باندې کول، ځکه چې همداسې انکار خو کفر دی.
او د بدعتي حدیث د جمهورو په نزد مردود دی او د بعضو په نزد مقبول دی، په دې شرط چې د لهجې په صدق او د ژبې په حفاظت سره متصف وي، او بعضو ویلي دي که چیرته هغه د داسې شرعي تواتر انکار وکړي د کوم متعلق چې یقیني علم وي چې هغه د دین د امر نه دی نو هغه مردود دی، او که په همدې شکل نوي نو هغه مقبول دی، ګوایا کې مخالفین د هغه تکفیر کوي، په دې شرط چې په هغه کې ورع تقوی احتیاط او د صیانت صفات وموندل شي.
د بدعتي په باره کې مختاره مذهب دا دی چې که چیرته هغه د بدعت داعي او د هغه رواج کوونکی وي نو هغه مردود دی که نه نو مقبول دی، په دې شرط چې هغه د داسې شیانو روایت ونکړي په کوم سره چې د ده بدعت ته تقویت حاصلیږي، ځکه چې په همداسې صورت کې هغه قطعا مردود دی.
لنډه دا چې د اهل بدعت او د هوا او دباطل مذهبونو والا نه د حدیث په اخذ کولو کې اختلاف دی، د جامع الاصول صاحب ویلي چې د محدثینو یو جماعت د خوارجو، قدریو، روافضو شیعو او نورو بدعتیانو نه حدیثونه اخذ کړي دي، او یو بل جماعت د احتیاط نه کار اخیستی دی او ددې ټولو فرقو نه یې د حدیث په اخذ کې پرهیز کړی دی، په دوی کې د هر یو خپل خپل نیت دی، د شک نه په غیر د دې دلو نه د حدیث په اخذ کې ډیر زیات لټون او کوشش ته ضرورت دی، بیا هم احتیاط په دې کې دی چې د دوي حدیث اخذ نکړی شي، ځکه دا خبره ثابته شوې ده چې دا د بدعتیانو فرقې د خپل مذهب د ترویج د پاره حدیثونه ګډ وډ کوي د توبې او رجوع وروسته د دې اقرار کوي، والله اعلم.

## شپږم فصل

د ضبط سره متعلق د طعن وجوهات پنځه دي: (۱) زیات غفلت (۲) ډیره غلطي (۳) د ثقاتو نه مخالفت (۴) وهم (۵) د حافظې کمزوري.

فرط غفلت او كثرت غلط د واړه قريب المعنى دي، د غفلت تعلق د سماع او تحصيل حديث سره دى او د غلطيا تعلق د بيان كولو او رسولو سره دى، په اسناد يا متن كې د ثقاتو نه مخالفت په څو طريقو شوى دى كوم چې د شذوذ باعث شوى دى او د همدې ضبط سره متعلق په وجوه طعن كې څكه شمار شوى دى چې د ثقاتو د مخالفت سبب د عدم ضبط حفظ تغير او تبديل نه نه محفوظ كيدل دي او د طعن وهم او نسيان سبب شوى دى چې راوي د دوي دواړو د وجې غلطي كړې د وهم په طور يې روايت كړى دى.

د دې وهم اطلاع كه په داسې قرائنو سره وكړى شي كوم چې د دې غفلت او قدح په اسبابو او عللو باندې دلالت كوي نو هغه حديث معلل شو، او په علم حديث كې د ټولو نه زيات دقيق او مشكله مسئله همدا ده، په دې هغه خلق پوهيدى شي كومو ته چې الله تعالى ژور فهم او وپراخه حافظه وركړې وي، او هغوى د اسانيدو او متونو احوالو او د روايانو د مرتبو د پيژندلو تام معرفت لري، لكه متقدمين چې د دې فن ارباب كمال دي د كومو سلسله چې امام دار قطني ته رسيدلې او ختمه شوې ده، چې د هغه نه وروسته په دې فن كې داسې صاحب كمال كوم يو پيدا شوى نه دى ، والله اعلم.

له سوء حفظ نه مراد د محدثينو په نزد دا دى چې د راوي اصابت د هغه په خطا باندې غالب نه شي او د هغه حفظ او اتقان د سهوې او نسيان نه زيات نه شي يعنې كه چيرته خطا او نسيان د هغه د صواب او اتقان مساوي وي يا غالب وي نو دا په سوء حفظ كې داخل شو، پس معتمد عليه صواب او اتقان او د دوي كثرت دى، د حافظه خرابي (سوء حفظ) كه چيرته هر وخت او تمام عمر د راوي شامل حال وي نو د هغه حديث غير معتبر كيږي، د بعضو محدثينو په نزد دا هم په شاذ كې داخل دى.

كه چيرته سوء حفظ د كوم عارض د وجې وي لكه د عمر ډيروالى، د نظر تلل يا د كتابونو ضايع كيدو په سبب په حافظه كې خلل پيدا شي نو هغه ته مختلط ويل كيږي، پس ددې راوي د اختلاط نه مخكې روايت شوي حديثونه مقبول دي په دې شرط چې هغه روايتونه د همدې حالت د طاري كيدو وروسته روايتونو نه ممتاز وي، كه ممتاز نه وي نو توقف دې وكړى شي، كه مشتبه وي بيا هم همدا حكم دى، او كه چيرته د همداسې مختلط راوي د بيان كړده حديثونو متابعات او شواهد وو نو بيا هغه د مردود كيدو پر ځاى د قبوليت او رجحان درجه لري، او همدا حكم د مستور مدلس او مرسل حديثونو دى.

## اوم فصل : د روايانو د تعداد په بيان كې

د صحيح حديث مختلف مراتب او درجات دي، كه چيرته د هغه راوي يو دى نو هغه غريب دى، كه دوه روايان دي نو هغه حديث عزيز دى، او كه د دوو نه زيات وي نو هغه مشهور يا مستفيض دى، او د كوم حديث راويان كه چيرته دې حد ته ورسيږي چې د هغه په كذب باندې متفق كيدل محال وي نو دې حديث ته متواتر ويل كيږي، او د غريب يو نوم فرد هم دى او مراد له دې نه د راوي په كوم ځاى كې ځانله والى دى ، كه چيرته په اسناد كې يو ځاى وو نو هغه ته فرد نسبي ويل كيږي او كه په هر ځاى كې وو نو فرد

مطلق ورته ويلى شي. او د دوه كيدو مطلب دا دى چې په هر ځاى كې همداسې وي كه چيرته صرف په يو ځاى كې وي نو هغه حديث عزيز نه دى غريب دى، همدارنګه په حديث مشهور كې د كثرت معنى دا ده چې په هر ځاى كې د دوو نه زيات راويان وي او همدا مطلب دى د محدثينو د دې قول چې په دې فن كې اقل په اكثر باندې حاكم دي. د دې بحث نه دا معلومه شوه چې غرابت د صحت منافي نه دى او دا ممكن ده چې حديث صحيح غريب وي په دې ښان چې د هغه ټول راويان ثقه وي او غريب كله د شاذ په معنى سره مستعمليږي يعنې هغه شذوذ كوم چې په حديث كې د طعن د اقسامو نه دى، همدا شذوذ مراد دى.

صاحب المصابيح په دې قول سره (**هذا حديث غريب**) كله چې هغه په طريقه د طعن بيان كړي او بعضو د ثقاتو د مخالفت نه علاوه لكه چې مخكې تير شوي د شاذ تفسير په مفرد راوي سره كړى دى او دوي ويلي دي چې دا حديث صحيح شاذ او صحيح غير شاذ دى، پس شذوذ د دې معنى په لحاظ سره هم د غرابت په شان د صحت منافي نه دي ، البته كله چې د طعن په مقام كې ذكر كړى شي نو هلته د ثقاتو مخالفت معتبر كيږي نو ځكه هغه د صحت منافي دى.

## اتم فصل

ضعيف حديث هغه دى په كوم كې چې هغه شرطونه د كوم اعتبار چې په حسن او صحيح حديثونو كې شوى دى ټول يا د هغو نه يو مفقود وي او د هغه راوي د شذوذ او نكارت يا د كوم علت د وجې مذمت شوى وي، په همدې اعتبار سره د ضعيف حديث ډير قسمونه جوړ دي، همدارنګه صحيح لذاته او صحيح لغيره، حسن لذاته او حسن لغيره د كمال په دې صفاتو كې مختلف مراتب او درجات حامل شوي دي، كوم چې د دوي دواړو په مفهوم كې معتبر كيدلى شي، په داسې حال كې چې اصل كې په صحت او حسن كې د دوي په منځ كې اشتراک دى، محدثينو د مراتبو د صحت انضباط او د هغو تعين كړى دى او په اسناد كې د هغه مثالونه وركړي دي چې عدالت او ضبط تمام رجال حديث ته شامل دى يا هم په بعضو باندې فوقيت لرلى شي. مطلقا كوم خاص سند ته **اصح الاسانيد** (له ټولو زيات صحيح سند) ويلو كې اختلاف دى، بعضو **زين العابدين عن أبيه عن جده** ته **اصح الاسانيد** ويلى دى، بعضو **مالک عن نافع عن ابن عمر** ته او بعضو **سالم عن ابن عمر** ته.

ليكن صحيح خبره دا ده چې په كوم يو مخصوص سند باندې په اصح كيدو باندې مطلقا حكم لګول صحيح نه دي. ځكه چې په صحت كې ډير مراتب دي او ډير زيات اسناد په هغه كې داخل شوي دي، البته په هغه كې دننه قيد لګول شوى چې دا په فلاني ښار كې اصح الاسانيد دي، يا فلاني باب كې يا فلاني مسئله كې أصح الاسانيد دى نو صحيح دى ، **والله اعلم**.

## نهم فصل

د امام ترمذي رَحِمَهُ اللّٰهُ عادت دی چې دا په جامع ترمذي کې په یو یو حدیث باندې په یو وخت کې څو څو احکام لګولي دي، مثلا دا حدیث حسن صحیح دی، دا غریب حسن دی، دا حدیث حسن غریب او صحیح دی، د دې توجیه دا ده چې د حسن او صحیح د اجتماع په جواز کې په دې شان شبه نه شي کیدی کوم حدیث حسن لذاته او صحیح لغیره شو، همدارنګه د غرابت او صحت په اجتماع کې شبه نشته البته د غرابت او حسن په اجتماع کې خلکو څه اشکال محسوس کړی دی، په همدې وجه امام ترمذي په حسن کې تعدد طرق اعتبار کړی دی بیا هغه غریب څنګه کیدی شي (په غریب کې خو طرق متعدد نه شي کیدی) .د دې جواب محدثینو دا ورکړی دی چې په حسن کې د طرقو تعداد علی الاطلاق نه دی، بلکې د هغه په یو قسم کې دی.او کله چې د حسن او غرابت د اجتماع حکم ولګول شي نو د هغه نه مراد

دویم قسم وي، او په بعضو طریقو کې حسن او په بعضو کې واو د او په معنی سره دی یعنې هغوی ته په دې باره کې د یقیني علم نه لرلو د وجې شک او تردد دی چې آیا دا حدیث حسن دی او که غریب دی. او بعضو دا ویلي چې دلته له حسن نه د هغه اصطلاحي معنی نه ده مراد بلکې لغوي معنی مراد ده، یعنې د کوم طرف ته چې طبعیت مائل وي، لیکن دا قول ډیر مستبعد دی.

## لسم فصل

د حدیث صحیح په احکامو کې حجت کیدل د ټولو په نزد متفق علیه دي، همدارنګه د عامو علماو په نزد حسن لذاته دی چې هغه هم په قابل حجت کیدو کې د صحیح سره ملحق دی نو لکه دا په رتبه کې د صحیح نه کم دی، همدارنګه د هغه ضعیف حدیث قابل احتجاج کیدو کې هم اتفاق دی کوم چې د تعدد د طرقو د وجې د حسن لغیره درجې ته رسیدلی وي.دا کومه چې مشهوره خبره ده چې ضعیف حدیث د اعمالو په فضائلو کې معتبر دی له هغو پرته نه دي نو د دې نه مراد مفرد احادیث دي نه هغه احادیث کوم چې په متعدد طریقو سره مروي شوي دي ځکه چې داسې احادیث ضعیف نه دي بلکې د حسن په درجه کې داخل دي، د دې صراحت ائمو کړی دی.

بعضو ویلي دي چې که چیرته ضعیف د سوء حفظ یا اختلاط یا تدلیس د وجې وي د هغه راوي په صدق او دیانت سره متصف وي نو د هغه تدارک په تعدد د طرقو سره کیدی شي او که د هغه ضعف د اتهام کذب یا شذوذ یا فاحشې خطا د وجې وي نو په تعدد د طرقو سره د هغه تدارک ممکن نه دی، همدارنګه هغه ضعیف ګڼل شوی کوم چې په فضائلو کې په کار راتلی شي، همدا حکم د محدثینو د هغې مقولې دپاره هم دی چې د ضعیف سره د ضعیف په یو ځای کولو د قوت دپاره مفید دی، یعنې له دې نه هم هغه ضعیف روایتونه مراد دي د کوم د ضعف چې په تعدد د طرقو سره تلافي کیدی نشي، که دا مطلب وانه اخیستل شي نو د محدثینو دا قول به لغوه وګڼل شي، فتدبر.

## يو لسم فصل : د كتابونو د مراتبو په بيان كې

كله چې د صحيح په مراتبو كې تفاوت دی چې بعضې د بعضو نه زيات صحيح دي نو معلومول په كار دي چې د جمهورو محدثينو په نزد دا فيصله شوې چې صحيح بخاري په ټولو تصنيف شده كتابونو كې مقدم دی، ترڅو چې د دوی قول دی چې :**اصح الكتب بعد كتاب الله صحيح البخاري**، د كتاب الله وروسته صحيح ترين كتاب صحيح بخاري دی، البته بعضو مغاربو صحيح مسلم ته په صحيح بخاري باندې ترجيح وركړې ده، جمهورو ويلي دي چې داسې خلكو صرف د حسن بيان، وضع ترتيب خوبي، د دقيق اشاراتو او اسنادو كې د نكاتو خوبيانې په نظر كې نيولې دي حالانكه په دې بناء ترجيح او غير ترجيح د بحث نه خارج دي. اصل خبره په صحت او قوت او د دوی سره په تعلق لرونكو شيانو كې ده او په همدې لحاظ د همدې شرطونو او كمال صفات په بناء د صحيح بخاري برابر نشته دی، په كوم كې چې امام بخاري د صحت متعلق په رجال حديث كې خيال ساتلی دی او بعضو په دوی دواړو كې يوه ته په بل باندې ترجيح وركولو كې توقف كړی دی، ليكن اول مسلک صحيح دی (د كوم له مخې چې بخاری شريف ته ترجيح حاصله ده).هغه حديث د كوم په تخريج كې چې امام بخاري او امام مسلم متفق وي هغه ته متفق عليه ويل كيږي شيخ ابن حجر عسقلاني ويلي دي په دې شرط چې هغه د يو صحابي نه وي، محدثينو ويلي دي چې متفق عليه احاديث دوه زره دری سوه شپږ ويشت(۲۳۲۶) دي، لهذا دا په كومو چې شيخين (امام بخاري او امام مسلم رَحِمَهُمَا اللهُ) متفق وي هغه په نورو حديثونو باندې مقدم دي. دويم نمبر هغه احاديث دي د كومو چې صرف امام بخاري روايت كړی دی، بيا هغه د كومو چې امام مسلم روايت كړی دی، د دوي نه وروسته د هغو احاديثو نمبر دی كوم چې د بخاري او د مسلم د شرطونو سره برابر وي، د دې وروسته د هغو امامانو روايت شوي حديثونه دي كوم چې د صحت التزام كړی دی او د هغو يې تصحيح كړې ده، په همدې شان ټول اوه قسمونه شول.

د بخاري او مسلم د شرط نه مراد دا دی چې رجال حديث په هغو صفاتو سره متصف وي له كومو سره چې د بخاري او مسلم رجال د ضبط اعتدال، عدم شذوذ نكارت او عدم غفلت كې متصف دي، او د بعضو په نزد د بخاري او د مسلم د شرط نه مراد دا دی چې د هغو رجال هغه وي كوم چې د بخاري او د مسلم دي، بهر حال دا يو اوږد بحث دی كوم چې مونږ په **مقدمه شرح سفر السعادة** كې بيان كړی دی.

## دو لسم فصل

صحيح احاديث صرف په بخاري او مسلم كې منحصر نه دي او نه دوی دواړو د احاديثو پوره شمير كړی دی، البته دا ضروري ده چې په هغو كې كوم احاديث دي هغه ټول صحيح دي او ډير داسې احاديث دي كوم چې د دوی په نزد صحيح وو او د دوی د شرطونو مطابق هم وو.ليكن د دې باوجود هغه يې په خپلو كتابونو كې نه دي راوړي، تر يو څه ځايه يې داسې احاديث راوړي دي كوم چې د دوی نه علاوه د نورو

په نزد صحيح وو ، امام بخاري ويلي دي چې ما په خپل كتاب جامع صحيح كې صرف صحيح احاديث راوړي دي او ډير زيات صحيح احاديث مې پريښي هم دي، د امام مسلم قول دی چې ما په خپل كتاب كې كوم احاديث راوړي دي هغه ټول صحيح دي، بيا هم زه نه وايم كوم احاديث چې ما پريښي دي هغه ضعيف دي، البته په دې اخذ او ترک كې مې هغه د صحت وجوهات او نور مقاصد ملحوظ كړي وو او د هغو د مخې همداسې شوي دي.امام حاكم ابو عبد الله نيشاپوري رَحِمَهُ اللّٰهُ يو كتاب تصنيف كړی دی د كوم نوم چې **مستدرک** دی، كوم احاديث چې بخاري او مسلم پريښي دي ده هغه په خپل دې كتاب كې بيان كړي دي د هغو تدارک يې كړی دی، ددې نه علاوه هغه احاديث يې بيان كړي دي كوم چې د دوی دواړو د شرطونو يا په دوی كې د يوه د شرط مطابق دي، او څه داسې احاديث هم يكې راوړل شوي دي كوم چې د شيخينو نه علاوه د نورو ائمو په شرط باندې دي.

امام حاكم د خپل كتاب په شروع كې ويلي چې امام بخاري او امام مسلم دا فيصله هيڅكله نه ده كړې چې د دوی په كتابونو كې د بيان شويو احاديثو نه علاوه چې كوم نور احاديث دي هغه صحيح نه دي، امام حاكم ويلي دي چې زمونږ په زمانه كې د بدعتيانو يوه ډله پيدا شوې ده كومو چې د دين په امامانو پسې د طعن ژبه اوږده كړې ده چې د دوی د احاديثو شمير لسو زرو ته هم نه دی رسيدلی او د امام بخاري نه منقول دي چې هغه ويلي دي چې ما ته يو لک صحيح او دوه لكه غير صحيح احاديث ياد وو، د دې صحيح نه په ظاهر كې مراد (**والله اعلم**) هغه صحيح دي كوم چې د دوی د شرطونو مطابق وو.

په دې كتاب يعنې صحيح بخاري كې د تكرار سره بيان شوي دي د احاديثو شمير اوه زره دوه سوه پنځه اويا (۷۲۷۵) دي او د تكرار د حذف نه وروسته څلور زره (۴۰۰۰)دي، نورو ائمو هم د صحاحو تصنيف كړی دی لكه صحيح ابن خزيمه، هغه ته امام الائمه ويل شوی دی او د ابن حبان شيخ (استاذ) دی، ابن حبان رَحِمَهُ اللّٰهُ د هغه په تعريف كې ويلي دي چې ما د زمكې پر مخ داسې كوم انسان نه دی ليدلی كوم چې په علم حديث كې دده نه زيات او د حديث صحيح الفاظ يې د ده نه زيات وي، ګويا چې ټول احاديث د هغه د نظر لاندې وو او څرنګه چې د ابن خزيمه رَحِمَهُ اللّٰهُ شاګرد ابن حبان رَحِمَهُ اللّٰهُ صحيح دی كوم چې ثقه ثابت فاضل او فهيم امام دی.امام حاكم ابو عبد الله نيشاپوري رَحِمَهُ اللّٰهُ كوم چې حافظ ثقه دی د هغه صحيح دی د **مستدرک** په نوم.دده په دې كتاب كې څه تساهل لار موندلې ده په كومو چې د خلكو نيوكه ده، خلكو ويلي دي چې ابن خزيمه او ابن حبان د حاكم نه زيات قوي مستند او په اسانيدو او متونو كې د ډير بهتر اسلوب حامل دی، او څرنګه چې د حافظ ضياء مقدسي مختاره (مجموعی حديث) دي په كومو كې چې هغه هغه احاديث بيان كړي دي كوم چې په بخاري او مسلم كې نشته او محدثينو د هغه مختاره له مستدرک نه بهه ګڼلې ده، او لكه د ابو عوانه او ابن السكن صحيح او د ابن جارود **المنتقی** دا

هم هغه کتابونه دي په کومو کې چې په خاص طورد صحیح احادیثو اهتمام شوی ، یا بعضو خلکو په دې کتابونو باندې غلط یا صحیح تنقید هم کړی دی، وفوق ذي کل علم علیم ،دهرصاحب علم پورته صاحب علم موجود دی.

## دیارلسم فصل

هغه شپږ کتابونه کوم چې مشهور دي او په اهل اسلام کې ویل او لوستل کیږي هغو ته صحاح سته ویل کیږي، او هغه دا دي :(۱) صحیح بخاري (۲) صحیح مسلم (۳) جامع ترمذي (۴) سنن ابی داؤد (۵) سنن نسائي (٦) سنن ابن ماجه.او د بعضو په نزد د شپږم ابن ماجه پر ځای موطأ امام مالک ده، صاحب جامع الاصول هم موطأ امام مالک غوره کړی دی (اود بخاري او مسلم نه علاوه) په څلورو کتابونو کې صحیح حسن او ضعیف هر رنګه حدیثونه دي مګر د دوی ټولو نوم صحاح سته د تغلیب په طور باندې دی. صاحب مصابیح د صحیحینو د حدیثونو پرته د نورو کتابونو د احادیثو نوم حسن ایخی دی، کوم چې د همدې تغلیب طریقې اولغوي معنی ته قریب دي، یا دا چې دا د هغه خپله کومه نوې اصطلاح ده، او د بعضو په خیال کې سنن دارمي شپږم کتاب شمار کول ډیر مناسب او لائق دي، ځکه چې د هغه په رجالو کې ضعف کم او د هغه په احادیثو کې منکر او شاذ حدیثونه نادر دي، د هغه سندونه عالي دي او د هغه ثلاثیات د بخاري د ثلاثیاتو نه زیات دي.

دا ذکر شوي کتابونه هغه دي کوم چې ډیر زیات مشهور دي یا هم ددې نه علاوه نور ډیر کتابونه مشهور دي، امام سیوطي رَحِمَهُ اللهُ په خپل کتاب (جمع الجوامع) کې د ډیرو کتابونو احادیث راخستي دي د کوم شمیر چې د پنځوسوونه زیات دی او کوم چې په حسن، صحیح او ضعیف حدیثونو باندې مشتمل دی، او امام سیوطي دا هم ویلي دي چې ما په دې کتاب کې داسې احادیث نه دي راوړي کوم چې په وضع سره موسوم وي او د کومو چې په رد او ترک باندې د محدثینو اتفاق وي.

او صاحب مشکوة د خپل کتاب په دیباچه کې د متقنینو ائمو ذکر کړی دی د کومونومونه چې دا دي : امام بخاري، امام مسلم، امام مالک، امام شافعي، امام احمد بن حنبل، امام ابوداؤد، امام نسائي، امام ابن ماجه، امام دارمي، امام دار قطني، امام بیهقي او امام رزین رَحِمَهُمُ اللهُ ، د دوی نه علاوه د نورو امامانو ذکریې اجمالاً کړی دی، مونږ د دې ټولو امامانو په حالاتو جدا جدا یو کتاب (الا کمال بذکر اسماء الرجال) کې لیکلی دی، ومن الله التوفیق وهو المستعان فی المبدأ والمعاد.

**تنبیه** : د مصطلحات حدیث دا مقدمه د شیخ عبدالحق محدث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ ده کومه چې په عربي ژبه کې ده او دا اردو ترجمه د مولانا عبدالعلیم صاحب رَحِمَهُ اللهُ ده ما د هغه نه نقل کړې ده.

# عرضِ حال

بنده عاجز فضل محمد بن نور محمد یوسف زئي عرض کوي چې کله د الله تعالی رحمت راباندې وشو نو ما تقریبا د شپاړس کلونو په عمر کې ۲۲ فروري ۱۹۶۸ کې د هري پور هزاره صوبه سرحد په مدرسه ربانیه ریلوی سټیشن کې اوله درجه ویل شروع کړه، بیا ما دویمه درجه په انوار القرآن مدرسه ایبټ آباد کې وویله، او دریمه درجه مې بیا په مدرسه ربانیه هري پور کې وویله، ما په ۱۹۷۱ او ۱۹۷۲ کې دوه کاله دارالعلوم کورنګي کراچي کې څلورمه او پنځمه درجه وویله، په ۱۹۷۳ کې ما شپږمه درجه د ګوجرانواله په اشرف العلوم کې وویله، په ۱۹۷۴ کې مې په جامعه دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک کې د شپږمې درجې مختلف کتابونه شروع کړل مګر د ناروغی په وجه درې میاشتې وروسته واپس ایبټ آباد ته لاړم او کال تیر شو، په ۱۹۷۵ کې ما د زیات علم حاصلولو دپاره په مدرسه مظهر العلوم مینګوره سوات کې داخله واخسته او اومه درجه مې هلته د حضرت مولانا فضل محمد سواتي صاحب سره وویله، د هغه سره ما دوه کاله تیر کړل، د هغه نه ما مشکوة شریف مکمل وویلو د ادب په فن کې مې متنبي، په فقه کې مې اخیرنی هدایې وویلې، دا زما د ژوند هغه برخه ده په کومه کې چې زما رب ماته د حضرت مولانا فضل محمد سواتي رَحِمَهُ اللهُ د فیض نه د حدیثو په فن او د ادب په فن کې ښه برخه راکړه، د حضرت مولانا په اجازت زه د دوره حدیث دپاره په کال ۱۹۷۷ کې جامعة العلوم الاسلامیه علامه بنوي ټاون ته راغلم او داخله مې واخسته، د بخاري شریف دواړه برخې مې د محدث عصر مولانا سید محمد یوسف بنوري رَحِمَهُ اللهُ سره وویلې، د سه ماهي امتحان په دوران کې حضرت مولانا فضل محمد سواتي رَحِمَهُ اللهُ کراچی ته تشریف راوړلو نو د بخاري دویم جلد مې د هغه نه وویلو، جامع ترمذي مې د حضرت مولانا حسن صاحب ټونګي رَحِمَهُ اللهُ نه وویله، په بنوري ټاون کې د حضرت بنوري دا اخیرنی کال وه، په همدې مبارکه جامعه کې مې دستاربندي وشوه.

مناسبه معلومه شوه چې زه دلته اجازت حدیث او سند سلسله هم ذکر کړم ځکه **(الاسناد من الدین ولولا الاسناد لقال من شاء ما شاء)** د محدثینو عظامو په نزد مشهوره ضابطه قابل اعتماد او قابل یقین سلسله ده، لهذا زما د غټو استاذانو نه حضرت اقدس حضرت مولانا محمد یوسف بنوري رَحِمَهُ اللهُ او حضرت مولانا فضل محمد سواتي رَحِمَهُ اللهُ او حضرت اقدس مولانا مفتي ولي حسن ټونګي رَحِمَهُ اللهُ داسې دي کومو چې براه راست د شیخ الاسلام حضرت مولانا سید حسین احمد مدني رَحِمَهُ اللهُ شاګردان دي، په همدې شان په یوې واسطې سره د حضرت مدني رَحِمَهُ اللهُ د شاګردای شرف هم حاصل شوی دی، بنده د بنوري ټاون په دار الحدیث کې د خپلو ملګرو سره د حضرت مولانا مفتي محمود صاحب رَحِمَهُ اللهُ نه د بخاري شریف یو سبق ویلی دی په دې سره هم د سند عالي درجې ته رسیدل دي، لیکن مونږ برکة العصر شیخ الحدیث حضرت مولانا زکریا رَحِمَهُ اللهُ د بنوري ټاون په دارالحدیث کې چې کوم دوه سندونه

راکړي دي رومبی هغه دلته نقل کوم.

## د حديث سند

**اول:** فضل محمد بن نور محمد يوسف زئي عن شيخ الحديث مولانا زکريا عن مولانا محمد يحيى عن مولانا رشيد احمد گنگوهي عن مولانا شاه عبدالغنى عن شاه محمد اسحاق عن شاه ولي الله.

**دويم:** فضل محمد بن نور محمد يوسف زئي عن شيخ الحديث مولانا محمد زکريا عن مولانا خليل احمد سهارنپوري عن شيخ عبدالقيوم بدهانوي عن شاه محمد اسحاق عن شاه عبدالعزيز عن شاه ولي الله.

**دريم:** فضل محمد بن نور محمد يوسف زئي عن محدث العصر مولانا محمد يوسف البنوري عن شيخ الاسلام حسين احمد مدنی وشاه انور شاه کشميري عن شيخ الهند محمود الحسن عن حجة الاسلام قاسم نانوتوي عن شاه عبدالغني عن شاه محمد اسحاق دهلوي عن شاه عبدالعزيز عن شاه ولي الله.

**څلورم:** فضل محمد بن نور محمد يوسف زئي عن فقيه العصر شيخ کامل مولانا فضل محمد سواتي عن شيخ الاسلام سيد حسين احمد مدنی عن امام الهند وشيخ الهند محمود الحسن عن حجة الاسلام مولانا محمد قاسم نانوتوی وفقيه النفس مولانا مفتی رشيد احمد گنگوهی عن شاه عبدالعزيز عن شاه محمد اسحاق دهلوي عن شاه عبدالعزيز عن شاه ولی الله.

**پنځم:** فضل محمد بن نور محمد يوسف زئي عن محدث العصر مولانا سيد محمد يوسف البنوري عن الشيخة امة الله عن ابيها شاه عبدالغني عن شاه محمد اسحاق عن شاه عبدالعزيز عن شاه ولي الله ،

رحمهم الله هؤلاء الاماثل الامجاد رحمةً واسعة وجعل قبورهم روضات من رياض الجنة .

## فراغت او تدريس

د فراغت نه وروسته ما يو کال په يو گمنامه مدرسه کې تدريس وکړو او بيا مې په جامعه حماديه شاه فيصل کالونی کې اته کاله د تدريس فرائض ترسره کړل، د طحاوي شريف او سنن ترمذي ويلو موقع هم راته پيدا شوه، بيا د جامعه علوم اسلاميه علامه بنوري ټاون په شاخ مدرسه عربيه اسلاميه ملير کې د بنده تقرر مفتي احمد الرحمن رَحِمَهُ اللهُ وکړ، دلته دوه کاله په ابتدائي درجو کې د تدريس کولو موقع پيدا شوه او د جمعرات په ورځ ۱۹ شوال ۱۴۰۹ هـ بمطابق ۲۵ مى ۱۹۸۹ ع کې په دې مقدس درسگاه کې د تدريس پيل وشو، همدغه کال بنده ته د لوستلو دپاره مشکوة شريف اول جلد ورکړی شو او له ۱۴۰۹هـ نه نيولې تر ۱۴۱۷ هـ پورې مکمل اتو کلونو کې د مشکوة شريف اول جلد مې ولوست او بيا له ۱۴۱۷هـ نه تر دې وخت ۱۴۲۲هـ پورې الحمد لله د مشکوة شريف دويم جلد وايم.

په مشکوة شريف کې الله تعالى حضرت مولانا فضل محمد صاحب سواتي رَحِمَهُ اللهُ ته خصوصي مهارت ورکړی وو، بنده د هغه درس مکمل ليکلی وو او بيا د لوستلو په زمانه کې تو له شپه په محنت سره د مختلفو کتابونو مطالعه کيدله او له مختلفو شروحاتو نه واضح او اهم مباحث په يوه مسوده کې جمع

کيدل، د هر درس سره تاريخ هم ليکل شوی دی او بيا د درس په اندازه سبق جدا جدا ليکل شوی دی، په همدې شان د شوال نه نيولې د رجب تر لسم تاريخ پورې هر سبق سره تاريخ متعين شوی، ما مسلسل له دې مسودې نه استفاده کوله ځکه چې دا د ډيرو کتابونو او ډيرو شروحاتو نچوړ وو، بيا د الله تعالى په مهربانۍ سره کله چې د مشکوة د دويم جلد د لوستلو موقع په لاس راغله نو ما د هغه سبقونه هم په همدې طرز ضبط کړل، د شپې مې تر ډيره پورې د درس دپاره مطالعه هم کوله او هره ورځ د مسودې يوه پارچه مې تياروله، په همدې طرز د مشکوة شريف د اول جلد مسوده تياره شوه، کومې چې تقريبا څوارلس کلونه وروسته د شرح صورت غوره کړ.

ماته بعضې وخت طالبانو او دوستانو دې طرف ته توجه راکوله چې تاسو خپله دغه مجموعه په کتابي شکل کې نشر کړئ مگر ما په زړه او دماغو سره د دې تصور هم نشوی کولی، ځکه چې دا يو ډير درونډ کار وو، ليکن وروسته الله تعالى زما په زړه کې يوه مطالبه پيدا کړه د کومې د وجې چې ما په خپله د بعضو بزرگانو نه مشوره وغوښتله چې زه داسې اراده لرم ستاسو رأيه څه ده؟ بعضو دوستانو يې تعريف وکړ خو بعضو کرم وکړ او په دې يې زور وکړ چې دا کار خامخا وکړې، مدينې منورې ته کله چې د عمرې ادا کولو دپاره ۱۴۲۱ هجري په رمضان المبارک کې بنده د يوه علم دوست او بيدار معزز شخصيت حضرت مولانا عبدالوحيد عبدالحق مد ظله پر وړاندې کې د دې يادونه وکړه نو هغه د ضرورت نه زياته په دې کې دلچسپي واخيسته او وې فرمايل چې ما مشکوة شريف د برکة العصر شيخ الحديث مولانا زکريا رَحِمَهُ اللّٰهُ نه ويلی او په کيسټونو کې مې جمع کړی، زه به هغه هم را وباسم که چيرته په هغو کې د مشکوة د بحثونو متعلق مفيدې خبرې راغلې هغه هم په خپلو تشريحاتو کې شاملې کړه، اګر که د دې نوبت را ونه رسيد ليکن حضرت مولانا زما ډيره حوصله افزائي وکړه الله تعالى دې جزاء خير ورکړي. په دې سفر کې بنده د نورو اهل الله او اولياء الله نه د دې کار د تکميل او قبوليت دپاره د دعاګانو غوښتنه وکړه او بيا په مکه مکرمه زادها الله شرفا کې د بيت الله په غيږ کې د جمعې او هفتې په منځنۍ شپه کې دولس نيمې بجې د ميزاب رحمت پر وړاندې ۱۴۲۱ هجري د رمضان المبارک په ۱۳ د تبرک په طور په دې آيتونو سره شروع وکړه:

## په مکه مکرمه کې د مشکوة د شرح ابتداء

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿ اللَّهُ نُورُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ مَثَلُ نُورِهِ كَمِشْكَاةٍ فِيهَا مِصْبَاحٌ الْمِصْبَاحُ فِي زُجَاجَةٍ الزُّجَاجَةُ كَأَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ يُوقَدُ مِن شَجَرَةٍ مُّبَارَكَةٍ زَيْتُونَةٍ لَّا شَرْقِيَّةٍ وَلَا غَرْبِيَّةٍ يَكَادُ زَيْتُهَا يُضِيءُ وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ نُّورٌ عَلَىٰ نُورٍ يَهْدِي اللَّهُ لِنُورِهِ مَن يَشَاءُ ﴾ (سورة نور ۳۵).

**ترجمه** : الله د آسمانونو او زمکې نور دی، د دې نور مثال داسې دی لکه کوم (مشکوة) په طاق کې د چراغ شیشې په دیوه کې دی قندیل ګویا کې د ملغلرو په شان پرقیپدونکی ستوری دی کوم چې د زیتون په مبارکې ونې سره روښانه شوی دی، نه د مشرق طرف ته دی نه د مغبرب، د هغه تیل نزدې دي چې رڼا شي اګر که هغه اور مسه نکړي، په رڼائي باندې رڼائي ده، الله تعالی چې چاته وغواړي د خپلې رڼائي لار ورښايې او الله تعالی د خلکو دپاره مثالونه بیان کړي دي او الله تعالی د هر شي پیژندونکی دی.

## د مدینې منورې په مسجد نبوي کې د مشکوة د شرحې ابتداء

بسم الله الرحمن الرحيم

**و عن عمر بن الخطاب رضي الله عنه قال : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم إنما الأعمال بالنيات و إنما لكل امرء ما نوى فمن كانت هجرته إلى الله و رسوله فهجرته إلى الله ورسوله و من كانت هجرته إلى دنيا يصيبها أو إلى امرأة يتزوجها فهجرته إلى ما هاجر إليه (متفق عليه).**

**ليلة الجمعة الساعة الواحدة والنصف(۱:۳۰) في المدينة المنورة زادها الله شرفا في روضة من رياض الجنة بين منبر النبي او بين بيته وروضته المقدسة (۱۹ رمضان ۱۴۲۱ هـ ۱۵ دسمبر ۲۰۰۰).**

**اللهم تقبله مني واجعله مقبولا عند العلماء والأولياء وعند طلبة الدين وانفعني به في الدنيا والآخرة واجعله نافعًا للمسلمين آمين يا رب العلمين. أما بعد!**

عاجز بنده فضل محمد بن نور محمد یوسف زئي عرض کوي چې د توضیحات په نوم د مشکوة د شرحې شروع په مدینه منوره زادها الله شرفا کې د جمعې په ورځ دولس نیمې بجې د شپې د نبوي منبر او روضه مطهره په مینځ کې د ریاض الجنة په اوسط کې د ټولو زیات متبرک ځای په اسطوانه عائشه صدیقیه کې وشوه والحمد لله على ذلك حمدا كثيرا كثيرا، زه د خپل رب شکر په کومه ژبه کوم او کوم قلم او کومو دماغو سره ادا کړم کوم پروردګار چې ما غوندې حقیر او فقیر او زما په شان د ټولو طرفونو ناکاره او زما په شان کمزوري او ضعیف ته په همدې مقدسو ځایونو کې د حاضریدو موقع راکړه او زما په زړه کې یې زمونږ د خوږ پیغمبر صلى الله عليه وسلم د احادیثو مبارکو خدمت او د هغو د شرحې او توضیح مطالبه پیدا کړ بس زه دومره ویلی شم چې :

**اللهم لك الحمد كما ينبغي لجلال وجهك وعظيم سلطانك الله لا إله إلا أنت لا شريك لك ولا مثال لك ولا مثيل لك أنت الفرد الأحد الصمد الذي لم يلد ولم يولد ولم يكن له كفوا أحد،**

**اللهم صل على سيد الأولين والآخرين امام المتقين جيش الأنبياء والمرسلين صاحب جوامع الكلم وصاحب الجمل الأحمر والسيف المشهر وعلى آله الطاهرين و أصحابه الطيبين إلى يوم الدين، آمين يا رب العالمين.**

## يو څه د همدې شرحې متعلق

څه خبرې ددې نه مخکې د عرض حال تر عنوان لاندې وليکل شوې د مزيد وضاحت دپاره عرض دی چې ما "**توضيحات شرح مشكوة**" کې دا طريقه غوره کړې ده چې د هر څه نه مخکې مې حديث شريف ليکلی دی او په هغه کې مې مکمل اعراب لګولی دی ترڅو چې د حديث د عبارت په ويلو کې غلطي ونه کړی شي، بيا د حديث واضحه لفظي ترجمه شوې، او بيا د عنوان په طور د توضيح لفظ دی، په حديث کې که چيرته کوم مشکل لغت وي نو د هغه لغوي تحقيق شوی او بيا د همدې حديث فقهي بحث شوی کوم چې د فقهاء کرامو د څلورو مذهبونو په رڼا کې شوی، خو که چيرته د څلورو مذهبونو نه په غير کوم فکري کلام دی د هغه هم تحقيق شوی دی، په فقهي بحثونو کې دا طرز غوره کړی شوی دی چې د هر څه نه مخکې دا ښودل شوي چې په زير بحث حديث کې ټول څو مذهبونه دي او کوم کوم فقهاء کرام دي، مثلا مالکيه حنابله شافعيه او حنفيه د دوي د مسلکونو ذکر شوی دی او بيا د هر يوه دليل ذکر شوی دی او بيا د احنافو دليل ته ترجيح ورکړی شوې ده او د نورو حضراتو مستدلاتو ته توجيه، تطبيق او جواب ورکړی شوی دی.په همدې طرز باندې ماته مشفق استاذ حضرت مولانا فضل محمد سواتي رَحِمَهُ اللهُ ويلی وو او دا طرز ډير آسان او عام فهم دی، په دې شرح کې د دې اهتمام نه دی شوی چې دا قول د چا دی او د کتاب حواله څه ده البته دا اهتمام شوی دی چې په دې شرح کې د کومو کتابونو او شروحاتو په مسوده جوړولو کې استفاده شوې ده هغه اجمالا ذکر شوي دي او د مراجعو د ماخذ طرف ته اشاره شوې ده ترڅو دا خبره واضحه شي چې خود ساخته نه دي ، په بعضو ځايونو کې حواله جات هم راغلي دي ليکن د شرح آسانولو دپاره په لوستونکو باندې د حواله جاتو زيات بوج نه دی اچول شوی، زما د محترم استاد هم دا طرز وو، حديث چې د کوم صحابي نه منقول شوی د هغه صحابي سره متعلق تاريخي بحث نه دی شوی ځکه چې زما محترم استاذ داسې ويل چې زمونږ د اساتذو طرز په مشکوة کې د کوم صحابي د حالاتو بيانول ندي، د دې باوجود عاجز بنده د شرح په شروع کې د يوتعداد صحابو تاريخي بحث کړی دی کوم چې بالکل کم بلکې د نيشت برابر دی.ما په دې شرح کې د يو شي اهتمام کړی دی هغه دا دی چې څومره سبق ما طالبانو ته په يو ورځ کې ويلی دی د هغې سره ما تاريخ ليکلی دی چې دا سبق د فلانی مياشتې په فلاني تاريخ کې ويل شوی دی، لهذا کله چې د يوې ورځې د درس احاديث مکمل ليکلی شي نو ترڅو چې د هغه توضيح او تشريح مکمل شوې نه ده کوم بل حديث

نه دی لیکل شوی برابره خبره ده که د شرح د وجې نه د حدیث کامله صفحه خالي هم پاتې شي، په دې کې طالبانو او مدرسینو حضراتو ته دا آساني وي چې نن څومره سبق ویل پکار دي، او په دې میاشت کې سبق تر کومه ځایه رسول په کار دي، په دې سره د کتابونو په ویلو او په وخت سره ختمولو کې آساني وي او یوه تجربه حاصله شي، هو په بعضو ځایونو کې داسې شوي چې د سبق مقدار زیات لیکل شوی دی، په عنوان کې هم د یوه معلوم تاریخ ذکر شوی لیکن هغه سبق په یو ورځ کې نه شي ویل کیدی بلکې د بحث او مباحثې په وجه په هغه کې دوه ورځې لګیدلې دي یا هم دا ډیر کم راغلي دي.
دا هم په یاد ولرئ چې ما په دې شرح کې د یو مدرس دپاره خاص مواد راټول کړي دي لهذا هغه د تدریس په وخت کې ټول متعلقه شیان په یوه ځای کې موندلی شي، خصوصا د هر کتاب په ابتدائي مباحثو کې به ورته اساني وي، ما په دې شرح کې د دې خبرې پوره پوره خیال ساتلی چې دا نه دومره اوږده شي چې لوستونکي او طالبان ستومانه شي او نه دومره مختصره شي چې طالبان تږي پاتې شي، بلکې ما یې د معتدل او متوسط ساتلو کوشش کړی دی، د دې سره سره ما د بیان اندازه داسې لیکلې ده چې په هغه سره مقصود ښودل دي چې دا حدیث مونږ ته څه تعلیم راکوي او د هغه مطلب څه دی، ما په دې شرحه کې د جمهور امت مسلک غوره کړی دی او د چا په تفرد او شاذ قول باندې مې اعتماد نه دی کړی ، همدارنګه ما په دې شرح د مشکوة کې د هر کتاب او باب په شروع کې د هغه سره متعلق عمومي بحث هم کړی دی، کوم باب چې په تمامو احادیثو باندې د پوهیدو دپاره کافي دی، همدارنګه ما د کتاب تر آخره پورې توضیح او تشریح جاري ساتلې دي، داسې نه دي چې په شروع کې تفصیل او په آخر کې تعطیل وي بلکې په دویم جلد کې د اول جلد نه تفصیل کم نه دی .
ما د شیخ عبدالحق محدث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ هغه مقدمه کومه چې هغه د اصول حدیث متعلق په عربي ژبه کې لیکلې ده او علماؤ هغه د مشکوة شریف په شروع کې لیکلې ده د هغه صرف اردو ترجمه د همدې شرح په شروع کې لیکل شوې ده ترڅو چې طالبان استفاده ترې وکړي او د طوالت د ویرې عربي عبارت پریږدي، ما د مشکوة شریف د ټولو احادیثو متن د اعراب سره په بهترین انداز کې د کمپوز کولو کوشش کړی دی او د هر کتاب او باب حدیث ته مې نمبر لګولی دی. دا هم په یاد ولرئ چې ما د هر حدیث ترجمه لیکلې ده برابره خبره ده که د حدیث تشریح شوې وي او که نه یا د کومو شروحاتو نه چې ما په دې شرح کې استفاده کړې ده په هغو کې لاندې ذکر شوې شروحات قابل ذکر دي :

| | | |
|---|---|---|
| ۱- | مرقات شرح مشکوة | ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ |
| ۲- | شرح الطیبي | حسین بن محمد بن عبد الله دهلوي رَحِمَهُ اللهُ |
| ۳- | لمعات شرح مشکوة | شیخ عبد الحق محدث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ |
| ۴- | اشعة اللمعات | شیخ عبد الحق محدث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ |

| | | |
|---|---|---|
| ۵- | التعليق الصبيح | حضرت مولانا محمد ادريس کاندهلوي رَحِمَهُ اللهُ |
| ٦- | التعليق الفصيح | حضرت مولانا شمس الدين رَحِمَهُ اللهُ |
| ۷- | تنظيم الاشتات | حافظ شيخ ابو الحسن رَحِمَهُ اللهُ |
| ۸- | طحاوي | علامه امام طحاري رَحِمَهُ اللهُ |
| ۹- | زجاجة المصابيح (مشکوة حنفي) | مولانا ابو الحسنات سيد عبد الله ابن مولانا مظفر خير آبادي الهند رَحِمَهُ اللهُ |
| ۱۰- | مظاهر حق جديد | مولانا عبد الله جاويد غازي پوري |

که چیرته د کومې حوالې د کتلو ضرورت شو یا د تسلۍ دپاره حواله کتل وغواړئ نو په همدې شروحاتو کې دننه خامخا حواله موندل کیږي، ځکه چې د همدې کتابونو او شروحاتو نه استفاده شوې ده، بیا هم زه د حواله ورکولو کوشش کوم ځکه زه تنها په دې باندې احاطه کول په اسانۍ سره نشم کولی نو ځکه معذرت غوښتونکی یم، بهر حال له همدې ټولو شروحاتو نه د استفادې باوجود په دې شرح کې زما محترم استاذ محقق زبان مولانا فضل محمد سواتي رَحِمَهُ اللهُ هغه توضيحات او مبارک درسونه هم شامل دي کوم چې د مشکوة شریف ویلو په وخت کې ما ترې ضبط کړي وو، بلکې په دې شرح کې د هغه مبارک درسونه بنیادي حیثیت لري په کومو باندې چې د شرح عمارت درول شوی دی.لوستونکو ته یو ځل بیا عرض دی چې ما په جمع او ترتیب کې کافي محنت نه کار اخیستی دی، لیکن چونکه دا شرح یو اوږد کار دی نو ډیره ممکنه ده چې د دې په مضامینو او مسائلو کې چیرته کوم فرق راغلی وي او غلطي پاتې شوې وي نو ځکه د لوستونکو نه غوښتنه ده چې په هغې باندې د خیرخواهۍ په طور عاجز بنده خبر کړي، الله تعالی دې زما سوچ او زما قلم د هر قسم لړزش افراط او تفریط نه وساتي، آمین یارب العالمین.

وصلی الله تعالی علی نبیه الکریم وعلی اله وصحبه اجمعین

گو نالہ نارسا ہو، نہ ہو آہ میں اثر

میں نے تو درگزر نہ کی جو مجھ سے ہو سکا

(حضرت مولانا) فضل محمد یوسف زئي (صاحب دامت برکاتهم)

استاذ حدیث جامعه علوم اسلامیه بنوري ټاون کراچي

یکم محرم الحرام سال لو ۱۴۲۲ھ مطابق ۲۷ مارچ ۲۰۰۱ء

## د عالمانو طالبانو او مدارسو ثبوت

حضرت ابراهیم علیه السلام د اهل مکې دپاره هغه دوه دعاګانې غوښتې وې، د یوې تعلق د خوراک څښاک او مادیاتو سره وو او د دویمې دعا تعلق د روحانیاتو سره وو، د رزق او مادیاتو دعا داسې وه:

﴿وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ اجْعَلْ هَٰذَا بَلَدًا آمِنًا وَارْزُقْ أَهْلَهُ مِنَ الثَّمَرَاتِ مَنْ آمَنَ مِنْهُم بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ قَالَ وَمَن كَفَرَ فَأُمَتِّعُهُ قَلِيلًا ثُمَّ أَضْطَرُّهُ إِلَىٰ عَذَابِ النَّارِ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ﴾ (سوره بقره ۱۲۶).

یعنې د مکې والاو نه چې کوم په الله او حشر نشر ایمان راوړي هغوی ته دې د دنیا په میوو سره روزي ورکړی شي الله تعالی چونکه رب العلمین دی نو ځکه یې فرمایلي چې روزي له مسلمانانو سره سره کافرانو ته هم ورکوم البته د کفر او شرک سزا په آخرت کې کافرانو ته ورکوم، د روحانیاتو دعا داسې وه:

﴿رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾(سوره بقره ۱۲۹).

په دې دعا کې د یو رسول درخواست وو کوم چې د همدې قریشو نه وي او د مکې د سر زمین نه وي یعنې چې د دوی د خاندان نه یو فرد وي، د فرښتو او پیریانو نه نه وي، د همدې علاقې وي د بهر نه نه وي راغلی، دا دعا په حقیقت کې د محمد عربي صلی الله علیه وسلم دپاره وه، لهذا الله تعالی یې دعا قبوله کړه او په خپله رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي دي چې زه د ابراهیم د دعا او د عیسی علیه السلام د بشارت او والدې آمنې د خوب په نتیجه کې راغلی یم.

ابراهیم علیه السلام په خپلو دعاګانو کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د څلورو وظائفو او ذمه داریو ذکر هم کړی وو چې د دې رسول اوله ذمه وارو به دا وي چې هغه به تاسو ته آیتونه لولي او اهل مکه ته به یې وراوروي، دویمه ذمه واري یې دا ده چې هغه به تاسو ته د کتاب تعلیم درکوي، دریمه دا چې دوی ته به د حکمت دانائي او احادیثو تعلیم ورکوي، دریمه دا چې هغه به د دوي د نفس تزکیه کوي.

د نبوت په دې څلورو فرائضو کې د دویم قسم (**ويعلمهم الكتاب**) ذمه واري ده په دې سره منصوصي طور باندې د علماؤ طالبانو او د درسي نظام ثبوت شوی دی، ځکه چې په یعلم کې معلم راغلی برابره ده که قاري وي، د حفظ یا د ناظرې استاذ وي یا د نظامي درس مدرس وي یا شیخ الحدیث وی، په معلم کې ټول راغلل په دې شرط چې دوی په دیني مدارسو کې لوست کوي، په مکتب او کالج کې نوي، ځکه چې شریعت د انګریزي ویلو ترغیب نه دی ورکړی.

**يعلم** : د دې نه وروسته په آیت کې د (**هم**) لفظ دی په دې لفظ سره طالبان ثابت شوي دي ځکه چې معلم لوستونکی مدرس وي او کوم ته چې لوستل کیږي هغه یې طالب العلم وي، نو دوه شیان یعنې مدرس او طالب د قرآن په صریح آیت سره ثابت شوي دي، که څوک ووایي چې دا مولوي او طالبان د

کومه راغلل؟ نو هغو ته جواب ورکول په کار دي چې کوم وخت د لوح محفوظ او اول اسمان نه دا ایت راغلی دی په هغه وخت کې علماء او طالبان راغلي دي، په دې آیت کې دریم شی (الکتاب) دی چې معلم طالب ته څه ورزده کوي، د هغه د تعلیم نظام څه دی؟ نو ویلی به شي چې الکتاب یعني قرآن کریم د هغه د تعلیم نظام دی برابره خبره ده که په اجمال سره یې وایي که په تفصیل سره یې وایي، په دې لفظ سره د مسلمانانو د تعلیم نظام او د تعلیم نصاب معلوم شوی دی، اوس که یو څوک ووایي چې په دیني مدارسو کې دا دتعلیم د کومه راغلی دی؟ نو هغوی ته جواب ورکړی شو چې کله له آسمان نه دا ایت راغلی دی د هغه وخته د دیني مدرسو همدا تعلیم او نصاب راغلی دی، دا دری شیانو خو د قرآن په نص او واضح آیت سره ثابت شوی دی، اوس دغه معلم او استاذ کله چې طالب ته یې وایي نو یو طرف ته استاد ناست وي مخامخ ورته طالب وي او په مینځ کې د دیني کتاب تعلیم وي د هغه د ناستې دپاره ځای په کار دی، لهذا دغه ځای یا مسجد دی یا مدرسه، لهذا د اقتضاء النص په طور په دې آیت سره مسجد او مدرسه ثابت شول، که یو څوک پوښتنه وکړي چې دا مدارس له کومه پیدا شوي دي نو د هغه جواب دا دی چې کله دا آیت راغلی دی د هغه وخته مدرسې راغلې دي، لهذا معلم متعلم نظام تعلیم او مدارس ټول په نص قرآني سره ثابت دي او مستند دي، په دې کې هیچا ته هیڅ طور شبه کول نه دي په کار.

## د مدارسو تاریخي پس منظر

په مکه مکرمه کې د ټولو نه مخکې رسول الله ﷺ په دار ارقم بن ابي ارقم کې مدرسه جوړه کړه چیرته به چې نوو راغلو یا ځایي صحابه کرامو د اسلام متعلق زدکړه کوله، هغوی به د رسول الله ﷺ دې پټې مدرسې ته ورتلل، حضرت عمر رضي الله عنه هم دلته په راتلو سره مسلمان شوی وو، بیا رسول الله ﷺ له مکې مکرمې د مدینې منورې په طرف هجرت وکړ او په مسجد نبوي کې یې د صفه په نوم یوه مدرسه جوړه کړه په کومه کې به چې کله اتیا یا کمو زیات طالب العلمان وو، دې طالبانو به چې علم حدیث او مسائل زده کول همدوی به د قطعه منتظره په طور د جهاد دپاره هم تیار اوسیدل او د ضرورت په وخت کې به د جنګ میدان ته وتل، حضرت ابو هریره رضي الله عنه د همدې طالبانو نه یو وو، بیا کله چې اسلام د عربو د جزیرې نه بهر ووتلو او شام فتح شو نو په جامع دمشق کې حضرت ابو درداء رضي الله عنه یوه مدرسه جوړه کړه په کومه کې چې په سلګونو صحابه کرامو او تابعینو د دین علم حاصلولو، او چونکه دمشرقي د افریقه او غربي ملکونو دپاره دروازه وه نو دلته به دا خلق راتلل او د جنګ میدان ته به تلل. بیا کله چې مصر فتح شو نو هلته حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه د جوماتونو او مدرسو بنیادونه کیښودل، د څه تبدیلي او تغیر وروسته جامعه ازهر ته د همدې علمي سفر تاریخي ثبوت حاصل دی، بیا کله چې فارس او عراق فتحه شول نو ده یوه مدرسه جوړه کړه، کومه چې په مدرسه

عبدالله بن مسعود سره مشهوره شوه په کومه کې چې په زرګونو طالبانو صحابه کرامو او تابعینو علم زده کولو، ويل شوي دي چې دا فوجي چاونۍ هم وه او مدرسه هم وه په کومه کې به چې کله کله دیرش زره صحابه کرام او تابعین موجود وو، دا مدرسه د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په نګرانۍ کې وه او کوفه چونکه د مشرقي هیوادونو دپاره دروازه وه لهذا همدلته د لوستلو دپاره طالبان راتلل او د جنګ په میدان کې یې هم برخه اخیستله، د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه وروسته د ده شاګرد اسود او علقمه دا مدرسه په لاس کې ونیوله، بیا ابراهیم نخعي د هغې نګراني وکړه او بیا امام ابو حنیفه رحمه الله د هغې چارې پر مخ بوتللې او د هغه نه وروسته د هغه شاګردانو پر مخ بوتلله. د کوفې نه وروسته منځنۍ اسیا په مدرسو باندې ډکه شوه، سلطان محمود غزنوي رحمه الله کله چې هندوستان فتح کړ نو زرګونه مدرسې یې په دې علاقه کې جوړې کړې، مغل بادشاهانو د دې مدرسو په ابادولو کې برخه واخیسته حتی چې ښځو هم د مدارسو په جوړولو او چلولو کې حصه واخیسته، او په مدرسة النساء کې زرو ښځو د قرآن حفظ وکړو، بیا عثماني سلطنت د مدارسو اهتمام وکړو او هر طرف ته د مدارسو دور شرع شو.

## د ترقۍ نه وروسته زوال

چونکه دا مدارس د حکومت په سرپرستۍ کې چلیدلې لهذا کله چې اسلامي خلافت کمزورې شو او عثماني سلطنت د زوال سره مخامخ شو نو مدارس هم ورسره کمزوري شول او کله چې خلافت بیخي ختم شو او د انګریزانو قبضه شوه نو تقریباً د مدارسو وجود ختم شو، عربي واکمنانو د مکتبونو او کالجونو سره مدارس جوړ کړل او آزادې مدرسې ختمې شوې لهذا د آزاد و علماؤ شتون هم ختم شو. د همدې نا اُمیدۍ په عالم کې الله تعالی حضرت مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله ته علمي درسګاه مدرسه عالیه اسلامیه دیوبند په نوم سره قائمولو توفیق ورکړ او ده یوه ازاده اسلامي مدرسه جوړه کړه، او وې لیکل ترڅو چې دا مدرسه د عامو مسلمانانو په چندو سره چلیږي نو دا به ترقي کوي، لهذا ترننه پورې الحمدلله همدا مدرسه د چا یا د کوم حکومت تر احسان لاندې نه ده راغلې لهذا د هغې نه ازاد علماء پیدا شول کوم چې د حق ډیر ښه اعلان کوي، عربو ته دا شی په لاس نه دی ورغلی، د دیوبند په شان الحمدلله په زرګونو مدارس په هندوستان، پاکستان، افغانستان، بنګله دیش او نورو ملکونو کې وجود لري، اوس ظالم انګریز بیا پریشانه شوی چې دا مدرسې ولې چلیږي؟ حالانکه همدې ظالم مخکې هم مدارس، مساجد او علماء محدود کړي وو او په ټولنه کې یې د علماو دپاره کوم ځای نه وو پرېښې ترڅو چې همدا علماء په مدارسو او مساجدو کې د ولږې نه مړه شي، مګر الله تعالی په همدې مدارسو کې دوی ته ترقي ورکړه، اوس همدغه ظالم انګریز علماء د مدارسو او مساجدو نه هم ویستل غواړي مګر انشاء الله څرنګه چې انګریز ذلیل او خوار شو بیا د افریقایي ملکونو نه وتښتیدل او اوس تر لندن او برطانیه

پورې محدود شول دوی به د دینه زیات محدود کړی شي او دیني مدارس به ترقي وکړي، ان شاء الله تعالی.

۱۸ شوال ۱٤٠٩هـ دوهم سبق

## په علم کې د نیت صحت

قال الله تعالی: ﴿وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾ (سورة البینة ٥).

**ترجمه**: او هغوی ته همدا حکم ورکړی شوی وو چې خالص د الله عبادت وکړئ.

دا خبره د رڼا ورځې په شان روښانه ده چې د اسلام د دین هیڅ عمل د صحیح نیت نه بغیر مقبول نه دی، په هر نیک عمل باندې ثواب هله مرتب کیدی شي کله چې په هغه کې نیت خالص د الله د رضا دپاره وي، او دا خبره هم روښانه ده چې کوم عمل د ښه نیت سره وي هغه فائده رسوونکی هم وي اگر که ډیر وړوکی عمل ولې نوي، او په کوم عمل کې چې اخلاص نوي هغه گټه رسوونکی هم نوي اگر که هغه ډیر غټ عمل وي، حضرت هاجره علیها السلام په نیکه اراده د صفا او مروه په مینځ کې یوه منډه کړې وه الله تعالی هغه داسې قبوله کړه چې تر قیامته پورې یې په راتلونکو حاجیانو باندې لازمه کړه. حضرت ابراهیم علیه السلام په منی کې د الله تعالی د رضا دپاره شیطان په شگو باندې وویشتلو الله تعالی د ده همدا عمل په ټولو حاجیانو باندې واجب کړ، دا د اخلاص ښه او نتیجه ده، لهذا د دیني علم د شروع کولو نه مخکې د نیت خالص کول ډیر زیات ضروري دي. ځکه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد دی:

انما الاعمال بالنیات، چې د اعمالو دار مدار په نیتونو باندې دی، په تعلیم المتعلم کې یو حدیث ذکر شوی دی د کوم چې ترجمه دا ده چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي ډیر زیات اعمال په ظاهري طور دنیوي ښکاري مگر د ښه نیت د وجې نه هغه د اخیرت عمل جوړ شوی دی، او ډیر زیات اعمال داسې دي کوم چې په ظاهري صورت کې د آخیرت اعمال لیدل کیږي مگر د ناکاره نیت د وجې نه هغه د دنیوي عمل په شان وي. د صحیح نیت مطلب دا دی چې یو طالب العلم دا نیت وکړي چې دا علم د رسول الله صلی الله علیه وسلم په نیابت کې د الله تعالی د رضا دپاره او د اسلامي دین د خورولو او ترقۍ دپاره زده کوم.

د سلفو صالحینو په زمانه کې د نیت د خرابۍ خطر ډیر زیات وو ځکه چې په هغه وخت کې دنیوي منصبونه او دنیوي عهدې ټولې د علم دین په وجه پیدا کیدلې، کوم کس به چې ډیر لوی عالم وو هغه به د حکومت په ډیره غټه چوکۍ باندې مامور وو، خلیفه کیدل، وزیر، والي او قاضي القضاة کیدل د همدې علم دین سره تړل شوي وو نو په نیتونو کې د فتور راتلو ډیر امکان وو، لهذا د مدرسه نظامیه په

نوم سره يوه مدرسه وه کومه چې د وخت بادشاه په سرکاري طور قائمه کړې وه په کومه کې چې امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ هم طالب العلم وو.

د وخت بادشاه لباس بدل کړ راغی او د هر طالب العلم نه يې پوښتنې کولې چې رښتيا ووايه د علم د زده کولو ستا مقصد څه دی؟ هر چا خپل مقصود ورته وښود، چا ويل چې علم زده کړم وزير به جوړ شم چا ويل چې والي به جوړ شم، چا ويل چې قاضي به جوړ شم، الغرض هر چا د دنيوي مقاصدو يو نه يو مقصد ورته بيان کړو، بادشاه خپل وزير ته وويل زه غواړم چې دې مدرسې ته قلف واچوم او بنده يې کړم ځکه دوی خو ټول د دنيوي مقصد دپاره د علم زده کولو ته راغلي دي، بيا په اخيره کې بادشاه د يو طالب العلم نه پوښتنه وکړه چې ووايه د علم د زده کولو ستا مقصد څه دی؟ هغه وويل زه نيابةً عن رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دين خدمت به کوم، بادشاه وزير ته وويل چې پرېږده مدرسه دې روانه وي ځکه که چيرته يو طالب العلم هم په ښه نيت علم زده کړي نو زمونږ د ټول کال مصرف نه ضايع کيږي، دا طالب العلم غزالي رَحِمَهُ اللهُ وو کوم چې وروسته د امام غزالي په نوم سره مشهور شو په کوم باندې چې ټول کال مصرف کول مناسب وو.

د خبرې خلاصه دا شوه چې په مخکنيو زمانو کې د نيتونو د خرابوالي خطره زيات وو، نن سبا خو د علم زده کوونکو نيتونه خود بخود سميدی شي، ځکه چې د علم سره هيڅ حکومتي منصب تړل شوی نه دی بلکې څوک يې چې څومره زيات ووايي هغومره د حکومت نه زيات لرې پاتې کيږي، نن سبا که کوم طالب العلم نيت خراب کړي نو هغه به صرف د امامت او خطابت په نيت باندې يا د خپل پلار پر ځای د اهتمام نظامت امامت يا بل معمولي کار په وجه نيت خراب کړي په کوم کې چې دري زره تنخوا نه علاوه بل څه نشته او مشقت هم دی، که چيرته همدا طالب العلم د دين اسلام د خدمت نيت په زړه کې وساتي نو الله تعالی به همدا حقيره دنيا هم ورکړي او د دين لپاره به هم قبولتيا ورکړي. امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ رښتيا ويلي دي:

من طلب العلم للمعاد ۞ فاز بفضل من الرشاد

فيا لخسران طالبيه ۞ لِنَيْلِ فَضْلٍ من العبادِ

چاچې د آخرت د پاره علم زده کړو نو دا په هدايت او رهنمائي کې ښه کامياب شو، او هغه طالبان څومره په تاوان کې ولويدل چې د بنده ګانو نه د مال د حاصلولو د پاره علم زده کوي.

خلاصه دا ده چې طالب العلم ته په کار دي چې ښه سوچ وکړي وګوري چې د ده محنت او کوشش خو به

حقيره دنيا تر مرې ښکته نه تيروي د (انما الاعمال بالنيات) حديث ټولو ته معلوم دی چې د هجرت په شان عظيم عمل د نيت په وجه څنګه خرابيدی شي. طالب العلم ته دا هم په کار دي چې دا د چا پر ورانديې خپل عزت ختم نکړي او په بې ځايه حرص سره خپل علمي سفر تباه برباد نکړي، بلکې د عزت عظمت

سنجیدګي او وقار سره وخت تیر کړي، امام ابو حنیفه رَحِمَهُ‌اللّٰهُ خپلو شاګردانو ته وویل: عظموا عمائمکم ووسعوا اکمامکم. یعنې خپلې پګړۍ لوړې وساتئ او د قمیصونو لستوڼې خلاص وساتئ (تعلیم المتعلم).

دا یې د دې دپاره وویل چې طالب العلم او عالم په عوام الناس کې با وقاره معلوم شي نه محتاج او لالچي او حقیر، همدارنګه د نیت د صحت دپاره ضروري ده چې طالب العلم د دې دپاره علم زده نکړي چې د خلکو مرجع جوړ شي، د ټولو خلکو زړونه د ځان طرف ته را واړوي، یا د علامة الدهر یا فقیه العصر په نوم سره مشهور شي دا ټول شیان تباه کوونکي دي، چې نیت صحیح کړی شي نو دنیا او اخیرت دواړه به برابر شي.

## دویم: د علم کوشش

د هرقسم علم دپاره کوشش بنیادي حیثیت لري، که چیرته یو طالب العلم ډیر ښه نیت لري مګر محنت نکوي نو هغه د علم د حصول مقصد نه شي ترلاسه کوی، یا مقصود ته د رسیدو دپاره چې څرنګه د صحیح نیت ضرروت دی همدرانګه د صحیح محنت هم ضرورت دی، صرف نیت له محنت پرته یا محنت د نیت نه علاوه دواړه صورتونه د ناکامۍ دي، نو ځکه په هر طالب العلم باندې ضروري دي چې هغه له صحیح نیت سره سره ښه محنت هم وکړي، د الله تعالی فرمان دی: ﴿أَنِّي لَا أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنكُم مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ﴾ چې زه د هیچا عمل او محنت نه ضایع کوم برابره ده که سړی وي که ښځه وي. همدارنګه په احادیثوکې هم د محنت او کوشش ډیر زیات ترغیب راغلی دی، په قرآن کریم کې دي: ﴿وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا﴾ یو بل ځای ارشاد دی: ﴿يَا يَحْيَىٰ خُذِ الْكِتَابَ بِقُوَّةٍ﴾ همدارنګه د دې امت عقلاو، حکماو او علماو ویلي دي چې (من طلب شيئاً وجدّ وجد، ومن قرع الباب ولجّ ولج) یعنې کوم کس چې کوشش کوي هغه به خپل مقصود پیدا کړي، دا جمله داسې مختصره هم ویل شوې ده (من جدّ وجد ومن قرع الباب ولج) حکماو دا هم ویلي دي (بقدر ما تتعنى تنال ما تتمنى) یعنې څومره چې کوشش وي هغومره اندازه به مقصود حاصل شي، بعضو حکماو لیکلي دي: اتخذ الليل جملا تدرک به املا، یعنې ټوله شپه محنت وکړه مقصود به ترلاسه کړې.

اَلْجِدُّ يُدْنِيْ كُلَّ اَمْرٍ شَاسِعٍ ○ وَالْجِدُّ يَفْتَحُ كُلَّ بَابٍ مُغْلَقٍ

یعنې محنت هر مشکل او سخت او لرې کار رانژدې کوي او هره بنده دروازه خلاصوي.

او بعضې شاعرانو دا ویلي دي:

تَمَنَّيْتَ اَنْ تُمْسِيَ فَقِيْهًا مُنَاظِرًا ❁ بِغَيْرِ عَنَاءٍ وَالْجُنُوْنُ فُنُوْنُ
وَلَيْسَ اِكْتِسَابُ الْمَالِ دُوْنَ مَشَقَّةٍ ❁ تَحَمَّلُهَا فَالْعِلْمُ كَيْفَ يَكُوْنُ

يعني د کمال د حصول تمنا بغير د محنت کولو نه ليونتوب دی ، که چيرته مال په غير د محنت نه ، نه حاصليږي نو علم به څنګه حاصل شي ؟

طالب العلم له شپې رونول د کاميابۍ د پاره ډير ضروري دي يعني د شپې د اکثرې حصې نه فائده اوچته کړي. يو شاعر ويلي دي :

بِقَدْرِ الْكَدِّ تُكْتَسَبُ الْمَعَالِيْ ❁ وَمَنْ طَلَبَ الْعُلىٰ سَهِرَ اللَّيَالِيْ
تَرُوْمُ الْعِزَّ ثُمَّ تَنَامُ لَيْلاً ❁ يَغُوْصُ الْبَحْرَ مَنْ طَلَبَ اللَّاٰلِيْ
وَمَنْ رَامَ الْعُلىٰ مِنْ غَيْرِ كَدٍّ ❁ أَضَاعَ الْعُمْرَ فِيْ طَلَبِ الْمُحَالِ

يعني د محنت په حساب سره اوچتوالی حاصليږي او ددې د پاره د شپو رونول په کار دي که چيرته ته اوچت مقام غواړي او بيا د شپې اوده هم يې حالانکه د ملغلرو تلاش کوونکي په سمندر کې غوپه وهي ، څوک چې په غير د محنت نه اوچت مقام حاصلول غواړي نو دا هسې وخت ضائع کوي.

د محنت په ميدان کې دا هم ضروري ده چې طالب العلم په درس کې حاضري ورکړي، په غور سره يې واوري او د شپې بنه مطالعه وکړي ګوا که مطالعه واجب ده، د درس حاضري فرض ده او په غور سره اوريدل سنت دي، بيا کوم څه چې ووايي هغه دې په بار بار تکرار کړي، علماؤ ليکلي دي (**الدرس حرف والتكرار الف**) همدارنګه د محنت دپاره ضروري دي چې انسان يې په لاس سره وليکي او بيا صرف په ليکلو او فوټو کاپي کولو اکتفاء ونه کړي بلکې چې ياد يې هم کړي، علماؤ ليکلي دي : (**العلم صيد والكتابة قيد**) رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:(**استعن بيمينک**) بعضو حکماؤ ليکلي دي (**ما كتب قر وما حفظ فر**) يعني صرف په حافظه باندې اعتماد مه کوئ بلکې وې ليکئ ترڅو چې مکمل حفاظت يې وکړی شی، دا هم په ياد لرل په کار دي چې ليکل او په تکرار کولو سره يادول څرنګه چې ضروري دي همدارنګه په خپله ليکنه باندې پوهيدل او حقيقت ته رسيدل هم ضروري دي، چا ويلي دي : (**حِفْظُ حَرْفَيْنِ خَيْرٌ مِّنْ سِمَاعٍ وَقُرَيْنِ وَفَهْمُ حَرْفَيْنِ خَيْرٌ مِّنْ حِفْظِ وَقُرَيْنِ**) يعني د دوه بنډله علم له اوريدو نه دوه حرفه يادول زيات بهتر دي، او له دوه بنډله يادولو نه په دوه حرفه باندې پوهيدل زيات بهتر دي.

علمي محنت دا هم دی چې په علمي مجلس کې ستاسو علمي مباحثه او مناظره وي، په دې سره علم پخیږي، چا ویلي (مطالعة ساعة خير من تكرار شهر) علمي محنت دا هم دی چې طالب العلم هره غټه وړه مسئله د شرم نه بغیر معلومه کړي.

یو چا ویلي دي:

تَعَلَّمْ يَا فَتىٰ وَالْجَهْلُ عَارٌ ✿ وَلَا يَرْضٰى بِهٖ إِلَّا الْحِمَارُ

امام ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي: (اَلْعِلْمُ عِزٌّ لَا ذِلَّ فِيْهِ وَيَحْصُلُ بِالذُّلِّ لَا عِزَّ فِيْهِ).

ده دا هم ویلي (اَلْعِلْمُ لَا يُعْطِيْكَ بَعْضَهٗ حَتّٰى تُعْطِيَهٗ كُلَّكَ) ده دا هم ویلي دي د چا په پوښتنه کې: بِمَ اَدْرَكْتَ الْعِلْمَ؟ قَالَ مَا اسْتَنْكَفْتُ مِنَ الْاِسْتِفَادَةِ وَمَا بَخِلْتُ بِالْاِفَادَةِ.

علمي محنت کې دا هم راغلي دي چې انسان دې په خپل محنت باندې د الله شکر ادا کړي، ځکه چې په نعمت باندې شکر ادا کول په همدې نعمت کې د زیاتوالي راتلو سبب دی.

امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي (انما ادركت العلم بالحمد والشكر) د علمي محنت دپاره ضروري ده چې طالب العلم د کاهلۍ او سستۍ نه ځان وساتي، قَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ: اِنَّ اللهَ يُحِبُّ مَعَالِيَ الْاُمُوْرِ وَيَكْرَهُ سَفْسَافَهَا).

وَقَالَ اَبُوْ حَنِيْفَةَ لِاَبِيْ يُوْسُفَ: اِيَّاكَ وَالْكَسَلَ فَاِنَّهٗ شُؤْمٌ وَآفَةٌ.

یو چا ډیر ښه ویلي دي:

دَعِيْ نَفْسِيْ التَّكَاسُلَ وَالتَّوَانِيْ ❁ وَاِلَّا فَاثْبُتِيْ دَارَ الْهَوَانِ

فَلَمْ اَرَ لِلْكُسَالٰى الْحَظَّ يُعْطٰى ❁ سِوٰى نَدَمٍ وَّحِرْمَانِ الْاَمَانِيْ

د علمي محنت یوه حصه دا هم ده چې د فن ماهر استاذ وکتلی شي او بیا دده سره سبقونه وویلی شي، دا نه چې نن دلته سبا بل چرته او شیطان وسوسه وراچوي چې هغه ځای بهتر دی، هغه فلاني ځای بهتر دی دداسې ګرځیدونکي طالب العلم دوکه کوونکي شیطان نوم ثم الخير دی، چې هغه ځای بهتر دی او هغه ځای بهتر دی.

امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ فرمایي: ثَبَتُّ عِنْدَ حَمَّادٍ فَنَبَتُّ، ده رَحِمَهُ اللهُ و فرمایل: چې د علم د حصول د پاره ځانله والی ضروري دي، نو پوښتنه تري وشوه چې یواځې والی به څنګه راشي؟ نو وي فرمایل: ټول تعلقات ختم او یا یې کم کړه، یو چا ډیر ښه ویلي دي: مَنْ فَرَّ فَقَدْ غَرَّ.

او همدارنګې د يو استاذ سره او په يوه مدرسه کې په مختلفو حالاتو او مصائبو باندې به صبر کوي ځکه چې هوښيارانو ويلي دي : خَزَائِنُ الْمِنَنِ عَلٰى قَنَاطِرِ الْمِحَنِ .

يو چا د يو مطلوب او د علم د حاصلولو د پاره شپږ شرطونه ذکر کړي دي لکه چې ويلی شي :

أَلَا لَا تَنَالُ الْعِلْمَ إِلَّا بِسِتَّةٍ ✿ سَأُنْبِيكَ عَنْ مَجْمُوعِهَا بِبَيَانِ

ذَكَاءٌ وَّ حِرْصٌ وَّ اِصْطِبَارٌ وَّ بُلْغَةٌ ✿ وَ إِرْشَادُ أُسْتَاذٍ وَّ طُوْلُ زَمَانٍ

شيخ الاسلام علامه سيد حسين احمد مدني رَحِمَهُ اللّٰهُ طالبانو ته يو ځل د خطاب کولو په موقع وويل : د کوم طالب العلم مزاج چې د کوم فن سره زيات مناسبت ولري په هغه کې ورته کمال پيدا کول په کار دي. بيا يې وويل که چيرته تاسو په ټولو فنونو کې کمال پيدا کول غواړئ نو د ټولو فنونو د کمال نه به محروم پاتې شئ، او بيا يې وويل ټولنه زمونږ قدر نه کوي. تاسو په يو فن کې کمال ترلاسه کړئ بيا وګورئ چې ټولنه په څه شان تاسو د لاس نه نيسي او په سر مو کينوي. په همدې وجه بعضو هوښيارانو ويلي دي چې کمال په څلورو حرفونو باندې مشتمل دی او په همدې کمال کې د ننه مال هم شته دی. يعنې چې کاف ترې لرې کړی شي نو مال پاتې کيږي، د محنت برخه دا هم ده چې که چيرته تاسو زر ځلې يوه مسئله اوريدلې ده او بيا يې د اوريدلو موقع پيدا شي نو په غور سره يې واورئ که نه نو ناقدري به وشي.

**۱۹ شوال ۱٤٠٩هـ**

## دريم: د علم ادب

دا خبره په ياد ولرئ چې علم د ادب نه بغير او د تعظيم پرته حاصليدی نه شي او که چيرته څوک يې د ذهن او حافظې په مټ حاصل هم کړي نو هغه علم برکتي نوي، په همدې وجه چا ويلي دي : مَا وَصَلَ مَنْ وَصَلَ إِلَّا بِالْحُرْمَةِ وَمَا سَقَطَ مَنْ سَقَطَ إِلَّا بِتَرْكِ الْحُرْمَةِ .

د استاذ احترام او تعظيم د علم په ادب کې داخل دي، حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ويلي دي :

أَنَا عَبْدُ مَنْ عَلَّمَنِيْ حَرْفًا وَّاحِدًا إِنْ شَاءَ بَاعَ وَإِنْ شَاءَ أَعْتَقَ وَإِنْ شَاءَ اِسْتَرَقَّ).

د دې وجې نه ويلي شوي دي :

رَأَيْتُ أَحَقَّ الْحَقِّ حَقَّ الْمُعَلِّمِ ✿ وَ وَاجِبُهٗ حِفْظًا عَلٰى كُلِّ مُسْلِمِ

لَقَدْ حُقَّ أَنْ يُّهْدٰى إِلَيْهِ كَرَامَةً ✿ بِتَعْلِيْمِهٖ حَرْفٍ وَّاحِدٍ أَلْفُ دِرْهَمِ

د استاذ ادب دا هم دی چې له هغه نه مخکې لاړ نه شې. د هغه په خاص ځای باندې مه کېنه. د هغه د اولاد قدر کوه او له استاذ سره زياتې خبرې مه کوه.

د علم په ادب کې د کتاب ادب هم شامل دی، پس طالب العلم ته په کار دا چې دی کوم کتاب د اودا سه نه بغير ونه وايي، امام شمس الائمه حلواني ويلي دي : اِنَّمَا نِلْتُ الْعِلْمَ بِالتَّعْظِيْمِ فَاِنِّيْ مَا اَخَذْتُ الْكَاغَذَ اِلَّا بِالطَّهَارَةِ.

ځکه چې علم نور دی او اودس هم نور دی نو په نور سره په نور کې زياتوالی راتلی شي، د حضرت انور شاه کشميري رَحِمَهُ اللهُ متعلق منقول دي چې کله يې هم د اردو رساله بې اودسه نه ده را اخيستې.

د کتاب ادب دا هم دی چې په هغه دې سر نه ايښودل کيږي، نه دې تکيه جوړول کيږي. نه دې په څمکه کې کيښودل کيږي او نه دې په کتاب باندې دپاسه کوم سامان ايښودل کيږي. ويل شوي دي چې يو طالب العلم په کتاب باندې د سياهۍ دوات ايخی وو نو استاذ په فارسي کې ورته وويل : برنيابی: يعنې کومه ميوه به ترلاسه نه کړې شې، د کتاب له ادابو نه دا هم دي چې هغه د خط په ليکلو سره خراب نکړی شي، د علم له ادب نه دا هم دی چې د خپلو ملګريو احترام وکړی شي، د خپلې درسګاه او د ناستې د ځای احترام وکړي، د مدرسې احترام وکړي او د مدرسې سره قلبي تعلق او قلبي محبت وساتي، علماؤ ليکلي دي چې د استاد په احترام سره په درس تدريس او علم کې برکت راځي. او د والدينو په احترام سره په عمر او رزق کې برکت راځي.

## څلورم: په علم باندې عمل

د علم حاصلولو مقصد په هغه باندې عمل کول دي، ځکه چې د عمل نه بغير علم داسې دی لکه چې د يوه عارف مقوله ده : **علم بلا عمل کشجر بلا ثمر**. يو چا ويلي دي :

فَسَادٌ كَبِيْرٌ عَالِمٌ مُتَهَتِّكٌ وَاَكْبَرُ مِنْهُ جَاهِلٌ مُتَنَسِّكٌ

د شرعي حدودو پايمالوونکی عالم ډيره لويه فتنه ده ليکن عبادت کوونکی جاهل دده نه هم لويه فتنه ده.

په يوه روايت کې راغلي دي : **هَتَفَ الْعِلْمُ بِالْعَمَلِ اِنْ اَجَابَ وَاِلَّا فَارْتَحَلَ**. علم چې اول راشي عمل ته غږ کوي که چيرته عمل راشي نو صحيح ده که نه نو علم کوچ کوي او ځي، په يو روايت کې راغلي دي: **مَنْ عَمِلَ بِمَا عَلِمَ وَرَّثَهُ اللهُ عِلْمَ مَا لَمْ يَعْلَمْ**. دې آثارو او روايتونو ته په کتلو سره په هر طالب لازمي ده چې په خپل علم عمل وکړي که نه نو د بې عمله علم نه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسې پناه غوښتې ده : **اَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ عِلْمٍ لَّا يَنْفَعُ**.

د **تعليم المتعلم** صاحب يو روايت نقل کړی دی چې کوم طالب العلم د طالبۍ په زمانه کې تقوی غوره نه کړي او په معصيت کې اخته شي نو الله تعالی په دريو مصيبتونو کې په يوه کې مبتلا کړي :

۱- یا په ځوانۍ کې ورته مرګ راشي ،۲- یا هغه په کلو او ښارو علاقو کې وغورځوي ،۳- یا هغه د کوم واکمن یا وزیر چپراسي مقرر کړی شي، دا روایت د کوم تجربه کار قول دی، علماؤ ویلي دي چې د طالب العلم د پرهیز ګارۍ دپاره دا شی ضروري دی چې هغه کم خوراک وکړي، کم اوده شي. کمې خبرې وکړي، د بازار خوراک ونه خوري، د قبلې طرف ته د ضرورت نه په غیر شا نه کړي. له فتنه ګرو سره ناسته ولاړه ونه کړي او د سنتو د ترک نه پرهیز وکړي، ځکه کوم کس چې په مستحبو کې سستي کوي د هغه نه سنت پاتې کیدی شي او کوم چې په سنتو کې سستي کوي هغه د واجباتو نه محرومیږي او کوم چې واجب پرېږدي هغه د فرائضو نه محرومیږي او کوم کس چې په فرائضو کې سستي کوي هغه د ایمان نه محرومیږي.

امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ خپل استاذ ته د حافظې د کمزورتیا شکایت وکړو نو استاذ ورته نسخه وښوده :

شَكَوْتُ إِلَى وَكِيْعٍ سُوْءَ حِفْظِيْ ۞ فَأَوْصَانِيْ إِلَى تَرْكِ الْمَعَاصِيْ

فَإِنَّ الْعِلْمَ نُوْرٌ مِّنْ إِلٰهٍ ۞ وَنُوْرُ اللهِ لَا يُعْطٰى لِعَاصِيْ

د حافظې د قوت دپاره عمده نسخه د قرآن کریم تلاوت دی، زیات مسواک وهل، د شاتو ځکل او د شکرې سره د یو شي خوړل، په نهاره د کشمش او د منقی خوړل، په نهاره کشمش خاص خوړل.

حافظې ته نقصان رسوونکي شیان ډیر زیات دي، د هغو نه یو شمیر یې دا دي :

زیاته ګناه کول، د دنیا غم کول، زیات تعلقات ساتل، او د هر هغه شي خوړل کوم چې بلغم پیدا کوي، د دهنیا خوړل، د تروې مېې خوړل، د قبرونو تختې لوستل وغیره وغیره.

دا څو آداب وو دا د دوه ورځو درس وو، ما په څه تفصیل سره د دې دپاره ولیکلو چې دا د طالبانو دپاره مفید دي. الله تعالی دې زمونږ حفاظت وکړي (زیاتره خبرې په **تعلیم المتعلم** کې موجودې دي).

۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞۞

## د محدثینو طبقات په اعتبار د تدوین سره

۹۱ هجري ته نږدې شاو خوا په بصره کې د ټولو په آخر کې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابي حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفات شو. دا وخت په ټوله نړۍ کې صرف پنځه صحابه موجود وو. په نهه نوي یمه(۹۹) هجري کې خلیفه عادل حضرت عمر بن عبدالعزیز په تخت باندې کیناست، ده محسوسه کړه چې صحابه کرام د دنیا نه تللي دي او ستر تابعین هم تلونکي دي نو ځکه ده ته ویره پیدا شوه چې هسې نه د احادیثو علم له دوی سره قبرونو ته لاړ نه شي. بل طرف ته د روافضو خوارجو او قدریو قسم قسم فتنو سر راپورته کړی وو، په دې نازک موقع حضرت عمر بن عبد العزیز رَحِمَهُ اللهُ د احادیثو جمع کولو او د هغو د لیکلو یو حکومتي فرمان په ذریعه د علماء کرامو په نوم ونو یو خط جاري کړو لهذا د مدینې منورې د قاضي ابو بکر بن حزم رَحِمَهُ اللهُ په نوم یې ولیکل: **انظر ما کان من حدیث رسول الله** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ **فاکتبه فاني خفت دروس العلم وذهاب العلماء** (بخاري).

یعنې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوم احادیث چې پیدا کیږي هغه ولیکه ځکه ماته د علم ختمیدو او د علماو د تللو ویره پیدا شوې ده. همدا رنګه یو خط یې د امام ابن شهاب زهري په نوم ولیکلو او امام شعبي ته یې هم ولیکلو، ابن حزم رَحِمَهُ اللهُ احادیث جمع کړل، امام شعبي هم راټول کړل او امام ابن شهاب زهري رَحِمَهُ اللهُ هم راجمع او راټول کړل لهذا هر یو د اول مدون په نوم سره یادیدلی شي. هیڅ تعرض نشته دی، دریواړو حضراتو په ابتدائي مرحلو کې په یوه نه یوه طریقه شریک شوي دي. د احادیثو د جمع کولو دا اوله صدی ده، ګویا کې جامع القرآن اول حضرت عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شو او د احادیثو جامع اول امیر المؤمنین حضرت عمر بن عبدد العزیز رَحِمَهُ اللهُ شو. دا د الله تعالی حکمت وو چې د احادیثو کتابت او تدوین په تاخیر سره اوشو. که چیرته په اول دور کې ټول احادیث لیکل شوي وای نو په ټولو کې قطعیت راتلو او د قرآن په شان د یوې کلمې ضعیف ویلو یا انکار کولو سره به انسان کافر کیده. کله چې په احادیثو کې ظنیت راغی نو امت د دې خطر نه بچ شو او په بحث کې وسعت پیدا شو.

**د دوهمې صدۍ تصنیفات**: په دویمه صدۍ کې لومړی تصنیف د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ ولادت اتیایمه (۸۰) هجري او وفات یې په(۱۵۰) هجري کې کتاب الاثار دی کوم چې په جامع کوفه کې د حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مدرسه کې کیناست او څلویښت زره احادیث او اثار یې انتخاب کړل د تصنیف وکړ او د فقهي بابونو په طرز باندې په مستند احادیثو او اثارو باندې مشتمل کتاب ترتیب کړ. په یاد لرئ چې د فقهي بابونو او سنن په طرز باندې دا په اسلام کې لومړی تصنیف دی. امام دار الهجرة امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په خپل کتاب موطا کې هم ددې کتاب نه استفاده کړې ده. **کذا قال السیوطي في تبییض الصحیفة**. همدا رنګه امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په خپل کتاب الاثار کې زیاتره روایتونه له همدې نه

اخيستې دي، بيا په همدغه صدۍ کې امام مالک موطا مالک تصنيف کړه، دا احاديث او اثار په اهل مدينه او دوی په فتوی باندې مشتمل لويه ذخيره ده. امام ابو زرعه رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې که څېرته څوک د طلاق قسم وخوري چې موطا امام مالک صحيح ذخيره ده نو هغه نه حانث کيږي.

په دغه صدۍ کې د حضرت سفيان ثوري رَحِمَهُ اللهُ تصنيف جامع سفيان ثوري دی کوم يې چې په يو سل نوي يمه هجري کې تاليف کړی دی، په همدغه صدۍ کې د ابن جوزي کتاب الزهد والرقاق دی کوم يې چې په يو سل يو اتيا شاو خوا کې تصنيف کړی دی، د همدې صدۍ تصنيف موطا امام محمد المتوفی يو سل نهه اتيا هجري دی کوم چې له موطا امام مالک نه ماخوذ دی. په همدې صدۍ کې مسند ابو داؤد طيالسي په وجود کې راغلی دی او په همدې کې مصنف عبدالرزاق، مصنف ابن ابی شيبة او مسند حميدی تصنيفونه په وجود کې راغلي دي.

**د دريمې صدۍ تصنيفات** :په دغه صدۍ کې په علم حديث او فن حديث باندې ډير کار اوکړی شو. د فن حديث انتخاب او اختصار اوشو د جرح او تعديل ډير لوی ميدان قائم شو او صحاح سته بخاري، مسلم، ترمذي، نسائي، ابوداؤد او ابن ماجه کتابونه عام منظر ته راغلل. سنن دارمي، کتاب الدعاء لابن ابی الدنيا، مسند حارث بن ابی اسامه، مسند بزار، مسند ابی يعلی موصلی، صحيح ابن خزيمه، صحيح ابی عوانه او امام طبراني معجم کبير، معجم صغير، معجم اوسط د خپل شان سره په وجود کې راغلل ګويا چې دا د حديث او محدثينو صدۍ وه.

**د څلورمې صدۍ تصنيفات** :

د څلورمې صدۍ په تصنيفاتو کې کتاب صحيح ابن حبان، سنن دارقطني او مستدرک حاکم دي.

**د پنځمې صدۍ تصنيفات** :

په دغه صدۍ کې د احاديثو مشهور کتاب سنن بيهقي په وجود کې راغلی او د بيهقي دويم تصنيف معرفة السنن والاثار دی، د حميدي کتاب (**الجمع بين الصحيحين**) هم د همدې صدۍ تصنيف دی.

## دآحاديثو د کتابونو مراتب :

يعنې هغه کتابونه په کومو کې چې د هر کتاب مقام معلوم شوی دی دا هم ټول پنځه طبقات دي.

**اوله طبقه** :په دغه طبقه کې هغه کتابونه داخل دي د کوم په باره کې چې مونږ سترګې بندې کړي او وايو **هذا صحيح** او د مخالف نه دليل غواړو چې ولې صحيح نه دي ؟ په دې طبقه کې صحيح بخاري، صحيح مسلم، موطا مالک، صحيح ابن حبان. او صحيح ابی عوانه دي.

**دويمه طبقه** :دويمه طبقه هغه ده چې مونږ هو هغې ته صحيح نه وايو مګر دا وايو چې دا قابل استدلال او صالح للاحتجاج دي، ځکه احتجاج حسانو احاديثو سره هم کيدی شي په دې طبقه کې ابوداؤد، ترمذي او نسائي شامل دي.

**دريمه طبقه**: هغه ده چې مونږ ورته نه صحيح وايو او نه غلط بلکې غور کوو چې د کومې درجې احاديث دي، په دې کې مصنف عبدالرزاق، مصنف ابن ابی شيبة، ابن ماجه او زوائد المسند شامل دي، يعنې د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ زوی په مسند احمد باندې چې کومه اضافه کړې ده هغه زوائد المسند ده.

**څلورمه طبقه**: دا هغه طبقه ده کومه چې د لومړی طبقې بالکل برعکس ده يعنې چې مونږ سترګې پټې کړو نو وايو چې دا ضعيف دی، په دې طبقه کې مسند فردوس ديلمي دی او د حکيم نوادر الاصول دی، دا د وعظ کتابونه دي، همدا طور تفسيري روايتونه او حکايات هم په دې کې داخل دي.

**پنځمه طبقه**: په دغه طبقه کې هغه کتابونه شامل دي کوم چې د موضوعي احاديثو مجموعې دي کومې چې اهل بدعتو او اهل هواء راټولې کړې دي، د دوی د راټولو شوو روايتونو نه د احاديثو پاکولو دپاره د موضوعاتو کتابونه ليکل شوي دي لکه: **الموضوعات الکبير**، **اللآلی المصنوعة فی الاحاديث الموضوعة** وغيره وغيره.

**۲۳ شوال ۱۴۰۹ھ**

## د حديث تعريف:

**الحديث ضد القديم لغة، حدث يحدث نصر ينصر** نه د خبرې کولو په معنی کې راغلی، همدارنګه حادثه د کومې نوې پيښې راتلو ته هم ويل کيږي او **تحادث** او **تحدث** د خبرو اترو په معنی راغلی دی. **احدث احداثاً** د نوي کار پيدا کول، **التحديث** نورو ته د خبرې رسول او روايت کول، ويل شوي دي (**رجل حديث الملوک**) يعنې د بادشاهانو په مجالسو کې د خبرو او قيصو بيان کوونکی. **حدثان الدهر ای وقائعه حداثة السن**) يعنې نو عمر کيدل بهر حال د حديث لغوي معنی کې د ايجاد او ضد قديم مفهوم پروت دی، د حديث جمع احاديث ده، علماو ليکلي دي چې حديث ته حديث ځکه ويل شوی دی چې د الله تعالی کلام قديم دی او د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کلام حادث دی، بعضو علماؤ ويلي دي چې د حديث لفظ د قرآن کريم آيت: ﴿ **وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ** ﴾ نه اخيستل شوی دی، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم د يوې قيصې آوريدلو په وخت کې وفرمايل (**حدثنی تميم الداری**) ماته تميم داری بيان کړی دی، له دې لغوي تحقيق وروسته د حديث اصطلاحي تعريف سره متعلق اول په دې پوهه شئ چې دوه فنه او دوه علوم دي، د دواړو جدا جدا تعريفونه، موضوع ګانې او غايې دي.

يو **علم الحديث رواية** دی او دويم **علم الحديث دراية** دی، خلکو ته د دواړو په تعريف او غرض کې کله شبه شوې ده او د دواړو تعريفونه خلط ملط شوي دي په همدې وجه جلا جلا تعريفونه او ګورئ.

**د علم الحدیث روایة تعریف** :

**هو علم مشتمل علی ما أضیف إلی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سواء کان فعلا أو قولا أو تقریرا أو صفة.**
د صفت مطلب دا دی چې صحابي د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صفاتو بیانولو سره ویلي دي چې هغه داسې حسین وو، د احسن اخلاقو خاوند وو، د همدې تعریف په اعتبار سره د علم حدیث موضوع داده:

**موضوعه : ذات الرسول من حیث انه رسول.**
د حیثیت رسول په لفظ سره د فن طب نه امتیاز راغلی ځکه هلته د انسان د ذات نه بحث کیږي.
**غرضه** : د علم الحدیث روایةً دوه غرضونه خاص دي او یو غرض یې عام دی.

غرض خاص اول نمبر دا دی چې :**الاحتراز عن الخطأ فیما اضیف الی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**، او

غرض خاص نمبر دویم دا دی چې :**معلومیة کیفیة الاقتداء بالرسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.**

او عام غرض داسې دی : **هو الفوز والسعادة فی الدارین.**

په تعریف کې د (**ما اضیف الی رسول الله**) د لفظ مطلب دا دی چې کوم اقوال او افعال او کوم احادیث د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طرف ته منسوب دي په هغو باندې د مشتمل علم نوم علم حدیث دی.

**علم الحدیث درایة** :

د علم الحدیث درایةً تعریف داسې دی: **هو علم یعرف به أحوال المتن والسند صحة وحسنا واتصالا.**

**موضوعه** : **احوال الراوي والمروي وقیل احوال المتن والسند**
دا فن د اصول الحدیث په نوم سره یاد شوی دی د هغه دپاره هم دوه غرضونه دي: یو خاص او بل عام دی

**غرضه** : غرض خاص نمبر اول : **تمییز المقبول من المردود.**

او غرض خاص نمبر دویم : **تمییز الضعیف من غیر الضعیف .**

او غرض عام : **الفوز والسعادة فی الدارین** دی.

## په حدیث، خبر، اثر او سنت کې فرق :

په حدیث او سنت کې ترادف دی دواړه یو شی دی او د حدیث او د خبر متعلق د علماؤ دوه رایې دي :
اوله دا چې په دوی دواړو کې د عموم خصوص مطلق نسبت دی، یعنې هر حدیث خبر دی مګر د هر خبر حدیث کیدل ضروري ندي، لهذا حدیث هغه دی کوم چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طرف ته منسوب شي نو په دې سره موقوف روایت خارج شو او خبر هغه دی کوم چې په موقوف او مرفوع دواړو باندې صادق راغلی دی، نتیجه دا راووتله چې هر خبر حدیث نه دی بلکې صرف مرفوع خبر حدیث دی او هر حدیث

خبر دى، د بعضو علماؤ په نزد په مرفوع او موقوف دواړو باندې د حديث اطلاق شوى دى نو بيا په دې دواړو كې ترادف شو. بعضو علماؤ ويلي دي چې حديث هغه دى كوم چې د رسول الله ﷺ نه منقول وي او خبر هغه دى كوم چې له بل چا نه منقول وي هغه خبر دى نو په دې صورت كې د تباين صورت شو. د اثر اطلاق په عام طور په اقوالو د صحابو او په اقوالو د تابعينو باندې كيږي لهذا اثر د حديث مباين دى ليكن كله د هغه اطلاق په مرفوع باندې هم شوى دى لكه ادعيه ماثوره بيا په دواړو كې ترادف شو.

## په أنبأنا، اخبرنا او حدثنا كې فرق:

په دې باره كې د علماو دوه طبقې دي، يوه طبقه مثلا امام مالک، ابن شهاب زهرى، جمهور كوفيان، متقدمين او مغاربه علماء دي د دې حضراتو خيال دى چې لكه څرنګه چې په دې الفاظو كې د لغت په اعتبار سره كوم فرق نشته همدارنګه په اصطلاح كې هم كوم فرق نشته. مګر بعضې نور علماء مثلا امام شافعي، امام ازواعي او د جمهورو مشارقو په نزد په دې الفاظو كې فرق دى او هغه داسې چې كله يې شيخ وايي او شاګردان يې اوري نو كله يې چې په وروسته كې شاګرد بيانوي نو هغه وايي حدثنا فلان او كه تنها دى نو وايي حدثني فلان، او كله يې چې شاګرد وايي او استاد يې اوري نو په وروسته كې شاګرد انبأنا او أخبرنا الفاظ استعمالوي، امام بخاري د اولې طبقې سره دى او امام مسلم د دويمې طبقې سره ملګرى شوى دى.

د همدې الفاظو د رسم الخط هم خيال ساتل په كار دي، ځكه چې محدثين په دې كې اختصار كوي **ثنا** ليكي دا د **حدثنا** مخفف دى يا **انا** وايي دا د **اخبرنا** وغيره مخفف دى. په بعضو ځايونو كې محدثين (ح) لفظ ليكلى دى دا د تحويل سند طرف ته اشاره ده دا **ح قال وحدثنا** ويل په كار دي.

متفق عليه هغه حديث ته ويل كيږي كوم چې بخاري او مسلم په يو قسم الفاظو او د يو صحابي نه نقل كړى وي. كه چيرته صحابي جدا جدا دى نو اګر كه مضمون او الفاظ يې يو رنګه دي هغه حديث متفق عليه كيدى نه شي.

## يو څو اصطلاحي الفاظ:

همدارنګه د محدثينو په نزد يو شمير اصطلاحي الفاظ د شيخ الحديث د رتبې او مقام دپاره استعمال شوي دي.

(۱) **مسند**: دا لفظ د هغه كس دپاره استعمال شوى دى كوم چې حديث د سند په طور بيانوي

(۲) **محدث**: دا لفظ د هغه كس دپاره استعماليدى شي كوم چې د احاديثو قابل ذكر ذخيره باندې پوهيږي او د متن حديث سره سره د جرح او تعديل د راويانو علم هم ولري.

(۳) **حافظ** : هغه کس ته ویل کیدی شي کوم ته چې متن او سند سره یو لک احادیث په یادو یاد وي
(۴) **حجة** :هغه شیخ الحدیث ته ویل کیږي کوم ته چې متن او سند سره درې لکه احادیث یاد وي
(۵) **حاکم** : دا د هغه کس دپاره اعزازي سند دی کوم ته چې د احادیثو ټوله ذخیره یاده وي

ویل شوي دي چې امام احمد بن حنبل د اوه لکو احادیثو حافظ وو. همدارنګه امام ابو زرعه هم د اوه لکو حافظ وو، امام بخاري او امام مسلم د درې درې لکو احادیثو حافظان وو. امام ابوداؤد د پنځو لکو احادیثو حافظ وو.

## د احادیثو د آخیستو شرائط:

امام حازمي رَحِمَهُ اللهُ په شروط الائمه کې لیکلي دي چې د رواتو او راویانو پنځه طبقې دي. د صحیح حدیث په اخیستلو کې د هر محدث خپل خپل انداز دی کومو چې په شرائطو کې سختي کړې ده. د هغه د کتاب په شان لوړ شوی دی، هغه طبقات دا دي :

**(۱) کثیر الضبط والاتقان وکثیر الملازمة بالشیخ.**

یعنې ذهین به هم وي، حافظه به یې هم قوي وي او د استاد سره به اوږده موده پاتې شوی هم وي.

**(۲) کثیر الضبط والاتقان وقلیل الملازمة بالشیخ.**

**(۳) کثیر الضبط ولاتقان وکثیر الملازمة بالشیخ.**

**(٤) قلیل الضبط والاتقان وقلیل الملازمة بالشیخ.**

**(۵) الضعفاء والمجهولین.**

امام بخاري د اولې طبقې نه احادیث بالاستیعاب اخیستي دي او د دویمې طبقې نه یې کله کله تعلیقا اخیستي دي، امام مسلم د اولې او دویمې طبقې نه بالاستیعاب اخیستې دي او د دریمې طبقې نه یې کله کله اخیستې دي، امام ابوداؤد او نسائي د اولې او دویمې او دریمې طبقې نه بالاستیعاب اخیستې دي او د څلورمې نه یې کله کله اخیستې دي، امام ترمذي د څلورو طبقو نه بالاستیعاب اخیستې او کله کله یې د پنځمې طبقې نه هم اخیستې دي، امام ابن ماجه د پنځو واړو طبقو نه اخیستې دي او په خاموشۍ سره تیر شوی دی.

## د علم حدیث او محدثینو فضیلت

د ټولو نه لوی فضیلت خو دا دی چې یو شیخ الحدیث تر ساعتونو ساعتونو د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نوم په اخیستو سره ټوله ورځ د هغه ورد کوي، دا ډیر لوی برکت دی، د دې سره سره رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ محدثینو ته یو خاص ذکري هم ورکړې ده فرمایلي دي :(**اللهم ارحم خلفائي قلنا یا**

رسول الله ﷺ ومن خلفاءك؟ قال الذين يأتون من بعدي يروون احاديثي ويعلمونها الناس) (ترمذي، مشكوة ص ۲۵).

قال عليه السلام نضر الله عبداً سمع مقالتي فحفظها ووعاها وأداها فرب حامل فقه غير فقيه ورب حامل فقه الى من هو أفقه منه) (طبراني اوسط، مجمع الزوائد).

د همدې دعا په برکت سره د محدثينو عظامو مخونه تروتازه او بابرکته وي ځکه چې د رسول الله ﷺ د پاکې سينې نه د همدې محدث تر سينې پورې ګويا کې يو اتصالي زنځير دی په کوم سره چې په ده باندې د برکتونو نه ختميدونکی نزول جاري وي.

يو چا ويلي دي:

| | |
|---|---|
| اصحاب الحديث هم اهل النبي و ان | لم يصحبوا نفسه انفاسه صحبوا |
| ومن عادتي حب النبي و كلامه | وللناس فيما يعشقون مذاهب |
| ما ہرچه خوانده ایم فراموش کرده ایم | الا حدیث یار که تکرار می کنیم |

**۲۴ شوال ۱۴۰۹هـ**

## د حديث اقسام او تعريفات:

د حديث دوه قسمونه دي: (۱) خبر متواتر (۲) خبر واحد.

خبر متواتر هغه دی چې د هغه روايان دومره ډير وي چې عقلا د هغوی په دروغجن کيدو باندې جمع کيدل محال وي (يعنې چې په مختلفو ملکونو کې اوسيږي، يو بل يې ليدلی نوي او خبره يوه نقل کوي) او د هغوی علم په حس باندې منتهی شوی وي (يعنې وايي چې ما اوريدلی دی او ما ليدلی دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل او دا عمل يې وکړ، د عقل نه خبره نکوي) خبر متواتر د علم يقين فايده ورکوي همدارنګه په هغه کې د کوم خاص تعداد قيد نشته دی.

## د تواتر قسمونه:

د تواتر څلور قسمونه دي: (۱) تواتر طبقه لکه د قرآن کريم نقل چې د امت يوې طبقې بلې طبقې ته کړی دی په دې کې انفرادي راوي نوي. (۲) تواتر اسنادي دا هغه تواتر دی کوم چې د پورته تواتر په تعريف کې بيان شوی دی. (۳) تواتر عملي لکه د مسواک عمل چې په دې کې اخبار احاد دي مګر د امت عمل هغه متواتر ګرځولی دی. (۴) تواتر قدر مشترک چې فردا فردا خبر احاد دی مګر په مجموعي طور باندې چې کوم قدر مشترک مخته راغلی دی لکه د رسول الله ﷺ معجزات يا د حضرت علي رضي الله عنه شجاعت يا د حاتم طائي سخا. د خبر متواتر په مقابله کې خبر واحد دی، بيا خبر واحد په مختلفو

اعتبار اتو سره په پنځو غټو قسمونو باندې تقسیم دی.

**د خبر واحد اولنۍ تقسیم:**

خبر واحد د خپل منتها، سند په اعتبار سره په درې قسمه دی: (۱) مرفوع (۲) موقوف (۳) مقطوع.

مرفوع حدیث دی د کوم نسبت چې رسول الله ﷺ ته شوی دی او هغه حدیث رسول الله ﷺ ته ورسیږي هغه ته مرفوع ویل شوی دی. دویم موقوف دی دا هغه حدیث دی کوم چې تر صحابي پورې رسیدلی دی لکه: **قال ابن عباس رضي الله عنه قال ابن عمر** رضي الله عنه. دریم هغه دی کوم چې تابعي ته رسیدلی دی لکه قال الاعمش رحمه الله قال سعید بن المسیب رحمه الله دا مقطوع دی.

**د خبر واحد دویم تقسیم:**

خبر واحد د تعداد د رواتو په اعتبار سره په درې قسمه دی: (۱) مشهور (۲) عزیز (۳) غریب.

خبر مشهور هغه دی چې درې یا د دریو نه زیات راویان هغه بیان کړي مگر د تواتر حد ته ونه رسیږي که چیرته په کومه طبقه کې د راویانو تعداد دوه ته راولیږي نو بیا هغه حدیث ته عزیز ویل کیږي چې یو بل څه شی مضبوط قوي او عزیز جوړ کړی دی، او که چیرته په کومه طبقه کې د راویانو تعداد یوه ته را ورسیږي نو بیا حدیث ته غریب ویل کیږي یعنې تنها او نااشنا دی هیڅوک هغه نه پیژني، اوس که په ټول سند کې یو یو راوي دی نو دا غریب مطلق او فرد مطلق دی، او که صرف یو ځای یو راوي دی باقي په سند کې د یو نه زیات دي نو هغه ته فرد نسبي او غریب نسبي ویل کیږي، په حدیث کې اقلیت حاکم شوی دی په اکثریت باندې یعنې حکم په جانب قلیل باندې لګول کیږي په کثیر باندې نه.

**د خبر واحد دریم تقسیم:**

خبر واحد د خپلو روایانو د صفاتو په اعتبار سره په شپاړس (۱۶) قسمه ده: (۱) صحیح لذاته (۲) صحیح لغیره (۳) حسن لذاته (۴) حسن لغیره (۵) ضعیف (۶) موضوع (۷) متروک (۸) شاذ (۹) محفوظ (۱۰) منکر (۱۱) معروف (۱۲) معلل (۱۳) مضطرب (۱۴) مقلوب (۱۵) مصحف (۱۶) مدرج.

**صحیح لذاته** هغه دی د کوم چې ټول راویان کامل الضبط، عادل وي، د هغه سند متصل وي له علت او شذوذ نه محفوظ وي، که چیرته د راوي صرف په ضبط کې نقص راشي باقي صفات مکمل وي لیکن دا نقصان تعدد د طرق پوره کړی وي نو دا صحیح لغیره دی.

**حسن لذاته** هغه دی په کوم کې چې په ضبط راوي کې نقصان راشي باقي صفات د صحیح موجود وي صحیح لغیره او حسن لذاته یو شی دی، صحیح لغیره صرف تعدد د طرق لوړ کړی دی.

**ضعیف** هغه دی په کوم کې چې د صحیح او حسن اعلی صفات نوي.

حسن لغیره بعینه ضعیف دی، لیکن تعدد د طرقو یا د قبولیت کومې قرینې هغه لوړ کړی دی، د صحیح لغیره او حسن لغیره لنډ تعریف داسې شو چې صحیح لغیره بعینه حسن لذاته دی صرف تعدد د طرقو

هغه صحيح لغيره جوړ کړی دی او حسن لغيره بعينه ضعيف دی صرف تعدد طرق هغه حسن لغيره جوړ کړی دی.
په ياد ولرئ چې د قبوليت صفتونه څلور دي : عدالت، ضبط، اتصال سند ، او له شذوذ نه خالي کيدل.
عدالت د هغې ملکې نوم دی کومه چې انسان له ارتکاب کبائر او اصرار علي الصغائرو نه ساتي،
ضبط اتقان يا حفظ په دوه طريقو باندې کيدلی شي، اول ضبط او حفظ بالصدر چې له چاپې په [illegible] اوريدلی دی، د ادائيګۍ د حديث تر وخته پورې هماغه شان محفوظ دی، دويم حفظ بالکتابة دی چې په ليکلو سره يې هماغسې محفوظ ساتلی دی چې د ادائيګۍ تر وخته پورې د چا د لاس وهنې کوم خطر پکې نشته.
**موضوع** هغه حديث دی د کوم په راوي باندې چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حديث کې قصدا د دروغو طعن ثابت شي، د دې کس ټول مرويات ناقابل اعتبار دي برابره ده که توبه هم وکړي. داسې راوي ته وضاع، روايت ته يې موضوع او دې عمل ته وضع ويل شوې ده.
**متروک** هغه حديث دی د کوم په راوي باندې چې د کذب تهمت وي يا هغه روايت د شرعي قواعدو خلاف وي.
**شاذ** هغه حديث دی د کوم راوي چې په خپله ثقه دی ليکن هغه د اوثق خلاف بيان کړی دی د هغه مقابل محفوظ دی.
**منکر** هغه حديث دی چې ضعيف راوي د ثقه مخالفت کړی دی د دې مقابل معروف دی.
**معلل** هغه حديث دی په کوم کې چې علت قارحه خفيه وی، دا عيب د حديث ماهرين معلومولی شي.
**مضطرب** هغه حديث دی د کوم په متن يا سند کې چې داسې اختلاف وي په کوم کې چې تطبيق کول مشکل وي.
**مقلوب** هغه حديث دی د کوم چې په متن يا سند کې په هيره تقديم او تاخير شوی دی.
**مصحف** هغه روايت دی د کوم چې په نقطو کې يا په حرکاتو او سکناتو کې تغير راشي اګر که صورت خطي يې ثابت وي.
**مدرج** هغه دی په کوم کې چې راوي خپل کلام داخل کړی وي.

**د خبر واحد څلورم تقسيم**:

خبر واحد د سقوط او عدم سقوط د راوي په اعتبار سره په اوه قسمه دي:(۱)متصل(۲)مسند(۳) منقطع(۴) معلق(۵) معضل(۶) مرسل(۷) مدلس.
**متصل** هغه حديث دی چې د هغه په سند کې مکمل راوي ذکر وي.
**مسند** هغه حديث دی د کوم سند چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته رسيدلی وي.
**منقطع** هغه حديث دی د کوم چې سند متصل نوي بلکې څه ناڅه راوي پريوتلی وي.

**معلق** هغه حدیث دی چې له شروع نه یې راوي لویدلی وي (امام بخاري په خپل کتاب کې د **تعلیقاتو** نه ډیر کار اخیستی دی).

**معضل** هغه روایت دی په کوم کې چې د سند د مینځ نه دوه یا زیات راویان لویدلي وي.

**مرسل** هغه دی د کوم د اخیر نه چې راوي پریوتلی وي.

**مدلس** هغه روایت دی په کوم کې چې راوي د خپل استاد نوم پټ کړي وي د روایت نسبت د کوم بل شیخ طرف ته وکړي، دا **عمل تدلیس** دی او روایت مدلس (بفتح اللام) دی او د دې عمل کولو والا مدلِس (بکسر اللام) دی.

## د خبر واحد پنځم تقسیم:

د صیغې د اداء کولو په اعتبار سره خبر واحد په دوه قسمه دي: (۱) معنعن (۲) مسلسل.

**معنعن** هغه حدیث دی په کوم کې چې راوي **عن فلان عن فلان** الفاظ استعمال کړي.

**مسلسل** هغه حدیث دی په کوم کې چې راوي په یوه طرز باندې صیغې استعمال کړي وي لکه پوره سند **سمعت فلانا قال سمعت فلانا**، یا **حدثنا فلان قال حدثنا فلان**، یا **اخبرنا فلان قال اخبرنا فلانا**. دا سلسله بالقول ده او دویم مسلسل بالفعل دی، یعنې مسلسل بالتشبیک چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د چا لاس ونیو بیا راوي هم داسې وکړل کله مسلسل بتحریک الشفتین وي او کله مسلسل بالمصافحه وي.

## د حدیث د کتابونو اقسام:

د فائدې د تکمیل په خاطر د حدیثو د کتابونو متعلق دا شعر یاد ساتئ:

جامع و مسانید و معاجم بنگر ۞ رسائل سنن اجزاء و اربعین بکر

**یعنې جامع**، مسند، معجم، رسائل، اجزاء او اربعین په دې اوه قسمه د حدیثو کتابونو کې سوچ وکړه.

(۱) **جامع**: هغه دی په کوم کې چې اته اصناف علوم جمع وي چې یو شاعر په دې شعر کې را جمع کړي دی:

سیر آداب و تفسیر و عقائد ۞ فتن اشراط و احکام و مناقب

بخاري او ترمذي جامع دي دا ټول علوم په دې کې درج دي، په مسلم کې تفسیر ډیر کم دی هغه جامع نه دی.

(۲) **مسند**: هغه دی په کوم کې چې د صحابو په نوم ترتیب یا رتبو باندې احادیث جمع شوي وي لکه مسند احمد او مسند دارمي.

(۳) **معجم**: دا هغه دی په کوم کې چې نومونه د حروفو په ترتیب یا د رتبو په ترتیب سره د خپلو شیوخو احادیث جمع شوي وي لکه معجم طبراني، معجم کبیر، معجم صغیر معجم اوسط وغیره.

(۴) **سنن** : دا هغه کتب دي په کوم کښې چې احکام احادیث د فقه د بابونو په ترتیب باندې وي لکه ترمذي وغیره.

(۵) **جزء (اجزاء)**: دا هغه دي کوم چې د یو شیخ په مرویاتو باندې مشتمل وي یا د یوې موضوع سره تړل شوی وي لکه جزء رفع الیدین.

(٦) **مستدرکات** :دا هغه کتابونه دي د کومو مؤلف چې د کوم محدث د کتاب د احادیثو استدراک وي کوم چې د کومې وجې نه پاتې شوي وي او دده د شرطونو مطابق وي لکه مستدرک علی الصحیحین.

(۷) علل (۸) شمائل (۹) اربعینات.

## د محدثینو مسالک:

(۱) امام بخاري په یو قول کښې شافعي په یو کښې حنبلي او په یو کښې مجتهد وو، اخیري قول راجح دی.

(۲) امام مسلم مقلد محض نه وو البته د شوافعو طرف ته مائل وو، بعضو چې مالکي وو.

(۳) امام ابو داؤد د حنبلي مسلک سره تړل شوی وو.

(۴) امام ترمذي بعضو شافعي ښودلی دی.

(۵) امام ابن ماجه شافعي یا حنبلي یا ازاد حجاز والاو ته مائل وو.

(۶) امام نسائي عام خیال دا دی چې که شافعي دی.

(۷) امام طحاوي اول شافعي وو بیا پوخ حنفي شو.

۲۵ شوال ۱٤۰۹ھ

## د حدیث حجیت

د منکرین حدیث مقصد په حقیقت کې دا دی چې اسلام د بیخه اوباسي او ختم یې کړي او په هغه باندې د چا اعتماد او یقین پاتې نه شي، د همدې مقصد دپاره دوی د احادیثو نه د انکار کولو فتنه راپورته کړې ده، ځکه چې د احادیثو نه علاوه قرآن خود بخود معطل پاتې کیدی شي، دا خلق د قرآن کریم په شمول د یوې مخې د دین ختمولو په کوشش کې دي، په همدې وجه ضروري ده چې علماء په قرآن او حدیث سره حجیت د حدیث ثابت او مستحکم کړي او بیا د منکرینو حدیثو شبهات په غور سره وګوري لهذا دلته هم په حجیت حدیث باندې مختصر شانته ملاحظه وکړئ:

د قرآن کریم په متعدد د آیتونو سره د حدیث حجیت کیدل او د هغه واجب العمل کیدل ثابت او مسلم دي، علامه شاه انور شاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې د احادیثو نه بغیر په قرآن باندې پوهیدل ګران دي، علامه محمد یوسف بنوري رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې قرآن کریم د احادیثو د تایید او توثیق دپاره نازل شوی دی او په قرآن باندې ایمان نه شي راوړل کیدی ترڅو چې په احادیثو ایمان رانوړی شي، ویل شوي دي چې آیت: ﴿إِنَّكَ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ د دې په تایید کې راغلی دی: ﴿إِنَّكَ عَلَى الْحَقِّ الْمُبِينِ﴾ د دې د توثیق برخه ده، ﴿وَأَرْسَلْنَاكَ لِلنَّاسِ رَسُولًا﴾ وغیره آیتونه د دې ښکاره دلیل او واضح ثبوت دی.

**دلائل:** (۱) ﴿وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾ (نحل ٤٤).

په دې آیت کې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قرآن د آیتونو مُبَیِّن یعني بیانوونکی ښودل شوی دی او کوم چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بیان کړي هغه احادیث دی.

(۲) ﴿وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا﴾ (حشر ۷)

په دې آیت کې هر هغه څیز واجب العمل او واجب الاخذ ګرځول شوی دی کوم چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ بیان کړې دي او د کوم څه نه چې منع شوې ده هغه واجب الاحتراز ګرځول شوي دي او دا ټول د حدیثو په ذریعه باندې کیږي.

(۳) ﴿فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ أَن تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ (نور ٦٣).

په دې آیت کې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او امر واجب الاطاعت ښودل شوي دي او په مخالفت باندې یې د وعید بیان دی نو د رسول الله امر همدا احادیث دي.

(٤) ﴿وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَاتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ﴾ (اعراف ۱۵۷).

په دې آیت کې احادیث د وسیعو فیصلو ذکر دی.

(۵) ﴿إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللهُ﴾ (نساء ۱۰۵).
په دې آیت کې ﴿بِمَا أَرَاكَ اللهُ﴾ د آحادیثو ذخیره بیان کړې ده.
(٦) ﴿لاَ تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ . إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ . فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ . ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ﴾ (قيامة ١٦-١٩).
د دې بیان نه مراد احادیث دي، ځکه که د قرآن بیان په قرآن سره مراد واخیستل شي نو بیا به د هر نوی راتلونکي آیت بیان به په یوه بل آیت سره وي په کوم سره چې تسلسل راځي.
(۷) ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلاَّ لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللهِ﴾ (نساء ٦٤).
په دې آیت کې د اطاعت رسول مطلب د هغه د احادیثو او مبارکو فرمانونو اطاعت دی.
(۸) ﴿لَقَدْ مَنَّ اللهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولاً مِّنْ أَنفُسِهِمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ﴾ (آل عمران ١٦٤).
په دې آیت کې د تعلیم کتاب ذکر دی او دا د احادیثو نه بغیر ممکن نه دی، همدارنګه د نفسونو تزکیه له احادیثو نه علاوه څنګه کیدی شي، همدارنګه الحکمة د دانائي خبرو تعلیم په خپله احادیث دي.
(۹) ﴿فَلاَ وَرَبِّكَ لاَ يُؤْمِنُونَ حَتَّىَ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لاَ يَجِدُواْ فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُواْ تَسْلِيمًا﴾ (نساء ٦٥).
په دې آیت کې تحکیم حکم کول فیصله اورول له احادیثو پرته څنګه ممکن ده؟ د مما قضیت کلمه ویل شوې چې د رسول الله ﷺ اورول شوې فیصلې منل په هر مسلمان باندې فرض دي، دا فیصله او د جګړو د ختمولو تړول احادیث دي لهذا د قرآن سره سره د احادیثو منل په خپله د قرآن حکم دی، که چیرته کوم انسان له احادیثو انکار کوي هغه ته په خپله ګمراه کیدل په کار دي او ګمراه به ګرځي.

در فیضِ محمد وا ہے آئے جس کا جی چاہے ❀ نہ آئے آتشِ دوزخ میں جائے جس کا جی چاہے
مریضانِ گناہ کو دو خبر فیضِ محمد کی ❀ بلا قیمت دوا ملتی ہے آئے جس کا جی چاہے

## د منکرین حدیث شبهات او د هغو جوابات

**اوله شبه** دا ده چې د رسول الله ﷺ بیان کړي احکامات د هغه په زمانې پورې خاص وو وروسته تبدیلي راغله؟. **جواب**: رسول الله ﷺ تر قیامته پورې د خلکو د پاره خاتم النبیین دی د دوی نه وروسته د احکاماتو د تبدیلی عقیده د نبوت انکار دی په دې نظریې سره خو د یهودو او نصارا او په شان د اسلام دین ختمیدی شي.

**دویمه شبه** دا ده چې په قرآن باندې د پوهیدو دپاره احادیثو ته ضرورت نشته ځکه ﴿ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴾ ټول یې آسان کړی دی؟ **جواب**: دلته د ذکر نه مراد مخکښې نصائح او واقعات مراد دي، شرعي احکامو او دقیق تحقیقاتو ته یُسر نه دی ویل شوی، همدارنګه صحابه کرام اهل لسان وو د نزول قرآن عین شاهدان وو هغوی په ډیرو مسائلو او ډیرو مطالبو باندې په خپله پوهیدل بلکې د رسول الله ﷺ طرف ته یې ساعت په ساعت رجوع کوله نو نن د دې جهالت مرکبه په دور کې څوک په خپله پوهیدلی شي؟ زه پوښتنه کوم چې آیا د رکعتونو شمیر، د مونځ وختونه او کیفیات تاسو پرې د احادیثو نه په غیر پوهیدی شئ؟ د زکوة مقدار، انواع او اقسام اود نصاب تکمیل او وخت تاسو په قرآن سره پیش کولی شئ؟د حج اعمال،افعال، وخت او د مقاماتو تعین تاسو په قرآن سره ښودلی شئ؟ دا خو سراسر باطله نظریه ده او د دین نه انکار دی، د اسلام دین ټول احکامات د هغه هیئات، کیفیات، ترتیب او تفصیلات صرف په قرآن سره پرې څوک پوهیدلی شي؟ پیشو حرامه ده، زمری حرام دی، خر حرام دی، لیوه حرام دی، کوتره حلاله ده، چرګه حلاله ده، هوسۍ حلاله ده دا تفصیلات په قرآن کې چیرته دي؟ څه بیا دا وایه چې ستا کلمه لا اله الا الله محمد رسول الله یو ځای په قرآن کریم کې چیرته ده؟ همدارنګه دا وایه چې دا قرآن حجت دی د الله کلام دی په هغه باندې عمل وکړه دا څوک وایي؟ که چیرته د رسول الله ﷺ په حدیث او فرمان سره دا خبرې شوې وي نو بیا د حدیث نه انکار څه معنی لري؟.

*بسوخت عقل ز حیرت که این چه بوالعجبی است*

په همدې وجه امام اوزاعي رحمه الله ویلي دي(**الکتاب احوج الی السنة من السنة الی الکتاب**) یعنې کتاب الله په خپله پوهه کې د سنت او حدیث طرف ته زیات محتاج دی، په نسبت سره سنت ته د کتاب الله طرف ته، د امام مکحول هم همدا قول دی.

**دریمه شبه** دا ده چې رسول الله ﷺ د احادیثو د لیکلو نه منع کړې وه،د ابوسعید خدري رضي الله عنه روایت دی چې:**لاتکتبوا عني شیئا سوی القرآن ومن کتب عني غیر القرآن فلیمسحه(رواه مسلم)**.

**اول جواب**: دا چې رسول الله ﷺ په ابتداء کې په عارضي طور منعه کړې وه ترڅو چې په قرآن او حدیث کې التباس او اختلاط رانه شي، همدارنګه چې احادیث د بطون او راقو پر ځای په صدور رجال کې محفوظ شي، کله چې صحابه کرامو د قرآن او حدیث په فصاحت او بلاغت کې او د بیان په طرز کې بنه امتیاز پیدا کړ او د التباس او اختلاط ویره پاتې نه شوه نو رسول الله ﷺ د احادیثو لیکلو اجازت ورکړ او دا عارضي ممانعت ختم شو. **دویم جواب**: دا دی چې د ټولو احادیثو په مقابله کې د همدې حدیث پرېښودل دي دا روایت د اجازت کتابت د ټولو روایتونو مقابله نه شي کولی بلکې دهمدې

حديث هم هغه عارضي ممانعت دی کوم چې ختم شوی دی. **دريم جواب**: ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ په فتح الباري کې ليکلي چې ممانعت د قرآن او حديث په يوه صحيفه او په يوه ځای کې د ليکلو وو، جدا جدا نه وو.
**څلورمه شبه** دا ده چې حديث حجت نه دی صرف قرآن حجت دی ځکه چې احاديث د تابعينو په زمانه کې ليکل شوي دي دومره اوږده زمانه د هغو حفاظت څنګه کيدی شي؟. **جواب**: دادعوی غلطه ده چې کتابت د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې نه ؤ بلکې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې ډير تحريرات او صحيفې موجودې وې کومې چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اجازت سره ليکل شوې وې وګورئ:

**(۱) د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صحيفه**: ده په نبوي احاديثو باندې يوه جامع صحيفه ليکله د کومې نوم چې ده (**الصادقه**) کيښودلو حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په صحابو زما نه زيات احاديث بل چا نه دي نقل کړي بغير د عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه ځکه چې هغه ليکل او ما ليکلي نه وو. د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان دی چې ما به د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مجلس کې څه واوريدل هغه به مې ليکل. ماته يو ځل قريشو وويل کوم څه چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اورې هغه ليکه حالانکه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بشر دی کله په غضب کې او کله په خوشحالۍ کې خبرې کوي، ما د دوي په خبره د ليکلو نه انکار وکړ بيا ما د دې يادونه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وکړه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله ګوته د خپلې خولې طرف ته اشاره وکړه وې فرمايل چې وی ليکه په هغه رب قسم د کوم په قبضه کې چې زما ساه ده د دې ژبې نه د حق نه بغير بل څه نه ووځي (**جواهر الاصول في مصطلح احاديث الرسول ص ٦٠ و مسند احمد**).

حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د دې صحيفې سره د محبت په طور ويل: **مايرغبني في الحيوة الا الصادقة والوهط اما الصادقة فصحيفة كتبتها عن رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ واما الوهط فارض تصدق بها عمرو بن العاص**، يعنې زما د ژوند سره محبت د دوه وجو دی يو د صادقې د وجې دويم د وهط د وجې، صادقه د احاديثو هغه مجموعه ده کومه چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوريدلې او ليکلې ده او وهط هغه وقفي زمکه ده کومه چې زما پلار عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وقف کړې ده (د هغې په نګرانۍ سره زه خوشحاله يم).

**(۲) د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صحيفه**: د بخاري شريف په کتاب العلم کې د ابو جحيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې ما حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته عرض وکړو چې تاسو سره کوم خصوصي کتاب شته دی؟ دوی وفرمايل له کتاب الله او چې په دې صحيفه کې دي د دې نه بغير بل څه نشته، ما وويل په دې صحيفه کې څه دي؟ وې فرمايل د ديت احکام دي، د بنديانو د خلاصون مسائل دي او دا چې کوم مسلمان دې د کافر په بدل کې نه وژل کيږي.

(۳) **د عمرو بن حزم صحیفه**: د سنن نسائي په دویم جلد ص ۲۵۱ کې دي چې رسول الله ﷺ د اهل یمن طرف ته یو خط ولیږلو په کوم کې چې د فرائضو سنتو او د دیتونو مسائل درج وو دوی دا مکتوب د عمرو بن حزم په لاس لیږلی وو او ده د اهل یمن په وړاندې اوریدلی وو عمرو بن حزم هغه ﷺ د نجران والي مقرر کړی وو کله چې د هغه عمر اویا کاله وو.

(۴) **صحیفه عمر بن الخطاب** رضي الله عنه: په ابوداؤد او ابن ماجه کې د عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ د صدقاتو متعلق یو تحریر لیکلی وو مګر تر دې وخته یې د والیانو په نوم لیږلی نه وو چې هغه ﷺ رحلت وکړ حضرت عمر رضي الله عنه هغه د توری په پوښ کې محفوظ وساتلو، کله چې هغه ﷺ رحلت وکړ نو ابوبکر صدیق رضي الله عنه د هغه نه استفاده وکړه دده نه وروسته حضرت عمر رضي الله عنه ترې ښه استفاده وکړه تردې چې حضرت عمر رضي الله عنه هم وفات شو او هغه تحریر محفوظ پاتې شو.

(۵) **صحیفه عبدالله بن مسعود** رضي الله عنهما: حافظ ابو عمرو جامع بیان العلم په اول جلد ص ۷۲ کې له متصل سند سره د حضرت معن روایت کړی دی چې د. حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه زوی عبدالرحمن رضي الله عنه یو تحریر ولیدو او قسم یې وکړو چې دا تحریر زما د پلار حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په خپل لاس سره لیکل شوی دی.

(٦) **صحیفه ابو هریره** رضي الله عنه: حافظ ابن عبدالبر په بیان العم کې د ابن وهب او د حسن بن عمرو په طریقه یو روایت نقل کړی دی چې د حضرت ابو هریره رضي الله عنه پر وړاندې د یو حدیث تذکره وشوه نو ده ترې د لاعلمۍ اظهار وکړ ما عرض وکړو چې حضرت د تاسو نه مې اوریدلي وو، وې ویل که چیرته تا د ما نه اوریدلی دی نو هغه به د ما سره د تحریر په شکل کې خامخا موجود وی، لهذا زما لاس یې ونیوه او زه یې خپل کور ته بوتلم او ماته یې د نبوي احادیثو دیر زیات تحریرات راوښودل او هغه حدیث هم پیدا شو.

(۷) **صحیفه رافع بن خدیج**: حضرت رافع بن خدیج ویلي دي چې ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چې یارسول الله! ماخو ستا نه دیرې زیاتې خبرې اوریدلي دي آیا زه هغه ولیکم؟ رسول الله ﷺ وفرمایل هیڅ خبره نشته وې لیکه (**تدریب الراوي ص ۲۷٦**).

(۸) **صحیفه جابر بن عبدالله**: د حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه سره هم د احادیثو مقدسو یو تحریر وو په کومه کې چې احادیث لیکل شوې وو د دې یادونه امام بخاري د تاریخ کبیر په څلورم جلد ص ۱۸٦ کې کړې دی. په ترمذي کې یې هم ذکر موجود دی.

(۹) **صحیفه سمره بن جندب**: جلیل القدر صحابي حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه سره هم د احادیثو یوه صحیفه وه په کومه کې چې دیر احادیث لیکل شوې وو، ددې صحیفې ذکر د ابوداؤد شریف په احادیثو د تشهد کې راغلی دی.

(۱۰) **صحیفه ابو شاه یمني** :امام بخاري رَحِمَهُ اللّٰهُ د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ یو اوږد روایت نقل کړی دی په کوم کې چې د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خطبې تذکره ده، د همدې بیان په اخیر کې حضرت ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ویلي دي چې د یمن نه یو کس راغلی وو د کوم نوم چې ابو شاه وو هغه وویل یارسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ! دا خطبه ماته ولیکئ او راپې کړئ، رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه کرامو ته وفرمایل (اکتبوا لابي شاه) یعنې د ابو شاه دپاره د خطبې دا مسائل ولیکئ.

(۱۱) **د عامو صحابه کرامو تحریرونه** : په مسند دارمي کې د حضرت عبدالله بن عمرو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی چې مونږ د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه چار چاپیره په لیکلو مشغول وو چې په دې وخت کې د هغه نه پوښتنه وشوه چې په دې دوه ښارونو کې رومې کوم فتحه شو قسطنطنیه که روم؟ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل نه بلکې د هرقل ښار. ددې حدیث نه معلومه شوه چې د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چار چاپیره د حدیث لیکلو دپاره یو کس نه وو بلکې یو جماعت ناست وو، همدارنګه حضرت سعد بن عباده د احادیثو مجموعه لیکلې وه، په کنز العمال کې یو روایت دی (اکتب ولاحرج) حدیث ولیکه! هیڅ خبره نشته، په مجمع الزوائد کې دي چې یو کس وویل یارسول الله ! زه ډیرې زیاتې خبرې کوم رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل : **استعن بیمینک** یعنې په ښي لاس سره یې ولیکه د ځان مرسته وکړه. دا ټول واقعات او روایات د دې خبرې دلائل دي چې د صحابه کرامو په مبارک عهد کې د حدیث کتابت وو البته د قرآن کریم سره یو ځای د لیکلو ممانعت وقتي وو، د صحابو د دور سره متصل د خیر القرون په دور کې تابعینو د احادیثو ذخیرې په مختلفو ښارونو کې جمع کړې، لهذا امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ په مدینه منوره کې موطا امام مالک ولیکله، ابن جریج رَحِمَهُ اللّٰهُ په مکه مکرمه کې د احادیثو ذخیره ولیکله، امام اوزاعي د شام په زمکه د احادیثو ذخیره ولیکله، حماد بن سلمه رَحِمَهُ اللّٰهُ په بصره کې په علم حدیث کې تصنیف وکړ، معمر په یمن کې کتاب ولیکلو او سفیان ثوري رَحِمَهُ اللّٰهُ په کوفه کې یو تصنیف تیار کړ، امام بخاري په بخارا کې، امام مسلم په نیشاپور کې، امام ترمذي په ازبکستان کې امام ابوداؤد په سجستان کې او نورو محدثینو په خپلو خپلو ښارونو کې د احادیثو ذخیرې ولیکلې، ابن اسحاق په مغازي باندې کار وکړ ،هیثم په اوسط کې د احادیثو د لیکلو کار وکړ، لیث او ابن لهیعه په مصر کې کتاب ولیکلو ،بیا عبدالله بن مبارک کتاب ولیکلو او قاضي ابویوسف کتاب ولیکلو، په همدې شان د احادیثو یوه خزانه جوړه شوه، د کتابت حدیث ددې اهتمام او انتظام نه وروسته بیا هم کوم کس چې شک او شبه کوي هغه په اصل حقیقت کې د احادیثو نه قلبي نفرت لري، او د قلبي عداوت څوک علاج کولی شي؟.

فعین الرضاء عن کل عیب کلیلة ✿ ولکن عین السخط تُبدي المساویا

۲۶ شوال ۱٤۰۹ھ

## صاحب مصابیح :

مصابیح او مشکوة المصابیح د دوه جدا جدا مصنفینو جدا جدا تصنیفات دي،رومبی د صاحب مصابیح احوال لیکل کیږي :

**نوم او نسب** :نوم یې حسین وو ، کنیه یې ابو محمد وه محی السنة یې لقب وو د پلار نوم یې مسعود وو او د نیکه نوم یې محمود وو یعنې : **هو الامام محی السنة قامع البدعة ابو محمد حسین بن مسعود بن محمود الفراء البغوي**. په کال ۴۳۵ هجري کې پیدا شوی او په کال ۵۱۶ کې له فاني دنیا نه د ابدي دنیا په طرف تللی دی او په مروه کې خښ شوی دی.

**الفرو** : په عربي ژبه کې پوستین ته ویلي کیږي د ده په نیکونو کې کوم یوه د پوستینانو کار کولو بعضو ویلي دي چې زیاتره وخت یې پوستین اغوستلو نو ځکه په فرو سره مشهور شو.

**بغوي** : د ده وطن د بغو طرف ته منسوب شوی دی بغو په اصل کې بغشور وو کوم چې د کور د باغ په معنی سره دی او معرب دی، **بغشور** د هرات او مرو په مینځ کې یوه آبادي او مشهور ښار دی، د نسبت په وجه بغوي شوی دی، شور د تخفیف په وجه حذف شوی دی.

**د علم زده کړه**: صاحب مصابیح شیخ محی السنة د خپلې زمانې مشهور محدث مفسر قرآن او د مشهورو تاتاریانو نه وو، د قاضي حسین بن محمد شاګرد وو، ده د علاقې د مشهورو محدثینو نه علم حاصل کړ او بیا لوی لوی شیوخ د ده شاګردان شول کوم چې د ده د کمال د پاره ښکاره منار وو دی په خپله په اکابرو شوافعو کې شمار شوی دی.

**زهد او تقوی** : دې په زهد او تقوی کې هم یوه نمونه وه ټول عمر یې په تألیف او تصنیف د حدیث او د فقهې په تعلیم او تدریس کې تیر کړی، تل به یې په اوداسه درس ویلو، ده انتهائي د صبر او قناعت ژوند تیر کړی، د نفلي روژو نیولو پابندي یې کوله او د افطار په وخت کې به یې د وچې ډوډۍ ټوټې په اوبو کې پستې کړې او خوړلې به یې.

ده ته طبیبانو ویلي وو چې په دې سره په دماغو کې خشکي پیدا کیدی شي او د حافظې خرابیدو خطر هم شته، بیا ده زیتون د ډوډۍ سره د سالن په طور استعمالول شروع کړل.

ښځه یې د ده نه مخکې وفات شوې وه، هغې په میراث کې ډیر زیات مال پریښی وو لیکن محی السنة د کمال تقوی په وجه د میراث نه خپله برخه وانخیستله.

**د محی السنة د لقب وجه** ،کله چې ده د شرح السنة تصنیف مکمل کړ نو ده رسول الله ﷺ په خوب کې ولیده رسول الله ﷺ ورته فرمایلي وو (**احیاک الله کما احییت سنتی**) یعنې لکه

ځرنگه چې تا زما سنت ژوندي کړل همداسې دې الله تعالی تا هم ژوندی وساتي، په همدې ورځې د ده لقب محي السنة شو، محي د باب افعال نه د اسم فاعل صيغه ده. د ۸۰ يا ۸۱ کلونو په عمر کې وفات شوی دی او مروه کوم چې د هرات په ولايت کې دی د خپل فقيه استاذ قاضي حسين بن محمد رَحِمَهُ اللهُ په څنگ کې دفن شوی.

## تصنيفونه:

د ده د مشهورو تصنيفونو نه يو کتاب (المصابيح) دی په کوم کې چې ۴۴۸۴ احاديث ليکل شوي دي، د دې کتاب په خطبه کې مصنف د مصابيح لفظ استعمال کړی دی په همدې وجه د کتاب نوم مصابيح شو، د دې مقبول او مشهور کتاب تقريبا ۱۶ شروحات دي، د دې کتاب د فائدې ورکول او طرز تاليف مکمل تفصيل صاحب مشکوة په خپله مقدمه کې ليکلی دی کوم چې به إن شاء الله په آينده کې راشي. الله تعالی ورته په تفسير کې هم لوی مقام ورکړی وو لهذا د تفسير بغوي په نوم سره د ده تفسير هم موجود دی، همدارنگه په فقه او قرائت کې يې هم تصنيفونه شته دي.

*بسا کردند خوش رسمی بخاک وخون غلطیدن ۞ خدا رحمت کند این عاشقان پاک طینت را*

## صاحب د مشکوة:

چونکه کتاب المصابيح د ترميم او اضافې نه وروسته د مشکوة المصابيح په نوم سره عام منظر ته راغی د درس او تدريس دپاره علماؤ هغه قبول کړی دی په همدې وجه د صاحب مشکوة هم څه تذکره د لوستونکو دپاره کيدی شي.

**نوم او نسب:** د صاحب مشکوة المصابيح نوم محمود يا محمد دی کنيه يې ابو عبدالله او لقب يې ولي الدين او دپلار نوم يې عبدالله دی، نسبًا عمري دی او په خطيب تبريزي سره مشهور دی، يعني ابو عبدالله ولي الدين محمد بن عبدالله العمري الخطيب التبريزي.

دا په خپل وخت کې دير لوی محدث وو د فصاحت او بلاغت امام وو، په احاديثو کې د ده لوړ مقام اندازه د ده د تصنيف مشکوة نه کيدلی شي، د ده د ژوند زمانه اتمه صدۍ وه، په دې زمانه کې د تاتاريانو لويه فتنه راپورته شوې وه نو ځکه د ده حالات ليکل شوي ندي، د تخميني اندازې مطابق دا د ۷۴۰ هجري نه وروسته وفات شوی، ځکه اکمال في أسماء الرجال تاليف نه دا د ۷۴۰ هجري نه مخکې فارغ شوی، لهذا وفات يې د دې نه وروسته شوی دی، دومره معلومه شوې او د دې پرته هيڅ هم نه دي معلوم شوي، البته د ده شيخ علامه حسين بن محمد طيبي رَحِمَهُ اللهُ دا په بقية الاولياء او قطب الصلحاء

په شان په شاندارو الفاظو سره یاد کړی دی، او ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ په مرقات شرح مشکوة کې دا په **البحر العلامة و البحر الفهامة مظهر الحقائق و موضح الدقائق الشیخ التقي النقي** په شان په ښائسته الفاظو سره یاد کړی دی او بیا یې لیکلي دي چې د فضل او کمال دپاره د مشکوة تالیف کافي شافي دی.

**تصنیفونه** : دا وخت د امت په مخکې د ده دوه تصنیفونه دي : اول **الاکمال في أسماء الرجال** کوم چې د مشکوة په اخیر کې ددې سره ضم کړی شوی دی، او دویم تصنیف **مشکوة المصابیح** دی کومه چې د ده نازولې د احادیثو مجموعه ده، کوم چې صرف په صحاح ستو باندې نه دي بلکې په نورو ډیرو د احادیثو په کتابونو باندې مشتمل دی، الله تعالی دا کتاب په عامه او خاصه قبولتیا مشرف کړی دی.
په هندوستان کې یوه اوږده زمانه مشکوة شریف د طلباو د تکمیل په وخت کې ویلو، همدارنګه په دې زمانه کې **مشارق الانوار** او مشکوة شریف دواړه ویل کیدل د احادیثو دوره مکمل کیدله، کوم بل کتاب نه وو، بیا کله چې د دوره حدیث دپاره د صحاح ستو تعین اوشو بیا هم **مشکوة شریف** په موقوف علیه ویل کیدل لازم وګڼل شول، دا د دې کتاب د عندالله د مقبولیت نښانه ده، بلکې یوه زمانه خو هغه وه چې خلکو به د قرآن شریف په شان مشکوة شریف په سینو کې محفوظولو.
په علماء هند کې یو کس د بابا داؤد مشکوتي په نوم سره مشهور وو کوم چې مشکوة شریف له متن او سند سره یاد کړی وو نو ځکه ورته د بابا مشکوتي لقب ورکړی شوی وه.

**طرز او طریقه د تالیف** :په **کتاب المصابیح** کې محی السنة صرف احادیث جمع کړي وو نه د حدیث د سند تذکره وه نه د هغه صحابي نوم وو د کوم نه چې حدیث بیان شوی وو همدارنګه حدیث صحیح ضعیف حسن تخریج او مخرج تذکره هم نه وه پکې شوې، صاحب مشکوة د دې ټولو شیانو اهتمام وکړ او د حدیث یې د هر حیثیت سره تذکره وکړه او حقیقت یې واضح کړ.
صاحب مصابیح د خپل کتاب په هر باب کې دوه فصلونه مقرر کړي وو په اول فصل کې د بخاري مسلم او صحاح حدیثونه ذکر کړي دي او په دویم فصل کې یې د ابوداؤد ترمذي نسائي حدیثونه راوړي دي د کوم نوم چې ده حسان ایښی دی.
صاحب مشکوة د دریم فصل زیاتونه په خپل کتاب کې کړې ده په کوم کې چې ده د هغو حدیثونو ذکر کړی کوم چې د دې باب سره مناسبت لري او صاحب مصابیح د هغو ذکر نه دی کړی، همدارنګه اقوال صحابه او اقوال تابعین یې هم په هغه کې شامل کړي دي ده په همدې دریم فصل کې کله کله د بخاري او د مسلم حدیثونه هم راوړي دي.

**د مشکوة د احاديثو تعداد**: شاه عبدالعزيز محدث دهلوي په بستان المحدثين کې ليکلي دي چې د کتاب المصابيح د احاديثو ټول شمير (۴۴۸۴) وو په هغو باندې د مشکوة صاحب (۱۵۱۱) ور زيات کړل نو اوس د مشکوة ټول حديثونه (۵۹۹۵) دي، بعضو د مصابيح د احاديثو تعداد (۴۴۳۴) ليکلى دى يا مجموعه (۵۹۴۵) شول، په مشکوة شريف کې د عنوان په اعتبار سره ټول (۲۹) کتابونه دي او په کتاب الايمان سره لومړى عنوان شروع شوى دى، په دې کتاب کې د بابونو شمير (۳۲۷) دى او په هغه کې ټول (۱۰۳۸) فصلونه دي.

## د مشکوة شريف د تاليف وجه:

صاحب مشکوة په خپله مقدمه کې د خپل تأليف او تصنيف وجه په خپله ښودلې ده، ليکن هلته دا خبره نشته چې په اصل کې د صاحب مشکوة استاذ علامه حسين بن محمد طيبي رَحِمَهُ اللهُ ده ته حکم کړى وو چې ته په احاديثو کې يو کتاب تصنيف کړه په کوم سره چې د مصابيح هغه کمې پوره کړى شي په کومو باندې چې د سطحي نظر والا خلکو په مصابيح باندې يو شمير اعتراضونه کړي دي.

لهذا ده د خپل شيخ په حکم د مشکوة شريف تأليف شروع کړو، د هر حديث په ابتداء کې يې د صحابي نوم ذکر کړو او په آخر کې يې دا حواله ورکړه چې دا حديث په کوم کتاب کې دى په کوم سره چې د ټول سند هم انتظام وشو.

ده د مصابيح په دوه فصلونو باندې د دريم فصل زيادت وکړو، په اول فصل کې يې د بخاري او مسلم احاديث او په دويم فصل کې يې د سنن اربعه وغيره نه احاديث راجمع کړل.

او په دريم فصل کې د باب سره مناسبت لرونکي احاديث جمع شوي دي، په دې جمع کې صاحب مشکوة د کوم خاص کتاب قيد نه دى لګولى بلکې بشمول بخاري او مسلم د کومه ځايه چې کوم حديث حاصل کړى دى برابره خبره ده که مرفوع حديث وي يا د آثار صحابو نه کوم اثر وي يا د تابعينو اثر وي ټول يې يو ځاى کړي دي د احاديثو يوه پراخه خزانه د علم او عمل ګلدسته يې امت ته وړاندې کړې ده، **فجزاه الله على ذلک احسن الجزاء**.

ده د خپل دې تاليف نوم **مشکوة المصابيح** کيښود يعنې د چراغونو طاق نو ګويا کې دا کتاب طاق دى او د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مقدس احاديث د هدايت چراغ دى، په دې کتاب کې د رشد او هدايت هغه ټولې ديوې روښانه شوي دي د کومو نه چې هر انسان رڼائي حاصلولى شي، د چا زړه چې غوارې رادې شي او د نور منار دې د ځان سره يوسي.

در فيض محمد وا ہے آئے جس کا جی چاہے ❀ نہ آئے آتش دوزخ میں جائے جس کا جی چاہے
مریضان گناہ کو دو خبر فیض محمد کی ❀ بلا قیمت دوا ملتی ہے آئے جس کا جی چاہے

## د مشکوة شريف شروحات :

الله تعالى دا کتاب په عامه او خاصه قبولتيا سره داسې نازولې دی چې د پيړيو تيريدو باوجود دا کتاب د علماء کرامو د توجيهاتو مرکز دی، او د نيا په طول او عرض کې د ده تعليم او تعلم درس او تدريس برابر جاري دی، په همدې وجه يې ډير زيات شروحات هم عام منظر ته راغلي دي، زه د څو شروحاتو طرف ته اشاره کوم :

(۱) **شرح الطيبي** : دا د کمال شرح ده او د دې لوی کمال دا دی چې علامه طيبي په خپله د صاحب مشکوة شيخ او استاذ دی، رومبی ده خپل شاگرد ته په احاديثو کې د کتاب ليکلو حکم وکړو او بيا يې د همدې شاگرد په کتاب يوه شانداره شرح وليکله کومه چې په دولس جلدونو کې دا وخت موجوده ده، په کومه کې چې د حديث فصاحت بلاغت او د دقيق نکاتو زيات اهتمام شوی دی، علامه طيبي شافعي المسلک تير شوی دی، د شرح پوره نوم الكاشف عن حقائق السنن دی.

(۲) **المرقات شرح المشكوة** :داد ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ په څو جلدونو کې د قدر وړ او لويه شرحه ده په کومه کې چې د مقدسو احاديثو د تشريحاتو په هر لحاظ سره حق ادا شوی دی، ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ د حنفي مسلک پوخ امام او مصنف تير شوی دی.

(۳) **لمعات التنقيح** : دا عمده شرح په عربي ژبه کې د شيخ عبد الحق محدث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ مقبوله شرح ده، ارمان دا دی چې لا پوره شوې نه ده.

(۴) **اشعة اللمعات** : دا عمده شرح په فارسي ژبه کې د شيخ محدث عبد الحق دهلوي رَحِمَهُ اللهُ تصنيف دی.

(۵) **مظاهر حق** : دا شرح په اردو کې ده او زياتره د مرقات او طيبي نه اخيستل شوې ده، محترم نواب قطب الدين خان رَحِمَهُ اللهُ متوفى ۱۲۷۹ هجري ليکلې ده.

(٦) **التعليق الصبيح** : دا شرح د مولانا محمد ادريس کاندهلوي رَحِمَهُ اللهُ ده په عربي ژبه کې يې ليکلې ده.

(۷) **التعليق الفصيح** : دا شرح د حضرت مولانا قاضي شمس الدين صاحب رَحِمَهُ اللهُ ده کومه چې په عربي ژبه کې ده.

(۸) **تنظيم الاشتات** : دا په اردو ژبه کې د مولانا محمد ابو الحسن رَحِمَهُ اللهُ بنګله ديشي تصنيف دی.

(۹) **شرح مشكوة**: دا شرح په عربي ژبه کې د شيخ الحديث حضرت مولانا نصير الدين غورغشتوي سرحدي رَحِمَهُ اللهُ ده.

(۱۰) **نفحات التنقيح في شرح مشكوة المصابيح** :په اردو ژبه کې ده دا شرح اوس اوس راغلې ده تراوسه صرف يو جلد چاپ شوی دی، **شيخ الحديث مولانا سليم الله خان دامت بركاتهم** شاگردانو دده د

مشکوة فواید او د نورو شروحاتو نه دا مجموعه تیاره کړی شوې ده، مګر صرف د منتخب احادیثو شرح ده.

(۱۱) **اشرف التوضیح**: د مشکوة دا شرح د شیخ الحدیث حضرت مولانا نذیر احمد صاحب د اردو تقریر دی، کومه چې په دریو جلدونو کې ده.

(۱۲) **توضیحات اردو شرح مشکوة**: دا شرح په اتو جلدونو باندې مشتمل ده، د بنده ناچیز فضل محمد بن نور محمد یوسف زئي یو محنت دی، الله تعالی دې قبول کړي.

دا شروحات هغه دي کوم چې متداول او دا وخت د طالبانو او مدرسینو په استعمال کې دي ددې نه علاوه د عربي پخوانۍ ډیرې زیاتې شرحې دي کومې چې ډیرو مشهورو علماؤ او شخصیتونو ته منسوبې دي.

لیکن دا وخت چونکه هغه شروحات نایاب دي او د چا په استعمال کې نشته نو ځکه ما د هغو یادونه ونه کړه، البته دومره پوهیدل په کار دي چې د مشکوة شریف عمده ترین شروحات ټول ۱۶ دي او ددې نه علاوه د دروس مشکوة وغیره په نومونو سره ډیر تقریرونه د کتابونو په شکل کې چاپ شوي دي او آینده کې به هم راشي.

په دې شروحاتو کې د هرشارح انداز جدا او علمي تحقیقات او تشریحات په خپل خپل رنګ کې دي لهذا د هرې یوې خوند هم جدا دی نو ځکه یوه شرح نه حرف اول دی او نه حرف آخر دی **وفوق کل ذی علم علیم** دی.

الله تعالی دې امت مسلمه ته د خواږه پیغمبر محمد رسول الله ﷺ د احادیثو او تعلیماتو د عام کولو مزید توفیق او همت ورکړي، او طالبانو ته دې د ښه محنت او قدر دانۍ توفیق ورکړي، **آمین یارب العلمین**.

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

۲۷ شوال ۱٤۰۹هـ

## د بسم الله الرحمن الرحيم بحث

سلفًا او خلفًا دا طريقه جاري ده چې كله علماء كرام د كتاب تصنيف كوي يا كتاب شروع كوي نو د اتباع قرآن او حديث او د سلفو صالحينو د ترتيب مطابق ابتداء كې **بسم الله** او **الحمدلله** سره ضرور ليكي او وايي، د مشكوة مؤلف هم همداسې كړي دي، د دې وجه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه احاديث او فرمانونه دي كوم چې په مختلفو الفاظو سره د تسميه او تحميد په باره كې وارد شوي دي لهذا په بعضو روايتونو كې دا الفاظ راغلي دي: **كل امر ذى بال لم يبدأ فيه ببسم الله الرحمن الرحيم فهو ابتر** (**خطيب في الجامع**).

او په بعضو روايتونو كې دي: **كل امر ذى بال لم يبدأ فيه بالحمد لله فهو اجذم** (**ابوداؤ نسائي**).

په بعضو روايتونو كې د پورته ذكر شوي روايت اخيري الفاظ (**فهو اقطع**) راغلي دي لكه چې په مشكوة كې همدا روايت دی. د مشكوة په (۲۷۲) صفحه كې په بعضو روايتونو كې د **بسم الله** او **الحمدلله** په ځای **ذكر الله** الفاظ راغلي دي لكه چې علامه رهاوي په اربعينات كې ليكلي دي.

اوس دلته د علماو په نزد دلته يو علمي بحث چليږي چې ابتداء خو د **كون الشيء اولا** نوم دی او اول خو يو شی كيدی شي لهذا كه په **بسم الله** سره ابتداء وشي نو په **الحمدلله** سره نه شي كيدی او كه په **الحمدلله** سره وشي نو په بسم الله سره نه شي كيدی، نو دا خو په دواړو روايتونو كې تعارض دی بيا د همدې فرعي تعارض لرې كولو دپاره شارحينو ليكلي دي چې د ابتداء درې قسمونه دي: (۱) ابتداء حقيقي (۲) ابتداء اضافي (۳) ابتداء عرفي.

بيا دا حضرات د **بسم الله** د پاره د ابتداء حقيقي په منلو سره ځان خلاصوي او د **الحمدلله** د پاره يې ابتداء عرفي يا اضافي منلې ده ترڅو چې تعارض ختم كړی شي، بيا اعتراض شوی چې ابتداء حقيقي د بسم الله سره ولې خاص شوې ده د الحمد لله سره ولې نه شوه؟ نو جواب وركړی شوی دی چې په بسم الله كې د الله تعالى ذاتي نوم موجود دی او د حمد تعلق د صفاتو سره دی او ذات په صفاتو باندې مقدم وي، يا دا جواب وركړی شوی دی چې د كتاب الله په ترتيب كې او د سلف صالحينو په كتابونو كې بسم الله مقدمه وه په همدې وجه د هغوی طرز غوره كړی شو ترڅو چې د سلفو اقتداء وكړی شي.

بعضو حضراتو جمع بين الروايات طريقه داسې خپله كړې ده چې د بسم الله نه ذكرالله مراد دی او د الحمدلله نه هم د الله ذكر مراد دی، او په بعضو روايتونو كې د ذكر الله لفظ راغلی دی نو د هغه عموم

مفهوم ماتحت برابره ده که بسم الله مخکې وي برابره خبره ده که الحمد لله مخکې وي تعارض نه شي راتلی، ځکه چې د ذکر الله مقصد په تسمیه او تحمید دواړو سره حاصل شوی دی، د همدې توجیه په نتیجه کې چې کله ولیدل شول نو رسول الله ﷺ په خپلو مبارکو خطونو کې کله صرف په حمد باندې اکتفاء کړې ده او بعضو مصنفینو صرف په بسم الله باندې اکتفاء کړې ده حمد يې ترک کړی دی. بعضو حضراتو دا جواب هم ورکړی دی چې په ابتداء باللسان سره هم د حدیث مفهوم او مقصود پوره کیدی شي لهذا که چیرته کوم مصنف د خپل کتاب په شروع کې د تسمیه او تحمید نه کوم ونه لیکي مګر په ژبه يې ووايي نو دا هم کافي کیدی شي.

**د حضرت شاه انور شاه کشمیري رحمه الله تحقیق** :د پورته ذکر شوو ټولو توجیهاتو پرته حضرت العلامة سید شاه انور شاه کشمیري رحمه الله تحقیق جدا دی، مونږ ته د بخاري شریف لوستلو په وخت کې محدث العصر سید محمد یوسف البنوري رحمه الله ویل چې حضرت شاه ویلي وو چې د فنونو علماء چې د تسمیه او تحمید په روایتونو کې کوم تعارض بیانوي دا په اصل حقیقت کې د غیر فن کسانو د حدیثو په فن کې بې ځایه مداخله کړې ده، په حقیقت کې دلته دوه جدا جدا حدیثونه نه دي چې په هغو کې د تعارض احتمال راشي، دلته يو حدیث دی په کوم کې چې هغه مقاصد بیان شوي دي یعنې کله هم چې کوم انسان قابل الاحترام او مهتم بالشان شي شروع کوي نو هغه ته په کار دي چې په بسم الله یا الحمد لله سره شروع وکړي.

خو اصل مقصود په ابتداء کولو کې تبرک حاصلول دي اوس همدا برکت دې په تسمیه سره حاصل کړي یا دې په تحمید سره حاصل کړي، نو د حدیث په مطلوب او مقصود باندې به عمل وکړی شي، دلته دوه حدیثونه نشته چې تعارض راشي بلکې د يو حدیث دوه مطلبونه دي چې د برکت دپاره په بسم الله او الحمد لله کې يو نه يو په کار دی که نه نو هغه کار به اقطع (لکی پرې کړی شوی وي) بې برکته به وي د دې د عموم طرف ته په دې روایت کې اشاره شوې ده په کوم کې چې د ذکر الله الفاظ راغلي دي.

**يوه عامه توجیه** : بعضو علماؤ د کتابونو د خطبو په ترتیب کې اول بسم الله یا الحمد لله یا د رسول الله ﷺ تذکره اوبیا د صحابو ذکر او بیا د مقاصدو مخکې د خپل ترتیب کرده کتاب تذکرې سره متعلق يوه عامه قاعده بیان کړې ده په کومې سره چې د کتاب په خطبه کې د هر شي ترتیب په اسانۍ سره په پوهه کې راتلی شي، ویل شوي دي چې هر مصنف چې کوم تصنیف کوي نو ګوا که دا مصنف په موجوداتو کې د يو نوې موجود زیاتوالی کوي لهذا هغه له ترتیب سره د ټولو موجوداتو د حق ادا کولو کوشش کوي، لهذا په موجوداتو کې د ټولو اول موجود د واجب تعالی وجوبي وجود دی د هغه د حق ادا کولو دپاره هر مصنف د بسم الله ذکر کوي.

په دویم نمبر باندې په موجوداتو کې د الله تعالی د صفاتو وجود دی نو ځکه د الحمد لله ذکر کوي، بیا د خالق او مخلوق په مینځ کې د افادې او استفادې دپاره د رسولانو وجود ضروري دی ځکه چې خالق په

پوره تقدس کې دی او مخلوق په پوره تدنس کې دی استفاده ممکنه نه ده نو رسول د رسالت په حیثیت سره له الله نه هدایت اخلي او د عالي انساني حیثیت سره تر عامو انسانانو یې رسوي.
لهذا مصنف په خپل کتاب کې د وجود رسول حق ادا کولو دپاره د شکریې په طور درود او سلام وایي، په څلورم نمبر باندې د رسولانو د آل او اصحاب وجود دی لهذا د هغو ذکر هم کوي او د دې وروسته په پنځم نمبر کې د خپل کتاب تذکره کوي ترڅو چې د ټولو موجوداتو درجه په درجه حق ادا کړی شو و همدا طریقه صاحب مشکوة خپله کړې ده او ټول همدا سې کوي.

## په بسم الله الرحمن الرحيم کې د دریو نومونو اختصاص ولې؟

اوس دا یو جد بحث دی چې په بسم الله کې یو نوم ذاتي او دوه نومونه صفتي دي د الله د نهه نوي نومونو نه د دې تخصیص ولې شوی دی؟ نو د دې تحقیق دا دی چې د الله لفظ اسم ذاتي لواجب الوجود وو د هغه ذکر د ټولو نه مخکې ضروري او بدیهي وو، همدا اسم اعظم دی کوم چې په قرآن کې (۲۳۶۰) ځلې مکرر راغلی دی او ترڅو پورې چې دا نوم په کومه ژبه باندې وي قیامت به نه راځي، د دې نه وروسته د صفتي نومونو نه رحمن او رحيم ذکر شوي، دا ځکه چې په صفاتو کې د ټولو نه همدا دوه نومونه زیات عام وو ځکه چې دا دواړه د مبالغې صیغې دي، یعنې بې حد مهربان او نهایت رحم والا او د دواړو تعلق د دواړو جهانو سره دی یعنې عالم دنیا او عالم آخرت.

یا رحمت **رقة القلب** ته ویل شوی دی په همدې لحاظ سره د همدې الفاظو اطلاق ابتداءً په الله تعالی باندې نه شي کیدی ځکه چې الله تعالی د جسم د ترکیب نه پاک دی، په همدې وجه علامه بیضاوي رحمه الله ویلي دي چې په الله تعالی باندې د بعضو الفاظو اطلاق په مبدأ او د ابتدا په اعتبار سره نه شي کیدی، مګر د غایې او نتیجې په اعتبار سره شوي دي، لهذا د رقة القلب نتیجه افاضه خیر او شفقت او مهرباني ده په همدې اعتبار سره د رحمت اطلاق د الله په ذات باندې روا دی.

اوس دا خبره پاتې شوه چې **رحمن** په **رحيم** باندې ولې مقدم شوی دی نو د علماو وینا ده چې د **رحمن** تعلق د دنیا او آخرت دواړو سره دی، همدارنګه دا رحمت غیر مسلم انسانانو او حیواناتو او تمامو کائناتو ته شامل دی نو ځکه د همدې وسعت په وجه په رحيم باندې مقدم شوی دی، دا هم ویل شوي دي

چې په **رحمن** کې د **رحيم** په مقابل کې حروف زیات دي او **كثرة المباني تدل على كثرة المعاني** قاعده ده لهذا هغه مقدم کړی شو.
بعضو دا هم ویلي دي چې د رحمن تعلق چونکه براه راست د دنیا سره دی او د رحيم تعلق د آخرت سره

دی او دنیا مقدمه ده نو ځکه مقدم کړی شو، لهذا په بعضو ادعیو ماثورو کې د **يارحمن الدنيا يا**

**رحيم الآخرة** الفاظ هم راغلي دي. ګویا کې د **رحمن** تعلق د ربوبیت عامه سره دی او د **رحيم** تعلق د

ربوبيت خاصه سره دی لکه مخلوقاتو ته خوراک څښاک ورکول وجود ورکول له نعمتونو مالا مال کول، هواګانې، دریابونه سپوږمی ستوري لمر او د نورو نعمتونو خوند اخیستل دي او هر یوه ته د علم په دائره کې هغه ته د ژوند تیرولو شعور ورکول هغه که انسان وي که حیوان وي مسلمان وي که کافر وي دا ربوبيت عامه دی، لیکن د رحیم تعلق د ربوبیت خاصه سره دی یعنې په عالم آخرت کې صرف فرمانبردار او وفادار مسلمان باندې مهربان کیدل او نافرمانو کافرانو ته سزا ورکول، د رب العلمين په لفظ کې د ربوبيت عامه او خاصه طرف ته اشاره ده چې دواړه امور د الله تعالی په لاس کې دي بهر حال د همدې وجوهاتو او نکتو په وجه تقدیم او تاخیر دی.

## د بسم الله متعلق څه دی؟

چونکه د **بسم الله** شروع په بآء حرف جاره سره شوې ده او حرف جر د عربو په کلام کې له کومې کلمې سره تړل شوې وي لهذا علماؤ د بسم الله متعلق بیان کړی دی، په نحوي علماو کې بصریانو ددې متعلق محذوف فعل بللی دی مثلا: **ابتدأ بسم الله الرحمن الرحيم**، د بصریانو خیال دی چې د فعل په مقدر راویستلو سره جمله فعلیه جوړه شي کومه چې زیاته بهتره ده، کوفیانو د دې مقدر شبه فعل اسم فاعل، اسم صفت وغیره کیدل راجح بللي دي، لهذا د دوی په نزد دا جمله فعلیه په ځای شبه جمله اسمیه جوړیږي.

بیا د نحویانو په مینځ کې په دې باندې هم کلام شته چې د هغې مقدر دې د **بسم الله** نه مخکې وګڼل شي مثلا **اقرأ بسم الله الرحمن الرحيم** یا دا مقدر د **بسم الله** نه وروسته وګڼل شي مثلا **بسم الله الرحمن الرحيم اقرأ**،دواړو طرفونوته نحویان تللي دي په جدا جدا نکاتوسره یې خپل مذهب ته ترجیح ورکړې ده،خوبنه خپله خپله،خیال خپل خپل،بیا هم لفظ د **ابتدأ** مقدم کیدل راجح خبره ده (کشاف)

بیا دلته د **بآء** جاره او د لفظ **الله** په مینځ کې د اسم لفظ په دوه وجهو سره زیات شوی: اول دا چې که چیرته **بآء** جاره لفظ په الله باندې داخل شي نو د **بالله** قسم سره یې التباس راځي.

دویمه وجه دا ده چې د اسم په زیاتولو کې د عاجزۍ او ادب طرف ته اشاره ده چې ذات باري تعالی خو ډیر لوړ دی که چیرته د هغه په نوم سره ابتداء وکړی شي نو دا هم لوی غنیمت دی. یو چا ډیر ښه ویلي دي:

ہزار بار بشویم دہن بمشک وگلاب — ہنوز نام تو گفتن کمال بے ادبی است

علماو ليکلي دي چې انسان چې کوم کار شروع کوي په دې مناسبت سره به مقدر فعل راوباسي مثلاً لوستل کوي نو اقرأ بسم الله به وايي، يا خوراک او څښاک کوي نو آکل و اشرب بسم الله به وايي، يا کوم بل کار کوي نو ددې په مناسبت سره فعل به مقدر راوباسي بيا بأء د الف سره زياته کړه او بره طرف ته يې بوځه ددې د پاره چې د الف په حذف باندې يوه ننبه باقي پاتې شي، دا بأء د استعانت د پاره هم ده او د الصاق د پاره هم ده.

## د بسم الله فضيلت

*طفل غنچہ کی چمن میں آج ابتدا ہے ❁ جس طرف دیکھو ادھر اللہ ہی اللہ ہے*

د بسم الله د ټولو نه لوی فضيلت دا دی چې په قرآن کريم کې بار بار راغلې ده، د هر سورت په تندي باندې په ښايسته انداز د مهر په شان ثبت شوې ده، ګويا کې بسم الله يو سرکاري نشان دی په کوم شي باندې چې دغه نشان وي په هغه کې برکت وي او شيطان هغه ته نزدې نه شي ورتللی.

تفسير کبير يو روايت نقل کړی دی چې رسول الله ﷺ ابو هريره رضي الله عنه ته وويل اې ابو هريره! کله چې ته اودس کوې نو بسم الله وايه ترڅو چې ته د اوداسه نه فارغ شوې نه يې فرښتې ستا د پاره نيکي ليکي، کله چې د خپلې ښځې سره کوروالی کوې نو بسم الله وايه نو د جنابت تر غسل پورې فرښتې ستا د پاره نيکي ليکي، د همدې کوروالي په نتيجه کې که چيرته ماشوم وشي نو د هغه اولاد د ساه اخيستو په مقدار نيکي ليکل کيږي، اې ابو هريره! کله چې ته په سورلۍ باندې سوريږې نو بسم الله او الحمدلله وايه په هر قدم باندې يوه نيکي ليکل کيږي، او کله چې ته په کشتۍ کې سوريږې نو بسم الله او الحمدلله وايه ترڅو چې د کشتۍ نه بهر راوتلی نه يې برابر نيکي ليکل کيږي.

همدارنګه تفسير کبير يو روايت نقل کړی دی چې حضرت انس رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله ﷺ فرمايلي: انسان چې کله لباس وباسي نو د هغه د شرمګاه او شيطانانو د نظرونو په مينځ کې پرده صرف دا ده چې انسان بسم الله الرحمن الرحيم ووايي (تفسير کبير ج ۱ صفحه ۱۷۱).

**حکايت (۱)**: په تفسير کبير کې يوه قيصه ليکل شوې ده چې قيصر روم د حضرت عمر رضي الله عنه په نوم يو خط وليکلو چې زما په سر کې هميشه درد وي ماته کومه دواء راوليږه، حضرت عمر رضي الله عنه هغه ته يوه خولۍ (ټوپۍ) ور وليږله ورته يې وويل چې دا په سر کړه د روم قيصر کله چې هغه خولۍ په سر کړه نو د سر درد يې ختم شو، مګر کله به يې چې خولۍ د سر نه لرې کړه نو بيا به درد شروع شو، د روم بادشاه په

دې کار ډیر په تعجب کې شو نو هغه خولۍ یې ټوټه ټوټه کړه چې په هغې کې یې یو کاغذ پیدا کړ په کوم کې چې بسم الله الرحمن الرحیم لیکل شوې وه. (تفسیر کبیر اول جلد صفحه ۱۷۱).

**حکایت (۲)**: حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه ته د فارس مجوسیانو وویل چې تا د اسلام د حقانیت دعوی کړې ده لهذا مونږ ته په دې باندې کوم کرامتي نشان وښایه ترڅو چې مونږ هم اسلام قبول کړو، حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه وویل چې تاسو زهر قاتل راوړئ، خلکو د زهرو قاتل یوه پیاله راوړه، حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه پیاله واخیستله په هغې یې بسم الله الرحمن الرحیم وویله او ټول زهر یې وڅښل او سم دم ودریده، مجوسیانو وویل دا دین په رښتیا چې رښتونی دین دی (تفسیر کبیر ج ۱ صفحه ۱۷۲).

**حکایت (۳)**: ویل شوي دي چې فرعون د الوهیت د دعوې نه مخکې یو کور جوړ کړی وو د هغه په بهرنۍ دروازه باندې **بسم الله** لیکلې وه، کله چې فرعون د ربوبیت دعوی وکړه او موسی علیه السلام راغی هغه ته یې د وحدانیت دعوت ورکړو او فرعون انکار وکړو نو موسی علیه السلام وفرمایل ای الله! ما دې کس ته بار بار دعوت ورکړی دی لیکن په هغه کې د خیر او د نیکۍ هیڅ شی نشته، الله تعالی وفرمایل ای موسی! ته شاید د همدې کس هلاکت غواړې ځکه چې ته د هغه کفر ته ګورې لیکن زه د هغه په دروازه باندې د هغه لیکل شوې بسم الله ته ګورم (تفسیر کبیر اول جلد صفحه ۱۶۸).

**حکایت (۴)**: حضرت عیسی علیه السلام په یوه قبرستان باندې تیر شو ده ولیدل چې د یو مړي په قبر باندې د عذاب فرښتې مقررې دي او هغه ته ډیر سخت عذاب دی، دا ورغلو او لږ وروسته بیرته راغی ده ولیدل چې د همدې مړي سره په قبر کې د رحمت فرښتې د هر رنګه نعمتونو سره موجودې دي او هغه د نعمتونو نه خوند اخلي، حضرت عیسی علیه السلام ډیر په تعجب کې شو، ده مونځ وکړ د الله تعالی نه یې دعا وغوښتله چې اصل حقیقت ورته ښکاره کړي، الله تعالی وحې راولیږله چې ای عیسی! دا هغه ګناه ګار کس وو کله چې مړ شو نو د خپلو ګناهونو په وجه د قبر په عذاب کې مبتلا شو، د مرګ په وخت کې یې حامله ښځه پریښې وه د کومې چې وروسته ماشوم پیدا شو، هغې ماشوم وپاللو هغه رالوی شو نو مور معلم ته ور ولیږلو معلم ورته وویل زویهووایه **بسم الله الرحمن الرحیم**، ماشوم وویله نو ماته حیا راغله چې زه هغه کس ته د زمکې لاندې عذاب ورکړم د کوم ماشوم چې د زمکې په سر زما نوم اخیستی دی (یعنې په معصومه ژبه وایي چې الله ډیر مهربان دی او بې حده رحم کوونکی دی، او د هغه پلار په عذاب کې وساتم دا نه شي کیدی).

د بسم الله بې شماره ګټې او بیشماره برکتونه دي بس مونږ ته په کار دي چې مونږ ترخو پورې ژوندي یو نو قدم په قدم ووایو چې بسم الله کله چې مرګ راشي نو ووایو چې بسم الله کله چې په قبر کې سوال وې نو ووایو چې بسم الله کله چې د حشر میدان ته ځو نو وایو چې بسم الله کله چې عملنامه راکول کیږي نو ووایو چې بسم الله کله چې اعمال تول کیږي نو ووایو چې بسم الله کله چې په پل صراط باندې یو نو ووایو چې بسم الله کله چې جنت ته داخلیدل وي نو ووایو چې بسم الله لکه چې د الله تعالی دیدار وي نو ووایو چې بسم الله.

**لقد بسملت لیلی غداة لقیتها ✿ فیا حبذا ذاک الحبیب المبسمل**

کله چې سهر زما ملاقات د لیلی سره وشو نو هغې بسم الله وویله او ملاقات یې راسره وکړو ، واه واه د بسم الله ویونکي دا محبوب څومره ښه ؤ .

**لفظ د الله جل جلاله** : لکه څرنګه چې په ذات د باري تعالی کې د عارفانو معرفتونه حیران دي او نعره وهي چې **(ما عرفناک حق معرفتک)** همدارنګه د الله د لفظ په تحقیق کې هم د علماؤ او عقلاؤ عقلونه حیران دي چې دا لفظ عبراني دی او که سریانی دی که عربي دی؟ بعضو علماو مثلا د ابو زید بلخي دا خیال دی چې دا لفظ عبراني دی یا سریانی دی ځکه چې اهل کتابو هغه **(الاها)** ویلی دی او د عبراني او سریاني دا خصوصیت دی چې په هغو کې الف غتیږي لکه **بسم الاها رحمانا مرحیانا** **بسم الله** کې ویل شوي دي په عربي کې د اخیر الف حذف شو نو الله پاتې شو دا خو د همدې حضراتو خیال دی کوم چې دې لفظ ته عجمی وایې، لیکن حقه دا ده چې دا لفظ عربي دی، کلام الله عربي دی کلام الرسول عربي دی کلام اهل الجنة عربي دی، ځکه باقي چې څومره اسماء حسنی دي له اسماء صفات نه دي نو د صفت دپاره موصوف او د نعمت دپاره منعوت موندل ضروري دي.

دلته علماو دا بحث هم راپورته کړی دی چې دا لفظ که چیرته عربي دی نو یا دا علم دی که صفت دی جامد دی که مشتق دی نو راجح دا ده چې دا جامد دی مشتق نه دی اسم علم دی صفت نه دی ، همدا قول امام اعظم رَحِمَهُ اللهُ امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ امام محمد رَحِمَهُ اللهُ امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ او په ائمو نحاة کې سیبویه خلیل بن احمد ، زجاج مبرد او ابن کیسان غوره کړی دی.

کومو حضراتو چې دا لفظ مشتق ګڼلی دی هغوی دا یا باب **فتح یفتح اله یأله** په معنی د عبادت او بندګۍ اخستلی دی **مالوه** ای معبود او الله معبود دی یا باب **سمع یسمع اله یأله** په معنی د تحیر

او دهشت اخیستی دی ځکه چې تمام مخلوق د الله تعالی پر وراندې دهشت زده دي او د هغه په ذات کې حیران دي. سعدي بابا رَحِمَهُ اللّٰهُ ویلي دي:

اے برتر از خیال و قیاس و گمان و وہم ❁ وز ہر چہ گفتہ اند و شنیدیم و خواندہ ایم
دفتر تمام گشت و بپایاں رسید عمر ❁ ما ہمچناں در اول وصف تو ماندہ ایم

یو چا ویلي دي:

تو دل میں تو آتا ہے سمجھ میں نہیں آتا ❁ بس جان گیا میں تیری پہچان یہی ہے

بعضو ویلي دي چې په اصل کې ولاه وه واو په همزې سره بدل شو نو الاه شو لکه وشاح اشاح دي.

صاحب کشاف ویلي دي چې دا په اصل کې الاه وو له ابتداء نه همزه حذف کړی شوه او د هغې په عوض کې الف لام راوړی شو نو الله شو، بهر حال الله حاجت روا او مشکل کشا ته ویلی شوی دی. چنانچه سیبویه طرف ته منسوب دی:

معنی الله گفت سیبویه ❁ یولهون في حوائجهم لدیه

یعني د کائناتو ذره ذره هر وخت او په هر حاجت کې د الله تعالی په مخکې منت او زارې کوي او هغه په هیڅ یو وخت کې په هیڅ یو څیز کې چا ته محتاج نه دی.

## د الله د مبارک نوم خصوصیات:

د دې مبارک نوم څو لفظي خصوصیات دا دي:

(۱) دا نوم صرف د الله دی په مخلوق کې د چا نوم کیدی نه شي او نه روا دی.

(۲) د همدې نوم طرف ته نور اسماء منسوب کیدی شي لکه: کتاب الله، ناقة الله، ارض الله، بیت الله، مګر دا د چا طرف ته منسوب کیدی نه شي.

(۳) د حرف نداء د حذف په موقع باندې د هغه په آخر کې د مشدد میم زیاتول اللهم ویل صحیح دي.

(۴) د الله لفظ له الف لام تعریف سره یا حرف نداء سره راوړل روا دي نورا سماء د اسې نه دي لکه یاالله.

(۵) قسم د والله بالله تالله سره خاص دی.

**۲۸ شوال ۱۴۰۹هـ**

# د کتاب خطبه

| |
|---|
| اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَ نَسْتَعِيْنُهٗ وَ نَسْتَغْفِرُهٗ |
| ټول تعریفونه دالله دپاره دي مونږټول دهغه تعریف کوو او دهغه نه د مدد غوښتونکي او د مغفرت طلبګار |
| وَ نَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ اَنْفُسِنَا وَ مِنْ سَيِّئَاتِ اَعْمَالِنَا . مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ |
| یو او مونږ د خپل نفس دبدو او دخپلو ناکاره اعمالونه په الله سره پناه غوا ړو چا ته چې الله هدایت وکړي د |
| فَلَا مُضِلَّ لَهٗ ، وَ مَنْ يُّضْلِلْ فَلَا هَادِيَ |
| هغه ګمراه کوونکی څوک نشته او څوک چې الله په ګمراهي کې پرېږدي هغه ته د نیغې لارې ورښودونکی |
| لَهٗ ، وَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ شَهَادَةً تَكُوْنُ لِلنَّجَاةِ |
| څوک نشته، او زه شاهدي ورکوم چې د الله تعالی نه علاوه بل معبود نشته داسې شاهدي چې د نجات د |
| وَسِيْلَةً ، وَ لِرَفْعِ الدَّرَجَاتِ كَفِيْلَةً . |
| پاره وسیله او د درجاتو لوړوالي دپاره ضامن شي. |

**توضیح : الحمدلله :** حمد د سمع نه د ثناء او تعریف په معنی دی، په دې کې الف لام د استغراق دپاره هم کیدی شي یعنې د حمد او ثناء هر فرد د الله دپاره دی، په دې باندې اعتراض شوی دی چې تعریف خو د مخلوق هم کیدی شي نو دا اختصاص څه رنګه دی؟ د دې جواب دا دی چې په اصل حقیقت کې په کائناتو کې د الله تعالی نه په غیر د کوم شي هم چې صفت کیږي هغه د الله تعریف دی، ځکه په اصل کې د هر کائناتو د کمال او جمال خالق او مالک الله دی، همدا وجه ده چې عارفینو ویلي دي چې کله کوم ښه آواز یا ښه صورت یا ښه کمال باندې د چا تعریف وکړی شي نو ووایی چې الله څومره لوی دی کوم چې دې مخلوق ته ښه آواز ښه صورت او شکل او اعلی کمال ورکړي دي.

**الف لام** د جنس دپاره هم کیدی شي یعنې جنس حمد او ثناء د الله دپاره دي کوم چې د افرادو په ضمن کې دي، ځکه چې جنس حقیقت هم د افرادو په ضمن کې دی نو نتیجه هغه وتله چې د حمد ټول افراد د الله دپاره دي، الف لام د عهد خارجي دپاره اخستل کیدی شي بیا به د دې نه به د الله هغه محامد او صفات مراد شي کوم چې د کوم مخلوق دپاره په هیڅ صورت کې روا ندي، یعنې د الله سره مخصوص صفات صرف د الله دپاره دي په دې صورت کې د **الحمد لله** په اختصاص باندې هیڅ اعتراض نه شي راتلی ځکه چې دا صفات په غیر الله کې راتلی نه شي **(الحمد هو الثناء باللسان على الجميل الاختياري**

**على جهة التعظيم**).دا د حمد اصطلاحي تعريف دى په دې كې د لسان نه مراد د تعبير آله ده، نو اوس دا اعتراض نه شي كيدى چې الله تعالى كوم خپل تعريف كړى دى هلته لسان او ژبه چيرته دي؟ همدارنګه د كائناتو ذره ذره د الله تعالى په تعريف كې مشغول دي هلته ژبه چيرته ده نو جواب وشو چې د هر شي د ژبې نه د تعبير آله مراد ده كومه چې د هغه د حال سره مناسبه وي.

**وفي كل شيء له آية ✿ تدل على انه واحد**

په جميل اختياري سره هغه جمال ووتلو كوم چې په اختيار كې نوي لكه د ملغلرې چمک او پرق چې د هغې تعريف حمد نه دى بلكې د هغې تعريف ته مدح ويل شوى دى مثلا :**مدحت اللولؤ على صفائه**.

همدارنګه په **على جهة التعظيم** سره استهزاء ووتله لكه څوک يې چې د نالوست دپاره د علامه صاحب خبره وكړي دا استهزاء ده، په حمد او شكر كې لږ شانته فرق دى او هغه دا چې حمد دپاره ضروري ده چې په ژبه به وي په مقابل كې كه احسان او انعام وي كه نوي، ليكن د شكر دپاره په مقابل كې د نعمت او احسان وجود ضروري دى.

يا شكر په ژبه هم كيدى شي او د ژبې نه په غير په جسم سره هم كيدى شي لهذا نتيجه دا راووتله چې د دواړو په مينځ كې داسې نسبت دى چې حمد د خپل مورد په اعتبار سره خاص دى خو د متعلق په اعتبار سره عام دى او شكر د مورد په اعتبار سره عام دى خو د متعلق په اعتبار سره خاص دى، د مورد نه مراد وارد كيدو ځاى يعنې ژبه ده، د شكر تعريف دا سې دى :**فعل ينبئ عن تعظيم المنعم**.

**نحمده**: رومبى حمد د جملې اسميه استمراريه په صورت كې ذكر شوى وو اوس حمد د جملې فعليه په صورت كې راوړى ترڅو چې په تجدد او حدوث باندې دلالت وكړي، ځكه لكه څرنګه چې د الله تعالى په نعمتونو كې تجدد دى همدارنګه په مخلوق كې هم د تجدد د حمد جذبه لرل په كار دي.
اوس دلته دا خبره هم په ياد ولرئ چې د جمع متكلم صيغه يې راوړې ده مصنف رَحِمَهُ اللهُ دې ته اشاره كړې چې زه تنها د الله تعالى تعريف څنګه كولى شم چې مونږ ټول مخلوق سره يو ځاى شو نو څه ناڅه كولى شو

**ونستعينه** : استعانت د مرستې غوښتلو په معنى سره دى چونكه د كائناتو ذره ذره هر وخت په هر ضرورت كې الله تعالى ته محتاج دي نو ځكه په مجموعي طور مونږ ټول د الله تعالى نه مدد او كومک غواړو ځكه دلته هم د جمع صيغه راوړى شوې ده او **سين** او **تأ** د طلب دپاره دي.

**ونستغفره** : په **استغفار** كې هم **سين** او **تأ** د طلب دپاره دي او **غفر غفران** د پټولو په معنى سره دي، په مغفرت او معافى سره هم ګناهونه پټيدلى شي، علماؤ ليكلي دي چې له دې جملې مخكې دا حمد او استعانت ذكر وو مصنف اشاره وكړه چې په حمد او استعانت كې كه چيرته كوتاهي شوې وي نو په هغې

باندې مونږ اجتماعي استغفار کوو ځکه چې ذات باري تعالی د رفعت عظمت جلال او کمال لائق د اخلاص سره حق کله ادا کولی شو.

**ونعوذ بالله من شرور انفسنا**: په کوتاهی باندې د استغفار کولو ته وروسته مصنف رَحِمَهُ اللهُ په دې جمله کې دا واضح کړي دي چې د نفس شیطان له داخلي شرارت، خرابي نیت، ریاکاري، حسد او عجب او تکبر نه د الله پناه غواړو، یعنې ټول باطني قبائح او ظاهري رذائلو نه د الله تعالی پناه غواړو.

**ومن سیئات اعمالنا**: او ټول ظاهري اعمال د سیئه د ارتکاب نه د محرماتو او مکروهاتو د صدور نه په عباداتو او ریاضاتو کې د سستی او غفلت نه پناه غواړو.

**من یهده الله فلا مضل له ومن یضلل فلا هادي له**: د دې مخکې اعمالو د شرارتونو او سیئات نسبت د نفس طرف ته شوی د کوم نه چې دا وهم پیدا شوی وو چې نفس په خپله د افعالو خالق دی د همدې غلط فهمی لرې کولو دپاره یې وفرمایل چې بنده صرف کاسب دی، د اعمالو او افعالو خالق الله دی، په خلق شر کې تخلیق کمال دی اګر که د شر استعمال معیوب دی نو د هدایت اضلال او د هغو حکمت صرف د الله سره خاص دی، هغه لره مکمل اختیار دی هغه چې چاته هدایت کول وغواړي نو هدایت ورته کوي او د چا چې ګمراه کول وغواړي نو ګمراه کوي یې بنده لره اختیار نشته.

هدایت **راه نمائیدن** ته ویلې کیږي، دا په دوه قسمه دی: **اراءة الطریق**: یعنې یو چاته په ژبه باندې ورښودل چې نیغه لار دې طرف ته تللې ده د فلانی فلانی نښانې وروسته به ورسیږې دې ته **اراءة الطریق** ویل کیږي چې په نیغه لاره لاړ شه په دې کې دا ضروري نه ده چې هغه کس به منزل مقصود ته ورسیږي بلکې ممکن ده چې هغه دغه لار پریږدي او ممکن ده چې منزل ته ورسیږي، د هدایت دویم قسم **(ایصال الی المطلوب)** دی هغه دا دی چې یو شوک د لاس نه ونیول شي منزل مقصود ته ورسول شي او پریښودل شي په دې کې منزل ته رسیدل یقیني دي او د کیدو احتمال نشته. په قرآن کریم کې چیرته چې د انبیاء کرامو نه د هدایت نفي شوې ده لکه: ﴿إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ﴾، هلته له هدایت نه مراد **ایصال الی المطلوب** دی، کنه نو انبیاء کرام خو مخلوق ته د هدایت دپاره رالیږل شوي دي، همدارنګې: ﴿وَأَمَّا ثَمُودُ فَهَدَيْنَاهُمْ فَاسْتَحَبُّوا الْعَمَىٰ عَلَى الْهُدَىٰ﴾ کې د هدایت نه مراد صرف **اراءة الطریق** دی **ایصال الی المطلوب** نه دی.

باقې د الله طرف ته د اجلال نسبت د وجې او د اثر مرتب او د تخلیق په طور باندې دی که نه نو الله تعالی چې د انسان په زړه کې د هدایت کوم استعداد د پیدا کیدو په وخت کې ایښی دی هغه د ماحول او ټولنې

په شا و خوا اثراتو سره په خپله انسان ضایع کړی دی کله چې هغه استعداد ختم کړي نو په هغه باندې د اثر مرتب نو م مهر جباریت دی او همدا اضلال دی نو قصور په خپله د همدې کاسب انسان دی.

**واشهد ان لا اله الا الله** : مصنف رَحِمَهُ اللهُ دلته د شهادت په ذکر کولو کې د مفرد صیغه راوړې ده ددې یوه وجه خو داده چې شهادت او ګواهي امور باطنیه او امور قلبیه دي د کوم ذمه واري چې د هر انسان خپله خپله ده، لهذا د نورو په دې کې شریکول مشکل دي، همدا رنګه د شهادت صیغه په عام طور په احادیثو کې هم مفرد راغلې ده د هغو په پیروئ (تابعداری) کې د مفرد صیغه راوړی شوې ده او صرف د خپل شهادت ذکر یې کړی دی.

د توحید شهادت دا دی چې د عالم د دې کارخانې ذره ذره د الله تعالی په تصرف کې ده او په هغو کې هر حرکت او سکون بغیر د شرکت نه صرف د الله په قبضه کې دي، هغه فاعل مختار دی د هغه په ذات او صفاتو کې هغه لره هیڅ شریک نشته. سلطان باهو رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي :

یقین دانم درین عالم که لا معبود الا هو ❁ ولا مقصود في الکونین ولا موجود الا هو

چون تیغ لا بدست آري بیا تنها چه غم داری ❁ مجو از غیر حق یاری که لا فتاح الا هو

**شهادة تكون للنجاة وسيلة ولرفع الدرجات كفيلة** : شهادت منصوب دی او دا مفعول مطلق دی، بیا دا موصوف دی او وروسته عبارت د هغه صفت دی، د نجات نه مراد د دنیا او آخرت د عذاب نه خلاصی دی د دې عذاب نه خلاصی موندل جنت ته رسیدل نجات دی، وسیله دا د سبب او ذریعې په معنی سره ده، ځکه چې اصل علت د الله تعالی فضل او رحمت دی، د رفع الدرجات مطلب دا شو چې کله بار بار په شهادت سره ایمان تازه کولی شي نو درجات لوړیږي او همدا د توحید شهادت د درجاتو د لوړیدو ضامن جوړیږي د شهادت سره د دې قیوداتو په لګولو سره مصنف رَحِمَهُ اللهُ ښودلې ده چې دا شهادت هغه وخت نافع او فائده مند کیدی شي کله چې په دې کې ریاکاري نه وي.

**۲۹ شوال ۱۴۰۹ھ**

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَ | أَشْهَدُ | أَنَّ | مُحَمَّدًا | عَبْدُهُ | وَ | رَسُوْلُهُ | الَّذِيْ |
| اوزه ګواهي ورکوم چې محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله بنده او د هغه رسول دی کوم چې الله تعالی هغه وخت | | | | | | | |
| بَعَثَهُ | وَ | طُرُقُ | الْإِيْمَانِ | قَدْ عَفَتْ | آثَارُهَا | ، وَ خَبَتْ | أَنْوَارُهَا ، وَ |
| رسول جوړ کړو او راوې لیږلو کله چې د ایمان نښې ورانې شوې وې او د هغه رڼاګانې ضعیفه شوې وې او | | | | | | | |
| وَهَنَتْ | أَرْكَانُهَا | ، وَ | جُهِلَ | مَكَانُهَا. | | | |
| د هغه ستنې کمزورې شوې وې او د هغه جوړ شوی منزل د نظرونو نه لویدلی وو. | | | | | | | |

**توضيح**: هر کله چې د توحيد او وحدانيت د ګواهۍ نه فارغ شو نو اوس مصنف اقرار رسالت او د اثبات رسالت شهادت بيان کړی.

**محمد**: دا د رسول الله ﷺ د مبارکو نومونو نه مشهور نوم دی، د دوی دويم نوم احمد دی، په مخکنيو اسماني کتابونو کې او په اسمان کې د فرښتو په نزد د دوی نوم احمد زيات مشهور دی، د دوی ﷺ سل نومونه مشهور دي په دې نومونو کې صرف د نومونو زياتولو فلسفه کار ورکوونکې نه ده بلکې هر نوم د يوه اوږده حقيقت طرف ته اشاره کړې ده او هغه اوږده صفات د رسول الله ﷺ په شخصيت او مبارک ذات کې موجود وو، لهذا محمد د اسم مفعول صيغه ده، د صفت نه د اسميت طرف ته منقول ده د کوم چې مفهوم دا دی چې هغه ذات د کوم چې صفت شوی دی مخلوق دی يعنې د کائناتو ذره ذره د هغه مدح خوان دي.

د تاريخ اسلام په کتابونو کې ليکل شوي دي چې قريشو د رسول الله ﷺ د تره ابو طالب نه تپوس وکړو چې تا د خپل وراره نوم محمد ولې ايښې دی؟ هغه ووېل چې زه غواړم چې د زمکې او آسمان والاو د طرفه د هغه مدحه وکړی شي.دې نکتې طرف ته د رسول الله ﷺ د دربار شاعر حضرت حسان رضي الله عنه دا رنګې اشاره کړې ده:

وضم الاله اسم النبي باسمه ❁ اذا قال في الخمس المؤذن اشهد

فشق له من اسمه ليجله ❁ فذو العرش محمود وهذا محمد

الله تعالى د خپل خواږه نبي نوم د خپل نوم سره يو ځای کړ کله چې مؤذن پنځه وخته په اذان کې اشهد په ويلو سره نوم اخلي، الله تعالى د اعزاز او اکرام په طور د رسول الله ﷺ نوم له خپل نوم نه مشتق کړی دی پس د عرش والا محمود دی او دا محمد دی دې طرف ته قرآن اشاره کړې ده ﴿وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ﴾ دغه مبارک نوم کوم کس چې په ژبه باندې واخلي نو دوه ځلې په ميم باندې د شونډو په يو ځای کولو سره يوه بلې سره خکلوي، دا نوم په عربو کې ډير کم پيدا کيږي، بلکې په مخکنيو کتابونو کې د رسول الله ﷺ د بشاراتو په نظر کې نيولو سره بعضو خلکو د خپلو اولادونو نومونه محمد ايښې وو دې دپاره چې هغه نبي آخر زمان جوړ شي مګر په ټولو عربو کې دا کسان صرف شپږ وو کوم چې د نشت برابر وو.بهر حال د محمد ﷺ په نوم کې چونکه صاحب صفات حميده مفهوم پروت وو په همدې وجه قريشو چې کله دا مشکل محسوس کړ چې په ژبه کله د محمد نوم واخستل شي نو د صفاتو حميدو اقرار لازم راځي او بيا په بدی ويلو سره واضح تضاد راځي نو دوی د محمد ﷺ په ځای د مذمم بدې شروع کړه نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې ګورئ الله تعالى چې لکه څنګه د ما نه د قريشو مذمت اوچت کړو اوس هغوي د مذمم مذمت کوي او زه خو محمد يم.

• **احمد** : دا هم د نبي کريم ﷺ د مشهورو نومونو څخه يو نوم دی چې د وصفيت نه اسميت طرف ته منتقل شوی ،داحمد معنی دټولو صفت کوونکونه زيات حمد او ثناء ويونکي،يعنې احمد الحامدين او نبي عليه السلام د ټولو نه زيات د الله تعالى تعريف ، توصيف او حمد او ثناء ويونکی وو ، لکه څنګه چې الله تعالى د ټولو نه اعلى تعريف د رسول الله ﷺ کړی دی .يو چا ډير ښه ويلي دي :

خـدا ورا انتظـار حمـد مانيست ✿ محمـد چشم برراه ثنـاء نيست

خـدا مدح آفـرين مصطفى بس ✿ محمـد حـامد حمـد خـدا بس

محمـد از تو ميخواهم خـدارا ✿ خـدايا از تو عشق مصطفى را

**عبده ورسوله** : منصب رسالت اګر چې لوړ مقام دی او په مقامات بشريت کې انتهائي ارفع او اعلى دی مګر د عبد رتبه چونکه په اصل عبديت کې مضمره ده نو ځکه هغه په رسالت باندې مقدم کړی شو، په قرآن کريم کې الله تعالى د عبد ذکر د ټولو نه په زيات اعزاز او اکرام ځايونو کې د رسول الله ﷺ دپاره کړی دی، لهذا په معراج کې د تلو په وخت کې ﴿ سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِ ﴾ وفرمايل او بيا سدرة المنتهى شريف ترين ځای باندې يې دعبد طرف ته اضافت تشريفي وکړی شو ﴿فَأَوْحَىٰ إِلَىٰ عَبْدِهِ مَا أَوْحَىٰ﴾ لهذا دلته هم دعبد دمحبت په ذکو الفاظو سره انتهائي دقرب اشاره وکړی شوه.

يو شاعر خلکو ته وويل چې ما ته د محبوبې عبد وايي او په دې سره راته آواز کوئ :

لا تدعني الا بيا عبدها ✿ فانه اشرف اسمائيا

همدارنګې په دې لفظ کې دا اشاره هم ده چې عبد چې هر څومره اوچت مقام ته ورسي هغه هم عبد دی معبود نه دی ، معبود صرف د الله تعالى ذات دی ، خالق خالق دی او مخلوق مخلوق دی ، يو چا ويلي :

محمد بشر ليس کالبشر ✿ وياقوت حجر ليس کالحجر

وکم طيب يفوح ولا کمسک ✿ وکم طير يطير ولا کبازی

**په رسول او نبي کې فرق** :رسول په لغت کې د قاصد او پيغام رسوونکي په معنی سره راغلی دی او په اصطلاح کې د رسول تعريف داسې شوی دی :انسان بعثه الله الى الخلق لتبليغ الاحکام معه کتاب متجدد، دلته انسان وويل شو د جناتو او ملائکو نه احتراز وکړی شو ځکه انسان د بشر په معنی سره د فرښتو او جناتو په مقابل کې راغلی دی. د هداية النحو په شرح الهاميه کې د رسول همدا تعريف د قيوداتو سره ليکل شوی دی چې انسان ته ويل کيږي رجل ته نه ويل کيږي ترڅو چې د انسان لفظ له سريو سره ښځو ته هم شامل شي، بيا صاحب الهاميه ليکلي دي چې ښځې هم نبي جوړې شوې دي

لکه مریم حضرت آسیه او حضرت فاطمه او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهُنَّ.
په دې ځای کې د پوهې سره او بغیر د پوهې نه ډیرې غلطیانې شوې دي، اول دا چې یو خو یې د اجماعي عقیدې قراني نصوصو، واضحو تصریحاتو او اشاراتو خلاف د ښځو دپاره د نبوت او رسالت ثابت کولو کوشش کړی دی، دویم دا چې ده حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته د نبوت په ثابتولو سره ختم نبوت د قطعي نصوصو خلاف ورزي کړې ده ځکه چې د دې مطلب دا شو چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خاتم النبيين نه وو بلکې د دوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وروسته فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نبیانې جوړې شوې وی، زه وایم چې د الهامیه صاحب د خپل یو جوړ شوي تعریف د یو احترازي قید دپاره دومره لویه غلطي کړې ده حالانکه دا تعریف کوم اسماني وحي نه ده او په هغه کې د دې قید حیثیت هم د یو کس د ذهن سوچ دی، نه دا حدیث دی نه آیت دی نه د امت د اجماع کومه فیصله ده د کوم پر وړاندې چې مونږ مجبور یو، د الهامیه په چاپ کوونکو باندې لازم دي چې دوی د قرآن او حدیث سره په ټکر کې دا خبره په راتلونکي کې ترینه وباسي.د نبي تعریف دا دی چې :**انسان بعثه الله الى الخلق لتبليغ الاحكام**.

اوس د علماؤ په مینځ کې دا بحث چلیږي چې په رسول او نبي کې څه فرق دی؟.بعضو علماؤ لیکلي دي چې په دواړو کې ترادف دی ځکه چې په قرآن کریم کې په رسول او نبي باندې په یوه وخت کې په یوه ذات باندې اطلاق شوی دی، مثلا ﴿ وَكَانَ رَسُولًا نَّبِيًّا ﴾ داد اسماعيل عَلَيْهِ السَّلَامُ په باره کې راغلي دي.
بعضو د رسول او نبي تعریفونو ته په کتلو سره د تباین قول کړی دی چې د رسول سره نوی شریعت وي او نبي د نوي شریعت سره نوي راغلی بلکې د مخکني شریعت د تجدید دپاره راغلی وي، لهذا د قرآن کریم د سورت حج آیت ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ وَلَا نَبِيٍّ ﴾ کې په رسول باندې د نبي عطف شوی دی کوم چې د مغایرت غوښتونکی دی، همدارنګه په احادیثو کې د انبیاؤ شمیر یو لک څلیرویشت زره ښودل شوی دی او د رسولانو شمیر درې سوه دیارلس ښودل شوی د کوم نه چې معلومه شوې ده چې په دواړو کې تغایر او تباین دی.د رسول په دې تعریف باندې اعتراض دی چې آسماني صحیفې ټولې سل دي او لوی کتابونه ټول څلور دي او رسولان ټول درې سوه دیارلس دي نو د هر رسول سره کتاب د کومه راغی؟.همدارنګه اسماعيل عَلَيْهِ السَّلَامُ قرآن د رسول په نوم سره ذکر کړی دی حالانکه د هغه سره کوم نوی کتاب نه وو، د دې اعتراض جواب محدث العصر حضرت مولانا محمد یوسف بنوري رَحِمَهُ اللهُ د درس بخاري په دوران د حضرت شاه انور شاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ په حواله داسې ورکړی وو چې شاه صاحب یو ځل زه ور وغوښتم په نهایت د خوشحالۍ په حالت کې یې راته وویل چې په کتاب کې ماته د رسول او د نبي فرق پیدا شو او هغه داسې چې نبي هغه کیدی شي کوم چې د مسلمانانو طرف

ته ليږل شوي وي په ټولنه كې غير مسلم هم وي او مسلم هم مګر رسول هغه كيدی شي كوم چې خالص د كفارو قوم ته ليږل شوی وي او د هغه د همدې قوم سره ښه مقابله هم وي، لهذا د حضرت نوح عليه السلام نه مخكې چې څومره پيغمبران هم راغلي هغه انبياء وو، او د نوح عليه السلام د وخت نه د رسولانو سلسله شروع شوه او مقابله شوه لهذا په آخر كې محمد صلى الله عليه وسلم په مكه كې د كفارو طرف ته وليږل شو چې څرنګه دوي راغلل نو د زمكې په مخ باندې كفر او شرك وو دوي صلى الله عليه وسلم مقابله وكړه او غلبه يې پيدا كړه.

**الذي بعثه**: دا د رسول صفت دی د رسول الله صلى الله عليه وسلم بعثت په مكه كې د څلويښتو كالو په عمر كې وشو او د پيريانو او انسانانو دپاره د دوي صلى الله عليه وسلم نبوت عام وو صرف د عربو دپاره نه وو لكه عيسايان چې دوكه شوي ځكه چې قرآن دوی ته ﴿لِيَكُونَ لِلْعَالَمِينَ نَذِيرًا﴾ ويلی دی او دوي په خپله ويلي:

**وارسلت الى الخلق كافة**، يعنې د ټولو انسانانو او پيريانو دپاره زه رسول جوړ شوی راليږل شوی يم.

**طرق الايمان قد عفت آثارها**: طرق د طريق جمع ده او طريق لارې ته ويل كيږي او دلته واو حاليه دی او د طريق الايمان نه مراد انبياء كرام دي، د هغو تعليمات او آسماني كتابونه دي چې د هدايت دغه ټولې لارې ختمې شوې وې او د هغو نښانونه ختم شوي وو.

يعنې د دوي صلى الله عليه وسلم د بعثت په وخت كې د انبياء كرامو تعليمات ختم شوي وو، د سمې رهبرۍ وجود نه وو، ځای ځای په پټو غارونو كې د عيسايانو پادريان راهبان وو ليكن هغوی د عامة الناس په مخكې د راتلو په حالت كې نه وو، او نه يې قيادت كولی شو، د انبياء كرامو د علومو او معارفو د قدر او منزلت نه ناخبرتيا عامه وه او د هغوی د دين مراكز د خلكو هير شوي وو لنډه دا چې د تاريكۍ او ګمراهۍ دور وو.

۳۰ شوال ۱۴۰۹هـ

| |
|---|
| فَشَيَّدَ صَلَوَاتُ اللهِ وَ سَلَامُهُ عَلَيْهِ مِنْ مَعَالِمِهَا مَا عَفَا، وَ |
| پس رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه وران شوي نښانونه د نوي سره ښكاره محكم لوړ او مضبوط كړل او د |
| شَفَى مِنَ الْعَلِيْلِ فِيْ تَأْيِيْدِ كَلِمَةِ التَّوْحِيْدِ مَنْ كَانَ عَلَى شَفَا، |
| توحيد د كلمې په تعليم سره يې همدې ناروغانو ته شفا وركړه كوم چې د هلاكت غاړې ته رسيدلي وو |

| كُنُوْزَ | السَّعَادَةِ | لِمَنْ | قَصَدَ | أَنْ | يَمْلِكَهَا. |
|---|---|---|---|---|---|

خزانې د نیک بختۍ او د سعادت د هغه کس دپاره کوم چې د هغې د مالک کیدو اراده یې لرله.

**توضیح : شید** له **تشیید** نه دی دا د چونه کولو پلستر کولو او مضبوط کولو په معنی سره راغلی دی، **وقصر مشید** له همدې نه دی. **معالم** : د **معلم** جمع ده د لارې وغیره نشان ته ویل کیږي.

**ماعفا** : کې **ما** موصوله دی او **عفا** صله ده، موصول د صلې سره د **شید** مفعول به دی.

**او من معالمها** : دا بیان مقدم دی د **ماعفا** دپاره او **صلوات الله علیه وسلامه** په مینځ کې جمله معترضه ده ای **شید ما عفی من معالمها صلوات الله علیه وسلامه**

**وشفی من العلیل في تأئید کلمة التوحید من کان علی شفا** : د **شفی** عطف په **شید** باندې دی او په **شفا** ثاني کې صفت اجناس دی چې لفظًا دواړه د کلمې سره مشابه دي ، په دې جمله کې د قرآن کریم آیت : ﴿وَكُنتُمْ عَلَىٰ شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ﴾ طرف ته اشاره ده.

او **من العلیل** مقدم شو چې په عبارت کې د سجع حسن پیدا شي، دا د **من کان** بیان دی او **في تأئید کلمة التوحید** جار مجرور د **شفی** سره متعلق دی او **في** د تعلیل دپاره ده، عبارت داسې دی **وشفی بسبب کلمة التوحید من کان علی شفا من العلیل**، یعنې د توحید کلمې د تعلیم په ذریعه رسول الله ﷺ دې ناروغۍ ته شفا ورکوله کومه چې د تباهۍ کنارو ته رسیدلې وه.

**سبیل** : د **سبیل** لفظ مذکر او مؤنث په دواړو طریقو مستعمل شوی دی په همدې وجه په **سلکها** کې مؤنث ضمیر د سبیل طرف ته راجع شوی دی، همدارنګه دا هم په یاد ولرئ چې ضمیر په مؤنث او مذکر کې د **زید هاهو** په شان د دواړو ګنجایش دی، یعنې که د زید لفظ مراد دی نو د **هو** ضمیر دی او که د **زید** د لفظ نه کلمه مراد کړی شي نو د **ها** ضمیر راجع کول روا دي نو ویل شوي دي **زید هاهو**.

**کنوز السعادة** : نه مراد نیک بختي او سعادت دارین او معنوي خزانې دي لکه علوم دینیه بنه او حمیده اخلاق او صالح اعمال دا ټول کنوز سعادت دي.

**امابعد** : د کلام د یو اسلوب نه د بل اسلوب طرف ته د منتقل کولو دپاره فصحاو او بلغاو د **امابعد** لفظ استعمال کړی دی ترڅو چې په کلامینو کې فصل راشي، دا لفظ مخکنیو د عربو خطیبانو هم استعمال کړی دی. یو شاعر وایي :

قد علم الحی الیمانین انني ❁ اذا قلت اما بعد اني خطیبها
د کتابونو په خطبو کې د امابعد مضاف الیه عموما محذوفه وي او اما قائم مقام فعل شرط دی یعنې مهما یکن شيء من الاشیاء بعد الحمدلة والبسملة والتصلیة فهو کتابي هذا، دا حصر ادعائي دی کوم چې روا دی.

بعد: د ظروف زمانیو نه دی که د هغه مضاف الیه مذکور وو یا نسیا منسیا محذوف وو نو په دوارو صورتونو کې دا معرب دی او که یې مضاف الیه محذوف منوي وي نو دا مبنی علی الضم دی، چونکه دا کلمه ډیره خفیفه پاتې شوې ده نو ځکه هغه په اثقل الحرکات ضمه باندې مبنی شوه ترڅو چې د ضمې په وجه پکې یو څه ثقل راشي، یا چونکه اما متضمن معنی د شرط لره دی نو ځکه په وروسته کې فاء جزائیه راوړل شوې ده لیکن چیرته چې صرف وبعد دی کله کله فاء جزائیه راوړی شوې ده حالانکه هلته د فاء جزائیه راوړلو هیڅ وجه په پوهه کې نه راځي، بعضو شارحینو ویلي دي چې فاء د توهم د اما د وجې ذکر شوې ده یعنې مصنف ته وهم شوی وو چې ایا ما امابعد لیکلی دی او که وبعد لهذا د امابعد خیال غالب راغی او بیا یې فاء جزائیه ذکر کړې ده، دا وجه عجیبه او انتهائي کمزورې ده ځکه همدارنګه مجموعه نسیان که چیرته مصنف شي نو هغه به بیا وړاندې څه لیکي کوم ته چې مخامخ په لیکل شوي عبارت کې وهم پیدا شو کله یې چې عبارت د قلم په څوکه باندې وو، درحقیقت د وبعد نه وروسته فاء جزائیه چې چاذکرکړې ده ددې وجه داده چې د بعد زمانیه سره معامله د حرف شرط شوې ده لکه څنګه چې په قرآن کریم کې دي: ﴿ وَإِذْ لَمْ يَهْتَدُوا بِهِ فَسَيَقُولُونَ هَذَا إِفْكٌ قَدِيمٌ ﴾ دلته اذ ظرفیه دی کوم چې معنی د شرط لره متضمن دی لهذا فاء راوړی شوې ده نو همدا صورت د وبعد هم دی.

دا اوس یو جدا بحث دی چې د ټولو نه مخکې اول د امابعد لفظ چا استعمال کړی دی نو دلته ډیر قولونه دي مګر راجح دا دی چې د ټولو نه مخکې اول دا لفظ حضرت داؤد علیه السلام استعمال کړی دی، مفسرینو ویلي دي چې ﴿ وَآتَيْنَاهُ الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ الْخِطَابِ ﴾ کې دا خطاب فاصل د امابعد کلمه ده کومه چې داؤد علیه السلام استعمال کړې وه. بیا په عامو خطبو کې رسول الله صلی الله علیه وسلم هم استعمال کړې ده او تر ننه استعمالیږي لهذا دا مستحب ده چې هر خطیب یې په خپله خطبه کې استعمال کړي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿ أَمَّا بَعْدُ ﴾ | فَإِنَّ | التَّمَسُّكَ | بِهَدْيِهِ | لَا | يَسْتَتِبُّ إِلَّا |
| وروسته ددې نه پوهیدل په کار دي چې د نبي علیه السلام اسوه حسنه غوره کول هغه وخت معتبر کیدی شي | | | | | |

بِالْاِقْتِفَاءِ لِمَا صَدَرَ مِنْ مِشْكٰوتِهٖ .
چې دهغه شي كامله اتباع وكړى شي كوم چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مبارك سينې نه ښكاره شوى وو يعنې د
وَ الْاِعْتِصَامَ بِحَبْلِ اللهِ لَا يَتِمُّ
دوي ارشادات او احكام همدا رنګه د خداى مضبوطه رسۍ يعنې قرآن كريم باندې اعتماد او په هغه باندې
اِلَّا بِبَيَانِ كَشْفِهٖ .
عمل هلته ممكن كيدى شي چې دهغه تشريح په نبوي احاديثو سره وشي (بل طرف ته د احاديثو په كتابونو
وَ كَانَ كِتَابُ الْمَصَابِيْحِ الَّذِيْ صَنَّفَهُ الْاِمَامُ مُحْيِ السُّنَّةِ
كې) او كتاب المصابيح هغه چې تصنيف كړى دى امام محي السنة (يعنې د سنتو ژوندى كوونكى) او
قَامِعُ الْبِدْعَةِ اَبُوْ مُحَمَّدِ الْحُسَيْنُ ابْنُ مَسْعُوْدِ الْفَرَّاءُ الْبَغَوِيُّ رَفَعَ اللهُ
قامع البدعة (د بدعت ختمونكى) ابو محمد حسين الفراء البغوي رَحِمَهُ اللهُ (الله تعالى دې او چت كړي
دَرَجَتَهُ اَجْمَعَ كِتَابٍ صُنِّفَ فِيْ بَابِهٖ .
دده درجات) چې هغه د خپل فن يو جامع كتاب وو، چې جمع شوى وو په خپل فن كې امام موصوف د
وَ اَضْبَطَ لِشَوَارِدِ الْاَحَادِيْثِ وَ اَوَابِدِهَا .
حسن او خوبۍ سره منتشر او متفرق احاديث جمع كړي وو.

**توضيح**: د دې ځاى نه مصنف رَحِمَهُ اللهُ دا بيانول غواړي چې ده سره د دې چې د اعلى درجې قابل اعتماد د احاديثو كتاب مصابيح موجود وو بيا يې نو د مشكوة المصابيح د تاليف ضرورت ولې محسوس كړ، لهذا ويلې يې دي چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نقش قدم باندې تلل ممكن نه دي ترڅو چې د دوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د احاديثو علم حاصل نكړى شو همدا نګه د قرآن كريم په تفصيلي احكاماتو باندې عمل كول د احاديثو نه علاوه ممكن نه دى. د دې دواړو مهمو مقاصدو حاصلولو دپاره د حديث ضرورت وو او د احاديثو د حصول دپاره د يو جامع كتاب ضرورت وو په كوم كې چې هر قسم ضروري احاديث جمع كړى شوې وي، همدا قسم جامع كتاب د امام حديث، شيخ محى السنة كتاب مصابيح وو كوم چې په خپل فن كې عمده ترين كتاب وو.

**لايستتب**: دا لفظ د باب استفعال نه دى كوم چې په معنى د لايستقيم او لايستمر سره دى.

**الاقتفاء**: د تلاش كولو په معنى سره دى، مراد اتباع او پيروي ده.

**مشكاته**: مشكاة غير نافذه طاقچې ته ويل شوي دي، د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منور زړه روښانه چراغ

بلل شوی دی کوم چې په پاکه سینه کې ایښودل شوی دی نو د سینې تشبیه د طاقچې سره ورکړی شوې ده په کومه کې چې دننه چې روښانه زړه موجود دی، دا تشبیهات د قرآن کریم په آیت : ﴿ اللَّهُ نُورُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ مَثَلُ نُورِهِ كَمِشْكَاةٍ فِيهَا مِصْبَاحٌ ﴾ نه ماخوذ دي (سورة نور ۳۵).

**الاعتصام** : منګولې لګول د کوم شي په مضبوطۍ سره د نیولو په معنی دی.

**حبل الله** : نه مراد قرآن کریم دی.

**لایتم الا ببیان کشفه** : د بیان اضافت د کشفه طرف ته اضافت بیانیه دی یعنې **بیان هو کشفه مطلب** دا دی چې د قرآن کریم د مجملاتو تفصیل د احادیثو نه علاوه ممکن نه دی ، په قرآن کریم کې اصول او قواعد دي، احادیثو د هغه وضاحت کړی دی، که چیرته د احادیثو تفصیلات د قرآن نه جدا کړی شي نو قرآن به معطل پاتې شي، ځکه چې د احکاماتو فرائض واجبات سنن او د هغو د وختونو او کیفیاتو تفصیلات په قرآن کریم کې چیرته دی؟، محلدینو دا کوشش کړی دی چې احادیث د قرآن نه کټ کړی شي ترڅو چې د اسلام دین د جرړو سره ویستل او ختم کړی شي.

**اضبط** : **اضبط** په **اجمع** کتابٍ باندې عطف دی او دا هم د **کان** خبر دی، اضبط د مرتب په معنی سره دی یعنې دا کتاب د حفظ او ضبط په سبب سره زیات لائق وو ځکه چې په دې کې سند وغیره نه وو او په احادیثو کې تکرار هم نه وو.

**شوارد** : دا د **شاردة** جمع ده یعنې تښتیدونکی اوښ ته ویلی شي همدارنګه اوابد د **ابدة** جمع ده تریدونکی وحشي ځناور ته ویلی شي، په دې دواړو لفظونو سره دا ښودل شوي دي چې یوشمیر احادیث کوم چې د احادیثو په کتابونو کې په مختلفو ځایونو کې مذکور دي ګویا دا د طالب العلم نه د تښتیدلي اوښ په شان دي نو چې په لاس نه ورځي او د بعضو احادیثو معناګانې د طالبانو پټې دي د هغو تشبیه د داسې وحشي ځناور سره ورکړی شوی دی کوم چې متوحش غیر مانوس دي، په دواړو لفظونو کې تشبیه ورکړی شوې او دا استعاره ده او **اوابد** د **شوارد** دپاره عطف تفسیر دی.ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ لیکلي چې د احادیثو ورکوونکو تشبیه د وحشو سره ورکړی شوې ده چې لکه څنګه چې متوحش ځناورچې موقع پیدا کړي نوتښتي همدارنګه احادیث هم په لږ غفلت سره دضبط او حافظې نه وځي اوورکیږي،په همدې وجه ویل شوي **العلم صید والکتابة قید** دلته دا اعتراض بې معنی دی چې د احادیثو تشبیه د غیر مانوس وحشي سره ولې ورکړی شوې ده، ځکه چې په تشبیه کې د ټولو صفاتو او کیفیاتو لحاظ نه شي کیدی همدارنګه دا هم ضروري نه ده چې د مشبه نه مشبه به همیشه اعلی او ارفع شي،بعضې وخت د مخصوص طرف لحاظ په کولو سره تشبیه ورکړی شي حالانګه مشبه به ادنی

وي لکه څرنګه چې ﴿اللَّهُ نُورُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ آیت کې ﴿كَمِشْكَاةٍ فِيهَا مِصْبَاحٌ﴾ دي.

۱ ذوالقعده ۱٤۰۹ هـ

| |
|---|
| وَ لَمَّا سَلَكَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ طَرِيْقَ الْإِخْتِصَارِ وَ حَذَفَ الْأَسَانِيْدَ |
| او کله چې مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ د احادیثو د نقلولو په وخت کې د اختصار طریقه غوره کړه او اسنادېې حذف کړل |
| تَكَلَّمَ فِيْهِ بَعْضُ النُّقَّادِ وَ اِنْ كَانَ نَقْلُهُ |
| نو په دې باندې بعضو ناقدینو اعتراض وکړو اګر که مصنف د حدیث د سند نه علاوه نقل کول داسې دي لکه |
| وَ اِنَّهُ مِنَ الثِّقَاتِ كَالْإِسْنَادِ |
| د سند سره یې چې نقل کړي وي ځکه چې هغه د نقل حدیث په معامله کې په ثقه او معتمد و محدثینو کې شمار |
| لٰكِنْ لَيْسَ مَا فِيْهِ أَعْلَامٌ كَالْأَغْفَالِ فَاسْتَخَرْتُ |
| شوی لیکن بیا هم کوم شی چې بې نښانه وي هغه د نښاندار شي په شان کیدی نه شي نو ځکه زه مدد غواړم |
| اللّٰهَ تَعَالىٰ وَ اسْتَوْفَقْتُ مِنْهُ فَأَوْدَعْتُ كُلَّ حَدِيْثٍ مِنْهُ |
| د الله تعالی نه او د دې توفیق غوښتونکی یم ما په بې نښانه باندې نښان ولګولو او ما هر حدیث د کوم باب |
| فِيْ مَقَرِّهٖ فَأَعْلَمْتُ مَا أَغْفَلَهُ كَمَا رَوَاهُ الْأَئِمَّةُ الْمُتْقِنُوْنَ وَ الثِّقَاتُ الرَّاسِخُوْنَ |
| سره چې د هغه تعلق وو په هماغه باب کې مې نقل کړ او قابل اعتماد علماو او راسخ العلم علماو او محدثینو |
| مِثْلُ أَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ مُحَمَّدِ |
| څرنګه چې د هغه روایت کړی هماغه شان ما هم د کتاب د حوالې سره هغه ذکر کړی لکه ابي عبد الله محمد |
| ابْنِ إِسْمَاعِيْلَ الْبُخَارِيِّ وَأَبِي الْحُسَيْنِ مُسْلِمِ بْنِ الْحَجَّاجِ الْقُشَيْرِيِّ وَأَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ الْأَصْبَحِيِّ |
| ابن اسماعیل البخاري او ابي الحسین مسلم بن الحجاج القشیري او ابي عبد الله مالک بن انس الاصبحي |
| وَأَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ مُحَمَّدِ بْنِ إِدْرِيْسَ الشَّافِعِيِّ وَأَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ أَحْمَدَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلَ الشَّيْبَانِيِّ وَأَبِيْ عِيْسٰى |
| او ابي عبد الله محمد بن ادریس الشافعي او ابي عبد الله احمد بن محمد بن حنبل الشیباني او ابي عیسی |
| مُحَمَّدِ بْنِ عِيْسٰى التِّرْمِذِيِّ وَأَبِيْ دَاوُدَ سُلَيْمَانَ بْنِ الْأَشْعَثِ السِّجِسْتَانِيِّ وَأَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَحْمَدَ مُحَمَّدِ |
| محمد بن عیسی الترمذي او ابي داؤد سلیمان بن الاشعث السجستاني او ابي عبد الرحمن احمد محمد |

بْنِ عِيْسٰى التِّرْمِذِيِّ وَأَبِيْ دَاوُدَ سُلَيْمَانَ بْنِ الْأَشْعَثِ السِّجِسْتَانِيِّ وَأَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَحْمَدَ بْنِ شُعَيْبٍ

بن عيسى الترمذي او ابي داوٗد سليمان بن اشعث السجستاني ، او ابي عبد الرحمن احمد بن شعيب

النَّسَائِيِّ وَأَبِيْ عَبْدِ اللهِ مُحَمَّدِ بْنِ يَزِيْدَ ابْنِ مَاجَةَ الْقَزْوِيْنِيِّ وَأَبِيْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الدَّارِمِيِّ

النسائي او ابي عبدالله محمد بن يزيد ابن ماجه القزويني او ابي محمد عبدالله بن عبدالرحمن الدارمي

وَأَبِي الْحَسَنِ عَلِيِّ بْنِ عُمَرَ الدَّارَقُطْنِيِّ وَأَبِيْ بَكْرٍ أَحْمَدَ بْنِ الْحُسَيْنِ الْبَيْهَقِيِّ وَأَبِي الْحَسَنِ رَزِيْنَ بْنِ

او ابي الحسن علي بن عمر الدار قطني او ابي بكر احمد بن الحسين البيهقي او ابي الحسن رزين بن

مُعَاوِيَةَ الْعَبْدَرِيِّ وَغَيْرِهِمْ

معاويه عبدري رَحِمَهُ اللهُ د غو ائمو څخه چې په خپلو کتابونو کې حديث نقل کړي ما له هغه را اخيستی په خپل دي کتاب کې مې درج کړي ،ددي امامانو نه علاوه نورو محدثينو هم له کومو کتابونو چې احاديث

وَقَلِيْلٌ مَا هُوَ وَإِنِّيْ إِذَا نَسَبْتُ الْحَدِيْثَ إِلَيْهِمْ

نقل کړي مګر دهغو شمير ډير کم دی ، او حقيقت دادی چې ما کوم حديث هم دي امامانو طرف ته منسوب

كَأَنِّيْ أَسْنَدْتُّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَنَّهُمْ

کړی دی نو ګويا که دهغه حديث سند رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته رسولی څکه د غه ائمه په خپلو کتابونو کې

قَدْ فَرَغُوْا مِنْهُ وَأَغْنَوْنَا عَنْهُ.

سند ذکر کولو سره ذدي کار نه فارغ شوي دي او مونږ يې هم ددي کار نه مستغني کړي يو.

**توضيح : ولما سلک** : صاحب مصابيح په خپل کتاب کې د اختصار نه کار اخيستی دی يو خو ده د حديث سند نه دي ذکر کړی دويم يې د کتاب حواله نه ده ورکړې چې دا حديث په فلاني کتاب کې دی دريم هغه په ابتداء کې د هغه صحابي نوم هم نه دی اخيستی له کوم نه يې چې حديث اخيستی او بيان کړی يې دی.دا داسې شی وو چې د فن حديث په شعبه کې انتهائي خطرناک وو څکه چې ماهرين حديث او حفاظ حديثو نه علاوه د نورو خلکو دپاره د داسې اعتماد په فضا کې فائده اخستل مشکل وه، په خپله صاحب مصابيح ګويا کې سل فيصده ثقه او قابل يقين وو مګر د نورو معامله بل رنګه وه او د کوم حديث د صحت او عدم صحت دپاره د سند کومه سلسله چې محدثينو مقرر کړې وه د هغې قاعدې پوره کول ضروري وو څکه (الاسناد من الدين ولو لا الاسناد لقال من شاء ما شاء) يوه قانوني ضابطه وه د، کومې پوره کول چې ضروري وو په همدې وجه صاحب مشکوة ته موقع پيدا شوه چې دا په مصابيح کې ترميم او زياتوالی وکړي يو نوی تصنيف عام منظر ته راوړي لهذا ده همداسې وکړل.لکن ليس ما فيه

**اعلام كالاغفال** : اعلام د علم جمع ده د نشان په معنى سره، د همزې فتحه ده او اثر هم د هغه ترجمه ده، او **اغفال** هم د همزې په فتحې سره دى كوم چې د **غفل** جمع ده او **غفل** هغې زمكې ته ويل كيږي په كومه چې هيڅ نښه يا اثر نه وي. د اعلام نه صاحب مشكوة خپل كتاب مشكاة مراد اخيستى او د **اغفال** نه يې مصابيح مراد اخيستى، ځكه چې په مشكوة كې د صحابي د نوم نشان لګول شوى دى، د سند نښه لګول شوې كوم چې په مصابيح كې نشته، دلته د عبارت تقاضا داوه چې مصنف داسې عبارت راوړى وى

**ليس ما فيه اغفال كالاعلام** يعني بې نشانه مصابيح د دې درجې نه وو د كومې درجې چې نشاندار مشكوة دى، ليكن قربان شم د هغو صلحاو په ادب باندې چې صاحب مصابيح د صاحب مشكوة استاذ هم نه دى او د دواړو په زمانو كې د ډيرو فاصله هم ده مګر بيا هم د مشكوة صاحب د قصور نسبت يې خپل ځان طرف ته كړى دى چې په كوم كتاب كې نشان لګول شوى دى هغه د هغې درجې نه دى كوم چې بې نشانه دى، په دې كې د نفس او ادب پوره پوره لحاظ ساتل شوى دى ځكه چې (**ان الدين كله ادب**).

**وانى اذا نسبت الحديث اليهم** : دا عبارت په اصل كې د يو سوال مقدر جواب دى، سوال دا دى چې لكه څرنګه چې صاحب مصابيح سند ذكر كړى نه دى نو صاحب مشكوة دې هم سند ترك كړى وى، لهذا كوم اعتراض چې محدثينو په صاحب مصابيح باندې كړى وو هغه په صاحب مشكوة باندې هم تر اوسه پورې پاتې دى. په دې عبارت سره صاحب مشكوة د دې جواب وركړى دى د كوم چې خلاصه دا ده چې كومو ائمو محدثينو د كتابونو نه صاحب مشكوة احاديث اخيستي دي او د حديث نسبت يې د هغه كتاب طرف ته كړى دى ګويا كې دا حديث د سند په اعتبار سره رسول الله ﷺ ته رسيدلي دى، په همدې وجه هغو محدثينو او د همدې كتابونو مصنفينو په ډير محنت سره د همدې احاديثو سندونه ذكر كړي دي ګويا كې د جرح تعديل تحقيق تدقيق بحث او تمحيص ټول مراحل همدې حضراتو تير كړي احاديث يې جمع كړي دي، لهذا د هغو طرف ته صرف نسبت كول او د هغو حواله وركول د سند دپاره كافي شافي دى، ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې په سياق او سباق كې چونكه د سند بحث په همدې عبارت كې روان دى لهذا په منه كې مجرور ضمير او د عنه ضمير د اسناد طرف ته راجع شوي دي.

**۲ ذيقعده ۱۴۰۹هـ**

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَ سَرَدْتُ | الْكُتُبَ | وَ | الْأَبْوَابَ | كَمَا | سَرَدَهَا | وَ | اقْتَفَيْتُ | أَثَرَهُ فِيْهَا |
| او ما ددې كتاب ترتيب هغه ساتلى كوم چې صاحب مصابيح ساتلى ما د هغه د نقش قدم پيروي كړې ده | | | | | | | | |
| وَ قَسَمْتُ | كُلَّ | بَابٍ | غَالِبًا | عَلَى | فُصُوْلٍ | ثَلَاثَةٍ | أَوَّلُهَا | مَا |
| اوما په عمومي طور هرباب په دريو فصلونو كې تقسيم كړى په اول فصل كې مې هغه احاديث جمع كړي | | | | | | | | |

أَخْرَجَهُ الشَّيْخَانِ أَوْ أَحَدُهُمَا وَ اكْتَفَيْتُ بِهِمَا وَ إِنِ اشْتَرَكَ
کوم چې شيخينو يعنې بخاري او مسلم روايت کړي يا په دوی کې يو روايت کړي دي اګر که شريک دي
فِيْهِ الْغَيْرُ لِعُلُوِّ دَرَجَتِهِمَا فِي الرِّوَايَةِ وَ ثَانِيْهَا
ددوي سره په دې حديثونو کې بعضې نور محدثين دو چې داوچتې درجې نه په روايت کې او په دويم فصل
مَا أَوْرَدَهُ غَيْرُهُمَا مِنَ الْأَئِمَّةِ الْمَذْكُوْرِيْنَ وَ
کې ماهغه احاديث نقل کړي کوم چې د امام بخاري او امام مسلم نه غير نورو ائمو مذکورو روايت کړي او
ثَالِثُهَا مَا اشْتَمَلَ عَلَى مَعْنَى الْبَابِ مِنْ مُلْحَقَاتٍ مُنَاسِبَةٍ مَعَ مُحَافَظَةٍ عَلَى الشَّرِيْطَةِ
په دريم فصل کې مې هغه آحاديث نقل کړي چې مناسب وو د معنى د باب سره، سره د لحاظ ساتلو د شرائطو
وَ إِنْ كَانَ مَأْثُوْرًا عَنِ السَّلَفِ وَ الْخَلَفِ ثُمَّ إِنَّكَ إِنْ فَقَدْتَ حَدِيْثًا فِيْ بَابٍ فَذٰلِكَ عَنْ
اګر که نقل وي د سلفو او يا خلفو نه خو که بيا هم پيدا نه شي يو حديث په دې باب کې نو پوهه شی چې هغه
تَكْرِيْرٍ أَسْقَطْتُهُ وَ إِنْ وَجَدْتَ آخَرَ بَعْضَهُ مَتْرُوْكًا عَلَى
ما د تکرار په وجه نقل کړی نه دی او که چيرته تاسو کوم حديث د اسې پيدا کړئ چې پرېښودل شوی وي
اِخْتِصَارِهٖ أَوْ مَضْمُوْمًا إِلَيْهِ تَمَامُهُ فَعَنْ دَاعِيْ اهْتِمَامٍ أَتْرُكُهُ وَ أُلْحِقُهُ
څه برخه د اختصار د وجې نه يا د پاتې حديث برخه د هغه سره يو ځای شوې ده نو د اپرېښودل او يو ځای کول
وَ إِنْ عَثَرْتَ عَلَى اخْتِلَافٍ فِي الْفَصْلَيْنِ مِنْ ذِكْرِ غَيْرِ الشَّيْخَيْنِ
د خاص مقصد لاندې شوي او که په دواړو فصلونو کې اختلاط په نظر راشي يعنې د شيخينو نه علاوه احاديث
فِي الْأَوَّلِ وَ ذِكْرِهِمَا فِي الثَّانِيْ فَاعْلَمْ
په اول فصل کې راوړی شوي وي او د شيخينو حديث په دويم فصل کې نقل شوی وي نو پوهيدل په کار دي
أَنِّيْ بَعْدَ تَتَبُّعِيْ كِتَابَيِ الْجَمْعِ بَيْنَ الصَّحِيْحَيْنِ لِلْحُمَيْدِيِّ وَ جَامِعِ
چې دا اختلاط د غلط يا د غفلت د وجې نه دی بلکې ما د حميدي په کتاب کې جمع بين الصحيحين او په جامع
الْأُصُوْلِ اِعْتَمَدْتُ عَلَى صَحِيْحَيِ الشَّيْخَيْنِ
الاصول کې د ډير لټون تحقيق او تتبع وروسته همد اسې کړي او په دې سلسله کې بخاري او مسلم او د دواړو

| | |
|---|---|
| وَ مَتْنَيْهِمَا وَ اِنْ رَأَيْتَ اِخْتِلَافًا فِيْ نَفْسِ الْحَدِيْثِ فَذٰلِكَ | |
| اصل نسخو او دهغو په متن اعتماد شوي او که په نفس حديث کې تاسو ته اختلاط په نظر درشي نو دهغه | |
| مِنْ تَشَعُّبِ طُرُقِ الْأَحَادِيْثِ وَ لَعَلِّيْ مَا اطَّلَعْتُ عَلٰى تِلْكَ الرِّوَايَةِ الَّتِيْ سَلَكَهَا | |
| وجه د حديث مختلف اسناد دي او شايد چې زه په دې حديث باندې خبر شوی نه يم لکه څنګه چې روايت | |
| الشَّيْخُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ. | |
| کړې دی شيخ مصنف رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ. | |

**توضيح : وسردت الكتب والابواب** : د مصنفينو دستور دی چې په خپل تاليف کې د مسائلو د ذکر دپاره د کتاب عنوان لګوي لکه **كتاب الطهارة** بيا د هغه په ضمن کې مختلف انواع مسائل کوم چې د همدې کتاب سره مناسب وي د بابونو لاندې راوړي، لکه **باب الوضوء ،باب الحيض**. همدارنګه د بابونو په ضمن کې فصل ذکر کوي او د ټولو مسائلو د جمع کولو کوشش کوي. صاحب مشکوة ويلي دي چې ما د محی السنه په تابعدارۍ کې همداسې کړي دي البته په مصابيح کې د اول او دويم فصل يوه نوې اصطلاح وه چې په اول کې د بخاري او مسلم روايتونه ذکر شوي وو او په.دويم فصل کې د حسان احاديث وو، ليکن مشکوة والا په هغه کې يو دريم فصل زيات کړ چې د احاديثو مرفوعو نه علاوه د صحابو اقوال او اثار هم په هغه کې حسب موقع جمع کړی شی، د بخاري او مسلم روايتونه اګر چه نورو محدثينو هم ذکر کړي دي مګر د مشکوة صاحب ويلي دي چې ما په ذکر کولو کې صرف د بخاري او مسلم نوم اخيستی دی ځکه چې د دوی شان بل رنګه دی.

**مع محافظة على الشريطة** : يعنې په دريم فصل کې له مناسبت موضوع سره د سلف صالحينو اثار هم د مرفوع احاديثو سره جمع شوي دي ليکن په اول فصل او دويم فصل کې چې کوم قسم شرطونه وو په دريم فصل کې هم دهغولحاظ شوی دی.يعنې دصحابي راوي نوم ذکرکول،دکتاب اومخرج حواله اودروايت دصحت خيال ساتل.

**ثم انک ان فقدت حديثا** : يعنې صاحب مصابيح مکرر احاديث ذکر کړي وو . د مشکوة صاحب ويلي دي چې که چيرته داسې په نظر درشي چې په مصابيح کې يو حديث شته او په مشکوة کې نشته نو د دې وجه دا ده چې په مصابيح کې د احاديثو تکرار وو او په مشکوة کې د همدې تکرار ختمېدو دپاره ما حديث ترک کړی دی او د باب سره زيات مناسبت لرونکي حديث کې مې درج کړی دی.

**وان وجدت آخر بعضه متروکا** : په مصابيح کې په بعضو احاديثو کې اختصار وو ، صاحب مشکوة په

هغو کې يو شمير هماغسې مختصر پريښي دي او بعضې يې پوره کړي دي، علامه طيبي رَحِمَهُاللهُ ويلي دي چې صاحب مصابيح بعضې وخت د يو اوږده حديث څه برخه د باب سره د مناسبت په وجه اخيستې ده او اوږد حديث يې پريښی دی، صاحب مشکوة هم د اختصار په نظر کې نيولو سره همدا طريقه خپله کړې ده او کله داسې هم شوي دي چې په مختصر حديث د پوهيدو دپاره د همدې اوږد محذوف حديث ذکر کول هم ضروري شوي دي نو صاحب مشکوة هغه ذکر کړی دی، لنډه دا چې د ضرورت حديث او مناسبت مقام په وجه دا حذف او اثبات او دا ترک او ذکر کول له دې نه په **الترکه والحقه** سره تعبير شوی دی.ملا علي قاري رَحِمَهُاللهُ ويلي دي چې په **الترکه والحقه** کې واو د أو په معنی دی، يعنې د داعي او ضرورت په نظر کې نيولو د مخې کله په ترک او حذف باندې عمل شوی او کله په عمل کولو او الحاق باندې عمل شوی دی.

**وان عثرت على اختلاف في الفصلين**: صاحب مصابيح دا طريقه خپله کړې ده چې په اول فصل کې يې د بخاري او مسلم روايتونه راوړي دي او په دويم فصل کې يې هغه احاديث جمع کړي دي کوم چې له بخاري او مسلم نه علاوه نورو محدثينو په خپلو کتابونو کې جمع کړي دي، ليکن صاحب مشکوة په بعضو ځايونو کې همداسې کړي دي چې مصابيح کوم احاديث د شيخينو طرف ته منسوب کړي دي ده هماغه احاديث د نورو ائمو طرف ته منسوب کړي دي لکه د **باب سنن الوضوء** په اول فصل کې ص ۴۵ باندې (**رواه مالک والنسائي ولابي داؤد ونحوه**) راغلي دي همدارنګه په فضائل القرآن ص ۱۸۵ کې د انس په حديث کې (**رواه الترمذي**) دی ليکن په فصل اول کې دي، همدارنګه صاحب مشکوة په بعضو ځايونو کې د دويم فصل حديث د شيخينو طرف ته منسوب کړی دی لکه په باب مايقرء بعد التکبير کې د سمره بن جندب روايت په دويم فصل کې د مسلم طرف ته منسوب کړی دی اخير دا تغير او تبديل او اختلاف ولې شوی؟.نو د مشکوة صاحب د دې ردو بدل او فرق په باره کې ويلي دي چې دا زما د غلطۍ او د سهوې په بناء باندې نه دي بلکې ما د کتاب (**الجمع بين الصحيحين**) او کتاب (**جامع الاصول**) او همدارنګه د بخاري او مسلم د اصلي نسخو او د هغو کتابونو متون په نهايت غور او کوشش او ژور تحقيق سره کتلي دي لهذا په همدې څلورو کتابونو کې کوم احاديث چې د شيخينو طرف ته منسوب شوي نه دي او صاحب مصابيح هغه په اول فصل کې د شيخينو طرف ته منسوب کړي دي نو ما په مشکوة کې هغه د شيخينو طرف ته د منسوب کولو پر ځای د هغو اصل راوي او ناقل طرف ته منسوب کړي دي لکه چې په باب سنن الوضوء کې شوي دي.همدارنګه کوم احاديث چې صاحب مصابيح د شيخينو نه علاوه نورو ائمو طرف ته منسوب دي په دويم فصل کې نقل کړي وو او ماته هغه احاديث په

همدې څلورو ذکر شویو کتابونو کې د شیخینو طرف ته منسوب په لاس راغلل نو ما هغه د شیخینو طرف ته منسوب کړل.او چونکه زما په خپل تحقیق او کوشش باندې اعتماد وو بیا د همدې څلورو کتابونو تائید هم پیدا شو نو ځکه ما د صاحب مصابیح د همدې خیال خلاف وکړل چې کیدی شي د صاحب مصابیح نه د حدیث نقلولو په وخت کې سهوه شوې وي.

**وان رأیت اختلافا في نفس الحدیث** : یعني صاحب مصابیح یو حدیث نقل کړی دی او هغه روایت کله چې صاحب مشکوة ذکر کړی دی نو د هغو دواړو په الفاظو کې فرق راوتلی دی د یوه الفاظ یو شان دي او د بل الفاظ بل شان دي د دې متعلق صاحب مشکوة ویلي دي چې دا فرق په اصل حقیقت کې د سندونو د اختلاف په بناء باندې دی، یعني صاحب مصابیح ته هغه روایت چې د کوم سند سره پیدا شوی په هماغو الفاظو یې نقل کړې او ماته چې په کوم سند سره رسیدلی دی ما په هماغو الفاظو سره نقل کړی او شاید ماته هغه روایت نوي رسیدلی کوم چې شیخ غوره کړی دی.

| |
|---|
| وَ قَلِیْلًا مَّا تَجِدُ أَقُوْلُ مَا وَجَدْتُ هٰذِهِ الرِّوَایَةَ فِيْ کُتُبِ الْأُصُوْلِ |
| او په ډیرو کمو ځایونو کې هغه ته دا خبره پیدا شوې چیرته چې ما کړې چې دا روایت په کتب الاصول کې |
| أَوْ وَجَدْتُ خِلَافَهَا فَإِذَا وَقَفْتَ عَلَیْهِ |
| مانه دی پیدا کړی یا د هغه خلاف په کې موجود دی کله چې په کوم داسې اختلاف باندې تاسو خبر شئ |
| فَانْسُبِ الْقُصُوْرَ إِلَيَّ لِقِلَّةِ الدِّرَایَةِ لَا إِلٰی جَنَابِ الشَّیْخِ رَفَعَ اللهُ قَدْرَهُ |
| نو د قصور نسبت زما د کم علمۍ په وجه ماته وکړئ،نه د شیخ طرف ته او چته دې کړي الله تعالی درجه د ده |
| فِي الدَّارَیْنِ حَاشَا لِلّٰهِ مِنْ ذٰلِکَ رَحِمَ اللهُ مَنْ إِذَا |
| په دارینو کې، او هغه دې قصور او غلطۍ نه پاک وساتۍ او د خدای رحمت دې وي په هغه کس باندې |
| وَقَفَ عَلٰی ذٰلِکَ نَبَّهَنَا عَلَیْهِ وَ أَرْشَدَنَا طَرِیْقَ الصَّوَابِ وَ لَمْ آلُ |
| کوم ته چې هغه روایت معلوم شي او مونږ ته خبر را کړي او حق لار راته وښایي او ما کوتاهي نه ده کړي په |
| جُهْدًا فِي التَّنْقِیْرِ وَ التَّفْتِیْشِ بِقَدْرِ الْوُسْعِ وَ الطَّاقَةِ وَ نَقَلْتُ ذٰلِکَ الْإِخْتِلَافَ کَمَا |
| کوشش او لټون کې او د خپل وسع او طاقت مطابق مې مکمل چاڼ کړی او دا اختلاف ما نقل کړی څنګه چې |
| وَجَدْتُ وَمَا أَشَارَ إِلَیْهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مِنْ غَرِیْبٍ أَوْ ضَعِیْفٍ أَوْ غَیْرِهِمَا بَیَّنْتُ |
| مې پیدا کړی او په حدیث باندې چې شیخ رضي الله عنه د ضعیف یا د غریب وغیره حکم لګولی ما بیان کړی |

| |
|---|
| وَجْهَهُ غَالِبًا وَ مَا لَمْ يُشِرْ اِلَيْهِ مِمَّا فِي الْأُصُوْلِ فَقَدْ قَفَيْتُهُ |
| وجه دهغې عموما او دکوم احاديثو او اصولو طرف ته چې شيخ اشاره نه ده کړې نو ما هم دده تابعداري کړې |
| فِيْ تَرْكِهٖ اِلَّا فِيْ مَوَاضِعَ لِغَرَضٍ وَ رُبَّمَا تَجِدُ |
| هماغسې مې پريښې دی مګر په بعضو ځايونو کې دمجبوری په وجه ما توضيح کړې او کله چې و موندل شي |
| مَوَاضِعَ مُهْمَلَةً وَ ذٰلِكَ حَيْثُ لَمْ أَطَّلِعْ عَلٰى رَوَايَتِهٖ فَتَرَكْتُ |
| خالي ځايونه ددې وجه داده چې زه خبرنه شوم ددې په راوي باندې سره دلته ون نه نو ما هغه ځای پريښودو |
| الْبَيَاضَ فَاِنْ عَثَرْتَ عَلَيْهِ فَأَلْحِقْهُ بِهٖ |
| خالي ، که چيرته تاسو ته د راوي د نوم علم وشي نو په دې خالي ځای کې د هغه حواله ورکړئ په دې دې |
| اَحْسَنَ اللّٰهُ جَزَائَكَ وَ سَمَّيْتُ الْكِتَابَ بِمِشْكٰوةِ الْمَصَابِيْحِ وَ أَسْأَلُ |
| الله تعالى تاسو ته دخير جزاء درکړې، او ما ددې کتاب نوم مشکوة المصابيح ايښی دی. او زه سوال کوم |
| اللّٰهَ التَّوْفِيْقَ وَ الْإِعَانَةَ وَ الْهِدَايَةَ وَ الصِّيَانَةَ وَ تَيْسِيْرَ مَا أَقْصِدُهُ |
| دالله نه دتوفيق او دمدد او دهدايت او په سمه لار باندې د تللو او د آسانتيا د خپل مقصد په تکميل کې . |
| وَ أَنْ يَّنْفَعَنِيْ فِي الْحَيَاةِ وَ بَعْدَ الْمَمَاتِ وَ جَمِيْعَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ الْمُسْلِمَاتِ حَسْبِيَ اللّٰهُ |
| او بل دا چې فائده ورکړي په ژوندکې او پس دمرګ نه ټولو مسلمانانو سړو او ښځو ته. کافي دی الله تعالى |
| وَ نِعْمَ الْوَكِيْلُ وَ لَا حَوْلَ وَ لَا قُوَّةَ |
| زما دپاره او ښه کارجوړونکی دی ځکه چې د نيک کار په کولو باندې قوت او د ناکاره اعمالو نه دبچ کيدو |
| اِلَّا بِاللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ . |
| همت د قدرتونو او د حکمتونو مالک د الله تعالى په لاس کې دی. |

**توضيح : وقليلا ماتجدالقول ماوجدت هذه الرواية في كتب الاصول** : نه مراد هغه بخاري او مسلم او صحاح سته کتابونه دي، صاحب مشکوة په بعضو ځايونو کې د فصل اول يا فصل ثاني روايتونه او احاديثو نقل کولو سره د ماخذ او مخرج د حوالې ورکولو پر ځای ويلي دي (**ماوجدت هذه الرواية فی كتب الاصول او وجدت خلافها**) ماته د اصولو په کتابونو کې دا روايت پيدا نشو يا د هغه برعکس پيدا شو کوم چې صاحب مصابيح نقل کړی دی، د دې متعلق يې نهايت د ادب په لحاظ کې ساتلو سره ويلي دي چې دا زما د تتبع او لټون نقص دی په دې کې د شيخ قصور نشته حاشا وکلا : هغه د دې قصور

نه بری الذمه دی، ما ډیر کوشش او لټون کړی دی مګر کله چې نه دی پیدا شوی نو څرنګه چې اختلاف پیدا شوی هماغسې په اظهار کولو سره مې نقل کړی دی، اوس که چیرته کوم کس ته همدا روایت په صحیح طور معلوم شي کوم چې صاحب مصابیح نقل کړی دی او ماته معلوم شوی نه دی نو هغه کس دې ما په ژوند خبر کړي که نه نو وروسته دې په کتاب کې زیات کړي په هغه دې الله رحم وکړي. کمال ادب او کمال دیانت اوګورئ د پیړو فاصله باوجود څومره احترام کوي دا د دیني علومو برکت دی.

**وما اشار الیه من غریب او ضعیف** : یعنې صاحب مصابیح چې چیرته کوم حدیث ته غریب یا ضعیف ویلی دی او هغه یې وجه او سبب نه دی بیان کړی نو صاحب مشکوة په زیاتره ځایونو کې د هغو وجه بیان کړی دی چې دا په دې وجه منکر، غریب شاذ یا ضعیف وغیره دی. لیکن په بعضو ځایونو کې صاحب مصابیح پخپله سکوت غوره کړی دی نه یې ضعیف ویلی دی نه یې غریب ویلی دی، حالانکه د اصولو په کتابونو کې د هغه د نوعیت په باره کې لیکل شوي چې دا ضعیف یا منقطع یا مرسل دی.نو صاحب مشکوة ویلي دي چې ما هم په همداسې مواقع کې د صاحب مصابیح په تابعداری کولو سره سکوت غوره کړی دی، البته په بعضو ځایونو کې د مجبوریت د وجې څه ویل شوي دي ځکه چې خلکو مثلا حدیث ته موضوعي ویل یا یې باطل ویل نو ما د خلکو د همدې الزام تردید کړی دی د ترمذي وغیره په حوالې سره مې د حدیث نوعیت معلوم کړی مثلا(**المرأعلی دین خلیله فلینظر احدکم من یخالل**) (**مشکوة**) بعضو خلکو دې ته موضوع ویلی حالانکه ترمذي ورته حسن ویلی نو صاحب مشکوة ددې وضاحت کړی اګر که صاحب مصابیح سکوت غوره کړی،علامه نووي رَحِمَهُ اللَّهُ ویلي اسناده صحیح.

**وربما تجد مواضع مهملة** : صاحب مشکوة په بعضو ځایونو کې د حوالې ځای خالي پرینښی دی دا د حوالې نه پیدا کیدو د وجې شوي دي نو ځکه یې دلته ویلي دي چې چاته حواله پیدا شي نو هغوی دې دغه ځای ډک کړي او دغه ځای یې د بیاض په نوم سره یاد کړی دی، په مشکوة کې ډیر ځایونه بیاض موندل کیږي چنانچه په صفحه ۲۲۷ باندې بیاض دی همدارنګې په صفحه ۴۶۸ باندې بیاض دی او بیا په صفحه ۴۷۰ باندې بیاض دی ، او همدارنګې په نورو ځایونو کې هم بیاض دی او هلته محدثینو حوالې ورکړې او ځایونه یې ډک کړي دي.

**وسمیت الکتاب بمشکوة المصابیح** : مشکاة د دیوال هغې طاقچې ته ویل کیږي په کوم کې چې چراغ ایښودل کیږي او **مصابیح د مصباح** جمع ده چراغ ته ویل کیږي، د **المصابیح** نه د شیخ محي السنة کتاب هم مراد کیدی شي او نبوي احادیث هم کیدی شي ځکه چې کتاب او احادیث د دین په لار د تلونکو دپاره په منزله د چراغ دی، **مشکاة المصابیح** کې په دې نوم کې یوه باریکه شاته اشاره هم ده

هغه دا ده چې دغه چراغ كله چې په خلاص ځاى كې ايښودل شوى وي نو د هغه رڼايي خورېږي او كمزورې كيږي ليكن كه هغه په يو طاقچه كې كېښودل شي نو رڼا يې يو ځاى كيږي او ډيره تيزيږي، همدارنگه دا كتاب يا احاديث هم اول هم فائده رسوونكي وو ليكن په مشكوة المصابيح كې د راتلو نه وروسته د هغو آب تاب چمك او پرق دوه چنده نور زيات شو او د هغو په افاديت كې په همدې ترتيب سره مزيد زياتوالى وشو.يو چا رښتيا ويلي دي :

لئن كان في المشكاة يوضع مصباح ❁ فذلك مشكاة و فيها مصباح

دلته دا اعتراض پېښه ځايه دى چې د رسول احاديث او د منور زړه نورانيت خو د چراغ نه زيات دي بيا چراغ مشبه ولې جوړ كړى شو؟ جواب واضح دى چې د مشبه به قوي اعلى او افضل كيدل ضروري نه دي بلكې اوضح او اظهر كيدل يې په كار دي په همدې وجه الله تعالى د خپل نور تشبيه په طاقچه او ډيوه كې د چراغ سره په دې شان وركړې ده : ﴿مَثَلُ نُورِهِ كَمِشْكَاةٍ فِيهَا مِصْبَاحٌ الْمِصْبَاحُ فِي زُجَاجَةٍ﴾.

په يو شاعر چې كله دا اعتراض وشو چې تا د بادشاه سخاوت او شجاعت تشبيه د عمرو او حاتم سره وركړې ده د بادشاه شان دې كمزورى كړو نو شاعر ددې خيالي اعتراض جواب داسې وركړو :

لا تنكروا ضربي له من دونه ❁ مثلا شرودا في الندى و البأس

فالله قد ضرب الاقل لنوره ❁ مثلاً من المشكاة و النبراس

ما د سخاوت او شجاعت تشبيه چې په يو كمزوري څيز سره وركړې ده نو په دې باندې تنقيد او اعتراض مه كوه ، ځكه چې الله تعالى د خپل نور مثال د يو كمزوري څيز ډيوې او طاقچې سره وركړى دى.

اللهم تقبل مني هذه البضاعة المزجاة فأوف لنا الكيل وتصدق به علينا

## متفرقه فوايد:

د مشكوة خطبه او د هغې نه مخكې د حديث متعلق ابتدائي مباحث د تفصيل سره ليكل شوي دي همدارنگه د يوه مدرس او يو محنتي طالب العلم دپاره د حل كتاب او درس او تدريس پورې هغه ټول شيان ما په يوه ځاى كې راجمع كړي دي كومو ته چې د همدې حضراتو ضرورت پيدا كيږي، ما په خپل ځان بوج راوستى دى همدا حضرات مې د ډيرو صفحو او ورقو د اړولو نه بچ كړي دي او اكوشش مې كړى دى، او هغه ټول شيان مې يو ځاى جمع كړي دي د كومو د موندلو دپاره چې ډير وخت دقت محنت او ذهانت په كار دى په همدې وجه ما د فنونو ابتدائي بحث مباحثه او د فن د شروع اشكالات جوابات ښه خاصه ذخيره د كتاب مشكوة سره يو ځاى كړې ده چې طالبان او مدرسين بغير د كوم زحمت نه تياره مړى پورته كړي او په خوله كې يې واچوي او د خوند په وخت كې ناچيز بنده په دعاگانو كې ياد كړي.د همدې مقصد د تكميل دپاره ما د كتاب د خطبې د فراغت نه وروسته د فوائد متفرقه ضروريه جمع كول

ضروري ګڼلې نو يو شمير خبرې ستاسو په خدمت کې حاضرې دي :

**د ابن د همزې قواعد**: د مشکوة په خطبه کې د **ابن** لفظ بار بار راغلی دی او په احادیثو کې هم دغه لفظ بار بار راغلی دی عموما د دې د قواعدو نه طالبان او علماء ناخبره وي :

(۱) د لفظ ابن همزه وصلي ده او د همزه وصلي عامه قاعده دا ده چې هغه د کلام په مینځ کې په لیکلو کې باقي پاتې کیږي مګر په ویلو کې لویږي.

(۲) قاعده خو هماغه ده کومه چې پورته بیان شوې ده چې الف په لیکلو کې باقي پاتې کیږي لیکن د ابن داستعمال يو خاص صورت دی چیرته چې همزه د لیکلونه هم لویدلې ده داستعمال هغه خاص صورت دا دی چې ابن دعلمینو متناسلینو په مینځ کې واقع شي یعنې چې رومبی علم زوی شي او دابن نه وروسته علم پلار شي او دا ابن د رومبي علم صفت جوړ شوی وي او د دویم طرف ته مضاف وي په داسې صورت کې د ابن همزه د لوستلو او لیکلونه غورځیږي لکه محمد بن اسماعیل محمد د اسماعیل زوی دی او اسماعیل د هغه پلار دی، نو متناسلین یعنې نسل هم يو دی او ابن د ماقبل دپاره صفت جوړ شوی دی او د مابعد طرف ته مضاف هم دی نو دلته الف غورځیږي، نه په لوستلو کې راځي او نه په لیکلو کې، د مشکوة په خطبه کې ټول نومونه په همدې طرز باندې راغلي دي او دا قاعده هلته جاري شوې ده.

(۳) که چیرته د ابن لفظ د علمین متناسلین په مابین کې واقع وي او نور شرطونه هم پوره وي لیکن د ابن لفظ د سطر په شروع کې راغلی وي بیا د هغه همزه لیکل کیږي، د ابن په دې قاعده کې يو تخفیف دا هم شوی دی چې د ده نه مخکې د علم يو تنوین حذف شوی دی لکه په محمد بن اسماعیل کې د محمد نه تنوین لویدلی دی.

(۴) که چیرته ابن د علمینو متناسلینو په مابین کې واقع دی لیکن د لومړي علم دپاره صفت نه دی جوړ شوی بلکې له هغه نه خبر واقع دی نو بیا **الف** په لیکلو کې برقرار پاتې کیږي لکه **زید ابن عمر** زید د عمر زوی دی.

**محمد بن یزید بن ماجه** : د مشکوة په خطبه کې دلته په دې نوم کې دوه ابن واقع شوي دي، له اول ابن نه د همزې لویدل په کار دي ځکه چې د علمینو متناسلینو په مینځ کې واقع دی مګر د دویم **ابن الف** لیکل په کار دي ځکه چې هغه د علمینو متناسلینو په مینځ کې نه ده، ځکه چې یزید د ماجه زوی نه دی بلکې د يو قول مطابق د واړه يو دي چې ماجه لقب دی د یزید، او په يو قول کې زوجه ده د یزید یعنې محمد بن یزید ومحمد بن ماجه نو ماجه د محمد والده شوه او د یزید زوجه شوه، ملا علي قاري رَحِمَهُ اللَّهُ ویلي دي چې د ابن ماجه لفظ لقب دی د یزید دا د محمد نیکه نه دی او په شرح اربعین کې لیکل شوي دي چې

ماجه د محمد د والدې نوم وو.

حاصل دا چې دويم ابن د يزيد صفت نه دی بلکې د محمد نه بدل دی یعنې محمد زوی د يزيد يعنې زوی د ماجه که چیرته ماجه د یزید ښځه وه نو بيا د ابن ماجه تعلق له محمد سره شو چې د محمد زوی یزید او زوی د ماجه نو ماجه د محمد مور شوه همدا شان ترتیب په ډیرو نورو نومونو کې هم شته د کوم چې په ظاهر وهم کیدی شي چې آخري علم د قریب والا علم د پاره پلار دی حالانکه هغه قريب والا علم ښځه او اصل علم کوم چې مخکې ذکر شوی دی د هغه مور ده مثلا :

(۱) عبد الله بن عمرو ابن ام مکتوم دلته د ابن مکتوم تعلق د عبد الله سره دی عبد الله زوی د عمرو زوی د ام مکتوم.

(۲) عبد الله بن ابی ابن سلول، سلول د عبد الله والده او د ابی ښځه ده عبد الله زوی د ابی زوی د سلول.

(۳) عبد الله بن مالک ابن بحينة د عبد الله مور ده او د مالک ښځه ده.

(۴) محمد بن علی ابن الحنفيه، حنفيه د محمد مور ده د علي ښځه ده.

(۵) اسماعيل بن ابراهيم ابن علية، عليه د ابراهيم ښځه او د اسماعيل مور ده.

(٦) اسحاق بن ابراهيم ابن راهويه، راهويه د ابراهيم لقب دی.

غرض پورته پنځه نومونه داسې دي چې د مور او پلار دواړو طرفونو ته منسوب دي يعنې عبد الله د عمرو زوی او د خپلې مور ام مکتوم زوی دی، عبد الله د خپل پلار ابی او مور سلول زوی دی، په دې نومونو کې اخيرني نوم کې اسحاق بن ابراهيم ابن راهويه کې راهويه او ابراهيم يو شی دی او همدا رأيه د بعضو علماؤ په ماجه کې ده چې دا د يزيد لقب دی، يعنې محمد د يزيد زوی او د يزيد لقب ماجه دی، او دا هم کيدی شي چې محمد زوی د ماجه ځکه دی چې ماجه او يزيد يو شی دی محمد د دواړو زوی دی.

**الجمع بين الصحيحين للحميدي**: د مشکوة شريف په خطبه کې دا لفظ راغلی: **الجمع بين الصحيحين**، د شيخ حميدی رَحِمَهُ اللّٰهُ تصنيف دی، د ده نوم حافظ ابو عبد الله محمد بن ابی نصر رَحِمَهُ اللّٰهُ دی دا خپل نيکه حميد طرف ته منسوب دی، د ابن حزم خاص شاگرد دی، په ظاهري مذهب باندې وو، د لويو کرامتونو والا وو، صاحب تقوی وو، علامه حميدي رَحِمَهُ اللّٰهُ په **الجمع بين الصحيحين** کې د بخاري او مسلم احاديث جمع کړي دي د بعضو روايتونو تشريح يې هم کړې ده او د بعضو تکميل او تتميم يې هم کړې دی مگر امتياز يې ساتلی دی. د پنځم قرن د مشهورو مصنفينو نه وو په په ۴۸۸ هجري کې وفات شوی. يو د امام بخاري رَحِمَهُ اللّٰهُ استاد حميدي وو هغه بل دی دا بل دې. د ده يو شعر دی:

لقاء الناس ليس يفيد شيئا ❁ سوى الهذيان من قيل و قال

فأقلل من لقاء الناس الا ❁ لاخذ العلم او اصلاح المال

**جامع الاصول** :د مشکوة په خطبه کې د دې ذکر هم راغلی دی. دا د علامه ابن اثير جزري رَحِمَهُ ٱللَّهُ مشهور او معروف کتاب دی په کوم کې چې د صحاح ستو احادیث جمع کړي دي او د بابونو ترتیب يې د حروف هجاو په بنیاد باندې آیښی دی، دا د ابن اثير جزري په نوم سره مشهور دی، ده په لغات الحدیث کې یو نهایت عمده او مفید کتاب نهایه ابن الاثیر لیکلی دی، جامع الاصول د لسو نه په زیاتو جلدونو کې دی.

**محدث شهير ابوالحسن رزين بن معاويه** :شيخ رزين د اندلس او سيدونکی وو د قريشو يو بطن عبدالدار بن بن قصی طرف ته منسوب شوی عبدری شوی دی، دا حافظ الحديث او جليل القدر محقق وو، په علم حديث کې ده د **(تجريد الصحاح)** په نوم سره کتاب ليکلی دی په کوم کې چې ده موطا امام مالک او صحاح سته جمع کړي دي، علامه ابن اثير جزري رَحِمَهُ ٱللَّهُ د جامع الاصول په تصنيف کې په همدې کتاب باندې اعتماد کړی دی دا په مکه مکرمه کې په **۵۳۵** هجری کې وفات شوی. د **رزين** نوم د راء په ضمه د زاء په فتحې يا سکون سره د لجين په شان ويل شوی دی.

**الفراء البغوي** : د کتاب په خطبه کې دا لفظ راغلی دی، د محی السنة د والد صفت دی د کوم نوم چې مسعود دی، **فراء** د **فرو** نه دی، **فرو** څرمن ته ويل کيږي، شيخ مسعود شايد د څرمنو تجارت کولو يا دا چې هغه يې زيات اغوستلو او استعمالولو يې يا کوم کورنی نسبت دی يو چا دا کار کړی دی. لفظ **فراء** کله چې مسعود صفت شو نو بيا مجرور ويل کيږی، **البغوي** مرفوع ويل کيږي ځکه چې دا د حسين صفت دی او هغه مرفوع دی، نو دا هم مرفوع دی، علماؤ ليکلي دي چې د نومونو په تسلسل کې کله چې په آخر کې کوم نسبت راشي نو قاعده دا ده چې دا نسبت د رومبي نوم سره په لګولو صفت جوړيږي، لکه **بغوي** يعنې **حسين بغوي** بيا **بغوي** په اصل کې د **ياېغ** طرف ته منسوب دی يا د **بغشور** طرف ته منسوب دی چې دا د **مرو** او **هرات** په مينځ کې د خراسان د علاقونه د يو کلي نوم دی په دې نسبت کې بغوي هم روا دی او بغشوري هم صحيح دی، يا د ټولو مرکب طرف ته نسبت وکړه که آخري جزء کټ کړی رومبی جزء طرف ته نسبت وکړو لکه په **بعلبک** کې **بعلبکی بعلی** دواړه روا دي دلته د **بغ** نسبت **بغی** راغلی دی مګر د دې لفظ معنی زانيه راغلې ده نو ځکه د **بغ** په نسبت کې واو زيات شوی **بغوي** شوی دی او په اسماء محذوفة الاعجاز کې همداسې کول روا دي، لکه په **دم** کې **دموي** په **اب** کې **ابوي** دی او په **اخ** کې **اخوی** راغلی دی.

## د ذكر شوو امامانو دوفات كلونه :

(۱) د حسين بن مسعود بغوي ولادت ۴۳۵ هـ وفات ۵۱۶ هـ (په مروه کې دفن شوی دی).
(۲) د محمد بن اسماعيل البخاري ولادت ۱۹۴ هـ وفات ۲۵۶ هـ (په بخارا کې دفن شوی دی).
(۳) د مسلم بن حجاج القشيري ولادت ۲۰۴ هـ وفات ۲۶۱ هـ (په نيشاپور کې دفن شوی دی).
(۴) د امام مالک بن انس ولادت ۹۵ هـ وفات ۱۷۹ هـ (په مدينه منوره کې دفن شوی دی).
(۵) د محمد بن ادريس الشافعي ولادت ۱۵۰ هـ وفات ۲۰۴ هـ (په مصر کې دفن شوی دی).
(۶) د احمد بن حنبل ولادت ۱۶۴ هـ وفات ۲۴۱ هـ (په بغداد کې دفن شوی دی).
(۷) د محمد بن عيسى ترمذي ولادت ۲۰۹ هـ وفات ۲۷۹ هـ (په ترمذ کې دفن شوی دی).
(۸) د ابوداؤد سجستاني ولادت ۲۰۲ هـ وفات ۲۷۱ هـ (په بصره کې دفن شوی دی).
(۹) د احمد بن شعيب نسائي ولادت ۲۱۵ هـ وفات ۳۰۳ هـ (په مکه مکرمه کې دفن شوی دی).
(۱۰) د محمد بن يزيد ابن ماجه ولادت ۲۰۹ هـ وفات ۲۷۳ هـ (په قزوين کې دفن شوی دی).
(۱۱) د عبدالله بن عبدالرحمن دارمي ولادت ۱۷۲ هـ وفات ۲۵۵ هـ.
(۱۲) د علي بن عمر دارقطني ولادت ۳۰۶ هـ وفات ۳۸۵ هـ.
(۱۳) د احمد بن حسين البيهقي ولادت ۳۸۴ هـ وفات ۴۵۸ هـ (په نيشاپور کې دفن شوی دی).
(۱۴) د رزين بن معاويه ولادت معلوم نه دی وفات ۵۳۵ هـ (په مکه مکرمه کې دفن شوی دی).

**تنبيه :**

دا خبره د يادولو ده چې د پيدائش او د وفات په كالونو کې د تاريخ علماو اختلاف را روان دی، لهذا په پورته ذكر شوو تاريخونو کې كه چيرته تفاوت وليدل شي نو هغه د دې په پس نظر کې كتل په كار دي.

۳ ذيقعده ۱٤۰۹ هـ

## د نيت اخلاص:

| |
|---|
| (۱) عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا الْأَعْمَالُ |
| د عمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل د ټولو کارونو دارو مدار |
| بِالنِّيَّاتِ وَ إِنَّمَا لِامْرِئٍ مَا نَوَى فَمَنْ كَانَتْ |
| په نيت باندې دی، او هر انسان ته به هر هغه څه رسيږي د کوم چې نيت کړی وي، لهذا کوم کس چې |
| هِجْرَتُهُ إِلَى اللّٰهِ وَ رَسُولِهِ فَهِجْرَتُهُ إِلَى اللّٰهِ وَ رَسُولِهِ |
| د الله او د هغه د رسول دپاره هجرت وکړو (ظاهراً) نو د ده هجرت به (په حقيقت کې) د الله او د رسول دپاره وي |
| وَ مَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى دُنْيَا يُصِيبُهَا أَوِ امْرَأَةٍ يَتَزَوَّجُهَا فَهِجْرَتُهُ إِلَى |
| او چا چې د دنيا د ګټلو يا د کومې ښځې سره د نکاح کولو دپاره هجرت وکړو نو د هغه هجرت به د هغه کار |
| مَا هَاجَرَ إِلَيْهِ.(۱) (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). |
| دپاره وي د کوم چې ده اراده کړې وه. |

**توضيح**: د ټولو نه مخکې خبره دا ده چې دغه حديث عموماً د بل باب سره د مناسبت نه بغير مخکې راوړل کيږي د دې څه وجه ده؟. علماء کرامو په دې باره کې ليکلي دي چې د دې يوه وجه خو دا ده چې د همدغه حديث طرف ته د لوستونکو د توجه راګرځولو په غرض د مناسبت نه بغير په ابتداء کې راوړل کيږي، لکه څرنګه چې د دنيا د خلکو رواج دی چې دوی د خلکو توجهات د کوم کار په طرف د راګرځولو دپاره عجيب او غريب شکلونه وړاندې کوي، نو خلق چې هغه ګوري نو غور او فکر کوي او دلچسپي اخلي. دغه حديث هم تنها او جدا د دې دپاره راوړل کيږي چې علماء او طلباء متوجه کړی شي چې دلته د احاديثو بحر او ذخيره ده، چې په دې کې غوپې ووهو نو ملغلرې به ترلاسه کړو. دويمه وجه دا ده چې سلفاً او خلفاً محدثينو دغه حديث بې ربطه او بې جوړه په ابتداء کې راوړی دی ترڅو چې د هر لوستونکي اولنی نظر د احوالو د اصلاح د افعالو اقوالو او د نيت په سموالي په دغه روښانه منارې باندې ولګيږي او وړاندې ټول سفر د صحت نيت خلوص افعال او اعمالو سره شي، چنانچه د دغه حديث د عظيم شان او

---

(۱) اخرجه البخاري۱/ ۱۳۵رقم الحديث:٥۲،كتاب الايمان ،باب ماجاء إن الأعمال بالنية والحسبة،مسلم في صحيحه ج۳ص۱٥۱٥، رقم: ۱۹۰۷،كتاب الإمارة باب قوله إنما الأعمال بالنية.وابن ماجه ج۲ص۱٤۱۳رقم ٤۲۲۷،كتاب الزهد باب النية،واحمدفي مسنده ج۱ص ۲٥ .

عظیم مقام متعلق علماء کرامو او ائمه عظامو عظیم الشان رایې وړاندې کړي دي.

**ددې حدیث شان**: (۱) عبدالرحمن مهدي فرمايي: **(من اراد ان یصنف کتابا فلیبتدأ بهذا الحدیث)**. یعنې کوم کس چې د تصنیف کولو ته اراده وکړي په هغه باندې لازمه ده چې په دغه حدیث باندې د کتاب ابتداء وکړي. (۲) علامه خطابي رَحِمَهُ اللَّهُ ویلي دي چې زما استاذانو او متقدمینو په هر نیک کار او دیني امورو کې په دغه حدیث باندې شروع کول خوښ کړي وو. (۳) امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ دغه حدیث ته د نیم علم درجه ورکړې ده، ځکه چې علم د زړه سره تعلق لري یا د ژبې یا د جوارحو سره او د قالب سره تعلق لري، او د ښه نیت تعلق د قلب (زړه) سره دی نو دا نیمايي علم دی. (۴) **امام ابوحنیفة** رَحِمَهُ اللَّهُ دغه حدیث د علم څلورمه برخه ګرځولې، ځکه چې د اسلام دین په څلورو شعبو باندې داسې تقسیم شوی: (۱) **اتقاء الشبهات** (۲) **زهد في الدنیا** (۳) **ترک مالایعنیه** (۴) **خلوص النیة**. چنانچه څلورمه برخه په دغه حدیث کې ده چې هغه خلوص نیت دی. (۵) امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ او نورو علماؤ دغه حدیث د علم دریمه برخه ګرځولې ده، ځکه چې د علم تعلق د زړه سره دی یا د جوارحو سره یې د ژبې سره دی او د زړه سره چې کوم عمل تړل شوی دی هغه حسن نیت او خلوص نیت دی. په کوم باندې چې دغه حدیث محیط دی.

**د حدیث شان ورود**: په سنن سعید بن منصور او معجم کبیر کې طبراني د دغه حدیث په شان ورود کې یوه واقعه نقل کړې ده چې یو کس کومې ښځې ته د نکاح پیغام ورولیږلو هغې د نکاح دپاره دا شرط ولګولو چې که چیرته ته هجرت وکړې نو ما سره به نکاح وکړې، دغه ښځه په ام قیس سره مشهوره وه د کومې نوم چې قیله وو، هغه کس کله چې دهمدغې ښځې سره د نکاح کولو دپاره هجرت وکړو نو خلکو به هغه ته مهاجر دام قیس ویل. علماء لیکي چې الله تعالی د صحابي د شان ساتنه وکړه او تر اوسه پورې معلومه نه شوه چې ددغه کس نوم څه وو او دا کس څوک وو؟ اوس دلته یو اصولي اعتراض دی او هغه دا چې حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ام سلیم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته د نکاح پیغام ورلیږلی وو، ام سلیم شرط ولګولو چې که چیرته ته اسلام راوړې نو نکاح به وشي هغه اسلام قبول کړ او نکاح وشوه. اوس سوال دا دی چې دلته اسلام قبول کړی شو او هلته د هجرت ټول ثواب ضائع شو حالانکه په دواړو ځایونو کې د نکاح خبره شوې وه؟ د دې جواب دا ورکړی شوی دی چې په هجرت او اسلام کې د امتداد او عدم امتداد فرق دی. هجرت یو آنی عمل دی یعنې چې یو حد ته ورسیږي نو ختمیږي په دې کې امتداد نشته. او اسلام یو فعل ممتد او امتدادي امر دی هر ځای ته چې لاړ شي د هغه حدود نه ختمیږي. لهذا کله چې یو څوک د خپل غرض دپاره هجرت کوي نو په اخیري مرحله کې هغه خپل مطلوب مومي او بیا هجرت ختم شي. نو تر اخیري مرحلې پورې خود غرضي وه او وړاندې هجرت نه وو نو ځکه هغه خراب پاتې شو. ددې برعکس اسلام یو ممتد عمل او یو ممتد امر دی، که چیرته نن په هغه

کې د نيت خرابي وه او اسلام مقبول نه شي نو صبايې نيت صحيح کيدلى شي او اسلام يې صحيح کيدلى شي، نو ځکه د ابوطلحه اسلام ضائع نه کړى شو.

**دا حديث غريب دى**: د دغه حديث په سند کې غرابت دى او د سعيد بن منصور د راوي نه وروسته په ټولو واسطو کې غرابت دى، مګر د کثرت طرقو په وجه دا قوي شوى دى، په دې سره دا خبره ثابته شوې ده چې په بخاري شريف کې هم غريب احاديث موجود دي، غريب څه نامقبول نه دى. دغه حديث ته **حديث المنبر** هم ويل شوى دى چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ دغه حديث په منبر باندې بيان کړى وو.

**حضرت عمر فاروق** رَضِيَ اللهُ عَنهُ: عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ عدوي قريشي او ابوحفص الفاروق دى کوم چې په شپږم نبوي کې د څلويښتو کسانو نه وروسته اسلام راوړى، د ده د ايمان نه وروسته اسلام ته عزت ورسيدو، د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه وروسته د مسلمانانو خليفه جوړ شو، په ۲۳ لکه څلويښت زره مربع ميل زمکه باندې يې تر لسو کلونو پورې د عدل او انصاف نه ډک حکومت وکړو، د دنيا په فتح شوو علاقو کې يې څلور زره عام جوماتونه جوړ کړل او ۹۰۰ لوي جامع جوماتونه يې جوړ کړل، شام، مصر، دياربکر او فارس يې فتحه کړل او په ۲۳هجري کې دابولؤلؤمجوسي په لاس په اول د محرم الحرام شهيد کړى شو (۵۳۷) احاديث يې روايت کړي، د ده د ګوتمې په مهر کې دا عبارت وو (**كفى بالموت واعظا**).

**د انما تحقيق**: اهل لغاتو او اصوليانو په دې اتفاق کړى چې واضع انما د حصر دپاره وضع کړى دى او په دې د حکم تاکيد مقصود دى لکه (**انما على رسولنا البلاغ المبين، انما الهكم اله واحد**) بهر حال په انماسره دمذکوراثبات کيږي اوغيرمذکورورباندې نفې کيږي،دحصرمعنى به داسې شي: (**انما الاعمال تعتبر بالنية ولاتعتبر بغيرها**) يا به داسې شي: (**ليست الاعمال حاصلة الا بالنية**).

**د الاعمال تحقيق**: **اعمال** د **عمل** جمع ده دده په مقابله کې **النيات** ذکر دى او کله چې د جمع مقابله د جمع سره راشي نو تقسيم په احادو باندې وي نو نتيجه يې داسې راووتله چې هر عمل د نيت سره تړل شوى دى. په عمل او فعل کې لږ شانتې فرق علماو ښودلى دى هغه دا چې د عمل اطلاق صرف په اختياري کارونو باندې کيږي غيراختياري کارته عمل نه ويل کيږي، او فعل عام دى که اختياري وي که غير اختياري وي، چنانچه (**اعملوا صالحًا**) راغلى دى، (**افعلوا صالحًا**) نه دى راغلى، دويم فرق دا دى چې د عمل په مفهوم کې دوام او استمرار پروت دى او په فعل کې نشته.

**په بالنيات کې د باء متعلق څه دى**؟ اوس سوال دا دى چې ډير زيات اعمال داسې دي کوم چې حسًا او صورةً د نيت نه بغير حاصليږي او کوم اعمال چې غير اختياري دي مثلا د چت وغيره نه رالويدل دا ټول

د نيت نه غير په وجود کې راځي، لهذا دلته د بالنيات دپاره د يو داسې مقدر عبارت راويستل په کار دي په کوم سره چې د حديث مفهوم واضح شي، همدارنګه په بالنيات کې د جار مجرور متعلق هم ورسره معلوم شي.اوس يو صورت دا دی چې يا د افعال عامو نه کوم فعل مقدر راويستلی شي يعنې (کون، ثبوت، حصول، وجود) په دې څلورو افعال عامو کې کوم يو فعل مقدر راويستلی شي، ليکن په دې کې دا نقصان دی چې د افعال عامو تعلق د حسي افعالو سره دی لهذا په دوی کې د کوم فعل په مقدر کولو سره دا لازميږي چې د افعالو حسي وجود د نيت نه بغير نه شي کيدی، دا خبره صحيح نه ده ، ځکه چې د حسي افعالو وجود د نيت نه بغير کيدلی شي.اوس ضروري شوه چې دلته کوم خاص فعل مقدر ومنل شي اوس به کوم خاص فعل راويستلی شي؟نو جمهورو ائمو ددې متعلق (صحة، يا تصح يا منوطة بالنيات) منلی دی، يعنې هيڅ عمل د نيت نه بغير صحيح نه دی، د هر عمل دار مدار په نيت باندې دی، ائمه احنافو د (کاملة او ثواب) فعل مقدر منلی، يعنې (انما الاعمال تثاب بالنيات) يعنې که چيرته نيت نه وو نو په عمل باندې ثواب نه مرتب کيږي، مګر د نفس عمل وجود به وي.په دې دواړو مقدراتو باندې په خپل خپل ځای په خپل خپل انداز سره اعتراضات دي، احناف د ثواب مقدر منلو ته ترجيح ورکوي او وايي چې د ثواب په مقدر منلو سره ټولو ته فائده ده، ليکن که چيرته صحة راويستل شي نو دا د جمهورو هم خلاف دی، ځکه ډير زيات افعال داسې دي کوم چې د دوی په نزد د نيت نه بغير محقق کيږي.د ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ په نزد د تعتبر او معتبرة منل زيات واضح دي ترڅو چې ټولو عباداتو ته په آسانۍ سره شامل شي يعنې (انما الاعمال معتبرة او تعتبر بالنيات) په دې کې ټول اعمال راغلل.

(۱) برابره خبره ده که عبادات مقصوده وي لکه لمونځ، روژه، زکوة، حج وغيره، دلته (انما الاعمال تعتبر لصحتها النية) يعنې د همدې فرضيه عباداتو د صحت دپاره نيت ضروري دی او د نيت نه بغير فرضي عبادات نه صحيح کيږي.(۲) يا همدغه اعمال د فرضيه عباداتو دپاره د شرائطو په درجه کې وي لکه طهارت، ستر عورت وغيره، دلته لحصول ثوابها مقدر منل په کار دي لکه : انما الاعمال تعتبر لحصول ثوابها النية يعنې ترڅو چې د شرائطو درجې په اعمالو کې مثلا غسل، تيمم، طهارت دځای اودبدن اوطهارت دلباس وغيره کې دثواب نيت ونه کړی شي نوثواب نه ورکول کيږي اګرچه عمل صحيح وي(۳) ياهغه اعمال مباح اموروي نوهلته دتعتبرروسره تصيراوتنقلب مقدرکولی شي لکه:انما الاعمال المباحة تعتبر ای تصير وتنقلب بالنية الحسنة حسنات وبالنية السيئة سيئات.

بهر حال د تعتبر لفظ عام دی،د همدغه عموم په نظر کې نيولو سره دموقع او محل مناسب فعل راويستل کيږي نو عبادات مقصوده او غير مقصودو او مباحو ټولو ته به شامل شي، بلکې متروکات لکه شراب

زنا او غیره پرېښودلو ته به شامل شي چې د نیک (حسنه) نیت سره د دې شیانو په پرېښودلو باندې اجر او ثواب ملاویږي، ابن دقیق العید هم ددې تایید کړی چې د متروکاتو په ترک باندې اجر اوثواب میلاویږي. امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ د اعمال متعلقو بالنیات تفصیل داسې بیان کړی دی: (۱) **معاصي** : په معصیت کې په نیت سره هیڅ تغیر نه راځي، د ګناه کار په ښه نیت سره نیک کار نه جوړیږي لکه چې د حرام مال په مصرف کولو کې د ثواب نیت وکړی شي، یا په هغه سره جومات جوړ کړی شي، یا وربانډې مدرسه جوړه کړی شي، یا په کوم بل نیک کار کې ولګول شي، په ټولو صورتونو کې هیڅ ثواب نه ورکول کیږي. (۲) **طاعات او عبادات مقصوده** : دغه عبادات په اصل صحت کې هم د نیت صحت ته محتاج دي او په زیات فضیلت کې هم د نیت طرف ته محتاج دي، په اصل نیت کې خو د دې دپاره چې عبادت ضائع نه شي، او د فضیلت د زیاتیدو او د درجاتو لوړولو دپاره په دې کې دې داسې نیت وکړی شي چې ډېر نیتونه دې په یو عمل کې سره شریک کړی شي او ډېر ثوابونه دې حاصل کړی شي، مثلا د مونځ دپاره جومات ته راغلو نو قبلې ته د مخامخ کیدو نیت یې هم وکړو، د اعتکاف نیت یې هم وکړو، مونځ ته د انتظار کولو نیت یې هم وکړو، د غریب سره د مرستې کولو نیت یې هم وکړو وغیره وغیره نو په دغو ټولو نیتونو باندې ثواب ورکول کیږي. (۳) **مباح عمل** : مباح کار د یو پاک نیت احتمال لري لکه عطر لګول په نیک نیت سره یو مباح امر دی، مګر د فخر مباهات او تکبر په طور ناروا او ګناه ده، خو که چیرته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اقتداء په نیت وکړی شي نو ثواب هم دی که نه نو د داسې مباح عمل په کولو کې ثواب نشته، یا د جومات د احترام نیت وکړی شي نو په دغه مباح عمل سره هم ثواب ورکول کیږي، په دې باندې یوه اختلافي مسئله متفرع ده کومه چې په راتلونکي درس کې را روانه ده.

**٤ ذیقعده ١٤٠٩هـ**

**بالنیات** : دا مشدد هم صحیح دی او د شد نه بغیر هم صحیح دی، نیات د نیة جمع ده او نیت په لغت کې د قصد په معنی دی او اصطلاحي تعریف یې داسې دی: **(توجه القلب نحو الفعل ابتغاء لوجه الله)**.

**د نیت اقسام** : د نیت درې قسمونه دي: **(۱) تمییز العبادة من العادة (۲) تمییز العبادة من العبادة**. لکه د ماسپښین نیت له مازیګر ممتاز شوی دی **(۳) تمییز المعبود الحق من المعبود الباطل**. مثلا مونځ صرف د یو معبود دپاره دی، روژه صرف د یو معبود دپاره ده د بل چا دپاره نه ده.

**د فقهاؤ اختلاف** : په **بالنیات** کې د جار مجرور کوم متعلق چې مقدر راویستل شوی هلته د فقهاء کرامو په مینځ کې په اودس کې د نیت کولو او نه کولو اختلافي مسئله شروع شوې، جمهور و چونکه د **تصح** لفظ مقدر منلی د همدې وجې دوی د هر عمل په صحت کې د صحت د پاره نیت شرط ګڼلی ، لهذا ددوی په

نزد په اودس كې هم نيت ضروري دى، ځكه چې اودس هم د اعمالو نه يو عمل دى. ائمه احنافو سفيان ثوري رَحِمَهُاللهُ او نورو فقهاؤ ويلي دي چې د اودس د صحت دپاره نيت ضروري نه دى، جمهورو په **الاعمال بالنيات** استدلال كړى، احنافو په دغه حديث استدلال كړى، مګر د **ثواب** لفظ په مقدر كولو سره وايي چې نفس وجود د نيت نه بغير صحيح نه دى، خو د نيت په كولو سره ثواب حاصليږي، احنافو په شوافعو باندې اعتراض كړى دى چې كه چيرته په هر عمل كې نيت شرط دى نو ستاسو په نزد د جامو په وينځلو كې بيا نيت ولې شرط نه دى؟ شوافعو جواب وركړى دى چې د جامو په وينځلو كې د نجاست حكميه لرې كول نه دي بلكې د نجاست حقيقيه لرې كول دي او په اودس كې د نجاست حكميه لرې كول دي، نيت د نجاست حكميه د ازالې په صورت كې ضروري دى، احنافو ويلي دي دا فرق تاسو د كوم ځايه پيدا كړى، حالانكه اوبو ته الله تعالى ﴿وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً طَهُورًا﴾ ويلي دي د هر شي دپاره يې د نيت نه بغير پاكې ګرځولې، بيا تاسو د اودس دپاره مطهر بالنية او د جامو دپاره مطهر بغير نيت فرق د كوم ځاى نه را ويستلى دى.

**د اختلاف منشاء:** دفقهاؤ په منځ كې دلته د اختلاف منشاء دا ده چې جمهورو اودس ته عبادت محضه غير مدرک بالعقل ويلى دى نو د باقي عباداتو محضؤ په شان په دې كې هم نيت ضروري دى، احنافو اودس د عبادات محضو دپاره وسيله او واسطه منلې ده چې اودس د مونځ دپاره وسيله او واسطه ده په خپله عبادت محضه نه دى، اوس د اودس د عبادت محضه سره هم مشابهت دى او د د وسيلې سره يې هم مشابهت دى، ځكه چې عبادت هم دى او د نورو دپاره طهارت هم دى، نو د همدې وجهې د فقهاؤ په مينځ كې اختلاف شو، جمهورو د عبادت سره مشابه ګرځولى دى او احنافو د طهارت سره مشابه ګرځولى، په عبادت محضه كې د ټولو په نزد نيت ضروري دى ليكن د اودس د حيثيت په تعين كې اختلاف شوى نو په دې سره د نيت په حكم كې اختلاف هم پيدا شو، اوس دې ته كتل په كار دي چې د اودس د كوم سره زيات مشابهت دى د طهارت سره كه د عبادت سره؟ ترڅو د كوم سره چې زيات مشابه وي چې د هغه سره يو ځاى كړل شي، نو احناف وايي چې قرآني نصوصو او احاديثو تصريحاتو دا ښودلي چې د اودس تعلق د طهارت سره دى، په قرآن كې د اودس متعلق آيت دا سې دى: ﴿مَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُم مِّنْ حَرَجٍ وَلَٰكِن يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ﴾ (مائده ۶) په دغه آيت كريمه كې اودس د طهارت په مجموعه كې شمار شوى، همدا رنګه (مفتاح الصلوة الطهور) حديث اودس په طهارت كې شمار كړى . لهذا لكه څرنګه چې په ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ كې د هيڅ يو په نزد د جامو وينځلو د پاره نيت نشته نو په اودس كې هم دا اودس دپاره نيت ضروري نه دى خو ثواب جدا شى دى.

اوس دلته یو اعتراض دی کوم چې احنافو طرف ته متوجه دی او هغه دا چې په تیمم کې هم احنافو نیت فرض ګرځولی حالانکه تیمم هم د وسیلې نه دی او د عبادات محضو نه نه دی؟ احنافو جواب ورکړی چې په تیمم کې د دوو وجهو احنافو نیت فرض کړی دی، اوله وجه دا ده چې د تیمم په مفهوم کې د لغت په اعتبار سره د نیت معنی نه بغیر ده، دویم دا چې خاورې اصلا ملوثې دي، جسم ککړوي نو په نیت کولو سره طهارت راشي او اوبه خو اصلا پاکې دي، کله چې تاسو یو پاک شی استعمالوئ نو طهارت حاصل شي کوم چې دا وبو طبعي اثر دی په هغو کې مزید نیت کول صرف د مزید ثواب دپاره کیدلی شي.

**بعد اللتیا والتي** اصل صورت حال دا دی چې نزاعي مسئله په اصل کې اجتهادي مسئله ده کومه چې د قواعدو مستنبطه ده، د شوافعو او جمهورو جدا اجتهاد دی او د احنافو جدا اجتهاد دی، مسئله په خپل ځای باندې ده، لیکن د همدغې اختلافي مسئلې ددغه حدیث سره هیڅ تعلّق نشته اونه ددغه حدیث نه مستنبط ده که چیرته کوم کس همدا مسئله د، حدیث طرف ته منسوبوي دا دهغه خوبنه ده، که نه نو حدیث خو صرف د نیک نیت او بد نیت دپاره راغلی دی چې که ښه نیت وو نو په عمل باندې ثواب ورکول کیږي، که بد نیت وو نو په عمل باندې ثواب نه ورکول کیږي، دا د باب د اخلاص له قبیلې نه دی د کوم چې بار بار قرآن کریم اعلان کړی دی، او په مقدسو احادیثو کې یې بار بار ذکر راغلی دی، په دغه ذکر شوي حدیث کې دا تعلیم ورکړی شوی چې د قربانۍ په لحاظ سره د ټولو غټ عمل هجرت دی، کله چې په غلط نیت سره همدغه غټه قرباني ضائع کیږي نو د ورو اعمالو به څه حال وي، تاسو فکر وکړئ نو دا خبره به درته واضحه شي چې د نیت نه بغیر د اودس کول خو ممکن نه دي، کله چې یو انسان راپورته شي اودس وکړي، بیا جومات ته لاړ شي، په ګرمۍ او یخنۍ کې مشقت کوّي او اودس کوي نو دا دومره اوږد عمل د نیت نه بغیر کیدلی شي، حالانکه نیت خو د قلبي ارادې نوم دی کوم چې د یوه شي طرف ته متوجه کیدل دي نو اودس د نیت نه بغیر ممکن نه دی، لهذا دا بحث په خپل ځای باندې صحیح دی لیکن د هغه ددې حدیث سره هیڅ تعلق نشته دی، هو د ارادې نه بغیر اودس په هغه وخت کې متحقق کیدلی شي چې یو انسان په کوم کار پسې روان وي او یو ناڅاپه په کوهي کې وغورځیږي، یا په باران کې سفر کوي او ټول بدن یې لوند شي نو په دغه وخت کې دغه مسئله راپورته کیدلی شي چې د نیت نه بغیر اودس یا غسل صحیح شو او که صحیح نشو، لیکن دغه صورت نادر دی او نادر کالمعدوم دی.

**د مقدر په راویستلو باندې د جانبینو لغوا اعتراض** : دغه حدیث سره د ذکر شوې نزاعي مسئلې تعلق ددې وجې هم نشته چې د مقدر په راویستلو باندې هر جانب په بل باندې اعتراض کړی دی، شافعیانو چې کوم (تصح) مقدر منلی دی په دې باندې اولنی اعتراض دا دی چې صحیح عمل هغه وي په کوم کې چې ټول شرائط موجود وي، نو د صحت دغه حکم خو په دنیوي اعمالو باندې لګیدلی شي چې شرائطو ته وکتلی شي او حکم پرې ولګولی شي، لیکن د اخروي اعمالو په صحت باندې دا حکم نه شي لګیدی،

حالانکه (انما الاعمال بالنيات) عام دی، د دې د دنيوي اعمالو سره خاص کول مناسب نه دي.دويم اعتراض په شوافعو باندې دا دی چې د صحت حکم او د عدم صحت حکم دا نوې اصطلاح ده، د رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کې دا اصطلاح نه وه، نو حديث په دې باندې نه شي حمل کيدی.دريم اعتراض دا دی چې که چيرته شوافعو د ټولو اعمالو د صحيح کيدو دپاره نيت شرط ګڼي نو بيا خو په دغه حديث باندې دوی په خپله هم عمل نه کوي ، ځکه چې په اخلاقو ، آدابو ، معاملاتو ، عقوباتو ، اماناتو ، مناکحاتو ، خصوماتو وغيره داسې احکام دي په کومو کې چې د ټولو په نزد نيت شرط نه دی.

احنافو د (ثواب) لفظ مقدر منلی دی، په دې باندې هم په يو څو وجوهاتو اعتراض دی:اول اعتراض دا دی چې د ثواب تعلق صرف د آخرت د اعمالو سره دی، د دنيا د اعمالو سره نه دی، حالانکه حديث عام دی د دنيا او آخرت دواړو سره متعلق دی.دويم اعتراض دا دی چې د ثواب دار مدار په صحت عمل باندې دی که چيرته عمل صحيح وو نو ثواب ورکول کيدی شي او که صحيح نه وو نو نه شي ورکول کيدی، نو بالآخره دا مقدر هم د شوافعو د مقدر (صحت) طرف ته راګرځي، نو خبره بيا هغه ځای ته ورسيده د کومه ځايه چې شروع وه، معلومه شوه چې دغه حديث د حسن نيت او قبح نيت سره متعلق دی او د تعتبر مقدر راويستل او هغه په خپل عموم باندې پريښودل زيات مناسب دي .

**۵ ذيقعده ۱٤۰۹هـ**

د زير بحث حديث جملې درې دي، هره جمله تفصيل غواړي، اوله جمله **انما الاعمال** ده په دې باندې خبره شوې ده، دويمه جمله **وانما لکل امرء ما نوی** ده د کومې متعلق چې اوس تفصيل راتلونکی دی، او دريمه جمله **فمن کانت هجرته الی الله الخ** ده په دې باندې هم خبره شوې ده. د **انما لکل امرء ما نوی** تحقيق وګورئ :د (امر) په لفظ کې چې کومه راء ده دا د اخير حرف د همزې د اعراب تابع ده، که چيرته په همزه باندې پيښ وو نو په راء باندې به هم پيښ وي، که چيرته په همزه باندې زور وو په راء باندې به هم زور وي، او که چيرته په همزه باندې زير راغی نو په راء باندې به هم زير راځي. په همدغه لحاظ سره يوه عجيبه کلمه ده په کومه کې چې د شاته حرف باندې هم اعراب جاري شوی دی. په **(مانوی)** کې **ما** موصوله دی او په **لوی** کې ضمير منصوب محذوف دی، اصل عبارت داسې دی **(مانواه)** يعنې هر انسان ته هغه څه ورکول کيږي د کوم چې هغه نيت کړی دی. يعنې د نيت په اندازه ثواب ورکول کيږي، اوس که چيرته په يوه نيکۍ کې ډير نيتونه وکړی شي نو ډير ثوابونه ورکول کيږي.

**په دواړو جملو کې ربط:** (انما الاعمال) او (انما لکل امرء ما نوی) دا دوه جملې دي، اوس د دوي په مينځ کې ربط، جوړ او مناسبت څه دی؟ په دې کې ډير اقوال دي :(۱) علامه قرطبي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې دا دويمه جمله د اولې جملې دپاره تاکيد دی، په دې سره د اولنی جملې تحقيق او تاکيد مقصود دی چې د نيت معامله دومره مهتم بالشان ده چې يو مضمون يې په بل عنوان دوباره ذکر کړو، په اولنی سره ثابته وه چې نيت د عمل دپاره علت باعثه دی، که چيرته نيت صحيح وي نو عمل مقبول دی، او که چيرته نيت فاسد وي نو عمل مردود دی، بيا تاکيداً ويل شوي دي چې هر انسان ته هغه څه ورکول کيږي د کوم چې هغه نيت کړی وي (ان خيراً فخير وان شرًا فشر).(۲) دا جمله تاکيد نه دی بلکې تاسيس دی، تاسيس دې ته ويل کيږي چې کومه جمله د ماسبق جملې معنی نه راګرځوي بلکې هغه د نوي حکم دپاره راځي، همدا وجه ده چې علماؤ ليکلي دي چې تاسيس اولی او افضل دی د تاکيد نه.

اوس په دويمه جمله کې هغه نوی حکم کوم او څه دی؟ په دې کې د علماء کرامو نظرونه ډير زيات دي او ډير اقوال په کې دي :(۱) اول قول دا دی چې اوله جمله د اعمالو د حالت متعلق ده چې عمل کله د نيت تابع کړی شي نو په هغه باندې بنه حکم مرتب کيدی شي، او دويمه جمله د عامل د احوالو متعلق ده چې مزدور ته هغه څه ورکول کيږي کوم څه يې چې ترسره کړي وي.(۲) په دويمې جملې سره په اصل کې دا ښودل مقصود دي چې په نيت کې نيابت قبول نه دی پخپله نيت لره اعتبار دی، د بل چا د نيت هيڅ فائده نشته، او په اوله جمله کې ښودل شوي وو چې د اعمالو مدار په نيت باندې دی.(۳) عز بن عبد السلام ويلي دي چې اوله جمله د دې دپاره وه چې په اعمالو کې کوم عمل معتبر دی؟ نو وښودل شوه چې د ښه نيت والا عمل معتبر دی، اوس په دويمه جمله کې د هغې نتيجه ښودل شوې ده چې په صالح نيت باندې دا ثمره ملاويږي.بعضو علماو ويلي دي چې اوله جمله د عربو د محاورې مطابق بطور مقدمه عقليه عرفيه ذکر شوې چې د خلکو خبره ده چې د اعمالو ميوه په نيت سره ملاويږي، په دويمه جمله کې همدا عرفيه مقدمه د شرعيه مقدمې په طور منل شوې چې کوم عرف عام وو شرعي حکم هم هغه دی.

(فمن کانت هجرته) د دې جملې د ماسبق سره ربط داسې دی چې (اذا تقرر ان کل انسان عمله بنيته

**فمن کانت هجرته :** له نصر ينصر نه هجرا وهجرا انًا وهجرة په لغوي اعتبار سره د ترک کولو په معنی سره ده، په دې معنی سره الهاجرة والهجرة هم دی کوم چې غرمې ته ويل کيږي ځکه په دې وخت کې هم خلق کار روزګار پريږدي، په دغه لغوي مفهوم باندې **والمهاجر من هجر الخطايا والذنوب)** وغيره الفاظ راغلي دي،د هجرت شرعي مفهوم او اصطلاحي تعريف داسې دی : د الله تعالی او د هغه د رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د رضا او د خپل ځان مال او د عزت ساتنې دپاره خپل وطن پريښودل.بيا دې درې قسمونه دي :(۱) **الانتقال من دار الکفر الی دار الامن** چې د دار کفر نه هجرت وکړي داسې ملک ته

لاړ شي چيرته چې د ځان مال او عزت دپاره امن موجود وي، د صحابه كرامو رضي الله عنهم د مكې مكرمې نه د حبشې طرف ته هجرات همدا قسم وو. (۲) الانتقال من دار الكفر الى دار الايمان دا هجرت له مكې مكرمې نه د مدينې منورې طرف ته وو كوم چې رسول الله صلى الله عليه وسلم كړى وو. (۳) الانتقال من دار الفجور الى دار التقوى چيرته چې د شريعت نفاذ وي، په الهي احكامو باندې عمل وي، تقوى او امن وي، د فجور دروازې بندې وي، د داسې هيواد طرف ته هجرت مستحب او غوره عمل دى. ليكن د اسلام په ابتدائي دور كې دوه قسمه هجرتونه وو او د مكې نه هجرت كول فرض ګڼل شوى وو. د هيڅ انسان ايمان تر هغه وخته پورې معتبر نه ګڼل كيده ترڅو چې هغه همدغه خاص هجرت نه وي كړى، بيا چې كله مكه فتحه شوه نو دغه خاص هجرت موقوف شو، د دې نه غير نور هجرتونه به تر قيامته پورې جاري وي، ځكه چې هجرت د جهاد پيش خيمه ده نو ترڅو پورې چې جهاد وي تر هغه وخته پورې به هجرت هم وي. په اسلام كې د هجرت ډير لوى مقام دى، ځكه په دې كې د مال، وطن، سهولت، آرام د هر شي قرباني ده، ګويا چې په دې كې هره ورځ د مرګ او شهادت مقام ملاويږي، ځكه چې په مرګ يا په شهادت سره خو انسان د دنيا د مصيبتونو نه جدا او ترې پناه شي مګر مهاجر خو هره ورځ مصيبتونه برداشت كوي، همدا وجه ده چې عمر فاروق رضي الله عنه د صحابه كرامو رضي الله عنهم په مشوره د اسلامي تاريخ اولنۍ ورځ د هجرت په ورځې مسمى كړه، ځكه چې په دې كې ډيره غټه قرباني او تاريخي يادګار وو.

بيا په دې پوهيدل ضروري دي چې هجرت د تبنتيدلو نوم نه دى، بلكې بيرته د راتاويدو او حملې كولو نوم دى او د مسلمانانو نه د نيول شوې زمكې بيا نيول يو شرعي حكم دى، قرآن اعلان كړى دى ﴿وَأَخْرِجُوهُم مِّنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ وَالْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ﴾ يعنې د كومې زمكې نه چې دغو كفارو تاسې ويستلي يئ د هغې نه تاسو كفار اوباسئ، په دغه آيت كې د مسلمانانو زمكه څومره مقدسه ګرځولې شوې؟ كاشكې مسلمان واكمنان په دې خبره پوهه شوي وى چې د دين دپاره د زمكې حصول څومره ضروري دى. دلته شرط او جزاء متحد دي، فمن كانت هجرته الى الله: په دې جملې باندې يو فني اعتراض دى او هغه دا دى چې د شرط او د جزاء په مينځ كې تغاير وي اتحاد نۀ وي او يعنې (فمن كانت هجرته الى الله ورسوله او هجرته الى الله ورسوله) يو شى دى لكه : (من اطاع اطاع) نو د كلام د مهمل كيدو خطره ده. د دې جواب علماو دا وركړى دى چې د اولنۍ جملې په شرط كې لفظ د دنيا مقدر منل شوى دى او په جزاء كې لفظ د عقبى مقدر دى ، يعنې ( فمن كانت هجرته الى الله و رسوله في الدنيا فهجرته الى الله ورسوله في العقبى) نو په دواړو كې تغاير دى.

دویم جواب دادی چې په اوله جمله شرطیه کې **قصداً** او **نیةً** الفاظ محذوف کړی شوي دي او په جمله جزائیه کې به **ثمرة** او منفعت مقدر وي نو اوس به هیڅ اعتراض پاتې نه شي.

**دنیا:** دا لفظ د **الف** له قصر سره دی په دې باندې تنوین نشته، دا د **دنا یدنوا دنوًا نصر ینصر** په معنی د قرب سره دی او دنیا هم د آخرت سره قریبه ده، یا دا چې هر انسان د هغې سره قریب دی، او یا دا لفظ له **سمع یسمع نه دنی یدنی دنأ ودناءة** نه دی کوم چې د ذلیل او د رذیل په معنی سره دی، د دې بې حقیقته دنیا په حقیقت او د هغې په تعریف کې اختلاف دی چې دا د کوم شي نوم دی.

(۱) **(ان الدنیا هو اسم مجموع هذا العالم المتناهي)** (۲) **(کالمخلوقات من الجواهر والاعراض الموجودة)** (۳) **(هي ما علی الارض من الهواء والجو والفضاء)**. یو عارف د دنیا باره کې ویلي دي:

**دنیا تخادعني کأني لست اعرف حالها ❁ مدت الیّ یمینها فقطعتها وشمالها**

**منع الاله حرامها وأنا اجتنبت حلالها ❁ فرأیتها محتاجة فوهبت جملتها لها**

**یارنا پایدار دوست مدار ❁ دوستی رانه شاید این غدار**

**جگہ جی لگانے کی دنیا نہیں ہے ❁ یہ عبرت کی جا ہے تماشا نہیں ہے**

په دغه حدیث پاک کې د دنیا وروسته د **او امراة یصیبها** ذکر شوی، حالانکه د دنیا په مفهوم کې **امراة** (ښځه) له مخکې داخله ده نو د دې په جدا ذکر کولو سره د هغې کاملې او مؤثرې فتنې طرف ته اشاره شوې ده، دا تخصیص بعد التعمیم دی، د هغې د خطراتو ښکاره کولو او د هغو نه د خبرولو دپاره داسې شوي دي، بعضو دا جواب ورکړی دی چې د حدیث شان ورود چونکه د ښځې معامله وه نو ځکه د تعمیم نه وروسته په تخصیص کې د همدغه واقعي امر ذکر شوی، بیا دا خبره هم ملحوظ ده چې د حدیث په اوله برخه کې **الی الله ورسوله** مکرر راوړل شوی دی حال دا چې په أخیرنۍ برخه کې **الی دنیا یصیبها او امرأة یتزوجها** الفاظ مکرر نه دي راوړل شوي، بلکې مبهم پرېښودل شوي دي، **فهجرته الی ما هاجر الیه** ویل شوي، د دې وجه دا ده چې په اوله جمله کې د لذت او خوند حاصلولو دپاره د الله او د رسول نوم مکرر راوړل شوي لکه:

**بالله یا ظبیات القاع قلن لنا ❁ الیلای منکن ام لیلی من البشر**

په دې شعر کې هم دلیلی نوم دوباره ذکر کول په طور د استلذاذ او خوند اخیستلو دی او په دویمه جمله کې د دنیا ذکرؤ او د ښځې ذکرؤ په هغې کې استلذاذ نه وو نو مبهم یې کړو او **الی ما هاجر الیه** یې وفرمایلو.

٦ ذيقعده ١٤٠٩هـ

# كِتَابُ الْإِيمَانِ
## د ايمان بابونه

د ټولو بحثونو نه مخکې دا خبره په ذهن کې راوستل په کار دي چې د صاحب مشکوة د **کتاب الایمان** نه مخکې د "**انما الاعمال بالنيات**" حدیث په ابتداء کې ولې راوړ؟ او بیا يې په ټولو اعمالو او عبادتو باندې **کتاب الایمان** ولې مقدم کړو؟ همدارنګه په **کتاب الایمان** کې يې د ټولو مخکې حدیث جبریل ذکر کړ د هغه د "**انما الاعمال بالنيات**" د حدیث سره څه تعلق دی؟

جواب دا دی چې د "**کتاب الایمان**" د مقدم کولو وجه خو ښکاره ده چې چونکه د اعمالو او عبادتو قبولیت او صحت په ایمان باندې موقوف دی، برابره خبره ده که هغه اعمال د عباداتو د قبیلې نه وي او برابره خبره ده که د هغو تعلق د غم د احوالو یا د خوشحالۍ د احوالو سره وي. د ټولو د قبولیت دارومدار په ایمان باندې دی، نو ځکه يې کتاب الایمان په ټولو اعمالو باندې مقدم کړو.

یا د حدیث جبریل د تقدیم وجه او دا چې د هغه د "**انما الاعمال بالنيات**" سره مناسبت څه وو د دې متعلق علامه طیبي، قاضي عیاض مالکي، ملا علي قاري او شیخ عبدالحق محدث دهلوي رَحِمَهُمُ اللهُ لیکلي چې چونکه حدیث جبریل په هرقسم ظاهري او باطني عباداتو باندې مشتمل دی. چنانچه د عقائدو قلبیو طرف ته په لفظ د "**الایمان**" کې اشاره ده او د ظاهري اعضاؤ سره متعلق امورو طرف ته په لفظ د "**الاسلام**" سره اشاره ده، د اخلاص او اسرارو طرف ته په لفظ د "**الاحسان**" سره اشاره شوې ده. لنډه دا چې دغه حدیث په شریعت، طریقت او حقیقت باندې په اجمالي طور مشتمل دی او په سنن نبویه او آداب شرعیو باندې د اختصار په طور حاوي او محیط دی، د همدې وجهې په "**ام السنة**" نوم سره یاد شوی دی، لکه څرنګه چې سورة فاتحه د ټول قرآن کریم په مضامینو باندې مشتمله ده نو هغې ته ام القرآن ویل شوې ده، اوس ربط او ترتیب په دې طور جوړ شوی چې حدیث د "**انما الاعمال بالنيات**" په منزله د بسم الله دی او د جبرئیل حدیث د جامعیت او ام السنة کیدو د وجهې په منزله د سورة فاتحه دی. علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي چې همدغه وجه ده چې امام بغوي رَحِمَهُ اللهُ خپل کتاب مصابیح په همدې دواړو حدیثونو سره شروع کړی دی تر څو چې فی الجمله د قرآن کریم اتباع وشي. یا حدیث د جبرئیل د ټول دین د پاره په منزله د خلاصه او نچوړ دی چې په درویشت ۲۳ کلونو کې کوم شریعت چې د اسمانه

نازل شوی وو د هغې خلاصه او اجمال په حدیث جبریل کې دی، په روایتونو کې تصریح ده چې جبریل علیه السلام د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه په اخیري عمر کې دا پوښتنې کړې وې، په فتح الملهم کې دي چې دغه سوال او جواب د حجة الوداع نه وروسته شوی وو.

صاحب مشکوة د کتاب الایمان عنوان اینبی دی او بیا یې د اسلام ذکر هم کړی، په دې سره د ایمان او اسلام اتحاد طرف ته اشاره شوې ده، او که چیرته په دواړو کې اتحاد نه وای نو بیا به ایمان په اصل وجه ذکر شوی وو په ضمن کې به یې اسلام هم راغلی وو. د حدیث "انما الاعمال بالنیات" د کتاب الایمان نه د مخکې راوړلو وجوهات د دغه حدیث په شروع کې مفصل بیان کړی شوي دي.

## د کتاب، باب او د فصل تعریف:

(۱) **الکتاب هو طائفة من المسائل اعتبرت مستقلة اشتملت انواعًا او تشتمل.**

(۲) **الباب نوع من المسائل اشتمل علیها الکتاب ولیست بفصل.**

(۳) **الفصل طائفة من المسائل تغیرت احکامها بالنسبة الی ماقبلها غیر مترجم بالکتاب والباب.**

کتاب په معنی د مکتوب او مجموع دی، ځکه چې الکتاب والکتیبه د جمع او مجموعې په معنی سره دي، نو د کتاب الایمان ترجمه داسې شوه: **هذا مجموع ومکتوب فی الاحادیث الواردة فی الایمان.**

**د ایمان لغوي تحقیق:** ایمان د **امن** نه ماخوذ دی کوم چې د خوف ضد دی، **امن یامن سمع یسمع** نه په لازمي معنی سره مستعمل شوی دی، یعنې بې خوفه کیدل، او د باب **افعال** نه **آمن ایمانًا** متعدي دی، یعنې بې خوفه جوړیدل، د متعدي کیدو په صورت کې **امن ایمانًا** د یو یا دوو مفعولو طرف ته متعدي دی، لکه **آمنت زیدًا** ما زید ته امن ورکړ او **آمنت زیدًا اوعمرًا** ما زید او عمر دواړو ته امن ورکړ. د متعدي کیدو په صورت کې دا کله بنفسه متعدي کیږي لکه ﴿وَآمَنَهُم مِّنْ خَوْفٍ﴾ او کله بالصلة **والحرف متعدي** کیږي، بیا دغه صله په دوه قسمه بانديې ده کله د **باء** او کله د **لام** سره راځي، که چیرته په صله کې **باء** راشي نو د **باء** مدخول کله به له احکامو نه وي لکه ﴿آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مِن رَّبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ﴾ **ماانزل** احکامات دي او کله به یې مدخول د ذواتو نه وي لکه ﴿كُلٌّ آمَنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ﴾ دا ټول ذوات دي، او که چیرته امن متعدي بحرف اللام وو نو ایمان کله په معنی د اذعان یقین او تصدیق سره راځي لکه ﴿لَن نُّؤْمِنَ لَكَ حَتَّىٰ نَرَى اللَّهَ جَهْرَةً﴾ یعنې مونږ یقین نه کوو،

اذعان او تصديق نه کوو، ﴿ وَمَا أَنتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا وَلَوْ كُنَّا صَادِقِينَ ﴾ اى وما انت بمصدق لنا، او کله د اطاعت او انقياد په معنى سره راځي لکه ﴿ أَنُؤْمِنُ لَكَ وَاتَّبَعَكَ الْأَرْذَلُونَ ﴾ خلاصه داده چې د ايمان د لفظ معنى د صلې په تبديلي سره بدليدلى شي.

**د ايمان شرعي او اصطلاحي تعريفات**: د ايمان اصطلاحي تعريفات د الفاظو په اختلاف سره ټول شپږ دي، اګرچه مفهوم او مرجع د ټولو يو ده، بيا هم څه فوائد د تعريفاتو په تعدد کې شته، په همدې وجې زه شپږ واړه مکمل تعريفات نقل کوم اګرچې يو هم کافي دى ليکن ان شاء الله په نقل کولو کې يې برکت دى:

(۱) علامه سيد محمود آلوسي بغدادي رَحِمَهُ اللّٰهُ د ايمان تعريف داسې کړى دى: (**الايمان هو التصديق بما علم مجئ النبى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ضرورة تفصيلا فيما علم تفصيلا واجمالا فيما علم اجمالا**) (**روح المعانى ج۱، ص ۱۱۰**). يعنې ايمان د هغه څه نوم دى چې انسان د هغو شيانو تصديق وکړي د کومو ثبوت چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه په يقيني طور متحقق وي، کوم شيان چې په تفصيل سره ثابت او معلوم وي د هغو په تفصيلي طور اقرار او تصديق وکړي او کوم شيان چې په اجمالي طور ثابت دي د هغو اجمالى اقرار وکړي، مثلا د مونځ حکم، د هغه د رکعتونو حکم د تفصيل سره، بديهي او ضروري دي، په دې باندې په تفصيل سره ايمان راوړل ضروري دي. همدارنګه زکوة، روژه، او د حج حکم په تفصيل سره معلوم معروف ظاهر بديهي او يقيني دي نو په دوي باندې په تفصيل سره ايمان راوړل فرض دي، دغه شان په اجمالي طور د قبر عذاب بديهي دى، په هغه باندې په اجمالي طور ايمان لرل لازمي دي، او د عذاب قبر د تفصيلاتو علم د اخبار آحادو نه ثابت دى او ضروري نه دي. د تصديق نه مراد باطني انقياد دى، صرف زباني نه دى، د همدې وجې نه د هرقل اسلام معتبر نه دى، همدارنګه د تصديق نه منطقي تصديق مراد نه دى. د (ضرورةً) نه مراد دا دى چې هر خاصو او عامو ته معلومه وي يا د هغه ثبوت يقيني وي او د دين د ضرورياتو نه وي.

(۲) امام غزالي رَحِمَهُ اللّٰهُ په (**فيصلة التفرقة بين الايمان والزندقة**) کې د ايمان تعريف داسې کړى:

**التصديق بجميع ماجاء به النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ والكفر تكذيب النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في شيء مما جاء به**

په دغه تعريف کې يوه فائده دا وشوه چې د ايمان په مقابل کې د کفر تعريف هم په کې راغى، او دويمه فائده دا شوه چې د ايمان دپاره ضروري ده چې ټول اسلام انسان تسليم کړي، ليکن د کافر جوړيدو دپاره د ټول اسلام نه انکار ضروري نه دى، بلکې د کوم ضروري حکم نه په انکار کولو سره انسان د اسلام نه ووځي او کافر جوړيدلى شي.

(۳) شاه عبد العزيز رَحِمَهُ اللّٰهُ د ايمان تعريف داسې کړى (په کتاب الله باندې ظاهرًا او باطنًا اقرار کول او

د هغه د معناګانو د قرآن او حديث موافق استعمالول).

(۴) علامه شاه انور شاه کشميري رَحِمَهُ اللّٰهُ يې داسې تعريف کړی: **تصديق النبي بما جاء به النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بالاعتماد على النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.** له دغه تعريف نه دا فائده ترلاسه شوه چې کوم خلک د عقل په زور او په عقلي دلائلو سره يې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ تصديق کړی دی هغوی مسلمان کيدلی نه شي. ځکه چې هلته **اعتماد على النبي** صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نشته، بلکې اعتماد په خپل عقل او خپل دليل باندې دی.

(۵) شيخ عبد القادر جيلاني رَحِمَهُ اللّٰهُ، مرزا مظهر جان جانان رَحِمَهُ اللّٰهُ او قاضي ثناء الله پاني پتي رَحِمَهُ اللّٰهُ د ايمان په تعريف کې ويلي دي: (د ايمان يو ظاهري صورت دی او يو د هغه حقيقت او باطني صورت دی، ظاهري صورت خو دا دی چې تصديق بالجنان عمل بالارکان اقرار باللسان وي، او د ايمان حقيقت دا دی چې مقتضی د طبعې د مقتضی د شرعې تابع شي.

(۶) امام محمد د ايمان تعريف داسې کړی دی: **تصديق النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بما جاء به مع التبري عن جميع ماسواه.** په دغه تعريف کې ډيره ښه فائده دا ده چې په دې کې د اسلام نه بغير د ټولو کفري قوانينو نه بيزاري هم د ايمان جزء ګرځول شوی.

د ايمان د همدې تعريفاتو وروسته د ايمان څو اقسام هم وګورئ: (۱) **ايمان مطبوع**: دا د فرښتو ايمان دی، ګويا که دا مهر شده ايمان دی، په دې کې هيڅ فرق نه شي راتللی او نه په کې بدلون راتللی شي. (۲) **ايمان معصوم**: (يعنې محفوظ) دا د انبياء کرامو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ ايمان دی. (۳) **ايمان مقبول**: دا د عامو مؤمنانو ايمان دی. (۴) **ايمان موقوف**: دا د باطلو اهل زيغو او اهل بدعاتو ايمان دی کوم چې موقوف دی، ځکه کيدلی شي چې له بدعت نه توبه وکړي او د ايمان طرف ته را وګرځي.

(۵) **ايمان مردود**: دا د منافقينو ايمان وي کوم چې نامقبول او مردود دی.

۷ ذية عدة ۱٤۰۹هـ

**د کفر حقيقت او اقسام**: کفر چونکه د ايمان مقابل او ضد دی نو لهذا ددې وضاحت هم ضروري دی، (**وبضدها تتبين الاشياء**) چنانچه کفر په لغوي اعتبار سره د ستر او پټوالي په معنی دی او په شريعت کې د کفر تعريف او حقيقت امام غزالي رَحِمَهُ اللّٰهُ د ايمان په تعريف کې بيان کړی: (**والکفر تکذيب النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في شيء مما جاء به**). يو لنډ تعريف د کفارو دا هم دی: (**الذين ستروا الحق عنادا**) يعنې کومو چې د عناد د وجې نه حق پټ کړی، دا خبره مخکې ليکل شوې ده چې د اسلام راوړلو دپاره ضروري ده چې د ټول اسلام په ټولو احکاماتو باندې انسان اقرار او تصديق وکړي، ليکن د کافر کېدو

دپاره صرف دومره كافي ده چې د دين د ضرورياتو نه د كوم حكم نه انكار وكړی شي، په دې سره د عوام الناس د دې نظريې ترديد كېږي چې د يو يا دوو حكمونو نه په انكار سره هيڅ هم نه كيږي مونږ خو مونځ كوو او كلمه وايو، كافر خو هغه وي كوم چې د ټول شريعت د يو يو جزء نه انكار وكړي او د اسلام نه وتښتي، دلته علماء كرامو د كفر څو اقسام هم ذكر كړي دي :(۱) **كفر انكار** : كوم كس چې په زړه او ژبې سره د شدت سره له اسلام نه انكار وكړي دا كفر انكار دی دا عام كفار دي.(۲) **كفر جحود** : دا هغه دی چې په زړه سره حق دين رښتونی ګڼي د هغه په حقانيت باندې قائل وي ليكن په ژبه باندې اقرار نه كوي بلكې انكار كوي، يعنې ښه پوهيږي مګر مني يې نه لكه د ابليس كفر او د يهودو كفر ﴿وَجَحَدُوا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَا أَنفُسُهُمْ ظُلْمًا وَعُلُوًّا﴾ (نمل).

(۳) **كفر عنادومعانده** : هغه دا دی چې اسلام په زړه سره هم رشتني مني او په ژبه هم اقرار كوي ليكن د حق دين نه بغير له نورو باطلو اديانو نه بيزاري نه كوي ، او د حق دين اطاعت نه كوي لكه د هرقل كفر او د ابوطالب كفر چې په دواړو كې ظاهري انقياد نه وو.(۴) **كفر نفاق** : دا هغه دی چې په زړه كې تكذيب او انكار وي صرف د دنيوي مصلحت دپاره په ژبه باندې اقرار وي، لكه عبدالله بن ابی ابن سلول او د هغه ډله برابره ده كه هر څوک هم وي، د نفاق په دغه ډله كې ډير اهل باطل زنديقان، روافض، آغاخانيان، قاديانيان، بهائي، پرويزي او يو قسم كمونيسټ په كې هم داخل دي، چې د ضرورت په وخت كې خو كلمه وايي مونځ هم اداء كوي مګر بل طرف ته د دين له ضرورياتو نه د يو ضروري امر نه انكار كوي،ددوی مختلف درجات دي بعضې په نفاق كې دي او بعضې په واضح كفر كې غورځيدلي .

**اول اعتراض** : د ايمان په تعريف كې د تصديق لفظ بار بار راغلی دی اوس په ډيرو كسانو كې تصديق قلبي په نص سره ثابت دی ليكن هغوی بيا هم كافر دي، لكه چې د يهودو په باره كې آيت دی ﴿يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمْ﴾ د دې باوجود دوی په قطعي طور كافر دي، نو د ايمان تعريف له دخول غير نه مانع نه شو په دې كې كافر هم داخل شو؟.

**جواب** : پورته ذكر شويو تعريفاتو ته كه وكتل شي نو دغه اعتراض بلكل متوجه كيدی نه شي. ځكه چې د ټول شريعت تصديق يو شی دی او د نبي كريم صلى الله عليه وسلم لره د آخرالزمان په حيثيت سره پيژندل بل شی دی. په يو كې منل دي په بل كې پيژندل دي او په دواړو كې ډير غټ فرق دی، ليكن شراحو حضراتو دغه اعتراض پورته كړی دی او بيا په خپله يې د هغه جواب هم وركړی زه هم اشاره ورته كووم.

اصل جواب دا دی چې له تصديق نه مراد اختياري تصديق دی او د يهودو تصديق غير اختياري او اضطراري وو.علامه تفتازاني رحمه الله ويلي دي چې اضطراري تصديق په اصل كې تصديق نه دی بلكې صرف تصور دی، بل خوا شاه انور شاه كشميري رحمه الله چې كوم تعريف كړی دی په هغه كې

**اعتماد على النبي** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الفاظ دي چې د نبي په نبوت باندې په اعتماد لرلو سره د تصديق کولو نوم ايمان دی، صرف د عقل او دلائلو په زور سره يا د غير اختياري احساساتو او جذباتو رجحاناتو او تصوراتو له وجهې په زړه کې د تصديق کېنولو نوم ايمان نه دی، لهذا د ايمان له تعريف نه فرعون او د هغه ډله يهود او د دوی ډله ووتل.

**دويم اعتراض** : د يهودو متعلق چې کوم اعتراض وو په ذکر شوي جواب سره خو د هغوی جواب وشو ليکن د هرقل او ابو طالب متعلق خو تراوسه هماغه اعتراض باقي پاتې دی، ځکه دوی دواړو خو په زړه سره تصديق هم کړی وو او په ژبو يې اقرار هم کړی وو، چنانچه هرقل داسې ويلي وو د بخاري الفاظ دا دي : **(لو كنت عنده لغسلت عن قدميه) بخاری ج ۱ ص ۴)**.

يعنې که چيرته زه د همغه نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره وی نو ما به د هغه قدمونه وينځلي وو او خدمت به مې ورله کړی وو. علامه حافظ ابن حجر په فتح الباري شرح د بخاري کې دا عبارت نقل کړی دی :**(والله انی لاعلم انه نبی مرسل ولكنی اخاف الروم على نفسی ولو لا ذلك لاتبعته) فتح الباری ج ۱ ص ۲۷)**.

د دومره زورور تصديق او ښائسته اقرار باوجود هرقل ته کافر ويل شوي دي.

او امام بخاري د هغه قيصه آورولي ده په اخير کې فيصله هم اورولي ده چې د هغه خاتمه په کفر باندې وشوه. او ابو طالب هم تصديق او اقرار او د اختيار حد په خپلو آشعارو کې کړی دی:

وَ اللهِ لَنْ يَّصِلُوْا اِلَيْكَ بِجَمْعِهِمْ حَتّٰى اُوَسَّدَ فِي التُّرَابِ دَفِيْنًا

په الله تعالى قسم : دا خلک ټول د خپلې ډلې سره تر هغې وخته پورې حمله نه شي کولی ترڅو پورې چې ما په قبر کې دفن نه کړي.

وَ دَعَوْتَنِيْ وَزَعَمْتَ اَنَّكَ صَادِقٌ وَ صَدَقْتَ فِيْهِ وَ كُنْتَ ثَمَّ اَمِيْنًا

تاسې ماته د دين دعوت راکړو او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د صادق کيدو دعوی هم کړې ده نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ رښتيا ويلي او تاسې په دې کې امين هم يې.

وَ عَرَفْتُ دِيْنَكَ لَا مَحَالَةَ اَنَّهٗ مِنْ خَيْرِ اَدْيَانِ الْبَرِيَّةِ دِيْنًا

ما يقينا ستاسې دين وپيژندو چې په ټولو دينونو کې دا بهترين دين دی.

لَوْلَا الْمَلَامَةُ اَوْ حَذَارُ مَسَبَّةٍ لَوَجَدْتَنِيْ سَمْحًا بِذَاكَ مُبِيْنًا

که چيرته د خلکو د پيغور او د کنځلو خطره نه وی نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به زه په دې دين کې ښه ښکاره سخاوت کوونکی موندلی وی.

د قريشو د بنو هاشمو سره د قطع تعلق په وخت کې ابو طالب يو ښائسته قصيده وويله، په کومه کې چې

د رسول الله ﷺ د مدح انتهاء ده، د اسلام د محاسنو ذکر په کې شته او بیا د مکمل او د کامل ملاتړ اعلان دی، دغه قصیده په (۹۲) اشعارو باندې مشتمله ده، کومه چې د البدایه والنهایه ج ۳ ص ۵۱ باندې موجوده ده. دلته زما د استشهاد او د مطلب د پاره یو یا دوه شعره کافي وو لیکن ما د لوستونکو د وړاندې ددوي د فائدې د پاره او د نبي کریم ﷺ سره د خپل محبت د اظهار د پاره او د خوندورو او مزیدارو اشعارو نه د لطف او خوند اخیستلو د پاره د ضرورت نه زیات اشعار نقل کړې دي وئې وایئ او خوندترې واخلئ:

لَعُمْرِيْ لَقَدْ كُلِّفْتُ وَجْدًا بِأَحْمَدَ وَإِخْوَتِهِ دَابَ الْمُحِبِّ الْمُوَاصِلِ

په خپل عمر مې دې قسم وي چې زه د احمد مجتبی او دده د دوستانو د وجې نه د دائمي او مسلسل عاشق په شان په محبت کې گرفتار کړی شوی یم.

فَمَنْ مِّثْلُهُ فِي النَّاسِ اَىُّ مُؤَمَّلٍ إِذَا قَاسَهُ الْحُكَّامُ عِنْدَ التَّفَاضُلِ

کله چې په خصوصیاتو او فضیلتونو کې مقابله شروع شي نو په خلکو کې دده په شان د خلکو د امید ځای څوک کیدی شي؟

حَلِيْمٌ رَشِيْدٌ عَادِلٌ غَيْرُ طَائِشٍ يُوَالِيْ إِلٰهًا لَيْسَ عَنْهُ بِغَافِلٍ

هغه په حق باندې قائم، انصاف خوښوونکی، بردبار او سنجیده دی چې د خپل معبود د عبادت او د تعلق نه هیڅ وخت غافله نه دی.

كَرِيْمُ الْمَسَاعِيْ مَاجِدٌ وَابْنُ مَاجِدٍ لَهُ إِرْثُ مَجْدٍ ثَابِتٌ غَيْرُ نَاصِلٍ

دده کارنامې ښې دي دا په خپله بزرگ او د بزرگانو اولاد دی ددوي بزرگي مخکنۍ او میراثي ده چې بدلیدونکې نه ده.

وَاَبْيَضَ يُسْتَسْقَى الْغَمَامُ بِوَجْهِهٖ ثِمَالُ الْيَتَامٰى عِصْمَةٌ لِّلْاَرَامِلِ

هغه داسې ښائسته دی چې دده د منورې څیرې په برکت سره د وریځو نه د باران طلب کیږي هغه د یتیمانو غمخوار او د کونډو محافظ دی.

يَلُوْذُ بِهِ الْهُلَّاكُ مِنْ اٰلِ هَاشِمٍ فَهُمْ عِنْدَهٗ فِيْ رَحْمَةٍ وَّفَوَاضِلٍ

په بنو هاشمو کې د کمزورې حالت والا خلک دده سره پناه اخلي نو دا خلک دده په وجه په نعمتونو او رحمتونو کې وي.

كَذَبْتُمْ وَبَيْتِ اللّٰهِ نُبْزٰى مُحَمَّدًا وَلَمَّا نُطَاعِنْ دُوْنَهٗ وَنُنَاضِلِ

په خانه کعبه قسم! تاسو دروغ وایئ چې محمد ﷺ به بې یار او مدد گاره پریږدو ترڅو چې مونږ دده په دفاع کې نیزه ویشتل او غشي ویشتل ونه کړو.

وَ نُسْلِمُهُ حَتّٰى نُصَرَّعَ حَوْلَهُ     وَنَذْهَلَ عَنْ اَبْنَائِنَا وَالْحَلَائِلِ

مونږ به دا په هغه وخت کې دشمن ته حواله کړو چې کله مونږ ټول دده نه ګير چاپيره ختم کړې او ځي او خپلې ښځې او بچې يې هير کړي.

وَ اَيَّدَهُ رَبُّ الْعِبَادِ بِنَصْرِهٖ     وَاَظْهَرَ دِيْنًا حَقُّهُ غَيْرُ زَائِلِ

الله تعالى په خپل نصرت او مدد سره دده تائيد کړی دی او ده داسې دين پيش کړی دی چې قابل د زوال او ختميدو نه دي.

فَوَ اللّٰهِ لَوْلَا اَنْ اَجِيْئَ بِسَبَّةٍ     تَجُرُّ عَلٰى اَشْيَاخِنَا فِي الْمَحَافِلِ

په الله قسم! که چيرته زما په وجه زما په نيکانو او بزرګانو باندې داسې بد نامي نه راتللی چې د هغې يادونه به په مجالسو کې کيدله.

لَكُنَّا اتَّبَعْنَاهُ عَلٰى كُلِّ حَالَةٍ     مِنَ الدَّهْرِ جِدًّا غَيْرَ قَوْلِ التَّهَازُلِ

نو مونږ به په هر حالت کې ټول عمر په ټوقو سره نه بلکې د زړه په صداقت سره دده متابعت کولی.

لَقَدْ عَلِمُوْا اَنَّ اِبْنَنَا لَا مُكَذَّبٌ     لَدَيْنَا وَلَا يَعْنِيْ بِقَوْلِ الْاَبَاطِلِ

قريشو ته ښه معلومه ده چې زمونږ د زړه ټوټه دروغ نه شي کيدی او نه اهل باطل د باطلو خبرو سره دده اراده کولی شي.

فَاَصْبَحَ فِيْنَا اَحْمَدُ فِيْ اَرُوْمَةٍ     يُقَصِّرُ عَنْهَا سَوْرَةُ الْمُتَطَاوِلِ

نو احمد مجتبى ته زمونږ په نزد داسې عزت او شرافت حاصل دی چې دده په وړاندې د غټو غټو خلکو د عزتونو ديوالونه ټيټ او لاندې دی.

حَدَبْتُ بِنَفْسِيْ دُوْنَهُ وَ حَمَيْتُهُ     وَدَافَعْتُ عَنْهُ بِالذُّرٰى وَالْكَلَاكِلِ

ما په ده باندې د خپل ځان قربانولو سره سره دده د حفاظت او ساتنې حق ادا کړو او ما دده د بچ کولو هر سامان د سينې د وړاندې کيخودو او دده دفاع مې وکړه.

خلاصه د خبرې دا ده چې د ايمان په تعريف کې هرقل او ابوطالب داخل شول، چې دواړو په زړه سره تصديق هم کړی وو او په ژبه يې اقرار هم کړی وو نو تعريف د غير د دخول نه مانع نه شو؟.

**جواب**: ددې اعتراض اول جواب خو هغه دی چې د ايمان د ټولو تعريفونو ته په غور سره د کتلو نه وروسته دغه اعتراض نه شي وارد کيدلی، ليکن چونکه شارحينو کړی دی لهذا د هغه جواب ورکړی شوی چې د تصديق قلبي او اقرار لساني سره اطاعت او انقياد لازمي دی، او د انقياد ظاهري طرف ته په پوره ته ذکر شوي تعريف کې اشاره هم موجوده ده، همدارنګه شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله د التزام شريعت عنوان غوره کړی دی، امام غزالي رحمه الله او امام رازي رحمه الله په بل عنوان سره د دغه مفهوم

تذکره کړې ده دوی ویلي دي چې د ایماندار جوړېدو دپاره قول القلب ضروري دی او د قول القلب نه د نه مراد شریعت او اطاعت دی.شیخ ابو طالب مکي هم د التزام شریعت عنوان غوره کړی، محقق ابن همام د استسلام قلبي او انقیاد باطني عنوان غوره کړی، کله چې د ایمان په تعریفاتو او د تصدیق قلبي په تشریحاتو کې د التزام شریعت او انقیاد ظاهري مفهوم پروت دی نو هرقل او ابوطالب د ایمان له تعریف نه ووتل، ځکه چې هرقل په صفا الفاظو سره ویلي وو چې که چېرته د روم خلک نه خفه کیدلی او د هغو د مخالفت ویره نه وی نو ما به د دین اسلام اطاعت او اتباع کړې وه،نو د حکومت د منځه تللو د وجې د ایمان لوی دولت یې پرېښی، هغه ویلي :**ابلغ صاحبک انه نبي ولکن لا اترک ملکي(مسند بزار)**.

همدارنګه ابوطالب په واضحو الفاظو کې د تصدیق او لساني اقرار سره سره د حق دین د اطاعت نه د انکار اعلان هم کړی وو :**لولا تعیرني قریش یقولون انما حمله علی ذلک الجزع لاقررت بها عینک (رواه مسلم کتاب الایمان)** یعنې که چېرته قریشو ما ته دا پیغور نه راکولو چې د اوږ نه وویرېده ایمان یې راوړ نو ما به دا حق دین قبول کړی وو او ستا سترګې به مې یخې کړې وې.چنانچه آخرنی اعلان د ابوطالب همدا وو او دا یې هم ویلي وو **(اختار النار علی العار)** لهذا د عدم اطاعت له وجهې هغه د ایمان په تعریف کې داخل نه دی.دویم جواب دا دی چې امام محمد رَحِمَهُ اللّٰهُ د ایمان په تعریف کې **(والتبری عن جمیع ماسواه)** فرمایلي دي، او د باطلو ادیانو نه د بیزارۍ اعلان نه هرقل کړی وو او نه ابوطالب کړی وو، بس په ژبه یې د اسلام دین ښه ګڼلو مګر د خپل مذهب نه یو قدم په شا نه شول نو دوی څنګه په اسلام کې راغلل؟ او په دوي باندې څنګه د اسلام تعریف صادق شو؟.شیعه ګان روافض ابوطالب ته ډېر غټ مسلمان وایي او د ده په نوم یې خپلې بارګاه مسمی کړې دي،لیکن دا یې د کوم تصدیق قلبي یا عدم تصدیق یا اقرار لساني یا عدم اقرار د وجهې نه دي ویلي بلکې دوي وایي چې ابوطالب د مولی علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ والد دی او د مولی علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ والد څنګه غیر مسلم کیدلی شي، دا نظریه غلطه ده، ځکه چې د بعضو انبیاء کرامو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ پلاران او اجداد او اولاد غیر مسلم دي نو د حضرت علي په حق کې څنګه مجال کیدی شي .

**۷ ذیقعده ۱۴۰۹ هـ**

**د ایمان په حقیقت کې مشهور مذاهب :د شرعي ایمان دوه جهتونه دي** : (۱) دنیوي جهت په کوم سره چې د ځان او مال ساتنه په هغه وخت کې کیدلی شي کله چې کوم انسان په هغه باندې په ژبه اقرار وکړي.(۲) اخروي جهت دا هغه دی چې د مرګ نه وروسته د عذاب او اور ته د داخلید و حفاظت ورباندې کیږي.د نیوي جهت دپاره اتفاقاً یوازې لساني اقرار کافي دی، او په اخروي جهت کې ټول شپږ مذهبونه دي، دوه مذهبه د اهل حقو او پنځه مذهبونه د اهل باطلو :

(۱) **د معتزلو مذهب**: په اهل باطلو کښې لومړی (اول) مذهب د معتزلو دی. د دوی په نزد د ایمان حقیقت داسې دی: **(الايمان هوالتصديق بالجنان والاقرار باللسان والعمل بالاركان)** يعنې په زړه سره تصديق كول. په ژبه اقرار كول او د اسلام په اعمالو او د اسلام په اركانو عمل كول دي. او د دوی په نزد **(ومن ارتكب الكبيرة فهو خارج عن الاسلام غير داخل في الكفر وعندهم منزلة بين المنزلتين في النار. كما في الايمان والكفر منزلة بين المنزلتين)**. يعنې معتزلو چې كوم تعريف كړى دى دا د دوی د عقيدې موافق دی، ځكه د دوی په نزد د كبيرې مرتكب له اسلام نه وتلى دى خو په كفر كښې داخل نه دی، همدارنګه د دوی په نزد په دوزخ كښې هم د درجاتو په مينځ كښې يوه درجه ده په كومه كښې چې به نه خالص كافر وي او نه به خالص مسلمان وي، بلكې همدا د كبيرې ارتكاب كوونكې به په كښې وي.

(۲) **د خوارجو مذهب**: د اهل باطلو نه دويم مذهب د خوارجو دی. د دوی په نزد د ایمان حقیقت دا دی: **الايمان هوالتصديق بالجنان والاقرار باللسان والعمل بالاركان ويخرج بالكبيرة من الاسلام ويدخل في الكفر فهو كافر**. دا دواړه مذهبونه باطل دي، ځكه چې صحابو، تابعينو، سلف صالحينو او د ټول اهل اسلام په دې باندې اتفاق دی چې د كوم كس په زړه كښې د مثقال ذره په اندازه او د مالوچ دانې برابر ایمان وي هغه به مخلد فی النار نه وي (يعنې هميشه به په اور كښې نه پاتې كيږي) او په دې باندې هم اتفاق دی چې د رسول الله ﷺ شفاعت د اهل كبائرو د پاره ثابت دی **(شفاعتي لاهل الكبائر)** همدارنګه د احديث **(يخرج من النار من كان في قلبه مثقال ذرة من الايمان)** همدارنګه په قرآن كريم كښې دي: ﴿**وَإِن طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا**﴾ دلته دواړو ډلو جګړه كوونكو ته مسلمانان ويل شوي، همدارنګه آيت دی: ﴿**يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِن رَّحْمَةِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا**﴾ همدارنګه د توبې كولو نور آيتونه او د حضرت ابو ذر غفاري رضي الله عنه وغيره احاديث هم دي **(وان زنى وان سرق)** په دې باندې دال دي چې د كبيرې د مرتكب ايمان ناقص دی. خو مخلد فی النار نه دی، بلكې د سزا د تيرولو نه وروسته به د دوزخ نه راووځي. نو دا د معتزلو او خوارجو له بدعاتو او واهياتو نه دي، چې معتزلو د مسلمان نه د مسلمان نوم اخستلی او خوارجو مسلمان د ايمان او مؤمن د خواړه نوم نه بهر ويستلی دی او كافر يې ترې جوړ كړی.

(۳) **د جهميو مذهب**: **(الايمان هو معرفة القلب فقط)** يعنې صرف د قلب (زړه) معرفت كافي دی. لساني اقرار او اركاني عمل ته هيڅ حاجت او ضرورت نشته دی. دا باطل مذهب د جهميو دی. دا د جهم بن صفوان د ډلې خلک دي، دا مذهب بالكل باطل دی. ځكه چې د اهل كتابو په باره كښې قرآن ويلي دي

:﴿ يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمْ ﴾ نو آيا داخلک مسلمان شول؟ همدارنګه هرقل ته د زړه معرفت حاصل وو، حالانکه هغه په کفر باندې مړ شوی دی، همدارنګه د ابو طالب حالت تاسو ته معلوم شوی دی نو آیا دوی یوازې (صرف) په حصول معرفت سره مسلمان شوي دي؟ د یهودو د نابهبود متعلق قرآن اعلان کړی :﴿ فَلَمَّا جَاءَهُم مَّا عَرَفُوا كَفَرُوا بِهِ فَلَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الْكَافِرِينَ ﴾

**(۴) د مرجئو مذهب**:د اهل باطلو نه څلورم مذهب د مرجئو دی، مرجئه وايي چې :**الايمان هو التصديق فقط ولاتضر مع الايمان معصية كما لاتنفع مع الكفر طاعة** يعني ايمان صرف د تصديق نوم دی. تعريف همدومره دی، اوس وړاندې د همدې تعريف په رڼا کې دوی ويلي دي چې د ايمان سره هيڅ معصيت او نافرماني نقصان نه شي رسولی، لکه څرنګه چې د کفر سره کوم طاعت هيڅ ګټه نه شي رسولی.دا مذهب هم باطل دی، ځکه چې د دخول جنت وعده د عمل صالح نه بغير په قرآن کې هيڅ چرته هم نه ده راغلې، بلکې له تصديق قلبي (آمَنُوا) سره د (آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ) لفظ په هر ځای کې لګول شوی دی، او د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو رضي الله عنهم زندګي د همدې مذهب نفې کوي، ځکه چې د دوی نه د مونځ او نورو اعمالو د ترک کيدو امکان هم نه وو، معلومه شوه چې جنت ته د داخليدو دپاره د اعمال صالحو پيدا کيدل ضروري دي.

**(۵) د کراميو مذهب** : د دوی په نزد د ايمان تعريف دا دی :**(الايمان اقرار باللسان فقط)**
دا تعريف هم غلط دی او دا مذهب هم باطل دی، ځکه چې قرآن منافقين بدترين کافران ګڼلي دي حالانکه هغوی په اقرار لساني کې کمی نه وو کړی.

﴿ وَمِنَ النَّاسِ مَن يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَا هُم بِمُؤْمِنِينَ ﴾ ﴿ إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ قَالُوا نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ اللَّهِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُ وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَكَاذِبُونَ ﴾
که چيرته صرف لساني اقرار کافي وی نو هيڅکله به هم الله تعالی دې خلکو ته کافر نه وو ويلي.
دا خلک د محمد بن کرام تابعداري کوونکي دي. د هغه دا شعر دی :

**الفقه فقه ابي حنيفة وحده ❁ والدين دين محمد بن كرام**

بعضو علماؤ ويلي دي چې دې خلکو د ﴿ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَىٰ ﴾ اقرار د ايمان دپاره کافي ګڼلو.

**(۶) د احنافو او د نورو مذهب** : د اهل باطلو د پنځو مذهبونو وروسته دوه مذهبه د اهل حقو دي، نو د مسلسل شمير په لحاظ سره شپږم مذهب په اهل حقو کې د احنافو، جمهورو متکلمينو، ابو منصور ماتريدي، ابوالحسن اشعري او د نورو دی، دوی وايي چې :**(الايمان هو التصديق بالجنان فقط)**

وړاندې د دې تعریف نتیجه او ثمره ده چې :(**والعمل بالارکان والاقرار باللسان شرطان لاشطران للایمان**) دا د ایمان دپاره دوه شرطونه دي، مګر د ایمان دپاره شطر یا جزء یا رکن نه دي، د همدې مذهب مطابق ایمان د تصدیق قلبي امر بسیط نوم دی.

**(۷) د شوافعو او د نورو مذهب** : په اهل حقو کې د جمهورو محدثینو شافعیانو مالکیانو او حنابلو په نزد د ایمان تعریف داسې دی :(**الایمان هو التصدیق بالجنان والاقرار باللسان والعمل بالارکان**) د دوی په نزد د همدې درې شیانو نه ایمان مرکب دی بسیط نه دی.همدا دواړه د اهل حقو ډلې دي د اهل السنت والجماعة نه دي، د دوی په مینځ کې اختلاف حقیقي نه دی، بلکې لفظي او ظاهري دی، د کوم چې مخکې تفصیل را روان دی، بهر حال د اهل حقو په مینځ کې دومره اختلاف خو یقیني دی چې احناف او جمهور متکلمین ایمان ته بسیط وایي، شوافع او جمهور محدثین ایمان د دریو څیزونو نه مرکب ګڼي.امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ د ایمان په مرکب کیدو باندې ډیر دلائل را جمع کړي دي.

**۸ ذیقعده ۱٤۰۹ هـ**

**ایمان بسیط دی او که مرکب؟ د طرفینو دلائل** :دلته په یوه مهمه خبره پوهیدل ضروري دي او هغه دا ده چې شوافعو او جمهورو محدثینو د ایمان چې کوم تعریف کړی دی دا بعینه هغه تعریف دی کوم چې معتزلوو او خوارجو کړی دی، لیکن دا صرف لفظي مشابهت دی ورنه په حقیقت کې یې ډیر غټ فرق شته دی، ځکه چې معتزله او خوراج ایمان د دریو داسې اجزاؤ نه مرکب ګڼي چې د یوه جزء په ماتولو سره ایمان د منځه ځي، او د دوی په نزد د عمل پرېښودونکی **مخلد في النار** دی، همدارنګه احنافو او متکلمینو چې د ایمان کوم تعریف کړی دی دا بعینه هغه تعریف دی کوم چې مرجئو کړی، خو دلته هم صرف لفظي مشابهت دی او په حقیقت کې یې ډیر غټ فرق دی، ځکه چې احنافو او متکلمینو اعمال ضروري ګڼلي او تارک اعمال یې فاسق ګڼلی دی، او د مرجئو په نزد عمل لره هیڅ حیثیت نشته ، بهر حال د تعریف د اشتراک د وجهې محدثین او شوافع د معتزلو سره برابر ګڼل ظلم دی، همدارنګه د ایمان په تعریف کې د اشتراک د وجهې احناف د مرجئو سره برابر ګڼل هم ظلم دی.بیا د امام صاحب طرف ته د ارجاء نسبت کول ډیره بې ځایه خبره ده او ډیره لویه ګستاخي ده، د ایمان په تعریف کې د لفظي اشتراک بنیاد جوړول او دومره لوی ظلم کول ډیره زیاته بې انصافي ده، که چیرته د معتزلو او خوارجو سره د ایمان په تعریف کې د اشتراک لفظي له وجهې شوافع او محدثین معتزله نه شي جوړیدی نو احناف ولې مرجئه جوړ کړی شي؟.بهر حال احنافو چې د ایمان کوم تعریف کړی دی هغه دا دی چې ایمان د تصدیق قلبي نوم دی، ددې دا نتیجه راووتله چې ایمان بسیط دی او احناف ایمان بسیط ګڼي، په دې باندې د دوی سره چې کوم دلائل دي هغه په لاندې طور دي :

(۱) ﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَانَتْ لَهُمْ جَنَّاتُ الْفِرْدَوْسِ نُزُلاً﴾ (الكهف، آيت: ۱۰۷).
په قرآن کريم کې ځاى په ځاى په ايمان باندې د عمل صالح عطف راغلى دى، او عطف تغاير غواړي نو ايمان يو شى دى او اعمال بل شى دى.

﴿أُوْلَئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الإِيمَانَ﴾ (المجادله ۲۲) ﴿وَلَمَّا يَدْخُلِ الإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ﴾ (الحجرات ۱۴).
﴿قَالُوا آمَنَّا بِأَفْوَاهِهِمْ وَلَمْ تُؤْمِن قُلُوبُهُمْ﴾ (المائده ۴۱). ﴿وَلَـكِن لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِي﴾ (البقره ۲۶۰).
﴿إِلاَّ مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالإِيمَانِ﴾ (النحل ۱۰۶).
په دې ټولو آيتونو کې زړه د ايمان محل ګرځول شوى او د ايمان نسبت د زړه طرف ته شوى. په زړه کې دننه خو صرف عقيده جازمه راتلى شي او هغه امر بسيط دى، هلته د ترکيب امکان نشته.

(۳) ﴿مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً﴾ (النحل ۹۷).
په دې آيت کې د عمل د قبليدو دپاره ايمان شرط ګرځول شوى دى. نو ايمان شرط دى او عمل مشروط دى او په شرط او مشروط کې مغايرت ضروري دى، نو ايمان د شرط په درجه کې يو شى دى او عمل د مشروط په درجه کې بل شى دى نو ايمان بسيط شو.

(۴) ايمان د کفر ضد دى او د کفر محل زړه دى نو د ايمان محل هم زړه شو (**وبضدها تتبين الاشياء**) کله چې محل زړه شو نو ايمان بسيط شو. (۵) د حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه مشهوره واقعه ده چې يو کس کلمه وويله حضرت اسامه رضي الله عنه هغه ووهلو او بيا يې وفرمايل: ده د ځان خلاصولو دپاره کلمه ويلې وه په زړه کې يې ايمان نه وو، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: (**فهلا شققت من قلبه**) معلومه شوه چې د ايمان محل زړه دى نو بسيط دى. (۶) د جبريل عليه السلام په حديث کې **ما الايمان**؟ په جواب کې د (**ان تؤمن بالله وملائكته**) ذکر وکړ، کوم چې تصديق قلبي دى. ځکه چې ايمان راوړل په الله باندې په فرښتو باندې په کتابونو باندې په رسولانو باندې ټول د تصديق قلبي له قبيلې نه دي.

(۷) کله به چې رسول الله صلى الله عليه وسلم چاته ويل (**امنوا**) نو هغه خلک به خپله پوهيدل چې د (**امنوا**) نه مراد په زړه سره منل دي. تصديق قلبي به يې ذهن ته راتلو. معلومه شوه چې تصديق قلبي د ايمان نوم دى او په زړه کې دننه چې څه کيږي هغه بسيط وي مرکب کيدى نه شي؟

**د شوافعو دلائل:** (۱) ﴿لَّيْسَ الْبِرَّ أَن تُوَلُّواْ وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَـكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَالْمَلآئِكَةِ وَالْكِتَابِ...﴾ الأية. په دې آيت کې ډير بابونه د البر د ايمان سره لګول شوي دي د کوم نه چې د ايمان د مرکب کيدو پته لګيږي.

(۲) **(الایمان بضع وسبعون شعبة فافضلها قول لا اله الا الله وأدناها اماطة الاذی عن الطریق والحیاء شعبة من الایمان)**. په دې حدیث کې هم د ایمان د څو شعبو ذکر شوی دی په کومو سره چې د ایمان د مرکب کیدو مدعی ثابتیږي.

(۳) **(بنی الاسلام علی خمس شهادة ان لا اله الا الله واقام الصلوة ...الخ)**. په دې حدیث کې هم ایمان د پنځو ارکانو نه مرکب ښودل شوی دی. معلومه شوه چې مرکب دی بسیط نه دی. ځکه چې په احادیثو کې ښه اعمال د ایمان سره داسې پیوند کړی شوي دي ګویا چې ټول یو شی دي. یعنې د ایمان ډیر اجزاء دي او ایمان د هغو نه مرکب دی، امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ د صحیح البخاري په **کتاب الایمان** کې په همدې قسم ډیرو آیتونو او احادیثو سره بار بار استدلال کړی دی.

**د بحث خلاصه**: د پورته ذکر شوي بحث او دلائلو نه وروسته د خلاصې په طور په دې پوه شئ چې د اهل باطلو د پنځو مذاهبو سره د اهل حقو د ایمان په تعریف، تفصیل او تحقیق کې اختلاف حقیقي او معنوي دی، په کوم چې داسې نتائج مرتب کیږي د کومو په مینځ کې چې ډیره غټه فاصله او ډیر لرې والی دی، او د اهل حقو په مینځ کې د ایمان په تعریف کې چې کوم اختلاف دی دا معنوي دی حقیقي نه دی. بلکې لفظي دی، د کوم مرجع چې یوه ده. یو څو وجوهات وګورئ :(۱) بس دومره یاد لرئ چې د اهل حقو اختلاف د ملاحظې او ماحول په اعتبار سره دی، یو خوا د معتزلو تشدد او تعدي او خروج عن الحق وکتل نو اعمال یې د ایمان نه جدا کړل د احنافو پشان، او نورو مرجئه ولیدل چې د اعمالو په باره کې یې د حد نه تجاوز کړی دی، د اعمالو مقام یې غورځولی دی نو شوافعو ایمان د اعمالو نه مرکب وګرځوه. (۲) د اهل حقو په مینځ کې د ایمان په تعریف کې اختلاف د جهاتو د اختلاف د وجهې دی، شوافعو او محدثینو د ایمان جهت کامل مکمل او اعلی جانب ته کتلي دي نو اعمال یې په هغه کې شامل کړي دي او مرکب ورته وایي، احنافو او متکلمینو د ایمان ادنی او اخیري درجې ته کتلي دي نو ایمان د اعمالو جدا ګڼي او د هغه د بسیط کیدو قول یې غوره کړی، یعنې د ایمان یې هغه درجه مراد کړې ده د کومې وروسته چې ایمان نشته.

(۳) یا په دې پوهه شئ چې د جمهورو محدثینو او شوافعو په نزد د ایمان دپاره اعمال په منزله د لازم ماهیت دي، د احنافو او متکلمینو په نزد اعمال د ایمان دپاره په منزله د لازم وجود دي، د معتزلو او خوارجو په نزد اعمال په منزله د لازم ذات دي.

(۴) یا داسې پوهه شئ چې مثلا نفس ایمان او نفس تصدیق په منزله د ذات انسان دی. او اعمال په منزله د اطرافو او اعضاؤ دي چې د اعضاؤ په نقص سره نقص راځي خو ذات په خپله په خپل ځای باندې موجود وي، یا د ونې او شاخونو مثال واخلئ چې د ونې یو ذات دی او نور یې شاخونه دي، ذات په خپل

ځای باندې قائم وي او شاخونه جدا دي.نو د انسان او ونې دپاره اعضاء او شاخونه اجزاء دي، لیکن دغه اجزاء تحسینیه تزیینیه تحلیه دي ترکیبیه نه دي.د اهل حقو په مینځ کې که چیرته دغه نزاع لفظي ونه منل شي نو بیا د هغې اجزاؤ نه د مرکب ایمان قائل محدثین او شوافع د کبیرې ارتکاب کوونکي ته د خوارجو په شان کافر ولې نه وایي او د معتزلو په شان هغه ته د اسلام نه وتلی ولې نه وایي؟.او که چیرته د احنافو او متکلمینو په نزد اعمال معتبر نه شي صرف تصدیق قلبي بسیط کافي شي نو بیا تارک اعمال ته هغوی حضرات فاسق ولې وایي؟ معلومه شوه چې دغه نزاع په اعتبار د جهاتو په اعتبار د اجزاء تحسینیه تحلیه او تزیینیؤ دی.حافظ ابن تیمیه رَحِمَهُ‌اللّٰهُ ویلي چې د احنافو او متکلمینو په دې نظریې سره د اعمالو اهمیت کم شوی، د دې جواب دا دی چې اعمال د ایمان جزء وګڼل شي نو د تصدیق قلبي اهمیت هم باطلیږي.

بیا اعتراض دا شو چې بیا خو د احنافو او متکلمینو په مذهب سره د مرجئو تایید کیږي، د دې جواب دا دی چې ستاسو په مذهب سره د معتزلو او خوارجو تایید کیږي، بهر حال دا ټوله نزاع لفظي ده، دواړه طرفونه د اعمالو قدر کوي، احناف په اعمالو کې زیات وړاندې دي، پس دواړو ډلو د خپلې خپلې زمانې خلک د حد نه د تجاوز کولو را منعه کړي دي د اصلاح او علاج په طور یې جدا جدا طریقې غوره کړې او رأیه یې ورکړې ده، د شوافعو او محدثینو په وړاندې د مرجئو منظر وو د احنافو او متکلمینو وړاندې د معتزلوو منظر وو.

**۹ ذیقعده ۱٤۰۹هـ**

**په ایمان کې د زیاتوالی او نقصان بحث**: محدثین حضرات، شوافع، معتزله او خوراج د ایمان د زیاتوالي او نقصان قائل دي، د ائمه احناف او د متکلمینو په دې کې اختلاف دی، امام رازي رَحِمَهُ‌اللّٰهُ فرمایي چې دغه اختلاف په اصل کې په تیر شوي اختلاف متفرع دی کوم اختلاف چې د دې حضراتو د ایمان په مرکب کیدو او بسیط کیدو کې کړی وو، پس کوم خلک چې ایمان بسیط ګڼي د دوی په نزد په بسیط امر کې زیاتوالی او نقصان نشته، ځکه چې بسیط حقیقي **(الذی ما لا جزء له اصلا)** ته ویل کیږي، او بسیط عرفي **(ما لا یرکب من الاجسام المختلفة)** نوم دی نو په دې کې د زیادت او نقصان امکان نشته، او کوم خلک چې ایمان مرکب من الاجزاء الثلاثة ګڼي دوی د زیاتوالي او نقصان قائل دي، لهذا دا اختلاف هم د مخکني اختلاف په شان لفظي دی حقیقي نه دی.د دې کلام خلاصه دا راووتله چې کوم محدثین حضرات او شوافع اعمال په ایمان کې داخل مني دوی ته داسې ویل په کار وو چې **(الایمان یزید وینقص)** ځکه دا ښکاره خبره ده چې په اعمالو کې کمی او زیاتوالی کیږي.او کومو حضراتو احنافو او متکلمینو چې ایمان ته صرف د تصدیق قلبي نوم ورکړی دی او اعمال د دې په مفهوم کې

داخل نه ګڼي دوی ته داسې ویل په کار وو چې (الايمان لايزيد ولاينقص) ځکه چې تصديق قلبي د اعتقاد جازم نوم دی، او دا امر بسیط دی، ددې وړاندې د تصدیق هیڅ درجه نشته نو ځکه په هغه کې د کمي او زیاتي امکان نشته، که چیرته د چا اعتقاد جازم د جزم له حد نه بنکته راغی نو هغه ایمان نه دی، ځکه چې له جزم نه بنکته ظن (شک) دی او د شریعت په اصطلاح کې شک ته ایمان نه شي ویل کیدی، معلومه شوه کومو حضراتو چې اعمال د ایمان جزء منلي د دوی فیصله دا وه چې په ایمان کې کمی او زیاتوالی کیږي، او کومو حضراتو چې اعمال د ایمان جدا ګرځولی ددوی فیصله دا وه چې په ایمان کې کمی او زیاتوالی نه کیږي. محدثینو او شوافعو حضراتو د ایمان په زیاتوالي او نقصان باندې د قرآن کریم په څو آیتونو استدلال کړی په کومو کې چې د زیات لفظ راغلی دی، امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ په خپل کتاب بخاري کې ددې قسم دلائلو انبار د کتاب الایمان په ابتداء کې لګولی دی، څو دلائل دي وکتل شي:

(۱) ﴿لِيَزْدَادُوا إِيمَانًا مَّعَ إِيمَانِهِمْ﴾ (فتح ٤).

(۲) ﴿وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ﴾ (انفال ۲).

(۳) ﴿وَيَزْدَادَ الَّذِينَ آمَنُوا إِيمَانًا وَلَا يَرْتَابَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ﴾ (مدثر ۳۱).

(۴) ﴿فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَزَادَتْهُمْ إِيمَانًا وَهُمْ يَسْتَبْشِرُونَ﴾ بقره ۱۲۴).

(۵) ﴿الَّذِينَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ إِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ إِيمَانًا وَقَالُوا حَسْبُنَا اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ﴾ (آل عمران ۱۷۳).

(۶) ﴿إِنَّهُمْ فِتْيَةٌ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَاهُمْ هُدًى﴾ (کهف ۱۳).

(۷) قال ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: (تعلمنا الايمان ثم تعلمنا القرآن فازددنا ايمانا).

(۸) وقال ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: (اللهم زدنا ايمانا ويقينا وفقها).

**محدثينو ته د احنافو او متكلمينو جواب**: (۱) شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ ویلي چې په کومو نصوصو کې چې د ایمان د زیادت او نقصان ذکر دی د هغوی نه مراد په حلاوت ایمان کې زیادت دی په نفس ایمان کې زیادت مراد نه دی، دا دواړه جدا جدا شیان دي یعنې په اجزاء تحسینیه تزیینیه او تحلیه کې زیادت مراد دی.

(۲) یو اجمالي ایمان دی او بل تفصیلي ایمان دی، اجمالي ایمان زیاتی او نقصان نه قبلوي، او تفصیلي ایمان زیاتی او نقصان قبلوي، امام ابو حنیفة رَحِمَهُ اللهُ د یو سوال کوونکي په جواب کې وویل:

(الايمان المجمل لايزيد ولاينقص واما المفصل فهو يزيد).

(۳) دا زیادت او نقصان د مؤمن به د وجې نه دی چې د وحې په ذریعې سره څومره مؤمن به چې زیاتیږي

هغومره ایمان هم زیاتیږي. په دوو آیتونو باندې د ایمان راوړلو نه وروسته چې په لسو آیتونو باندې مزید ایمان راوړل شي نو د همدې مؤمن به د وجهې ایمان زیاتیږي. (۴) د وحې د نزول په زمانه کې خو (یزید وینقص) کیدی شو لیکن د وحې د بندیدو نه وروسته اوس خو (لایزید ولاینقص) دی.

(۵) مشهور قول د امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ او یو قول د امام ابو حنیفة رَحِمَهُ اللّٰهُ دی چې الایمان یزید وینقص یعني د نصوصو او آیتونو خو د زیادت پته لګیږي، لهذا زیادت ثابت دی، لیکن د نقص او نقصان پته نه لګیږي لهذا نقصان نشته. (۶) دا زیادت او کمی د ایماني نور په اعتبار دی. د اصل ایمان په اعتبار نه دی، ګویا چې په نوراني اجزاؤ کې نقص او انبساط راتلی شي (تاریخ: ۱۰ ذیقعده ۱۴۰۹ هـ).

**۱۰ ذیقعده ۱۴۰۹هـ**

**په ایمان او اسلام کې د نسبت بحث**: کله چې د اسلام تعریف وکړی شي نو د هغه په نسبت سره ایمان په اسانی سره په ذهن کې راځي لهذا لومړی دې د اسلام تعریف وکړی شي:

(۱) **(الاسلام عبارة عن التسلیم والاستسلام بالاذعان والانقیاد)**.

(۲) ابن عربي رَحِمَهُ اللّٰهُ ویلي دي چې: **(الایمان اعتقاد والاسلام انقیاد والاحسان استشهاد)**.

(۳) میر سید سند ویلي دي: **(الاسلام هو الخضوع والانقیاد لما اخبر به النبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)**.

(۴) علامه زمخشري په تفسیر کشاف کې ویلي دي: **(ان کل ما یکون الاقرار باللسان من غیر مواطاة بالقلب فهو الاسلام وما واطا فیه القلب اللسان فهو ایمان)**. یعنې چیرته چې د زباني اقرار د موافقت د زړه نه بغیر وي نو هغه اسلام دی، او چیرته چې زړه او ژبه دواړه موافق وي هغه ایمان دی.

(۵) امام غزالي رَحِمَهُ اللّٰهُ ویلي چې حق دا ده چې شریعت ایمان او اسلام د ترادف په طور هم استعمال کړي دي، او د تباین او تغایر په طور یې هم استعمال کړي دي. او د تداخل په طور یې هم استعمال کړي دي، تفصیل وګوری:

**د ترادف مثالونه**: (۱) ﴿فَأَخْرَجْنَا مَن كَانَ فِيهَا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِينَ﴾ (ذاریات ۳۵-۳۶). د علماؤ په دې کې اتفاق دی چې هلته یوه کورنی وه کومه چې د حضرت لوط عَلَيْهِ السَّلَامُ وه هغې ته مؤمن او مسلم ویل شوي دي نو ترادف ثابت شو.

(۲) ﴿وَقَالَ مُوسَىٰ يَا قَوْمِ إِن كُنتُمْ آمَنتُم بِاللَّهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوا إِن كُنتُم مُّسْلِمِينَ﴾ (یونس ۸۴).

دلته هم یو قوم ته مؤمن او مسلمان ویل شوي دي نو ترادف ثابت شو.

**د تباین او د تضاد مثالونه**: (۱) ﴿ قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا وَلَٰكِن قُولُوا أَسْلَمْنَا وَلَمَّا يَدْخُلِ الْإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ ﴾ (حجرات ۱۴). په دې آیت کې د باندېچیانو ( کلي والو ) نه د تصدیق قلبي. اذعان او طمانیت نفي شوې ده کومه چې (امنا) او (لم تؤمنوا) په مفهوم کې وه.۲او اسـتـسـلام ظاهراً یې ژبې او اندامونو لره ثابت کړو د کوم نه چې تغایر تباین او تضاد واضح شوی دی.

(۲) په دې آیت کې د همدې تغایر او تضاد تایید د مسند احمد په دې مرفوع روایت سره هم شوی دی چې: (الاسلام علانية والايمان فى القلب).

(۳) په حدیث جبریل عَلَيْهِ السَّلَامُ سره هم د اسلام او ایمان تغایر او تباین معلومیږي. ځکه هلته چې کله د ایمان متعلق سوال وشو نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په (ان تؤمن ا بالله وملائكته وكتبه ورسوله) سره جواب ورکړو کوم چې ټول د تصدیق قلبي ماتحت راغلي دي. کوم چې اذعان دی او کله چې د اسلام متعلق سوال وکړی شو نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: (ان تشهد ان لا اله الا الله وتقيم الصلوة الخ) یعني په جواب کې ټول د تسلیم شیان راغلل چې دا وکړئ او دا وکړئ. معلومه شوه چې په اسلام او ایمان کې فرق شته. کله چې جدا سوال او جواب راغلل په کومو کې چې د تسلیم قولي او تسلیم فعلي دواړو ذکر راغلی دی.

(٤) وفي حديث سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ انه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعطى رجلا اعطاءً ولم يعط الآخر فقال سعد يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تركت فلانا لم تعطه وهو مؤمن فقال او مسلم په دې سره تباین او تغایر واضح شوی دی.

(۵) د علامه شاه انور شاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ خاص شاګرد محدث العصر مولانا یوسف بنوري رَحِمَهُ اللهُ یو فرق په درس بخاري کې بیان کړی دی کوم چې په حقیقت کې د حضرت شاه صاحب تحقیق وو د کوم حاصل چې دا دی چې د اسلام او ایمان مسافه یوه ده، صرف په مبتداء او منتهاء کې فرق دی. اسلام د ظاهر نه شروع کیږي او باطن ته رسیږي، او کامل ایمان د باطن نه شروع کیږي او ظاهر باندې راځي. که چیرته ایمان قوي وي نو فوراً په ظاهري اندامونو باندې د هغه ثمره ښکاره کیږي. خلاصه دا ده چې د ایمان سفر د باطن نه شروع کیږي او ظاهر ته ځي او د اسلام سفر د ظاهر نه شروع کیږي باطن ته ځي.

(٦) (الايمان والاسلام اذا اجتمعا افترقا واذا افترقا اجتمعا كالمسكين والفقير اذا اجتمعا افترقا واذا افترقا اجتمعا).

**په ایمان او اسلام کې تداخل**: په بعضې احادیثو کې په ایمان او اسلام کې تداخل ثابت شوی دی. لکه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه یو چاپوښتنه وکړه: اى الاعمال افضل؟ فقال: الاسلام. فقال: اى الاسلام

**افضل؟فقال: الایمان)** **(التعلیق الصبیح)**. د تداخل مطلب دا شو چې د اسلام نه مراد تسلیم بالقلب او عمل بالارکان دواړه واخستلی شي اودایمان نه فقط تسلیم بالقلب مرادواخستی شي.په ذکرشوي روایت کې داسلام په جواب کې ایمان راغلی یعنې تسلیم بالقلب،او اسلام په خپله د تسلیم قلبي اودعمل بالارکان نوم دی نو ایمان په اسلام کې داخل کړی شو کوم چې تداخل دی،اسلام عام شواو ایمان خاص شو

**په ایمان کې د استثناء حکم**: په ایمان کې د استثناء مطلب دا دی چې کوم کس ووایي :**انا مؤمن ان شاء الله**، داسې ویل روا دي او که ناروا دي په دې کې څو قولونه دي :(۱) حافظ ابن تیمیه رحمه الله ویلي چې سفیان ثوري رحمه الله سفیان بن عیینه رحمه الله،امام احمدبن حنبل رحمه الله او دکوفې اکثرو علماء کرامو او د ابن مسعود رضي الله عنه شاګرد ویلي چې د **انا مؤمن ان شاء الله** ویل روا دي، د یو شمیر احنافو هم همدا رأیه ده.(۲) امام اوزاعي رحمه الله ویلي دي چې د مختلفو اعتبارا تو په لحاظ کولو سره د **انا مؤمن ان شاء الله** حکم معلومول په کار دي، که چیرته کوم کس **(انا مؤمن ان شاء الله)** د فی الحال په اعتبار سره وایي نو داسې ویل نه دي په کار، ځکه چې دې کس ته حالا په خپل ایمان کې تردد دی، او که چیرته د مستقبل متعلق وایي چې ان شاء الله زه مؤمن یم یا یې د تبرک دپاره استعمالوي نو دا روا دي، بیا هم ددې نه پرهیز کول په کار دي، ځکه چې بعضې صورتونه خطرناک دي.

**د ایمان محل**: د شوافعو په نزد د ایمان محل زړه دی، ځکه چې په نصوصو کې د ایمان نسبت زړه ته شوی **(وقلبه مطمئن بالایمان)** د امام ابو حنیفة رحمه الله طرف ته منسوب دي چې د ایمان محل دماغ دي، د هدایې صاحب اشاره کړې ده چې د ایمان محل زړه دی او د دماغو خبره امام صاحب ته منسوبول صحیح نه دي، هو د قلبي رڼائي دپاره دماغ په منزله د ګروپ (بلب) دي.

**۱۱ ذیقعده ۱۴۰۹ھ**

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د جبریل علیه السلام حدیث

| |
|---|
| (۲) عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ |
| د حضرت عمر رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې مونږ یوه ورځ د نبي علیه السلام په مجلس کې ناست وو چې |
| إِذْ طَلَعَ عَلَيْنَا رَجُلٌ شَدِيْدُ بَيَاضِ الثِّيَابِ شَدِيْدُ سَوَادِ الشَّعْرِ |
| یو ناڅاپه یو کس د ننه راغی د کوم لباس چې نهایت سپین وو او ویښتان یې ډیر تک تور پړقیدونکي وو، |

لَا يُرَىٰ عَلَيْهِ أَثَرُ السَّفَرِ وَلَا يَعْرِفُهُ مِنَّا أَحَدٌ حَتّٰى جَلَسَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

پههغه باندې خو نه د سفر کومه نښه لیدل کیده او نه په مونږ کې چا هغه پیژند وهغه نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته نزدې راغی

فَأَسْنَدَ رُكْبَتَهُ إِلَى رُكْبَتَيْهِ وَ

او کیناست او د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د مبارکو زنګنونو سره یې خپل زنګنونه یو ځای کړل او د (آدب په طور) یې خپل

وَضَعَ كَفَّيْهِ عَلَى فَخِذَيْهِ وَ قَالَ يَا مُحَمَّدُ أَخْبِرْنِي عَنِ الْإِسْلَامِ

دواړه لاسونه په خپلو ورنونو باندې کینبودل بیا هغه عرض وکړو ای محمد ! ماته د اسلام حقیقت وښایه

قَالَ الْإِسْلَامُ أَنْ تَشْهَدَ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ

نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: د اسلام حقیقت دا دی چې تاسو ګواهي ورکړئ چې د الله نه بغیر بل هیڅ معبود نشته

وَ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ وَ تُقِيمَ الصَّلَاةَ وَ تُؤْتِيَ الزَّكَاةَ وَ تَصُومَ رَمَضَانَ

او محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله رسول دی بیا په پابندۍ سره مونځ اداء کړئ زکوة ورکړئ د رمضان روژې ونیسئ،

وَ تَحُجَّ الْبَيْتَ إِنِ اسْتَطَعْتَ إِلَيْهِ سَبِيلًا

او که چیرته تر بیت الله پورې د رسید و امکان وو او تو ښه د لارې موجود وه نو د بیت الله حج هم وکړئ،

قَالَ صَدَقْتَ فَعَجِبْنَا لَهُ

دې کس چې جواب واورید نو وې ویل: تا صحیح وویل، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې مونږ تعجب کې

يَسْأَلُهُ وَ يُصَدِّقُهُ قَالَ

شو چې دا کس یو طرف ته پوښتنه کوي او بیا یې د جواب تصدیق هم کوي، بیا هغه کس وویل: ای محمد !

فَأَخْبِرْنِي عَنِ الْإِيمَانِ قَالَ أَنْ تُؤْمِنَ بِاللهِ وَ مَلَائِكَتِهِ

د ایمان حقیقت بیان کړه؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: ایمان دا دی چې تاسو ایمان راوړئ په الله، د هغه په فرښتو،

وَ كُتُبِهِ وَ رُسُلِهِ وَ الْيَوْمِ الْآخِرِ وَ تُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ خَيْرِهِ وَ شَرِّهِ

د هغه په کتابونو د هغه په رسولانو او د قیامت په ورځ او یقین وکړئ په دې خبره چې خیر او شر د الله د فیصلې

قَالَ صَدَقْتَ قَالَ فَأَخْبِرْنِي عَنِ الْإِحْسَانِ

مطابق دي، هغه کس وویل تاسو سمه خبره وکړه، بیا یې پوښتنه وکړه چې: احسان څه شی دی؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام

قَالَ أَنْ تَعْبُدَ اللهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ

وفرمايل: احسان دا دی چې ته د الله عبادت په داسې طريقې وكړې لكه ته چې الله وينې كه ته الله تعالى نه

تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ قَالَ فَأَخْبِرْنِي عَنِ السَّاعَةِ

وينې نو تا الله تعالى وينې. بيا يې پوښتنه وكړه چې د قيامت په باره كې ما ته څه وښايه؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام

قَالَ مَا الْمَسْئُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ قَالَ

وفرمايل: په دې باره كې د جواب وركوونكي علم د سوال كوونكي د علم نه زيات نه دی، هغه كس وويل

فَأَخْبِرْنِي عَنْ أَمَارَاتِهَا قَالَ أَنْ تَلِدَ الْأَمَةُ رَبَّتَهَا

چې بنه نو بيا د قيامت نښانې (علامې) وښايه؟ نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل كله چې وينځه خپل آقا وزيږوي.

وَ أَنْ تَرَى الْحُفَاةَ الْعُرَاةَ الْعَالَةَ رِعَاءَ الشَّاءِ. يَتَطَاوَلُونَ فِي الْبُنْيَانِ

او لوڅ لغړ بدن، مفلس او فقير د گډو څروونكي په لوړو بلډنگونو كې په فخر او غرور سره ژوند كوونكي

قَالَ ثُمَّ انْطَلَقَ فَلَبِثْتُ مَلِيًّا ثُمَّ قَالَ لِي

ووينې (حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي) بيا هغه كس لاړو ما يو څه وخت توقف وكړ نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل:

يَا عُمَرُ أَتَدْرِي مَنِ السَّائِلُ قُلْتُ اللهُ وَ رَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ

عمره! سوال كوونكى دې وپيژندلو څوك وو؟ ما وويل: الله او د هغه رسول بنه پوهيږي، وې فرمايل:

فَإِنَّهُ جِبْرِيلُ أَتَاكُمْ يُعَلِّمُكُمْ دِينَكُمْ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]

دا جبريل وو كوم چې تاسو خلكو ته د دين ښودلو د پاره راغلى وو.

وَ رَوَاهُ أَبُو هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَعَ اخْتِلَافٍ ، وَ فِيهِ

ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم دا روايت د څه الفاظو په فرق سره روايت كړی د ده د روايت آخرني الفاظ داسې دي

وَ إِذَا رَأَيْتَ الْحُفَاةَ الْعُرَاةَ الصُّمَّ الْبُكْمَ مُلُوكَ الْأَرْضِ

چې تاسو خپيبله پښې، بربنډ بدن او گونگيان خلك په زمكه باندې حكومت كوونكي ووينئ او د قيامت

(١) اخرجه مسلم ج١/ص ٣٦ ، رقم (١)، كتاب الايمان ، باب معرفة الايمان والاسلام والقدر وعلامة الساعة ، وابو داود في السنن ج ٥/ص ٦٠ رقم (٤٦٩٥) ، وابن ماجه ج ١/ص ٢٤ ، واحمد في مسنده ج١ ٥١.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِي | خَمْسٍ | لَا | يَعْلَمُهُنَّ | إِلَّا | اللهُ | ثُمَّ |

دوخت تعین خودهغو پنځو شیانو نه دی د کوم علم چې د الله نه بغیر هیچا ته نشته دی. بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دا

قَرَأَ : ﴿ إِنَّ اللهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَ يُنَزِّلُ الْغَيْثَ ﴾ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

آیت کریمه تلاوت کړ : ﴿إِنَّ اللهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ إِنَّ اللهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ﴾ (لقمان ۳۴).

**توضیح** : دا یو جامع حدیث دی، دا حدیث په ټولو ظاهري او باطني عباداتو او داسې احکامو باندې مشتمل دی کوم چې د ایمان، اعمالو، اندامونو او اخلاص سره متعلق دي. تردې چې د شریعت ټول علوم د دې طرف ته راجع دي او ټول د دې نه ټوټه ټوټه خواره شوي دي، او د همدې جامعیت د وجې نه علامه قرطبي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې (**یصلح ان یقال له ام السنة**) یعنې لکه څرنګه چې سورت فاتحه د قرآن دپاره ام القرآن دی دا حدیث د ټولو احادیثو دپاره ام السنة دی. علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې همدا وجه ده چې امام بغوي رَحِمَهُ اللهُ د خپل کتاب مصابیح او د شرح السنة شروع په همدې حدیث سره کړې ده، د دې حدیث متعلق په تیر شوي بحث کې هم څو خبرې لیکل شوې دي، هلته دې وکتل شي.

**بینما** : دا لفظ مفرد دی او د ظرفیت دپاره راغلی او د جملې اسمیه او فعلیه دواړو طرف ته مضاف دی. اذ او **بینما** دواړه د ظرف زمان د مفاجاة په معنی راځي، او همدا د مفاجاة معنی د هغه ظرف عامل جوړیږي د حدیث معنی داشوه: (**وقت حضورنا في مجلس رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فاجانا طلوع هذا الرجل**).

په ترجمه کولو کې د **بینما** ترجمه داسې ده، په دې وخت کې یا په دې مینځ کې یا په دې دوران کې.

**ذات یوم** : د **ذات** لفظ زیات کړی شوی دی، دا د هغه وهم د لرې کولو دپاره دی چې د لته مجازاً مطلق زمانه مراد نه ده، بلکې هغه ورځ مراد ده، همدارنګه د **ذات** لفظ د کلام د ښایسته کولو دپاره هم راوړل کیږي. بعضو دا مقحم یعنې زائد ګرځولی دی.

**نحن عند رسول الله** : په یو روایت کې د **في آخر عمره** لفظ راغلی، بعضو د حجة الوداع نه وروسته په لسم هجري کې د حضرت جبریل عَلَيْهِ السَّلَامُ د دې راتګ وخت ښودلی دی. لکه چې جبریل عَلَيْهِ السَّلَامُ د ټولو احکامو د نازلیدو نه وروسته د دین د امورو د تثبیت او مضبوطتیا دپاره راغلی وو او اجمالي نقشه یې په یوه مجلس کې وړاندې کړه. د بخاري په روایت کې دي: **کان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یوما بارزًا للناس** د ابوداؤد په روایت کې دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په یوه ښکاره ځای باندې تشریف فرما وو، ځکه

د کيناستو دپاره يوه چې صحابه کرامو رضي الله عنهم د ده صلى الله عليه وسلم په اجازه باندې د ده صلى الله عليه وسلم چوتره جوړه کړې وه ترڅو چې امتياز راشي، په همدې روايت سره قرطبي د علماء کرامو استاذانو او مدرسينو دپاره د يوه ښکاره (ځانته) ځای پر جوړولو باندې استدلال کړی دی، په دې شرط چې ضرورت وي، د دې حديث شان ورود دا دی چې چونکه قرآن کريم په سوال کولو پابندي لګولې وه کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: سلوني فهابوا ان يسالوه فجاء جبريل يعني رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل زمانه پوښتنه وکړئ نو صحابه کرام د سوال کولو نه وويريدل بيا جبرئيل راغی او پوښتنه يې وکړه.

**اذ طلع علينا رجل**: د دخل په ځای د **طلع** لفظ استعمال شوی دی، د دې يوه وجه دا وه چې راتلونکی يو کس يو ناڅاپه راغلی وو او د يو ناڅاپه راتلو دپاره **طلع** زيات مناسب وو، ځکه چې د شي طلوع يو ناڅاپه وي. يا د **طلع** لفظ د کمال ظهور، کمال عظمت او لوړې مرتبې دپاره غوره کړی شوی لکه **طلع البدر علينا يا طلع الشمس** الفاظ د عظمت دپاره ويل شوي دي. دريمه وجه علماو دا ليکلې چې دا کس چونکه جبريل امين وو او فرښتې نوراني مخلوق دی د همدې نور او رڼائي دپاره د **طلع** لفظ ډير مناسب وو په (**رجل**) کې تنوين د تعظيم دپاره دی، يعنې يو شان لرونکی انسان ښکاره شو، فرښته هميشه کله چې کوم شکل د ځان دپاره جوړوي نو د سړيو په شکل کې راځي، د ښځو په شکل کې نه راځي.

**شديد بياض الثياب**: دلته اضافت لفظيه د تخفيف دپاره دی او په مضاف اليه کې **الف لام** عوض د مضاف اليه دی، يعنې **شديد بياض ثوبه** او که چيرته په **شديد** مضاف باندې راوړل شي نو **بياض** د هغه فاعل جوړيږي، يعنې **شديد بياض ثوبه**. د سپين لباس په غوره کولو کې اشاره وشوه چې د ټولو ښه لباس سپين دی، په يو حديث کې هم وارد دي، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي: **البسوا ثياب البيض فانها اطهر واطيب وكفنوا فيها موتاكم** او د سپين لباس په غوره کولو سره خفګان له منځه ځي نو ځکه هغه دې غوره کړی شي، د همدې جملې تشريح په راتلونکې **شديد سواد الشعر** جمله کې هم راځي.

د همدې دواړو جملو په يو ځای کولو سره د علم دين طالبانو دپاره ځو مفيد آداب تر لاسه کيدی شي، لهذا د علم دين د حاصلولو دپاره اول آدب دا دی چې طالب العلم بايد صاف ستره وي اګر که جامې يې زړې وي نو بايد چې پاکې صفا وي، دويم آدب دا دی چې د علم دين د حصول زمانه هغه د ځوانۍ زمانه ده چې په هغې کې د هر تکليف برداشت کول هم آسان وي، ذهن قوه حافظه او نورې قوې هم تر او تازه وي.

**ولا يعرفه منا احد**: دلته سوال دا دی چې حضرت عمر رضي الله عنه څنګه وويل چې په مونږ کې هيڅ هغه نه

پیژندلو، ممکنه ده چې په ټول مجلس کې به یو پیژندونکی وو؟ جواب دا دی چې دا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل ځان په ګمان د ټولو د طرفه دا نسبت کړی، یا دا چې د مجلس د حاضرینو د قول او تصریح مطابق یې داسې وویل، ځکه دا قول د ابن حجر عثمان بن غیاث په روایت کې نشته.

**فنظر القوم بعضهم الى بعض فقالوا ما نعرفه حتى جلس الى النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**: په دې روایت کې څه اجمال دی، په مسند امام اعظم کې چې له ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه کوم روایت منقول دی هغه همداسې دی: **عن ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ الى ان قال السلام علیک یا رسول الله فقال وعلیک السلام فقال یا رسول الله أَدْنُ فقال أُدْنُ قال فدنا حتى جلس .... الخ**. **جلوس** او **قعود** مترادف الفاظ دي او د ناستې په معنی دي.

**فأسند ركبتيها الى رُكبتيهِ**: سوال دا دی چې په دې طور کیناستو کې د بې ادبی ګمان دی داسې ولې وشول؟. د دې څو جوابونه دي: (۱) د علم په طلب کې د خپل سخت ضرورت او حاجت ښکاره کولو دپاره یې داسې وکړل. (۲) خپل ځان ته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د توجه راګرځولو دپاره یې داسې وکړل. (۳) خپل ځان ته د خلکو د توجو طلب کولو دپاره یې داسې وکړل. (۴) د خپل هیئت او حیثیت پټولو دپاره یې داسې وکړل چې څوک یې ونه پیژني.

**ووضع کفیه علی فخذیه**: د کفیه ضمیر د هغه سوال کوونکي جبریل طرف ته راجع دی، دا د طالب العلم په ادب سره د کیناستو انداز دی چې په دواړو زنګنونو د قعدې په شکل کیني او دواړه لاسونه په خپلو ورنونو باندې کیږدي لکه چې دا هر متعلم ته د ادب درس دی.

**فخذیه**: د دې ضمیر که چیرته د سوال کوونکي طرف ته راجع دی نو په دې کې د کمال ادب طرف ته اشاره ده، لکه څرنګه چې پورته کرخو کې ولیکل شول، لیکن د امام بغوي رَحِمَهُ اللهُ طیبي رَحِمَهُ اللهُ او اسماعیل تیمي رَحِمَهُ اللهُ او د نورو په نزد دا ضمیر رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راجع دی چې همدې سوال کوونکي خپل دواړه لاسونه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زنګنونو باندې کیښودل، د همدې علماء کرامو د همدې رأیې تایید د نسائي په روایت سره کیدی شي، ځکه چې په هغه کې تصریح ده چې: (**ثم وضع یدیه علی رکبتي النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**) د دې تصریح نه وروسته په دې کې بحث کول نه دي په کار چې دا ضمیر د چا طرف ته راجع دی. البته دلته بیا هغه پوښتنه راپورته کیدی شي چې آیا دا صورت د بې ادبۍ نه دی؟ د دې هماغه جوابونه دي کوم چې مخکې تیر شول، چې په دې سره یې د ځان پټول غوښتل ترڅو ملائک. او فرښته والی پټ شي، یا یې د توجه طلب کول غوښتل. ملا علی قاري رَحِمَهُ اللهُ دا په مجاز باندې حمل کړی چې د دې نه مراد کمال قرب دی، لیکن د مجاز اخیستو ته ضرورت څه دی؟

حقیقت موجود دی، د جبریل امین په راتلو او خبرو کولو سوال او جواب باندې علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللَّهُ، علامه شبیر احمد عثماني رَحِمَهُ اللَّهُ او نورو شارحینو چې کوم کلام کړی دی د هغه خلاصه دا ده: د حضرت جبریل امین پټ حال د خلکو په هرې طریقې سره په حیرانتیا کې اچول وو. کله به یې د تهذیب لرونکو خلکو طرز غوره کولو چې دا مهذب، با وقار او د تعلیم د آدابو نه باخبره دی. او کله به یې داسې صورت غوره کولو چې د مجلس د آدابو نه د ناخبری د وجې نه به د باندې چې او کلیوال ګومان پرې کیدلو. کله به یې خپل لاسونه په خپلو ورنونو باندې کیښودل په مهذب انداز کې به کیناستلو. او کله به یې د کلیوالو خلکو په شان نه زنګنونو سره زنګنونه لګول او د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ورنونو به یې لاسونه کیښودل. کله به یې یا رسول الله ویل د تهذیب رنګ به یې غوره کولو. او کله به یې یا محمد و[illegible] د ناخبرۍ په [illegible] کوله، کله به یې د سلام په اچولو سره مجلس ته د راتلو اجازه غوښتله او کله کله به د کلیوالو په شان یو نڅ په راتلو. په بدن او لباس باندې یې د سفر اثار نه معلومیدو د وجهې په نتیجه معلومیده. او دا چې هیچا به نه پیژندلو دا یې د مسافر والي دلیل دی، عجیبه دا ده جبریل امین به د پټیدو ټولې طریقې خپلولې خلک به یې په فکر کې اچول تردې چې په خپله رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تر آخر وخت پورې نه پیژندو او د تلو نه وروسته به معلومه شوه چې دا جبریل امین وو.

**۱۲ ذیقعده ۱۴۰۹ هـ**

**وقال یا محمد**: سوال دا دی چې قرآن کریم په دې طور د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مخاطب کولو نه منعه راغلې ده لکه چې ارشاد دی: ﴿لَا تَجْعَلُوا دُعَاءَ الرَّسُولِ بَيْنَكُمْ كَدُعَاءِ بَعْضِكُم بَعْضًا﴾.

د دې باوجود جبریل امین رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په **یا محمد** سره ولې خطاب وکړو؟ همدارنګه د قرآني ممانعت سره سره په همدې طور خطاب کې بې آدبي هم ده.

**لومړی جواب**: دا دی چې د داسې خطاب او ممانعت مکلف او پابند انسان دی فرښتې نه دي، دا به جواب دی، ځکه څو ځایه جبریل امین رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په همدې نوم سره یاد کړی.

**دویم جواب**: دا دی چې د محمد لفظ نه وصفي معنی په معنی د ستائل شوي مراد اخستل شوي، علمي معنی مراد نه ده. **دریم جواب**: دا دی چې جبریل امین خپل ځان پټ کړی وو د همدې دپاره یې داسې ورته ویلي وو. بهر حال کله چې شارحینو په دې کې د بې ادبۍ احتمال پیدا کړی وو نو اوس په (**یا محمد**) آواز کول ورته حرام دي. یوه بریلوي عالم د مشکوة یوه شرح لیکلې په دې ځای کې یې لیکلي دي: اوس رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په (**یا محمد**) سره آواز کول حرام دي.

**اخبرني عن الاسلام**: دلته امر د استدعا په معنی سره دی. د استعلاء او حکم په معنی سره نه دی،

ځکه چې انبياء کرام عَلَيْهِمُ السَّلَامُ د فرښتو نه بهتر دي.

**الاسلام هو الانقياد الظاهر بشرط الانقياد الباطن** : په الاسلام کې الف لام د حقيقت شرعيه دپاره دی، او په يوه روايت کې د شرائع الاسلام الفاظ هم شته، په همدې وجهې د هغه جواب په ارکان خمسو سره ورکړی شوی، يوازې تعريف نه دی ښودل شوی. په دغه ځای کې سوال دادی چې مسلم، کتاب حميدي، جامع اصول، رياض الصالحين او په مشکوة کې د اسلام سره متعلق سوال او جواب مخکې راوړل شوي، په بخاري او مصابيح کې د ايمان سوال او جواب مخکې راوړل شوي؟.

د دې جواب دا دی چې دلته د مقام غوښتنه دا وه چې اسلام مخکې وی، ځکه چې جبريل امين د زده کړې او تعليم دپاره سوال کړی او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ظاهري طور جواب ورکړی، ځکه چې ده په تدريجي حکمت په اصولو باندې جواب ورکړی وو، په همدې وجې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مهم مخکې کړ او وې فرمايل، لهذا دلته په ظاهري انقياد سره تدريجاً د ترقی دپاره رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ايمان ذکر وکړ بيا يې له هغه ترقي وکړه د احسان ذکر يې وکړه کوم چې د اخلاص مقام دی، لکه چې دادانی نه داعلی طرف ته د ترقی يو صورت وو، که نه نو ايمان خو د دين اساس او د اسلام اساس (بنياد) دی هغه د ټولو نه مخکې دی. بهر حال صاحب مشکوة په صاحب مصابيح باندې عملا اعتراض کړی چې دا سم کول په کار وو چې اول سوال او جواب د اسلام وشي، ياجواب دا چې دا تقديم او تاخير د بعضو رواتو د طرف نه تصرف دی، او د مختلفو طريقو غوره کول د محدثينو عام عادت دی، چيرته چې ايمان مخکې دی نو ښکاره ده چې هغه د دين دپاره اساس او بنياد دی د هغه نه بغير هيڅ عمل لره اعتبار نشته.

**ان تشهد** : دلته (**أن**) مصدريه دی کوم چې د **تشهد** نه **شهادة** مصدر جوړ کړی، په ان لا اله الا الله کې **أن** مخفف من المثقل دی، کوم چې د (اله) په معنی سره دی او ضمير شان دی او **لا اله الا الله** د توحيد کلمه ده، (**والتوحيد في اللغة وحدانية الشيء . واصطلاحا : اثبات ذات الله بالوحدانية**) چې الله تعالی د هر قسم مشابهت نه پاک دی، عقيدةً قولاً عملاً عرفًا ثبوتًا او دوامًا.

د توحيد سره متعلق امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ ويلي (**للتوحيد لبان وقشران کالجوز ... الخ**) يعنې د توحيد دپاره دوه پوستکي دي او دوه مغزه دي لکه د بادام په شان، **اقرار باللسان** د توحيد دپاره پورتنی پوستکی دی او **اعتقاد بالجنان** دويم پوستکی دی، لکه څرنګه چې د بادام په مغز باندې يو پوستکی دی او ددې پوستکي د پاسه بل پوستکی دی او د مغز د پاسه هم يو پوستکی دی بيا شونده، د توحيد شونده دا ده چې انسان د کائناتو ټول شيان د يوه الله تخليق ومني او په دې پوهه شي چې د ټولو رابطه د الله سره ده کوم چې د ټولو فاعل مختار دی، او بيا ټول اسباب د هغه له مسبباتو سره پيوسته ومني،

ددې نه وروسته لب اللب دی او هغه دا دی چې د انسان نظر په کائناتو کې صرف په یو الله وي، بل هیڅ شی په نظر ورنه شي، او د هغه واحد لاشریک ذات په مراقبه کې مستغرق شي، نو قشر او قشر القشر لب او لب اللب دا څلور شیان په توحید کې دي.

**ان استطعت اليه سبيلا:** د امام شافعي رحمه الله په نزد د استطاعت نوم مال دی، لهذا په معذور او ناروغ باندې هم حج فرض دی کله چې هغه مالدار وي، هغه دې خپل نائب ته روپۍ ورکړي حج دې وکړي، د امام مالک رحمه الله په نزد (**استطاعة بالبدن**) دی چې انسان صحتمند او تندرست وي نو په هغه باندې حج فرض دی، د احنافو په نزد د زاد او راحلې لرل استطاعت دی. اوس سوال دا دی چې په بعضو روایتونو کې د حج ذکر نشته. په بعضو کې د روژې ذکر نشته د حج شته دی، بعضې په ترتیب کې مخکې وروسته دي؟ نو جواب دا دی چې دا د راویانو د تصرفاتو نه دي، چې چا څه ذکر کړي او چا څه ذکر کړي، چاته یو رنګه یاد وو او چاته بل رنګه یاد وو په هغه کې تقدیم او تاخیر هم شوی دی.

**قال صدقت فعجبنا له:** یعنې صحابه کرامو رضي الله عنهم ته په دې باندې تعجب پیدا شو.
(۱) دې کس ځان نه سوال کونکی جوړ کړو او د خپلې بې علمۍ اظهار یې وکړو او بیا په تصدیق کولو سره د خپل علم اظهار کوي. (۲) د صحابه کرامو رضي الله عنهم د تعجب دویمه وجه علامه قرطبي رحمه الله دا بیان کړې ده چې صحابه پوهیدلي وو چې د علم منبع او چینه د رسول الله صلى الله عليه وسلم بابرکته ذات دی، د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د آوریدو نه بغیر هیڅوک په هغه علم نه پوهیږي، دا سوال کوونکی کله هم د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره یو ځای شوی نه دی نو دا څنګه تصدیق کوي، ځکه چې د تصدیق دپاره مخکې علم لرل ضروري دي.

**قال فاخبرني عن الايمان:** دلته هم امر د استدعاء په معنی سره دی، رسول الله صلى الله عليه وسلم ته معلومه شوه چې سوال د مؤمن به او د ایمان د متعلقاتو نه دی، د حقیقت د ایمان اؤ د تعریف نه نه دی د همدې وجهې رسول الله صلى الله عليه وسلم په جواب کې د همدې مؤمن به امورو ذکر وکړ که نه نو حقیقي ایمان خو تصدیق قلبي دی، اوس دلته اشکال دا دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم چې د (**اخبرني عن الايمان**) په جواب کې (**ان تؤمن**) وویله، نو دا خو **تعريف الشئ بنفسه** شو، جواب دا دی چې په سوال کې د شرعي ایمان ذکر دی او په جواب کې د لغوي ایمان ذکر دی نو حد او محدود جدا جدا دي، همدارنګه کله چې ایمان په جواب کې راغی نو د هغه په صله کې باء راغله او ایمان د همدې صلې د وجې د (**تعترف**) په معنی سره شو، یعنې سوال کوونکي پوښتنه وکړه چې شرعي ایمان څه دی؟ جواب ورکړی شو په الله او د هغه په رسول، ملائکو ..... د اقرار نوم ایمان دی.

**وملائكته**: دا په اصل کې د **مألكة من الالوكة** نه په معنی **الرسالة** مشتق دی، بیا په همزه باندې لام مقدم کړی شو نو **مَلْئَكَة** شو، بیا د همزې فتحه لام ته ورکړی شوه او همزه حذف کړی شوه نو (**ملک**) پاتې شو د کوم جمع چې (**ملائكة**) ده، د امام بیهقي رَحِمَهُ اللهُ د تصریح مطابق د فرښتو سره متعلق دا عقیده لرل په کار دي :(۱) چې دا عقیده وي چې هغه موجودې دي، او د الله تعالی عظیم مخلوق دی.
(۲) الله تعالی په عظیمه مرتبه مشرف کړي دي او هغه یې د عالم بالا او عالم سفلی په غټو کارونو باندې ماموري کړې دي (۳) چې دا عقیده وي چې ﴿لَا يَعْصُونَ اللَّهَ مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ﴾.
(۴) چې دا عقیده وي چې ځینې فرښتې د الله د طرفه د انبیاؤ طرف ته سفیرانې دي، بعضې په نورو کارونو کې دي، د فرښتو په باره کې نیچري او د سر سید تابعدارو ډیر زیاتی کړی دی چې کوم شیان په نظر نه راځي له هغو نه انکار کوي، د همدې وجهې دوی د فرښتو او پیریانو نه انکار کړی دی، سره ددې چې زمونږ په بدن کې ډیر شیان دي مثلا اوسپنه ده، شوګر دی، چونه او نور دي کوم چې نه لیدل کیږي مګر هیڅوک ترې انکار نه کوي، د ماچس په ډکي کې اور کله لیدل کیږي، په ښیدو کې کوچ کله لیدل کیږي، مګر هیڅوک ترې انکار نه کوي نو صرف له فرښتو بیا ولې انکار کوي؟.
که چیرته دا کومه شرعي ضابطه وي چې کوم څه نه لیدل کیږي د هغو دې انکار وکړی شي بیا خو الله تعالی هم نه لیدل کیږي، همدا وجه ده چې د سر سید زیاتره تابعدار دهریه جوړ شوي دي، د فرښتو شمیر صرف الله تعالی ته معلوم دی، په فرښتو باندې په اجمال او تفصیل سره ایمان راوړل دي، دلته فرښتې په رسولانو باندې مخکې کړی شوې دي دا تقدیم د فضیلت په اعتبار سره نه دی، بلکې تقدیم ذکري دی نه رتبي، همدارنګه فرښتې د وجود په اعتبار سره مقدمې دي نو ځکه مخکې ذکر کړی شوې.

**وكتبه**: ټول صحائف او کتابونه مراد دي، په هغو باندې ایمان دا دی چې د الله کلام دی د حروفو او صوت نه مجرد دی.دا کتابونه په انبیاء کرامو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ باندې د فرښتو په واسطه یا براه راست نازل شوي دي او قرآن کریم د ټولو بهتر دی کوم چې په عربي ژبه کې په محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې نازل شوی دی، د قرآن د راتلو نه وروسته ټول مخکني آسماني کتابونه منسوخ شوي دي قرآن کریم د هغو دپاره ناسخ دی.ټول آسماني کتابونه سل بنودل شوي، او څلور مشهور کتابونه دي، دا کتابونه او صحائف ټول یو سل څلور دي، پنځوس صحیفې په حضرت شیث عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې نازلې شوې، دیرش په حضرت ادریس عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې، او لس د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ طرف ته لیږل شوې، لس په حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ نازلې شوې دي، او باقي څلور کتابونه په مشهورو ژبو کې په مشهورو نبیانو باندې نازل شوي دي، په همدې حروفو د ټولو طرف ته اشاره ده.

**نعم**: یعنې تورات په عبراني په ژبه کې په حضرت موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې نازل شوی، په ټا سره تورات

ته په (عین) سره عبراني ته او په (میم) سره د موسی علیه السلام طرف ته اشاره ده.

**فعم**: یعنې فرقان مجید په محمد صلی الله علیه وسلم باندې نازل شوی.

**اسع**: یعنې انجیل په سریانی ژبه کې په حضرت عیسی علیه السلام باندې نازل شوی دی.

**زید**: یعنې زبور په یونانی ژبه کې په داؤد علیه السلام باندې نازل شوی دی، د اجمال یا تفصیل سره په دې ټولو کتابونو او صحائفو باندې ایمان راوړل ضروري دي.

**ورسله**: په رسولانو باندې اجمالا یا تفصیلا ایمان راوړل دي چې الله تعالی د خلکو د هدایت دپاره نبیان رالیږلي دي، دوی د خالق او مخلوق په مینځ کې د پیغام په رسولو باندې مامور وو، دوی ته معجزې ورکړی شوې وې، دوی د کبائرو نه قبل النبوة پاک او معصوم وو، او د کومو لغزشونو ذکر چې قرآن کریم کړی مونږ ته په کار نه دي چې هغه د موضوع بحث جوړ کړو، الله تعالی خالق دی هغه که چیرته په معمولي لغزش باندې سخت تهدید وکړي نو کولی یې شي. انبیاء کرام علیهم السلام د یوه معتمد روایت مطابق یو لک څلریشت زره دي، په کومو کې چې دری سوه دیارلس(۳۱۳) رسولان دي، د کم او زیات کلمې په ذکر کولو سره د انبیاء کرامو علیهم السلام د شمیر (تعداد) ذکر کول په کار دي ترڅو چې په کلام کې احتیاط وکړی شي. د نبي او رسول فرق او اصطلاحي تعریف د کتاب په ابتداء کې شوی دی.

**الیوم الآخر**: نه مراد د قیامت ورځ ده، ځکه چې هغه د دنیا اخیرنی ورځ ده، همدارنګه د دې ورځې نه وروسته د همیشه دپاره شپه ختمیږي، نو هغه اخیرنی ورځ شوه، په آخرت باندې ایمان دا دی چې یوه ورځ به د عالم دغه کارخانه ختمیږي او د انسان بدن به د روح سره د میدان محشر ته د حساب دپاره راوستل کیږي بیا به یې جنت یا دوزخ د اوسیدو ځای جوړیږي.

**وتؤمن بالقدر خیره وشره**: په دې جملې سره په هغو خلکو باندې رد شوی دی کوم چې د تقدیر منونکي نه دي، لیکن د شر خالق (اهرمن) او د خیر خالق (یزدان) ګڼي کومه چې د مجوسیانو عقیده ده، د مؤمن عقیده داسې په کار ده چې د شر او خیر خالق صرف یو الله دی، خلق(پیدا ایښت) خو کمال دی، هو! د شر کسب کوم چې انسان کوي هغه عیب دی او دا عقیده وساتي چې کوم تفصیلات په خارج کې راځي د هغو یوه اجمالي نقشه ده، د همدې نقشې مطابق ټول تفصیلات ښکاره کیږي، د همدې مسئلې تفصیل په باب الایمان بالقدر کې ان شاء الله را روان دی. دلته یې تؤمن بیا دوباره ذکر کړو د بُعد عهد نه پس اعادې طرف ته یې اشاره وکړه یعنې چې کله خبره اوږده شي نو عامل بیا ذکر کولای شي او د کلام شروع کولی شي لکه یو شاعر د بُعد عهد نه پس اعادې ته الی استعمال کړی دی:

**قد علم الحي اليماليين الني ۞ اذا قلت اما بعد اني خطيبها**

**قال فاخبرني عن الاحسان** : د صلې نه بغير كله چې د احسان لفظ راشي نو د هغه مفهوم اخلاص وي يعني د اخلاص په معنی کې دی، او که د صله سره راشي نو بيا هغه د ښه والي او انعام په معنی سره راځي **(احسن اليه اى انعم عليه)** په لغوي شكل احسان دښه والي په معنی سره دی.اود هغه اصطلاحي تعريف هغه دی کوم چې په حدیث کې دی.علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې دلته د احسان ظاهري معنی مراد نه ده بلکې په جمله اولی سره د حق د مشاهدې بيان مقصود دی د کومې مطلب چې دا دی چې د عبادت په وخت کې په عابد باندې د داسې كيفيت ښكاره كيدل په كار دي ګويا چې د واقعي حق مشاهده کوي او په عبادت کې د شوق او ذوق، د عظمت حياء او د مکملې درجې استغراقي کیفیت په کار دی،اګرکه په دنيا کې في الحقيقت د حق ذات مشاهده هیڅوک هم کولی نه شي.بيا په دويمه جمله کې د حق د مراقبې طرف ته اشاره شوې ده چې اګر كه ته په دنيا کې مشاهده خو نشې کولی مګرکم ازکم دا نسوچ خو وکړه چې حق ذات تا ويني، ګويا چې په اوله جمله کې د مقام شهود ذکر دی او په دويمه جمله کې د مقام غیبوبت ذکر دی، د دواړو نه مراد د اخلاص پيدا کول دي، د عابد د دوو حالتونو ذکر شوی دی چې ارفع او اعلی حالت د مشاهدې دی کوم چې مقام مشاهده دی او ادنی حالت مقام مراقبه دی.مولانا رشيد احمد ګنګوهي رَحِمَهُ اللهُ شريعت او طريقت فرق داسې بيان کړی چې كله دعلم كشمكش او د دلائلو دور وي نو دا شريعت دی، او کله چې طمانيت راشي نو دا طريقت دی، يا داسې چې کله د اسلام په احکامو باندې په تکلف سره تلل وي نو دا شريعت دی او کله چې طبعيت جوړ شي نو دا طريقت دی، احسان د همدې طريقت درجې نوم دی.علامه شبير احمد عثماني رَحِمَهُ اللهُ د فضل الباري په دويم جلد کې ويلي : اصل شی خو ايمان دی او هغه په زړه کې دی، کله چې هغه ترقي کوي نو په جوارحو يعني ظاهري اندامونو باندې هم د هغه اثر ښکاره کيږي، بيا په همدې ايمان باندې کوم کس چې د انبياء کرامو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ په هدايت باندې مداومت غوره کړي نو په دې سره چې کوم قوت پيدا شي هغې ته احسان ويل كيږي، انبياء کرام عَلَيْهِمُ السَّلَامُ د همدې فن غټ غټ استاذان دي، ګوياچې اسلام ترقي وکړي ايمان جوړيږي، او ايمان چې ترقي وکړي احسان جوړيږي، شريعت کوم چې د اسلام او د ايمان مجموعه ده د هغه باقاعده مشق(تمرين کولو) نه احسان حاصليږي همدا طريقت دی.

بعضې ګمراه بريلوي صوفيانو دلته د احسان مقام ښودلی د حديث ترجمه يې داسې کړې ده چې **(ان لم تكن تراه)** يعني كه چيرته ستا وجود ختم شي او ته هغه فناء کړې بيا الله ليدلی شې ستا خپل وجود د هغه په ليدلو کې غټ خند او مانع دی، دا ترجمه غلطه ده او دا مطلب اخیستل په حديث کې تحريف دی، د خپل ځان فناء کول په خپل ځای يو مهم عمل دی او صحيح دی ليکن د حديث مصداق همدا نه

دی، دا مطلب ځکه غلط دی چې که چیرته (تراه) جزاء دی د (ان لم تکن) دپاره نو د جواب شرط له وجهې د (تراه) الف باقي پاتې کیدل نه دي په کار بلکې غورځول یې په کار دي. دویمه وجه دا ده چې که چیرته (ان لم تکن) دپاره (تراه) جزاء شي نو (فانه یراک) به څه جوړ شي؟ دا جمله خو بیا مهمله پاتې کیږي حالانکه هغه جزاء ده. دریمه وجه دا ده چې په بعضو روایتونو کې (ان لم تکن) نشته بلکې (ان لم تراه) دی. څلورمه وجه دا ده چې په دنیا کې د الله دیدار نه شي کیدلی، برابره ده که څوک خپل ځان فناء کړي او که یې فناه نه کړي، لهذا دا شرح دا توجیه او دا مطلب د حدیث له عبارت او معنی دواړو سره منافي دی، په بعضو روایتونو کې دلته هم حضرت جبرئیل علیه السلام د صدقت جمله ویلې ده، مګر کیدی شي چې راویانو سوال د نفس اختصار په نظر کې نیولو د وجې یا د هیریدو د وجې پریښې وي.

**۱۳ ذیقعده ۱٤۰۹هـ**

**قال فاخبرني عن الساعة** : دا وقوع قیامت په باره کې نه دی، ځکه چې د قیامت وقوع خو یقیني او قطعي ده، بلکې دا سوال د وخت د تعین دپاره وو او په یوه روایت کې (متی الساعة) یعنې قیامت کله راځي الفاظ راغلي دي، کوم چې د دې خبرې تائید کوي چې سوال د وخت د تعین سره متعلق وو.

**الساعة** : د زماني د هغه غیر معین جزء نوم دی د کوم چې د (۲۴) اجزاؤ نه شپه او ورځ جوړ شوي دي، دلته د ساعة اطلاق په قیامت باندې شوی دی، د قیامت درې مرحلې دي :

**قیامت کبری** : دا هغه دی کله چې د عامې دنیا ټول کائنات ختم کړی شي.

**قیامت وسطی** : دا هغه دی چې یو قرن ختم شي مثلاً د صحابو قرن یا د تابعینو قرن یا د تبع تابعینو قرن.

**قیامت صغری** : دا د هر انسان ذاتي او شخصي مرګ دی، یعنې (من مات فقد قامت قیامته) د قیامت عقیده د اسلام د بنیادي او مهمو عقائدو نه ده، د کومو قومونو نه چې دا عقیده ووتله دا قومونه د هغه موټر په شان دي چې بریک یې کار پرېږدي تباه کیږي، مثلاً د یهودو او نصاراو د آخرت عقیده د خپلو غټانو او لویانو متعلق د غلطو خیالاتو او نظریاتو د وجهې خرابه شوې چې همدې غټانو او لویانو مونږ بخښلي یو په دې باندې همدا خلک تباه شوي دي، بیا آغا خانیان، رافضیان او بیا بریلویان چې د آخرت په عقیده کې څومره کمزوري دي همدومره دوی د اعمالو نه لرې کیږي. ځکه چې په آخرت باندې عقیده د دنیا ژوند کنټرولوي. ورنه هر انسان به دا وایي :

بابر بعیش کوش که عالم دوباره نیست

**ما المسئول عنها بأعلم من السائل:** يعنې د قيامت په باره کې تر قيامته پورې دچا نه چې هم سوال وشي هغه د سوال کوونکي نه د زيات علم لرونکی نه دی، په بأعلم کې (بأم) د تاکيد د نفې دپاره ده.

رسول الله ﷺ (لا ادرى) يا (لااعلم) ونه ويل بلکې يوه اوږده جمله يې غوره کړه ددې وجه دا ده چې (لااعلم) او (لست اعلم) سره زيات نه زيات د خپل ذات نه د قيامت د علم نفې ده ليکن په دې اوږدې جملې سره رسول الله ﷺ يوه ضابطه ښودلې ده چې د قيامت په باره کې هر سائل چې کله هم سوال وکړي نو په عدم علم کې به دواړه برابر وي يعنې د سائل او د مسئول د عدم علم مساوات صرف د قيامت په باره کې دی په باقي احکامو کې نه دی.

**سوال:** اهل بدعاتو په دې جمله کې معنوي تحريف کړی او ويلي يې دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې د قيامت متعلق تاته چې څومره علم دی هغومره ماته دی زيات نه دی، دا مفهوم د څو وجوهاتو غلط دی: (۱) نبي عليه السلام ته تر هغه دې وخته دا معلومه هم نه وه چې دا جبريل امين دی.

(۲) که چيرته دواړو ته د قيامت علم وی نو بيا په اماراتو (علامو) سره جواب ولې ورکول کيده.

(۳) د قرآن او حديث د صريح نصوصو بالکل واضحه ده چې د قيامت علم د الله تعالی سره خاص دی، بيا دلته دا تصريح بيخي غلطه ده، غيب بمعنی ملکه د الله تعالی خاصه ده، د جزئياتو علم که چيرته چاته وي بيا هم د کلياتو علم هيچا ته نشته.

**سوال:** جبريل دا پوښتنه ولې وکړه کله چې هغه ته معلومه وه چې د دې علم د الله نه بغير بل چا ته نشته؟

**جواب:** جبرئيل آمين چې راغی دا سوال يې ځکه وکړ ترڅو چې په آئنده کې کوم کس د قيامت متعلق سوال ونه کړي، ګويا چې په دغه سوال او جواب سره د سامعينو او د امت ټولو افرادو د قيامت متعلق له سوال کولو نه منعه شوي دي.

**سوال:** بعضو صوفيانو ته دبعضو مغيباتو علم څنګه دی؟ آيا د دوي مکاشفاتو ته علم غيب ويلي شي؟.

**جواب:** د غيب يوشمير مبادي او اصول دي او يو شمير لواحقات دي، مبادي او اصول مفاتيح الغيب څو د الله نه بغير بل هيڅوک نه پيژني، نه ملک مقرب او نه نبي مرسل، لواحقات کله کله الله تعالی خپلو محبوبينو ته ښکاره کوي، ليکن دا بيا هم غيب نه پاتې کيږي، ځکه علم غيب هغه دی کوم چې د حواس خمسو د توسط نه بغير حاصل کړی شي، د چا په ښودلو يا القاء يا الهام په ذريعه يا د مکاشفې په ذريعه چې څه حاصل شوي دي هغه د علم غيب له تعريف نه خارج دي، علامه بيضاوي رحمه الله د غيب تعريف داسې کړی دی: (**يؤمنون بالغيب المراد به الخفي الذى لايدركه الحس ولايقتضيه بداهة العقل**)

(**بيضاوی، ج۱، ص: ۱۸**).

يعني علم غيب هغه دى كوم چې د حواس خمسو د ادراک نه اوچت وي، په كوم باندې چې د عقل احاطه نه وي، لهذا دا خبره واضحه شوه چې الهام مكاشفات او په نورو سره حاصل شوي علوم يا خو د اسبابو په ذريعې سره دي يا غير يقيني ظنيات دي كوم چې د علم غيب نه خارج دي.په نوادر حميدي كې دي چې همدا خبرې اترې د حضرت عيسى عليه السلام او د حضرت جبريل عليه السلام ترمينځ هم شوې وې، ليكن هلته سوال كوونكى حضرت عيسى عليه السلام وو او جواب وركوونكى حضرت جبريل عليه السلام وو، ليكن دلته معامله برعكس ده، سوال حضرت جبريل عليه السلام كوي او جواب حضرت محمد صلى الله عليه وسلم وركوي په كوم سره چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د عظمت شان اندازه كيږي.

**۱٤ ذيقعده ۱٤۰۹هـ**

**د قيامت علامې :قال فاخبرني عن اماراتها : بفتح الهمزة جمع امارة اى علامة وفي رواية عن اشراطها وفي رواية ساخبرك وساحدثك عن اشراطها.** د قيامت علامې په دوه قسمه دي، غټې علامې او وړې علامې، وړې علامې د مهدي د ظهور پورې دي، او په خپله د مهدي ظهور، د دجال خروج، د عيسى عليه السلام نزول د ياج ماجوج راوتل دا ټول د قيام قيامت غټې علامې دي، په دې حديث كې د مهدي د ظهور نه مخكې واقع كيدونكې وړې علامې مراد دي.

**قال ان تلد الامة ربتها :** يعني چې وينځه خپل مولى وزيږوي.دلته د ټولو مخكې دا امر د تشريح غوښتونكى دى چې د **ربتها** په لفظ كې د تانيث تاء ولې راوړل شوې ده، حالانكه دلته د (رب) لفظ په معنى د آقا او مولى دى؟ د دې جواب دا دى چې تانيث د دې دپاره ذكر شوى دى چې د رب العباد لفظ سره يې لفظي اشتراک هم رانه شي ، اگر كه د خصوصي اضافت سره د رب اطلاق په غير الله باندې هم شوى دى.په دې جمله باندې د پوهيدودپاره علماءكرامو په څوطريقوسره د دې تشريح كړې ده :
اول : دا چې نافرماني به زياته شي تردې چې اولاد به د مور پلار سره داسې چلند وكړي لكه څرنگه يې چې آقا يې د خپلې وينځې سره كوي، چې آقا هغې ته كنځل كوي، وهي يې ټكوي يې يا دا چې په خدمت كې يې ساتي، همدا چلند به اولاد هم وكړي، د جينۍ ذكر ځكه شوى چې هغه اطاعت كوونكې وي، كله چې د پرده ناكې جينۍ حال همدا وي نو د هلكانو حال به څه وي، گويا چې د زمانې د انعكاس او انقلاب طرف ته اشاره ده، غلام به آقا جوړ شي، تربيت حاصلوونكى به مربي جوړ شي، په دې صورت كې د **ربتها** لفظ مجازاً د والدينو دپاره استعمال شوى دى.دويم : دا ده چې لور به په مور باندې د زياتې نافرمانۍ د وجې داسې حكم چلوي لكه څرنگه يې چې سردار په خپله وينځه باندې چلوي.دريم : دا چې په دې سره اشاره ده چې د قرب قيامت په زمانه كې به شريف او عزتمند خلک ذليل شي او ذليل خلک به د عزت مقام ته راشي، لكه څرنگه چې د مور مقام د عزت مقام دى، بيا به لور بادار ه جوړه شي

نو معامله به ألټه شي.څلورم : دا چې په دې کې د اسلامي فتوحاتو زياتوالي ته اشاره ده چې غلامان او باداران به زيات شي، وينځې به زياتې شي نو خلک به د د احوالو د فساد د وجهې د وينځو خرڅول شروع کړي او په دې اخيستلو او خرڅولو کې به داسې هم وشي چې مور به د خپل زوی په لاس کې خرڅه کړی شي، نو اوس زوی آقا دی او خپله مور چې ده وينځه اخيستې ده نو وينځې خپل آقا وزيږولو.پنځم : دا چې د وينځې د اولاد نه به بادشاه جوړ شي نو دغه مور به د همدې بادشاه زوی په رعيت کې راشي نو وينځې آقا وزيږولو.حافظ ابن حجر، علامه خطابي قاري علامه سندي او مولانا ادريس کاندهلوي رَحِمَهُمُ اللهُ تعالیٰ ټولو د پورته ذکر شويو توجيهاتو نه يوه نه يوه توجيه کړې ده.

**وان ترى الحفاة العراة** : دا هم د احوالو د انقلاب طرف ته اشاره ده چې :

کیسے کیسے ویسے ویسے ہو گئے ویسے ویسے کیسے کیسے ہو گئے ؟

**يتطاولون فی البنيان** : يعنې د عاليشان بلډنګونو او محلونو کې به په يو بل باندې فخر او تکبر کوي، ګويا چې د ګډو څرونکي کوم چې (**اعجز خلق الله واضعفهم**) دي په دوی کې به انقلاب او تغير راشي چې دوی به تکبر کووونکي شي، صرف د اوښانو والا به نه وي کوم چې طبعا تکبر کوونکي دي، بلکې د ميږو والا به هم تکبر کوونکي شي کوم چې طبعًا متواضع وي.

**الحفاة** : جمع د حافي لغړې او بربندې پښې ګرځيدونکی، **العراة** :جمع د عاری ده د بربنډ بدن والا، **العالة** : د عائل ده جمع مفلس انسان، **رعاء** : جمع د راع شپونکی، **الشاء** : جمع **شاة** پسونه(ګډان)، **الصم** : د اصم جمع کوڼ، **البكم** : د ربكم جمع ده ګونګی، يعنې د حق د آوريدو او ويلو نه به کوڼ او ګونګ وي، **يتطاولون** : يعنې فخر او تکبر به کوي او د بلډنګونو په جوړولو کې به مقابله سره کوي.

**فلبثت مليا** : ملا د کيدلو ته ويل کيږي، **هو مليًا** د اوږدې زمانې په معنی کې دی، اوس دلته دا اشکال راځي چې د ابو داؤد په روايت کې د ذې **مليا** تعين موجود دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ درې ورځې وروسته حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل تاوپژندلو چې هغه څوک وو؟بل طرف ته دحضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روايت کې راغلي چې په همدې مجلس کې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې دا جبريل وو، تاسو ته ستاسو د دين ښودلو دپاره راغلی وو، په دې دواړو روايتونو کې تعرض ليدل کيږي، ددې جواب دا دی چې د همدې سوال کوونکي په تالاش کې څو صحابه کرام د مجلس نه پورته شول او لاړل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم لاړ، او بيا هغه خپل کور ته لاړلو. او بيا چې کله درې ورځې وروسته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مخامخ شو نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوښتنه ترې وکړه چې آيا

پوهه شوي چې سوال کوونکی څوک وو.؟ او د ده د تللو وروسته رسول الله ﷺ د مجلس په حضور کې حقیقت حال بیان کړی وو چې دا جبریل امین وو، لهذا هیڅ تعارض نشته.

**قلت الله ورسوله اعلم** : د اعلم مطلب دا نه دی چې حضرت عمر رضي الله عنه الله او د هغه رسول ته اعلم ویلي او خپل ځان ته یې صرف عالم ویلي، بلکې دلته د **اعلم** لفظ د اسم تفضیل په معنی سره نه دی، بلکې د اصل فعل په معنی سره راغلی دی لکه (**الصیف احر من الشتاء**) دلته احر د نفس حرارت په معنی سره راغلی، د دې مطلب دا نه دی چې د گرمی موسم د یخ موسم نه زیات گرم دی، حالانکه د ژمي موسم گرم نه وي، صحابه کرامو رضي الله عنهم همیشه د ادب لحاظ کړی دی د **الله ورسوله اعلم** جمله یې استعمال کړې ده.

**فانه جبریل : ای اذا فوضتم العلم الی الله ورسوله فانه جبریل**، په دې عبارت کې د (**فاء**) جزائیه راوړو وجه معلومه شوې ده چې د الله تعالی علم کلي او اصلي دی، د الله په ښودلو سره چې رسول ته علم وي، نو د آدب غوښتنه دا ده چې (**الله ورسوله اعلم**) وویل شي او صحابه کرامو همیشه د همدې آدب خیال ساتلی دی.

**یعلمکم دینکم**:دلته دین اسلام، ایمان احسان او نور علوم په خپله رسول الله ﷺ ښودلي دي، لیکن چونکه جبریل امین سوال کوونکی وو او ښه سوال نیم علم دی د همدې وجهې مجازاً د هغه طرف ته د **یعلمکم** نسبت شوی.او چونکه د اسلام د دین اولني مخاطبین صحابه کرام وو نو ځکه **دینکم** وویل شول که نو دا دین خو تر قیامته پورې د خلکو د پاره دی، د جبرئیل د راتلو نه وروسته رسول الله ﷺ ته معلومه شوه چې دا جبریل امین وو لهذا د دارقطني په تفصیلي روایت کې د ذکر شوي عبارت وروسته دادي: **فخذوه عنه والذي نفسي بیده ما اشتبه علی منذ اتانی قبل مرتی هذه وما عرفته حتی ولی**.د دې روایت نه معلومه شوه چې د غیبو علم صرف الله تعالی لره دی، که نه نو په دوم مره اوږدو خبرو اترو کې رسول الله ﷺ هغه و نه پیژندلو او کله چې الله تعالی ورته و ښودلو نو وې پیژندلو، بس کله چې د وحي تار وتړل شو نو معلومیږي ورنه ،نه معلومیږي. سعدي بابا رحمه الله څه ښه ویلي دي:

یکے پرسید ازاں گم کردہ فرزند ❁ کہ اے روشن گہر پیر خردمند
ز مصرش بوئے پیراہن شمیدي ❁ چرا در چاہ کنعانش ندیدي
بگفت احوال ما برق جہان است ❁ دمے پیدا و دیگر دم نہان است

گہے بر طارم اعلیٰ نشینم ❁ گہے بر پشت پائے خود نہ بینم

او همدارنګې دا يې هم ويلي دي :

علم غیبے کس نمی داند بجز پروردگار ❁ ہر کہ گوید مابد انم تو از و باور مدار

مصطفیٰ ہرگز نہ گفتی تا نہ گفتی جبرئیل ❁ جبرئیلش ہم نہ گفتی تا نہ گفتی کردگار

**فی خمس : ای علم تعیین الساعة فی ضمن خمس لایعلمهن الا الله.** دلته سوال دا دی چې مغیبات خو صرف همدا پنځه نه دي نه په دې کې بند دي بيا صرف د دې ذکر ولې وشو؟.

جواب دادی چې دا دسوال کوونکي دسوال په جواب کې څومغيبات ذکر شوي دي حصر مقصود نه دی. اوس د يو مسلمان دا عقيده په کار ده چې د الله تعالى علم کلي دی کوم چې د الله تعالى سره خاص دی، هيڅ نبي يا فرښتې ته علم کلي نه دی ورکړی شوی او علم جزئي په شرعياتو کې الله تعالى رسول الله ﷺ ته په پراخه پيمانه ورکړی وو او علم جزئي د تکوينياتو متعلق هم نبي عليه السلام ته دومره ورکړی شوی وو چې د ټولو انبياؤ علم د هغه د علم په مقابل کې د درياب د يو څاڅکي په اندازه دی، همدارنګه د الله تعالى د کلي علم په مقابل کې د ټول اهل الله علم د درياب د يو څاڅکي په اندازه دی.

**ثم قرأ : ﴿إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ﴾** (لقمان ٣٤).

منصور بادشاه په خوب کې د مرګ فرښته وليدله د هغې نه يې تپوس وکړو چې زما عمر څومره پاتې دی او مرګ به کله راځي؟ فرښتې په پنځو ګوتو سره اشاره ورته وکړه، منصور پريشانه شو، يو کس تعبير ورکړو چې عمر دې پنځه ورځې پاتې دی، بل کس د پنځو مياشتو خبره ورته وکړه، يو کس د پنځو کلونو خبره ورته وکړه، د حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله نه چې کله پوښتنه وشوه ورته وې ويل چې دا اشاره ده دې ته چې د مرګ وخت د پنځو مغيباتو نه دی د الله سره د دې علم دی.

**ديني طالبانو ته د حديث د جبريل فائدې** :(۱) په لباس کې د سپين او د پاک صفا لباس اغوستل په کار دي(۲) د حضرت جبريل امين تک تورو ويښتانو کې دې ته اشاره ده چې د علم دين د حصول د پاره ښه زمانه د ځوانی زمانه ده، بيا استقامت غوره کول هم په کار دي(۳) طالب العلم دې خپل استاذ او مربي ته ښخې نزدې کيني يعنې په آدب سره دې نزدې مخامخ کيني(۴) د مفيدو خبرو پوښتنه کول په کار دي، ځکه چې ښه پوښتنه نيم علم دی(۵) په خپله ناپوهۍ دې شرم نه کوي ، بلکې کومه خبره چې ورته معلومه نه وي صفا دې ووايي چې ماته معلومه نه ده(۶) طالب العلم ته د علم د حصول په زمانه کې د خلکو سره تعلقات ساتل نه دي په کار،بلکې بې تعلقه دې د علم په حصول کې پاتې شي ګويا چې هيڅوک يې نه پيژني، لکه څرنګه چې دلته حضرت جبريل امين خپل ځان پټ کړی وو(۷) طالب العلم ته

په كار دي چې د داسې علومو او وسائلو اهتمام وكړي كوم چې د عقائدو او اعمالو سره متعلق وي او د كومو چې په دنيا او آخرت كې فائده ښكاره وي(۸) د مقصد او علم د حصول نه وروسته سمدستي دې د خپل مقصود او خپل كار طرف ته توجه كول په كار دي، په بې كاره مدارسو كې اوسيدل نه دي په كار.

۱۵ ذيقعده ۱۴۰۹ھ

## د ايمان بنياد په پنځو شيانو باندې دى

| |
|---|
| (۲) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلٰى خَمْسٍ |
| دابن عمر رضي الله عنه روايت دى وايي چې نبي عليه السلام فرمايلي دي: د اسلام بنياد په پنځو شيانو ايښودل |
| شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ |
| شوى، يو د دې نه د عقيدې شاهدي وركول دي چې د الله تعالى نه بغير بل څوک د عبادت لائق نشته دى |
| وَ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَ رَسُوْلُهٗ وَ إِقَامِ الصَّلَاةِ وَ إِيْتَاءِ الزَّكَاةِ وَ الْحَجِّ |
| او محمد صلى الله عليه وسلم د هغه بنده او رسول دى، دويم د مونځ آداء كول، دريم زكوة وركول، څلورم حج اداء |
| وَ صَوْمِ رَمَضَانَ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| كول، پنځم د رمضان المبارك روژې نيول. |

**توضيح**: د حضرت ابن عمر نوم عبدالله دى، په مكه كې د خپل پلار سره مسلمان شوى، د بعثت نه يو كال مخكې پيدا شوى وو او بالاتفاق د خندق په غزا كې شريک شوى وو، د بدر او احد په جنګونو كې د پنځلسو كلونو وو، نو ځكه په جنګ كې شريک نه شو. حضرت جابر رضي الله عنه وېلي دي چې په مونږ كې هيڅوک داسې نه دي د كوم طرف ته چې دنيا رامنده كړي او راشي او دا د هغې طرف ته مائل نه وي بغير د عمر او ابن عمر نه. حضرت ابن عمر رضي الله عنه په علم كې كامل او په تقوى كې اعلى مقام ته رسيدلى وو. د ډير احتياط او فكر والا او تابعدار صحابي وو، د حجاج بن يوسف په سازش سره د حج په ورځو كې شهيد كړى شو، په (۳۷ هجري) كې د (۸۴) كلونو په عمر د دنيا نه رخصت شو.

**بني الاسلام على خمس**: په دې حديث كې رسول الله صلى الله عليه وسلم د اسلام تشبيه د اركانو په دوام او استمرار كې د خيمې او مكان سره وركړې ده، په كومو كې چې يو اصل ستنه وي او باقي تنابونه او ديوالونه وي، په اصل (ستنه) باندې خيمه ولاړه وي او د هغه په تنابونو باندې باقي اركان چاپېر وي،

او مرکزي ستنه د شهادت کلمه ده او باقي ارکان تنابونه دي. که چیرته د خیمې د تنابونو او ستنو نه کومه یوه وغورځیږي نو په هغه طرف کې نقصان راځي، لیکن خیمه ولاړه وي، او که چیرته د څنډو ټولې ستنې ولویږي مګر د مینځ ستنه باقي پاتې وي نو خمیه بیا هم ولاړه وي، اګر که له هغې کار نه شي اخستل کیدی، بیا نه هغه د سورې قابله وي او نه د ګرمۍ او یخنۍ نه د ساتلو صلاحیت لري، لیکن که چیرته د خیمې مرکزي ستنه وغورځیږي په کومه باندې چې د خیمې د ولاړیدو دار مدار دی نو اوس د خیمې نوم هم نه پاتې کیږي او په زمکه باندې رالویږي، بعینه همدا تشبیه او صورت حال د اسلام د عالیشان عمارت هم دی، په کوم کې چې مونځ، زکوة، روژه او حج څلور ستنې ذي کومې چې په څنډو کې ولاړې دي او کلمه د مینځ مرکزي ستنه ده، که چیرته په باقي ارکانو کې نقص راشي نو په دې عمارت کې خو نقص راځي مګر عمارت باقي پاتې وي، لیکن که چیرته د کلمې په رکن کې نقصان راشي نو د هغې وجود به قائم پاتې نه شي یا د قائم کیدو وروسته به ختم کړی شي نو اوس د اسلام عمارت باقي نه شي پاتې کیدی، همدا وجه ده چې په جنازه کې د حضرت حسن بصري رحمه الله ملاقات له مشهور شاعر فرزدق سره وشو نو ده د هغه نه پوښتنه وکړه : **ما اعددت لمثل هذا المقام؟ فقال شهادة ان لا اله الا الله منذ كذا سنة فقال هذا العمود فاين الاطناب.**

نو په دې حدیث کې د دین د مشهورو پنځو اصولو او ارکانو ذکر دی کوم چې فرضیات عینیه دي، د دې نه بغیر باقي ټول اعمال د دوی په ضمن کې دي، ځکه د شهادت نه مراد (**تسلیم بجمیع ما جاء به النبی صلی الله علیه وسلم**) دی په دې کې د اسلام ټول احکام راغلل، خلاصه دا ده چې مشهور ارکان ذکر شوي دي، د باقیو نفې مراد نه ده، یعنې د فرضیات عینیو ذکر دی، د فرضیات کفائیو نفې مقصود نه ده.

**سوال**: فقهاء کرامو د قبول اسلام دپاره صرف شهادتین کافي ګرځولي حالانکه د اسلام بناء په پنځو شیانو باندې ده؟. **جواب**: د دې جواب ښکاره دی چې د شهادتینو په ضمن کې ټول اسلام د خپلو ټولو محاسنو سره ملحوظ او مراد دی.

**سوال**: دا دی چې په دې روایت سره اسلام صرف په پنځو شیانو باندې بناء معلومه شوې او را روان روایت کې بضع وسبعون شعبة راغلي دي نو تطبیق یې څه دی؟.

**جواب**: د دې جواب هم تیر شوی چې پنځه مشهور او معروف ارکان دي، او دا مشهور او غیر مشهور ټول چې سره یو ځای کړی شي نو د اویا او نه یو څه زیات جوړیږي.

**شهادة**: د اعراب په اعتبار سره دا کلمه مجرده ده چې دا بدل راغلي ده د خمس نه او هغه مجرور دی او منصوب هم دی، اعنی د فعل محذوف د وجې (**ای اعنی شهادة الخ**) او دا کلمه مرفوع هم ده چې دا

مبتداء محذوف خبر دی یعني (احداهما شهادة الخ).

**شهادتین** په عام طور یو خصلت(شی) شمار شوی دی، ځکه چې په دې کې تلازم دی، کله کله جدا هم ذکر کیږي، د حج سره د استطاعت ذکر د شهرت د وجهې نه دی شوی، په **اقام الصلوة** کې نفس مونځ مقصود نه دی، بلکې د ټولو آدابو فرائضو او محاسنو سره د هغه قیام مقصود دی، په ایتاء الزکوة کې د استمرار طرف ته اشاره ده، د حج درجه وروسته ده، ځکه حج په اتمه یا نهمه هجري کې فرض شوی دی او روژه په دریمه هجري کې فرض شوې ده، مګر د ترتیب لحاظ راوي نه دی ساتلی، دا تصرف د راویانو دی، په دې روایت سره په مرجئو باندې ښکاره رد دی کومو چې اعمال نظر انداز کړي دي.

**په ارکان خمسۀ کې ترتیب** : (۱) عبادت په دوه قسمه دی، یا د قلب سره متعلق دی یا د غیر قلب سره متعلق دی، د اول مثال شهادتین دي کوم چې د تصدیق قلبي نوم دی، د غیر قلب سره چې کوم متعلق دی هغه بیا په دوه قسمه دی، یو هغه دی د کومو تعلق چې د کولو سره دی، بل هغه دی د کومو تعلق چې د کوم کار د پریښودلو سره دی، دا دویم قسم روژه ده په کومه کې چې خوراک څښاک او جماع پریښودل کیږي، اول قسم عبادت بیا په درې قسمه دی، یا صرف د بدن سره متعلق وي هغه مونځ دی، یا صرف د مال سره متعلق وي هغه زکوة دی، یا مشترک وي هغه حج دی.

(۲) یا په ترتیب کې داسې پوهه شئ چې د الله تعالی صفات په دوه قسمه دي، صفات جمالیه او صفات جلالیه، نو د مونځ تعلق د صفات جلالیۀ سره دی چې بنده د معبود مخې ته په کمال عبودیت او کمال عاجزئ سره ودریږي او د ذوالجلال پر وړاندې په زمکه باندې پوزه ږدي، زکوة هم د صفات جلالیۀ نه دی، ځکه چې انسان ممسک دی (وانه لحب الخیر لشدید) په دې حالت کې د مال مصرف کول او د خدای د رضا دپاره زکوة ورکول د عظمت جلال د جلالیت نښانې دي.

روژه او حج مظهر جمال دي، په اول کې عاشق د خپل محبوب دپاره وږی تږی او سیږي، او په دویم کې عاشق د محبوب دپاره ښځه او ماشومان پریږدي د محبوب مکان طرف ته ځي او هلته چې ورسیږي طواف کوي. کله منډه وهي او کله در او دیوار ښکلوي.

امر علی الدیار دیار لیلی ۞ اقبل ذا الجدار و ذا الجدار

وما حب الدیار شغفن قلبي ۞ و لکن حب من سکن الدیارا

و من عادتي حب الدیار لاهلها ۞ و للناس فیما یعشقون مذاهب

(۳) یا د ارکان خمسۀ په ترتیب کې داسې ووایئ چې په ارکان خمسو کې اول شهادتین دي دا قولي عبادت دی او په ژبانۍ طور د محبوب تذکره ده، د عاشق د ټولو نه اولنی کار همدا دی، د نظم او نثر هر څه د همدې ژباني تذکرو شاو خوا راګرځي، دویم کار د محبوب انتهائي تعظیم دی دا صلوة او مونځ

دی، کوم چې د الهي تعظیم مجموعه ده، د عاشق دریم کار د محبوب دپاره د مال ورکول دي د دې نوم زکوة دی، د عاشق څلورم کار د محبوب دپاره ورځې تږی او سیدل دي د دې نوم روژه ده، د عاشق پنځم کار د محبوب دپاره د خپل کور اهل او عیال پرېښودل دي دې ته حج ویل کیږي، د همدې وجهې وویل شول (بنی الاسلام علی خمس الخ).

۱۷ ذیقعده ۱۴۰۹هـ

| |
|---|
| (۲) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْإِيمَانُ بِضْعٌ وَسَبْعُونَ شُعْبَةً |
| دابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې نبي علیه السلام وفرمایل: دایمان داویا ونه یو څه زیات شاخونه دي |
| فَأَفْضَلُهَا لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَ أَدْنَاهَا إِمَاطَةُ |
| په هغو کې دټولو نه بهتر او دټولو نه اعلی د لا اله الا الله اقرار دی او د ټولو نه کمه درجه هغه لرې کول د |
| الْأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ وَ الْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الْإِيمَانِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| یو تکلیفي څیز دی د لارې نه او حیاء د ایمان د مهمو شاخونو نه یو شاخ دی. |

**توضیح :** هریرة د هرة تصغیر دی، د حضرت ابو هریره رضی الله عنه په نوم او نسب کې ډیر اختلاف دی، په اصل نوم کې یې تقریبا دیرش قولونه دي، مشهور دادی چې د ده نوم د جاهلیت په زمانه کې عبد الشمس یا عبد عمرو وو. د اسلام راوړلو نه وروسته د ده نوم عبدالله یا عبدالرحمن وو، احمد او حاکم ویلي دي چې زمونږ په نزد غوره تحقیق دا دی چې د ده نوم د اسلام په زمانه کې عبدالرحمن بن صخر وو، د ده تعلق د دوس قبیلې سره وو، د ده کنیه دومره مشهوره شوه ګویا چې د ده کوم بل نوم پیخي پاتې نه شو، په (۷ هجري) کې د خیبر د جنګ په موقع یې اسلام راوړی وو، رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې چیرته تللو نو دا به ورسره تللو، د هغه صلی الله علیه وسلم سره د اوسیدو او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د دعا په برکت په ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم کې د ټولو د زیاتې حافظې خاوند وو، امام بخاري رحمه الله ویلي دي چې د اتو سوو نه زیاتو صحابه کرامو او تابعینو د ده نه علم حاصل کړی دی.

د ابو هریره د کنیه مشهور کیدو وجه په خپله د ابو هریره د روایت نه ابن عبدالبر نقل کړې ده، ویلي یې دي چې ما یوه ورځ په لستوني کې پیشو پټه کړې وه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ولیدم او وې پوښتل دا

(۱) اخرجه البخاري ۵۱/۱ رقم الحدیث ۹ ،کتاب الایمان ،مسلم في صحیحه ۶۳/۱ ، رقم الحدیث ۵۸ ، کتاب الایمان ، باب بیان خصال من اتصف بهن وجد حلاوة الایمان ، وابو داود في السنن ۵۵/۵ ، رقم الحدیث (۴۶۷۶)، واحمد في مسنده ۳۷۹/۲ ، رقم الحدیث (۵۰۰۵).

څه دي؟ما وویل یارسول الله ! دا پیشو ده، یعنې **هرة** رسول الله ﷺ وفرمایل : **فأنت ابو هریرة** بس همدا ویل وو چې اصل نوم ورک شو او کنیه مشهوره شوه، د ده ټول روایتونه (۵۳۶۴) دي په **۵۹ هجري** کې په مدینه منوره کې د (۸۷) کلونو په عمر وفات شو او په جنت القیع کې دفن کړی شو.

**الایمان : ای ثمرات الایمان وفروعه لان الایمان هو التصدیق البسیط.**

**بضع : وبضعة** دواړه روایتونه دي، د مؤنث دپاره بضعة د تانیث سره او د مذکر دپاره بضع دی، یا د دریو نه تر نهو عدد پورې زیاتر استعمال شوی، د بضع ماده چې څومره واړول راواړول شي نو د ټولو مفهوم به ټوټه قطعه وي لکه **بضع، عبض، ضبع، عضب** نه د قطعې (ټوټې) معنی مراد ده.

**سوال:** دلته یو ښکاره اشکال دی چې په دې حدیث کې د **بضع وسبعون** ذکر دی، په بخاري شریف کې د ستون ذکر دی، په یوه روایت کې صرف د **ستون** ذکر دی، په یوه بل کې د **اربع وستون** ذکر دی، په ټولو کې تضاد دی د دې جواب څه دی؟.

**اول جواب**: د دې اول جواب دا دی چې عدد اقل د عدد اکثر نفي نه شي کولی، بلکې ساکت پاتې کیږي په کوم کې چې تعارض نه راځي.

**دویم جواب**: دا دی چې دا د هغه وخت خبره ده کله چې من جانب الله ټولې شعبې مکملې نه وې، نو اول د شپېتو ذکر وو، بیا د وحې په ذریعه د اویاو حکم راغی، قاضي عیاض رحمه الله ویلي دي چې راجح د **بضع وسبعون** والا روایت دی، ځکه چې دا په کثرت سره راغلی دی، دریم جواب دا دی چې دا په بعضو شعبو کې تداخل شوی دکمو ذکرراغلی او کله چې تداخل نه دی شوی نو د زیاتو ذکر راغلی، همدارنګه دا عدد په تکثیر باندې حمل شوی نو بیا د تحدید مسئله پاتې نه شوه نو تعارض نشته، د تکثیر دپاره د عدد راتلل مشهور دي.

**شعبة** : په لغت کې ښاخ اودونې څانګې ته ویل کیږي، دلته خصلت محموده او خصلت حمیده مراد دي.

**فأفضلها : فا** تفریعیه تفصیلیه ده یا جزاء ده یعنې **(اذا کان الایمان ذا شعب فأفضلها ...الخ).**

**وادناها** : که چیرته ادنی د دنو نه د قرب په معنی سره وي نو مطلب به دا شي چې **(اقربها منزلة)** یعنې د قرب او تقرب په حصول کې قریب تر **(اماطة الاذی)** دی، په یوه روایت کې **(ارفعها)** هم دی کوم چې د دنو په معنی سره دی د تقرب تائید دی، او که چیرته ادنی د دنائت نه واخیستل شي نو بیا به د کمترا حقیر په ... سره شي، یعنې کمترینه شعبه **اماطة الاذی** ده، د سیاق او سباق سره دا زیاته مناسبه ده.

**اماطة**: د باب افعال مصدر دی، د لرې کولو په معنی ده، **الاذی** تکلیف رسونکی او بیکاره شی لکه کانی، ازغی، گندگي وغیره. په دې حدیث کې شعبه اولی د قولي عباداتو سره متعلق ده، شعبه ثانیه د طاعاتو فعلیو سره متعلق ده، یا اوله شعبه د معامله مع الحق سره تړل شوې او دویمه شعبه د معامله مع الخلق سره تړل شوې ده.

**والحیاء شعبة من الایمان**: سوال دادی چې حیاء په خپله د ایمان په شعبو کې داخله ده بیا هغه جدا ولې ذکر کړی شوه؟. د دې یو جواب دا دی چې دا **تخصیص بعد التعمیم** دی او دا د حیاء د شان غټوالي دپاره دي، همدا وجه ده چې په **شعبةٌ** کې تنوین د تعظیم دپاره دی، یعنې حیاء د ایمان په شعبو کې یوه مهم ترینه او عظیم الشانه شعبه ده، دویم جواب دا دی چې د دې وجه دا ده چې حیاء د ایمان په ټولو شعبو باندې حاوي ده او د ټولو شعبو دپاره سبب او داعي ده، ځکه چې د هغې په وجه انسان خصائل حمیده حاصلوي او په هغو قائم پاتې کیدی شي نو ځکه دا جدا ذکر کړی شوه.

**د حیاء تعریف او قسمونه**: د حیاء غټ دوه قسمونه دي، یوه ایماني حیاء دویمه طبعي حیاء، دلته په حدیث کې شرعي ایماني حیاء مراد ده د کومې چې یو تعریف داسې دی (**هو خلق یمنع الشخص من الفعل القبیح بسبب الایمان**). یعنې حیاء د هغې ملکې او خلق (خوی) نوم دی کوم چې انسان د ایمان په سبب د قبیح عمل نه منعه کوي، لکه لوڅ لغړ اوسیدل، د خلکو پر وړاندې فحش حرکتونه کول، زنا کول، وغیره وغیره، ددې شیانو نه شرعي ایماني حیاء منعه کوي. د ایماني حیاء دویم تعریف جنید بغدادي رَحِمَهُ اللهُ داسې کړی دی چې د الله تعالی د نعمتونو په نظاره کولو سره او د خپلو کوتاهیانو او تقصیراتو ته په کتلو سره چې کوم کیفیت پیدا شي دا حیاء ده. د ایماني حیاء دریم تعریف داسې شوی **ان لم تراه فانه یراک حیث نهاک** د دې تعریف په نظر کې نیولو سره د حیاء مقام بعینه د احسان مقام دی، په همدې وجهې دا حدیث د حدیث جبرایل دپاره په منزله د اجمال دی، په حدیث جبرایل کې د دریو شیانو بیان وو، د ایمان، اسلام او احسان، په دې حدیث کې په **فافضلها** سره د ایمان طرف ته اشاره ده او په **ادناها** سره د اسلام طرف ته اشاره ده او په **الحیاء** سره د احسان طرف ته اشاره ده. د طبعي حیاء تعریف داسې دی **هو تغیر وانکسار یعتری المؤمن من خوف ما یلام علیه** مطلب دادی چې کله د ملامتیا قابل کار د ویرې کوم کس خپل اندامونه او بدن ساتي نو دا طبعي حیاء ده. د همدې دواړو تعریفونو په فرق کولو سره او په همدې تشریح سره د علامه توربشتي رَحِمَهُ اللهُ هغه اعتراض ختمیږي په کوم کې چې دا ویلي وو چې حیاء خو په غیر مسلمو کې هم وي نو آیا په هغو کې د ایمان شعبه راغله؟. جواب ښکاره

دی چې په حدیث کې ایماني حیاء د ایمان شعبه ده، طبعي حیاء د حدیث مصداق نه دی.

دویم جواب: **علی حد فتح یفتح** دی یعنې د فتح یفتح باب دپاره ضروري ده چې په هغه کې حرف حلقي وي، لیکن دا ضروري نه ده چې چیرته حرف حلقي راشي هلته به د **فتح یفتح** باب وي، همدارنګه د ایمان دپاره حیاء ضروري ده، مګر دا ضروري نه ده چې چیرته حیاء وي هلته به ایمان وي، د حیاء څو اقسام هم په ذهن کې ساتل په کار دي.

**(۱) حیاء جنایت**: لکه څرنګه چې د حضرت آدم علیه السلام حیاء وه چې سریې ښکته کړو په جنت کې تښتیدلو، الله تعالی ورته وفرمایل: ولې تښتې؟ وې فرمایل **(حیاء منک یا الله)**.

**(۲) حیاء د خجالت**: لکه د حضرت علي رضي الله عنه مذي متعلق مسئله د خجالتیا و حجاب د وجهې په خپله د رسول الله صلی الله علیه وسلم پوښتنه ونه کړه، بلکې د حضرت مقداد رضي الله عنه وغیره په واسطه یې وکړه.

**(۳) حیاء اجلال**: چې د جلال د وجهې حیاء راشي چې **(تسربل اسرافیل بجناحیه حیاء من الله لاجلاله)** په شعب ایمان باندې ډیرو علماؤ ډیر کتابونه لیکلي دي.

**۱۸ ذیقعده ۱۴۰۹ھ**

## د مؤمن او مسلمان مفهوم

| |
|---|
| **(۵) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُسْلِمُ** |
| د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه روایت دی وایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کامل مسلمان |
| **مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَ يَدِهِ ، وَ الْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ مَا** |
| هغه دی د چا د لاس او ژبې د تکلیف نه چې مسلمان محفوظ وي، او اصل مهاجر هغه دی چې پریږدي هغه |
| **نَهَى اللهُ عَنْهُ هٰذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ . وَ لِمُسْلِمٍ قَالَ إِنَّ رَجُلًا** |
| شیان چې الله ترې منع کړې وي، دا الفاظ د بخاري دي او د مسلم په روایت کې دی چې: یو کس د نبي |
| **سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَيُّ الْمُسْلِمِينَ خَيْرٌ ؟ قَالَ مَنْ** |
| علیه السلام پوښتنه وکړه چې په مسلمانانو کې د ټولو نه بهترین څوک دی؟ نبي علیه السلام ورته وفرمایل: د چا |

**سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ) . (۱)**

د ژبې او د لاس د ضرر نه چې مسلمان محفوظ وي.

**توضیح**: عمرو : د واو سره ویل کیدی شي ترڅو چې په عمر او عمرو کې فرق راشي، عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه قریشي دی، د خپل پلار نه مخکې یې اسلام قبول کړی وو، د پلار نه یې لس یا دولس یا دیارلس کاله کشر وو، کثیر العلم او کثیر العبادة صحابي وو، د زیاتې ژړا د وجهې یې د عمر په اخیر کې نظر ختم شو د ډیرو احادیثو کاتب وو، په مکه یا طائف یا مصر کې په (۵۶ هجري) کې وفات شوی وو، رحمه الله رحمة واسعة (المرقات ۱۴۲–۱/۱۴۱).

**المسلم** : ددې نه کامل مسلمان مراد دی ترڅو چې دا اعتراض ونه شي چې د چا د لاس او ژبې نه عام مسلمانان محفوظ نه وي نو آیا همداسې کس مسلمان نه شي پاتې کیدلی؟ نو عامو شارحینو کامل مسلمان مراد اخستی دی، لیکن د دغه تقدیر په ویستلو سره د شارع علیه السلام غرض فوت شوی دی. له همدې وجهې په کامل سره یې ترجمه کول نه دي په کار، بلکې دا حصر ادعائي دی چې مسلمان بس هغه دی چې د کوم له لاس او ژبې نه نور مسلمانان محفوظ وي (المرقات ۱۴۳ / ۱).

دلته مبتداء او خبر دواړه معرفې دي د دې فائده همدا حصر دی، همدارنګه عربي محاوره هم ده چې **(الناس العرب، المال الابل)** دا ټول د حصر ادعائي د قبیلې نه دي، یعنې **(افضل المال الابل، افضل الناس العرب)** نو الف لام جنسي د مدح دپاره دی، شاه انور شاه کشمیري رحمه الله هم داسې ویلي دي چې د علمي تحقیق او د قیوداتو د تدقیق او تعمیق تر اندازې خو دا قید لګول صحیح دی، لیکن دا تاویل ځکه مناسب نه دی چې په دې سره په کلام کې زور باقي نه پاتې کیږي او د شارع مقصود فوت کیږي، همدارنګه د ټولو احادیثو همدا مطلب اخستل په کار دي.

یعنې مسلمان خو هغه دی په کوم کې چې سلامتي وي، مهاجر خو هغه دی په کوم کې چې هجرت عن المعاصي وي مجاهد خو هغه دی په کوم کې چې جهد في العمل وي هغه څه مسلمان دی په کوم کې چې دسلامتی ماده نه وي، هغه څه مهاجر دی په کوم کې چې د هجرت ماده نه وي او د هجرت صفت په کې نه وي هغه څه مجاهد دی په کوم کې چې د عمل جهد او د عبادت مشقت نشته دی (الکاشف ۱۱۱ – ۱/۱۱۲)

**سوال**: دلته دا اعتراض دی د سلامتی صفت که چیرته په غیر مسلم کې راشي یا په مسلمان کې صرف

---

(۱) اخرجه البخاري ۵۳/۱ ،رقم الحدیث (۱۰) کتاب الایمان، ومسلم في صحیحه ۶۵/۱، رقم الحدیث ،(۶۵،۴۱)، کتاب الایمان ، وابوداود في سننه ،۹/۳ ، رقم الحدیث (۲۳۸۱)، والنسائي في سننه ۱۰۵/۸ ، رقم الحدیث ( ۳۹۹۶).

سلامتي وي، باقي ارکان په کې نه وي آيا هغه هم کامل مسلمان کيدی شي؟.

**جواب**: دا باب د **فتح يفتح** نه دی چې د هغه دپاره د حرف حلقي راوړل ضروري دي، ليکن دا ضروري نه ده چيرته چې حرف حلقي راشي هلته به د **فتح يفتح** باب وي، همدارنګه د مسلمان دپاره سلامتي ضروري ده، ليکن که چيرته دا صفت په غير مسلم کې پيدا شي نو ضروري نه ده چې مسلمان ورته وويل شي، د مسلمان دپاره همدا اوصاف ضروري دي.

**المسلمون**: دلته يو اشکال دی چې: د ضرر رسولو نه حفاظت خو صرف د مسلمان سره خاص شوی دی حالانکه کوم ناروا ضرر رسول کوم کافر ته څه چې ځناور ته يې رسول هم منعه دي لکه څرنګه چې په قرآن او احاديثو کې د دې تصريح ده، نو دلته مسلمون ولې خاص کړی شول؟.

**جواب**: چونکه د مسلمان د ضرر رسولو نه د بچ کيدو تاکيد الله تعالی کړی دی نو ځکه هغه ذکر شوی دی، دا قيد احترازي نه دی، بلکې اتفاقي دی چې د مسلمان سره زياته واسطه لري، ورنه نو په ناحقه طريقې خو ضرر رسول نر او ښځې، مسلم او غير مسلم بلکې ځناورو ته هم روا نه دی، همدا وجه ده چې په بعضو روايتونو کې د **المسلمون** پر ځای د **(من سلم الناس من لسانه ويده)** الفاظ راغلي دي او **(المؤمن من امنه الناس على دمائهم واموالهم)** الفاظ ذکر شوي دي **(المرقات ۱/۱۴۲)**.

ددې نه وروسته دا هم ملحوظ دي چې د حدود الله تنفيذ او اجراء، تعزيرات، ضرب اطفال، جهاد في سبيل الله دا ټول شيان د اصلاح دپاره دي، دا عرفا ضرر نه ده يا شرعًا مستثنی دی او **المسلمون** چې ويل شوي جهاد جدا کړی شوی ځکه چې جهاد د کافرانو سره وي، بهر حال په حديث کې بلا وجه او بلا غرض په ناحقه د ضرر رسولو نه منعه شوې، په صحيح وجه او معقول سبب سره سزا ورکول نه دي منع شوي.

**من لسانه**: په ژبې ضرر کې کنځل، لعن طعن، غيبت، چغلخوري، بهتان وغيره ټول داخل دي، ژبه يې په لاس باندې مقدمه کړه ځکه چې د ژبې ضرر ژوندو، مړو، حاضرينو، غائبينو، مخکنيو، نيکانو او فاسقانو ټولو ته عام دی، يا ځکه چې د ژبې زخم ډير سخت وي نو د هغې ضرر هم عام دی او تام هم دی. (المرقات ۱/۱۴۳). په عربي کې ويلي شوې دي:

**جراحات السنان لها التيام ۞ ولا يلتام ما جرح اللسان**

يو چا په فارسي کې ويلي دي:

*جراحت نيزه را گرد و بدارو ۞ ولے جرح زبان را نيست دارو*

د **من لسانه** لفظ يې غوره کړ **من قوله** يې ونه ويله، ځکه چې په بعضو وختونو کې په خپله دد ې فعلي کيفيت ضرر وي، لکه يو څوک چې د ژبې په راويستلو سره ټوقې او استهزاء کوي نو لسانه هغو لره هم

شامل دی. د **"من لسانه"** لفظ یې اختیار کړو **"من قوله"** یې نه دي فرمایلي ځکه چې بعضې وختونو کې ژبه خپل کیفیت فعلي سره تکلیفونه ورکوي مثلاً ژبه راوباسي او توقي او مسخرې ورسره وکړي شي، نو **"لسانه"** دې لره هم شامل وي.

**ویده**: د لاس په ضرر رسولو کې وهل ټکول، قتل (وژل)، هدم، او د یو چا په حق کې ناروا لیکل کول یا په لاس سره په اشاره کولو سره ضرر رسول ټول په کې داخل دي.
د لاس یادول د ټولو اندامونو نه کنایه ده، ځکه چې په لاس سره ټول افعال ظاهریږي، له همدې وجهې په منفرد طور لاس ذکر کړی شوی دی، د لاس نه مراد ظاهري لاس هم دی او د هغه نه معنوي لاس یعنې په کوم شي باندې قبضه کول او په ناروا طریقې د هغه وهل هم داخل دي (المرقات ۱۴۳/۱).

**والمهاجر**: یو ظاهري هجرت دی کوم چې **(ترک الوطن لاجل الدین)** دی، ددې هجرت سره متعلق مخکې بحث شوی دی او ان شاء الله په آئنده کې به هم په کوم ځای کې تفصیل راشي، دویم باطني هجرت دی، یعنې **ترک ماتدعوا الیه النفس الامارة یا ترک ما نهی الله عنه** دا دویم اطلاق د لغوي مفهوم په رڼا کې دی په کوم کې چې د مهاجر د مبدء اشتقاق په حواله خبره شوې ده (المرقات۱۴۳/۱).
مثلا په ذکر شوي حدیث کې دا مفهوم دی چې یو کس کور پریږدي د وطن او دوستانو نه جدا شي، لمحه په لمحه تکلیفونه برداشت کوي، دا د دې دپاره کوي ترڅو چې همدا کس لرې لاړ شي او د خپل رب اطاعت وکړي او د ګناهونو نه ځان وساتي، اوس که چیرته یو مهاجر ګناه نه پریږدي د الله نافرماني کوي نو داسې کس د دې مستحق نه دی چې هغه ته دې مهاجر وویل شي.

**ای المسلمین خیر**: یعنې په مسلمانانو کې د ټولو نه بهتر مسلمان څوک دی؟.

**سوال**: دلته یو مشهور اشکال دی او هغه دا دی چې په احادیثو کې د **(ای المسلمین خیر)** په شان **ای الاسلام احب یا ای الاعمال افضل** وغیره مختلف سوالونه د رسول الله ﷺ نه شوي دي او د ټولو مقصد دا دی چې په اسلامي اعمالو کې له ټولو بهتر عمل کوم یو دی؟ د دې ټولو جواب په ظاهره یو راوړل په کار دي ځکه چې د ټولو نه بهتر یو کیدې شي، لیکن په احادیثو کې جوابونه مختلف راغلي؟.

لهذا په دغه ذکر شوي حدیث کې **من سلم المسلمون من لسانه** راغلی، په بعضو روایتونو کې **ای الاسلام خیر** په جواب کې **تطعم الطعام وتقرأ السلام** راغلی، په بعضو روایتونو کې د **ای الاعمال افضل** په جواب کې **الصلوة لوقتها** راغلی، او د همداسې سوال په جواب کې په بعضو ځایونو کې **الایمان بالله** راغلی او په بعضو ځایونو کې **الجهاد في سبیل الله** راغلی او په بعضو کې **بر الوالدین** راغلی،

همدارنگه نور سوالونه او جوابونه په احاديثو کې ذکر دي. کله چې سوال يو دی مقصود هم يو دی چې کوم عمل بهتر دی نو جوابونه يې ولې مختلف دي؟.

**جوابونه**: (۱) د سوالو کوونکو د احوالو په اعتبار سره جواب ورکړی شوی دی، په کومو کې چې کوم کمی محسوس شوی دی هغو ته په ترغيب کې جواب ورکول شوی دی، يا په چا کې چې کوم استعداد ليدل شوی دی د هغه موافق جواب ورکول شوی دی.

(۲) د زمانې د احوالو په اعتبار سره جواب ورکول شوی، د حج په زمانه کې د حج د ترغيب د پاره هغه ته له ټولو افضل ويل شوي، د جهاد په زمانه کې جهاد د ټولو نه بهتر گڼل شوی، د مونځ په وخت کې د مونځ ترغيب ورکړی شوی، د کومې بلې قربانۍ او ايثار په وخت کې د هغو ترغيب ورکړی شوی.

(۳) امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې افضل يوه نوع ده د کوم ماتحت چې يو فرد نه دی بلکې ډير افراد دي، اوس چې په کومو کومو شيانو باندې د افضليت حکم لګول شوی هغه ټول د همدې نوع لاندې داخل دي، دغه افراد د يو بل سره معارض نه دي، بلکې معاون او موافق دي.

(۴) علامه شبير احمد عثماني رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د افضليت اعتبارات مختلف دي، مثلا حضرت ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ افضل دی د **ارحم امة** په اعتبار سره، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ **اشدهم في امر الله** په اعتبار سره، حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ **اصدقهم حياء** په اعتبار سره افضل دی او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د **اقضاهم** په اعتبار سره افضل دی نو هيڅ تعارض او تضاد نشته دی، د فضيلت جهات مختلف دي.

**۱۹ ذيقعده ۱۴۰۹ هـ**

## د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د محبت درجات

| |
|---|
| **(٦) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ** |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: (کامل) مؤمن نه شي جوړيدی په تاسو |
| **حَتَّى أَكُونَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهِ، وَوَلَدِهِ، وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).**[1] |
| کې هيڅ كس تر هغه وخته ترڅو چې زه هغه ته د هغه د پلار، اولاد او د ټولو خلکو نه زيات محبوب نه شم. |

**توضيح**: انس بن مالک بن نضر الانصاري الخزرجي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د لسو کلونو په عمر کې د ده مور ام سليم

(۱) اخرجه البخاري ۵۸/۱، رقم الحديث ۱۴، كتاب الايمان، باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الايمان، ومسلم في صحيحه ۶۷/۱، رقم الحديث (۶۹-۴۴) كتاب الايمان، باب بيان خصال من اتصف بهن وجد حلاوة الايمان. والنسائي في سننه ۱۱۴/۸، رقم الحديث (۵۰۱۳)، وابن ماجه في سننه ۲۶/۱، رقم الحديث ۶۷، واحمد في مسنده ۲۰۷/۳.

رضي الله عنها دی نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته په هغه وخت کې راووست کوم وخت چې د ده پلار وفات شوی وو او مور يې له ابو طلحه سره نکاح کړې وه، ام سليم رضي الله عنها رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل : **خويدمک ادع الله له**، رسول الله صلى الله عليه وسلم د مال او اولاد د برکت دعا داسې وکړه :**اللهم بارک في ماله وولده واطل عمره واغفر ذنبه**، د دې دعا اثر دا شو چې په خپله يې ويلي دي چې ما په خپل لاس ۹۸ ماشومان دفن کړي د دې ميوې حال دا وو چې په کال کې به يې دوه ځلې فصل کولو، حضرت عمر رضي الله عنه د فقه او احاديثو د تعليم دپاره د معلم په صفت بصرې ته ليږلی وو، ورته وې فرمايل چې اوس د اوږده عمر د وجهې ستومانه شوی يم او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د اخيرنۍ دعا د مغفرت اميد لرم، تر لسو کلونو پورې د رسول الله صلى الله عليه وسلم خاص خادم پاتې شوی دی او د سلو کلونو نه څه زيات عمر يې موندلی، په بصره کې په (۹۳ هجري) کې وفات شوی (المرقات ۱۴۴/۱).

**احب اليه من والده** : احب د محبوب په معنی سره دی.

**والده** : د عاقل کس په نزد د اهل او مال نه بلکې د خپل نفس نه هم والد او ولد معزز دي، لهذا خپل ځان په هلاکت کې اچوي مګر هغوی بچ کوي، همدا وجه ده چې د انس په حديث کې د **(نفس)** لفظ نشته او په نورو روايتونو کې شته په دې کې هيڅ تعارض نشته، ځکه کله چې د والد لفظ راغی نو والد خو د نفس نه عزيز دی، لهذا د نفس ذکر کولو ته ضرورت نشته.په حديث کې **والد** په **ولد** باندې مقدم شوی، ځکه چې **والد** د وجود په اعتبار سره هم مقدم دی او هم معظم دی، او که چېرته **ولد** مقدم شوی وای لکه په مسلم کې چې دي نو بيا د شفقت د وجهې مقدم شوی دی، د والد نه مراد من **ذا الولد** دی کوم چې مور ته هم شامل دی، لهذا د والد نه مراد والد او والده دواړه دي، داټول د تمثيل په طور دي، مراد عام دوستان، اصول فروع، نفس او مال دي، ددې وروسته په**والناس اجمعين** کې تعميم بعد تخصيص دی په کوم کې چې ټول انسانان راغلل.ابن بطال رحمه الله محبت په دريو اقسامو تقسيم کړی دی :(۱) د جلال او عظمت محبت لکه د والدينو سره محبت(۲) د شفقت محبت لکه د اولاد سره محبت(۳) د لذت محبت لکه د ښځې او ميړه محبت چې دی، په دې حديث کې د همدې دريواړو طرف ته اشاره شوې ده.

په**والد** سره اول قسم په **ولد** سره دويم قسم او په **الناس اجمعين** سره دريم قسم ته اشاره شوې ده، په دې باندې په نورو الفاظو سره داسې پوهه شئ محبت که له غټ سره دی که له واړه سره دی او يا له مساوي سره دی، په حديث کې د **والده** نه غټ د **ولده** نه ورکوټی او په **الناس اجمعين** سره د مساوي طرف ته اشاره ده، دريواړه قسمه محبت راغی.

**سوال**: دلته مشهور اشکال دی چې په دغه حدیث کې د رسول محبت د ایمان دپاره معیار گرځول شوی، سره ددې چې طبعي محبت د والدینو او اولاد سره ډیر وي نو بیا به څوک مؤمن پاتې شي؟ همدارنګه محبت خو غیر اختیاري شی دی هغه د ایمان معیار څنګه جوړیدلی شي؟.

**جواب**: ددې سوال جواب دادی چې د محبت درې قسمه دي: **اول**: طبعي محبت دی لکه د اولاد والدینو وغیره سره محبت دا غیر اختیاري وي، دا قسم د بحث نه خارج دی ځکه چې ﴿لَا يُكَلِّفُ اللهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾ دی، قاضي بیضاوي رَحِمَهُ اللهُ او علامه خطابي رَحِمَهُ اللهُ ویلي چې دلته طبعي محبت مراد نه دی. **دويم**: عقلي محبت دی هغه دا چې یو کار د خواهش نه خلاف دی طبعیت د هغه نه انکار کوي، لیکن عقل ورته وايي چې په دې کې ګټه ده نو دا کس هماغه کار کوي، یا هماغه شی استعمالوي، اګر که د خواهش او مزاج خلاف دی، مثلا مریض دی هغه ترخه دواء طبعا بده ګڼي، په نهاره خیټه د کریلې او به څښل د ځان وژل ګڼي مګر عقل مریضتیا ته په کتلو سره دا ښه ګڼي ځکه چې په دې کې شفاء ده، بالکل همدارنګه دا محبت دی، مثلا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم راشي چې دا کار وکړه او د والدینو او ولد حکم راشي چې دا کار مه کوه نو اګر که طبعي میلان د والدینو طرف ته دی لیکن عقل وايي چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم و منه ځکه چې په دې کې د آخرت ګټه ده، د مثال په طور رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو چاته د والدینو د وژلو حکم وکړي د اولاد د وژلو حکم وکړي ځکه چې هغوی کافران دي یا د کفارو سره د جهاد کولو حکم وکړي نو طبعا دا کار د روند دی، مګر عقل وايي چې د دارینو کامیابي په دې کې ده په دې باندې عمل کول دي، دا عقلي تقاضا ده، په حدیث کې د مونږ نه چې د کوم محبت غوښتنه ده دا همدغه عقلي محبت دی، نه طبعي محبت کوم چې غیر اختیاري هم دی. **دريم**: شرعي ایماني محبت دی، دا هم دلته مطلوب دی او هغه دا دی چې :(**ایثار جمیع اغراض المحبوب علی اغراض غیره حتی القریب والنفس وهذا الحب هو الناشی عن الایمان والاجلال والتوقیر والرحمة**) (**المرقات ۱/۱۴۵**).

بعضو شارحینو په (**لایؤمن**) کې (لا) د کمال دپاره راوړی دی چې کامل مؤمن کیدلی نه شي، په بخاري شریف کې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یوه واقعه لیکل شوې ده چې ده رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه عرض وکړ :(**لأنت احب الی من کل شیء الا من نفسی قال علیه السلام لا حتی اکون احب الیک من نفسک فقال عمر فانک الآن احب الی من نفسی فقال عَلَيْهِ السَّلَامُ الآن یا عمر**) په دغه واقعه کې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د طبعي محبت غوښتنه کړې ده، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړ هغه څنګه کیدلی شي، بیا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د توجو پرده واچوله نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د طبعي محبت اقرار وکړ بیا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې اوس ایمان کامل شو .حضرت سید

محمد یوسف بنوري رَحِمَهُ‌الله ویلي وو چې زما ذوق دا دی چې په دغه حدیث کې د محبت نه مراد هغه محبت دی دکوم ابتداء چې عقلي وي او انتهاء يې طبعي وي، ځکه چې صحابه کرامو رَضِيَ‌اللهُ‌عَنهُم د همداسې طبعي محبت عملي ثبوت وړاندې کړی دی.(۱) مثلا کله چې رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم وفات شو نو دا صدمه صحابه کرامو رَضِيَ‌اللهُ‌عَنهُم برداشت نه کړی شوه حضرت عمر رَضِيَ‌اللهُ‌عَنهُ په وختې طور د وفات نه انکار کولو، حضرت عثمان رَضِيَ‌اللهُ‌عَنهُ د غم د وجهې د یو چا د سلام آوریدو او هغه ته د جواب ورکولو قابل نه وو پاتې شوی، یو شمیر صحابه کرامو مدینه منوره پرېښوده شام او نورو ځایونو ته لاړل چې د محبوب نه بغیر په مدینه کې اوسیدل گران دي او په عامو صحابه کرامو باندې روښانه دنیا تیاره شوه.

په همدې حالت کې کله چې عبدالله بن زید بن عبد ربه صاحب اذان ته د ده زوی د رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم د وفات خبر ورکړو په دې وخت کې ده په خپل باغ کې کار کولو نو ده په خپلودواړوسترگو باندې لاسونه کیښودل داسې دعا يې وغوښتله:اې الله! ستا په دې کائناتوکې دې سترگو رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم لیدلی وو کله چې رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم نشته نو ماته هم د دې سترگو ضرورت نشته، اې مولا ! زما نظر زما نه واخله، لهذا دعا په ختمیدو سره هغه ړوند شو، دا طبعي محبت وو.(۲) د احد په ورځ کله چې کفار په رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم باندې راغونډ شول او حمله يې پرې وکړه نو رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم وفرمایل : څوک شته دی کوم چې دا وخت زما نه دفاع وکړي او د ما سره په جنت کې ووسیږي؟ په دې اعلان سره په صحابه کرامو رَضِيَ‌اللهُ‌عَنهُم کې یو په بل پسې اوه صحابه کرام د رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم مخکې ودریدل د شهادت جام يې نوش کړ دا طبعي محبت وو.(۳) د احد په همدې غزا کې کله چې عارضي شکست راغی او مدینې منورې ته داوحشتناک خبرورسید وچې رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم شهید کړی شو نو د مدینې منورې نه ښځو بې اختیاره د احد میدان په طرف منډه کړل، په دوی کې یوه ښځه کلثوم بنت رافع رَضِيَ‌اللهُ‌عَنهَا وه، په لار کې یو چا ورته وویل چې د احد په جنگ کې ستا میړه شهید شو، دې ورته وویل د میړه خبرې پرېږده، دا راته ووایه چې رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم څنگه دی، بیا چا ورته وویل چې ستا پلار هم شهید شو، دې بیا هماغسې جواب ورکړ چې دا خبرې پرېږده رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم څنگه دی، بیا چا ورته وویل چې ستا ورور هم شهید شو، دې مسلسل همدا ویل چې دا خبرې پرېږدئ دا راته ووایې چې رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم څنگه دی؟ کله چې احد ته ورسیدله او رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم يې روغ جوړ سالم ولید نو وې فرمایل **کل مصیبة بعدک یارسول الله جلل** یعنې کله چې تاسو روغ جوړ یاست نو باقي ټول مصیبتونه واړه واړه دي، دا طبعي محبت وو.(۴) دمدینې منورې یو منافق د رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم په گستاخۍ کې ژبه اوږده کړه دکومې معلومات چې رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم ته وشو نو رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم د هغه د زوی په مخکې د دې یادونه وکړه، زوی يې د رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم نه د پلار د وژلو اجازه وغوښته، رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّم اجازه ورنه کړه، خو بیا هم دغه

صحابي لاړو او خپل پلار ته يې وويل چې رسول الله ﷺ وايه چې داسې وويل چې رسول الله ﷺ معزز او بزرګ دی او ته ذليل يې که نه نو وژنم دې، هغه وويل چې رسول الله ﷺ معزز دی او زه ذليل يم، بيا زوی هغه پرېښود، داطبعي محبت وُ. (۵) علماء کرامو تردېره حده دا واقعه ليکلې چې رسول الله ﷺ يوه ورځ ښکر ولګولو او وينه يې وويستله بيا يې يوه صحابي ته ورکړه او ورته وې فرمايل چې دا يو سه په کوم پټ ځای کې يې واچوه، هغه ويوړه سوچ يې وکړ چې د رسول الله ﷺ د مبارک بدن دا مقدسه وينه په زمکه څنګه وغورځوم، لهذا هغه دا وينه وڅکله راغی او رسول الله ﷺ ته يې

وويل: **القيت اخفی مکانه** ما هغه په پټ ځای کې واچوله، دا ټول د طبعي محبت آثار وو. (۶) حضرت خبيب ﷛ کله چې کفارو دوژلو ميدان ته راوست اوسولی ته يې وخيژولو نو ابوسفيان وويل: آياتاته داخبره خوښه ده چې داوخت ستاپه ځای محمد ﷺ د مونږ سره وی د هغه غاړه موپه توره پرېکړې وی او ته په خپل کورکې وی؟ دده په جواب کې حضرت خبيب ﷛ د محبت اظهار داسې وکړه: په الله قسم! ما ته دا هم خوښه نه ده چې محمد عربي ﷺ په خپل ځای کې ازغی لاړشي او زه ازاد په کورکې اوسيږم، داطبعي محبت وُ د کوم مظاهره چې صحابه کرامو ﷡ کړې وه. او امت ته يې دا تعليم ورکړی وُ چې د محبت ابتداء اګرکه عقلي او شرعي وي ليکن د هغه انتهاء طبعي کيدل په کار ده.

**دمحبت اسباب**: د محبت دری غټ اسباب دي: **اول سبب: جمال**: دی، الله تعالی رسول الله ﷺ ته د ټولو نه زيات جمال ورکړی وو، د ده ﷺ جمال د شمائل ترمذي نه واضح دی، ابو علي سينا يو لوی فلسفي اولوی حکيم تير شوی دی ده په سيرت کې يو کتاب ليکلی دی په هغه کې ده ليکلي: (حسن) د اندامونو د تناسب او د اندامونو د اعتدال نوم دی او د شمائل نه معلومه شوې چې رسول الله ﷺ د ټولو معتدل الاعضاء وو، لهذا د آدم ﷼ نه رانيولې تر اوسه پورې د رسول الله ﷺ په شان کوم حسين نه دی پيدا شوی، په خپله د رسول الله ﷺ ارشاد دی:

(**انا مليح واخي يوسف صبيح**). چا ويلي دي:

| | |
|---|---|
| حسن يوسف دم عيسى يد بيضاء داری | آنچه خوبان همه دارند تو تنها داری |
| جهان کے سارے کمالات ایک تجھ میں ہیں | تیرے کمال کسی میں نہیں مگر دو چار |
| واحسن منک لم تر قط عيني | واجمل منک لم تلد النساء |
| خلقت مبرأ من کل عيب | کانک قد خلقت کما تشاء |
| فاق النبيين في خلق و في خلق | ولم يدانوه في علم ولا کرم |
| منزه عن شريک في محاسنه | فجوهر الحسن فيه غير منقسم |

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمايي:

لنا شمس وللآفاق شمس ۞ وشمسي خير من شمس السماء
فشمس الناس تطلع بعد فجر ۞ وشمسي تطلع بعد العشاء

بيا يې وفرمايل:

لواحی زليخا لو رأين جبينه ۞ لأثرن بالقطع القلوب على اليد

يعنې که د زليخې ملګرې حضور صلی الله علیه وسلم لره کتلی وی نو د ګوتو په ځای به يې زړونه کټ کړي وو.

يا صاحب الجمال ويا سيد البشر ۞ من وجهک المنير لقد نور القمر
لا يمكن الثناء كما كان حقه ۞ بعد از خدا بزرگ توئی قصه مختصر
لن يخلق الرحمن مثل محمد ۞ ابدا وعلمي انه لم يخلق
مظهر چه توان کرد بيان وصف جمالش ۞ شد خالق کونين ثنا خوان محمد صلی الله علیه وسلم

**د محبت دویم سبب: کمال**: دی، د رسول الله صلی الله علیه وسلم د کمالاتو شمارل ممکن نه دي، مګر د ختم نبوت چې کوم کمال دی دا داسې کمال دی د کوم د اثراتو نه چې اولین او آخرين ټول په يوه وخت کې مستفيض شوي دي.

وكل اٰي من رسل الكرام به ۞ فانه ما اتصلت من نوره بهم

جہان کے سارے کمالات ایک تجھ میں ہیں ۞ ترے کمال کسی میں نہیں مگر دو چار

ختم نبوت په دې اعتبار سره کمال دی چې الله تعالی چې انبياء کرامو علیهم السلام اولياء کرامو او د آدم علیه السلام اولاد ته چې څه ورکړي وو هغه يې ورکړل بيا په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې د کمالاتو تکميل وکړ ګويا چې الله تعالی وښودل چې څومره کمالات دي هغه ټول ما خپل نبي ته ورکړي دي، د روحانياتو تکميل مې په ده باندې کړی، اوس د کوم بل نبي د راتلو امکان نشته، ځکه چې څومره روحانيات او ماديات رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورکړی شوي اوس دده نه وروسته بل چاته د څه ورکولو امکان نشته، ګويا چې د انعاماتو او اکراماتو تکميل په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې شوی دی.

مضت الدهور وما اتين بمثله ۞ ولقد اتى فعجزن عن نظر اته
لا يمكن الثناء كما كان حقه ۞ بعد از خدا بزرگ توئی قصه مختصر
لنفسي الفداء لمن اخلاقه شهدت ۞ بانه خير مولود من البشر
آفاقها گرديده ام ۞ مهر بتان ورزيده ام

بسیار خوبان دیده ایم ❁ لیکن تو چیزے دیگرے

**د محبت دریم سبب**: ورکړه ده یعنې جود او سخاوت کول، په رسول الله ﷺ باندې د سخاوت انتهاء شوې وه، حضرت عائشې رضی الله عنها ویلي چې په رمضان کې به د رسول الله ﷺ سخاوت د تیزې هوا په شان ؤ، ده دا تعلیم ورکړ چې (**ولاتخش من ذی العرش اقلالا**) یو باند چې ته یې ډکه وادي ګډان ورکړل، هیڅکله یې په مبارکه ژبه باندې د ورکړې په موجودیت کې د (لا) کلمه نه ده راغلې.

**ما قال لا قط الا في تشهد** ❁ **لولا التشهد لکانت لائه نعم**

**نحن الفداء لقبر انت ساکنه** ❁ **فیه العفاف وفیه الجود والکرم**

د حنین په میدان کې رسول الله ﷺ د خپلو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه بغیر غیر مسلمو ته په زرګونو اوښان ورکړل او نړۍ یې په حیرانتیا کې واچوله، نوې مسلمان شویو ته یوه یوه کس ته یې سل سل اوښان ورکړل د سخاوت تاریخ یې جوړ کړ. کله چې په رسول الله ﷺ کې جمال په کامله درجه وو نو کمال هم په کامله درجه وو، عطیه هم په کامله درجه وه نو د ده ﷺ سره محبت ساتل د ده ﷺ ذاتي حق دی، په همدې وجهې په شرعي طور د رسول الله ﷺ سره محبت کول په دې حدیث کې کوم چې د ایمان برخه ګرځول شوی دا د ده ﷺ ذاتي حق دی کوم چې په هر مسلمان باندې لازم دی.

**۲۰ ذیقعده ۱٤۰۹هـ**

## د ایمان د خوند (لذت) حصول:

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ |
| د انس رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: په کوم کس کې چې دا درې شیان وي |
| وَجَدَ بِهِنَّ حَلَاوَةَ الْإِيْمَانِ ، مَنْ كَانَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ |
| هغه په همدې سره د حقیقي ایمان خوند حاصلولی شي: اول دا چې د هغه محبت به د الله او د هغه د رسول سره |
| مِمَّا سِوَاهُمَا ، وَ مَنْ أَحَبَّ عَبْدًا لَا يُحِبُّهُ إِلَّا لِلّٰهِ ، |
| د دنیا د ټولو شیانو نه زیات وي، دویم دا چې د کوم بنده سره به د هغه محبت صرف د الله د رضا د پاره وي، |
| وَ مَنْ يَكْرَهُ أَنْ يَعُوْدَ فِي الْكُفْرِ بَعْدَ أَنْ أَنْقَذَهُ اللّٰهُ مِنْهُ |
| دریم دا چې بد به ګڼي کفر ته را واپس کیدل پس د هغې نه چې هغه الله تعالی د کفر د تیارې نه را ویستلی |

كَمَا يَكْرَهُ أَنْ يُلْقَى فِي النَّارِ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

او د اسلام په رڼائي کې يې داخل کړی وي لکه څومره چې په اور کې اچول بد ګڼي.

**توضیح** : **ثلاث** : **ثلاث** مبتداء ده او **(من كن فيه)** پوره جمله شرطيه د هغه خبر دی، اوس سوال دا دی چې **ثلاث** نکره ده دا څنګه مبتداء واقع کيدی شي؟

**جواب** : د دې يو جواب دا دی چې نکره محضه نه ده ، بلکې نکره مخصصه ده، دا په خپله صفت دی او موصوف خصال محذوف دی، يعنې **(خصال ثلاث)** نو دا اعتراض ونه شو ، دويم جواب دا دی چې دا د **ثلاث** تنوين د تعظيم د پاره دی، يعنې دری لوی (غټ) شيان دي. (المرقات ۱۴۶--۱۴۷/۱)

**وجد** : د ادرک په معنی دی او د **(ذاق)** په معنی هم دی او د **(صادف)** هم دغه معنی ده.

**حلاوة الايمان** : ددې ايماني حلاوت دوه مطلبه دي: (۱) **اى استلذاذ الطاعات وايثار الطاعات على جميع الشهوات وتحمل المشقات في مرضاة الله ورسوله والرضاء بالقضاء في جميع الحالات** (المرقات ۱/۱٤۷)

(۲) د ايماني حلاوت نه مراد قلبي خوند **(او التذاذ)** دی کوم ته چې په نورو روايتونو کې قلبي بشاشت ويل شوی دی، يعنې چاته چې دنيوي خوندونه په نظر هيڅ ورځي او صرف په طاعاتو کې اصلي حلاوت او لذت محسوسوي، د الله او د هغه د رسول محبت په هر مسلمان کې شته مګر عند المعارضه بنکاره کيږي، د حب في الله اعلی درجه دا ده چې په کثرت عطايا و سره په هغه کې زياتوالی نه راځي او د مصيبتونو د سختوالي په وخت کې په هغه کې کمی نه راځي.په دې حديث کې رسول الله ﷺ دا ښودلي دي چې د ايمان اصلي حلاوت خوند هغه انسان څکلی شي د کوم زړه چې په روحاني صفاتو سره منور وي او هغه په روحاني اعتبار سره بالکل صحيح وي، که چيرته کوم کس په روحاني اعتبار سره ناروغ وي يعنې د هغه زړه د روحاني صفاتو نه خالي وي نو داسې کس د ايمان حلاوت ښخې محسوس کولی نه شي،ددې مثال ديوه تندرست او ناروغ انسان په شان دی،که چيرته کوم انسان تندرست او صحتمند وي نو هغه د شاتو حلاوت داسې محسوسولی شي څرنګه چې د شاتو حقيقت دی،ليکن که چيرته کوم کس د صفراء ناروغ وي نو داسې کس چې شات وڅکي اعلان به وکړي چې شات ترخه دي، سره ددې شات ترخه نه دي،بلکې دا قصور د همدغه ناروغ کس دی چې د صفراء د وجې نه ده ته خوندور

شی تریخ ښکاري، بالکل همدا شان که چیرته کوم کس په روحاني مرضونو کې مبتلا وي نو هغه د اسلام حقیقي لذت هیڅکله نه شي محسوسولی، هغه برعکس همدې خوند ورشي ته د تریخ ویلو کوشش کوي، لیکن که چیرته په روحاني اعتبار سره دا کس تندرست وي نو د ایمان اعلی ترین لذت محسوسولی شي، په دې اعتراف کوي او اعلان کوي چې آو دا خوند ورنعمت دی د روحاني تندرست دپاره (المرقات ۱/۱۴۷)

په دې حدیث کې د ایماني حلاوت محسوسولو دپاره درې څیزونه ضروري ګڼل شوي، اول دا چې د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ محبت به په نورو ټولو محبتونو باندې زیات وي، دویم دا که چیرته د کوم مخلوق سره محبت وي نو هغه به هم صرف د الله دپاره وي، دریم دا چې د مسلمانیدو نه وروسته د کفر نه به دومره نفرت وي څومره چې په اور کې د غورځیدو نه وي، خلاصه دا ده څوک چې ایماني لذت محسوس کړي نو په اسلام باندې ټګ کول آسان شي ورنه بیا به یو غټ تکلیف محسوسوي او تښتي به. (المرقات ۱/۱۴۷)

**من کان** : دلته د تقدیري عبارت منل ضروري دي یعنې (**احداها محبة من کان الله ورسوله احب ...الخ**) د احب نه شرعي اختیاري محبت مراد دی. (المرقات ۱/۱۴۷)

**مما سواهما** : دا سواهما عام دی ذوی العقول وي که غیر ذوی العقول وي، که د مال نه وي که جاه او منصب نه وي یا که د شهواتو نه وي. (المرقات ۱/۱۴۷)

**سوال**: اشکال دا دی چې رسول الله ﷺ دلته د الله تعالی نوم او خپل نوم په تثنیه سره په یو ضمیر کې جمع کړی دی یعنې (**مما سواهما**) همدارنګه د نکاح په خطبه کې دواړه په یو ضمیر (**هما**) کې جمع شوي دي حالانکه رسول الله ﷺ په خپله له همدې الفاظو منعه کړې ده چا چې همدا الفاظ ویلي وو: (**من یطع الله ورسوله فقد رشد ومن یعصهما فقد غوی، فقال علیه السلام بئس الخطیب انت قم**) اوس د دې جواب څه دی؟. (المرقات ۱/۱۴۷)

**جواب** : شارحینو د دې سوال ډیر جوابونه ورکړي دي : **اول جواب** : دا دی چې دا اعتراض د رسول الله ﷺ طرف ته متوجه نه دی ، ځکه کله یو شی د امت دپاره منع شوی دی د رسول الله ﷺ دپاره منعه نه دی، د دې وجه دا ده چې مثلا (هما) په ضمیر کې که چیرته رسول الله ﷺ دواړه نومونه یو ځای راوړي نو د ده نه د شرک، تسویې او برابرۍ وهم نه شي کیدلی، لیکن په نورو کې دا احتمال شته دی چې دوی د اتحاد ضمیر له وجهې د اشتراک او مساوات ګمان وکړي نو ځکه منعه شوې. (المرقات ۱/۱۴۷)

**دویم جواب**: دا دی چې په اطاعت کې خو د دواړو جمع کول صحیح دي، ځکه چې د یوه اطاعت ناتمام

دی، پاتې شوه د معصیت معامله نو په هغو کې یو معصیت هم تباه کوونکی دی او خطیب دواړه معصیتونه د تباهۍ او ګمراهۍ دپاره ضروري جوړ کړي. (المرقات ۱/۱۴۷)

**دریم جواب**: دا چې د رسول الله ﷺ په وړاندې د اجازې نه بغیر د خطیب و دریدل د خطبې دپاره او خطبه ورکول ځومره د بې ادبۍ خبره ده، شاید په همدې وجه رسول الله ﷺ منعه کړې وي، دا وجه په کوم کتاب کې نه ده ترلاسه شوې، ممکنه ده چې صحیح وي که نه نو بنده د معافۍ غوښتونکی دی. **وثالیتها محبة من احب عبدا حرا کان او عبدا مملوکا لا یحبه ای لا یحبه لغرض وعرض وعوض ولا یشوب محبته حظ دنیوی ولا امر بشری بل محبته تکون خالصة الله تعالی. (المرقات ۱/۱۴۸)**

محبت رکھے پاک یعنی لینے دینے کے منہ میں خاک

**وثالثتها کراهة من یکره ان یعود**: د عود دوه معناګانې اخستل شوې دي، اول دا چې یو انسان په اسلام باندې پیدا شو په هغه کې را غټ شو اوس دا کس د کفر طرف ته ګرځیدل بد ګڼي نو دا عود د صیرورت په معنی سره دی. د عود دویمه معنی د اول حالت طرف ته د ورګرځیدلو ده، دا بیان د هغو خلکو په وړاندې مناسب دی کوم چې اول په کفر باندې وو بیا مسلمانان شول، اوس دوباره د اول حالت کفر طرف ته ورګرځیدل بد ګڼي. (المرقات ۱/۱۴۸).

په دې حدیث کې د ایمان د حلاوت چې کوم بیان شوی دی په هغه باندې دا بحث شوی چې آیا دا حلاوت حسي دی چې د انسان په خوله کې محسوس کړی شي او که معنوي حلاوت دی؟ ابن حجر رحمه الله د حسي قول هم کړی دی. په کوم باندې چې ملا علي قاري د سخت تعجب اظهار کړی دی چې حسي کیدلی څنګه شي، مګر د صوفیانو اکثریت هم په همدې باندې دی چې حسي ظاهري کیدلی شي، د بهر د باطن د صفائي سره د هغه تعلق دی نو اصحاب کمال دا تشریح د نظر نه نه غورځوي، عامو علماؤ معنوي حلاوت مراد کړی دی. په دې حدیث کې د دریو صفاتو بیان دی، اول دوه صفتونه خو **تحلی وتزین بالفواضل والفضائل** د قبیلې نه دي، او دریم صفت د (**تخلی من الرذائل**) د قبیلې نه دی، ګویا چې په دې سره اشاره وشوه چې د کفر نه د براءت اعلان هم د ایمان د تکمیل دپاره ضروري دی.

## د ایمان خوند کله حاصلیدی شي

| |
|---|
| (۸) وَعَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د حضرت عباس بن عبد المطلب رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې رسول الله ﷺ و فرمایل: |
| ذَاقَ طَعْمَ الْإِيمَانِ مَنْ رَضِيَ بِاللهِ رَبًّا ، وَ بِالْإِسْلَامِ دِينًا ، وَ |
| وڅکلو خوند د ایمان هغه کس چې خوشحاله وي د الله تعالی په رب کیدو ، او د اسلام په دین کیدو او د |

| |
|---|
| بِمُحَمَّدٍ رَسُوْلًا . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| محمد ﷺ په رسول كيدو باندې . |

**توضيح**: حضرت عباس رضي الله عنه د نبي عليه السلام تره دى، دوه كاله دده نه په عمر كې مشر دى، چا ورنه سوال وكړو چې په تاسو كې كوم يو مشر دى ده ورته وفرمايل چې رسول الله ﷺ مشر دى، البته زه (اسن) يعنې په عمر كې زيات يم، دا دهغه ذكاوت ؤ، قديم الاسلام ؤ، مگر اسلام يې پټ كړى ؤ، د مكې د فتح نه څه موده مخكې يې هجرت وكړو او ښكاره يې كړ، بدر ته مجبور شوى ؤ او دجنگ دپاره راوستل شوى ؤ، د همدې وجې نه نبي عليه السلام مسلمانان دده د وژلو نه منعه كړي وو. (المرقات ۱/۱۴۹)

د ده مور اولنۍ ښځه وه كومې چې كعبې شريفې ته د غلاف اغوستل رواج كړل، د هغې په وركيدو باندې يې نذر منلى وو چې غلاف به ور اغوندم. (المرقات ۱/۱۴۸)

دحضرت عباس رضي الله عنه عمر ۸۸ كاله وو په ۳۲ هجري كې وفات شوى او په جنت البقيع كې دفن شوى.

**ذاق : اى وجدوا صاب ونال**، يعنې ايماني حلاوت يې پيدا كړو، ابن حجر رحمه الله د معنوي حلاوت په ځاى د حسي حلاوت قول كړى په كوم باندې چې ملاعلي قاري رحمه الله تعجب كړى.(المرقات ۱/۱۴۹)

**رضى**: يعنې د اسلام دپاره يې سينه خلاصه شوه او زړه يې مطمئن شو، ظاهرًا او باطنًا انقياد حاصل شو.

**بالله ربا**: د الله په ربوبيت باندې رضا والى داسې چې نه شكايت نه حكايت، په هر حالت باندې او د زمانې په هره پېښه باندې رضائيت، په اسلام باندې رضا داسې چې ټول احكامات بغير د چون چرا په ځاى كړى شي، په رسول الله ﷺ باندې رضا داسې چې په طبعي طور د رسول الله ﷺ سره د محبت دوجې دده سنت او طريقې خوښې كړي او د الله تعالى په قضاء باندې رضا شي، ملاعلي قاري رحمه الله ددې تشريح په دې الفاظو سره كړې: **اى ان يكون صابرا على بلائه شاكرا على نعمائه راضيًا بقدره وقضائه ومنعه واعطائه وان يعمل بجميع شرائع الاسلام بامتثال الاوامر و اجتناب الزواجر وان يتبع الحبيب حق متابعته في سننه وآدابه واخلاقه ومعاشرته** (المرقات ۱/۱۴۹).

ددې حديث مضمون هم د مخكني حديث په شان دى چې د شاتو معنوي او حسي لذت هغه كس محسوسولى شي د كوم چې ذائقه سمه وي، په صفراوي مرضونو سره د هغه د خولې خوند خراب شوى نه وي، همدارنگه د ايمان خوند هم هغه كس محسوسولى شي كوم چې په صحيح عقائدو او اسلامي

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۴۶، رقم الحديث (۵۶-۳۴) ، والترمذي ۵/۱۶، رقم الحديث (۲۶۲۳)، واحمد في مسنده ۱/۲۰۷ .

صفاتو متصف وي، هغه په ایمان اسلام او نبي آخر الزمان باندې داسې عقیده ولري څرنګه چې د هغه د رب د طرفه حکم شوی دی.

## اسلام د نجات مدار دی

| |
|---|
| (۹) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي |
| د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: په هغه ذات قسم! |
| نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ، لَا يَسْمَعُ بِي أَحَدٌ مِنْ هٰذِهِ الْأُمَّةِ |
| د کوم په قبضه کې چې د محمد صلی الله علیه وسلم روح دی چې زما د نبوت خبر ورته ورسیږي د دې امت نه برابره |
| يَهُودِيٌّ وَلَا نَصْرَانِيٌّ ثُمَّ يَمُوتُ وَلَمْ يُؤْمِنْ بِالَّذِي أُرْسِلْتُ بِهِ |
| خبره ده که یهودي وي که نصراني وي، او بیا مات په راوړل شوي شریعت باندې د ایمان راوړونه بغیر مړ |
| إِلَّا كَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| شي نو دا انسان د ملګرو د اور نه دی یعني دوزخي دی. |

**توضیح: والذي نفس محمد بیده:** دا قسم دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم د امت د تعلیم د پاره قسم خوړلی دی، په کوم سره چې امت ته دا تعلیم ورکول کیږي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د الله تعالی محبوب بنده ؤ، د خدائي مالک نه ؤ بلکې د ده صلی الله علیه وسلم ځان (روح) د الله تعالی په قبضه کې ؤ، دویم دا ښودل مقصود دي چې قسم صرف د الله په نوم سره کول په کار دي، دریم دا معلومه شوه چې د ضرورت نه په غیر د کلام د تاکید د پاره قسم کیدلی شي حرام نه دی، امام شافعي رحمه الله ویلي چې ما هیڅکله نه په دروغو قسم خوړلی او نه مې په رښتیا قسم خوړلی دا د ده امتیازي شان دی د **نفس محمد** نه روح د محمد صلی الله علیه وسلم ذات د محمد صلی الله علیه وسلم حالات، حرکات او سکنات د محمد صلی الله علیه وسلم مراد دي. (المرقات ۱/۱۵۰)

**بیده:** یعني د الله تعالی قدرت او د الله نعمت او رحمت په لاس نو کې دی، د **ید** لفظ د متشابهاتو نه دی، د متشابهاتو یو قسم هغه دی د کومو چې معنی معلومه ده لیکن د مراد علم نه لکه ید، وجه، ساق، جلوس، مجئ، استواء وغیره، په دې کې د سلفو صالحینو مسلک دا دی چې د ایمان راوړو د پاره هم دا ظاهري الفاظ دي، د دې معنی مایلیق بشانه ده، د دې علم الله تعالی ته سپارل شوی، لکه څرنګه چې امام مالک رحمه الله ویلي دي **الاستواء معلوم والکیفیة مجهولة والسؤال عنها بدعة**، امام ابوحنیفة

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۳۴، رقم الحديث (۲۴۰-۱۵۳).

د تحريف مترادف دی، د همدې وجهې کوم الفاظ چې راغلي دي په هغو ايمان راوړل د مايليق بشانه ويل او الله تعالی ته يې سپارل په کار دي، دا د سلف صالحينو مسلک دی﷫ پاتې شو د متاخرينو د فتنو او د بدعاتو ظهور په نظر کې نيولو دوجې مناسب تاويل کړی دی، د ايمان او عقيدې د حفاظت په غرض د زمانې د احوالو د تغير د وجې ددې هم امکان شته، مګر دا صرف تاويلات دي يقيني مطلب نه دی (المرقات ۱/۱۵۰).

رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د (يد) تاويل په قدرت سره کول د الله تعالی په صفاتو کې

**من هذه الامة**: د امت دوه قسمونه دي: يو امت اجابت دی، يعني کومو چې اسلام قبول کړی دی او د شهادت کلمه يې ويلې ده، دويم هغه چې د توحيد اقرار نه دی کړی، د اسلام د قبلولو نه يې انکار کړی هغه امت دعوت دی، د مسلمانانو نه بغير ټول انسانان په امت دعوت کې دي. (المرقات ۱/۱۵۱).

په حديث کې درې قسمه خلک راغلي يو هغه کومو چې د رسول الله ﷺ نبوت واوريده مګر ايمان يې رانه ووړ دا د اور والا دي، دويم هغه کومو چې واوريده او ايمان يې هم راووړ دا د جنت والا دي، دريم هغه کومو چې نه واوريده او نه يې ايمان راوړه دا د مسكوت عنهم په درجه کې دي.د حديث مطلب دا شو چې په رسول الله ﷺ باندې ايمان راوړل په ټولو باندې يو رنګه فرض دي، د يهودو او نصاراو دلته په خصوصيت طور د دې دپاره ذکر شوی چې دوی صاحب کتاب او اهل کتاب وو، کله چې د کتاب والاو نجات په رسول الله ﷺ باندې د ايمان راوړلو نه بغير ممکن نه دي نو د کومو سره چې هيڅ هم نشته لکه هندوان، سکهان، ملحد او بې دينه نو د دوی نجات به د ايمان نه بغير څنګه راشي.په دغه حديث کې لايسمع کې لا په معنی د **ليس** دی او **احد** د هغه اسم دی او **يسمع من هذه الامة** ... **احد** صفت دی او **يهودي ولا نصراني** ... **احد** نه بدل واقع شوی او د **ليس** خبر محذوف دی، عبارت داسې دی : (**ليس احد يسمع من هذه الامة يهودي ولا نصراني الخ كائنا من اصحاب شيء الا كان من اصحاب النار**).

۲۲ ذيقعده ۱٤۰۹هـ

## دوه چنده اجر موندونکي

| |
|---|
| (۱۰) وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةٌ |
| دابوموسی اشعري رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: درې کسان داسې دي |
| لَهُمْ أَجْرَانِ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ آمَنَ |
| کوموته چې دوه اجرونه ورکول کيږي(۱)اهل کتاب يهودي عيسائي کوم چې مخکې ايمان لرلو په خپل |

| |
|---|
| بِنَبِيِّهِ وَ آمَنَ بِمُحَمَّدٍ ، وَ الْعَبْدُ الْمَمْلُوكُ إِذَا أَدَّى حَقَّ اللهِ |
| نبي باندې او بيا يې په محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې ايمان راوړ (۲) هغه غلام کوم چې ادا کړي حقوق د الله |
| وَ حَقَّ مَوَالِيهِ ، وَ رَجُلٌ كَانَتْ عِنْدَهُ أَمَةٌ يَطَؤُهَا |
| او بيا د خپل آقا (بادار) حقوق هم ادا کړي (۳) هغه کس د کوم چې کومه وينځه وي او د هغې سره صحبت کوي |
| فَأَدَّبَهَا فَأَحْسَنَ تَأْدِيبَهَا ، وَ عَلَّمَهَا فَأَحْسَنَ تَعْلِيمَهَا ، ثُمَّ أَعْتَقَهَا فَتَزَوَّجَهَا |
| بيا هغه ښه هنرمنده جوړه کړي بيا هغې ته په ښه شان تعليم ورکړي او بيا هغه آزاده کړي او نکاح ورسره وکړي |
| فَلَهُ أَجْرَانِ . ( مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ )(۱). |
| نو دا هم د دوه چنده اجر حقدار دی. |

**توضيح:** ابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جليل القدر صحابي دی، په مکه مکرمه کې يې اسلام قبول کړو، بيا يې حبشې ته هجرت وکړو، بيا د اهل سفينه سره په هغه وخت کې مدينې منورې ته راغی کله چې په (۷ هجري) کې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خيبر غزا ته تلی وو. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا د بصرې والي مقرر کړی وو، ده اهواز فتح کړ د حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تر خلافت پورې هلته اوسيده، بيا کوفې ته لاړ او د هغه ځای والي پاتې شو، کله چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شهيد کړی شو نو دا مکې مکرمې ته لاړ او هلته په (۵۲ هجري) کې وفات شو. (المرقات ۱۵۲/۱).

**د دوه چنده اجر والا اهل کتاب څوک دي :** ثلاثة مبتداء ده لهم اجران د هغه خبر دی رجل من اهل الکتاب ای احدهم رجل من اهل الکتاب. د احاديثو د شارحينو په دې کې اختلاف دی چې د اهل کتاب نه مراد صرف عيسايان دي او که يهود او عيسايان دواړه دي، صاحب ازهار حافظ تورپشتي رَحِمَهُ اللهُ او د امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ رأيه دا ده چې ددې نه مراد صرف نصرانيان عيسايان اهل کتاب دي، د دوی نقلي دليل د احاديثو د کتابونو نه هغه روايتونه دي په کومو کې چې تصريح ده چې : **(الذي امن بعيسى ثم ادرک زمان نبينا محمد فآمن به)** او په بخاري کې دي **(واذا امن بعيسى ثم امن بي فله اجران)** **(بخاري شريف ج : ۱، ص : ۳۹)** (المرقات ۱۵۲/۱).

---

(۱) اخرجه البخاري ۱/۳۵، ۱/۱۵۱، رقم الحديث ۹۷، واخرجه مسلم في صحيحه ۱/۹۳، رقم الحديث ، (۲۴۱-۱۵۳) ، والترمذي ۴/۲۴، رقم الحديث ۱۱۱۶. والدارمي في سننه ۲/۲۰۶ ، رقم الحديث ۲۲۴۴، واحمد في المسند ۴/۴۰۲.

د دې حضراتو عقلي دليل دا دی چې يهودو کله چې د حضرت عيسی د نبوت نه انکار وکړو نو دوی کافران شول او د دوی ايمان په خپل نبي موسی عليه السلام باندې ختم شو، اوس که چيرته دوی مسلمان کيږي نو دوه چنده اجر څنګه ورکول کيږي کله چې (آمن بنبيه) موجود نه دی، لهذا ددې نه يهوديان مراد کيدلی نه شي، بلکې هغه عيسايان هم ددې اجرونو نه محروم دي کوم چې د تثليث قائل وو او په خپل نبي باندې يې دروغ تړلي وو، لهذا دا حديث په عموم باندې نه شي حمل کيدی، بلکې ددې نه د عيسايانو هغه پاتې شوي خلک مراد دي کوم چې په مخکني عيسوي دين باندې قائم وو او بيا يې په رسول الله صلی الله عليه وسلم باندې ايمان راوړی، همداسې امام طحاوي رحمه الله په مشکل الآثار کې ذکر کړي دي او په يو څو روايتونو سره يې د دې تاکيد کړی دی، او د حضرت عياض بن حمار مجاشعي رحمه الله روايت يې نقل کړی دی چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه په يوه خطبه کې دوی داسې واوريدل :(ان الله عز وجل اطلع على عباده فمقتهم عربهم وعجمهم الا بقايا من اهل الكتاب).

د شاه عبدالعزيز رحمه الله او علامه طيبي رحمه الله رأيه دا ده چې دلته مطلق اهل کتاب مراد دي، برابره ده که يهوديان وي او که نصرانيان وي او دا واضحه ده. (الکاشف ۱/۱۲۵).

ملا علي قاري رحمه الله ويلي دي چې آيت: ﴿ الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ مِن قَبْلِهِ هُم بِهِ يُؤْمِنُونَ ﴾ ﴿ أُولَٰئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُم مَّرَّتَيْنِ بِمَا صَبَرُوا ﴾ او ذکر شوی حديث د يهودو او نصاراو پورې په عام کولو کې يوه فائده شته هغه دا ده چې د بني اسرائيلو څه يهوديان يا نور خلک کوم چې يهوديان جوړ شوي وو او دوي ته د حضرت عيسی عليه السلام دعوت نه وو رسيدلی نو دې يهوديانو په خپل نبي حضرت موسی عليه السلام باندې ايمان لرلی وو دوی هيڅ انکار هم نه وو کړی دوی مؤمنان وو دوی چې کله زمونږ نبي پيدا کړو او ايمان يې راوړو لکه څرنګه چې د يمن يو څه يهوديان وو دا خلک مذکور او مسطور ثواب مومي سره ددې چې دوی اهل کتاب يهوديان دي، په دې سره دا خبره واضحه شوه چې د کتاب نه مراد انجيل او تورات دی او د اهل کتاب نه يهود او نصاری دواړه مراد دي، لکه څرنګه چې د عامو نصوصو نه همدا ذهن ته راځي دي او ذکر شوي آيت هم همدا ښودلي دي، ځکه چې عبدالله بن سلام او سلمان فارسي رضي الله عنهما کې اولنی د يهوديت نه مسلمان شوی وو او دويم د عيسائيت نه مسلمان شوی وو. (المرقات ۱/۱۵۳).

اوس سوال دا دی چې د مدينې يهودو خو حضرت عيسی عليه السلام نه وو منلی، ددې جواب ملاعلي قاري رحمه الله دا ورکړی دی چې توبه استغفر الله د عبدالله بن سلام په شان خلکو د حضرت عيسی عليه السلام کفر کړی، همدارنګه دا خبره هم د يادولو ده چې آيا موسی د دين عيسی د پاره ناسخ هم وو او

که نه، که چیرته ناسخ نه وو نو کومو یهودیانو چې خپل نبي منلی رسول الله ﷺ یې منلی نو دوی د همدې آیت او همدې حدیث د دوچنده اجر مصداق شول، همدارنګه کومو عیسایانو چې د کوم بل نبي کفر نه دی کړی او په خپل نبي یې ایمان لرلی د اسلام دین او رسول الله ﷺ یې قبول کړي دي آیا دوی هم د دوچنده اجر مستحق شول.

**ورجل کانت عنده أمة یطأها** : د وطی قید یې ددې وجهې لګولی چې چاته وهم ونه شي چې رجل د هغې نه د وطی فائده واخلي نو دوچنده اجر به څنګه ورته ملاو شي؟ نو وې فرمایل چې بیشکه چې وطی هم وکړي نو دوچنده اجر به ورکړی شي او د وطی نه بغیر خو خامخا ورکول کیږي، یا دا قید احترازي نه دی بلکې اتفاقي دی (کذا في الاشعة) (المرقات ۱/۱۵۳، اشعة اللمعات ۱).

**فله اجران** : دې کس ته خو یو اجر د وینځې د تعلیم، تربیت او آدب په ښودلو سره ورکول کیږي او دویم اجر د هغې په ازادولو او د هغې سره په نکاح کولو او د کور په ملکې جوړولو ورکول کیږي، بعضو ویلي دي چې تعلیم او آدب خو د هغې حق وو، دلته دوه اجرونه داسې دي چې په آزادولو یو اجر ورکول کیږي او یا په نکاح کولو سره او د ښځې په جوړولو سره دویم اجر ورکول کیږي.**فله اجران** کې د تاکید سره نوې تصریح شوې چې همدې کس ته هم دوه اجرونه ورکول کیږي، ددې تصریح وجه دا وه چې مخکې کوم دوه کسان وو د هغوی د دوه چنده اجر معامله خو واضحه وه چې یو به زړه باندې کانړې ایښې وو د خپل مخکني مرکز ایمان وروسته یې د ایمان نوی مرکز قبول کړ او دویم د الله حق ادا کړه او بیا یې د مولی حق په ښه طریقه اداء کړه د همدې دوو کسانو خوغټې کارنامې او ښکاره فیصلې وې،لیکن دا دویم کس چې کوم څه کړي وو په دې کې د هغه خپلې فائدې هم وې نو ځکه دلته د هغه تاکید او وضاحت ته ضرورت پیدا شو چې هغه ته هم دوه اجرونه ورکول کیږي په دې کې شک نشته. (المرقات ۱/۱۵۴).

**سوال**: دلته یو مشهور اعتراض دی چې هغه کس ته کوم ته چې دا دوه اجرونه ورکول کیږي د دې وجه دا ده چې هغه دوه عملونه کړي دي، اوس چې کوم کس هم دوه عملونه وکړي دوه اجرونه به حاصلوي په دې کې د هغه څه خصوصیت پاتې شو؟ همدارنګه دوه اجرونه څه شی دی په یوه عمل باندې خو لس نیکیانې یا تر اوه سوه پورې ورکول کیږي ددې نه هم د زیاتو امکان شته؟.**جواب** : دا دی چې دوه اجرونه له اصل ثواب نه زائد دي، د اصل ثواب قاعده خو مقرره ده چې د لسو نه تر اوه سوه پورې ده، دوه اجرونه په هغو باندې اضافه دي.**دویم جواب** : دا چې د همدې درې کسانو هر عمل د دوه چنده ثواب باعث دی، یعنې چې مونځ یو وکړي هغه د دوو قائمقام شي نو د عامو خلکو یو مونځ که چیرته د لسو قائمقام دی نو د دوي د شلو قائمقام دی، د عامو خلکو یوه روژه د لسو سره برابره ده نو ددې کسانو یوه روژه د شلو سره برابره ده، او په هر عمل کې همدا قاعده ده نو دا لوی فضیلت دی.

**دریم جواب:** بعضو دا ورکړی دی چې دوه چنده ثواب صرف په هغو اعمالو باندې ملاویږي په کومو اعمالو کې چې عَمل بالضدین شي چې له یوه عمل سره بل مزاحم (ټکر) شي نو د همدې تضاد، تزاحم او ټکر په صورت کې کله چې انسان په دواړو باندې عمل وکړي نو دوه چنده ثواب ورکول کیږي، مثلا د مخکني نبي د منلو سره سره د وروستني نبي په منلو کې ډیره سختي ده، همدارنګه په غلام کې، دیو مالک حکم به یو شان وي مثلا مونځ وکړه او دویم وایي چې فلانی کار وکړه، اوس د دواړو کارونو ترسره کول څومره مشکل دي، همدارنګه په وینځه کې، که د بهر نه کومه وینځه راولي او د خپلې مخکنۍ ښځې پر ځای یې کینوي نو خلک به په طعن لعن سره قسما قسم مزاحمت کوي دا ټول د تزاحم او تضاد والا اعمال چې کله وکړي نو دوی ته دوه چنده اجر ورکول کیږي (المرقات).

## د دین تر غلبې پورې د کفارو سره د جنګ حکم

| |
|---|
| (۱۱) وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أُمِرْتُ |
| دابن عمر رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ماته دالله تعالی د طرفه حکم راکړی |
| أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتّٰى يَشْهَدُوا أَنْ |
| شوی چې زه د کفارو سره تر هغه وخته پورې جنګ وکړم ترڅو پورې چې هغوی د دې خبرې ګواهي ورنه کړي |
| لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ ، وَ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ ، |
| چې دالله تعالی نه بغیر هیڅ معبود نشته او محمد صلی الله علیه وسلم دالله تعالی رالیږل شوی رسول دی، همدارنګه |
| وَ يُقِيمُوا الصَّلَاةَ ، وَ يُؤْتُوا الزَّكَاةَ . فَإِذَا فَعَلُوا ذٰلِكَ عَصَمُوا مِنِّي دِمَاءَهُمْ وَ أَمْوَالَهُمْ ، |
| مونځ وکړي، زکوة ورکړي، پس کله چې هغوي همدا سې وکړي نو هغوی خپل ځانا و مال زمانه محفوظ کړو |
| إِلَّا بِحَقِّ الْإِسْلَامِ ، وَ |
| کومه پوښتنه چې داسلامي ظابطي ماتحت وي هغه به اوس هم باقي وي د دې نه وروسته د دوي د باطن |
| حِسَابُهُمْ عَلَى اللهِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] إِلَّا أَنَّ مُسْلِمًا لَمْ يَذْكُرْ إِلَّا بِحَقِّ الْإِسْلَامِ . |
| معامله الله ته سپارل شوې ده، د مسلم په روایت کې د (الا بحق الاسلام) الفاظ نشته. |

(۱) اخرجه البخاري ۱/۱۲، رقم الحديث (۲۵) ، ومسلم في صحيحه ۱/۳۹، رقم الحديث (۳۶-۲۲) ، وابوداود في سننه ۳/۱۰۱، رقم الحديث (۲٦٤۱)، والترمذي رقم الحديث: (۲٦۱۱).

**توضیح**: **امرت**: داد مجهول صیغه راوړل شوې ده ځکه چې د هغې فاعل معلوم وو چې (الله) دی، ځکه چې رسول الله ﷺ ته حکم ورکوونکی الله دی، لکه څرنګه چې صحابو ویلي دي امرنا نو هلته فاعل رسول الله ﷺ متعین شوی دی، نو د **امرت** مطلب دا شو **امرني الله بأن اقاتل الناس**. (المرقات ۱۵۵/۱).

**سوال**: دلته سوال دا دی چې په اسلام کې د جزیې حکم هم دی کافر چې ذمي جوړ کړی شي ژوندی پاتې کیدلی شي، همدارنګه معاهد هم د قتال نه بغیر اوسیدلی شي، د کفارو سره صلح کول هم روا ده، حالانکه په دې حدیث کې د مطلق جنګ حکم دی، د کوم نه چې معلومیږي چې د کافر سره د جنګ نه بغیر بل هیڅ صورت نشته دی؟.

**جوابونه**: د دې دپاره څو جوابونه ورکړی شوي دي: **اول جواب**: دا ورکړی شوی دی چې په (الناس) کې الف لام د عهد خارجي دپاره دی او د دې نه مراد د جزیره عرب مشرکین دي د کومو دپاره چې (السیف او الاسلام) دی، د دې تائید د نسائي په روایت سره هم شوی دی په کوم کې چې دا الفاظ دي (امرت ان اقاتل المشرکین). (المرقات ۱۵۲/۱، الکاشف ۱۲۷/۱).

**دویم جواب**: له همدې سره یو رنګه دی چې د (الناس) نه مراد اهل عرب دي، ذمي او معاهد په خپله ترینه ووتل، ځکه چې دا عام حکم دی او هر عام مخصوص البعض دی نو د جګړه کوونکو سره وجنګیږئ، ذمي او معاهد د دې نه مستثنی دي (کذا قال الطیبي) (المرقات ۱۵۶/۱).

**دریم جواب**: د همدې حدیث په غایه کې په تاویل کولو سره ورکړی شوی یعنې **حتی یستسلموا** او **یسلموا** چې یا حقیقتًا اسلام راوړي یا اسلام ته سر ښکته کړي او د استسلام په صورت کې ذمي او معاهد داخل دي، ځکه چې اوس دوی اطاعت کړی، یعنې له جهاد نه مراد اعلاء د کلمة الله ده او د دې دوه صورتونه کیدلی شي اسلام یا استسلام، کافر چې په کفر باندې اوسیږي کله چې اسلامي حکومت قبول کړي نو اعلاء د کلمة الله متحقق شوه. (المرقات ۱۵۲/۱).

**سوال**: دلته یو سوال دا دی چې په دغه حدیث کې د شهادتینو ذکر موجود دی، د مونځ او زکوة ذکر هم شته، لیکن دلته نه د روژې ذکر شته او نه د حج ذکر شته دا ولې؟.

**جواب**: د دې یو جواب دا ورکړی شوی دی چې دا اختصار من الراوي دی. **دویم جواب**: دا دی چې د دې وخته پورې د روژې او حج احکام نه وو راغلي. **دریم جواب**: دادی چې د رسول الله ﷺ مقصود د ټولو ارکانو بیانول نه وو بلکې ښودل مقصود وو چې کوم کس مسلمان شي نو د مونځ او زکوة اهتمام

کوي نو دا د ده د مسلمانيدو نښه ده، اوس د ده سره څوک کار نه شي لرلی، څلورم جواب دا دی چې دلته د شهادتينو د إقرار ذکر دی او کوم کس چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د رسالت شاهدي ورکړي نو د دې مطلب دا دی چې هغهٔ (جميع ما جاء به النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) باندې اقرار کړی دی، نو په دې کې ټول شريعت راغلی. (المرقات ۱/۱۵۷).

**د تارک الصلوة حکم**: په دې حديث کې دځان ساتلو دپاره د شهادت د کلمې نه وروسته د مونځ ذکر راغلی دی نو د همدې وجې شارحينو د **تارک الصلوة** متعلق يو بحث کړی، په دې باندې په دې طور پوهه شئ چې تارک الصلوة په دوه قسمه دی، يو قسم هغه خلک دي کوم چې مونځ پريږدي او دې ته حلال وايي توقي پسې کوي او هغه ته نزدې نه ورځي، داخلک اتفاقًا کافر مرتد او واجب القتل دي، دويم قسم هغه خلک دي کوم چې د سستيا د وجهې مونځ نه کوي مگر د هغه فرضيت مني او پريښودل يې ناروا گڼي په دې قسم خلکو کې د فقهاو اختلاف دی،د اختلاف وجه داده چې د قرآني نصوصو او د احاديثو د تصريحاتو معلوميږي چې قصدًا متعمدًا **تارک الصلوة** د کفرارتکاب وکړ په همدې وجه د احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ،عبد الله بن مبارک رَحِمَهُ اللهُ او د اسحق بن راهويه رَحِمَهُ اللهُ مسلک دا دی چې بلا عذر قصداً د فرض مونځ پريښودونکی کافر دی، هغه دې قتل کړی شي او دا قتل د مرتد قتل دی، د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ مسلک دا دی چې **تارک الصلوة** کافر نه دی، مگر د همدې جرم سزا قتل دی او دا قتل د مرتد قتل نه دی بلکې د فاسق او فاجر قتل دی، امام ابو حنيفة رَحِمَهُ اللهُ وايي دي چې **تارک الصلوة** کافر نه دی او د هغه سزا قتل نه دی، بلکې د وخت حاکم دې هغه په بندي خانه کې واچوي او ترڅو پورې يې چې توبه نه وي ويستلې د هر مونځ په وخت کې دې هغه ووهل شي تردې چې هغه يا توبه وباسي او يا په بندي خانه کې مړ شي، سلطان باهو رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې **تارک الصلوة** دې د مسلمانانو په مقبره کې نه خښول کيږي، بابا سعدي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې **تارک الصلوة** ته قرض مه ورکوئ، کوم کس چې د خدای تعالی قرض نه ادا کوي ستاسو قرض به څنگه آداء کړي.بهر حال د دې خبرې لحاظ کول په کار دي چې د انجام په اعتبار سره د تارک الصلوة په باره کې د امت فقهاو د وهلو حکم ورکړی دی، برابره خبره ده که سمدستي وي او که په بندي خانه کې په تاخير سره وي، برابره ده که کفرًا وي او که سزاءً وي، ترهغې چې هغه ته د مونځ اهميت معلوم شي، کومو حضراتو چې **تارک الصلوة** کافر يا مرتد گڼلی د دوی دلائل هغه آيتونه او احاديث دي په کومو کې چې د **تارک الصلوة** طرف ته د کفر نسبت شوی دی او دا ډير زيات احاديث دي، مگر کوم حضرات چې **تارک الصلوة** ته د کافر ويلو قائل نه دي دوی ويلي دي

چې په همدې احادیثو کې تاویل شوی دی چې تارک الصلوة د کفر کار وکړو، ددې نه دا نه لازمیږي چې هغه مرتد شوی دی هغه دې قتل کړی شي، ځکه چې د مرتکب کبیره په باره کې د امت فیصله ده چې هغه له اسلام نه وتلی نه دی نو بیا تارک الصلوة ته مرتد ولې ویل کیږي او بیا همدا احادیث په تشدید تغلیظ او تهدید باندې حمل کړي، ځکه چې اسلامي تاریخ گواه دی چې هیڅکله په اسلام کې تارک الصلوة نه دی قتل شوی.

**الابحق الإسلام**: یعنې د همدې کس وینه په قصاص حدودو او ارتداد کې محفوظه نه ده، بلکې قصاصًا قتل کیدلی شي، همدا رنگه که چیرته یې واده کړی وي او مسلمان وي او زنا وکړي نو رجم کیدلی شي، یا مسلمان وو بیا مرتد شو نو قتل کیدلی شي، ځکه چې دا د اسلام حق دی، اسلام ویلي دي چې همداسې وکړئ او هغه صرف درې کارونه دي، په کومو کې چې مونځ شامل نه دی. (المرقات ۱/۱۵۷).

**وحسابهم على الله**: یعنې ظاهرًا بچ شو، باطنًا د ده معامله د قیامت په ورځ الله تعالی ته سپارل شوې ده، مونږ د باطن په فیصلو باندې مکلف نه یو.

**د حدیث مطلب**: د دې مبارک حدیث حاصل دا دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې ماته د خلکو سره د قتال او جهاد حکم شوی دی، ترڅو پورې چې خلک درې کارونه ونه کړي: (۱) د شهادتینو اقرار (۲) اقامت صلوة (۳) د زکوة ورکول، کوم خلک چې دا درې کارونه وکړي او رښتني مسلمان جوړ شي نو د هغه ځان محفوظ پاتې شو، اوس مونږ ته د هغه په مال او ځان باندې تعرض کول روا نه دي، البته د مسلمانیدو نه وروسته که چیرته په کومه موقع په اسلام تعارض وکړي نو بیا د وهلو ټکولو او وژلو نه معصوم نه دی، په ظاهر یې حکم لګول کیږي او د باطن معامله یې الله تعالی ته سپارل شوې ده. (المرقات ۱۵۸/۱).

**د احکامو ترتیب**: رسول الله ﷺ په مکه مکرمه کې مبعوث شو د توحید او تبلیغ کار شروع شو، د قرآن کریم د تلاوت دور شروع شو، تر اوسه عام فرائض او احکام نه وو راغلي، بیا مونځ په مکه مکرمه کې فرض شو، بیا هجرت وشو، بیا زکوة فرض شو، بیا د روژو حکم په مدینه منوره کې د (۲هجري) نه مخکې راغی، بیا په شپږمه یا اوومه یا نهمه هجري کې حج فرض شو، بیا نور احکام راغلل، د هجرت سره متصل په مدینه منوره کې د جهاد د مشروعیت حکم راغی، د دفاع د اجازت وروسته د اقدام حکم راغی، مسجد حرام ته نزدې د نه جنګیدو وروسته هلته هم د جنګ حکم راغی، په اشهرحرم کې هم د جنګ کولو پابندي ختمه شوه او په آخر کې تر قیام قیامت پورې د جهاد حکم راغی، نو نبي علیه السلام دا عالمي اعلان وکړو (امرت ان اقاتل الناس الخ) اوس همدا حکم باقي دی او په آئنده کې به هم باقي پاتې وي، د تفصیلاتو د پاره د مشکوة شریف دویم جلد ته انتظار وکړئ (المرقات ۱/۱۵۲).

**عجيبه مناظره**: د تارک الصلوة په تكفير او عدم تكفير كې د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ ترمينځ يو نااشنا بحث وشو، هغه داسې چې د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ نه د تارک الصلوة په باره كې پوښتنه وشوه نو امام احمد رَحِمَهُ اللهُ وويل چې كافر دى، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ وويل هغه به څنګه مسلمان شي؟ هغه ورته وويل چې كلمه ووايي، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ وويل چې كلمه خو هغه مخكې ويلې وه مونځ يې نه وو كړى، هغه وويل چې مونځ دې وكړي، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ وويل كله چې هغه كافر دى نو د ايمان نه بغير يې مونځ څنګه صحيح كيږي؟ په دې باندې امام احمد رَحِمَهُ اللهُ خاموش شو.

**۲۳ ذيقعده ۱۴۰۹هـ**

## محفوظ مسلمان څوک دى؟

| |
|---|
| **(۱۲) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى صَلَاتَنَا،** |
| د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې: نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: كوم كس چې زمونږ په شان مونځ كوي، |
| **وَاسْتَقْبَلَ قِبْلَتَنَا، وَأَكَلَ ذَبِيحَتَنَا، فَذَلِكَ الْمُسْلِمُ الَّذِي لَهُ ذِمَّةُ اللهِ وَذِمَّةُ رَسُولِهِ،** |
| زمونږ قبلې ته مخ اړوي، او زمونږ ذبيحې خوري هغه مسلمان دى، د الله او د الله د رسول په عهد او امان كې |
| **فَلَا تُخْفِرُوا اللهَ فِي ذِمَّتِهِ». (۱).** |
| دى پس كوم كس چې د الله او د رسول په عهد او امان كې دى تاسو د هغه سره عهد مه ماتوئ. |

**توضيح: من صلى صلوتنا**: يعني څوک چې زمونږ په شان مونځ كوي دا عمل يو مسلمان موحد كوي كوم چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نبوت باندې اقرار كړى وي، كله چې په نبوت باندې اقرار وشونو د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لخوا په راوړل شوي ټول شريعت باندې اعتراف وشو همدا وجه ده چې د همدې كس مونځ ده د ايمان د پاره ننبه ګرځول شوې ده، دلته د شهادتينو ذكر نشته ځكه چې شهادتين حقيقةً يا حكمًا د مونځ په ضمن كې په خپله راځي، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې مسلمان درې ننبې بيان كړې دي (۱) چې زمونږ په شان مونځ وكړي (۲) زمونږ قبلې ته مخ واړوي (۳) زمونږ ذبيحې وخوري. (المرقات ۱/۱۵۹)

**سوال**: دلته دا سوال كيدلى شي چې د مسلمان په پيژندلو كې چې د كومو دريو شيانو ذكر شوى په هغو كې د و مره مركزيت چيرته وو؟ مونځ يو عمل دى دير اوچت عمل دى، مګر د ايمان او اسلام نه وروسته

(۱) اخرجه البخاري ۱/۱۰۸، ۱/۴۹۲، رقم الحديث: ۳۹۱، ورواه النسائي ۸/۱۰۶، رقم الحديث: ۴۹۹۷.

عمل دی، همدارنګه قبلې ته مخ کول هم دومره مرکزي عمل نه دی، او زمونږ د ذبیحې خوړل خو عبادت هم نه دی، بیا همدې شیانو ته په اسلام کې دومره مهم مقام ولې ورکړی شو چې د مسلمان پیژندګلوي په دوی باندې موقوف شوه؟.

**جواب**: د دې سوال په جواب د پوهیدو نه مخکې په دې خبره پوهه شئ چې دلته په حدیث کې چې د کوم کس ذکر دی او د کوم مؤمن او مسلم تعارف شوی دی دا هغه کس دی کوم چې اوس په اسلام کې داخلیدل وغواړي او د خپل مخکني دین پرېښودل او په اسلام کې داخلیدل وغواړي، ددې وجهې په حدیث کې د همداسې کس مابه الامتیاز اعمالو ذکر شوی، یعنې د رسول الله ﷺ په زمانه کې د اهل کتابو او د اهل اسلام په مینځ کې مابه الامتیاز د هر یوه د بل نه د ممتاز کولو عمل که چیرته وو نو هغه همدا درې اعمال وو، ځکه چې ایمان د تصدیق قلبي په درجه کې وي او زباني اقرار هم ورسره وي، په دې کې د غیر مسلمو د ښکاره کولو دومره موقع نه وه لکه څومره چې په همدې درې اعمالو کې وه، ځکه چې دا اسلامي شعائر او ممتاز اعمال دي، او ګورئ مونځ په اسلامي شعائرو کې د ټولو نه ښکاره امتیازي عمل دی، همدارنګه د قبلې معامله ده د کومې په باره کې چې یهود او نصاری انتهائي حساس دي او د دوی په نزد د حقانیت دپاره قبلې ته معیاري مقام حاصل دی، نو دا د عبادت په حواله امتیازي نشان وو.وړاندې د ذبیحې معامله هم یوه امتیازي معامله ده، یهودو او نصاراو د خپلې ذبیحې نه بغیر د بل چا ذبیحه نه خوړله او ذبیحه یې په اجتماعي لحاظ د امتیاز او جدائي غټه فاصله بلله، نو په دې حدیث کې وښودل شول چې کوم کس په اسلام کې داخلیدل غواړي نو بیا به هغه د عبادت په سلسله کې زمونږ په شان امتیازي مونځ کوي او قبلې ته به مخ کوي او په اجتماعي لحاظ به زمونږ ذبیحه خوري، نو اوس دا کس د عباداتو نه وروسته په عاداتو کې هم د غیر مسلمو نه ممتاز شو، لهذا دا د همدې ټولو صفاتو سره مسلمان شمارل کیږي. (الکاشف ۱/۱۳۱)

**واستقبل قبلتنا**: دلته سوال دا دی چې مخکنی جمله (من صلی صلوتنا) کې دا جمله داخله وه، ځکه چې زمونږ مونځ زمونږ د قبلې طرف ته دی، بیا د همدې جملې راوړل په ظاهره زائد معلومیږي، سره ددې چې دا دلته د ایمان معیار جوړ شوي دي؟.

**اول جواب**: دا دی چې د مونځ په نسبت د قبلې معامله ډیره مشهوره ده، ځکه ډیر زیات مسلمانان مونځ نه کوي او پیژني یې هم نه لیکن قبله هم پیژني او هم یې مني، د همدې وجهې د مونځ نه وروسته د قبلې ذکر ضروري وو. (المرقات ۱/۱۵۹).

**دویم جواب**: دا دی چې په مونځ کې د نورو مذهبونو خلک هم په څه ناڅه طریقه شریکان دي نو مستقل امتیاز نشته، لیکن په قبله کې ښکاره امتیاز دی، د هر مذهب جدا قبله ده، د یهودو په بیت المقدس کې

صخره ګنبد ده او د نصاراو په بيت القدس کې شرقي طرف دی او د مسلمانانو په مکه مکرمه کې بيت الله دی، په دې وجه د هغې ذکر کول ضروري وو.

**فذلک المسلم**: يعني په چا کې چې همدا درې صفتونه وو هغه مسلم دی، کوم چې د الله تعالى په ذمه کې دی، يعني دالله تعالى دطرفه په امن کې دی او د الله په عهد او ضمان کې دی، نه د هغه قتل روا دی، نه يې د مال او عزت بې حرمتي روا ده، ددې وجې د الله د عهد ماتولو ځان وساتئ.

**اخفار**: بد عهدی ته ويل کيږي، عهد ماتول خيانت کول، په مال او ځان باندې تعرض کول مراد دي چې ددې نه ځان وساتئ، د الله عهد ماتول وو د رسول عهد ماتول وو، له همدې وجهې په يوه باندې په ذکر کولو سره اکتفاء وشوه. (المرقات ۱/۱۵۹).

**سوال**: قاديانيان وايي چې دغه درې کارونه خو مونږ هم کوو، بيا خو مونږ مسلمانان يو نو کافر ولې راته ويل کيږي؟.

**جواب**: د همدې درې کارونو سره دا هم ضروري ده چې همدا کس به د دين په ضرورياتو کې د کوم ضروري امر نه انکار نه کوي، ځکه چې د ايمان او اسلام هغه اعمال معتبر دي د کومو چې کوم منافي بنيادي عمل داسې نه وي چې د همدې ټولو اعمالو د حبط ذريعه جوړه شي، قاديانيانو خو نوی نبوت پيدا کړی نو د دوی ايمان په شريعت باندې څنګه باقي پاتې کيدلی شي؟.

**سوال**: په دې حديث کې يو سوال دا هم دی چې په دې کې رسول الله ﷺ زکوة، صوم او حج نه دي ذکر کړي؟.

**اول جواب**: دا دی چې ددې وخته پورې دا احکام فرض شوي نه وو.

**دويم جواب**: دا چې د نبي کريم ﷺ د ټولو احکامو بيانول مقصود نه وو، بلکې د مسلمان د تعارف د حد پورې چې څومره مقصود وو هغه يې بيان کړل.

## جنت ته بوتلونکي اعمال

| |
|---|
| (۱۳) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: «أَتَى أَعْرَابِيٌّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې يو بانده چې د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو |
| فَقَالَ: دُلَّنِي عَلَى عَمَلٍ إِذَا عَمِلْتُهُ دَخَلْتُ الْجَنَّةَ، |
| او عرض يې وکړو: يارسول الله! داسې عمل راته وښايه چې د هغې په کولو سره زه جنت ته لاړ شم، رسول |
| قَالَ: "تَعْبُدُ اللهَ وَلَا تُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا، وَتُقِيمُ الصَّلَاةَ الْمَكْتُوبَةَ، وَتُؤَدِّي الزَّكَاةَ الْمَفْرُوضَةَ، وَ |
| الله ﷺ وفرمايل: د الله عبادت کوه هيڅوک ورسره شريکوه، فرض مونځ کوه، زکوة ورکوه او د |

تَصُوْمُ رَمَضَانَ ، قَالَ : وَ الَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ

رمضان روژې نیسه دا یې چې وا وریده بانده چې وویل په هغه ذات قسم کوم د چا په قبضه کې چې زما روح

لَا أَزِيْدُ عَلٰى هٰذَا شَيْئًا وَلَا أَنْقُصُ . فَلَمَّا وَلّٰى قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :

دی زه به په دې باندې نه څه زیات کړم او نه به د دې نه څه کم کړم، کله چې همدا بانده چې لاړو نو نبي عليه السلام

مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَّنْظُرَ إِلٰى رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَلْيَنْظُرْ إِلٰى هٰذَا "[1].

وفرمایل: کوم کس چې جنتي ته د کتلو سعادت حاصل غواړي هغه دې همدې کس ته وګوري.

**توضیح :دخلت الجنة** : یعنې په اول دخول سره داخلیږي په کوم کې به چې هیڅ قسم سزا او عذاب نه وي (المرقات ۱۲۰/۱).

**تعبد الله**: دا خبر په معنی دامر دی ای اعبدالله یا ان مصدریه مقدر دی ای ان تعبدالله (المرقات ۱/۱۲۰).

**سوال**: سوال دا دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دې کس ته د توحید حکم نه دی کړی یا دا چې د شهادتینو ذکر یې نه دی ورته کړی کوم چې د دخول جنت او صحت عمل د پاره ضروري دي؟.

**اول جواب**: د عبادت نه مراد توحید او شهادتین دي.

**دویم جواب**: دا دی چې دا کس له پخوا نه مسلمان شوی وو، د بخاري په روایت کې دي چې هغه پوښتنه وکړه چې (**ما ذا فرض الله علي**) یعنې په ما باندې د الله تعالی فرض څه دي؟ په دې صورت کې د توحید او د شرک نه د بیزارۍ ذکر د تبرک په طور او د شرف په طور تاکید شوی دی.

**ولاتشرک به شیئا** : یعنې د شرک جلي او شرک خفي نه ځان وساته، توحید او عبادت خپل کړه، ددې جملې نه معلومیږي چې د عبادت نه مراد د توحید کلمه ده او د توحید په ضمن کې رسالت هم راغی، په دې روایت کې دحج ذکر نشته شاید تر دې وخته حج فرض شوی نه وو، یا دا چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د همدومره ارکانو بیانول مقصود وو، یا دا چې کوم راوي اختصار کړی دی (**والذي نفسي بيده**) معلومه شوه چې د ضرورت نه بغیر د قسم خوړل روا نه دي (**لا ازيد ولا انقص منه**) د دې جملې څو مطلبونه دي ،(۱) زه د دې په تعلیم او تبلیغ کې او نورو ته په رسولو کې کمی او زیاتی نکوم، چونکه دا کس د قوم غټ سړی وو نو رسول د ذمه واري وه (۲) **لا ازيد في السوال ولا انقص في العمل** (۳) لا

(۱) اخرجه البخاري ۲/۱۳۰ رقم الحديث (۱۳۹۷)، و مسلم في صحيحه ۱/۳۲، رقم الحديث (۱۵-۱٤)

ازید هي م من تلقاء نفسي ولا انقص کذالک من نفسي (۴) دا کلام د محاورې په طور وو چې کله مثلا کوم سړی کوم شی اخلي نو ویل کیږي چې په قیمت کې کوم کمی او زیاتی نه کیږي، دلته اصلي مقصود کمی کول دي د زیاتي لفظ طبعا په محاوره کې راغلی، همدارنګه په حدیث کې د (لا ازید) لفظ تبعاً راغلی دی مقصود (لا انقص) دی که نه نو په عبادت کې خو زیاتوالی مطلوب دی (۵) حقه خبره دا ده چې دا عبارت او دا جواب له کمال اطاعت نه کنایه ده. (المرقات ۱۶۱/۱).

**من سره**: یعني چاته چې دا خبره خوښه وي چې دا کوم جنتي ته وګوري نو هغه دې دغه کس ته وګوري، رسول الله ﷺ ته د وحې په ذريعه معلومه شوې وه چې د دغه کس انجام محمود دی او مامون العاقبة دی او دا به د سزا نه بغير په اول دخول سره جنت ته داخليږي، د دغه بانده چي نوم سعد بن الاحزم ؤ، (کما في الطبراني، المرقات ۱۶۱/۱).

## په ایمان باندې استقامت

(۱۴) وَعَنْ سُفْيَانَ بْنِ عَبْدِ اللهِ الثَّقَفِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قُلْتُ :

د سفيان بن عبد الله ثقفي رضي الله عنه روايت دی وايي چې ما دنبي کريم ﷺ په خدمت کې عرض وکړو

«يَا رَسُولَ اللهِ . قُلْ لِيْ فِي الْإِسْلَامِ قَوْلًا لَا أَسْأَلُ عَنْهُ أَحَدًا بَعْدَكَ وَ فِيْ

چې يا رسول الله! ما ته د اسلام يوه داسې خبره وښايه چې د تا نه وروسته د بل چا نه يې پوښتنه ونه کړم، او په

رِوَايَةٍ : غَيْرَكَ . قَالَ

يو روايت کې دي چې د تا نه بغير د بل چا نه د هغې د پوښتنې حاجت پاتې نه شي، نبي عليه السلام وفرمايل

قُلْ آمَنْتُ بِاللهِ ، ثُمَّ اسْتَقِمْ .(۱)

په ژبه او زړه سره د دې خبرې اقرار وکړه چې ما په الله ايمان راوړی او بيا په همدې اقرار باندې قائم اوسه.

**توضيح**: د حضرت سفيان رضي الله عنه کنيه ابو عمره ده، دا کس صحابي دی، د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د طرفه والي مقرر شوی وو، د بنو ثقيف سره د ده تعلق دی او د طائف اوسيدونکی دی، دده نه صرف پنځه حديثونه روايت شوي دي. (المرقات ۱۶۱/۱).

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴۷/۱، رقم الحديث (۶۲-۳۸)، والترمذي ۵۲۴/۴، رقم الحديث (۲۴۱۰)، وابن ماجه ۱۳۱۴/۲، رقم الحديث (۳۹۷۲)، واحمد في المسند ۴۱۳/۳.

**في الاسلام**: يعني د اسلام له تکميل سره متعلق يو جامع قول ارشاد وفرمايه، په دې جمله کې د اسلام توابع ټول راغلي، ګويا چې د ټول شريعت خبره په کې شوې ده.

**آمنت بالله**: يعني په هغو ټولو شيانو باندې ايمان راوړه په کومو چې ايمان راوړل ضروري دي، په دې کې هم ټول شريعت راغلی دی.

**ثم استقم**: دا لفظ د قرآن کريم د آيت ﴿إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا اللهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوا﴾ نه ماخوذ دی، يعني د اوامرو په امتثال باندې او د نواهيو په اجتناب باندې قائم اوسه، دا حديث د جوامع کلم نه دی، کوم چې د اسلام په اصولو، توحيد او ارکانو يعني طاعاتو باندې مشتمل دی، د توحيد طرف ته اشاره په (**امنت بالله**) سره شوې ده او د پاتې نورو طاعاتو طرف ته اشاره په (**ثم استقم**) سره شوې ده. ځکه چې استقامت د هغې نوم دی چې د هر مامور امتثال وي او د هر محظور نه اجتناب وي، که چيرته د ذرې په اندازه هم په اوامرو او نواهيو کې فرق راشي (**اعوجاج**) نوکوږوالي په کې راځي کوم چې د استقامت سره منافي دی، همدا رنګه په دې حديث کې اعمال قلب، اعمال بدن، ايمان، اسلام او احسان ټول راغلي، همدا وجه ده چې صوفيانو کرامو ويلي دي چې: (**الاستقامة خير من الف کرامة**) پس کوم کس چې مامور پرېږدي نو استقامت د منځه ځئ يا د منهي عنه ارتکاب وکړي نو استقامت نه پاتې کيږي، دا د پل صراط په شان د نرې تار تيرې څوکې لرونکې تورې په سر باندې سفر دی، همدا وجه ده چې رسول الله ﷺ وفرمايل: **شيبتني هود واخواتها** ځکه چې په همدې سورتونو کې د **فاستقم** او **امرت** حکم وو. (المرقات ۱۶۱-۱۶۲/۱).

**د استقامت مفهوم**: (۱) امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې په دې دنيا کې په سمه لار باندې استقامت دومره مشکل دی لکه څومره چې په پل صراط باندې استقامت مشکل دی، په دې دنيا کې د استقامت هر پل د ويښته نه زيات باريک او د تورې نه زيات تيره دی (المرقات ۱۶۲/۱).

(۲) د حضرت ابو بکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د استقامت په باره کې پوښتنه وشوه نو وې فرمايل: (**ان لا تشرک بالله شيئا**) يعني استقامت د خالص توحيد نوم دی. (۳) د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وشوه نو وې فرمايل: (**تستقيم على الامر والنهي ولا تروغ روغان الثعالب**) يعني د حق او باطل په وخت کې په حق باندې مضبوط اوسه او د ګيدړې په شان يوه خوا بله خوا چلونه مه کوه. (۴) حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د استقامت متعلق فرمايلي: (**اخلصوا العمل لله**) يعني خالص د الهي رضا دپاره د هر کار کول استقامت دی (۵) حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايلي: (**داوموا الفرائض کلها**) يعني په ټولو فرائضو

اې د دوام او استمرار په حال کې قائم پاتې کيدل استقامت دی.

۲۴ ذيقعده ۱٤۰۹ هـ

# د اسلام فرائض

| |
|---|
| (١٥) وَعَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَهْلِ نَجْدٍ |
| د طلحه بن عبيد الله رضي الله عنه نه روايت دی چې د نجد نه يو کس د نبي عليه السلام په خدمت کې حاضر شو او د |
| ثَائِرُ الرَّأْسِ، نَسْمَعُ دَوِيَّ صَوْتِهِ وَلَا نَفْقَهُ |
| سر ويښتان يې گډوډ وو مونږ د هغه د آواز بوګنيدل آوريدل ليکن د (فاصلې د وجې) په دې نه پوهيدو چې |
| مَا يَقُولُ، حَتَّى دَنَا مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا هُوَ |
| هغه نبي عليه السلام ته څه وايي تر دې چې هغه نبي عليه السلام ته ډيرنږدې شو نو يوناڅاپه مونږ واوريدل چې |
| يَسْأَلُ عَنِ الْإِسْلَامِ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " خَمْسُ صَلَوَاتٍ |
| هغه د اسلام د فرائضو په باره کې پوښتنې کوي، نبي عليه السلام په جواب کې ورته وفرمايل: پنځه مونځونه |
| فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ. فَقَالَ: هَلْ عَلَيَّ |
| فرض دي په شپه او ورځ کې (دا يې چې واوريده) نو هغه کس ووېل آيا د دې مونځونو نه بغير په ما باندې نور |
| غَيْرُهُنَّ؟ فَقَالَ: لَا، إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ. |
| مونځونه هم فرض دي؟ نبي عليه السلام وفرمايل: نه! مګر نفلي مونځونه ستا په اختيار کې دي بيا نبي عليه السلام |
| قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصِيَامُ شَهْرِ رَمَضَانَ ". قَالَ: هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهُ؟ |
| وفرمايل: او د رمضان روژې فرض دي، هغه کس ووېل: د دې روژونه بغير په ما نورې روژې هم فرض دي؟ |
| قَالَ: لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ. قَالَ: وَذَكَرَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| نبي عليه السلام وفرمايل: نه! مګر نفلي روژې ستا په اختيار کې دي، د راوي بيان دی چې نبي عليه السلام د دې |
| الزَّكَاةَ. فَقَالَ: هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهَا؟ |
| نه وروسته يې د زکوة ذکر وکړه، هغه عرض وکړو آيا د دې نه بغير په ما باندې کومه بله صدقه هم فرض ده؟ |
| فَقَالَ: لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ. قَالَ: فَأَدْبَرَ الرَّجُلُ وَهُوَ يَقُولُ: |
| نبي عليه السلام وفرمايل: نه! مګر نفلي صدقه ستا په اختيار کې ده، د دې وروسته هغه کس دا ووېل او لاړ چې |

وَ اللهِ لَا أَزِيدُ عَلَى هٰذَا وَلَا أَنْقُصُ مِنْهُ . فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

په خدای قسم ! زه به په دې باندې نه څه ورزیات کړم او نه به څه تري کم کړم، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل : که

أَفْلَحَ إِنْ صَدَقَ » (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).(۱)

چیرته دغه کس رښتیا ویلي وي نو کامیاب شو.

**توضیح** : د حضرت طلحه بن عبید الله کنیه ابو محمد ده، دی دا د عشرو مبشرو نه دی، د بدر نه بغیر په نورو ټولو غزاګانو کې شریک شوی دی، په بدر کې دا او د ده یو ملګری د ابو سفیان د قافلې د خبر دپاره رسول الله ﷺ لیږلي وو، د احد په ورځ یې د رسول الله ﷺ نه د دفاع په وخت کې غشي وخوړ او لاس یې شل شو، همدارنګه ۷۵ زخمونه د ده رضي الله عنه په بدن باندې لګیدلي وو، رسول الله ﷺ په همدې میدان کې ده ته اعزاز ورکړو (اوجب طلحة) یعنې طلحه د ځان دپاره جنت واجب کړه، د جمل په واقعه کې د حضرت عائشة رضي الله عنها سره په (۳۶ هجري) کې د (۶۴) کلونو په عمر شهید کړی شو. (المرقات ۱/۱۶۴)

**جاء رجل** : ویل شوي دي چې دا ضمام بن ثعلبه وو، کوم چې د سعد بن بکر د طرفه وفد جوړ شوی او راغلی وو، په دې حدیث کې (رجل) مبهم راغلی دی، هیڅ تعین یې نشته چې دا څوک وو، ددې نه مخکې د ابو هریره رضي الله عنه په روایت کې د اعرابي لفظ راغلی وو سوال او دسوال مضمون یوشان دي، نوآیادایو کس وو، یوه واقعه وه او که جدا جدا واقعې او جدا جدا کسان وو؟.علامه طیبي رحمه الله، حافظ توربشتي رحمه الله او قاضي عیاض رحمه الله او د نورو رایه دا ده چې دواړه واقعې د یوه کس دي او سوال کوونکی هم یو دی د کوم نوم چې ضمام بن ثعلبه دی، دا حضرات په خپل تائید کې قرائن او ځینې د احادیثو اشارات او د امام مسلم طرز بیان وړاندې کوي، بل طرف ته امام قرطبي رحمه الله امام نووي رحمه الله او انور شاه کشمیري رحمه الله رایه دا ده چې دا دوه جدا جدا واقعات دي، د دواړو حدیثونو د بیان طرز هم مختلف دی، په دواړو ځایونو کې د سوال انداز هم مختلف دی او د رسول الله ﷺ د طرفه د بشارت په کلماتو کې هم فرق دی، لهذا په دې حدیث کې د ضمام بن ثعلبه واقعه ده او په تیر شوي حدیث کې د سعد بن احزم وه. (المرقات ۱/۱۶۴).

---

(۱) اخرجه البخاري ۱/۱۸ رقم الحدیث (٤٦) ،و مسلم في صحیحه ۳/۲۳۵، رقم الحدیث (۸-۱۱)، ورواه ابوداود في السنن ۱/۲۷۲، رقم الحدیث ۳۹۱ ، والنسائي في سننه ۱/۲۲٦، رقم الحدیث ( ٤٥٨)، واحمد في مسنده ۱/۱٦۲.

**من اهل نجد**: نجد لوړې (اوچتې) زمکې ته ویل کیږي، د دې په مقابل کې تهامه ده کومه چې په ژوره زمکه کې واقع ده، نن سبا په حجاز باندې د اهل نجد حکومت دی، د ریاض او د هغه د اطرافو نه بغیر نوره علاقه په نجد کې راغلې ده. (المرقات ۱/۱۶۴).

**ثائرالرأس**: دلته مضاف محذوف دی یعنې (**منتشر شعرالراس**) ګډوډ (تار تار) ویښتان، یا د مبالغې په طور ویل شوي چې ویښتان یې دومره تار تار وو ګویا چې سر یې تار تار وو. (المرقات ۱/۱۶۴).

**دوي**: دا د **دوي النحل** په شان دی بنګیدل مراد دي، علامه خطابي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې د دوی نه مراد داسې کلمات دي د کومو آواز خو ته آوریدلی شې، مګر په مفهوم یې نه پوهیږې، لکه د شاتو د مچیو آواز چې وي. (المرقات ۱/۱۶۴).

د دې کس د ویښتانو او لباس د حیثیت نه خو دا معلومه شوه چې ده یو اوږد سفر کړی او راغلی وو او په سوال کې د بنګیدونکي آواز نه معلومه شوه چې په ده باندې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه قدرتي رعب راغلی وو په کوم سره چې الله تعالی دا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مشرف کړی وو.

**فاذا هو يسأل**: **اذا** مفاجاتيه دی دتعجب دپاره راوړل شوی دی چې د داسې ضعیف او ګډوډ حال لرونکي او د داسې بانډ چې نه د اسلام متعلق سوال کول د تعجب وړ او غیر متوقع وو (**المرقات ۱/۱۶۵**).

**عن الاسلام: أي عن فرائضه التي فرضت على من وحد الله وصدق رسوله لا عن حقيقة الإسلام.**

یعنې د اسلام د هغو فرائضو متعلق یې سوال کوه کوم چې د رسول په منونکي هر موحد باندې فرض شوي دي، د اسلام د حقیقت او تعریف په باره کې سوال نه وو، په همدې وجه په جواب کې فرائض او ارکان ذکر کړی شول د شهادتینو ذکر ونه کړي شو، دا کس چونکه د پخوا نه مسلمان وو نو ځکه د شهادتینو د ذکر کولو ضرورت نه وو، د بخاري شریف په روایت سره د دې تاکید ترلاسه کیږي

(**فأخبرني ماذا فرض الله على من الصلوة**). (**المرقات ۱/۱۶۵**).

**سوال**: سوال دا دی چې د اسلام په فرائضو کې دلته د حج ذکر ولې نه دی شوی؟.

**جواب**: ممکنه ده چې دا وخت حج فرض شوی نه وو، ځکه چې حج په شپږمه یا اتمه یا نهمه هجري کې د مختلفو اقوالو مطابق فرض شوی وو.

**دویم جواب**: دا دی ممکنه ده چې دا کس د حج قابل نه وو، غریب سړی وو نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حج ذکر پریښود. **دریم جواب**: دا هم ممکنه ده چې کوم راوي نسیاناً د اختصار په طور هغه نه وي ذکر کړی، حالانکه د بخاري په روایت کې همدا الفاظ هم ترلاسه شوي دي.

**فأخبره النبي بشرائع الاسلام**: یعنې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ همدې کس ته د اسلام د ټولو شرائعو

خبر ورکړی وو.

**خمس صلوات**: يعنې د پنځو مونځونو آداء كول دي (**اقامة خمس صلوات او خذ خمس صلوات**).

**سوال**: په دې روايت کې د وترو ذکر نشته، بلکې د پنځو فرائضو نه بغير نورو ټولو ته نوافل ويل شوي دي سره ددې چې د وترو وجود هم شته او وجوب يې هم شته؟.

**جواب**: يو جواب دا دی چې ددې وخته پورې وتر واجب شوي نه وو، د اخترونو وجوب هم نه وو شوی.

**دويم جواب**: دا دی چې دلته د فرائضو باره کې بيان وو، د وترو سلسله د فرائضو نه ده بلکې د واجبو ده، يا دا چې وتر د ماسخوتن مونځ تابع دي نو جدا يې ذکر نه کړل، باقي اخترونه دا خو صلوات سنويه يعنې کلنی مونځ وو او دلته د يوميه مونځونو ذکر شوی دی. (المرقات ۱/۱۶۵).

**د نفلو د شروع حکم**: **الا ان تطوع**: د دې جملې يو مطلب دا دی چې ستا په ذمه خو فرض مونځونه صرف پنځه دي، هو که چيرته د نفلونو آداء كول غواړې نو اداء کولی يې شې، دا مطلب واضح دی، مګر دا هغه وخت دي کله چې استثناء منقطعه شي او الا په معنی د **لكن** شي ليکن که چيرته استثناء متصل شي نو مطلب به دا شي چې ستا په ذمه د پنځو مونځونو نه بغير نور مونځونه واجب نه دي، خو که چيرته نفلونه شروع کړې نو ددې وروسته هغه واجب کيږي د کومو پوره کول چې بيا ضروري شول، **بدليل قوله تعالى** ﴿لَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ﴾ همدا رنګه د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په نفلي حج باندې اجماع ده چې په حج کې شروع كول بيا يې وروسته ترسره كول واجب دي، ددې دلائلونه وروسته د ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ ددې اعتراض ځای پاتې نه شو چې په نفلو کې شروع کول بيا يې په وروسته کې اتمام لازم ګڼل بې دليله دي، قرآني نص او د صحابه کرامو اجماع غټ دليل دی. په خپله شوافع هم په نفلي حج او نفلي عمرې کې د شروع كولو نه وروسته د هغو ترسره كول يې واجب ګرځولې او په دې مسئله کې د امت اتفاق دی، په احنافو باندې دا اشكال خامخا راځي چې کله په قرآني نص او اجماع سره اتمام ثابت دی نو بيا د نفلونو دې اتمام ته فرض ولې نه شي ويل کيدی؟ ددې جواب دا دی چې ﴿لَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ﴾ په خپل دلالت کې قطعي نه دی اګر که په ثبوت کې قطعي دی نو په دې سره فرضيت نه شي ثابتيدلی. (المرقات ۱۶۵-۱/۱۶۶)

**لا ازيد ولا انقص**: **اى لا ازيد في التبليغ ولا انقص او لا ازيد في السوال ولا انقص في العمل او لا ازيد من تلقاء نفسي ولا انقص كذلك اوالكلام على محاورة العرب والعجم او اراد الرجل كمال الاطاعة كما مر تشريح الحديث في حديث أبي هريرة** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ.

**افلح الرجل**: الف لام د جنس دپاره دي مراد هر هغه کس دی کوم چې په همدې شکل د عزم بالجزم

پابندي وکړي.د فلاح دوه قسمونه دي، یو دنیوي دی هغه دا دی چې ژوند هم ملاوشي او د ژوند ټول اسباب هم ملاوشي، دویم اخروي دی هغه دا چې پوره نجات حاصل شي، د **افلح** کلمه د ټولو کامیابیو دپاره جامع کلمه ده، بعضو د دې تفسیر داسې بیان کړی (**بأنه بقاء بلا فناء وغناء بلا فقر وعز بلا ذل وعلم بلا جهل**). (المرقات ۱/۱۶۷).

**ان صدق** : په اولني حدیث او دې کې د الفاظو تفاوت دی، هلته د یقین جملې غیر مشروطې وې، دلته په **ان صدق** سره مشروطه شوې نو که چیرته واقعات دوه دي سرې جدا جدا دي لکه څنګه چې د سوال نه هم معلومیږي او علامه قرطبي رَحِمَهُ اللهُ له جزم سره ویلي دي بیا خو هیڅ اشکال نشته معامله صفا ده، لیکن که چیرته یوه واقعه وي، یو سړی وي نو بیا سوال دا دی چې په اولني حدیث کې د جزم سره او په دې حدیث کې دشک سره حکم ولې راغلی؟ددې جواب دادی چې په جزم او یقین سره حکم په هغه وخت کې آورول کیږي کله چې همدا اکس موجود نه وي او کوم وخت چې موجود دی نو شک پیدا شو چې دا انسان په غرور تکبر او سستی کې ونه لویږي، یا دا هم ویل کیدی شي چې د خلکو د احوالو په تغیر سره د وحې په ذریعه نوې نوې حکمونه راغلي دي، کله د یقین حالت وي، کله د شک وي. (المرقات ۱/۱۶۷).

**۲۵ ذیقعده ۱٤۰۹ هـ**

## د عبد القیس دوفد حدیث

| |
|---|
| **﴿۱۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: إِنَّ وَفْدَ عَبْدِ الْقَيْسِ لَمَّا أَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** |
| دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې کله دعبد القیس وفد مدینې منورې ته دنبي عَلَيْهِ السَّلَام په خدمت کې |
| **قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ الْقَوْمُ ؟ أَوْ : مَنِ الْوَفْدُ؟ قَالُوْا:** |
| حاضر شو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام پوښتنه وکړه چې دا خلک څوک دي، یا داکومې قبیلې وفد دی خلکو جواب ورکړ |
| **رَبِيعَةُ . قَالَ : مَرْحَبًا بِالْقَوْمِ أَوْ : بِالْوَفْدِ** |
| چې دوی دربیعه قبیلې افراد دي، نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: په خیر راشئ(چونکه تاسو خلک په خوشحالۍ |
| **غَيْرَ خَزَايَا وَلَا نَدَامَى.** |
| سره مسلمانان شوي راغلي یئ) نو څکه نه په دنیا کې ستاسو دپاره رسوائي او شرمندګي شته او نه په آخرت |
| **قَالُوْا : يَا رَسُولَ اللهِ . إِنَّا لَا نَسْتَطِيعُ أَنْ نَأْتِيَكَ إِلَّا فِي الشَّهْرِ** |
| کې ، د وفد خلکو عرض وکړو یا رسول الله! مونږ نه شو کولې چې راشو تاسې ته مګر په هغه میاشتو کې |

الْحَرَامِ ، وَ بَيْنَنَا وَ بَيْنَكَ هٰذَا الْحَيُّ مِنْ كُفَّارِ مُضَرَ ، فَمُرْنَا

چې جنګ په کې حرام دی او زمونږ او ستا په مینځ کې ددې قبیلې مضر کفار دي لهذا ته مونږ ته راوښایه

بِأَمْرٍ فَصْلٍ نُخْبِرْهُ مَنْ وَرَاءَنَا

داسې احکام په کوموباندې چې مونږ په خپله هم عمل وکړو او مونږ نه پاتې خلک هم له هغو خبرو خبر کړو

وَ نَدْخُلُ بِهِ الْجَنَّةَ ، وَ سَأَلُوْهُ عَنِ

او په هغو باندې په عمل کولو سره مونږ جنت ته داخل شو په همدې سره دوی دهغولوښو په هکله هم پوښتنه

وکړه (په کوموکې چې نبیذ جوړشوي وي چې کوم استعمالیدلی شي او کوم لوښي نه شي استعمالیدلی )

الْأَشْرِبَةِ فَأَمَرَهُمْ بِأَرْبَعٍ وَ نَهَاهُمْ عَنْ أَرْبَعٍ : أَمَرَهُمْ

نبي عليه السلام دوی ته دڅلوروخبروحکم وکړاو دڅلوروخبرونه یې منعه کړل، اول یې حکم ورته وکړو په

بِالْإِيمَانِ بِاللّٰهِ وَحْدَهُ ، قَالَ : ( أَتَدْرُوْنَ مَا الْإِيمَانُ بِاللّٰهِ

ایمان راوړو د الله تعالی په وحدانیت باندې او وې فرمایل: آیا تاسې پوهیږئ چې ایمان راوړل د الله تعالی

وَحْدَهُ ؟) قَالُوْا : اَللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ أَعْلَمُ . قَالَ

په وحدانیت باندې څه شی دی؟ نو خلکو ویل: الله او دده رسول ښه پوهیږي نو وې ویل: په الله باندې ایمان

( شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ ، وَ أَنَّ مُحَمَّدًا

راوړل دهغه په حقیقت ګواهي ورکول چې د الله نه بغیر هیڅ معبود حاجت روا او مشکل کشا نشته او محمد

رَسُوْلُ اللّٰهِ ، وَ إِقَامِ الصَّلَاةِ ، وَ إِيتَاءِ الزَّكَاةِ ، وَ صِيَامِ رَمَضَانَ ،

صلى الله عليه وسلم د الله رسول دی، په پابندۍ سره مونځ کول، زکوة ورکول او د رمضان میاشتې روژې نیول،

وَ أَنْ تُعْطُوا مِنَ الْمَغْنَمِ الْخُمُسَ ).

ددې څلوروخبرونه وروسته رسول الله صلى الله عليه وسلم د غنیمت د مال نه د پنځمې برخې د ورکولو حکم هم وکړو

وَ نَهَاهُمْ عَنْ أَرْبَعٍ : عَنِ الْحَنْتَمِ ، وَ الدُّبَّاءِ ، وَ النَّقِيرِ ،

او ددې څلورو لوښونه یې منعه وکړه، د مهرشوو لوښونه، د کدو د کاسې نه، د ونې د جرړې د جوړو شوو

وَ الْمُزَفَّتِ ، وَ قَالَ : احْفَظُوْهُنَّ ، وَ

لوښونه د لیار و دک شوي لوښو نه، بیا نبي عليه السلام وفرمایل: دا خبرې په ښې طریقې سره یادې کړئ او

أَخْبِرُوا بِهِنَّ مَنْ وَرَاءَكُمْ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1]، وَ لَفْظُهُ لِلْبُخَارِيِّ).

كوم مسلمانان چې تاسو شاته پرېښي دي او تاسو راغلي یاست هغوی هم دد ې خبرونه خبر کړئ.

**توضيح**: حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د تره زوی دی، دهجرت نه درې کاله مخکې په مکه مکرمه کې پیدا شوی وو، دنبي علیه السلام دوفات کیدو په وخت کې یې عمر دیارلس کاله وو، دنبي علیه السلام نه دده دپاره دفقاهت، حکمت او دقرآن دتفسیر دپاره دعا غوښتل شوې وه په همدې وجه په خبرواترو کې افصح الناس وو، په علم کې **اعلم الناس** ؤ او په شکل کې **اجمل الناس** ؤ، د اوږده قد مالک ؤ، کله به چې پیاده روان وو نو داسې به ښکاریده لکه په سورلۍ چې سور وي، دوه ځلې يې جبریل امین لیدلی ؤ. حضرت عمر رضي الله عنه د خپل خلافت په دور کې په سپین ږیرو صحابو باندې مقدم کړی ؤ او د ده نه به يې مشورې اخیستې، د عمر په اخیر کې ړوند شو، په ۶۸ هجري کې د ۷۱ کالو په عمر کې وفات شو، په طائف کې د جامع مسجد ابن عباس په مکتبه ابن عباس کې مدفون دی.

**ان وفد عبد القيس**: وفد د وافد جمع ده لکه رکب چې د راکب جمع ده، وفد د هغې جرګې نوم دی کومه چې د کوم قوم له طرفه په اشرافو باندې مشتمله ډله وي او د کوم امیر او واکمن طرف ته د خپل حاجت په باره کې تللې وي. عبد القیس د دوی د غټ نیکه نوم وو یا د وفد د مشر (لیډر) نوم وو، دا وفد په څلوېښتو کسانو (افرادو) باندې مشتمل وو او د ربیعه قبیلې د بنونزار سره د دوی تعلق وو کومه چې د قبیلې مضر مقابله وه. (المرقات ۱۶۷-۱/۱۶۸)

**د عبد القيس وفد مدینې منورې ته په کوم وخت کې راغلی وو**: عبد القیس د بحرین یوه غټه قبیله وه، دا وفد مدینې منورې ته په کوم وخت کې راغلی وو؟ او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې څه وخت حاضر شوي وو؟ د زیاتره علماء کرامو او شارحینو د قول مطابق دا وفد په (۸ هجري) کې راغلی وو او دا خلک په خپله خوښه او رضا مسلمان شوي او دلته راغلي وو، د تاریخ امام علامه واقدي رحمه الله او قاضي عیاض رحمه الله ددې قول طرف ته تللي دي، امام ابن اسحاق رحمه الله او ابن کثیر رحمه الله او د نورو اهل تاریخو په نزد دا وفد په (۹ هجري) کې راغلی وو، ابن اثیر او د تاریخ خمیس والا د همدې وفد د راتلو وخت (۱۰ هجري) ښودلی دی. د تحقیق نه وروسته دا خبره راجح معلومیږي چې دا وفد دوه ځلې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلی وو، یو ځل په (۵ هجري) کې او دویم ځل په (۹ هجري) کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شوی وو.

---

(۱) اخرجه البخاري ۱/۲۰، رقم الحديث ۵۳، و مسلم في صحيحه ۱/۳۵، رقم الحديث (۲۴-۱۷).

**د عبد القيس د راتلو سبب** : د بحرين خلک تجارت کوونکي وو، په دوی کې يو تاجر منقذ بن حيان د تجارت دپاره مديني منورې ته راغلی وو، د رسول الله ﷺ سره د ده ملاقات وشو، رسول الله ﷺ په ډيره دلچسپۍ سره د بحرين د شريفانو حالات د ده نه معلوم کړه او خاصکر د يو صاحب منذر بن عائذ د حالاتو پوښتنه يې ترينه وکړه، رسول الله ﷺ منقذ بن حيان ته د اسلام دعوت ورکړه، هغه مسلمان شو او د اسلام يو شمير ضروري شيان يې زده کړل بيرته واپس وطن ته لاړو، رسول الله ﷺ د بحرين د سردارانو په نوم خط وليکلو او ده ته يې وسپارلو، منقذ بن حيان خط له ځان سره کړ بحرين ته ورسيد او د منذر بن عائذ ملقب باشج عبد القيس په لاس کې يې ورکړ، منقذ بن حيان د اشج عبد القيس زوم وو د ده ميرمن (بنځه) د اشج عبد القيس لور وه، منقذ بن حيان يې په عبادت کولو وليدو او ډيره حيرانه شوه، دې د خپل پلار پر وړاندې د دې يادونه وکړه چې زما ميړه له مديني نه چې راغلی دی هغه په عجيب عجيب عبادت کې مشغول دی، اشج چې کله د رسول الله ﷺ خط پرانستلو وې لوست او د لور نه يې د اسلام په باره کې خبرې واوريدې نو هغه مسلمان شو، بيا ده په يوه مجمع (جلسه) کې خط ولوست خلک مسلمانان شول او بيا د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شول، دا وخت دغه وفد په ديارلسو کسانو مشتمل وو. (المرقات ۱۶۵-۱/۱۶۶)

مديني ته چې ورسيدل په منډه منډه يې رسول الله ﷺ ته سلام وکړو، لاسونه يې ښکول کړل، ليکن اشج لومړی (اول) د ملګريو سامان محفوظ کړ، بيا يې اوبه وترلو، بيا يې نوې جامې واغوستې او په ډير وقار د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو، مبارک لاسونه يې ښکول کړل، شکل او شباهت يې ښه نه وو، رسول الله ﷺ په تعجب سره ورته وکتل نو اشج وويل يا رسول الله ﷺ ! د انسان دا پوستکی د مشکيزې په شان دی، اصل انسان خو دا نه دی، په اصل کې انسان (الانسان بأصغريه) يعنې د دوو وړو اندامونو د وجهې انسان انسان دی او هغه زړه او ژبه دي، اشج ته رسول الله ﷺ وفرمايل : په تا کې دوه خويونه (خصلتونه) دي کوم چې الله او د هغه رسول ته خوښ دي، هوښياري او تحمل (صبر) اشج وويل : يا رسول الله ﷺ ! آيا دا خويونه پيدائشي دي او که ما په کسب سره حاصل کړي دي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : په تا کې دا خويونه پيدايشي دي، په دې باندې هغه خوشحاله شو او بيا يې وويل : (**الحمد لله الذی جبلني علی خلقتين يحبهما الله ورسوله**). چونکه د منذر بن عائذ په مخ باندې د زخم اثر وو نو رسول الله ﷺ هغه ته د اشج لقب ورکړ، لهذا نووي رحمه الله ويلي دي چې منذر بن عائذ ته د اشج لقب رسول الله ﷺ ورکړی وو بيا هغه په اشج عبد القيس سره مشهور شو.

**من القوم او من الوفد** : په دې کلام کې د راوي شک دی چې رسول الله ﷺ (**من القوم**)

فرمایلی وو او که یې (من الوفد) فرمایلی وو، دا د صحابه کرامو رضي الله عنهم نهایت احتیاط اعلی ذهانت او امانت داري او د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره محبت وو چې په تلفظ کې یې تغیر نه خوښولو، د (او) د لفظ نه وروسته (قال) زیات کړی دی د همدې نه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سوال یا خو د تعارف دپاره وو یا د استیناس د طلب په غرض وو، دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم عام مبارک عادت وو په کوم کې چې سراسر محبت وو. (المرقات ۱/۱۶۸).

**قالوا ربیعة**: ای نحن من ربیعة بن نزار، زمونږ تعلق د ربیعه سره دی. (المرقات ۱/۱۶۸).

**قال مرحبا**: مرحب مصدر میمي په معنی د وسعت دی ای **اصاب القوم رحبا وسعة** دا لفظ د فعل محذوف د وجې منصوب دی رحب یرحب رحبا و مرحبا د وسعت او پراخی په معنی دی.(المرقات ۱/۱۶۸).

**غیر خزایا**: غیر حال دی د همدې وجې منصوب دی، **خزایا** د **خزیان** جمع ده او **خزی** د ذلت او رسوائي په معنی سره دی. (المرقات ۱۶۸-۱/۱۶۹).

**ولا ندامی**: داد **ندمان** جمع ده کوم چې د **نادم** پښیمان په معنی سره دی، اګر که د **ندمان** یوه معنی همنشین هم ده مګر هغه دلته مراد نه ده بلکې د **نادم** (پښیمان) په معنی سره استعمال شوی دی، بعضو **ندامی** د **نادم** جمع بللې ده، مګر دا قید یې لګولی چې دا خلاف القیاس دی، ځکه چې د **نادم** جمع د قیاس مطابق **نادمین** ده، بهر حال د **خزایا** هم وزن جوړولو په غرض سره **ندامی** راوړل شوی دی که نه نو **نادمین** راوړل کیده او د هم وزنۍ لحاظ په عربي کې ساتل شوی دی، لکه د **عشایا** دپاره **غدایا** راوړل شوی حالانکه د **غداة** جمع **غدوات** ده نه **غدایا** همدارنګه د **لادریت** رعایت شوی **لادریت ولاتلیت** راوړل شوی، حالانکه دا (**لاتلوت**) دی مګر د ګاونډ خیال ساتل شوی دی.رسول الله صلی الله علیه وسلم دې وفد ته دا ورښودل غوښتل چې ښه شوه چې ستاسو سره زمونږ جګړه ونه شوه، د جګړې نه مخکې په خپله مو اسلام قبول کړو او راغلئ، نو د جګړې د رسوائي نه بچ شوئ، همدارنګه د جنګ نه کیدو په صورت کې پښېماني هم د منځه لاړه، که چیرته جنګ شوی وی خلک وژل شوي وی یا نیول شوي او زخمیان شوي وی نو اوس به پښېماني وه چې کاش د جنګ کولو نه مخکې مسلمانان شوي وی. (المرقات ۱/۱۶۹).

**الشهر الحرام**: دلته په (**الشهر**) کې **الف لام** د جنس دپاره دی د کوم اطلاق چې په قلیل او کثیر تولو باندې کیدی شي، نو د (**اشهر الحرام**) نه د تقدس او احترام څلور میاشتې مراد دي په کومو کې چې

درې یو ځای دي او یوه جدا ده، ذوالقعده ذوالحجه او محرم یو ځای دي او رجب الفرد جدا ده، لهذا دلته ګویا چې له مفرد سره د جمع معامله شوې ده چې له (اشهر الحرام) نه ځلور میاشتې مراد دي او د دې تائید په بخاري او مسلم سره شوی دی چې هلته د (اشهر الحرام) د جمع لفظ موجود دی. بعضو دا هم ویلي دي چې دلته دې وفد د (اشهر الحرام) نه د رجب میاشت مراد وه، ځکه چې د مضر قبیلې خلکو د رجب ډیر زیات احترام کولو حتی چې د رجب نوم یې رجب مضر ایښی وو، د دې رایې تائید د بیهقي او ابو بکره په روایت سره شوی دی چې (الشهر الحرام) نه مراد رجب مضر دی، د همدې رایې مطابق په (اشهر الحرام) کې الف لام د عهد دپاره راوړل شوی دی، اوس دلته یو سوال دا دی چې چې په (۹ هجري) کې خو د عربو جزیره آزاده شوې وه بیا همدې وفد د مضر قبیلې د جنګ او لارې خبرونې راپورته کړه؟ د دې جواب دا دی چې دا وفد یو ځل په (۶ هجري) کې راغلی وو دا د هغه وخت خبره ده، دا وخت د مضر قبیلې خلک مسلمانان شوي نه وو. (المرقات۱/۱۶۹).

**امر فصل**: د فصل خو یو مطلب دا کیدلی شي چې دا د فاعل په معنی سره دی کوم چې د حق او باطل په مینځ کې فیصله کن امر شي، یا فصل د مفصول او مفصل په معنی سره دی چې مونږ ته یې په ښه تفصیل سره وښایه ترڅو چې مونږ بیا د بل چا طرف ته محتاج نه شو. (المرقات۱/۱۶۹).

**نخبر به**: یعني چې مونږ همدا واضح او دوه قسمه احکام د ځان سره یوسو او د خپل قوم پر وړاندې یې بیان کړو، په دې سره د دین د اشاعت اهمیت واضح شوی دی او د تبلیغ د ذمه وارۍ احساس هم معلوم شوی دی، مګر اول د زده کولو د ځان تیارولو او بیا د تللو اصول باید شاته ونه غورځولی شي، په تفصیل سره یې زده کړئ بیا لاړ شئ. (المرقات۱/۱۷۰).

**وندخل به الجنة**: نخبر او ندخل دواړه فعل مجزوم هم دي ځکه دا د مرنا امر په جواب کې راغلي او دواړه د جمله مستانفه په صورت کې مرفوع هم دي، د دخول جنت نه مراد دا دی چې مونږ د الهي رضا خاص مقام غواړو کوم چې جنت دی، ځکه چې جنت د الله د رضا د مجموعي نوم دی. (المرقات۱/۱۷۰).
اوس دا اعتراض نه شي کیدی چې عمل خو د دخول جنت موثره ذریعه نه ده، موثر علت خو د الله تعالی رحمت دی، عمل خو صرف وسیله ده، بیا هم د نفس جنت سوال هم روا دی، ځکه چې هغه هم مامور به حکم دی، مګر د اعلی خلوص خبره بله ده. (المرقات۱/۱۷۰).

**وسألوه عن الاشربة**: اشربة د شرب جمع ده په معنی د مشروب سره دی او د جواب نه معلومه شوې ده چې رسول الله ﷺ ګویا چې وفرمایل چې تاسو خو د مشروب پوښتنه کوئ زه د مشروباتو هغه لوښي هم روا نه ګڼم په کومو کې چې کله د شرابو ساتلو جوړولو او ځکلو عمل شوی وي، ځکه چې دا

لوښي مذکرات دي، د هغو نه لرې اوسيدل هم تاکيدي حکم دى ترڅو چې د شرابو نه مکمل اجتناب او نفرت راشي، کله چې دا نفرت د صحابه کرامو په زړونو کې کيني، بيا به د لوښو ساتلو اجازه هم وشي، بهر حال اشربة په حذف د مضاف سره دى (أي عن ظروف الاشربة) ځکه چې دا خلک مسلمانان وو د شرابو په حرمت باندې له پخوا نه قائل وو. (المرقات ۱/۱۷۰).

**فامرهم باربع**: دلته يو مشهور سوال دى هغه دا دى چې په اجمال کې د څلورو څيزونو وعده شوې وه چې (**فامرهم باربع**) مګر په تفصيل کې د پنځو څيزونو ذکر راغلى، يعنې ايمان، مونځ، زکوة، صوم، د خمس ورکړه دا پنځه څيزونو دي او که چيرته اجمال او تفصيل يو دى نو بيا صرف د ايمان ذکر وشو او د هغه د فروعاتو ذکر وشو او د څلورو څيزونو وعده پوره نه شوه؟.

**جواب**: د دې ډير جوابونه دي، او شارحينو واړه واړه وجوهات هم را اخستلي دي او جوابونه يې کړي دي، زه دوه درې خبرې ذکر کوم: **اول جواب**: دا چې رسول الله ﷺ د همدې څلورو شيانو وعده کړې وه او **اقام الصلوات، ايتاء الزكوة، صوم رمضان** او **وان تعطوا من الخمس** پورې يې د څلورو بيان وکړ، پاتې شو د شهادتينو ذکر هغه د مقدمې، تمهيد او تبرک په طور وو، ځکه چې دا خلک پاخه مسلمانان شوي وو، د دوى دپاره د شهادتينو ذکر د تبرک په طور کيدلى شي، ددې تائيد دبخاري په روايت سره شوى چيرته چې د شهادتينو ذکر نشته، لهذا د بخاري په ۲ جلد کې ۹۱۲ صفحه باندې دا حديث داسې دى: (**عن ابن عباس رضي الله عنه فقال عليه السلام اربع واربع (۱) اقيموا الصلوة (۲) وآتوا الزكوة (۳) وصوم رمضان (۴) واعطوا خمس ماغنمتم الخ**). ددې روايت نه په واضح طور معلومه شوې ده چې د شهادتينو تذکره د څلورو شيانو په وعده کې نشته، چيرته چې ذکر شوې هلته د تبرک تمهيد او مقدمې په طور ذکر شوې، په بعضو روايتونو کې رسول الله ﷺ د شمارلو په وخت کې په شهادتينو باندې مبارکه ګوته بنده کړه د کوم نه چې اندازه کيږي چې دا په شمار کې اول امر وو، مګر علماؤ ليکلي دي چې دا د توحيد طرف ته اشاره وه د شمار طرف ته نه وه، ځکه چې ددې وروسته نه رسول الله ﷺ دويمه ګوته نه يې بنده کړه نه يې اشاره وکړه، که چيرته شمارل وى نو په ټولو کې به يې بنده کړې وى. **دويم جواب**: دا دى چې شهادت يې اول امر شمار کړو نو مونځ، زکوة او روژه دا څلور شول، او د خمس چې کوم ذکر راغلى دى د هغه عطف په امرهم باندې دى عبارت داسې دى (**امرهم باربع وامرهم ان تعطوا من المغنم الخمس**) نو خمس که چيرته په شمار کې دننه نه دى خو د وفد د مامورات نه دى چې دا وکړئ، دا وکړئ او خمس اداء کړئ، دا دوه جوابونه د ټولو نه عمده او قابل اعتماد دي. **دريم جواب**: دا هم ورکړى شوى دى چې رسول الله ﷺ څلور څيزونه شمار

کړل مګر کوم راوي اختصار کړی ټول یې پرې ایښي دي د ایمان اجمال او تفصیل یې ذکر کړی دی دا عجیب جواب دی. **څلورم جواب**: دا دی چې د شهادتینو نه نیولې تر خمس پورې رسول الله ﷺ د څلورو څیزونو ذکر کړی د غنیمت مال او د خمس ذکر د زیاتوالي په طور د همدې وفد په مناسبت د دوی دپاره یې ځکه وکړ چې دا خلک د مضر قبیلې سره د جنګ په میدان کې په جګړو کې مشغول وو دوی ته د همدې حکم ضرورت وو. په دې حدیث کې د حج ذکر نشته، ځکه چې حج په (۹ هجري) کې فرض شوی وو او د عبد القیس وفد یو ځل د (۹ هجري) نه مخکې راغلی وو.

**ونهاهم عن اربع**: یعنې رسول الله ﷺ دوی د څلور قسمه داسې لوښو نه منع کړل په کومو کې چې دوی شراب جوړ کړي وو، د کومو چې سوري بند شوي وو او په هغو کې ډیر زر شراب جوړیدل او زر به پکې نشه راتله، نو په ابتدآء کې په هغو کې د نبیذ د جوړولو نه هم منعه راغله چې هسې نه دوباره د شرابو جوړول شروع نه شي دا ټول څلور لوښي وو. (المرقات ۱/۱۷۱).

(۱) **الحنتم**: دا د پخې خټې نه جوړ شوی روغني لوښی وو. (المرقات ۱/۱۷۲).

(۲) **الدبا**: دا یو قسم کدو دی کوم چې وچ کړی شي او د هغه د مینځ نه تخم وغور ځول شي دا د دننه نه بهترین لوښی دی د پاسه پرې د نیولو دپاره داسې غاړه ده ګویا چې د نیولو دپاره په اندازه جوړه شوې وي، اوس په قبائلو او کوهستاني علاقو کې خلک د دې استعمال کوي. (المرقات ۱۷۲-۱/۱۷۳).

(۳) **النقیر**: دا هم یو لوښی دی خلک د کجورې تنه (ډډ) دننه خوا نه تراش کړي بیا په هغې کې شراب جوړوي او په کې ساتي یې:

(۴) **المزفت**: دا هغه لوښی دی په کوم به چې خلکو تور تارکول لګول، یعنې روغني زفت یا روغن قار کوم چې په کشتیو باندې لګول کیږي او په جاهلیت کې په دې سره د لوښو د سورو (مساماتو) بندولو په غرض دا څیزونه په لوښو باندې لګول کیدل، دا هم روغني لوښی دی، په ابتداء کې د حرمت شراب په وخت کې د همدې لوښو ممانعت شوی وو بیا اجازه وشوه لکه د مشکوة په زیارة القبور کې دا روایت دی:

**ونهیتکم عن النبیذ الا في سقاء فاشربوا في الاسقیة کلها ولاتشربوا مسکرا (مشکوة. ص: ۱۵۴)**.

دائمه احنافو دامسلک دی اودایې دلیل دی، دمشکوة په **باب الاشربة** ۳۷۰ صفحه کې همداقسم روایت مذکور دی، د امام مالک رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد د همدې لوښو استعمال اوس هم ناروا دی د ابن عباس رضي الله عنه یو قول او فتوی یې مستدل ده چې هغه منعه کړې. د هغه جواب دا دی چې د صحیح احادیثو نه په واضح طور معلومه شوې چې دا ممانعت وروسته ختم شوی دی، لهذا د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په قول کې تاویل کولی شي چې شاید ده ته د نسخ علم نه وي شوی.

**واحفظوهن**: ددې نه معلومه شوه چې اول يې زده کړه بيا لاړ شه نورو ته يې ور زده کړه، ړومبی د تبليغ تياری وکړه، بنه يې په ياد کړه ترڅو چې په بيانولو کې يې غلطي رانه شي. (المرقات ۱/۱۷۳).

**۲٦ ذيقعده ۱۴۰۹هـ**

## د اسلام احکامات

| |
|---|
| (۱۷) وَ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه نه روايت دی چې يوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل هغه دلې ته |
| وَ حَوْلَهُ عِصَابَةٌ مِنْ أَصْحَابِهِ : بَايِعُوْنِيْ عَلٰى أَنْ لَا تُشْرِكُوْا |
| چې ده نه ګير چاپيره ناسته وه زما سره په دې خبرو باندې بيعت (عهد او اقرار) وکړئ چې تاسې مه شريکوئ |
| بِاللهِ شَيْئًا ، وَلَا تَسْرِقُوا ، وَلَا تَزْنُوا ، وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ ، وَلَا تَأْتُوا بِبُهْتَانٍ |
| د الله تعالى سره هيڅ شی، غلا مه کوئ، زنا مه کوئ، خپل بچي مه قتل کوئ، قصداً په چا پسې بهتان مه وايئ |
| تَفْتَرُونَهُ بَيْنَ أَيْدِيكُمْ وَ أَرْجُلِكُمْ ، وَلَا تَعْصُوا فِي مَعْرُوفٍ . فَمَنْ |
| او د شريعت مطابق چې تاسو ته کوم احکام در کړی شي د هغو نافرماني و نه کړئ، پس په تاسو کې چې کوم |
| وَفٰى مِنْكُمْ فَأَجْرُهُ عَلَى اللهِ ، وَ مَنْ |
| کس دا عهد او اقرار پوره کړي د هغه اجر د الله تعالى په ذمه دی او کوم کس چې د (شرک نه بغير) په دې کې |
| أَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا فَعُوقِبَ بِهِ فِي الدُّنْيَا. |
| په کومه ګناه کې مبتلا شي او بيا په دنيا کې هغه ته د دې سزا هم ورکړی شي (لکه حد وغيره پرې جاري شي) |
| فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ ، وَ مَنْ أَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا ، |
| نو دا سزا د هغه د هم دې ګناه د پاره کفاره جوړيږي، او کوم کس چې د دې ګناهونو نه د کومې ګناه ارتکاب |
| ثُمَّ سَتَرَهُ اللهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا فَهُوَ إِلَى اللهِ |
| وکړ مګر الله تعالى په هغه باندې پرده واچوله (او په دنيا کې سزا ورنه کړی شوه) نو اوس هغه د الله تعالى په |
| إِنْ شَاءَ عَفَا عَنْهُ وَ إِنْ شَاءَ عَاقَبَهُ » |
| مرضي کې دی، که وغواړي هغه به هم داسې معاف کړي او که وغواړي په آخرت کې به هغه ته سزا ورکړي |

فَبَايَعْنَاهُ عَلَى ذٰلِكَ . ( مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ ).[1]

نو مونږ ټولو په همدې باندې د رسول الله ﷺ سره بيعت وکړو.

**توضيح** : **عبادة** : چيرته هم چې راځي نو د **(فُعاله عجاله)** په وزن باندې راځي، مګر د امام بخاري شيخ محمد بن عباده واسطي کې داسې نه دي، هلته عين مفتوح دی، د حضرت عباده رضي الله عنه کنيه ابو الوليد انصاري ده، دا د نقباو نه دی، په عقبه اولی ثانيه او ثالثه دريوارو کې شريک شوی وو، همدارنګه په بدر او نورو ټولو غزاګانو کې شريک شوی، حضرت عمر رضي الله عنه دا د شام قاضي مقرر کړی وو، دی په حمص کې اوسيده، بيا فلسطين ته ولاړ په رمله يا بيت المقدس کې په (۳۴ هجري) کې وفات شو، د ده عمر (۷۲) کاله وو. (المرقات ۱/۱۷۳).

**عصابة** : د **فعالة** په وزن سره د احاطه په معني راغلی دی لکه **(عمامة، حمالة، جعابة، حبالة) عصابه** د **عصب** نه ماخوذ ده او **عصب** د سختۍ په معنی ده، لهذا په سر باندې د مضبوطې پټۍ تړلو ته عصابه ويل کيږي، د لسو نه تر څلويښتو کسانو پورې ډلې ته عصابه ويل کيږي، دوی هم د يو بل دپاره د مضبوطتيا سبب دي، کله کله د څلويښتو نه زياتو کسانو ته هم ويل کيدی شي لکه په اصحاب بدر باندې د عصابه اطلاق شوی دی او هغه (۳۱۳) کسان وو. (المرقات ۱/۱۷۳).

**د بيعت بحث** : **بايعوني** : مبايعه د **بيع** نه ماخوذ ده، دا بيعت هم د بيع سره مشابه دی لکه څرنګه چې **بيع مبادلة المال بالمال** دی همدارنګه بيعت هم يو عهد، قول او اقرار دی د کوم مفهوم چې **نيل الاجر والثواب بالطاعة والانقياد** دی، ګويا چې د ځان او مال چاته سپارل دي چې دا هر څه د الله او د هغه د رسول دي، د دوی په رضا کې استعمالول دا بيعت دی، د بيعت مشهور څلور قسمونه دي :

(۱) بيعت اسلام (۲) بيعت جهاد (۳) بيعت خلافت (۴) بيعت طريقت. (المرقات ۱/۱۷۴).

صحابه کرامو رضي الله عنهم بيعت اسلام هغه وخت وکړ کله چې دوی اسلام قبول کړ بيا د حديبيې د صلح په موقع يې د جهاد عام بيعت وکړو، بيا يې د حضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه په لاس د خلافت بيعت وکړو.

د طريقت بيعت هغه بيعت ته ويل کيږي چې کوم کس د کوم کامل شيخ په لاس کې لاس ورکړي د ګناهونو د پريښودو او د طاعاتو د التزام عهد وکړي او ووايي چې زه به ستا په راهنمائي کې خپل ظاهر

[1] اخرجه البخاري ۱/٦٤ رقم الحديث (۱۸)، و مسلم في صحيحه ٥/١٦٢، رقم الحديث (٤١)، والترمذي ٤/٣٦، رقم الحديث ١٤٣٩، والنسائي ٧/١٦٠، واحمد في المسند ٥/٣١٤.

او باطن د شریعت تابع جوړووم.اوس دې ته کتل دي چې د حضرت عباده رضي الله عنه په دې حدیث کې د کوم بیعت ذکر راغلی دی دا کوم قسم بیعت وو؟ نو داسې معلومه شوې ده چې دا بیعت د طریقت بیعت وو، ځکه چې د اسلام بیعت خو صحابه کرامو مخکې کړې وو، د یو مسلمان نه د اسلام د بیعت اخستلو ضرورت څه دی.همدارنګه دا د جهاد بیعت هم نه شي کیدلی، ځکه چې د جهاد هیڅ مضمون په دې حدیث کې ذکر شوی نه دی، همدرانګه دا د خلافت بیعت هم نه دی، ځکه دلته د نبوت دور دی د خلافت دور لا نه دی راغلی، ځکه چې د نبي د خلیفه په لاس باندې بیعت خلافت په وروسته کې شوی، په واضح طور دا ظاهره شوې چې دا بیعت د ترک معاصي او د التزام طاعاتو دپاره وو او دارنګه بیعت د طریقت بیعت دی، ګویا چې په هغه وخت کې د دې نوم نه وو او نه یې شهرت وو، بیا هم وخت په وخت د رسول الله صلی الله علیه وسلم د صحابه کرامو نه د باطن د صفائي دپاره او د التزام شریعت دپاره همدا رنګې بیعت اخیستل شوی دی، لهذا کوم بیعت ته چې په وروسته کې مشائخو د طریقت بیعت نوم ورکړی دی د هغه دا عنوان او نوم نه دی صحیح، د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مبارک عهد کې د بل عنوان په حواله دا کار شوی دی، او هغه د تجدید اعمال عهد او د التزام شریعت وعده وه کومه چې په دې حدیث کې په واضح طور ذکر شوې ده، لهذا د طریقت بیعت ته بدعت ویل انتهائي ظلم او بې انصافي ده.همدارنګه د جبریل علیه السلام په حدیث کې د احسان درجه د همدې سلوک او بیعت طریقت نوم دی، اګر که عنوانونه جدا جدا دي، حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهي رحمه الله ویلي دي چې کله د علم او دلائلو کشمکش وي نو دا شریعت دی، او کله چې قلبي طمانیت وي نو دا طریقت دی، یا داسې ووایې چې کله انسان د اسلام په احکامو باندې په تکلف سره تګ کوي نو دا شریعت دی او کله یې چې مزاج جوړ شي نو دا طریقت دی، یا داسې پوهه شئ چې د اسلام د دین ابتدائي سفر شریعت دی، او د ښه مهارت نه وروسته انتهاء طریقت دی، لکه څرنګه چې یو ډرائیور لومړی زده کړه کوي او بیا د لاس له صفائي سره عام سړک ته راځي ترڅو چې ښه مهارت حاصل کړي.بهر حال اصل بیعت او طریقت په سنت سره ثابت دی، مګر په دې کې اکثر ټګان خلک داخل شوي دي، کومو چې دا طریقه بدنامه کړې ده، که نه نو د اهل الله په لاس بیعت او د شریعت محنت خو غټه سره ملغلره ده. ے

*نہیں ملتے یہ موتی بادشاہوں کے خزینوں میں*

همدارنګه بیعت نساء او د هغو اصلاحي طرف په خپله د قرآن مجید په سورت ممتحنه کې الله تعالی بیان کړی دی،همدارنګه دبیعت طریقت یو اصل دقرآن نه ثابت شوی دی،بیاپه سلف صالحینو کې دا مبارک عمل متواتر را روان دی نو انکار ترې بیکاره دی.

**ان لاتشرکوا:** د شرک نه مراد شرک اصغر یا ریاکاري ده،یادا بیعت تجدید دی او د راتلونکي دپاره د شرک نه دځان ساتلو هدایت دی،که نه نو مسلمانان خو دپخوانه په توحید باندې وو. (المرقات ۱/۱۷۴).

**په عربو کې د اولاد د قتل فلسفه** : **ولاتقتلوا اولادكم** : دا چې په عربو کې د اولاد وژل رواج وو، د همدې وجهې په خصوصيت سره دا بيعت واخيستل شو، په عربو کې دوه قسمه خلکو د دوو مختلفو کمزوريانو له وجهې اولادونه قتل کول، يو خو هغه خلک وو کوم چې فی الحال مفلس او فقيران وو، دوی د اولادونو د بوج د پورته کولو نه عاجزان وو، په همدې وجه يې اولادونه قتل کول، قرآن کريم دوی ته ويلي دي: ﴿ وَلاَ تَقْتُلُوٓاْ أَوْلاَدَكُم مِّنْ إِمْلاَقٍ ﴾ دويم قسم خلک هغه وو کوم چې فی الحال خو خوشحاله وو، ليکن د دوی سره ويره وه چې په آئنده کې د اولادونو په راغتيدو سره به مونږ فقيران شو نو دوی اولادونه قتل کول، د دوی د پاره قرآن کريم دا اعلان کړی: ﴿وَلاَ تَقْتُلُوٓاْ أَوْلاَدَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلاَقٍ﴾ چې په آئنده کې د فقر ويره نه ده په کار، بيا دواړه قسمه خلکو ته تسلي ورکړی شوې ده، اول قسم ته ويل شوي ﴿نَّحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَإِيَّاكُم﴾ چې مونږ يې دوی ته هم ورکوو او تاسو ته يې هم درکوو، د کلام دا طريقه د فصاحت او بلاغت نه ډکه ده لږ فکر په کې وکړئ.په عربو کې په خصوصي طور د جينکو د قتل کولو يوه وجه دا هم وه چې دوی پوهيدل چې دا جينۍ غټه شي نو بل سړي ته به ورکول کيږي هغه دد دې نه جنسي فائده ولې پورته کړي، دا د جاهليت بې ځايه غيرت وو د کوم د وجهې نه چې دوی ژوندۍ جينکۍ ژوندۍ تر خاورو لاندې کولې، اسلام په ښځو باندې لوی احسان وکړو او دا رسم او رواج يې حرام وګڼلو سړي او ښځې يې د دوزخ نه بچ کړل.نن سبا په سکولونو او کالجونو کې هلکان او جينکۍ داخل کړي،دوي په آئنده کې په ديني او اخلاقي اعتبار سره تباه هم کړي او په حقيقت کې دا ژوندي په خاورو کې خښول دي، د خيټې په خاطر د هغو د آخرت تباه کول دا څرنګه تعليم او هوښياري ده. ـــ

*يوں قتل سے بچوں کے وہ بدنام نہ ہوتا ❁ صد حيف کہ فرعون کو کالج کی نہ سوجھی*

**ولاتأتوا ببهتان** : بهتان د بهت نه د مبهوت او متحير کولو په معنی سره دی، دا هغه دروغ دي کوم چې آوريدونکی په حيرت کې واچوي، بعضو ويلي چې دد دې نه مراد (قذف) دی. (المرقات ۱/۱۷۴).

**بين ايديكم وارجلكم**:دلاس او پښو ذکر دد دې وجې شوی چې غټ غټ کارونه په دوی سره تر سره کيږي **تسمية الشيء باسم جزئه** مراد دانسان ذات او نفس انسان دی،بعضو ويلي چې دد دې مفهوم دا دی چې مخامخ په چا باندې بهتان مه لګوئ، ځکه چې دا ډير سخت وي او د فساد باعث دي. (المرقات ۱/۱۷۴).

**ولاتعصوا في معروف**: د معروف ذکر دلته تعميم بعد تخصيص دی چې د خاص خاص څيزونو نه وروسته د عام معروف ذکر شوی، معروف او منکر هغه دي د کوم چې حسن او قبحه په شريعت سره معلوم شي، په معروف کې ټول مامورات او منهيات شرعيه راغلي نو په دې کې په رسالت باندې ايمان هم راغی نو د ټول شريعت اطاعت هم راغی، دلته د معروف قيد اتفاقي دی، ځکه چې د هيڅ نبي هيڅ عمل غير

معروف نه دی شوی چې مراد دا شي چې(لا تعصوا في شيء من الاشياء). (المرقات ۱/۱۷۴).

**فمن وفی بوفی** تحفیفًا او تشدیدًا دواړه قسمه ویل کیدی شي، علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي چې (وفی) دا ده چې کوم کار پوره پوره او مکمل وکړی شي، لهذا دا ثواب هغه کس ته ورکول کیږي کوم چې ټول حقوق او عهود مکمل کړي. (المرقات ۱/۱۷۴).

**فعوقب به**: یعنې د دې ګناه په مرتکب باندې شرعي حد قائمیدی شي، **(فهو كفارة له)** په یوه نسخه کې **(فهو طهور له)** راغلی دی، دا حکم د شرک نه بغیر د نورو معاصیو دپاره دی. (المرقات ۱/۱۷۴).

**حدود کفارات دي یا زاجرات؟** په دې مسئله کې د فقهاو اختلاف دی چې آیا حدود مکفرات او مطهرات دي او که زاجرات دي؟ مطلب دا دی چې د حد د قائمیدو نه وروسته سزا موندونکی کس د آخرت د عذاب نه هم پاک دی او که دا صرف دنیوي زجر وو او په آخرت کې به بیا زجر ورکول کیږي.

امام مالک رَحِمَهُ اللهُ، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ، امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ د دریواړو په نزد چې حدود مطهرات دي چې په دنیا کې د حد په قائمولو سره دا کس په آخرت کې له سزا نه پاک دی، د ائمه احناف په نزد حدود زاجرات دي، دنیوي سزا حد دی د دې دپاره چې په ټولنه کې نظم او امن راشي او په آخرت کې د الله تعالی د حکم ماتولو سزا جدا ده، هو د کومو حدودو سره چې توبه پیوسته شي او سزا موندونکی په رشتني زړه سره توبه وکړي بیا دا حدود مطهرات جوړیږي، د توبې نه بغیر صرف زاجرات دي.

**دلائل**: د جمهورو دلیل د بحث لاندې د حضرت عباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث دی په کوم کې چې **(فهو كفارة)** الفاظ راغلي دي چې حدود کفارات دي.

(۱) د ائمه احنافو اول دلیل د سورت مائدې ۳۴ آیت دی: ﴿ذَٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ (سورة مائدة آیت: ۳٤)

اوس که چیرته حد مطهر ساتر او مکفر دی نو قطاع الطریق ته په آخرت کې دا عظیم عذاب ولې دی؟ معلومه شوه چې دا زاجر دی، که چیرته رښتوني توبه ورسره ملګرې شي نو بیا دا زاجر مطهر هم دی،

(۲) د سورة مائدې ۳۸ نمبر آیت د آیة السرقه په نوم سره مشهور دی: ﴿وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا جَزَاءً بِمَا كَسَبَا نَكَالًا مِّنَ اللَّهِ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ فَمَن تَابَ مِن بَعْدِ ظُلْمِهِ وَأَصْلَحَ فَإِنَّ اللَّهَ يَتُوبُ عَلَيْهِ﴾ (سورة المائدہ ایت نمبر ۹،۳۸)

په دې آیت کریمه کې د غلا کولو سزا د لاس پرېکول ښودل شوي او بیا په (فمن تاب) کې د توبې ذکر شوی، که چیرته حد صرف ساتر مکفر او مطهر دی نو بیا د توبې د ذکر مطلب څه دی، معلومه شوه چې

حد زاجر دی، هو که چیرته توبه ورسره ملګرې شي بیا ساتر او مطهر دی.

(۳) د سورة نور ۴ آیت دی: ﴿ فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَانِينَ جَلْدَةً وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا وَأُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِن بَعْدِ ذَلِكَ وَأَصْلَحُوا ﴾ (سورة نور آیت: ٥/٤).

په دې آیت کریمه کې د حد قذف د لګولو وروسته هم دې کس ته فاسق ویل شوي او هغه مردود الشهادة ګرځول شوی دی او ددې نه وروسته یې د هغه د توبې ذکر په الا الذین سره وکړو، که چیرته حد ساتر مکفر او مطهر دی نو د حد قائمیدو نه وروسته هغه مردود الشهادت ولې دی؟ او بیا هغه ته د توبې ذکر او ترغیب ولې دی؟ معلومه شوه چې حدود زواجر دي سواتر نه دي، دلته د الا الذین استثناء د فاسقون نه ده، ځکه چې هغه قریب دی او د قریب نه چې کله استثناء ممکن شي نو هماغه متعین دی. همدارنګه دا استثناء د حد قذف نه هم ممکن نه ده، ځکه د قاضي پر وړاندې کله چې د شاهد وغیره سره حد ثابتیږي نو هغه حد د توبې په کولو سره نه ساقطیږي، کله چې حد نه شي ساقط کیدلی نو بیا استثناء لغوه کیږي او حاشا وکلا چې د الله تعالی کلام لغوه کړی شي. احنافو په هغو احادیثو سره هم استدلال کړی په کوموکې چې دحد لګولو نه وروسته رسول الله ﷺ سزاموندونکي کس ته ویلي چې استغفار وکړه او معافي وغواړه (بعد اللتيا والتي وبعد القض وقضيضها) انصاف دا دی چې حدود نه مطلقا ساتر دي او نه مطلقا زواجر دي، بلکې د اقرار او توبې او د عدم اقرار او عدم توبې فرق دی، یعنې چې توبه او باسي نو سواتر دي او که یې ونه باسي زواجر دي، نو د طرفینو اختلاف لفظي شو او ختم شو، ذکر شوی حدیث هم د آیتونو د وجهې مقید شو او د توبې شرط ورسره ملحوظ شو. د احنافو د طرفه جمهورو ته التزامي جواب دا دی چې د مرتد سزا په دنیا کې مرګ دی، نو آیا د سزا د موندلو وروسته دا کس پاک شو په آخرت کې به هغه ته سزا نه ورکول کیږي؟.

**فستر الله علیه**: یعنې الله تعالی په هغه باندې پرده اچولې ده، نو دې کس لره په کار دي چې دا هم ددې ګناه ذکر (یادونه) د خلکو پر وړاندې ونه کړي، بلکې په پټه توبه وکړي، پس قاعده دا ده چې په خلوت کې د معصیت توبه په خلوت کې ده او د جلوت په جلوت کې ده. (المرقات ۱/۱۷۵).

۲۷ ذیقعده ۱٤۰۹هـ

## د ښځو د پاره د رسول الله ﷺ فرمان

(۱۸) وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أَضْحًى أَوْ

د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه نه روایت دی چې یو ځل رسول الله ﷺ د اختر او یا د وړوکي اختر ياد

فِطْرٍ إِلَى الْمُصَلَّى ، فَمَرَّ عَلَى النِّسَاءِ

وروكي اختر مونځ د پاره عيدگاه ته نو د ښځو ديو ټولي سره په خوا کې هم تير شو هغوی يې مخاطب کړي

فَقَالَ : (« يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ تَصَدَّقْنَ ، فَإِنِّي أُرِيتُكُنَّ أَكْثَرَ أَهْلِ النَّارِ

نبي عليه السلام وفرمايل: اى د ښځو ډلې! تاسو صدقې وکړئ ځکه چې ما تاسو زياتره په دوزخ کې ليدلې وئ

فَقُلْنَ : وَ بِمَ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ قَالَ ( تُكْثِرْنَ

(دايې چې وا وريدل) ښځو وويل: يا رسول الله! د هغې سبب څه دى؟ نبي عليه السلام وفرمايل: تاسو ډير کوئ

اللَّعْنَ ، وَ تَكْفُرْنَ الْعَشِيرَ ، مَا رَأَيْتُ مِنْ نَاقِصَاتِ عَقْلٍ وَ دِينٍ

لعن طعن او د خپلو خاوندانو نافرماني ډيره کوئ او ما په عقل او دين کې د کمزورۍ باوجود هوښيار سړي

أَذْهَبَ لِلُبِّ الرَّجُلِ الْحَازِمِ مِنْ إِحْدَاكُنَّ ) قُلْنَ : مَا نُقْصَانُ دِينِنَا وَعَقْلِنَا يَا رَسُولَ اللهِ؟

په بيوقوف جوړيدو کې د تاسو نه زيات نه دى ليدلى، دايې چې وا وريدل ښځو وويل : يا رسول الله!

قَالَ : ( أَلَيْسَ شَهَادَةُ الْمَرْأَةِ مِثْلَ نِصْفِ

زمونږ په عقل او زمونږ په دين کې څه کمى دى؟ نبي عليه السلام وفرمايل: آيا د يوې ښځې شاهدي د سړي د نيمې

شَهَادَةِ الرَّجُلِ ؟ ) قُلْنَ : بَلَى . قَالَ : ( فَذَلِكَ مِنْ نُقْصَانِ عَقْلِهَا )

شاهدۍ سره برابره نه ده ؟ هغوى وويل :هو! همداسې ده، نبي عليه السلام وفرمايل : دا د عقل نقصان دى،

قَالَ : أَلَيْسَ إِذَا حَاضَتْ لَمْ تُصَلِّ

بيا نبي عليه السلام وفرمايل: آيا داسې نه ده کوم وخت چې ښځه د حيض په حالت کې وي نو نه مونځ کولی شي

وَ لَمْ تَصُمْ ؟ ) قُلْنَ : بَلَى . قَالَ : ( فَذَلِكَ مِنْ نُقْصَانِ دِينِهَا ) . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1].

او نه روژه نيولی شي هغوى وويل: آو! بالکل همداسې ده نبي عليه السلام وفرمايل: دا ستاسو د دين نقصان دى

**توضيح** : د ابو سعيد خدري رضي الله عنه نوم سعد بن مالک دى، مگر په کنيه مشهور شوى دى، د خدره قبيلې طرف ته منسوب شوى دى کومه چې د انصارو يوه قبيله ده، دا د کثير الروايت صحابه وُ نه دى، په (۶۴ هجري) کې په مدينه منوره کې وفات شوى دى، عمر يې (۸۴) کاله وو.

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱/۱۰۵، رقم الحديث (۳۰۴)، ومسلم في صحيحه ۱/۸۶ ، رقم الحديث (۱۳۲-۷۹)، والترمذي ۱۱/۵ رقم الحديث ۲۶۱۳، وابن ماجه ۱۳۲۶/۲ ، رقم الحديث ۴۰۰۳.

**في اضحی**: ای في عيد الاضحی مضاف محذوف مقدر دی، او **فطر** راوي ته شک دی(المرقات ۱/۱۷۵).

**المصلی**: د عیدګاه په معنی سره دی، ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي دا عیدګاه تر اوسه پورې موجوده ده، معلومه شوه چې د ده تر زمانې پورې وه، اوس خو هیڅ هم نه دي پاتې شوي، د اختر مونځ دپاره وتل سنت متوارثه دي، د ضرورت نه بغیر په جوماټ کې اختر مونځ کول د سنت متوارثه مستمره خلاف دي، هو! نن سبا خلک دومره زیات دي چې په یوه ځای کې یې جمع کول محال دي، همدارنګه د عقیدو اختلاف دومره زیات دی چې را جمع کول یې ممکن نه دي. (المرقات ۱/۱۷۵).

**مر علی النساء**: د مر صیغه متعدی بالباء وعلی شوې ده، ممکنه ده چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وعظ دپاره هلته تلی وي، یا دا چې کله تیریدلو نو بیا یې وعظ هم وکړ، ددې نه معلومه شوه چې په دې وخت کې ښځې هم د مونځ دپاره جوماتونو ته تللې نو زمانه د خیر القرون وه د وحې نزول شوی وو، د مدینې منورې پاکه زمکه وه، د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ پاک جماعت وو او د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مقدس وجود موجود وو، نو ښځو ته د یو شمیر پابندیو سره جومات ته د راتلو اجازه وه. (المرقات ۱/۱۷۵).
بیا د احوالو د خرابۍ د وجهې نه په دوی باندې د پابندیو سلسله آرام آرام شروع شوه بیا مکمل ممانعت وشو چې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د روایت نه واضح دي، آینده د دې مسئلې تفصیل راتلونکی دی.

**اریتکن**: که چیرته د رؤیت نه رؤیت قلبي مراد دی نو بیا دا قلبي رؤیت یا په صلوة کې کسوف شوی، یا د وحې په طور شوی یا د کشف او انکشاف په صورت کې شوی، او که چیرته رؤیت بصری دی نو بیا د معراج په شپه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته جنت او دوزخ ورښودل شوي وو، هغه مراد دي، ارې په معنی د اعلم د دریو مفعولو غوښتونکی دی، اول مفعول **اریتکن** د نائب فاعل تاء ده، مفعول ثاني **کن** او **اکثر اهل النار** مفعول ثالث دی. (المرقات ۱/۱۷۵).

**تصدقن**: دا چې صدقه د سیئاتو کفاره جوړیږي ځکه چې په حدیث کې دي **الصدقة ترد البلاء** او **الصدقة تطفئ غضب الرب** او **اتقوا النار ولو بشق تمرة** او **کل امرء ظل صدقته** نو په دې وجه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ښځو ته د صدقې حکم وکړه او په اول سر کې یې ښځو ته د دوزخ نه د ځان ساتلو علاج وښود ترڅو چې ښځې مایوسه او پریشانې نه شي، بیا یې ښځو ته په دوزخ کې د دوی د زیاتوالي خبره وکړه کوم چې د دنیا د محبت د وجهې وو، نو د صدقې په کولو سره د دنیا محبت بخل او د کنجوسی خوی ختمیدلی شي. (المرقات ۱/۱۷۶).

**اکثر اهل النار**: یعنې ما لیدلي چې په دوزخ کې ښځې زیاتې وې هغه ښځې مراد دي کومې چې مرې

شوې دي.

**سوال**: دلته سوال دا دی چې په جنت کې هر جنتي ته دوه ښځې ورکول کیږي د کوم نه چې معلومیږي چې په جنت کې به ښځې زیاتې وي او دلته په دوزخ کې زیاتې ښودل شوې دي په دې دواړو خبرو کې خو ښکاره تعارض دی؟.

**اول جواب**: دا چې د ښځو شمیر دومره زیات دی چې د پیدا کیدونکو هلکانو په نسبت دومره زیاتې دي چې د دوو دوو ورکولو باوجو بیا به هم په دوزخ کې زیاتې وي. **دویم جواب**: دا چې په ابتداء کې به په دوزخ کې زیاتې وي بیا به د سزا د تیرولو نه وروسته جنت ته لاړې شي نو په دوزخ کې به کمې پاتې شي.

**دریم جواب**: دا دی چې دلته کوم **اکثر اهل النار** ویل شوي دي دا د سړیو په مقابل کې نه دي ویل شوي، بلکې **في نفسه** چې کوم شمیر (تعداد) دی هغه زیات وو هغه ته کثیر ویل شوي دي، یعنې دومره نه وې په کې په کار.

**فقلن وبم**: یعنې د کومې وجهې او په کوم سبب سره مونږ په دوزخ کې زیاتې یو؟.

**قال تُكْثِرْنَ اللعن**: لعنت که چیرته د الله تعالی د طرفه په یو چا باندې وي نو د هغه مطلب به دا وي چې **ابعاد الله تعالی العبد من رحمته** او که د بنده د طرفه وي نو **الدعاء بأبعاد العبد من رحمة الله** په معنی سره به شي. اوس که چیرته کوم کس په بل چا باندې لعنت وایي نو دا یا خبر ورکوي چې دا کس ملعون دی، یعنې د الله د رحمت نه وتلی دی، دا دعوه د علم غیب ده کوم چې لوی جرم دی، او یا به دا کس د بدۍ ښیرې کوي چې الله دې دا کس د خپل رحمت نه وباسي نو دا ډیر غټ بخل او ډیر لوی حسد دی کوم چې ناروا دی. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي چې د تعین سره په یو چا باندې لعنت ویل روا نه دي، ترڅو پورې چې په کفر باندې د مرګ واقع کیدو یقین نه وي، لکه په تیرو شویو خلکو کې ابو جهل، فرعون وغیره او په راتلونکو کې ابلیس دی. (المرقات ۱/۱۷۶).

بیا د لعنت غټ دوه قسمونه دي: یو لعنت **خروج عن رحمة الله العامة** دی، دا لعنت د کفارو سره خاص دی، دویم لعنت **خروج عن رحمة الخاصة** دی، دا د فساقو فجارو مسلمانو د پاره هم اجمالًا بغیر د تفصیل او تعین نه روا دی لکه **لعن الله الواشمة والمستوشمة** او **لعن الله السارق** وغیره روا دي چې لعن د وصف د تذکرې سره شوی دی، یعنې چې الله تعالی په غله باندې لعنت کړی دی، په فساد کوونکي باندې یې لعنت کړی دی نو په دې کې اجمال دی، تعین نشته دا روا دي. بیا دلته **تكثرن اللعن** ویل شوي، ځکه چې لږ شانته لعنت ویل خو د ښځو عادت جوړ شوی دی، دا د دوی د مزاج برخه

ده نو په هغه کې يو څه نرمي شوې ده، لکه د غيبت په باره کې چې بعضو علماء کرامو ويلي دي چې دا د کبيره پر ځاى صغيره ده، که نه نو ټول امت او په خصوصي طور د امت خواص به فاسقان جوړ شي.

**وتكفرن العشير** : له عشير نه مراد ميړه (خاوند) دى، يعنې ټول عمر د ميړه په احساناتو مړه وي ليکن په ډيره کمه خبره هر څه هير کړي او وايي چې (**ما رايت منک خيرا قط**) د نکرې لاندې د نفې سره په کلي طور د هر شي نفې کوي. (المرقات ۱/۱۷۶).

**من ناقصات عقل** : يعنې باوجود د هغه نقص او کمزوري عقل تعجب دى چې يو تجربه کار هوښيار عقلمند او دنيا ليدونکى کس څومره بربادوي، دا هيڅ هم نه وايي، دوى ته په کتلو سره نور هم برباد شوي دي، (المرقات ۱/۱۷۶). يو چا ريښتيا ويلي دي :

**يصرعن ذا اللب حتى لا حراک به** ✿ **وهن اضعف خلق الله اركانا**

شاہوں کے تاج چھینے راجوں کے راج چھینے ✿ گردن کشوں کی گردن نیچا دکھا کے چھوڑا

اکبر دبے نہ تھے کسی ظالم کی فوج سے ✿ لیکن قتیل ہو گئے عورت کی موج سے

**العقل هو قوة غريزية يدرک بها المعاني ويمنعه عن القبائح وهو نور الله في القلب واللب هو العقل الخالص عن شوب الهوى. (المرقات ۱/۱۷۶).**

**سوال** : دلته ښځو ته د نرانو په مقابل کې ناقص العقل ويل شوي دي، سره ددې چې بعضې ښځې د نرانو په نسبت ډيرې تيزې وي او حکومتونه کوي؟.

**جواب** : ددې جواب دادى چې د يوې زمانې، د يوه تعليم، د يوې علاقې او د يوې کورنۍ سړي او ښځې سره که موازنه کړى شي نو د ښځو هر استعداد به د نرانو په نيمه وي، برابره ده که هغه په عقل کې وي، که په ليدلو کې وي، که په آوريدلو يا ويلو کې وي، که په منډه وهلو کې وي که په هر قوت کې وي خو په نيمايي به وي، او که چيرته يو سړى د ځنګل نه راوستل شي او يوه ښځه د کوم مترقي ښار نه او تعليم يافته وي نو ښکاره خبره ده چې بيا به يې خامخا په مينځ کې فرق وي، هغه دا چې ښځه به هوښياره، مکاره او چالاکه وي.بيا دلته يو سوال داپيدا کيږي چې دحيض ناروغي خو په قدرتي طوراو په غير اختياري طريقه د ښځو سره ملګرې شوې نو هغه د دين نقصان ولې ګرځول شوى دى؟ د دې جواب دادى چې الله تعالى ښځو ته ددين برخه همدومره ورکړې ده،اوس دا د ښځې قصور نه دى بلکې د هغې د تخليق او تخليقي برخې نښاندهي شوې ده، کوم امر چې واقعي وو هغه ښودل شوى دى. (المرقات ۱/۱۷۷).

**الحازم** : د هوښيار سړي سره چې کله ښځه همدا لوبه کوي چې ددې د جسم د ټولو نه زياته حساسه حصه عقل لره مفلوج کوي نو د کم عقل او کم تجربه کار سره به څه لوبه کوي. (المرقات ۱/۱۷۷).

**احدا کن**: یعنې یوه ښځه چې کله دا کار کولی شي نو د ډیرو ښځو نه خو په ښتنه نشته.

**من ناقصات**: کې (من) زائد دی د استغراق په غرض راوړل شوی دی، دا جمله صفت دی د موصوف محذوفه دپاره یعنې: **ما رایت احدا من ناقصات عقل** ..الخ. (المرقات ۱/۱۷۶).

**اذهب لِلُبِّ الرجل الحازم**: دا صفت دی یا د رایت دپاره مفعول ثاني دی د من احدا کن اذهب سره متعلق دی.

**الیس**: کې ضمیر شان دی او **فذلک** کې دا ممکنه ده چې خطاب یوې ښځې ته شي نو بیا دکاف مکسوره ویل وو یا ذلک د ماقبل دپاره اشاره ده کوم چې معروف دی. (المرقات ۱/۱۷۷).

۱۸ ذیقعده ۱٤۰۹هـ

## انسان ته سرکشي ښایست نه ورکوي

| |
|---|
| (۱۹) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللهُ تَعَالَى: كَذَّبَنِي |
| د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: الله تعالی فرمایلي دي ما ته دروغژن |
| ابْنُ آدَمَ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ ذَلِكَ، وَشَتَمَنِي وَلَمْ يَكُنْ لَهُ ذَلِكَ، |
| وایي انسان او دا خبره دده سره لائقه نه ده او زما په باره کې بدګوئي کوي حالانکه دا دده سره لائقه نه ده، |
| فَأَمَّا تَكْذِيبُهُ إِيَّايَ فَقَوْلُهُ: لَنْ يُعِيدَنِي كَمَا |
| د هغه لخوا ما ته دروغژن ویل دا دي چې هغه وایي: ما دوباره نه شي پیدا کولی لکه څنګه چې زه یې اول |
| بَدَأَنِي، وَلَيْسَ أَوَّلُ الْخَلْقِ بِأَهْوَنَ عَلَيَّ مِنْ إِعَادَتِهِ. وَأَمَّا |
| ځل پیدا کړی یم سره ددې چې دوباره پیدا کول د اول ځل پیدا کولو په مقابل کې هیڅ مشکل نه دي او د هغه |
| شَتْمُهُ إِيَّايَ فَقَوْلُهُ: اتَّخَذَ اللهُ وَلَدًا، وَأَنَا الْأَحَدُ الصَّمَدُ |
| زما په باره کې بدګوئي دا ده چې هغه وایي الله تعالی خپل زوی جوړ کړی حالانکه زه تنها او بې نیازه یم، |
| الَّذِي لَمْ أَلِدْ، وَلَمْ أُولَدْ، وَلَمْ يَكُنْ لِي كُفُوًا أَحَدٌ [1]. وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ عَبَّاسٍ: |
| نه زه د چا نه پیدا شوی یم او نه زما نه څوک پیدا شوي دي او نه زما څوک سیال شته او په روایت د ابن عباس |

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۹/۸ رقم الحديث: ٤٩٧٤، والنسائي في سننه ۱۲/٤ ،رقم الحديث: ۲۰۷۸.

| |
|---|
| ( وَ أَمَّا شَتْمُهُ إِيَّايَ فَقَوْلُهُ : لِي وَلَدٌ، |
| رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كې دي چې د انسان کنځل الله تعالی دا دي چې هغه وايي چې د الله زوی شته دی حالانکه زه د دي |
| وَ سُبْحَانِي أَنْ أَتَّخِذَ صَاحِبَةً أَوْ وَلَدًا) . (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ) [1] |
| نه پاک یم چې څوک ښځه یا زوی جوړ کړم. |

**توضيح** : دا حديث قدسي دی او قدسي حديث هغه دی په کوم کې چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله طرف ته نسبت وکړي او داسې ووايي قَالَ اللهُ الله تعالی دا فرمايلي، د حديث قدسي مضمون او معني آسماني دي، خو الفاظ يې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دي او نسبت يې د الله طرف ته شوی دی، او د قرآن الفاظ او معناګانې دواړه د الله د طرفه نازل شوي دي کوم ته چې متلو وحي ويل کيږي، او په عامو احاديثو کې خو معنی د الله د طرفه راغلې وي او الفاظ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دي مګر په هغو کې د الله طرف ته نسبت نه کيږي، په دې تشريح سره په قرآن قدسي حديث او عامو احاديثو کې فرق ښکاره شو. (المرقات ۱/۱۷۸).

**كذبني ابن آدم** : په دې جمله کې په ابن آدم باندې اول رد دی چې په خپله خو د بل نه پيدا شوی دی، په خپله دې وګوري چې د کومو کومو حالاتو نه را تير شوی او راغلی دی، اوس ما ته دروغژن وايي.
دلته د حشر او نشر نه انکار ته تکذيب ويل شوی دی، ځکه چې په قرآن کريم کې الله تعالی د حشر نشر او قيامت د دلائلو سره بار بار بيان کړی دی، بنده چې کله وايي چې حشر او نشر نشته نو د دې مطلب دا شو چې دا الله تعالی ته دروغژن وايي چې څه يې په قرآن کې ويلي دي هغه صحيح نه دي، دا ښکاره دروغ دي، په دې باندې د حديث همدا جمله دلالت کوي (المرقات ۱/۱۷۸) چې **فقوله من يعيدني** مراد دا دی چې ما نه شي ژوندی کولی، يعني يا ژوندي کول نه شي کولي يا مې ژوندی کولی نه شي يا مې د همدې جسم سره ژوندی کولی نه شي دا ټول صورتونه د کفر دي.

**وليس اول الخلق بأهون** : دا يو عام الفهم مثال دی، او په (**اول الخلق**) کې د صفت اضافت د موصوف طرف ته دی، يعنې **الخلق الاول** په اول ځل پيدا کول (**بأهون**) اسم تفضيل نه دی بلکې د اصل فعل په معنی سره دی، په معنی د (**هين**) دی لکه (**الصيف احر من الشتاء**) کې فعل په اصل معنی سره مستعمل دی، يعنې زما په قدرت کې دواړه آسان دي، د اول او دويم هيڅ فرق نشته ،د **اهون** ذکر په قرآن کې هم شته دی او په دغه حديث کې هم شته دی، دا کلام د بندګانو په اعتبار سره دی چې ستاسو په نزد

---

(۱) أخرجه البخاري ۱٦٨/٨ رقم الحديث :٤٤٨٢.

(ایجاد ما لم یوجد) په طور اول پیدا کول د دویم ځل پیدا کولو نه زیات مشکل دي، ځکه چې په اول پیدا کولو کې خو هیڅ مخکنی مثال او هیڅ نمونه نه وي، بلکې محض انشاء او ایجاد ما لم یوجد وي او په دوباره اعاده کولو کې خو مخکنی مثال او نمونه موجود وي، په دوباره پیدا کولو کې خو تاسو هم دا وایی چې دا آسان دی.

نقاش نقش ثانی بهتر کشد ز اول

کله چې ستاسو په نزد د عام عادت ماتحت د یو شي اعاده اسانه ده نو د الله تعالی د قدرت پر وړاندې دا څه مشکله ده. (المرقات ۱۷۸-۱/۱۷۹).

**واما شتمه ایاه : الشتم هو توصیف الشیء بما فیه من نقص وازدراء** یعنې د یو چا طرف ته د کوم ناقص او حقیر (سپک) شي نسبت کول کنځل دي. د الله تعالی طرف ته د اولاد نسبت کول هغه جَلَّجَلَالُهُ ته کنځل دي، ځکه چې په دې کې د الله طرف ته په ضمني طور د احتیاج او محتاجۍ نسبت دی، ځکه چې د توالد او تناسل طرف ته هغه محتاج دي کوم چې د نوع او نسل بقاء د مال ساتلو او نورو ته محتاج وي او دا نسبت د الله په شان کې کنځل او گستاخي ده. (المرقات ۱/۱۷۹).

حجة الاسلام حضرت مولانا قاسم نانوتوي رَحِمَهُ اللهُ دا خبره په دې شان بیان کړې ده چې مثلا یو انسان دې هغه مار یا لړم وزیږولو، سره ددې چې دواړه حادث او دواړه فناء کیدونکي دي. لیکن د خلاف جنس شي په پیدا کیدو (زیږیدو) سره دغه انسان څومره پیغور او څومره شرم محسوسوي، نو همدارنګه د الله تعالی دپاره د اولاد ثابتول څومره لوی عیب دی کله چې د دواړو په مینځ کې هیڅ مماثلت هم نشته، کوم جنسیت هم نشته ، ددې نه زیات تحقیر څه کیدلی شي، او ددې نه زیاتې کنځلې او بد ګوئي څه کیدلی شي؟ دا نقصان یهودو کړی دی او ویلي یې دي (عزیز ابن الله) او نصارا او ویلي دي (عیسی ابن الله) او د عربو مشرکینو ویلي دي (الملائکة بنات الله) بیا یو عیب دا هم منل کیږي چې دا اولاد قائمقام کیږي نو د الله دپاره د زوال او فناء عقیده هم راغله، **تعالی الله عن ذالک علوا کبیرا.**

## زمانې ته بد مه وایئ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| (۲۰) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللهُ تَعَالَى: | | | | | | |
| د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې الله تعالی فرمایلي دي | | | | | | |
| يُؤْذِينِي | ابْنُ | آدَمَ | يَسُبُّ | الدَّهْرَ | وَ | أَنَا الدَّهْرُ |
| ابن آدم ما ته تکلیف راکوي هغه داسې چې هغه زمانې ته بد وایي حالانکه زمانه هیڅ شی نه دی هغه خوزه یم | | | | | | |

بِيَدِيَ الْأَمْرُ ، أُقَلِّبُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

ټول تصرفات زما په قبضه کې دي او د شپې او ورځې ګردش زما په حکم سره کیږي.

**توضیح**: د قاعدې مطابق دا حدیث د (عنه) په لفظ سره یې ذکر کول په کار وو، ځکه چې مخکې د ابو هریره رضي الله عنه روایت مذکور دی، مګر دلته یې په نوم باندې تصریح د دې دپاره وکړه چې د مخکني حدیث په آخر کې (وفي رواية عن ابن عباس) الفاظ وو په کوم سره چې وهم کیدی شو چې د عنه ضمیر به ابن عباس ته راجع وي، په همدې وجه د احتیاط په بناء په عن ابي هريرة تصریح وکړی شوه، سبحان الله د محدثینو لخوا څومره احتیاط کیده. (المرقات ۱/۱۸۱).

**یوذیني بن آدم**: قولاً او فعلاً د کوم ناخوښ شي په چا پورې د رسولو نوم ایذاء (ضرر) دی، برابره خبره ده که په هغه کې اثر وکړي او که یې ونه کړي، الله تعالی او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم ته د ضرر رسولو نه مراد د داسې کار کول دي په کوم سره چې الله او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم ناراضه کیږي. دویم مطلب دا دی چونکه الله تعالی د انساني افعالو او د نورو شیانو د تاثر او انفعال نه پاک دی، لهذا دلته د ایذاء معامله مراد ده چې د ایذاء (ضرر) رسولو معامله کوي، ځکه چې حقیقي ضرر هیڅوک الله تعالی ته نه شي رسولی. (المرقات ۱/۱۸۱).

**یسب الدهر**: یعنې د مصیبتونو د نزول په وخت کې زمانې ته بد وایي، د ده ګمان دا وي چې دا هر څه زمانه کوي، یعنې زمانه یې ورکوي او منعه کوي یې، ګټه رسوونکې او ضرر رسوونکې ده لکه چې دا د اهل جاهلیت عقیده وه هغوی به ویل : ( **ياخيبة له يابوسًا لدهر فعل كذا وكذا، تباله وحسرة عليه**). (**المرقات ۱/۱۸۱**).

**وانا الدهر**: یعنې زمانه موثره ګڼل کنځل کول دي او په حقیقت کې متصرف زه یم نو کنځل زما طرف ته راګرځي، ځکه په زمانه کې چې کوم انقلاب راځي د هغه فاعل زه یم نو بالواسطه دا کنځل ما ته کیږي، امام راغب رحمه الله ویلي دي چې د زمانې طرف ته د خیر او شر د غم او خوشحالۍ چې کوم نسبت کیږي الله تعالی فرمایلي چې د هغې د خیر او د شر فاعل زه یم، پس کله چې تاسو په چا باندې د فاعل ګمان کوئ او کله چې هغه ته کنځل کوئ ګویا چې تاسو ما ته کنځل کوئ، قاضي عیاض مالکي رحمه الله ویلي

(۱) اخرجه البخاري ۵۷۴/۸، رقم الحديث :۴۸۲۶، ومسلم في صحيحه ۱۷۶۲/۴، رقم الحديث :۲-۲۲۴۶، وابوداود في سننه ۵۲۳/۵، رقم الحديث :۵۲۷۴ ، واحمد في المسند ۲۷۲/۲.

دي چې دلته مضاف محذوف دی یعنې (انا مقلب الدهر والمتصرف فيه) شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ په اشعة اللمعات کې ويلي دي چې عبارت داسې دی (انا الدهر ای مقلبه).

امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ د يوې بلې مسئلې په ضمن کې ليکلي دي چې انسان کله څوک په امسا يا په کوم بل شي وهي نو په اصل کې لرګی يا انسان وهونکی نه دی، بلکې د لرګي او انسان نه بغير يو بل نه ليدونکی طاقت دی ټول کار د هغه دی، يعنې په حقيقت کې د وهلو اثر د الله تعالی په قدرت او د هغه په تصرف کې دی. (المرقات ۱/۱۸۱).

## د الله تعالی صبر او تحمل

| |
|---|
| (۲۱) وَ عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د حضرت ابو موسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : د تکليف |
| مَا أَحَدٌ أَصْبَرُ عَلَى أَذًى يَسْمَعُهُ مِنَ اللهِ، |
| رسوونکو کلماتو په آوريدو د الله تعالی نه زيات صبر او تحمل کوونکی هيڅوک نشته، خلک هغه ته د |
| يَدْعُونَ لَهُ الْوَلَدَ، ثُمَّ يُعَافِيهِمْ وَ يَرْزُقُهُمْ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| زوی نسبت کوي او هغه په دې باندې بيا هم دوی ته عافيت ورکوي اورزق ورته رسوي. |

**توضيح**: د صبر تعريف دی :**الصبر هو حبس النفس عما تشتهيه**، يعنې د خوښې د څيزونو نه د خپل نفس د راايسارولو نوم صبر دی، اوس سوال دا دی چې په دې مفهوم کې خو د صبر نسبت الله ته روا نه دی، نو بيا دلته د صبر اطلاق په الله باندې څنګه شوی دی؟ د دې جواب شارحينو دا ورکړی دی چې د صبر نسبت کله چې د الله طرف ته وکړی شي نو د هغه نه مراد **تأخر العذاب عن المستحق** دی. (المرقات ۱/۱۸۲).

ګويا چې دا د هغو الفاظو نه دی د کومو اطلاق چې په الله تعالی باندې د غايت انجام او نتيجې په اعتبار شوی دی، لکه رحمت، حياء او نور الفاظ، دا د مبادیو په اعتبار سره الله ته نه ويل کيږي، بلکې د منتهی په اعتبار ويل کيږي.

**اذی**: د اسم فاعل په معنی سره دی (ای الموذی) يا دا چې د ضرر رسولو معامله کوي، د الله د آوريدو نه مراد هغه دی کوم چې دده د شان سره لائق دي، انسان د مخصوصه جارحه په واسطه سره آوريدل کوي، مګر الله تعالی بغير د واسطې او بغير د الې نه اوريدل کوي، په دې حديث کې د تخلق باخلاق الله

(۱) اخرجه البخاري ۱/۵۱۱، رقم الحديث :۶۰۹۹، ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۶۰ رقم الحديث :۴۹-۲۸۰۴، واحمد في المسند ۴/۴۰۱.

تعلیم ورکړی شوی، چې الله تعالی قادر هم دی آوریدل هم کوي بیا صبر هم کوي، نو تاسو خلک هم صبر عادت جوړ کړئ، سره ددې چې تاسو علی الاطلاق قادر هم نه یې. (المرقات ۱/۱۸۲).

**د صبر لټ غټ درې قسمونه دي**: **صبر علی الطاعة**: یعنې چې حالات هر څرنګه هم وي مونږ ته په عبادت کې مشغول او سیدل په کار دي. **صبر علی المعصیة**: یعنې چې په هر حالت کې د معصیت نه د ځان ساتلو جذبه په زړه کې موجوده وي او د ګناه نه صبر کوي. **صبر علی المصیبة**: دا آخرنی قسم دی دې ته د عوامو او خواصو صبر ویل شوی دی، سره ددې چې د صبر درې قسمونه دي د کومو بیان چې پورته وکړی شو.

**۳۰ ذیقعده ۱٤۰۹هـ**

## د توحید اهمیت

| |
|---|
| (۲۲) وَ عَنْ مُعَاذٍ قَالَ : كُنْتُ رِدْفَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلَى حِمَارٍ |
| د معاذ رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې دیو سفر په دوران کې د خر په سور لی کې زه د نبي علیه السلام شاته سوروم |
| لَيْسَ بَيْنِي وَ بَيْنَهُ إِلَّا مُؤْخِرَةُ الرَّحْلِ ، فَقَالَ : |
| زما او د نبي علیه السلام په مینځ کې د کجاوې مخکنی حصه حائله وه رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته وفرمایل |
| يَا مُعَاذُ ، هَلْ تَدْرِي مَا حَقُّ اللهِ عَلَى عِبَادِهِ ؟ وَمَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللهِ ؟ قُلْتُ: |
| ای معاذه! پوهیږې چې په بندګانو باندې د الله څه حق دی او په الله باندې د بندګانو څه حق دی؟ ما عرض وکړو |
| اللهُ وَ رَسُوْلُهُ أَعْلَمُ . قَالَ : فَإِنَّ حَقَّ اللهِ عَلَى الْعِبَادِ أَنْ يَعْبُدُوْهُ |
| الله او د هغه رسول ښه پوهیږي نبي علیه السلام وفرمایل په بندګانو باندې د الله حق دا دی چې د هغه عبادت وکړي |
| وَلَا يُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا ، وَ حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللهِ أَنْ لَا يُعَذِّبَ مَنْ |
| او هیڅوک د هغه سره شریک نه کړي او په الله باندې د بندګانو حق دا دی چې الله تعالی هغه چا ته عذاب |
| لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا فَقُلْتُ : يَا رَسُوْلَ اللهِ! |
| ورنه کړي څوک چې د الله سره شریک جوړ نه کړي (دا مې چې واوریدل) ما عرض وکړو یا رسول الله! دا |
| أَفَلَا أُبَشِّرُ بِهِ النَّاسَ ؟ قَالَ : لَا |
| خوشخبري خلکو ته وا وروم؟ نبي علیه السلام وفرمایل دا خوشخبري خلکو ته مه اوروه ځکه هغوی به په دې |

تُبَشِّرْهُمْ فَيَتَّكِلُوا . ( مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ ).[1]

باندې اعتماد وکړي بيا به عمل پرېږدي او په آرام به کيني .

**توضيح** :حضرت معاذ رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم جليل القدر صحابي دی، په عقبه ثالثه آخره کې د اوياو (۷۰) پاکو کسانو سره په بيعت کې شريک شوی وو، په ټولو غزواتو کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره شريک شوی وو، رسول الله صلى الله عليه وسلم دا د يمن قاضي او والي مقرر کړی وو او وی ليږلو، رسول الله صلى الله عليه وسلم ډير ښه ښه وصيتونه ورته کړي وو او څو قدمه رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه سورلۍ سره پياده روان شوی وو، د ده تعلق د انصارو د خزرج قبيلې سره وو لهذا انصاري خزرجي دی، دا په طاعون عمواس کې په (۱۸ هجري) کې دد دې فاني دنيا نه رخصت شوی. (المرقات ۱/۱۸۲).

**الردف والرديف** : **التابع الذی يرکب خلف الراکب**، د شهسوار سره شاته کيناستونکي ته رديف ويل شوي، دا لفظ د آس، خر او نورو دپاره زيات استعمال شوی ، لکه څرنګه چې په اوښ باندې د دوو سورو زياتو ته زميل ويل شوی دی، کله کله په اوښ باندې سور ته هم رديف ويل شوي. (المرقات ۱/۱۸۲).

**علی حمار** : رسول الله صلى الله عليه وسلم کله کله د تواضع او انکسارۍ په طور په خره باندې سور شوی په کوم سره چې د خره قسمت بيدار شوی چې د هغه خوله ناپاکه نه ده پاتې شوې او په جهوته کې يې هم نجاست نه دی پاتې شوی. (المرقات ۱/۱۸۲).

دلته په يوه خبره پوهيدل ضروري دي هغه دا چې له دغه خره نه واړه واړه خره مراد نه دي کوم چې د مونږ سره دي او په کومو باندې چې عموما سوريدل عيبجن ګڼل کيږي، بلکې دلته د خره نه د عربو هغه غټ خر مراد دی کوم چې تقريبا د قچر سره برابر دی لکه څرنګه چې غټ سپين خر وي په هغه باندې سوريدل هيڅ د کوم عيب خبره نه وه، د حضرت معاذ رضي الله عنه او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د دواړو سوريدل هم دا خبره په ګوته کوي چې هغه غټ خر وو.

**موخرة الرحل** : رحل کجاوې ته ويل کيږي، (**موخرة الرحل**) د کجاوې هغه لرګي ته ويل کيږي په کوم سره چې سور تکيه او ډډه لګوي دا د سواره شاته وي، د دوو کسانو په مينځ کې د مخکني دپاره جدا او د وروستني دپاره جدا لرګی وي يا دا چې صرف د مخکني دپاره وي، (**موخرة الرحل**) په دواړو باندې کيدلی شي، دا لفظ (**موخرة الرحل**) په څلورو طريقو سره ويل کيدې شي (المرقات ۱/۱۸۲).

---

(۱) اخرجه البخاري ۵۸/۶، رقم الحديث :۲۸۵۶، ومسلم في صحيحه ۵۸/۱، رقم الحديث :۴۸-۳۰، والترمذي ۲۶/۵ رقم الحديث ۲۶۳۴، وابن ماجه في سننه ۱۴۳۵/۲ رقم الحديث :۴۲۹۶.

(۱) د باب افعال نه د اسم فاعل په وزن باندې (۲) د باب تفعیل نه د اسم فاعل په وزن باندې (۳) د باب تفعیل نه د اسم مفعول په وزن باندې هم راغلی دی (۴) آخرة الرحل هم راغلی دی اول او آخرنی لغت فصیح دی.اوس سوال دا دی چې همدې تعیین تبیین هیئت او کیفیت بیان ته ضرورت څه وو؟ د دې جواب دادی چې په دې وضاحت سره د قرب بیانول دي او د ټول کیفیت په بیانولو سره دا ښودل دي چې صحابي کوم چې حدیث بیانوي په هغه کې د هیڅ شک او شبهې ګنجایش نشته، ځکه چې هغه په نهایت تیقظ او بیدارۍ سره دا حدیث د رسول الله ﷺ نه په خپله اوریدلی دی، د حدیث الفاظ څه چې د هغه کیفیات او هیئات د هغه په زړه او دماغو کې محفوظ دي.

**د حق العبد علی الله بحث : یا معاذ هل تدری ما حق الله** : په بندګانو باندې د الله د حق په باره کې خو هیڅ خبره او هیڅ شک نشته هو په بله جمله کې کلام شته چیرته چې (**حق العبد علی الله**) الفاظ راغلي دي پس دومره خبره زده کول په کار دي چې حق د باطل په مقابله کې هم راغلی دی، حق د ثابت او واجب په معنی سره هم دی، د لازم په معنی سره هم دی، او د لائق او جدید په معنی سره هم راغلی دی، اوس معتزلو ((**حق العبد علی الله**) کې حق په معنی د واجب او لازم اخلی نو د دوی په نزد د بندګانو حق د عدل په طور په الله باندې واجب او لازم شوی دی، په هدایه کې چې کوم داسې لیکل شوي دي چې د بحق فلان ویل صحیح نه دي، ځکه چې د کوم انسان وجوبي حق د الله تعالي په ذمه نشته نو هلته همدا د معتزلو والا حق مراد دی کوم چې د الله په ذمه همدا خلک واجب او لازم ګڼي، د دې نفې هدایه کړې ده، بهر حال مذکور حدیث په ظاهري طور د معتزلو دلیل دی، اهل السنة والجماعة د حدیث دیر توجیهات کړي دي. (المرقات ۱۸۲-۱/۱۸۳).

(۱) اوله توجیه دا ده چې د حق دیرې معانې دي پس په **حق الله علی العباد** کې د واجب او لازم معنی او په **حق العباد علی الله** کې د لائق او جدید معنی اخستل شوې ده.(۲) خطابي رحمه الله ویلي چې دلته **حق العبد علی الله** صرف د مخکنۍ جملې په مقابله کې مشاکلةً دی، همدغه رأیه د شیخ محی الدین ابن عربي رحمه الله هم ده.(۳) دا حق الله تعالی رحمةً شفقةً احسانًا اکرامًا په خپل ځان باندې په خپله اخستی دی ګویا چې په خپله یې یو عهد په خپل ځان باندې اخستی دی نو په اوله جمله کې حق وجوبي لزومي دی او په دویمه جمله کې تفضلي احساني اخستل شوی دی.

**ان یعبدوه** : په دې کې د عباداتو او د توحید و دواړو ذکر راغلی او ښودل شوي چې د الله تعالی حق د مکمل عباداتو د کامل او خالص توحید نه بغیر نه شي اداء کیدلی.

**ان لایشرکوا به في الافعال والاعمال والاقوال والاحکام** : په دې کې رسالت هم راغلی او ټول اعمال

هم راغلي دي، نو د الله تعالی د حسن سلوک او وعدې تقاضا دا ده چې ددې نه وروسته هغه دې موحد ته عذاب نه ورکوي، که چیرته له توحید سره د بنو اعمالو پابندي وکړي نو اور ته د نه داخلیدو وعده ده او که چیرته په نیکو اعمالو کې کوتاهي وي نو د (عدم خلود في النار) وعده ده چې همیشه به عذاب نه ورکول کیږي (المرقات ۱۸۳/۱).

**سوال**: سوال دادی چې حضرت معاذ رضي الله عنه د خوشخبرۍ ورکولو اجازه د نبي علیه السلام نه وغوښتله رسول الله صلی الله علیه وسلم منعه وکړه نو که چیرته ټول اعمال ملحوظ وو نو بیا د منعې ضرورت څه وو؟.

**جواب**: دادی چې خلک به **لایشرکوا** د قیوداتو نه بغیر وګڼي نو اعمال به پریږدي، چونکه نوي مسلمانان دي اجمال به واخلي، د قیوداتو نه خبر نه دي د همدې وجهې د ابتدائي دور په نظر کې نیولو د وجهې د خوشخبرۍ نه منعه وکړې شوه، لیکن د اعمالو په تفصیل باندې د پوهیدو نه وروسته کله چې اعمال مضبوط شي او د اعمالو د پرېښودلو خطر کم شي نو حضرت معاذ رضي الله عنه همدا علمي امانت امت ته وسپاره بیان یې کړو چې دا په ابتداء کې ممانعت وو بیا (بلغوا عني) وفرمایل شول نو خلکو ته د بیانولو عامه اجازه وشوه. (المرقات ۱۸۳-۱/۱۸۴).

**سوال**: همدې ته ورته یو بل سوال دا دی چې حضرت معاذ رضي الله عنه د ممانعت باوجود دا روایت په اخیر کې ولې بیان کړو؟. **جواب**: دا دی چې دا ممانعت د اسلام د ابتدائي دور دپاره وو، حضرت معاذ رضي الله عنه په اخیري وخت کې بیان کړ. **دویم جواب**: دا دی چې دا ممانعت د یو مخصوص جماعت دپاره وو عام نه وو، په وروسته وخت کې حضرت معاذ رضي الله عنه د عوامو دپاره بیان کړو. **دریم جواب**: دا دی چې حضرت معاذ رضي الله عنه د وفات په وخت کې بیان کړو چې د علم پټولو د وعید نه ځان وساتي لکه څرنګه چې په راتلونکي روایت کې دي، نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم د طرفه حضرت معاذ رضي الله عنه ته د خوشخبرۍ پټ ساتلو حکم وقتي او عارضي وو دائمي او ابدي نه وو. (المرقات ۱/۱۸۴).

**فیتکلوا**: د نهې په جواب کې د واقع کیدو د وجهې **أن** ناصبه مقدر دی په دې وجه منصوب دی ای **ان یتکلوا**، **الاتکال** یقین، اعتماد او تکیه په معنې سره دی، یعنې خلک به صرف د توحید کلمې په اجمال سره راټول شي په اعمالو کې به سست شي، دلته څرنګه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د بیانولو نه منعه کړې چې په بیانولو کې خطر دی ددې په نظر کې نیولو د وجهې حضرت عمر رضي الله عنه حضرت ابو هریره رضي الله عنه په سختۍ سره منعه کړه چې خلک به په اجمال باندې تکیه وکړي په آرام به کیني، معلومه شوه چې د حضرت عمر رضي الله عنه دا کار سم وو. (المرقات ۱/۱۸۴).

## د دوزخ نه د خلاصون سبب توحيد دی

(۲۲) وَ عَنْ أَنَسٍ : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ مُعَاذٌ رَدِيفُهُ عَلَى الرَّحْلِ

دانس رضي الله عنه نه روايت دی چې دنبي عليه السلام شاته په سورلئ باندې حضرت معاذ رضي الله عنه ناست وو

قَالَ يَا مُعَاذُ قَالَ : لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللهِ

رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ای معاذه! حضرت معاذ رضي الله عنه عرض وکړو چې يا رسول الله حاضريم

وَ سَعْدَيْكَ . قَالَ : يَا مُعَاذُ قَالَ : لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللهِ

او خدمت د پاره تيار يم نبي عليه السلام وفرمايل: اې معاذه! حضرت معاذ رضي الله عنه ووېل يا رسول الله حاضريم

وَ سَعْدَيْكَ قَالَ يَا مُعَاذُ قَالَ : لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللهِ

او خدمت د پاره تيار يم نبي عليه السلام وفرمايل ای معاذه! حضرت معاذ رضي الله عنه ووېل يا رسول الله حاضريم

وَ سَعْدَيْكَ ثَلَاثًا

او خدمت د پاره تيار يم نبي عليه السلام درې ځلې همداسې ووېل د حضرت معاذ رضي الله عنه د مخاطب کولو نه

قَالَ : مَا مِنْ أَحَدٍ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَ أَنَّ مُحَمَّدًا

وروسته يې وفرمايل: کوم کس چې ګواهي ورکړي د دې خبرې چې نشته لائق د عبادت مګر يو الله او محمد

رَسُولُ اللهِ صِدْقًا مِنْ قَلْبِهِ إِلَّا حَرَّمَهُ اللهُ عَلَى النَّارِ.

صلى الله عليه وسلم د الله رسول دی په رښتيني زړه سره نو په هغه باندې الله تعالى د دوزخ اور حرام کړی (دا يې

قَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ أَفَلَا أُخْبِرُ بِهِ النَّاسَ

چې واورېدل) حضرت معاذ رضي الله عنه عرض وکړو يا رسول الله! آيا زه خلکو ته د دې خبرې زيرې ورنه کړم

فَيَسْتَبْشِرُوا ؟ قَالَ : إِذًا يَتَّكِلُوا

ترڅو چې هغوی د ازيرې واورې او خوشحاله شي نبي عليه السلام وفرمايل نه خلک به په دې باندې يقين وکړي

فَأَخْبَرَ بِهَا مُعَاذٌ

او په آرام به کيني، انس رضي الله عنه وېلي چې معاذ رضي الله عنه د دې وېرې چې د حديث پټولو په ګناه کې را نه شي

عِنْدَ مَوْتِهِ تَأَثُّمًا. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1].

د خپل وفات په وخت کې يې دا حديث بيان کړی وو

هـ ا روايت له حضرت معاذ رضي الله عنه نه په خپله هم مروي دی او حضرت انس رضي الله عنه هم بيان کړی دی.

**توضيح: لبيک**: يعني زه بار بار آوريدلو ته حاضريم. (المرقات ۱/۱۸۴).

وسعديک: يعني زه بار بار د خدمت او اطاعت دپاره موجود يم په دواړو کې تکرار دی، رسول الله صلى الله عليه وسلم د اهتمام شان په غرض دريځلې دا کلمه را وګرځوله ترڅو چې راتلونکې خبره په ښه اهتمام سره واوريدل شي چې پوره توجه وي. (المرقات ۱/۱۸۴).

**صدقاً من قلبه**: سوال دا دی چې دا قيد ولې زيات کړی شو؟ جواب دا دی د دې دپاره چې منافقان ددې حديث نه خارج شي، ځکه چې په (**صدقاً من قلبه**) کې استقامت او استدامت دواړه مراد دي او دا په منافقينو کې نشته. (المرقات ۱/۱۸۵).

**الا حرم الله على النار**: دلته يو مهم سوال دی چې يو کس مثلاً په شهادتينو باندې د اقرار سره ګناه وکړه نو آيا هغه به هم (**حرام على النار**) وي سره ددې نه په بل روايت سره د ګنهګارو مؤمنانو دوزخ ته تلل په شفاعت يا د سزا د تيرولو نه وروسته واپس بيرته راتلل ثابت دي، نو په ظاهره خو په دې دواړو روايتونو کې تعارض او تضاد دی، همدارنګه د ذکر شوي حديث په نظر کې نيولو سره خو د اعمالو حيثيت ختم شوی دی سره ددې نه چې اعمالو لره هم يو مقام شته ،لنډه دا چې په کومو روايتونو کې صرف د توحيد په کلمه باندې د دخول جنت ضمانت ورکړی شوی دی او د دوزخ د حرمت فيصله اوروِل شوې ده هغه روايتونه د اعمالو د ضروري ګڼلو د روايتونو سره متعارض او متصادم دي.

**جواب**: د دې اعتراض څو جوابونه د احاديثو شارحينو ورکړي دي او د **کتاب الايمان** په څو احاديثو باندې د همدې قسم اعتراضونو همدا جوابونه دي ودې کتل شي :(۱) که چيرته کوم کس د ګناه ارتکاب نه وي کړی يا يې ګناه کړې وي خو په رشتني زړه يې توبه ويستلې وي او معاف شوی وي نو دا کس به اولاً جنت ته داخليږي په ده باندې د دوزخ اور حرام شوی دی نو (**حرمه الله على النار**) په ده باندې صادق دی، ليکن که چيرته دغه کس ګناه کړې وي توبه يې هم نه وي ويستلې او د نيکۍ نه يې ګناه زياته هم وي او کومه ګناه ورته معاف شوې هم نه وي نو داسې کس انتهاءً په دوزخ باندې حرام دی،

---

(۱) اخرجه البخاري ۱/۲۲٦، رقم الحديث :۱۲۸، ومسلم في صحيحه ۱/٦۱، رقم الحديث :۵۳-۳۲.

يعني (**حرم الله على النار**) د ده په حق کې د سزا د تيرولو نه وروسته دده دپاره دائمي دوزخ نشته.
(۲) يا مطلب دا دی چې د شهادت کلمه د خپلو ټولو غوښتنو او حقوقو سره ووايي يعني اوامر په ځای کړي او د نواهيو نه پرهيز وکړي د هغه دپاره (**حرمه الله على النار**) دی، يعني کلمه خو د جنت مفتاح (چابي) ده مگر د هغې دپاره غاښونه ضروري دي **كما قال وهب بن منبه** رَحِمَهُ اللهُ. (۳) دريم جواب دا دی چې د شهادت ددې کلمې نه د هغه کس کلمه مراد ده کوم چې کلمه ووېله ليکن د اعمالو موقع يې **پيدا** نه کړه او د دنيا نه رخصت شو. (المرقات ۱/۱۸۵).

(۴) يا **تحريم الخلود** مراد دی چې هميشه په اور کې او سيدل د هغه دپاره حرام دي. (۵) يا دا چې دوی به د کافرانو والا اور نه سوځوي، ځکه چې د هغو دپاره عذاب د تحقير او اهانت په طور دی، او د مؤمن عذاب د تطهير په طور دی. (۶) يا مطلب دا دی چې د هر شي يو انفرادي حيثيت دی، په انفرادي حالت کې هغه اثر او خاصيت ښکاره کول کار کوي، مگر کله چې د نورو شيانو سره يو ځای شي نو مغلوب او مخلوط شي او خپل اثر نه شي ښکاره کولی، مثلا زهر دي د هغه خاصيت وژل دي، مگر چې د نورو څيزونو سره گډ کړی شي نو معجون مرکب کټه ورکوونکی ترې نه جوړ شي او دد وا په طور استعماليږي، همدارنگه د اوبو طبعيت يخوالی دی، مگر د گرمۍ يا د اور د نزديوالي سره گرموالی په کې راشي يخوالی يې ختم شي، بعينه همدارنگه د شهادت کلمه ده، د هغې انفرادي حالت بالكل همغه دی کوم چې په ذکر شوي حديث کې دی چې د دوزخ اور د هغې په ويونکي باندې حرام دی، مگر په قيامت کې به فيصله په معجون مرکب باندې کيږي، لهذا د نورو شيانو گناهونو وغيره په يو ځای کولو سره دشهادت کلمې خاصيت مغلوب کيږي او د هغې اثر ختميږي، نو انفرادي اثر هغه دی کوم چې په حديث کې ښودل شوی، ليکن په قيامت کې به فيصله په معجون مرکب باندې کيږي، لهذا د اور نه د بچ کيدو دپاره د نيکو اعمالو ضرورت اوس هم په ځای دی او کوم کس چې گناه گار دی هغه په اور کې گرفتار دی، دسزا د تيرولو نه وروسته يا د شفاعت نه وروسته د دوزخ نه خوشې کيدلی شي، په کتاب الايمان کې د همدارنگه احاديثو همدا جوابونه دي. صاحب مشکوة د دغه روايت نه وروسته دير داسې احاديث راوړندې کړي دي په کومو کې چې د اعمالو ترغيب او تاکيد دی، په کومو سره چې ده اشاره کړې ده چې د توحيد په شهادت کې اعمال ملحوظ دي او د صاحب مشکوة همدا طريقه هم ده چې په راتلونکي روايت سره د تير شوي حديث تفسير کوي. (الکاشف ۱۵۹-۱/۱۶۱).

**ثالثا**: **اى تجنبا عن الاثم**، يعني حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وفات په وخت کې د خلکو په وړاندې همدا حديث بيان کړ ترڅو چې د علم پټولو گناه ترې ونه شي، په دې حديث سره يوه عامه قاعده په فهم کې راغله چې يو شمير دقيق احکامات ديو شمير خلکو دپاره د تشويش باعث جوړيږي نو د همداسې خلکو

پرواندې د همداسې مسائلو بیانول مناسب نه دي بلکې د هغوی نه یې پټ ساتل په کار دي، کله چې د همدې احکاماتو تعلق د کوم عمل سره هم نه وي او د عوامو د عقلونو نه بالاتر هم وي نو د عوامو په هغو کې اخته کول او برباد ول نه دي په کار، لکه د الله تعالی د صفاتو مسائل چې دغه مسائل د عوامو د پوهې نه بالاتر دي، لهذا په دې کې یې اچول نه دي په کار (**كلموا الناس على قدر عقولهم**). (**المرقات** ۱/۱۸۵).

**۲ ذوالحجه ۱٤۰۹هـ**

## په ایمان باندې خاتمه د جنت ضمانت دی

| |
|---|
| (۲۴) وَ عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ : أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د حضرت ابو ذر رضي الله عنه نه روایت دی چې یوه ورځ زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شوم |
| وَ عَلَيْهِ ثَوْبٌ أَبْيَضُ ، وَ هُوَ نَائِمٌ ، ثُمَّ |
| نو نبي علیه السلام یوه سپینه جامه اغوستې او اوده شوی وو (نو زه بیرته واپس راغلم) بیا دوباره د نبي علیه السلام |
| أَتَيْتُهُ وَ قَدِ اسْتَيْقَظَ ، فَقَالَ: |
| په خدمت کې په هغه وخت کې حاضر شوم کله چې نبي علیه السلام له خوبه راپیدار شوی وُ زه یې چې ولیدم |
| مَا مِنْ عَبْدٍ قَالَ : لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ ثُمَّ مَاتَ عَلٰى ذٰلِكَ |
| راته وې فرمایل: کوم کس چې په رشتني زړه سره لااله الاالله ووېله او په همدې عقیده باندې مړ شو نو |
| إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ ، قُلْتُ : وَ إِنْ زَنٰى وَ إِنْ سَرَقَ ؟ قَالَ : |
| هغه به خامخا جنت ته داخل کړی شي ما عرض وکړو اګر که هغه زنا او غلا کړې وي؟ نبي علیه السلام وفرمایل |
| وَ إِنْ زَنٰى وَ إِنْ سَرَقَ ، قُلْتُ : وَ إِنْ زَنٰى وَ إِنْ سَرَقَ ؟ قَالَ : |
| اګر که هغه زنا او غلا کړې وي، ما بیا عرض وکړو اګر که هغه زنا او غلا کړې وي؟ نبي علیه السلام بیا وفرمایل |
| وَ إِنْ زَنٰى وَ إِنْ سَرَقَ ، قُلْتُ : وَ إِنْ زَنٰى وَ إِنْ سَرَقَ ؟ قَالَ : |
| اګر که هغه زنا او غلا کړې وي، ما بیا عرض وکړو اګر که هغه زنا او غلا کړې وي؟ نبي علیه السلام وفرمایل: |
| وَ إِنْ زَنٰى وَ إِنْ سَرَقَ عَلٰى رَغْمِ أَنْفِ أَبِي ذَرٍّ ، |
| اګر که هغه زنا او غلا کړې وي (هغه به جنت ته داخل کړی شي) د ابو ذر پوزه دې په خاورو ککړه شي اګر که |

| |
|---|
| وَ كَانَ أَبُو ذَرٍّ إِذَا حَدَّثَ بِهٰذَا |
| ابوذر ته خوښه نه ده، دراوي بیان دی چې کله به ابوذر دا حدیث بیانولو نو د (فخر په طور) به یې په آخر |
| قَالَ : وَ إِنْ رَغِمَ أَنْفُ أَبِي ذَرٍّ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| کې دا خبره کوله چې دابوذرپوزه دې په خاورو ککړه شي (اګر که ابوذرته خوښه نه ده) خامخا یې نقل کوله |

**توضیح**: ابوذرغفاري رضي الله عنه د غفار قبیلې سره تعلق لرلو، په مکه مکرمه کې پنځم خوش قسمته کس ؤ کوم چې په اسلام کې داخل شو، متقي پرهیزګاره او زاهد ؤ، د ده په مسلک کې د خوراک نه وروسته د بل (دویم) وخت دپاره د خوراک ساتل یا د مال جمع کول جائز نه ؤ او کله به یې چې څوک د مال جمع کوونکی ولیده نو په کوتک به یې وهلو، د اسلام د قبلولو نه وروسته د خپل خاندان طرف ته واپس لاړو او هلته یې د اسلام دعوت ورکول شروع کړل، حضرت عثمان رضي الله عنه د مدینې نه (ابذې) ته د تلو حکم ورته وکړ، دا هلته لاړو او په (۳۲ هجري) کې وفات شو، حضرت ابن مسعود رضي الله عنه یې جنازه وکړه. (المرقات ۱۸۵-۱/۱۸۶).

**وعلیه ثوب ابیض**: ددې کیفیت په بیانولو سره مقصود دا دی چې ماته خبره ښه په یاد ده، بلکې تر کیفیاتو هیئاتو او حالاتو پورې راته معلومه ده، زه په بیدارۍ کې په اعتماد سره خبره کوم، څوک دې شک او شبهه نه کوي، همدارنګه دا هم ښودل دي چې د محبوب د خد او خال او د هغه د خصوصي احوالو په بیانولو سره لذت محسوس شوی دی. (المرقات ۱/۱۸۶).

و ذکرک للمشتاق خیر شراب ❁ وکل شراب دونه کسراب

اعد ذکر نعمان لنافان ذکره ❁ هو المسک ما کررته یتضوع

قہر ہو یا مہر ہو یا کچھ بھی ہو ❁ ہر ادا محبوب کی محبوب ہے

**دخل الجنة**: په دغه روایت یوه شبه خو هغه ده کومه چې په مخکښې روایت باندې وه چې صرف د شهادت په کلمه باندې څنګه جنتي شو اعمال چیرته لاړل؟ کوم جوابونه چې هلته ورکړی شوي هماغه جوابونه دلته هم دي چې دخول اولاً یا ثانیًا دی، یا کلمه د خپلو مطالبو سره ده یا په دوزخ کې ابدي او دائمي دخول نه دی، یا دا چې فیصله به په معجون مرکب باندې کیږي په یوازې کلمه به نه کیږي، یا د هغه چا کلمه مراد ده چا ته چې د عمل موقع پیدا نه شي او مړ شي وغیره وغیره، دلته دویمه شبه او سوال

---

(۱) اخرجه البخاري ۲۸۲/۱۰، رقم الحدیث :۵۸۲۷، ومسلم في صحیحه ۹۵/۱، رقم الحدیث :۱۵۴-۹۴، واحمد في المسند ۱۶۶/۵.

دا دی چې په شهادت کې صرف لا اله الا الله ذکر شوی دی د محمد رسول الله ذکر نه دی شوی؟.

**اول جواب**: دا چې د لا اله الا الله ذکر د علم او عنوان په طور شوی دی، مراد مکمل شهادتین او پوره کلمه ده، لکه څنګه چې ټوله فاتحه د الحمدلله په نوم یادولی شي او اخلاص ټول قل هو الله احد ته ویل شوی **دویم جواب**: دا دی چې دلته راویانو اختصار کړی دی. **دریم جواب**: دا دی چې دا کلمه داسې مشهوره ده چې د لا اله الا الله په ذکر سره خود بخود ټوله کلمه ذهن ته راځي او دا هر چاته معلومه ده چې د محمد رسول الله ﷺ نه بغير په دې دور کې دا کلمه ګڼه رسوونکې نه ده. (المرقات ۱/۱۸۶).

**ثم اتيته**: يعنې لږ وخت وروسته زه بيا راغلم نو رسول الله ﷺ د خوب نه را بيدار شوی وو.

**قلت وان زنی وان سرق**: دلته همزه استفهام محذوف ده يعنې ادخل الجنة وان زنی وان سرق. د ابو ذر رضي الله عنه په سوال کې نهايت جامعيت دی ځکه چې په (وان زنی) سره د ټولو حقوق الله طرف ته اشاره ده او په (وان سرق) کې د ټولو حقوق العباد طرف ته اشاره شوې ده، يعنې په حقوق الله او حقوق العباد دواړو کې کوتاهي کوونکی به هم جنت ته ځي؟. رسول الله ﷺ جواب ورکړو چې د ايمان او تصديق قلبي د وجهې به هغه بالاخر جنت ته داخل کړی شي اګر که په نيکو اعمالو کې يې کوتاهي کړې وي، د حضرت ابو ذر رضي الله عنه درې ځلې سوال کول د تعجب او زيات تاکيد او دزيات وضاحت حاصلولو دپاره ؤ او د رسول الله ﷺ جواب د انکار په طور باندې ؤ چې دا ولې دومره د تعجب ورکنې، آيا د الله تعالى په رحمت کې بخل کوې؟ سره د دې چې د هغه جل جلاله رحمت ډير وسيع (پراخ) دی، که ته خوشحاله يې او که خفه يې معامله همداسې ده، زنا او غلا په اسلام کې غټ ګناهونه شمارل شوي دي د هغو حکم چې کله معلوم شو نو د ورو ګناهونو حکم خود بخود معلوميږي. (المرقات ۱۸۶-۱/۱۸۷).

**وكان ابو ذر**: يعنې ابو ذر رضي الله عنه د لذت (خوند) په طور يا د رسول الله ﷺ د کلام د کمال حفاظت په طور د (وان رغم انف ابي ذر) کلمات خامخا ويل، د محبوب د اداء کړی شويو کلماتو نه يې خوند اخيسته او د ځان دپاره يې فخر بلل. (المرقات ۱/۱۸۶). لکه ويل شوي دي:

بدم گفتی و خرسندم عفاک الله نکو گفتی ❁ جواب تلخ می زیبد لب لعل و شکر خا را

**على رغم انف ابي ذر**: وان رغم انف ابي ذر، د عربو په نزد د عربي ژبې محاوره ده، دا په هغه وخت کې ويل کيږي کله چې د کومې مجبورۍ، تنګۍ، ناخوښۍ او ذلت ښکاره کول وي، ځکه چې رغم خاورو ته ويل کيږي، نو مطلب دا شو چې پوزه دې په خاورو ککړه شي، د ناخوښۍ نه کنايه ده، همدارنګه دا محاوره په ټولو عربو کې د ناخوښۍ دپاره استعمال شوې ده.

په دې حديث کې په معتزلو او خوارجو باندې د نهايت تاکيد سره رد راغلی دی، کوم چې د کبیرې مرتکب کوونکی د اسلام نه خارج ګڼي. (المرقات ۱/۱۸۷).

## د نجات مدار څه دی؟

| |
|---|
| (۲۵) وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ شَهِدَ |
| د عباده بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: کوم کس چې د دې خبرې ګواهي ورکړي |
| أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا |
| چې د الله نه بغير هيڅ معبود او حاجت روا نشته هغه يو اځې دی هيڅوک د هغه سره شريک نشته او محمد |
| عَبْدُهُ، وَرَسُولُهُ، وَأَنَّ عِيسٰى عَبْدُ اللهِ وَرَسُولُهُ، |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله بنده او د هغه رسول دی او دا چې حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَام هم د الله بنده او د هغه رسول دی |
| وَابْنُ أَمَتِهِ، وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلٰى مَرْيَمَ |
| او د الله بنده او د حضرت مريم زوی دی او د هغه (معجزاتي) کلمه ده چاچې هغه د مريم طرف ته اچولې وه |
| وَرُوحٌ مِنْهُ، وَالْجَنَّةُ وَالنَّارُ حَقٌّ |
| او د الله د طرفه لیږل شوی روح دی او دا چې جنت او دوزخ حق (واقعي شيان) دي نو (د دغه اقرار نه وروسته) |
| أَدْخَلَهُ اللهُ الْجَنَّةَ عَلٰى مَا كَانَ مِنَ الْعَمَلِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).(۱) |
| الله تعالى به هغه جنت ته خامخا داخل کړي برابره خبره ده که د هغه اعمال هر څرنګه وي. |

**توضيح: وان محمدا عبده: اى عبده الاجل ورسوله الاكمل وان عيسى عبد الله ورسوله:** دلته دا شبه او اشکال دی چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وروسته د حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَام د ذکر کولو او د ده د تخصيص ضرورت څه وو کله چې ټول انبياء کرام په عبديت او رسالت کې شريک دي او اهل ايمان د ټولو متعلق همدا عقيده لري؟.

**جواب:** د دې جواب دا چې د عيسى عَلَيْهِ السَّلَام په باره کې د خيالاتو ساتونکي دوه قومونه د عربو په جزيره کې آباد وو، يو يهود وو بل نصارى، د حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَام په باره کې دواړه قومونه په خپلو خيالاتو کې په افراط او تفريط کې مبتلا وو. يو طرف ته يهودو نه يوازې دا چې د عيسى عَلَيْهِ السَّلَام د رسالت نه يې انکار کوه بلکې يهودو په ده عَلَيْهِ السَّلَام باندې بيهوده الزامات لګول او د ده عَلَيْهِ السَّلَام په

والده صديقه باندې يې بهتان ويلو او د عيسى عليه السلام شريعت او انجيل يې دروغ ګڼلو، دويم طرف ته نصاراو د عيسى عليه السلام په باره کې دومره غلو (زياتى) کوه چې هغه عليه السلام ته يې ابن الله يا ثالث ثلاثة ويله، رسول الله صلى الله عليه وسلم چونکه دټولو انبياء کرامو مصدق جوړشوى راغلى وودټولودحيثيت ښودونکى راغلى وو او دا شريعت او دا امت چونکه متسوط او معتدل وو د همدې وجهې د افراط او تفريط نه يوه پاکه نظريه رسول الله صلى الله عليه وسلم د حضرت عيسى عليه السلام متعلق د عربو په جزيره کې د يهودو او نصاراو په وړاندې کيښودله. دهمدې خصوصي احوالو او خاص ضرورت ماتحت د حضرت عيسى عليه السلام ذکر په خصوصيت سره راغى ترڅو چې د هغه سره متعلق د صحيح صورت حال نه عوام او خواص خبر کړى شي او د دواړو طرفينو افراط او تفريط باطل کړى شي، ترڅو چې داخلک د دخول جنت مستحق جوړشي، لهذا د عبدالله په لفظ سره په نصاراو باندې رد وکړى شو چې هغه د الله بنده وو نه دا چې د الله سره شريک وو او نه د هغه زوى وو، او په ورسوله سره په يهودو باندې رد وکړى شو کومو چې د ده د نبوت نه انکار کولو. (المرقات ۱/۱۸۷، الکاشف ۱۶۶-۱/۱۶۷).

**وابن امته**: په دې سره يې هم په دواړو فريقينو باندې رد اوکړو، ځکه چې نصاراو ويل چې هغه ابن الله (د الله زوى) وو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ابن الله نه دى، (ابن امة الله) وو او په يهودو باندې دا رد وشو چې حضرت بي بي مريم د الله تعالى خاص بنده او وليه وه، د امته اضافت تشريفيه سره دې طرف ته اشاره وشوه بيا د امته په اضافت سره په نصاراو باندې رد وشو کومو چې ويل چې مريم د الله ښځه ده، وې فرمايل ښځه يې نه ده، خاص بنده يې وه. (المرقات ۱/۱۸۷، الکاشف ۱۶۶).

**امته**: په اضافت تشريفيه سره په يهودو باندې دا رد وشو چې مريم د الله پاکه مقبوله بنده وه، د هغې طرف ته د زنا نسبت د يهودو خباثت او خساست دى، په يهودو دا رد هم وشو کومو چې ويل چې عيسى عليه السلام العياذ بالله د فلاني کس ناروا اولاد وو، وې فرمايل چې هغه د مريم زوى وو د هغه پلار نه وو، که چيرته يې پلار وى نو د مور طرف ته به يې نسبت ولې کيده. (المرقات ۱/۱۸۷).

**وكلمته**: يعني د (کن) په کلمه سره د پلار نه بغير الله تعالى پيدا کړ، يا د کلمې نه مراد (حجة الله) دى چې هغه د الله د طرفه په خلکو باندې حجت او دليل وو چې الله تعالى هغه د پلار نه بغير په خپل قدرت سره پيدا کړى، يا د خپلې مور په براءت او په خپل نبوت او رسالت باندې په ماشومتوب کې دليل جوړ شو ﴿قَالَ إِنِّي عَبْدُ اللَّهِ آتَانِيَ الْكِتَابَ وَجَعَلَنِي نَبِيًّا﴾ لهذا كلمة الله ورته وويل شو. (المرقات ۱/۱۸۷).

**حکايت**: حکيم الامت اشرف على تهانوي رحمه الله په خپلو ملفوظاتو کې خپله يوه واقعه بيان کړې چې د ما سره د يوه پادري مناظره وه، موضوع (الٰهية مسيح) وه، د مناظرې تاريخ راغى نو حضرت شيخ الهند ته معلومه شوه نو مناظرې ته حاضر شو او ګمان يې وکړ چې دغه پادري خو ډير تجربه کار دى

هسې نه ځوان اشرف علي ته ماتې (شکست) ورنه کړي نو ځکه په خپله راغی او د مناظرې دپاره په خپله را ورانډې شو، عيسائي پادري په خپل بيان کې وويل اوګورئ مسلمانانو ! ستاسو قرآن حضرت مسيح ته (**کلمة**) ويلي دي نو اوس تاسو ووايئ چې مسيح کلمه وو او که نه وو، د پادري ګمان وو چې مسلمانان به ووايي چې بيشکه قرآن ورته کلمه ويلي دي هغه کلمه وو نو بس زه به ووايم چې (**کلمة الله**) او (**ابن الله**) يو شی دی. حضرت شيخ الهند محمود الحسن ودريده او وې فرمايل بيشکه حضرت عيسی عَلَيْهِ‌السَّلَامُ کلمه وو او قرآن هغه ته کلمه ويلي دي ليکن کلمه په درې قسمه ده، اسم، فعل، حرف، اوس ته ووايه چې حضرت عيسی عَلَيْهِ‌السَّلَامُ په دې دريو قسمونو کې په کوم قسم کې داخل وو؟ پادري هک پک (حيران) پاتې شو داسې وتښتيدو چې شاته يې ښيخي را ونه کتل. (المرقات ۱/۱۸۷).

**الی مريم** : مريم د عابدې په معنی سره دی، په قرآن کريم کې ديرش ځلې الله تعالی په صراحت سره د حضرت مريم نوم ذکر کړی، په دې سره الله تعالی دا اشاره کول هم غواړي چې مريم د الله ښځه نه ده، که چيرته همداسې وی نو هيڅ کس هم په مجلسونو کې د خلکو پر وړاندې د خپلې ښځې نوم نه اخلي، بيا يې د هغه سره د ابن مريم کلمه ولګوله چې زمانه دی د مريم زوی دی.

**وروح : ای ذو روح منه او هو روح منه او کان له معجزة يُحْيِيْ به الاموات** : يا دا نفخه د جبريل امين نه پيدا شوې او د حبريل نوم (روح الامين) دی نو ځکه هغه ته روح وويل شول، بهر حال دلته د روح نه (**مابه الحيوة**) حيواني روح مراد نه دی، همدارنګه دلته (**من**) د تبعيض دپاره نه دی په کوم سره چې جزئيت ثابت شي، بلکې (**من**) ابتدائيه دی معنی يې دا ده (**وروح مخلوق من امر الله ای بأمر الله**). (المرقات ۱/۱۸۷).

**حکايت** : علامه طيبي رَحِمَهُ‌اللهُ ددې حديث په تشريح کې د يوه لوی نصراني عالم واقعه ليکلې ده چې هغه ديوه قاري نه د قرآن کريم دا آيت ﴿ وَكَلِمَتُهُۥٓ أَلْقَىٰهَآ إِلَىٰ مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِّنْهُ ﴾ واوريده نووې ويل چې عيسايان هم ددې نه زيات څه نه وايي، بس همدا خبره ده چې عيسی د الله نه دی، يعنې د الله يو جزء دی، دغه عيسائي عالم په (**منه**) کې (**من**) د تبعيض دپاره واخيست، په دې باندې د دين اسلام عالم علی بن حسين بن واقدي رَحِمَهُ‌اللهُ د هغه پر وړاندې د قرآن کريم دا آيت کريمه تلاوت کړ: ﴿ وَسَخَّرَ لَكُم مَّا فِي السَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مِّنْهُ ﴾ بيا يې وويل که چيرته (**من**) د تبعيض دپاره شي نو بيا خو به زمکه او آسمان کې چې څه دي ټول دې د الله تعالی جزء ومنل شي، دا يې چې واوريدل عيسائي عالم مسلمان شو. (الکاشف ۱/۱٦۸).

**والجنة والنار حق**: يعني د جنت او دوزخ چې كوم احوال په قرآن او احاديثو كې ذكر دي هغه ټول حق دي، د جنت وجود هم ثابت دی او د دوزخ وجود هم ثابت دی، او په هغو كې د جزاء او سزاء ټول واقعات هم حق دي، په دې سره په داسې فلاسفو زنادقو، ملحدينو او دهريو باندې رد مقصود دی كوم چې وايي جنت هيڅ نه دی صرف باغ دی، دوزخ هيڅ نه دی صرف دښته (صحراء) ده. (المرقات ۱/۱۸۷).

مرزا غالب د الحاد په انداز سره وايي:

ہم کو معلوم ہے جنت کی حقیقت لیکن ❁ دل کے بہلانے کو غالب یہ خیال اچھا ہے

**ادخله الله على ما كان من العمل**: يعني برابره خبره ده كه هغه عمل ښه وو او كه بد وو كم وو كه زيات وو څه قسم عمل چې وو د هغه له ښې عقيدې نه وروسته به انسان جنت ته ځي، د دې حديث مطلب هم هغه دی چې (ابتداءً او مآلاً) دا كس د دخول جنت مستحق دی، په دې كې هم په خوارجو او معتزلو باندې واضح رد دی كوم چې د كبيرې مرتكب كوونكی د اسلام نه خارج بولي.

**۳ ذوالحجة ۱۴۰۹ هـ**

## د اسلام په قبلولو سره مخكني گناهونه محوه كيږي

(۲۶) وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه نه روايت دی چې زه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كې حاضر شوم

فَقُلْتُ: ابْسُطْ يَمِينَكَ فَلِأُبَايِعَكَ،

او عرض مې وكړو چې ته خپل ښي لاس راوړاندې كړه چې زه د اسلام بيعت وكړم، رسول الله صلى الله عليه وسلم

فَبَسَطَ يَمِينَهُ، فَقَبَضْتُ يَدِي،

خپل ښی لاس راوړاندې كړونو ما خپل لاس د خپل ځان طرف ته راكش كړ رسول الله صلى الله عليه وسلم په حيرانتيا

فَقَالَ: مَا لَكَ يَا عَمْرُو؟ قُلْتُ: أَرَدْتُ أَنْ أَشْتَرِطَ،

سره وفرمايل: عمرو دا څه دي؟ ما ووېل ای رسول الله زه د كوم شرط لګول غواړم رسول الله صلى الله عليه وسلم

فَقَالَ: تَشْتَرِطُ مَاذَا؟ قُلْتُ: أَنْ يُغْفَرَ لِي،

وفرمايل: د څه شرط لګول غواړې؟ ما عرض وكړو (زه غواړم) چې زما ټول ګناهونه معاف كړی شي رسول

قَالَ: أَمَا عَلِمْتَ يَا عَمْرُو أَنَّ الْإِسْلَامَ يَهْدِمُ مَا

الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ای عمرو! آيا ته نه پوهيږې چې اسلام هغه ټول ګناهونه محوه كوي كوم چې

| |
|---|
| كَانَ قَبْلَهُ ، وَ أَنَّ الْهِجْرَةَ تَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهَا ، |
| داسلام نه مخکې شوي وي، او هجرت هغه ټول گناهونه محوه کوي کوم چې د هغه نه مخکې شوي وي، |
| وَ أَنَّ الْحَجَّ يَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهُ ؟ .[1] |
| او حج هغه ټول گناهونه محوه کوي کوم چې د هغه نه مخکې شوي وي. |
| وَ الْحَدِيثَانِ الْمَرْوِيَّانِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ، قَالَ : قَالَ اللهُ تَعَالَى : أَنَا |
| او هغه دواړه حديثونه کوم چې دابو هريره رضي الله عنه نه روايت شوي دي اوداولني حديث الفاظ دا دي :انا |
| أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ ) وَ الْآخَرُ الْكِبْرِيَاءُ رِدَائِي . سَنَذْكُرُهُمَا |
| أغنى الشركاء عن الشرک، او د دويم الفاظ دادي :الكبرياء ردائي ، همدا دواړه حديثونه به مونږ ذکر |
| فِي بَابَيِ الرِّيَاءِ وَالْكِبْرِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى . |
| کړو په باب الرياء او باب الکبر کې ان شاء الله. |

**توضيح**: حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم جليل القدر صحابي دی، د هجرت نه پنځه کلونه مخکې يې اسلام قبول کړی وو او په ټولو جنگونو کې شريک شوی وو، په جنگ صفين کې د حضرت معاويه رضي الله عنه سره وو، د تحکيم په مسئله کې شامل وو، د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې مصر ده په لاس فتح شو او دا د فاتح مصر په نوم سره مشهور شو او تر اخيره پورې دی د مصر والي او واکمن وو، په (۴۴ هجري) کې د (۹۰) کلونو په عمر کې وفات شو. (المرقات ۱/۱۸۸).

**ابسط يمينك**: ته خپل ښی لاس را وړاندې کړه تر څو چې زه په هغه باندې ستا سره بيعت وکړم، معلومه شوه چې د زباني بيعت په نسبت په لاس کې لاس ورکول اصل او بهتر دي، د ښځو په بيعت کې هيڅکله رسول الله صلى الله عليه وسلم لاس نه وو ورکړی هلته زباني بيعت اصل دی، دا بيعت د اسلام وو او هر پير او مرشد ته په کار دي چې کومې اجنبي ښځې ته د بيعت په وخت کې لاس ورنه کړي. (المرقات ۱/۱۸۸)

**فلأبايعك**: کې په عين باندې نصب او ضمه دواړه روا دي، اول احتمال داسې دی چې فاء کلمه زائده شي او د هغه نه وروسته د لام کلمه په معنی د (لام کی) تعليليه شي کوم چې د فعل ناصب دی يعني: **کی أبايعک**، نو عين منصوب دی. دويم احتمال دا چې لام زائد شي په دې صورت کې په عين باندې

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۱۲، رقم الحديث: ۱۹۲-۱۲۱، واحمد في المسند ۴/۲۰۵.

ضمه راځي او **فاء** تفريعيه كيږي يعنې (**ابسط يمينک فأبايعک**). (المرقات ۱/۱۸۸).

**ان اشترط** : معلومه شوه چې د بيعت كولو نه مخكې شرط لګول هم روا دي او مناسب هم دي ترڅو چې بنـه تسـلي وكړى شي. (المرقات ۱/۱۸۹).

**قال تشترط ماذا؟** : د **ماذا** كلمه په ابتداء كې محذوف ده او مذكوره **ماذا** په آخر كې د هغې تفسير دى يعنې: **ماذا تشترط ماذا** يا داسې پوهه شئ چې رسول الله ﷺ د انكار او تعجب استفهام سره دا پوښتنه وكړه چې **اتشترط**؟ يعنې په اسلام كې شرط لګوې؟ بيا يې پوښتنه وكړه چې **ماذا** يعنې څه شرط لګوې، نو دا **ماذا** جدا كلمه ده كومه چې د جدا سوال سره راغلې ده كومه چې په صدرات باندې واقع ده، يا د كلام مجموعه داسې جوړه شوه : **تشترط ماذا** د استفهام همزه حذف كړى شوه. (المرقات ۱/۱۸۹)

**يغفر لي** : معروف او مجهول دواړه ويل كيدى شي، د معروف ضمير د **الله** لفظ طرف ته راجع دى.

**اما علمت يا عمرو** : يعنې ته عقلمند هوښيار او دنيا ليدونكى انسان يې د تا نه دا خبره پټه ده د كومې چې د هيڅ عقلمند نه پټه پاتې كيدل نه دي په كار، رسول الله ﷺ د هغه د عقل حواله وركړه كه نه نو عمرو رضي الله عنه د مذكوره مسئلې نه مخكې د ايمان نه څه خبر شوى وو. (المرقات ۱/۱۸۹).

**الاسلام يهدم ما كان قبله** : علماء كرامو دلته د اسلام نه د حربي اسلام مراد كړى دى، ځكه چې د ذمي حكم داسې نه دى. (المرقات ۱/۱۸۹).

**والهجرة** : يعنې زما په ژوند كې د مكې نه د مدينې په طرف هجرت او د مكې د فتح نه وروسته د دار الحرب نه دارالاسلام طرف ته هجرت كول، يعنې اسلام، هجرت او حج درېواړه مخكني ګناهونه ختموي، د هجرت بحث تېر شوى دى. (المرقات ۱/۱۹۰).

## د مخكنيو ګناهونو د محوه كيدو ضابطه او د علماء كرامو نظرونه

**اسلام** : د جمهورو علماؤ په نزد كله چې كوم غير مسلم حربي يعنې غير ذمي اسلام قبول كړي نو اسلام واړه او غټ ټول ګناهونه ختموي، حقوق الله او حقوق العباد مظالم او غير مظالم ټول ختموي.

**هجرت او حج** : البته په هجرت او حج كې اختلاف دى چې آيا دوى هم واړه او غټ ګناهونه ختموي او كه يې نه ختموي د كوم ذكر چې په حديث كې د اسلام سره شوى دى، نو حافظ تورپشتي رحمه الله او د متقدمينو شارحينو ګمان دا دى چې محوه كونكى صرف اسلام دى په حج او هجرت سره صرف واړه معاف كيدې شي، مطلقا او كبائر هغه وخت معاف كيدى شي كله چې د دوى سره توبه ملګرې شي، په دې شرط چې د هغو تعلق د حقوق الله سره وي، او كه چيرته همدغه كبائر د حقوق العباد سره متعلق وو نو د

صاحب حق نه د معافي د غوښتلو نه بغير صرف په توبې سره هغه نه معاف کيږي، خلاصه دا راووتله چې په حج او هجرت سره کبائر نه معاف کيږي، حافظ توربشتي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د قرآني نصوصو نه هم داسې معلوميږي ﴿إِن تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ﴾(النساء:۳۱) ددې نص نه د صغائرو معافي معلومه شوې ده، لهذا نصوص مطلقه په نصوص مقيدو باندې حمل شوي د صغائرو او کبائرو قيد لحاظ ساتل شوي دی.

**د علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ تحقيق** : د علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ او علامه قسطلاني رَحِمَهُ اللهُ رأيه دا ده چې د اسلام په شان حج او هجرت هم ټول صغائر او کبائر ختموي او کوم حکم چې په هادم کيدو کې د اسلام دی هماغه حکم د حج او د هجرت هم دی. علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې زه په متقدمينو علماو باندې رد کول نه غواړم، د هغوی رأيه او تحقيق په خپل ځای باندې صحيح دی او د عامو قواعدو مطابق دی، ليکن زه نفس حديث ته ګورم، د هغه سياق سباق اسلوب کلام بلاغت او فصاحت او اصولو ته ګورم د دې ويلو حق لرم چې د اسلام دپاره چې د کوم خصوصيت ذکر شوی همدغه خصوصيت د حج او هجرت دپاره هم حاصل دی، ځکه چې په نفس حديث کې څو قرائن داسې دي د کومو چې په واضح طور د اسلام هجرت او د حج خصوصيت يو رنګه معلوم شوي دي، مثلاً : (۱) حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بيعت اسلام نه مخکې د خپلو ټولو ګناهونو د مغفرت شرط لګولی وو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اسلام نه بغير حج او هجرت هم د هغه د اطمينان دپاره ذکر کړل چې ته خو د اسلام خبره کوې زه تا ته وايم چې د مغفرت دا خصوصيت د اسلام نه بغير حج او هجرت لره هم شته دی. (۲) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لکه څرنګه چې د اسلام تشبيه د ګناهونو په ختمولو کې د مکان او غره ختمونکې آلې سره ورکړې بعينه همدا تشبيه يې د حج او هجرت دپاره هم ورکړې ده، چې د ګناهونو په (هدم) کې حج او هجرت هم د اسلام په شان عام او مطلق دي. (۳) اسلام حج او هجرت دلته د عطف په طريقې ذکر شوي دي او په معطوف عليه کې کمال مناسبت ضروري دی، دلته قوي مناسبت شکل په مساوات في الحکم کې ښکاره شوی چې کوم حکم د اسلام دی هماغه حکم د هغه د معطوفاتو د حج او د هجرت هم دی، لهذا لکه څرنګه چې اسلام د صغائرو او کبائرو دپاره هادم (محوه کونکی) دی حج او هجرت هم داسې دي.

(۴) د يهدم صيغه هر ځل مستقلا هر ځل له تکرار سره راوړل په خپله په دې خبرې باندې دليل هم دی او تاکيد هم دی چې کوم کار د اسلام دی هماغه کار په مستقل طور د حج او د هجرت هم دی.

دعلامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ دا تحقيق ډير عمده دی او کوم آيت چې علامه توربشتي رَحِمَهُ اللهُ د استدلال په طور وړاندې کړی دی په هغه سره معتزلو هم استدلال کړی، ليکن د آيت خپل صحيح او واضح تفسير هم شته دی کوم چې علامه شبير احمد عثماني رَحِمَهُ اللهُ په خپل تفسير عثماني کې نقل کړی هلته دې وکتل شي.

همدارنګه کومو خلکو چې د حج مشقتونه برداشت کړي او هلته میاشت تیره کړي آیا هغوی به د ګناهونو نه توبه ونه باسي اودحقوق العباداتنظام به ونه کړي؟ همدارنګه چې دهجرت په شان غټه قرباني وکړي آیادتوبې نه به خالي وي؟هرکله چې توبه عقلاًاوعرفاًورسره ملګرې ده نوبیاپه مغفرت کې څه شک دی. (الکاشف ۱۷۰-۱/۱۷۱).

٤ ذوالحجة ۱٤۰۹هـ

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د دین ارکان او جهاد

| |
|---|
| (۲۷) عَنْ مُعَاذٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ ! أَخْبِرْنِيْ بِعَمَلٍ |
| د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه نه روایت دی چې ما عرض وکړو یا رسول الله ! ما ته داسې عمل وښایه |
| يُدْخِلُنِيْ الْجَنَّةَ وَ يُبَاعِدُنِيْ مِنَ النَّارِ قَالَ |
| کوم چې ماجنت ته بوځي اوددوزخ داورنه مې وساتي،رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: حقیقت خودادی |
| لَقَدْ سَأَلْتَ عَنْ أَمْرٍ عَظِيْمٍ وَ إِنَّهُ لَيَسِيْرٌ عَلَى مَنْ يَسَّرَهُ اللهُ تَعَالَى عَلَيْهِ |
| چې تادیوغټ شي پوښتنه کړې لیکن په چاباندې چې الله آسانه کړي دهغه دپاره آسانه ده بیایې وفرمایل |
| تَعْبُدُ اللهَ وَلَا تُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا وَ تُقِيْمُ الصَّلَاةَ وَ تُؤْتِي الزَّكَاةَ |
| د الله تعالی بندګي کوه او څوک د هغه سره مه شریکوه ، مونځ په پابندۍ سره آداء کوه ، زکوة ورکوه ، د |
| وَ تَصُوْمُ رَمَضَانَ ثُمَّ قَالَ أَلَا أَدُلُّكَ |
| رمضان روژې نیسه،دخانه کعبې حج کوه بیایې ددې نه وروسته وفرمایل:اې معاذه!آیازه تا ونه رسوم |
| عَلَى أَبْوَابِ الْخَيْرِ اَلصَّوْمُ جُنَّةٌ وَ الصَّدَقَةُ تُطْفِئُ الْخَطِيْئَةَ |
| دخیراونیکۍ تردروازې(نوواوره)روژه ډال ده اود الله په لارکې مصرف کول ګناهونه داسې دمنځه وړي |
| كَمَا يُطْفِئُ الْمَاءُ النَّارَ وَ صَلَاةُ الرَّجُلِ فِيْ جَوْفِ اللَّيْلِ ثُمَّ |
| لکه څنګه چې اوبه اورختموي اوپه شپه کې دمؤمن مونځ کول(ګناهونه ختموي)بیارسول الله صلی الله علیه وسلم |
| تَلَا تَتَجَافَى جُنُوْبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ حَتَّى بَلَغَ يَعْمَلُوْنَ ثُمَّ |
| داآیت کریمه تلاوت کړ ﴿تَتَجَافَى جُنُوْبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ﴾ تردې چې ورسید ﴿يَعْمَلُوْنَ﴾ ته بیا رسول |

قَالَ أَلَا أَدُلُّكَ بِرَأْسِ الْأَمْرِ وَ عَمُودِهِ وَ ذِرْوَةِ سَنَامِهِ

الله ﷺ وفرمايل: آيا تاته د هغه شي (يعني دين) سر د هغه ستنه او د هغه لوړوالی درونه ښايم؟ ما

قُلْتُ بَلَى يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ

عرض وکړو چې راته وې ښايه يا رسول الله! خامخا يې راته وښايه، رسول الله ﷺ وفرمايل: د

رَأْسُ الْأَمْرِ الْإِسْلَامُ وَ عَمُودُهُ الصَّلَاةُ وَ ذِرْوَةُ سَنَامِهِ الْجِهَادُ ثُمَّ

هغه شي (دين) سر اسلام دی، دَ هغه ستنه مونځ دی او د هغه لوړوالی جهاد دی، بيا رسول الله ﷺ

قَالَ أَلَا أُخْبِرُكَ بِمِلَاكِ ذَلِكَ كُلِّهِ قُلْتُ بَلَى يَا نَبِيَّ اللهِ

وفرمايل: آيا تاته د همدې ټولو شيانو جرړه (ولې) ونه ښايم؟ ما عرض وکړو چې ولې نه يا رسول الله! خامخا

فَأَخَذَ بِلِسَانِهِ فَقَالَ

يې راته وښايه، بيا نبي عليه السلام خپله مبارکه ژبه ونيوله د هغې طرف ته يې اشاره وکړه او وې فرمايل: دا

كُفَّ عَلَيْكَ هٰذَا فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللهِ وَ إِنَّا لَمُؤَاخَذُونَ بِمَا نَتَكَلَّمُ بِهِ

بنده وساته ما عرض وکړو ای د الله رسوله! آيا مونږ نيولی کيږو په هغه څه چې مونږ يې د خپلې ژبې نه وباسو؟

قَالَ ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ يَا مُعَاذُ وَ هَلْ يَكُبُّ النَّاسَ فِي النَّارِ

نبي عليه الصلاة والسلام وفرمايل: معاذه! مور دې درباندې بوره شه په ښه طريقه پوهه شه خلک چې په دوزخ کې

عَلَى وُجُوهِهِمْ أَوْ عَلَى مَنَاخِرِهِمْ إِلَّا حَصَائِدُ أَلْسِنَتِهِمْ [1]

پړمخ يا څټ مخ په دوزخ کې غورځيږي دا خو د دوی د ژبې کار دی

**توضيح: بعمل**: تنوين د تعظيم دپاره دی: **اي بعمل عظيم يدخلني الجنة**. د دې جملې نه معلومه شوې چې جنت ته داخليدل د نيکو اعمالو د وجهې دي، سره د دې په نورو روايتونو کې تصريح ده چې جنت ته داخليدل د الله تعالی په فضل رحم او کرم سره دي، د دې جواب دا دی چې دا د سبب طرف ته اسناد مجازي دی نو ترتيب داسې دی **اخبار النبي** ﷺ سبب دی د عمل او عمل سبب دی د الهي فضل او الهي رحمت او الهي فضل سبب دی د دخول جنت نو مجازاً د عمل طرف ته د دخول جنت نسبت

---

(۱) أخرجه الترمذي ۱۳/۵، رقم الحديث: ۲۶۱۶، وابن ماجه في سننه ۱۳۱۴/۲، رقم الحديث: ۳۹۷۳، واحمد في المسند ۲۳۱/۵.

صحیح دی. د بعضو محقیقنو خیال دی چې نفس داخله خو به په الهي فضل سره وي، مګر د درجاتو تقسیم او د درجاتو تفاوت د اعمالو صالحو په تفاوت سره دی.

**ویباعدني من النار**: معلومه شوه چې ددې دخول نه مراد دخول اولی دی. (المرقات ۱/۱۹۱).

**لقد سألت عن امر عظیم**: شیخ عبد الحق رَحِمَهُ اللّٰهُ په لمعات کې لیکلي دي چې د دې جملې دوه مفهومه او مطلبونه دي، رومبی دا چې ستا سوال یو عظیم الشان سوال دی (ځکه چې د دخول جنت او د نجات عن النار د سبب سوال دی) دا چې د دې شیانو تعلق د غیبي امورو سره دی لهذا د دې جواب د هغه چا دپاره آسان دی د کوم دپاره یې چې الله آسان کړي (او هغه انبیاء کرام کیدلی شي).
دویم مفهوم او مطلب دا چې ستا دا سوال د یوه مهتم بالشان فعل په باره کې دی، ځکه چې داسې افعال په نفس باندې ډیر سخت او ګران دي، مګر د چا دپاره یې چې الله تعالی آسان کړي د هغو دپاره پرې عمل کول آسان دي. (المرقات ۱/۱۹۲،اشعة اللمعات ۱/۶۵)

**تعبد الله**: دا صیغه یا د امر په معنی سره ده **اعبدالله** دی او د مبتداء مقدر خبر دی: **ای هو أن تعبد الله**

په دې جمله کې د توحید ذکر شوی او په وروستنو جملو کې د اعمال صالحو ذکر راغلی، ځکه چې د توحید نه بغیر هیڅ عبادت قابل قبول نه دی. (المرقات ۱/۱۹۲)

**الا ادلک علی ابواب الخیر**: ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ او شیخ توریشتي رَحِمَهُ اللّٰهُ ویلي دي چې ددې نه مراد نوافل دي، ځکه چې په نفلي اعمالو سره په فرائضو کې استحکام او مضبوطوالی راځي، او همدا وجه ده چې نوافل د فرائضو باب او دروازه ګرځول شوي دي، لهذا د نوافلو په ترک (پرېښودلو) سره په فرائضو کې عدم استحکام او کمزوري راځي، لکه څرنګه چې تفسیر کبیر علامه طیبي رَحِمَهُ اللّٰهُ او نورو علماء کرامو لیکلي دي چې د نفلونو مستحباتو او سنتو په پرېښودلو سره په هره مرحله کې د ترتیب سره پورتني عملونه دسزا په طور کمزوري کیږي(المرقات ۱/۱۹۳) لکه چې ویل شوي: **من ترک الادب عوقب بحرمان النوافل ومن عوقب بحرمان النوافل عوقب بحرمان السنن ومن عوقب بحرمان السنن عوقب بحرمان الفرائض ومن عوقب بحرمان الفرائض یوشک ان یعاقب بحرمان المعرفة.**

**دالا ادلک**: په جواب ورکولو کې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت معاذ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د پوښتنې انتظار ونه کړو بلکې په خپله یې جواب ورکړ یا په دې کې اشاره ده چې دا مسئله دومره مهمه او مهتم بالشان ده چې د سامع جواب ته انتظار کول ضروري نه دي. (المرقات ۱/۱۹۳).

**الصوم جنة**: **جنة** د **جیم** ضمه ده او لون مشدد دی د **جیم** او ددوه نونونو په ماده کې د ستر (پټوالي)

په معنی راغلی ، لکه جنت، جنین، جن، جنون، جتنون، جنة، په ټولو کې د پټوالي معنی موجوده ده، د روژې په حالت کې چونکه انسان وږی وي او د لوږې او تندې د وجې د انسان په رګونو کې د وینې منډه وهل بند وي او شیطان په همدې وینې سره په رګونو کې منډې وهي نو ځکه د روژې د وجهې دا په انسان کې تصرف نه شي کولی، ځکه چې روژه قاطع الشهوات ده نو انسان د اور نه بچ کیدی شي، لهذا روژه دالدی د اور نه او هم د شیطان د تصرفاتو نه، په دې شرط چې انسان په خپله دغه دال مات نه کړي او د هغه ماتول دا دي چې د روژې سره منافي امور ترسره کړي. (المرقات ۱/۱۹۳).

**والصدقة تطفئ الخطيئة :** خطایا خطیئة د ګناه په معنی سره دی، بعضو ددې نه صغیره ګناه مراد اخیستي، دلته د تطفئ په لفظ کې د اور مفهوم پروت دی نو د ګناه تشبیه د اور سره ورکړی شوې ده او د صدقې تشبیه د اوبو سره ورکړی شوې ده، نو روژه د ګناهونو د اور دپاره دال جوړه شوه، مګر د ګناهونو د حرارت امکان بیا هم وو نو په دې جمله کې د ګناهونو د حرارت ختمولو دپاره د صدقې ذکر وکړی شو، په صدقې سره د ګناهونو حرارت ختمیدلی شي. (المرقات ۱/۱۹۴).

**وصلوة الرجل :** دا عبارت مبتداء دی او کذلک خبر محذوف دی :ای **تطفئ الخطیئة**.

**في جوف اللیل :** د شپې په مینځ کې، ځکه چې په دې کې کمال اخلاص هم وي او دا عمل په نفس باندې سخت هم دی. (المرقات ۱/۱۹۴).

**رأس الامر :** حافظ تورپشتي رَحِمَهُ اللهُ ویلي چې د **رأس الامر** نه مراد شهادتین او اسلام دواړه دي او په جواب کې اسلام بنودل شوی. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې د **رأس الامر** نه مراد اصل او جرړې (ولې) دي او په جواب کې چې کوم اسلام راغلی دی د هغه نه مراد شهادتین دي. (المرقات ۱/۱۹۴).

**وعموده : مایعتمد علیه الشيء ،** بنیاد او ستنه مراد دي او مونځ د دین ستنه ده.

**وذروة سنامه الجهاد :** ذروة په کسرې سره ډیر مشهور دی، همدارنګه ضمې سره هم ویل شوی دی او په فتحې سره هم راغلی دی، د ذروة جمع ذری ده کوم چې د اعلی او لوړ (اوچت) په معنی راغلی دی، په حقیقت کې د هرشي لوړې (اوچتې) او اعلی برخې باره کې همدا لفظ استعمالولی شي، برابره خبره ده که مکان وي یا غرونه ، که جسم وي او یا بل څه وي، دلته د اسلام د یوه قوي الجثه اوښ سره تشبیه ورکړی شوې ده، بیا د اوښ د لوازماتو نه د هغه کوب دی، بیا د کوب یوه اوچته برخه ده کومه چې د رفعت اوعظمت ضامنه ده، په اسلام کې د جهاد مقام په همدې حیثیت سره ښکاره شوی(المرقات ۱/۱۹۵)

علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي :**اشارة الی صعوبة الجهاد وعلو امره وتفوقه علی سائر الاعمال**، یعنې د

ذروة په لفظ سره اشاره ده چې جهاد یو مشکل عمل دی او یو عالي شان حکم یې دی کوم چې په ټولو اعمالو باندې فوقیت لري. (الکاشف ۱۷۶-۱/۱۷۷).

سنامر : (کوب) ته ویل شوي دي جمع یې اسنمة راغلې ده.

دلته روژه، صدقه او په نیمه شپه کې د قرآن تلاوت کول د نجات اعمال بیان شوي دي نو د دې ترتیب او ربط داسې دی چې د توحید نه بغیر خو هیڅ عمل معتبر نه دی نو ځکه یې هغه ذکر کړ بیا یې د اسلام احکام مونځ، روژه، زکوة او حج دا فرائض د توحید د لوازماتو نه وو د هغو ذکر یې وکړ، بیا یې ددې نه وروسته د څو اضافي نوافلو ذکر وکړ د ابواب الخیر په نوم سره، بیا یې ددې نه وروسته د الهي عذاب نه د بچ کیدو درې شیان ذکر کړل مګر د جدا جدا خاصیت سره چې روژه د دفع شهوات او کسر شهوات په ذریعه الهي عذاب ختموي او صدقه الهي غضب ختموي او الهي عذاب دفع کوي او قرآن کریم د الله تعالی مدلل کلام دی هغه د دلیل په قوت سره الهي عذاب د انسان نه دفعه کوي.

د دې روایت په مختلفو جملو باندې د نظر په اچولو سره تاسو دا ویلی شئ چې دلته په عجیب انداز سره ددین اسلام تصور وړاندې کړی شوی دی، یعني لکه څرنګه چې د بدن دپاره سر مهم دی همدارنګه ایمان د توحید عقیده او رسالت د دین دپاره په منزله د سر دی، که چیرته توحید او رسالت نه وو نو دغه بدن د سر نه بغیر په کار راتلونکی نه دی، بیا د دغه جسماني وجود د کار جوړیدو دپاره ستنې د نظره نه شي غورځول کیدی که نه نو د اسلام عمارت به په اصلي حالت کې باقي پاتې نشي، لهذا دلته د همدې ستنو مونځ، روژو، زکوة او حج تذکره راغله، بیا د همدغه جسماني عمارت عظمت شان او شوکت جوړول او د هغه د شوکت زیاتولو دپاره او د ټول عمارت د حفاظت دپاره د جهاد ضرورت دی، په کوم باندې چې ددین دشوکت، عظمت دترقۍ اوپراخۍ مدار دی، که چیرته جهاد د اسلام په بنیادي ضروریاتو کې شمار نه کړی شي نو دین به یو بې اثره قالب پاتې شي، نو ځکه یې په آخر کې وفرمایل وذروة سنامه الجهاد. د جهاد تعریف، اقسام، فضائل او احکام به ان شاء الله په کتاب الجهاد کې راشي.

اوښ یو داسې ځناور دی په کوم کې چې د برداشت کولو ډیر څه شته دی، دا د ریګستان(دشګلنو دښتو) جهاز دی، طاقتور دی، تر څو هفتو پورې د خوراک او څښاک نه بغیر ګوزاره کولی شي او د خپل (کو) په چربۍ سره ځان ژوندی ساتلی شي، د همدې وجهې ددې سخت ځناور سره د جهاد تشبیه ورکړی شوې ده چې جهاد هم د اسلام دپاره یو مضبوط حصار او قلعه ده.

ملاک ذلک : ملاک الشیء قوامه ای ماتقوم به تلک العبادات، ملاک په کسرې سره او کله په فتحې سره هم ویل کیږي، د کوم شي په ذریعه چې کوم بل شي ته تقویت حاصلیدی شي هغه د ده دپاره ملاک دی د کوم ترجمه چې په اصل او جزء سره شوې ویل شوي. القلب ملاک الجسد. (المرقات ۱/۱۹۵).

**کف علیک هذا** : یعنې د ژبې حفاظت وکړئ او هغه د فضولیاتو او بې فائدو خبرو نه وساتئ نو په دې سره ټول احکامات شرائع محفوظ او مضبوط او مستحکم کیدلی شي. (المرقات ۱/۱۹۵).

**ثکلتک امک** : ثکل فقد الولد د زوی ورکیدو ته ویل کیږي، یعنې مور درباندې بوره شه او په تا دې وژاړي، دا کلمه په عربي محاوره کې د تعجب په وخت کې ویل کیدی شي، واضع په اصل کې دا د ښیرې دپاره وضعه کړې ده، لیکن د دې استعمال په ښیرو کې نه کیږي، بلکې دا د تادیب او تنبیه دپاره استعمال شوې ده، بهر حال دلته حضرت معاذ رضي الله عنه په تعجب سره پوښتنه وکړه چې آیا ژبې په محض خبرو سره مواخذه کیږي؟ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هم په یو څه قدرې سختۍ سره جواب ورکړو چې په دوزخ کې په حقیقت کې د ژبې بې احتیاطي بنیادي حیثیت لري، د غټو غټو ګناهونو او د غټو غټو فتنو تعلق د ژبې سره دی. ـــ

*ہرچہ بر آدمی رسد ز زیان ہمہ از آفت زبان برسد*

**یکب** : دا په مجرد سره د نصر نه د پړمخ لویدو دپاره راغلی دی، او د باب افعال نه هم په دې معنی سره راغلی دی، په حدیث کې د باب افعال نه راغلی دی.

**الا حصائد السنتهم** : حصائد د حصیدة جمع ده کوم چې د محصودة په معنی سره دی، د فصل ریبلو ته ویل کیږي، دلته د **محصودات الالسنة** یعنې د انسان د ژبې او د بې فائدو خبرو د هغه فصل سره تشبیه ورکړې شوې ده کوم چې په تیره لور سره ریبل کیږي، دا یوه فصیحه او بلیغه تشبیه ده، ګویا چې ژبه په روا او ناروا خبرو کې داسې اخته وي لکه څرنګه چې لور د وښو او ګیاه ریبلو په وخت کې دا تمیز نه کوي چې دا څه قسم واښه ریبي، آیا فائده رسوونکي هم دي او که زهر قاتل دي.

بهر حال دلته د ژبې خطرات په نهایت بلیغ انداز سره بیان شوي، ځکه چې ژبه د خیر او د شر جرړه ده. (المرقات ۱/۱۹۶).

امام شافعي رحمه الله فرمایلي دي:

احفظ لسانک ایها الانسان ✿ لا یلدغنک انه ثعبان (المرقات ۱/۱۹۶)

۶ ذوالحجة ۱٤۰۹هـ

## کامل ایمان څه دی؟

(۲۸) وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَحَبَّ لِلّٰهِ.

دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي علیه السلام وفرمایل : کوم کس چې د الله دپاره محبت وکړي او د

وَ أَبْغَضَ لِلّٰهِ ، وَ أَعْطَى لِلّٰهِ ، وَ مَنَعَ لِلّٰهِ ،

الله تعالى دپاره دچاسره بغض اودښمني وکړي او دالله دپاره مصرف (خرچ) وکړي او دالله دپاره مصرف بند

فَقَدِ اسْتَكْمَلَ الْإِيمَانَ . [1] رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَرَوَاهُ التِّرمذي عَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ مَعَ

کړي يقينا دې کس ايمان پوره کړ. ابوداؤد او ترمذي دا روايت د حضرت معاذ رضي الله عنه نه د يو څه

وَ تَأْخِيرٍ ، وَ فِيهِ : فَقَدِ اسْتَكْمَلَ إِيمَانَهُ [2].

تقديم او تاخير سره نقل کړي دی د کوم چې اخيرني الفاظ دا دي : پس يقينا هغه خپل ايمان کامل کړ.

**توضيح: من احب لله اى من احب شيئا لله وابغض شيئا لله واعطى شيئا لله ومنع شيئا لله:** رسول الله صلى الله عليه وسلم دلته څلور څيزونه د ايمان د تکميل دپاره د نښې (علامې) په طور بيان کړي دي، ددې څلورو تخصيص ددې وجهې شوی دی چې همدغه څلور څيزونه د نفس د خوندونو د قبيلې نه دي نو ځکه په دې څيزونو کې اخلاص پيدا کول ډير مشکل دي، هر کله چې کوم کس د نفس په خوندونو کې د اخلاص په پيدا کولو کې کامياب شي نو هغه په نور څيزونو کې بيا په درجه اولى مخلص وي او همدا د ايمان کمال دی.يا داسې پوهه شئ چې همدغه خصلتونه ددې وجهې خاص شوي دي چې دا ټول کيفيتونه د زړه سره متعلق دي، هر کله چې زړه سم کړی شي نو ټول انتظام سميږي، ګويا چې داسې ويل شوي چې د اعمال قلبي او اعمال قالبيو سمول کامل ايمان دی، ښکاره خبره ده کله چې د کوم انسان احساسات او جذبات، حرکات او سکنات، خيالات او تصورات، د هغه ايجابي او سلبي رجحانات او د هغه د راشه درشه تعلقات خالص د الله تعالى د رضامندۍ او خوشحالو تابع شي نو د هغه ايمان په کامله درجه کې مکمل کيږي. (المرقات ۱/۱۹۷)

## د ټولو نه بهتر عمل کوم يو دی

(۲۹) وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ « أَفْضَلُ الْأَعْمَالِ

دابوذر رضي الله عنه نه روايت دی چې نبي عليه السلام وفرمايل (په باطني) اعمالو کې د ټولو نه بهترينه مرتبه د

الْحُبُّ فِي اللهِ وَ الْبُغْضُ فِي اللهِ » . [3]

هغه عمل ده چې دالله دپاره دچاسره محبت وکړی شي او دالله دپاره دچاسره بغض او دښمني وساتل شي.

(۱) اخرجه ابوداود في سننه ۶۰/۵ ، رقم الحديث: ۴۶۸۱.

(۲) أخرجه الترمذي ۵۷۸/۴،رقم الحديث :۲۵۲۱، واحمد في المسند ۴۴۰/۳.

(۳) أخرجه ابوداود في سننه ۶/۵ ، رقم الحديث ۴۵۹۹.

**توضیح**: دا عملونه ددې وجهې د ټولو نه بهتر ګڼل شوي دي چې دا د زړه اعمال دي کوم چې صرف الله تعالی ته معلوم دي، نو ځکه له رياکارۍ نه محفوظ دي، د زړه (قلبي) کيفيت د وجهې يې چاته ښودلو امکان نشته دی.

## رښتونی مؤمن څوک دی؟ او د جهاد مفهوم څه دی؟

| |
|---|
| (۳۰) وَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «اَلْمُسْلِمُ مَنْ |
| د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې نبي علیه السلام وفرمايل: (کامل او رښتونی) مسلمان هغه دی |
| سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِسَانِهِ وَ يَدِهِ . وَ الْمُؤْمِنُ مَنْ |
| د کوم دلاس او ژبې دضرر نه چې نور مسلمانان محفوظ وي او (پوخ صادق) مؤمن هغه څوک دی د کوم نه |
| أَمِنَهُ النَّاسُ عَلٰى دِمَائِهِمْ وَ أَمْوَالِهِمْ [1] (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ النَّسَائِيُّ وَ زَادَ |
| چې خلک خپل ځانونه او خپل مالونه محفوظ ګڼي، دا روايت ترمذي او نسائي نقل کړی دی، او زيات |
| الْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ بِرِوَايَةِ فَضَالَةَ : وَ الْمُجَاهِدُ مَنْ |
| کړي بيهقي په شعب الايمان کې د فضاله رضي الله عنه په روايت کې دا الفاظ چې: مجاهد هغه څوک دی چا چې |
| جَاهَدَ نَفْسَهُ فِيْ طَاعَةِ اللهِ ، وَ الْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ الْخَطَايَا وَ الذُّنُوْبَ).[2] |
| د الله په اطاعت کې په خپل نفس سره جهاد وکړو او مهاجر هغه څوک دی چې واړه او غټ ګناهونه يې پريښودل |

**توضیح**: ددې حديث په اوله برخه باندې په حديث نمبر (۴) کې بحث شوی دی هلته دې وکتل شي، دلته مختصر عرض دا دی چې په حديث کې حصر ادعائي دی چې مسلمان خو هغه دی د چا دلاس او ژبې نه چې نور مسلمانان محفوظ وي او مؤمن هغه دی کوم چې خلک په خپلو نفسونو او خپلو مالونو امين ګڼي.

دلته د مسلم او مؤمن په لغوي معنی سره مسئله واضحه شوې ده چې د هر يوه د اشتقاق مبدأ ملحوظ ساتل په کار دي، اوس که چيرته يو څوک وايي چې زه مسلم يم او په هغه کې سلامتي نه وي او هغه د سلامتۍ په صفت متصف نه وي نو هغه داسې دی لکه هغه چې خپل ځان ته کريم او سخي وايي او په هغه کې کرم او سخاوت نه وي، همدارنګه مؤمن د امن نه مشتق دی نو په مؤمن کې که چيرته امن نه وو نو هغه داسې دی لکه خپل ځان ته چې کريم وايي او کرم په کې نه وي، نو په کار ده چې مسلم او مؤمن په خپلې مبدأ اشتقاق سره خپل ځان متصف کړي که نه نو د ايمان او د اسلام دعوه يې باطليږي،

---

(۱) أخرجه الترمذي ۱۸/۵، رقم الحديث: ۲۶۲۷، والنسائي ۱۰۵/۸، رقم الحديث: ۴۹۹۶.

(۲) البيهقي في شعب الايمان ۴۹۹/۷، رقم الحديث: ۱۱۱۲۲، وأخرجه في المسند ۲۱/۶.

(**والمجاهد من جاهد لفسه في طاعة الله**) د جهاد لغوي تعريف اوبيا شرعي تعريف علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ په فتح الباري کې او ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ په مرقات کې کړی دی. لهذا ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي : **الجهاد بکسر الجيم هو المشتقة لغة وشرعًا بذل الجهد في قتال الکفار**. (فتح الباري).

ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي : **الجهاد بکسر الجيم وهو المشقة لغة وشرعًا بذل المجهود في قتال الکفار**. (المرقات).

په دې دواړو تعريفونو کې د کفارو سره قتال په تعريف کې داخل دی، اصلي حقيقي او شرعي تعريف همدا دی او مطلق جهاد ورته ويل کيږي، د کنز العمال په کتاب الايمان کې حديث دی : **قيل ما الجهاد قال ان تقاتل الکفار اذا لقيتهم**، اوس اصطلاحي او شرعي مفهوم تعارف او تعريف همدا دی چې دا پرېښودل شي نو د جهاد د لغوي تعريف ته تلل مناسب نه دي. په لغوي تعريف سره اسلامي احکامات نه شي پيژندل کيدلی بلکې مدار په اصطلاحي تعريف باندې دی. اوس په دې حديث کې د مسلم مؤمن او مهاجر په لفظ د ټولو د اشتقاق مبدأ د لغوي مفهوم په اعتبار سره ښکاره شوې ده چې هغه څه مسلم دی په کوم کې چې سلامتي نه وي، هغه څه مؤمن دی په کوم کې چې د لغوي مفهوم مبدأ امن نه وي، هغه څه مهاجر دی په کوم کې چې د ترک عن الخطايا مبدأ نه وي، هغه څه مجاهد دی په کوم کې چې د جهاد د اشتقاق مبدأ (**جهد لفس في طاعة الله**) نه وي، اوس که چيرته سلامتي د مسلمان اصطلاحي تعريف نه دی او امن د مؤمن شرعي تعريف نه دی او **هجران عن الخطايا** د مهاجر شرعي تعريف نه دی نو د نفس جهاد هم د جهاد او د مجاهد اصطلاحي تعريف نه دی. افسوس په دې دي چې په هر ځای کې شرعي تعريف شوی دی د هغه د جامع او مانع جوړولو کوشش ټولو حضراتو کړی دی، د فاعل تعريف د مفعول تعريف د استثنی او د تنازع فعلان تعريف د مبتداء او خبر تعريف او نور تعريفونه خو جامع او مانع جوړ شوي دي، مګر د جهاد په تعريف کې کوشش نه دی شوی او نه د هغه د جامع او مانع جوړيدو کوشش شوی دی، بس د جهاد لفظ چې چيرته راغلی د دنيا ټول شيان په هغه کې داخل شوي، هره نيکي د هغه مصداق جوړه شوې ده او هره نيکي په جهاد کې داخله شوې ده او د معناګانو په همدې هجوم کې جهاد ورک شوی، او په خارج کې د هغه د مفهوم د راتلو نه مخکې هغه دباو شوی او د قرآن د دې آيت کريمه خيال نه دی ساتل شوی چې ﴿ **وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا** ﴾ هلته ناستو خلکو ته مجاهدين نه دي ويل شوي، سره د دې نه چې هغوی د ټولو نيکيو کوونکي وو، د هغوی د نفس عمل او د نفس مجاهدې ته جهاد اکبر نه دی ويل شوی، بلکې اعلی فضيلت هغو خلکو ته ورکړی شوی دی کوم چې د جهاد ميدان ته وتلي وو، او شاته ناستو خلکو ته قاعدين ويل شوي دي، زه په چا باندې

اعتراض کول نه غواړم، زه د ټولو شارحينو قدر کوم او د هغوی نه خوشحاله يم او د هغوی په قلبي طور واجب الاحترام گڼم، ليکن زه په نهايت آدب سره د هغوی نه د نورو احکامو په شان د جهاد شرعي او اصطلاحي تعريف هم غواړم کوم چې ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ او نورو کړی دی په کوم سره چې ټول شبهات زائل شوي دی ، دا مسئله به ان شاء الله په کتاب الجهاد کې په تفصيل سره راشي، دلته صرف عرض دا دی

چې (**والمجاهد من جاهد نفسه**) دا صرف د لغوي مفهوم په رڼا کې د مبدأ اشتقاق حواله ورکړی شوې ده چې که چيرته مجاهد وو او په رښتيا يې د جهاد په شان د غټ کار کولو دعوه کوله نو هغه نفس ولې نه قابو کوي.؟ کافر دښمن خو وژني ليکن د خپل نفس د خواهشاتو په مقابل يې ماتې (شکست) خوړلی

دی نو دا داسې ده لکه : **صلت على الاسد وبلت من النقد**، يعنې په زمري باندې خو يې حمله وکړه ليکن بزه (پسه) يې چې وليد نو متيازې يې لاړې.

حضرت مولانا رشيد احمد گنگوهي رَحِمَهُ اللهُ په کوکب الدري کې د دې جملې مفهوم داسې بيان کړی:

**ولايخفى مابين الجهادين من الإلتأم والاتصال فان مجاهدة الكفار لاتخلو عن مجاهدة النفس ولاتتصور دونها ومجاهدة النفس اذا كملت لاتكاد الرجل لايجاهد الكفار بلسانه او بسنانه. (كوكب الدري ۱/٤۲٥).**

يعنې په جهاد نفس او جهاد د کفارو دواړو کې چې کوم اتصال او توافق دی هغه د هيچا نه پټ نه دی، ځکه چې د کفارو سره د جهاد په ضمن کې د نفس سره جهاد کول هم شته دی، بلکې د نفس سره د جهاد کولو نه بغير د هغه تصور هم نه شي کيدلی، او د نفس مجاهده چې کله مکمل شي نو بيا انسان په توره يا په ژبه د کفارو سره د جهاد کولو نه بغير نه شي پاتې کيدی، ددې تصريح نه وروسته دا خبره ښکاره شوه چې دنفس سره جهاد دا اصلي جهاد دی، دا جهاد اکبر دی، هغه نږدې دښمن دی اول د هغه سره وجنگيږئ او دهغه سره جگړه وکړئ، نو په دې سره يو عام انسان د خپل اصل مقصد نه لرې ووځي که چيرته د کفارو سره د مقابلې پر ځای د جهاد په کوم شي باندې د لغوي اطلاق شوی دی يا د نفس د خطراتو نه د ځان ساتلو دپاره کومه تنبيه راغلې ده نو دهغې مطلب خودانه دی چې اصلي شرعي جهاد غائب (ورک) کړئ.

**والمهاجر** :دهجرت متعلق په مخکني حديث کې خبره تيره شوې ده.

**الخطايا**: **خطيئة** وړه گناه او **الذنوب** غټه گناه مراددي،بعضې اهل لغت داترتيب ورکړی:(۱) سيئات (۲) خطايا (۳) ذنوب (۴) معاصي، په همدې ترتيب سره اول واړه بيا غټ گناهونه دي، په خطايا کې عمد نشته او په ذنوبو کې عمد دی.

## د ديانت او په وعده د وفا كولو اهميت

(۲۱) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَلَّمَا خَطَبَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دانس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې زمايرورراندې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام شاذ او نادر كومه خطبه داسې وركړې

إِلَّا قَالَ لَا إِيمَانَ لِمَنْ لَا أَمَانَةَ لَهُ ،

په كومه كې يې چې داسې نه وي ويلي چې په كوم كس كې چې امانت نشته د هغه ايمان هم نشته او په چا

وَلَا دِينَ لِمَنْ لَا عَهْدَ لَهُ (۱).

كې چې په وعده باندې وفا نشته د هغه هيڅ دين نشته.

**توضيح**: (۱) شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات او اشعة اللمعات كې ويلي دي چې كه چيرته په دې حديث كې د امانت نه مراد امانتونه دي كوم چې د خلكو په مينځ كې د مالونو مجلسونو رازدارۍ او حفاظت سره متعلق دي او د عهد نه هم د خلكو په مينځ كې وعدې او معاهدې دي نو بيا د تشديد او تغليظ په طور په ايمان كې د كمال ايمان نفې شوې چې هغه كس كامل مسلمان نه دی كوم چې د خلكو په امانتونو كې خيانت وكړي.(۲) او كه چيرته د امانت نه مراد شرعي تكاليف وي د كوم طرف ته چې په دې آيت ﴿إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ﴾ كې اشاره شوې او د عهد نه مراد د عالم ارواح وعده ﴿أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى﴾ ده نو بيا د ايمان په نفې كې هيڅ اشكال نشته، ځكه چې هغه خو پوره دين دی، نو دا قسم امانت او عهد كه چيرته په كوم كس كې نه وي نو په هغه كې ايمان نشته نو په اصل كې د ايمان نفې ده.(۳) بعضو علماء كرامو د امانت نه مراد فرائض دين او حدود الله اخيستي.(۴) د علامه شبير احمد عثماني رَحِمَهُ اللهُ رأيه دا ده چې د امانت نه مراد د ايمان او هدايت يو تخم او استعداد دی كوم چې د انسان په زړه كې پروت دی، د كوم طرف ته چې د حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روايت سره اشاره شوې (الامانة نزلت من السماء على جذر قلوب الرجال ..الخ) ويل شوي دي بيا چې قرآن نازل شو هغه استعداد نور هم ژور ښكته لاړو، د دې روايت په اعتبار سره امانت هغه خلقي او طبعي استعداد دی كوم ته چې فطرت ويل شوی دی د دې تفصيل تير شوی دی.

(۵) ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې كوم خلك د عام خيانت او بد عهدۍ عادتي وي او بيا په همدې بد عهدۍ او خيانت كولو كې په ترقي كولو كولو سره كفر ته ورسيږي نو ممكنه ده چې همدا

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۷۸/۴، رقم الحديث : ۴۳۵۴،واحمد في المسند ۱۵۴/۳.

قسم خلک په دې حدیث کې مراد وي نو بیا دا حکم په اعتبار د (مایؤول الیه) سره کیږي چې په چا کې بالکل امانت او ایفاء عهد پاتې نه شي بلکې هغه د کفر درجې ته ورسیږي نو نه د هغه ایمان شته، او نه د هغه دین شته، امانت مع الله دا دی چې د هغه جَلَّ جَلَالُهٗ د اوامرو او نواهیو پوره خیال وساتل شي او امت مع الخلق دا دی چې په معاملاتو کې د دوی د حقوقو خیال وساتل شي، نو د حقوق الله او حقوق العباد خیال ساتل کامل ایمان دی. (المرقات ۱/۲۰۰).

اوس دلته یو اشکال دی او هغه دا دی چې ددې نه مخکې تیر شول چې ایمان او دین یو دي، بیا دین او ایمان د جدا جدا معنی سره ولې ذکر کړی شول په کوم سره چې تباین معلومیږي؟.

نو جواب دا دی چې په ایمان، دین او اسلام کې د یوې رایې مطابق تباین.دی نو دلته د تباین په طور بیان شوي دي، دویم جواب دا دی چې په معنوي اعتبار سره ایمان او دین متحد دي، دلته د دواړو ذکر کول معنوي تکرار دی کوم چې د تاکید دپاره دی، لفظي تکرار نشته دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د ابدي نجات ضامن

| |
|---|
| (۲۲) عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: |
| د عباده بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي چې فرمایل یې |
| مَنْ شَهِدَ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ |
| کوم کس چې په (رشتني زړه سره) د دې خبرې ګواهي ورکړه چې د الله تعالی نه غیر بل هیڅ معبود نشته |
| وَ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللهِ حَرَّمَ |
| او محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله رسول دی نو الله تعالی به (په خپل فضل او کرم سره) په ده باندې حرام کړی |
| اللهُ عَلَيْهِ النَّارَ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ ۱/۴۲)[1]. |
| د دوزخ اور (ابتداءً یا انتهاءً). |

**توضیح**: د حدیث تشریح مخکې ذکر شوې ده.

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۵۷ رقم الحديث: ۴۷-۲۹، أخرجه الترمذي ۵/۲۳.

## د توحيد اهميت

(۳۲) وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَاتَ

د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه نه روايت دی چې نبي علیه السلام وفرمايل : كوم كس چې مړ شو په دې

وَ هُوَ يَعْلَمُ أَنَّهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ .[1] (رَوَاهُ مُسْلِمٌ ۱/۴۱)

عقيده باندې چې د الله تعالى نه بغير بل هيڅ (حاجت روا مشكل كشا) معبود نشته نو دا كس جنتي دی.

**توضيح** : **وهو يعلم**: د علم نه مراد علم يقيني او عقد جازم دی، صرف معرفت نه دی، او عقد جازم انقياد او تسليم لره مستلزم دی، عقد جازم او د هغه د عقيدې لرلو وروسته په دې كې هيڅ خبره نشته چې دغه كس ته د زباني اقرار وخت نه دی پيدا شوی، يا خو وخت ورته پيدا شوی دی مگر سمدستي يې اقرار نه ده كړی، يا دا چې په زباني اقرار باندې قادر نه وو، يا دا چې د اقرار په وجوب باندې يې علم نه لرلو، يا كوم چا د ده نه د اقرار كولو غوښتنه ونه كړه او دا كس مخكې مړ شو نو په دغو ټولو صورتونو كې دا كس جنتي دی او همدا عقيده كافي ده او د **وهو يعلم** همدا مفهوم دی. (المرقات ۱/۲۰۱).

**لا اله الا الله** : د دې جملې سره د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم جمله مستلزمه ده برابره خبره ده كه څوك د دې ذكر وكړي او كه يې ونه كړي ، ځكه چې لا اله الا الله د شهادتينو دپاره عَلَم دی نو ايمان **بالرسالة** هم په هغه كې راغی لكه څرنگه چې مخكې تحقيق تير شو.

دخل الجنة : كه دخول اولي وي كه ثانوي وي دا ټول بحثونه تير شوي دي.

## د جنت او دوزخ واجبوونكې خبرې

(۳۳) وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثِنْتَانِ مُوجِبَتَانِ

د جابر رضي الله عنه نه روايت دی چې نبي علیه السلام وفرمايل: دوه خبرې (د جنت او دوزخ) واجبوونكې دي،

قَالَ رَجُلٌ : يَا رَسُولَ اللهِ ، مَا الْمُوجِبَتَانِ ؟

يو كس پوښتنه وكړه يارسول الله! (د جنت او دوزخ) واجبوونكې دوه خبرې كومې دي؟ نبي علیه السلام

قَالَ : مَنْ مَاتَ يُشْرِكُ بِاللهِ شَيْئًا

وفرمايل: اوله خبره خو دا چې كوم كس په داسې حال كې مړ شي چې هغه بل څوك د الله سره شريك نيولی وو

---

(۱) أخرجه مسلم ۱/۵۵، رقم الحديث ۴۳-۲۶ ، واحمد في مسنده ۱/۶۹.

دَخَلَ النَّارَ ، وَ مَنْ مَاتَ

نوداکس به په دوزخ کې واچول شي او (دويمه خبره داده) څوک چې په داسې حال کې وفات شي چې هغه

لَا يُشْرِكُ بِاللهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ [1].

د الله تعالى سره څوک شريک نه وونيولى نو دا کس به جنت ته لاړ شي.

**توضيح**: **ثنتان**: دا صفت دی موصوف يې محذوف دی يعنې (**خصلتان ثنتان**).

**موجبتان**: محاوره ده: **اوجب الرجل اذا عمل مايجب به الجنة او النار ويقال للحسنة موجبة وللسيئة موجبة**، اوس واجب كوونكى او وجوب د اهل السنة والجماعة په نزد د الله تعالى د خپلې وعدې احسان او اكرام په طور دى، او معتزلو ويلي دي چې په خپله همدا عمل واجبوونكى دى او په الله تعالى باندې بدله (عوض) وركول لازم او واجب دي. (المرقات ۱/۲۰۲).

د حديث مطلب دا شو چې کوم کس د شرک جلي ارتكاب وكړه او په هغه باندې مړ شو نو دوزخ د هغه دپاره واجب دی، او کوم کس چې شرک ونه کړه او د اسلام د توحيد په عقيده باندې مړ شو نو د هغه دپاره جنت واجب دی، خو که چيرته يې د گناهونو ارتكاب وكړ او د سزا مستحق شو او دوزخ ته لاړو نو هميشه به هلته نه او سيږي، بيا به راويستل كيږي او جنت ته به ځي، نو د جنت دخول وشو برابره خبره ده كه اولي شي او كه ثانوي شي. (المرقات ۱/۲۰۲).

**۲۳ ذوالحجة ۱۴۰۹هـ**

## د جنت زيرى

**(۲۵) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كُنَّا قُعُودًا حَوْلَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چې يو ورځ مونږ څو صحابه كرام د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره ناست وو

**وَ مَعَنَا أَبُوبَكْرٍ وَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فِي نَفَرٍ . فَقَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ**

او د مونږ سره حضرت ابوبكر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه هم وو نو پاڅيدلو رسول الله صلى الله عليه وسلم

**مِنْ بَيْنِ أَظْهُرِنَا . فَأَبْطَأَ عَلَيْنَا.**

زمونږ د مينځ نه او كوم ځاى ته بهر يې تشريف ويوړ كله چې نبي عليه السلام لاړو او ډير وخت يې تير كړو نو د

[1] أخرجه مسلم ۹۴/۱، رقم الحديث ۱۵۱-۹۳، واحمد في المسند ۱۹۱/۳.

وَ خَشِيْنَا أَنْ يُقْتَطَعَ دُوْنَنَا ،

مونږ سره سخت تشویش پیدا شو چې هسې نه زمونږ په نه موجودیت کې نبي علیه السلام ته د ښمن څه ضرر نه وي

وَ فَزِعْنَا فَقُمْنَا ، فَكُنْتُ أَوَّلَ مَنْ فَزِعَ ،

رسولی مونږ ویرېدو او ورپاڅېدو چونکه د ټولو نه اول کس زه وم چې ویرېدونکی پورته شوم د همدې وجې

فَخَرَجْتُ أَبْتَغِي رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى أَتَيْتُ حَائِطًا لِلْأَنْصَارِ لِبَنِي النَّجَّارِ ،

نه زه د نبي علیه السلام په لټون پسې بهر ووتم د بنو نجار د یو انصاري باغ ته نزدې ورسیدم (په دې خیال

فَدُرْتُ بِهِ هَلْ أَجِدُ لَهُ بَابًا

چې شاید نبي علیه السلام په دغه باغ کې دننه وي) ما دننه ورتلو د پاره څلور واړه طرفونو ته دروازه ولټوله

فَلَمْ أَجِدْ ، فَإِذَا رَبِيْعٌ يَدْخُلُ فِيْ جَوْفِ حَائِطٍ مِنْ بِئْرٍ خَارِجَةٍ

مگر دروازه مې په نظر رانغله ناڅاپه مې یو لښتی ولیده کوم چې بهر کوهي نه باغ ته دننه تلی وو، لهذا

وَالرَّبِيْعُ الْجَدْوَلُ قَالَ : فَاحْتَفَزْتُ فَدَخَلْتُ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

زه په ملاسته په دغه نالی کې ور داخل شوم او دهغې په ذریعه د نبي علیه السلام خدمت ته ورسیدم نبي علیه السلام

فَقَالَ : " أَبُوْ هُرَيْرَةَ ؟ " فَقُلْتُ : نَعَمْ يَا رَسُوْلَ اللهِ ! قَالَ :" مَا شَأْنُكَ ؟"قُلْتُ :

وفرمایل: ابوهریره ته یې؟ ما وویل هو زه یم یارسول الله! نبي علیه السلام وفرمایل: څه خبره ده؟ ما عرض وکړو

كُنْتَ بَيْنَ أَظْهُرِنَا فَقُمْتَ فَأَبْطَأْتَ عَلَيْنَا ،

یارسول الله! ته زمونږ په مینځ کې تشریف فرما وې بیا ته پورته شوې او لاړې، کله مو چې ډیر ناوخته کړو

فَخَشِيْنَا أَنْ تُقْتَطَعَ دُوْنَنَا ،

او را وپس نه شوې نو مونږ ویرېدو چې هسې نه زمونږ په نه موجودیت کې د کومې پیښې سره مخ نه شې

فَفَزِعْنَا ، فَكُنْتُ أَوَّلَ مَنْ فَزِعَ ، فَأَتَيْتُ هٰذَا الْحَائِطَ

او د ټولو نه مخکې په ما باندې ویره راغله، لهذا په تا پسې راغلم او تر دغه باغ پورې را ورسیدم (دلته مې

فَاحْتَفَزْتُ كَمَا يَحْتَفِزُ الثَّعْلَبُ ، وَ هٰؤُلَاءِ النَّاسُ وَرَاءَ الْحَائِطِ ،

دروازه پیدا نه کړه) نو ګیدړې په شان (د لښتې په لاره) راغلم پاتې نور خلک هم په ما پسې شاته راروان دي

فَقَالَ : يَا أَبَا هُرَيْرَةَ ، وَ أَعْطَانِي نَعْلَيْهِ ، فَقَالَ :

(دابي چې واوريده) نبي عليه السلام دواړه پيزاره وويستل او ماته يې راکړل او راته وې فرمايل: اى ابو هريره!

" اذْهَبْ بِنَعْلَيَّ هَاتَيْنِ ،

څه همدا پيزار دځان سره يوسه (دې دپاره چې خلک پوهه شي چې ته ماته راغلى يې) او دباغ نه بهر چې

مَنْ لَقِيتَ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ

کوم کس سره مخ شي او گواهي ورکړي ددې خبرې چې نشته لائق دعبادت مگر يو الله په پوخ اعتقاد او

مُسْتَيْقِنًا بِهَا قَلْبُهُ فَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ ، فَكَانَ

ربښتيني زړه سره نو هغه ته د جنت زيرى ورکړه، حضرت ابو هريره رضي الله عنه ويلي چې دټولو نه مخکې

أَوَّلُ مَنْ لَقِيتُ عُمَرَ ، فَقَالَ : مَا هَاتَانِ النَّعْلَانِ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ ؟ قُلْتُ

اول مې د حضرت عمر رضي الله عنه سره ملاقات وشو هغه پوښتنه وکړه ابو هريره دا پيزار دچا دى؟ ما ورته وويل

هَاتَانِ نَعْلَا رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بَعَثَنِي بِهِمَا ؛

چې دا پيزار دنبي عليه السلام دي، نبي عليه السلام دا پيزار ماته (دنبني په شکل) راکړل ددې دپاره يې راليږلى يم

مَنْ لَقِيتُ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ

چې کوم کس درسره مخامخ شي او گواهي ورکړي ددې خبرې چې نشته لائق د عبادت مگر يو الله په

مُسْتَيْقِنًا بِهَا قَلْبُهُ بَشَّرْتُهُ بِالْجَنَّةِ ،

ربښتوني زړه سره ، نو هغه ته د جنت زيرى ورکړه هر کله چې حضرت عمر رضي الله عنه دا واوريدل نو زه يې

فَضَرَبَ عُمَرُ بَيْنَ ثَدْيَيَّ ، فَخَرَرْتُ لِاسْتِي . فَقَالَ :

په سينه باندې دومره په زوره په لاس ووهلم چې زه د کوناتو په سر شا طرف ته ولويدم او بيا هغه وويل

ارْجِعْ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ . فَرَجَعْتُ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَأَجْهَشْتُ بِالْبُكَاءِ ،

چې ابوهريره څه واپس لاړ شه، لهذا زه دنبي عليه السلام خدمت ته واپس راغلم او ژړل مې، بل طرف ته

وَ رَكِبَنِي عُمَرُ وَ إِذَا هُوَ عَلَى أَثَرِي ،

د حضرت عمر رضي الله عنه ويره په ما باندې وه چې او س څه گورم چې هغه هم په ما پسې شاته را ورسيد ،

فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " مَا لَكَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ ؟ ". فَقُلْتُ :

نبي عليه السلام چې د احالت وليد پوښتنه يې وکړه ابو هريره څه وشو؟ ما عرض وکړو يا رسول الله! ما ستا پيغام

لَقِيتُ عُمَرَ فَأَخْبَرْتُهُ بِالَّذِي بَعَثْتَنِي بِهِ ،

د ځان سره کړو بهر ووتم نو د ټولو نه مخکې زما ملاقات د حضرت عمر رضي الله عنه سره وشو ما ستا پيغام هغه

فَضَرَبَ بَيْنَ ثَدْيَيَّ ضَرْبَةً خَرَرْتُ

ته ورسولو ، هغه د دې په آوريدلو سره زه په سينه باندې په د ومره زور سره ووهلم چې زه د کوناټيو په سر

لِاسْتِي فَقَالَ : ارْجِعْ .

شا طرف ته ولويدم او بيا هغه وويل چې واپس بيرته لاړ شه، د دې نه وروسته نبي عليه السلام (د حضرت عمر

فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : "يَا عُمَرُ! مَا حَمَلَكَ عَلَى مَا فَعَلْتَ؟ " قَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ ،

رضي الله عنه نه پوښتنه وکړه) عمره! تا داسې ولې وکړل ؟ هغه وويل : يا رسول الله ! په تا دې زما پلار

بِأَبِي أَنْتَ وَ أُمِّي ، أَبَعَثْتَ أَبَا هُرَيْرَةَ بِنَعْلَيْكَ مَنْ

او مور قربان شي آيا په ربښتيا تا ابو هريره ته خپل پيزار ورکړې وو او ودې د پاره دې ليږلی وو چې کوم کس

لَقِيَ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ مُسْتَيْقِنًا بِهَا قَلْبُهُ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ ؟

په ربښتوني زړه او پوخ اعتقاد سره د لا اله الا الله ويونکی سره مخامخ شي هغه ته د جنت زيری ورکړه ،

قَالَ : " نَعَمْ ". قَالَ : فَلَا تَفْعَلْ ،

رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: هو ! حضرت عمر رضي الله عنه عرض وکړو چې يا رسول الله! داسې مه کوه،

فَإِنِّي أَخْشَى أَنْ يَتَّكِلَ النَّاسُ عَلَيْهَا .

زما سره ويره ده هسې نه چې خلک په دغه زيري باندې يقين وکړي او کيني (او عمل کول پريږدي) په

فَخَلِّهِمْ يَعْمَلُونَ . فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

دې وجه تاسو هغوی په زيات نه زيات عمل کولو کې اخته کړئ، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: که چيرته

| |
|---|
| فَخَلِّهِمْ .(۱) |
| ستا همدا مشوره ده نو ییا خلک په عمل کولو کې اخته کړئ. |

**توضیح: کنا قعوداً**: ای قاعدین في نفر، د دریو نه تر لسو پورې جماعت باندې د نفر اطلاق شوی دی، یا مطلقا په قوم او جماعت باندې د هغه اطلاق شوی دی. (المرقات ۱/۲۰۲).

**بین اظهرنا**: په دې کلمه کې یا خو لفظ د **بین** مقحم یعنې زائد دی (**ای من اظهرنا**) او یا لفظ د (**اظهر**) زائد دی د تاکید دپاره ذکر کړی شوی دی (**ای من بیننا**) **اظهر** د **ظهر** جمع ده د شا په معنی سره خلک چې کله ناست وي نو د شاګانو په مینځ کې شي. (المرقات ۱/۲۰۳).

**وخشینا ان یقتطع دوننا**: **خشیت خوف مع التعظیم** ته ویل شوی دی همدا وجه ده چې **خشیة الله** ویل کیدلی شي او هیبت الله نه شي ویل کیدی، **یقتطع** د ټوټه ټوټه کیدو په معنی دی، **دوننا**: دا لفظ دلته د متجاوزا او بعیدا په معنی سره دی ای **خشینا ان یصاب بمکروه من عدو او غیره متجاوزاً عنا وبعیداً منا**. (المرقات ۱/۲۰۳).

**وفزعنا**: سوال دا دی چې خشینا اول راغلی دی د هغه نه وروسته فزعنا ته څه ضرورت وو کله چې د دواړو مفهوم یو دی؟ نو علامه طیبي رَحِمَهُ اللّٰهُ ویلي دي چې دا دواړه مترادفین په یو بل باندې عطف دي او په دې سره د ویرې سلسله ښودل مقصود دي، ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ ویلي دي چې په خشیت او فزع کې فرق دی، هغه داسې چې خشیت د زړه ویره ده د کوم اثر چې دا وخت په ظاهري بدن باندې ښکاره شوی نه وو لیکن فزع د هغه ویرې نوم دی په کوم کې چې انسان په داسې طریقه بې ارامه شي چې د بدن په ظاهر باندې د هغه اثر ښکاره شي، لکه څرنګه چې دلته بې ارامه پورته کیدل او په تالاش کې خوریدل ښکاره شوي دي، د ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ قول زیات بهتر دی، ځکه چې په دې کې د تاکید په ځای تاسیس دی او تاسیس د تاکید نه بهتر دی. (المرقات ۱/۲۰۳).

**حائطاً**: د کوم باغ چې چار چاپیره چاردیوالي وي هغه ته حائط ویل کیږي ګویا چې **محاط بالجدران** دی (یعنې په دیوالونو کې پټ شوی دی) د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ غالب ګمان راغی چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دلته وي، په اشعة اللمعات کې لیکل شوي دي چې د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ محبت د محبوب خوشبویې محسوس کړه نو هلته ورغی. (المرقات ۱/۲۰۳).

---

(۱) أخرجه مسلم ۱/۵۹، رقم الحدیث ۵۲-۳۱.

**فدرت به** : دار پهور د چارچاپیره ګرځیدو په معنی دی **هل اجد بابا ای قائلا فی نفسی هل اجد**...الخ. (المرقات ۱/۲۰۳).

**فلم اجد** : حضرت ابو هریره رضي الله عنه ته دا انتهائي بې ارامي. دوجې ددروازې علم ونه شو که نه نو دروازه خو وه، یا فلم اجد یعنې خلاصه دروازه پیدا نه شوه، کومه چې وه هغه بنده وه. (المرقات ۱/۲۰۳).

**فاذا ربیع** :ربیع ورکوتی نهر یعنې وړوکې شان نالی. کومه چې بهر کوهي نه د دیوال په خیټه دننه تللې وه په دغه لاربانډې دننه داخل شو ،دربیع تفسیر کوم راوي په جدول سره کړی دی دواړه یوشی دی، **من بئر خارجة** : دا جمله درې قسمه ویل شوې ده اول احتمال دا دی چې بئر موصوف او خارجة صفت دی، یعنې دا واله د داسې کوهي نه دننه تلې وه کوم چې بهر وو، دا توجیه د ټولو نه غوره اود ټولو نه زیاته مناسب او واضح ده، دویم احتمال دا دی چې بئر مضاف شي او خارجة مضاف الیه شي او خارجه د انسان نوم شي، یعنې د خارجه د کوهي نه دا واله راغلې وه، دریم احتمال دا دی چې بئر د تنوین سره شي او خارجة مرفوع شي آو د (ه) ضمیر د جدار طرف ته راجع شي یعنې (**من بئر خارجه**) یعنې یو کوهي کوم چې بهر وو، بهر حال اول احتمال مشهور دی. (المرقات ۲۰۳-۱/۲۰۴).

**فاحتفزت** : **احتفاز** د اندامونو راټولو ته ویل کیږي (**وهو ضم الاعضاء**) (المرقات ۱/۲۰۴).یعنې :

پس گرد آورد دم دست و پائے خود را

کله چې ګیدړه د ځان په راټولو سره په تنګ ځای کې ننوځي نو دې ته احتفاز ویل شوي دي، یعنې ما ځان راټول کړو او داخل شوم.

**فقال ابو هریرة** : د استفهام په طور رسول الله صلی الله علیه وسلم پوښتنه وکړه **انت ابو هریرة**؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم دا پوښتنه یا ددې دپاره وکړه چې دا ددې زیرې او وحې د وجې د بشریت نه غائب وو نو استفهام په حقیقت باندې بناء دی، یا استفهام تقریري دی یعنې ابو هریره یې؟ بنه ابو هریره یې؟ یا استفهام د تعجب دپاره دی چې ټولې لارې بندې دي ته څنګه راغلې تعجب دی چې ته ابو هریره یې؟.

**وهؤلاء الناس ورائی** :دااقتباس دی دقرآن دآیت نه ﴿ قَالَ هُمْ أُولَاءِ عَلَىٰ أَثَرِي وَعَجِلْتُ إِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضَىٰ﴾. (المرقات ۱/۲۰۴).

**واعطانی نعلیه** : علامه طیبي رحمه الله ویلي دي چې د حضرت ابو هریره رضي الله عنه خبر اګر که مفید یقین وو مګر د همد ... د زیات یقیني کیدو دپاره یې مبارک نعلین ورکړل ترڅو چې د هر آوریدونکي د شک او تردد نه بغیر په دې بشارت باندې یقین راشي، ملا علي قاري رحمه الله ویلي دي چې شاید رسول

الله ﷺ ته په نوري مقام کې د تجلی په طور حاصل شوی وو نو د حضرت موسی علیه السلام په شان رسول الله ﷺ ﴿فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ إِنَّكَ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى﴾ په طور پیزار ویستلي وي. (المرقات ۱/۲۰۴، الکاشف ۱/۱۸۶).

اوس سوال دا دی چې رسول الله ﷺ حضرت ابو هریره رضي الله عنه ته پیزار ولې ورکړل او بل شی یې د نښې په طور ولې ورنه کړ؟ د دې یو جواب دا دی چې شاید کوم بل شی په دې وخت کې نه وو، دویم جواب دا دی چې په دې پیزار سره یې اشاره وکړه د (ثبات علی الدین) طرف ته ځکه چې د ثابت قدمۍ او د پیزار خاص تعلق دی. (المرقات ۱/۲۰۵).

**فبشره بالجنة**: د دیوال شا طرف لفظ اتفاقي راغلی مراد دا دی چې د چا دا صفت وي چې د یقین سره کلمه وایي هغه جنتي دی برابره ده که د دیوال شاته وي او که په کوم بل ځای کې وي، او برابره خبره ده که ابو هریره رضي الله عنه هغه ته زیری ورکړی وي او که یې نه وي ورکړی، ځکه چې ابو هریره رضي الله عنه ټولو خلکو ته خبر کله رسولی شي، نو مراد هغه دی چې د چا هم دا صفت وي هغه جنتي دی. (المرقات ۱/۲۰۵)

**فخررت لاستي**: خر یخر د غورځیدلو په معنی دی ﴿وَخَرَّ مُوسَىٰ صَعِقًا﴾ لاستی أي علی مقعدی، است مقعد او کوناټیو ته ویل کیږي، مطلب دا دی چې حضرت عمر رضي الله عنه زه په سینه باندې ووهلم نو زه شاته په کوناټیو باندې ولویدم. (المرقات ۱/۲۰۵).

**فاجهشت**: **جهش** او **اجهاش** په مزید او مجرد دواړو کې په یوه معنی سره دی، یعني د ژړا او زاری په کولو سره د یو چا پناه ته ورتلل لکه ماشوم چې ژاړي او مور ته ورځي، دا ژړا یا خو د درد د وجهې وه یا د بې احترامۍ د وجې وه. (المرقات ۱/۲۰۶).

**ورکبني عمر**: یعني حضرت عمر رضي الله عنه زما شا پرې ننښوډله بلکې دا سې راپسې وو ګویا چې هغه زما په اوږو باندې سپور را روان دی، مراد متصل پیوسته راتلل دي. (المرقات ۱/۲۰۶).

**سوال**: دلته دا سوال را پورته کیږي چې حضرت عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د زیري په مقابل کې ابو هریره رضي الله عنه ولې ووهلو؟ شیعه ګان او روافض هم دا اعتراض کوي چې د حضرت عمر رضي الله عنه پر وړاندې د امت ټول لوی او واړه بې وسه وو او د هغه مداخله برابره په دین کې جاري وه خلکو حوصله کړې وه حضرت علي رضي الله عنه هم حوصله کړې وه او خلافت یې پرې ایښی وو؟.

**جواب**: د دې سوال جواب دا دی چې حضرت عمر رضي الله عنه ته معلومه وه چې د همدې زیري اعلان خو واجب نه دی، بلکې رسول الله ﷺ چونکه رحمة اللعلمین وو نو ده د صحابه کرامو د دې پریشانی علاج بالضد وکړو چې دوی پریشان شوي دي اوس دوی ته د جنت زیری ورکول په کار دي او

چونکه په دغه خالي باغ کې د رسول الله ﷺ د الله سره تعلق په دې طور وشو ګويا چې رسول الله ﷺ په عالم استغراق کې وو نو دا زيرى يې واورولو او حضرت عمر رضي الله عنه په دې کيفيت کې نه وو، بلکې په ده باندې د جمال پر ځاى د جلال صفت غالب وو، نو په دې وجه هغه سوچ وکړو چې شايد په دې سره خلک په سستيا کې ولويږي مونځ پريږدي، د همدې مصلحت او همدې شرعي امر لاندې حضرت عمر رضي الله عنه د دې بشارت تر څه موده پورې پټ ساتل غوښتي وو، بل طرف ته د حضرت معاذ رضي الله عنه په روايت کې په خپله رسول الله ﷺ د دا رنګه زيري آورولو نه منعه کړې نو د نبي د امر د امتثال د وجې حضرت عمر رضي الله عنه حضرت ابو هريره رضي الله عنه ووهلو او واپس يې کړ اودا وهل لوجه الله وو په همدې وجه رسول الله ﷺ حضرت عمر رضي الله عنه ته هيڅ ونه ويل بلکې د حضرت عمر رضي الله عنه د مشورې په بناء يې د هغه مشوره ومنله او زيرى (بشارت) يې پټ وساتلو.

علامه طيبي رحمه الله ويلي دي چې حضرت عمر رضي الله عنه حضرت ابو هريره رضي الله عنه په سختۍ سره وګرځولو چې د رسول الله ﷺ سره مشوره وکړي چې که چيرته د دغه بشارت ښکاره کول ضروري نه وي نو د مصلحت د مخې دې وروسته کړى شي ترڅو چې خلک سست نه شي.علامه ابن حجر رحمه الله ويلي دي چې حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت ابو هريره رضي الله عنه د پاره د معلم، شيخ او استاذ حيثيت لرلو د کوم مصلحت د پاره د شاګرد وهل روا وو ناروا نه وو. (المرقات ۲۰۵-۱/۲۰۶، الکاشف ۱۸۶-۱/۱۸۷).

بهر حال رسول الله ﷺ مواخذهورباندې ونه کړه او اوس ملحد او بې دينه راپورته کيږي او اعتراض کوي، دا محض فساد او د صحابه کرامو سره د بغض يوه نښه ده.

۲۴ ذوالحجة ۱۴۰۹هـ

## د جنت چابي (کونجي)

| |
|---|
| (۳۶) وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَفَاتِيحُ الْجَنَّةِ |
| د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې نبي عليه السلام ماته وفرمايل: د جنت چابي حاصلول |
| شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ.»[1] (رَوَاهُ أَحْمَدُ ۵/۲۴۲). |
| ګواهي ورکول د دې خبرې دي چې د الله تعالى نه بغير بل هيڅ معبود نشته. |

**توضيح**: علامه طيبي رحمه الله ويلي دي چې په مبتداء او خبر کې مطابقت نشته چې (شهادة ان لا اله الا

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۵/۲۴۲.

الله ...الخ) خبر چې کوم دی هغه مفرد دی او (مفاتيح الجنة) جمع ده. د دې جواب دا دی چې د شهادت سره د اسم جنس معامله شوې ده لهذا د هغه اطلاق په قليل او کثير باندې صحيح شو نو مطابقت راغی، يا دا چې د شهادت هر هر جزء مفتاح ګڼل شوی، لهذا مفاتيح ويل صحيح شول او مطابقت راغی، عبارت په دې طور شو (مفاتيح الجنة شهادة ان لا اله الا الله) نو د توحيد د کلمې خاصيت دا دی چې دا د جنت کونجي ده، په دې شرط چې کوم بل خارجي خنډ پيدا نه شي. ځکه چې حکم په معجون مرکب باندې کيږي، يا دا چې کلمه د خپلو ټولو غوښتنو سره مراد دی، يا دا چې دخول اولي او ثانوي مراد دي چې د توحيد د کلمې نه وروسته د عمل موقع پيدا نه شي نو صرف په کلمې سره به جنت ته ځي. (الکاشف ۱۸۸-۱/۱۸۹).

## کلمه د توحيد د نجات ذريعه ده

| |
|---|
| (۲۷) وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: إِنَّ رِجَالًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ تُوُفِّيَ |
| د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه بيان دی چې د صحابه کرامو په يوې ډلې باندې کله چې نبي عليه السلام وفات |
| حَزِنُوا عَلَيْهِ ، حَتَّى كَادَ بَعْضُهُمْ |
| شو غم پرې دومره غالب وو چې په هغو کې د بعضې خلکو په باره کې دا ويره پيدا شوه چې هسې نه په |
| يُوَسْوِسُ ، قَالَ عُثْمَانُ : وَ كُنْتُ مِنْهُمْ ، فَبَيْنَا أَنَا |
| شک کې ګرفتار نه شي، حضرت عثمان رضي الله عنه ويلي دي چې په دې خلکو کې يو زه هم ووم چنانچه زه |
| جَالِسٌ مَرَّ عَلَيَّ عُمَرُ وَ سَلَّمَ، |
| (دغم په حالت کې) ناست وم چې حضرت عمر رضي الله عنه زما خوا ته تير يد وا و ماته يې سلام وکړ (دغم دوجې) |
| فَلَمْ أَشْعُرْ بِهِ ، |
| ماته معلوم نه شو ه (چې هغه څه وخت زما په خوا کې تير شوی او کله يې سلام اچولی) حضرت عمر رضي الله عنه د |
| فَاشْتَكَى عُمَرُ إِلَى أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ثُمَّ أَقْبَلَا |
| دې خبرې شکايت حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته وکړ نو حضرت ابو بکر رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه سره |
| حَتَّى سَلَّمَا عَلَيَّ جَمِيعًا ، فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ : |
| ماته تشريف راوړ او دواړو حضراتو ماته سلام وکړو، حضرت ابو بکر رضي الله عنه زما نه پوښتنه وکړه چې |

مَا حَمَلَكَ أَنْ لَا تَرُدَّ عَلَى أَخِيكَ عُمَرَ سَلَامَهُ ؟ قُلْتُ : مَا فَعَلْتُ .
تادخپل ورور حضرت عمر رضي الله عنه سلام ته جواب ولې نه دی ورکړی؟ما ووېل: نه!نه!داسې نه دي شوي
(يعنې ما ته معلومه نه ده چې عمر راغلی ما ته يې سلام کړی او ما يې جواب نه دی ورکړی) حضرت
فَقَالَ عُمَرُ : بَلَى ، وَ اللهِ لَقَدْ فَعَلْتَ .
عمر رضي الله عنه ووېل: په الله قسم ! همداسې شوي (چې تا زما د سلام جواب نه دی راکړی)حضرت عثمان
قَالَ : قُلْتُ : وَ اللهِ مَا شَعَرْتُ أَنَّكَ مَرَرْتَ
رضي الله عنه وايي چې ما ووېل په خدای قسم ما ته هيڅکله ددې احساس نه دی شوی چې ته زما خوا ته راغلی
وَلَا سَلَّمْتَ . قَالَ أَبُو بَكْرٍ : صَدَقَ عُثْمَانُ ،
وې او ما ته دې سلام اچولی وي، حضرت ابوبکر رضي الله عنه ووېل: عثمان رښتيا وايي (ليکن معلومه نه ده)
قَدْ شَغَلَكَ عَنْ ذَلِكَ أَمْرٌ .
چې د کوم مخصوص عمل دوجې ددې نه پاتې شوی (چې نه خود حضرت عمر رضي الله عنه په راتلو خبر شوی
فَقُلْتُ أَجَلْ . قَالَ : مَا هُوَ ؟
يې ، او نه تا هغه ته د سلام جواب ورکړی) ما ووېل : هو کېدی شي ، هغه پوښتنه وکړه هغه څه دي؟ ما
قُلْتُ : تَوَفَّى اللهُ تَعَالَى نَبِيَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَبْلَ أَنْ نَسْأَلَهُ
ووېل: (د نبي عليه السلام وفات دی) چې نبي عليه السلام ددې دنيا نه تشريف وړی ليکن مونږ د هغه نه دا پوښتنه
عَنْ نَجَاةِ هَذَا الْأَمْرِ .
ونه کړه چې په دغه معامله (يعنې په عبادت کې د شيطاني وسوسو يا د دوزخ داور) نه د نجات ذريعه څه ده؟
قَالَ أَبُو بَكْرٍ : قَدْ سَأَلْتُهُ عَنْ ذَلِكَ .
ابوبکر رضي الله عنه ووېل : ته غم مکوه ما په دې باره کې د نبي عليه السلام نه مخکې پوښتنه کړې وه، حضرت
فَقُمْتُ إِلَيْهِ ، وَ قُلْتُ لَهُ : بِأَبِي أَنْتَ وَ أُمِّي ، أَنْتَ
عثمان رضي الله عنه وايي چې زه (بې اختياره) ودرېدم او ومې وېل په تا دې زما مور پلار قربان شي په رښتيا ته
(د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د کمال قرب ساتونکی او د علم د حصول او د شوق د وجهې) په دې باره کې

| |
|---|
| أَحَقُّ بِهَا . قَالَ أَبُو بَكْرٍ : قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ . |
| د سوال کولو دپاره ډير لائق وي، حضرت ابو بکر رضي الله عنه وويل : ما عرض کړی وو چې يارسول الله! په |
| مَا نَجَاةُ هٰذَا الْأَمْرِ ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : مَنْ |
| دې معامله کې به دنجات څه صورت وي؟نونبي عليه السلام فرمايلي وو چې کوم کس(دزړه په اخلاص سره) |
| قَبِلَ مِنِّي الْكَلِمَةَ الَّتِي عَرَضْتُ عَلَى عَمِّي فَرَدَّهَا، |
| زمانه دتوحيد هغه کلمه قبوله کړه کومه چې ما خپل تره ابوطالب ته وړاندې کړې وه او هغه قبوله نه کړه |
| فَهِيَ لَهُ نَجَاةٌ .(۱) |
| نو هغه کلمه ددغه کس دپاره دنجات ذمه واره ده. |

**توضيح** : د رسول الله صلى الله عليه وسلم د رحلت صدمه ډيره سخته وه، په دې صدمې سره عام صحابه کرام بې حواسه شوي وو. د حضرت عمر رضي الله عنه په شان جليل القدر او د لوړ همت لرونکي صحابي خو تر يوه وخته پورې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د وفات نه انکار کولو، که چيرته حضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه د همت غر نه وی جوړ شوی او تسلي يې نه وی ورکړې معلومه نه وه چې څه به پيښ شوي وو، په دې صدمې سره حضرت عثمان رضي الله عنه هم سخت متاثره شوی وو کوم چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د رحلت نقشه داسې وړاندې کړې ده :**كاد بعضهم يوسوس : اى بأن يقع في نفسه انقضاء هذا الدين وانطفاء الشريعة الغراء بموته**. يعنې د دين د وړانيدو وسوسې مې زړه ته راتلل او د شريعت د رڼائي اختتام ته د رسيدو خيال راتلو، ځينې خو ناست وو او بعضو انکار کوه صرف ابو بکر صديق رضي الله عنه قائم او دائم پاتې وو. (المرقات ۱/۲۰۸).

**فلم يشعر بي**: يعنې په هم دې وخت کې (**فلم اشعر به اى بمروره او بسلامه او بهما وهو الاظهر**) يعنې ماته د حضرت عمر رضي الله عنه د تيريدو احساس هم نه دی شوی يا دا چې د هغه د سلام شعور او احساس نه دی شوی، يا د دواړو احساس نه دی شوی، همدا مطلب زيات واضح دی چې نه د تيريدو معلومات راته شوی او نه يې په سلام خبر شوی يم، په خپله د مدهوشۍ په عالم کې پريوتلی وو. (المرقات ۱/۲۰۸).

**فاشتكى عمر الى ابي بكر** : د دې خبرې شکايت حضرت عمر رضي الله عنه ابو بکر صديق رضي الله عنه ته وکړ چې دومره اوږده زمانه هم نه ده تيره شوې چې عثمان د سلام جواب هم نه راکوی، ددې شکايت نه معلومه

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۱۰/۶.

شوي ده چې حضرت ابو بکر صدیق رضي الله عنه د خلیفه جوړیدو نه مخکې صحابه کرامو رضي الله عنهم خپل مشر ګڼلی وو او ممکنه ده چې دا وخت خلیفه جوړ شوی وو، دا خبره زیاته واضحه ده.

**مافعلت**: د حضرت عثمان رضي الله عنه نه چې کله ابو بکر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه سوال وکړو نو هغه صفا انکار وکړه چې ماته چا سلام نه دی کړی، دا حضرت عثمان رضي الله عنه د خپل ګمان مطابق رښتیا ویل، ځکه چې هغه د مدهوشۍ (رعب) په عالم کې وو. (المرقات ۱/۲۰۸).

**فقال عمر بلی**: د حضرت عمر رضي الله عنه دا خبره په حقیقت حال باندې مبني ده **ولاسلمت** دا تاکید دی د **مررت** دپاره او دحضرت عمر رضي الله عنه د شکایت جواب دی چې په خدای قسم چې ماته ستا د تیریدو احساس نه دی شوی او نه د سلام احساس شوی وی. (المرقات ۱/۲۰۹).

**قد شغلک**: دا د صدیق اکبر رضي الله عنه د طرفه د حضرت عثمان رضي الله عنه طرف ته التفات دی، په (امرٌ) تنوین د تعظیم دپاره دی، یعنې کوم عظیم الشان کار ته د سلام کلام نه مشغول ساتلی وې، په دې کې اشاره ده چې حضرت عثمان رضي الله عنه په دې معامله کې حق په جانب دی. (المرقات ۱/۲۰۹).

**فقلت اجل**: یعنې همداسې شوي دي چې یو غټ فکر او غټ تصور زه مدهوش ساتلی وم. (المرقات ۱/۲۰۹).

**قال ماهو**: حضرت ابو بکر رضي الله عنه وویل ووایه چې غټ فکر څه دی؟. (المرقات ۱/۲۰۹).

**عن نجاة هذا الامر**: یعنې زما سره فکر دا وو چې کاش ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه کړی وی چې په دغه دین اسلام کې د نجات مدار په کوم شي باندې دی؟ نو په دغه حدیث کې د **(الامر)** نه مراد د اسلام دین دی نو په جواب کې دا خبره راغله چې د اسلام د دین دار مدار د شهادت په کلمه او توحید باندې دی چې په آخرت کې به نجات د همدوی په برکت سره وي، دویم مطلب دا دی چې د **هغو وسوسو**، مهلکاتو، شهواتو، مرغوباتو او د شیطان د اغواء نه انسان څه قسم نجات ترلاسه کولی شي چې کامیاب شي او جنت ته لاړ شي، نو د دې جواب هم هغه دی چې د توحید کلمې په تکرار استمرار او په هغه باندې د عقد جازم په ساتلو سره انسان د همدې ټولو وهمونو او فاسدو خیالاتو نه خلاصون موندلی شي کامیابیدلی او جنت ته تللی شي، اوس په دغه حدیث باندې دا اشکال نه شي کیدلی چې حضرت عثمان رضي الله عنه خو په خپله هغه حدیث نقل کړی دی په کوم کې چې راغلي دي **(من مات وهو یعلم انه لا اله الا الله دخل الجنة)** کله چې ده په خپله دا بیان کړی دی نو بیا د نجات متعلق دومره پریشانه کیدو مطلب څه شو؟ نو جواب هغه دی چې د شیطان د دې وسوسو نه د خلاصون پریشانې

لاحقه وه، د هغه تفصيل د محمد بن جبير رَحِمَهُ اللهُ په حديث کې دی د کوم تخريج چې علامه سيوطي رَحِمَهُ اللهُ په جمع الجوامع کې کړی دی په هغه کې دا الفاظ دي :(يا ليتني سألت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما ينجينا من هذا الحديث الذي يلقي الشيطان في انفسنا) (المرقات ۲۰۹-۱/۲۱۰).
او په اشعة اللمعات کې چې څه ليکل شوي په هغه کې دا هم دي :

دوست ندارم که بزبان آرم آن را(المرقات ۱/۲۱۰).

يعنې هغه داسې وسوسې او خيالات دي چې زه په ژبه باندې د هغو راوړل نه غواړم، په دې سره ابو بکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل (قد سألته) چې دا سوال ما په خپله د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه کړی وو.

**انت احق بها :** حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ما وويل زما مور پلار دې په تا قربان شي ته د همدې سوال د ټولو نه زيات حقدار يې، يا ته د همدې خوی (خصلت) زيات حقدار يې، يا ته د همدې نجات زيات حقدار يې. (المرقات ۱/۲۱۰).

**من قبل مني :** يعنې چې د توحيد کلمه د زړه په خوشحالۍ او رغبت سره قبوله کړي او په زړه کې نفاق ونه ساتي کومه چې ما خپل تره ته وړاندې کړې وه.

**فهي له نجاة : اى ابتداءً وانتهاءً :** يعنې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کومه کلمه ما خپل تره ابوطالب ته وړاندې کړې وه کومه چې هغه رد کړې وه که چيرته هغه قبوله کړې وی نو د اويا کلونو د ګناه او شرکياتو سره به هغه معاف شوی وی، نو يو مسلمان د کوم په زړه، دماغو، رګونو او ريښه کې چې د توحيد کلمه پيوسته ده که چيرته هغه يې د زړه په صدق سره ووايي نو هغه به په طريقه اولی نجات موندونکی جوړ شي.په همدې طرز بيان سره رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نهايت بليغ انداز سره د توحيد د کلمې شان او اهميت واضح کړی دی، که چيرته يې صرف داسې فرمايلي وی چې په دې سره د نجات ذريعه د توحيد کلمه ده نو دغه اهميت به واضح شوی نه وو.ددې روايت نه دا هم معلومه شوه چې د ابوطالب خاتمه په ايمان باندې نه ده شوې، شيعه ګانو روافضو ويلي دي چې د مولا علي پلار د ټولو نه د لوی ايمان والا وو، نو دا څنګه کيدلی شي چې د مولا علي والد په ايمان باندې نه شي؟د الله بندګان دې ته سوچ نه کوي چې په انبياء کرامو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ کې د ځنو ځنو انبياء کرامو پلرونه او نيکونه چې کله په ايمان باندې نه دي راغلي نو په حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کې څه اشکال دی؟.(المرقات ۱/۲۱۰).

**د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څه تذکره :** حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اسلام په ابتداء کې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لاس اسلام قبول کړی وو، د حبشې طرف ته يې دوه ځلې هجرت کړی وو، په بدر کې د عذر د وجې حاضر نه شو، مګر بدري ورته ويل شوي، په صلحه حديبيه کې بيعت رضوان وشو، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل مبارک لاس د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاس وګڼلو بيعت وشو، ده ته ذوالنورين ځکه ويل شوي

دي چې د رسول الله ﷺ دوه لونه يوه د بلې نه وروسته د ده په نكاح كې راغلې، د: هغه رنګ سپين وو، قد يې درميانه وو د (۲۴هجري) د محرم په اول دريم خليفه جوړ شو او تر دولسو كلونو پورې يې خلافت وكړ، د اسود تجيبي مصري په لاس شهيد شو، په دې وخت كې د ده عمر (۸۲) كلونه وو، په جنت البقيع كې دفن شو، قبر يې ښكاره (معلوم) دی. رضي الله عنه وعن جميع الصحابة

## په ټوله دنيا كې د اسلام د غلبې پيشنګوئي

| |
|---|
| (۳۸) وَ عَنِ الْمِقْدَادِ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ |
| د حضرت مقداد رضي الله عنه نه روايت دی چې ده د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل چې فرمايل يې چې |
| لَا يَبْقَى عَلَى ظَهْرِ الْأَرْضِ بَيْتُ مَدَرٍ وَلَا وَبَرٍ |
| په ځمكه باندې د پاسه به هيڅ كور برابره ده كه د خټو وي او كه خيمه وي داسې به باقي پاتې نه شي په كوم كې |
| إِلَّا أَدْخَلَهُ اللهُ كَلِمَةَ الْإِسْلَامِ بِعِزِّ عَزِيزٍ وَ ذُلِّ ذَلِيلٍ إِمَّا |
| به چې د الله د اسلام كلمه معزز د عزت سره او ذليل د رسوائي سره داخل نه كړي (پس كوم خلك چې په |
| يُعِزُّهُمُ اللهُ فَيَجْعَلُهُمْ مِنْ أَهْلِهَا |
| خوشحالۍ سره اسلام قبول كړي) هغه به الله تعالى معزز جوړ كړي د همدې كلمې اهل به وګرځول شي (او |
| أَوْ يُذِلُّهُمْ |
| كوم خلك يې چې په خوشحالۍ قبول نه كړي) هغوی به الله تعالى ذليل وساتي نو همدغه خلك به د همدې |
| فَيَدِينُونَ لَهَا |
| كلمې په مطيع او فرمانبردار كيدو باندې مجبور كړی شي (په دې شكل چې هغوی به جزيه وركړي او په |
| قُلْتُ فَيَكُونُ الدِّينُ كُلُّهُ لِلّٰهِ . [1] (رَوَاهُ أَحْمَدُ ٦/٤). |
| اسلامي رياست كې به اوسيږي) ما چې دا واوريدل و مې ويل بيا خو به ټول دا ړو طرفو نو ته د الله دين شي |

**توضيح:** بيت مدر: دا د مدرة جمع ده، خښتې او كاڼي مراد دي. (المرقات ۱/۲۱۱).

**وبر:** پشم ته ويل كيږي خيمې مراد دي، بيت مدر: دا د ښاري آبادۍ طرف ته اشاره ده چې هلته به

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ٦/٤.

خلک په ښخو کورونو کې اوسیږي او په وېر سره د صحرائي او کلیوالي آبادۍ طرف ته اشاره ده چیرته چې زیاتره وخت خیمې د کورونو په شکل استعمالیږي، او دالارض نه مراد د عربو جزیره ده او د هغه شاو خوا سیمې دي، یعنې په ټولو عربو کې به صرف د یوه دین یعنې د اسلام دوریو دور وي، اوس دا اعتراض نه شي راتلی چې د چین لرې پرتو سیمو ته د اسلام دعوت نه دی رسیدلی او غلبه نه ده راغلې، ځکه چې جواب واضح دی چې دغه ښارونه، کلي، خیمې او محلونه صرف د عربو د جزیرې دي چیرته به چې مکمل اسلام خور شي او دا پیشنګوئي پوره شوې ده، یا د الارض نه مراد د دنیا عامه زمکه ده د دې تفصیل را روان دی.

**بعز عزیز : ای الکلمة متلبس بعز شخص عزیز** : یعنې کوم خلک چې په اطاعت او خوشحالۍ سره اسلام قبول کړي او د مسلمانانو مقابله ونه کړي نو په عزت سره به اوسیږي.

**وذل ذلیل** : یعنې کوم چې مقابله وکړي نو دغه کلمه به هلته هم داخله شي مګر مقابله کوونکي به د همدغه ذلیل کس د ذلت سره کوم چې الله تعالی خوار کړی دی او هغه به د قید او بند جزیه او غلامي د ذلتونو وروسته غاړه ښکته (ټیټ) کړي. ( المرقات ۱/۲۱۱).

**فیدینون لها ای یطیعون لها** : یعنې ټول خلک به د همدې کلمې پر وړاندې مطیع او فرمانبردار جوړ شي، د دغه حدیث نه علماو دا مسئله اخذ کړې ده چې د حربي کس اسلام د توري په زور او د هغه په ویرولو سره صحیح دی. ( المرقات ۱/۲۱۱).

**قلت فیکون الدین کله لله** : نه معلومه شوې ده چې داجمله حضرت مقداد رضي الله عنه د نبي علیه السلام په مجلس کې د ده په وړاندې نه ده ویلې، نو ځکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم جواب نه دی راغلی، یا دا چې په همدې مجلس کې یې ویلې ده مګر رسول الله صلی الله علیه وسلم جواب ورکول ضروري نه دي ګڼلي.

**سوال** : په دغه حدیث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم د اسلام د غلبې پیشنګوئي کړې ده، اوس سوال دا دی چې آیا دغه پیشنګوئي پوره شوې ده او که پوره کیدل یې پاتې دي؟.

**جواب** : اول جواب خوتیر شو چې د اسلام د غلبې دغه پیشنګوئي د جزیرې عرب دپاره وه او په هغه ځای کې دغه غلبه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کې حاصله شوې وه په ټوله دنیا باندې غلبه مراد نه ده.

دویم جواب دا دی چې د ټولې دنیا غلبه مراد ده او دغه غلبه په عمومي طورد خلفاء راشدینو په دور کې راغلې وه، اسلام غالب دین په مشرق او مغرب کې خور شوی وو، د قیصر او کسری تصور ختم شوی وو او د دین خبره اوچته (لوړه) وه، د حدیث مطلب دا نه دی چې کوم کافر به پاتې نه شي، بلکې مطلب دا دی چې دین به غالب شي او دا حدیث د قرآن کریم د دې آیت نه اقتباس دی : ﴿هُوَ الَّذِیْٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ

بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ﴾

دریم جواب دا دی چې دا غلبه د دلائلو او قوت استدلال په اعتبار سره ده او په همدې طریقې سره خو اسلام د اولې ورځې نه تر نن پورې غالب را روان دی، د دلائلو په دنیا کې څوک د هغه مقابله کولی شي، دغه جواب ډیر ښه دی، لیکن دې آسره باندې کیناستل د اسلام د غلبې دپاره میدان ته نه راوتل د جهاد پرېښودل او د اسلام د سیاسي قوت او خلافت د ترلاسه کولو شاته اوسیدل د قرآن او حدیث د صریح نصوصو خلاف ورزي ده، او د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم د تاریخ شاته غورځول دي، لهذا معطل کیناستل روا نه دي. څلورم جواب دا دی چې دغه غلبه به په مکمل شکل د حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَام په زمانه کې حاصله شي، هغه وخت به د جزیې نظام هم د محمدي شریعت په حکم موقوف شي، یا به یا اسلام وي یا به د کفر مرګ وي. (المرقات ۱/۲۱۱).

## د توحید د کلمې سره د نیکو اعمالو ضرورت

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ وَ عَنْ وَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قِيلَ لَهُ أَلَيْسَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ مِفْتَاحُ الْجَنَّةِ |
| د وهب بن منبه رَحِمَهُ اللهُ نه روایت دی چې یو کس رانه پوښتنه وکړه چې آیا لا اله الا الله د جنت چابي نه ده؟ |
| قَالَ بَلٰى وَ لٰكِنْ لَيْسَ مِفْتَاحٌ إِلَّا وَ لَهٗ أَسْنَانٌ فَإِنْ |
| وهب رَحِمَهُ اللهُ وویل ولې نه لیکن هیڅ چابي داسې نشته د کومې چې غاښونه نه وي پس که چیرته ته داسې |
| جِئْتَ بِمِفْتَاحٍ لَهٗ أَسْنَانٌ فُتِحَ لَكَ وَإِلَّا لَمْ يُفْتَحْ لَكَ.[1] (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ فِي تَرْجَمَةِ بَابٍ) |
| چابي راوړې د کومې چې غاښونه، وي نو ستا دپاره به د جنت دروازې خلاصې شي که نه نو نه به خلاصیږي. |

**توضیح**: وهب بن منبه تابعي دی، فارسي النسل دی، د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه یې روایتونه کړي، ده یو ورځ وعظ کوه چې یو چاترې پوښتنه وکړه چې **الیس لا اله الله مفتاح الجنة** نو ده دا جواب ورکړه چې کله د چابي دپاره غاښونه هم وي نو هلته بیا کار ورکولی شي او غاښونه یې نیک اعمال او د اسلام ارکان دي، دا په (۱۱۴ هجري) کې وفات شوی دی. (المرقات ۱/۲۱۱)

**لیس مفتاح**: یعنې برابره خبره ده که د اوسپنې وي او که د لرګي وي.

**الا وله اسنان**: اسنان غاښونو ته ویل کیږي او د چابي د غاښونو نه د اسلام څلور ارکان یعنې مونځ، زکوة، روژه او حج د بیت الله مراد دي، نو کله چې دغه نیک اعمال وي نو بیا د جنت دروازه خلاصیږي.

---

(۱) أخرجه البخاري ۳/۱۰۹.

(المرقات ۱/۲۱۲).

**فتح لک**: برابره ده که د دخول اولي سره وي او که د سزا د تیرولو نه وروسته دخول وي، دا احترازي قید دیر زیات ضروري دی ترڅو چې د مسلمانانو په باره کې کومه عقیده د معتزلو او خوارجو ده چې ټول خلک د ګناه د وجهې د اسلام نه خارج شوي دي په هغو باندې رد وکړی شي، په همداسې طبقو او په همداسې افرادو باندې په دغه حدیث کې بلیغ ترین تردید دی.

**لم یفتح**: کې هم دخول اولي یا ثانوي مراد دي. (المرقات ۱/۲۱۲).

## د یوې نیکۍ ثواب تر اوه سوه پورې زیاتیدلی شي

| |
|---|
| (۴۰) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: کله چې په تاسو کې کوم کس (په |
| إِذَا أَحْسَنَ أَحَدُكُمْ إِسْلَامَهُ فَكُلُّ حَسَنَةٍ يَعْمَلُهَا تُكْتَبُ لَهُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا |
| ښه نیت او اخلاص سره) خپل ایمان ښه جوړ کړي بیا هغه چې کومه نیکي وکړي د هغه د پاره لس چنده زیاته |
| إِلَى سَبْعِمِائَةِ ضِعْفٍ وَكُلُّ سَيِّئَةٍ يَعْمَلُهَا تُكْتَبُ بِمِثْلِهَا |
| لیکل کیږي تر اوه سوه چنده پورې او کومه ګناه چې هغه وکړي هغه د هغې په اندازه او برابره لیکل کیږي |
| حَتَّى لَقِيَ اللهَ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) (۱) |
| تردې چې د الله تعالی سره ملاقات وکړي. |

**توضیح**: **اذا احسن احدکم اسلامه**: د حسن اسلام نه مراد په باطني طور اخلاص او عقد جازم دی کوم چې تصدیق قلبي مع الاعمال دی یعنې چې ظاهرًا او باطنًا حسن وي، باطن هم ښه وي او ظاهر هم ښه وي. (المرقات ۱/۱۱۳).

**الی سبعمائة ضعف**: یعنې د اخلاص او حسن نیت د وجهې تر اوه سوه چنده پورې په ثواب کې زیاتوالی کیږي، د اخلاص او نیت په تفاوت سره په ثواب کې تفاوت راتلی شي. (المرقات ۱/۱۱۲).

علامه ماوردي رَحِمَهُ الله وېلي دي چې تر لس چنده پورې ثواب خو یقیني دی او اضافه تر اوه سوه چنده دی، اوس ددې نه زیات ثواب نه ملاویږي، مګر علامه نووي رَحِمَهُ الله وېلي دي چې مزید نور ثواب هم ملاویږي او زیاتیږي هم، اګر که تر کروړونو پورې یې شمار ورسیږي دلته تر اوه سوه پورې د رسیدو

(۱) أخرجه البخاري ۱/۱۰۰، رقم الحدیث :٤٢، ومسلم في صحیحه ۱/۱۱۷ رقم الحدیث : ۲۰۵-۱۲۹.

ذكر صرف د كثرت په بنياد باندې دی نه دحدبندۍ په بنيادباندې اوآيت ﴿وَاللهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ﴾بنودلې دي چې دغه زياتوالی لامحدوددی خوداضروري ده چې چيرته شريعت تعين نه وي كړی هلته دې انسان دځانه تعين نه كوي يعنې داسې دې نه وايي چې نه څلويښت كروړه ملاوېږي بلكې داسې دې ووايي چې كروړونه هم ملاويدلی شي. (المرقات ۱/۱۱۳).

## دايمان علامات

| | |
|---|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | |
| د حضرت ابو امامه رضي الله عنه نه روايت دی چې يو كس د نبي عليه السلام نه پوښتنه وكړه چې يا رسول الله! د | |
| مَا الْإِيمَانُ قَالَ إِذَا سَرَّتْكَ حَسَنَتُكَ وَسَاءَتْكَ | |
| ايمان د(سلامتۍ نښې)څه دي؟نبي عليه السلام وفرمايل:كله چې ستانيكي تاخوشحاله كړي او غمجن كړي | |
| سَيِّئَتُكَ فَأَنْتَ مُؤْمِنٌ قَالَ يَا رَسُولَ اللهِ فَمَا الْإِثْمُ | |
| تابدي ستانوته پوهه شه چې ته پوخ مؤمن يې، بيا هغه كس سوال وكړو يا رسول الله!دګناه(نښه)څه ده؟ | |
| قَالَ إِذَا حَاكَ فِي نَفْسِكَ شَيْءٌ | |
| نبي عليه السلام په جواب كې وفرمايل: چې كله كوم (كار) ستا په زړه كې شک او تردد پيدا كړي نوته پوهه | |
| فَدَعْهُ.[1] | |
| شه چې هغه ګناه ده، لهذا هغه پرېږده. | |

**توضيح: ما الايمان؟** : سائل د ايمان د حقيقت په باره كې پوښتنه نه ده كړې، بلكې د ايمان د نښو او آثارو پوښتنه يې كړې ده، په دې وجه رسول الله صلى الله عليه وسلم په جواب كې نښې (علامات) او آثار ذكر كړي دي. (المرقات ۱/۱۱۳).

**اذا سرتک حسنتک** : يعنې ترڅو پورې چې په زړه كې دا كيفيت دی چې نيكي وكړې خوشحاله كيږې او په بدۍ باندې غم محسوس كړې نو ته پوهه شه چې ته مؤمن يې، او كه چيرته په نيكۍ او ګناه كې كوم فرق نه محسوسوې نو ته پوهه شه چې د ايمان كار خراب دی. (المرقات ۱/۱۱۳).

**اذا حاک** : يعنې په زړه كې شک راشي چې دا كار د ګناه دی نو هغه پرېږده، دغه روايت داسې دی لكه:

---

(۱) رواه احمد في مسنده (۵/۲۵۱).

**الحلال بين والحرام بين وبينهما مشتبهات**، یا لکه :**دع ما يريبك الى ما لا يريبك او استفت نفسك الخ** دا حکم دا فیصله او دا معیار د هغو زړونو دپاره دی کوم چې صفا او روښانه وي، د کومو چې باطني صفائي مکمله شوې وي نو هغوی په دې کې فرق کولی شي، د عوام الناس د زړونو فیصله مراد نه ده. ( المرقات ۱/۱۱۳).

**۲۶ ذوالحجة ۱۴۰۹ھ**

## دایمان او اسلام پیژندنه

(۴۲) وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ قَالَ أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ

د حضرت عمرو بن عبسه رضي الله عنه روایت دی چې زه د نبي علیه السلام په خدمت کې حاضر شوم او عرض مې

يَا رَسُولَ اللهِ مَنْ مَعَكَ عَلَى هٰذَا الْأَمْرِ قَالَ

وکړو یا رسول الله (د اسلام د دعوت په شروع کې) په دغه دین اسلام باندې د تاسره څوک دي؟ وې فرمایل

حُرٌّ وَعَبْدٌ قُلْتُ مَا الْإِسْلَامُ قَالَ

یو آزاد (ابوبکر صدیق رضي الله عنه) او یو غلام (بلال رضي الله عنه) ما عرض وکړ د اسلام علامې څه دي؟ وې فرمایل

طِيبُ الْكَلَامِ وَإِطْعَامُ الطَّعَامِ قُلْتُ مَا الْإِيمَانُ قَالَ الصَّبْرُ وَالسَّمَاحَةُ

پاکې خبرې او مسکینانو ته ډوډۍ ورکول ما عرض وکړو د ایمان خبرې څه دي؟ وې فرمایل: صبر او سخاوت

قَالَ قُلْتُ أَيُّ الْإِسْلَامِ أَفْضَلُ قَالَ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ قَالَ قُلْتُ

ما وویل کوم مسلمان بهتر دی؟ وې فرمایل: د کوم د ژبې او د لاس د ضرر نه چې مسلمان محفوظ وي ما وویل

أَيُّ الْإِيمَانِ أَفْضَلُ قَالَ خُلُقٌ حَسَنٌ قَالَ قُلْتُ أَيُّ الصَّلَاةِ أَفْضَلُ قَالَ

په ایمان کې بهتر شی څه دی؟ وې فرمایل: غوره اخلاق، ما وویل په مونځ کې کوم شی بهتر دی؟ وې فرمایل

طُولُ الْقُنُوتِ قَالَ قُلْتُ أَيُّ الْهِجْرَةِ أَفْضَلُ قَالَ أَنْ تَهْجُرَ مَا

تر دیره وخته پورې ودریدل، ما وویل کوم رنګه هجرت بهتر دی؟ وې فرمایل : چې ته هغه شی پرېږدې په

كَرِهَ رَبُّكَ قَالَ فَقُلْتُ فَأَيُّ الْجِهَادِ أَفْضَلُ قَالَ مَنْ عُقِرَ جَوَادُهُ

چې ستا رب ناراضه کېږي ما وویل په جهاد کې څوک بهتر دی؟ وې فرمایل: هغه کس د چا چې آس وو ژل

وَ أُهْرِيقَ دَمُهُ قَالَ قُلْتُ أَيُّ السَّاعَاتِ أَفْضَلُ قَالَ جَوْفُ اللَّيْلِ الْآخِرِ [1] (رَوَاهُ أَحْمَدُ ٤/١١٤).

شي او په خپله هم شهيد شي ما وويل د ټولو نه بهتر کوم وخت دی؟ وې فرمايل: د نيمې شپې آخرنۍ برخه

**توضيح** : حضرت عمرو بن عبسه رضي الله عنه څلورم مسلمان دی، په ابتداء کې يې اسلام قبول کړو او خپل قوم بني سليم ته لاړو، په اوومه هجري کې د خيبر د جنګ په موقع هجرت وکړو مدينې منورې ته راغی. دا شامي دی رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته فرمايلي وو چې کله واورئ چې ما هجرت کړی دی نو تاسو هم راپسې راشئ، د ده کنيه ابو نجيح سلمي ده. (المرقات ۱/۱۱۴).

**اتيت** : يعنې د طلب علم دپاره زه رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغلم.

**من معک علی هذا الامر** : د امر نه مراد دين دی، يعنې ته چې په کوم دين باندې يې په هغه کې تاسره څوک ملګري شوي دي؟ داسې معلومه شوې ده چې دغه صحابي د دې خبرې معلومول غواړي چې د دغه دين قبلونکي خلک د کومې طبقې سره تعلق لري، آيا کومه خاص طبقه خو به نه وي کومې چې دغه دين قبول کړی دی او نور خلک مخالف شوي دي، دا صورت په هغه وخت کې کيدلی شي کله چې يو تحريک د کومې خاصې ډلې د خاصو مقاصدو دپاره شروع شوی وي په الهي دعوت کې دغه شی نه وي، بلکې هغه د ټول امت دپاره او د هغوی د فائدو دپاره عام دی. (المرقات ۱/۱۱۴).

**قال حر وعبد** : ای کل حر وعبد مأمور بالموافقة، يعنې دلته کومه خاصه طبقه نشته، بلکې د هر چا دپاره او د هر غلام او شريف د موافقت ښکاره دعوت دی. لکه چې ويل شوي دي :

در فیض محمد وا ہے آئے جس کا جی چاہے ❀ نہ آئے آتش دوزخ میں جائے جس کا جی چاہے

مسریضان گناہ کو دو خبر فیض محمد کی ❀ بلا قیمت دوا ملتی ہے آئے جس کا جی چاہے

د دې جملې دويم مطلب دا دی چې زما په موافقت کې يو آزاد دی کوم چې ابو بکر رضي الله عنه دی او يو غلام دی کوم چې بلال رضي الله عنه دی، د دغه مفهوم تاييد د مسلم په دې روايت سره شوی دی په کوم کې چې (ومعه يومئذ ابو بکر وبلال) الفاظ راغلي دي.

اوس سوال دا دی چې په دغه وخت کې خو حضرت خديجه رضي الله عنها هم مسلمانه وه حضرت علي رضي الله عنه هم وو د هغوی ذکر ولې نه دی شوی؟ جواب دا دی چې حضرت خديجه رضي الله عنها خو د ښځو نه وه څکه د هغې ذکر نه دی شوی او حضرت علي رضي الله عنه وړوکی وو.

---

(۱) رواه احمد في مسنده ٤/١١٤.

**قلت ما الاسلام؟ : اى شعبه او كماله او علامته.** نو د حقيقت اسلام او ماهيت اسلام سوال نه دى بلکې علاماتو د اسلام سوال وو. **قال طيب الكلام و اطعام الطعام**، په دې جمله کې داول جزءنه روحاني غذاءاو د دويم جزء نه جسماني غذاء مراد ده، ددې دواړو تعلق د حقوق العبادو سره دى نو د حقوق الله اهتمام په طريقه اولى شوى دى، په دې دواړو جملو سره ټول محامد او ښائسته صفات مقصود دي، مګر د دې دواړو تخصيص شوى ځکه چې په اول کې خو تواضع ده او په دويم کې د سخاوت او اکرام ذکر دى، او دا دواړه صفتونه د مخلوق خدا د خدمت دپاره اصل دي. (المرقات ۱/۱۱۴).

**قلت ما الايمان ؟** : په دې جملې سره هم د ايمان د علامو، د ايمان د ثمرې او د ايمان د نتيجې پوښتنه شوې ده، د ايمان د ماهيت سوال نه دى شوى.

**قال الصبر : اى الصبر على الطاعة والصبر على المصيبة والصبر عن المعصية.** د صبر ددې دريو قسمونو متعلق تفصيلات او توضيحات په حديث نمبر ۳۰ کې تير شوي دي.

**السماحة** : حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د سماحة نه مراد د فرائضو اداء کول دي، بعضو ويلي دي چې د هر معدوم په نه پيدا کيدو باندې صبر کول خو صبر دى او په هر موجود باندې د سخاوت کولو نوم سماحت دى، نو يو د فعل ترک شو او يو د فعل وجود شو ګويا چې ايمان د دوه قسمه افعالو نوم شو يو سلبي اعمال دويم وجودي اعمال دواړه چې سړه يو ځاى کړى شي نو کامل ايمان ترې جوړيږي او ددې مجموعې طرف ته په حسن خلق سره اشاره شوې ده.

**اى الاسلام افضل؟** : دلته پوښتنه د اشخاصو په باره کې ده يعنې **(اى اهل الاسلام افضل يا اى ذو الاسلام افضل)** نو په جواب کې د **(من سلم المسلمون)** ويل صحيح شول او حمل صحيح نه دى يا د **(من سلم)** نه مخکې لفظ د اسلام محذوف منل شوى **(اى سلامُ من)** نو په سوال او جواب کې مطابقت راغى. (المرقات ۱/۱۱۴).

**من سلم المسلمون** : ددې جملې نه مخکې د طيب الكلام او اطعام الطعام ذکر وو په کومو سره کې چې **تحليه بالفضائل** ذکر وه او په دغې جمله کې **تخليه عن الرذائل** ذکر ده، طيب الكلام جمله د حقوق العبادو د اهميت د وجهې نه مخکې شوې ده که نه نو عرفًا او طبعًا د تخليه مقام د تحليه نه مقدم دى چې اول دې ګندګي لرې کړى شي بيا دې زيب او زينت او عطر ولګول شي.

**اى الايمان افضل؟** : دلته هم سوال د اشخاصو په باره کې دى : **اى اهل الايمان افضل يا اى اخلاق الايمان يا اى الخصال الايمان يا اى شعب الايمان افضل.** (المرقات ۱/۲۱۴).

رسول الله ﷺ د (ای) په لفظ سره د شوو سوالونو ډیر جوابونه ورکړي دي یا خو د سوال کوونکي د حالت غوښتنه وه یا د زماني غوښتنه وه یا د مقام او مکان غوښتنه (تقاضا) وه یا افضل یو کلي دی د کوم چې ډیر انواع دي، نو د کوم افضل ذکر چې شوی دی هغه د همدغه کلي د نوعې نه یوه نوعه ده. په خپل مینځ کې تضاد نشته مخکې په دې باندې خبره شوې ده، په هغې کې وضاحت او تفصیل شته هغه دې وکتل شي.

**د ښه خوی تعریف**: **قال حسن خلق**: د لوړو او اوچتو خویونو او اعلی سیرت دپاره جامع ترین صفت د حسن اخلاق صفت دی، په ډیرو احادیثو کې ایمان او حسن اخلاق د یو بل سره یو ځای شوي دي، لهذا په ابو داؤد شریف کې یو حدیث دی: **اکمل المؤمنین ایمانا احسنهم خلقاً**، د قرآن کریم ارشاد دی **﴿وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ﴾** د حضرت عائشې رضي الله عنها نه چې کله صحابه کرامو رضي الله عنهم تپوس وکړو چې د رسول الله ﷺ اخلاق څه وو؟ نو هغې وفرمایل: **کان خلقه القرآن**، یعني د اوامرو او نواهیو پوره پوره لحاظ کول اخلاق حسنه دي، قرآن کریم چې کوم شي ته ښه ویلي دي رسول الله ﷺ طبعًا ښه ګڼلي وو او قرآن کریم چې کوم کار بد ګڼلی رسول الله ﷺ طبعًا هغه نه خوښولو، د (**کان خلقه القرآن**) همدا مطلب دی. د بعضو محققینو قول دی چې: **الخلق هو بسط المحیا وبذل الندی وکف الاذی وان لایخاصم لمعرفة الله تعالی ولذا قیل الصوفی لایخاصم ولایخاصم**. (المرقات ۲۱۴-۱/۲۱۵).

**الندی**: عطیه او سخاوت ته ویل کیږي او **المحیا** مخ ته ویل کیږي.

بعضو د حسن خلق داسې تعریف کړی دی: **ارضاء الخالق والمخلوق في السراء والضراء**.

بعضو ویلي دي چې حسن خلق دا دي چې د نفس تزکیه د رذائلو نه وشي او تحلیه د نفس بالفواضل وشي، د رذائلو لس اصول دي: (۱) زائد طعام (۲) فضول کلام (۳) غضب (۴) حسد (۵) بخل (۶) حب المال (۷) حب الجاه (۸) تکبر (۹) ځان ښودنه (خود پسندي) (۱۰) ریا کاري.

همدارنګه د فواضلو هم لس اصول دي (۱) توبه (۲) خوف خدا (۳) زهد او تقوی (۴) صبر (۵) شکر (۶) اخلاص (۷) توکل (۸) محبت (۹) رضا بالقضاء (۱۰) ذکر الموت.

**قلت ای الصلوة افضل؟**: یعني (ای رکن الصلوة افضل **قال طول القنوت**) علامه انباري رحمه الله ویلي دي چې قنوت په څلورو معناګانو راغلی دی (۱) الصلوة (۲) طول القیام (۳) الطاعة (۴) السکوت.

بعضو قرائت نه خشوع مراد کړې ده، د احنافو په نزد د طول القنوت نه طول قیام مراد دی او دا د دوی په

نزد د سجود نه افضل دی، د شافعیانو په نزد سجده د قیام نه بهتره ده، په دې باندې د طول قیام او د سجود د افضلیت اختلاف متفرع دی.

**قلت ای الهجرة افضل؟** : په هجرت باندې د مشکوة شریف په اول حدیث کې بحث شوی دی، د هجرت څو اقسام دي: (۱) **من دار الکفر الی دار الامن**، لکه د مکې نه چې د حبشې طرف ته هجرت وو.

(۲) **من دار الکفر الی دار الاسلام**، لکه د مکې نه چې د مدینې طرف ته هجرت وو.

(۳) **من دار الفسق الی دار التقوی**، لکه په افغانستان کې د طالبانو د اسلامي خلافت طرف ته هجرت.

(۴) **هجرة القبائل لتعلم المسائل**، لکه نن سبا یې چې د دیني مدارسو طالبان کوي، او د رسول الله ﷺ په زمانه کې او په وروسته کې د مدینې طرف ته د علم زده کولو دپاره چې کوم خلق راغلي وو هغه هم دا رنګه هجرت وو. (۵) **هجرة من هجر الخطایا والذنوب**، دا آخرنی قسم عام دی.

**فاي الجهاد افضل** : یعنې (**ای ذوی الجهاد افضل یا ای اهل الجهاد افضل؟**) په دغه تقدیر سره د کلام په سوال او جواب کې مطابقت راغلی دی او من عقر جواده صحیح شوی دی. (المرقات ۱/۲۱۵).

دارنګه جهاد د ټولو افضل ځکه ګڼل شوی چې مجاهد په دې کې ځان او مال دواړه قرباني کړي دي او د غنیمت د مال نه یې هیڅ هم نه دي اخستلي ګویا چې خالص ثواب پاتې شوی.

جو پاس تھا وہ سب لٹا ہی دیا ✿ حق تو یہ ہے کہ حق ادا ہی کیا

د جهاد متعلق خبره به ان شاء الله په کتاب الجهاد کې راشي.

**عقر** : فعل مجهول دی د زخمي کیدو نه وروسته مړ کیدل، جواده : غوره آس. (المرقات ۱/۲۱۵).

**اهریق** : دا لفظ په دریو بابونو سره راغلی دی (۱) هراق یهریق هراقة یعنې اراق یریق (۲) اهرق یهرق اهراقًا (۳) اهراق یهریق اهراقة په معنې د وینې بهیدلو. (المرقات ۱/۲۱۵).

**ای الساعات** : یعنې د حصول د ثواب دپاره د ټولو ښه وخت کوم یو دی.

**قال جوف اللیل** : ځکه چې دا د ریاء نه لرې دی او **القوم قیلًا** دی، د معدې ټول فضلات دا وخت تحلیل شوي وي نو تصورات خالص وي او د سحري وخت نسبتًا د سکون نه ډک هم وي. (المرقات ۱/۲۱۶).

**حسن حدیث** : علامه جلال الدین سیوطي رحمه الله د دغه حدیث متعلق د حسن خلق لاندې لیکلي دي :

**هذا حدیث حسن رواه الحسن عن الحسن عن أبي الحسن عن جد الحسن ان احسن الحسن الخلق الحسن**). (المرقات ۱/۲۱۶).

## په ایمان او اسلام باندې مړ شوی جنتي دی

(۴۳) وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه آوريدلي دي چې فرمايل يې

مَنْ لَقِيَ اللهَ لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا

کوم کس چې د الله تعالی طرف ته په داسې حالت کې کوچ وکړ چې هغه هيڅوک د الله سره شريک نه وي نيولی

وَ يُصَلِّي الْخَمْسَ وَ يَصُومُ رَمَضَانَ غُفِرَ لَهُ قُلْتُ أَفَلَا

پنځه وخته مونځ يې کړی وي او د رمضان روژې يې نيولې وي نو هغه بخښل شوی دی ما عرض وکړو آيا زه

أُبَشِّرُهُمْ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ قَالَ دَعْهُمْ يَعْمَلُوْا . [1] (رَوَاهُ أَحْمَدُ ۵/۲۳۲).

خلکو ته زيری ورکړم؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: هغوی په خپل حال باندې پريږده او عمل ورباندې وکړه.

**توضیح :لايشرک به شيئا**: يعنې چې د شرک جلي او شرک خفي دواړو نه محفوظ وه او سي. (المرقات ۱/۲۱۶).

**ويصوم رمضان**: يعنې چې پنځه وخته مونځ کوي او روژه نيسي دا جنتي دی، د زکوة او حج ذکر په دغه روايت کې نشته ځکه چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نظر د مثال په طور د څو اعمالو بيانول وو د ټولو نه وو، يا د دې وجهې چې تر دې وخته د حج حکم نه وو راغلی او شايد چې د روژې هم نه وو راغلی، يا يې د دې وجهې د دواړو ذکر و نه کړه چې په مخاطبينو کې په مالي اعتبار سره د دواړو اداء کولو قدرت نه وو. (المرقات ۱/۲۱۶).

**غفر له**: يعنې د همدې روژې نه تر راتلونکې روژې پورې مثلا ټول صغائر معاف کيږي، او که چيرته په رشتيني زړه سره توبه وکړي نو کبائر هم معاف کيږي، يا که چيرته الله تعالی يې معاف کوي نو ټول صغائر او کبائر معاف کيدلی شي يا دا چې صغائر معاف کيږي او کبائر کمزوري کيږي (المرقات ۱/۲۱۶)

**دعهم يعملوا**: يعملوا مجزوم دی ځکه چې د امر په جواب کې مضارع مجزوم وي، يعنې هغوی پريږده چې په عمل کې ښه کوشش وکړي، په عباداتو کې زياتوالی وکړي او د حديث په دغه اجمالي بشارت باندې يقين وکړي په ګناه کې و نه غورځيږي، دا د عوامو عادت دی که نه نو خواصو ته د زيري د آورولو وروسته چې پريږدې نو دوی په عبادت کې زيات پخيږي اګر که د جنت او دوزخ تصور او خيال پوره نه شي

دوی پیا هم په زهد او تقوی کې او سیږي لکه چې ویل شوي: **رحم الله صهيبًا لو لم يخف الله لم يعصه** **يعني** که چیرته د خدای تعالی د عذاب ویره هم نه وي نو هغه بیا هم نافرماني نه کوي. وګورئ په دغه حدیث کې رسول الله ﷺ دا اجمالي بشارت دا ورولو نه منعه کړې نو که چیرته عمر فاروق رضي الله عنه ابو هریره رضي الله عنه منع کړ نو څه اعتراض دی هغه خود رسول الله ﷺ حکم نافذ کړ (المرقات ۱/۱۲۶)

## افضل ایمان کوم دی؟

| |
|---|
| **(۲۲) وَ عَنْهُ أَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنْ أَفْضَلِ الْإِيمَانِ** |
| دمعاذ رضي الله عنه نه روایت دی چې ده د نبي علیه السلام نه پوښتنه وکړه چې د ایمان اعلی ترینې خبرې کومې دي؟ |
| **قَالَ أَنْ تُحِبَّ لِلّٰهِ وَ تُبْغِضَ لِلّٰهِ وَ تُعْمِلَ** |
| نبي علیه السلام وفرمایل: چې د چاسره ستا محبت هم د الله د پاره وي او دشمني هم د الله د پاره وي او ته مشغوله |
| **لِسَانَكَ فِي ذِكْرِ اللهِ قَالَ وَمَا ذَا يَا رَسُولَ اللهِ** |
| وساتې خپله ژبه (د زړه په اخلاص) د الله په ذکر کې هغه پوښتنه وکړه چې یا رسول الله! د دې نه غیر نور څه دي؟ |
| **قَالَ أَنْ تُحِبَّ لِلنَّاسِ مَا تُحِبُّ لِنَفْسِكَ وَ** |
| نبي علیه السلام وفرمایل: د نورو د پاره هغه شی خوښ کړه کوم چې د خپل ځان د پاره خوښوې او کوم شی چې د |
| **تَكْرَهَ لَهُمْ مَا تَكْرَهُ لِنَفْسِكَ**[1] (رواه أحمد ۵/۲۴۷). |
| ځان د پاره نه خوښوې د نورو د پاره یې هم مه خوښوه. |

**توضیح : افضل الايمان** : د دې نه مراد افضل ایمانیات دي، یعني مقتضیات، په ایمان کې د ټولو نه بهترین کوم شی دی رسول الله ﷺ په جواب کې (**حب في الله، بغض في الله**) او (**كثرت ذكر الله**) و ښودل په دې باندې خبره شوې ده. (المرقات ۱/۲۱۶).

**قال وماذا** : یعني د دې نه په غیر نورې کومې خبرې دي او زه څه وکړم؟

**قال ان تحب للناس** : یعني کوم شی دې چې د ځان د پاره خوښ دی هغه د ټولو خلکو د پاره خوښ کړه، دلته دا سوال شوی دی چې انسان ته خپل مرغوب خوښ دی نو دا خو ډیره مشکله ده چې کوم شی ورته مرغوب دی هغه نورو ته ورکړي، موټر ورکړي، کور ورکړي، هر خوښ شوی شی ورکړي، دا څنګه کیدلی

(۱) رواه احمد في مسنده ۵/۲۴۷.

شي؟.د دې جواب دا دی چې د خپل نفس دپاره کوم شی ورته خوښ دی د هغه نظیر مثال او د هغه په شان شی دې د نورو دپاره خوښ کړي، په زړه کې دې تمنا وکړي چې کاش زما سره چې کوم علم دی، مال دی، جاه او جلال دی د دې په شان د فلاني سره هم وی. (المرقات ۱/۲۱۷).

**ان تحب ای مثل ماتحب**: دا لویه خیرخواهي ده او د خدای تعالی د مخلوق دپاره آساني (سهولت) او لویه راهنمائي ده، الله تعالی دې ټول مسلمانان په خپل مینځ کې همداسې جوړ کړي، **آمین**. (المرقات ۱/۱۲۷)

الحمد لله نن ۱۳ ربیع الاول ۱۴۲۲ھ کې بنده عاجز د مشکوة شریف د کتاب الایمان د ۱۴۳ احادیثو توضیحاتو او تشریحاتو نه فارغ شو، ای الله زما مدد وکړئ کوم څه چې مې لیکلي دا قبول کړي او قلم د هر قسم لغزش او خطاء نه وساتئ آمین.

## تحفه د لا اله الا الله :

د کتاب الایمان او د کلمې د توحید **لا اله الا الله محمد رسول الله** په مناسبت سره مناسبه ګڼم چې د ذکي کیفي رحمه الله کلام په آخر کې راوړم:

| | |
|---|---|
| جہانِ فکر و نظر لا الہ الا اللہ | متاعِ اہلِ خبر لا الہ الا اللہ |
| یہ ذکرِ حق کی متاعِ عزیز کیا شے ہے | نہیں کسی کو خبر لا الہ الا اللہ |
| زہے نصیب یہ دولت اگر مجھے مل جائے | ہو لب پہ شام و سحر لا الہ الا اللہ |
| نجوم و شمس و قمر بھی فریب دے نہ سکے | خلیل کی ہے نظر لا الہ الا اللہ |
| کہیں بھی بحرِ معاصی میں غرق ہو جاتے | نہ ہوتا ساتھ اگر لا الہ الا اللہ |
| ہر ایک ذرہ ہے مصروف یادِ حق کیلئے | وہ برگ ہو کہ شجر لا الہ الا اللہ |

۲۷ ذوالحجة ۱٤۰۹ھ

# بَابُ الْكَبَائِرِ وَعَلَامَاتِ النِّفَاقِ

په دې باب کې مصنف رَحِمَهُ اللهُ د دوو موضوعاتو متعلق احادیث راوړي: یو موضوع د کبائرو ګناهونو متعلق ده او دویمه د نفاق د علامو (نښو) متعلق ده، لیکن د دې نه مخکې دا ښودل ضروري دي چې د ګناهونو ویش (تقسیم) څه رنګه دی، د کبیرې او صغیرې تعریف څه دی او د علماؤ اقوال څه دي.

**د صغیرې او کبیرې اقسام:** قاضي عیاض رَحِمَهُ اللهُ نقل کړي دي چې د یو شمیر محققینو رأیه داده چې: **کل شيء نهی الله عنه فهو کبیرة**، استاذ ابو اسحق اسفرائني شافعي رَحِمَهُ اللهُ هم دغه قول غوره کړی دی، دغه حضرت د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې قول سره استدلال کړی دی: **کل شيء نهی الله عنه فهو کبیرة**، همدارنګه د قیاس هم دغه غوښتنه ده چې د الله تعالی هر مخالفت ته د الله تعالی د عظمت په نظر کې نیولو سره ګناه کبیره کیدل په کار دي.

د دې وجهې دغه محققین حضرات د صغیرې او کبیرې طرف ته د ګناه ویش (تقسیم) نه کوي، بلکې د دوی په نزد ټول ګناهونه کبیره دي، لیکن د جمهور امت د سلفًا او خلفًا په نزد په ګناه کې د صغیرې او کبیرې ویش جاري دی، **بدلیل قول الله تعالی ﴿اِنْ تَجْتَنِبُوْا كَبَآئِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ الایه﴾ (ای کبائر الذنوب، نکفر عنکم سیئاتکم ای نغفر لکم صغائرکم، کما في البیضاوي)** د دې قرآني آیت نه په غیر د احادیث الباب ډیرو احادیثو هم په دې باندې واضح دلالت کړی دی چې د ګناه تقسیم د صغیرې او کبیرې طرف ته شوی دی، په دې وجه امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ په کتاب البسیط کې لیکلي دي چې په کبیره ګناه او صغیره ګناه کې فرق نکول یا د دغه فرق نه انکار کول ناپوهي او بې عقلي ده.

د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د قول جواب دا دی چې د هغه نه دا قول هم منقول دی چې: **(کل ذنب ختمه الله علیه بالنار او العذاب او اللعنة او الغضب فهو کبیرة والا فهو صغیرة)** د دوی د قیاس جواب دا دی چې د ګناه دوه نسبتونه دي: یو د الله تعالی د مخالفت نسبت دی، د همدغه نسبت په بناء اګر که ټول ګناهونه کبیره دي لیکن د ګناه دویم نسبت د دوی په مینځ کې دی، په هغو کې یو شمیر ګناهونه له نورو نه غټ یا واړه دي، په همدې اعتبار سره د جمهورو په نزد د ګناهونو تقسیم د کبیره او صغیره طرف ته ضروري دی.

**د صغیره او کبیره ګناه په تعریف کې اختلاف:** بیا د جمهورو په مینځ کې د صغیره او کبیره په تعریف کې غټ اختلاف دی او مختلف اقوال دي: **اول**: دا چې کومه ګناه چې په مونځ، روژه، حج وغیره حسناتو سره نه معاف کیږي هغه کبیره ده، او کومه ګناه چې په حسناتو سره معاف کیږي هغه صغیره ده.

**دویم** : یو شمیر محققینو د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د قول په رڼا کې کبیره هرې هغې گناه ته ویلي په کومه باندې چې الله تعالی د دوزخ حتمي فیصله کړې وي، یا یې د عذاب، یا لعنت او یا د غضب قطعي حکم ورکړی شوی وي او که چیرته داسې نه وي نو صغیره ده. **دریم** : علامه بیضاوي رحمه الله ویلي دي چې (الاقرب ان الکبیرة کل ذنب کتب الشارع علیه حداً او صرح بالوعید فیه والا فصغیرة)

**څلورم** : بعضو حنفیانو ویلي دي چې هره هغه گناه د کومې دپاره چې شریعت د (فاحشة) لفظ استعمال کړی دی او په هغې باندې په منصوصي شکل دنیوي یا اخروي عقوبت مقرر شوی دی هغه کبیره ده که نه نو صغیره ده. **پنځم** : امام غزالي رحمه الله ویلي دي چې هره گناه د خپل مافوق په اعتبار سره صغیره ده او د خپل ماتحت په اعتبار سره کبیره ده. **شپږم** : ابن قیم رحمه الله ویلي دي چې کومه گناه د نورو گناهونو دپاره د وسیلې او ذریعې حیثیت ولري هغه صغیره ده لکه (النظر الی الاجنبیة واللمس) کوم چې د زنا ذریعه ده تر کومه وخته چې د ذرائعو په درجه کې وي نو صغیره ده، او کومه گناه چې مقصود بالذات شي لکه زنا نو هغه کبیره ده، دغه تعریف حضرت قاسم نانوتوي رحمه الله خوښ کړی دی، او شیخ الهند محمود الحسن رحمه الله د سورة النساء د آیت نمبر ۳۱ په تفسیر کې په صغیره او کبیره باندې چې کوم محقق او مدلل کلام کړی دی هغه هم دغه تعریف ته قریب قریب دی. **اوم** : ملا علي قاري رحمه الله ویلي دي چې کله کله د رجالو او افرادو د احوالو په نظر کې نیولو سره د گناه حالت صغیره یا کبیره کیږي، یوه گناه د یوه فرد دپاره کبیره ده خو د نورو دپاره صغیره ده، مثلا د غیر عالم دپاره یوه گناه صغیره گڼل کیږي مگر همدغه گناه د عالم دپاره کبیره گڼل کیدی شي، یوه گناه د مقبول بنده دپاره په الهي دربار کې کبیره شمارل شوې ده، مگر د غیر مقبول بنده دپاره همدغه گناه صغیره گڼل کیدی شي، په همدې وجهې ویل شوي ذي (حسنات الابرار سیئات المقربین). (المرقات ۱/۱۱۷). او ویلي شوي دي :

لَا يَحْقِرُ الرَّجُلُ الْكَبِيْرُ دَقِيْقَةً ❁ فِي السَّهْوِ فِيْهَا لِلْوَضِيْعِ مَعَاذِرُ

فَكَبَائِرُ الرَّجُلِ الصَّغِيْرِ صَغَائِرُ ❁ وَصَغَائِرُ الرَّجُلِ الْكَبِيْرِ كَبَائِرُ

**ترجمه** : غټ خلک دې وړوکي گناه سپکه نه گڼي ځکه چې دده سهوې ته هم کمزوري سړی د خپل ځان د پاره عذر او جواز جوړ وي، نو د کمزورو خلکو کبائر هم صغائر گڼلی شي مگر د مقتدا او د غټو خلکو صغائر هم کبائر گڼلی شي.

**اتم** : بعضو ویلي دي چې د حالاتو او مکان په اعتبار سره په گناه کې فرق راغلی دی، مثلا په بیت الله کې دننه او د حرم په زمکه کې د زړه وسوسه هم غټه گناه ده، مگر د حرم نه بهر هیڅ هم نه ده، یا یوه گناه په جوماتو کې دننه وکړی شي نو کبیره ده لیکن همدغه گناه د جوماتو نه بهر صغیره جوړیږي. ددې نه وروسته په دې خبره پوهه شئ چې د کبائرو شمیر کوم چې په احادیثو کې وارد دی دا هیڅ حتمي نه دی،

بلكې د خلكو د احوالو مطابق كله كم او كله زيات بيان شوي دي. د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په روايت كې دغه شمير تر اويا پورې رسيدلى دى، د مظاهر حق والا دغه شمير (۸۴) ليكلى دى او مظاهر حق تول بيان كړي هم دي، په بعضې احاديثو كې د اوو ذكر راغلى دى.

**وعلامات النفاق**: دا تخصيص بعد التعميم دى، ځكه چې په كبائرو كې علامات نفاق هم داخل دي،

نفاق: (**اظهار خلاف ما ابطن**) نوم دى تفصيل را روان دى. (المرقات ۱/۱۱۷).

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د ټولو نه غټه ګناه

| |
|---|
| (۱) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ |
| د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دى چې يو كس پوښتنه وكړه يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! د |
| أَيُّ الذَّنْبِ أَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ قَالَ أَنْ تَدْعُوَ لِلّٰهِ نِدًّا وَ هُوَ |
| الله په نزد د ټولو نه غټه ګناه كومه يوه ده؟ نبي عليه السلام وفرمايل: چې ته شريک ونيسې د هغه الله سره |
| خَلَقَكَ قَالَ ثُمَّ أَيٌّ |
| چې ته يې پيدا كړې يې، بيا هغه كس پوښتنه وكړه: ددې نه وروسته د ټولو نه غټه ګناه كومه يوه ده؟ |
| قَالَ أَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ خَشْيَةَ أَنْ يَطْعَمَ مَعَكَ |
| نبي عليه السلام وفرمايل: دا چې ته خپل اولاد په دې خيال سره ووژنې چې هغه د تا سره خوراک كوي، بيا هغه |
| قَالَ ثُمَّ أَيٌّ قَالَ أَنْ |
| كس پوښتنه وكړه چې ددې نه وروسته د ټولو نه غټه ګناه كومه يوه ده؟ نبي عليه السلام وفرمايل: دا چې ته |
| تُزَانِيَ حَلِيْلَةَ جَارِكَ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ |
| د خپل ګاونډي د ښځې سره زنا وكړې (ابن مسعود رضي الله عنه وايي دي چې) نازل كړو الله تعالى ددې د |
| تَصْدِيْقَهَا وَ الَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ إِلٰهًا آخَرَ |
| تصديق د پاره دا آيت: (ترجمه) هغه خاص بندګان دي كوم چې د الله نه بغير بل څوک معبود نه ګڼي او د |

**وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ الآية(مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)**[1]

کوم ساه والا وژل چې الله حرام کړي د هغه په ناحقه وژنه نه کوي او نه زنا کوي.

**توضيح** : د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه کنيه ابو عبد الرحمن ده، قديم الاسلام دی، بعضو ويلي دي چې څلورم مسلمان دی کوم چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره ملګری شوی، تردې چې خلکو دا د هغه د کور سړی ګڼلو، د اودس جانماز او د مسواک خدمت د ده په ذمه وو، د رسول الله صلى الله عليه وسلم راز دار هم وو، حبشې ته يې هجرت وکړه، بيا په بدر کې شريک شو او وروسته په ټولو غزواتو کې شريک شوی دی، رسول الله صلى الله عليه وسلم ده ته د جنتي کيدو شهادت ورکړی وو، رسول الله صلى الله عليه وسلم دا هم فرمايلي دي :(**رضيت لامتي ما رضي لها ابن ام عبد وسخطت لها ما سخط لها ابن ام عبد**)دا په تګ راتګ ناسته ولاړه او سيرت کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مشابه وو، د کوفې قاضي او معلم مقرر شو، حضرت عمر رضي الله عنه اهل کوفې ته وويل چې ما په خپل ځان باندې تاسو ته ترجيح ورکړې ده چې ابن مسعود رضي الله عنه مې تاسو ته درکړی دی، بيا يې وفرمايل : (**كُنَيْفٌ مُلِئَ عِلْمًا**) يعنې د علم ډکه کمره(کوټه) ده، په (۲۲ هجري) کې په مدينه کې وفات شو او په جنت البقيع کې خښ شوی، د ده عمر د شپيتو کلونو نه څه زيات وو.

**اى ذنب اكبر : (الذنب ما يذم به الآتي)** د ذنب څلور قسمونه دي :(۱) يو قسم هغه ده کوم چې د توبې او ايمان نه په غير نه معاف کيږي هغه کفر دی.(۲) دويم قسم هغه ده د کوم د مغفرت اميد چې د استغفار او حسناتو په ذريعه کيدلی شي هغه صغائر دي.(۳) دريم قسم هغه ده کوم چې د الله تعالى د مشيت ماتحت وي کوم چې د توبې او بغير توبې په دواړو صورتونو کې معاف کيدلی شي هغه حقوق الله دي.(۴) څلورم قسم هغه ګناه ده کومه چې د عوض د ورکولو يا له معاف کولو نه په غير نه معاف کيږي هغه حقوق العباد دي. (المرقات ۱/۲۱۸).

**ندًا : (اى مثلاً ونظيرا فى الدعاء والعبادة)** د کفر په اقسامو کې يې شرک په خاص طور بيان کړو، ځکه چې (**إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ**) کې شرک ته عظيم ظلم ويل شوی دی. (المرقات ۱/۲۱۸).

**وهو خلقك** : کې د شرک زيات قباحت طرف ته اشاره شويده چې ته نوې هغه وجود درته درکړو کله دې چې خبرې شروع کړې نو شرک دې وکړ، دا جمله حاليه ده. (المرقات ۱/۲۱۸).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۸۷/۱۲،رقم الحديث:۶۸۶۱،مسلم في صحيحه۹۱/۱رقم الحديث:۱۴۲-۸۶،والترمذي في السنن۳۱۴/۵، رقم الحديث:۳۱۸۲،والنسائي۹۰/۷،رقم الحديث : ۴۰۱۳ ، وأبوداود في سننه ۷۳۲/۲، رقم الحديث : ۲۳۱۰ ، واحمد في المسند ۳۸۰/۱ .

**ثم اي**: دلته د (ای) لفظ د استفهام دپاره دی ای (ای الشیء اکبر من الذنب بعد الکفر) دلته دا ثم د تراخي دزمان یا د تراخي د رتبې دپاره نه ده، بلکې دا د تراخي في الاخبار دپاره ده. (المرقات ۱/۲۱۸).

**تقتل ولدک**: د شرک نه وروسته د مسلمان نفس وژل له ټولو غټه ګناه ده، بیا د وړوکي معصوم وژل دویمه ګناه ده، بیا وژل هم په بد ترین انداز سره چې ژوندی یې خښول دي دا دریم جرم دی، بیا د رزق د ویرې وژل چې زما سره ناست خوراک ولې کوي؟ او د الله تعالی رازق نه ګڼل دا څلورم جرم دی، د صله رحمي نظر اندازکول او وژل دا پنځم جرم دی، نو ځکه دا د شرک نه وروسته د ټولو غټه ګناه وګڼل شوه.
د جاهلیت په زمانه کې دوه قسمه عربو اولادونه قتل کړي وو، یو خو هغه خلق وو کوم چې فی الحال غریب او مفلس وو د هغوی سره د اولاد د پاللو او د خوراک غم وو قرآن کریم په عجیب بلاغت سره دوی ته خطاب پوهه کړل ﴿وَلَا تَقْتُلُوٓا اَوْلَادَكُمْ مِّنْ اِمْلَاقٍ نَحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَاِيَّاهُمْ﴾ دلته یې د اولاد خوراک مؤخر کړو ځکه چې همدغه خلک فی الحال دخپل خوراک په پریشانی کې وو اول همدغه وهم قرآن کریم لرې کړو، دویم هغو خلکو اولادونه وژلي وو کوم چې فی الحال خومالداره وو مګر په آئنده کې د فقر ویره ورسره وه دهغوی دپاره یې وفرمایل: ﴿وَلَا تَقْتُلُوٓا اَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ اِمْلَاقٍ نَحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَاِيَّاكُمْ﴾ دلته یې اولاد ته خوراک ورکول مقدم کړل چې تاسو سره د هغو زیاته ویره ده نو مونږ یې هغوته هم ورکوو او تاسو ته مو فی الحال هم درکړی، دا د قرآن کریم د عظیم بلاغت او د عجیب اسلوب بیان دی. (المرقات ۱/۲۱۹)

**ان يطعم معک**: دا کوم احترازي قید نه دی، بلکې یا خو دا قید اتفاقي دی چې هغو خلکو ددې وجې اولاد وژلی وو، یا دا د زیات قباحت ښکاره کولو دپاره دی چې ستاسو پیالې ته ستاسو د زړه ټوټو لاس وروړیوه ګوله (مړی) یې پورته کړه په دې مو هغه ووژل، شرم وکړئ. (المرقات ۱/۲۱۹).

**وان تزاني حليلة جارک**: تزاني او تزنی دوه لغتونه دي د زنا په معنی سره دي، حلیله ښځې ته ویل کیږي، په تزاني کې هم د مفاعلې معنی ده او زنا د طرفینو نه کیږي، او حلیله د حلال نه ده او ښځه د میړه دپاره حلاله هم ده او په هغې کې حلول هم شته دی.دغه ګناه د اکبر الکبائر نه ځکه شمار کړی شویده چې یو خو په دې کې زنا ده، دویم په هغه ځای کې ده کوم چې د ده په پناه او ګاونډ کې دی، نو په دې کې یو د ګاونډي د حق ابطال راغی، دویم په دې کې خیانت راغی، دریم په دې سره اجتماع تباه کیږي، ځکه ګاونډي چې کله خائن او غل جوړ شي نو د هغه نه بیا د ځان ساتل ډیر مشکل دي، بیا به هر سړی د خپل کورپیره دار جوړ شي او د هیڅ کار دپاره به بهر نه شي تلی. (المرقات ۱/۲۱۹).
اوس سوال دا دی چې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په نزد د کبائرو شمیر (۷۰) اویا دی، د سعید بن جبیر رضي الله عنه په نزد یې شمار اوه سوه دی، د ابو طالب مکي په نزد اولس دي، په ذکر شوي حدیث کې د دریو ذکر دی، په بعضو کې د څلورو ذکر راغلی او په یو شمیر روایتونو کې د اوو ذکر راغلی نو د دې

څه وجه ده؟.(المرقات ۱/۲۱۹).

د دې جواب دا دی چې رسول الله ﷺ د مخاطب د احتياج ماتحت د كبائرو ذكر كړی دی، شمار مقصود نه وو، نه د تحديد رسول الله ﷺ اراده كړې ده، همدارنګه په عدد كې تعارض نشته، دلته د هرې ګناه سره چې كوم قيد لګول شوی دی، دا د مزيد تقبيح او شناعت دپاره دی لكه څرنګه چې د دې تشريح وكړې شوه.

۲۸ ذوالحجة ۱٤۰۹هـ

## څلور غټ ګناهونه

| |
|---|
| (۲) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَبَائِرُ الْإِشْرَاكُ |
| د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دی چې نبي عليه السلام وفرمايل: غټ ګناهونه: شريک نيول د |
| بِاللهِ وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ وَقَتْلُ النَّفْسِ وَالْيَمِينُ الْغَمُوسُ .[1] رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |
| الله سره، د مور او پلار نافرماني كول، په ناحقه د چا وژل او په دروغو قسم خوړل دي. |
| وَفِيْ رِوَايَةِ أَنَسٍ وَشَهَادَةُ الزُّوْرِ بَدَلُ الْيَمِينُ الْغَمُوسُ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).[2] |
| او د انس رضي الله عنه په روايت كې په دروغو د قسم خوړلو پر ځای په دروغو د شاهدۍ وركولو الفاظ دي. |

**توضيح: الاشراك بالله:** دلته د شرک نه مراد مطلقًا كفر دی، ليكن د شرک لفظ د دې وجهې غوره كړی شوی دی چې د عربو خلک د كفر سره برابر شرک او په شعبه شرک كې مبتلا وو، مشرک د الله تعالى په وجود قائل دی او د الله د قدرتونو هم انكار نه كوي مګر هغه په ذات يا صفات يا عباداتو كې نورو ته برخه وركوونكی دی، او كافر خو يا د الله تعالى د وجود نه انكار كوي يا د دين په ضرورياتو كې د كوم يو ضرورت نه انكار كوي، په شرک او كفر او مشرک او كافر كې همدغه فرق دی.د شرک دوه قسمونه دي: شرک اكبر كوم چې پورته بيان شو، دويم شرک اصغر، دا د ريا كارۍ او په عبادت كې د ځان ښودنې نوم دی كوم چې مخلوق ته د ښودلو دپاره كولی شي. (المرقات ۱/۲۲۰).

**عقوق الوالدين: العق هو الشق والعاق يقطع حقوق ابويه** د ضرر رسولو هر قول او عمل په عقوق الدين كې داخل دی او دا كبيره ګناه ده، خو والدينو د شريعت سره په ټكر كې خبره منل روا نه دي، ځكه

---

۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۵۵۵، رقم الحديث :٦٦٧٥، والنسائي ۸۹/۷ ، رقم الحديث : ٤۰۱۱ ،والدارمي ۲۵۱/۲ رقم الحديث ۲۳٦۰ ، واحمد في المسند ۲۰۱/۲ .

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۲٦۱/۵، رقم الحديث : ۲٦۵٤، ومسلم في صحيحه ۹۱/۱ رقم الحديث : ۱٤٤-۸۸.

چې لاطاعة لمخلوق في معصية الخالق د والدينو نه مراد مؤمن والدين دي او يا په هغو کې اجداد او جدات ټول داخل دي. عقوق والدين د شرک بالله سره يو ځاى ذکر شوى په کوم سره چې اشاره شوې چې الله تعالى د انسان د وجود حقيقي خالق او مالک دى، د هغه نه وروسته په مجازي طور والدين د خپل اولاد د وجود د پاره ظاهري سبب دى، همدا وجه ده چې په قرآن کريم کې الله تعالى د خپلو حقوقو سره د والدينو حقوق يو ځاى ذکر کړي دي ﴿وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا﴾. (المرقات ۱/۲۲۰).

**واليمين الغموس:** غموس د غمس نه د غوټې خوړلو په معنى سره دى، چونکه د يمين غموس د پاره هيڅ کفاره نشته نو بس د دوزخ په اور کې غوټه خوړل دي، همدا د هغه سزا ده، يمين غموس هغه قسم ته ويل کيږي چې کوم کس د تيرې شوې زمانې په کوم فعل يا واقعه باندې د علم باوجود دروغجن قسم وخوري، دا قسم ځکه کبيره ګناه ده چې دغه کس د الله نوم د ضمانت په طور استعمال کړو او په هغه کې يې دروغ وويل. (المرقات ۱/۲۲۰).

يو يمين منعقده دى په کوم کې چې د کفارې ورکول دي، هغه دې ته ويل کيږي چې يو کس په آئنده کې د کوم کار په کولو يا نه کولو قسم وخوري او يا هغه پوره نه کړي، دريم قسم يمين لغوه دى دا په ژبه باندې د هغو کلماتو نوم دى په کومو سره يې چې د قسم اراده نه وي کړې، بس تکيه کلام وي، لکه په عربي کې (لا والله) وغيره کلمات دي، په نورو ژبو کې وايي (قسم خَورم) (قسم په خداى) وغيره وغيره، د دې کلماتو ويل هم مناسب نه دي، خو يا هم په دې قسم کې باقاعده نيول نشته.

د قسم خوړلو په اسلام کې اجازه ده، ليکن د هغه د حفاظت هم په اسلام کې حکم دى ترڅو چې د الله تعالى د نوم توهين ونه شي، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې ما په ژوند کې نه رشتيني قسم خوړلى دى او نه دروغو، په باب الايمان کې د ټولو قسمونو تفصيل ذکر دى. (المرقات ۱/۲۲۰).

**وشهادة الزور:** دروغجنه شاهدي دا ده چې په کومې سره د چا حق باطل کړى شي يا مال دا هم د کبائرو نه يوه کبيره ده، چې د الله تعالى ذات حاضر وګڼل شي او دروغ وويل شي او هغه هم په ناحقه د مال ترلاسه کولو د پاره.

## د اووه مهلکاتو نه ځان وساتئ

| |
|---|
| (۲) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِجْتَنِبُوا السَّبْعَ الْمُوبِقَاتِ |
| د ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: خلکو د اووه هلاک کوونکو څيزونو نه ځان وساتئ |
| قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ وَمَا هُنَّ قَالَ |
| پوښتنه وشوه چې يا رسول الله! هغه اووه هلاک کوونکي څيزونه کوم دي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: (۱) د |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الشِّرْكُ بِاللهِ | وَ السِّحْرُ | وَ قَتْلُ النَّفْسِ الَّتِي حَرَّمَ اللهُ إِلَّا بِالْحَقِّ | | | | |
| يو چا د الله سره شريک منل (۲) جادو كول (۳) د هغه چا وژل چې وژل يې الله حرام كړي د هغه په ناحقه وژل | | | | | | |
| وَ أَكْلُ الرِّبَا | وَ أَكْلُ مَالِ الْيَتِيمِ | وَ التَّوَلِّي يَوْمَ الزَّحْفِ | وَ قَذْفُ | | | |
| (۴) سود خوړل (۵) د يتيم مال خوړل (۶) د جهاد په ميدان كې د دښمن ته شا اړول (۷) د زنا تهمت لګول | | | | | | |
| الْمُحْصَنَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ الْغَافِلَاتِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).[1] | | | | | | |
| په پاكدامنو ايمان لرونكو او ناخبره ښځو باندې. | | | | | | |

**توضيح : د شرک تعریف: قال الشرک بالله** : شرک يو لوی جرم دی کوم چې د عقل او علم په حواله په انساني فطرت باندې يو خراب داغ دی او د الله تعالی د ذات او صفاتو په عظمت کې غټه کوتاهي او لوی ظلم دی، په کوم کې چې په غير شعوري طور يو کس ګويا که دا تصور قائموي چې زما فلانی کار به فلانی بزرګ وکړي، د هغه په کولو د هغه په کولو کې نه وخت شته او نه تاخير شته، او الله تعالی دغه کار نه کوي يا يې کولی نه شي، په دې دواړو صورتونو کې عظيم تنقيص، توهين او عظيم ظلم دی، ځکه چې د کوم پروردګار په لاس کې د ذرې ذرې تصرف کلي اختيار او کامل قدرت موجود دی د هغه په غير شعوري طور کمزوري بلکې مفلوج ګرځول د مشرکانو شاته منډې وهل دي، مشرک دا عقيده لري او که نه يې لري ليکن د هغه د فعل او طرز عمل نتيجه همدا ده، په دې وجه الله تعالی د ټولو نه زيات چې په کومه ګناه باندې ناراضه کيږي هغه د شرک ګناه ده ، ځکه خو يې فرمايلي دي : ﴿إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾. (لقمان آيت: ۱۳)

او ﴿إِنَّ اللهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾ (النساء آيت : ۴۸)

او فرمايلي يې دي : ﴿وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللهِ فَكَأَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَاءِ﴾ (الحج آيت : ۳۱)

خلاصه دا ده چې شرک د انساني فطرت نه د سعادت تخم او استعداد د بيخه وباسي او د انسان روحاني ترقي د مرګ سره مخامخ کوي، په شرک سره يو انسان په خپل خالق باندې د ټولو نه غټ دروغ تړلي دي او د خپل تخليق او فطري استعداد خلاف يې بغاوت کړی دی په دې وجه دا په حديث کې د غټو غټو مهلکاتو په فهرست کې راوړل شوی. شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ د شرک په تعريف کې ليکلي چې د شريعت په

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۹۳/۵، رقم الحديث : ۲۷۶۶، ومسلم في صحيحه ۹۲/۱ رقم الحديث : ۱۴۵-۷۹، وابو داود في السنن ۲۹۴/۳، رقم الحديث : ۲۸۷۴، والنسائي ۲۵۷/۶ ، رقم الحديث : ۳۶۷۱ .

اصطلاح کې شرک دې ته ویل کیږي چې کوم صفات خاص د الله تعالی سره مختص دي دهغو د الله تعالی نه بغیر د بل چا دپاره ثابتول شرک دی، لکه الله تعالی نه بغیر بل چا ته عالم الغیب ویل یا د بل چا په کائناتو کې متصرف منل، یا د مصیبتونو او مشکلاتو په وخت کې په غائبانه طور د الله نه بغیر کوم پیر او فقیر ته د مدد دپاره نعرې وهل، یا دا چې کوم مالي عبادت یا قولي عبادت یا بدني عبادت کې کوم عبادت د غیر الله دپاره وکړي دا ټول د شرک صورتونه دي، کوم چې نن سبا مشرک خلک کوي او وایي:

بندہ قادر کا بھی قادر بھی ہے عبد القادر ❁ سر باطن بھی ہے ظاہر بھی ہے عبد القادر

ذی تصرف بھی ہے ماذون بھی ہے مختار بھی ہے ❁ کارِ عالم کا مدبر بھی ہے عبد القادر

د یو موحد دپاره د شرک نه بې زارۍ دپاره د سلطان باهو دا اشعار یاد ساتل په کار دي:

یقین دانم درین عالم کہ لا معبود الا ھو ❁ ولا مقصود فی الکونین ولا موجود الا ھو

چون تیغ لابدست آری بیا تنہا چہ غم داری ❁ محو از غیر حق یاری لا فتاح الا ھو

**د جادو تعریف او اقسام : والسحر (۱) کل ما لطف مأخذه ودق فهو سحر (۲) اخراج الباطل في صورة الحق (۳) ما یفعل الانسان من الحیل.**

په سحر او جادو باندې د پوهیدو دپاره ضروري ده چې د یو څو خارق عادت څیزونو ذکر وکړی شي چنانچه خارق عادت څیزونه ټول اوه (۷) دي: **اول** : (**ارهاصات**) دي، دا داسې خارق عادت افعال دي کوم چې د کوم نبي د نبوت نه مخکې د تمهید په طور او د نبي د راتلو نه مخکې د راتلو د اعلان دپاره راغلي لکه د نبوت نه مخکې د کاڼو (ډبرو) او د ونو په رسول الله ﷺ باندې سلام اچول یا د وریځې سوری کول، د پیدا ایښت په وخت کې په عالم انسان باندې انقلاب راتلل دا ټول په ارهاصاتو سره وو.

**دویم** : **معجزات** دي، دا داسې خارق عادت امور دي کوم چې د کوم نبي د دعوت نبوت د اثبات او د هغه د تصدیق دپاره او د مخالفینو د عاجز کولو دپاره د نبوت د مدعي په لاس باندې ظاهر شوي دي لکه د رسول الله ﷺ په لاس باندې د سپوږمۍ دوه ټوټې کیدل او د مبارکو ګوتو نه یې د اوبو د چینې روانیدل وغیره وغیره ټول معجزات دي. **دریم** : **کرامات** دي، دا داسې خارق عادت امور دي کوم چې د متبع سنت او صاحب ایمان کس په لاس باندې د هغه د اعزاز او اکرام په طور ظاهر شي، پیغمبر ته د خپلې معجزې علم هم وي او قصد یې هم وي مګر د ولي دپاره دا ضروري نه دي. **څلورم** : **معونات** دي، دا داسې خارق عادت امور دي کوم چې د کوم مسلمان د مرستې او کومک دپاره ښکاره شي لکه د مجبورۍ او مخمصې (لوږې) په حالت کې چاته د خوراک راتلل یا په اوبو باندې تلل یا په هوا کې الوتل وغیره وغیره ټول د اعانت او مرستې صورتونه دي. **پنځم** : **استدراج** دی، دا داسې خارق عادت امورو ته ویل کیږي کوم چې د کوم کافر په لاس یا د کوم فاجر په لاس د هغه د مقصود مطابق ښکاره

شي، لکه د دجال په احوالو کې چې د عجیبو تصرفاتو ذکر دی، یا د اسود عنسي مدعی نبوت په لاس د عجائبو ښکاره کیدل دا ټول استدراج دی. **شپږم : اهانت** دی، دا داسې خارق عادت امور دي کوم چې د کوم کافر په لاس ښکاره شي لیکن د هغه د مطلوب او مقصود خلاف ښکاره شي، لکه مسیلمه کذاب چې د یو کس په سترګه باندې لاس تیر کړو ددې دپاره چې هغه روغه شي مګر د هغه کس روغه سترګه هم ړنده شوه، یا په باغ کې د اودس نه د زیاتو شویو اوبو اچول چې برکت راشي نو د باغ ټولې ونې وچې شوې، یا د غرغرې اوبه کوهي ته اچول نو څه چې په کوهي کې وو هغه هم وچ شول، یا د یوه ماشوم په سر باندې لاس تیرول نو د هغه دماغ کار پریږدي وغیره وغیره. **اوم : سحر او جادو** دی، مګر د دې په حقیقت کې اختلاف دی، د معتزلو په نزد د سحر هیڅ حقیقت نشته، دا صرف وهم، خیال او تصور دی، او د هغه اثرات هم ددې وهم یوه برخه ده، مګر د جمهورو اهل السنة په نزد سحر د یو نفس الامري حقیقت نوم دی د کوم په ذریعه چې په انسان باندې مخصوص کیفیات او اثرات راتللی شي.

**د سحر او ساحر حکم** : د سحر او د ساحر په حکم کې د فقهاو اختلاف دی، د امام مالک او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُمَاالله په نزد ساحر مطلقًا کافر دی، واجب القتل دی او د جادو زده کول او ور ښودل هم کفر دی، حرام دی. زما استاذ مولانا فضل محمد سواتي رَحِمَهُ الله په دې موقع یو جامع خبره کړې وه، چې کوم سحر د ضروریاتو د دین په انکار باندې مبنی وي هغه کفر دی د هیچا په دې کې اختلاف نشته او په کوم کې چې شرکیه کلمات وي هغه شرک دی او که چیرته د اعمال صالحو منافي وي هغه کبیره ګناه ده، او که چیرته کوم غلط عمل په هغه کې نه وي بلکې د اصلاح او صحیح غرض د پاره وي لکه د ښځې او میړه په مینځ کې اصلاح او د همداسې نورو کارونو د پاره وي نو دغه جادو مباح دی (مګر په دنیا کې داسې صالح جادو چیرته دی؟).

**التولي یوم الزحف** : یعنې د جهاد د میدان نه تښتیدل دا کبیره ګناه ده، اول عزیمت دی چې مجاهد به له میدان نه بالکل نه تښتي، ځکه چې په دې مرګ کې ژوند پروت دی کله چې دا عقیده وي چې په مرګ کې ژوند دی نو بیا به څوک وتښتي؟. (المرقات ۱/۲۲۳).

*شہید کی جو موت ہے وہ قوم کی حیات ہے ۞ شہید کا جو خون ہے وہ خون کی زکوٰۃ ہے*

دویم رخصت دی چې د دوو نه د زیاتو کافرانو نه د مقابلې په وخت کې تیښته روا ده، د دوو نه د کمو نه تښتیدل یا د دوو نه تښتیدل کبیره ده.

**وقذف المحصنات** : قذف د ګرد ګاني پورته کول یو چالره په سر باندې وهل دا قذف دی، بیا په پاک دامنې ښځې باندې تهمت لګولو دپاره استعمال شوی، یعنې پاک دامنه، مسلمانه، آزاده او شریفه ښځه باندې تهمت لګول د کبیرې نه دی، که چیرته ښځه کافره وه نو په هغې باندې تهمت لګول کبیره نه ده، بلکې صغیره ده، دا ټول اوه مهلکات او تباه کوونکي ګناهونه دي د کوم نه چې د ځان ستل انتهائي ضروري دي. (المرقات ۱/۲۲۳).

## هغه بدترينه گناه د کومې په کولو سره چې ايمان ختميږي

(۴) وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَا يَزْنِي الزَّانِي حِينَ يَزْنِي

دابو هريره رضي الله عنه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: زنا کوونکی چې کله زنا کوي نو

وَلَا يَسْرِقُ السَّارِقُ حِينَ يَسْرِقُ وَ هُوَ مُؤْمِنٌ

په دې وخت کې د هغه ايمان باقي نه شي پاتې کيدی، غل چې کله غلا کوي نو په دې وخت کې د هغه ايمان

وَلَا يَشْرَبُ الْخَمْرَ حِينَ يَشْرَبُهَا وَ هُوَ مُؤْمِنٌ

باقي نه شي پاتې کيدی شراب څکونکی چې کله شراب څکي نو په دې وخت کې د هغه ايمان باقي نه شي

وَلَا يَنْتَهِبُ نُهْبَةً يَرْفَعُ النَّاسُ إِلَيْهِ فِيهَا أَبْصَارَهُمْ حِينَ يَنْتَهِبُهَا

پاتې کيدی، او د لارو وهونکی کله چې خلک هغه (په ښکاره) د غلا په کولوويني (ليکن د ويرې د وجې بې

وَ هُوَ مُؤْمِنٌ

وسه وي او د چغو او نعرو نه بغير د هغه هيڅ نه شي کولی) نو دا وخت د هغه ايمان باقي نه شي پاتې کيدلی او

وَلَا يَغُلُّ أَحَدُكُمْ حِينَ يَغُلُّ وَ هُوَ مُؤْمِنٌ فَإِيَّاكُمْ إِيَّاكُمْ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

خيانت نه کوي په مال د غنيمت کې په هغه وخت کې چې په ده کې ايمان وي نو تاسو د دې گناهو نو ځان و ساتئ

وَ فِي رِوَايَةِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا وَلَا يَقْتُلُ حِينَ يَقْتُلُ وَ هُوَ

او د ابن عباس رضي الله عنه په روايت کې دا الفاظ هم دي چې قتل کوونکی کله چې په ناحقه قتل کوي په دې

مُؤْمِنٌ. قَالَ عِكْرِمَةُ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ

وخت کې ايمان باقي نه پاتې کيږي، عکرمه رضي الله عنه ويلي چې ما د ابن عباس رضي الله عنه دا حديث واوريدو

كَيْفَ يُنْزَعُ الْإِيمَانُ قَالَ هٰكَذَا

پوښتنه مې وکړه چې د دې نه د ايمان جدا والی څنگه کيدلی شي نو هغه ويل چې داسې (دايې وويل) هغه

وَ شَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ ثُمَّ أَخْرَجَهَا

د خپلو د وارو لاسو نو گوتې په يو بل کې ننباسلې او بيايې هغه گوتې له يو بل نه جدا کړې د دې نه پس

فَإِنْ تَابَ عَادَ إِلَيْهِ هٰكَذَا وَ شَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ

هغه وويل که چيرته توبه وکړي نو ايمان په دې شکل واپس کيدی شي او دايې وويل هغه خپلې گوتې بيا

| |
|---|
| وَ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ |
| په یوبلې کې نښاسلې، همدارنګه ابوعبدالله(یعنې امام بخاري رَحِمَهُ اللّٰهُ) ویلې دي چې ددې حدیث مطلب |
| لَا يَكُونُ هٰذَا مُؤْمِنًا تَامًّا وَلَا يَكُونُ لَهُ نُورُ الْإِيمَانِ. (هٰذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ).[1] |
| دادی چې هغه کس (دګناه دارتکاب په وخت کې) کامل مؤمن نه شي پاتې کیدی او دده نه دایمان نور وځي. |

**توضیح**: لایزنی الزانی الخ: دا مسئله مخکې په کتاب الایمان کې تیره شوې ده چې د معتزلو او خوارجو په نزد مرتکب کبیره خارج عن الاسلام مخلد في النار دی، یا د معتزلو په نزد داخل فی الکفر نه دی، ځکه چې د دوی په نزد منزلة بین المنزلتین ده چې نه مسلمان دی ځکه چې د اسلام نه وتلی دی نه کافر دی ځکه چې په هغه کې داخل نه دی، د دوی په نزد په دوزخ کې هم دارنګه منزلة بین المنزلتین مقام شته، خوارجو خو داخل فی الکفر هم منلی دی، د اهل السنت والجماعة په نزد مرتکب کبیره له اسلام نه خارج نه دی، دغه حدیث د معتزلو او خوارجو دلیل دی، او په ظاهره دغه حدیث د نورو قرآني نصوصو او نبوي فرامانونو سره متعارض دی (المرقات ۱/۲۳۳) مثلاً: (۱)﴿إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾ که چیرته د شرک نه بغیر کبائر کفر شي نو دهغو د مغفرت ګنجایش به یا د کومه شو، معلومه شوه چې مرتکب کبیره د اسلام نه خارج نه دی. (۲)﴿وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا﴾ دلته په خپل مینځ کې جنګیدونکي د مؤمن په نوم یاد شوي دي، سره ددې چې جنګیدل کبیره ګناه ده. (۳) دحدود الله او قصاص چې څومره آیتونه دي په هغو کې د مرتکب کبیره دپاره یوه سزا مقرره ده که چیرته هغه خارج اسلام وی نو د مرتد سزا به په هغه نافذ کیده، معلومه شوه چې مرتکب کبیره د اسلام نه وتلی نه دی (۴) دحضرت ابوذر غفاري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حدیث (وان زنی وان سرق) په دارنګه احادیثو سره هم جمهورو استدلال کړی دی نو دا د جمهورو مستدلات هم دي او تر بحث لاندې حدیث سره معارض هم دي ددې وجهې د دغه حدیث توجیه او تاویل او په صحیح محمل باندې حمل کول ضروري دي ترڅو چې په ټولو نصوصو کې توافق او تطابق راشي، دوه مطلبه خو په خپله په حدیث کې مذکور دي نور دا دي: (۱) اوله توجیه دا ده چې دلته د زاني د ایمان چې کومه نفي راغلې ده دا د کمال ایمان نفي ده، د اصل ایمان نفي نه ده. (المرقات ۱/۲۳۴).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ١١٩٥، رقم الحديث: ٢٤٧٥، ومسلم في صحيحه ١/٧٦ رقم الحديث: ١٠٠-٥٧، والترمذي في السنن ٥/ ١٦، رقم الحديث: ٢٦١٥، والنسائي ٨/٦٤، رقم الحديث: ٤٨٧٠، وأبوداود في سننه ٥/٦٤، رقم الحديث: ٤٦٨٩.

(۲) علامه تورپشتي رَحِمَهُ اللّٰهُ ويلي دي چې دغه کلام په لفظونو کې خبر دی مګر په معنوي طور انشاء ده، يعنې زاني که چيرته مؤمن وي نو زنا دې نه کوي ، د دې توجيه تاييد په هغه روايت سره شوی دی په کوم کې چې (لايزن) جزم او لا نهي سره دی، ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ هم دغه توجيه کړې ده مګر په دې باندې اعتراض دا دی چې حين ظرف ددې توجيه انکار کوی ، ځکه د زنا نهي مطلقًا ده په (حين يزنی) سره مقيد کولو څه فايده ده؟.(۳) علامه طيبي رَحِمَهُ اللّٰهُ دا توجيه کړې ده چې دلته د ايمان د يوې مهمې شعبې حياء نفې شوې ده يعنې څوک چې دغه قبيح عمل کوي هغه مؤمن نه دی، يعنې په حياء کې نه شي پاتې کيدلی، د ايمان مهمه شعبه حياء په دې سره ضائع کيږي. (الکاشف۱/۲۰۱).

(۴) څلورمه توجيه دا ده چې دلته د ايمان د نور نفې مراد ده، امام نووي رَحِمَهُ اللّٰهُ هم دا توجيه کړې ده چې د ايمان نور باقي نه پاتې کيږي.(۵) پنځمه توجيه دا ده چې په دې سره د شهودي ايمان نفې مراد ده که چيرته دغه کس الله تعالی حاضر او ناظر ومني نو د دغه حاضرۍ په حالت کې هيڅکله دا حرکت نه کوي ، کله چې د وړوکي ماشوم په موجوديت کې دا حرکت نه شي کولی.(۶) شپږمه توجيه دا ده چې دا حکم په زجر، توبيخ، تغليظ او تشديد باندې محمول دی چې د دغه قبيح حرکت کوونکی مؤمن نه شي پاتې کيدی، بلکې فاسق او فاجر ګرځي. (المرقات ۱/۲۲۳).

**ينتهب** : **النهاب** په زوره د يو چا مال اخيستل، **نهبة** غلا کړی شوي مال ته ويل کيږي **يرفع الناس اليها ابصارهم** يعنې په دغه جزئت باندې تعجب کوي د هغه د ظلم نه ويريږي صرف د هغه طرف ته د سترګو په کونجونو ورګوري او هيڅ کولی نه شي، ځکه چې د غلا کوونکو نه ويريږي. (المرقات ۱/۲۲۳).

**ولايغل** : غلول د غنيمت په مال کې خيانت کولو ته ويل کيږي، بيا په مطلق خيانت باندې اطلاق شوی دی او د بد عهدۍ ته ويل شوی دی. (المرقات ۱/۲۲۴).

**فاياکم اياکم** : د تاکيد دپاره دی يا تحذير دی چې ځان وساتئ ځان وساتئ، په دغه حديث کې د حقوق الله او حقوق العباد دواړو ذکر دی، يعنې د ايمان د حالت غوښتنه دا ده چې دغه کس په دغو حقوقو کې د حدود الله نه د ذرې برابر تجاوز ونه کړي . (المرقات ۱/۲۲۴).

۲۳ ذوالحجة ۱۴۰۹هـ

## د منافق نښې او علامې

| |
|---|
| (۵) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلَاثٌ |
| د ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايل : د منافق درې نښې (علامې) دي، |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| زَادَ | مُسْلِمٌ | وَ | إِنْ | صَامَ | وَ | صَلَّى | وَ |

ددې نه وروسته مسلم په خپل روایت کې دومره زیاتوالی کړی اګر که هغه مونځ کوي او روژه نیسي او د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| زَعَمَ | أَنَّهُ | مُسْلِمٌ | ثُمَّ | اتَّفَقَا |

مسلمان کیدو دعوه هم وکړي، ددې نه وروسته بخاري او مسلم دواړه متفق دي (چې هغه دریې نښې دادي)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِذَا | حَدَّثَ | كَذَبَ | وَ | إِذَا | وَعَدَ | أَخْلَفَ | وَ إِذَا |

کله چې خبرې کوي دروغ وايي او کله چې وعده وکړي د هغې وعدې مخالفت کوي او کله چې دده سره

| | |
|---|---|
| اؤْتُمِنَ | خَانَ.[1] |

امانت کیښودل شي نو خیانت کوي.

**توضیح**: آیة المنافق ثلاث: د آیة جمع آیات ده، د نښانې او علامې په معنی ده، دا نښانې به یا حسي وي یا به معنوي وي، یعنې په محسوساتو او معقولاتو دواړو کې استعمال شوی دی، د حسي او محسوساتو مثال لکه (آیة الطریق) د معنوي او معقولاتو مثال کله (آیة الله) هغه کس کوم چې د دین د حفاظت نښه وي یا لکه معجزه دا ټول د معقولاتو مثالونه دي. د نفاق تعریف دا دی: **اظهار خلاف ما ابطن**، یعنې چې په ژبه یو څه وي او په زړه کې بل څه وي، دا دوه مخې پالیسي ده دې ته نفاق ویلی کیږي، دلته یو فني اشکال دی چې (آیة) مفرد دی او دا مبتداء دی او (ثلاث) خبر دی کوم چې جمع ده، نو په مبتداء او خبر کې مطابقت نشته دی؟ د دې جواب دادې چې د آیة سره د جنس معامله شوې ده نو اوس مطابقت پیدا شو، ځکه چې جنس د قلیل او کثیر دواړو دپاره استعمالیږي شي، دویم جواب دا دی چې دلته په دریو نښانو کې هره یوه نښانه جدا جدا د نفاق نښه ده، او په یوه روایت کې (**علامات النفاق ثلاث**) الفاظ راغلي دي، د کوم نه چې معلومه شوې ده چې په آیة سره د مفرد اراده نه ده شوې بلکې د جمع معامله شوې ده. (المرقات ۱/۲۲۵).

**سوال**: شبه دا ده چې په دغه حدیث کې د منافق د علامو په دریو کې حصر دی، کله چې په وروستني روایت کې د څلورو ذکر شوی نو حصر څنګه صحیح شو؟.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱/۸۹، رقم الحديث: ۳۳، ومسلم في صحيحه ۱/۷۸ رقم الحديث: ۱۰۷-۵۹، والترمذي في السنن ۵/۲۰، رقم الحديث: ۲۶۳۱، والنسائي ۸/۱۱۶، رقم الحديث: ۵۰۲۱ واحمد في المسند ۲/۳۵۷.

**جواب**: دلته حصر مقصود نه دی بلکې د ذکر کیدو په اعتبار سره کله د دریو او کله د څلورو ذکر راغلی دی،دویم جواب دا چې په اعدادو کې د یوه عدد د بل سره تعارض نشته دی. ځکه چې عدد اکثر د عدد اقل منافي نه دی ، عدد اقل د عدد اکثر په ضمن کې دی، دریم جواب دا چې د وحې په ذریعه زیات شوی، نو اول د دریو ذکر راغلی بیا د څلورو ذکر راغی. (المرقات ۱/۲۲۵).

**سوال** : دلته یو مشهور اشکال دی هغه دا دی چې مثلا یو کس مسلمان دی د شهادت په کلمه باندې قائم دی مګر په هغه کې دغه درې نښې هم شته دی نو دغه کس منافق شو **(فِي الدرك الاسفل من النار)** کې به او سیږي بیا خو مسلماني ختمه شوه یا ډیره کمه پاتې شوه؟.

**جواب (۱)**:اول جواب دا چې په دې دریو خویونو باندې چې کله طبعیت مطبوع شي او په یو وخت د یو بل سره دا دریواړه په یوه زړه کې سره یو ځای شي نو دا د ایمان منافي دي، په دې باندې په حدیث کې د **(اذا)** لفظ دلالت کړی دی کوم چې د استمرار دپاره دی، یعنې کله هم چې خبره کوي نو درواغ وایي وغیره وغیره، ګویا چې دا د هغه دویم طبعیت جوړ شوی دی نو دا منافق دی. (المرقات ۱/۲۲۷).

**جواب (۲)**: دویم جواب دا دی چې په دغه کلام کې تشبیه ده یعنې که چیرته دغه خویونه په کوم مسلمان کې راشي نو هغه د حقیقي منافق په شان کیږي.

**جواب (۳)**: دریم جواب دا دی چې دغه کس د ټول شریعت په اعتبار سره خو منافق نه دی ، هو د چا سره چې د دروغو معامله شوې یا د بد عهدۍ شوې یا د خیانت معامله شوې نو د هغه دپاره دا منافق دی.

(۴) کوم کس چې دغه خویونه حلال وګڼي او بیا یې خپل کړي نو هغه حقیقي منافق دی.(۵) مقاتل رحمه الله سعید بن جبیر رضي الله عنه ته وویل چې دغه حدیث زما ژوند او معیشت برباد کړی دی، ځکه کله هم چې کوم کار کوم نو ویریږم چې په دغو خویونو (خصلتونو) کې ونه لویږم، حضرت جبیر رحمه الله وخندل او وې فرمایل چې زما سره هم داسې شویدي، ما د حضرت ابن عباس رضي الله عنه او حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه تپوس وکړو هغوی دواړو وخندل او وې ویل زمونږ دواړو سره هم داسې وشول نو مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس وکړه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم مسکی شو او بیا یې وفرمایل: ستاسو ددې خوینو سره څه کار دی زما وینا ده چې **اذا حدث کذب** نو دا دالله تعالی ددې قول مطابق دی **﴿وَاللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ﴾** او **(اذا وعد اَخْلَفَ)** د الله تعالی د دې قول مطابق دی **﴿فَاَعْقَبَهُمْ نِفَاقًا فِيْ قُلُوْبِهِمْ اِلٰى يَوْمِ يَلْقَوْنَهٗ بِمَاۤ اَخْلَفُوا اللّٰهَ مَا وَعَدُوْهُ وَ بِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ﴾** او زما دا وینا ده چې **(اذا اؤتمن خان)** نو دا د دې آیت د وجې دی **﴿اِنَّا عَرَضْنَا الْاَمَانَةَ عَلَى السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ الْجِبَالِ فَاَبَيْنَ اَنْ يَّحْمِلْنَهَا وَ اَشْفَقْنَ مِنْهَا وَ حَمَلَهَا الْاِنْسَانُ﴾** (ای خان الانسان والکم برآء منهن)(المرقات ۱/۲۲۸).

ددې نه معلومه شوه چې په حديث کې په (المنافق) کې چې کوم الف لام دی هغه عهدي دی او دا علامې او نښانې د حقيقي منافقينو دي نه د عملي منافقينو، يعنې حقيقي او اعتقادي منافق په دې خويونو سره پېژندل کيدی شي، بيا شبه شوې ده چې په راتلونکي روايت کې هغه منافق ته خالص ويل شوي دي په کوم کې چې همدغه نښانې وي،نو جواب دادی چې درسول الله ﷺ په مبارک عهد (زمانه) کې د حقيقي منافق نښانې همدغه وې او وروسته نفاق فی العقيده پاتې نه شو، ځکه چې د دې معلومول مشکل دي، نو صرف عملي نفاق پاتې شو ،لهذاد رسول الله ﷺ په زمانه کې دغه خويونه د حقيقي منافق دپاره بيان شوي دي، (اذا حدث كذب) دا صفت د ټولو نه زيات قبيح دی او د نورو قبائحو دپاره اصل دی، نو په دې وجه مخکې ذکر شوي دي.

## د منافق جوړيدو څلور خبرې

| |
|---|
| (٦) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ |
| دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دی چې نبي عليه السلام وفرمايل په کوم کس کې چې څلور خبرې وي نو |
| كَانَ مُنَافِقًا خَالِصًا وَمَنْ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنْهُنَّ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنَ النِّفَاقِ |
| مکمل منافق دی او په چا کې چې دهغو نه يوه خبره وموندل شي (نوپوهه شئ) چې په هغه کې د نفاق يو خوی |
| حَتَّى يَدَعَهَا إِذَا اؤْتُمِنَ |
| پيدا شوي دی تر هغه پورې ترڅو چې يې پرې نږدي (هغه څلور خبرې دادي) کله چې هغه سره امانت کيښودل |
| خَانَ وَإِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ |
| شي نو خيانت کوي، کله چې خبرې کوي نو دروغ وايي، کله چې وعده او اقرار وکړي نو دهغې خلاف عمل |
| وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).[1] |
| کوي ، کله يې چې جګړه شي نو کنځل کوي . |

**توضيح** :واذا عاهد غدر : يعنې کله چې وعده وکړي نو د هغې خلاف کوي، دوکه کوي او غداري کوي، وعده خلافي د نفاق د نښو نه يوه نښه ده، قرآن کريم د وعدې پوره کولو حکم کړی ﴿أَوْفُوا بِالْعُقُودِ﴾ او

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۸۹/۱، رقم الحديث : ۳٤، ومسلم في صحيحه ۷۸/۱ رقم الحديث : ۱۰۷ ۵۹، والنسائي ۱۱٦/۸ ، رقم الحديث :۵۰۲۰ ، والترمذي ٦/ ۲۱، رقم الحديث ۲٦۳۲، واحمد في المسند ۱۸۹/۲

فرمايلي دي ﴿إِنَّ الْعَهْدَ كَانَ مَسْئُولًا﴾ ﴿كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ وَكَانَ رَسُولًا نَّبِيًّا﴾ همدا رنګه په احاديثو کې د وعدې پوره کولو حکم شوی او د وعدې نه پوره کول يې د نفاق نښه ښودلې ده. (المرقات ۱/۲۲۹).

په خلاف وعده کار باندې چې کوم وعيد راغلی دی دا هغه وخت دی کله چې يو انسان په وعده کولو سره په زړه کې پخه اراده وکړي چې وعده به نه پوره کوم، ليکن که چيرته يې په زړه کې پخه اراده وه چې وعده به پوره کوم ليکن بيا کوم عذر پيښ شي او مجبوري راشي نو دا وعيد د داسې کس دپاره نه دی.

## د منافق مثال

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْمُنَافِقِ كَالشَّاةِ |
| دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: د منافق مثال د هغه ګډې په شان دی |
| الْعَائِرَةِ بَيْنَ الْغَنَمَيْنِ تَعِيرُ إِلَى هٰذِهِ مَرَّةً وَإِلَى هٰذِهِ مَرَّةً. [1] (رَوَاهُ مُسْلِمٌ). |
| چې د دوه رمو په مينځ کې (د خپل نر په لټون کې) کله يو طرف ته او کله بل طرف ته مائل کيږي. |

**توضيح: كالشاة العائرة**: عائره جوړې غوښتونکي او بې ته ويل شويدي دا د هغه صفت دی، د ګډ دپاره هم مستعمل شوی دی، په دې کې د ديوثۍ طرف ته اشاره ده چې منافق کله د مسلمان او کله د کافر طرف ته ځي راځي، په تذبذب او تردد کې لويدلی وي، د شهوت بندی دی، د سرټوب نه لري دی، دا کس د هغه ګډې په شان دی کومه چې د شهوت پوره کولو دپاره کله يو طرف ته کله بل طرف ته يوه خوا بله خوا منډې رامنډې وهي، دلته تمثيل دی، يعنې تشبيه مرکب بالمرکب ده. چې يو طرف ته د منافق پس منظر دی او بل طرف ته د جوړې غوښتونکي ګډ پس منظر او هيئت دی. د دواړو هيئتونو د يو بل سره تشبيه ورکړی شوې ده کوم چې تمثيل دی (المرقات ۲۲۹-۱/۲۳۰). لکه:

كأن مثار النقع فوق رؤسنا ✿ و اسيافنا ليل تهاوى كواكبه

**د تحريک اسلام شروع**: دلته په دې خبره هم پوهيدل په کار دي چې هر رنګه تحريک وي د هغه په شروع کې دوه قسمه خلق په ميدان کې وي، يو د دغه تحريک منځته راوړونکي د هغه په مخ بيونکي خوروونکي او کامياب کوونکي خلق دي، دوی په سرونو لوبې کوي خو د دغه تحريک د کاميابولو کوشش کوي، د دوی په مقابل کې دويم هغه خلق دي کوم چې دغه نوی تحريک بيخي برداشت کولی نه شي او دغه تحريک کاميابيدو ته نه پريږدي، دغه دواړه ډلې په خپل خپل موقف کې واضح حيثيت لري او په دې کې يوه ډله هم د تمبه توب نه کار نه اخلي، په دغه تحريک کې يوه دريمه ډله هغه وخت پيدا

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱٤٦/٤ رقم الحديث: ۱۷، والنسائي ۱۲٤/۸، رقم الحديث: ۵۰۳۷، واحمد في المسند ۴۷/۲.

کیږي کله چې د دغه تحریک د کامیابیدو یو څه امید ونه پیدا شي، دغه خلق سوچه مفاد پرست وي او هر وخت گوري چې کوم خلک کامیابیږي، که چیرته د تحریک په مخ بیونکي یې په نظر کامیاب ورشي نو دغه مفاد پرست خلک دهغو سره ملگري کیږي او دهغوی سره دیوځای کیدو اعلان کوي، او که چیرته یې په تحریک کې یو څه ناکامي په نظرورشي نو دا خلک د دغه تحریک د مخالفینو سره ملگري کیږي او د هغوی سره د وفاداری اعلان کوي، دغه مفاد پرست خلق د منافقینو په نوم سره اسلام یاد کړي دي.

کله چې اسلام په مکه مکرمه کې ښکاره شو نو هلته دغه ډله نه وه، ځکه چې هلته دواړو جانبینو ته د قرباني ضرورت وو او دغه مفاد پرست خلک د قرباني والا نه وو، کله چې په مدینه منوره کې د اسلام خوریدل شروع شول او دا امید پیدا شو چې اوس اسلام غالب کیدی شي نو په مدینه منوره کې د منافقینو دغه ډله پیدا شوه او د خپلو مفاداتو ماتحت به کله مسلمانانو ته او کله کافرانو ته تلل راتلل، په حدیث شریف کې دې طبقې تشبیه د جوړې غوبنتونکې گډې سره ورکړې شوی، دغه ډله د اسلام د شروع نه تر نن پورې پیوسته را روانه ده او اسلام ته یې ضرر رسولی دی، د عبد الله بن ابی ابن سلول وروسته په اسلام کې د هغه د ډلې په شان منافقین شیعه گان، روافض، آغاخانیان او نور دي.

## الْفَصْلُ الثَّانِي

### د نهو واضحو احکامو سره متعلق د یهودو سوال

| |
|---|
| (۸) عَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ قَالَ يَهُودِيٌّ لِصَاحِبِهِ |
| د حضرت صفوان بن عسال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې (یوه ورځ) یو یهودي خپل یو (ملگري) ته وویل |
| اذْهَبْ بِنَا إِلَى هٰذَا النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ صَاحِبُهُ لَا تَقُلْ نَبِيٌّ إِنَّهُ لَوْ سَمِعَكَ |
| چې راځه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام خوا ته ورشو دهغه ملگري وویل هغه ته نبي مه وایه، که چیرته هغه واوریدل (چې |
| لَكَانَ لَهُ أَرْبَعُ أَعْيُنٍ |
| یهودیان هم ما ته نبي وایي) نو دهغه سترگې به څلور شي (یعني ډیر زیات به خوشحاله شي) بهرحال دوی |
| فَأَتَيَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَسَأَلَاهُ عَنْ تِسْعِ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ |
| دواړه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام خدمت ته راغلل او د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه یې د نهو ښکاره احکامو په باره کې سوال وکړه، |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُشْرِكُوا بِاللهِ شَيْئًا وَلَا تَسْرِقُوا وَلَا تَزْنُوا |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمایل: (۱) هیڅوک له الله تعالی سره مه شریکوئ (۲) غلا مه کوئ (۳) زنا مه کوئ (۴) د |

| |
|---|
| وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا |
| کوم کس وژل چې الله تعالی حرام کړي دي هغه په ناحقه مه وژنئ (۵) ديو چا دبې ګناه وژلو دپاره (په هغه |
| تَمْشُوا بِبَرِيءٍ إِلَى ذِي سُلْطَانٍ لِيَقْتُلَهُ وَلَا تَسْحَرُوا وَلَا تَأْكُلُوا الرِّبَا |
| دنارواالزام په لګولو سره) د حاکم طرف ته يې مه بوځئ (۶) جادو مه کوئ (۷) سود مه خورئ ،(۸) په |
| وَلَا تَقْذِفُوا مُحْصَنَةً وَلَا تُوَلُّوا لِلْفِرَارِ يَوْمَ الزَّحْفِ وَ |
| پاک لمنو ښځو باندې د (زنا) تهمت مه لګوئ ،(۹) د جنګ په ميدان کې د دښمن نه مه تښتئ ، او ای |
| عَلَيْكُمْ خَاصَّةً الْيَهُودَ أَنْ لَا تَعْتَدُوا فِي السَّبْتِ |
| يهوديانو !ستاسو دپاره په خاص طور واجب دي چې دهفتې شپې په معامله کې د (الهي حکم) نه تجاوز ونه |
| قَالَ فَقَبَّلَا يَدَيْهِ وَ رِجْلَيْهِ وَ قَالَا |
| کړئ،راوي ويلي دي چې (دا يې واوريدل) دواړو يهوديانو د نبي عليه السلام لاسونه او پښې ښکل کړل او |
| نَشْهَدُ أَنَّكَ نَبِيٌّ قَالَ |
| وې ويل مونږ شاهدي ورکوو چې ته په رشتيا نبي يې ،نبي عليه السلام وفرمايل: کله چې ستاسو زما په رسالت |
| فَمَا يَمْنَعُكُمْ أَنْ تَتَّبِعُونِي قَالَا إِنَّ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| باندې يقين دى نو بيا زما داتباع نه ستاسو دپاره کوم شى مانع دى؟ دوى وويل حقيقت دا دى چې داؤد عليه السلام |
| دَعَا رَبَّهُ أَنْ لَا يَزَالَ مِنْ ذُرِّيَّتِهِ نَبِيٌّ وَ إِنَّا نَخَافُ إِنْ |
| دخپل رب نه دعا غوښتې وه چې د هغه په اولاد کې دې هميشه نبي وي، لهذا مونږ ويريږو که چيرته مونږ |
| تَبِعْنَاكَ أَنْ يَقْتُلَنَا الْيَهُودُ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ)[1]. |
| ستا پيروي وکړو نو يهوديان به مونږ ووژني . |

**توضيح** : **لکان له اربع اعين** : څلور سترګې د زياتې خوشحالۍ نه کنايه ده، ځکه چې په خوشحالۍ کې سترګې دومره پراخيږي چې هره سترګه دوه چنده جوړيږي نو چې دوه سترګې دوه چنده شي ګويا چې څلور سترګې ترې جوړيږي، په دې سره د يهوديانو د بغض او عناد اندازه شوې ده چې په جدا مجلس

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/ ۷۲، رقم الحديث ۲۷۲۳، والنسائي ۷/ ۱۱۱، رقم الحديث : ۴۰۷۸ ، واحمد في المسند ۴/ ۲۳۹ .

کې په پټه اقرار کوي مګر چې په ضد کې راشي ټول هیر کړي. (المرقات ۱/۲۳۰).

**عن تسع آیات بینات** : ددې آیات بینات نه څه مراد دي؟ په دې کې د علماء کرامو دوه رأیې دي. مګر مخکې په دې پوهه شئ چې په قرآن کریم کې په دوه ځایونو کې د تسع آیات ذکر راغلی دی. د سورت نمل په ۱۲ آیت کې د موسی علیه السلام متعلق داسې ذکر راغلی ﴿وَ اَدْخِلْ يَدَكَ فِيْ جَيْبِكَ تَخْرُجْ بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ فِيْ تِسْعِ اٰيٰتٍ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَ قَوْمِهٖ﴾ همدارنګه د سورت بني اسرائیل په ۱۰۱ آیت کې داسې ذکر راغلی ﴿وَ لَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسٰى تِسْعَ اٰيٰتٍ بَيِّنٰتٍ﴾ اوس د ابن عباس رضي الله عنه او حافظ ابن حجر رحمه الله رأیه دا ده چې په قرآن کریم کې د آیات بینات نه مراد معجزات دي، یعنې هغه (۹) مشهور معجزات کوم چې موسی علیه السلام ته ورکړل شوي وو، کوم چې دا دي عصا، ید بیضاء، دم، طوفان، جراد، قمل، ضفادع، نقص ثمرات او سنین یعنې قحط وچکالي، د علامه مظهري خیال دی چې په سورت نمل کې خو معجزات مراد دي، مګر په سورت بنی اسرائیل کې احکام مراد دي. (المرقات ۲۳۰-۱/۲۳۱).

دعلامه طیبي رحمه الله او علامه توربشتي رحمه الله رأیه داده چې دایات تسعو نه احکام مراد دي په سورت بني اسرائیل کې هم او په سورت نمل کې هم، د دوی دلیل دغه مذکور حدیث دی په کوم کې چې نبي علیه السلام د احکامو ذکر کړی دی، اوس د قرآني ایاتونو نه د دې حدیث طرف ته راشئ نو دلته هم سوال کوونکو چې د کومو آیات تسعو سوال کړی دی نو د علامه طیبي رحمه الله او د نورو علماء کرامو رأیه دا ده چې ددې نه احکام مراد دي او د ملا علي قاري رحمه الله رأیه دا ده چې په حدیث کې دواړه احتمالونه دي چې سوال د احکامو هم وي او د معجزاتو هم وي، اوس که چیرته سوال د معجزاتو نه شوی وي د کومو ذکر چې په قرآن کې دی نو نبي علیه السلام مخکې معجزات بیان کړي دي او د هغې نه وروسته یې احکام بیان کړي، راوي د معجزاتو ذکر نه دی کړی، ځکه چې هغه په قرآن کریم کې موجود او محفوظ وو، او داحکامو ذکر یې وکړ، او که چیرته د آیات بینات نه د بعضو علماو په نزد احکام مراد شي او د ترمذي ددویم جلد د کتاب التفسیر صفحه ۱۴۶ حدیث هم په دې باندې دلالت کړی دی ځکه چې هلته دا لفظ دی **فسأله عن قول الله تعالى ﴿وَ لَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسٰى تِسْعَ اٰيٰتٍ بَيِّنٰتٍ﴾ (الکاشف ۲۰۷-۱/۲۰۸، المرقات ۱/۲۳۱)** معلومه شوه چې سوال هم داحکامو و د معجزاتو نه وو، نو بیا خبره صفا ده چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د احکامو جواب ورکړی دی کوم چې په ټولو شریعتونو کې مشترک وو.

اوس دلته دا سوال راپورته کیدلی شي چې که چیرته دغه سوال د احکامو وو نو د نهو احکامو جواب به ورکړی شوی وو دلته رسول الله صلی الله علیه وسلم لس احکام ولې بیان کړي دي؟ د دې جواب دا دی په حقیقت کې دې خلکو د هغو نهو احکامو سوال کړی وو کوم چې مشهور او په ټولو ملتونو او مذاهبو کې مشهور وو او یو حکم کوم چې د یهودو سره خاص وو دوی په زړه کې پټ ساتلی وو ترڅو چې د

رسول الله ﷺ امتحان واخلي، کله چې رسول الله ﷺ د هغه جواب هم ورکړ نو دوی يې لاسونه او پښې خکل کړل د نبوت اعتراف يې وکړ اقرار يې وکړ مګر وې نه منلو. (المرقات ۱/۲۳۱)

**الک لبي**: په دې کې اقرار او اعتراف دی، ليکن په دې کې يو دهوکه هم ده، هغه دا چې د يهودو عقيده ده چې رسول الله ﷺ د اميونو نبي وو يعنې يوازې د عربو د پاره نبي وو د ټول جهان د پاره نه وو نو (**الک لبي ای الی العرب خاصة**) دوکه وه، همدارنګه يهودو د دويمې دوکې دا کوشش وکړ چې حضرت داؤد عليه السلام دعا غوښتې وه چې نبي دې هميشه د ده له اولادې نه وي، او ته د هغه نه يې، که چيرته مونږ تابعداري وکړو نو وبه وژل شو، دا هم دوی دروغ وويل، داؤد عليه السلام هيڅکله داسې نه دي ويلي او دا يې هم درواغ وويل چې تابعداري وکړو نو وبه وژل شو، د اسلام دين خو امن راوړي، امن غواړي، امن خوروي، فتنه او فساد خو د دين د مخالفينو خوی او عادت دی، بهر حال د رشتني نبي د انکار باوجود يهود بيا هم د قتل نه بچ نه شول بلکې په جنګ خيبر او جنګ قريظه کې ووژل شول، دا حديث په **باب الکبائر والنفاق** کې په دې مناسبت سره ذکر شوی چې دواړو يهوديانو په ژبه د اسلام اقرار وکړ او په زړه کې يې نفاق پټ وساتلو. (المرقات ۱/۲۳۲).

**۳۰ ذوالحجة ۱۴۰۹ هـ**

## درې خبرې د ايمان جرړې دي

| |
|---|
| (۹) وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثٌ مِنْ أَصْلِ الْإِيمَانِ |
| د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: درې خبرې د ايمان جرړې دي |
| الْكَفُّ عَمَّنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ لَا تُكَفِّرْهُ بِذَنْبٍ |
| (۱) کوم کس چې: د لا اله الا الله اقرار وکړي د هغه سره جنګ ختم کړئ او د کومې ګناه په وجه هغه ته کافر مه |
| وَلَا تُخْرِجْهُ مِنَ الْإِسْلَامِ بِعَمَلٍ |
| وائې او مه د کوم عمل د وجې په هغه باندې د اسلام نه د خارج کيدو فتوی لګوی (۲) د کله نه چې الله تعالی |
| وَ الْجِهَادُ مَاضٍ مُنْذُ بَعَثَنِيَ اللهُ إِلَى أَنْ يُقَاتِلَ آخِرُ هَذِهِ الْأُمَّةِ |
| زه رسول جوړ کړی او راليږلی يم جهاد به د هميشه د پاره جاري وي، تر دې چې د دغه امت په آخر کې به يو کس |
| الدَّجَّالَ لَا يُبْطِلُهُ جَوْرُ جَائِرٍ وَلَا عَدْلُ عَادِلٍ |
| راشي د دجال سره به جنګ وکړي، د کوم عادل بادشاه د عدل يا د کوم ظالم د ظلم په بهانه جهاد ختميدلی |

| |
|---|
| وَ الْإِيمَانُ بِالْأَقْدَارِ . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[1]. |
| نه شي (۳) او په تقدیر باندې ایمان راوړل. |

**توضیح : ثلاث من اصل الایمان** : د اصل نه د دین اصول مراد دي، لیکن په دریو کې انحصار مقصود نه دی، بلکې دغه درې د هغو نه بعضې دي ددې وجهې من تبعیضیه راوړل شوی دی یا په فروعو باندې د عمل کولو دپاره دا درې اصول دي **(لاتکفره بذنب)** دا جمله د **(الکف عمن الخ)** تفسیر او توضیح ده، یعنې کلمه ګو مسلمان ته د ګناه د وجهې کافر مه وائي ددې نه ژبې وساتئ او مه هغه د اسلام نه خارج ګڼئ، په اوله جمله کې په خوارجو باندې واضح رد دی، او په دویمه جمله کې د معتزلو واضح تردید دی، ځکه چې اولې فرقې د کبیرې مرتکب ته کافر ویلي دي او **داخل فی الکفر** یې منلی دی او دویمې فرقې معتزلو هغه د اسلام نه خارج منلی اګر که **داخل في الکفر** یې نه دی ورته ویلی. (المرقات ۱/۲۳۰)

**سوال** : دلته شبه دا ده چې یو کس مثلاً د دین د ضروریاتو نه انکار کوي او ورسره د کلمې ویونکی هم دی نو ایا د هغه تکفیر نه شي کیدلی؟.

**جواب** : دا دی چې دلته په حدیث کې **(لاتخرجه من الاسلام بعمل)** کې د عمل نه مراد هغه ګناه ده کومه چې د کفر یا د کفر د علامو (نښانو) نه علاوه ده، که چیرته کوم کس کفر کوي یا د دین د ضروریاتو انکار کوي یا د کفر نښې خپلوي مثلاً زنار اچوي یا د مصحف شریف توهین کوي هغه په ګندګۍ کې اچوي نو داسې کس کافر دی د هغه تکفیر کیږي اګر که سل ځلې کلمه ووایي، هو ! بې ګناه مسلمان ته کافر ویل ډیر غټ جرم دی.

**والجهاد ماض** : دا دویم اصل دی ددې نه مخکې د **(وثالیها)** محذوف راویستل بهتر دي، مطلب دا چې د جهاد فریضه کوم کس موقوف یا منسوخ کولی نه شي، بلکې دغه فریضه به جاري وي، د حدیث شارحینو لیکلي دي چې بعضو منافقینو به ویل چې وروره لږ صبر وکړه دغه نبي چې کله مړ شي نو د ده نه وروسته به مونږ خپل زاړه مذهب طرف ته واپس شو، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته چې کله معلومه شوه نو وې فرمایل : که چیرته دغه منافقین اسلام پریږدي نو د جهاد توره به موجوده وي کومه به چې دوی غوڅ کړي، د علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ عربي عبارت داسې دی : **(الجهاد ماض : فیه رد علی المنافقین و بعض الکفرة لانهم زعموا ان دَولة الاسلام تنقض بعد ایام قلائل کأنه قیل الجهاد ماض ای اعلام دولته**

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۱۰ حديث رقم ۲۵۳۲

**منشورة واولیائه منصورة واعدائه مقهورة الی یوم الدین**). (الکاشف ۱/۲۱۰)

ددغه حدیث دنفاق په علاموکې دراوړلو مناسبت دادی چې منافقینو اعتراض کړی وو **(والجهاد ماض)** مطلب دا شو چې د دجال تر راتلو پورې به جهاد جاري وي، د هغه سره وجنګیږئ مسلمان به کامیاب شي، بیا به یاجوج ماجوج راشي د هغو سره مقابله ممکنه نه ده بیا به کوم کافر پاتې نه شي نو جهاد به نه وي او بیا به د هغوی نه وروسته ټول کافر شي په کومو به چې قیامت قائم شي نو جهاد به څنګه وشي، لهذا جهاد به تر قرب قیامت پورې جاري وي.

بیا علماو دا هم لیکلي دي چې د جهاد د جاري کیدو سره د هغه د باقي پاتې کیدو عقیده او د هغه د حکم باقي پاتې کیدل او د هغه د مشروعیت باقي پاتې کیدل مراد دي، ځکه چې هر وخت هر ساعت خو د جنګ میدان ګرم نه وي اګر که په هر مسلمان ملک باندې واجب دی چې هغه په کال کې دوه ځلې د کفارو سره جنګ وکړي او دا ادنی درجه ده، د فرض کفایه نه همدا مراد دی چې د دنیا په کوم کونج کې د جهاد باقي پاتې کیدل په کار دي که چیرته ټوله دنیا جهاد پریږدي نو په مجموعي طور به خلق ګنهګار شي، ځکه چې **(الجهاد ماض)** یو حکم دی.

**منذ بعثني الله**: د دې جملې یو مفهوم دا دی چې د کله نه زما رب زه نبي جوړ کړم او رالیږلی یم د هغه وخت نه جهاد جاري شوی دی، دویم مفهوم دا دی چې د کله نه زما رب زه د مکې نه مدینې ته لیږلی یم د هغه وخت نه د جهاد حکم راغلی دی تردې چې د دغه امت اخیرنی کس راشي او د دجال سره جګړه وکړي، د دغه اخیرني کس نه مراد (حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ) دی او د حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ د نزول نه وروسته به د دغه امت د افرادو نه یو فرد وي اګر که نبوت به ورسره وي نو د **(آخر هذه الامة)** مطلب صحیح شو، په احادیثو کې په واضح طور راغلي دي چې د دجال وژونکی به حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ وي، د هجرت نه وروسته په عملي طور د جهاد د مشروعیت حکم راغی او دغه مشروعیت به تر قرب قیامت پورې برابر جاري وي، په دې سره هر مسلمان ته سوچ کول په کار دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جهاد د ایمان اصل او د هغه جرړه بللی دی نو د هغه د کمزوري کولو نه ځان ساتل په کار دي او د منبر پر سر د جهاد خلاف وینا کول غټه ګناه ده. (المرقات ۱/۲۳۳).

**لایبطله جور جائر**: یعني د اسلامي مملکت یو مشر غټ ظالم دی لیکن کله چې هغه د جهاد اعلان وکړي نو مسلمانانو ته په کار دي چې د جهاد دپاره ووځي او بهانه جوړه نه کړي چې مشر ظالم دی مونږ جهاد نه کوو، بلکې په حدیث کې دي **(الجهاد واجب علیکم مع کل امیر بر کان او فاجرًا وان عمل الکبائر)** مشکوة شریف، ص: ۱۰۰). (المرقات ۱/۲۳۳).

**ولا عدل عادل**: یعني د یو کافر ملک مشر لوی عادل دی نو د هغه عدالت او منصف مزاجي په خپل ځای ده مګر جهاد د هغه د عدل او انصاف له وجهې نه شي معطل کیدی، بلکې د اسلام د شوکت زیاتیدو دپاره او د کلمة الله د جوړیدو دپاره دې د همدغه عادل او منصف بادشاه او د هغه د قوم سره دې جهاد وکړی شي. (المرقات ۲۳۳-۱/۲۳۴).

**والایمان بالاقدار**: دادریم اصل دی کوم چې ایمان بالقدر دی، یعنې کوم شی چې په تفصیل کې راغلی هغه د پخوا نه په اجمالي شکل باندې مقدر شوي او په تقدیر کې لیکل شوي لکه څرنګه چې یو انجینئر یو نقشه په ذهن کې جوړوي بیا د هغې خارجي وجود په تفصیل سره په وجود کې راځي همدارنګه د الله تعالی سره یو اجمالي خاکه ده دهغې مطابق تفصیلات راروان دي، تقدیر د تسلی دپاره یو عظیم سبب دی، په سخت مصیبت کې یو مسلمان وایي څه په تقدیر کې همداسې لیکل شوي وو الله تعالی همدا مقدر کړي وو، ددې تسلی نه کفار محروم دي، د ایمان بالقدر تفصیل را روان دی. (المرقات ۱/۲۳۴).

## د زنا کولو په وخت کې ایمان خارجیږي

| |
|---|
| (۱۰) وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا زَنَى الْعَبْدُ |
| د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې بنده زنا کوي نو |
| خَرَجَ مِنْهُ الْإِيمَانُ فَكَانَ فَوْقَ رَأْسِهِ كَالظُّلَّةِ فَإِذَا خَرَجَ مِنْ ذَلِكَ الْعَمَلِ |
| ایمان دهغه نه ووځي او دهغه په سرباندې د سوري په شان ځوړندوي بیا کله چې هغه ددغه معصیت نه فارغ |
| رَجَعَ إِلَيْهِ الْإِيمَانُ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد)[1] |
| شي نو ایمان د هغه طرف ته بیرته را وګرځي. |

**توضیح**: **خرج منه الایمان**: سوال دا دی چې کله ایمان ووځي نو آیا دغه انسان کافر شو؟ د دې جواب دادی چې شهودې ایمان غائبیږي، دویم دا چې ایماني نور ځي، دریم دا چې کامل ایمان ځي، څلورم دا چې ایماني حیاء ځي، پنځم دا چې دتشدید او تغلیظ په شکل ویل شوي، شپږم دا چې په وقتي طور ځي، اوس چې ددغه قباحت نه فارغ شي نو ایمان واپس بیرته راځي، دکبیرې دارتکاب په وخت کې هم دغه کس د ایمان په سوري کې دی خو علماؤ لیکلي که چیرته دغه کس په دې وخت کې مړشي نو د ایمان نه بغیر مړشو څکه چې ایمان سوری جوړ شوی وو دده نه تلی وو او دواپس راتلو موقع یې پیدا نه کړه اعاذنا الله

(۱) أخرجه الترمذي تعليقا ٥/ ١٧، رقم الحديث: ٢٦٢٥، وأبوداود في سننه ٥/٦٦، رقم الحديث: ٤٦٩٠ .

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د لسو خبرو وصيت

| |
|---|
| (۱۱) عَنْ مُعَاذٍ قَالَ أَوْصَانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَشْرِ كَلِمَاتٍ قَالَ |
| د حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ما ته د لسو خبرو وصيت وکړ چنانچه وې فرمايل |
| لَا تُشْرِكْ بِاللهِ شَيْئًا وَ إِنْ قُتِلْتَ وَ حُرِّقْتَ وَلَا تَعُقَّنَّ وَالِدَيْكَ |
| (۱) د الله سره هيڅوک مه شريکوه اګر که ته ووژل شې او په اور وسوځول شې (۲) د مور او پلار نافرماني |
| وَ إِنْ أَمَرَاكَ أَنْ تَخْرُجَ مِنْ أَهْلِكَ وَ مَالِكَ وَلَا تَتْرُكَنَّ صَلَاةً مَكْتُوبَةً مُتَعَمِّدًا |
| مکوه اګر که هغوی تا ته د خپل اهل او مال پرېښودو حکم وکړي (۳) قصدًا کوم فرض مونځ مه پرېږده، |
| فَإِنَّ مَنْ تَرَكَ صَلَاةً مَكْتُوبَةً مُتَعَمِّدًا فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ ذِمَّةُ اللهِ وَلَا تَشْرَبَنَّ خَمْرًا فَإِنَّهُ |
| ځکه کوم کس چې قصدًا مونځ پرېږدي الله تعالی د هغه نه برئ الذمه کېږي (۴) شراب مه څکه، ځکه |
| رَأْسُ كُلِّ فَاحِشَةٍ ، وَ إِيَّاكَ وَ الْمَعْصِيَةَ فَإِنَّ بِالْمَعْصِيَةِ |
| چې شراب د ټولو بديو جرړه ده (۵) د الله تعالی د نافرمانۍ نه ځان وساته ځکه چې په نافرمانۍ کولو سره د |
| حَلَّ سَخَطُ اللهِ وَ إِيَّاكَ وَ الْفِرَارَ مِنَ الزَّحْفِ وَ إِنْ |
| الله تعالی غصه رانښکته کېږي (۶) په جهاد کې د دښمن نه هيڅکله شا مه اړوه اګر که د تا سره ملګري ټول |
| هَلَكَ النَّاسُ وَ إِذَا أَصَابَ النَّاسَ مَوْتٌ وَ أَنْتَ فِيهِمْ |
| خلک ووژل شي (۷) کله چې په خلکو کې مرګ (د وباء په صورت کې) خورشي او ته په هغوی کې موجود يې |
| فَاثْبُتْ أَنْفِقْ عَلَى عِيَالِكَ مِنْ طَوْلِكَ |
| نو ثابت قدم اوسه (يعنې د هغو د مينځ نه مه تښته) (۸) په خپل اهل او عيال باندې د طاقت مطابق مصرف کوه |
| وَلَا تَرْفَعْ عَنْهُمْ عَصَاكَ أَدَبًا وَ أَخِفْهُمْ فِي اللهِ . (رَوَاهُ أَحْمَدُ)[1]. |
| (۹) تاديبًا خپله ډنډه (همسا) د هغو نه مه پورته کوه (۱۰) او د الله تعالی په معامله کې هغوی وويروه. |
| (يعنې که په اهل او عيال کې يو چا ته سزا د تاديبًا يو څه وهل ټکول ضروري شي نو په دې کې سستيا مکوه د |

(۱) أخرجه احمد في المسند ۵/۲۳۸.

ښو ښو خبرو نصیحت او تلقین ورته کوه د دین د احکامو او مسائلو تعلیم ورکوه او د ناروا خبرو نه د هغو د ساتلو کوشش کوه).

**توضیح : اوصاني**: تاکیدي حکم او د مهم بیان وصیت ته ویل کیږي لکه قریب الموت کس چې خپلو پس ماندګانو ته د مهمو او ضروري خبرو یادونه او وصیت کوي. (المرقات ۱/۲۳۵).

**وان قتلت وحرقت** : سوال دا دی چې په قرآن کریم کې د اکراه په صورت کې د کفر او شرک زباني او په ظاهري طور باندې ارتکاب روا ګرځول شوی ترڅو چې ځان وساتل شي، لیکن دلته د حدیث نه معلومه شوې ده چې د اکراه په حالت کې هم اجازه نشته، د دې جواب دا دی چې دغه کلام په فرضي طور باندې دی، یعنې شرک مکوه، فرض کړه که وسوځول هم شې یا د قتل دپاره وړاندې هم شې خو د شرک نه ځان وساته، دویم جواب دا دی چې یو عزیمت دی یو رخصت دی، رخصت خو دا دی د کوم ذکر چې په قرآن کې دی چې په زړه سره مؤمن وي صرف په ژبه د اکراه په صورت کې د کفر کلمه ووایي نو د ځان ساتلو دپاره رخصت دی اجازت دی، بل طرف ته په حدیث کې رسول الله ﷺ صحابي ته په عزیمت باندې د عمل کولو حکم کړی دی چې ځان ورکړه خو د شرک ارتکاب مه کوه، نو په عزیمت باندې عمل کول د صحابي جدا شان دی. (المرقات ۱/۲۳۵).

**ولاتعقن والدیک** : په عقوق والدین کې دا تفصیل دی چې که چیرته د والدینو حکم د شرعي امر د کولو سره متعلق وي نو په هغه کې د والدینو اطاعت فرض دی، او که چیرته د کوم منکر کار سره د والدینو حکم متعلق وي نو د هغوی نه اطاعت کول فرض دي، او که چیرته د کوم مباح کار سره متعلق وي نو اطاعت کولی شي په دې شرط چې په اطاعت سره به د فتنې راپورته کیدو خطر نه وي. (المرقات ۱/۲۳۵).

**برأت منه ذمة الله : ای امن الله** : شیخ عبدالحق رحمه الله لیکلي دي چې قصدا د مونځ د پریښودونکي نه د الله تعالی د حفاظت ذمه واري پورته کیږي، یعنې دا وخت دغه انسان محفوظ الدم نه پاتې کیږي، بلکې مهدور الدم کیږي، په دې کې بیا د فقهاء کرامو رأیې مختلفې دي، د حضرت امام شافعي رحمه الله او امام مالک رحمه الله په نزد قصدا د مونځ پریښودونکی مرتد نه دی، البته واجب القتل دی او دغه سزا د هغه د دغه عمل رد عمل دی، امام احمد رحمه الله ویلي دي چې تارک صلوة دې ووژل شي او دغه د ارتداد یو شکل دی، امام ابو حنیفة رحمه الله ویلي دي چې تارک صلوة دې په قید خانه کې واچول شي تردې پورې چې یا توبه وکړي یا په قید خانه کې مړ شي، بعضو اهل الله ویلي دي هغه څوک چې مونځ نه کوي د مسلمانانو په هدیره کې دې نه خښول کیږي، بابا سعدي رحمه الله ویلي دي چې بیلمازه ته قرض مه ورکوئ، ځکه څوک چې د الله تعالی قرض نه اداء کوي هغه به ستاسو حق څنګه اداء کړي. (اشعة اللمعات ۱/۸۴، المرقات ۱/۲۳۶).

**فانه رأس کل فاحشة**: ځکه چې د شرابو په څکلو سره عقل نابود کيږي، او کله چې عقل لاړ شي نو بيا د ګناه لار خلاصه شي. (المرقات ۱/۲۳۶). **اذا فاتک الحياء فافعل ماشئت**: يعنې اوس په فاحشه او غير فاحشه کې تميز کول ختم دي څه چې غواړي کوه يې.

**واذا اصاب الناس موت**: يعنې چيرته چې طاعون يا وبائي مرضونه وي هلته ورتلل شرعًا روا نه دي او د هماغه ځای نه تښتيدل هم روا نه دي، دا داسې ناروا دي لکه د جنګ په ميدان کې چې د دښمن نه تښتيدل ناروا دي. (المرقات ۱/۲۳۶). **وانفق على عيالک من طولک**: طول د طاقت قدرت او وسعت په معنی سره دی، يعنې واجبي نفقات خو په ذمه باندې دي، په زائدو نفقاتو سره هم په اهل او عيال باندې مصرف وکړئ خو د خپل طاقت مطابق. (المرقات ۱/۲۳۷).

**عصاک ادبا**: يعنې د تاديب او تهذيب دپاره ضروري دي چې هر وخت همسا په اوږه باندې وي او په هغې سره د ښځې او د ماشومانو اصلاح جاري وي، مګر دغه وهل ټکول به د ادب دپاره وي نه د عذاب او تعذيب په شکل، خلاصه دا ده چې د هغوی د تاديب او ښه تعليم دپاره زجر توبيخ وهل ټکول په کار دي. (المرقات ۱/۲۳۷).

## اوس يا کفر دی يا ايمان

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ إِنَّمَا النِّفَاقُ كَانَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د حضرت حذيفه رضي الله عنه نه روايت دی چې د نفاق حکم د رسول الله صلى الله عليه وسلم په عهد سره ختم شوی، |
| فَأَمَّا الْيَوْمَ فَإِنَّمَا هُوَ الْكُفْرُ أَوِ الْإِيمَانُ (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1]. |
| لهذا اوس دوه صورتونه دي يا به کفر وي يا ايمان. |

**توضيح**: **فاما اليوم**: د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مبارک عهد کې د يو شمير مصلحتونو د وجې منافقين د مسلمانانو په حکم کې ساتل شوي وو او د هغوی ټول سازشونه برداشت کړی شوي وو، حضرت حذيفه رضي الله عنه ويلي دي: اوس هغه معامله نه ده پاتې شوې، اوس که چيرته معلومه شي چې کوم کس منافق دی، نو په هغه دې د ارتداد حکم جاري شي او اسلامي حکومت دې هغه ته د مرګ سزا ورکړي. (المرقات ۱/۲۳۷).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶۹/۱۳ رقم الحديث: ۷۱۱۴

۱ محرم الحرام ۱۴۰۹هـ

# بَابٌ فِي الْوَسْوَسَةِ

وسوسه په لغت کې نرم آواز او د سرو زرو خختې ته ویل کیږي. لکه شاعر وایي:

هَوْءُ الْجَبِيْنِ وَوَسْوَاسُ الْحُلِيِّ وَمَا ❁ يَفُوْحُ مِنْ عَرَقٍ كَالْعَنْبَرِ الْعَبِقِ

وسواس او وساوس هم د وسوسه په معنی سره دي، بیا وسواس وسوسه اچونکي شیطان ته ویل شوي د زید عدل په شان، یعنې د مبالغې په طور شیطان ته وسواس ویل شوی، ځکه چې شریعت د هرې بدۍ نسبت شیطان ته کړی دی ترڅو چې د دغه خطرناک دشمن نفرت او دشمنۍ په زړونو کې کینې، او د هر خیر نسبت یې د الله تعالی طرف ته کړی دی، اګر که د خیر او شر خالق الله دی، بهر حال فاسد خیالونه او بیکاره فکرونه کوم چې د شیطان په مداخلې سره انسان د کفر یا معصیت پورې رسوي د هغونوم وسوسه ده.دویم تعریف داسې دی : کوم قلبي فکرونه(خیالات) چې د رذائلو طرف ته بلنه کوي هغه وسوسه ده، او کوم قلبي فکرونه(خیالات) چې د فضائلو طرف ته داعي وي هغه الهام دی، د غیر معصوم کس الهام حجت نه دی ، هو که چیرته د شریعت موافق وو نو د تسلی وړ دی. ( المرقات ۱/۲۳۸).

ددې سره ورته یو تعبیر داسې دی چې کوم سوچونه(خیالات) د شرک وي هغه وسوسه ده، او په زړه باندې کوم راتلونکي سوچونه(خیالات) چې د خیر دي هغه الهام دی، د وسوسې پنځه اقسام دي چې یو شاعر په دې شعر کې راجمع کړي دي :

مراتب القصد خمس هاجس ذکروا ❁ فخاطر فحديث النفس فاستمعا

يليه هم فعزم کلها رفعت ❁ سوى الاخير ففيه الاخذ قد وقعا

(۱) **هاجس** : کوم خیالات چې په زړه باندې یو ځل راشي او بیا رفع شي دا هاجس دی.(۲) **خاطر** : کوم خیال چې زړه ته بار بار راځي او قرار نه نیسي هغه ته خاطر ویل کیږي.(۳) که چیرته ددې خیالات استقرار په زړه کې راشي مګر دومره ضعیف وي چې د کار په کولو او نکولو کې کوم طرف ته ترجیح نوي نو دې ته **حديث النفس** ویل کیږي(۴) او که چیرته خیالات په زړه کې دومره مضبوط او قوي شي چې موجب فعل شي، مګر د فعل جانب مرجوح وي نو دا د (هم) درجه ده(۵) او که چیرته د (هم) درجه په زړه کې دومره قوي شي چې د فعل جانب راجح شي یعنې صرف د موقع انتظار وي نو دا (عزم) دی.

په اولنیو دریو قسمونو باندې نه ثواب شته نه عذاب بالکل معاف دي، ځکه چې دا غیر اختیاري دي. د (هم) په درجه کې چې کومه وسوسه ده دا په سینه او د شر په کار کې معاف ده، دا د دې امت اعزاز دی، او د خیر او د ثواب په کار کې د لسو پر ځای یوه نیکي ورکول کیږي.او په (عزم) کې که چیرته د ګناه

عزم وي نو د عذاب مستحق کيږي، او که چيرته د حسنې او د نيکۍ عزم وي نو ﴿مَن جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا﴾ د وعدې مطابق لس چنده ثواب ورکول کيږي. يا قلبيه عزائم بنه عقائد دي نو په هغو باندې ثواب دی، او په بدو عقائدو کې عذاب دی په دې کې اتفاق دی. او که چيرته دغه قلبيه عزائم د اخلاقياتو د قبيلې نه وي نو په ښو اخلاقو او صفاتو باندې ثواب ورکول کيږي، او په بدو باندې عذاب شته، او په دې باندې هم اتفاق دی، ښه اخلاق صبر، شکر، د آخرت فکر، تواضع وغيره دي، ناکاره اخلاق تکبر، عجب، کينه، حسد او وغيره دي، او که چيرته دغه قلبيه عزائم له جوارحو (اندامونو) سره متعلق وي نو په دې کې اختلاف دی، بعضو د عزم په درجه کې د مؤاخذې قول کړی او بعضو د عدم مؤاخذې قول کړی، راجح دا ده چې مواخذه شته، والله اعلم. (المرقات ۱/۲۳۹).

# الْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## دوسوسو معافي

| |
|---|
| (۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ |
| د حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: حقيقت دا دی چې الله تعالى |
| تَجَاوَزَ عَنْ أُمَّتِي مَا وَسْوَسَتْ بِهِ صُدُورُهَا مَا لَمْ |
| زما امت ته د هغو وسوسو معافي کړې ده کوم چې د هغو په زړونو کې پيدا کيږي، ترڅو پورې چې هغوي |
| تَعْمَلْ بِهِ أَوْ تَتَكَلَّمْ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).[1] |
| په دغو وسوسو باندې عمل ونه کړي او هغه په ژبه باندې را نه وړي. |

**توضيح: ما وسوست به صدورها: صدورها** مرفوع دی کوم چې د وسوست فاعل دی او دا راجح دی، يا منصوب دی د ظرفيت په بناء باندې او فاعل محذوف دی (**ای ما وسوست الشياطين به فى صدورها**) د **ها** ضمير امت طرف ته راجع دی، او د امت نه مراد امت اجابت دی امت دعوت يعنې کفار مراد نه دي.

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۶۰/۵، رقم الحديث :۲۵۲۸، ومسلم في صحيحه ۱۱۶/۱ رقم الحديث : ۲۰۲-۱۲۷، واخرجه ابوداود في السنن ۶۵۷/۲، رقم الحديث : ۲۲۰۹، والنسائي ۱۵۶/۶ ، رقم الحديث :۳۴۳۴ ، والترمذي ۴۸۹/۳، رقم الحديث :۱۱۸۳، وابن ماجه في السنن ۴۸۹/۳، رقم الحديث : ۲۰۴۰، واحمد في مسنده ۳۹۳/۲ .

شیخ عبدالحق محدث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې دلته د عزم نه بغیر وسوسه مراد ده، په عزم باندې مواخذه د نورو نصوصو د وجې ده مثلا والاثم ما حاک في نفسک وتردد او یا حدیث فالقاتل والمقتول في النار قیل الخ په دغه حدیث کې مقتول هم مجرم ګرځول شوی، ځکه چې هغه هم حریص وو د خپل ورور په وژلو باندې کومه چې د عزم درجه ده، خلاصه دا چې د ذکر شوي حدیث نه په ظاهر د عزم درجه هم معاف ده مګر د نورو نصوصو په وجه د عزم درجه مستثنی شوې ده. (اشعة اللمعات ۱/۸۵، المرقات ۱/۲۳۹).

**ما لم تعمل به**: که چیرته هغه کار د فعل سره تعلق لرلو د نو ترڅو پورې یې چې د فعل ارتکاب نه وي کړی نو معاف دی. (المرقات ۱/۲۳۸).

**او تتکلم**: ای لم تتکلم: یعنې که چیرته هغه کار د قول سره متعلق وو نو چې ترڅو پورې یې کلام نوي کړی صرف وسوسه ده نو معاف دی، معلومه شوه چې کوم اقوال افعال او اعمال د جوارحو نه په غیر قلبي عقائدو وغیره سره متعلق وي هغه هر وخت ګناه دي. (المرقات ۱/۲۳۸).

## وسوسه راتلل د ایمان دلیل دی

| |
|---|
| (۲) وَعَنْهُ قَالَ جَاءَ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې یوه ورځ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُم د رسالتپناه دربار کې حاضر |
| فَسَأَلُوهُ إِنَّا نَجِدُ فِي أَنْفُسِنَا مَا يَتَعَاظَمُ |
| شوا وعرض یې وکړه چې مونږ په خپلو زړونو کې څه داسې وسوسې موندلې دي د کومو چې په ژبه باندې |
| أَحَدُنَا أَنْ يَتَكَلَّمَ بِهِ قَالَ أَوَقَدْ وَجَدْتُمُوهُ |
| راوړل هم مونږ بد ګڼو نبي عَلَيْهِ السَّلَام تپوس وکړو آیا تاسو په رښتیا هم داسې موندلي (چې کله کومه داسې |
| وسوسه په تاسو کې د ننه پیدا شي کومه چې ستاسو زړونه په خپله هغه نه خوښوي او د هغې په ژبه باندې |
| قَالُوا نَعَمْ قَالَ ذَلِكَ صَرِيحُ الْإِيمَانِ. (۱) (رَوَاهُ مُسْلِمٌ). |
| راوړل هم تاسو بد ګڼئ؟) صحابه کرامو عرض وکړو آو! بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَام وویل دا ښکاره ایمان دی. |

**توضیح: ما یتعاظم**: یعنې د هغو تصور او د هغو په ژبه باندې راوړل هم مونږ دیر غټ جرم ګڼو لکه

(۱) اخرجه مسلم في صحیحه ۱/۱۱۹، رقم الحدیث: ۲۰۹-۱۳۲.

څوک چې ووايي (من خلق الله کيف هو؟ اين هو؟) تعاظم د باب تفاعل نه د مبالغې دپاره راغلی دی (اى نستعظم غاية الاستعظام) قاعده دا ده چې کله د مفاعلې باب د مبالغې يعنې د جانبينو دپاره استعمال هم نه شي بيا هم مبالغه په هغه کې وي نو دلته د مبالغې دپاره شوه. (المرقات ۱/۲۴۱).

**او قد وجدتموه**: دا په مقدر باندې عطف دی (اى اوقد حصلتموه وقد وجدتموه). (المرقات ۱/۲۴۱).

**ذلک صريح الايمان**: وسوسه راتلل صريح ايمان نه دی بلکې د وسوسې د ومره غټ او بد ګڼل دا صريح ايمان دی يعنې چې په ژبه باندې نه شي راوړل کيدی نو په زړه کې به څومره متنفره وي، په دغه جمله کې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ امت ته تسلي ورکړې او ګويا چې د وسوسې علاج دی چې وسوسه راشي او که لاړه شي که هر څه وي نو ستاسو ايمان ته نقصان نه شي رسولی تاسو هيڅ پروا مه کوئ. ځکه چې خالي کور چې وران پروت وي نو هيڅوک نه ورځي، يادا چې بې ميوې ونه په کاڼو نه ويشتل کيږي بلکې کومه ونه چې ميوه داره وي هغه په کاڼو ويشتل کيږي او چيرته چې څه موجود وي هلته غل راځي (المرقات ۱/۲۴۱)

## د شيطاني وسوسو نه په الله تعالى سره پناه وغواړئ

| |
|---|
| (۲) وَ عَنْهُ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِي الشَّيْطَانُ أَحَدَكُمْ |
| دابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: په تاسو کې د بعضو کسانو خواته شيطان راځي |
| فَيَقُولُ مَنْ خَلَقَ كَذَا حَتَّى يَقُولَ مَنْ خَلَقَ رَبَّكَ |
| او دا وايي چې فلاني فلاني شيان چا پيدا کړي؟ تردې چې بيا هغه دا هم وايي چې ستاسو پروردګار چا پيدا |
| فَإِذَا بَلَغَهُ فَلْيَسْتَعِذْ بِاللهِ وَلْيَنْتَهِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). (۱) |
| کړی؟ کله چې خبره تردې ځايه راشي نو هغه ته په کار دي چې په الله سره پناه وغواړي. |

**توضيح**: **فاذا بلغه**: په دې کې د فاعل ضمير مرفوع دی کوم چې احدکم طرف ته راجع دی او ه ضمير د مفعول به دی اى اذا بلغ احدکم هذا القول يا ضمير مرفوع شيطان طرف ته راجع دی يعنې کله چې شيطان په دې کې تردې ځايه ورسيږي نو ته د مردود شيطان نه په الله پناه وغواړه (المرقات ۱/۲۴۲)

**فليستعذ بالله**: علامه خطابي رَحِمَهُ اللهُ ويلي چې شيطاني اغواء او د هغه وسوسې غير متناهي دي که چيرته

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۳۶، رقم الحديث ۳۲۷۶، ومسلم في صحيحه ۱/۱۲۰ رقم الحديث : ۲۱۴-۱۳۴.

هغو ته مهلت ورکړی شي نو معامله نه ختميږي، بلکې خطرناکه جوړيږي. لهذا پناه دې وغوښتل شي او معامله دې ختمه کړی شي، ځکه چې په تعوذ سره هغه تښتي. يعنې اعوذ بالله او معوذتين ووايه دا تصور وکړه چې د لوی بادشاه په پناه کې راغلم هغه د شيطان نه زما حفاظت کوي په دې سره وسوسه ختميږي علامه ابن قيم رَحِمَهُ اللَّهُ تعوذاتو د پاره لس وظيفې معلومې کړې (۱) تعوذ بالله (۲) قرائت معوذتين (۳) آية الکرسي (۴) قرائت سورة بقرة (۵) د امن الرسول لوستل (۶) حم المؤمن واليه المصير پورې لوستل (۷) کثرت ذکر الله (۸) په کثرت سره د لا اله الا الله ويل (۹) په اودس کې اوسيدل (۱۰) په اجنبياتو باندې د غلط نظر نه د خپلو سترګو ښکته ساتل. په دې سره د وسوسو دروازه بنديدلی شي.

## د وسوسو دفع کولو وظيفه

(۴) وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَزَالُ النَّاسُ

د ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: خلک هميشه (په خپلو زړونو کې د مخلوقاتو

يَتَسَاءَلُونَ حَتّٰى يُقَالَ هٰذَا خَلَقَ اللهُ الْخَلْقَ

وغيره باره کې) د خيالاتو پوښتنې کوي تردې چې ووايي چې دغه ټول مخلوقات خو الله تعالی پيدا کړي

فَمَنْ خَلَقَ اللهَ فَمَنْ وَجَدَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا

نو خدای چا پيدا کړی دی؟ پس د کوم کس په زړه او دماغ کې چې د اقسم خيال او وسوسه پيدا شي نو هغه

فَلْيَقُلْ آمَنْتُ بِاللهِ وَ رُسُلِهِ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). [1]

دې داسې ووايي چې ما په خدای تعالی باندې او د هغه په رسول صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې ايمان راوړی دی.

**توضيح: يتساءلون**: يعنې انسانان په خپل مينځ کې د يو بل نه پوښتنې کوي يا مراد دادی چې انسان د شيطان سره معامله کوي مګر دغه احتمال بعيد دی چې د انسان او د شيطان په مينځ کې دغه مکالمه وشي دريم احتمال دا چې انسان د خپل نفس نه سوال کوي **يقال هذا خلق الله الخلق هذا** مبتداء ده خبر محذوف دی کوم چې معروف يا مشهور دی **(يعني هذا القول مشهور ومسلم وهو ان الله خلق الخلق فما تقول في الله فان الله شيء وکل شيء مخلوق فمن خلق الله؟ (طيبي) فليقل آمنت بالله ورسله**

---

(۱) الحديث ليس بموجود في صحيح البخاري إنما الموجود رواية أنس لن يبرح الناس يتساءلون حتى يقولوا هذا الله خالق كل شيء فمن خلق الله. رقم الحديث ۷۲۹۶، ومسلم في صحيحه ۱۱۹/۱ رقم الحديث ۲۱۲-۱۳۴، واخرجه ابوداود في السنن ۹۱/۵، رقم الحديث ۴۷۲۱، واحمد في مسنده ۲۸۲/۲

یعنې دغه سوال جواب او دغه خیال دکفر دی،ددې وجې نه مسلمان ته په کار دي چې سمدستي ووایي آمنت بالله ورسله ترڅو چې په دې سره د هغه دایمان تجدید وشي،د وسوسې دفع کولویو علاج دا هم دی چې دهر مونځ نه وروسته ۷ځلې داآیت کریمه ولوستل شي او دم کړی شي نو وسوسه به نه راځي.هغه آیت دادی : ﴿وَقُل رَّبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ وَأَعُوذُ بِكَ رَبِّ أَن يَحْضُرُونِ﴾(المرقات ۱/۲۴۳)

## دهر انسان سره پیری او فرښته مقرر دي

| |
|---|
| (۵) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ |
| دابن مسعود رَضِيَاللهُعَنْهُ نه روایت دی چې نبي عَلَیْهِالسَّلَام ارشاد وفرمایلو : په تاسو کې هیڅ کس داسې نشته |
| إِلَّا وَ قَدْ وُكِّلَ بِهِ قَرِينُهُ مِنَ الْجِنِّ وَ قَرِينُهُ مِنَ الْمَلَائِكَةِ |
| دکوم سره چې یو ملګری د پیریانو (شیطان) نه او یو ملګری د فرښتو نه مقرر شوی نه وي صحابه کرامو |
| قَالُوا وَ إِيَّاكَ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ وَ إِيَّايَ وَ لَكِنَّ |
| عرض وکړو ،یارسول الله! آیاد تاسو سره هم شته؟ نو نبي عَلَیْهِالسَّلَام وفرمایل : هو ! زما سره هم شته، لیکن |
| اللهَ أَعَانَنِي عَلَيْهِ فَأَسْلَمَ |
| لیکن خدای تعالی ماته د شیطان سره په مقابله کولو کې مرسته راکړې ده نو ځکه زه د هغه مکر فریب او |
| فَلَا يَأْمُرُنِي إِلَّا بِخَيْرٍ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1] |
| د هغه د ګمراهي نه محفوظ یم (بلکې تردې پورې چې) هغه هم ماته د نیکی مشوره راکوي |

**توضیح : وکل به قرینه:** دادمجهول صیغه ده **قرین** ملګري ته ویل کیږي کوم چې دپیدا ینښت دوخت نه د انسان سره وي ترڅو چې هغه مسخر کړي او دځان تابع یې جوړ کړي،کوم چې انسان پیداشي نو دهغه دپاره یو شیطان یوه فرښته مقرریږي. فرښته (**ملهم الخیر**) او شیطان (**وسواس الشر**). (المرقات ۱/۲۴۴)

**اعانني علیه :** یعنې د هغه په مقابله کې الله زما مرسته او نصرت کړی دی. (المرقات ۱/۲۴۵).

**فأسلم :** د اسلم دغه لفظ د **میم** په فتحې سره د ماضي صیغه هم ویل شوي ده او د **میم** په ضمې سره د

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۶۷/۴ رقم الحديث ۶۹، وأحمد في مسنده ۱/۳۸۵

متكلم صيغه هم ويل شوې ده، اوس سوال دا دی چې اسلم كه د ماضي صيغه ده نو بيا شيطان څنګه مسلمان شو؟ نو ددې اعتراض د وجې علماو ددې لفظ په مفهوم كې اختلاف كړی دی. علامه خطابي رَحِمَهُ اللَّهُ هغه د متكلم په معنی سره اخستلی دی، يعنې زه د هغه د شر نه محفوظ كړی شوی يم، او بعضو علماؤ د ماضي صيغه راجحه ګرځولې ده، او د اسلام راوړلو مطلب دا دی چې هغه منقاد مطيع او فرمانبردار شوی دی دا رأيه د قاضي عياض رَحِمَهُ اللَّهُ او نورو ده، ابن تيميه رَحِمَهُ اللَّهُ ددې نه په غير نور توجيهات تحريف ګڼلي دي، هغه ويلي دي چې **اسلم بمعنی استسلم** او انقياد دی او **فلا يأمرني الا بخير** هم په دې باندې دلالت كړی دی. (المرقات ۱/۲۴۵).

## شيطان د انسان په رګونو كې ګرځي راګرځي

| |
|---|
| **(۶) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِي مِنَ الْإِنْسَانِ** |
| د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل چې په انسان كې د ننه شيطان د اسې منډې رامنډې |
| **مَجْرَى الدَّمِ . ( مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ )[1].** |
| وهي لكه څنګه چې په رګونو كې وينه ګردش كوي. |

**توضيح** : **يجری مجری الدم** : وينه چې په رګونو كې كوم كوم ځای ګرځي راګرځي هغو ته مجری الدم ويل شوي دي، يا كلام يا خو تشبيه ده نو په مجاز باندې محمول دی او مجری به مصدر ميمي شي، يعنې شيطان هلته وسوسې اچوي چيرته چې وينه ځي، او يا دا كلام په حقيقت باندې بناء دی چې شيطان په خپله د ننه ننوځي د وينې سره ګرځي چيرته چې وينه ځي هلته شيطان ځي، بيا كلام داسې شو **(يجری من الانسان كجريان الدم او يجری في مجاري الدم)** نو په خپله د ننه ځي وسوسې اچوي، دا دې خبث ته الله تعالی يو قوت او په انسانانو باندې د قابو موندلو اختيار وركړی دی كوم چې ازمايښت دی. (المرقات ۲۴۵-۱/۲۴۶).

## شيطان د ماشومانو د پيدايښت په وخت كې چک لګوي

| |
|---|
| **(۷) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ بَنِي آدَمَ مَوْلُودٌ** |
| د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل: د بني آدم چې د لته كوم بچی پيدا كيږي |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۳۶/۶، رقم الحديث ۳۲۸۱، ومسلم في صحيحه ۱۷۱۲/۴ رقم الحديث ۲۳، وأخرجه ابوداود في السنن ۸۳۴/۲، رقم الحديث ۴۷۰ ،۲، وابن ماجه في السنن ۵۶۶/۱، رقم الحديث ۱۷۷۹، واحمد في مسنده ۱۵۶/۳

| |
|---|
| إِلَّا يَمَسُّهُ الشَّيْطَانُ حِينَ يُولَدُ فَيَسْتَهِلُّ صَارِخًا مِنْ مَسِّ الشَّيْطَانِ غَيْرَ مَرْيَمَ وَابْنِهَا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). [۱] |
| شیطان په هغه چک لګوي د کوم د وجې چې ماشوم چغه کوي بغیر د مریم او د هغې د زوی (حضرت عیسی) نه. |

**توضیح: یستهل صارخا**: شیطان که چیرته په ظاهري طور ماشوم ته ټونګه ورکوي نو د دغې ټونګې په لګولو سره ماشوم چیغه وهي. او که چیرته ظاهري مسه نه ده بلکې باطني ده نو چونکه ماشوم معصوم او پاک طینت دی د شیطان د وسوسو نه ناخبره دی نو دا غیر مانوس وګڼي او چغه کړي. استهلال د نوي پیدا شوي ماشوم چیغې ته ویل کیږي. (المرقات ۱/۲۴۶).

**غیر مریم وابنها**: د حضرت مریم عَلَيْهَا السَّلَام مور دا دعا غوښتې وه ﴿ وإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ﴾ الله تعالی یې دعا قبوله کړې وه نو محفوظ شول. باقي متکلم عادةً د کلام د محاورې نه په خپله خارج دی که نه نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم ددې مس نه محفوظ وو دا جزئي فضیلت دی په کوم سره چې هیڅ اعتراض واقع کیدلی نه شي. (المرقات ۱/۲۴۷).

| |
|---|
| (۸) وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صِيَاحُ الْمَوْلُودِ حِينَ يَقَعُ |
| د ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: د پیدا ایښت په وخت کې ماشوم څکه چغه |
| نَزْغَةٌ مِنَ الشَّيْطَانِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). [۲] |
| کوي چې شیطان په هغه باندې چک لګوي. |

## د کورني ژوند تباه کول د شیطان خوښ عمل دی

| |
|---|
| (۹) وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ إِبْلِيسَ يَضَعُ عَرْشَهُ عَلَى الْمَاءِ |
| د جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: ابلیس د خپل حکومت تخت په سمندر باندې ایښي |
| ثُمَّ يَبْعَثُ سَرَايَاهُ يَفْتِنُونَ النَّاسَ |
| وي بیا د هغه ځای نه خپل فوځونه ولیږي تر څو چې هغوی خلک په فتنو او ګمراهۍ کې مبتلا کړي د ابلیس په |
| فَأَدْنَاهُمْ مِنْهُ مَنْزِلَةً أَعْظَمُهُمْ فِتْنَةً يَجِيءُ أَحَدُهُمْ |
| فوځ کې هغه ته تر ټولو نږدې هغه دی کوم چې د ټولو نه د زیاتو فتنو اچوونکی وي په هغو کې چه یو واپس راشي |

فَيَقُولُ فَعَلْتُ كَذَا وَ كَذَا فَيَقُولُ مَا صَنَعْتَ شَيْئًا

وبه وايي مافلانى فلانى فتنې پيدا كړې. ابليس دهغه په جواب كې وايي تا هيڅ نه دي كړي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

قَالَ ثُمَّ يَجِيءُ أَحَدُهُمْ فَيَقُولُ مَا تَرَكْتُهُ حَتَّى

وفرمايل چې بيا به په هغو كې يو راشي او وبه وايي ما (د يو بنده گمراه كول شروع كړل) او تر هغه وخته

فَرَّقْتُ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ امْرَأَتِهِ قَالَ

په دغه كس پسې پرې نږدم ترڅو چې د هغه او د هغه د ښځې په مينځ كې جدائي رانه ولم نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل

فَيُدْنِيهِ مِنْهُ وَ يَقُولُ نِعْمَ أَنْتَ

چې ابليس دا (واوري) هغه له ځان سره نژدې كښينوي او ورته وايي چې تا ښه كار كړى (د حديث يو راوي)

قَالَ الْأَعْمَشُ أُرَاهُ قَالَ فَيَلْتَزِمُهُ .[1]

اعمش ويلي دي چې جابر په ځاى د فيدنيه فيلتزمه (پس ابليس هغه ته غاړه ور كړي) الفاظ نقل كړي وو

**توضيح: يضع عرشه على الماء:** يو شمير حضراتو په اوبو باندې د ابليس د تخت مكمل صورت په مجاز باندې حمل كړى دى چې دلته تسلط او قدرت مراد دى، مگر راجح نه دى، نور وشارحينو دا كلام په حقيقت باندې حمل كړى، چې ابليس په سمندر باندې تخت وغوړوي په هغه باندې ناست وي خپل اولادد كار په كولو پسې وليږي گويا چې دغه خبيث خپل حيثيت دالله تعالى په مقابله كې وړاندې كوي ددې تاييد په دې روايت سره شوى دى كوم چې د مشكوة په ۴۷۸ صفحه كې دى، په هغه كې دي كله چې ابن صياد د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه تپوس وكړو: (**ماذا ترى قال عرشًا على الماء فقال ترى عرش ابليس على البحر**). (مشكوة ص ۴۷۸، المرقات ۱/۲۴۸).

**فرقت بينه وبين امرأته:** په دې سره ابليس زيات ځكه خوشحاله كيږي چې د ښځې او ميړه په مينځ كې جنجال داسې متعدي عمل دى په كوم سره چې په طرفينو كې پراخ جنجالونه او جگړې پيدا كيږي، نو يو فساد نه دى بلكې د ډيرو زياتو فسادونو خيمه ده، په كوم سره چې شيطان خوشحاليږي. او نن صبا د اين جي اوز بنيادي مقصد هم د ابليس دغه خوښ عمل دى كوم چې كورنى تباه كړي (المرقات ۱/۲۳۹)

**نعم انت:** يعني ابليس وايي چې هو كار خو تا كړى، په دغه صورت كې دا حرف ايجاب د هو په معنى

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۶۷/۴ رقم الحديث ۶۷، وأحمد في مسنده ۳۱۴/۳

سره دی. یا دا د افعال مدحو نه دی یعنې (نعم الولد انت) ته څومره ښه بچی یې؟ څومره ښه یې؟ او یا هغه له سینې سره جوخت ونیسي. (المرقات ۱/۲۳۹).

## د عربو د جزیرې نه شیطان مایوسه شوی دی

| |
|---|
| (۱۰) وَ عَنْهُ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ أَيِسَ مِنْ أَنْ |
| د حضرت جابر رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: شیطان د دې خبرې نه مایوسه شوی دی |
| يَعْبُدَهُ الْمُصَلُّوْنَ فِيْ جَزِيْرَةِ الْعَرَبِ وَ لٰكِنْ |
| چې په جزیره عرب کې مصلین (یعني مسلمانان) د هغه عبادت وکړي. لیکن د هغو په مینځ کې د فساد او |
| التَّحْرِيْشِ بَيْنَهُمْ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).[1] |
| فتنې د خورولو نه مایوسه شوی نه دی. |

**توضیح**: **المصلون**: یعنې د مونځ کوونکي د دې نه مراد مسلمون دي نو د اسلام مهم عبادت او د اسلام مهم جزء مونځ ذکر شوی او دا اشاره شوې چې مسلمان هغه دی کوم چې مونځ کوي، د شیطان د عبادت نه مراد شرک او د بتانو عبادت دی. (المرقات ۲۴۹-۱/۲۵۰).

**سوال**: شبه دا کیږي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات نه وروسته په جزیره عرب کې ۷۵ فیصده خلق د اسلام نه ګرځیدلي وو چا له زکوة نه انکار وکړ څوک د مسیلمه کذاب یا اسود عنسي یا سجاح په شان د دروغژنو مدعیانو د نبوت سره ملګري شول او د ارتداد فتنه عامه شوه بیا دا یې څنګه فرمایلي دي چې شیطان مایوس شوی دی چې بیا په جزیره عرب کې د هغه عبادت شروع شو؟. **جواب**: ددې آسان جواب دا دی چې دغه مایوسي د بت پرستۍ د عبادت نه ده چې په جزیره عرب کې بیا دبتانو عبادت شروع شي اودا عمل ترننه پورې نه دی شوی چې هلته دې یوچا بت ودرولی وي، په هماغه د ارتداد په دورکې هم هیچادکفراوشرک داقسم خپل کړی نه وو. **دویم جواب**: داچې په جزیره عرب کې د اسلام د انقلاب نه وروسته دکفردانقلاب نه مایوسي ده چې اوس دلته دجاهلیت ددوراودکفرانقلاب نه شي راتللی اګرکه فساد او ګناه وي، د جزیرې قید ځکه لګول شوی دی چې دا وخت اسلام صرف هلته وو.

**في جزيرة العرب**: جزیره د زمکې د هغې وچې برخې نوم دی د کومې چې څلور واړه طرفونه اوبو راګیر کړي وي، چونکه د عربو دریو طرفونو ته اوبه دي نو ځکه د اکثر حکم په اعتبار سره جزیره ورته ویل

---

(۱) أخرجه ومسلم في صحيحه ۲۱٦٦/٤ رقم الحديث ٦٥، والترمذي ۲۹۱/٤، رقم الحديث ۱۹۳۷، واحمد في مسنده ۳۱۳/۲.

شوې ده. ځکه چې د عربو په شمال کې د شام هيواد واقع دی کوم چې د اوبو نه خالي دی. هو په زياتره برخو باندې د اوبو احاطه ده. مثلاً بحر هند. بحر قلزوم. دجله او فرات په دغه ملک باندې احاطه کړې. څلور واړه حدود په دې شکل دي دعربو په مشرقي طرف کې خليج فارس او بحر عمان واقع دي. په مغربي طرف کې بحيره قلزوم او نهر سويز واقع دي په جنوب کې بحرهند واقع دی او په شمال کې د شام هيواد دی. د عربو جزيره په پنځو برخو باندې مشتمله ده (۱) تهامه (۲) نجد (۳) حجاز (۴) عروض (۵) يمن. کله چې جزيره عرب وويل شي نو د هغې اطلاق په اوږدوالي کې له عدن نه تر عراق پورې دی او په پلنوالي کې د جدې نه تر شام پورې ده. (الکاشف ۱/۲۲۵، المرقات ۱/۲۵۰).

**لكن في التحريش**: يعنې په خپل مينځ کې د جګړو فتنو او فساد اچولو نه مايوس شوی نه دی. بلکې په دې کې مصروف دی، چنانچه د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په شهادت د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په شهادت او نورو جنګونو کې همدې شيطاني اغواء کار کړی وو، نن صبا د يهودو او نصاراو په شکل کې جزيرې ته ابليس راغلی دی، تحريش: فريب او دوکې ته وويل شوي دي. (المرقات ۱/۲۵۰).

## الْفَصْلُ الثَّانِي

**۳ محرم الحرام ۱۴۰۹هـ**

### په وسوسې سره مه پريشانه کيږئ

| |
|---|
| (۱۱) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ جَاءَهُ رَجُلٌ |
| د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې يو صحابي حاضر شو |
| فَقَالَ إِنِّي أُحَدِّثُ نَفْسِي بِالشَّيْءِ لَأَنْ أَكُونَ |
| عرض يې وکړو يا رسول الله! ما په خپل ځان کې دننه داسې بد خيال موندلی چې په ژبه د هغه بنکاره کولو په |
| حُمَمَةً أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أَتَكَلَّمَ بِهِ قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ |
| ځای سوځيدل ما ته زيات خوښ دي، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ چې (دا واوريدل) وې فرمايل: د الله شکر اداء کړه |
| الَّذِي رَدَّ أَمْرَهُ إِلَى الْوَسْوَسَةِ (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[1]. |
| کوم چې همدا خيال د وسوسې تر حده وساتلو. |

**توضيح**: **احدث نفسي بالشيء**: اي في شأن الله ووجوده وصفاته. دا هاجس غير اختياري دی.

(۱) أخرجه ابوداود في سننه ۵/۲۳۶، رقم الحديث ۵۱۱۲، واحمد في المسند ۱/۳۴۰

**حمة**: یعنې د کونلې په شان سوخیدل ماته خوښ دي لیکن د دغې وسوسې تصور کول نه خوښوم، په دې کې دهوا جس نه د سخت نفرت اظهار دی کوم چې دایمان دپوخوالي نښه ده(المرقات ۲۵۰-۱/۲۵۱)

**رد امره**: د ضمیر مجرور مرجع شیطان دی، نو مطلب دا شو چې الحمد لله د شیطان معامله اوس صرف په وسوسه کې دننه منحصر شوې ساتل شوې، اول خو هغه په کفر کې مبتلا کول کړي وو اوس د ایمان په مقاومت او مزاحمت سره صرف وسوسه اچولی شي، کومه چې معاف ده او ددې نه وړاندې هیڅ نه شي کولی یعنې دهم او عزم معامله نه ده پاتې شوې بلکې صرف قلبي خطرات پاتې شوي **مع الاستقباح و الکراهية وذاک صريح الايمان**، یا داسې پوهه شئ چې دامره مجرور ضمیر هغه راتلونکي انسان ته راجع دی یعنې الحمد لله چې د دغه سړي معامله تروسوسې پورې محدود دساتل شوې ده او وسوسه معاف ده. (المرقات ۱/۲۵۱). شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ ویلي چې د شیطان دوسوسو او دهغود تاثیر صورتونه مختلف دي او دا تغیر دوسوسه زده کس دوجې دی غټه وسوسه داده چې د کفر القاء وکړي کله چې په دې کې ناکام شي او وسوسه زده کس په ایماني قوت سره خپل ځان وساتي، نو اوس د شیطان وسوسه د عام فساد طرف ته راځي او تدبیر منزل خرابوي، سیاست مدني خرابوي، که چیرته دغه کس ددې نه هم ځان وساتي بیا د خواطرو (ناکاره خیالات) په صورت کې شیطان تاثیر کوي په زړه کې خیال راځي او دا معاف دي په نفوس قدسیو باندې دغه اثر هم نه شي اچولی.

## په خپل ځان کې دننه د نیکۍ په حرکت باندې د الله شکر اداء کړه

| |
|---|
| (۱۲) وَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِنَّ |
| د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: حقیقت دا دی چې په هر انسان باندې یو |
| لِلشَّيْطَانِ لَمَّةً بِابْنِ آدَمَ وَ لِلْمَلَكِ لَمَّةً فَأَمَّا لَمَّةُ الشَّيْطَانِ فَإِيعَادٌ بِالشَّرِّ |
| تصرف خود شیطان وي، او یو تصرف د فرښتې، د شیطان تصرف خو دا دی چې هغه یې بدۍ ته مائل کوي |
| وَ تَكْذِيبٌ بِالْحَقِّ وَ أَمَّا لَمَّةُ الْمَلَكِ فَإِيعَادٌ بِالْخَيْرِ وَ تَصْدِيقٌ بِالْحَقِّ |
| او حق دروغ ورته ښکاره کوي او د فرښتې تصرف دا دی چې هغه یې نیکۍ ته مائل کوي او د حق تصدیق کوي: |
| فَمَنْ وَجَدَ ذَلِكَ فَلْيَعْلَمْ أَنَّهُ |
| لهذا کوم کس چې (د نیکۍ طرف ته د مائل کیدو) دغه کیفیت په خپل ځان کې دننه پیدا کړي نو هغه ته پوهیدل |
| مِنَ اللهِ فَيَحْمَدُ اللهَ وَ مَنْ |
| په کار دي چې دا د الله تعالی د طرفه هدایت دی په دې باندې هغه ته د الله شکر کول په کار دي او کوم کس |

| |
|---|
| وَجَدَ الْأُخْرَى |
| چې دويم کيفيت(يعنې د شيطاني وسوسوا چول)په ځان کې دننه پيدا کړي هغه ته په کار دي چې د مردود |
| فَلْيَتَعَوَّذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ثُمَّ قَرَأَ : ﴿ الشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ |
| شيطان نه په الله پناه وغواړي، بيا يې دغه قرآني آيت تلاوت کړ (ترجمه) شيطان تاسو د فقر نه ويروي |
| وَ يَأْمُرُكُمْ بِالْفَحْشَاءِ ﴾ . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1] وَقَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ). |
| او د ګناه د پاره مو آماده کوي، دغه روايت ترمذي نقل کړی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی. |

**توضيح** : **لمة : بالفتح من الالمام**، نزول خفيف ته ويل شوي دي د دې نه مراد د خاطر د درجې وسوسه ده کومه چې غير مستقره وي، بيا که چيرته دغه الهام او لمه د فرښتو له طرفه وي نو هغه ته الهام ويل کيږي او که د شيطان د طرفه وي نو وسوسه ده. (المرقات ۱/۲۵۱).

**بابن آدم** : يعنې د هغه د جنس نه مراد انسان دی، علماؤ ليکلي دي چې په الهام او وسوسه کې فرق د حرامو خوړونکي خلک نه شي کولی. (المرقات ۱/۲۵۱).

**فايعاد بالشر** : د شر نه کفر شرک او نور معاصي مراد دي د وعد او ايعاد سره متعلق فراء نحوي ويلي دي چې د (**وعد**) لفظ د خير او شر دواړو د پاره استعمال شويدی لکه چې ويل شوي دي (**وعدته خيرا**، **وعدته شرا**) خو که چيرته مفعول به مذکور نه وو لکه (**وعدته**) نو په دې صورت کې د (**وعد**) لفظ صرف د خير د پاره استعماليږي. او **ايعاد** او **وعيد** د شر د پاره استعمال شويدي، البته شاذ او نادر ايعاد چيرته د خير د پاره هم استعمال شوی دی، د وعده خلافی چې څومره وعيدونه دي دا په هغه صورت کې دي چې د وعده کوونکي سره د وعدې کولو په وخت کې د مخالفت اراده ولري. (المرقات ۱/۲۵۱).

**فليحمدالله** : يعنې د الله په نعمت د ايمان په کمال او قوت باندې د الله شکر اداء کړه، فليتعوذ يعنې د علاج په طور اعوذ بالله ووايه.

**مطلب** : د فرښتې د مائل کيدو مطلب دا دی چې هغه د نيکۍ جذبه د هغې اهميت او په هغې باندې د انعام او اکرام شعور په زړه کې اچوي چې د الله تعالی په دين کې کاميابي ده او په الهي احکامو باندې په تللو کې د آخرت کاميابي پټه ده، که چيرته کاميابي غواړې نو د نيکۍ په لاره راشه، او د شيطان لخوا

---

(۱) أخرجه الترمذي ۵/۲۰۴، رقم الحديث ۲۹۸۸

په شر باندې د آماده کولو مطلب دا دی چې حق ورته تياره ښکاره کړي په عقيده کې شک اچوي، بدې ډيره ښايسته جوړوي او ورانډې کوي يې هغه انسان ويروي چې که د نيکۍ په لاره لاړ شي نو هميشه به په پرېشانيو کې اخته شې. ګويا چې هغه وايي :

بابر بعيش کوشش که عالم دوباره نيست

**اهل تصوف** علماؤ ويلي دي چې د زړه په دننه برخه کې واړه واړه سوري او د غوښې خانې جوړې شوي دي دغه ځايونه د خير او د شر د غورخيدو ځايونه دي، په هغو باندې چې کوم کس قابض شي نو ټول زړه او بدن د هغه شي، په هغه باندې که شيطان غالب راشي يا فرښتې، کله دا او کله هغه نو ځکه د زړه احوال بدليدلى شي. (المرقات ۱/۲۵۲).

## د شيطان د وسوسو نه د ځان ساتلو درې طريقې

| |
|---|
| (۱۳) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ |
| د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْه روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: خلکو! (اول به د مخلوقاتو وغيره په |
| لَا يَزَالُ النَّاسُ يَتَسَاءَلُونَ حَتّٰى يُقَالَ هٰذَا خَلَقَ اللهُ الْخَلْقَ |
| باره کې) پوښتنه کوي بيا به په آخر کې دا سوال راپورته کړي چې ټول مخلوقات خو الله پيدا کړي دي په |
| فَمَنْ خَلَقَ اللهَ فَإِذَا قَالُوا ذٰلِكَ فَقُولُوا اللهُ أَحَدٌ اللهُ الصَّمَدُ |
| خپله الله چا پيدا کړی دی؟ کله چې دغه سوال راپورته کړي نو تاسو ووائې چې الله يو دی، الله بې نيازه دی |
| لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ ثُمَّ يَتْفُلُ عَنْ يَسَارِهِ ثَلَاثًا |
| نه د هغه نه څوک پيدا دي او نه هغه د چا نه پيدا دی، او هيڅوک د هغه مثال نشته، بيا خپل چپ طرف ته درې |
| وَلْيَسْتَعِذْ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1]. |
| ځلې لاړې وتوکئ او د مردود شيطان نه په الله سره پناه وغواړئ. |
| وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ عَمْرِو بْنِ الْأَحْوَصِ فِي بَابِ خُطْبَةِ يَوْمِ النَّحْرِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى. |
| او زړه دی چې مونږ به ذکر کړو حديث د عمرو بن الاحوص په باب د خطبې د يوم النحر کې ان شاء الله. |

**توضيح : فقولوا الله الصمد** : چونکه دغه وسوسه د توحيد منافي ده نو د تنزيه او تقديس دپاره د تحميد او توحيد دپاره حکم وشو چې سورت اخلاص ووايي. (المرقات ۱/۲۵۳).

(۱) أخرجه أبو داود في سننه ۵/۹۲، رقم الحديث ۴۷۲۲

**ثم ليتفل**: دا د نصر ينصر نه دی د پوکي سره خفيف لاړو توکولو ته ويل کيږي. دا د شيطان نه د نفرت ښکاره کولو دپاره دي، د هغه د قبيح او بدګڼلو دپاره کيږي په کوم سره چې هغه تېښتي. همدارنګه زړه چپ طرف ته دی او د شيطان حمله هم چپ طرف ته په زړه باندې وي، کله چې فرښته ښي طرف ته ده. بهر حال د توحيد اعلان او د شيطان اقرار نه د نفرت عملي اظهار، د تعوذ وظيفه، دغه درې شيان د شيطاني وسوسو نه د ځان ساتلو علاج دی. (المرقات ۱/۲۵۳).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### د شيطاني وسوسو نه په ځنګ واوسئ

(۱۴) عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنْ يَبْرَحَ النَّاسُ يَتَسَاءَلُونَ

دانس رضي الله عنه روايت دی چې نبي عليه السلام وفرمايل: خلک به په خپل مينځ کې پوښتې سره کوي (يعنې

حَتّٰى يَقُولُوا هٰذَا اللهُ

د شيطاني وسوسو په صورت کې په هغوی کې د ننه داسې خيالات به پيدا شوي وي) وايي چې الله تعالی

خَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَمَنْ خَلَقَ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)

چې هرشی پيدا کړي نو الله تعالی چا پيدا کړی دی؟

وَ لِمُسْلِمٍ قَالَ اللهُ عَزَّ وَ جَلَّ

د مسلم روايت همداسې دی، انس رضي الله عنه ويلي چې نبي عليه السلام وفرمايل: الله تعالی فرمايلي دي چې

إِنَّ أُمَّتَكَ لَا يَزَالُونَ يَقُولُون مَا كَذَا مَا كَذَا

ستا امت خلک (که چيرته د شيطاني وسوسو داچولونه په ځنګ نه شي) نو اول به دا وايي چې دا فلاني فلاني

حَتّٰى يَقُولُوا هٰذَا اللهُ خَلَقَ الْخَلْقَ فَمَنْ خَلَقَ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ. (مسلم)[1]

شيان چا پيدا کړي؟ تردې چې وبه وايي چې دا هرڅه چې الله پيدا کړي نو الله تعالی چا پيدا کړی دی؟.

**توضيح**: **يقولون ما كذا ما كذا**: دغه الفاظ د کثرت سوال نه کنايه ده يعنې د کائناتو او شيانو په باره کې به سوال او تحقيق کوي کوي بيا به د الله په باره کې سوال وکړي چې هر کله ټول شيان الله پيدا کړي دي نو الله چا پيدا کړی دی؟. شيطان په تدريج سره په زړونو کې دغه سوال د وسوسې په طور **اچوي چې**

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۲٦٥، رقم الحديث ۷۲۹٦، ومسلم في صحيحه ۱/۱۲۱ رقم الحديث ۲۱۷-۱۳٦

کله د نورو څيزونو د پاره خالق الله دی نو د الله د پاره هم خالق په کار دی؟ دغه وسوسه چونکه د کفر طرف ته بيونکې وه نو ځکه وويل شول چې استغاثه وکړئ او په آئنده کې د تصوراتو او خيالاتو او د دا قسم وسوسو سلسله بنده کړئ، توجه بل طرف ته وګرځوئ. ځکه چې بنده ته دا حق حاصل نه دی چې هغه په خالق کې سوچونه وکړي، بلکې هغه ته په کار دي چې په مخلوق کې سوچونه وکړي د وسوسو نه د ځان ساتلو د پاره د الله ذکر غوره نسخه ده. (المرقات ۱/۲۵۴).

## د مونځ په دوران کې د شيطان خلل اچول

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ حَالَ |
| د عثمان بن ابی العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې ما عرض وکړو : يارسول الله! شيطان حائل واقع کيږي |
| بَيْنِي وَبَيْنَ صَلَاتِي وَبَيْنَ قِرَاءَتِي يُلَبِّسُهَا عَلَيَّ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاكَ شَيْطَانٌ |
| زما د مونځ او د قرائت په مينځ کې او په دغو شيانو کې شبه اچوي، نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل دا هغه شيطان دی |
| يُقَالُ لَهُ خِنْزَبٌ فَإِذَا أَحْسَسْتَهُ |
| کوم ته چې (خنزب) ويل کيږي، پس کله چې تاسو ته د هغه احساس وشي نو تاسو د دغه (مردود شيطان) |
| فَتَعَوَّذْ بِاللهِ مِنْهُ وَاتْفُلْ عَلَى يَسَارِكَ ثَلَاثًا |
| نه په خدای سره پناه وغواړئ او چپ طرف ته درې ځلې لاړې وتوکوئ، حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي |
| فَفَعَلْتُ ذَلِكَ فَأَذْهَبَهُ اللهُ عَنِّي . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| چې (د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د دې ارشاد مطابق) ما همداسې وکړل نو الله تعالی زه د دې وسوسو او شبهاتو نه وساتلم |

**توضيح : بيني وبين صلاتي** : مراد دا دی چې ما د مونځ د کولو نه راګرځوي، د هغه د وسوسو د وجې زه مونځ شروع کولی هم نشم، دغه توجيه د ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ د تشريح مطابق ده هغه ويلي دي چې دلته د درې ځلې توکولو حکم په حديث کې دی او مسلسل درې ځلې په مونځ کې توکول روا ندي، لهذا د دغه حديث تعلق د هغې وسوسې سره دی کومه چې د مونځ د شروع نه مخکې وي. (المرقات ۱/۲۵۴).

**وبين قراءتي** : يو مطلب دا دی چې د قراءت د شروع کولو نه مې راګرځوي، دويم مطلب دا دی چې د قرائت د شروع کولو نه وروسته په زړه کې تشويش پيدا کوي نو په قراءت کې ګډ وډي راځي، د دغه تشويش او تشکيک پيدا کيدو دوه طريقې دي کومې چې شيطان استعمالوي. اول دا چې د قرائت په

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۲۸/۴ رقم الحديث ۶۸ ، وأحمد في المسند ۲۱۶/۴

وخت کې په قرائت کې داسې کيفيت پيدا کوي چې وړاندې قرائت کول سخت شي. دويم دا چې ترديد (شک) پيدا کړي داسې وايي چې کوم دې وويلو هغه غلط دی. اوس دغه کس سوچ کوي چې ما څه وويل هغه صحيح وو که غلط وو. (المرقات ۱/۲۵۵).

**خنزب**: په لغت کې خنزب د جری علی الشر په معنې دی، د خا او زاء په کسرې سره (خِنزِب) او د دواړو فتحه هم شته (خَنزَبْ).

**سوال**: شبه دا ده چې د مونځ او قرائت په حالت کې د توکولو او تعوذ حکم څنګه شوی دی کله چې دا د مونځ سره منافي دي؟. **اول جواب**: دغه حکم د هغه کس دی کوم چې تراوسه مونځ شروع کړی نه دی. **دويم جواب**: دا چې دا حکم هغه وخت وو کله چې په مونځ کې خبرې کول روا وو بيا دا منسوخ او موقوف شول. **دريم جواب**: دا چې دا حکم هغه مونځ کوونکي د پاره دی کوم چې د مونځ نه فارغ شوی دی چې شيطان تا سره کوم قسم لوبه کړې ده هغه ښکاره ده اوس په راتلونکي کې ځان وساته او د دويم مونځ د پاره تيار شه. (المرقات ۲۵۴-۱/۲۵۵).

## دوسوسې خيال مه کوئ مونځ وکړئ

| |
|---|
| (۱۲) وَ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَهُ فَقَالَ إِنِّي أَهِمُ فِي صَلَاتِي |
| حضرت قاسم بن محمد ته يو کس عرض وکړو چې ماته په خپل مونځ کې وهم پيدا کيږي (يعنې کله خو داشک وي چې زما مونځ سم اداء شوی نه دی کله دا وهم وي چې يو رکعت د کولو نه را نه پاتې شوی دی) |
| فَيَكْثُرُ ذَلِكَ عَلَيَّ فَقَالَ لَهُ امْضِ فِي صَلَاتِكَ |
| ددې وجې نه په ما باندې سخت تماميږي؟ هغه وويل (ته دې قسم خيال ته نظر مه کوه) او خپل مونځ پوره |
| فَإِنَّهُ لَنْ يَذْهَبَ ذَلِكَ عَنْكَ حَتَّى تَنْصَرِفَ وَ أَنْتَ تَقُولُ مَا |
| کړه ځکه هغه (شيطان) به له تا نه هغه وخت لرې شي کله چې ته خپل مونځ پوره کړې او وايه چې آو ما |
| أَتْمَمْتُ صَلَاتِي (رَوَاهُ مَالِكٌ)[1] |
| خپل مونځ پوره نه کړ. |

**توضيح**: **انی اهم فی صلوتی**: ددې نه مراد په مونځ کې وهم دی چې آيا يو رکعت وشو که دوه وشول، مونځ کم شو که زيات شو. (المرقات ۱/۲۵۵).

---

(۱) أخرجه مالک في الموطا ۱/۱۰۰، رقم الحديث ۳ من كتاب السهو

**فيكثر على ذلك**: په يوه نسخه کې يكبر هم شته. د اولې نسخې او تلفظ مطلب دا دی چې دا صورت په كثرت سره راځي، د دويمې مطلب دا چې په ما باندې دغه كيفيت ډير سخت تماميږي او ډير سخت سختيږي محسوسوم. (المرقات ۲۵۵-۱/۲۵٦).

**فقال امض في صلوتک**: دا اسلوب د حكيم په طور جواب دی چې ته خپل مونځ جاري وساته، دغه وساوس او اوهام تر هغه وخته ختميدلی نه شي ترڅو چې ته د مونځ نه فارغ او شيطان ته دا خطاب ونه کړې چې که چيرته ته وايې چې زما مونځ نه دی شوی نو پوهه شه چې صحيح دی زما مونځ نه دی شوی مګر زه يې دوباره نه کوم، په دې عزم سره وسوسې ختمې شي. (المرقات ۱/۲۵٦).

**خلاصه**: د حضرت علي رضي الله عنه نه منقول دي چې په مسلمانانو او يهوديانو کې دا فرق دی چې د هغوی په مونځونو کې وسوسې نه راځي او زمونږ په مونځونو کې وسوسې راځي، په دې سره يې د رضي الله عنه دې خبرې طرف ته اشاره کړې چې د مسلمان عمل ژوندی او قانوني دی، د کوم د خرابولو دپاره چې شيطان وسوسې اچوې، او د يهوديانو عمل د كار نه دی نو په هغه کې چې شيطان وسوسې واچوي نوره به څه خرابي په کې راولي، عاقلانو ويلي دي چې په كومه ونه کې ميوه وي خلق په هغې باندې كاڼي وروي، خالي ونه عقلمند په كاڼو باندې نه وولي، شيطان هم په خالي او ورانو كوڅو کې خپل محنت نه ضائع کوي. بلكې چيرته چې ايمان دی هلته د ده حمله ده. قاسم ابن محمد رحمه الله د سيدنا ابو بكر رضي الله عنه لمسی وو، د محمد بن ابی بكر صاحبزاده دی، دا جليل القدر تابعي دی په (۱۰۱ هجري کې د ۷۰ كلونو په عمر وفات شوی) دی د مدينې منورې د مشهورو فقهاو نه وو. (المرقات ۱/۲۵۵).
د هغه فقهاوو نومونه دا دي چې يو شاعر په شعر کې راجمع کړي دي:

الا كل من لا يقتدی بأيمة ❁ فقسمته ضيزیٰ من الحق خارجه
فخذهم عبيدالله عروة قاسم ❁ سعيد ابي بكر سليمان خارجه

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

٤ محرم الحرام ۱٤۰۹هـ

# بَابُ الْإِيمَانِ بِالْقَدَرِ
# د تقدير بيان

**د تقدير مفهوم**: **القدر**: دال متحرک هم دی او ساکن هم دی، دا د کوم شي اندازه کولو او په کوم شي کې د تنګۍ کولو په معنی سره استعمال شوی دی ﴿إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ﴾دا د همدې اندازې او تقدير طرف ته اشاره ده، نو په لغت کې تقدير د اندازې په معنی سره دی او په اصطلاح کې د تقدير سره متعلق د علماء کرامو تعبيرات مختلف دي، (المرقات ۱/۲۵٦).

چنانچه په شرح فقه اکبر کې دي :(۱) **القدر تعيين كل مخلوق بمرتبته التي توجد من حسن وقبح ونفع وضرر**. (**شرح فقه اکبر ص ۱۵**). يعنې تقدير د هر مخلوق د هر حيثيت او وصف د تعين نوم دی، برابره خبره ده که د نفع يا د ضرر وصف وي يا د حسن او قبح وصف وي.

(۲) يو شمير نورو علماء کرامو داسې ويلي دي چې الله تعالی د عالم (دنيا) په پيدا ابښت نه مخکې چې د کومو شيانو اندازه کړې ده او په لوح محفوظ کې هغه مقرر کړي دي د هغه مطابق د هغو تفصيلي وجود ښکاره شي دا تقدير دی، په دې کې دا نه شي کيدلی چې مخکې د کوم شي اندازه نوې شوې او په تقدير کې ليکل شوي نه وي او په تفصيل کې هغه شی راشي، پس کوم څيزونه چې د کائناتو په تفصيل کې جاري دي هغه له پخوا نه په تقدير کې عند الله معلوم او مقرر دي، تاسو داسې پوهه شئ مثلا د زيد تفصيلي حالات د پيدا ابښت نه نيولې تر وفات پورې د الله تعالی په علم کې راغلي يا الله تعالی هغه د ده په تقدير کې وليکل، اوس د زيد په پيدا کيدو نه وروسته د ده ټول حرکات او سکنات د همدغه اجمالي خاکې مطابق ترسره کيږي، ليکن تقدير هغه مجبور کړی نه دی بلکې اختيار يې ورکړی دی د همدغه ازادانه اختيار سره هغه چې څه وکړل او د الله په علم کې راغلل د هغه مطابق د ده تفصيلي حالات ښکاره شول(۳) ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ دا تعريف کړی: **هو ما يقدره الله من القضايا**(المرقات ۱/۲۵٦)

**په تقدير باندې د ايمان مطلب**: په شرح السنه کې ليکل شوي دي چې په تقدير باندې ايمان راوړل فرض دي او هغه داسې چې بنده دا عقيده ولري چې الله تعالی د بندګانو د افعالو خالق دی برابره خبره ده که هغه عمل د خير وي که د شر وي، او دا هر څه د بندګانو د پيدا ابښت نه مخکې الله تعالی په لوح محفوظ کې ليکلي دي. اوس چې کوم څه ښکاره کيږي ټول د الله تعالی په فيصلې او ارادې سره ترسره کيږي، الله تعالی په کفر سره ناراضه کيږي په همدې وجه د کفر او معصيت دپاره يې د سزا وعده کړې ده، په ايمان او اطاعت باندې د ثواب وعده کړې. د حضرت جعفر صادق رَحِمَهُ اللهُ مقوله ده : **لا جبر ولا قدر**

**ولکن الامر بین الامرین.**

حضرت حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ د حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د تقدیر متعلق سوال وکړ نو هغه وفرمایل **(من لم یؤمن بقدره من خیر وشر فقد کفر).**

**تقدیر څه شی دی؟** تقدیر د الله تعالی د رازونو نه یو راز دی په کوم باندې چې الله تعالی کومه مقربه فرښته یا کوم مقرب رسول هم نه دی خبر کړی، لهذا په هغه کې عقلي بحث روا نه دی . بلکې دا عقیده لرل واجب دي چې الله تعالی مخلوق پیدا کړه په دوو ډلو یې تقسیم کړه، یوه ډله یې د خپل رحمت فضل او کرم لاندې د جنت دپاره جوړه کړه او دویمه ډله یې د خپل عدل لاندې د دوزخ دپاره جوړه کړه. دواړو ته اختیار ورکړی شو څوک یې مجبور کړي نه دي، یو کس د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه په تقدیر باندې د پوهېدو دپاره پوښتنه وکړه نو هغه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داسې جواب ورکړ :**طریق مظلم فلا تسلکه** یوه تیاره لاره ده په هغې باندې مه ځه. هغه بیا پوښتنه وکړه ده ورته وفرمایل :**بحر عمیق فلا تلجه** یو ژور سمندر دی هغه ته مه ورکوزیږه. هغه بیا پوښتنه وکړه ده ورته وفرمایل: **سر الله قد خفي علیک فلا تفتشه** د الله تعالی یو پټ راز دی د هغه د معلومولو کوشش مه کوه. (المرقات ۱/۲۵۶). یو چا ښښتیا ویلي دي:

*هزار نکته باریک تر ز مو این جا است ❁ نه هر که سر بتراشد قلندري داند*

*نه هر جائے مرکب توان تاختن ❁ که جاها سپر باید انداختن*

**د تقدیر نه د منکرینو فتنه د کوم وخت نه شروع شوه؟** د صحابه کرامو په زمانه کې هیچا د تقدیر نه انکار نه دی کړی او نه چاته په هغه کې شک (تردد) وو، د صحابه کرامو بالکل په آخري دور کې بعضې خلکو په دې مسئله کې بحث شروع کړ، په بصره کې یو کس معبد جهني وو هغه دا ویل شروع کړل چې الله تعالی ته د مستقبل امورو علم د هغو له ښکاره کیدو نه مخکې نشته. کله چې کوم عمل ښکاره شي بیا الله تعالی ته د هغه علم وشي، دا تعبیر د هغه په نزد دا وو **(الامر أُنف ای مستأنف)** یعنې د مخکې نه کوم نظام لوح محفوظ وغیره نشته دی کوم چې کیږي د هغو نه تقدیر جوړیږي. د دغه کس رد په خپله په صحابو کې عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کړی. د دغه عنوان چونکه غلط بلکې بیخي گمراه کوونکی وو په دې وجه په هغه باندې د تردید د راتلو وروسته په دغه عنوان سره دغه مسئله وړاندې ونه چلیدله. معتزلو دې ته بل رنگ ورکړ او هغه یې پرمخ روانه کړه او هغه عنوان دا وو چې آیا په بندگانو کې د خپلو افعالو د اختیار ولو قدرت شته او که نشته، یعنې بندگان د خپلو افعالو په خپله خالق دي .لهذا د **خلق افعال العباد** په عنوان سره د تقدیر مسئله د بنوعباس خلفاو په دور کې ډیره مخکې لاړه او د هغې په فروعو او اصولو باندې ډیرې جگړې شوې. د هغو نه د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او د معتزلو هغه مشهوره جگړه

هم ده کومه چې تر څو کلونو پورې د ازمایښت میدان جوړ شوی وو. د معبد جهني استاذ سوسن یهودي ؤ کوم چې د تقدیر د غه جګړه راپورته کړه. بیا معبد جهني او دده نه وروسته عیلان نومي همدا عقیده تر عراق او حجاز پورې خوره کړه، عمرو بن عبد چې کله د غه مسئله ښکاره کړه نو حجاج بن یوسف هغه ووژلو.

**په تقدیر او قضاء کې څه فرق دی؟** شیخ عبد الحق محدث دهلوي رَحِمَهُ اللّٰهُ وېلي چې د قضاء او قدر معنی مشترکه ده د یو اطلاق په بل باندې کیدلی شي او کله کله په بیله بیله معنی سره هم استعمال شوي دي. هغه داسې چې قدر خو د الله تعالی هغه ازلي او ابدي فیصله ده کومه چې د الله تعالی په علم کې متعینه شوې ده او قضاء د هغې خارجي تفصیلي خاکه ده یا د هغې خارجي تکمیل دی لکه ﴿فَقَضَاهُنَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ﴾ دغه او وه آسمانونه د خپل وجود په اعتبار سره د دغه اجمالي تقدیر د پاره خارجي تفصیلي خاکه ده. او بعضې وخت د قضاء نه مراد علم ازلي اجمالي وي او د قدر نه مراد په خارج کې د هغې تفصیلي وجود وي. (اشعة اللمعات ۱/۹۲).

یو شمیر عارفانو په دغه مسئله کې په یو مثال پوهول کړي دي لکه د یو مصور انجنیر په ذهن کې یوه نقشه ده بیا په خارج کې دا د هغې یوه نقشه جوړه کړي بالکل په همدې شان د الله تعالی په ازلي علم کې یو معهود صورت دی هغه ته قدر ویل کیږي د هغې مطابق په خارج کې یو صورت راشي هغه قضاء ده، ددې قضاء تابع بنده د قدر مطابق چې کوم عمل کوي هغه ته کسب ویل کیږي.

مثال داسې دی چې یو مصور انجنیر د خپل ذهن مطابق په کاغذ او قلم یوه نقشه جوړه کړي شاګرد په دغه نقشه کې د خطونو لحاظ کوي په رنګ سره یې ډکوي نو صورت ذهنیه قدر دی په خارج کې د هغه نقشه قضاء ده او په نقشه کې د رعایت سره په رنګ ډکول د بنده کسب دی، نو لکه څرنګه چې دا په رنګ سره ډکول د صورت ذهنیه عین مطابق دي همدارنګه د بنده کسب د الهي تقدیر عین مطابق دی او بنده د تقدیر خلاف نه شي کولی، خلاصه دا چې د کور د جوړولو نه مخکې کومه خاکه چې په ذهن کې راغلې ده دا په منزله د قدر ده او د دغې نقشې مطابق چې کوم کور تیار شي او موجود فی الخارج شي دا قضاء ده. د زیاتره علماؤ رأیه همدا ده چې په قضاء او قدر کې ترادف دی دواړه یو دي.

**د تقدیر په مسئله کې مختلف مذاهب:** د تقدیر په مسئله کې ټول درې مذاهب دي: یو د اهل حقو او دوه د اهل باطلو دي. اهل حق اهل السنة والجماعة دي او اهل باطل جبریه او معتزله دي، تفصیل یې داسې دی:

(۱) **د جبریو مذهب:** د تقدیر متعلق د جبریو مذهب دا دی چې انسان په خپلو افعالو کې مجبور محض د جماد په شان دی. د هغه افعالو لره اعتبار نشته او د تقدیر پر وړاندې دا بې وسه او بې حسه کانړی دی. دغه خلک په هغو نصوصو سره استدلال کوي په کومو کې چې د تقدیر ذکر دی لکه: ﴿وَمَا تَشَاؤُونَ إِلاَّ أَن يَشَاء اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ﴾.

**جواب:** د جبریو مذهب صریح البطلان یعنې په واضح طور باطل دی. څکه چې په دې کې د الله تعالی

طرف ته د ظلم نسبت لازم راځي. ځکه کله چې انسان مجبور محض دی او د هغه په خپل فعل کې هيڅ هم په اختيار کې نشته بلکې څه يې چې کړي دي هغه الله کړي دي نو بيا د انسان د جزاء اوسزاء ميدان ته راوستل کوم انصاف دی، نو د کوم مذهب او عقيدې د وجهې چې د الله طرف ته د ظلم نسبت لازم راځي د هغه په باطل کيدو کې څه شک دی. د جبريو مذهب د باطل کيدو دويم دليل دا دی چې هر عقلمند کس په خپل وجدان سره په دې باندې پوهيږي چې په افعال اختياري او غير اختياري کې فرق دی. مثلا وجدان دا فيصله کوي چې حرکت ارتعاش يعنې د شل لاس حرکت کول غير اختياري دی او حرکت بطش يعنې چې قصدا حرکت کوي اختياري دی،ددې نه معلومه شوه چې انسان په خپلو افعالو کې تر يوه حده اختيارمند دی او د يو حد نه وړاندې بې اختياره دی، د جبريو لخوا انسان بالکل مجبور، معذور، بې وسه او بې حسه ګڼل ضلالت هم دی او حماقت هم دی، که چيرته همداسې مجبور وی نو بيا الله تعالی د افعالو د کولو او د نه کولو حکم ولې ورته کړی؟ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داسې کس ته وويل چې پښې پورته کړه او ودريږه، هغه پښې پورته کړې، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل دويمه پښه هم پورته کړه او ودريږه، هغه وويل دا خو ممکن ندي، نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل بس انسان دومره اختيارمند دی او دومره بې اختياره دی، نو خلاصه دا ده چې تر کومه حده انسان تللی شي تر هماغه حده دا مکلف او جواب ورکوونکی دی، او د کوم ځايه چې وړاندې نه شي تللی د هماغه ځای جواب ورکوونکی نه دی.

همدارنګه د اختيار او بې اختياره فيصله خو بې عقله سپی هم کولی شي. اوګورئ کله چې کوم انسان هغه په کاڼي باندې وولي نو هغه کاڼي پريږدي په ويشتونکي انسان پسې شاته منډې وهي او ورته غفيږي، ځکه چې هغه پوهيږي چې د بې روحه کاڼي څه قصور دی، اصل قصور خو د بااختياره انسان دی کوم چې په خپل فعل سره کاڼی وويشتلو.

**اختيار څنګه دی؟** کله چې دا معلومه شوه چې سليم عقل او روغ وجدان قاطع فيصله ده او د دنيا ليدل دي چې يو شمير افعال اختياري هم دي نو دغه اختيار څه قسم دی حالانکه ﴿وَمَا تَشَاؤُونَ إِلاَّ أَن يَشَاءَ اللَّهُ﴾ آيت ويلي دي چې د انسان اراده نشته دی هر څه د الهي مشيئت ماتحت چليږي.

**جواب**: د دې جواب دا دی چې انسان ته توجيه الاراده اختيار ورکړی شوی دی، يعنې کله چې هغه اراده کوي او توجه وکړي نو له الهي مشيئت سره د هغه موافقت راځي. په دغه توجه او اراده کې انسان بااختياره دی او همدا د هغه دپاره قدر متوهمه دی او په همدغه قدر متوهمه باندې مواخذه ده. يعنې همدغه انسان چې کله د کوم فعل کول او نه کول وغواړي او قدم پورته کړي نو هيڅ خنډ نشته انسان ارادي حرکت کوي او بل طرف ته د الله د طرفه توفيق راځي نو په دې کې دا مختار دی مجبور نه دی. دا د هغه خپل فعل دی. هو کوم څه چې کوي د هغو ليکل د پخوا نه شوي دي. ځکه چې د الله علم ازلي دی، هغه د همدغه کس دغه بااختياره فعل مخکې معلوم کړی دی او بيا يې ليکلی دی کوم چې ښکاره کيږي

دا د هماغو نیکلو مطابق دي. د دې یو مثال دا زده کړئ چې یو ډاکټر کوم ناروغ ته ووايي چې فلانی شی و خوري نو مړ کیږي. د غه کس هماغه شی وخوري او مړ شو. نو ډاکټر په علامات اجمالیو وجودیو سره وړته ویلي وو چې مړ کیږي اوس چې مړ شو نو د ډاکټر په قول سره خو نه دی مړ شوی او نه د ډاکټر په نیکلو مړ شوی. بلکې په خپل هغه فعل مړ شو د کوم نه چې ډاکټر منعه کړی وو.

بعینه همدا شان د الله تعالی په علم کې چې کوم اجمال دی د کوم نوم چې تقدیر دی هغه د پخوا نه موجود دی. په خارج کې موندونکی فعل د بنده خپل فعل دی. دا بیشکه د تقدیر موافق دی. لیکن دغه کس تقدیر مجبور کړی نه دی. بلکې د تقدیر د نیکلو مخکې الله تعالی د هغه احوال په آزاد ماحول کې ولیدل بیا یې ولیکل. لهذا اوس چې څه کیږي د هغه مطابق کیږي.

د دې دویم مثال دا سې دی مثلا د یو ریلوې تقسیم اوقات دی په کوم کې چې لیکل شوي دي چې فلانی موټر په فلاني وخت کې د فلاني ځای نه فلاني ځای ته ځي فلانی به موټروان وي په فلاني ځای کې به دومره څنډ کیږي فلاني ځای ته به په دومره وخت کې رسیږي وغیره وغیره. په همدې قسم د ټولې ورځې او ټول سفر تقسیم اوقات تیار او مرتب شوی مخکې موجود دی. اوس ګورو چې همدغه موټر بالکل د همدې تقسیم اوقات مطابق او د هغه هدایاتو مطابق چلیږي. لیکن دغه تقسیم اوقات خو دغه موټر نه چلوي بلکې په موټروان یا د موټر چې کوم سستم دی په هغه سره چلیږي. بالکل همدا قسم لوح محفوظ دی په کوم باندې چې د انسان تقدیر لیکل شویدی. هغه د انسان د ژوند تقسیم اوقات دی (د کوم نوم چې قدر او تقدیر دی) د کوم مطابق چې د انسان ژوند په خپل کسب او اختیار سره سفر کوي، فرق صرف دا دی چې د الله تعالی علم چونکه محیط دی او انساني موټر د دې علم او تقدیر نه مخالف کېدلی نه شي. او د ریل موټر په پروګرام کې تخالف او تغیر راتللی شي، کله آرام کله څنګه او کله څنګه.

د دې تشریحاتو او توضیحاتو نه وروسته دا خبره واضحه شوه چې د جبریو مذهب باطل محض دی. او دوی چې په کوم آیت سره استدلال کړی دی اهل السنة والجماعة ویلي دي چې په هغه کې د انسان د پاره د مستقل اختیار نفې ده لکه څرنګه چې معتزله د انسان د پاره د مستقل اختیار قائل دي. په دې آیت کې د هغه ضعیف غیر مستقل او محدود اختیار نفې نه ده شوې کوم چې په نورو نصوصو عقل سلیم او صحیح وجدان سره انسان ته حاصل دی.

**( ۲) د معتزله قدریه مذهب**: د دوی مذهب دا دی چې انسان په خپلو افعالو کې آزاد دی د هیڅ تقدیر پابند نه دی. بلکې د خپلو افعالو خالق په خپله انسان دی. د پخوا نه هیڅ لیکل شوي نه دي که نه نو مواخذه به محاله شي. دغه مذهب هم صریح البطلان دی او د جبریو په شان دغه خلک هم اهل باطل دي. د دوی دغه مذهب د جبریو ضد دی. د دوی د مذهب په باطل کېدو باندې ډیر نصوص موجود دي.

څو آیتونه وګورئ: (۱) ﴿وَمَا تَشَاءُونَ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ﴾ (دهر آیت: ۳۰) د دې نه واضحه

معلومه شوه چې انسان د خپلو افعالو خالق نه دی.

(۲) ﴿إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ﴾. (قمر آیت: ۴۹) په دې سره د تقدیر ثبوت شوی دی.

(۳) ﴿قُل لَّا أَمْلِكُ لِنَفْسِي نَفْعًا وَلَا ضَرًّا إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ﴾. (اعراف آیت: ۸۸)
په دې سره هم د تقدیر وجود ثابت شوې دی.

**اول جواب**: اهل حقو معتزلو ته ډیر جوابونه ورکړي دي، اول جواب دا دی چې ستاسو عقیده د صریحو نصوصو نه خلاف ده. **دویم جواب**: داچې ستاسو عقیدې ته په کتلو انساني تخلیقات د الله د تخلیقاتو نه زیاتیږي او دا باطل دي لهذا ستاسو عقیده باطله ده. ځکه چې د طاعاتو نه معصیات زیات دي نو انساني تخلیقات زیاتیږي. **دریم جواب**: داچې ستاسو په عقیده سره لازم راځي چې یو شمیر معاصي د الله تعالی د مشیئت نه په غیر موجود شوي دي کوم چې موجب عجز یا نقص دي. حالانکه معاصي په طاعاتو باندې غالب دي نو اکثره افعال د الله تعالی د مرضۍ نه په غیر راغلل او دا عقیده غلطه ده. اصل خبره دا ده چې معتزلو ته د دې خبرې نه ځان ساتل په کار دي چې د شر نسبت د الله تعالی طرف ته وکړی شي. نو عجیبه خبره داده چې د ګناه طرف ته د نسبت د بچ کیدو په کوشش کې په ښکاره کفر کې لویږي او وایي چې: خالق په خپله انسان دی. د دغه خلق د دې مثال مصداق دی چې: **فر من المطر ووقف تحت الميزاب** مونږ په الزامي جواب کې لیکلي دي چې ابلیس د شر او شرارت څانچه ده هغه چا پیدا کړ؟ آیا د الله تعالی نه په غیر د هغه کوم بل خالق شته دی کوم چې هغه پیدا کړی دی؟ نو د شر تخلیق کمال دی ځکه چې د خیر تخلیق کمال دی، خو د شر کسب مذموم دی. بیا هم عمومًا د شر نسبت شیطان طرف ته شوې یا د نفس طرف ته نسبت شوی دی ترڅو چې د الله تعالی په شان کې بې آدبي او ګستاخي ونه شي.

**زړه راښکونکې مکالمه**: عبدالجبار همداني معتزلي د ابواسحاق اسفرائني په مجلس کې وو چې وې ویل **سبحان من تنزه عن الفحشاء** یعنې د ګناه نسبت د الله په حق کې فحشاء ده د دې نه الله پاک دی.

استاذ اسفرائني وویل **سبحان من لايجرى في ملكه الا مايشاء** همداني وویل **ايشاء ربنا ان يعصى**

استاذ وویل **ايعصى ربنا قسرا**. **فبهت** د همداني مطلب دا وو چې آیا الله تعالی غواړي چې د هغه نافرماني دې وکړی شي، نو استاذ اسفرائني په جواب کې وویل چې آیا دغه د الله نافرماني په جبري طور باندې ده؟ په دې سره همداني لا جوابه شو. د قرآن کریم په ډیرو آیتونو سره د تقدیر ثبوت ترلاسه شوی دی په کومو سره چې په واضح طور د معتزلو مذهب باطل شوی دی. څنانچه ارشاد دی:

﴿إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ﴾ (قمر: ۴۹) ﴿يَمْحُو اللَّهُ مَا يَشَاءُ وَيُثْبِتُ وَعِندَهُ أُمُّ الْكِتَابِ﴾. (رعد: ۳۹)

﴿وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ فِي الزُّبُرِ. وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُّسْتَطَرٌ﴾. (قمر: ۵۲/۵۳)

د دې واضحو آیتونو او احادیثو د تصریحاتو نه وروسته د معتزلو د تقدیر نه انکار محض خرافات او د عقل فقدان دی.

**د شر په تخلیق کې حکمت** : ټول عاقلان او حکیمان په دې باندې متفق دي چې په دنیوي بادشاه کې د دوو صفتونو موجود کیدل ضروري دي، یو صفت د لطف او کرم او دویم صفت د قهر او د جلال. اول د دې دپاره چې په خپلو باندې رحم وکړي، مهرباني وکړي، که چیرته دا صفت په کې نه وي نو داسې بخیل او کنجوس به څوک خپل بادشاه جوړ کړي او د هغه بادشاهي به څوک ومني. که چیرته بادشاه هم جوړ شي نو دغه عیب او نقص به ډیر زر د هغه نه بادشاهي واخلي، دویم صفت قهر هم ضروري دی، ترڅو چې خلق بې ځایه زور زیاتی او ظلم ونه کړي او بې ځایه جرئت ونه کړي. یو چا ویلي دي :

لطف ــــ بجن دم بدم قہر بجن گاه گاه ❁ یہ بھی بجن واه واه وه بھی بجن واه واه

الله تبارک وتعالی علی الاطلاق بادشاه دی د هغه د لطف او کرم صفت مظهر فرښتې دي او د قهر او غضب مظهر شیطان دی، همدارنګه په انسانانو کې ابرار د لطف او کرم صفت مظهر دي او فجار د صفت قهر مظهر دي. دا د دې دپاره ضروري دي ترڅو چې دواړه صفتونه ښکاره شي. همدا قسم یو داسې ځای موجودیدل هم پکار دي چیرته چې د صفت لطف کرم او جمال ظهور وشي او هغه ځای جنت دی، همدارنګه یو داسې ځای هم په کار دی چیرته چې د صفت قهر او غضب ظهور وشي او هغه ځای دوزخ دی، نو د دوزخ او جنت وجود، د ابرارو (نیکانو) او اشرارو وجود، د مطلق بادشاه دپاره ضروري دي ترڅو چې د دنیا موتہر د ازمایښت په میدان کې د خیر او شر په دوو پښلیو باندې تلونکې راتلونکې وي او د حق او باطل مقابله ګرمه وي ځکه چې :

ستیزه کار رہا ہے ازل سے تا امروز ❁ چراغ مصطفوی سے شرار بولہبی

د کلام خلاصه دا راووتله چې یو دی تخلیق او دویم دی کسب، د شر تخلیق محمود دی او د شر کسب مذموم دی، د دواړو جدا احکام دي مګر د دواړو تخلیق کمال دی، د عالم (دنیا) په ترتیب کې حسن هغه وخت راتلی شي کله چې په هغې کې د خیر او شر دواړو رنګ موجود وي.

گلہائے رنگ رنگ سے ہے رونق چمن ❁ اے ذوق اس جہان کو ہے زیب اختلاف سے

بهر حال د علی الاطلاق بادشاه رب تعالی د شئون مختلفو او صفات متنوعو غوښتنه وه چې خیر هم وي او شر هم وي، ابرار هم وي او اشرار هم وي، جنت هم وي او دوزخ هم وي او د هر یوه دپاره افراد هم وي.

درکارخانہ عشق از کفر ناگزیر است ❁ دوزخ کرا بسوزد گر بولہب نہ باشد

**تنبیه** : د تقدیر دوه قسمونه دي : یو تقدیر معلق دی او دویم تقدیر مبرم دی، په تقدیر معلق کې تغیر راتلی شي، خو په تقدیر مبرم کې هیڅکله فرق او تغیر نه شي راتلی، دې دواړو ته اجل معلق او اجل مبرم هم ویل شوي دي.

د اجل معلق مطلب دا شو چې الله تعالی په تقدير کې يوه فيصله ليکلې وه مگر د هغې سره يې يو شمير شرطونه هم ټکولي وو. مثلاً دا سې ليکل شوي وو چې د فلاني انسان به شپيته کلونه عمر وي. ليکن که چيرته هغه د والد خدمت وکړه يا متقي او پرهيزگار پاتې شو نو د هغه عمر به اتيا کلونه شي. دويم قسم اجل مبرم دی، دا د الله تعالی هغه غوڅه فيصله ده په کومه کې چې کوم څه مقرر او متعين دي په هغه کې هيڅکله هم تغير ممکن نه دی. کومه فيصله چې په تقدير مبرم کې شوېده هماغه به کيږي.

**۵ محرم الحرام ۱۴۰۹ھ**

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

| |
|---|
| **(۱) عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ اللهُ مَقَادِيرَ** |
| دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: نبي عليه السلام وفرمايل: الله تعالی ليکلی دی تقدير د |
| **الْخَلَائِقِ قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمَاوَاتِ وَ الْأَرْضَ بِخَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ قَالَ وَ كَانَ** |
| مخلوقاتو د زمکې او آسمانونو د پيدا کولو نه پنځوس زره کاله مخکې، او وې فرمايل (هغه وخت) دالله |
| **عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ** (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[۱]. |
| تعالی عرش په اوبو باندې ؤ. |

**توضيح: کتب الله**: دا ليکل په کوم خاص ديوان کې وو که نه تقدير خو د الله تعالی د علم ازلي ابدي او اجمالي نوم دی کوم چې د وخت پابند نه دی، همدارنگه ددې ليکلو نه مخکې د الله تعالی علم په راتلونکو حالاتو باندې محيط وو، هغه علام الغيوب دی، هغه د تفصيلي حالاتو د ليدلو نه وروسته دغه اجمالي نقشه ليکلې ده. بيا ددې کتاب مطلب دانه دی چې الله تعالی په لاس سره ليکلی دی، بلکې قلم ته يې د ليکلو حکم کړی دی، بعضو د کتب مطلب دااخيستی چې الله تعالی د مخلوق دپاره تقدير مقرر کړی، په عربي لغت کې کتب په معنی د تعين او تقرر سره راغلی دی. (المرقات ۱/۲۵۷).

**خمسين الف سنة**: سوال دا دی چې په بعضو روايتونو کې د څلويښت زره کلونو ذکر دی کوم چې په ظاهره ددې حديث سره متعارض دي، د دې جواب دا دی چې دغه فرق د مختلفو امورو په اعتبار سره دی. بعضې امور پنځوس زره کاله او ځينې امور څلويښت زره کاله مخکې ليکل شوي دي.

اوس يو بل سوال پيدا کيږي چې په دغه وخت کې خو زمکه او آسمان نه وو، زمانه نه وه، نو د پنځوس

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۴۴/۴، رقم الحديث ۱۶، من غير كان

زره کلونو تعین څنګه وشو؟ د دې جواب دا دی چې دا کلام د تخمین په طور دی. یوه اندازه ده. چې که چیرته زمانه وی نو همدومره وخت به وو. (المرقات ۲۵۷-۱/۲۵۸).

**وکان عرشه علی الماء** : علامه بیضاوي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې د دې مطلب دا نه دی چې عرش په اوبو باندې ایښودل شوی وو. بلکې مراد دا دی چې د دواړو په مینځ کې حائل نه وو. په دې سره د الله تعالی د یوه قدرت ښودل مقصود دي چې پورته عرش دی لاندې اوبه دي او د اوبو لاندې هوا ده او دا هر څه د الله په قدرت باندې قائم دي، حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې دلته د دنیا اوبه مراد نه دي. بلکې د عرش لاندې دریاب مراد دی د کوم نه چې باران وریږي. (المرقات ۱/۲۵۸).

په بعضو کتابونو او حاشیو کې لیکل شوي دي چې د ټولو نه مخکې الله تعالی یوه ملغلره جوړه کړه. بیا یې د هیبت نظر په هغې باندې واچولو هغه اوبه شولې، اوس لاندې صرف اوبه وې او پورته عرش وو.

**وکان عرشه علی الماء** منظر وو، بیا الله تعالی د غضب په نظر سره دې اوبو ته وکتل نو اوبه وچې شوې بنکته یو ککړ وچ تل پاتې شو او پورته یو لوګی (بخار) پورته شو د هغه نه وروسته آسمان جوړ شو ارشاد دی ﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَاءِ وَهِيَ دُخَانٌ﴾( حم سجده:۱۱) بیا ښکته د دغه آسمان نه زمکه وغوړول شوه ارشاد عالي دی ﴿وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا﴾. (النازعات:۳۰)

## هر شی د تقدیر لاندې دی

| |
|---|
| (۲) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ شَيْءٍ بِقَدَرٍ |
| د حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: هرشی په تقدیر سره |
| حَتَّى الْعَجْزُ وَالْكَيْسُ (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| شوی دی تردې چې پوهه او بې عقلي. |

**توضیح** : د دې حدیث مطلب دا شو چې د هوښیارتیا او کمزورتیا چې کوم صفات دي دا هم د تقدیر د احاطې نه بهر نه دي، بلکې قدر او قضاء د انسان په ټولو اړخونو باندې محیط دي، صرف تر دوزخ پورې تقدیر محدود نه دی، بلکې د دنیا او آخرت ټولې فیصلې او ټول معاملات د همدې قدر او قضاء ماتحت دي. اوس دلته سوال دا دی چې دلته په حدیث کې د **عجز** په مقابل کې د **کیس** لفظ راغلی دی، حالانکه د قاعدې مطابق د **عجز** مقابله د قدرت سره ده او د **کیس** مقابل **بلادة** دی نو دلته دا سې ولې شوي دي؟. د

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰٤٤/٤، رقم الحديث ۱۸، وأخرجه الإمام مالك في الموطأ ۸۹۹/۲، كتاب القدر، رقم الحديث ٤، وأحمد في مسنده ۱۱۰/۲

دې جواب دادی چې دلته د بلاغت د فن د اصولو ما تحت داحد الضدین نه یو ذکر شوی دی او په دې باندې په اعتماد کولو سره بل پرېښودل شوید ی نو دلته د صنعت احتیاط نه کار اخیستل شوی چې د **العجز** په ذکر کولو [redacted] ښودل شوی دی، او **الکیس** په ذکر کولو سره بلادت پرېښودل شوی. مراد احاطه او استغراق دی. عبارت داسې دی **العجز والقدرة او الکیس والبلادة من قدرة الله** (المرقات ۱/۲۵۸) یعنې ضعف قدرت ذکاوت او بلادت ټول د الله په نزد مقدر دي او د هغه مطابق ښکاره شوي دي. حافظ توربشتي رَحِمَهُ اللّٰه ویلي دي چې د **العجز** نه مراد عجز کمزوري او ضعف دی. (المرقات ۱/۲۵۸).

او د **الکیس** نه مراد هوښیار خلک دي، یعنې کوم چې کمزوري في العقل والرأیه دي هغو هم الله تعالی د تقدیر لاندې پیدا کړیدي او کوم چې **الکیس** هوښیار چالاک او مکار دي هغوی هم د تقدیر لاندې پیدا کړی شوي دي، په هیڅ کمزوري او طاقتور کې خپل کوم طاقت نشته دی ټول د الله تعالی سره دي (**لاحول ولا قوة الا بالله**). (المرقات ۱/۲۵۸).

## په تقدیر کې د دوو نبیانو بحث

**(۲) وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ**

د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: (چې په عالم ارواح کې)

**احْتَجَّ آدَمُ وَ مُوسَى عِنْدَ رَبِّهِمَا فَحَجَّ آدَمُ مُوسَى**

آدم عَلَيْهِ السَّلَام او موسی عَلَيْهِ السَّلَام د خپل پروردګار پروړاندې مناظره وکړه او غالب شو آدم عَلَيْهِ السَّلَام په موسی

**قَالَ مُوسَى أَنْتَ آدَمُ الَّذِي خَلَقَكَ اللهُ بِيَدِهِ وَ**

عَلَيْهِ السَّلَام باندې موسی عَلَيْهِ السَّلَام وویل ته هغه آدم یې چې الله تعالی په خپل لاس سره جوړ کړی وې په تا کې یې

**نَفَخَ فِيكَ مِنْ رُوحِهِ وَأَسْجَدَ لَكَ مَلَائِكَتَهُ وَأَسْكَنَكَ فِي جَنَّتِهِ ثُمَّ أَهْبَطْتَ النَّاسَ بِخَطِيئَتِكَ**

خپل روح پوکلی وو فرښتو تا ته سجده کړې وه او په خپل جنت کې یې ته ساتلې وې او بیا تا خلک په خپلې خطا

**إِلَى الْأَرْضِ**

سره زمکې ته راښکته کړل (یعنې که چیرته تا خطا نه وی کړې نو دلته په زمکه باندې به نه راښکته کیدلې

**قَالَ آدَمُ أَنْتَ مُوسَى الَّذِي**

اوستا اولاد به په دې دنیا کې نه خوریدلو بلکې په جنت کې به اوسیدلو) آدم عَلَيْهِ السَّلَام وویل: ته هغه موسی

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اصْطَفَاكَ | اللهُ | بِرِسَالَتِهِ | وَ | بِكَلَامِهِ | | | | | |
| یې کوم چې خدای تعالی په خپل منصب رسالت سره و نازولو مشرف یې کړې او د خپل مېنځي خبرو په شرف | | | | | | | | | |
| وَ | أَعْطَاكَ | الْأَلْوَاحَ | فِيهَا | تِبْيَانُ | كُلِّ | شَيْءٍ | وَ | | |
| سره یې مشرف کړې، او تاته یې هغه تختې درکړې وې په کومو کې چې د هر شي بیان وو او بیایې تاته په | | | | | | | | | |
| قَرَّبَكَ | نَجِيًّا | فَبِكَمْ | وَجَدْتَ | اللهَ | كَتَبَ | التَّوْرَاةَ | قَبْلَ | أَنْ | أُخْلَقَ |
| غوږکې د خبرو د پاره د نزدیکت عزت درکړی وو پس ته پوهېږې چې الله تعالی لیکلی وو تورات زما د پیدایښ | | | | | | | | | |
| قَالَ | مُوسَى | بِأَرْبَعِينَ | عَامًا | قَالَ | آدَمُ | فَهَلْ | | | |
| نه څومره مخکې، موسی عَلَيْهِ السَّلَام وویل څلوېښت کاله مخکې، آدم عَلَيْهِ السَّلَام پوښتنه وکړه آیا تا په تورات | | | | | | | | | |
| وَجَدْتَ | فِيهَا | وَ | عَصَى | آدَمُ | رَبَّهُ | فَغَوَى | قَالَ | | |
| کې دا الفاظ نه دي موندلي (ترجمه) یعنې آدم د خپل رب نافرماني وکړه او خطا شو. موسی عَلَيْهِ السَّلَام وویل | | | | | | | | | |
| نَعَمْ | قَالَ | أَفَتَلُومُنِي | عَلَى | أَنْ | عَمِلْتُ | عَمَلًا | كَتَبَهُ | اللهُ | |
| او. آدم عَلَيْهِ السَّلَام وویل: بیا نو ته ما ولې زما په دې عمل باندې ملامته کوې کوم چې خدای تعالی زما د | | | | | | | | | |
| عَلَيَّ أَنْ أَعْمَلَهُ قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَنِي بِأَرْبَعِينَ سَنَةً قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَجَّ | | | | | | | | | |
| پیدایښت نه څلوېښت کاله مخکې زما د پاره لیکلی وو، نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: په دې دلیل سره آدم | | | | | | | | | |
| آدَمُ مُوسَى. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)(۱). | | | | | | | | | |
| عَلَيْهِ السَّلَام په موسی عَلَيْهِ السَّلَام باندې غالب شو. | | | | | | | | | |

**توضیح: احتج آدم وموسی:** یعنې دواړو مناظره وشوه او س سوال دا دی چې دا بحث مباحثه او مناظره په کوم ځای کې وشوه؟ نو یو احتمال دا دی چې دا مناظره په عالم ارواح کې په تجلیات د رب کې وشوه، په حدیث کې د **عند ربهما** لفظ موجود دی، دویم احتمال دا دی چې دا مناظره په **لیلة الاسراء** کې وشوه.

**بیده:** او **(من روحه)** کې اضافت تشریفیه دی. (المرقات ۱/۲۵۹).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۵۰۵، رقم الحديث ۶۶۱۴، وأخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۴۳/۴، رقم الحديث ۱۵، وأخرجه ابو داود في سننه ۷۶/۵، رقم الحديث ۴۷۰۱، والترمذي ۳۸۶/۴ رقم الحديث ۲۱۳۴، وابن ماجه في مقدمته ۳۱/۱ رقم الحديث ۸۰.

**فحج آدم موسى**:يعنې آدم عَلَيْهِالسَّلَامُ په موسى عَلَيْهِالسَّلَامُ باندې په دې مناظره کې غالب راغی. (المرقات ۱/۲۵۹)

**فبكم**:يعنې زما دپيدا ښت نه څومره کلونه مخکې الله تعالی د تورات ليکلو حکم کړی وو. ( المرقات ۱/۲۶۱).

**جواب**: دلته شبه داده چې آدم عَلَيْهِالسَّلَامُ د موسى عَلَيْهِالسَّلَامُ د اعتراض جواب د الله تعالی په مخکې د تقدير په حواله ورکړی،ياپه دې سره دګناهونو دروازه پرانستلی شوې،ځکه چې هرمجرم دتقدير حواله ورکوي چې څه کومه ګناه مې چې کړې په تقدير کې همداسې ليکل شوې وه زما په دې کې څه قصور دی؟.

**جواب**:ددې سوال په حقيقت باندې مبني جواب دادی چې تقدير د مصيبتونو دراتلو نه وروسته د تسلی. اطمينان او سکون دپاره شوی دی، نو موسى عَلَيْهِالسَّلَامُ د خپل درد او مصيبتونو اظهار وکړ چې وګوره تالغزش وکړ ټول عالم دې په مصيبتونو کې مبتلا کړو ،حضرت آدم عَلَيْهِالسَّلَامُ جواب ورکړ چې هو همداسې شوي،ليکن څه وکړم په تقدير کې همداسې ليکل شوي وو ،اوس په دې مصيبتونو باندې صبر کول په کار دي، ګويا چې د موسى عَلَيْهِالسَّلَامُ په عمل باندې يې اعتراض ونه کړ صرف د همدردی او مصيبت اظهار يې وکړو مګر په ظاهري نظر کې چې کله ليدل کيږي او آوريدل کيږي نو هغه داسې ګڼل کيږي چې اعتراض دی نو د دې جواب په دريو مقدماتو باندې په پوهيدلو سره موقوف دی : **اوله مقدمه** : داده چې دا سوال په عالم ارواح کې شوی دی په عالم اسباب کې نه دی شوی. **دويمه مقدمه** : داده چې په ظاهره دا اعتراض د قبوليت توبې نه وروسته شوی دی. **دريمه مقدمه** : دا چې د مجرم ملامت کول په عالم اسباب کې دي، ترڅو چې مجرم په خپله توبه وکړي او راوګرځي او نور خلق عبرت واخلي. کله چې دغه درې مقدمات تيار شول نو اوس جواب واوره، په عالم ارواح کې د قبوليت توبې نه وروسته د مجرم د بيرته راګرځيدو د امکان نه بغير يا د کومې فايدې يا عبرت حاصلولو نه بغير دحضرت موسى عَلَيْهِالسَّلَامُ دا کلام په ظاهره محض الزام وو د کوم په جواب کې چې حضرت آدم عَلَيْهِالسَّلَامُ هم احتجاج بالقدر جواب ورکړ چې زما څه قصور وو په تقدير کې ليکل شوی وو. ګويا چې ده اشاره وکړه چې په عالم ارواح کې د توبې د قبليدو نه وروسته د اصلاح د غرض نه بغير په مخکنی ګناه باندې د ملامت کولو نکي همدغه جواب کيدلی شي.د **عصى آدم** او **غوى آدم** چې کوم الفاظ دي دا الله تعالی د خپل يو منتخب بنده دپاره د**حسنات الابرار سيئات المقربين** د اصولو ماتحت په معمولي لغزش باندې د شديد نکير په طور استعمال کړي دي، هيڅ انسان دې په دې سره دو که نه شي او په خپله دا رنګه تبصرې دې د دې نفوس قدسيو په خلاف شروع نه کړي(المرقات ۱/۲۶۲).

## د تقدیر لیکل شوي غالب راځي

(۵) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ حَدَّثَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوقُ

د ابن مسعود رضي الله عنه نه روایت دی چې صادق او مصدق سرکار دو عالم صلی الله علیه وسلم مونږ ته وفرمایل

إِنَّ خَلْقَ أَحَدِكُمْ يُجْمَعُ فِي بَطْنِ أُمِّهِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا نُطْفَةً

په تاسو کې د هر یو کس تخلیق په دې شان شوی چې (اول) د هغه نطفه د مور په خیټه کې څلویښت ورځې جمع

ثُمَّ يَكُونُ عَلَقَةً مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ يَكُونُ مُضْغَةً مِثْلَ ذٰلِكَ

وي بیا پس د څلویښتو ورځو هغې نه ټینګه وینه جوړه شي بیا پس د دې ورځو نه هغه د غوښې ټوټه جوړه شي.

ثُمَّ يَبْعَثُ اللّٰهُ إِلَيْهِ مَلَكًا بِأَرْبَعِ كَلِمَاتٍ فَيَكْتُبُ عَمَلَهُ وَأَجَلَهُ

بیا الله تعالی هغه ته یو فرښته د څلورو خبرو د لیکلو د پاره ولیږي لهذا فرښته د هغه عمل د هغه د مرګ (وخت)

وَرِزْقَهُ وَشَقِيٌّ أَوْ سَعِيدٌ

د هغه رزق اندازه د هغه بدبخت او نیک بخت کیدل (د خدای په حکم سره) د هغه په تقدیر کې ولیکل شي.

ثُمَّ يَنْفُخُ فِيهِ الرُّوحَ فَوَالَّذِي لَا إِلٰهَ غَيْرُهُ إِنَّ

بیا به پوک وهلی شي په دې کې روح نو قسم دی په هغه ذات د کوم نه بغیر چې هیڅ معبود نشته په تاسو کې

أَحَدَكُمْ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ حَتّٰى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا إِلَّا ذِرَاعٌ

یو انسان د جنتیانو عمل کوي تردې چې د هغه او د جنت په منیځ کې دیو لاس په اندازه فاصله پاتې وي چې

فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ فَيَدْخُلُهَا

لیکل شوی تقدیر غالب شي او هغه د دوزخیانو د اعمالو په کولو شروع وکړي او دوزخ ته داخل کړی شي

وَإِنَّ أَحَدَكُمْ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ حَتّٰى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا إِلَّا ذِرَاعٌ

او په تاسو کې یو انسان د دوزخیانو عمل کوي تردې چې د هغه او د دوزخ په مینځ کې دیو لاس په اندازه فاصله

فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَيَدْخُلُهَا. (بخاري، مسلم)[1]

پاتې وي چې د تقدیر لیکل غالب شي او هغه د جنتیانو په کار لاس پورې کړي او جنت ته داخل کړی شي.

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۳۰۳/۶، رقم الحديث ۳۲۰۸. ومسلم في صحيحه ۲۰۳۶/٤. رقم الحديث ۱. واخرجه ابو داود في سننه ۵ ۸۲ . رقم الحديث ٤۷۰۸ .واخرجه الترمذي ٤/ ۳۸۸ رقم الحديث ۲۱۳۷. وابن ماجه في مقدمته ۱ ۲۹ رقم الحديث ۸٦

**توضیح: حدثنا رسول الله صلی الله علیه وسلم:** دلته د **حدثنا** مبارک لفظ حضرت ابن مسعود صلی الله علیه وسلم استعمال کړی دی، کوم چې په لکونو اولیاء کرامو او محدثینو عظامو حرز جان(د ځان ملغلره) جوړ کړی دی. بیا خوندوره دا ده چې محدث د رسول الله صلی الله علیه وسلم ذات بابرکت دی. همدارنګه د دجال د واقعې په حدیث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم همدا مبارک لفظ **حدثني تمیم الداري** استعمال کړی. دا د محدثینو کرامو او شیخ الحدیث دپاره لوی اعزاز دی.

**وهو الصادق المصدوق:** بعضې وخت یو انسان رشتینی وي لیکن خلق د هغه رشتینو الی نه پیژني. نو وې فرمایل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم رشتینی هم دی او د دنیا خلک یې رشتینی هم منلی دي، لهذا د قریشو کفارو به ورته صادق الامین ویله او د مکې نه د هجرت تر اخیرنۍ ورځې پورې خپل امانتونه یې دده صلی الله علیه وسلم سره ایښي وو، دشمني او زباني عداوت په خپل ځای وو مګر د زړه او دماغو په اعتبار سره دا صلی الله علیه وسلم یې د ټولو رشتیني ګڼلی وو، دا جمله معترضه ده حالیه نه ده، ځکه حال خو د یو حالت سره تړلی شوی وي، دلته صدق ټولو شعبو ته عام دی، ملا علي قاري رحمه الله ویلي چې د **الصادق** مطلب دا دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپلو ټولو افعالو کې رشتینی وو تردې چې د نبوت نه مخکې هم رښتینی وو او د **المصدق** مطلب دا دی چې په راتلونکو ټولو واقعاتو او دوحي په ټولو تفصیلاتو کې رشتینی وو، په دغه ځای دا سوال دی چې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په نورو حدیثونو او روایتونو کې دا جمله نشته نو دلته ولې ذکر کړی شوه؟. (المرقات ۱/۲۶۲).

علامه طیبي رحمه الله او ملا علي قاري رحمه الله ویلي دي چې په دغه حدیث کې چونکه په باطني امورو باندې خبره وه او دپټو شیانو سره متعلق خبرې اترې وې دهیچا دپاره یې مشاهده ممکن نه وه، همدارنګه یو شمیر اطباؤ دغه کلام د خپلو قواعدو خلاف منلی نو حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ویلي دي چې د شک ګنجایش نشته، ستاسو قواعد که هر څنګه هم وي مګر دا د صادق او مصدوق کلام دی، حقیقت هماغه دی کوم چې صادق او مصدوق بیان کړی، علامه طیبي رحمه الله ویلي: **فما احسن موقعه هنا.**

**یجمع في بطن امه:** حافظ توربشتي رحمه الله د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه یو روایت ذکر کړی دی په کوم کې چې مذکور دي چې نطفه تر څلوېښت ورځو پورې د ماشوم د مور په ټول جسم کې حتی چې د هر ویښته او هر نوک لاندې حرکت کوي او ددې نه وروسته د وینې په شکل په رحم کې قرار نیسي، دا حقیقت په دې روایت کې په (**یجمع في بطن امه**) کې ذکر شوی دی. (المرقات ۱/۲۶۳).

**لیعمل:** د الله تعالی په علم کې د پخوا نه دا وو چې دغه انسان به په خپل کسب او اختیار سره دا فعل کوي د کوم د وجې چې یا به مستحق جنت یا مستحق نار دوزخ جوړ شي، ددې نه وروسته په لوح محفوظ

کې د تقدير په شکل وليکل شول. فرښتې د مور په خيټه کې د ماشوم متعلق چې څه ليکي هغه د همدې تقدير مطابق د لوح محفوظ نه راوړي او ليکي يې، په فيعمل سره اشاره وشوه چې د بنده کسب د دخول جنت او دخول دوزخ دپاره ضروري سبب دی، صرف د تقدير په ليک باندې دخول نشته نو انسان نه مجبور شو نه مختار شو. دلته شبه دا ده چې په بعضې روايتونو کې د پنځو کلمو ذکر دی، دلته د څلورو ذکر دی، د دې جواب دا دی چې دغه اختصار د راوي د وجهې دی، چا څلور او چا پنځه ذکر کړي دي. باقي د ماشوم د پيدايښت او تخليق دغه مرحله او ترتيب او دغه تدريجي عمل د دې خبرې طرف ته اشاره ده چې بنده ته هم د هر عمل کول په تدريج سره په کار دي، همدارنګه په دې کې حکمت دا دی چې په تدريجي عمل سره د ماشوم په مور باندې يو دم بوج نه راځي. (المرقات ۱/۲٦۷).

**فيسبق عليه الکتاب**: معلومه شوه اعمال امارات او علامات او اسباب دي اصل فيصله د الهي تقدير د وجهې ده نو بالاخر د هغه طرف ته ورتلل دي. (المرقات ۱/۲٦۷).

**فيدخلها**: په دغه حديث کې د سالک دپاره تنبيه ده چې هر وخت دې په خوف او رجاء کې اوسي، د عجب تکبر او ناکاره اعمالو نه دې پرهيز وکړي اصل اعتبار خاتمې لره دی. (المرقات ۱/۲٦۷).

## خاتمې لره اعتبار دی:

| |
|---|
| **(۵) وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْعَبْدَ** |
| د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې: رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: بنده د |
| **لَيَعْمَلُ عَمَلَ أَهْلِ النَّارِ وَ إِنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَ يَعْمَلُ عَمَلَ أَهْلِ الْجَنَّةِ** |
| دوزخيانو په شان کار کوي ليکن هغه جنتي وي، او د جنتيانو په شان کار کوي ليکن هغه دوزخي وي، |
| **وَإِنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ وَإِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالْخَوَاتِيمِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).[1]** |
| ځکه چې د نجات او عذاب دار مدار د اعمالو په خاتمه باندې دی. |

**توضيح**: **ليعمل**: يعنې د الله تعالى په علم کې وو چې هر انسان به په خپل کسب او اختيار سره دا فعل کوي. نو اګر که په ظاهره هغه د اهل جنت نه معلوميده ليکن د الله تعالى د علم مطابق هغه دوزخي وو، او په آخر کې هغه د اهل دوزخ عمل په خپل کسب او اختيار سره وکړه نو د اهل دوزخ نه شو. همدارنګه معامله د دويم اړخ هم شوه، د اعمالو دارو مدار په خاتمه باندې دی، نو په عالم غيب کې د هيچا متعلق دا فيصله نه شي کيدلی چې دا دوزخي يا جنتي دی، دا مطلب نه دی چې کوم مسلمان د خاتمې په

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۹۹، رقم الحديث: ٦٦۰۷، ورواه مسلم في صحيحه ۱/۱۰٦، رقم الحديث (۱۷۹ - ۱۱۲).

اعتبار سره مسلمان وویل شي او پرینبودل شي، کله چې هغه د شریعت پابند دی نو معامله به د مسلمان وي ، هو د عالم غیب خبره جدا ده همدارنګه د ظاهري اعمالو دوجې نه په یوچاباندې داهل جنت یا اهل دوزخ حکم نه شي لګول کیدی ، ظاهري اعمال صرف علامات دي اصل فیصله هغه ده کومه چې تقدیر کړې ده . ( المرقات ۱/۲٦۸).

## په چا باندې یقیني حکم لګول نه دي په کار

﴿۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ دُعِيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى جِنَازَةِ صَبِيٍّ مِنَ الْأَنْصَارِ فَقُلْتُ

حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ویلي دي چې د یو انصاري ماشوم جنازې ته نبي عَلَيْهِ السَّلَام وبلل شو ما وویل

يَا رَسُولَ اللهِ طُوبَىٰ لِهَذَا عُصْفُورٌ مِنْ عَصَافِيرِ الْجَنَّةِ لَمْ يَعْمَلِ السُّوءَ

یارسول الله! دې ماشوم ته زیري دی هغه خود جنت د مرغیو نه یوه مرغی ده کوم چې هیڅ بد کارېې نه دی کړی

وَ لَمْ يُدْرِكْهُ فَقَالَ أَوَ غَيْرُ ذَٰلِكَ يَا عَائِشَةُ

او نه دبدې ترحده رسیدلی دی نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: عائشې! آیا دهغه نه بغیر بل څه کیدلی شي؟ یعنې

إِنَّ اللهَ خَلَقَ لِلْجَنَّةِ أَهْلًا خَلَقَهُمْ لَهَا وَ هُمْ فِي

دهغه د جنتي کیدو یقین مه کوه ځکه چې الله تعالی د جنت دپاره مستحق خلک پیدا کړي دي کله چې هغوی

أَصْلَابِ آبَائِهِمْ وَ خَلَقَ لِلنَّارِ أَهْلًا خَلَقَهُمْ لَهَا وَهُمْ فِي أَصْلَابِ آبَائِهِمْ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]

پلرونو په شاګانو کې وو او د دوزخ دپاره یې هم مستحق خلک پیدا کړي کله چه هغوی د پلرونو په شاګانو کې وو

**توضیح : عصفور من عصافیر الجنة** : دا تشبیه نه ده ځکه چې په جنت کې د مشبه به دپاره د عصافیرو مرغیو وجود نشته، همدارنګه دا کومه استعاره وغیره هم نه ده ، بلکې دغه کلام په یوه دعوی ادعاء باندې مبنيء دی چې لومړی دعوه وکړی شوه چې په جنت کې مرغی شته دي او بیا دهغې سره تشبیه ورکړی شوه، د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خیال وو چې هغه جنتي دی، ملا علي قاري رَحِمَهُ الله ویلي چې دا بلیغه تشبیه ده او په جنت کې د مرغیو شتون په ﴿وَلَحْمِ طَيْرٍ مِمَّا يَشْتَهُونَ﴾ سره ثابت دی ( المرقات ۱/۲٦۹)

**فقال او غیر ذلک**: ملا علي قاري رَحِمَهُ الله ویلي چې د مشهور روایت مطابق دا عبارت د **واو** په فتحه د را په ضمه او د **کاف** په کسرې سره دی، ګویا که **واو** حالیه دی اصل عبارت داسې دی : **اتعتقدین ما قلت**

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۵۰/٤، وأخرجه النسائي في سننه ٥٧/٤ رقم الحديث ۱۹٤۷، وابن ماجه ۳۲/۱ رقم الحديث : ۸۲ . وأحمد في مسنده ۲۰۸/٦.

**والحق غير ذلک** ، او هغه دا چې په يقيني طور دا نه شي ويل کيدی چې دغه ماشوم د اهل جنت نه دی. دا د هغه وخت خبره ده کله چې په رسول الله ﷺ باندې د ماشومانو په باره کې کومه وحې نه وه راغلې، وروسته وحې راغله چې ماشومان به په جنت کې وي، يا رسول الله ﷺ دلته حضرت عائشې رضي الله عنها ته داتعليم ورکړی چې بغير د کوم قطعي علم نه قطعي حکم او قطعي فيصله مناسبه نه ده ، ځکه چې ماشوم د والدينو تابع دی، کيدی شي چې د پلار خاتمه يې بالخير نه شي بلکې بل څه شي.

علامه طيبي رحمه الله په وغير ذلک کې واو د او په معنی سره اخيستی يعنې الواقع هذا او غير ذلک يو احتمال دا هم دی چې دغه واو د بل په معنی سره شي. ( المرقات ۱/۲۷۰،الکاشف ۱/۲۴۱).

**اصلاب ابائهم** : يعنې د الله تعالی په ازلي علم کې د پخوا نه معلومه وه چې دغه خلک دوزخيان دي يا جنتيان دي، د اصلاب آباء د وخته نه معلومه وه او همدارنګه په لوح محفوظ کې هم ليکل شوي وو. ليکن دا هر څه د همدغه کس تفصيلي اعمالو ته په تفصيل سره په کتو ليکل شوي دي. بالآخر همدغه خلک په خپل کسب او اختيار سره او د خپلو اعمالو او افعالو په وجه خپل خپل ځای ته ورځي.

## په جنت او دوزخ کې د هر چا ځای ليکل شوې دی

| |
|---|
| (۷) وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا وَقَدْ كُتِبَ مَقْعَدُهُ مِنَ النَّارِ |
| د حضرت علي رضي الله عنه روايت دی چې نبي عليه السلام و فرمايل: په تاسو کې د هر کس ځای الله تعالی په دوزخ |
| وَ مَقْعَدُهُ مِنَ الْجَنَّةِ |
| او جنت کې ليکلی دی (يعنې دا معلوم شوي دي چې کوم خلک جنتيان او کوم دوزخيان دي) صحابه کرامو |
| قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ أَفَلَا نَتَّكِلُ عَلَى كِتَابِنَا وَ نَدَعُ الْعَمَلَ |
| عرض وکړ يارسول الله! آيا مونږ په خپل ليکل شوي تقدير باندې يقين وکړو کښينو او عمل کول پرېږدو. |
| قَالَ اعْمَلُوا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ لِمَا خُلِقَ لَهُ |
| نبي عليه السلام و فرمايل: تاسو عمل وکړئ ځکه کوم کس چې د کوم شي د پاره پيدا شوی دی هغه ته د هغه آساني |
| أَمَّا مَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ السَّعَادَةِ فَسَيُيَسَّرُ لِعَمَلِ السَّعَادَةِ |
| او توفيق ورکول کيږي لهذا کوم کس چې د نيک بختۍ اهل دی خدای تعالی هغه ته د نيک اعمالو توفيق |
| وَ أَمَّا مَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الشَّقَاوَةِ فَسَيُيَسَّرُ لِعَمَلِ الشَّقَاوَةِ ثُمَّ |
| ورکوي او کوم کس چې د بدبختۍ اهل دی هغه ته د بدبختۍ د اعمالو موقع ورکوي، بيا د دې نه وروسته |

قَرَأَ فَأَمَّا مَنْ أَعْطَى وَاتَّقَى

نبي عَلَيهِ السَّلَام دا آیت کریمه تلاوت کړ (ترجمه) چا چې د الله په لار کې څه ورکړل او پرهیزګاري یې وکړه

وَ صَدَّقَ بِالْحُسْنَى الآيَةَ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).[1]

او ښه خبره (د اسلام دین) یې رښتیا او منلو د هغه د پاره مونږ د اساني ځای (جنت) اسان کړو لیکن چا چې

بخل وکړ او په نفساني خواهشاتو او د دنیا په رنګ روغن کې ګیر شو د آخرت د نعمتونو نه یې بې پرواهي وکړه

همدا رنګه د غوره خبرې (د اسلام دین) یې دروغ وبللو نو د هغه د پاره مونږ مشکل ځای (د دوزخ لار) آسانه کړه

**توضیح : كتب مقعده من النار** : یعني الله تعالی په خپل ازلي محیط علم کې لیکلي چې د دغه کس به د خپل کسب او اختیار سره خاتمه په کفر وي نو د هغه ځای د اوسیدو دوزخ لیکل شوی، یا به یې په خپل کسب او اختیار سره خاتمه په ایمان وي نو د اوسیدو ځای یې جنت لیکل شوی. (المرقات ۱/۲۷۲).

**قال اعملوا** : د علامه طیبي رَحِمَهُ الله د قول مطابق د صحابه کرامو د سوال منشاء دا وه چې هغوی ګمان وکړ چې کله د هر کس د اوسیدو ځای جنت یا دوزخ دی نو اعمالو ته څه ضرورت پاتې شو له همدې امله هغوی د ترک عمل اجازه وغوښته، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جواب کې د عمل کولو ترغیب ورکړه او اهمیت یې بیان کړه چې عمل، عبادت او معبودیت د الوهیت حق دی، نو د عبدیت تقاضا دا ده چې په عمل کې مشغول وه اوسی او د دې نه په خپل ځان د بریٔ الذمه ګمان ونه کړي، اګر که الله تعالی د هر یوه د پاره د اوسیدو ځای لیکلی دی، لیکن ستاسو اعمال هماغه د اوسیدو ځای ته د رسیدو د پاره ظاهري اسباب دي او هر کس ته د هماغه ځای مطابق د اعمالو کولو توفیق ورکول شوی دی، نو اعمال علت نه دي مګر علامات خامخا دي چې دغه کس د کوم قسم ځای په تیاري کې مصروف دی نو د هر کس په عمل سره د هغه د سفر د انتهاء پته لګیږي (ان خیرا فخیر وان شرا فشر) نو تقدیر د اعمالو د تعطّل ذریعه نه ده بلکې د اعمالو د تیزۍ سبب دی. (الکاشف ۲۴۳-۱/۲۴۴).

د علامه خطابي رَحِمَهُ الله رأیه ده چې دلته په اصل کې دوه شیان دي، یو الهي تقدیر دی کوم چې باطني امر دی او دغه شی مؤثر حقیقي دی او د دخول جنت یا دوزخ ذریعه ده، دویم امر ظاهري دی کوم چې د بنده اعمال دي، کوم چې په تقدیر باندې د مرتب کیدو د پاره د امارات ظاهریو او علامات ظاهریو حیثیت لرلی دی او په خپله فی نفسه علت ندي، صحابه کرامو غوښتل چې دغه ظاهري امر پریږدي په باطني امر یعنې تقدیر باندې اکتفاء وکړي، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل : دا صحیح نه ده، بلکې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۲۲۵، رقم الحديث : ۱۳۶۲، وأخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۳۹، رقم الحديث ۶، والترمذي ۴/۳۸۷ رقم الحديث ۲۱۳۵، وابن ماجه ۱/۳۱ رقم الحديث : ۳۱ .

همدغه ظاهري امر غوره کړئ، ځکه چې په دې سره د باطني امر د پاره آساني پیدا کیدی شي او دغه امر په باطني امر باندې د دلیل او قرینې په طور وړاندې کیدلی شي.

## د بدکارۍ مراتب

(۸) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ

دابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي علیه السلام وفرمایل: خدای تعالی چې د انسان په تقدیر کې څومره

حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا أَدْرَكَ ذَلِكَ لَا مَحَالَةَ فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ وَ زِنَا

برخه زنا لیکلې ده هغه به خامخا هغه په عمل کې راځي، د سترګو زنا (د نامحرمو طرف ته) کتل دي او زنا

اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ وَ النَّفْسُ تَمَنَّى وَ تَشْتَهِي وَ الْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذَلِكَ

د ژبې (د نامحرمو ښځو سره د شهوت) خبرې دي او نفس آرزو او خواهش کوي او شرمګاه د دې آرزو تصدیق

وَيُكَذِّبُهُ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ كُتِبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ نَصِيبُهُ مِنَ الزِّنَا

کوي یا تکذیب، او د مسلم یو روایت دی چې د انسان په تقدیر کې چې د زنا څومره حصه لیکل شوې ده

مُدْرِكٌ ذَلِكَ لَا مَحَالَةَ الْعَيْنَانِ زِنَاهُمَا النَّظَرُ وَ الْأُذُنَانِ

هغه به خامخا په عمل کې راځي د سترګو زنا (د نامحرمو طرف ته) کتل دي د غوږونو زنا (د نامحرمې ښځې)

زِنَاهُمَا الْاِسْتِمَاعُ وَ اللِّسَانُ زِنَاهُ الْكَلَامُ وَ الْيَدُ

نه د شهوت اچوونکو خبرو آوریدل دي د ژبې زنا (د نامحرمې ښځې سره د شهوت) خبرې کول دي او د لاسونو

زِنَاهَا الْبَطْشُ وَ الرِّجْلُ زِنَاهَا الْخُطَا وَ الْقَلْبُ

زنا (د نامحرمې ښځې په بدې ارادې سره) لمس کول دي او د پښو زنا (د بدکارۍ طرف ته) تلل دي او زړه

يَهْوَى وَ يَتَمَنَّى وَ يُصَدِّقُ ذَلِكَ الْفَرْجُ وَيُكَذِّبُهُ. (بخاري، مسلم)[1]

خواهش او آرزو کوي او شرمګاه د هغه تصدیق یا تکذیب کوي.

**توضیح**: ان الله کتب الخ: حافظ توربشتي رحمه الله ویلي دي چې کتب د ثبت په معنی دی د فرض او واجب په معنی نه دی، مراد دا دی چې الله تعالی په ابن آدم کې داسې حواس پیدا کړي دي د کومو په ذریعه چې هغه د زنا لذت (خوند) محسوسوي او د هغه نه وروسته د فرج په ذریعه د هغه تکمیل کوي،

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۲۶/۱۱، رقم الحديث :۶۳۴۳، ومسلم في صحيحه ۲۰۴۶/۴، رقم الحديث ۲۰، واخرجه ابو داود في سننه ۶۱۱/۲، رقم الحديث ۲۱۵۲، واحمد في مسنده ۲۷۶/۲.

اوس که چیرته هغه عملا زنا وکړه نو د حواسو د همدې خوندونو په باره کې دا د فرج د طرفه تصدیق شو، او که چیرته یې د زنا ارتکاب اصلا ونه کړ نو د حواسو په باره کې دا د فرج د طرفه تکذیب شو (والفرج یصدق ذلک ویکذبه) همدا مطلب دی. (المرقات ۱/۲۷۴).

بعضو حضراتو کتب د قدر په معنی اخیستی ای قدر في الازل ان یجري علی ابن آدم الزنا په ازلي تقدیر سره انسان په خپل کسب او اختیار سره د زنا ارتکاب کوي، ددې حدیث نه معلومه شوه چې د زنا ډیر مراتب دي کوم چې زنا دون زنا ده، یوه زنا حظ العین دی، یوه حظ اللسان دی، یو حظ القلب دی، یو زنا حظ الاذنین دی، د دې ټولو په آخر کې د زنا آخرنۍ او عملي درجه ده کومې ته چې زنا بالفرج ویل شوي، په دغه اخیرنۍ درجه کې چې څوک مبتلا شول نو دا د الفرج یصدقه مصداق دی، او څوک چې په اخیرنۍ مرتبه کې له مبتلا کیدو ساتلې شول نو دا د الفرج یکذبه مصداق دی.

خلاصه دا ده چې د همدې اخیرنۍ عملي زنا نه مخکې وسائل ذرائع او اسباب دي کوم چې په صغائرو کې داخل دي، بیا هم که چیرته اخیرنۍ درجه متحقق شي نو د وسائلو ټول درجات په کبائرو کې شمارل کیږي، د دې مثال داسې دی چې یو غل جومات ته د غلا د پاره لاړو مګر بیا یې خپله اراده بدله کړه توبه یې وکړه، نو د مخکنۍ درجې ټول وسائل معاف شول او که چیرته غلا وکړي نو مخکنې ټول وسائل هم له ده سره په غلا کې شمارل کیږي، په دې حدیث سره د قرآن کریم د دې آیت ﴿الَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَائِرَ الْإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ إِلَّا اللَّمَمَ﴾ (النجم آیت: ۳۲) تفسیر مفسرینو کړی دی، ابن عباس رضي الله عنه ویلي دي چې د اللمم د ټولو نه ښه تفسیر د حضرت ابو هریره رضي الله عنه حدیث دی.

**المنطق**: د اجنبیاتو سره زړه تړل د شهوت را پاروونکې خبرې مراد دي. (المرقات ۱/۲۷۴).

دا حدیث مسلمانانو ته د سترګو، ژبې، لاسونو او د زړه د زنا نه د ساتلو تعلیم ورکړی دی، حالانکه خلق دغه شیان په زنا کې نه شماري، بلکې صرف عملي زنا جرم ګڼي.

## لیکل شوی تقدیر د واقعاتو د ښکاره کیدو نه مخکې دی

| |
|---|
| (۹) وَ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ الْحُصَيْنِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَجُلَيْنِ مِنْ مُزَيْنَةَ |
| د عمران بن حصین رضي الله عنه نه روایت دی چې یو ځل د قبیلې مزینه دوه کسان د رسالت په دربار کې حاضر شول |
| قَالَا يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ مَا يَعْمَلُ النَّاسُ الْيَوْمَ وَ يَكْدَحُونَ فِيهِ |
| او عرض یې وکړو یا رسول الله! مونږ ته وښایه چې نن (په دنیا کې) خلک عمل کوي او د اعمالو په کوشش کې |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَشَيْءٌ | قُضِيَ | عَلَيْهِمْ | وَ | مَضَى | فِيهِمْ | مِنْ | قَدَرٍ | سَبَقَ |
| دي آيا دا هغه شی دی د کوم چې حکم شوی دی او لیکل شوی تقدیر گرځیدلی دی یا که دا عمل د هغوا حکامو | | | | | | | | |
| أَوْ فِيمَا يَسْتَقْبِلُونَ بِهِ مِمَّا أَتَاهُمْ بِهِ نَبِيُّهُمْ وَ ثَبَتَتِ الْحُجَّةُ عَلَيْهِمْ | | | | | | | | |
| موافق دی کوم چې په راتلونکي کې کیدونکي دي او دوی ته نبي راوړي دي په کوم باندې چې دلائل قائم | | | | | | | | |
| فَقَالَ | لَا | بَلْ | شَيْءٌ | قُضِيَ | عَلَيْهِمْ | وَ | مَضَى | فِيهِمْ |
| شوي دي، نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: نه دا هغه شی دی د کوم چې فیصله شوې ده او لیکل شوی تقدیر جوړ شوی | | | | | | | | |
| وَتَصْدِيقُ ذَلِكَ فِي كِتَابِ اللهِ عَزَّوَجَلَّ وَنَفْسٍ وَمَاسَوَّاهَا فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. | | | | | | | | |
| دی او د هغه تصدیق د کتاب الله په دې آیت سره شوید ی ﴿وَنَفْسٍ وَمَا سَوَّاهَا فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا﴾. | | | | | | | | |

**توضیح**: ارأيت: دا کلمه د **اخبرني** په معنی سره ده. (المرقات ۱/۲۷۶).

**یکدحون**: کدح هغه محنت او مشقت ته ویل کیږي په کوم سره چې په بدن کې نښان جوړ شي. (المرقات ۱/۲۷۶).

**من قدر سبق**: په دغه جمله کې د **من** کلمه راغلې ده په دې کې دوه احتماله دي: اول احتمال دا دی چې دا د بیان دپاره دی، په دې صورت کې به قضاء او قدر دواړه هم معنی شي او همدغه معنی راجح هم ده، یا به دا **من** تعلیلیه شي (**ای قضی علیهم القضاء لاجل قدر سبق او فیما یستقبلون به**) د **یستقبلون** صیغه په مشکوة شریف کې معروف ویل شوې ده، خو په مسلم کې مجهول ویل شوې ده.

**مما اتاهم نبیهم**: **ای من الاحکام الشرعیة التکلیفیة وثبتت الحجة علیهم من الشارع**. ددې دوو کانو د سوال د دوو شقونو نه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اول شق غوره کړ جواب یې ورکړه چې کوم څه په آئنده کې را روان دي هغه د مخکني قدر او قضاء ماتحت را روان دي، په دې باندې د دلیل په طور رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا آیت کریمه وړاندې کړه ﴿فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا﴾ په دې کې **الهمها** د ماضي صیغه ده په کومې سره چې د قضاء او قدر سابقیت طرف ته اشاره ده. (المرقات ۱/۲۷۶).

د دې روایت په ابتدائي عبارت کې د ترکیب پوهیدو د پاره عبارت دارنگه شو: (**اخبرني اي ما یعمل**

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۴۱/۴، رقم الحديث ۱۰

**اليوم يجتهدون فيه اهو شئ يعلي اهو شئ قطى الخ** نو هو مبتداء ده او شيء د هغه خبر دی، د حديث حاصل دا شو چې تپوس کوونکو دا پوښتنه وکړه چې د مخکې نه څه ليک يا د تقدير فيصله شوې ده او که معامله نوې ده؟ رسول الله ﷺ په جواب کې وفرمايل : هو د مخکې نه ليکل شوې ده، بيا رسول الله ﷺ په آيت سره استدلال وکړ چې الله تعالى په ازلي علم کې د پخوا نه هر څه مقدر کړي دي او د ماضي صيغه په هغه باندې دليل دی.

## په تقدير کې چې څه ليکل شوي هغه به کيږي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي |
| د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړو : يارسول الله! زه |
| رَجُلٌ شَابٌّ وَ أَنَا أَخَافُ عَلَى نَفْسِي الْعَنَتَ وَلَا أَجِدُ مَا |
| ځوان سړی يم او زه په خپل نفس ويريږم چې د بدکارۍ طرف ته مائل نه شي او په ما کې د ننه دومره طاقت نشته |
| أَتَزَوَّجُ بِهِ النِّسَاءَ كَأَنَّهُ يَسْتَأْذِنُهُ فِي الْإِخْتِصَاءِ |
| چې د کومې ښځې سره واده وکړم ګويا چې ابو هريره رضي الله عنه خپل ځان د دننه نه د مردانه قوت د ختمولو |
| قَالَ فَسَكَتَ عَنِّي ثُمَّ قُلْتُ مِثْلَ ذٰلِكَ |
| اجازه غوښتې وه ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي عليه السلام دا او ريدل سکوت يې وکړ ما دوباره همداسې |
| فَسَكَتَ عَنِّي ثُمَّ قُلْتُ مِثْلَ ذٰلِكَ |
| وويل، نبي عليه السلام بيا خاموش شو ما بيا عرض وکړو دا ځل بيا هم نبي عليه السلام څه و نه فرمايل، ما بيا همداشان |
| فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ |
| عرض وکړو نو نبي عليه السلام وفرمايل: ابو هريره کوم څه چې شويدي (همداسې ستا په تقدير کې ليکل شوي) |
| جَفَّ الْقَلَمُ بِمَا أَنْتَ لَاقٍ فَاخْتَصِ عَلَى ذٰلِكَ أَوْ ذَرْ (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1]. |
| قلم وچ شوی دی، لهذا تا ته اختيار دی چې قوت مردانه ختموې او که يې نه ختموې. |

**توضيح : العنت** : د ګناه فجور او زنا په معنی سره دی. (المرقات ۱/۲۷۶).

**ولا اجد ما اتزوج** : د دې نه مراد واجبي نفقه ده (**كأنه يستأذنه في الاختصاء**) دا په مينځ کې د راوي

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱۷/۹، رقم الحديث :۵۰۷۶، والنسائي في سننه ۸۹/۶ رقم الحديث ۳۲۱۵.

کلام دی.

**الاختصاء**: د خصیتینو د ویستلو په معنی سره دی. (المرقات ۱/۲۷۶).

د ابو هریره رضي الله عنه د بار بار سوال باوجود د رسول الله صلی الله علیه وسلم د طرفه جواب نه ورکول د اظهار کراهیت دپاره او د قباحت عمل د وجهې وو، مګر په اخیر کې د اسلوب حکیم په شکل یې وفرمایل.

**جف القلم بما انت لاق**: علامه توربشتي رحمه الله ویلي دي چې **جف القلم** کنایه ده چې د مقدراتو د کتابت نه قلم فارغ شوی او وچ شوی دی، اوس هغه شی په تفصیل کې راځي کوم چې پخوا په تقدیر کې لیکل شوی دی، په دې وجه ستا اختصاء (خصي کیدل) بیکاره او لایعني دي.

**اختص علی ذلک اوذر**: په دې کلام کې د اختصاء اجازه نشته، بلکې زجر توبیخ، ملامتیا او ناراضګي ده چې په تقدیر کې څه لیکل شوي هماغه به کیږي نو چې څه غواړې وې کړه، اوذر کې او د تسویه او برابری دپاره دی چې د تقدیر پر وړاندې دواړه برابر دي، د رسول الله صلی الله علیه وسلم سکوت (خاموشي) هم په ناراضګی باندې دلالت کوي. (المرقات ۱/۲۷۶).

## انسان هر وخت په خطر کې دی

| |
|---|
| (۸) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ قُلُوبَ بَنِي آدَمَ كُلَّهَا |
| دعبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د ټولو انسانانو زړونه |
| بَيْنَ أُصْبُعَيْنِ مِنْ أَصَابِعِ الرَّحْمٰنِ كَقَلْبٍ وَاحِدٍ |
| دخدای دګوتونه دوو ګوتو په مینځ کې داسې دي لکه چې د یوه انسان زړه دی او هغه (په خپلو ګوتو سره) |
| يُصَرِّفُهُ كَيْفَ يَشَاءُ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| چې څنګه وغواړي زړونه په ګردش کې راولي، ددې نه وروسته نبي علیه السلام (د دعا په طور دا) وفرمایل |
| اللّٰهُمَّ مُصَرِّفَ الْقُلُوبِ صَرِّفْ قُلُوبَنَا عَلٰى طَاعَتِكَ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| ای د زړونو په ګردش کې راوستونکیه خدایه زمونږ زړونه د خپل اطاعت طرف ته وګرځوه. |

**توضیح**: د **کلها** ضمیر **قلوب** طرف ته راجع دی، په دې حدیث کې تعمیم دی چې انبیاء اولیاء صلحاء ابرار او اشرار د ټولو زړونه د الله په قبضه کې دي. (المرقات ۱/۲۷۹).

---

(۱) اخرجه مسلم في الصحيح ۴/۲۰۴۵، رقم الحديث ۱۵، واحمد في مسنده ۲/۱۶۸.

**بین اصبعین** : متشابهات په دوه قسمه دي: یو معلوم المعنی غیر معلوم المراد دي، لکه ید، وجه، اصبع، دویم غیر معلوم المعنی والمراد لکه حروف مقطعات کوم چې د سورتونو په اول کې راغلي دي. په دواړو قسمونو کې د متقدمینو مذهب دا دی چې په هغو کې د هیڅ تاویل ضرورت نشته، بلکې د هغو معنی او مفهوم مفوض الی الله دی، یعنې (**الله اعلم بمراده بذلک**) د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ قول دی (**الاستواء معلوم والکیفیة مجهولة والسوال عنها بدعة**) امام ابو حنیفة رَحِمَهُ اللهُ هم ویلي دي چې د ید تاویل په قدرت سره کول په صفاتو کې تحریف دی، متاخرینو اهل سنتو مناسب تاویلات کړي دي، ځکه چې خلق د شکونو او شبهاتو ښکار شوي. د شیطان وسوسې عامې شوې نو د عوامو د ایمان بچ کولو په غرض متاخرینو مناسب تاویلونه کړي دي، نو دلته مناسب تاویل قبضه او قدرت دی چې هر څه د الله په قبضه او قدرت کې دي، لکه څرنګه چې د کوم شي په مکمل واک کې راوستو د پاره کوم شی په دوو ګوتو کې ونیول شي نو په اسانۍ سره تاویدلی شي همدارنګه دلته دي.

**کقلب واحد** : یعنې لکه څرنګه چې د یو زړه هر طرف ته تاوول آسان دي همدارنګه دا هم آسان دي چې تول زړونه په دوو ګوتو کې کیږدي، یعنې د الله تعالی د پاره په ډیرو زړونو او یوه زړه کې انقلاب راوستل برابر دي، بیا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حفاظت د پاره وظیفه وښودله چې هغه ولولئ. (المرقات ۱/۲۸۰)

**۷ محرم الحرام ۱٤۰۹هـ**

## هر ماشوم د اسلام په فطرت باندې پیدا شوې دی

(۱۲) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مَوْلُودٍ إِلَّا يُولَدُ عَلَى

د ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: کوم ماشوم چې پیدا کیږي هغه پیدا کیږي په

الْفِطْرَةِ فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ أَوْ

فطرت باندې (یعنې د حق امر قبلولو په هغه کې صلاحیت شته دی) بیا د هغه مور پلار هغه یا یهودي یا

يُنَصِّرَانِهِ أَوْ يُمَجِّسَانِهِ كَمَا تُنْتَجُ الْبَهِيمَةُ بَهِيمَةً جَمْعَاءَ هَلْ تُحِسُّونَ فِيهَا مِنْ جَدْعَاءَ

نصراني یا مجوسي جوړوي لکه څنګه چې یو څناور تول څناور بچیان زیږوي آیا تاسو په هغو کې کوم کمی

ثُمَّ يَقُولُ فِطْرَةَ اللهِ الَّتِي

موندلی شی بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا آیت کریمه تلاوت کړه (ترجمه) دا د الله تعالی د هغه فطرت موافق دی په

فَطَرَ النَّاسَ عَلَيۡهَا لَا تَبۡدِيلَ لِخَلۡقِ اللّٰهِ ذٰلِكَ الدِّيۡنُ الۡقَيِّمُ .(مُتَّفَقٌ عَلَيۡهِ).(۱)

کوم باندې چې الله تعالی انسانان پیدا کړي دالله په خلقت کې تغیراو تبدیل نشته دا دین مستحکم دی.

**توضیح : یولد علی الفطرة :** د علماؤ په دې کې اختلاف دی چې د **الفطرة** نه دلته په حدیث کې څه مراد دي، د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ حافظ ابن عبد البر رَحِمَهُ اللّٰهُ او ابن قیم رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد د فطرت نه مراد د اسلام دین دی، دې حضراتو یو استدلال د قرآن کریم په آیت سره کړی چې ﴿**فِطۡرَتَ اللّٰهِ الَّتِيۡ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيۡهَا**﴾ کې بالاجماع د فطرت نه مراد د اسلام دین دی او د هغه نه په ﴿**ذٰلِكَ الدِّيۡنُ الۡقَيِّمُ**﴾ سره تعبیر شوې دی، معلومه شوه چې فطرت او دین قیم یو شی دی.

**جواب :** په دغه توجیه باندې دوه اعتراضونه دي، اول دا چې که چیرته د فطرت نه مراد اسلام دی او هر ماشوم مسلمان دی نو بیا د جهاد په میدان کې د جنګ په وخت کې نیول شوی ماشوم ولې غلام جوړولی شي او د کافر د ماشوم د جنازې مونځ ولې نه شي اداء کیدلی؟ او هغو ته د **خیر الابوین** تابع ولې ویل شوي کله چې هغه په هر حال کې د تخلیق او فطرت په اعتبار سره مسلمان دی؟ همدارنګه حضرت خضر عَلَيۡهِ السَّلَامُ ولې هغه معصوم ماشوم قتل کړ؟.

دویم اعتراض دا دی چې په ذکر شوي حدیث کې **فأبواه یهودانه** راغلی دی د کوم نه چې معلومیږي چې دغه فطرت سلیمه مور پلار بدل کړه یهودي، نصراني یا مجوسي یې ترې جوړ کړه، حالانکه په همدې ځای کې کوم آیت چې په استشهاد کې وراندې شوی په هغه کې ﴿**لَا تَبۡدِيۡلَ لِخَلۡقِ اللّٰهِ**﴾ جمله ده چې د اسلام په فطرت کې تغیر نه شي راتللی، نو په آیت او حدیث کې تعارض راغی، امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ او نورو حضراتو د خپل موقف دپاره په یوه قدسي حدیث سره هم استدلال کړی دی چې د حضرت عیاض بن حمار مجاشعي رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ دالله تعالی دغه ارشاد نقل کړه :**انی خلقت عبادي حنفاء کلهم فاجتالتهم الشیاطین عن دینهم**،چې ما ټول انسانان په خالص دین باندې پیدا کړي وو مګر شیطان هغوی د دین نه ګمراه کړل، معلومه شوه چې له فطرت نه دین مراد دی.

همدارنګه حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللّٰهُ هم ویلي دي چې امام بخاري رَحِمَهُ اللّٰهُ په سورت روم کې د دغه آیت لاندې د فطرت نه د اسلام دین مراد کړی دی (**والفطرة الاسلام**).دامام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ او نورو حضراتو دا ټول دلائل په خپل ځای،لیکن په پورته ذکرشویو څو شقونو باندې دوو اعتراضونو ددې حضراتو دا

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۲۱۹/۳، رقم الحديث :۱۳۵۸،واخرجه مسلم في الصحيح ۲۰۴۷/۴، رقم الحديث ۲۲، واحمد في مسنده ۳۵۱/۲.

توجيه (چې د فطرت نه مراد اسلام دی) په مشکل کې اچولې، ددې وجې حافظ تورپشتي رَحِمَهُ الله علامه طيبي رَحِمَهُ الله او شاه ولي الله رَحِمَهُ الله او نورو علماء کرامو ويلي دي چې په حديث کې د فطرت نه مراد د قبول حق استعداد او صلاحيت قابليت او لياقت دي، هو که چيرته هغه ماشوم په غلط ماحول کې ولوېږي نو دغه استعداد خراب کړي او د هغه نه ناکاره فائده پورته کړي، نو دا د شاو خوا ماحول قصور دی، مګر بيا هم د قبول حق استعداد باقي پاتې دی، اوګورئ فرعون چې کله له غلط ماحول نه جدا شو نو د هغه د قبول حق اقرار وکړ، همدا هغه فطري نعره وه کومه چې د همدغه استعداد د وجود نتيجه وه، اګر که دغه اقرار هغه ته ګټه ونه رسوله ځکه چې دګټې وخت تيرشوی وو، داسې يې وفرمايل ﴿لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللهِ﴾ چې د هغه استعداد په غلطه استعمالولو سره د جباريت مهر ولګيږي مګر استعداد بيا هم موجود پاتې وي، هو د جباريت مهر په لګيدلو سره د اسعداد نه فائده پورته کول ختم شي او د هغه نه فائده ممکنه نه شي پاتې کيدی، د اصل استعداد موجود پاتې کيدل خو جدا شی دی، شيخ عبدالحق محدث دهلوي رَحِمَهُ الله او علامه قرطبي رَحِمَهُ الله هم دغه رأيه ده چې فطرت کوم چې د تخليق په معنی سره دی د هغه نه مراد همدا د قبول حق استعداد دی. (الکاشف ۱/۲۵۴، اشعة اللمعات ۱/۱۰۲)

**جواب**: دلته که چيرته څوک دا اعتراض وکړي چې حضرت خضر عَلَيْهِ السَّلَام چې کوم ماشوم وژلی وو د هغه متعلق په رواياتو کې راغلي (طبع يوم طبع کافر) که چيرته استعداد باقي وی نو څنګه هغه ته (مطبوع علی الکفر) ويل شوي؟.

**جواب**: دا د عالم غيب په اعتبار سره ويل شوي اګر که د عالم شهادت په اعتبار سره په هغه کې استعداد وو مګر د الله تعالی د ازلي علم مطابق د انجام په اعتبار سره د هغه کافر کيدل وو او د دې تذکره په (طبع يوم طبع کافر) کې شوې ده.

**مثال**: د همدغه تخليقي او فطري استعداد مثال حضرت شاه ولي الله رَحِمَهُ الله په دې طريقه ورکړی دی چې مثلا د رجوليت صفت په ټولو افرادو د رجالو کې شته دی، مګر ددې نه هغه افراد مستثنی شوي دي کومو چې رهبانيت غوره کړی دی دغه مردانه توب صفت ضايع کړي، ښکاره ده چې هغو ته داسې نه شي ويل کيدای چې په هغو کې دغه صفت نه وو، بعينه همداسې د قبول حق استعداد دی کوم چې الله تعالی په ټولو انساني افرادو کې ساتلی دی، ليکن د هغه والدينو د هغه يهودي يا نصراني جوړول داسې آفت دی په کوم سره چې د هغه د استعداد مصرف تبديل شو مګر دا نه شي ويل کيدی چې دغه کس د هغه استعداد نه محروم وو. البته بعضې وخت الله تعالی د خپل کامل قدرت ښکاره کولو دپاره ماشوم په اول وخت کې د استعداد نه محروم او مسلوب کړي، لکه څرنګه چې خضر عَلَيْهِ السَّلَام کوم ماشوم وواژه ګويا چې هغه ددې عامې قاعدې نه مستثنی دی.

**کما تنتج**: دا د تناج نه دی د ماشوم پیدا کیدل، **البهیمة**: څناور او حیوان ته ویل کیږي.

**جمعاء**: ددې نه مراد تام الخلقة او سلیم الاعضاء حیوان دی د کوم چې هیڅ اندام غوڅ شوی نه وي.

**الجدعاء**: دا هغه حیوان ته ویل کیږي د کوم چې غوږ غوڅ شوی وي یا یې پوزه غوڅه شوې وي ناقص الخلقة وي، د غوږ په غوڅیدو سره دیته هم اشاره وشوه چې دغه کافر خلق د حق د آوریدو نه داسې محروم دي ګویا چې غوږونه یې غوڅ شویدي، د حق د اوریدو اله یې نشته، یعنې لکه څرنګه چې د یوه څناور نه یو صحیح سالم بچی پیدا کیږي هیڅ غوږ یې غوڅ شوی نه وي همدا شان د اسلام فطرت صحیح سالم وي، مګر خلق په خپل کسب او اختیار سره دغه فطرت برباد کړي (**اي یولد على الفطرة ولادة مثل نتاج البهیمة ویغیر انه تغییرا مثل تغییرهم البهیمة**). (المرقات ۱/۲۸۲).

## اوده کیدل د الله تعالی د شان سره مناسب نه دي

| |
|---|
| **(۱۳) وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَامَ فِينَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخَمْسِ كَلِمَاتٍ** |
| دابوموسی رضي الله عنه نه روایت دی چې (یوه ورځ) نبي عليه السلام خطبه ورکړه او پنځه خبرې یې ارشاد کړې، |
| **فَقَالَ إِنَّ اللهَ لَا يَنَامُ وَلَا يَنْبَغِي لَهُ أَنْ يَنَامَ يَخْفِضُ الْقِسْطَ وَ يَرْفَعُهُ** |
| الله تعالی نه اوده کیږي او اوده کیدل د الله د شان سره مناسب نه دي، الله تعالی تله ښکته کوي او پورته کوي یې (کنایه ده د رزق زیاتولو او کمولو نه) |
| **يُرْفَعُ إِلَيْهِ عَمَلُ اللَّيْلِ قَبْلَ عَمَلِ النَّهَارِ وَ عَمَلُ النَّهَارِ قَبْلَ عَمَلِ اللَّيْلِ** |
| د ورځې د عمل نه مخکې د شپې عمل او د شپې د عمل نه مخکې د ورځې عمل هغه ته رسولی شي او د |
| **حِجَابُهُ النُّورُ لَوْ كَشَفَهُ لَأَحْرَقَتْ سُبُحَاتُ وَجْهِهِ مَا انْتَهَى إِلَيْهِ بَصَرُهُ مِنْ خَلْقِهِ (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].** |
| هغه حجاب نور دی که چیرته هغه پورته کړي نو د هغه د پاک ذات نور به د کائناتو ټول شیان وسوځي. |

**توضیح**: **قام فینا**: دا د وعظ او بیان نه کنایه ده (**ای قام خطیبا مذکرا لنا**). (**المرقات ۱/۲۸۴**).

**بخمس کلمات**، **ای متلبسا بخمس او قائلا بخمس کلمات لاینام**) مراد تکاسل او ضعف دی په خوب کې دا پوره وي. (المرقات ۱/۲۸۴).

**ولاینبغي له**: ځکه چې هغه حاجت روا او مشکل کشا دی، خالق او مالک دی، که چیرته هغه اوده شي

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۱/۱، رقم الحديث: ۲۹۳-۱۷۹، وابن ماجه ۷۰/۱ رقم الحديث: ۱۹۵. واحمد في مسنده ۴۰۵/۴.

نو دوه نيمې بچې د مصيبت زده فرياد به بيا څوک واوري؟.(المرقات ۱/۲۸۴).

﴿أَمَّن يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ﴾ الاية **يخفض القسط** : يخفض د ښکته کيدو او پورته کيدو په معنی سره دی او د قسط نه مراد برخه او رزق دی او د يرفعه نه مراد د رزق زياتول دي. (المرقات ۲۸۴-۱/۲۸۵).

**يرفع اليه عمل الليل** : د رفع د اعمالو نه مراد د اعمالو قبوليت دی، د استمرار طرف ته اشاره شوې ده، ځکه چې ټول اعمال هر وخت د الله په وړاندې مستحضر دي، په هغو کې د شپې او د ورځې د اعمالو د نومونو ذکر شوی دی.

**حجابه النور** : د حجاب نه مراد مانع دی، کوم حسي مادي حجاب مراد نه دی ، ځکه چې په الله تعالی باندې هيڅ شی محيط نه دی ، بلکې دا حجاب نوري دی کوم چې د مخلوق دپاره د خالق د ليدلو نه مانع دی لکه څرنګه چې حسي حجاب مانع کيدی شي، امام نووي رحمه الله ويلي دي چې د حجاب نه مراد د الله تعالی صفت جلال دی او د هغه نور او عظمت دی، کوم چې د الله تعالی د ليدو دپاره مانع جوړ شوی دی، مثلاً د الله تعالی د انواراتو يوه ذره په لمر باندې لويدلې ده يو څوک دې ورته وګوري وبه ګوري چې د هغه په شعاعو کې څومره زور دی.

**سبحات وجهه** : جمع دسبحة ده لکه غرفات جمع دغرفة ده ددې نه الهي تجليات مراد دي، يا مخصوص صفات دي کوم چې په الهي انوارو او تجلياتو باندې مشتمل دي.

**بصره : ای نظره ما يليق بشانه** : نو نظر په عالم باندې محيط دی، لهذا ټول عالم به وسوځل شي، د ذات اقدس د انواراتو دغه حجاب اويا زره دی کله چې فرښتې هغه ويني نو په تسبيح او تهليل کې مشغولې شي. (المرقات ۱/۲۸٦).

په دغه حديث کې د شپې او دورځې دکومو اعمالو چې ذکر شوی قرآن کريم هغه په ﴿إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهُ﴾ سره بيان کړی، بعضو د القسط نه ميزان مراد اخستی او د ميزان نه مراد رزق دی.

## د الله تعالی د سخاوت خزانې ډکې شوې دي

| |
|---|
| (۱۴) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدُ اللهِ مَلْأَى |
| دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې نبي عليه السلام وفرمايل: دالله تعالی لاس (يعنې د هغه خزانه) ډکه ده، |
| لَا تَغِيضُهَا نَفَقَةٌ سَحَّاءُ اللَّيْلَ وَ النَّهَارَ أَرَأَيْتُمْ مَا أَنْفَقَ مُنْذُ |
| شپه او ورځ هر وخت مصرف کول هم په هغې کې کمی نه پيدا کوي، آيا تاسو نه دي ليدلي؟ چې د کله نه هغه |

خَلَقَ السَّمَاءَ وَ الْأَرْضَ فَإِنَّهُ

زمکه او آسمان پيدا کړي دي، او کله چې د هغه عرش (هم) په اوبو باندې وو څومره مصرف يې کړی، ليکن

لَمْ يَغِضْ مَا فِيْ يَدِهٖ

(د دومره زيات) مصرف کولو باوجود کوم څه چې د هغه په لاس کې دي په هغې کې کمی نه دی شوی،

وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ وَ بِيَدِهِ الْمِيزَانُ يَخْفِضُ وَيَرْفَعُ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).[1]

او عرش يې په اوبو باندې دی، او دده په لاس کې تله ده کومه چې هغه او چتوي او لاندې کوي.

وَ فِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ يَمِيْنُ اللهِ مَلْأَى قَالَ ابْنُ نُمَيْرٍ مَلْآنُ سَحَّاءُ

او د مسلم روايت دی: د الله ښی لاس ډک دی، او د ابن نمير په روايت کې دي د خدای لاس ډک دی او هميشه

لَا يَغِيضُهَا شَيْءٌ اللَّيْلَ وَ النَّهَارَ.

ورکوونکی دی، شپه او ورځ (د مصرف باوجود) په هغې کې کوم شی کمی نه کوي.

**توضيح : يدالله : اى مايليق بشانه، ملأى : اى من الخزائن،** يعني د خزانو نه يې لاس ډک دی، (المرقات ۱/۲۸٦)

په قرآن کريم کې دي: ﴿وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلَّا عِندَنَا خَزَائِنُهُ وَمَا نُنَزِّلُهُ إِلَّا بِقَدَرٍ مَّعْلُومٍ﴾ (سورة الحجر: ۲۱).

**لايغيضها اى لاتنقصها سَحَّاءُ الليل:** يعني د اوبو په شان طبعًا داسخاوت څڅيږي، دا دزيات سخاوت نه کنايه ده ځکه چې سحا په بيابانونو او صحراګانو کې او ريدونکي باران ته ويل کيږي، د **ها** ضمير **يدالله** طرف ته راجع دی دکوم نه چې مراد د الله خزانې دي (المرقات ۱/۲۸۷) چې هغه لفظ (**کن فيکون**) دی.

**الليل والنهار :** دواړه منصوب دي او ظرف واقع دي، د روايت په آخر کې **يمين الله** هم د مسلم په روايت کې شته، **يمين الله** ادبًا ويل شوی دی او په آخر کې (**لايغيضها**) دی نو **شيء** فاعل دی او **الليل والنهار** د هغه نه بدل واقع دی. (المرقات ۱/۲۸۷).

**ملأى :** د **مملوة** په معنی دی، خلاصه دا چې د الله تعالى سخاوت د باران په شان دی دائم الصب دی، د پيوسته او مسلسل باران په شان زمان او مکان يې عام دی، او په ارأيتم سره د هغه عملي صورت ښودل

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۳۵۲/۸، رقم الحديث : ٤٦۸٤، واخرجه مسلم في الصحيح ٦۹۱/۲، رقم الحديث ۳۷، والترمذي ۲۳٤/٤ رقم الحديث ۳۰٤۵، وابن ماجه ۷۱/۱ رقم الحديث : ۱۱۷ . واحمد في مسنده ۳۱۳/۲.

شوی دي.

## د مشرکينو اولاد به چيرته وي؟

| |
|---|
| (۱۵) وَ عَنْهُ قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَرَارِيِ الْمُشْرِكِيْنَ |
| د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د مشرکينو د اولاد په باره کې پوښتنه وشوه |
| قَالَ اللهُ أَعْلَمُ |
| (چې د مرينې وروسته دوزخ ته به ځي که جنت ته) نبي عليه السلام وفرمايل : خدای تعالی ښه پوهيږي، که |
| بِمَا كَانُوْا عَامِلِيْنَ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). [1] |
| چيرته هغوی ژوندي پاتې وی نو څه عمل به يې کوه. |

**توضيح : الله يعلم بما كانوا عاملين** : يعنې الله ته معلومه ده تاته څه معلومه ده او ستا څه سوال؟ دا جمله د مشرکينو د اولاد د صحيح حقيقت د ښودلو يو انداز دی او د هغه نه د بې علمۍ اظهار دی.

**جواب** : شبه دا ده چې نبي عليه السلام د مشرکينو د اولاد متعلق کومه حتمي خبره ولې ښکاره نه کړه؟.

ترجمه : اول دا چې تر دې وخته نبي عليه السلام ته د الله تعالی د طرفه کوم واضح حکم نه وو راغلی.

ترجمه : دا چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته خو معلومه وه مګر په اظهار کې يې توقف وکړ چې تراوسه پورې اجازه نه وه، په دغه مسئله کې د نصوصو د اختلاف د وجې د اسلام په فقهاؤ کې هم اختلاف راغلی دی، څو اقوال ملاحظه کړئ :

(۱) د مشرکينو اولاد کوم چې په ماشومتوب کې مړه شي د هغو متعلق د ابن حجر رحمه الله رأيه دا ده چې هغوی جنتيان دي او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د نوې وحې په ذريعه د دې علم شوی.

(۲) په جنت کې داخل دي مګر مستقل نه دي، بلکې د جنتيانو د خادمانو په حيثيت دي او د دوی د حيثيت په تابع کيد وسره دي.

(۳) نه په جنت کې دي نه په دوزخ کې دي بلکې په اعراف کې دي.

(۴) د والدينو په تابعدارۍ کې دوزخ ته به ځي.

(۵) د امام ابوحنيفة رحمه الله او زياتره فقهاؤ په نزد راجح دا ده چې د مشرکينو په اولاد کې توقف وکړی شي. (المرقات ۲۸۸-۱/۲۸۹).

---

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۲۴۵/۳، رقم الحديث ۱۳۸۴،واخرجه مسلم في الصحيح ۲۰۴۹/۴، رقم الحديث ۲۶، واخرجه ابو داود في سننه ۸۴/۵، رقم الحديث ۴۷۰۱ ، واحمد في مسنده ۳۹۳/۲.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## الله تعالى د ټولو نه مخکې کوم شي پيدا کړي؟

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د حضرت عباده بن الصامت رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : خدای تعالی |
| إِنَّ أَوَّلَ مَا خَلَقَ اللهُ الْقَلَمَ فَقَالَ لَهُ اكْتُبْ فَقَالَ |
| چې د هر څه نه مخکې کوم شی پيدا کړو هغه قلم وو ، بيا يې همدغه (قلم) ته دليکلو حکم وکړ ،قلم وويل |
| مَا أَكْتُبُ قَالَ اكْتُبِ . الْقَدَرَ فَكَتَبَ مَا |
| يا الله څه وليکم؟ دبارګاه الوهيت نه جواب ورکړی شو چې تقدير وليکه لهذا همدغه قلم هغه څيزونه وليکل |
| كَانَ وَمَا هُوَ كَائِنٌ إِلَى الْأَبَدِ . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)(۱) |
| کوم چې (تراوسه پورې) شوي دي او هغه څيزونه يې وليکل کوم چې په آئنده کې کيدونکي دي، امام |
| وَ قَالَ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا . |
| ترمذي رحمه الله دا دې حديث روايت کړی او ويلي يې دي چې دا حديث د سند په اعتبار سره غريب دی. |

**توضيح : ان اول ماخلق الله القلم** : په دې روايت کې د قلم د تخليق ذکر دی چې د هر څه نه مخکې قلم پيدا شوی دی، په نورو روايتونو کې (**اول ماخلق الله نوري**) هم شته او (**اول ماخلق الله العقل**) هم شته نو په روايتونو کې تعارض راغی.د دې جواب دا دی چې دلته اوليت او اضافي دی د نور دپاره اوليت حقيقي دی او د نورو دپاره اضافي دی، يعنې د نور نه وروسته د هر څه نه مخکې قلم پيدا شوی، او يا د هر څه نه مخکې عقل پيدا شوی دی نو د اوليت نسبت په دې اعتبار سره صحيح شو.

دويم جواب دا دی چې د خپلې خپلې نوعې په اعتبار سره د اوليت حکم لګول شوی دی نو د انواراتو په قسمونو کې دټولونه مخکې نورمحمدي صلی الله علیه وسلم پيدا شوا و د قلمونو په اقسامو کې دټولونه مخکې د تقدير قلم پيدا شو، او په عقلي آلاتو کې د ټولو نه مخکې عقل پيدا شوی.

**اکتب** : الله تعالى چې کائنات په کوم ترتيب سره پيدا کړي دي مثلا آسمان دی، ځمکه ده، عرش دی، کرسي ده، د باطني نظام چلولو دپاره فرښتې دي د همدې ټولو څيزونو په هغه ترتيب سره ليکل مناسب

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۹۸ ، رقم الحديث : ۲۱۵۵، واخرجه احمد في المسند ۵/۳۱۷.

وو د کوم چې قلم ته حکم وشو چې ولیکه قلم ولیکل، همدا قضاء او قدر دی، اګر که د الله تعالی د [1] طرف ته محتاج نه وو مګر دا یو نظام دی د کوم چې کیدل ډیر مناسب دي. (المرقات ۱/۲۹۰).

**فکتب ماکان وماهو کائن**: دلته سوال دادی چې د تقدیر قلم په ازل کې څه ولیکل حالانکه د هغه خو مخکې زمانه نه وه لهذا د **ماکان** الفاظو استعمال صحیح نه شو؟ جواب دادی چې د ماضي نه مراد د نبي علیه السلام نه مخکې زمانه ده یعنې نبي علیه السلام فرمایلي دي چې کوم څه د نن نه مخکې شوي هغه هم قلم لیکلي دي. (المرقات ۱/۲۹۰).

**۹ محرم الحرام ۱۴۰۹ھ**

## د انسان د ابتدائي پیدایښت قصه

| |
|---|
| (۱۷) وَعَنْ مُسْلِمِ بْنِ يَسَارٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سُئِلَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنْ هٰذِهِ الْآيَةِ |
| د حضرت مسلم بن یسار رضي الله عنه نه روایت دی چې د حضرت عمر رضي الله عنه نه د دې آیت په باره کې (ترجمه) |
| وَ إِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِيْ آدَمَ مِنْ ظُهُوْرِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَ أَشْهَدَهُمْ عَلٰى أَنْفُسِهِمْ |
| او کله چې ستا رب د آدم د ملا نه د هغه اولادرا وویستلو او (د هر څه پوهه یې ورکړه) د هغو نه د هغو متعلق اقرار |
| أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوْا بَلٰى شَهِدْنَا |
| واخیست چې آیا زه ستا سو رب نه یم؟ ټولو جواب ورکړچې ولې نه یې مونږ ټول (د دې واقعې) شاهدان یو |
| أَنْ تَقُوْلُوْا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هٰذَا غَافِلِيْنَ الْآيَةَ . |
| ترڅو چې خلک د قیامت په ورځ داسې ونه وایې چې مونږ خو د دغه توحید نه محض بې خبره وو، د دې متعلق |
| قَالَ عُمَرُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُسْأَلُ عَنْهَا |
| حضرت عمر رضي الله عنه وایي چې ما د نبي علیه السلام نه واوریدل چې کله د دغه آیت باره کې سوال تري وشو |
| قَالَ إِنَّ اللّٰهَ خَلَقَ آدَمَ ثُمَّ مَسَحَ ظَهْرَهُ بِيَمِيْنِهِ |
| نو نبي علیه السلام وفرمایل: الله تعالی آدم پیدا کړ بیا یې د هغه په شا باندې لاس را اخکه او د هغه نه یې د هغه اولاد |
| فَاسْتَخْرَجَ مِنْهُ ذُرِّيَّةً فَقَالَ خَلَقْتُ هٰؤُلَاءِ لِلْجَنَّةِ وَ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ يَعْمَلُوْنَ |
| را وویستو او وي ویل چې ما دوی د جنت د پاره او د جنتیانو په شان د اعمالو کولو د پاره کوم به چې دوی کوي |
| ثُمَّ مَسَحَ ظَهْرَهُ بِيَدِهٖ فَاسْتَخْرَجَ مِنْهُ ذُرِّيَّةً فَقَالَ |
| پیدا کړل، بیا یې خپل لاس د آدم په شا باندې را اخکه او د هغه نه یې د هغه اولاد را وویستلو او وي فرمایل ما |

خَلَقْتُ ، هٰؤُلَاءِ لِلنَّارِ وَ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ يَعْمَلُوْنَ

دوی د دوزخ دپاره او د دوزخيانو په شان د اعمالو کولو دپاره کوم به چې دوی کوي پيدا کړي دي دا يې چې

فَقَالَ رَجُلٌ فَفِيْمَ الْعَمَلُ يَا رَسُوْلَ اللهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِنَّ اللهَ

واوريده يو کس وويل يا رسول الله! بيا عمل ته څه ضرورت دی؟ نبي عليه السلام وفرمايل: کله چې الله تعالى

إِذَا خَلَقَ الْعَبْدَ لِلْجَنَّةِ اسْتَعْمَلَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ حَتّٰى يَمُوْتَ

کوم بنده د جنت دپاره پيدا کړی نو د هغه نه د جنتيانو په شان عمل صادروي تردې چې د هم دغه بنده مرګ

عَلٰى عَمَلٍ مِنْ أَعْمَالِ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَيُدْخِلُهُ بِهِ الْجَنَّةَ

د جنتيانو په شان په اعمالو سره وشي، لهذا الله تعالى د دې اعمالو په بناء باندې هغه جنت ته داخل کړي

وَ إِذَا خَلَقَ الْعَبْدَ لِلنَّارِ اسْتَعْمَلَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ حَتّٰى

او کله يې چې کوم بنده د دوزخ دپاره پيدا کړی دی نو د هغه نه د دوزخيانو په شان اعمال صادروي تردې چې

يَمُوْتَ عَلٰى عَمَلٍ مِنْ أَعْمَالِ أَهْلِ النَّارِ فَيُدْخِلَهُ بِهِ النَّارَ. (رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُوْدَاوُدَ)[1]

هغه د دوزخيانو په شان په اعمالو باندې مړ شي، لهذا هغه د دې اعمالو په بناء باندې دوزخ ته اچوي.

**توضيح : واذا اخذ ربک** : په دغه ځای کې ډير بحثونه دي : **اول بحث** : د آدم اولاد د هغه له شا نه چيرته راووتل؟ (۱) بعضو ويلي دي چې په عالم ارواح کې راووتل (۲) بعضو ويلي دي چې دنيا ته دراتلو وروسته راووتل. (۳) بعضو ويلي دي چې د عرفات سره د نعمان غر باندې دا واقعه وشوه، د حضرت ابن عباس رضي الله عنه يو روايت په دې باندې هم دلالت کوي دی. (المرقات ۱/۲۹۳)

**دويم بحث** : د آدم د پشت نه دغه اولاد څنګه راووت؟ امام عبدالوهاب شعراني رحمه الله ويلي دي چې د آدم عليه السلام په شا کې د موري نه راووت، بعضو ويلي چې د بدن د ويښتانو د سورو (مسامات) نه راووت، بعضو ويلي چې هر يو د خپل پلار د خيټې نه راووت او دا مکالمه وشوه. (المرقات ۱/۲۹۳).

دلته يو مشهور اشکال دی چې د قرآن کريم په آيت کې **من ظهورهم** لفظ دی د کوم نه چې معلومه شوې

ده چې ټول اولاد د خپلو پلرونو د شاګانو نه راوتلي دي او په ذکر شوي حديث کې **ثم مسح ظهره بيمينه** کې تصريح ده د اولاد راوتل د آدم د پشت نه شوي دي.

(۱) اخرجه مالک في المو ۲/۸۹۸ رقم الحديث : ۲ من کتاب القدر، والترمذي ۵/۲۴۸ رقم الحديث ۳۰۷۵، ۸۰ . واحمد في مسنده ۱/۴۴ وابو داود في السنن ۵/۷۹ رقم الحديث : ۴۷۰۳.

د دې جواب دا دی چې د اولاد د استخراج دوه مرحلې دي، یوه د آدم له پشت نه د وتلو مرحله ده او دویمه د بني آدم نه د وتلو مرحله ده، په حدیث کې د آدم د پشت نه د وتلو مرحله ذکر ده، او په آیت کې د بني آدم نه د وتلو مرحلې ذکر دي نو په آیت او حدیث کې هیڅ تعارض نشته، په یوه کې بلا واسطه اخراج دی او په دویم کې د بالواسطه اخراج ذکر دی. (الکاشف۱/۲۶۶)

**دریم بحث : واشهدهم علی انفسهم** سره متعلق دی چې د دغه اشهاد نه څه مراد دي؟ قاضي بیضاوي رَحِمَهُ اللهُ دا ټوله معامله په یوه تمثیل باندې محمول کړې ده چې الله تعالی د ربوبیت دلائل قائم کړل او بل طرف ته یې د عقل یوه ماده پیدا کړه کومه چې په اقرار توحید او د ربوبیت په منلو باندې انسان تیار کړي نو انسان **قالوا بلی** وویل، د قاضي بیضاوي رَحِمَهُ اللهُ نه بغیر ټولو صوفیانو کرامو، محدثینو عظامو او د اهل حقو په نزد حق دا دی چې دا اشهاد حقیقةً في الواقع شوی دی، هغه داسې چې الله تعالی همدا ټول بندګان د آدم د ملا نه وویستل د ټولو سره یې خبرې وکړې قولاً یا یې اقرار واخیست او ټولو د اقرار په کولو سره وعده کړې ده، د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت کې دي **فکلمهم قبلا** یعني الله تعالی مخامخ ددې خلکو سره خبرې او کلام وکړ، دا روایت ددې حضراتو دلیل دی او دا مسلک په حق باندې دی، د قاضي بیضاوي رَحِمَهُ اللهُ تمثیل په دې روایت کې نه شي چلیدلی. (المرقات ۱/۲۹۲).

**جواب** : اوس شبه دا ده چې مونږ ته دغه قول او اقرار په یاد ولې نه دی؟.

**جواب** : تاسو ته په یاد دی لکه ذوالنون مصري رَحِمَهُ اللهُ چې ویلي دي **(کانه الان في اذني)** حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي دي چې زه هلته نبي او چپ طرف ته ولاړ خلق هم پیژنم چې څوک وو، عبدالله تستري رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې ماته د عهد الست شاګردي په یاد ده، څه که چیرته له تاسو هیر شوی هم وي نو دا هیڅ تعجب نه دی، غټ غټ انقلابونه راغلي دي، انسان اول نطفه وه، بیا علقه بیا مضغه بیا عظام بیا په لحم شحم بدل شو بیا په وجود کې راغی نو آیا ستاسو په هیریدلو سره د هغه د تفصیل حقیقت ختمیدلی شي؟ هیڅکله نه ! ستاسو په هیریدلو سره په عهد الست باندې هیڅ اثر نه شي غورځیدلی، ځئ تاسو ووائي چې تاسو کوم چې د خط لیکل پیژنئ د قرآن لوستل پیژنئ نو خامخا شروع مو په کوم ځای کړیوه اوس تاسو وښائي چې د هغو ابتدائي حروف او کلمات کوم وو، چاته په یاد دي حالانکه هغه هم یو حقیقت دی. په آخر کې دا واورئ چې نبي آخر الزمان صادق او مصدوق دا ویلي دي نو آیا په رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې اعتماد مو په خپل ځان باندې د اعتماد نه کم دی؟ اوس که چیرته څوک ووایي چې مونږ جواب څنګه ورکړو؟ نو مونږ وایو چې په ژبه یې ورکول آیا محال دي، که چیرته څوک ووایي چې بیا د اقرار نه وروسته انکار ولې کوي؟ نو مونږ وایو چې دا خو یو مصیبت دی، بیا هم مجبور خو نه دي د انکار طاقت نشته بلکې بااختیاره دي که څوک یې مني او که څوک یې نه مني.

**مسح بیده:** ددې نه مخکې یې **مسح بیمینه** ویلي دي ځکه چې هلته مؤمن وو نو په اعزازي طور د یمین ذکر شوی، او دلته یې بیده وویله ځکه چې دا کافر دی د هغه دپاره د یمین اعزازي لفظ ویل مناسب نه وو او د شمال تصور نه وو نو **بیده** یې وویله.

**استعمله:** یعنې د اهل جنت په عمل کې مشغول شي، یعنې توفیق ورکړی شي.

## د تقدیر دوه مکتوبونه

| |
|---|
| **(۱۸) وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِيْ يَدَيْهِ** |
| د عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روایت دی چې (یوه ورځ) نبي علیه السلام بهر تشریف راوړو او په لاسونو کې یې |
| **كِتَابَانِ فَقَالَ أَتَدْرُوْنَ مَا هٰذَانِ الْكِتَابَانِ** |
| دوه کتابونه وو نبي علیه السلام (صحابه کرامو ته په خطاب کولو سره) وفرمایل پوهیږئ چې دا دوه کتابونه څه دي؟ |
| **قُلْنَا لَا يَا رَسُوْلَ اللهِ إِلَّا أَنْ تُخْبِرَنَا** |
| مونږ عرض وکړو یا رسول الله ! مونږ ته څه معلوم ده ، ته یې راته وښایه (چې دا د څه شي کتابونه دي) |
| **فَقَالَ لِلَّذِيْ فِيْ يَدِهِ الْيُمْنٰى هٰذَا كِتَابٌ مِنْ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ** |
| نبي علیه السلام ددې کتابونو په باره کې وفرمایل: کوم چې په ښي لاس کې وو دا د خدای د طرفه دی په کوم |
| **فِيْهِ أَسْمَاءُ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَ أَسْمَاءُ آبَائِهِمْ وَ قَبَائِلِهِمْ ثُمَّ أُجْمِلَ عَلٰى آخِرِهِمْ** |
| کې چې د اهل جنت، د هغوی د پلرونو او د هغوی د قبیلو نومونه لیکل شوي دي بیا په آخر کې جمع بندي شوې ده |
| **فَلَا يُزَادُ فِيْهِمْ وَلَا يُنْقَصُ مِنْهُمْ أَبَدًا ثُمَّ قَالَ لِلَّذِيْ فِيْ شِمَالِهِ هٰذَا كِتَابٌ مِنْ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ** |
| لهذا په هغه کې کمی زیاتی نه کیږي، ددې نه وروسته یې د چپ طرف کتاب متعلق وفرمایل: دا د خدای د |
| **فِيْهِ أَسْمَاءُ أَهْلِ النَّارِ وَ أَسْمَاءُ آبَائِهِمْ وَ قَبَائِلِهِمْ ثُمَّ** |
| طرفه یو داسې کتاب دی په کوم کې چې د اهل دوزخ، د هغوی د پلرونو او د قبیلو نومونه لیکل شوي دي، بیا په |
| **أُجْمِلَ عَلٰى آخِرِهِمْ فَلَا يُزَادُ فِيْهِمْ وَلَا يُنْقَصُ مِنْهُمْ أَبَدًا** |
| آخر کې جمع بندي شوې ده، لهذا اوس په هغه کې نه کوم کمی کیږي او نه کوم زیاتی (دایې چې واورېدل) |
| **فَقَالَ أَصْحَابُهُ فَفِيْمَ الْعَمَلُ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنْ كَانَ أَمْرٌ قَدْ فُرِغَ مِنْهُ** |
| صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض وکړ نو بیا عمل ته څه ضرورت دی یا رسول الله؟ که چیرته دا کار د پخوا نه شوی |

فَقَالَ

وي (چې د جنت او دوزخ مدار په لیکل شوي تقدیر باندې دی) نبي عَلَیْهِ السَّلَام وفرمایل: (د دین او شریعت

سَدِّدُوا وَ قَارِبُوا فَإِنَّ صَاحِبَ الْجَنَّةِ يُخْتَمُ لَهُ

مطابق خپل اعمال) په ښه شان مضبوط کړئ او د (حق تعالی) تقرب حاصل کړئ ځکه چې د جنتي خاتمه د

بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَ إِنْ عَمِلَ أَيَّ عَمَلٍ وَ

اهل جنت په اعمالو باندې وي برابره خبره ده که (په ژوند کې) هغه هر رنګه (نیک یا بد) عمل کړی وي، او

إِنَّ صَاحِبَ النَّارِ يُخْتَمُ لَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ وَ إِنْ عَمِلَ أَيَّ عَمَلٍ ثُمَّ

د دوزخي خاتمه د اهل دوزخ په عمل باندې وي برابره خبره ده که د هغه اعمال هر رنګه هم وي، بیا نبي عَلَیْهِ السَّلَام

قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِيَدَيْهِ فَنَبَذَهُمَا ثُمَّ قَالَ

په خپلو دواړو لاسونو سره اشاره وکړه او کتابونه یې کیښودل یعنې شاته یې کیښودل او وې فرمایل: ستاسو

فَرَغَ رَبُّكُمْ مِنَ الْعِبَادِ فَرِيقٌ فِي الْجَنَّةِ وَ فَرِيقٌ فِي السَّعِيرِ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1].

پروردګار د بندګانو په باره کې دا فیصله کړې چې یوه ډله جنتي ده او یوه ډله دوزخي ده.

**توضیح: وفي یدیه کتابان:** په دې کې د علماؤ اختلاف دی چې آیا دغه دوه کتابونه حسي وو او که د تمثیل یا تصویر په طور باندې ښودل مقصود وو، اهل تاویل علماو ویلي دي چې دا کوم محسوس مشاهده او مخصوص کتابونه نه وو، بلکې د یوه مثال او یوه تصویر بیانول مقصود وو، دوی ویلي دي چې نبي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې کتابونو متعلق کامل یقین او قطعي علم وو کوم چې د حسي مشاهدې نه هم دیر زیات قوي وو نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغه غیر حسي کتابونه حسي جوړ کړل او وړاندې کړل، لیکن جمهور محدثین، علماء اهل الله او اهل باطن ټولو ویلي دي چې دغه دواړه حسي کتابونه وو د کومو طرف ته چې اشاره وشوه، علامه توربشتي رَحِمَهُ الله ویلي دي کومې هستۍ ته چې په تسلسل سره وحې را روانه وه که هغه ته دوه حسي کتابونه راوړل شي نو دا څه استبعاد او استعجاب دی؟ او چونکه دا د عالم الغیب کتابونه وو لهذا د هغو په ضخامت (غټوالي) دې اعتراض ونه شي، په یوه کتاب کې د اهل جنت نومونه لیکل شوي وو، او په دویم کې د اهل نار نومونه وو، په نوي دور کې په دې خبره پوهیدل نور آسانه شوي چې غټې غټې تفصیلات په څومره وړو وړو آلو کې راټول شوي دي، او

د ګوتې په یوې اشارې سره د نظرونو په وړاندې راتلی شي. (المرقات ۲۹۴-۱/۲۹۵).

**ثم اجمل علی آخرهم** : د دې مطلب دا دی چې له تفصیلي فهرست وروسته د هغه مجموعي تعداد لیکل شوی وو کوم ته چې میزان او میزانیه ویل شوي دي. (المرقات ۱/۲۹۶).

**فقال سددوا وقاربوا** : حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې د دې مطلب دا دی چې مکمل عمل وکړئ، او که نه نو نژدې نژدې به لاړ شئ، علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې د دې مطلب دا دی چې تاسو عباد او بندګان یاست تاسو ته د سوال کولو حق نشته، بلکې سم سم او نیغ نیغ عمل وکړئ او د الله تعالی د قرب حاصلولو د پاره مخکې لاړ شئ. (المرقات ۱/۲۹۶).

**ثم قال بیدیه** :د **قال** په صله کې د مختلفو حروفو په راتلو سره د هغه معنی بدله شوې ده. **قال عنه ای روی عنه. قال فیه ای عاب علیه. قال براسه ای قال نعم واجاب. قال بیدیه ای اشار بیدیه** دلته همدې اشارې په معنی سره راغلی، **قال بثوبه ای رفعه. قال برجله ای مشی قالت عینه ای او مأت کما قیل** :

**و قالت له العینان سمعًا و طاعةً و حدرتا کالدر لما یثقب** (المرقات ۱/۲۹۷).

**فنبذهما** : په دې غورځولو کې د توهین کوم صورت نه نشته، بلکې د عالم غیب کتابونه وو، د عالم غیب لفظ ددې وجې وېشئ چې عوالم درې دي، یو عالم مشاهده دی په کوم کې چې جسم او روح دواړه فعال دي له جسم سره صورت هم دی، دویم عالم مثال دی په کوم کې چې صرف صورت وي جسم نوي، دریم عالم ارواح دی په کوم کې چې صرف روح وي. (المرقات ۱/۲۹۷).

دلته **قال بیدیه فنبذهما** په حقیقت کې **جف القلم بما انت لاق** په شان دی، معنی دا ده چې کوم څه چې شویدي هغه کېدونکي وو او **فرغ ربکم** په دې باندې دال دی.

## دوا او علاج هم د تقدیر لاندې دي

| |
|---|
| (۱) وَ عَنْ أَبِي خِزَامَةَ عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قُلْتُ |
| حضرت ابو خزامة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار نه روایت کړی دی هغه ویلي دي چې ما نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته عرض وکړو |
| يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ رُقًى نَسْتَرْقِيهَا وَ دَوَاءً |
| یا رسول الله هغه عملیات کوم چې مونږ (د شفا د پاره) وایو او هغه دواګانې کومې چې مونږ (د حصول صحت |
| نَتَدَاوَى بِهِ وَ تُقَاةً نَتَّقِيهَا |
| د پاره) استعمال کړې دي او هغه شیان په کوم سره چې مونږ ته حفاظت حاصل دی (مثلاً دال، زغره وغیره) |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| هَلْ | تَرُدُّ | مِنْ | قَدَرِ | اللهِ | شَيْئًا |

په دې باره کې ماته وښايه چې دغه ټول شيان د تقدير په نوشته کې څومره اثر اچولی شي؟ نبي عليه السلام

قَالَ هِيَ مِنْ قَدَرِ اللهِ (رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ).[1]

وفرمايل: دغه شيان هم د تقدير د نوشتې مطابق دي.

**توضيح**: رقی: جمع يې رقية ده دم او تعويذاتو ته ويل کيږي. (المرقات ۱/۲۹۸).

**تقاة**: هغه شی په کوم سره چې ځان ساتل حاصليدی شي برابره خبره ده که ډال وي که اسلحه وي، ديوال وي که انسان وي، د دم او تعويذ تفصيلي مسائل به په دويم جلد کې راشي ان شاء الله، دلته دومره زده کړئ چې په کوم دم او تعويذ کې د الفاظو معنی معلومه نوي يا په هغو کې شرکيه الفاظ ذکر شوي وي د هغو استعمال حرام دی، او د کوم چې معنی صحيح وي په شريعت کې هغه دم د استعمال دپاره موجود وي هغه روا دی او د کوم چې معنی خو معلومه نه وي مگر رسول الله صلى الله عليه وسلم يې اجازه ورکړې وي هغه هم روا دی لکه هجة قرنية ملحة بحر، دمارچيچلو دپاره يو منتر دی داهم روا دی بهرحال دصحابي د پوښتنې او سوال کولو منشأ دا ده چې کله ټول امور د مقدراتو نه دي نو بيا د دم، تعويذ، دواگانو او د ځان ساتلو شيانو د استعمال فائده څه ده؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم جواب ورکړو چې دغه شيان هم په تقدير کې دي د تقدير نه بهر ندي، نو استعمال او اشتغال بالاسباب روا دی، اتکال بالاسباب ناروا دی، روا تعويذات هم هغه وخت ممنوع کيږي کله چې خلک د هغو موثر بالذات منل شروع کړي.

**۱۰ محرم الحرام ۱۴۰۹هـ**

## په تقدير کې بحث مه کوئ

(۲۰) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نَتَنَازَعُ فِي

دابوهريره رضي الله عنه روايت دی چې (يوه ورځ) نبي عليه السلام په مونږ باندې راووتو او مونږ بحث کولو د قضاء

الْقَدَرِ فَغَضِبَ حَتَّى احْمَرَّ وَجْهُهُ حَتَّى كَأَنَّمَا فُقِئَ فِي وَجْنَتَيْهِ حَبُّ الرُّمَّانِ

او قدر په مسئله کې د نبي عليه السلام مبارک مخ د غسې دوجې سور شو او داسې معلومې ده لکه د انار دانې

[1] اخرجه احمد في السنن ۴۲۱/۳، والترمذي ۳۴۹/۴، حديث الرقم ۲۰۶۵ قال حديث حسن صحيح، وابن ماجه في السنن ۱۱۳۷، حديث الرقم: ۳۴۳۷.

| |
|---|
| فَقَالَ |
| چې دهغه صلی الله علیه وسلم په مخ باندې نچوړ شوې دي (په همدې حالت کې) نبي علیه الصلاة والسلام وفرمایل: |
| أَبِهٰذَا أُمِرْتُمْ أَمْ بِهٰذَا أُرْسِلْتُ إِلَيْكُمْ |
| آیا تاسو ته ددې شي حکم شوی دی او زه ددې دپاره تاسو ته (رسول جوړ شوی) رالیږل شوی یم؟ |
| إِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ حِيْنَ |
| پوهه شئ! دتاسو نه مخکې خلک ددې وجې نه هلاک شول او په کندو کې واچول شول چې هغوی په دغه |
| تَنَازَعُوا فِي هٰذَا الْأَمْرِ عَزَمْتُ عَلَيْكُمْ عَزَمْتُ عَلَيْكُمْ |
| باره کې بحث کول خپله مشغله جوړه کړې وه، لهذا زه تاسو ته ددې خبرې قسم درکوم (بیا دوباره) قسم |
| أَلَّا تَتَنَازَعُوا فِيهِ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ رَوَى ابْنُ مَاجَهْ نَحْوَهُ. عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، |
| درکوم چې تاسو به په دې مسئله کې بحث نه کوئ، او ابن ماجه همدارنګې روایت دعمرو بن شعیب نه نقل |
| عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ ).(ترمذي، ابن ماجه)[1]. |
| کړی دی کوم چې هغه دخپل پلار نه او هغه دخپل نیکه نه روایت کړی. |

**توضیح: لتنازع**: یعنې همدا بحث وو یو دلې ویل چې هرکله هرڅه دکائناتو په دې نړۍ کې دالله تعالی دمقرر شوي تقدیر لاندې شویدي نو بیا ګناه ګارانو ته عذاب ولې ورکول کیږي، دویمې دلې ویل چې په دې کې څه حکمت دی چې یو شمیر بندګان دجنت دپاره او یو شمیر بندګان ددوزخ دپاره پیدا شوي دي. (المرقات ۱/۲۹۹).

**فغضب**: د رسول الله صلی الله علیه وسلم ناراضي ددې وجې وه چې د تقدیر مسئله (سر من اسرار الله) یو پټ راز دی چیرته چې د انساني عقل رسیدل ناممکن دي، په دې کې کوشش کول ګمراهي ته رسوونکی دی، همدارنګه کوم شی چې د انساني عقل د دائرې نه بهر وي په هغه کې بحث مباحثه کول بې ګټې دي، بیا انسان د الله تعالی بنده او غلام دی نو که چیرته غلام د خپل اقا د حکمتونو تالاش شروع کړي چې دا یې ولې وکړل دا یې ولې ونه کړل دا څنګه کوي دارنګه سوالونه غټه بې آدبي هم ده او د دې نتیجه یا جبري ده یا قدري ده یا کفري ده. (المرقات ۱/۲۹۹).

---

(۱) اخرجه الترمذي ۳۸٦/٤، رقم الحدیث ۲۱۳۳.

نو ځکه رسول الله ﷺ سخت ناراضه شو، د دې په مثال داسې پوهه شئ چې يو نوکر خپل اقا ته وويل نن به ته کوم کار کوې؟ چيرته به يې کوې؟ ولې يې کوې؟ او په بنار کې چيرته کوې او کله يې کوې؟ په دې سوالونو سره آقا هغه د کار نه فارغوي چې ته خو ما په چوکيداري باندې مقرر کړی وې زما په کارونو کې د حکمتونو او علتونو لټولو دپاره مې نه يې ساتلی. حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله ويلي دي چې د تقدير په مسئله کې مسلم او غير مسلم ټول برابر دي. لهذا د تقدير اثبات صرف د مسلمانانو په ذمه نه دی، بلکې دا مسئله عقليه ده په هغې پوهيدل د ټولو په ذمه دي.

**کانما فقئ في وجنتيه** : ګويا چې د رسول الله ﷺ په رخسار باندې د انار دانې نچوړ شوې دي، دا د غضب او غسې د وجې شوي وو، په صفا زړونو خلکو باندې همداسې اثر وي او اثر يې په مخ باندې ښکاره کيږي. (المرقات ۱/۲۹۹).

**عزمت عليكم** : يعنې زه تاسو ته قسم درکوم چې داسې به نه کوئ، په عربي محاوره کې همداسې ده چې زه تاسو ته قسم درکوم، په پښتنو کې هم همدا دستور دی چې ميلمه ته قسم ورکوي چې نوره هم وخوره. (المرقات ۱/۲۹۹).

## په انسان کې د خاورو صفات ښکاره دي

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ اللهَ خَلَقَ آدَمَ |
| دابو موسی رضي الله عنه روايت دی چې ده د نبي عليه السلام نه اوريدلي دي چې فرمايل يې الله تعالی د آدم عليه السلام |
| مِنْ قَبْضَةٍ قَبَضَهَا مِنْ جَمِيعِ الْأَرْضِ فَجَاءَ بَنُو آدَمَ |
| تخليق د يوې ختې نه وکړو کومه چې د هر ځای د زمکې نه اخستل شوې وه، لهذا د آدم عليه السلام اولاد د |
| عَلَى قَدْرِ الْأَرْضِ مِنْهُمُ الْأَحْمَرُ وَ الْأَبْيَضُ وَ الْأَسْوَدُ وَ بَيْنَ ذَلِكَ |
| زمکې موافق پيدا شوي لهذا په (انسانانو کې) بعضې سره، بعضې سپين، بعضې تور بعضې د درميانه رنګ |
| وَالسَّهْلُ وَالْحَزْنُ وَالْخَبِيثُ وَالطَّيِّبُ (رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ)(۱). |
| بعضې نرم مزاج، بعضې تند مزاج، بعضې پاک او بعضې ناپاک دي. |

**توضيح : فجاء بنو آدم** : يعنې د آدم عليه السلام اولاد د زمکې د هغو کيفياتو نه پيدا شوي دي د کوم نه چې د حضرت آدم عليه السلام خمير تيار شوی وو، علامه طيبي رحمه الله ويلي دي چې په انسان کې دغه څلور

(۱) اخرجه ابن ماجه في المقدمة ۱/۳۳، رقم الحديث : واحمد في المسند ۲/ ۱۷۸.

رنګونه مشهور دي نو ځکه د هغو ذکر وکړی شو، يعني سور، سپين، تور او بين بين، دا د انسان ظاهري اوصاف دي، د دوی مطابق انسان پيدا شوی دی، يعنې د ځمکې کيفيات او خورين خصوصيات په حضرت آدم عليه السلام کې راغلل نو بيا د حضرت آدم عليه السلام په اولاد کې هم راغلل، د همدې ظاهري اوصافو په مقابل کې څلور باطني اوصاف هم ذکر شوې دي، (الکاشف ۱/۲۷۵، المرقات ۱/۳۰۱).

کوم چې د **والسهل والحزن** نه شروع شوي سهل نرمې ځمکې ته او حزن سختې زمکې ته ويل کيږي، دلته د سهل نه د نرمو اخلاقو څښتن کس مراد دی، او د **الحزن** نه د تند مزاجه او د سخت بد اخلاقه کس مراد دی.(المرقات ۱/۳۰۱).

**الخبيث** نهايت بد بوی لرونکي شي ته ويل کيږي ددې نه مراد نهايت شرير او بد بوی لرونکی کافر دی،(المرقات ۱/۳۰۱).

**الطيب** خوشبودار او د ښه بوی لرونکې شي ته ويل کيږي، دلته ترې نه مراد د خير او اصلاح لرونکی مؤمن دی. (المرقات ۱/۳۰۱).

## اوس د هدايت نور صرف په اسلام کې دی

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ اللهَ |
| د عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چې ما د نبي عليه السلام نه دا آوريدلي چې فرمايل يې: الله تعالی خپل |
| خَلَقَ خَلْقَهُ فِي ظُلْمَةٍ فَأَلْقَى عَلَيْهِمْ مِنْ نُورِهِ فَمَنْ |
| مخلوق (انسانان او پيريان) په تياره کې پيدا کړل بيا يې په هغو باندې د خپل نور پرده واچوله لهذا چاته چې |
| أَصَابَهُ مِنْ ذَلِكَ النُّورِ اهْتَدَى وَ مَنْ أَخْطَأَهُ |
| د همدغه نور رڼائي ورسيده هغه په سمه لار لاړل او څوک چې د همدې مقدسو شعاعو محروم پاتې شول |
| ضَلَّ فَلِذَلِكَ أَقُولُ جَفَّ الْقَلَمُ عَلَى عِلْمِ اللهِ. (رَوَاهُ أَحْمَدُ. وَالتِّرْمِذِيُّ)[1]. |
| هغوی په ګمراهۍ کې ولويدل، د همدې وجې نه زه وايم چې په الهي تقدير باندې قلم وچ شوی دی. |

**توضيح : في ظلمة** : حافظ تورپشتي رحمه الله ويلي دي چې د ظلمة نه مراد هغه خواهشات او شهوات دي کوم چې د انسان په طبيعت کې دي او د انسان د تخليق په وخت کې د هغه سره دي او د (**خلق خلقه**) نه

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۲/۱۷۶، واخرجه ابوداود في سننه ۵/ ۰ رقم الحد : ۴۶۹۳ ، اخرجه الترمذي ۵/۱۸۷، رقم الحديث:۲۹۵۵.

مراد انسانان او پیریان دي، فرښتې ترې خارج دي او د (من نوره) نه شریعت او هغه دلائل مراد دي په کومو سره چې د هدایت ربانۍ ترلاسه کیږي. شیخ عبدالحق محدث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ وېلي دي چې د ظلمة نه مراد د ماشومتوب زمانه ده په کومه کې چې انسان پیدا شوی دی، او د نور نه مراد دادی چې لوی (غټ) شي نو د شریعت براهین خپل کړي نو دا د هغه دپاره د هدایت نور دی، بهر حال انسان بالطبع د هدایت او شریعت محتاج دی، که نه نو د یو سپي پشان درنده دی. (اشعة اللمعات ۱/۱۱۰).

**من نوره:** کې اضافت تشریفي دی او د نور نه مراد د الله پیدا کړی د هدایت نور دی د الله جزء مراد نه دی.

## انسان هر وخت په خطر کې دی

| |
|---|
| (۲۲) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكْثِرُ أَنْ يَقُولَ يَا مُقَلِّبَ الْقُلُوبِ |
| دانس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به اکثره وخت دا دعا کوله: ای د زړونو اړونکیه |
| ثَبِّتْ قَلْبِي عَلَى دِينِكَ فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللهِ آمَنَّا بِكَ |
| زما زړه په خپل دین باندې قائم وساته، ما ووېل یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! ما په تا باندې ایمان راوړی |
| وَ بِمَا جِئْتَ بِهِ فَهَلْ تَخَافُ عَلَيْنَا |
| او ستا لخوا په راوړل شوي شریعت باندې مې هم ایمان راوړی آیا اوس هم زمونږ په باره کې تاسو ویریږئ |
| قَالَ نَعَمْ إِنَّ |
| (چې هسې نه مونږ چیرته ګمراه نه شو) نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: آو! په تاسو باندې ویریږم، ځکه چې بیشکه |
| الْقُلُوبَ بَيْنَ اصْبَعَيْنِ مِنْ أَصَابِعِ اللهِ |
| زړونه د الله تعالی د ګوتو نه په دوو ګوتو کې دي (یعنې د هغه په تصرف او اختیار کې دي) او هغه چې |
| يُقَلِّبُهَا كَيْفَ يَشَاءُ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ)[1]. |
| څه قسم وغواړي په هغه قسم يې اړوي. |

**توضیح : فهل تخاف علینا :** یعنې ته خو معصوم یې، تا خو د نورو د هدایت دپاره دین او شریعت وراندې کړی دی، ستا په باره کې خو احتمال نشته چې د هدایت نه وګرځې، نو اوس ښکاره ده چې تاسو دا دعا زمونږ دپاره کوئ، نو آیا په شریعت باندې د ایمان راوړو باوجود ستاسو په موجودیت کې هم

(۱) اخرجه احمد في المسند ۳/۱۱۲، واخرجه الترمذي ۴/۳۹۰، رقم الحديث: ۲۱۴۰، واخرجه ابن ماجة في السنن ۲/۱۲۶۰، رقم الحديث: ۳۸۳۴.

زمونږ د ګمراه کیدو احتمال شته دی؟ رسول الله ﷺ په جواب کې وفرمایل: (نعم) آو! ستاسو په بیرته ګرځیدو ویرېږم، ځکه چې د انسان زړه د رحمٰن د دوو ګوتو په مینځ کې دی، لهذا هر وخت هم د ګرځیدو خطر شته دی په همدې وجه هر وخت د ایمان د حفاظت دعاء کول په کار دي. (المرقات ۱/۳۰۳)

﴿۲۴﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْقَلْبِ

د حضرت ابوموسی رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د زړه مثال داسې دی

كَرِيشَةٍ بِأَرْضٍ فَلَاةٍ يُقَلِّبُهَا الرِّيَاحُ ظَهْرًا لِبَطْنٍ (رَوَاهُ أَحْمَدُ)(۲).

لکه یو وزر چې په میدان کې لویدلی وي او هواګانې هغه په یو اړخ او بل اړخ باندې اړوي را اړوي.

**توضیح**: **کریشة**: ریشه د مرغۍ وزر ته ویل کیږي، په دې حدیث کې د داسې انسانانو د زړونو حال بیان شوی دی چې کله د بدۍ نه د نیکۍ طرف ته مخه کوي او کله د نیکۍ نه د بدۍ طرف ته ځي، لکه چې په یوه چټل میدان کې د هواګانو مخته د مرغۍ وزر پروت وي کوم چې د هواګانو د وجهې په اړخ او په بل اړخ اوړي را اوړي، دا د زړه د ډیر زر بدلیدو بیان دی چې د خواهشاتو د وجهې د وسوسو او خطراتو د وجهې هر وخت یو څه کیدلی شي، لهذا انسان ته بیدار اوسیدل په کار دي. (المرقات ۱/۳۰۴).

**ظهرًا البطن**: یعنې بنکته پورته کیږي، کله په خیټه او کله په شا اوړي را اوړي. (المرقات ۱/۳۰۴).

## په څلورو شیانو ایمان راوړل فرض دي

﴿۲۵﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُؤْمِنُ عَبْدٌ

د حضرت علي رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: هیڅ کس تر هغه مؤمن نه دی

حَتَّى يُؤْمِنَ بِأَرْبَعٍ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا

تر څو چې هغه په څلورو شیانو ایمان رانه وړي (۱) د دې خبرې شاهدي ورکول چې نشته بل معبود په غیر

اللهُ وَ أَنِّي رَسُولُ اللهِ بَعَثَنِي بِالْحَقِّ

د الله تعالی نه (۲) او زه د شک نه بغیر د الله تعالی د طرفه رالیږل شوی رسول یم او حق (د اسلام دین) مې

وَ يُؤْمِنُ بِالْمَوْتِ وَ الْبَعْثِ بَعْدَ الْمَوْتِ

راوړی دی دنیا ته راغلی یم (۳) د مرګ او مړینې نه وروسته (په میدان حشر کې) بېرا پورته کیدو باندې ایمان

(۲) اخرجه ابن ماجه ۳۴/۱، رقم الحديث: ۸۸، واحمد في المسند ۴۰۸/۴.

| |
|---|
| وَيُؤْمِنُ بِالْقَدَرِ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ)[1]. |
| (۴) او په تقدير باندې ايمان راوړل. |

**توضيح** : **يؤمن بالقدر** : د شهادتينو د اقرار سره تقدير يو ځاى شوى دى، په دې سره دا اشاره سوې ده چې د تقدير منلو د شهادت او وحدانيت منلو مقام يو دى، شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللّٰهُ ويلي دي چې دا نه شي كيدلى چې د مؤمن جوړيدو دپاره شهادتين ضروري شي او په تقدير باندې ايمان راوړل ضروري نه شي، لكه څرنګه چې د ايمان تحقق د شهادتينو په منلو سره كيدى شي همدارنګه د تقدير منل د حقيقت ايمان دپاره ضروري دي، داسې نه ده كه چيرته په تقدير باندې ايمان نه وي نو ايمان نه كامليږي بلكې ناقص كيږي، فرمايلي دي داسې نه ده بلكې كه چيرته په تقدير باندې ايمان نشته نو ايمان نشته، د ايمان بالموت مطلب دا دى چې دا دنيا فاني ده ټول شيان عارضي او فاني دي او د هر ذى روح دپاره مرګ لازمي او يقيني دى، او دغه مرګ په حقيقت كې د الله تعالى په لاس كې دى اګر كه نسبت يې خارجي حوادثو طرف ته كيږي.

**سوال** : دلته د پنځو شيانو ذكر شوى دى او حكم د څلورو وو؟.(اشعة اللمعات ۱/۱۱۱).

**جواب** : د دې جواب دا دى چې په شهادتينو كې (انى رسول الله) جدا نمبر نه دى، بلكې دا د شهادتينو په ضمن كې دى.

**والبعث** : يعني چې په دې باندې ايمان وي چې قيامت راشي نو د ذرې ذرې حساب به وي، انسان به د جسد عنصري سره هلته حاضريږي حساب به ورکوي، كه چيرته كامياب شي نو جنت ته به ځي او كه كامياب نه شي نو دوزخ ته به ځي (ويؤمن بالله ايمان بالقدر) كې چې كوم بحثونه وو هغه په ابتداء كې ليكل شوي دي، الله تعالى تقدير مقرر كړه د صبر او تسلى ډير سامان يې تيار كړى دى، پس كوم خلق چې تقدير مني هغوى په هر مصيبت كې داسې وايي چې بس په تقدير كې داسې ليكل شوي وو د تقدير فيصله وه، ليكن كوم خلق چې تقدير نه مني لكه كافران يا د تقدير نه منكرين نو دوى به د حادثې په وخت كې د غم، درد او افسوس نه بغير څه حاصل كړي، د دوى سره د تسلى دپاره هيڅ هم وجود نه لري، لهذا د غم په برداشت كولو سره پاګل شي. (المرقات ۱/۳۰۵).

**۱۱ محرم الحرام ۱۴۰۹ھ**

## قدریه جبریه څوک دي؟

| |
|---|
| (۲۶) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صِنْفَانِ مِنْ أُمَّتِي |
| دابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زما په امت کې دوه فرقې داسې دي |
| لَيْسَ لَهُمَا فِي الْإِسْلَامِ نَصِيبٌ الْمُرْجِئَةُ وَ الْقَدَرِيَّةُ ( رواه الترمذي |
| کوم ته به چې د اسلام هیڅ برخه هم په نصیب نه شي او هغه مرجئه او قدریه دي ترمذي دا حدیث نقل کړی دی |
| وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ ). |
| او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی. |

**توضیح : صنفان من امتي :** په دې حدیث کې د دوه قسمه خلکو بدي بیان شوې ده، او دا ښودل شوي دي چې اګر که دغه خلق خپل ځانونه د اسلام طرف ته منسوب کوي، لیکن په اسلام کې د دوی برخه نشته، یوه قدریه ډله ده او دویمه مرجئه ډله ده.

**امتي :** د امت دوه قسمه دي: امت دعوت او امت اجابت، په امت دعوت کې هغه ټول انسانان او پیریان داخل دي کوم چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د بعثت نه تر قیامته پورې راتلونکي دي او کومو چې تراوسه پورې اسلام قبول کړی نه دی، ترڅو پورې چې دوی په کفر باندې قائم پاتې شي په امت دعوت کې شمارل کیږي، د امت اجابت نه مراد هغه خلق دي کومو چې اسلام قبول کړی. (المرقات ۱/۳۰۶).

**مرجئه :** نه مراد جبریه دي کوم چې داسې وایي چې بنده مجبور محض دی، دا خلق وایي چې د ایمان سره هیڅ ګناه ضرر رسوونکې نه ده، لکه څرنګه چې د کفر سره هیڅ نیکي معتبره نه ده، د دوی په نزد انسان مجبور محض دی او په خپلو اعمالو کې بې وسه دی، دا خلق د اسبابو قائل ندي، ویلي یې دي چې د اعمالو نسبت د انسان طرف ته داسې دی لکه د ونې یا د کاڼي طرف ته چې د کوم عمل نسبت وکړی شي، د مرجئه نه مشهوره فرقه مرجئه مراد نه ده. (المرقات ۱/۳۰۶).

**قدریه :** دې فرقې ته یا ددې وجهې قدریه ویل کیږي چې دا د تقدیر نه منکر دي، یا ددې وجهې ورته قدریه ویل کیږي چې دوی زیاتره بحث په تقدیر کې کوي، یا ددې وجهې ورته قدریه ویل کیږي چې د دوی وینا ده چې مونږ ته الله تعالی د خپلو افعالو د تخلیق قدرت راکړی دی، د افعالو په باره کې د دوی

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۹۵، رقم الحدیث : ۲۱۴۹ واخرجه ابن ماجه ۱/ ۲۴ رقم الحدیث : ۶۲.

عقیده دا ده چې د افعال خیر خالق الله دی، او د افعال شر خالق نفس اماره یا شیطان دی، د بعضې علماو خیال دی چې د قدریو عقیده دا ده چې د افعال خیر خالق لمر دی او د افعال شر خالق ظلمت دی، په بل حدیث کې دوی د همدې امت مجوسیان گرځول شوي، ځکه چې مجوسیان هم د افعالو دوه خالقه منلي دي، د خیر د افعالو خالق د دوی په نزد (یزدان) او د شر خالق (اهرمن) دی، بهر حال همدا دواړه فرقې تریوه حده گمراه دي. (المرقات ۳۰۶-۱/۳۰۷).

نور او ظلمت ته طرف ته افعال منسوبولو په باره کې متنبي وایي :

**وکم لظلام اللیل عندي لعمة ✿ تخبر ان المانویة تکذب**

**لیس لهما في الاسلام نصیب** : د جبریو او قدریو په باره کې د سلف صالحینو دوه رأیې دي :بعضو دوی کافر گرځولې دي، او بعضو ورته کافر نه دي ویلي، بلکې مبتدعین، فاسقان او فاجران یې ورته ویلي، په دواړو قولونو باندې د همدې مذکور حدیث د وجهې اعتراض شوی دی، که چیرته دوی ته کافر وویل شي نو اعتراض دا دی چې په حدیث کې دوی ته (من امتي) ویل شوي، که چیرته هغوی ته صرف فاسق او فاجر وویل شي نو اشکال دا دی چې په حدیث کې د هغو متعلق ویل شوي (**لیس لهما في الاسلام نصیب**) د کوم نه چې معلومیږي چې دا خلک کافر دي د اسلام نه وتلي دي.علامه توربشتي رحمه الله ویلي دي چې دا خلک اهل تاویل دي، د هغو تکفیر کول نه دي په کار، جمهور اهل السنتو هم ویلي دي چې د هغوی د تکفیر نه دې ژبه وساتل شي، ځکه دا خلق صریح د کفر اقرار نه کوي او نه د کفر اراده لري اگرکه د هغوی عقیدې ترخطرناک حدپورې رسیدلې دي،لیکن هغوی د کفر اراده نه ده کړې، د همدې وجې نه د هغو متعلق په احادیثو کې چې وعیدات دي یا د تکفیر اشارات دي علماء او محدثین په هغو کې تاویل کوي، مثلا په ذکر شوي حدیث کې د نصیب نه مراد دا دی چې د اسلام کامله برخه به هغو ته ورنه کړی شي، ناقص مسلمانان دي، یا نصیب د بخت او قسمت په معنی سره دی چې دوی بدبخته دي بد نصیبه دي، یا په تغلیظ او تشدید باندې محمول دی، او س پاتې شو په ذکر شوي حدیث باندې دوه قسمه اشکال نو د هغو جواب دا دی لکه څنگه چې پورته تیر شول چې امت په دوه قسمه دی امت اجابت او امت دعوت، په حدیث کې چې دوی په امتي سره یاد شوي دي نه امت دعوت مراد کولی شي،او دا د هغو خلکو د رأیې مطابق دی کوم چې د هغوی تکفیر کوي، او کوم خلق یې چې تکفیر نه کوي دوی په نصیب کې هغه تاویل کوي کوم چې پورته په متعدد و اقوالو کې تیر شول. (المرقات ۱/۳۰۶).

## د تقدير منكرينو ته سزا

(۲۷) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ يَكُونُ فِي أُمَّتِي

د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دی چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي دي چې فرمایل یې زما په امت کې

خَسْفٌ وَ مَسْخٌ وَ ذَلِكَ فِي

(د خدای دردناک عذاب) په زمکه کې ننوتل او د صورتونو مسخ کیدل به وي او دا عذاب به په هغو خلکو

الْمُكَذِّبِينَ بِالْقَدَرِ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَ رَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ). (ابوداؤد. ترمذي)[1]

باندې وي کوم چې د تقدیر نه منکرین دي (ابوداؤد) امام ترمذي هم دا رنګه روایت نقل کړی دی.

**توضيح : خسف** : په زمکه کې ننوتلو ته خسف ویلي کیږي، مسخ د شکل بدلیدو ته ویل کیږي **هو تحويل صورة الی ما هو اقبح منها** د ې مسخ دوه صورتونه کیدې شي: اول دا چې ابدان اجسام او مخونه هر څه د خنزیرانو او شادوګانو په شکل بدل کړی شي، لکه د داؤد علیه السلام او حضرت عیسی علیه السلام په قومونو کې چې شوي وو، بعضو حضراتو د خسف نه د مخونو توریدل او د مسخ نه د زړونو توریدل مراد کړي دي، دا خسف او دا مسخ د رښا ورځې په شان په دې امت کې عام دی. (المرقات ۱/۳۰۷).

**سوال**: سوال دا دی چې د خسف او مسخ عذابونه په مخکنیو امتونو باندې راغلي وو، د دې امت د پاره رسول الله صلی الله علیه وسلم دعا کړې ده کومه چې قبوله شوې بیا نو خسف او مسخ څنګه؟.

**جواب** : ددې یو جواب دا دی چې په مخکنیو امتونو باندې دا عذاب د عموم په شکل کې راغلی وو، هغه د دې امت د پاره اوس هم منفي دی، په حدیث کې چې د کوم عذاب ذکر دی هغه د یوې مخصوصې فرقې د پاره په مخصوصو احوالو کې دی. (المرقات ۱/۳۰۷).

## د دې امت مجوس

(۲۸) وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقَدَرِيَّةُ مَجُوسُ هَذِهِ الْأُمَّةِ

د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: فرقه قدریه د دې امت مجوس دي،

إِنْ مَرِضُوا فَلَا تَعُودُوهُمْ وَ إِنْ مَاتُوا فَلَا تَشْهَدُوهُمْ. (رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُد)[2].

که چیرته هغوی ناروغه شي نو د هغوی پوښتنې ته مه ځئ او که چیرته مړه شي نو په جنازه کې یې مه شریکیږئ.

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۳۹۷/٤، رقم الحديث : ۲۱۵۲ واحمد في المسند ۲/ ۱۰۸.

(۲) أخرجه احمد في المسند ۲/ ۸٦ واخرجه ابوداود ٦٦/٥، رقم الحديث: ٤٦٩١، واخرجه ابن ماجه ۳۵/۱، رقم الحديث: ۹۲.

**توضیح : القدرية مجوس هذه الامة :** قدريو ته ځکه مجوس ويل شوي چې مجوسيان هم د تعدد خالق قائل دي د دوی په نزد يو خالق خير دی کوم ته چې دا خلق (يزدان) وايي او دويم خالق د شر دی کوم ته چې همدا خلق (اهرمن) وايي، يزدان سويا چې د دوی په نزد رحمٰن دی او اهرمن شيطان دی، قدريه چونکه د تقدير نه منکرين دي او د بندګانو د افعالو خالق بندګان ګڼي نو ځکه دوی د همدې امت مجوسيان ګرځول شوي، ليکن دوی د مجوسيانونه هم بدتر دي، ځکه چې مجوسيان صرف د دوه خدايانو قائل دي مګر قدريو او معتزلو بيشماره خدايان منلي دي. (المرقات ۱/۳۰۸).

**فلاتعودوهم :** يعنې د هغوی پوښتنه مه کوئ، کومو خلکو چې قدريه کافر ګرځولي دي د هغوی په نزد دا خبره په حقيقت باندې مبني ده چې دوی کافر دي نو د هغوی پوښتنه مه کوئ، بلکې اجتماعي تعلق ورسره ختم کړئ، او کوم خلق چې قدريو ته د تکفير نسبت نه کوي د هغوی په نزد دا کلام په تغليظ تشديد او زجر باندې مبني دی. (المرقات ۱/۳۰۹).

**وان ماتوا :** يعنې له مړ کيدو وروسته د هغوی په جنازه کې ګډون مه کوئ، د دې مطلب هم هغه دی کوم چې د مخکنی جملې دی. (المرقات ۱/۳۰۹).

## د اهل باطلو سره راشه درشه مه کوئ

| |
|---|
| **(۲۹) وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُجَالِسُوا أَهْلَ الْقَدَرِ** |
| د حضرت عمر رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د قدريو سره ناسته غوره نه |
| **وَلَا تُفَاتِحُوْهُمْ** . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[1]. |
| کړئ او نه هغوی خپل دريم ګري جوړ کړئ. |

**توضیح : لاتجالسوا :** دا يوه نمونه ده په کومې سره چې امت ته دا تعليم ورکړی شوی دی چې د اهل باطلو او د اهل نفاقو او د بدعقيده او د ګمراه خلکو د مجالسو نه پرهيز وکړئ او د هغوی سره اختلاط مه کوئ. په خصوصي طور ځوک چې د اسلام په دين پسې توقې کوي له هغو سره تګ راتګ ساتل په حقيقت کې د هغوی په اعمالو کې شريکيدل دي. (المرقات ۱/۳۰۹).

**ولاتفاتحوهم :** د دې جملې ډير مطالب دي (۱) هغوی ته فيصلې مه وروړئ، د فتاحه معنی فيصله ده (۲) له هغو سره په ابتداء کې سلام کلام مه کوئ (۳) د هغو سره مناظره مه کوئ، ځکه چې وخت ضايع

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۳۰/۱ ، واخرجه ابو داود ۸٤/۵، رقم الحديث : ۴۷۱۰

کيږي او د فائدې اميد نشته، بلکې د نقصان خطر دی. (المرقات ۱/۳۰۹).

## په شپږ قسمه خلکو لعنت ويل شوی

(۲۰) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ سِتَّةٌ

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: شپږ کسان داسې دي په

لَعَنْتُهُمْ وَ لَعَنَهُمُ اللهُ وَ كُلُّ نَبِيٍّ يُجَابُ

کوموباندې چې ما لعنت ليږلی دی او الله تعالی هم ملعون ګرځولي دي او د هر نبي دعا قبوله شوې (اول)

الزَّائِدُ فِي كِتَابِ اللهِ وَ الْمُكَذِّبُ بِقَدَرِ اللهِ وَ الْمُتَسَلِّطُ

په کتاب الله کې زياتی کوونکي (دويم) د الهي تقدير دروغ بلونکي (دريم) هغه کس کوم چې په زوره د

بِالْجَبَرُوتِ لِيُعِزَّ مَنْ أَذَلَّهُ اللهُ وَ يُذِلَّ مَنْ

غلبې په پيدا کولو باندې داسې کس معزز جوړ کړي کوم چې الله تعالی ذليله کړی وي او هغه کس ذليل کړي

أَعَزَّهُ اللهُ

کوم چې الله تعالی د عزت او عظمت په دولت سره نازولی وي (څلورم) هغه کس کوم چې د حدود د الله نه تجاوز

وَ الْمُسْتَحِلُّ لِحَرَمِ اللهِ وَ الْمُسْتَحِلُّ مِنْ عِتْرَتِي

وکړي هغه شی حلال وګڼي کوم چې الله حرام کړی وي (پنځم) هغه کوم چې زما د اولاد نه هغه شی (قتل)

مَا حَرَّمَ اللهُ وَ التَّارِكُ لِسُنَّتِي.[1] (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي الْمَدْخَلِ وَرَزِينٌ فِي كِتَابِهِ).

حلال وګڼي کوم چې الله حرام کړی دی او (شپږم) هغه کس کوم چې زما سنت پريږدي.

**توضيح: وکل نبي يجاب:** يعنې د هر نبي دعا قبوله شوې ده نو زما هم قبوله شوې ده. (المرقات ۱/۳۱۰).

**لعنتهم:** لعنت په دوه قسمه دی: (۱) لعنت کفر هغه **ابعاد من رحمة الله** دی کوم چې د کفارو سره خاص دی (۲) لعنت فسق دی کوم چې **ابعاد من رضاء الله** دی دا د مسلمان د پاره دی، په شريعت کې چې کوم کس په قطعي طور په کفر باندې مړ شي په هغه باندې لعنت روا دی، ليکن د کوم کس چې په يقيني طور مرګ په کفر باندې نه وي په هغه باندې لعنت ويل روا نه دي، مثلا د فرعون او ابوجهل مرګ په کفر باندې يقيني دی او د يزيد مرګ په کفر باندې يقيني نه دی، نو په اول باندې لعنت روا دی او په دويم

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۹۷، رقم الحديث: ۲۱۵۴.

باندې روا نه دی ، همدارنګه په اسلام کې کوم معلوم کس ملعون نه شي ګرځول کیدی، هو ! د اعمالو او افعالو د وجهې په اجمالي طور لعنت په احادیثو کې راغلی، په ذکر شوي حدیث کې دغه شپږ خبرې که چیرته د کفارو دپاره دي نو دا د کفر لعنت دی، او که چیرته دغه خلق د اسلام په دائره کې دي نو دا د فسق لعنت دی، حافظ تورپشتي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې دا تغلیظًا او تشدیداً دی. (المرقات ۱/۳۱۰).

(۱) **الزائد في كتاب الله** : که چیرته یې د کتاب الله په الفاظو کې کوم زیاتی کړی دی یا د دې قائل دی نو هغه کافر دی، او که چیرته په معنوي طور تاویل او تحریف یې کړی دی نو هغه مبتدع فاسق او فاجر دی چې د شرع مخالف تاویل یې کړی دی. (المرقات ۱/۳۱۰).

(۲) **المكذب بقدر الله** : دا هماغه معتزله قدریه او خوارج دي.

(۳) **المتسلط بالجبروت** : یعني انتهائي په کبر غرور او جبر سره په حکومت باندې غالب کیدونکي (**لیعز**) یعني کومو خلکو ته چې الله تعالی د تقوی د وجې عزت ورکړی دی هغه ذلیل کړي او کومو ته چې الله د فسق د وجې ذلت ورکړی دی هغو ته عزت ورکړي. (المرقات ۱/۳۱۰).

(۴) **والمستحل لحرم الله** : ای بیت الله، چې د کعبې په حرم کې قتل وکړي، ښکار وکړي او وابنه (ګیاه) پرې کړي. (المرقات ۱/۳۱۱).

(۵) **والمستحل من عترتي** : یعني چې د اهل بیتو احترام پایمال کړي، د هغوی په تعظیم کې کوتاهي وکړي، د هغوی حقوق غصب کړي او هغوی ته ضرر ورسوي. (المرقات ۱/۳۱۱).

(۶) **التارک لسنتي** : ترک سنت (**علی طریق الاهانة**) مراد ده لکه په بیره کې ملندې وهي نو ورح د ایمان نه پاتې کیږي اګر که کلمه ګو دی. (المرقات ۱/۳۱۱).

## چیرته چې مرګ راځي انسان په هلته ورځي

| |
|---|
| **(۲۱) وَعَنْ مَطَرِ بْنِ عُكَامِسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا** |
| د حضرت مطر بن عکامس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: کله چې الله تعالی |
| **قَضَى اللهُ لِعَبْدٍ أَنْ يَمُوتَ بِأَرْضٍ جَعَلَ لَهُ إِلَيْهَا حَاجَةً.** (رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ)[1]. |
| کوم کس ته سرګ په کوم ځمکه باندې مقدر کړی وي نو د هماغې زمکې طرف ته د هغه حاجت هم پیدا کړی |
| شي (ترڅو چې هلته تللو ته مجبور شي) او هلته چې لاړ شي نو د مرګ ښکار شي. |

(۱) أخرجه احمد في المسند ۲۲۷/۵ ، والترمذي ۳۹۴/۴، رقم الحديث : ۲۱۴۶

**توضیح**: **جعل له الیها حاجة**: لکه څنګه چې زیاتره خلک وایي چې زه دلته خاورې راوستلی یم، نو د تقدیر ماتحت انسان هغه ځای ته رسیږي چیرته چې د هغه مرګ مقدر شوی وي، د حضرت سلیمان علیه السلام د وزیر قیصه مشهوره ده چې ملک الموت هغه ته بد وکتل، **هغه وویریده** حضرت سلیمان علیه السلام ته یې وویل چې ما لرې د کومې جزیرې طرف ته ولیږه، کله چې **دا جزیرې** ته ورسیدو نو ملک الموت یې روح واخستلو، د حضرت سلیمان علیه السلام په پوښتنه فرښتې وښودل چې د هغه مرګ هم دلته مقدر وو، وخت کم وو ددې ځای نه سوونه میله لرې ناست وو نو ما دا حربه استعمال کړه. دا وویریده دلته راغی نو مرګ هم ورته راغی. (المرقات ۱/۳۱۲).

## د وفات شوو ماشومانو حکم

(۳۲) وَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی چې ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړو چې یا رسول الله!

ذَرَارِيُّ الْمُؤْمِنِينَ قَالَ مِنْ

(د جنت او دوزخ په باره کې) د مسلمانو ماشومانو څه حکم دی؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د

آبَائِهِمْ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ بِلَا

خپلو پلرونو تابع دي (یعنې هغوي د خپلو پلرونو سره په جنت کې دي) ما عرض وکړو یا رسول الله! بغیر د کوم

عَمَلٍ قَالَ اللهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ

عمل نه؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی ښه پوهیږي چې هغه ماشومان څه کوونکي وو، ما بیا

قُلْتُ فَذَرَارِيُّ الْمُشْرِكِينَ قَالَ

پوښتنه وکړه: ښه د مشرکینو د اولاد په باره کې څه حکم دی؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هغوي هم

مِنْ آبَائِهِمْ قُلْتُ بِلَا عَمَلٍ قَالَ

د خپلو پلرونو تابع دي ما (په تعجب سره) پوښتنه وکړه په غیر د کوم عمل؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل

اَللهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ . (رَوَاهُ دَاوُدُ)[1].

الله تعالی ته ښه علم دی د هغه ماشومانو کوم چې څه کوونکي وو.

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۸۵/۵، رقم الحديث ۴۷۱۲.

## د خپل بچي دوژونکې مور سزا

| |
|---|
| (۳۳) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : (د ژوندي ماشوم) |
| الْوَائِدَةُ وَ الْمَوْءُودَةُ فِي النَّارِ . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[1]. |
| خښونکې (ښځه) او هغه کوم چې خخه کړی شوې ده دواړه په دوزخ کې دي. |

**توضيح** : **الوائدة** : د جاهليت په زمانه کې د اولاد ژوندي خښولو عمل د عربو په امير او غريب دواړو ډلو کې موجود وو، مګر د دوه قسمه نظرياتو ماتحت دا عمل ترسره کيده (۱) د فقر او بې وسۍ نه يا دا چې په راتلونکي کې به راشي (۲) چې دا زما بچی ده سبا به د بل چا ښځه وي دا څنګه برداشت کړی شم دا خو د شرم او بيغور خبره ده (حالانکه په خپله هم د کومې ښځې پيدا شوي وو). (المرقات ۱/۳۱۲).

**جواب** : شبه دا ده چې وائدة د ژوندي خښونکې ښځې دوزخي کيدل دا خو ښکاره خبره ده چې قاتله ده، ليکن موؤدة مقتوله ولې د دوزخ مستحق جوړه شوې؟ د مظلومې مقتولې قصور څه دی؟.

**ترجمه** : د **الوائدة** نه مراد قابله دايه ده او د **الموؤدة** نه مراد **موؤدة لها** ده کومه چې مور ده نو دغه دايه او مور دواړه په دغه جرم کې شريک دي نو ځکه اصحاب نار دي.

**ترجمه** : دا چې د حديث د ظاهر نه د اولاد تبعيت معلوم شوی چې کافره مور دوزخي ده نو ماشوم هم همدا سې دی.

**ترجمه** : ددې نه ژوندی په خاورو کې خښونکې بالغه جينۍ مراد ده نو داوخت هغه په خپله هم کافره وه. (المرقات ۱/۳۱۳).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث

## د پنځو شيانو فيصله شوې ده

| |
|---|
| (۳۴) عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ |
| د حضرت ابو درداء رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : الله تعالى د خپل هر يو |
| فَرَغَ إِلَى كُلِّ عَبْدٍ مِنْ خَلْقِهِ مِنْ خَمْسٍ مِنْ أَجَلِهِ وَ |
| بنده متعلق د پنځو خبرو (د تقدير د ليکلو) نه فارغ شوی دی (۱) د هغه مرګ (چې کله به راځي) (۲) د هغه نيک |

(۱) اخرجه أبوداود في السنن ۸۹/۵، حديث الرقم ۴۷۱۷

| |
|---|
| عَمَلِهِ وَ مَضْجَعِهِ وَ أَثَرِهِ وَ رِزْقِهِ .(رَوَاهُ أَحْمَدُ)[1]. |
| او بد اعمال (۳) د هغه د اوسېدو ځای (۴) د هغه د بیرته واپس کېدو ځای (۵) او د هغه رزق. |

**توضیح**: فرغ الی کل عبد: فرغ د **انتهی** معنی لره متضمن دی نو ځکه یې په صله کې د **الی** کلمه راغلې ده، مراد دا چې الله تعالی په خپل مخلوق کې د هر یوه بنده متعلق د پنځو خبرو تقدیر په لیکلو سره فارغ شوی دی او د الله تعالی علم تر همدې پنځو خبرو پورې منتهي شوی دی. (المرقات ۱/۳۱۶).

**خلقه**: د تخلیق په معنی سره دی یعنې د هربنده د تخلیق د پنځو کارونو نه فارغ شوی، یعنې په دنیا کې چې کوم شیان په کوم طور راتلونکي دي په ازل کې د هغو فیصله شوې ده په هغو کې او س هیڅ کمی او زیاتی نه شي کېدلی او نه په هغو کې کوم تغیر راتلی شي لهذا د هر انسان په تقدیر کې لیکل شوي دي:

(۱) چې د هغه عمر څومره دی او مرګ به کله ورته راځي، په دې کې د یوې دقیقې (منټ) تبدیلي ممکن نه ده.

(۲) همدارنګه د انسان د ښه او ناکاره اعمالو په باره کې د هغه د پیدا ښت نه مخکې لیکل شوي دي چې د هغه انجام به په خیر باندې وي که په شر به وي، بعضو ویلي چې د **مضجع** نه مراد سکون او قرار دی او د اثر نه مراد حرکت دی، د انسان ټول کیفیات په دې دوو جملو کې راغلي، یا د اثره نه اقدام مراد دی چې په تقدیر کې لیکل شوي دي چې د هغه قدم به چېرته چېرته کېښودل کېږي، آیت ﴿وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوا وَآثَارَهُمْ﴾ په دې باندې دلالت کوي دی.

(۵) همدارنګه د انسان د رزق مسئله په تقدیر کې مخکې لیکل شوې ده چې څومره رزق به هغه ته ورکول کېږي، له کوم کوم ځای به یې ګټي، کم به ورته ملاوېږي که زیات، حلال به وي که حرام هرڅه په تقدیر کې مخکې لیکل شوې دي. (المرقات ۱/۳۱۶).

## په تقدیر کې خبرې مه کوئ

| |
|---|
| (۳۵) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ |
| د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی فرمایي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي چې فرمایل یې |
| مَنْ تَكَلَّمَ فِي شَيْءٍ مِنَ الْقَدَرِ سُئِلَ عَنْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَ مَنْ |
| کوم کس چې د تقدیر په مسئله کې بحث او مباحثه وکړي د قیامت په ورځ به د هغه نه پوښتنه کېږي او کوم |

(۱) أخرجه احمد في المسند: ۵/۱۹۷.

| |
|---|
| لَمْ يَتَكَلَّمْ فِيهِ لَمْ يُسْأَلْ عَنْهُ . (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ)[1]. |
| (کس چې په هغه باندې ایمان راوړ) خاموشي يې غوره کړه هغه دې مواخذې نه وساتل شو. |

**توضیح: من تکلم**: غیر ضروري مباحثه مراد ده ځکه چې د هغې انجام یا قدري دی یا جبري دی یا کفري دی نو ځکه په دې کې د خبرو اترونه منع شوې ده خو چاته چې اعتماد وي او هغه ته د علم پوخ مقام حاصل وي او د تردد نه پاک وي نو دداسې کس د پاره د باطلو ډلو د شکونو او شبهاتو لرې کولو د پاره او د هغو سره د بحث کولو د پاره تر ضروري حده مباحثه روا ده، ترڅو چې حق واضح شي، علماء کرام په دې پوخ مقام باندې وو ځکه يې په علم کلام کې کلام کړی او کتابونه يې تصنيف کړي دي. (المرقات ۱/۳۱۶).

## هغه به کيږي کوم چې په تقدير کې ليکل شوي وي

| |
|---|
| (۳۶) وَ عَنِ ابْنِ الدَّيْلَمِيِّ قَالَ أَتَيْتُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ |
| دابن ديلمي رحمه الله (تابعي) نه روايت دی ويلي دي چې زه دابي بن کعب رضي الله عنه په خدمت کې حاضر شوم |
| فَقُلْتُ لَهُ قَدْ وَقَعَ فِي نَفْسِي شَيْءٌ مِنَ الْقَدَرِ |
| او عرض مې وکړو چې زما په زړه کې د تقدير په باره کې څه شبهات پيدا شوي دي (چې کله ټول شيان د تقدير |
| فَحَدِّثْنِي لَعَلَّ اللهَ |
| دليکلو مطابق دي نو بيا داثواب او عذاب څنګه دی؟) نو په دې باره ته ماته څه راوښايه شايد الله تعالی |
| أَنْ يُذْهِبَهُ مِنْ قَلْبِي فَقَالَ لَوْ أَنَّ اللهَ عَزَّ وَ جَلَّ عَذَّبَ |
| زما زړه د همدې شبهاتو نه پاک کړي (دابې چې واوريدل) هغه وفرمايل: که چيرته الله تعالى په عذاب کې |
| أَهْلَ سَمَاوَاتِهِ وَ أَهْلَ أَرْضِهِ عَذَّبَهُمْ وَ هُوَ غَيْرُ ظَالِمٍ لَهُمْ |
| مبتلا کړي د آسمان او زمکې والا نو هغه په دوي باندې هيڅ قسمه ظلم کوونکی نه دی (يعنې هغه چې |
| وَ لَوْ |
| ځمکې والاو او اهل آسمان ته څومره عذاب ورکړي هغه ته ظالم نه شي ويل کيدی) او که چيرته په هغوی |
| رَحِمَهُمْ كَانَتْ رَحْمَتُهُ خَيْرًا لَهُمْ مِنْ أَعْمَالِهِمْ وَ لَوْ أَنْفَقْتَ مِثْلَ أُحُدٍ |
| باندې خپل رحم وکړي نو د هغه رحمت د هغوی داعمالو نه يقينا بهتر دی، او که چيرته مصرف وکړي داحد د |

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۲۳ رقم الحديث : ۸۱.

ذَهَبًا فِي سَبِيلِ اللهِ مَا قَبِلَهُ اللهُ مِنْكَ حَتّٰى

غره په اندازه سره زرد خدای په لار کې نو ستا دا د خیر عمل د خدای په نزد تر هغه وخته قبول نه دی تر څو چې

تُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ وَ تَعْلَمَ أَنَّ مَا أَصَابَكَ

ته په تقدير باندې کامل اعتقاد او ایمان و نه لرې او په دې پوهه شې چې کوم څه تا ته رسيدونکي دي (هغه

لَمْ يَكُنْ لِيُخْطِئَكَ وَ أَنَّ مَا أَخْطَأَكَ لَمْ يَكُنْ

ایسار یدونکي) او خطا کیدونکي نه وو او کوم څه چې ایسار شوي او تا ته نه دي رسيدلي (پوهه شه چې)

لِيُصِيبَكَ وَ لَوْ مُتَّ عَلٰى غَيْرِ هٰذَا

هغه ستا په مقدر کې نه وو او که چیرته ته په داسې حالت کې مړ شې چې د هغه خلاف دې عقيده وه (یعنې

لَدَخَلْتَ النَّارَ قَالَ

په تقدیر باندې دې کامل اعتقاد نه وو) نو یقیناً دوزخ ته به لاړ شې، ابن دیلمي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې کله

ثُمَّ أَتَيْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ مَسْعُودٍ فَقَالَ مِثْلَ ذٰلِكَ

مې دا بیان واوریدو نو زه د عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شوم نو هغه هم دغه بیان وکړ

قَالَ ثُمَّ أَتَيْتُ حُذَيْفَةَ بْنَ الْيَمَانِ . فَقَالَ مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ أَتَيْتُ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ

بیا د حذیفه بن یمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طرف ته لاړم نو هغه هم داسې وویل، او بیا زه د زید بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت

فَحَدَّثَنِي عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ ذٰلِكَ (رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ)[1].

کې حاضر شوم هغه هم دا شان حدیث د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کړ.

**توضیح** : **شيء من القدر** : یعنې زما په زړه کې د تقدیر په باره کې څه شبهات پیدا شوي دي، چې هر کله هر څه د پخوا نه په مقدر کې لیکل شوي دي نو بیا د ثواب او د عذاب قانون د چا د پاره دی؟. یعنې د دغه اضطرابي حالت کوم چې د پریشانۍ باعث دی اګر که باعث مواخذه نه دی. (المرقات ۱/۳۱۸).

**فحدثني** : یعنې کومه د تسلی والا خبره بیان کړه یا کوم نبوي حدیث بیان کړه. (المرقات ۱/۳۱۸).

**وهو غير ظالم لهم** : ځکه چې ټول کائنات د الله تعالی ملکیت دی نو ځکه په هغو کې د الله تعالی د پاره د

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ٧٥/٥، رقم الحديث: ٤٦٩٩، وأخرجه ابن ماجه ٢٩/١ رقم الحديث: ٧٧، وأحمد في المسند ١٨٩/٥.

تصرف حق حاصل دی او په خپل ملکیت کې هر قسم تصرف کول ظلم نه دی. په دې سره د فرقه قدریه او خوارجو تردید مقصود دی چې دوی هر تصرف د الله تعالی د پاره روا نه ګڼي. د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه نه چې کله همدغه تابعي تپوس وکړه نو هغه ورته دغه حدیث د مرفوع حدیث په طور بیان کړ. (المرقات ۱/۳۱۸)

**ولو رحمهم** : ددې نه معلومه شوه چې د دخول جنت دپاره علت اعمال نه دي. بلکې د خدای تعالی رحمت دی اعمال صرف علامات دي.

**وتعلم** : دا د **توقن** په معنی سره دی یعنې یقین وکړه. (المرقات ۱/۳۱۸).

**لم یکن لیخطئک** : یعنې هغه شی داسې نه وو کوم چې تاته ورسیده نو دا خیال مکوه چې دا ماته د خپل محنت او کوشش له وجې رسیدلی دی، بلکې هغه په تقدیر کې مخکې لیکل شوی وو. ددې حدیث نه معلومه شوه چې د ایمان نه بغیر هیڅ عمل قبول نه دی او انساني محنت او کوشش د تقدیر ماتحت دي. (المرقات ۱/۳۱۹).

## د تقدیر په منکرینو باندې به کاڼي وریږي

| |
|---|
| (۲۷) وَ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ رَجُلًا أَتَى ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَقَالَ إِنَّ |
| د نافع رحمه الله نه روایت دی چې یو کس د حضرت ابن عمر رضی الله عنه په خدمت کې حاضر شو او وې ویل چې |
| فُلَانًا يَقْرَأُ عَلَيْكَ السَّلَامَ فَقَالَ إِنَّهُ بَلَغَنِي أَنَّهُ |
| فلاني کس تاته سلام ویلو حضرت ابن عمر رضی الله عنه وویل: ماته معلومه شوې ده چې هغه کس په دین کې |
| قَدْ أَحْدَثَ فَإِنْ كَانَ قَدْ أَحْدَثَ |
| (کومه) نوې خبره پیدا کړې ده که چیرته په رښتیا هغه په دین کې کومه نوې خبره پیدا کړې وي نو زما د طرفه |
| فَلَا تُقْرِئْهُ مِنِّي السَّلَامَ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ |
| (په جواب) کې هغه ته سلام مه رسوه. ځکه چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي چې فرمایل یې |
| يَكُونُ فِي أُمَّتِي أَوْ فِي هٰذِهِ الْأُمَّةِ خَسْفٌ أَوْ مَسْخٌ أَوْ قَذْفٌ |
| په دې امت کې (د خدای) دردناک عذاب په زمکه کې ننوتل او د صورت مسخ کیدل یا سنګساري ده |

فِي أَهْلِ الْقَدَرِ. وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ[1].

او دا به په اهل قدر (د تقدير په منكرينو) باندې وي. امام ترمذي ويلي دا حديث حسن صحيح او غريب دی

**توضيح: فلا تقرئه مني السلام**: د سلام فضائل او مسائل به انشاء د مشکوة شريف په باب السلام کې راشي، دلته حضرت ابن عمر رضي الله عنه د يو كس د سلام پيغام په جواب كې قاصد ته وويل چې ماته معلومه شوې ده چې د سلام راليږونكي يو شمير نوي نظريات او نوي بدعات پيدا كړي دي، كه چيرته همداسې ده نو زما سلام هغه ته مه وايه، ددې نه معلومه شوه چې د اسلام په دين كې د بدعت پيدا كوونكو ته سلام نكول روا دي، د همدې وجهې فقهاو د اهل بدعتو سره اختلاط د هغوی اكرام او عزت كول مكروه گڼي. (المرقات ۱/۳۱۸).

**او قذف**: يعنې د تقدير په منكرينو باندې د آسمان نه كاڼي را وريږي، د لوط عليه السلام په قوم د لواطت د وجې په هغه قوم باندې د آسمان نه د كاڼو بمباري شوې وه، دلته د تقدير نه د منكرينو په باره كې د كاڼو وريدو ذكر شوی، د كوم نه چې معلوميږي همدا قبيح عمل د تقدير نه په منكرينو كې هم په زياته پيمانه كې موندلی كيږي. (المرقات ۱/۳۲۰).

## د خپلو بچيانو په باره كې د حضرت خديجې رضي الله عنها سوال

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (۳۸) وَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَأَلَتْ خَدِيجَةُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ | | | | | | | |
| د حضرت علي رضي الله عنه نه روايت دی چې حضرت خديجې رضي الله عنها پوښتنه وكړه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه | | | | | | | |
| عَنْ | وَلَدَيْنِ | مَاتَا | لَهَا | فِي | الْجَاهِلِيَّةِ | | |
| د خپلو هغو دوه بچيانو په باره كې كوم چې د جاهليت په زمانه كې (د اسلام نه مخكې) وفات شوي وو چې | | | | | | | |
| فَقَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَ سَلَّمَ | هُمَا فِي النَّارِ |
| هغوی جنتي دي كه دوزخي؟ نبي عليه السلام وفرمايل: هغه دواړه (ماشومان) دوزخي دي حضرت علي رضي الله عنه | | | | | | | |
| فَلَمَّا | رَأَى | الْكَرَاهَةَ | فِي | وَجْهِهَا | | | |
| ويلي دي چې كله نبي عليه السلام د خديجې رضي الله عنها د مخ رنگ (چې د خپلو بچيانو په باره كې دا اوريدل) بدل | | | | | | | |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۹۷، رقم الحديث ۴۰۶۱، وأخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۲۵۰، رقم الحديث: ۴۰۶۱، وأخرج أبوداود ونحوه ۵/۲۰، رقم الحديث: ۴۶۱۳، وأحمد في المسند ۲/۱۳۶

قَالَ لَوْ رَأَيْتِ مَكَانَهُمَا ،

شو (هغه يې خپه وليدله) نو وې فرمايل: که چيرته ته ددې (ماشومانو) ځای او د هغوی حال وګورې

لَأَبْغَضْتِهِمَا

چې هغوی د خدای د رحمت نه څومره لرې دي نو ستا نه د هغو ماشومانو نه نفرت وشي. بيا خديجې رضي الله عنها

قَالَتْ يَا رَسُولَ اللهِ فَوَلَدِي مِنْكَ

عرض وکړو يا رسول الله! بنه زما هغه اولاد کوم چې د تاسو نه پيدا شوی دی (يعنې قاسم او عبد الله) رسول

قَالَ فِي الْجَنَّةِ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِنَّ الْمُؤْمِنِينَ وَ

الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: دوی په جنت کې دي، ددې نه وروسته نبي علیه السلام وفرمايل: چې مؤمنان او

أَوْلَادَهُمْ فِي الْجَنَّةِ وَ إِنَّ الْمُشْرِكِينَ وَ أَوْلَادَهُمْ فِي النَّارِ ثُمَّ قَالَ

د دوی اولادونه په جنت کې دي، مشرکين او د دوی اولادونه په دوزخ کې دي، ددې نه وروسته تلاوت کړو

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ﴿وَ الَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم

رسول الله صلی الله علیه وسلم دا آيت کريمه (ترجمه) کوم خلک چې ايمان راوړي او د هغوی اولادونه د دوی اطاعت

بِإِيمَانٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ﴾. (رَوَاهُ أَحْمَدُ)[1].

وکړي نو مونږ به د دوی اولادونه په جنت کې د دوی سره يو ځای کړو.

**توضيح: عن ولدين**: حضرت خديجه رضي الله عنها د خپلو هغو دوو ماشومانو په باره کې پوښتنه وکړه کوم يې چې د مخکني خاوند نه پيدا شوي وو او په جاهليت کې مړه شوي وو، رسول الله صلی الله علیه وسلم په جواب کې وفرمايل: هغه دواړه په دوزخ کې دي، په دې روايت سره هغو خلکو استدلال کړی کومو چې ويلي دي چې اولاد د خپلو والدينو تابع وي، دا مسئله تيره شوې ده. (المرقات ۱/۳۲۱).

**لو رأيت مكانهما**: يعنې د هغو بچيانو مستقبل که تا ليدلی وی او د هغو عند الله مبغوض کيدل تا ته معلوم وی نو تا به په خپله هغوی مبغوض ګرځولي وو، ځکه چې د هغوی مستقبل د تقدير په حواله انتهائي تياره او ويروونکی وو. (المرقات ۱/۳۲۱).

**واتبعتهم ذريتهم**: رسول الله صلی الله علیه وسلم د استشهاد په طور دا آيت کريمه تلاوت کړ چې د مسلمانانو

---

(۱) احمد في المسند ۱/۱۳۴.

سره به د هغو هغه اولاو نه یو ځای کیږي کومو بچیانو چې د والدینو اطاعت وکړه ترڅو چې په جنت کې والدینو ته کامله خوشحالي ترلاسه شي، او د مشرکینو اولاد به په دوزخ کې د هغو سره یو ځای شي ترڅو چې کفار په دوزخ کې کامل غم ترلاسه کړي، اوس سوال دا دی چې د ښځې او بچیانو په دې یو ځای کیدو کې خو د الله تعالی رحمت او شفقت د کمال درجې دی لیکن غیر نبي د نبي مقام ته څنګه رسیدی شي مثلا د انبیاء کرامو زوجات محترمې او د هغوی اولاد ته برابره درجه څنګه حاصلیږي؟ ددې جواب دا دی چې دالله په رحمت سره درجات لوړیږي، مګر په خوند (لذت) او استلذاذ کې فرق وي مثلا حضرت عائشې رضي الله عنها د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په خوراک کې هغه خوند (لذت) نه موندلو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د نبوت د درجې د وجهې حاصل شوی دی. (المرقات ۱/۳۲۲).

## حضرت آدم علیه السلام حضرت داؤد علیه السلام ته خپل څه عمر ور کړی دی

| |
|---|
| ﴿۳۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا خَلَقَ اللهُ آدَمَ |
| دابو هریره رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې الله تعالی آدم علیه السلام پیدا |
| مَسَحَ ظَهْرَهُ فَسَقَطَ عَنْ ظَهْرِهِ كُلُّ |
| کړنو د هغه په شا یې لاس ووهه (یعني فرښتې ته یې د لاس تیرولو حکم وکړ) لهذا د هغه د شا نه هغه ټول |
| نَسَمَةٍ هُوَ خَالِقُهَا مِنْ ذُرِّيَّتِهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ |
| روحونه وتلې د کومو چې د آدم علیه السلام په اولاده کې الله تعالی ترقیامته پورې پیدا کوونکی وو او په هغو |
| وَجَعَلَ بَيْنَ عَيْنَيْ كُلِّ إِنْسَانٍ مِنْهُمْ وَبِيصًا مِنْ نُورٍ ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى آدَمَ |
| کې یې د هر یو کس د دواړو سترګو په منځ کې د نور ځلا کینبوده بیا یې هغه ټول د آدم علیه السلام پر وړاندې مخامخ |
| فَقَالَ أَيْ رَبِّ مَنْ هَؤُلَاءِ فَقَالَ |
| ودرول (هغه یې چې ټول ولیدل) آدم علیه السلام پوښتنه وکړه پروردګاره! دا څوک دی؟ پرودرګار وفرمایل |
| ذُرِّيَّتُكَ فَرَأَى رَجُلًا مِنْهُمْ فَأَعْجَبَهُ وَبِيصُ مَا بَيْنَ عَيْنَيْهِ |
| دا ټول ستا اولاد دي آدم علیه السلام په هغو کې یو کس ولید د کوم د سترګو په منځ کې چې غیر معمولي چمک و |
| قَالَ أَيْ رَبِّ مَنْ هٰذَا قَالَ دَاوُدُ |
| ده ته ډیر ښائسته ښکاره شو پوښتنه یې وکړه پرودرګاره دا څوک دی؟ ورته وې فرمایل (داؤد علیه السلام) |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | رَبِّ | كَمْ | جَعَلْتَ | عُمُرَهُ | قَالَ | سِتِّينَ | سَنَةً |

دی،آدم عَلَیۡهِالسَّلَامُ عرض وکړو :زما پروردګاره !تا ده ته څومره عمر مقرر کړی؟ ورته وې فرمایل: شپیته کلونه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | رَبِّ | زِدْهُ | مِنْ | عُمُرِي | أَرْبَعِينَ | سَنَةً |

حضرت آدم عَلَیۡهِالسَّلَامُ عرض وکړو :زما پرودرګاره !دهغه په عمر کې زما د عمر نه څلويښت کلونه زیات کړه

قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَلَمَّا انْقَضَى عُمُرُ آدَمَ إِلَّا أَرْبَعِينَ

(راوي ويلي چې)نبي عَلَیۡهِالسَّلَامُ وفرمايل: کله چې دآدم عَلَیۡهِالسَّلَامُ په عمر کې څلويښت کلونه پاتې شول نو

جَاءَهُ مَلَكُ الْمَوْتِ فَقَالَ آدَمُ أَوَ لَمْ يَبْقَ مِنْ عُمُرِي أَرْبَعُونَ سَنَةً

دمرګ فرښته ورته راغله،آدم عَلَیۡهِالسَّلَامُ ورته وویل: آیا ترا وسه زما په عمر کې څلويښت کلونه لا پاتې نه دي؟

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | أَوَ | لَمْ | تُعْطِهَا | ابْنَكَ | دَاوُدَ | فَجَحَدَ |

ملک الموت وویل: آیا تا د خپل عمر نه څلويښت کلونه داؤد عَلَیۡهِالسَّلَامُ ته نه وو ورکړي ؟ نو انکار وکړو

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| آدَمُ | فَجَحَدَتْ | ذُرِّيَّتُهُ | وَ | نَسِيَ | آدَمُ | فَأَكَلَ | مِنَ | الشَّجَرَةِ |

آدم عَلَیۡهِالسَّلَامُ د دې نه او د هغه اولاد به هم انکار کوي او د آدم عَلَیۡهِالسَّلَامُ خپل عهد هیر شو هغه ممنوعه ونه یې وخوړه

فَنَسِيَتْ ذُرِّيَّتُهُ وَ خَطَأَ وَ خَطَأَتْ ذُرِّيَّتُهُ . ( رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1].

او د هغه اولاد به هم هیرول کوي، او حضرت آدم عَلَیۡهِالسَّلَامُ خطا کړې وه او د هغه اولاده به هم خطا کوي.

**توضیح** : **وبیصًا : ای لمعانا وشعاعا من نور**، د نور د دغه چمک نه د هدایت هغه استعداد مراد دی کوم چې الله تعالی ټولو انسانانو ته ورکړی دی، په حضرت داؤد عَلَیۡهِالسَّلَامُ کې دغه نور د زیات چمک او پړق سره روښانه وو، اوس سوال دا دی چې د استعداد دا رڼائي که چیرته په حضرت داؤد عَلَیۡهِالسَّلَامُ کې زیاته وه نو بیا د رسول الله صَلَّىٰاللّٰهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ متعلق څه ویل کیدی شي.؟ د دې جواب دادی چې دا یو جزئي فضیلت وو او رسول الله صَلَّىٰاللّٰهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ ته کلي فضیلت حاصل دی، دويم جواب دادی چې د کلام د محاورې دستور دی چې متکلم د خپل کلام نه خارج او مستثنی شوی دی نو رسول الله صَلَّىٰاللّٰهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ د نورو د رڼائي ذکر کړی دی په خپله د ده صَلَّىٰاللّٰهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ رڼائي اعلی او ارفع شوه، مګر هغه د بحث محل نه وو نو ځکه د هغې د ذکر کولو ضرورت نه وو. (المرقات ۱/۳۲۳).

---

(۱) أخرجه الترمذي ۲٤۹/۵ ، رقم الحديث : ۳۰۷٦.

**قال داؤد**: يعني داستعداد دغه رښائي د حضرت داؤد عَلَيْهِالسَّلَام په تندي كې د ټولو نه زياته وه. نو حضرت آدم عَلَيْهِالسَّلَام هغه خوښ كړ او د هغه په باره كې يې سوال وكړ. په جواب كې الله تعالى وفرمايل چې دا داؤد دی، په حضرت آدم عَلَيْهِالسَّلَام او حضرت داؤد عَلَيْهِالسَّلَام كې د خلافت ارضي قدر مشترك مناسبت موجود وو او دوی دواړه د خليفه په لقب سره داسې ياد شوي دي ﴿يَا دَاوُودُ إِنَّا جَعَلْنَاكَ خَلِيفَةً فِي الْأَرْضِ﴾ او ﴿إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾ د همدې مناسبت د وجهې د حضرت آدم عَلَيْهِالسَّلَام سترګې په حضرت داؤد عَلَيْهِالسَّلَام باندې ولګيدې. (المرقات ۱/۳۲۳).

**اربعين سنة**: په دغه حديث كې د حضرت آدم عَلَيْهِالسَّلَام متعلق راغلي چې ده د خپل عمر نه څلويښت كلونه حضرت داؤد عَلَيْهِالسَّلَام ته وركړي وو، او د حضرت داؤد عَلَيْهِالسَّلَام عمر شپيته كلونه وو، ليكن د مشكوة شريف په دويم جلد باب السلام دريم فصل كې د حضرت ابو هريره رَضِيَاللّٰهُعَنْهُ روايت داسې راغلې دی چې د حضرت داؤد عَلَيْهِالسَّلَام عمر څلويښت كاله وو او حضرت آدم عَلَيْهِالسَّلَام هغه ته شپيته كلونه وركړل نو د دواړو حديثونو په مينځ ښكاره او واضح تعارض او تضاد دی؟. (المرقات ۱/۳۲۴).

د دې په جواب كې علماؤ ليكلي دي چې ذكر شوی حديث او د هغه عدد صحيح دی او په دويم جلد كې د كوم راوي نه سهوه شوې ده، هغه څلويښت د شپيتو پر ځای ويلي دي او شپيته يې د څلويښتو پر ځای بيان كړي دي.

**فجحد آدم**: دا جحود عنادي نه وو بلكې جحود نسياني وو، چونكه د عالم ارواح معامله وه نو د زمانې په تيريدو سره هير شول، باقي دا خبره هم د غور قابل ده چې دا معامله د عالم ارواح وه اوس په عالم شهود كې كه چيرته كوم كس خپل عمر بل چا ته وركول وغواړي نو دا ناروا هم ده او ناممكن هم ده، ځكه چې د عمر تعين او د مرګ تعين دا د تكويني امورو نه دي په هغو كې هيچاته د مداخلې كولو اجازه نشته.

**نكته**: د حضرت آدم عَلَيْهِالسَّلَام نه وروسته په انبياء كرامو عَلَيْهِمُالسَّلَام كې نبوت او خلافت الله تعالى جدا جدا ساتلي وو چې څوك به نبي شو هغه به خليفه كيدی نه شو او چې څوك به خليفه شو هغه به نبي كيدی نه شو. الله تعالى نبوت او خلافت د آدم عَلَيْهِالسَّلَام نه وروسته په حضرت داؤد عَلَيْهِالسَّلَام كې جمع كړي وو. (المرقات ۱/۳۲۴).

## د حضرت آدم عَلَيْهِالسَّلَام اولاد

| |
|---|
| (۲۰) وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَلَقَ اللهُ آدَمَ حِينَ خَلَقَهُ |
| دابو درداء رَضِيَاللّٰهُعَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّىاللّٰهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ وفرمايل كله چې الله تعالى آدم عَلَيْهِالسَّلَام پيدا |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَضَرَبَ | كَتِفَهُ | الْيُمْنَى | فَأَخْرَجَ | ذُرِّيَّةً | بَيْضَاءَ |

کړونو دهغه په ښي اوږه باندې يې لاس د قدرت وواهه (يا يې د وهلو حکم وکړ) او د هغه نه سپين اولاد راووت

كَأَنَّهُمُ الذَّرُّ وَ ضَرَبَ كَتِفَهُ الْيُسْرَى فَأَخْرَجَ ذُرِّيَّةً سَوْدَاءَ كَأَنَّهُمُ الْحُمَمُ

ګويا چې هغه ميږيان دي بيا يې په چپه اوږه باندې لاس ووهلو د هغه نه تور اولاد راووت ګويا چې هغه سکاره

فَقَالَ لِلَّذِي فِي يَمِينِهِ إِلَى الْجَنَّةِ وَلَا أُبَالِي وَ

دي بيا الله تعالى د ښي طرف اولاد په باره کې وفرمايل چې دا جنتي دي او ما ته د دې هيڅ پروا نشته او

قَالَ لِلَّذِي فِي كَتِفِهِ الْيُسْرَى إِلَى النَّارِ وَلَا أُبَالِي. (رَوَاهُ أَحْمَدُ)[1].

د آدم عَلَيْهِ السَّلَام د چپ طرف اولاد په باره کې يې وفرمايل چې دا دوزخي دي او ما ته د دې هيڅ پروا نشته.

**توضيح : فضرب على كتفه** : دا د رباني تجلياتو د القاء يو صورت وو لکه د لمر پلوشې چې په کوم شي باندې ولوېږي نو د هغو اثر وي.

**بيضاء** : دا سپينوالي او دا رڼائي د ايمان نور او د پوره استعداد نښه وه چې دنيا ته د راتلو نه وروسته به دغه کس د ايمان نور خپلوي او په هدايت به راځي، د دې برعکس د ظلمت او توروالي پلوشې وې کومې چې د کفر نښانې وې چې دنيا ته له راتلو وروسته به دا کس په خپل اختيار سره کفر، ظلمت او ګمراهي کې لوېږي، لهذا دغه دواړه تصويرونه په عالم ارواح کې د ايمان او کفر نښانې جوړې شوې. (المرقات ۱/۳۲۴).

**فقال** : دا د اشار په معنى سره دى. **الى الجنة** : معلومه شوه چې د الله په ذمه باندې هيڅ شي لازم او واجب نه دى، او نه کوم کس د الله تعالى د کوم فعل د مقاصدو او اغراضو په باره کې سوال کولى شي، هغه بې نيازه دى، د يو چا دوزخ ته په تلو سره هغه ته ويره نشته، او نه د يو چا جنت ته په تلو سره د هغه کوم غرض او مطلب تړل شوى دى، بس هغه (**فعال لما يريد**) دى. (المرقات ۱/۳۲۶).

**الذر** : **بضم الذال وفتحها** وړو ميږانو ته ويل کيږي، دا تشبيه يا په وړوکوالي کې ده يا په سپينوالي او صفا والى کې ده. (المرقات ۱/۳۲۵).

**الحمم** : جمع د **حممة** ده د تورې کويلې (سکارو) په معنى سره ده (يعني د لرګي د سوځيدو نه وروسته

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۵/۴۴۱.

پاتې نوته، یا د غوږ نه رواتلې توره ماده). (المرقات ۱/۳۲۵).

## د تقدیر په معامله کې ویره په کار ده

(۴۱) وَ عَنْ أَبِي نَضْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَالُ لَهُ

د ابو نضره رَحِمَهُ اللهُ نه روایت دی چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صحابه کرامو نه یو کس د کوم نوم چې

أَبُو عَبْدِ اللهِ دَخَلَ عَلَيْهِ أَصْحَابُهُ يَعُودُونَهُ وَ هُوَ يَبْكِي

ابو عبد الله ؤ هغه ته د هغه دوست د هغه د پوښتنې د پاره ورغلو هغه ولیده چې ابو عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ژړلې وو

فَقَالُوا لَهُ مَا يُبْكِيكَ أَلَمْ يَقُلْ لَكَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

هغه وویل: ته کوم شي ژړا ته مجبور کړی یې، تا ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا ارشاد نه وو فرمایلی چې

خُذْ مِنْ شَارِبِكَ ثُمَّ أَقِرَّهُ حَتَّى

ته د خپلو شونډو (بریتو) وېښتان پرې کوه او په دې باندې قائم اوسه، تر دې چې ته د ما سره په (جنت کې)

تَلْقَانِي قَالَ بَلَى وَ لَكِنْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ

ملاقات وکړې، ابو عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل آو لیکن ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دا هم آوریدلي دي چې فرمایل یې:

إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ قَبَضَ بِيَمِينِهِ قَبْضَةً وَ أُخْرَى بِالْيَدِ الْأُخْرَى وَ قَالَ هٰذِهِ

الله تعالی په خپل ښي لاس کې یو جماعت ونیوه او بل یې په بل لاس کې ونیوه او وې فرمایل: چې دا (د ښي

لِهٰذِهِ وَ هٰذِهِ لِهٰذِهِ وَلَا أُبَالِي

لاس جماعت) د جنت د پاره دی او د چپ لاس جماعت د دوزخ د پاره دی او ما ته د دې پروا نشته، دا یې چې

وَلَا أَدْرِي فِي أَيِّ الْقَبْضَتَيْنِ أَنَا. (رَوَاهُ أَحْمَدُ)(1).

وویل ابو عبد الله وویل زه نه پوهیږم چې زه د کوم طرف نه یم (د ښي لاس په ډله کې یم او که د چپ لاس په ډله کې).

**توضیح**: **ثم اقره**: یعنې د شونډو وېښتان پرې کړه په دې باندې قائم دائم اوسه، معلومه شوه چې په سنت باندې قائم دائم اوسیدل ډیر مفید دي اګر که معمولي سنت ولې نه وي، او د سنت نه اعراض کول د زندیقیت طرف ته بیول کوي. (طیبي) (الکاشف ۱/۲۹۷)

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۵/۶۸

**حتی تلقاني**: يعنې چې د ما سره ستا ملاقات وشي په حوض کوثر باندې يا په کوم بل ځای باندې، په دې جمله کې د دخول جنت بشارت دی ځکه چې د کافرانو سره د رسول الله ﷺ ملاقات نه شي کيدی. (المرقات ۱/۳۲۷).

**ولا ادري**: يعنې زه نه پوهيږم چې زه له کومې دلې يم نو ځکه ژاړم، دا د (الايمان بين الخوف والرجاء) نقشه ده. (المرقات ۱/۳۲۷).

**مطلب**: د دغه حديث مطلب او خلاصه دا ده چې ابو عبدالله رضي الله عنه يو صحابي وو، هغه ناروغه شو، نور حضرات د هغه د پوښتنې دپاره ورغلل نو هغه ژړل، هغوی د ده په ژړلو باندې په تعجب کولو سره وويل چې ته ولې ژاړې سره ددې چې تاسو ته رسول الله ﷺ د جنت زيرې درکړی وو؟ په دې باندې صحابي قيصه واورېله او ددوه ډلو خبره يې بيان کړه او د پريشانۍ وجه يې وښودله چې (الايمان بين الخوف والرجاء) کې بې خوف نه شي کيدلی. (المرقات ۱/۳۲۷).

**سوال**: اشکال دادی چې کله د نبي عليه السلام زيری هغه ته ورکړی شو نو بيا ژړا او په هغه زيري کې شک کولو ته څه ضرورت وو؟.

**جواب**: ډيره ممکنه ده چې د ده په دې وخت کې همدا بشارت هير شوی وي، مګر ددې نه بهتر جواب دا دی چې الله تعالی قادر مطلق او مختار على العموم بادشاه دی، د هغه وعدې او تمام معاهدې له شک نه بغير رښتيا دي ليکن هغه د کوم شي پابند نه دی او نه کوم شی په هغه باندې واجب العمل دی، د هغه احسان په خپل ځای مګر د هغه جلال شان جبروت او کبريائي داسې شی دی کوم چې هر فرد په هيبت کې اچولی دی، صحابي د الله تعالی همدې بې نيازۍ طرف ته اشاره وکړه. (المرقات ۱/۳۲۷).

## د عهد أَلَسْتُ قيصه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (۲۲) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَخَذَ اللهُ الْمِيثَاقَ | | | | | | | | |
| ابن عباس رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت کړی چې فرمايل يې: الله تعالی واخيسته وعده د | | | | | | | | |
| مَنْ | ظَهْرِ | آدَمَ | بِنَعْمَانَ | يَعْنِي | عَرَفَةَ | فَأَخْرَجَ | مِنْ | صُلْبِهِ |
| آدم عليه السلام د شا نه په نعمان کې يعنې د عرفات ميدان سره نزدې نو را وويستو د شا د آدم عليه السلام نه دده | | | | | | | | |
| كُلَّ | ذُرِّيَّةٍ | ذَرَأَهَا | فَنَثَرَهُمْ | بَيْنَ | يَدَيْهِ | كَالذَّرِّ | | |
| ټول اولاد چې د ازل نه تر ابد پورې پيدا کول وو او هغوی ټول د ميږيانو په شان د آدم عليه السلام پروراندې خواره | | | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | كَلَّمَهُمْ | قِبَلًا | قَالَ | أَلَسْتُ | بِرَبِّكُمْ |

شول، بیا خدای تعالی د هغو سره مخامخ خبرې وکړې او وې فرمایل: آیا زه ستاسو رب نه یم؟ د آدم عَلَیْهِ السَّلَامُ

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَالُوا | بَلَى | شَهِدْنَا | أَنْ |

اولادو ویل: بیشکه ته زمونږ رب یې بیا خدای تعالی وفرمایل: د غه شهادت ما د تاسو نه د دې د پاره اخیستی

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تَقُولُوا | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | إِنَّا | كُنَّا | عَنْ | هَذَا | غَافِلِينَ | أَوْ | تَقُولُوا |

دی چې هسې نه تاسو د قیامت په ورځ داسې ونه وایې چې مونږ د دې نه ناخبره او غافل یو یا تاسو دا اووایی

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّمَا | أَشْرَكَ | آبَاؤُنَا | مِنْ | قَبْلُ | وَ | كُنَّا | ذُرِّيَّةً | مِنْ | بَعْدِهِمْ |

چې زمونږ پلار نیکه زمونږ نه مخکې شرک کړی وو، او مونږ خو د هغو اولاده وو، مونږ د هغو اطاعت کړی

أَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُونَ. (رَوَاهُ أَحْمَدُ)[1].

نو د باطل پرستو د اعمالو په سبب مونږ هلاکولی شو.

**توضیح**: **بنعمان**: علامه جوهري رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې نعمان د نون په فتحې سره د یوې کندې نوم دی کومه چې له طائف نه عرفات ته د تلو په لار کې واقع ده، د قاموس صاحب لیکلي دي چې نعمان د عرفات شاته د یوې کندې نوم دی هغې ته نعمان الاراک ویل شوي دي. (المرقات ۱/۳۲۸).
لکه یو شاعر وایي:

**اما و الراقصات بذات عرق ۞ و من صلی بنعمان الاراک**

ابن اثیر رَحِمَهُ اللهُ ویلي چې نعمان د عرفات سره د یو غر نوم دی کوم ته چې نعمان سحاب ویل کیږي، د همدې احتمالاتو په نظر کې نیولو سره په حدیث کې د تعین د پاره أي عرفة ویل کیږي.

**ذرأ**: د خلق په معنی سره دی. **لذر**: خورولو ته ویل کیږي.

**قبلا**: مخامخ، د دې نه معلومه شوه چې دا واقعه کوم تمثیل یا تشبیه نه ده، بلکې دا واقعي او حقیقي امر دی، د قبلا الفاظ په هغې باندې دال دي. (المرقات ۱/۳۲۸).

**قالوا بلی شاهدنا**: یعنې ارواحو د ربوبیت اقرار وکړو بیا الله تعالی وفرمایل چې دا د ربوبیت اقرار او شهادت د دې د پاره واخیستل شو چې د قیامت په ورځ دا ونه وایی چې مونږ ناخبره وو دا توجیه او مفهوم

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۱/۲۷۲.

په هغه صورت کې اخيستل کيږي کله چې **شهدنا** هم مقوله د **قالوا بلى** شي (**اى قالوا بلى وقالوا شهدنا**). (المرقات ۱/۳۲۸).

دويم احتمال دا دى چې شهدنا استينساف شي نوى کلام شي او د الله تعالى کلام شي دکوم مفهوم به چې داسې شي چې ارواحو د ربوبيت اقرار وکړ او بيا مونږ په هغه د ربوبيت په اقرار باندې ګواه جوړ شولو (**ان تقولوا اى لئلا تقولوا يوم القيامة انا کنا عن هذا غافلين**). (المرقات ۱/۳۲۸).

## غريب او مالدار ولې؟ د اقرار نه وروسته انکار ولې؟

**﴿۴۲﴾ وَ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي قَوْلِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ**

د حضرت ابى بن کعب رضی الله عنه نه روايت دى چې دا آيت (ترجمه) کله چې ستاسو پروردګار د آدم اولاد د

**ظُهُوْرِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ قَالَ جَمَعَهُمْ فَجَعَلَهُمْ أَزْوَاجًا**

هغه د شا نه راوويستلو) په تفسير کې ويلي دي چې الله تعالى د آدم اولاد جمع کړ او هغه يې جوړه جوړه کړل

**ثُمَّ صَوَّرَهُمْ**

(يعنې بعضو ته يې د مالدارى او بعضو ته يې د غربت اراده وکړه) بيا يې هغو ته شکل او صورت ورکړل

**فَاسْتَنْطَقَهُمْ فَتَكَلَّمُوا ثُمَّ أَخَذَ عَلَيْهِمُ الْعَهْدَ وَ الْمِيثَاقَ وَ**

او بيا يې ګويائي ورکړه او هغوى خبرې وکړې بيا يې د هغو سره عهد او پيمان وکړو او بيا يې دوى په خپل

**أَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى**

ځان باندې ګواه جوړ کړل پوښتنه يې ترې وکړه چې زه ستاسو رب نه يم؟ د آدم اولادو ويل: بيشکه! ته زمونږ

**قَالَ فَإِنِّي أُشْهِدُ عَلَيْكُمُ السَّمٰوَاتِ السَّبْعَ وَالْأَرَضِينَ السَّبْعَ وَأُشْهِدُ عَلَيْكُمْ أَبَاكُمْ**

رب يې، خداى تعالى وفرمايل زه اوه آسمانونه او اوه زمکې ستاسو پروړاندې ګواه جوړوم او ستاسو پلار

**آدَمَ أَنْ تَقُوْلُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَمْ نَعْلَمْ بِهٰذَا**

آدم شاهد جوړوم (ځکه چې د قيامت په ورځ) هسې نه تاسو داسې ونه وايى چې مونږ د دې نه ناخبره وو (دا

**اعْلَمُوا أَنَّهُ لَا إِلٰهَ غَيْرِي وَلَا رَبَّ غَيْرِي**

وخت) تاسو په ښه شان پوهه شئ چې نه د ما نه بغير کوم معبود شته دى او نه د ما نه بغير کوم پروردګار شته

**وَلَا تُشْرِكُوا بِي شَيْئًا إِنِّي سَأُرْسِلُ إِلَيْكُمْ رُسُلِي**

دى (او خبردار) څوک د ما سره شريک نه کړئ، زه به تاسو ته په نږدې وخت کې رسول وليږم کوم به چې تاسو

يُذَكِّرُونَكُمْ عَهْدِي وَ مِيثَاقِي وَ أُنْزِلُ عَلَيْكُمْ كُتُبِي قَالُوا

تهٔ زما عهد او پیمان درپه یاد کړي او په تاسو به خپل کتابونه نازل کړم (دا یې چې واوریدل) دآدم اولاد وویل

شَهِدْنَا بِأَنَّكَ رَبُّنَا وَ إِلٰهُنَا لَا رَبَّ لَنَا

مونږ ددې خبرې ګواهي ورکوو چې ته زمونږ رب یې او ته زمونږ معبود یې ستا نه بغیر زمونږ هیڅ پروردګار

غَيْرُكَ وَلَا إِلٰهَ لَنَا غَيْرُكَ فَأَقَرُّوا بِذٰلِكَ

نشته. او نه د ستا نه بغیر زمونږ کوم معبود شته دی، لهذا دآدم ټولې اولادې ددې اقرار وکړ او آدم عَلَيْهِ السَّلَام

وَ رُفِعَ عَلَيْهِمْ آدَمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ

یې په دوی باندې لوړ کړ (خپلې نظرې پورته کړ) چې دا منظرې ولیدو آدم عَلَيْهِ السَّلَام وویل چې په دوی کې

فَرَأَى الْغَنِيَّ وَ الْفَقِيرَ وَ حَسَنَ الصُّورَةِ وَ دُونَ ذٰلِكَ

خوا میران هم شته او فقیران هم شته، ښکلې هم په کې شته او بد رنګه هم په کې شته (دا یې چې ولیدل) عرض

فَقَالَ رَبِّ لَوْلَا سَوَّيْتَ بَيْنَ عِبَادِكَ قَالَ إِنِّي أَحْبَبْتُ أَنْ

یې وکړو پروردګاره! ټول بندګان دې یو رنګ ولې نه دې پیدا کړي؟ الله تعالی وفرمایل: زه دا خوښوم چې

أُشْكَرَ وَ رَأَى الْأَنْبِيَاءَ فِيهِمْ مِثْلَ السُّرُجِ عَلَيْهِمُ

زما بندګان زما شکر اداء کړي بیا آدم عَلَيْهِ السَّلَام انبیاؤ عَلَيْهِمُ السَّلَام ته وکتل کوم چې د چراغانو په شان پرې قید ونکي

النُّورُ خُصُّوا بِمِيثَاقٍ آخَرَ فِي الرِّسَالَةِ وَ النُّبُوَّةِ

وو او نور پرې راتاوشوي وو ددوی نه یې په خصوصیت سره د رسالت او نبوت عهد او پیمان واخیست لکه

وَ هُوَ قَوْلُهُ تَبَارَكَ وَ تَعَالَى وَ إِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ

چې د الله تعالی قول دی (ترجمه) او کله چې مونږ د پیغمبرانو نه د هغوی عهد او پیمان واخیست او د تاسو نه

إِلَى قَوْلِهِ وَ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ كَانَ فِي تِلْكَ الْأَرْوَاحِ

او د نوح نه او د ابراهیم نه د موسی او عیسی بن مریم نه هم عهد او پیمان واخیستل شو د هغه ډ روحونو په مینځ

فَأَرْسَلَهُ إِلَى مَرْيَمَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ

کې عیسی عَلَيْهِ السَّلَام هم وو. لهذا د هغه روح الله تعالی د جبریل عَلَيْهِ السَّلَام په ذریعه مریم عَلَيْهَا السَّلَام ته ورساوه

| |
|---|
| فَحُدِّثَ عَنْ أُبَيٍّ أَنَّهُ دَخَلَ مِنْ فِيهَا . (رَوَاهُ أَحْمَدُ)[1]. |
| ابن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان کړی دی چې دا روح مریم عَلَيْهَا السَّلَام ته د خولې د طرفه د هغې بدن ته داخل شو. |

**توضیح**: **خصوا بمیثاق آخر**: دا عهد او پیمان او دا میثاق میثاق نبوت وو کوم چې د خاص خدمت یعنې د تبلیغ رسالت دپاره واخیستل شو. (المرقات ۱/۳۳۳).

**فرأى الغني والفقير**: آدم عَلَيْهِ السَّلَام په تعجب کې شو چې دده په اولاد کې دومره فرق ولې دی چې یو سرمایه دار دویم دوه‌دی غوښتلو ته محتاج لهذا آدم عَلَيْهِ السَّلَام د دې د سبب پوښتنه وکړه. (المرقات ۱/۳۳۲).

## غر کرځي خو عادت نه پرېښودل کېږي

| |
|---|
| ﴿۴۴﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې مونږ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام سره ناست وو چې په راتلونکو پېښېدونکو |
| نَتَذَاكَرُ مَا يَكُونُ . إِذْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَمِعْتُمْ بِجَبَلٍ |
| مو مجلس کولو ، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (زمونږ خبرې واورېدې) وې فرمایل : کله چې تاسو واورئ |
| زَالَ عَنْ مَكَانِهِ فَصَدِّقُوهُ وَإِذَا سَمِعْتُمْ بِرَجُلٍ تَغَيَّرَ عَنْ خُلُقِهِ |
| چې کوم غر د خپل ځای نه تللی نو دا رښتیا وګڼئ لیکن کله چې تاسو دا واورئ چې د کوم کس عادت بدل |
| فَلَا تُصَدِّقُوا بِهِ فَإِنَّهُ يَصِيرُ إِلَى مَا جُبِلَ عَلَيْهِ . (رَوَاهُ أَحْمَدُ)[2]. |
| شوی نو په دې اعتبار مه کوئ ځکه چې انسان د هغه شي طرف ته ورځي په کوم باندې چې هغه پیدا شوی. |

**توضیح**: **اذا سمعتم**: د دې حدیث نه معلومه شوه چې د غره د خپل ځای نه منتقل کېدل او زائل کېدل ممکن دي په دې شرط چې د هغه متعلق یو څوک ووایي او څوک د انکار قرینه هم ونه کړي نو وې منه. لهذا د بعضو غربي ملکونو یوشمېر غرونه د خپل ځای نه ښوېدلي دي. د دې په مقابل کې که چېرته یو څوک تاسو ته ووایي چې فلانی کس د خپل عادت نه ګرځېدلی دی نو د هغه تصدیق مه کوئ ، ځکه چې د طبعیت او عادت نه ګرځېدل ممکن نه دي. هو ظاهري عارضي بدلون راتلی شي. مګر حقیقي بدلون نه شي په کې راتلی. (**جبل گردد جبلت نه گردد**). (المرقات ۱/۳۳۴).

(۱) اخرجه احمد في المسند ۵ ۱۳۵
(۲) اخرجه احمد في المسند ٦ ٤٤٣

(۲۵) وَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ !
دام سلمه رضي الله عنها نه روایت دی دا وایي چې ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړو چې یا رسول الله! تا
لَا يَزَالُ يُصِيبُكَ فِي كُلِّ عَامٍ وَجَعٌ مِنَ الشَّاةِ الْمَسْمُومَةِ الَّتِي أَكَلْتَ
ته هر کال تکلیف دررسي د ګډ د هغه غوښې نه چې په زهرو ککړه شوې وه چې تا خوړلې وه (کومه چې په
قَالَ مَا أَصَابَنِي شَيْءٌ مِنْهَا
خیبر کې یوې یهودی ورباندې خوړلې وه) نبي علیه السلام وفرمایل: کوم تکلیف یا ناروغي چې ما ته رسیدلې
إِلَّا وَ هُوَ مَكْتُوبٌ عَلَيَّ وَ آدَمُ فِي طِينَتِهِ (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ)[1].
ده هغه زما د پاره هغه وخت لیکل شوي وو کله چې آدم علیه السلام په خاورو کې دننه وو (یعني زما په تقدیر
کې هغه وخت لیکل شوي وو کله چې آدم علیه السلام د خپل تخلیق په مراحلو کې وو).

❀❀❀❀❀❀❀❀❀❀❀❀❀❀❀❀❀

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۱۷۴، رقم الحديث: ۳۵۴۶

۱۳ محرم الحرام ۱۴۰۹هـ

# بَابُ إِثْبَاتِ عَذَابِ الْقَبْرِ

په قبر کې لکه څرنګه چې ګناهګارانو ته عذاب دی همدارنګه هلته نیکانو خلکو ته ثواب هم شته دی، حضرت مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ یوازې د عذاب ذکر کړی او د ثواب ذکر یې نه دی کړی د دې جواب دا دی چې چونکه د کفارو او فاسقانو شمیر زیات دی نو ځکه یې د هغوی د جزاء او سزا ذکر کړی په متن او عنوان کې اهمیت ورکړی، دویم جواب دا دی چې د لفظ عذاب القبر په ذکر کولو سره ثواب القبر خود بخود په پوهه کې راځي، ځکه چې دا دواړه ضدین دي نو د یو ضد په ذکر کولو سره د دویم ضد ذکر چې ثواب القبر دی خود بخود په پوهه کې راځي، او همدا لامل دی چې د عذاب قبر په احادیثو کې یوازې د عذاب ذکر نشته بلکې د ثواب ذکر عموما اول راغلی دی او بیا د عذاب راغلی دی.

**القبر**: د قبر دلفظ اطلاق حقیقةً په هغې ظاهري حسي ژورځای باندې شوی دی په کوم کې چې مړی دفن کولی شي، قرآن کریم هم همدې ژور ځای ته قبر ویلی دی ﴿وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ﴾ او ﴿ثُمَّ أَمَاتَهُ فَأَقْبَرَهُ﴾ په مجازي طور د قبر په مفهوم کې پراخي پیدا شوې له مرینې وروسته ټول برزخي مقام ته قبر ویل شوی دی، لیکن په دې سره د ظاهري قبر نفې نه شي کیدی، بلکې د قبر نه نیولې وراندې ټول مراحل تر قیام قیامت پورې برزخ دی، لهذا که چیرته کوم انسان وسوځیږي یا وخوړل شي یا په فضا کې تبا شي هغه د برزخ نه غائب کیدی نه شي، بلکې هلته به حاضریږي او د هغه به حساب کتاب کیږي.

**عوالم**: عالم ټول درې دي (اول) عالم دنیا (دویم) عالم برزخ (دریم) عالم آخرت. په عالم دنیا کې د احکامو تعلق اولاً او بالذات د بدن سره دي او تبعًا د روح سره دی، همدا وجه ده که چیرته چا څوک په دنیا کې په مراقبه او روحاني تصرف سره ووژلو نو نه قصاص کیږي، ځکه چې بدن یې هیڅ کردار نه دی اداء کړی. په عالم برزخ کې د احکامو تعلق اولاً او بالذات د روح سره دی او ثانیا او تبعا د بدن سره دی.
دریم عالم آخرت دی هلته د احکامو تعلق د بدن او روح سره دی ځکه چې روح راکب او بدن مرکوب دی.
او په دنیا کې عمل د دواړو په اشتراک پوره کیږي نو د حکم اجراء هم په دواړو باندې کیږي، داسې نه شي ویل کیدی چې زه خو د عالم بالا نه راغلی یم زه مجرم نه یم بلکې مجرم بدن او جسم دی، د ددې دواړو د عمل اشتراک د ګوډ او ړوند غل په شان دي چې ګوډ تللی نه شي مګر لیدلی شي او ړوند هیڅ نه شي کولی مګر تللی شي لهذا په دواړو کې اتفاق وشو ګوډ په ړانده باندې سور شو او لار یې ور وښودله او ړانده هغه پورته کړ تردې چې هغه یې باغ ته ورسولو او بیا ګوډ ښې ډیرې میوې را پرې کړې او بیا دواړو په ګډه وخوړلې، اوس چې د باغ والا کله دواړه نیولي دي نو دواړو ته به سزا ورکوي، نه ګوډ بچ کیدی شي او نه ړوند د بهانې په کولو سره بچ کیدی شي، همدارنګه کله چې په آخرت کې د

بدن او روح معامله وړاندې کړی شي نو دواړه مجرم کيږي. دواړو ته به ثواب او عذاب وي. همدا لامل دی چې په مراقبه او روحاني تصرف سره که څيرته يو څوک بل څوک ووژني نو په آخرت کې بدله اخيستل کيږي. **د عالم برزخ مثال**: د عالم برزخ د ټولو نه زيات مناسب حسي مثال خوب او د خوب کيفيت دی، مثلا دوه کسان يو ځای اوده شوي دي، يو ته په خپل خوب کې راحت او بل ته تکليف دی. دوی دواړه په خپل خپل خوب کې د مختلفو ځايونو سيلونه کوي، څوک مکه، څوک مدينه. څوک زمکه. **څوک** آسمان کې ګرځي، څوک راحت او څوک زحمت محسوسوي، ليکن د دوی سره په خوا کې ناست کس هيڅ هم نه محسوس کوي چې کوم يو ته راحت دی او کوم يوه ته زحمت دی، په دې خوب کې کله ويده شوی خاندي او کله ژاړي، کله منډه وهي او کله ښکته رالويږي مګر هيچا ته هيڅ نه محسوسيږي چې د اوده شوي څه کيفيت دی، هو کله کله څه حرکات مثلا خندل خبرې کول معلوميدی هم شي. بعينه همدا شان د عالم برزخ معامله د بدن روح سره ده، هلته هر څه کيدی شي مګر ليدونکو ته نه محسوسيږي. بس صرف مړي ته محسوسيږي، په عام حالت کې بدن بيخي بې حسه معلوميږي. خو کله کله د روح اثر په بدن باندې ظاهريدی هم شي.

**په قبر کې د بدن سره د روح تعلق**: په قبر کې د بدن سره د روح تعلق په درې قسمه دی: **اول قسم**: دا چې د روح تعلق د بدن سره دومره مضبوط دی چې د بدن صحيح سالم پاتې کيدو سره سره د هغه اثر په دنيا باندې هم غورځيږي، لکه د انبياء کرامو روحونه دي، د دوی د ارواحو تعلق د بدن سره دومره مضبوط دی چې د قبر نه په تجاوز کولو سره په دنيا باندې هم اثر انداز کيدی شي د کوم چې نتيجه دا ده چې د انبياء کرامو مالونه د ميراث په طور نه شي ويشل کيدی، د هغو د ازواجو مطهراتو سره د هيچا نکاح نه شي کيدی. او مبارک بدن په قطعي طور د خاورو متاثر کيدی نه شي. **دويم قسم**: دا چې د روح تعلق د بدن سره دومره دی چې د هغه بدن د خاورو متاثر کيدی نه شي ليکن د هغه اثر په دنيا باندې نه لويږي لکه د شهيدانو روحونه چې د دوی جسم خو سلامت پاتې کيدی شي ليکن ميراث يې ويشل کيږي او د هغو د ښځو سره نکاح هم کيدی شي. **دريم قسم**: دا دی چې د روح تعلق د بدن سره کمزوری وي کوم چې نه په دنيا اثر کولی شي او نه په قبر کې بدن محفوظ ساتلی شي. دا د عامو مسلمانانو د ارواحو تعلق د دوی د بدنونو سره دی. هو د يوشمير مؤمنانو د روح تعلق قوي وي په کوم سره چې د دوی بدنونه محفوظ ساتل کيدی شي. ليکن دا ډير کم شوي دي، که چيرته د کوم شهيد بدن خاورې خراب کړي نو د دې په وجه به يا په شهادت کې کوم نقصان وي او يا به د موسمي او زمکني حالاتو نه د متاثر کيدو په وجه بدن خراب شوی وي. دا يوه عارضي معامله ده.

**د عذاب قبر په کيفيت کې اختلاف**: عذاب قبر او يا راحت د قبر په تعين او د هغو په کيفيت کې کافي اختلاف دی. څو اقوال او ګورئ: **اول قول**: دا چې په قبر کې چونکه جسد دی او هغه د جماد په مثل دی لهذا په قبر کې نه عذاب شته نه ثواب شته. ځکه چې ثواب او عذاب په ژوند باندې متفرع دی او هغه

ژوند په قبر کې نشته، دا عقيده د خوارجو د بعضو معتزلو او د بعضو مرجئو ده. دا عقيده او دا مسلک دقرآن او حديث او اجماع د ښکاره نصوصو خلاف ده لهذا قابل التفات نه ده. **دويم قول**: دا دی چې په قبر کې د ثواب او عذاب تعلق صرف د بدن او جسم سره دی د روح سره يې هيڅ تعلق نشته. دا مسلک د محمد بن جريري کرامي او عبدالله بن کرام دی. علامه خيالي ويلي دي چې د روح نه په غير د خالي جسم د عذاب خبره محض د حماقت خبره ده. لهذا هغه ليکلي دي: **جوز بعضهم تعذيب غير الحي ولا شک أنه سفسطة** بعضو د غير ژونديو عذاب منلی دی په دې کې شک نشته چې دا يوه احمقانه نظريه ده.
**دريم قول**: دا دی چې په قبر کې عذاب صرف روح ته دی، ځکه اجسام زياتره ذره ذره کيږي يا سوځول شوي يا ځناورو خوړلي دي دا مسلک د بعضو صوفيانو او د ابن حزم ظاهري دی. مګر په احاديثو سره د دې هم ترديد شوی دی. **څلورم قول**: دا دی چې په قبر کې ثواب او عذاب بدن او روح دواړو لره دی. او د روح چې د بدن د کوم جزء سره اتصال دی دا اتصال د لمر د شعاعو په شان د اشراق او اشراف په طور هم کيدی شي چې د روح اثر د بدن په جزء باندې کيدلی شي. او دا هم ممکن ده چې د روح د بدن د کوم جزء سره تعلق او اتصال دی په کوم سره چې بدن راحت او درد محسوسوي او په هغه سره فرښتو ته جواب ورکوي. دا مسلک د اهل حق اهل السنة والجماعة دی.
**د اهل حقو دلائل**: اهل السنة والجماعة د قبر په عذاب باندې د قرآن کريم په څو آيتونو سره استدلال کړی دی مثلا: (۱) ﴿النَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَعَشِيًّا وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ أَدْخِلُوا آلَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ الْعَذَابِ﴾ **(سورة المؤمنون آيت: ٤٦)** په دې آيت کې په ښکاره طور د دوه عذابونو ذکر دی. يو د قيامت عذاب او د قيامت نه مخکې عذاب او همدا د قبر عذاب دی.
**(۲) ﴿مِمَّا خَطِيئَاتِهِمْ أُغْرِقُوا فَأُدْخِلُوا نَارًا فَلَمْ يَجِدُوا لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ أَنصَارًا﴾ (سورة نوح آيت: ۲۵)**
دلته **فاء** د تعقيب مع الوصل دپاره ده يعنې د نوح قوم يو خو په اوبو کې غرق شو او بل په اور کې داخل شو. ظاهره دا ده چې د قيامت نه مخکې برزخي عذاب دی او همدا د قبر عذاب دی. ځکه چې قبر د برزخ لومړی مرحله ده.
**(۳) ﴿وَلَوْ تَرَى إِذِ الظَّالِمُونَ فِي غَمَرَاتِ الْمَوْتِ وَالْمَلَائِكَةُ بَاسِطُوا أَيْدِيهِمْ أَخْرِجُوا أَنفُسَكُمُ الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُونِ بِمَا كُنتُمْ تَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنتُمْ عَنْ آيَاتِهِ تَسْتَكْبِرُونَ﴾ (سورة الانعام آيت: ۹۳)** ددې آيت تعلق هم د هغه عذاب سره دی کوم چې د روح وتلو په وخت کې فرښتې انسان ته ورکوي. ښکاره ده چې دا د قيامت نه مخکې د قبر عذاب دی.
**(۴) ﴿وَلَنُذِيقَنَّهُمْ مِنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَى دُونَ الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾ (السجدة آيت: ۲۱)**

عذاب اكبر يعنې د آخرت لوی عذاب نه مخکښې د دنيا وړوکی عذاب مراد دی. په هغه کښې د عالم برزخ عذاب (کوم چې د لوی عذاب په مقابل کښې کم دی) هم د آيت په مصداق کښې راتلی شي.
(۵) جلال الدين سيوطي رَحِمَهُ اللهُ د قبر په عذاب باندې د امت اجماع نقل کړې ده.
(۶) د ذکر شوي باب ټول احاديث په اثبات عذاب قبر باندې دال دي د کومو نه چې انکار نه شي کيدی، ځکه په هغو کښې که څېرته لفظي تواتر نشته نو معنوي تواتر خو يقينا په کښې شته ، لهذا حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ د عذاب قبر په اثبات باندې ۳۵ روايتونه نقل کړي دي.
جلال الدين سيوطي رَحِمَهُ اللهُ تر ۷۰ پورې روايتونه نقل کړي دي، امام بخاري شپږ روايتونه جمع کړي دي، په مجموعي طور دا يو سل يوولس روايتونه جوړ شوي دي.
**سوال**: شبه دا ده چې د دومره روايتونو او نصوصو منکرينو ته کافر ولې نه شي ويل کيدی؟.
**جواب**: بعضو تکفير کړی دی، ليکن امام ابو حنيفة رَحِمَهُ اللهُ کف لسان فتوی ورکړې ده چې تاويل کوي نو ځکه متاولينو ته کافر مه وايې.
**د عذاب قبر نه د منکرينو شبهات او د هغو جوابات**:
**اول سوال**: اولنۍ شبه او اعتراض ددې خلکو دا دی چې اوګورئ د عذاب قبر چې کوم کيفيتونه په احاديثو کښې ذکر دي چې مار لړم به هلته چيچل کوي فرښتې به وهل ټکول کوي، مړی به را کښينوي او هغه د چيغې وهي او مونږ هيڅ هم نه آورو، د مړي په سينه باندې سامان کيږدي او هغه به په همدې شان تر ډيره وخته پورې اوسي، د هغه سره چې په قبر کښې ټيپ ريکارډ کښېښودل شي نو د هيڅ معلومات نه کيږي نو دا څه دول عذاب دی؟.
**جواب**: مونږ مخکښې د دې جواب ورکړی دی چې د برزخ معامله د خوب په شان ده، هغه په دنيا باندې قياس کيدلی نه شي، همدارنګه د عذاب اولا او اصلا تعلق د روح سره دی بدن د هغه تابع دی، درد او تکليف خو بدن محسوسوي ليکن په اصل کښې عذاب د روح سره متعلق دی، نو په بدن باندې اثرات هم نه شي محسوس کيدی، کله کله په بدن باندې اثرات محسوس شي، مګر په عام طور داسې نه شي کيدی، لهذا د دنيا نه د برزخ مشاهده نه شي کيدی نو د انکار هيڅ وجه نشته.
**دويم سوال**: دويمه شبه دا ده چې مونږ دا عذاب ليدلی نه دی که يې وينو نو وبه يې منو او چې ليدلی مو نه دی نو نه يې منو؟؟
**جواب**: کوم شی چې تاسو ليدلی نه دی آيا د هغه نه انکار کوی، سره ددې چې الله تعالی خبر درکړی دی او د الله رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبر درکړی دی او د امت اجماع درته ښودلی دی بيا هم انکار کوئ نو بيا خو پيريان تاسو نه دي ليدلي د هغوی نه هم انکار وکړئ ترڅو چې کافر شئ، ځکه چې په قرآن کريم کښې يې ثبوت شته دی، فرښتې هم تاسو نه دي ليدلي او د هغو له وجود نه منکر کافر دی، د انسان په بدن کښې اوسپنه ده، چونا ده، تاسو نه دي ليدلي نو آيا د هغو نه انکار کوئ، د ماچس په تيلۍ کښې بارود دي په

هغه کې اور دی تاسو کله لیدلی دی، په شیدو کې کوچ دي تاسو کله لیدلي دي نو انکار کوئ؟ د بې هوشه انسان حال تاسو ته څه معلوم دی نو د هغه نه انکار کوئ چې نه لیدل کیږي. دا خو یوه بیکاره عقیده ده کومه چې سرسید احمد خان ایجاد کړې ده او خلک یې دهریان جوړ کړي دي.

**دریم سوال**: دریمه شبه داده چې دانسان اجزاء کله د درنده ګانو خوراک کیږي، کله د سمندر د ماهیانو خوراک کیږي، کله سوځیږي خاورې ایرې کیږي نو د قبر عذاب څنګه ورکول کیدی شي؟.

**جواب**: مونږ مخکې ویلي وو چې د قبر نه مراد عالم برزخ دی صرف دا مخصوص ژور ځای نه دی. بلکې ددې قبر نه شروع تر قیامته پورې ټول عالم برزخ دی، چیرته چې د هر ساه لرونکي تلل او رسیدل ضروري دي هغه که په هر څنګه صورت کې وي، لهذا مړی چې چیرته هم وي د برزخي عذاب دپاره د هغه کوم نه کوم جزء موجودیږي لیکن مونږ ته په نظر نه راځي، مګر الله تعالی ته معلومه ده، لکه چې د یوه سوځیدونکي کس واقعه په مشکوة شریف کې راتلونکې ده، چې هواګانو او سمندر د هغه بدن په اجزاو کې پورته کړو بیا حساب وشو هغه وصیت کړی وو چې ما د مرګ نه وروسته وسوځوئ او ایره مې په سمندر او صحراء کې وشیندئ.

**څلورم سوال**:څلورمه شبه داده چې نورڅناورستاسودوینامطابق دقبر د عذاب ادراک کولی شي نوانسانان اوپیریان یې ولې نه شي کولی؟که چیرته عذاب په رښتیاوي نوانسان اوپیري هم بایدمحسوس کولی؟. **جواب**: انسانان او پیریان چونکه په ایمان بالغیب باندې مکلف دي نو ځکه د دوی نه دا عذاب پټ ساتل شوی دی، که دوی ته ښکاره شوی وی نو ایمان بالغیب به بیا څنګه وو، دارنګه د ویرې د وجې به یې د خپلو مړو خښول بند کړي وی.

**پنځم سوال**: پنځمه شبه دا: چې په یو وخت کې په لکونو انسانان خښول کیږي نو فرښتې ټولو ته عذاب څنګه ورکوي؟. **جواب**: منکر نکیر د څو فرښتو نوم نه دی بلکې دا د یوې محکمې د نوعې نوم دی، د هغه لاندې بې شماره فرښتې دي کومې چې همدا کار ترسره کوي لکه څرنګه چې د روح په قبض کولو بې شماره فرښتې مقرر شوې دي، دا د عذاب قبر ابتدائي بحثونه وو آئنده دسماع موتی مسئله په مختصر طور راتلونکې ده.

۱۴ محرم الحرام ۱۴۰۹ھ

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د شهادت په کلمې سره په قبر کې استقامت پیدا کیږي

| |
|---|
| (۱) عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ اَلْمُسْلِمُ |
| د براء بن عازی رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کوم وخت چې د مسلمان نه |

إِذَا سُئِلَ فِي الْقَبْرِ ؟ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَ
پوښتنه کیږي په قبر کې نو هغه ګواهي ورکوي چې د الله تعالی نه بغیر بل هیڅ معبود نشته دی او د شک
أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ فَذٰلِكَ قَوْلُهُ يُثَبِّتُ
نه بغیر محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله رسول دی او همدا مطلب دی د الله تعالی د دې ارشاد (ترجمه) ثابت او
اللهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا
قائم ساتي الله تعالی هغه خلک کومو چې ایمان راوړی دی په مضبوطه طریقه باندې د دنیا په ژوند کې
وَ فِي الْآخِرَةِ وَ فِي رِوَايَةٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ يُثَبِّتُ اللهُ الَّذِينَ
او په آخرت کې. او په یو روایت کې دي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمایل: چې دا آیت ﴿يُثَبِّتُ اللهُ الَّذِينَ
آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ نَزَلَتْ فِي عَذَابِ الْقَبْرِ يُقَالُ لَهُ
آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ﴾ د عذاب قبر په بیان کې نازل شوی دی (لهذا په قبر کې د مړي نه) پوښتنه کیږي چې
مَنْ رَبُّكَ ؟ فَيَقُولُ رَبِّيَ اللهُ ، وَ نَبِيِّي مُحَمَّدٌ . ( مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ )[1].
ستا رب څوک دی؟ هغه ورته وایي چې زما رب الله دی او زما نبي محمد رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دی.

**توضیح**: مسلمان که نر وي که ښځه وي په قبر کې د نکیر منکر د پوښتنې په جواب کې د شهادتینو اقرار کوي او منافق وایي ﴿لا ادري اقول مايقول الناس﴾ او کافر ﴿هاه هاه لا ادري﴾ به وایي. د علامه سیوطي رَحِمَهُ اللهُ ابن قیم رَحِمَهُ اللهُ او ابن عبد البر رَحِمَهُ اللهُ د کلام نه معلومه شوې ده چې دا پوښتنه به د منافق او کافر نه په قبر کې کیدلی شي د خالص کافر نه به نه شي کیدلی، ځکه دا پوښتنه د امتیاز دپاره کیدی شي او کافر خو په کفر کې ممتاز دی هلته د امتیاز ضرورت نشته، او چیرته چې په احادیثو کې راغلي دي چې د کافر نه په قبر کې پوښتنه کیدی شي هلته منافق مراد دی، مګر شاه انور شاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ او نورو محققینو ویلي دي چې دا پوښتنه له ټولو کیږي، او د کافر د ملزم کولو دپاره همدا پوښتنه کیږي کوم چې ذلیل شي او و وایي ﴿هاه هاه لا ادري﴾. (المرقات ۱/۳۳۸).
دلته سوال دا دی چې په قیامت کې به کفار او منافقین قسما قسم بهانې جوړې کړي او انکار به کوي

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۳۱/۳ رقم الحديث ۱۳۶۹، ومسلم في الصحيح ۲۲۰۱/٤، وأبو داود ۱۱۲/۵ رقم الحديث ٤۷۵۰، والنسائي ۱۰۱/٤، رقم الحديث ۲۰۵۷، والترمذي ۲۷٦/۵ رقم الحديث ۳۱۲۰ وابن ماجة ۱٤۲۷/۲، رقم الحديث ٤۲٦۹.

حالانکه هغه معامله به د الله تعالی پر وړاندې وي نو په قبر او برزخ کې په دې قسم صفائي سره په جواب ورکولو سره اقرار شوی دی؟ د دې جواب دا دی چې چونکه په قبر کې معامله د فرښتو سره کیږي، نو په تکویني طور دلته به په رښتیا ویلو باندې مجبور شوی وي، کفار او منافقین دروغ نه شي ویلی ترڅو چې په فرښتو باندې معامله پټه او مبهم نه شي، او د حشر په میدان کې که چیرته د الله تعالی په وړاندې دروغ ووایي نو الله تعالی علام الغیوب دی اعمال نامه موجوده ده، د بدن اعضاء هم د ګواهۍ دپاره موجود دي په دې وجه هلته میدان خلاص ساتل شوی دی. (المرقات ۱/۳۳۸).

**بالقول الثابت**: د دې نه مراد د توحید کلمه او شهادتین دي، په دنیا کې هم الله تعالی د دې په ذریعه مسلمانانو ته استقامت ور په برخه کړی دی او په آخرت کې هم د هغې په قوت او توانائي استقامت او رحمت ورکړی دی.

**نزلت**: دلته په ظاهره دا اعتراض راغلی دی چې په دې آیت کې د اهل ایمانو دپاره د عذاب قبر هیڅ ذکر نشته بیا داسې څنګه ویل شوي دي چې دا آیت د عذاب قبر په باره کې نازل شوی دی؟ د دې جواب دا دی چې په آیت کې د یثبت ذکر دی او تثبیت فرع ده د تعذیب نو مطلب دا شو چې کله مسلمان د عذاب قبر سره مخامخ شوی دی نو الله تعالی هغه ته د قول ثابت سره ثبات ورکړی دی. (المرقات ۱/۳۳۸).

## مړی د پیزار آواز آوري

(۲) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا وُضِعَ فِي قَبْرِهِ

دانس رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې بنده په قبر کې کېښودل شي او د

وَ تَوَلَّى عَنْهُ أَصْحَابُهُ وَ إِنَّهُ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ أَتَاهُ مَلَكَانِ

هغه خپلوان او دوستان ترې راواپس شي نو مړی د هغوی د پیزار آواز آوري او ده ته په قبر کې دوه فرښتې راشي

فَيُقْعِدَانِهِ فَيَقُولَانِ مَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هٰذَا الرَّجُلِ؟ لِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

هغه یې کینوي او پوښتنې ترې کوي چې تا د دې کس محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم په باره کې څه ویلي وو

فَأَمَّا الْمُؤْمِنُ فَيَقُولُ أَشْهَدُ أَنَّهُ عَبْدُ اللهِ

د هغو په جواب کې به مؤمن بنده ووایي چې زه د دې خبرې ګواهي ورکوم چې محمد صلی الله علیه وسلم د الله بنده

وَ رَسُولُهُ فَيُقَالُ لَهُ انْظُرْ إِلَى مَقْعَدِكَ مِنَ النَّارِ قَدْ أَبْدَلَكَ اللهُ

او د ده رسول دی. بیا به دې بنده ته وویل شي ته خپل ځای په دوزخ کې وګوره کوم چې الله تعالی بدل کړی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِهٖ | مَقْعَدًا | مِنَ | الْجَنَّةِ | فَيَرَاهُمَا | جَمِيعًا |
| او دغه په ځاي يې تاته په جنت کې ځاي درکړی لهذا دغه بنده به دواړه ځايونه (جنت او دوزخ) ويني او | | | | | |
| وَ أَمَّا الْمُنَافِقُ وَ الْكَافِرُ فَيُقَالُ لَهُ مَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هٰذَا الرَّجُلِ ؟ | | | | | |
| کوم مړی چې منافق يا کافر وي دغه نه به هم دا پوښتنه وکړی شي تا څه ويلي وو دغه کس (يعنې محمد | | | | | |
| فَيَقُولُ لَا أَدْرِي كُنْتُ أَقُولُ مَا يَقُولُ النَّاسُ | | | | | |
| ﷺ) په باره کې دوی دغو په جواب کې وايي چې زه هيڅ نه پوهيږم کوم خبره چې نورو مؤمنانو کړې | | | | | |
| فَيُقَالُ لَا دَرَيْتَ وَلَا تَلَيْتَ | | | | | |
| وه زه هم هغسې وايم دوی ته به وويل شي چې نه تا سو په عقل سره وپيژاند او نه تا سو قرآن شريف ولوست | | | | | |
| وَ يُضْرَبُ بِمَطَارِقَ مِنْ حَدِيدٍ ضَرْبَةً فَيَصِيحُ صَيْحَةً يَسْمَعُهَا مَنْ يَلِيهِ | | | | | |
| دا به ورته ووايي او د وسپنې په ګورزونو به يې ووهي چې دغه د چغو آواز به اوري د انسانانو او پيريانو نه | | | | | |
| غَيْرَ الثَّقَلَيْنِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ وَلَفْظُهُ لِلْبُخَارِيِّ)[1]. | | | | | |
| بغير شاو خوا ټول څيزونه (الفاظ د بخاري دي). | | | | | |

**توضيح : وتولى**: د مړي د ښخولو وروسته عادتًا خلک ترې ځي نو ځکه يې وتولى وفرمايل، که چيرته خلک لاړ هم نه شي بيا هم مړی د پيزارونو د کړپا آواز آوري، دلته د سماع موتى بحث ځيړل شوی دی، حالانکه عامو شارحينو دلته دا مسئله نه ده ذکر کړې، زه به يې د باب په آخر کې په مختصر طور إن شاء الله بيان کړم. (المرقات ۱/۳۳۹).

مولانا رشيد احمد ګنګوهي رَحِمَهُ اللّٰهُ دلته د (اتاه ملکان) عجيب مفهوم بيان کړی ويلي يې دي چې دا سرعت د ملک د راتلو طرف ته اشاره ده ﴿انه ليسمع قرع نعالهم اتاه ملکان﴾ يعنې وخت به دومره نږدې شي چې ګويا چې اوس مړی د پيزارونو آواز آوري چې فرښتې به د سوال او جواب د پاره راشي.

**في هذا الرجل**: په دې جمله کې اشاره د رسول الله ﷺ طرف ته ده او اشاره د حاضر او محسوس د پاره کيدی شي، لهذا د فرښتو پرښتنې په قبر کې په يو وخت کې د لکونو انسانانو نه کيدی شي او

رسول الله ﷺ به هلته په هر قبر باندې حاضر وي، لهذا هر ځاى حاظر او ناظر شو. دا استدلال بریلوي حضراتو په دې جملې سره کړی دی او د حاضر ناظر مسئله یې ثابته کړې ده، د دې استدلال ډیر جوابونه دي: **اول جواب**: دا دی چې دا اشاره ذهنیه ده او د کافیه صاحب د اشاره ذهنیه ذکر کړې ده، هرقل ابوسفیان ته وویل **﴿ماتقول في هذا الرجل﴾** د عربو په کلام کې دا عامه محاوره ده په دې سره هیڅ کس حاضر ناظر نه شي ګڼل کیدی.

**دویم جواب**: دا دی چې په قبر کې د رسول الله ﷺ شبیه وړاندې کیږي د هغه طرف ته اشاره کیږي. **دریم جواب**: دا دی چې هذا الرجل سره یو څه زیات تفصیل هم شته دی یعنې **﴿الذي بعث فیکم﴾** یعنې کوم کس چې په تاسو کې رسول لیږل شوی وو د هغه په باره کې ته څه وایې، وروسته دا لفظ په حدیث کې په صریح طور راغلی دی.

**څلورم جواب**: دا دی چې د مړي او د رسول الله ﷺ په مینځ کې حجابات پورته کړی شي براه راست رسول الله ﷺ ورته ښکاره کړی شي او سوال ترې وکړی شي، حافظ ابن حجر رحمه الله دا جواب رد کړی دی چې دا محض یو احتمال دی، بهر حال شارحینو دا جوابونه د دې دپاره ورکړي دي چې قرآن کریم د حاضر ناظر عقیده صرف د الله تعالی دپاره بیان کړې ده. (المرقات ۱/۳۴۰).

**مقعدک**: مفسرینو لیکلي چې د هر مؤمن او کافر دپاره په جنت او دوزخ دواړو ځایونو کې یو ځای تیار کړی که چیرته کوم کس جهنم ته لاړ شي نو د جنت ځای یې خالي شي کوم بل چاته په میراث کې ورکړی شي او که جنت ته لاړ شي نو د دوزخ ځای یې خالي شي او کوم بل چاته په میراث کې پاتې شي د هر انسان او مکلف دپاره یو ځای په جنت کې او یو ځای په دوزخ کې د کیدو خبره شیخ عبد الحق رحمه الله په لمعات کې لیکلې ده کومه چې د مشکوة د ۴۸۵ صفحه په ۴ حاشیه کې هر کتونکی کتلی شي (اشعة اللمعات ۱/۱۲۴)

**غیر الثقلین**: د عالم په کائناتو باندې دوه قسمه مخلوق قائم شوی دی، یو انسان دویم پیریان دي، دوی ته ثقلین ویل شوي دي، د مړو چغې سورې او د فریاد آواز انسانان او پیریان د دې وجې نه، نه شي اوریدلی چې که چیرته هغه واوري نو ایمان بالغیب به ختم شي کله چې دا مخلوق په ایمان بالغیب باندې مکلف دي. دویمه وجه دا ده چې که چیرته د قبر دا حالت واوري نو د ویرې د وجې یا به مړه شي یا به کورونه پریږدي او په صحراګانو کې به ورک شي او یا به د مړو خښول پریږدي. (المرقات ۱/۳۴۳).

**مابین المشرق والمغرب**: الفاظ هم راغلي دي. د هغو نه هم مراد همدا ثقلین دي.

**مطارق**: جمع د **مطرقة** ده، ګورزونه.

**حدید**: اوسپنې ته ویل شوي دي، یعنې دا ګورزونه د لرګي او بل څه نه دي بلکې دا ګورزونه به د

رسېږي وي. ( المرقات ۱/۳۴۲).

لا دريت ولا تليت: د لغت او قياس مطابق د تلوت لفظ راتلل په کار وو، مګر د دريت کاونه يتوب او د دنه د اثر د وجې تليت راوړل شوی دی لکه چې د غشايا له وجې غدايا راوړل شوی دی. او د خزايا په زن باندې ندامى راول شوی دی، لکه چې د وفد عبدالقيس په حديث کې تشريح تېره شوې ده.

## مړي ته خپل د اوسيدو ځای ښکاري

(۳) وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا مَاتَ

د عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: په تاسو کې چې څوک مړشي

عُرِضَ عَلَيْهِ مَقْعَدُهُ بِالْغَدَاةِ وَ الْعَشِيِّ إِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ

نو په ... کې د ننه) سهار او ماښام د هغه د اوسيدو ځای ورته مخامخ راوړل کيږي که چيرته هغه جنتي وي

فَمِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَ إِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَمِنْ أَهْلِ النَّارِ

نو په جنت کې د هغه د اوسيدو ځای ورته ښودل کيږي او که دوزخي وي نو په دوزخ کې د هغه د اوسيدو ځای

فَيُقَالُ هٰذَا مَقْعَدُكَ حَتّٰى

ورته ښودل کيږي او هغه ته ويل کيږي چې: دا ستا د اوسيدلو ځای دی انتظار ورته وکړه، تر دې چې د

يَبْعَثَكَ اللّٰهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1].

قيامت په ورځ الله تعالى تا راپورته کړي او هلته دې وليږي.

## د قبر عذاب حق دی

(۴) وَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا أَنَّ يَهُودِيَّةً دَخَلَتْ عَلَيْهَا فَذَكَرَتْ عَذَابَ الْقَبْرِ

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دی چې يوه يهودي ښځه ورته راغله او هغې د قبر د عذاب يادونه وکړه

فَقَالَتْ لَهَا أَعَاذَكِ اللّٰهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ

او بيا هغې حضرت عائشې رضي الله عنها ته وويل: (عائشې!) الله تعالى دې تا د قبر د عذاب نه وساتي.

---

۱. خرجه البخاري في الصحيح ۳/۲۴۳، رقم الحديث ۱۳۷۹. ومسلم في الصحيح ۴/۲۱۹۹ رقم الحديث ۶۵-۲۸۸۶. والنسائي ۴/۱۰۶. رقم الحديث ۲۰۷۰. والترمذي ۴/۳۸۴ رقم الحديث ۱۰۷۲. وابن ماجة ۲/۱۴۲۷. رقم الحديث ۴۲۷۰. ومالک في الموطا ۱/۲۳۹ رقم الحديث ۴۷. واحمد في المسند ۲/۱۶

| |
|---|
| فَسَأَلَتْ عَائِشَةُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَذَابِ الْقَبْرِ فَقَالَ |
| عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د قبر د عذاب پوښتنه وکړه. رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| نَعَمْ عَذَابُ الْقَبْرِ حَقٌّ قَالَتْ عَائِشَةُ فَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدُ |
| د قبر عذاب حق دی عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ويلي دي چې د دې واقعې نه وروسته ما کله هم نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه دی ليدلی |
| صَلَّى صَلَاةً إِلَّا تَعَوَّذَ بِاللهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| چې هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوم مونځ کړی وي او بيا ئې د قبر له عذاب نه پناه نه وي غوښتې. |

**توضيح : فقال نعم** : يعني يهودۍ ښځې کله چې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وويل چې تا دې الله تعالی د قبر د عذاب نه وساتي نو په دې باندې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړه نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې آو ! د قبر عذاب حق دی، اوس سوال دا دی چې دې يهودۍ ښځې ته د قبر د عذاب علم د کومه شو او حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته څنګه نه وو معلوم؟. د دې جواب دا دی چې يهودۍ ته د دې علم د تورات نه شوی وو د تورات علم هم دا سې وو او عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ځکه معلوم نه وو چې تر دې وخته پورې په اسلام کې د قبر د عذاب حکم د وحې په ذريعه په نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام باندې نه وو راغلی، بلکې د مسند احمد او مسلم شريف په يو روايت کې خو داسې دي چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام وفرمايل : **(کذب يهود لا عذاب دون عذاب يوم القيامة وانما تفتن اليهود)** بيا کله چې د وحې په ذريعه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د قبر عذاب معلوم شو نو ده تعوذ ويلی وو دا تعوذ امت ته د تعليم د پاره وو که نه نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په خپله د قبر د عذاب کومه خطره نه وه.

## د عذاب قبر مشاهده

| |
|---|
| (۵) وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَائِطٍ لِبَنِي النَّجَّارِ عَلَى |
| د زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې (يوه ورځ) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بني نجار په باغ کې په |
| بَغْلَةٍ لَهُ وَ نَحْنُ مَعَهُ إِذْ حَادَتْ بِهِ فَكَادَتْ |
| قچر باندې سور ؤ او مونږ هم د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره يو ځای وو چې يو ناڅاپه قچر وتريده نزدې وه چې |

تُلْقِيهِ وَ إِذَا أَقْبُرٌ سِتَّةٍ أَوْ خَمْسَةٍ فَقَالَ

نبي عَلَيْهِ السَّلَام يې غور ځولی وو يوناڅاپه مونږ شپږ يا پنځه قبرونه وليدل رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د

مَنْ يَعْرِفُ أَصْحَابَ هٰذِهِ الْأَقْبُرِ ؟ قَالَ رَجُلٌ أَنَا قَالَ فَمَتَى مَاتُوا ؟

دې قبرونو والا څوک پيژني ؟ يو کس وويل: زه يې پيژنم ، نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: دوی کله مړه شوي دي

قَالَ

(يعني دکفرپه حالت کې مړه شوي دي او که دايمان سره ددنيانه رخصت شوي دي)هغه کس عرض وکړو

فِي الشِّرْكِ فَقَالَ إِنَّ هٰذِهِ الْأُمَّةَ تُبْتَلَى فِي قُبُورِهَا

چې دوی خود شرک په حالت کې مړه شوي ،نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: دا امت په خپلو قبرونو کې ازمايل کيږي

فَلَوْلَا أَنْ

(يعني په دې خلکو باندې ددوی په قبرونو کې عذاب روان دی)که چيرته دماسره دا ويره نه وی چې تاسو

لَا تَدَافَنُوا لَدَعَوْتُ اللهَ أَنْ يُسْمِعَكُمْ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ

به د مړو ښخول پريږدئ نو ما به خامخا الله تعالى ته دا سوال کړی وی چې تاسو هم دعذاب قبر آواز واوري

الَّذِي أَسْمَعُ مِنْهُ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ فَقَالَ

کوم چې زه آورم ، ددې نه وروسته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمونږ طرف ته متوجه شو او وې فرمايل : د

تَعَوَّذُوا بِاللهِ مِنْ عَذَابِ النَّارِ قَالُوا نَعُوذُ بِاللهِ مِنْ عَذَابِ

اورعذاب نه په خدای سره پناه وغواړئ صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وويل مونږ پناه غواړو په الله سره دعذاب

النَّارِ قَالَ تَعَوَّذُوا بِاللهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ قَالُوا

د اور نه نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: دقبر دعذاب نه په خدای سره پناه وغواړئ صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وويل

نَعُوذُ بِاللهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ فَقَالَ تَعَوَّذُوا بِاللهِ مِنَ

چې مونږ دقبر دعذاب نه په خدای سره پناه غواړو نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَام وفرمايل: پناه وغواړئ په الله سره د

الْفِتَنِ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ قَالُوا نَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الْفِتَنِ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ

ظاهري او باطني فتنو نه صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وويل مونږ د ظاهري او باطني فتنو نه په خدای سره پناه غواړو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | تَعَوَّذُوا | بِاللهِ | مِنْ | فِتْنَةِ | الدَّجَّالِ | قَالُوا |

نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وفرمايل: دد جال د فتنې نه په خداى سره پناه وغواړئ، صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وويل

نَعُوذُ بِاللهِ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

مونږ د دجال د فتنې نه په خداى تعالى سره پناه غواړو.

**توضيح: من الفتن ما ظهر منها وما بطن:** ظاهري فتنه هغه ده کومه چې محسوس کيږي او د کومې چې اسباب هم معلوم وي او باطني فتنه هغه ده کومه چې نه محسوس کيږي او نه د هغې اسباب ښکاره وي، يا د دې جملې مطلب دا دی چې ظاهري فتنه هغه کيدی شي کومه چې د ظاهري بدن سره متعلق وي او باطني فتنه هغه کيدی شي کومه چې د ايمان او عقيدې له فساد سره متعلق وي. (المرقات ۱/۳۴۷).

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## په قبر کې د نکير منکر پوښتنه

(۶) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُقْبِرَ الْمَيِّتُ

د ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: کله چې مړی په قبر کې کيښودل شي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَتَاهُ | مَلَكَانِ | أَسْوَدَانِ | أَزْرَقَانِ | يُقَالُ | لِأَحَدِهِمَا | الْمُنْكَرُ | وَ | الْآخَرُ | النَّكِيرُ |

نو هغه تور رنګي د شنو سترګو والا دوه فرښتې راشي په کومو کې چې يو ته نکير او بل ته منکر ويلی کيږي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَيَقُولَانِ | مَا | كُنْتَ | تَقُولُ | فِي | هٰذَا | الرَّجُلِ ؟ |

هغه دواړه به د مړي نه پوښتنه وکړي چې تا د هغه کس يعني محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په باره کې څه ويلي وو؟

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَيَقُولُ | هُوَ | عَبْدُ | اللهِ | وَ | رَسُولُهُ |

که چيرته دغه کس مؤمن وي نو ورته وبه وايي چې هغه د الله بنده او د هغه لخوا راليږل شوی رسول دی،

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَشْهَدُ | أَنْ | لَا | إِلٰهَ | إِلَّا | اللهُ | وَ | أَنَّ مُحَمَّدًا |

اوزه ګواهي ورکوم چې د خداى تعالى نه بغير بل هيڅ معبود نشته او د شک نه بغير چې محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

(۱) أخرجه المسلم في الصحيح ۴/۲۱۹۹ رقم الحديث: ۶۷-۲۸۸۶، وأحمد في المسند: ۵/۱۹۰.

عَبْدُهُ وَ رَسُولُهُ فَيَقُولَانِ قَدْ كُنَّا نَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُولُ هٰذَا

دانه بنده او د هغه رسول دی (چې دا اوري) دواړه فرښتې به ووايي: مونږ پوهيدلو چې ته به همداسې وايې

ثُمَّ يُفْسَحُ لَهُ فِي قَبْرِهِ سَبْعُونَ ذِرَاعًا فِي سَبْعِينَ ثُمَّ يُنَوَّرُ لَهُ فِيهِ

ددې نه وروسته به د هغه د قبر اوږدوالی او پلنوالی اويا اويا گزه پراخ کړی شي بيا به يې قبر رڼا کړی شي

ثُمَّ يُقَالُ لَهُ نَمْ فَيَقُولُ أَرْجِعُ إِلَى أَهْلِي

او مړي ته به ووايي چې اوده شه مړی به ورته ووايي زه غواړم چې خپل اهل او عيال ته واپس ورشم تر څو

فَأُخْبِرُهُمْ فَيَقُولَانِ نَمْ كَنَوْمَةِ الْعَرُوسِ الَّذِي

چې هغوی د خپل دې حال نه خبر کړم. فرښتې به ورته ووايي: ته د هغې ناوې په شان اوده شه کومه چې

لَا يُوقِظُهُ إِلَّا أَحَبُّ أَهْلِهِ إِلَيْهِ

يو ازې هغه کس ويښولی شي کوم چې هغې ته زيات محبوب او خوښ وي (يعنې د هر کس ويښول پرې

بـه نه لگيږي ځکه چې د هغه نه وحشت وي، البته څوک چې ورته خوښ وي نو د هغه ويښول بـه لگيږي)

حَتَّى يَبْعَثَهُ اللهُ مِنْ مَضْجَعِهِ ذٰلِكَ وَ إِنْ كَانَ مُنَافِقًا قَالَ

تردې چې الله تعالى يې ددې ځای نه راپورته کړي او که چيرته مړی منافق وي نو وايي به م‌چې د خلکو

سَمِعْتُ النَّاسَ يَقُولُونَ قَوْلًا فَقُلْتُ مِثْلَهُ لَا أَدْرِي

خبرې آوريدلي وې زه هم هغسې وايم ليکن زه (په دې حقيقت باندې) نه پوهيږم (د منافق چې دا جواب

فَيَقُولَانِ قَدْ كُنَّا نَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُولُ ذٰلِكَ فَيُقَالُ

واوري) فرښتې به ورته ووايي: مونږ پوهيدلو چې ته به يقينا همداسې وايې (ددې نه وروسته به) حکم

لِلْأَرْضِ الْتَئِمِي عَلَيْهِ فَتَلْتَئِمُ عَلَيْهِ

وکړې شي زمکې ته دېو ځای کيدو لهذا زمکه به په دغه مړي باندې داسې راشي چې د هغه ښی پوښتۍ

فَتَخْتَلِفُ أَضْلَاعُهُ فَلَا يَزَالُ فِيهَا مُعَذَّبًا

به چپ طرف ته او چپې پوښتۍ به يې ښي طرف ته ورننوځي او په دا رنگه هميشني عذاب کې به مبتلا

| |
|---|
| حَتّٰى يَبْعَثَهُ اللهُ مِنْ مَضْجَعِهِ ذٰلِكَ .(رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1]. |
| او سي تردې چې الله تعالى هغه د همدې ځاى نه راپورته كړي. |

**توضيح:اذا اقبر الميت:** دا د عام عادت مطابق ويل شوي دي كه نه نو د قبر نه مراد برزخ دى. او س كه څوک دفن وي او كه دفن نه وي فرښتې به په برزخ كې هغه مړي موندلى شي او هغه ته راځي(المرقات ۱/۳۴۷)

**المنكر والنكير** : يعنې نا اشنا مكروه او ناخوښې، دا صفتونه د هغو د ويروونكي شكل ښكاره كولو دپاره دي. د كافر او منافق دپاره همدغه فرښتې راځي او د مؤمن دپاره چې كومې راځي په هغو كې د يوې نوم بشير دى او د بلې نوم نذير دى. **اسودان** : تورې. **ارزقان** : د شنو ستركو والا. دا صفت د عربو په نزد نهايت بد او هيبتناک دى. (المرقات ۱/۳۴۸).

**سبعون** : داد پراخى نه كنايه ده تعين مراد نه دى . په **مد بصر** او **سبعون** كې تعارض نشته دى. ځكه چې په سبعون كې تكثير او د وسعت طرف ته اشاره شوې ده كوم چې له مد بصر سره منافي نه دى.

**سبعون في سبعين** : كې عدد د بل عدد دپاره ظرف دى د كومو چې د هر څلورو اطراف مراد دي. د قبر وسعت د اشخاصو په اعتبار سره هم شوى دى. (المرقات ۱/۳۴۸).

**كنا نعلم** : يعنې له مخونو نه مونږ ته اندازه شوې وه يا د الهام په طور معلومه شوې وه چې ته به همداسې جواب راكوې. (المرقات ۱/۳۴۸).

**نم** : دا د توجه بدلولو دپاره ويل كيږي چې ځه آرام وكړه. (المرقات ۱/۳۴۸).

## په قبر كې سوال او جواب

| |
|---|
| (۷) وَ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ |
| براء بن عازب رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه نقل كړي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : (په |
| يَأْتِيهِ مَلَكَانِ فَيُجْلِسَانِهِ فَيَقُوْلَانِ لَهُ مَنْ رَبُّكَ ؟ فَيَقُوْلُ |
| قبر كې)مړي ته دوه فرښتې راځي هغه كينوي او ترې پوښتنې كوي چې ستا رب څوک دى؟هغه به جواب |
| رَبِّيَ اللهُ فَيَقُوْلَانِ لَهُ مَا دِيْنُكَ ؟ فَيَقُوْلُ |
| وركوي زما رب الله دى بيا فرښتې ترې پوښتنه كوي چې ستا دين څه دى؟هغه په جواب كې ورته وايي چې |

[1] أخرجه الترمذي في ٣ / ٣٨٣ رقم حديث ١٠٧١

دِينِيَ الْإِسْلَامُ فَيَقُولَانِ مَا هٰذَا الرَّجُلُ الَّذِي بُعِثَ فِيكُمْ ؟
زما دين اسلام دی بیا فرښتې ترې پوښتنه کوي چې دا کوم سړی چې د الله د طرفه رالیږل شوی وو هغه څوک

فَيَقُولُ هُوَ رَسُولُ اللهِ فَيَقُولَانِ لَهُ مَا يُدْرِيكَ ؟
دی؟ دا به ورته ووایي چې هغه د خدای رسول دی بیا به فرښتې دده نه پوښتنه وکړي چې دا تا ته چا درښودلي

فَيَقُولُ قَرَأْتُ كِتَابَ اللهِ فَآمَنْتُ بِهِ وَ صَدَّقْتُ
دي ؟ هغه به ورته وايي چې ما د خدای تعالی کتاب لوستلی او په هغه مې ایمان راوړي او هغه مې منلی
(څوک چې په کلام الله باندې ایمان راوړي هغه په رسول الله باندې ایمان راوړی) نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل

فَذٰلِكَ قَوْلُهُ يُثَبِّتُ اللهُ الَّذِينَ آمَنُوا
دا مطلب دی د الله تعالی ددې قول (ترجمه) ثابت او قائم ساتي الله هغه خلک کوم چې ایمان راوړی دی

بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ الْآيَةَ . قَالَ فَيُنَادِي مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ
په مضبوطه طریقه باندې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ویلي دي چې د آسمان نه آواز کوونکی (یعني الله تعالی یا د هغه په حکم

أَنْ صَدَقَ عَبْدِي فَأَفْرِشُوهُ مِنَ الْجَنَّةِ وَ
سره فرښته) به آواز وکړي چې زما بنده رښتیا وویل لهذا د هغه د پاره د جنت فرش وغوړوئ او هغه ته د جنت

أَلْبِسُوهُ مِنَ الْجَنَّةِ وَ افْتَحُوا لَهُ بَابًا إِلَى الْجَنَّةِ فَيُفْتَحُ قَالَ
جامې ورواغوندئ او د هغه د پاره د جنت یو دروازه راخلاصه کړئ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل (د جنت

فَيَأْتِيهِ مِنْ رَوْحِهَا وَطِيبِهَا وَ يُفْسَحُ لَهُ فِيهَا مَدَّ بَصَرِهِ
د همدې دروازې نه به) هغه ته د جنت هوا گانې او خوشبوي راځي او د نظر تر رسیده پورې به د هغه قبر پراخ

وَ أَمَّا الْكَافِرُ فَذَكَرَ مَوْتَهُ قَالَ
کړی شي او س پاتې شو کافر نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام د هغه د مرګ ذکر وکړه او ددې نه وروسته یې وویل: بیا به د هغه

وَ يُعَادُ رُوحُهُ فِي جَسَدِهِ وَ يَأْتِيهِ مَلَكَانِ فَيُجْلِسَانِهِ فَيَقُولَانِ
روح د هغه په بدن کې واچول شي او هغه ته به دوه فرښتې راشي کوم چې هغه کښینوي او پوښتنې به ترې

مَنْ رَبُّكَ ؟ فَيَقُولُ هَاهْ هَاهْ لَا أَدْرِي فَيَقُولَانِ لَهُ مَا دِينُكَ ؟
کوي چې ستا رب څوک دی؟ هغه به وايي هاه هاه زه نه پوهیږم. بیا به ترې پوښتنه وکړي چې ستا دین څه دی؟

فَيَقُولُ هَاهْ هَاهْ لَا أَدْرِي فَيَقُولَانِ مَا هٰذَا الرَّجُلُ الَّذِي
هغه به وايي هاه هاه زه نه پوهېږم بيا به پوښتنه ترې وکړي چې دا کس څوک دی کوم چې (دخدای د طرفه)
بُعِثَ فِيكُمْ ؟ فَيَقُولُ هَاهْ هَاهْ . لَا أَدْرِي فَيُنَادِي مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ
تاسو ته رالیږل شوی وو هغه به وايي هاه هاه زه يې نه پېژنم بيا به د آسمان نه يو آوازکوونکی آواز وکړي او
أَنْ كَذَبَ فَأَفْرِشُوهُ مِنَ النَّارِ وَ أَلْبِسُوهُ مِنَ النَّارِ
وبه وايي چې دا دروغژن دی د هغه د پاره د اور فرش وغوړوئ دا اور لباس ورواغوندئ او د هغه د پاره يوه
وَ افْتَحُوا لَهُ بَابًا إِلَى النَّارِ قَالَ فَيَأْتِيهِ مِنْ حَرِّهَا وَ
دروازه د دوزخ طرف ته خلاصه کړئ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايلي دي چې د دوزخ نه به د هغه خوا ته ګرمې هواګانې او
سَمُومِهَا قَالَ وَ يُضَيَّقُ عَلَيْهِ قَبْرُهُ حَتَّى تَخْتَلِفَ فِيهِ أَضْلَاعُهُ
لوګې راځي او وې فرمايل چې د هغه د پاره به د هغه قبر تنګ کړی شي تر دې چې د يو طرف پوښتې به يې
ثُمَّ يُقَيَّضُ لَهُ أَعْمَى أَصَمُّ مَعَهُ مِرْزَبَّةٌ
د بل طرف پوښتيو ته ورشي بيا به په هغه باندې يو ړنده او کڼه فرښته مقرره کړي د کومې سره به چې ګورزوي
مِنْ حَدِيدٍ لَوْ ضُرِبَ بِهَا جَبَلٌ لَصَارَ تُرَابًا فَيَضْرِبُهُ بِهَا ضَرْبَةً
داوسپنې که په هغه غر ووهل شي نو خاورې به شي او هغه فرښته به دا په همدې ګورز باندې داسې ووهي
يَسْمَعُهَا مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَ الْمَغْرِبِ إِلَّا الثَّقَلَيْنِ
چې د هغه (د چغو او سورو آواز به) د مشرق نه تر مغرب پورې ټول مخلوق واوري په غير د انسانانو او
فَيَصِيرُ تُرَابًا ثُمَّ يُعَادُ فِيهِ الرُّوحُ . (رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ)[1].
پيريانو نه او په همدې وهلو سره به هغه مړی خاورې شي د دې نه وروسته به په هغه کې د ننه روح واچول شي.

**توضيح** : **ومايدريک** : د دې جملې نه معلومه شوه چې په قبر کې فرښتې څو مختلفې پوښتنې کوي، يوازې هغه درې مشهورې پوښتنې نه دي کومې چې مشهورې دي.

**مد بصره** : يعنې د سترګو تر نظر پورې به په قبر کې پراخي راشي، په دنيا کې د هغه مثال د شيش محل د سرو د کانونه دي په کومو کې چې انسان د سترګو تر نظر پورې پراخي محسوسوي، سره د دې چې هغه

---

(۱) أخرجه احمد في المسند: ۲۸۷/٤، وأخرجه أبو داود في السنن ۱۱٤/٥، رقم الحديث: ۴۷۵۳.

دري فوته د کان وي. (المرقات ۱/۳۵۲).

**هاه هاه**: دا په عربي لغت کې یو لفظ دی کوم چې انتهائي د ویرې د حیرانتیا او تحسر په وخت کې یې انسان وایي. لکه په اردو کې هائی وائی الفاظ راغلي دي لا ادری د هغو بیان دی. (المرقات ۱/۳۵۳).

**الذی بعث فیکم**: کوم خلکو چې رسول الله ﷺ منلی دی د رسول الله ﷺ په شریعت باندې عمل کړی په سنتو باندې یې تګ کړی هغوی سمدستي پوهیږي چې د همدې مبعوث نه مراد محمد عربي ﷺ دی، او کوم خلک چې په دنیا کې د بعثت او شریعت نه ړانده پاتې شوي او سیدلي هغوی به هلته هم همداسې ړانده پاتې وي. (المرقات ۱/۳۵۳).

**فینادی مناد**: لکه څنګه چې په راډیو باندې اعلان سمدستي رسیدلی شي همداسې به دا اعلان وي.

**ان کذب**: یعنې دا کس په باطل باندې وو همدا مطلب دی که نه نو دلته دروغ نشته دی او نه هغه دلته دروغ ویلي دي. (المرقات ۱/۳۵۳). **اعمی اصم**: یعنې په منزله د ړانده ده چې خوف یې نه راځي او په منزله د کوڼ دی ګویا چې نه آوري، دا د دې دپاره چې په مجرم باندې نه ویره (ژړه سوځیدل) راشي نه یې احساس وشي. **مرزبة**: ګورز ته ویل کیږي، کوم چې د اوسپنې وي. **ثم یعاد**: یعنې روح بیا تازه کړی شي. د دې نه دا هم معلومه شوه چې روح دوباره اچول کیږي. (المرقات ۲/۳۵۴).

## قبرستان د ژړا ځای دی

| |
|---|
| (۸) وَ عَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ إِذَا وَقَفَ عَلَى قَبْرٍ |
| د حضرت عثمان رضی الله عنه نه روایت دی چې کله به هغه د کوم قبر خواته ودریده نو (د خدای د ویرې به یې) |
| بَكَى حَتَّى يَبُلَّ لِحْيَتَهُ فَقِيلَ لَهُ تُذْكَرُ الْجَنَّةُ وَ النَّارُ |
| دومره وژړل چې د هغه ږیره به د (اوښکو د وجې) لمده شوه هغه ته وویل شو کله چې تاسو د جنت او دوزخ ذکر |
| فَلَا تَبْكِي وَ تَبْكِي مِنْ هٰذَا ؟ فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ |
| کوئ نو نه ژاړئ او دلته چې ودریږئ نو ژاړئ (ددې په جواب کې) هغه وویل چې نبي علیه السلام فرمایلي د |
| إِنَّ الْقَبْرَ أَوَّلُ مَنْزِلٍ مِنْ مَنَازِلِ الْآخِرَةِ فَإِنْ نَجَا مِنْهُ فَمَا بَعْدَهُ أَيْسَرُ مِنْهُ وَ |
| آخرت د منزلونو نه قبر اول منزل دی لهذا چا چې ددې منزل نه نجات پیدا کړ هغه ته وروسته آساني ده او چا |
| إِنْ لَمْ يَنْجُ مِنْهُ فَمَا بَعْدَهُ أَشَدُّ مِنْهُ قَالَ |
| چې ددې منزل نه نجات پیدا نه کړ هغه ته ددې نه وروسته ډیره سختي ده حضرت عثمان رضی الله عنه ویلي دي |

| |
|---|
| وَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا رَأَيْتُ مَنْظَرًا قَطُّ إِلَّا وَالْقَبْرُ أَفْظَعُ مِنْهُ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ) |
| چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: ما کله هم هيڅ منظر د قبر نه ډير سخت نه دی ليدلی. |
| وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.[1] |
| او ترمذي ويلي دي چې دا حديث غريب دی. |

**توضيح** : **بكى : الايمان بين الخوف والرجاء** : په بنياد باندې حضرت عثمان ذوالنورين ژړلي وو. د الهي دربار مقربين دې ته ژړا کوي، دا ژړا د دې سره منافي نه ده چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د عشره مبشرو نه وو. بلکې د زيري والا خو په عبادت او اعمالو کې لا زيات چست کيږي. او په هره موقع او مقام کې د هغه حق اداء کوي نه دا چې په عباداتو او اعمالو کې سستي کوي. قبرستان خو يو داسې ځای دی کوم چې ټول خوندونه هيروي. (المرقات ۱/۳۵۵).

**فما بعده اشد منه** : ويل شوي دي چې د دنيا ۹۰۰ مصيبتونه او د حالت نزع يو مصيبت سره برابر دي. او د نزع ۹۰۰ مصيبتونه او د قبر يو مصيبت برابر دي. د قبر ۹۰۰ مصيبتونه او د محشر يو مصيبت او د محشر ۹۰۰ مصيبتونه او د دوزخ يو مصيبت برابر دي. (المرقات ۱/۳۵۵).

## د تدفين نه وروسته د دعاء ثبوت :

| |
|---|
| (۹) وَ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا فَرَغَ مِنْ دَفْنِ الْمَيِّتِ |
| د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د کوم مړي د تدفين نه فارغ شو نو د |
| وَقَفَ عَلَيْهِ فَقَالَ اسْتَغْفِرُوْا لِأَخِيكُمْ ثُمَّ |
| قبر په خوا کې به ودريده (خلکو ته به يې) وفرمايل : د خپل ورور د پاره استغفار وکړئ او د هغه د پاره د |
| سَلُوا لَهُ بِالتَّثْبِيتِ فَإِنَّهُ الْآنَ يُسْأَلُ .(رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[2]. |
| ثابت قدم او سيدو دعا وکړئ د دې د پاره چې دا وخت د هغه نه پوښتنه کيدلی شي. |

**توضيح** : **استغفروا لاخيكم** : د حديث په دې جملو سره په قبرباندې استغفار او په قبرستان کې د دعا مسئله ثابته شوې ده. لهذا د مړي د دفن کولو نه وروسته په عام طور دعا غوښتل شوې ده. رباني علماؤ په دې دعا کې د لاس پورته کول خلاف اولی ليکلي دي. ځکه چې د مړي نه د غوښتلو شبه کيدی

شي، هو که چیرته د لاس نه پورته کولو د وجې فتنه راپورته کیدله نو لاس دې پورته کړي او دعا دې وغوښتل شي، لیکن د مړي په برابر دې نه ودریږي، که چیرته په خپل ماحول کې د خپلو دوستانو سره وي نو هغو ته دې د ارسال یدین حکم وکړي، ځکه چې دا افضل دي. (المرقات ۱/۳۵٦).

**بالتثبیت** : د تثبیت دعا داسې ده **﴿اللّٰهم ثبته اللّٰهم اغفرله اللّٰهم ارحمه﴾** وغیره ، دا د حنفیانو مسلک دی، شافعیانو ددې حدیث نه مړي ته د تدفین نه وروسته د تلقین مسئله هم راویستلې ده، بیا هم د تلقین مسئله په سماع موتی باندې متفرع ده، کوم حضرات چې د سماع موتی قائل دي هغوی د تلقین هم قائل دي او کوم حضرات چې د سماع موتی قائل نه دي هغوی د همدې تلقین هم قائل نه دي کوم چې د تدفین نه وروسته په قبر باندې کیدلی شي د سورت بقرې ګ ابتداء او انتهاء نه د یوې یوې رکوع لوستل اتفاقي مسئله ده.د تلقین قائلینو د حضرت ابو امامه رَحِمَهُ اللّٰهُ په یو حدیث سره هم استدلال کړی کوم چې علامه سیوطي رَحِمَهُ اللّٰهُ په جمع الجوامع کې د طبراني نه نقل کړی او ابن نجار، ابن عساکر رَحِمَهُ اللّٰهُ او دیلمي رَحِمَهُ اللّٰهُ هم هغه ذکر کړی د کوم چې خلاصه داسې ده چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي کله چې په تاسو کې یو څوک وفات شي او تاسو هغه دفن کړئ نو یو کس دې د قبر سر ته ودریږي او ودې وایي :ای فلان ! بن فلانه ای فلان بن فلانه ! مړی جواب ورکوي اګر که تاسو یې نه اورئ بیا دې ووایي ای فلان ! دا کلمه په یاد کړه په کومه باندې چې ته د دنیا نه رخصت شوی وې او هغه د **﴿اشهد ان لا اله الاالله وان محمد عبده ورسوله﴾** ګواهي ده، همدارنګه ته په دې باندې راضي شه چې خدای تعالی ستا پروردګار دی او محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ستا پیغمبر دی او قرآن ستا رهبر او امام دی، کله چې دا وویل شي نو نکیر منکر د یوه بل لاس ونیسي چې څه چې ددې مړي نه بهر ورځو زمونږ دده سره څه کار دی،ځکه چې دالله د طرفه هغه ته تلقین جاري دی (مظاهر حق ج ۱ ص ۱۴۹) (المرقات ۱/۳۵٦).

دا حدیث ضعیف دی او په دې تلقین کې اختلاف دی، لیکن یو بل تلقین دی په کوم کې چې د هیچا اختلاف نشته، د مشکوة په ۱۴۹ صفحه کې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی چې ما د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه آوریدلي دي چې فرمایل یې : چې ستاسو یو څوک مړ شي نو هغه په کور کې مه ساتئ بلکې زر هغه په قبر کې د دفن کولو دپاره یوسئ، بیا ددې مړي د قبر په سر باندې د سورت بقره ابتداء ولولئ، او د پښو طرف ته یې د سورت بقرې آخري (آمن الرسول) ولولئ، بیهقي د دې روایت تخریج کړی دی مګر صحیح دا ده چې دا موقوف دی، یو تلقین د نزع په حالت کې د شهادتینو تلقین دی ترڅو چې مرګ ته نزدې انسان یې په آوریدلو سره ووایي لهذا حکم دی (**لقنوا موتاکم الخ**).

## په قبر کې ۹۹ اژدهاګانې

(۱۰) وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُسَلَّطُ عَلَى الْكَافِرِ فِي

حضرت ابو سعید رضي الله عنه ویلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل: مسلط کیږي په کافر باندې په

قَبْرِهِ تِسْعَةٌ وَ تِسْعُونَ تِنِّينًا تَنْهَسُهُ وَ تَلْدَغُهُ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ لَوْ أَنَّ تِنِّينًا مِنْهَا

قبر کې ۹۹ اژدهاګانې کومې به چې هغه تر قیامته پورې غوځوي او چیچي او هغه اژدهاوې داسې دي که

نَفَخَ فِي الْأَرْضِ مَا أَنْبَتَتْ خَضِرًا . (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ)

چیرته په هغو کې یوه اژدها په زمکه باندې چک ولګوي نو زمکه به د شنو درازرغونولو نه محرومه شي

وَ رَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ وَ قَالَ سَبْعُونَ بَدَلَ تِسْعَةٌ وَ تِسْعُونَ. (ترمذي و الدارمي)[1].

او د ترمذي هم دا رنګه روایت منقول دی لیکن په هغه کې د ۹۹ په ځای د اویا وذکر دی.

**توضیح: تنیناً** : هغه لوی مار ته ویل شوي دي کوم ته چې اژدها ویل کیږي، تنهسه وتلدغه : بعضو شارحینو د همدې دواړو الفاظو یوه معنی ښودلې ده یعنې غوځول او چیچل، بعضو شارحینو یې فرق کړی دی چې تنهسه هغه غوځولو ته ویل کیږي په کوم سره چې څرمنه غوځه شي او تلدغه صوف چیچلو ته ویل شوي دي. (المرقات ۱/۳۵۷).

اوس دلته سوال دا دی چې د ۹۹ اژدهاو په مسلط کیدو کې حکمت څه دی؟.

**اول جواب** : خو دا دی چې دا د شارع کلام دی په هغو کې د خصوصیاتو شمیر یا د حکمتونو لټون ته ضرورت نشته. **دویم جواب** : دا دی چې د الله تعالی ۹۹ نومونه دي د هر نوم جدا جدا خصوصیت دی، کافر چې کله کفر کړی دی نو د ټولو نه یې انکار کړی دی لهذا د هر نوم په انکار باندې یوه یوه اژدها مقرره شوې ده. **دریم جواب** : دا دی چې د الله تعالی یو رحمت په کائناتو کې ویشل شوی دی او ۹۹ رحمتونه د الله تعالی سره خاص دي کوم به چې په عالم آخرت کې ښکاره شي او د مؤمنانو سره خاص شوي دي، کافر چونکه د همدې ټولو انکار کړی نو د مؤمنانو برعکس په کفارو به ۹۹ اژدهاګانې مسلط کړی شي. د ترمذي په روایت کې د ۹۹ پر ځای د اویاوو ذکر راغلی دی کوم چې په عربي کلام کې د تکثیر دپاره راغلی دی مراد هماغه ۹۹ دي.

[1] أخرجه الدارمي في السنن ۲/۴۲۶ رقم الحديث : ۲۸۱۵، وأخرجه أحمد في المسند ۳/۳۸، والترمذي ۴/۵۵۱ رقم الحديث : ۲۴۶۰.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د قبر تنګيدل

(۱) عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ حِيْنَ تُوُفِّيَ

د جابر رضي الله عنه نه مروي دي چې مونږ لاړو د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د سعد بن معاذ رضي الله عنه جنازې ته

فَلَمَّا صَلَّى عَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ وُضِعَ فِي قَبْرِهٖ

کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه د جنازې مونځ اداء کړ او حضرت سعد رضي الله عنه قبر ته ورکوز کړی شو

وَ سُوِّيَ عَلَيْهِ سَبَّحَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَسَبَّحْنَا طَوِيلًا

د قبر خاورې برابرې کړی شوې نو نبي عليه السلام تسبيح (سبحان الله) ويل نو مونږ هم تر ډيره وخته پورې تسبيح

ثُمَّ كَبَّرَ فَكَبَّرْنَا فَقِيلَ

ووېله بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم تکبير (الله اکبر) ووېله مونږ هم تکبير ووېله، بيا د نبي عليه السلام نه پوښتنه

يَا رَسُولَ اللهِ لِمَ سَبَّحْتَ ثُمَّ كَبَّرْتَ ؟ قَالَ لَقَدْ تَضَايَقَ

وشوه چې يا رسول الله! تاسو تسبيح ولې ووېله او بيا مو تکبير ولې ووېلو؟ وې فرمايل: تنګ شوی وو قبر

عَلَى هٰذَا الرَّجُلِ الصَّالِحِ قَبْرُهُ حَتَّى فَرَّجَهُ اللهُ عَنْهُ. (رَوَاهُ أَحْمَدُ)[1].

په دغه صالح بنده باندې بيا خدای تعالى (زمونږ په تسبيح او تکبير سره) هغه پراخه کړو.

(۱۲) وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ هٰذَا

د ابن عمر رضي الله عنه نه مروي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دا (يعنې سعد بن معاذ رضي الله عنه)

الَّذِيْ تَحَرَّكَ لَهُ الْعَرْشُ

هغه کس دی د کوم د پاره چې عرش حرکت وکړ (يعنې د ده پاک روح کله چې آسمان ته ورسيده نو اهل عرش

وَ فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَ شَهِدَهُ

د خوښۍ او خوشحالتيا اظهارېې وکړ) او د هغه د پاره د آسمان دروازې خلاصې شوې او حاضرې شوې د هغه

سَبْعُوْنَ أَلْفًا مِنَ الْمَلَائِكَةِ لَقَدْ ضُمَّ ضَمَّةً ثُمَّ فُرِّجَ عَنْهُ (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ)[1].

جنازې ته اویازره فرښتې (لیکن بیاهم) د هغه قبر تنګ کړی شو بیا د غه تنګي لرې شوه (او د رسول الله ﷺ په برکت سره د هغه قبر پراخه کړی شو).

**توضیح**: **تحرک له العرش**: په دواړو حدیثونو کې اشاره ده د حضرت سعد بن معاذ رضی الله عنه طرف ته. کوم چې د خندق د جنګ په موقع زخمي شوی وو او وروسته شهید شوی وو. د عرش حرکت د خوښۍ په طور وو چې د همدې عظیم الشان روح سره به د عرش ملاقات اوشي. عرش اګر چه جماد دی مګر په خپل انداز سره آسمان هم ژاړي او نورو جماداتو هم ژړلي دي کله چې کوم نیک بنده د زمکې نه پورته شي، لهذا د عرش خوشحاله کیدل او حرکت کول کوم بعید امر نه دی. علامه طیبي رحمه الله ویلي دي چې ممکنه ده د حضرت سعد رضی الله عنه په وفات باندې د غم او افسوس په طور عرش دا حرکت کړی وي او دا د غم نه کنایه وي. (المرقات ۱/۳۵۹)

**لقد ضم ضمة**: دا د قبر د تنګیدو نه کنایه ده، په دې حدیث کې د قبر د هیبتناک او ویرونکي منظر نه ویرول مقصود دي چې د دومره لوړو درجاتو او د دومره لوی شان والا صحابي ته وګورئ چې عرش د هغه دپاره په حرکت کې شو، اویا زره فرښتې یې په جنازه کې شریکې شوې، د شهادت لوړه مرتبه یې موندله او د آسمان ټولې دروازې یې د استقبال دپاره خلاصې شوې بیا هم قبر یې د تنګیدلو کوشش کوي نو د نورو به څه حال وي؟ د همدې امله هیڅ ته د خپل انجام نه بې پروا کیدل نه دي په کار. بعضو ویلي دي چې قبر د محبت د وجې تنګ شو. ظاهري تکلیف وو مګر په باطن کې خوندونه دي. د احبو او ابرارو سره داسې معامله شوې ده اګر که د فاجرانو سره د ضرر معامله شوې ده. دا کلام ډیر بعید دی، د حدیث سیاق او سباق دا نه قبلوي، بعضو ویلي چې په ابتداء کې یې د څه زحمت اشاره وکړه ترڅو چې وروسته د سرور او راحت په ښه طور احساس وکړی شي. والله اعلم (المرقات ۱/۳۶۰، الکاشف ۱/۳۲۰)

## د قبر فتنه د دجال د فتنې سره برابره ده

(۱۲) وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطِيبًا

اسماء بنت ابي بکر رضی الله عنها روایت کړی دی چې یو ورځ رسول الله ﷺ د خطبې دپاره ودریده او د

(۱) أخرجه النسائي في السنن ٤/١٠٠ رقم الحديث ٢٠٥٥

فَذَكَرَ فِتْنَةَ الْقَبْرِ الَّتِي يُفْتَنُ فِيهَا الْمَرْءُ فَلَمَّا ذَكَرَ ذَلِكَ ضَجَّ الْمُسْلِمُونَ

قبر د فتنې ذکر یې وکړ په کومه کې چې انسانان مبتلا شوي لهذا په همدې ذکر سره مسلمانان په ویره کې شول

ضَجَّةً. (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ ۲/۱۲۳). هَكَذَا وَ زَادَ النَّسَائِيُّ

وی ژړل او لاړل دا روایت بخاري کړی، او نسائي دومره نور زیات بیان کړي چې د (ویرې او دهشت د وجې)

حَالَتْ بَيْنِي وَ بَيْنَ أَنْ أَفْهَمَ كَلَامَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَلَمَّا سَكَنَتْ ضَجَّتُهُمْ

د مسلمانانو د چغو او سورو په سبب ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خبرې نه شوې اورېدلی کله چې دا چغې سورې بندې

قُلْتُ لِرَجُلٍ قَرِيبٍ مِنِّي أَيْ بَارَكَ اللهُ فِيكَ

شوې نو د ما د يوه نزدې ناست کس نه پوښتنه وکړه : خدای تعالی دې تا ته برکت درکړي (يعني ستا په

مَاذَا قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي آخِرِ قَوْلِهِ

علم او فضل کې دې زیات والی وشي) په آخر کې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څه وفرمایل؟ هغه کس وویل

قَالَ قَدْ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّكُمْ تُفْتَنُونَ فِي الْقُبُورِ

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: په ما باندې دا وحې راغلې چې تاسو به په قبرونو کې د ننه په فتنه کې

قَرِيبًا مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ. (نسائي)[1]

واچول شئ (يعني تاسو به وه ازمایل شئ) او دا ازمایښت او فتنه به د دجال فتنې ته نزدې نزدې وي.

## په قبر کې د مونځ کولو خواهش

﴿۱۴﴾ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا أُدْخِلَ الْمَيِّتُ الْقَبْرَ

د جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مروي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد وفرمایه کله چې مړی په قبر کې دفن کړی شي

مُثِّلَتْ لَهُ الشَّمْسُ عِنْدَ غُرُوبِهَا فَيَجْلِسُ يَمْسَحُ عَيْنَيْهِ

نو د هغه مخ ته د غروب افتاب وخت پیش کړی شي نو هغه مړی په لاسونو سره سترګې ومښې راکيني

(۱) اخرجه البخاري ۲۳۲/۳ رقم الحديث : ۱۳۷۳، والنسائي مع الزيادة ۱۰۳/٤ رقم الحديث :۲۰۶۲.

| |
|---|
| وَيَقُولُ دَعُونِي أُصَلِّي . (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ)[1]. |
| او وايي ما پرېږدئ ترڅو چې زه مونځ وکړم. |

**توضيح**: **دعوني اصلي**: دا د مداومت صلوة دليل دی چې کوم خلک په پابندۍ سره مونځ کوي هغو ته په هوش بې هوشۍ، مرګ او ژوند په هره لمحه کې د مونځ فکر ورسره وي او دا د کامل ايمان نښه ده.

**مثلت له الشمس**: يعني د لمر لويدو نظاره ورته وړاندې کړی شي او مري ته په نظر ورشي، دا وخت د مسافر دپاره پريشانوونکی دی، هغه سوچ کوي چې شپه به کوم ځای کې تيروم، دا کس هم د عالم شهود عالم دنيا نه د عالم غيب او عالم آخرت طرف ته مسافر دی هغه ته به پريشاني وي چې لمر لوېږي د مونځ کولو همدا وخت دی، د ځای لټون کوي شپه تيروې د چا سره بلد نه دی او ژبه هم نا اشنا ده مکان هم نا اشنا دی خلک هم نا اشنا دي او جواب هم نا اشنا دی کتاب هم نا اشنا دی او امتحان هم نا اشنا دی، (المرقات ۱/۳۶۱).

د پښتو متل دی:

نا اشنا وطن نا اشنا مکان دی ❁ نا اشنا کتاب نا اشنا تپوس رانه کوينه

يو شاعر په فارسي کې ويلي:

*توزلف را کشادی وتاريک شد جهان ❁ اکنون فتاد شام، غريبان کجا روند*

## د قبر احوال

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (۱۵) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْمَيِّتَ يَصِيرُ | | | | | | | |
| ابو هريره رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت کړی دی چې نبي عليه السلام و فرمايل: چې مړی کله ورسيږي | | | | | | | |
| إِلَى | الْقَبْرِ | فَيَجْلِسُ | الرَّجُلُ | فِي | قَبْرِهِ | | |
| قبر ته دننه (يعني دفن کړی شي) نو (نيک) بنده په قبر کې دننه داسې راپورته شي او کيني چې نه هغه | | | | | | | |
| غَيْرَ فَزِعٍ | وَلَا مَشْغُوبٍ | ثُمَّ يُقَالُ | فِيمَ كُنْتَ ؟ | فَيَقُولُ | كُنْتُ | فِي | الْإِسْلَامِ |
| ويريدونکی وي او نه ويرېږي بيا هغه نه پوښتنه کيږي چې ته په کوم دين وې؟ هغه وايي د اسلام په دين | | | | | | | |
| فَيُقَالُ | مَا | هٰذَا | الرَّجُلُ ؟ | فَيَقُولُ | مُحَمَّدٌ | رَسُولُ | اللهِ |
| بيا ترې پوښتنه کيږي چې دا کس څوک دی؟ هغه وايي: محمد صلى الله عليه وسلم د خدای رسول دی کوم چې | | | | | | | |

(۱) أخرجه ابن ماجه ۱۴۲۸/۲ رقم الحديث : ۴۲۷۲.

جَاءَنَا بِالْبَيِّنَاتِ مِنْ عِنْدِ اللهِ فَصَدَّقْنَاهُ فَيُقَالُ لَهُ

خدای تعالی مونږ ته د ښکاره دلیلونو سره رالیږلی او مونږ د هغه تصدیق کړی بیا تری پوښتنه کیږي چي

هَلْ رَأَيْتَ اللهَ ؟ فَيَقُولُ مَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ أَنْ يَرَى اللهَ

آیا تا الله تعالی لیدلی؟ هغه په جواب کښ وایي چي مناسب نه دي هیچا ته چي الله تعالی ووینی. ددې نه

فَيُفْرَجُ لَهُ فُرْجَةً قِبَلَ النَّارِ فَيَنْظُرُ إِلَيْهَا

وروسته بیا د هغه دپاره یو روښاندان د دوزخ طرف ته پرانستلی شي او هغه اخوا او دیخوا ګوري او د اور

يُحَطِّمُ بَعْضُهَا بَعْضًا فَيُقَالُ لَهُ انْظُرْ إِلَى مَا وَقَاكَ اللهُ

شغلي ویني چي یو بله خوري او هغه ته ویل کیږي چي دې ته او ګوره چي الله تعالی ته ترې ساتلی یې.

ثُمَّ يُفْرَجُ لَهُ فُرْجَةً قِبَلَ الْجَنَّةِ فَيَنْظُرُ إِلَى زَهْرَتِهَا وَمَا فِيهَا

بیا د هغه دپاره یو کړکۍ د جنت طرف ته خلاصه کړی شي هغه به د جنت تروتازه ګي او د هغه شیان ګوري

فَيُقَالُ لَهُ هٰذَا مَقْعَدُكَ عَلَى الْيَقِينِ كُنْتَ

بیا به ورته وویل شي دا ستا د اوسیدو ځای دی ځکه (ستا اعتقاد مضبوط او په هغه باندې) ستا کامل یقین

وَ عَلَيْهِ مِتَّ وَ عَلَيْهِ

وو او د همدې (یقین او اعتماد) په حالت کښ ته وفات شوی وې او په همدې حالت کښ به ته (د قیامت په

تُبْعَثُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى وَ يَجْلِسُ الرَّجُلُ السُّوءُ فِي قَبْرِهِ فَزِعًا

ورځ) راپورته کړی شي که الله تعالی وغواړي، او بدکاره انسان په خپل قبر کښ ویریدونکی راپورته

مَشْغُوبًا فَيُقَالُ فِيمَ كُنْتَ ؟ فَيَقُولُ لَا أَدْرِي

او کینول شي. بیا د هغه نه پوښتنه کیږي چي ته په کوم دین وې؟ هغه به وایي زه نه پوهیږم، بیا به د هغه

فَيُقَالُ لَهُ مَا هٰذَا الرَّجُلُ ؟ فَيَقُولُ سَمِعْتُ النَّاسَ

نه پوښتنه وکړی شي چي دا کس (محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) څوک دی؟ هغه به وایي ما چي د خلکو نه څه آوریدلي

يَقُولُونَ قَوْلًا فَقُلْتُهُ فَيُفْرَجُ لَهُ فُرْجَةً قِبَلَ الْجَنَّةِ

هغه زه هم وایم. ددې نه وروسته به د هغه دپاره د جنت طرف ته یو روښندان خلاص کړی شي دا به د همدې

| |
|---|
| فَيَنْظُرُ إِلَى زَهْرَتِهَا وَمَا فِيهَا فَيُقَالُ لَهُ انْظُرْ إِلَى مَا |
| جنت ترو تازګي او د هغه شیان وګوري بیا به ورته وویل شي د همدې شیانو طرف ته اوګوره کوم چې الله |
| صَرَفَ اللهُ عَنْكَ ثُمَّ يُفْرَجُ لَهُ فُرْجَةٌ إِلَى النَّارِ فَيَنْظُرُ إِلَيْهَا |
| تعالی د تا نه منعه کړي دي بیا به د هغه د پاره د دوزخ طرف ته یو کړکی خلاصه کړی شي او دا به ویني چې د |
| يُحَطِّمُ بَعْضُهَا بَعْضًا فَيُقَالُ لَهُ هٰذَا مَقْعَدُكَ عَلَى الشَّكِّ كُنْتَ |
| اور تیزې شغلې یو بله خوري او ورته وبه ویل شي دا ستا د اوسیدو ځای دی د هغه شک په وجه په کوم کې |
| وَ عَلَيْهِ مِتَّ وَ عَلَيْهِ تُبْعَثُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى .(رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ)[1]. |
| چې ته مبتلا وې او په کوم باندې چې ته مړ شوې او په هغه باندې به راپورته کړی شي که الله تعالی وغواړي. |

**توضیح**: **غیر فزع**: بغیر د ویرید و .**ولا مشغوب**: بغیر د فتنې د رسیدو دا دویمه کلمه د اولې د پاره تاکید هم جوړیدی شي. **هل رأیت ربک**: چونکه د رسول الله ﷺ متعلق سوال په جواب کې فرښتو مړي ته ویلي وو (**جاءنا بالبینات**) نو ځکه فرښتو سوال وکړ چې آیا تا خپل رب لیدلی دی چې **من عندالله** وایې؟ ددې نه معلومه شوه چې په قبر کې د مشهورو دریو سوالونو په ضمن کې څه نور سوالونه هم کیدی شي لکه چې دا مذکور سوال دی (**علی الیقین کنت**) یعنې ستا عقیده مضبوطه وه. په ایماني کیفیاتو کې کوم تزلزل نه وو. او په هغه به راپورته کړی شې. ملا علي قاري رحمه الله ویلي دي چې دا جدا یوه مستقله جمله ده. (المرقات ۳۲۲-۱/۳۲۳).

**۱۶ محرم الحرام ۱۴۰۹هـ**

**د سماع موتی (د مړي آوریدو) مسئله** : **باب اثبات عذاب القبر** : په بعضو احادیثو کې داسې جملې راغلې دي په کومو سره چې په قبرونو کې د مړو آوریدل ثابت شوي دي په ځانګړي طور ددې باب دویم حدیث کوم چې په **حدیث قرع النعال** په نوم سره مشهور دی په هغه کې د مړو آوریدل په واضح طور ذکر شوي دي. په دې وجه ددې مسئلې په مختصر طور باندې ذکر کول به د فائدې نه خالي نه وي. لیکن دلته په دې خبره پوهیدل ضروري دي چې د سماع موتی نه د هغو مړو سماع یا عدم سماع مراد ده کوم چې د انبیاء کرامو علیهم السلام نه بغیر دي. ځکه چې د انبیاء کرامو علیهم السلام په سماع کې هیڅ قابل ذکر

اختلاف نشته دی، بلکې دانبیاء کرامو په خپلو قبرونو کې آوریدل د اهل السنة والجماعة د ټولو ائمو په نزد متفق علیه دي. مولانا رشید احمد گنگوهي رَحِمَهُ اللهُ په دې مسئله کې د بحث په کولو کې لیکلي: انبیاء ددې وجې مستثنی شوي چې دهغو په سماع کې دهیچا اختلاف نشته. (فتاوی رشیدیه ص۵۹. بحواله اشرف التوضیح)

بنده چې کله په دې مسئله بحث کړی دی نو خپلو شاگردانو ته یې ویلي دي او اوس هم وایم چې د انبیاء کرامو نه بغیر د مړو په سماع او عدم سماع کې چې کوم بحث کوئ هغه وکړئ مگر د انبیاء کرامو په سماع کې د خدای دپاره بحث ونه کړئ، ځکه چې د بې آدبۍ خطره ده. کله چې په یو حدیث سره ثابته ده

چې ﴿من صلی عَلَيَّ عند قبري سمعته ومن صلی علي نائیا ابلغته﴾ (مشکوٰة ص ۸۷)

اوس دا یو حدیث دی د هغه خامخا د ضعیف کیدو مجبوري شوېده، آیا کوم داسې روایت یا صحیح حدیث یا د امت اجماع شته کوم چې مونږ په عدم سماع النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې مجبور کړي د کوم د وجې چې مونږ مذکور روایت پرېږدو او هغه حدیث یا اجماع ونیسو. د مشکوٰة شریف په ۱۲۰ او ۱۲۱ صفحه کې هم دوه حدیثونه دي کوم چې په حیات النبي باندې دال دي، بهر حال د انبیاء کرامو نه بغیر په مړو کې د سماع او عدم سماع بحث دی، که چیرته کوم کس د هغو قبرونو ته ورشي یو څه ووایي نو آیا هغه مړي د ده خبرې آوریدلی شي او که نه په دې مسئله کې د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د زمانې نه تر نن پورې اختلاف را روان دی، لهذا په صحابه کرامو کې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د نورو صحابو یوه طبقه د دې قائله ده چې مړي آوري، او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ یوه طبقه د دې قائله ده چې مړي نه آوري، په فتاوی رشیدیه کې حضرت مولانا گنگوهي رَحِمَهُ اللهُ بار بار لیکلي دي هغه دې وکتل شي.

**سوال**: سماع موتی ثابته ده او که نه؟ د جواز یا عدم جواز په صورت کې راجح قول کوم دی او د تلقین وروسته دفن ثابت دی او که نه؟. **جواب**: دا مسئله د صحابو د زمانې نه مختلف فیها ده د دې فیصله هیڅوک نه شي کولی، تلقین کول وروسته د دفن نه په هغه دې باندې مبني ده په کوم چې عمل وکړي صحیح ده.

**سوال**: مړي په قبر کې آوریدلی شي او که نه؟.

**جواب**: د مړو په آوریدلو کې اختلاف دی، د بعضو په نزد یې آوریدلی شي او د بعضو په نزد یې نه شي آوریدلی. حضرت تهانوي رَحِمَهُ اللهُ په امداد الفتاوی کې د دې قریب قریب خبره ده، خلاصه دا ده چې په دې مسئله کې یو طرفه جزمي فیصله او حتمي حکم نه شي لگول کیدی.

**د طرفینو دلائل**: د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او نورو قائلینو د سماع موتی استدلالات دا دي: **اول**: **باب عذاب القبر** دویم حدیث دی کوم چې د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مروي دی په کوم کې چې **انه لیسمع**

**قرع نعالهم** الفاظ راغلي دي. **دويم** : د قليب بدر واقعه او تفصيلي حديث دى چې الفاظ يې داسې دي **والذي نفس محمد بيده ما انتم باسمع لما اقول منهم وفي رواية ما انتم باسمع منهم** (مشكوة ۳۴۵)

**دريم** : د مړو قبرونو ته سلام كول، ابن عبدالبر رَحِمَهُ اللهُ د (السلام عليكم يا اهل القبور) والا حديث صحيح كړى دى. **څلورم** : طبراني يو حديث نقل كړى دى چې مړى څوک وينځي هغه پيژني. علامه ابن كثير رَحِمَهُ اللهُ دا رنګه احاديث په خپل تفسير كې جمع كړي دي د كومو چې يو اوږد فهرست دى. **پنځم** : علامه تفتازاني رَحِمَهُ اللهُ په عالم برزخ كې د مړو په علم باندې اجماع نقل كړې ده، دا اګر كه محل نظر ده مګر هغه په شرح مقاصد كې ليكلي دي. **شپږم** : ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د احاديثو نه ثابته ده چې مړي پوهيږي چې څوک هغه ته كفن ور اغوندي، څوک مونځ ورباندې كوي، څوک هغه پورته كوي، څوک يې دفن كوي، ابن ملک رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې مړى ټک ټک آواز آوري او په دې كې د دې خبرې دليل دى چې په قبر كې مړى ژوندى دى كه نه نو د احساس نه بغير ژوند محال دى، بعضو ويلي دي چې روح راګرځول كيږي او مړى ژوندى كيږي، دا د سماع موتى د قائلينو دلائل دي.

حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او نورو د عدم سماع قائلينو د قرآن كريم په دريو آيتونو سره استدلال كړى :

**اول** : د سورت نمل آيت ﴿ إِنَّكَ لاَ تُسْمِعُ الْمَوْتَى وَلاَ تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاء إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ ﴾ سره يې استدلال كړى دى. **دويم** : د سورت روم آيت ﴿ فَإِنَّكَ لاَ تُسْمِعُ الْمَوْتَى وَلاَ تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاء إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ ﴾ سره يې استدلال كړى دى. **دريم** : د سورت فاطر آيت ﴿ وَمَا يَسْتَوِي الأَحْيَاء وَلاَ الأَمْوَاتُ إِنَّ اللَّهَ يُسْمِعُ مَن يَشَاء وَمَا أَنتَ بِمُسْمِعٍ مَّن فِي الْقُبُورِ ﴾ سره يې استدلال كړى دى. **څلورم** : په عدم سماع اموات باندې يې د امام ابو حنيفة رَحِمَهُ اللهُ طرف ته د سماع اموات نه انكار يا د توقف په قول باندې استدلال كړى دى. **پنځم** : د فقه يو مسئله ده كه يو كس قسم وكړه چې د فلاني سره به خبرې نه كوم هغه د مرګ نه وروسته د هغه سره خبرې وكړې نو نه حانث كيږي، ځكه چې مړى نه شي آوريدلى. دا مسئله په مسئلې د ايمان سره ياده شوې ده په همدې يې استدلال كړى دى چې مړى نه آوري، شيخ ابن همام رَحِمَهُ اللهُ د عدم سماع موتى ښه كوشش كړى دى.

**يو بل ته جوابونه**: قائلينو د سماع موتى ويلي دي چې د امام ابو حنيفة رَحِمَهُ اللهُ طرف ته د عدم سماع موتى نسبت صحيح نه دى، او حنفي فقهاؤ د مړي سره د خبرو د وجې د نه حانث كيدو چې كومه مسئله ليكلې ده هغه د قسم او ايمان مسئله ده د كومې مدار چې په عرف باندې دى په كومې سره چې په عدم سماع موتى استدلال نه شي كيدلى.

د قرآني آیتونو په باره کې: سماع موتی قائلینو ویلي دي چې په همدې دریواړو آیتونو کې د اسماع یعنې آورولو نفي ده چې ته یې آورولی نشې د نفس سماع نفي نه ده شوې چې هغوی یې آوریدی نه شي، آوریدل په خپل ځای باندې دي، البته د آورولو نفي شوې ده.

**سوال**: شبه دا ده کله چې مړی آوریدلی شي نو بیا د اسماع او آورولو نفي په قرآن کې ولې شوې ده؟.

**جواب**: هر هغه عمل کوم چې خارق عادت یا فوق العادت وي الله تعالی د هغه نسبت د ځان طرف ته کړی دی او د مخلوق نه یې د هغه نفي کړې ده، مثلا یو کس څوک په ګولۍ وویشتلو او هغه مړ شو نو نسبت یې د مړ کوونکي طرف ته کیدی شي چې هغه وویشت او وې وژلو، ځکه چې د عادت مطابق همدې کس ویشتلی دی او مرګ واقع شوی دی، لیکن د بدر په میدان کې رسول الله ﷺ ډک موټی خاورې د کفارو طرف ته وړ وشیندلې په کومو سره چې د عادت مطابق مرګ نه شي واقع کیدی لیکن همدې خاورو مافوق العادة اثر وکړ نو الله تعالی د هغو نسبت د ځان طرف ته وکړ او د رسول الله ﷺ نه یې نفي وکړه او وې فرمایل: ﴿وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَـٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ﴾.

همدارنګه د عادت مطابق مړی په قبر کې د ظاهري اسبابو ماتحت آوریدی نه شي نو ځکه د اسماع نفي شوې ده. علامه سیوطي رحمه الله د همدې آیتونو په تفسیر کې ویلي دي چې په دوی کې د سماع او عدم سماع خبره نشته، بلکې دا د عدم انفاع او عدم انتفاع نفي ده چې نه د آورولو والا په اورولو سره دې کفارو ته فائده شته او نه په آوریدو سره ورته فائده شته، ځکه دوی د دار العمل نه تللي دي، په همدې وجه عامو علماؤ تصریح کړې ده چې په همدې آیتونو کې د اسماع چې کومه نفي شوې ده دا تشبیه ده چې په عدم انتفاع کې دا کفار د مړو په شان دي دا کافر آوریدی خو شي مګر فائده نه شي ترې اخستلی نو مړي هم آوریدی شي مګر فائده نه شي اخستلی، باقي د حضرت عائشې رضي الله عنها په روایت کې ﴿یعلمون﴾ هم راغلی دی د کوم چې مطلب دا کیدی شي چې دې مړو ته د هغه د آورولو علم شته نو ﴿یسمعون﴾ او ﴿یعلمون﴾ کې تعارض راغی لهذا استدلال تام پاتې نه شو.

ابن کثیر رحمه الله لیکلي دي چې په قرآن کریم کې ﴿إِن تُسْمِعُ إِلَّا مَن يُؤْمِنُ﴾ هم د آیت برخه ده نو کومو خلکو چې د عامې سماع نفي ددې آیتونو نه کړې ده هغوی ددې آیت سره څه کوي، آیا هغوی دا سې وایي چې کفار نه آوري او مؤمنان په قبرونو کې آوریدی شي؟ دا خو د تعجب خبره ده.

**غلطه نتیجه**: د مثبتونو د سماع موتی پورته ذکر شوي دلائل یې چې ولیدل نو د کمزورې عقیدې یوې طبقې مړو ته خطاب کول شرع کړل او د هغو نه یې قسم قسم حاجتونه غوښتل شروع کړل او مړي یې د حاجتونو مرجع اوګرځول، سره ددې چې دا یو علمي بحث دی کوم چې پر خپل ځای دی. د غیر الله نه مرسته او په غائبانه حاجتونو کې هغو ته آواز کول د قرآن او حدیث د مخې هسې هم حرام دي،

همدارنګه دا څه ضروري ده چې څوک آوري هغه دې د حاجتونو پوره کوونکی هم شي، په ژوندو خلکو کې څومره دي کوم چې ښه آوري مګر بې وسه دي، بل طرف ته کله چې د سماع موتی منکرینو د قرآن آیتونه ولیدل چې په هغو کې په ظاهري طور عدم سماع ده همدارنګه د امام ابو حنیفة رَحِمَهُ اللَّهُ طرف ته یې د عدم سماع نسبت ولیده او د ایمان مسئله یې ولیدله او د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا واضح انکار یې ولیده نو دوی مطلقا د سماع موتی نه انکار وکړ ،همدا خلک د قرآن په مقابل کې د احادیثو وړاندې کول مناسب نه ګڼي په همدې وجه د سماع موتی د ثبوت په احادیثو کې دوی تاویل کړی او ویلي یې دي چې قلیب د بدر والا روایت یاخو د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معجزه وه نو دا د پیغمبر خصوصیت وو ،او یا د تبکیت او تذلیل د پاره هغوی ژوندي کړی شول او دا خصوصي جزوئي واقعه ده په کومه چې نور مواقع قیاس کیدلی نه شي.

**قرع نعال** : والا روایت په باره کې دوی د ابن منیر د قول مطابق ویلي دي چې په هغه کې ذاذان راوي ضعیف دی، یا د قرع نعال والا روایت د ملائکو د سرعت اتیان نه کنایه ده او دا یو تشبیهي کلام دی کوم چې د دفن د وخت سره خاص دی، همدارنګه د سماع موتی په نورو روایتونو کې یا یې تاویل کړی یا یې هغه ضعیف کړی دي او د معاملې د صفا کولو یې دا کوشش کړی دی چې د سماع موتی په نفې سره د شرک دروازه بنده کړی شي، او حضرت تهانوي رَحِمَهُ اللَّهُ هم ویلي دي چې چیرته د شرک خطر وي هلته د سماع موتی نفې ضروري ده، همدې حضراتو دا هم ویلي دي چې اصل عدم سماع موتی ده، چیرته چې سماع موتی ثابته ده هغه عارضي ده اصل په خپل ځای باندې برقرار ساتل شوی دی.

**دویمه غلطي** : د عدم سماع موتی دلائل چې ولیدل شول یوې طبقې مړي د جماداتو د قبیلې نه وګڼل د قبر د عذاب نه یې انکار وکړ،کله چې ژوند نشته آوریدل نشته نو بیا عذاب څنګه ورکول کیدی شي؟ په همدې نظریه باندې معتزله او یو شمیر نور خلک تینګ ودریدلي دي او دوی د قبر د عذاب نه انکار کړی دی، سره ددې چې د قبر عذاب په قرآن او حدیث سره په قطعي طور ثابت دي او د هغه نه انکار کول ګمراهي ده.

**د سماع موتی د بحث خلاصه** : د کلام خلاصه دا ده چې په کومو کومو ځایونو کې په صحیحه احادیثو سره سماع موتی ثابته ده د هغو منل په کار دي لکه چې سلام عند القبور دی، او د مدفون د دفن په وخت کې په هغه کې د سماع ثبوت حاصل شوی دی، همدارنګه په قلیب بدر کې سماع ثابته شوې ده نو منل یې په کار دي، لیکن چیرته چې د سماع موتی ثبوت نشته هلته یې نه منل په کار دي، لکه یو څوک چې سلام کوي او مونږ وایو چې وامو اوریدلو او کله چې کلام او غوښتنه شروع کړي نو مونږ وایو چې نه یې آورو، ځکه چې د مړو سماع نص غیر معقول المعنی او خلاف القیاس دی نو د دې په خپل مورد کې بندول په کار دي، لکه چې د اصولو قاعده ده، حضرت ګنګوهي رَحِمَهُ اللَّهُ په خپله رساله لطائف رشیدیه

کې په دې باندې اوږد بحث کړی دی، دا بحث په تالیفات رشیدیه کې شامل دی او د تالیفات رشیدیه په ۲۷۶ صفحه کې همدا مسئله ذکر ده، حضرت گنگوهي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې د سماع موتی مسئله اول قرون کې مختلف شوې ده اوس د هغې فیصله کول ممکن ندي، مگر تقلید د خپل مقلد مجتهد کوم د ترجیح جانب ته که چیرته میلان وکړي نو څه خبره نشته، **الی ان قال ، الحاصل** راجح مذهب عدم سماع موتی ده د قواعدو مطابق، پس د سماع په احادیثو کې تاویل مناسب دی، که نه نو د دویم جانب مذهب هم قوي دی (تالیفات رشیدیه ۲۷۶).

که چیرته په سماع موتی کې دا طریقه غوره کړی شي چې فی الجمله سماع موتی ثابت ده او فی الجمله نه ده نو په دې سره په ټولو نصوصو کې تطبیق کیږي او په اختلاف کې نرمي راځي، او که یو طرف ته راجع شي او د بل طرف تذلیل او تضلیل که چیرته شروع کړی شي نو د حق علماؤ په نزد او د سلف صالحین په نزد شاید دا طریقه مناسبه نه شي، نن سبا اسلام د څومره غټو غټو خطرو سره مخامخ دی مگر اهل حق په سماع موتی کې داسې ناقراره لیدل کیږي گویا چې چې په اسلام کې که چیرته اختلافي مسئله ده نو هغه همدا ده او په هغې باندې جګړه کول فرض دي، حالانکه په یوه طرف باندې راټولیدل د دویم طرف د بزرگانو د بې آدبی خطره ده.

په دې مسئله کې شیخ القرآن حضرت مولانا غلام الله خان رَحِمَهُ اللهُ څومره د اعتدال لار غوره کړې ده په جواهر القرآن کې یې ویلي دي : د سماع موتی مسئله د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په زمانه کې مختلف فیه راروانه ده، دا مسئله د ضروري اعتقادیاتو نه نه ده په کومې باندې چې د کفر یا د اسلام مدار دی، بلکې دا یو علمي او تحقیقي بحث دی په کومې کې چې د بحث، تمحیص، نظر او تحقیق گنجایش شته ، د امت محمدیه **علی صاحبها الصلوة والسلام** د علماؤ په مینځ کې همیشه په هندې مسئله کې لیرې والی شته دی، د څه علماء کرامو رآیه دا ده چې مړي آوریدی شي، کله چې نورو علماء کرامو د خپل تحقیق په بنیاد باندې د سماع موتی نفې کړې ده.د علماء کرامو د هندې دواړو ډلو سره دلائل شته دی کومو چې په هغو باندې خپلې خپلې رآیې او د تحقیق بنیادونه برابر کړي دي.کومو علماء کرامو چې د سماع موتی نفې کړې د هغوی استدلالات دقرآن دظاهرنه او د صحیحه احادیثو نه دي، کله چې د سماع قائلینو هم په صحیحه احادیثو استدلال کړی دی (**جواهر القرآن ج۲ص۹۰۲**).

شیخ الاسلام حضرت مولانا شبیر احمد عثماني رَحِمَهُ اللهُ د سورت روم د ۵۳ آیت په تفسیر کې لیکلي دي : اوس د نصوصو نه د کومو خبرو په غیر معمولي طریقې سره آوریدل ثابت شي تر هغه حده مونږ ته د سماع موتی قائلیدل په کار دي، محض د قیاس په کولو سره نورې خبرې د سماع لاندې نه شي راوړل کیدی، بهر حال په آیت کې دا سماع په نفې سره مطلقا د سماع نفې نه ده شوې والله اعلم (تفسیر عثماني ص۵۴۵).

د مولانا شبير احمد عثماني رَحِمَهُ اللّٰهُ تحقيق او فيصله هم دا ده چې في الجمله دې سماع موتى ومنل شي او في الجمله دې عدم سماع موتى ومنل شي، په دې سره په ټولو نصوصو کې تطبيق راتلى شي.

مفتي اعظم پاکستان مفتي محمد شفيع ديوبندي رَحِمَهُ اللّٰهُ د احکام القرآن په نوم په عربي ژبه د قرآن عظيم الشان يو تفسير ليکلى دى کوم چې د حکيم الامت حضرت تهانوي رَحِمَهُ اللّٰهُ فوائد دي او د هغه په حکم سره ليکل شوي دي. په هغه کې حضرت مفتي صاحب په ډير تفصيل سره د سماع موتى مسئله بيان کړې ده او اثبات د سماع موتى يې راجح بللى دى. ليکن په يوه ځاى کې يې ليکلي دي د کوم چې خلاصه دا ده کله چې ما د طرفينو دلائل وکتل نو پريشانه شوم. په همدغه پريشانۍ کې ماته په خوب کې يو بزرګ وويل چې ته ولې په دې مسئله پسې لګيدلې يې، عالم برزخ يو مستقل عالم دى. کله چې الله تعالى وغواړي نو د ژوندو خبرې به مړو ته ورسوي او که يې ونه غواړي نو نه به يې رسوي. حضرت مفتي صاحب د دې خوب وروسته ليکلي دي ﴿فاصبحت منشرحًا صدري﴾ يعنې زه د شرح صدر په حالت کې راپورته شوم چې يقينا د عالم برزخ فيصله دلته په دنيا کې نه شي کيدلى. د دې خبرې نه دا خبره ثابته شوې ده چې في الجمله سماع ده او في الجمله عدم سماع ده، لهذا په يو طرف کې ودريدل او د بل طرف تضليل او تجهيل کول مناسب نه دي، اګر که په مسئله کې اختلاف دى خو اختلاف په مرګ کې هم شته دى.

تخالف الناس حتى لا اتفاق لهم ❁ الا على شجب والخلف في الشجب

فقيل تخلص نفس المرأ سالمة ❁ وقيل تشرک نفس المرأ في العطب

يعنې د انسانانو د مرګ نه علاوه په هر شي کې اختلاف دى ليکن په مرګ کې هم اختلاف دى، ځکه چې بعضې وايي روح نه مري او بعضې وايي چې د جسم سره روح هم مړ کيږي.

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

۱۷ محرم الحرام ۱۴۰۹ هـ

# بَابُ الِاعْتِصَامِ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ
## په كتاب او سنت منګولې لګول

اعتصام د باب **افتعال** نه د پنجې وهلو او په منګول کې په مضبوطۍ سره د يو شي نيولو په معنی سره راځي. (المرقات ۱/۳۶۵).

د الله تعالى ارشاد دی : ﴿ **وَاعْتَصِمُواْ بِحَبْلِ اللهِ جَمِيعًا** ﴾ (**اى تمسكوا بالقرآن والسنة**). (المرقات ۱/۳۶۵).

يعنې د قرآن كريم او سنت نبويه اوامر او نواهي او د هغو ټول احكام په زړه او روح سره ومنئ په هغو باندې عمل کول **اعتصام بالكتاب والسنة** دی. **الكتاب**: مراد ترې وحې متلو او وحې جلي ده.

**والسنة**: د سنت نه مراد وحې غير متلو او وحې خفي ده، نو كتاب په معنی د قرآن مجيد دی او سنت په معنی د سيرت سره دی، دا د رسول الله ﷺ د هغو مسئلو د مسنونې طريقې نوم دی په کومو باندې چې رسول الله ﷺ مواظبت کړی دی يا د سنت نه مراد **اقوال النبي ﷺ وافعاله واحواله المعبر عنها بالشريعة والطريقة والحقيقة وما سلك عليها الصحابة والتابعون**(المرقات ۱/۳۶۵).

په دې خبره پوهيدل په کار دي چې د شريعت مدار د رسول الله ﷺ په ذات باندې دی، لهذا کله احکام وروسته راغلي دي او د رسول الله ﷺ د ذات عمل د وجې مخکې شوي دي لکه د اودس مسئله چې د هغه حکم څو کلونه وروسته راغی او په هغه باندې د رسول الله ﷺ د ذات عمل د پخوا نه شوی وو، د كتاب او سنت مثال د متن او د شرحې دی، كتاب **محمل متن** دی او سنت د هغه **تفصيل** او **شرح** ده، اوس كه چيرته د دې متن نه همدا شرح جدا وګڼل شي نو كتاب مجمل بلکې مهمل پاتې کيږي. ځکه چې د حج، زکوة، روژې او مونځ حکم خو په كتاب الله کې شته دی ليکن د هيئت او کيفياتو تفصيلات او تشريحات خو يې په سنت سره ثابت شوي دي.

يا ددې دواړو د ظاهري احكامو دپاره دستور العمل په کار دی هغه فقه ده کومه چې د جدا جدا عملي دفعاتو نوم دی او د همدې قرآن او سنت نه مستنبط شوې ده كوم جدا شی نه دی ، اوس که چيرته فقه د قرآن او حديث نه جدا کړی شي نو همدا دواړه ادله به د دستور نه بغير پاتې شي او د باطني احكامو دپاره دستور العمل تصوف سلوک او احسان دی نو همدا شريعت حقيقت او طريقت دی.

د همدې باب روایتونه نهایت واضح او مؤثر انداز سره **ترغیب الی السنة** او **تحذیر عن البدعة** په تعلیم باندې مشتمل دي، په دین کې د نوو شیانو بدعاتو د بیخ ویستلو دپاره ددې نه بهتره کومه بله نسخه نشته.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### په دین کې د نوو خبرو پیدا کول بدعت دی

| |
|---|
| (۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَنْ اَحْدَثَ |
| د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: چا چې پیدا کړه |
| فِيْ اَمْرِنَا هٰذَا مَا لَيْسَ مِنْهُ فَهُوَ رَدٌّ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| زما په دین کې یوه داسې نوې خبره کومه چې زما په دین کې نه وي نو هغه مردود ده. |

**توضیح: من احدث:** (ای اوجد وابتدع وزعم کونه دینا). (المرقات ۱/۳۶۵).

**في امرنا:** ددې نه د اسلام دین او شریعت مطهره مراد دي.

**هذا:** دلته د اشاره قریب صیغه استعمال شوې ده اګر چه دین محسوس او مبصر نه دی، په دې سره د دین اسلام نهایت واضح او روښانه کیدو طرف ته اشاره ده چې د دلائلو او یقینیاتو په اعتبار سره دا دین داسې روښانه دی لکه کوم محسوس او مبصر شی چې وي. (المرقات ۱/۳۶۵).

**د بدعت تعریف:** احدث او احداث في الدین د بدعت په معنی سره دی، په لغوي طور بدعت نوي شي او د نوي کار کولو ته ویل شوي دي، او د شریعت په اصطلاح کې بدعت د هغه کار نوم دی کوم چې په خیر القرون کې نوي او سلف او خلف د هغه طرف ته محتاج وي، او کوم کس یې د ثواب حاصلولو په نیت وکړي. د بدعت ددې شرعي تعریف په نظر کې نیولو د وجې د هغه هیڅ فرد حسنه نه دی بلکې د هغه هر فرد قبیح او سیئه دی، هو د بدعت په لغوي مفهوم کې هر نوی شی داخل شوی دی د کومو نه چې د بدعت ډیر قسمونه جوړیدی شي، لیکن هغه د ایجاداتو د قبیلې نه دي اصطلاحي او شرعي بدعت نه دي. ددې تعریف نه عادات وتل لکه د نوي ډیزائن جامې، د خوراک څښاک او ځان جوړونې نوې نوې طریقې وغیره، همدارنګه په وسائلو او ذرائعو کې بدعات نه راځي، بلکې په مقاصدو کې راځي، لهذا

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۵/۳۰۱، رقم الحديث ۲۶۹۷، ومسلم في الصحيح ۳/۱۳۴۳ رقم الحديث ۱۷-۱۷۱۸، وأبو داود ۵/۱۲ رقم الحديث ۴۶۰۶، وابن ماجة ۱/۷، رقم الحديث: ۱۴، وأخرجه أحمد في المسند ۶/۲۷۰

كه چيرته كوم كس د مونځ دپاره سور ځي، يا پياده ځي يا د منډې په وهلو سره ځي د كومې وسيلې او ذريعې استعمال چې وغواړي كولى يې شي. سلف يعنې صحابه كرام رضي الله عنهم په وروسته كې د راتلونكو په شان د همدې كار طرف ته محتاج شوى دى او بيا يې هم نه دي كړي.

او كه چيرته صحابه د كوم خصوصي طرز طرف ته محتاج شوي نه وي او په وروسته كې راتلونكي خلك هغه ته محتاج شي مثلا په خصوصي طور د مدارسو جوړول. په جوماتونو كې دننه د صرف او نحو وغيره فنونو تعليم، دا ايجاد هم بدعت نه دى ، ځكه چې د سلفو په نزد د همدې شيانو وجود ځكه نه وو چې هغوى دې طرف ته محتاج نه وو ،كه چيرته په دې خاص انداز او طريقه كار كې ثواب وى نو هغوى به هم خپل كړى وو ځكه چې د ثواب طرف ته هغوى هم محتاج وو، د ثواب نيت شرط دى ځكه بدعت ددې ثواب د نيت نه جوړ شوى دى، شرک او بدعت هميشه د محبت او ثواب د لارې راغلي دي. د شرک او كفر نه وروسته د بدعت نمبر دى.

په همدې وجه اوس ويل شوي دي **البدعة شرک الشرک** يعنې بدعت د شرک يوه تسمه او شاخ دى. د دې وجه دا ده چې د اسلام دين اوس مكمل شوى دى ﴿**الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ**﴾ قرآني آفاقي اعلان شوى دى، اوس چې كوم كس په دين كې كومه نوې جزيه راوړي نو مونږ د هغه نه پوښتنه كوو چې د همدې ايجاد د ثواب كار رسول الله صلى الله عليه وسلم ته معلوم وو او كه نه؟ كه چيرته هغه ووايي چې معلوم نه وو نو په علم كې د افضليت دعوې كولو د وجې دا كس كافر كيږي، او كه ووايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته معلوم وو نو مونږ ترې پوښتنه كوو چې امت ته يې د هغه تعليم وركړى او كه نه؟ كه چيرته هغه ووايي چې نه يې دى وركړى نو بيا هم كافر كيږي، ځكه چې د رسالت په فريضه باندې يې اعتراض وكړ او كه ووايي چې تبليغ يې كړى نو ووايه چيرته دي؟ چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د ميلاد حكم كړى دى يا يې د جلوس حكم كړى يا يې د اذان نه مخكې د خاص نمايشي ورد حكم كړى. يا يې د عرسونو او د ميلو حكم كړى، يا يې د جمعه نه وروسته د حلقه په جوړولو سره په ولاړه د خود ساخته سلام ويلو حكم كړى دى وغيره وغيره.

كه چيرته هغه ووايي چې مونږ په عموماتو سره استدلال كړى دى چې د درود ويلو عام حكم دى نو د دې جواب دا دى چې ﴿**الاستدلال بالعمومات عند وجود سنة مخصوصة باطل**﴾ يعنې د مخصوص سنت په موجودګۍ كې په عموماتو او عامو نصوص سره استدلال كول باطل دي.

بنه مونږ ته دا وښايه چې تاسو په كومو عموماتو سره استدلال كړى دى آيا رسول الله صلى الله عليه وسلم ته د هماغو عموماتو علم وو او كه نه؟ او هغه پيژندل او كه نه؟ كه يې پيژندل نو ووايى چې عمل يې په همدې عموماتو باندې چيرته كړى دى؟ نو په كومو عموماتو چې رسول الله صلى الله عليه وسلم استدلال نه دى كړى بلكې د عموماتو برعكس د رسول الله صلى الله عليه وسلم خاص سنت موجود دي نو تاسو ولې د

عموماتو په بدعاتو کې اخته شوي ياست؟ دلته په دې خبره پوهيدل ضروري دي چې په بدعت او رسم کې فرق دی چې بدعت د ثواب په نيت سره کيدلی شي او د رسم (رواج) په اداء کولو کې د ثواب نيت نشته دی.دويم فرق دا دی چې په بدعت کې د عمل او عقيدې دواړو خرابي ده او په رسم کې صرف د عمل خرابي ده، د بدعت د پورته ذکر شوو تشريحاتو دپاره علامه ابن کثير رَحِمَهُ اللهُ يو تفسيري عبارت د تائيد په طور دير زيات مناسب دی. ويلي دي **(واما اهل السنة والجماعة فيقولون في كل قول وفعل لم يثبت عن الصحابة رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ هو بدعة لانه لو كان خيرا لسبقونا اليه لانهم لم يتركوا خصلة من خصال الخير الا وقد بادروا اليها) (تفسير ابن كثير ج ۲ ص ۱۵۶).**

علامه جرجاني رَحِمَهُ اللهُ سرسيد شريف په خپل کتاب (التعريفات) کې د بدعت تعريف داسې کړی دی **(البدعة هي الامر المحدث الذي لم يكن عليه الصحابة والتابعون ولم يكن مما اقتضاه الدليل الشرعي) (التعريفات ص ۳۷).**

يعني بدعت د هغه نوي ايجاد نوم دی کوم چې نه صحابو کړی دی او نه تابعينو کړی دی او نه کوم شرعي دليل د هغه غوښتنه کړې دی، د بدعت دې شرعي تعريفاتو ته چې وکتل شي هر کس دا فيصله کولی شي چې بدعت يو قبيح عمل دی. او د هغه هيڅ فرد ښه او حسنه کيدی نه شي، هو لغوي مفهوم کوم چې د مطلق ايجاد په معنی سره دی په هغه کې اقسام جوړ شوي دي، ليکن په شرعي بدعت کې هيڅ تقسيم نشته دی.کومو حضراتو چې تقسيم کړی دی هغه يې د شرعي بدعاتو تقسيم نه دی کړی بلکې د لغت په حواله سره دی، شيخ احمد سرهند مجدد الف ثاني رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي :**اما اين فقير درين مسئله بايشان موافقت ندارد وهيچ فرد بدعت را حسنه نمي داند وجز ظلمت وكدورت درآن احساس نمي نمايد. (قال عليه وعلى آله الصلوة والسلام كل بدعة ضلالة) (مكتوبات ج ۲ ص ۳۸)**

**ترجمه** : بهر حال دا فقير د تقسيم بدعت په مسئله کې د دې خلکو سره موافقت نه لري او د بدعت هيڅ فرد او قسم حسنه نه گڼي، بلکې په بدعت کې د تاريکۍ نه بغير بل هيڅ نشته دی، د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد دی چې هر بدعت گمراهي ده.د مجدد الف ثاني رَحِمَهُ اللهُ د مبارک کلام مطلب دا شو چې په اصطلاحي او شرعي بدعت کې هيڅ تقسيم نشته چې بدعت هم وي او ښه هم وي، بلکې د شرعي بدعت هر هر فرد په اعتبار سره گمراهي ده.

## هر بدعت گمراهي ده

| |
|---|
| **(۲) وَ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَمَّا بَعْدُ** |
| د جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په يوه خطبه کې وفرمايل: وروسته د دې نه |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَإِنَّ | خَيْرَ | الْحَدِيثِ | كِتَابُ | اللهِ | وَ | خَيْرَ | الْهَدْيِ | هَدْيُ | مُحَمَّدٍ |
| پوهيدل په کار دي چې بيشکه د ټولو نه بهتره خبره د الله تعالی د کتاب ده او د ټولو نه بهترينه لار د محمد | | | | | | | | | |
| وَ | شَرَّ | الْأُمُورِ | مُحْدَثَاتُهَا | وَ | كُلَّ | بِدْعَةٍ | | | |
| صلی الله علیه وسلم لار ده او د ټولو بد ترين شی هغه دی کوم چې په دين کې نوی را وويستل شي او هر بدعت (د خپل | | | | | | | | | |
| ضَلَالَةٌ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. | | | | | | | | | |
| ځان د طرف نه په دين کې نوي پيدا شوي ده) ګمراهي ده. | | | | | | | | | |

**توضيح : امابعد** : رسول الله صلی الله علیه وسلم شايد خطبه ويلي وه نو ځکه يې **امابعد** کلمه وويله، ددې کلمې متعلق په شروع کې پوره تفصيل تير شوی دی. (المرقات ۱/۳۶۷).

**وكل بدعة ضلالة** : په يوه روايت کې راغلي دي **(وكل ضلالة في النار)** يعنې د ګمراهی اهل خلک به ټول په دوزخ کې وي، د اسلام په دين کې بدعت يو خطرناک شی دی په کوم سره چې د دين د مسخ کيدو خطره ده او دين ورباندې فاسد کيدی شي، (المرقات ۱/۳۶۷). امام مالک رحمه الله ويلي دي :

و هل افسد الدين الا الملوك ✿ و احبار سوء و رهبانها

بې دينه ملحد بادشاهان او علماء سوء او د جهالت نه ډک باطل پرست درويشان د دين د خرابيدو ذمه وار دي.

و خير امور الدين ما كان سنة ✿ وشر الامور المحدثات البدائع

## د ټولو نه زيات مبغوض خلک

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (۲) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبْغَضُ | | | | | | | | | | |
| د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې : رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : د ټولو نه زيات مبغوض | | | | | | | | | | |
| النَّاسِ | إِلَى | اللهِ | ثَلَاثَةٌ | مُلْحِدٌ | فِي | الْحَرَمِ | وَ | مُبْتَغٍ | فِي | الْإِسْلَامِ |
| خلک الله تعالی ته دري کسان دي : (۱) په حرم کې کجروي کوونکی، (۲) رواج کوونکی په اسلام کې | | | | | | | | | | |
| سُنَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ وَ مُطَّلِبُ دَمِ امْرِئٍ بِغَيْرِ حَقٍّ لِيُهْرِيقَ دَمَهُ . (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[2]. | | | | | | | | | | |
| طريقې د جاهليت د زمانې (د ريم) د کوم مسلمان په ناحقه د وينو غوښتونکی چې د هغه وينه توی شي. | | | | | | | | | | |

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۱۱٤٤

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۲/۲۱۰، رقم الحديث ۶۸۸۲

**توضيح** : **ملحد في الحرم** : الحاد د سمې لارې نه كږيدو او كږووى كولو ته ويل كيږي او ملحد فى الحرم هغه كس دى كوم چې په حرم شريف كې د شريعت د احكامو خلاف ورزي كوي. د خداى تعالى د حرم بې حرمتي كوي، او هلته بد امني خوروي، جګړه كوي او هلته ښكار كوي. ويل شوي دي چې په حرم شريف كې د ګناه تصور كول هم ګناه ده، او صغيره هم كبيره شمارل كيږي. (المرقات ۱/۳۷۰).

**سنة الجاهلية** : يعنې د اسلام د قبلولو نه وروسته د بدبختۍ د وجې نه د جاهليت زمانې رسم او رواج په اسلام كې رواج كوي، مثلا نوحه كول، د ګريوان څيرې كول، ويښتان ويستل، قومي تعصب ته هوا وركول او د جاهليت بدعت په اسلام كې داخلول وغيره وغيره. (المرقات ۱/۳۶۹).

**مطلب دم امرء** : يعنې چې په ناحقه د يو مسلمان د وينو تويولو په لټون كې وي او دا لويه ګناه ده، علماؤ ليكلي دي چې ددې جملې او د ماقبل جملې مطلب دا دى چې دا كس ددې ګناهونو د لټون له وجې ګنهګار جوړ شوى دى نو كوم خلک چې ددې ګناهونو كوونكي شي د هغو د اوسيدو ځاى به كوم وي؟. همدا درى خويونه يې خاص كړل ځكه چې په اول كې د مركز تخصيص او د هغه احترام دى. په دويم كې د اسلام د حدودو رعايت دى او په دريم كې د امن عامه خصوصيت دى، يا داسې كه وويل شي چې په اول كې قباحت او شناعت د محل په وجه دى، په دويم كې شناعت د فاعل د وجې دى او په دريم كې شناعت د فعل د وجې دى، نو فعل فاعل او محل درې واړه راغلل. (المرقات ۱/۳۶۹).

(۴) وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ أُمَّتِي

او د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : زما ټول امت

يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَنْ أَبٰى قِيلَ

به جنت ته داخل شي مګر هغه كس كوم چې انكار وكړ او سركشي يې وكړه (جنت ته به نه داخليږي) پوښتنه

وَ مَنْ أَبٰى قَالَ مَنْ أَطَاعَنِي

وشوه هغه كوم كس دى؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: كوم كس چې زما اطاعت او فرمانبرداري وكړه

دَخَلَ الْجَنَّةَ وَ مَنْ عَصَانِي فَقَدْ أَبٰى . (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1].

هغه جنت ته داخل شو او چا چې زما نافرماني وكړه هغه انكار وكړ او سركشي يې وكړه.

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۲۴۹، رقم الحديث ۷۲۸۰ ، واحمد في المسند

**توضيح**: **الا من ابی**: دلته که د امتي نه که چيرته امت دعوت يعنې کفار مراد کړی شي نو د الا من ابی نه به مراد کافر شي، په دې صورت کې به استثناء متصله شي، يعنې کومو کافرانو چې د ايمان نه انکار کړی دی هغوی به جنت ته نه ځي. او که د امت نه مراد امت اجابت يعنې مسلمان امت شي نو بيا په الا من ابی کې تفصيل دا دی چې که چيرته يې اعتقاداً انکار وکړ نو هغه کافر شو او استثناء منقطع شوه. يعنې ټول مسلمان امت به جنت ته ځي مگر د جنت عقيده نه لرونکي به جنت ته نه ځي، او که چيرته عصياناً انکار دی نو بيا استثناء متصله ده يعنې ټول مسلمان امت به جنت ته ځي مگر انکار کوونکي مسلمانان به نه ځي، يعنې په اول دخول سره به نه ځي ځکه چې د گناه ارتکاب يې کړی دی د سزا د تيرولو نه وروسته به ځي. (المرقات ۱/۳۷۰).

## فرښتو د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حيثيت واضح کړو

| |
|---|
| (۵) وَ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ جَاءَتْ مَلَائِكَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې څه فرښتې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په داسې وخت کې راغلې چې |
| وَ هُوَ نَائِمٌ فَقَالُوا إِنَّ لِصَاحِبِكُمْ هٰذَا |
| هغه اوده ؤ فرښتو په خپل مينځ کې سره وويل: ستاسو ددې دوست (يعنې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) متعلق |
| مَثَلًا فَاضْرِبُوا لَهُ مَثَلًا قَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّهُ نَائِمٌ |
| يو مثال دی هغه دده په وړاندې بيان کړئ نورو فرښتو وويل: دا خو اوده دی (لهذا د بيانولو فائده څه ده؟) |
| وَ قَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّ الْعَيْنَ نَائِمَةٌ وَ الْقَلْبَ يَقْظَانُ فَقَالُوا مَثَلُهُ |
| او بعضو وويل بيشکه سترگې يې ويدې دي ليکن زړه خو يې ويښ دی بيا هغې وويل: دده مثال د هغه |
| كَمَثَلِ رَجُلٍ بَنَى دَارًا وَ جَعَلَ فِيهَا مَأْدُبَةً وَ |
| کس دی کوم چې کور جوړ کړ او خلکو ته د خوراک د پاره يې دسترخوان خور کړو او بيا يې د خلکو په رابللو |
| بَعَثَ دَاعِيًا فَمَنْ أَجَابَ الدَّاعِيَ دَخَلَ الدَّارَ وَ أَكَلَ مِنَ الْمَأْدُبَةِ وَ مَنْ |
| پسې کسان وليږل لهذا کومو چې د بلونکو خبره ومنله هغوی کورته داخل شو او خوراک يې وکړ او کومو |
| لَمْ يُجِبِ الدَّاعِيَ لَمْ يَدْخُلِ الدَّارَ وَ لَمْ يَأْكُلْ مِنَ الْمَأْدُبَةِ |
| چې د بلونکو خبره ونه منله هغوی نه کور ته داخل شو او نه يې خوراک وکړ. دا يې چې واوريدل فرښتو |

| |
|---|
| فَقَالُوا أَوِّلُوهَا لَهُ يَفْقَهُهَا قَالَ بَعْضُهُمْ |
| په خپل مینځ کې وویل هغه ته یې (د وضاحت سره) بیان کړه ترڅو چې وربانديې پوهه شي بعضو فرښتو |
| إِنَّهُ نَائِمٌ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّ الْعَيْنَ نَائِمَةٌ |
| وویل (دبیانولو فائده څه ده ځکه) چې هغه خو اوده شوی دی، نورو وویل بیشکه سترګې یې ویدې دي |
| وَ الْقَلْبَ يَقْظَانُ فَقَالُوا الدَّارُ الْجَنَّةُ وَ الدَّاعِي مُحَمَّدٌ |
| لیکن زړه خویې ویښ دی او بیایې وویل: د کور نه مراد جنت دی او دبلونکي نه مراد رسول الله ﷺ |
| فَمَنْ أَطَاعَ مُحَمَّدًا فَقَدْ أَطَاعَ اللهَ وَ مَنْ عَصَى |
| دی چاچې د محمد ﷺ فرمانبرداري وکړه هغه د الله فرمانبرداري وکړه او چاچې نافرماني وکړه د |
| مُحَمَّدًا فَقَدْ عَصَى اللهَ وَ مُحَمَّدٌ فَرْقٌ بَيْنَ النَّاسِ (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)(۱). |
| محمد ﷺ هغه د الله نافرماني وکړه او محمد ﷺ د خلکو په مینځ کې فرق کوونکی دی. |

**توضیح : فاضربوا له مثلا** : دا خبرې اترې د فرښتو خپلمنځي خبرې دي د مثال په طور دا حدیث بیان شوی دی نو دا مرفوع حدیث دی.(المرقات ۱/۳۷۱).

**والقلب یقظان** : د عامو خلکو د خوب اثر په ظاهري او باطني ټولو اندامونو باندې وي او د سترګو سره زړه یې هم اوده وي د ادراک او شعور نه غافل وي، لیکن د نبي خوب صرف ظاهري اندامونه متاثر کوي د زړه په ادراک او شعور باندې خوب اثر نه کوي.د ډیرو احادیثو نه ثابته ده چې د انبیاؤ زړه نه اوده کیږي، ځکه د نبي په زړه باندې هر وخت د عالم بالا نه د وحې نزول کیږي، نو په خوب او بیدارۍ کې د وحې د علومو حاصلولو د پاره د هغه د زړه تیار ساتل ضروري دي، همدا وجه ده چې د نبي خوب د وحې یو مستقل قسم دی کوم چې قطعي او یقیني دی،حضرت ابراهیم علیه السلام د خوب د وجې د اسماعیل علیه السلام د ذبحه کولو فیصله وکړه، که چیرته د خوب حیثیت قطعي او یقیني نه وی نو د قتل په شان د یوه عمل ارتکاب به یې څنګه کړی وو؟ همدا وجه ده چې د نبي د خوب نه بیدارول روا ندي، ممکن ده چې وحې را روانه وي، او همدا وجه ده چې د انبیاء کرامو علیهم السلام خوب د اودس ماتوونکی نه دی. (المرقات ۱/۳۷۱).

**سوال**: دلته دا سوال شوی دی چې په راتلونکي كتاب الصلوة كې د (**ليلة التعريس**) په نوم يو حديث راروان دی په هغه كې راغلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په يو ځای كې پړاو واچولو او د لښكر تول ځک اوده شول، رسول الله صلى الله عليه وسلم هم ويده شو. او د لمر د راختلو وروسته يې سترګې خلاصې شوې او د سهار مونځ قضاء شوی وو، د رسول الله صلى الله عليه وسلم زړه كه ويښ وی نو مونځ ولې قضاء شو؟ او په خپل وخت باندې ولې رابيدار نه شو؟.

**جواب**: د همدې سوال زياتره شارحينو دا جواب وركړی دی چې په انسانی جسم كې د هر اندام خپل جدا كار او ذمه واري ده، د سحر ادراک كول او د هغه ليدل دا د زړه ذمه واري نه ده ،بلكې د سترګو ذمه واري ده، همدا وجه ده كه چيرته كوم كس سترګې بندې كړي لو د بيدارۍ په حالت كې هم هغه د صبح صادق ادراک نه شي كولی سره ددې چې زړه يې بيدار دی، مګر سترګې يې بندې دي، دلته هم دا شان معامله ده، چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم زړه بيدار وو ليكن د سهار ادراک د زړه كار نه وو بلكې د سترګو وو او په ظاهري طور باندې سترګې د خوب د وجې متاثره شوې وې، نو د سهار ادراک هغه وخت وشو كله چې نمر جسم د احساس سره متاثر كړ او د جسم قوت حاسې محسوس كړه چې د سحر وخت تير شوی بلكې ګرمۍ راپورته شوې ده.

**أولو هاله**: يعني د همدې مثال تفسير بيان كړه ترڅو چې رسول الله صلى الله عليه وسلم هم پرې پوه شي. (المرقات ۱/۳۷۲).

**الداعي محمد**: په بعضو نورو روايتونو كې د داعی نه مراد الله تعالی دی، او د **مأدبة** نه مراد جنت دی، او د دار نه مراد اسلام اخيستل شوی دی، د كوم چې په ظاهره تعارض معلوم شوی دی، شارحينو ليكلي دي چې په دې كې هيڅ تعاروض نشته دی، ځكه چې اصل او بلا واسطه داعي الله تعالی دی، او رسول الله صلى الله عليه وسلم بالواسطه داعي دی، نو كله نسبت بلا واسطه او كله بالواسطه شوی دی. همدارنګه اسلام چونكه د جنت دپاره سبب دی او په خپله جنت مسبب دی نو د دار تفصيل كله په اسلام سره شوی كوم چې د جنت دپاره سبب دی او كله د دار تفصيل په جنت سره شوی كوم چې مسبب دی، او د سبب اطلاق په مسبب باندې او د مسبب اطلاق په سبب باندې مشهور دی.

**ومحمد فرق بين الناس**: يعني رسول الله صلى الله عليه وسلم د مؤمن او كافر په مينځ كې فارق دی چې د ده صلى الله عليه وسلم منونكی مؤمن او نه منونكی كافر دی، كوم چې محمدي دی هغه مؤمن دی او كوم چې محمدي نه دی هغه مسلمان نه دی، ځكه چې د حقانيت په ميدان كې اوس د محمديت د دور دوره ده. (المرقات ۱/۳۷۲).

## په عمل کې د خپل نبي نه وړاندې مه ځئ

(٦) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ جَاءَ ثَلَاثَةُ رَهْطٍ إِلَى أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دانس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې دری کسان درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دازواج مطهراتو په خدمت کې حاضر

يَسْأَلُونَ عَنْ عِبَادَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَلَمَّا أُخْبِرُوا بِهَا

شو ترڅو چې درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعبادت کولو حال معلوم کړي او کله چې یې دعبادت پوښتنه وکړه

كَأَنَّهُمْ تَقَالُّوهَا فَقَالُوا أَيْنَ نَحْنُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

نو دنبي عَلَيْهِ السَّلَام په عبادت یې دکم ګمان وکړو او په خپل مینځ کې سره وویل: دنبي عَلَيْهِ السَّلَام په مقابل کې

وَ قَدْ غَفَرَ اللهُ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ فَقَالَ أَحَدُهُمْ

کې مونږ څه شي یو الله تعالی خو هغه ته مخکني او وروستني ټول ګناهونه معاف کړي دي په هغو کې یو وویل

أَمَّا أَنَا فَأُصَلِّي اللَّيْلَ أَبَدًا وَ قَالَ الْآخَرُ أَنَا أَصُومُ النَّهَارَ أَبَدًا وَلَا أُفْطِرُ

اوس به زه ټوله شپه عبادت کوم، دویم وویل: زه به د ورځې همیشه روژه نیسم هیڅکله به افطار نه کوم،

وَ قَالَ الْآخَرُ أَنَا أَعْتَزِلُ النِّسَاءَ فَلَا أَتَزَوَّجُ أَبَدًا

دریم وویل: زه به د ښځو نه جدا اوسیږم او هیڅکله به نکاح نه کوم (په دوی کې همدا خبرې روانې وې) چې

فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِلَيْهِمْ فَقَالَ أَنْتُمُ الَّذِينَ قُلْتُمْ كَذَا وَ كَذَا أَمَا

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تشریف راووړ او وې فرمایل: تاسو خلکو داسې ویلي دي، خبردار! زه د تاسو نه

وَ اللهِ إِنِّي لَأَخْشَاكُمْ لِلّٰهِ وَ أَتْقَاكُمْ لَهُ لَكِنِّي أَصُومُ وَ أُفْطِرُ

زیات دخدای نه ویریږم او دتاسو نه زیاته تقوی غوره کوم لیکن (ددې باوجود) زه روژه هم ساتم او افطار

وَ أُصَلِّي وَ أَرْقُدُ وَ أَتَزَوَّجُ النِّسَاءَ فَمَنْ

هم کوم زه (په شپه کې) مونځ هم کوم او اوده کیږم هم او دښځو سره نکاح هم کوم (دا زما طریقه ده) کوم کس

رَغِبَ عَنْ سُنَّتِي فَلَيْسَ مِنِّي . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1].

چې زما د طریقې نه انحراف وکړي هغه زمونږ نه، نه دی (زما د ډلې نه وتلی دی).

(١) اخرجه البخاري في الصحيح ٩/١٠٤، رقم الحديث ٥٠٦٣، ومسلم في الصحيح ٤/١٠٢٠ رقم الحديث ٥-١٤٠١.

**توضیح: جاء ثلاثة رهط**: دې دریو کسانو ته کله چې د رسول الله ﷺ د عبادت علم وشو نو دوی داګمان وکړچې رسول الله ﷺ خو معصوم دی او مونږ ګناه ګار یو. رسول الله ﷺ مامون العاقبة دی او مونږ د خپل انجام په باره کې مامون نه یو. لهذا مونږ ته په عبادت کې د زیات کوشش کولو ضرورت دی. چنانچه ددې محنت ذکر وړاندې را روان دی چې یوه وویل زه به ټوله شپه مونځ کوم، دویم وویل زه به همیشه روژه نیسم، ولا افطر، یعنې د ممنوعه او منهیه ورځو نه بغیر روژه به نیسم او کله به هم افطار نه کوم، دریم وویل ما د نکاح نه کولو عهد وکړو. (المرقات ۱/۳۷۴).

**فلیس مني : ای لیس من اشیاعي ولا تعلق له مني بشيء**.

**سوال** : ددې قسم جملو متعلق یو مشهور سوال دی چې کله رسول الله ﷺ وفرمایل چې هغه زما نه یا د موتږ نه ،نه دی نو ددې خو ظاهري مطلب دا راووتلو چې ددې کار د کولو وروسته هغه کس مسلمان پاتې نه شو بلکې د اسلام نه ووتلو؟.

**جواب** : ددې سوال خو یو جواب دا دی چې دا کلام د اسلوب حکیم په طریقه باندې دی چې دارنګه د بیزارۍ اعلان کله چې یو مسلمان واوري نو هغه چغه کړي او ژاړي چې زه د نبي او خپلې عقیدې نه ووتم لهذا توبه کوي او هغه معصیت ته بیا نزدې هم نه ورځي.

دویم جواب دادی چې د **فلیس مني** چې کومه جمله ده د هغې تعلق د عام اسلام او ایمان سره نه دی بلکې هغه دا ده چې په دې جزیه او دې عمل کې دا کس د ما نه نه دی او نه د مسلمانانو په طریقه باندې دی بلکې په دغه جزئیه کې دا کس د کوم بل مذهب والاو په شان دی د مسلمانانو په شان نه دی.

**د انبیاء کرامو علیهم السلام د عصمت مسئله : وقد غفر الله له** : ددې جملې نه د عصمت انبیاء مطلب راوتلی دی. د اشارې په شکل یو څو جملې وړاندې کوم، عصمت د هغه حفاظت نوم دی چې د قدرت او اختیار په شتون کې د یو چا بالفعل د ګناه نه محفوظ کیدل، د علماو په دې باندې اتفاق دی چې له انبیاء کرامو نه **قبل النبوة** او **بعد النبوة** د شرک او کفر صدور نه دی شوی ددې نه هغوی معصوم دي، او د کبائرو په باره کې بعد النبوة په معصوم کیدو کې د اهل السنة اجماع ده، او **قبل النبوة** د بعضو علماؤ په نزد د کبائرو صدور ممکن دی لیکن دا مسلک مرجوح دی ارجح نه دی، او د صغائرو په باره کې اشاعرو ویلي چې د هغو صدور قبل النبوة او بعد النبوة روا دی. لیکن ماتریدیو مطلق نفې کړې ده او همدا د عامو علماؤ په نزد راجح دی. ځکه چې نبي د عامو انسانانو او ګناه ګارانو د هدایت دپاره راغلی کله چې په خپله هغه د ګناهونو نه محفوظ نه دی نو نورو ته به څه راهنمائي وکړي؟. (المرقات ۳۷۳-۱/۳۷۴).

عالم که تن آسانی و تن پروری کند ۞ او خویشتن ګم است کرا رهبری کند

فرقه حشويه انبياء كرام معصوم نه گڼي.

د انبياء كرامو طرف ته په قرآن كريم كې د ذنب او معصيت چې كوم نسبتونه شوي دي هغه د **(حسنات الابرار سيئات المقربين)** په طور دي، دارنګه د هغو د عالي شان پېش نظر كله كله الله تعالى تر هغه الفاظو پورې سخت الفاظ استعمال كړي دي، دا د خپلو په مينځ كې د خپل انداز خبرې دي، بل هيڅوك ته د دې اجازت نشته، بلكې د قرآن كريم د تحقيق او تفسير په ضمن كې كه چيرته د همداسې لغزشونو ذكر راغلى دى نو بيو كس په هغو باندې كلام كولى شي، كه نه نو مستقلاً د انبياء كرامو د لغزشونو قيصې بيانول روا نه دي. (المرقات ۱/۲۷۳).

په سورت طه كې د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَام د لغزش په تذكره كې مفسرينو ليكلي دي : **(قال ابوبكر بن العربي في احكام القرآن واضعا اساسا لادب الانبياء وقاعدة غريبة. يقول لايجوز لاحدنا اليوم ان يخبر بذلک عن آدم الا اذا ذكرناه في اثناء قوله تعالى عنه او قول نبيه. فاما ان يبتدأ ذلک من قبل نفسه فليس بجائز في آبائنا الادنين الينا المماثلين لنا فكيف في ابينا الاقدم الاعظم الاكرم النبي الاقدم الذي عذره الله سبحانه وتاب عليه وغفر له)** (قرطبي، بحر محيط، معارف القرآن).

يو جواب دا هم دى چې د ذنب د نسبت مختلف درجات دي د نبي طرف ته چې نسبت وشي نو د خلاف اولى ارتكاب مراد شوى دى، يا ذنوب د امت مراد دي.

## د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اطاعت كې كاميابي ده

| |
|---|
| **(۷) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ صَنَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا فَرَخَّصَ فِيهِ** |
| د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو كار وكړو او د هغه اجازت يې وركړو |
| **فَتَنَزَّهَ عَنْهُ قَوْمٌ فَبَلَغَ ذَلِكَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَخَطَبَ** |
| ليكن يو شمير خلكو د هغه نه پرهيز وكړو كله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام خبر شو نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خطبه وركړه |
| **فَحَمِدَ اللهَ ثُمَّ قَالَ مَا بَالُ أَقْوَامٍ** |
| د الله تعالى د حمد او تعريف نه وروسته يې وفرمايل : د هغه خلكو په باره كې ستاسو څه خيال دى چې |
| **يَتَنَزَّهُونَ عَنِ الشَّيْءِ أَصْنَعُهُ فَوَ اللهِ إِنِّي لَأَعْلَمُهُمْ بِاللهِ** |
| هغوي د همدې شي نه پرهيز كوي كوم چې زه كوم، په الله قسم! زه د الله مرضي او نامرضي د دوى نه ښه پيژنم |

| |
|---|
| وَأَشَدُّهُمْ لَهُ خَشْيَةً (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| او د دوی نه زیات د خدای نه ویریږم. |

**توضیح**: یعنې رسول الله ﷺ یو کار وکړ او خلکو ته یې هم د کار کولو اجازه ورکړه مګر یو شمیر خلکو د احتیاط په نظر کې نیولو د وجې د هغه نه پرهیز وکړو په کوم باندې چې رسول الله ﷺ د ناراضګي ښکاره کړه. ممکن ده چې ددې کار نه مراد د روژې په حالت کې د خکلولو او غیږ کې د نیولو اجازت وي رسول الله ﷺ په خپله عمل وکړ خلک یې په رخصت باندې پرېښودل مګر یو شمیر خلکو ددې نه پرهیز کول احتیاط ویله رسول الله ﷺ وفرمایل. (المرقات ۱/۳۷۶).

**اني لاعلمهم**: یعنې زه د دوی ټولو نه زیات پوهیدونکی، د ټولو زیات متقي او د ټولو نه زیات د خدای نه ویره لرونکی هم یم، حقوق الله او حقوق العباد هم اداء کوم، او دا کار او دا شی د خوف خدا تقوی سره منافي نه دی، یو شمیر خلکو په عمل کې د رسول الله ﷺ نه وړاندې کیدل غوښتې وو او د رخصت پرېښودل په عزیمت باندې عمل کولو اراده یې کړې وه نو ملامته شو، ځکه چې کثرت عبادت مطلوب او مقصود نه دی، بلکې شدت اطاعت مطلوب او مقصود دی. (المرقات ۱/۳۷۶).

**۱۸ محرم الحرام ۱۴۰۹هـ**

## په تابیر نخل کې د رسول الله ﷺ یو حکم

| |
|---|
| (۸) وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَدِمَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د رافع بن خدیج رضي الله عنه روایت دی وایي چې (کله) نبي علیه الصلاة والسلام مدینې منورې ته تشریف راوړو |
| وَهُمْ يُؤَبِّرُونَ النَّخْلَ فَقَالَ |
| دې وخت کې د مدینې خلکو په کجوروکې تابیر (قلم) کړی وو نبي علیه الصلاة والسلام چې (دا ولیدل) وې فرمایل |
| مَا تَصْنَعُونَ قَالُوا كُنَّا نَصْنَعُهُ قَالَ |
| دا تاسو څه کړي دي؟ د مدینې اوسیدونکو عرض وکړو مونږ همدا سې کړي دي، نبي علیه السلام وفرمایل |
| لَعَلَّكُمْ لَوْ لَمْ تَفْعَلُوا كَانَ خَيْرًا فَتَرَكُوهُ |
| که چیرته تاسو دا سې نه وی کړي شاید بهتره به وه (نو خلکو د نبي علیه السلام خبره واوریده) او دا کار یې پرېښود |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۵۱۳/۱۰، رقم الحديث ۶۱۰۱، ومسلم في الصحيح ۱۸۲۹/۴ رقم الحديث: ۱۲۷-۲۳۵۶.

| فَنَقَصَتْ قَالَ فَذَكَرُوا ذَلِكَ لَهُ |
|---|
| او په دې کال کې میوه کمه رشوه ،راوي وايي چې: ددې تذکره نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ ته وکړی شوه نونبي عَلَیْهِ السَّلَامُ |
| فَقَالَ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ إِذَا أَمَرْتُكُمْ بِشَيْءٍ مِنْ أَمْرِ دِينِكُمْ |
| وویل زه هم یو انسان یم لهذا کله چې زه تاسو ته د یوې داسې خبرې حکم کومه چې ستاسو د دین وي نو |
| فَخُذُوا بِهِ وَ إِذَا أَمَرْتُكُمْ بِشَيْءٍ مِنْ رَأْيِي فَإِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| قبوله یې کړئ او کله چې کومه خبره د خپل عقل نه وښایم نو پوهه شئ چې زه هم انسان یم. |

**توضیح** : **تأبیر** د باب افتعال نه د اصلاح په معنی کې راځي، همدارنګه د تلقیح او پیوند په معنی سره هم راغلی دی، د هغې دوه طریقې دي، یوه طریقه یې دا ده چې د نر ونې ولې د ښځې ونې د ولې سره جوړه کړي،دویمه طریقه دا ده چې د نر ونې میوه د ښځې ونې په میوې باندې راځوړندې کړې شي ترڅو چې زیاته میوه وکړي، د مدینې منورې خلکو په باغونو کې همداسې کړي وو ځکه چې د کجورې ونه د آدم عَلَیْهِ السَّلَامُ د خاورو د پاتې حصې جوړه شوې ده په همدې وجه په هغې کې هغه عادتونه دي کوم چې د انسان په نر او ښځه کې دي، په کوم باغ کې چې نر کجور نه وي هلته میوه نه کیږي، بیا د تاییر په همدې عمل سره په فصل کې زیاتوالی راځي، او میوه هم ډیره ښه راځي. (المرقات ۱/۳۷۷)

**لعلکم لو لم تفعلوا**: رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ګمان وکړچې دا هم د جاهلیت طریقه ده الله تعالی چې څنګه لیکلي هماغسې به کیږي، نو ددې طریقې کارولو ته څه ضرورت دی؟ همدارنګه په دې کې تکلیف او محنت هم دی، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نفي کړې نه یې منعه کړې بلکې ددې عمل ضرورت یې سلب کړی جواز خو بیا هم باقي دی، بل طرف ته د الله تعالی په نزد په تکویني طور په عالم اسباب کې ددې عمل او دې محنت ته هم ضرورت وو نو ځکه ددې عمل په پرېښودلو سره میوه هم کمه راځي.(المرقات ۱/۳۷۷)

**انما انا بشر** : یعنې زه یو انسان یم او کله چې زه کوم حکم د دین سره متعلق تاسو ته وکړم نو هغه غوره کړئ، ځکه چې هغه به خامخا وحې وي، او کله چې زه تاسو ته کوم حکم په خپله رایه او اجتهاد سره وکړم نو کیدلی شي چې په هغه کې خطا راشي، ځکه چې زه بشر یم نو د صحیح او خطا دواړو احتمال بهر حال موجود دی. (المرقات ۱/۳۷۷)

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۳۵ رقم الحديث : ۱۴۰ - ۲۳۶۲.

**امرتکم بشيءٍ من رأيي**: يوه سلسله د تشريعاتو او شرعي امورو ده په هغه کې د رسول الله ﷺ نه د غلطي امکان نشته ځکه چې ﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ﴾ آيت موجود دی. دويمه سلسله د دنيوي معاملاتو او د اسبابو سلسله ده نو په هغو کې د خطا احتمال کيدی شي. ځکه کله چې ټول توجيهات د آخرت طرف ته شي نو د دنيا په پريشانيو کې اخته کيدو فرصت له کومه شي؟ بل طرف ته دنيوي مشقتونه له دنيا سره لګيدلي دي کوم چې په دنيا داری پوهيدل هغوی ته رسول الله ﷺ وفرمايل: ﴿انتم اعلم بامور دنياکم﴾ يعنې داد سبب او مسبب يو ځای کول د محنت او مشقت په پرېښودلو باندې نقصان ښکاره کيدو باندې تاسو دنيا دار ښه پوهيږئ.

ددې حديث مطلب هيڅکله دا نه دی چې رسول الله ﷺ خپل امت ته د اقتصاد په ميدان کې او په معاملاتو کې د شريعت د قواعدو نه د ازادۍ اعلان کړی دی، لکه چې ځينې ملحدينو په دې سره د خلکو د ګمراه کولو کوشش کړی دی، که چيرته د رسول الله ﷺ مقصد دا وو نو بيا رسول الله ﷺ د معاملاتو خريد او فروخت په زرګونو مسائل ولې بيان کړي دي؟.

## د رسول الله ﷺ مثال

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا مَثَلِي وَمَثَلُ مَا

دابو موسی رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: زما او د هغه شي مثال کوم

بَعَثَنِيَ اللهُ بِهِ كَمَثَلِ رَجُلٍ أَتَى قَوْمًا فَقَالَ

چې خدای راکړی او راليږلی يې يم (دين او شريعت) د هغه کس په شان دی کوم چې يو قوم ته راشي او ووايي

يَا قَوْمِ إِنِّي رَأَيْتُ الْجَيْشَ بِعَيْنَيَّ وَ إِنِّي أَنَا النَّذِيرُ الْعُرْيَانُ

ای قومه! ما په خپلو سترګو يو لوی لښکر ليدلی او زه ښکاره (يعنې بې غرضه) ويرونکی يم، لهذا تاسو

فَالنَّجَاءَ النَّجَاءَ فَأَطَاعَهُ طَائِفَةٌ مِنْ قَوْمِهِ فَأَدْلَجُوا فَانْطَلَقُوا عَلَى مَهْلِهِمْ

د خپل نجات ولټوئ چنانچه د همدې قوم يوې ډلې د هغه فرمانبرداري وکړه او شپه په شپه آرام آرام ووتل

فَنَجَوْا وَ كَذَّبَتْ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ فَأَصْبَحُوا مَكَانَهُمْ

او نجات يې تر لاسه کړو په هغوی کې يوې ډلې هغه دروغژن کړو او تر سبا پورې په خپلو کورونو کې پاتې شول

فَصَبَّحَهُمُ الْجَيْشُ فَأَهْلَكَهُمْ وَاجْتَاحَهُمْ

سهار لښکر راغی هغوی يې ونيول او هلاک يې کړل (تردې چې) د هغو بيخ يې ويستلو (يعنې هغوی يې

| |
|---|
| فَذٰلِكَ مَثَلُ مَنْ أَطَاعَنِي |
| ترنـل پوري ختم کړل)لهذا همدا مثال د هغه کس دی کوم چې زما فرمانبرداري وکړه او کوم (احکام) چې |
| فَاتَّبَعَ مَا جِئْتُ بِهِ وَ مَثَلُ مَنْ عَصَانِيْ |
| زه راوړم د هغو پیروي وکړي او د هغه کس مثال هم دادی کوم چې زما نافرماني وکړه او کومې حق خبرې |
| وَكَذَّبَ مَا جِئْتُ بِهِ مِنَ الْحَقِّ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(1). |
| (یعنې دین او شریعت) چې ما راوړی دی د هغو تکذیب یې وکړ. |

**توضیح : واني انا النذير العريان** : زه لوڅ ویرونکی یم، دا یو عام ضرب المثل دی، عرب یې د سختې ویرې او د نږدې آفت او مصیبت په وخت کې وایي، صورت یې داسې دی چې کوم کس خپلې جامې څیرې کړي په سر باندې یا په لرګي باندې یې وتړي بربنډ چغې سورې وهي ترڅو چې خلک د هغه طرف ته متوجه شي د هغه خبره په غور واوري وروسته دا صرف ضرب المثل پاتې شوی دی کوم چې د واضح اعلان دپاره استعمال شوی دی.د رسول الله ﷺ د فرمان مقصد دا دی لکه څرنګه چې هغه کس د ویرې د وجهې خپل قوم خبر کړی دی زه هم تاسو دارنګه خبروم، په سر زمین عرب په ځانګړي طور په قریشو کې د نذیر لفظ له رسول زیات مشهور وو، کاهنانو به ډیر زیات استعمال کړی وو، یوې کاهنې ښځې کله چې د رسول الله ﷺ والده ولیدله نو وې ویل چې دا ښځه یا خو په خپله نذیره ده یا د نذیر زیږوونکې ده، په دې وجه په قرآن کریم کې د نذیر لفظ په کثرت سره د رسول الله ﷺ دپاره استعمال شوی دی. (المرقات ۱/۳۷۸).

**النجاء النجاء** : منصوب على الاغراء دی ای اطلبوا النجاة یعنې نجات ولټوئ دبچ کید وکوشش وکړئ. (المرقات ۱/۳۷۹).

**فادلجوا** : د شپې په اوله برخه په پټه وتلو ته ویل شوي دي. (المرقات ۱/۳۷۹). یو ساحر شاعر وایي :

فالحمد قبل له والحمد بعد لها ۞ وللقنا ولا دلاجي وتأوبي

**اجتاح** : د بیخه د ویستلو په معنی سره دی . (المرقات ۱/۳۷۹).

**مهلهم** : بمعنی مهلت، اطمینان او سکون. (المرقات ۱/۳۷۹).

---

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۱۳/۲۵۰،رقم الحديث : ۷۲۸۳، ومسلم في الصحيح ۱۷۸۸/٤ رقم الحديث : ۱٦-۲۲۸۳.

**فذلک مثل من** : په دې مثال کې هيئت د تشبيه او د تمثيل صورت جوړ شوی دی، چې يو هيئت تشبيه د بل هيئت سره ورکړی شوی دئ. (المرقات ۱/۳۸۰).

لکه ويلی شوي دي :

**كأن مثار النقع فوق رؤسنا ۞ واسيافنا ليل تهاوی کواکبه**

## د هدايت د پاره د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مثال

(۱۰) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلِي كَمَثَلِ رَجُلٍ

د ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی، چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : زما مثال د هغه کس په شان دی

اسْتَوْقَدَ نَارًا فَلَمَّا أَضَاءَتْ مَا حَوْلَهَا جَعَلَ الْفَرَاشُ وَ هٰذِهِ الدَّوَابُّ الَّتِي

کوم چې اور بل کړه کړلهذا کله چې د اور څلورو طرفونو ته رڼائي خوره شوه نو پتنګان او نور هغه جاندار

تَقَعُ فِي النَّارِ يَقَعْنَ فِيهَا وَ جَعَلَ يَحْجُزُهُنَّ

کوم چې په اور کې لوېږي راشي او په اور کې غورځيږي رو بنا نه کوونکی کس د هغو منعه کول شروع کړي

وَ يَغْلِبْنَهُ فَيَتَقَحَّمْنَ فِيهَا

ليکن (هغه يې نه شي منعه کولی بلکې د هغه په کوشش باندې) غالب راشي او په اور کې ولوېږي

فَأَنَا آخِذٌ بِحُجَزِكُمْ عَنِ النَّارِ وَ أَنْتُمْ تَقَحَّمُونَ فِيهَا . هٰذِهِ رِوَايَةُ

همدارنګه ما ستاسو ملاګانې نيولې دي او تاسو د اور نه منعه کوم او تاسو په اور کې ولېږئ، دا روايت

الْبُخَارِيِّ وَ لِمُسْلِمٍ نَحْوَهَا وَ قَالَ فِي آخِرِهَا

بخاري کړی دی او په مسلم کې هم داسې روايت شته، البته د مسلم د روايت آخرني الفاظ داسې دي چې

قَالَ فَذَلِكَ مَثَلِي وَ مَثَلُكُمْ أَنَا آخِذٌ بِحُجَزِكُمْ

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې بالکل همداسې مثال زما او ستاسو دی، ما ستاسو ملاګانې نيولې

عَنِ النَّارِ هَلُمَّ عَنِ النَّارِ هَلُمَّ عَنِ النَّارِ فَتَغْلِبُونِي

دي چې تاسو د اور نه بچ کړم او دا وايم چې د دوزخ نه ځان وساتئ زما طرف ته راشئ ليکن په ما باندې

| تَقَحَّمُونَ فِيهَا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). [1] |
| --- |
| تاسو غالب شئ او په اور کې ولېږئ. |

**توضيح: كمثل رجل:** د كمثل كاف زائد دى، يعنې: **مثل مثل رجل.**

**استوقد:** د اور روښانه کولو په معنى سره دى، سين تاء د مبالغې دپاره دي په اصل کې (اوقد) وو د اور د روښانه کولو نه هدايت او د هغه د تبليغ رڼائي مراد دى، يعنې اور د رڼائي سبب دى او په تياره کې ګټه رسوونکى شى دى، ليکن کله چې د هغه نه اعراض وکړى شي نو د هلاکت سبب جوړ شي. لکه څرنګه چې چراغ د پتنګانو دپاره د رڼائي او راهنمائي سبب دى مګر بيا همدا مفيد شى د هغوى دپاره د هلاکت ذريعه جوړه شوې ده، نو رسول الله ﷺ د اسلام چې کوم نور وړاندې کړى دى هغه خالص ګټه رسوونکى شى دى، کوم څوک چې اعراض وکړي نو همدا شى د هغه د هلاکت باعث هم جوړيدى شي.(المرقات ۱/۳۸۰).

**فأنا اخذ بحجزكم: حجز د حجزة جمع ده، معقد الازار:** د پرتوګ تړلو ځاى يعنې نرى ملا ته ويل کيږي، **حجز يحجز** د **نصر** نه د راګرځولو او منعه کولو په معنى سره دى.

**الفراش:** پروانو (پتنګانو) ته ويل کيږي. (المرقات ۱/۳۸۱).

**فيتقحمن: تقحم** په کوم مشکل کار کې د پريوتلو په معنى سره دى، دلته په اور کې غورځيدل مراد دي، دلته هم تمثيل دى، يعنې د يو هيئت د بل هيئت سره تشبيه ورکړى شوې، چې د يو کس اور بلول بيا د خلکو راتلل او په هغه کې ليدل يو هيئت دى او د محمد ﷺ په لار کې ودريدل او خلک د ملاګانو نه نيول شاته تيل وهل او بچ کول دا دويم هيئت دى. (المرقات ۱/۳۸۱).

**هلم عن النار اى هلم الى وابعد عن النار:** زما طرف ته راشئ او د اور نه لرې شئ د ځان بچ کولو کوشش وکړئ. (المرقات ۱/۳۸۱).

## دوحې مثال

| (۱۱) وَعَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ مَا |
| --- |
| د ابو موسى رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې: رسول الله ﷺ وفرمايل: د هغه شي مثال کوم چې |

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۳۱۶/۱۱،رقم الحديث ۶۴۸۳، ومسلم في صحيحه ۱۷۸۹/۴ رقم الحديث :۱۸-۲۲۸۴، والترمذي ۱۴۲/۵ رقم الحديث ۲۸۷۴ ، واحمد في المسند۲/۲۴۴

بَعَثَنِي اللهُ بِهٖ مِنَ الْهُدَى وَ الْعِلْمِ كَمَثَلِ الْغَيْثِ الْكَثِيْرِ أَصَابَ أَرْضًا

الله تعالی ما ته را کړی دی او رالیږلی یم یعنی علم او هدایت د زیات باران په شان دی کوم چې په زمکه

فَكَانَتْ مِنْهَا طَائِفَةٌ طَيِّبَةٌ قَبِلَتِ الْمَاءَ فَأَنْبَتَتِ الْكَلَأَ وَ الْعُشْبَ الْكَثِيْرَ

باندې وشي لهذا د زمکې ښه برخه هغه قبول کړي (د ننه یې جذب کړي) او دهغې نه زیات وچ او شنه واښه

وَ كَانَتْ مِنْهَا أَجَادِبُ أَمْسَكَتِ الْمَاءَ فَنَفَعَ اللهُ

پیدا شي او د زمکې یوه ټوټه داسې سخته وه چې په هغې باندې د پاسه اوبه جمع شوې الله تعالی په هغو

بِهَا النَّاسَ فَشَرِبُوا وَ سَقَوْا وَ زَرَعُوا

سره هم خلکو ته فائده ورسوله خلکو هغه وڅکلې او نورو ته یې ورکړې او فصلونه یې پرې خړوب کړل او

وَ أَصَابَ مِنْهَا طَائِفَةً أُخْرَى إِنَّمَا هِيَ قِيْعَانٌ لَا تُمْسِكُ مَاءً

همدا (د باران اوبه) د زمکې داسې ټوټې ته (هم) ورسیدې کومه چې هوار میدانونه وو هغې نه اوبه وساتلې

وَلَا تُنْبِتُ كَلَأً فَذٰلِكَ مَثَلُ مَنْ

او نه یې واښه رازرغون کړل لهذا همدا (ټول ذکر شوي مثالونه) د هغه کس مثال دی کوم چې د خدای دین

فَقُهَ فِيْ دِيْنِ اللهِ وَ نَفَعَهُ مَا بَعَثَنِيَ اللهُ بِهٖ

زده کړ او کوم شی چې خدای تعالی زما په واسطه رالیږلی وو د هغه نه یې فائده پورته کړه پس هغه په

فَعَلِمَ وَ عَلَّمَ وَ مَثَلُ مَنْ

خپله هم زده کړل او نورو ته یې هم ور زده کړل او د هغه کس مثال کوم چې د خدای د دین زده کولو د پاره (د تکبر

لَمْ يَرْفَعْ بِذٰلِكَ رَأْسًا وَ لَمْ يَقْبَلْ هُدَى اللهِ الَّذِيْ أُرْسِلْتُ بِهٖ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1].

د وجې) سر را پورته نه کړ او د الله تعالی هدایت کوم یې چې زما په واسطه رالیږلی وو هغه یې قبول نه کړ.

**توضیح** : **الکلاء** : کلاء عشب، **حشیش** د وښو درې قسمونه دي، کلاء د شنو او وچو دواړو د پاره استعمال شوی دی او عشب صرف شنو وښو ته ویل کیږي. (المرقات ۱/۳۸۳) او حشیش صرف وچو وښو ته ویل کیږي. (المرقات ۱/۳۸۳)

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۱/۱۷۵، رقم الحديث ۷۹، ومسلم في الصحيح ۴/۱۷۸۷ رقم الحديث : ۱۵-۲۲۸۲ ، واخرجه احمد في المسند ۴/۳۹۹.

**الغيث** : هغه باران ته ويل کيږي کوم چې د ډيرې بې حده زياتې وچکالی او قحط نه وروسته ووريږي. (المرقات ۱/۳۸۳)

**اجادب**: هغې سختې زمکې ته ويل کيږي چيرته چې اوبه خو جمع کيدی شي ليکن شنه وابنه نه رازرغونوي

**طائفة** : د زمکې يوه حصه او ټوټه مراد ده. (المرقات ۱/۳۸۳).

**قيعان** : دا د **قاع** جمع ده او **قاع** صفا ميدان ته ويل کيږي دلته داسې خوشې آوار ميدان مراد دی چيرته چې اوبه نه شي ودريدلی او واښه نه را زرغونيږي. **لاتمسک ماء** : دا د **قيعان** تفسير دی. (المرقات ۱/۳۸۵).

**د حديث مطلب** : په دې حديث کې بليغه تشبيه ده چې د رسول الله ﷺ د بعثت نه مخکې د کفر او د جهالت وچکالي وه د رشد او هدايت تنده وه، د رسول الله ﷺ لخوا راوړل شوی اسلام د هغو دپاره د داسې باران کار ورکړو کوم چې مړو زمکو ته نوی ژوند ورکړی دی نو ځکه رسول الله ﷺ د دين د باران سره تشبيه ورکړې ده.

**د مثال او ممثل دوضاحت** :په دې حديث کې رسول الله ﷺ د زمکې د دريو برخو ذکر کړی: (**اول**) اول قسم د ممسک ماء سره سره منبت کلاء ده.(**دويم**) دويم قسم ممسک ماء ده ليکن منبت کلاء نه ده .(**دريم**) دريم قسم نه ممسک ماء ده او نه منبت کلاء ده.دا دريواړه قسمونه دلته مثال يا بالفاظ ديگر د مشبه به په حيثيت سره يې پيژندل په کار دي، ددې نه وروسته د ممثل د يا د مشبه ذکر رسول الله ﷺ کړی دی کوم چې دوه قسمه انسان دی. (المرقات ۳۸۴-۱/۳۸۵).

**سوال** : اوس دلته دا شبه کيدی شي چې په دغه تشبيه کې مشبه به يعنې د ځمکې درې اقسام دي او د مشبه يعنې انسان دوه قسمه دی، نو په مشبه او مشبه به مطابقت کې نشته، يا داسې ووايه چې په ممثل له او مثال کې توافق نشته؟.

**جواب** : حافظ توربشتي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې په مشبه به کې دوه څيزونه دي :**اول** : ارض نافع ده د کومې چې دوه صورتونه دي، يوه په اعلی درجه کې نافع ده او يوه په ادنی درجه کې نافع ده، مگر نافع په هر صورت کې ده.**دويم** :ارض غير نافع ده، اوس په مشبه به کې دوه څيزونه دي يو استفاده کونک انسان کوم چې نافع دی او دويم د استفادې نه محروم انسان کوم چې غير نافع دی، او په مشبه به کې ه دوه شيان دي نو هيڅ اعتراض نشته.

**دويم جواب**: دادی چې په مشبه کې هم درې قسمه انسانان دي،اول هغه انسان کوم چې په خپله هم **متعلم** او **منتفع** دی، او د نورو دپاره هم **معلم** او نافع دی، دا **فقهاء** کرام دي. د دوی په مثال کې د زمکې د اول قسم بيان شوی دی، دويم انسان هغه دی کوم چې د ځان دپاره خو نافع دی د نبې ذخيرې

جمع کوونکي دي مګر د نورو دپاره نه دي، يعني متعلم خو دي ليکن معلم نه دي، دا د محدثينو کرامو ډله ده، کومو چې احاديث جمع کړي دي مګر استدلال او استنباط يې نه دې کړی، همدې طرف ته امام اعمش رحمه الله اشاره کړې ده او ويلي يې دي **(يامعشر الفقهاء انتم الاطباء ونحن الصيادلة)** اې فقهاؤ! ستاسو مثال د طبيب او د ډاکټر دی کوم چې نسخه تجويز کوي، او زمونږ مثال د دوائي خرڅونکو دی. (المرقات ١/٣٨٥).

دريم هغه خلک دي کوم چې نه په خپله د همدې دولت نه منتفع شوي دي او نه د نورو دپاره نافع دي، دا هغه خلک دي کومو چې د سترګو په پورته کولو سره يې شريعت ته کتل هم نه دي خوښ کړي.

اوس تشبيهات داسې شول چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په منزله د وريځې دی، آسماني وحې په منزله د باران ده، عام باران کله چې په کومه زمکه اوشي نو د ځمکې درې قسمونه جوړيږي، يا خو ښيخې شاړه او بيکاره زمکه وي د هغې نه هيڅ هم نه جوړيږي. (المرقات ١/٣٨٥). يو چا ويلي دي:

زمین شوره سنبل بر نیارد درو تخم عمل ضائع مگردان

يا هغه زمکه ذرخيزه وي کومه چې اوبه د ډنډونو په شکل محفوظې وساتي د کومو نه چې خلک فائده پورته کولی شي، دريم قسم هغه زمکه ده کومه چې اوبه ښکته جذب کړي او قسما قسم سبزي جات رازرغون کړي او براه راست نورو ته هم فائده ورسوي. د زمکې ددې اختلافي تقسيم په باره کې شيخ سعدي رحمه الله څه ښه ويلي دي:

باران که در لطافت طبعش خلاف نیست ❁ در باغ لاله روئید و در شوره بوم و خس

اوس دا تشبيهات داسې وېژنئ چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم ذات په منزله د سحاب فياض دی، او آسماني وحې په منزله د رحمت دباران ده، د وحې د تعليماتو د راتلو نه وروسته خلک په دريو قسمونو ويشل شوي دي، يو قسم اعلی او نافع فقهاء دي، دويم قسم نافع محدثين دي او دريم قسم محروم دي کوم چې د رحمت ددې ميدان نه بهر دي. د فقهاؤ محدثينو او کفارو په مېنځ کې چې کوم خلک دي د هغوئ ذکر په دې حديث کې نشته، که چيرته هغوی نيک شي نو په اول قسم کې دي که نه نو بيا په دويم قسم کې په عارضي طور شمار شوي دي. (المرقات - ١/٣٨٦٣٨٥).

**١٩ محرم الحرام ١٤٠٩هـ**

## د محکماتو او متشابهاتو بحث

**(١٢) وَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ تَلَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ هُوَ**

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دا آيت تلاوت کړ (ترجمه) الله تعالی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الَّذِي | أَنْزَلَ | عَلَيْكَ | الْكِتَابَ | مِنْهُ | آيَاتٌ مُحْكَمَاتٌ |

هغه (الله) دی کوم چې په تا ﷺ باندې کتاب نازل کړی دی د کوم چې بعضې آیاتونه محکم دي

وَ قَرَأَ إِلَى وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ قَالَتْ

او وي لوستو تر (ترجمه) او نصیحت نه تر لاسه کوي مګر صاحب عقل، پورې عائشې رضي الله عنها ویلي دي

قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَإِذَا رَأَيْتَ وَ عِنْدَ مُسْلِمٍ

چې رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم وخت چې تاسو ووینئ، او د مسلم په روایت کې دي چې کله

رَأَيْتُمُ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ

تاسو ووینئ چې خلک په همدې آیتونو پسې تر شا لګیدلي دي کوم چې متشابهات دي (نو تاسو پوهه شئ)

فَأُولَئِكَ الَّذِينَ سَمَّاهُمُ اللهُ فَاحْذَرُوهُمْ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1].

چې دا هغه خلک دي د کومو نوم چې الله تعالى (د ګمراهانو) ایښی، لهذا د دې خلکو نه ځان وساتئ.

**توضیح: منه آیات محکمات**: په قرآن کریم کې دوه قسمه آیتونه دي: اول محکمات دي دا هغه آیتونه دي د کومو چې معنی او مطالب مضبوط، واضح غیر منسوخ او ظاهر شوي دي، په کومو کې چې هیڅ قسم ابهام او اخفاء نه شي کیدلی، دویم قسم آیات متشابهات دي، متشابهات بیا په دوه قسمه دي. یو قسم هغه آیتونه دي کوم چې معلوم المعنی دي مګر معلوم المراد نه دي. لکه **يدالله، وجه الله، استوى على العرش، جاء ربک** وغیره. د دې قسم متشابهاتو متعلق د علماء سلف صالحینو عقیده دا ده چې په دې کې هیڅ تاویل نه شي کیدی، بلکې چې کوم الفاظ دي هغه بغیر د تاویل نه هماغسې ساتل شوي دي، خو د مایلیق بشانه الفاظ دې ورسره ملګري کړی شي، یعنې **يدالله مايليق بشانه، استوى مايليق بشانه**، یعنې کوم چې د الله تعالى شایان شان دی، د امام مالک رحمه الله نه چې کله د استوى على العرش متعلق پوښتنه وشوه نو هغه وفرمایل: **(الاستواء معلوم والكيفية مجهولة والسؤال عنها بدعة)**. امام ابو حنیفة رحمه الله ویلي دي چې په **يدالله** کې د **يد** ترجمه په قدرت سره کول د الله

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۰۹/۸، رقم الحديث: ۴۵۴۷، ومسلم في الصحيح ۲۲۵۳/۴ رقم الحديث ۱-۲۶۶۵. وأبو داود ۶/۵ رقم الحديث: ۴۵۹۸، وابن ماجة ۱۸/۱، رقم الحديث ۴۷

تعالی په صفاتو کې تحریف دی، لهذا کوم چې الفاظ دي هماغسې دې ترجمه وکړی شي او مایلیق بشانه دې وویل شي.دویم قسم د متشابهاتو نه هغه آیتونه دي د کومو چې نه لفظي معنی معلومه ده او نه یې مرادي معنی معلومه ده لکه حروف مقطعات کوم چې د سورتونو په اول کې راغلي دي. د هغو متعلق علماو ویلي دي ﴿الله اعلم بمراده بذلک﴾ د سلفو صالحینو عقیده دې وساتل شي او هیڅ قسم تاویل دې ونه کړی شي. کوم خلک چې نیکان او صالحان دي او د کومو زړونه چې په ایمان سره منور دي هغه خلکو په آیات محکماتو باندې هم ایمان راوړی دی، او هغه یې د احکامو مدار ګرځولې دی او متشابهات یې د محکمات په رڼا کې لیدلي او منلي دي، مثلا قرآن اعلان کړی چې رسول الله ﷺ بشر دی او په دې باندې آیات محکمات موجود دي مثلا ﴿قُلْ إِنَّمَآ أَنَا۠ بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ﴾ محکم آیت دی د دې په مقابل کې که چیرته وویل شي د (لور) لفظ راغلی دی نو هغه ذو معاني دی کوم چې متشابه دی، نو هغه ته ددې محکم په رڼا کې ګوري، بهر حال د صفا زړونو خلکو متشابهات منلي دي مګر د هغه معنی یې الله تعالی ته سپارلې ده.او د کومو خلکو په زړونو کې چې کوږوالی دی دوی په متشابهاتو پسې تر شا لګیدلي دي او په هغو کې یې بې ځایه تاویلونه کړي دي، ددې حدیث نه معلومه شوه چې کوم خلک په متشابهاتو کې عقلي اسونه ځغلولي دي او د هغو د اصلي معناګانو د موندلو کوششونه یې کړي دي هغوی الله تعالی کجرو او ګمراه ګرځولي دي.

د حروف مقطعاتو معناګانې الله تعالی رسول الله ﷺ ته وربښودلې دي، ګویا چې چې دا د الله او د رسول الله ﷺ په مینځ کې یو راز دی په کوم چې بل هیڅوک خبر کړی شوی نه دی، دلته دا خبره زده کړئ چې د اعجاز په اعتبار سره ټول قرآن متشابه یعني **متشابه في الفصاحة والبلاغة والحسن** دی او د تاویل او تفسیر په اعتبار سره بعضې محکم او بعضې متشابه دی مګر مدار د حکم په محکم باندې دی.(المرقات ۳۸۷-۱/۳۸۸).

| |
|---|
| (۱۳) وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ هَجَّرْتُ إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا |
| د عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې زه د نبي علیه الصلاة والسلام په خدمت کې یو ورځ حاضر شوم |
| قَالَ فَسَمِعَ أَصْوَاتَ رَجُلَيْنِ اخْتَلَفَا فِي آيَةٍ |
| عبد الله رضي الله عنه وایي چې نبي علیه السلام د دوه کسانو اوازونه واوریدل کوم چې په متشابه کې اختلاف کړی |
| فَخَرَجَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْرَفُ فِي وَجْهِهِ الْغَضَبُ |
| وونبي علیه السلام په مونږ باندې راووتو (داوخت) د نبي علیه السلام په مخ مبارک باندې غصه ښکاره شوې وه |

| |
|---|
| فَقَالَ إِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ بِاخْتِلَافِهِمْ فِي الْكِتَابِ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: ستاسو نه مخكې خلك په الهي كتاب كې د اختلاف كولو د وجې هلاك شوي دي. |

**توضيح : هجرت : اى ذهبت وقت الهجيرة**، يعني زه عين د غرمې په وخت كې حاضر شوم.

**فسمع اصوات رجلين** : يعني دوه كسانو د قرآن كريم په يو آيت كې اختلاف كړى وو ددې نه د هغوى د رايې اختلاف مراد دى په كوم كې چې په يو بل باندې اعتراض وشو، په كوم سره چې په قرآن كريم كې تردد او شك پيدا شو، او په قرآن باندې اعتراض لازم راغى، تر بدعت او كفر پورې خبره ورسيده، دا اختلاف د هلاكت باعث دى، كوم چې ممنوع دى، او د اختلاف منشاء منعه ده، كومه چې مجتهدينو د آيتونو معناګانو ته په كتلو سره كړې وه، هغه خو احسن ده او د **اختلاف امتي رحمة** په درجه كې ده.

## په غير د ضرورت نه په مسائلو كې بحث كول نه دي په كار

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د حضرت سعد بن ابى وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې: رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په |
| إِنَّ أَعْظَمَ الْمُسْلِمِينَ فِي الْمُسْلِمِينَ جُرْمًا مَنْ سَأَلَ عَنْ شَيْءٍ لَمْ يُحَرَّمْ |
| مسلمانانو كې د ټولو غټ ګناهګار هغه كس دى كوم چې د كوم داسې شي پوښتنه وكړه كوم چې حرام نه وو |
| عَلَى النَّاسِ فَحُرِّمَ مِنْ أَجْلِ مَسْأَلَتِهِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]. |
| مګر د هغه د پوښتنې كولو د وجې هغه حرام شو. |

**توضيح : ان اعظم المسلمين جرماً** : علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ ويلي چې ددې نه مراد دادى چې بلا ضرورته د كوم شي سوال وكړي د هغې حرمت نازلوونكى كس د مسلمانانو دپاره بدترين مجرم دى، ځكه د نزول وحې په وخت كې ضروري احكام په خپله رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيان كړي وو، سكوت په هغې خبرې باندې وو كومه چې معاف او غير ضروري وه، نو په دې شان خبرو كې پوښتنې كول منع شوې ترڅو چې په عامو مسلمانانو باندې تنګي رانه شي، لكه چې بني اسرائيلو د غوا متعلق د پوښتنو په كولو كولو سره تنګي پيدا كړه نو په همدې شان تصنع او سركشۍ باندې مبني سوال منعه شوى دى، كه

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۲۰۵۳/٤ رقم الحديث: ۲-۲٦٦٦.

(۲) اخرجه البخاري في الصحيح ۲٦٤/۱۳،رقم الحديث . ۷۲۸۹، ومسلم في الصحيح ۱۸۳۱/٤ رقم الحديث : ۱۳۲-۲۳۵۸-۲۸۷۰، وابو داود ۱٦/٥ رقم الحديث : ٤٦۱۰

نه نوښه سوال خوقرآن کریم په ﴿ فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ ﴾ سره روا کړی دی .رسول الله ﷺ ښه سوال نیم علم بللی دی، هغه منعه نه دی .(الکاشف ۱/۳۴۶، المرقات ۱/۳۸۹).

## د دجالانو هوښیار اوسیدل په کار دي

| |
|---|
| (۱۵) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكُونُ فِي آخِرِ الزَّمَانِ |
| د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې : رسول الله ﷺ وفرمایل: په آخره زمانه کې |
| دَجَّالُونَ كَذَّابُونَ يَأْتُونَكُمْ مِنَ الْأَحَادِيثِ بِمَا لَمْ |
| به داسې چل کوونکي او دروغژن خلک وي چې تاسوته به داسې حدیثونه راوړي کوم به چې نه تاسو او |
| تَسْمَعُوا أَنْتُمْ وَلَا آبَاؤُكُمْ فَإِيَّاكُمْ وَ إِيَّاهُمْ |
| نه به ستاسو پلارانو اوریدلي وي،لهذا د هغوی نه ځان وساتئ او هغوی د خپل ځان نه وساتئ ترڅو چې |
| لَا يُضِلُّونَكُمْ وَلَا يَفْتِنُونَكُمْ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| هغوی نه تاسو ګمراه کړي او نه مو په فتنه کې واچوي. |

**توضیح : دجالون :** دجال د دجل نه د مبالغې صیغه ده یعنې ډیر غټ دوکه باز او فریب والا، دجل د هغه تلبیس نوم دی په کوم کې چې د حق او باطل په مینځ کې فرق کول سخت وي، ددې نه مراد هغه خلک دي کوم چې د اسلام په دین کې د صحیح منشاء نه بغیر محض په خپله رأیه اختراع کوي، په اخیره زمانه کې به داسې خلک ډیر زیات وي، ځکه چې دا به د فتنو زمانه وي.په همدې دجالانو کې هغه تش په نوم علماء سوء او مصنوعي مشائخ هم داخل دي کوم چې خلکو ته وایید چې مونږ علماء او مشائخ یو تاسو د دین طرف ته رادعوت کوو مګر دې خلکو حدیثونه خراب کړي دي، او د خلکو پر وړاندې یې په بیانولو سره د غلطو عقیدو ترویج کوي او عجیبه عجیبه نوې نوې خبرې کوي، کوم چې د غیر دینو طرف ته بیول کوي، د داسې خلکو نه ځان وساتئ ترڅو چې هغوی په خپل مکر او فریب سره تاسو ګمراه نه کړي.(المرقات ۱/۳۹۰).

خلاصه دا چې د دین په معامله کې داحتیاط نه کار اخیستل په کار دي همدارنګه د بدعتي او په دین کې د دهوکه کوونکو د مجلس نه لرې اوسیدل په کار دي (مظاهر حق د تغیر سره).

---

(۱) اخرجه مسلم في مقدمة صحيحه ۱۲/۱ ، رقم الحديث: ۷۰۷ ، واخرجه أحمد في المسند ۳٤۹/۲.

| |
|---|
| (۱۶) وَ عَنْهُ قَالَ كَانَ أَهْلُ الْكِتَابِ يَقْرَءُونَ التَّوْرَاةَ بِالْعِبْرَانِيَّةِ |
| دابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې اهل کتابو تورات په عبراني ژبه کې لوستلو (کومه چې ديهودو |
| وَ يُفَسِّرُونَهَا بِالْعَرَبِيَّةِ لِأَهْلِ الْإِسْلَامِ |
| ژبه ده) او د مسلمانانو د پاره يې دهغه تفسير په عربي ژبه کې بيانولو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (چې ددوی دا |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَا تُصَدِّقُوا أَهْلَ الْكِتَابِ وَلَا تُكَذِّبُوهُمْ |
| عمل وليد) صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته يې وفرمايل: تاسو اهل کتاب مه رشتيني گڼئ او مه يې دروغژن |
| وَ قُولُوا آمَنَّا بِاللهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا. (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1]. |
| گڼئ صرف داسې ووايي چې مونږ په الله او په هغه شي کوم چې په مونږ باندې نازل شوی دی ايمان راوړی |

**توضيح: لاتصدقوا**: ځکه کيدی شي چې هغه دروغ وي محرف وي لکه څنګه چې تحريف د دوی عادت دی. (المرقات ۱/۳۹۱).

**ولاتكذبوهم**: ځکه کيدی شي چې هغه رښتيا وي منزل من الله وي. (المرقات ۱/۳۹۱).

**وقولوا امنا بالله**: يعنې مخکني ټول اديان کوم چې د الله د طرفه نازل شوي وو مونږ په هغو باندې ايمان راوړو او اوس صرف د اسلام دين د عمل د پاره پاتې دی ﴿إِنَّ الدِّينَ عِنْدَ اللهِ الْإِسْلَامُ﴾ (المرقات ۱/۳۹۲).

علامه ابن کثير رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د مخکنيو اديانو روايت که چيرته زمونږ د دين سره موافق دي نو هغه په حقيقت کې زمونږ د دين نه دي د هغه طرف ته محتاج نه دي او که مخالف دي نو مونږ د خپل معصوم نبي اطاعت کړی دی.

ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي: چې په کومو امورو کې په انسان باندې اشتباه راشي او د علمي مسئلې حل مشکل شي نو هغه دې توقف وکړي. (المرقات ۱/۳۹۲).

## د هرې اوريدونکې خبرې نقل کول صحيح نه دي

| |
|---|
| (۱۷) وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَفَى |
| د ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی ويلي يې دي چې: رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي: کافي کيږي د |

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۳/۵۱۶، رقم الحديث ۷۵۴۲.

بِالْمَرْءِ كَذِبًا أَنْ يُحَدِّثَ بِكُلِّ مَا سَمِعَ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

یو انسان د دروغژن کیدو دپاره دا چې هغه کومه خبره واوري (د تحقیق نه په غیر) هغه نقل کړي.

**توضیح : کفی بالمرأ** : یعني دغه کس هر کله چې هره آوریدل شوې خبره نقل کوي نو یقینا په هغو کې ډیرې زیاتې خبرې غلطې هم راځي او دغه نقل کوونکی که د دروغو اراده کړې هم نه وي بیا بلا تصدیق د خبرې په نقل کولو باندې دروغژن شمارل کیږي. په دې حدیث کې مسلمانانو ته تعلیم ورکړې شوی دی چې هره خبره د تحقیق نه بغیر بیان نه کړي، او په دغه حدیث کې سخت زجر او وعید دی د هغه کس دپاره کوم چې همداسې خبرې نقل کوي د کومو چې هغه ته تحقیق او تصدیق نه وي شوی په خاص طور کله چې نبوي احادیث نقل کوي. (المرقات ۱/۳۹۲).

## دوخت د تیریدو سره سم دجال خلک پیدا کیږي

(۱۸) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه روایت دی، ویلي یې دي چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زما

مَا مِنْ نَبِيٍّ بَعَثَهُ اللهُ فِي أُمَّتِهِ قَبْلِي إِلَّا كَانَ لَهُ فِي أُمَّتِهِ حَوَارِيُّونَ وَ أَصْحَابٌ

نه مخکې په کوم قوم کې خدای تعالی هیڅ کوم نبي داسې نه دی لیږلی د کوم چې مدد کوونکي دوستان

يَأْخُذُونَ بِسُنَّتِهِ وَ يَقْتَدُونَ بِأَمْرِهِ

د همدې قوم نه، نه وي کومو چې د دغه نبي طریقې غوره کړې وي او د هغه د احکامو پیروي یې کړې وي

ثُمَّ إِنَّهَا تَخْلُفُ مِنْ بَعْدِهِمْ خُلُوفٌ يَقُولُونَ

بیا د دې دوستانو نه وروسته داسې نالائق خلک پیدا شوي دي کومو چې خلکو ته داسې خبرې کولې کومې

مَا لَا يَفْعَلُونَ وَ يَفْعَلُونَ مَا لَا يُؤْمَرُونَ

بې چې نه په خپله کولې او نه یې هغه کار کولو د کوم چې هغوی ته حکم ورکړی شوی وو (لکه چې د علماء

فَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِيَدِهِ

سوء امیرانو او سردارانو طریقه ده) لهذا (په تاسو کې) چې یو څوک د دې خلکو سره په خپل لاس جهاد

[1] أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۱۰ رقم الحديث ۵.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَهُوَ | مُؤْمِنٌ | وَ | مَنْ | جَاهَدَهُمْ | بِلِسَانِهِ | فَهُوَ | مُؤْمِنٌ | وَ مَنْ |

وکړي هغه مؤمن دی، او کوم خلک چې د هغوی سره په خپله ژبه جهاد وکړي هغه مؤمن دی او کوم خلک

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| جَاهَدَهُمْ | بِقَلْبِهِ | فَهُوَ | مُؤْمِنٌ | وَ | لَيْسَ | وَرَاءَ | ذٰلِكَ | |

چې د هغوی سره په خپل زړه جهاد وکړي هغه مؤمن دی او ددې نه بغیر (د هغوی خلاف همد ومره هم ونه کړي

مِنَ الْإِيمَانِ حَبَّةُ خَرْدَلٍ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

نو) په هغه کې د مالوچو د داني برابر ایمان هم نشته دی.

**توضیح : حواریون :** ددې نه مراد خاص ملګري مدد کوونکي او ناصرین دي او داسې مخلص دوست مراد دی د کوم چې زړه د عیب او خیرو نه خالي وي، بعضو خاص راز دار خلک مراد کړي دي. (المرقات ۱/۳۹۳، الکاشف ۱/۳۵۰).

**خلوف :** جمع خلف د خا فتحه او لام ساکن دی دا د نامناسبه ځای ناستي په معنی سره ده، که چیرته لام مفتوح شي نو غوره ځای ناستي ته ویلی شي. **فمن جاهدهم :** په لاس سره جهاد خو مشهور دی، او په ژبه جهاد دا دی چې هغه پوهه کړی شي په هغه باندې رد وکړی شي او په زورور انداز په هغه باندې تنقید وکړي، او په زړه سره جهاد دا دی چې هغه بد وګڼي او اراده وکړي چې که د لاس موقع راشي نو د لاس نه به کار اخلي، په دوی کې د لومړي درجې والا د کس ایمان کامل دی، د دویم ایمان متوسط دی او د دریم ایمان ناقص دی او ددې نه وروسته ایمان نشته. (المرقات ۳۹۳-۱/۳۹۴).

**ولیس وراء ذلک:** یعنې د مالوچ د داني برابر ایمان هم نشته، ځکه چې د غه کس راضي بالمعاصي شو، او د ګناه سره یې د مباح په شان معامله وکړه په کوم سره چې انسان د ایمان نه ووځي، یعنې دا وخت د هغه احساس دومره مړ شوی وو چې نامناسبه شیان یې په زړه سره هم بد ونه ګڼل نو د دې مطلب دا شو چې د هغه د ایمان بیخ وتلی دی، لهذا د هغه په زړه کې د ایمان رڼائي پاتې شوې نه ده. (المرقات ۱/۳۹۴).

## د هدایت یا ګمراهۍ طرف ته د بلونکي حکم

(۱۹) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کوم کس چې یو څوک د

(۱) أخرجه مسلم في الصحیح ۱/۶۹ رقم الحدیث: ۸۰-۵۰، وأخرج أحمد في المسند: ۱/۴۵۸.

دَعَا إِلَى هُدًى كَانَ لَهُ مِنَ الأَجْرِ مِثْلُ أُجُورِ مَنْ تَبِعَهُ

هدایت طرف ته را وبلل نو هغه ته دومره ثواب ورکول کیږي څومره چې هغه ته ملاویږي چاچې ده تابعداري

لَا يَنْقُصُ ذَلِكَ مِنْ أُجُورِهِمْ شَيْئًا وَ مَنْ دَعَا إِلَى ضَلَالَةٍ

کړي او د همدغه تابعداري کوونکي په ثواب کې به هیڅ کمی نه راځي او چاچې یو څوک را وبلل ګمراهۍ

كَانَ عَلَيْهِ مِنَ الإِثْمِ مِثْلُ آثَامِ مَنْ تَبِعَهُ لَا يَنْقُصُ ذَلِكَ مِنْ

طرف ته نو دومره ګناه یې ده څومره چې د هغه چا ده چا چې دده تابعداري کړې وي او نه به کمیږي دده

آثَامِهِمْ شَيْئًا (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

دګناهونو نه هیڅ شی.

**توضیح: مثل اجور من تبعه:** یعني په یو نیک کار یې په خپله هم عمل وکړو او نور یې هم را وبلل کومو چې په دې کار کې د هغه تابعداري وکړه نو د هغه د عمل ثواب هم بلونکي ته ورکول کیږي او په دې سره د تابعداری کوونکي په عمل کې هیڅ کمی هم نه راځي، ځکه چې **(الدال علی الخیر کفاعله)** ددې اندازه لګیدی شي چې رسول الله ﷺ ته د امت د ټولو اعمالو نه هغه خزانه ورکړی شوې ده د کومې چې حساب نه شي کیدی.

همدارنګه د صحابو د طبقې نه وروسته د عمل کوونکو په عمل سره چې څومره ثواب رسیږي، دارنګه د سلفو حال د خلفو په اعتبار سره څومره اوچتیږي، او همدارنګه د ائمه مجتهدینو درجات هم اوچتیږي بلکې د هر راتلونکي په نسبت د تلونکي به څومره لوړ درجات وي دا د الله په علم کې دي. (المرقات ۱/۳۹۴).

## اسلام ګمنام خلک خپلوي

(۲۰) وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بَدَأَ الإِسْلَامُ

د ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی ویلي یې دي چې: رسول الله ﷺ وفرمایل: د اسلام شروع

(۱) اخرجه مسلم في الصحيح ۴/۲۰۶۰ رقم الحديث :۱۶-۲۶۷۴، وأبوداود في السنن ۵/۱۵ رقم الحديث :۴۶۰۹ ، واخرجه الترمذي في السنن ۵/۴۲ رقم الحديث: ۲۶۷۴.

| |
|---|
| غَرِيبًا وَ سَيَعُودُ كَمَا بَدَأَ فَطُوْبٰى لِلْغُرَبَاءِ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| شوې په غربت کې او په آخر کې به هم داسې شي، لهذا د غريبانو دپاره زيرې دی. |

**توضيح : بدأ الاسلام غريبًا** : غريب په عربۍ ژبه کې نا اشنا او غير مشهور ته ويل کيږي، نو په شروع کې د اسلام حاملين په معاشره کې غريبان وو او ټول د معاشرې نه شړل شوي ګرځول شوي وو، نه په غم کې او نه په خوښۍ کې شريک کولی شو ماو نه کوم قومي يا اجتماعي کار ورته سپارل کيده، په راتلونکي کې به همداسې وشي، لهذا اوس همدا حال دی چې په کلي کې هر کس په غم او خوشحالۍ کې يادولی شي ليکن اهل دين هميشه نظر انداز شوي دي. ددې حديث دويم مفهوم دادی چې دا خلک کم وو، کمزوري وو، چا نه پيژندل هيچا به يې د حال پوښتنه نه کوله، همدې خلکو په همداسې کمزوري حالت کې اسلام خپل کړی وو او په راتلونکي کې به همداسې خلک په اسلام باندې وي. هغو ته دې مبارک وي، البته په وروسته زمانو کې الحمدلله اسلام ډيره ترقي وکړه لهذا په مشرق او مغرب کې د اسلام بيرغ د خلفاء راشدينو او د خلفاء بنو اميو او په آخر کې د خلفاء بنو عباس په زمانه کې د دنيا په زياتره برخه کې اوچت شو، الحمدلله. (المرقات ۳۹۵-۱/۳۹۶).

## په آخر وخت کې به اسلام په مدينه کې پناه واخلي

| |
|---|
| (۲۱) وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِنَّ الْإِيْمَانَ |
| دحضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی ويلې يې دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: چې ايمان به د |
| لَيَأْرِزُ إِلَى الْمَدِيْنَةِ كَمَا تَأْرِزُ الْحَيَّةُ إِلٰى جُحْرِهَا . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]. |
| مدينې طرف ته داسې غونډ لکه څرنګه چې مار د خپل سورې طرف ته ورغونديږي . |
| وَ سَنَذْكُرُ حَدِيْثَ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ذَرُوْنِيْ مَا تَرَكْتُكُمْ فِيْ كِتَابِ الْمَنَاسِكِ وَ حَدِيْثَيْ |
| او دابو هريره رضي الله عنه حديث (ذروني ماتركتكم) به په کتاب المناسک (حج) کې ذکر کړو، او دواړه حديثه د |

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/۱۳۰ رقم الحديث : ۲۳۲-۱۴۵، وأخرجه الترمذي ۵/۱۹، رقم الحديث: ۲۶۲۹ وابن ماجه ۲/۱۳۱۹ رقم الحديث : ۳۹۸۶.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۴/۹۳، رقم الحديث : ۱۸۷۶، ومسلم في الصحيح ۱/۱۳۱ رقم الحديث : ۲۳۳-۱۴۷، والترمذي رقم الحديث : ۱۷۰، وابن ماجة ۲/۱۰۳۸، رقم الحديث: ۳۱۱۱.

| |
|---|
| مُعَاوِيَةَ وَ جَابِرٍ لَا يَزَالُ مِنْ أُمَّتِي وَ الْآخَرُ لَا يَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي فِي بَابِ ثَوَابِ |
| معاويه رضي الله عنه او جابر رضي الله عنه (لايزال من امتي الخ) او (لايزال طائفة من امتي) هم په باب د ثواب |
| هٰذِهِ الْأُمَّةِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى. |
| ددې امت کې ذکر کړو ان شاء الله (يعنې همدا حديثونه د مشکوة صاحب په دې باب کې ذکر کړي وو |
| ليکن مونږ په هغو بابونو کې ذکر کړي دي). |

**توضيح**: ليأرز: أَرَزَ يأرِزُ ضرب يضرب نه په معنی د ښويدلو سره خپل ځای ته تللو ته ويل شوي دي، زياتر د مار دپاره استعمال شوی دی، کله چې هغه په ښويدو خپلې سوړې ته ورځي، مار په تيزۍ مندې خپل غار ته په داخليدو کې مشهور دی نو ځکه له هغه سره تشبيه ورکړی شوې ده.د اسلام دا حالت يا خو د هجرت په شروع کې وو، د مکې او نورو ځايونو ټول مسلمانان مدينې منورې ته جمع شوي وو او ايمان هلته مرکز جوړ کړ، يا ددې نه مراد اخيرنی زمانه ده کله چې مسلمانان کم پاتې شي او ټول په ښويدو ښويدو مدينې منورې ته لاړ شي او بيا د حضرت مهدی عليه السلام ظهور هم وشي (المرقات ۱/۳۹۶) شيخ محدث دهلوي رحمه الله ليکلي دي: چې د نصوصو نه معلومه شوې ده چې دا به د خروج دجال وخت وي، بهر حال په حديث کې د مدينې منورې طرف ته اشاره ترلاسه شوې ده چې مدينه منوره به په مشکل وخت کې هم د اسلام دين دپاره مرکز جوړيږي. (اشعة اللمعات ۱/۱۴۶).

صاحب مشکوٰة ويلي دي چې باب ثواب هذه الامة لاندې دوه حديثونه راوړل شوي دي، يو د حضرت معاويه رضي الله عنه او بل د حضرت جابر رضي الله عنه حديث دی، ليکن هلته صاحب مشکوة د حضرت جابر رضي الله عنه د حديث ذکر نه دی کړی، بلکې هير شوی يې دی، ځکه چې ﴿وَخُلِقَ الْإِنسَانُ ضَعِيفًا﴾ د مشکوة ۵۸۳ صفحه وګورئ.

**۲۰ محرم الحرام ۱۴۰۹هـ**

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### د حضور اکرم صلی الله عليه وسلم مثال

| |
|---|
| (۲۲) عَنْ رَبِيعَةَ الْجُرَشِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ أُتِيَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د حضرت ربيعه الجرشي رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم په خوب کې فرښتې وليدې |

| |
|---|
| فَقِيلَ لَهُ لِتَنَمْ عَيْنُكَ وَ لِتَسْمَعْ أُذُنُكَ وَ |
| اورسول الله ﷺ ته (فرښتو) وويل غواړې چې ستا سترګې ويدې شي اوستا غوږونه واوري او |
| لِيَعْقِلْ قَلْبُكَ قَالَ فَنَامَتْ عَيْنِي وَ سَمِعَتْ أُذُنَايَ وَ |
| ستازړه پوهه شي، رسول الله ﷺ وفرمايل: زماسترګې اودې شوې، زماغوږونو واوريدل او زما |
| عَقَلَ قَلْبِي قَالَ فَقِيلَ لِي |
| زړه پوهه شو بيانبي عليه السلام وفرمايل: چې ماته وويل شول (يعني دمثال په طور فرښتوزماپه وړاندې بيان |
| سَيِّدٌ بَنَى دَارًا فَصَنَعَ فِيهَا مَأْدُبَةً وَ أَرْسَلَ دَاعِيًا |
| کړل) چې يوسردارکورجوړکړاوخوراک يې تيارکړيايې يوبلونکې وليږه (ترڅوهغه خلک رادعوت کړي) |
| فَمَنْ أَجَابَ الدَّاعِيَ دَخَلَ الدَّارَ وَ أَكَلَ مِنَ الْمَأْدُبَةِ وَ رَضِيَ عَنْهُ السَّيِّدُ |
| لهذاچاچې دبلونکي دعوت قبول کړهغه کورته داخل شواوخوراک يې وخوړاوسردارد هغونه راضي شو |
| وَ مَنْ لَمْ يُجِبِ الدَّاعِيَ لَمْ يَدْخُلِ الدَّارَ وَ لَمْ يَأْكُلْ مِنَ الْمَأْدُبَةِ وَ سَخِطَ عَلَيْهِ |
| اوچاچې دبلونکي دعوت قبول نه کړاوکورته داخل نه شونودخوراک نه خوراک ونه کړواوناراضه شو |
| السَّيِّدُ قَالَ فَاللهُ السَّيِّدُ وَ مُحَمَّدٌ الدَّاعِي |
| ورنه سرداربني عليه السلام وفرمايل: په دغه مثال کې دسردارنه مرادالله دی، دبلونکي نه محمد ﷺ |
| وَ الدَّارُ الْإِسْلَامُ وَ الْمَأْدُبَةُ الْجَنَّةُ.(١) |
| مراددی، د کورنه مراد اسلام دی او د خوراک نه مراد جنت دی. |

**توضيح** : **لتنم عينك ولتسمع** : دا کلمات په لفظونو کې انشاءات دي او په معنی کې اخبارات دي، يعنې غواړې چې ستا سترګې ويدې شي، مطلب دا دی چې په خپلو سترګو سره بل څه ونه وينې او په غوږونو باندې بل څه وا نه آورې، يعنې په غور سره د دې مثال آوريدل غواړې، دا د خوب معامله وه فرښتو په يوه مثال سره د پوهولو دپاره پوره کلام واورولو ، دلته دا هم ممکن ده چې دا کلام د الهام په طور شوی وي او دا هم ممکن ده چې فرښتو حقيقةً دا کلام د رسول الله ﷺ په مخاطب جوړولو سره کړی وي، بهر حال رسول الله ﷺ په قال سره جواب ورکړو چې زه د آوريدو دپاره مکمل

---

(١) اخرجه الدارمي في السنن ١٨/١ رقم الحديث : ١١.

تيار يم، دلته سوال دا دى چې په دغه باب کې ددې نه مخکې پنځم نمبر حديث تير شوى دى، د ذکر شوي حديث په ظاهره د هماغه حديث سره تعارض معلوم شوى دى، ځکه هلته (دار) ته جنت ويل شوي او دلته (دار) ته اسلام وويل شول؟.د دې جواب دا دى چې اسلام د جنت دپاره يو سبب دى او جنت مسبب دى، نو چيرته په مسبب باندې ذکر دى او چيرته په سبب باندې ذکر راغلى دى، دا تعارض نه دى ، همدارنگه په بعضو روايتونو کې دالسيدلفظ راغلى دکوم نه چې مراد الله تعالى دى اوداعي لفظ درسول الله ﷺ دپاره استعمال شوى دى، او چيرته د داعي نه مراد الله تعالى دى، نو په دې کې هم تعارض نشته ځکه اصلا خو داعي الله تعالى دى کوم چې بې نيازه دى او بالواسطه داعي رسول الله ﷺ دى.(المرقات ۱/۳۹۷).

## د منکرينو حديث ترديد

| |
|---|
| (۲۲) وَ عَنْ أَبِي رَافِعٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د ابو رافع رضي الله عنه نه روايت دى وايي چې:نبي عليه السلام وفرمايل :زه دې په تاسو کې يو څوک په داسې |
| لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ مُتَّكِئًا عَلَى أَرِيكَتِهِ |
| حال کې پيدا نه کړم چې هغه په خپل چپرکټ باندې تکيه لګولې وي او زما د هغو احکامو نه د کومو چې |
| يَأْتِيهِ أَمر مِمَّا أَمَرْتُ بِهِ أَوْ نَهَيْتُ عَنْهُ فَيَقُولُ |
| ماحکم کړى يا مې دکومو نه منع کړې ده کوم حکم هغه ته ورسيږي او هغه همدا واورې دا ووايي چې زه |
| لَا أَدْرِي مَا وَجَدْنَا فِي كِتَابِ اللهِ اتَّبَعْنَاهُ (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَةَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ)[1]. |
| هيڅ نه پيژنم، کوم څه چې ماته د خداى په کتاب کې پيدا شوي دي ما د هغه تائيد کړى . |

**توضيح : لا الفين احدكم** : يعنې تاسو په داسې حالت کې مبتلا نه شئ چې زه تاسو په همداسې حالت کې پيدا کړم.

**متكأ على اريكته** : د شاهي تخت ته اريكة ويل کيږي د کوم چې جمع ارائک ده، هغه ته چپرکټ هم ويل شوي دي، دا د هغه کس نهايت د غرور او د تکبر بيان دى همدارنگه په دې کې د عيش ناز او نعمتونو او ترفه طرف ته هم اشاره ده. (المرقات ۱/۳۹۹).

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۶/۸، واخرجه ابو داود في السنن ۵/۱۲ رقم الحديث : ۴۶۰۵ ، واخرجه الترمذي في السنن ۵/۳۶، رقم الحديث : ۲۶۶۳، واخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۶ رقم الحديث: ۱۳.

**امر**: دلته مطلق د اسلام دین مراد دی، که امر وي که نهي یا کوم بل حکم وي. (المرقات ۱/۳۹۹).
په دغه حدیث کې په منکرینو حدیث باندې بلیغ تردید شوی دی، کوم چې خپلو ځانونو ته اهل قرآن وایي او د جهالت د وجې نه یې د احادیثو نه انکار کړی دی، په نهایت غرور او تکبر سره یې ویلي دي چې زمونږ د پاره بس صرف قرآن کافي دی، د دې مشاهده حق علماؤ هغه وخت وکړه کله چې دوی د وفد په صورت کې عبدالله چکړالوي منکر حدیث ته ورغلي وو، هغه په تخت باندې ناست وو او په غرور سره یې علماؤ ته وویل ﴿حسبنا کتاب الله﴾ چې بس زمونږ د پاره صرف قرآن کافي دی.

## د قرآن په شان احادیث هم واجب العمل دي

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَ عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِيْكَرِبَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ أَلَا |
| او د حضرت مقدام بن معدیکرب رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: خبردار اوسئ |
| إِنِّي أُوْتِيْتُ الْقُرْآنَ وَ مِثْلَهُ مَعَهُ أَلَا يُوْشِكُ رَجُلٌ شَبْعَانٌ عَلَى أَرِيْكَتِهِ |
| ما ته قرآن راکړی شوی دی او د هغه سره د هغه مثل، خبردار! په نزدې وخت کې به په خپل چپرکټ باندې ناست |
| يَقُوْلُ عَلَيْكُمْ بِهٰذَا الْقُرْآنِ |
| یو کس ووایي چې همدا قرآن په خپل ځان باندې لازم وګنئ (یعنې فقط قرآن ومنئ او په هغه باندې عمل |
| فَمَا وَجَدْتُّمْ فِيْهِ مِنْ حَلَالٍ فَأَحِلُّوْهُ وَمَا وَجَدْتُّمْ فِيْهِ مِنْ |
| وکړئ) او کوم شی چې تاسو په قرآن کې حلال پیدا کړی دی هغه حلال وګنئ او کوم شی چې تاسو پیدا کړي |
| حَرَامٍ فَحَرِّمُوْهُ وَ إِنَّ مَا حَرَّمَ رَسُوْلُ اللهِ كَمَا |
| په قرآن کې حرام هغه حرام ګنئ، حالانکه کوم څه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم حرام کړي دي دا په شان د هغه |
| حَرَّمَ اللهُ أَلَا لَا يَحِلُّ لَكُمُ الْحِمَارُ الْأَهْلِيُّ وَلَا كُلُّ ذِيْ نَابٍ مِنَ السَّبُعِ |
| څه دي کوم چې خدای حرام کړي دي، خبردار ستاسو د پاره نه کورنی خر حلال دی او نه شیرو نکي درنده ګان |
| وَلَا لُقَطَةُ مُعَاهِدٍ إِلَّا أَنْ |
| او نه ستاسو د پاره د معاهد (یعنې هغه قوم د کوم سره چې معاهده شوې) لقطه حلاله شوې ده مګر هغه لقطه |
| يَسْتَغْنِيَ عَنْهَا صَاحِبُهَا وَ مَنْ نَزَلَ بِقَوْمٍ فَعَلَيْهِمْ |
| حلاله ده د کومې پروا چې د هغې مالک ته نه وي او کوم کس چې د کوم قوم میلمه شي په هغه قوم باندې لازمه |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنْ | يُقْرُوهُ | فَإِنْ | لَمْ | يَقْرُوهُ | فَلَهُ | أَنْ |

ده چې د هغه میلمه پالنه وکړي، که چیرته هغه یې میلمستیا ونه کړي نو د هغه د پاره جائز دي چې هغه د

يُعْقِبَهُمْ بِمِثْلِ قِرَاهُ (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ) (وَرَوَى الدَّارِمِيُّ نَحْوَهُ وَكَذَا ابْنُ مَاجَةَ إِلَى قَوْلِهِ كَمَا حَرَّمَ الله)[1].

مهمانوازي په رنګ د هغه نه حاصل کړي.

**توضیح : اوتیت القرآن ومثله :** یعنې د قرآن په شان د احکامو د اثبات دپاره ماته احادیث هم راکړل شوي دي، هو فرق دومره دی چې قرآن وحې متلو ده او احادیث وحې غیر متلو ده، واجب العمل دواړه دي، حلت او حرمت په دواړو سره ثابت شوی دی.(المرقات ۱/۴۰۰).

**رجل شبعان :** په دغه لفظ سره د هغه کس حماقت جهالت عیش او عشرت طرف ته اشاره شوې ده، ځکه چې د ډکې خیټې والا بلید او بې وقوف دی، لهذا هغه د همدې جهالت د وجې د احادیثو نه انکارکوي. (المرقات ۱/۴۰۱).

**وان ماحرم : ای والحال أن ما حرم رسول الله کما حرم الله :** یعنې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په فرمان سره هغه رنګه شیان حرام شوي دي لکه څرنګه چې الله تعالی حرام کړي ، لهذا د رسول الله صلی الله علیه وسلم ذات په حقیقت کې داسې شارع دی لکه څرنګه چې الله تعالی شارع دی، ځکه چې ﴿ وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَى إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَى ﴾ واضح آیت دی. (المرقات ۱/۴۰۲).

**الا لایحل :** ددې ځای نه د هغو څیزونو بیان شروع شوی دی د کومو حرمت چې په سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم کې مذکور دی او په قرآن کریم کې نشته، دا ټول څلور اشیاء دي :

**اول :** ساتل شوی خر نه وحشي خر، ځکه چې هغه صحرائي دی او حلال دی، کوم ته چې زیبرا ویل کیږي. اوس د ساتل شوي خره د حرمت حکم په حدیث کې دی او په قرآن کریم کې نشته دی.

**دویم : ذی ناب :** یعنې په داړو او نوکانو سره د ښکار کوونکي ځناورو حرمت په قرآن کریم کې نه دی ذکر شوی بلکې په احادیثو کې ذکر شوی دی.

**دریم :** د معاهد د لقطې استعمالول، معاهد که ذمي دی که حلیف کافر دی.ددې نه معلومه شوه چې د غیر ذمي د مسلمان لقطه استعمالول په طریقه اولی حرامه ده، هو معمولي شی کوم چې یو څوک په

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۱۳۲/۴، واخرجه ابو داود في السنن ۱۰/۵ رقم الحديث : ۴۶۰۴ ، واخرجه الترمذي في السنن ۳۷/۵ رقم الحديث: ۲۶۶۴، واخرجه ابن ماجه في سننه ۶/۱ رقم الحديث: ۱۲.

خپله وغورځوي يا د غورځيدو وروسته د هغه د پورته کولو ضرورت محسوس نه کړي نو هغه مستثنی دی. (المرقات ۱/۴۰۳).

**څلورم**: ومن لزل: دا څلورم شی دی چې کوم مسلمان په کوم قوم باندې راغی نو په دې قوم باندې د هغه میلمستیا واجب ده، که نه نو میلمه دې د میلمستیا په څیر د دې خلکو نه د هغه عوض واخلي.

**سوال**: دلته شبه دا ده چې د یو چا په مال باندې تعرض کول یا یې په زوره اخیستل روا نه دي، په دغه حدیث کې اجازت څنګه ورکول شوی دی؟.

**جواب**: ددې سوال څوجوابونه دي: اول جواب دا چې په اصل کې دادا اهل کتابو سره دجزیې معاهده شوې وه په دغه معاهده کې دا فیصله شوې وه چې که چیرته مسلمان ستاسو په کلي باندې تیریږي نو هغه ته خوراک ورکړئ لهذا داد جزیې او ټیکس برخه وه د نه ورکولو په صورت کې یې په زوره اخیستل روا وو.

**دویم جواب**: دا دی دا د اضطراري حالت حکم دی، چې کوم کس په مخمصه او اضطرار کې وي هغه یې د ځان دبچ کولو دپاره اخیستلی شي، بیا دې عوض واپس کړي همدا مطلب د اعقاب دی.

**دریم جواب**: دادی چې داحکم داسلام د ابتداء وو بیا منسوخ شو، رومبی جواب واضح دی او راتلونکی روایت هم په هغه باندې محمول دی، کوم چې د حضرت عرباض رضي الله عنه نه مروي دی، په یاد ولرئ چې د حدیث په حجیت باندې کلام په ابتداء کې شوی دی. (المرقات ۱/۴۰۳).

## د دې کې خیټې والا غافل خلک د احادیثو نه انکار کوي

| |
|---|
| (۲۵) وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ |
| دعرباض بن ساریه رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د خطبې دپاره ودریدو او وې فرمایل |
| أَيَحْسَبُ أَحَدُكُمْ مُتَّكِئًا عَلَى أَرِيكَتِهِ يَظُنُّ أَنَّ اللهَ لَمْ يُحَرِّمْ شَيْئًا |
| آیا په تاسو کې کوم کس په خپل پالنګ باندې دتکیه په لګولو سره داګمان کوي چې خدای هغه شی حرام کړی |
| إِلَّا مَا فِي هٰذَا الْقُرْآنِ أَلَا وَ إِنِّي وَ اللهِ قَدْ أَمَرْتُ وَ وَعَظْتُ وَ |
| کوم چې په قرآن کې ذکر شوی خبردار! په خدای قسم! دشک نه بغیر ما حکم ورکړی ما نصیحت کړی او |
| نَهَيْتُ عَنْ أَشْيَاءَ إِنَّهَا لَمِثْلُ الْقُرْآنِ أَوْ أَكْثَرُ وَ إِنَّ اللهَ |
| ما منعه کړې ده دڅو شیانو نه کوم چې د قرآن په شان دي بلکې زیات دي، بیشکه الله تعالی ستاسو دپاره |
| لَمْ يُحِلَّ لَكُمْ أَنْ تَدْخُلُوا بُيُوتَ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا بِإِذْنٍ وَلَا |
| حلال کړي نه دي چې تاسو د اهل کتابو کورونو ته د اجازت نه بغیر لاړ شئ، او نه ستاسو دپاره د هغوی |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ضَرْبَ | نِسَائِهِمْ | وَلَا | أَكْلَ | ثِمَارِهِمْ | إِذَا | أَعْطَوْكُمُ | الَّذِيْ |

دښځو وهل (وژل) حلال دي او نه د هغوی د میوو خوړل درته روا دي کله چې هغوی مطالبه اداء کړه کومه چې

عَلَيْهِمْ (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[1]

د هغوی په ذمه وه.

او په سند کې اشعث بن شعبه حصیصي دی د کوم په باره کې چې کلام دی چې هغه ثقه دی او که نه دی؟.

**توضیح: او اکثر:** او په معنی د بل دی، د شک د پاره نه دی بلکې د رومبی. وحې سره متصل چې دویمه وحې راغلې نو بل اکثر ویل شوی، د اصولو علماؤ لیکلي دي چې په احکامو باندې مشتمل قرآني آیتونه پنځه سوه دي او دارنګه احادیث هم پنځه سوه دي. (المرقات ۱/۴۰۵).

**ولا ضرب نسائهم:** ددې نه مراد د مفتوح قوم د ښځو د وژلو ممانعت دی، همدارنګه د هغو د کورونو د بې حرمتی ممانعت دی، لکه چې د عامو فاتحینو عادت دی، د دواړو حدیثونو خلاصه دا ده چې داسې احکام ډیر زیات دي، د کومو ذکر چې په قرآن کریم کې نشته لیکن په احادیثو سره ثابت دي، د کومو تفصیل چې د حجیت حدیث په ضمن کې تیر شوی دی. (المرقات ۱/۴۰۶).

## هر بدعت ګمراهي ده

﴿۲۶﴾ وَعَنْهُ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهٖ

د عرباض بن ساریه رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته مونځ راکړ بیا زمونږ طرف ته متوجه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَوَعَظَنَا | مَوْعِظَةً | بَلِيغَةً | ذَرَفَتْ | مِنْهَا | الْعُيُونُ |

شو کیناست او مونږ ته یې په نهایت مؤثر انداز کې نصیحت وکړ چې زمونږ د سترګو نه اوښکې رواني شوې

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَ | وَجِلَتْ | مِنْهَا | الْقُلُوبُ | فَقَالَ | رَجُلٌ | يَا | رَسُولَ | اللهِ | كَأَنَّ | هٰذِهٖ |

او په زړونو کې موویره پیدا شوه، یو کس عرض وکړه یا رسول الله! (داسې معلومیږي) ګویا چې داد

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَوْعِظَةُ | مُوَدِّعٍ | فَأَوْصِنَا | قَالَ | أُوْصِيْكُمْ |

نصیحت کوونکي آخرنی نصیحت دی لهذا مونږ ته هم وصیت وکړه نبي علیه السلام وفرمایل: زه تاسو ته وصیت

---

(۱) اخرجه ابوداود ۳/۱۳۶ رقم الحدیث: ۳۰۵۰.

بِتَقْوَى اللهِ وَ السَّمْعِ وَ الطَّاعَةِ

كوم چې د خداى نه ويره كوئ، او تاسو ته د مسلمان سردار د حكم آوريدو او پر ځاى كولو وصيت كوم

وَ إِنْ كَانَ عَبْدًا حَبَشِيًّا فَإِنَّهُ مَن يَعِشْ مِنْكُم فَسَيَرَى

اگركه هغه سردار حبشي غلام وي په تاسو كې چې څوک زمانه وروسته ژوندى پاتې شي هغه به ويني

اِخْتِلَافًا كَثِيرًا فَعَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَ سُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ الْمَهْدِيِّينَ

اختلافات، په داسې حالت كې په تاسو باندې لازمه ده چې تاسو زما او د هدايت موندونكو خلفاء راشدينو

تَمَسَّكُوا بِهَا وَ عَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ وَ

طريقه لازمه ونيسئ او په همدې طريقه باندې يقين وساتئ، او هغه په غابنونو سره مضبوط ونيسئ، او

إِيَّاكُمْ وَ مُحْدَثَاتِ الْأُمُورِ فَإِنَّ كُلَّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ وَ كُلَّ بِدْعَةٍ

تاسو په دين كې د نويو نويو خبرو د پيدا كولو نه ځان وساتئ ځكه چې هره نوې خبره بدعت دى او هر بدعت

ضَلَالَةٌ . (رَوَاهُ أَحْمَدُ ، وَ أَبُودَاوُدَ، وَ التِّرْمِذِيُّ وَ ابْنُ مَاجَهُ ، إِلَّا أَنَّهُمَا لَمْ يَذْكُرَا الصَّلَاةَ)[1].

گمراهي ده، مگر په دې روايت كې ترمذي او ابن ماجه مونځ كولو ذكر نه دى كړى (يعنې د دوى په روايتونو

كې د حديث دا الفاظ صلى بنا رسول الله ذكر شوي نه دي، بلكې حديث د وعظنا موعظة نه شروع شوى.

**توضيح: ذرفت:** د سترگو نه اوښكې بهيدلو په معنى سره دى. **وجلت**: دزړه درزيدا خشوع او خوف ته ويل شوي دي. (المرقات ۱/۴۰۷).

**موعظة مودع**: جامع نصيحت ته موعظة مودع وويل شو چې په هغه كې يې ټولې داسې خبرې ذكر كړې گويا چې رسول الله ﷺ تلونكى دى، په دې وجه صحابي د زيات وصيت او نصيحت غوښتنه وكړه. (المرقات ۱/۴۰۷).

**بتقوى الله**: ظاهرًا او باطنًا د خپلې معاملې د خپل رب سره صفا ساتلو نوم تقوى دى، حضرت عمر فاروق رضي الله عنه كله چې د تقوى متعلق د حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه نه پوښتنه نو هغه ورته وفرمايل

(۱) اخرجه احمد في المسند ۱۲٦/٤، واخرجه ابو داود في السنن ۱۳/٥ رقم الحديث : ٤٦٠٧ ، واخرجه الترمذي في السنن ٤۳/٥، رقم الحديث : ۲٦٧٦، واخرجه ابن ماجه في سننه ۱٥/۱ رقم الحديث: ٤۲.

ای امیر المؤمنیه ! د تقوی مثال داسې دی کله چې کوم کس په ازغنه لار باندې روان وي خپل ځان او خپلې جامې د ازغو نه ساتي بس د احتیاط همدا صورت تقوی ده. (المرقات ۱/۴۰۷).

**عبدا حبشیاً** : سوال دا دی چې په اسلام کې غلام بادشاه نه شي جوړیدی، بلکې په حدیث کې خو راغلي چې **الائمة من قریش** نو بیا د حبشي غلام بادشاهي څنګه واجب الاطاعت ګرځول شوې؟. ددې اول جواب دا دی چې دا **علی سبیل المبالغة** ده ګویا چې معمولي انسان هم وي د کوم سرچې د کشمش دانې برابر ولې نه وي مګر تاسو یې اطاعت وکړئ تر څو چې انتظام باقي پاتې شي او انتشار رانه شي. دویم جواب دا چې بادشاه جوړیدل علی سبیل المبالغه دی چې دا حبشي غلام په تاسو باندې په زوره مسلط شي نو بیا اطاعت وکړئ، دا د وخت ضرورت دی صبر وکړئ، په دې شرط چې دا غلام د الله تعالی د کتاب مطابق فیصلې کوي نه دا چې په خپل حکم باندې چلیږي **ای مالم یأمر بمعصیة**.(المرقات ۱/۴۰۸).

**وسنة الخلفاء الراشدین** د خلفاء راشدینو نه مراد څلور خلفاء دي مشهور همدغه څلور دي ددوي نه وروسته حضرت حسن رضي الله عنه او حضرت معاویه رضي الله عنه هم خلافت کړی دی دوی هم خلفاء وو، حضرت عمر بن عبدالعزیز هم علماء کرامو په خلفاء راشدینو کې شمار کړی دی، دلته د څلورو خلفاو امتیازي شان بیان شوی، په دې سره د هغوی تخصیص مراد دی، د نورو خلفاؤ نفې کول مراد نه دي تر قیامت پورې خلفاء راځي مګر دلته د خلافت علی منهاج النبوة تذکره شوې ده. (المرقات ۴۰۸-۱/۴۰۹).

**عضوا علیها** : په غابښونو سره نیول په اهتمام سره د عمل کولو نه کنایه ده، یعنې په غابښونو سره د هغو فرمانونه مضبوط ونیسئ، ځکه چې دا خلک په حقه دي او د دوی نه په غیر له بدعتونو نه ځان وساتئ، ځکه چې هر بدعت ګمراهي ده، په دې حدیث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپلو سنتو سره سره د خلفاء راشدینو د سنتو د راتینګولو هم حکم کړی دی، د کوم نه چې معلومه شوه چې د خلفاء راشدینو سنت هم معیار حق دی، حضرت شاه صاحب ویلي دي چې د خلفاء راشدینو مقام د تشریع او اجتهاد په مینځ کې دی، تشریع د نبي مقام کیدی شي او اجتهاد د ائمه مجتهدینو کار دی، د خلفاء راشدینو کار نه د تشریع والا دی بلکې د هغه نه ښکته دی او نه د مجتهدینو والا دی ځکه چې د هغوي نه پورته دی، بلکې د دواړو په مینځ کې دی. (المرقات ۱/۴۱۰).

## د سنت په روښانه لار لاړ شئ :

| |
|---|
| (۲۷) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ خَطَّ لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم زمونږ د پوهیدو د پاره یو سیده کرخه |

| |
|---|
| خَطًّا ثُمَّ قَالَ هٰذَا سَبِيْلُ اللهِ ثُمَّ |
| رابنکله او وې فرمايل دا د الله لار ده بيا نبي عَلَيۡهِ السَّلَام د همدې خط ښي او چپ طرف ته يو شو نورې ورې او کړې |
| خَطَّ خُطُوْطًا عَنْ يَمِيْنِهٖ وَ عَنْ شِمَالِهٖ وَقَالَ هٰذِهٖ سُبُلٌ عَلٰى كُلِّ سَبِيْلٍ مِنْهَا شَيْطَانٌ |
| کرخې رابنکلې او وې فرمايل: دا هم لارې دي په کومو کې چې په هره يوه لار باندې شيطان ناست دی کوم |
| يَدْعُوْ اِلَيْهِ ثُمَّ قَرَأَ وَاَنَّ |
| چې دخپلې لارې طرف ته بلنه ورکوي بيا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ دا آيت کريمه تلاوت کړ او بيشکه دا زما |
| هٰذَا صِرَاطِيْ مُسْتَقِيْمًا فَاتَّبِعُوْهُ الْاٰيَة . (رَوَاهُ أَحْمد .وَ النَّسَائِيُّ .و الدارمي)[1]. |
| سيده لار ده لهذا دهغې تابعداري وکړئ د نورو لارو تابعداري مه کوئ ترڅو چې ډيرې لارې تاسو منتشر نه کړي |

**توضيح**: د پوهيدو د پاره خطونه کش کولی شي ترڅو چې انسان د افراط او تفريط نه وساتل شي، ځکه چې د اسلام خط په مينځ کې مستقيم او معتدل دی او دا د شريعت لويه لار ده، ددې نه په غير کږې کرخې بدعات او د ګمراهۍ دي، کومې چې د شيطان لارې دي.(المرقات ۱/۴۱۱).

## دين د اطاعت نوم دی

| |
|---|
| (۲۸) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رضى الله عنهما قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُؤْمِنُ |
| د عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: پوره مؤمن نه شي کيدی په |
| أَحَدُكُمْ حَتّٰى يَكُوْنَ هَوَاهُ تَبَعًا |
| تاسو کې هيڅ يو کس ترهغه وخته پورې چې دهغه خواهشات دهغه شي (يعنې د شريعت دين) تابع نه شي |
| لِمَا جِئْتُ بِهٖ . رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ وَ قَالَ النَّوَوِيُّ فِيْ أَرْبَعِيْنِهٖ هٰذَا حَدِيْثٌ |
| کوم چې ما دخدای د طرفه راوړی دی، او امام نووي په خپل څلويښت احاديثو کې ليکلي دي چې دا حديث |
| صَحِيْحٌ رَوَيْنَاهُ فِيْ كِتَابِ الْحُجَّةِ بِإِسْنَادٍ صَحِيْحٍ ).(البغوي في شرح السنة ۱/۲۱۳)[2]. |
| صحيح دی، کوم چې مونږ په کتاب الحج کې په صحيح سند سره ذکر کړی. |

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۱/۴۳۵، والدارمي ۱/۷۸ رقم الحديث: ۲۰۲ ، واخرجه ابن ماجه ۱/۶ رقم الحديث: ۱۱.

(۲) البغوي في شرح السنة ۱/۲۱۳ رقم الحديث: ۱۰۴.

**توضيح:** لايؤمن احدكم: علامه توربشتي رَحِمَهُ اللهُ ويلي چې دا د كمال نفې ده چې د انسان طبعيت داسې دي چې هغه د خپل خواهش اتباع كوي او هغه ته په هر شي باندې ترجيح وركوي ترڅو چې هغه خپل طبعيت او خواهش د شريعت تابع نه كړل تر هغه وخته كامل مؤمن كيدى نه شي. (المرقات ۱/۴۱۲).

ليكن شيخ مظهر وغيره ويلي دي چې دلته د اصل ايمان نفې شوې ده، يعنې د ايمان مدار په اتباع شريعت باندې دى، نو كوم كس چې اطاعت كوي هغه يې د دې دپاره كوي چې دا د هغه دين دى اگر كه طبعيت يې نه غواړي په دې باندې هغه ته ثواب وركول كيږي. ليكن كه چيرته كومه مسئله داسې ده چې هغه د خواهش مطابق ده او زړه وغواړي چې په هغې باندې عمل وكړي او هغه كس عمل وكړي مگر د اتباع اراده يې نه وه كړې بلكې د خواهش پوره كولو اراده يې كړې وه نو ددې كس همدا عمل دين پاتې نه شو لهذا هغه مؤمن نه شو، خلاصه دا ده چې د شريعت اتباع اصل مقصود دى. (المرقات ۱/۴۱۲).

**۲۱ محرم الحرام ۱۴۰۹هـ**

## د سنت د ژوندي كولو ثواب

| |
|---|
| (۲۹) وَعَنْ بِلَالِ بْنِ الْحَارِثِ الْمُزَنِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم مَنْ أَحْيَا |
| د بلال بن حارث المزني رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: چاچې ژوندي كړو زما |
| سُنَّةً مِنْ سُنَّتِيْ قَدْ أُمِيتَتْ بَعْدِيْ فَإِنَّ لَهُ مِنَ الْأَجْرِ |
| داسې سنت (يعنې رواج يې كړو) كوم چې د ما نه وروسته پريښودل شوي وو نو هغه ته دومره ثواب وركول |
| مِثْلَ أُجُوْرِ مَنْ عَمِلَ بِهَا مِنْ غَيْرِ أَنْ |
| كيږي څومره چې په دې سنت باندې عمل كوونكي ته وركول كيږي، بغير ددې نه چې په دې سنت باندې |
| يَنْقُصَ مِنْ أُجُوْرِهِمْ شَيْئًا وَ مَنِ ابْتَدَعَ بِدْعَةً ضَلَالَةً |
| د عمل كوونكي د ثواب نه هيڅ هم نه كميږي، او كوم كس چې د گمراهۍ كومه داسې نوې خبره راوباسي |
| لَا يَرْضَاهَا اللهُ وَ رَسُوْلُهُ كَانَ عَلَيْهِ مِنَ الْإِثْمِ مِثْلُ آثَامِ |
| په كومې سره چې الله او د هغه رسول نه خوشحاله كيږي نو هغه ته دومره گناه وركول كيږي څومره چې په |
| مَنْ عَمِلَ بِهَا |
| دې بدعت باندې عمل كوونكي ته وركول كيږي، په غير ددې نه چې په دې بدعت باندې د عمل كوونكي |
| لَا يَنْقُصُ مِنْ أَوْزَارِهِمْ شَيْئًا. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْ كَثِيْرِ بْنِ عَبْدِاللهِ |
| په گناه كې كوم كمى راشي او ابن ماجه همدا روايت د كثير بن عبد الله بن عمرو نه او كثير د خپل پلار عبد الله |

| |
|---|
| بْنِ عَمْرٍو عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ) . (ترمذي، ابن ماجه)[1]. |
| نه او عبد الله د كثير د نيكه عمرو بن العاص نه روايت كړى . |

**توضيح**: د سنت نه د اسلام مطلق حكم مراد دى، برابره خبره ده كه د فرضو د جملې نه وي يا د واجباتو او د سنتو د قبيلې نه وي، د هغه د ژوندي كولو مطلب دا دى چې په خپله هم په هغه باندې عمل وكړي او نورو ته هم د هغه ښه تبليغ وكړي، دې كس ته د خپل عمل او د يو بل د پاره د سبب جوړيدو ثواب وركول كيږي.

**بدعة**: د بدعت سره چې كوم قيودات لګول شوي دي دا احترازي ندي، بلكې د مزيد تقبيح د پاره د صفات كاشفه دي.

## د اسلام دين به په حجاز كې ځاى ونيسي

| |
|---|
| (۳۰) وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الدِّينَ |
| د عمرو بن عوف رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: بلا شبه دين (اسلام) به د |
| لَيَأْرِزُ إِلَى الْحِجَازِ كَمَا تَأْرِزُ الْحَيَّةُ إِلَى جُحْرِهَا |
| حجاز (مكې او مدينې او د دې متعلقاتو) طرف ته داسې ننوځي لكه څنګه چې مار د خپل غار طرف ته ننوځي |
| وَلَيَعْقِلَنَّ الدِّينُ مِنَ الْحِجَازِ مَعْقِلَ الْأُرْوِيَّةِ مِنْ رَأْسِ الْجَبَلِ إِنَّ الدِّينَ |
| او دين به په حجاز كې داسې ځاى نيسي لكه څنګه چې پسه د غره په څوكه باندې ځاى نيولى دى او دين |
| بَدَأَ غَرِيبًا وَسَيَعُودُ كَمَا بَدَأَ فَطُوبَى |
| په شروع كې غريب پيدا شوى وو او په آخر كې به هما غسې شي لكه څرنګه چې په شروع كې وو لهذا زيرى |
| لِلْغُرَبَاءِ وَهُمُ الَّذِينَ يُصْلِحُونَ مَا أَفْسَدَ النَّاسُ مِنْ بَعْدِي مِن سنتي. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)(۲). |
| دى د غريبانو د پاره چې دوى به زما سنت سم كړي كوم چې به څه زمانه وروسته خلكو خراب كړي وي . |

**توضيح**: **جحرها**: جحر سوړې (غار) ته ويل كيږي او ضمير حية طرف ته راجع دى، مار د خپل غار طرف ته په واپس كيدو په تيزتګ او په محفوظه ناسته كې مشهور دى نو ځكه د هغه سره تشبيه وركړى شوې ده.

**وليعقلن**: د ځاى نيولو په معنى سره دى، په اصل كې د عقال نه دى او عقال رسۍ ته ويل كيږي او بش

---

(۱) اخرجه الترمذي ۴۴/۵ رقم الحديث : ۲۶۷۷، اخرجه ابن ماجه ۷۶/۱ رقم الحديث : ۲۱۰.

(۲) اخرجه الترمذي ۱۹/۵ رقم الحديث : ۲۶۳۰.

چې په کومه رسۍ سره تړل کیږي هغې ته هم عقال وايي. (المرقات ۱/۴۱۴).

**الحجاز**: مکه مدينه او د دوی قرب او جوار سيمو ته حجاز ويل کيږي، دلته مراد مکه او مدينه دي. (المرقات ۱/۴۱۴).

**معقل**: د عقل نه يا خو مصدر ميمي دی يا د ظرف مکان صيغه ده، دلته د غره په څوکه باندې محفوظ ځای مراد دی او په کلام کې تشبيه ده. (المرقات ۱/۴۱۴).

**الاروية**: غرني ګډه ته اروبه ويل کيږي، منجد چې د اروبه کوم عکس ورکړی دی د هغه نه معلوميږي چې دا مشک نافه ده، او د وعل يې چې کوم عکس ورکړی دی د هغه اندازه کيږي چې دا غرنی پسه دی، د کوم چې سم او نيغ ښکرونه دي، او نهايت په سختو غرنيو سيمو کې اوسيږي، انسان ته داسې محسوسيږي چې د هغه په پښو کې د کاڼو او پرښو سره د تيز تګ ماده او مصالحه لګول شوي دي، دوی د سهار په وخت کې د څريدو دپاره څر ځای ته راځي او په تياره کې نيغ په يو کتار کې بيرته واپس ځي، ښکاري خلکو يې ډير زيات خصوصيات ذکر کړي دي او په پښتو کې ورته غرڅه ويل کيږي. نبي عليه السلام دلته اروبه مؤنث ذکر کړې ده ځکه چې دا په ځای نيولو کې د نر او مذکر نه زياته محتاطه وي، په دې حديث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم دا پيشنګوئي کړې ده چې قيامت ته په نږدې زمانه کې به فتنې ډيرې زياتې شي، دهمدې فتنو په زمانه کې به دين په ښويدلو سره بيرته د مقدس حجاز طرف ته راوګرځي او په حجاز کې به د هغه دپاره د پناه اخيستو او حفاظت دپاره محفوظ ځای پيدا شي، د حضرت مهدي عليه الرضوان په زمانه کې به د دې واقعاتو ظهور وشي چې د ټولنې سره به په هر لحاظ مقاطعه وشي، نه به په کومه خوشحالۍ کې د دوی څوک پوښتنه کوي او نه په کوم غم کې. (المرقات ۱/۴۱۵).

**فطوبى للغرباء**: يعنې دوی ته دې مبارک وي او دوی ته د جنت طوبى زيری دی. (المرقات ۱/۴۱۵).

**وهم الذين**: دا د دوی نښه دی چې په سنت باندې به عمل کوونکي شي، او خلکو چې په دين کې کوم خرابي پيدا کړي وي د هغه اصلاح به کوي، الحمد لله په دې نقشه باندې د ديوبند علماء قائم دي.

د غرباء په لفظ سره غير مقلدينو خپل يو ګروپ ته د غرباء اهل الحديث نوم ايښی دی، مګر په نوم سره کار نه چليږي، بلکې په عمل او کردار سره تاريخ جوړيږي. (المرقات ۱/۴۱۷).

## دا امت به په درې اويا ډلو تقسيم شي:

| |
|---|
| (۲۱) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دی چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: د شک نه بغير |

لَيَأْتِيَنَّ عَلَى أُمَّتِي مَا أَتَى عَلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ

زما په امت باندې به داسې زمانه راشي کومه چې په بني اسرائيلو باندې راغلې وه (او په دواړو کې به يو

حَذْوَ النَّعْلِ بِالنَّعْلِ حَتَّى إِنْ كَانَ

مماثلت راشي) لکه چې د دواړو پيزار بالکل برابر اوي وشانته شي تردې چې په بني اسرائيلو کې که چيرته

مِنْهُمْ مَنْ أَتَى أُمَّهُ عَلَانِيَةً لَكَانَ فِي أُمَّتِي مَنْ يَصْنَعُ ذَلِكَ

کوم کس د خپلې مور سره بد فعلي کړې وي نو زما په امت کې به هم داسې خلک پيدا شي چې هم داسې به

وَإِنَّ بَنِي إِسْرَائِيلَ تَفَرَّقَتْ عَلَى ثِنْتَيْنِ وَسَبْعِينَ مِلَّةً وَتَفْتَرِقُ أُمَّتِي عَلَى ثَلَاثٍ وَسَبْعِينَ مِلَّةً كُلُّهُمْ

وکړي او بني اسرائيل په دوه اويا ډلو ويشل شوي وو زما امت به په دري اويا ډلو تقسيم شي او هغه ټولې ډلې

فِي النَّارِ إِلَّا مِلَّةً وَاحِدَةً قَالُوا وَمَنْ هِيَ

به دوزخي وي په هغو کې به صرف يوه ډله جنتي وي، صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض وکړو چې هغه جنتي

يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ مَا أَنَا عَلَيْهِ وَأَصْحَابِي. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1]

ډله کومه يوه ده يا رسول الله؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: په کومه کې چې زه او زما صحابه وي.

وَفِي رِوَايَةِ أَحْمَدَ وَأَبِي دَاوُدَ عَنْ مُعَاوِيَةَ ثِنْتَانِ وَسَبْعُونَ

او احمد او ابوداؤد چې کوم روايت د حضرت معاويه رضي الله عنه نه نقل دي د هغه الفاظ دا دي چې دوه اويا

فِي النَّارِ وَوَاحِدَةٌ فِي الْجَنَّةِ وَهِيَ الْجَمَاعَةُ وَإِنَّهُ سَيَخْرُجُ فِي أُمَّتِي أَقْوَامٌ

ډلې دوزخي دي او يوه ډله به جنت ته ځي او هغه ډله (جماعت) دي او زما په امت کې به ډير قومونه پيدا شي

تَتَجَارَى بِهِمْ تِلْكَ الْأَهْوَاءُ كَمَا يَتَجَارَى الْكَلْبُ

د کومو په خواهشاتو (يعني عقائدو او اعمالو کې به بدعات) داسې سرايت وکړي لکه د ليوني سپي بيماري

بِصَاحِبِهِ لَا يَبْقَى مِنْهُ عِرْقٌ وَلَا مَفْصِلٌ إِلَّا دَخَلَهُ).

چې سرايت وکړي په چيچل شوي کس کې به هيڅ رګ او هيڅ بند روغ ترې پاتې نه شي.

**توضيح: بني اسرائيل:** د دې نه يهود او نصارى مراد دي.

---

(۱) أخرجه الترمذي ۵/۲۶ رقم الحديث: ۲۶۴۲.

**امتي**: ددې نه مراد امت اجابت دی نه امت دعوت. (المرقات ۱/۴۱۸).

**حذو النعل بالنعل**: يعنې لکه څرنګه چې يوه څپلۍ د بلې څپلۍ سره بالکل برابره شي همداسې به امت محمدي د يهودو او نصاراو سره مشابهت غوره کړي، دا محاوره د کمال مطابقت او کمال مشابهت په وخت کې ويل شوې ده. (المرقات ۱/۴۱۷).

**اتى امه علانية**: ددې نه ميرنۍ مور مراد ده، ځکه چې د حقيقي مور سره د بدکارۍ کولو نه طبعيت مانع دی، علامه طيبي رَحِمَهُ اللَّهُ ليکلي دي چې شايد ددې نه ميرنۍ مور مراد وي، د همدې حضراتو خبره په خپل ځای صحيح ده ليکن د نن سبا واقعات دا په ګوته کوي چې ددې نه حقيقي او ميره دواړه ميندې مراد کيدی شي، ځکه چې د يورپ فحاشي د انسان نه حيوان جوړ کړی دی، چيرته چې د مور، لور او ښځې فرق پاتې نه دی. (المرقات ۱/۴۱۸، الکاشف ۱/۳۶۸).

**وتفترق امتي**: ددې نه مراد امت اجابت دی، ځکه چې امت دعوت يعنې د غير مسلمانانو خو بيشماره ډلې دي، يعنې امت اجابت به دری اويا ډلې جوړې شي، دا افتراق او فرقه بازي به د فروعاتو په اعتبار سره نوي بلکې د بنيادي عقائدو په اعتبار سره مراد دي نو ځکه په همدې فرقو باندې د دوزخ حکم لګول شوی چې همدا خلک به د بد اعتقادۍ او د غلطو نظرياتو د وجې دوزخ ته ځي (المرقات ۱/۴۱۸)

دلته دا خبره په ذهن کې وساتئ چې د ناجيه فرقې نه بغير همدا دوه اويا فرقې د خپلو اصولو او عقائدو په اعتبار سره شپږ دي، بيا په هغو کې د فروعاتو په اعتبار سره دوه اويا فرقې راوتلې دي، هغه شپږ دا دي: (۱) معتزله (۲) مرجئه (۳) مجسمه (۴) جبريه (۵) شيعه (٦) خوارج. په معتزلو کې دنه دولس فرقې دي. په شيعوو کې دوه ديرش فرقې دي، په خوارجو کې پنځلس فرقې دي (المرقات ۱/۴۱۹).

په جبريو يعنې جهميو کې ۳ دي، په مرجئو کې ۵ دي او په مجسمو کې هم ۵ دي، نو دا ټولې ۷۲ فرقې شوې، او يوه د اهل السنت والجماعة ده نو ټولې په دری اويا و فرقو کې امت ويشل شوی دی.

**سوال**: دا څنګه معلومه شوه چې ناجيه ډله صرف اهل سنت ده او پاتې نورې غير ناجيه دوزخي دي؟.

**جواب**: دا امتياز په عقلي دلائلو سره شوی دی په نقلي دلائلو او علاماتو سره هم شوی، هغه داسې چې ددې ناجيه ډلې به دا شان وي چې د قرآن حافظان به په دوی کې وي، محدثين به په کې زيات وي، فقهاء به هم په دوی کې وي، باعمله علماء، اهل تصوف او د خدای نه ويريدونکي متقيان او پرهيزګاران به په دوی کې وي او صحابه کرام همداسې وو، په نورو فرقو کې داشيان نه موجود يږي نو د صحابه کرامو په نقش قدم باندې نه شول، او رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما أنا عليه وأصحابي ويلي دي. (المرقات ۱/۴۱۹).

**د بدعت مثال: وهي الجماعة**: په دې سره جماعت حقه د ناجيه فرقې طرف ته اشاره ده. بيا د هغې پوره نوم اهل السنة والجماعة اينبودل شوی، همدا پوره نوم په اصل کې د ذوی نه وو بلکې د بنو عقائدو

نیکو اعمالو او افعالو، ښه کردار او په سمه لار باندې د تلو د وجې د دوی نوم په وروسته کې اهل السنة و الجماعة کېښودل شو ،داهل سنت مطلب دادی چې په سنت نبوي ﷺ باندې تلونکي خلک او د الجماعة مطلب دادی چې دصحابه کرامو دجماعت پیروي کوونکي او د هغوی په نقش قدم باندې تلونکي خلک اهل السنة والجماعة دي کوم خلک چې په سنتو باندې تلونکي نه وي ي دصحابه کرامو سره مینه ونه لري هغوی د اهل السنت والجماعت نه وتلي دي برابره خبره ده که هغوی خپلو ځانونو ته هر څه هم وایي.(المرقات ۴۱۹-۱/۴۲۰).

**تتجاری بهم**: یعنې خواهشات او بدعات په دوی کې داسې جاري شوي لکه د لیوني سپي مرض کوم ته چې **داءالکلب** ویل شوی دی، **الکلب**: د کاف اولام فتحه د هغې ویروونکې ناروغۍ نوم دی کومې چې د لیوني سپي د وجې په ټول بدن کې سرایت کړی دی. (المرقات ۱/۴۲۰).
د حدیث مطلب دا دی چې ددې امت داهل باطلو په جسم او روح کې او د هغوی په رګونو کې خواهشات او بدعات داسې داخل شوي دي لکه څرنګه چې د لیوني سپي مرض د هغه په ریشه کې داخل شوی دی. نو هغه سپی لیونی کیږي، د کومې د وجې چې هغه د اوبو نه تښتي، نه اوبه لیدلی شي او نه اوبه څکلی شي او څوک چې وخوري هغه هم د ده په څېر لیونی کیږي، همدارنګه بدعتي دی چې په خپله د بدعت ناروغي د هغه په رګونو او ورېښه کې داخل شوې ده نو هغه حق ته نژدې نه شي ورتللی بلکې د حق نه لرې تښتي، او کله چې د بل چاسره یو ځای شي نو د بدعت همدا مرض په هغه کې هم داخلیږي او هغه هم بدعتي جوړیږي، په دې وجه بدعتي واجب الاجتناب دی. (المرقات ۱/۴۲۰).

**ما أنا علیه وأصحابي**: داد ناجیه فرقې وضاحت دی، د **ما أنا علیه** نه اشخاص مع القانون مراد دي، الله تعالی چې څومره آسماني مذاهب رالیږلي دي د هغوی سره یې د نمونې په طور انبیاء کرام هم رالیږلي دي د آسماني قانون نه په غیر د اشخاصو پیروي شرک دی، او اشخاص د قانون نه بغیر هم معتبر نه دي. (المرقات ۱/۴۱۹).

## د امت اجماع حجت دی

| |
|---|
| (۳۲) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ لَا يَجْمَعُ أُمَّتِي أَوْ |
| دابن عمر رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ و فرمایل: الله تعالی زما امت ته یا (پر ځای زما |
| قَالَ أُمَّةَ مُحَمَّدٍ عَلَى ضَلَالَةٍ وَ يَدُ اللهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ |
| دامت) داویلي چې همدا امت محمدي پر ګمراهۍ باندې نه جمع کیږي او دالله تعالی لاس په جماعت باندې |

وَ مَنْ شَذَّ شُذَّ فِي النَّارِ . ( رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ )[1].

دی او کوم کس چې د جماعت نه جدا دی هغه به د جنتیانو د جماعت نه جدا کیدی شي تنها به په دوزخ کې اچول کیږي

**توضیح: لایجمع امتي**: یعني ددې امت د افرادو رأیې خو غلطېدی شي مګر په کومه خبره باندې چې ټول علماء فقهاء او مجتهدین سره راټول شي هغه خبره غلطه کیدی نه شي، د امت نه مراد امت اجابت دی ځکه چې امت کفر یو خو د ﴿الکفر ملة واحدة﴾ دا صولو ماتحت ټول په کفر باندې یو ځای شوي دي.

**امتي**: په دې کې اضافت تشریفیه دی د کوم نه چې د امت شرافت معلوم شوی دی، دا رنګه په دې کې اشاره ده چې د امت د اجماع شرف صرف د رسول الله ﷺ امت ته حاصل شوی دی، مخکنیو امتونو ته دا امتیاز نه وو حاصل شوی، بیا ددې اجماع نه د علماؤ فقهاؤ اجماع مراد ده، د عوامو اجماع ته هیڅ اعتبار نشته دی.د احادیثو شارحینو لیکلي دي چې د حدیث نه د امت د اجماع ثبوت حاصل شوی دی، دا وجه ده چې اجماع د ادله اربعوُ نه یو دلیل دی، د امت د اجماع حجیت په قرآن کریم سره هم ثابت شوی دی، الله تعالی فرمایلي دي :﴿ وَ مَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى وَ يَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰى وَ نُصْلِهٖ جَهَنَّمَ﴾ ( سورة النساء آیت :۱۱۵) دلته د سبیل المؤمنین د ټولو نه غټ مصداق اجماع ده.

د اجماع په حجیت کې دا حکمت خامخا شته چې د اسلام په دین کې د اختلاف په صورت کې د دین د حفاظت دپاره د یو قوت حافظه او قوت معصومه وجود ضروري دی، د کوم خبره چې حرف آخر شي او په هغې کې د غلطۍ احتمال نه وي، په اصل کې دا قوت معصومه د نبوت دی، په مخنیو امتونو کې موقع په موقع نبي راغلی وو او دا ضرورت یې پوره کړی وو ، لیکن په دې امت کې د ختم نبوت د وجې نوی نبي نه شي راتلی نو ددې ضرورت د پوره کولو دپاره د قرآن او حدیث په رڼا کې د امت د اجماع وجود دی، ددې امت په دې اوږده دوران کې د حالاتو د بدلون د وجې چې کومې نوې نوې مسئلې راپورته کیږي نو د شریعت په رڼا کې د هغو حل د امت د علماؤ اجماع ده، ترڅو چې د شریعت د حفاظت دپاره د اجماع دا قوت حافظه هر وخت د نویو مسائلو حل وړاندې کړي.ددې ضرورت په نظر کې نیولو سره دې امت ته رسول الله ﷺ د اجماع دا قانون ورکړی دی او بیایې د هغه محفوظ او مامون حیثیت طرف ته اشاره کړې چې الله تعالی دا امت په ګمراهۍ باندې نه جمع کوي دا اجماع دا امتیازي شان صرف دې امت ته د ختم نبوت په برکت ورکړی شوی دی.(المرقات ۴۲۰-۱/۴۲۱).

---

(۱) اخرجه الترمذي ۴/۳۰۵ رقم الحدیث : ۲۱۶۷.

**يدالله على الجماعة**: يعني د الله تعالى کومک د حق جماعت سره دی، يعني جماعت من حيث الجماعت کله چې په حق باندې قائم اوسي په کتاب الله باندې محکم اوسي نو د الله تعالى د طرفه د هغه مدد کيږي. (المرقات ۱/۴۲۱).

**ومن شذ**: يعني د حق جماعت نه جدا شوي د عقائدو او خيالاتو په اعتبار سره د کتاب او سنت نه لرې وتلي دي. (المرقات ۱/۴۲۱).

**شذ في النار**: يعني د جنتيانو له جماعت نه جدا په جهنم کې تنها اچول کيږي. (المرقات ۱/۴۲۱).

## د سواد اعظم نه مطلب څه دی

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ اتَّبِعُوا السَّوَادَ الْأَعْظَمَ |
| د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د لوی جماعت تابعداری وکړئ |
| فَإِنَّهُ مَنْ شَذَّ شُذَّ فِي النَّارِ. (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ)[1]. |
| ځکه څوک چې د جماعت نه جدا شو هغه تنها په اور کې اچول کيږي. |

**توضيح: السواد الاعظم**: د دې مطلب دا دی چې په اصولو او قواعدو کې د هغو اعتقاداتو او نظرياتو تابعداري کول په کار دي کوم چې د زياتره علماو په نزد حق وي د هغو اقوالو او افعالو قبلول په کار دي کوم چې د امت د جمهورو علماو نه ثابت شوي، په فروعاتو کې اختلاف خو روا دی ليکن په اصولو کې نه دی روا. (المرقات ۱/۴۲۱).

**سوال**: اهل حق په هره زمانه کې د اهل باطلو په مقابل کې کم وي يا هغو ته سواداعظم يعني لوی جماعت څنګه ويل شوی دی؟. **جواب**: د سواد اعظم نه صرف د يوې زمانې خلک مراد نه دي بلکې د حضرت آدم عليه السلام نه رانيولې تر نن پورې څومره خلک چې په حق باندې چليدونکي راغلي دي هغه اهل حق سواد اعظم دی، او ښکاره ده چې دا لوی جماعت دی او د هرې زمانې د اهل باطلو نه زيات دي، د دې برعکس کفر يو جماعت نه دی، بلکې د هرې زمانې هر جماعت په جدا جدا کفر کې مبتلا شوي دي، په کوم کې چې تسلسل نشته نو هغه سواد اعظم نه دی، په همدې توجيه د اهل بدعاتو سوال هم ختم شو کوم چې وايي چې مونږ زيات يو نو مونږ سواد اعظم يو، خلاصه دا ده چې اهل بدعت سواد اعظم نه دی، ځکه چې د دوی د جماعت تسلسل نشته، ځکه چې د هرې زمانې او هرې علاقې مطابق د بدعت جدا جدا صورتونه مخته راروان دي مګر اهل حق د حق سره تړل شوي دي د هغوی داسې تسلسل

---

(۱) اخرجه ابن ماجه ۲/۱۳۰۳ رقم الحديث: ۳۹۵۰.

دی کوم چې د ټولو نه زیات دی، همدا وجه ده چې حضرت سفیان ثوري رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي که چیرته د غره په سر باندې یو کس هم د اهل حقو سره تعلق ولري نو هغه تنها کس هم سواد اعظم دی.

## زړه د کینې نه پاک ساتل ډېر مهم دي:

| |
|---|
| (۲۴) وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا بُنَيَّ ! إِنْ |
| د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې ماته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: ای زما زویه! که چیرته |
| قَدَرْتَ أَنْ تُصْبِحَ وَ تُمْسِيْ لَيْسَ فِيْ قَلْبِكَ |
| ته په دې باندې قدرت ولرې چې د سهار نه تر ماښام پورې په داسې حالت کې تیر کړې چې ستا په زړه کې |
| غِشٌّ لِأَحَدٍ فَافْعَلْ ثُمَّ قَالَ يَا بُنَيَّ وَ ذٰلِكَ مِنْ سُنَّتِيْ وَ مَنْ |
| د چا سره کینه نه وي نو همداسې وکړه بیا یې وفرمایل: ای زما زویه! همدا زما سنت دی لهذا کوم کس چې |
| أَحْيَا سُنَّتِيْ فَقَدْ أَحَبَّنِيْ وَ مَنْ أَحَبَّنِيْ كَانَ مَعِيَ فِي الْجَنَّةِ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1]. |
| زما سنت محبوب وګڼل هغه زه محبوب وګڼلم او چاچې زه محبوب وګڼلم هغه به زما سره جنت ته داخل شي. |

**توضیح: غش:** ضد الصلاح دی په دې کې د زړه کینه بغض حسد وغیره ټول داخل دي. (المرقات ۱/۴۲۲)

**کان معي في الجنة:** یعنې د سنتو محبوب ګڼل او د هغو خوښول د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ محبوب ګڼل دي. او د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره محبت په جنت کې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره معیت لازم کړی دی، د سنتو سره د محبت دا مقام دی نو په سنتو باندې د عمل کولو به څه مقام وي؟. (المرقات ۱/۴۲۲)

## د یو سنت په ژوندي کولو سره د سلو شهیدانو ثواب ترلاسه کیږي

| |
|---|
| (۲۵) وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَمَسَّكَ بِسُنَّتِيْ |
| د ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: چاچې زما سنت دلیل جوړ کړو زما |
| عِنْدَ فَسَادِ أُمَّتِيْ فَلَهُ أجر مائة شهيد. (رواه البيهقي). |
| زما امت د خرابیدو په وخت کې هغه ته د سلو شهیدانو ثواب ورکول کیږي. |
| بیهقي دا روایت په کتاب الزهد کې د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړی دی. |

---

(۱) أخرجه الترمذي ۵/۴۴، رقم الحديث ۲۶۷۸.

**توضیح**: **عند فساد امتي**: اغلبًا او اکثراً په خلکو کې به جهالت خور شي او هر طرف ته به د بدعاتو او شرکیاتو تیاره خوره وي، او کا د خدای بنده سنت په مضبوطی سره ونیسي په هغه باندې عمل کوي او د هر طرفه دا کس د خلکو نشانه جوړه شوې وي نو شهید د یو غشي یا ګولی په لګیدلو سره شهید شوی دی مګر په دغه عاجز باندې به د غشو باران وي او چې داسې مضبوط یې نیولی وي نو عادةً به سل اعتراضونه کیږي، نو سل غشي په ده باندې چلیدلي دي نو د سلو شهیدانو برابر ثواب ورکول کیږي، په یاد ولرئ دا د آخرت او د ثواب شهید دی، په ده باندې د شهید دنیوي احکام نه شي جاري کیدی، لهذا هغه ته دې غسل ورکړی شي او کفن دې ور واغوستل شي. دارنګه ددې سنت نه مراد داسې سنت دی د کومو په ژوندي کولو کې چې په دنیا کې د خلکو سره جګړې پیښیږي. باقاعده د اهل باطلو سره مقابله کول دي خلک دا سنت نه ژوندي کوي مګر دا کس زړوره مقابله کوي او سنت ژوندي کوي، او د تهولنې پروا نه کوي لکه د ږیرې ساتل او د جهاد ژوندي کولو سنتو همدا حیثیت دی. (المرقات ۴۲۲-۱/۴۲۳).

## د قرآن او حدیث په موجودیت کې د تورات او انجیل کتل منع دي

(۳۶) وَ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ حِينَ أَتَاهُ عُمَرُ

جابر رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روایت کړی چې حضرت عمر رضي الله عنه رسالت په دربار کې حاضر

فَقَالَ إِنَّا نَسْمَعُ أَحَادِيثَ مِنْ يَهُودَ تُعْجِبُنَا

شو او عرض یې وکړو چې مونږ د یهودو حدیثونه آوریدلي دي او هغه مونږ ته ښه معلوم شوي دي آیا ته

أَفَتَرَى أَنْ نَكْتُبَ بَعْضَهَا فَقَالَ

مونږ ته اجازت راکوې چې مونږ د هغې نه بعضې ولیکو؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل: آیا تاسو هم

أَمُتَهَوِّكُونَ أَنْتُمْ كَمَا تَهَوَّكَتِ الْيَهُودُ وَ النَّصَارَى لَقَدْ

هغه شان حیران یې لکه څنګه چې یهود او نصارى حیران دي؟ (پوهه شئ) چې ما د شک نه بغیر تاسو ته صفا

جِئْتُكُمْ بِهَا بَيْضَاءَ نَقِيَّةً وَلَوْكَانَ مُوسَى حَيًّا مَا وَسِعَهُ إِلَّا اتِّبَاعِي (رَوَاهُ أَحْمد وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيْمَانِ)[1]

او روښانه شریعت راوړی که چیرته موسی ژوندې وي نو هغه به هم زما په اتباع کولو مجبور شوې وي.

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۳/۳۸۷.

**توضیح: إنا نسمع**: د حضرت عمر رضي الله عنه خواهش صرف په دې وجه وو چې هغه ته کلمه د خیر او حکمت ملاو شي. (المرقات ۱/۴۲۳).

**امتهوکون**: دا صیغه د باب تَفَعُّل نه ده او په ابتداء کې الف استفهام لګول شوی،داد حیرانتیا په معنی سره ده، یعنې د هغوی کتابونه د منحرف کیدو د وجې هغوی حیران او پریشان کړي دي اوس هغوی احکامات د خپلو رأیونه اخیستي دي،آیاتاسو هغوی په رنګ د خپل دین او خپل کتاب په باره کې حیران او پریشان یې چې هغه پریږدئ د بل کتاب لوستل شروع کول غواړئ،تاسو خو قرآن کریم د ځان سره ساتلی آیاتاسو په هغه کې پریشان او حیران شوي یې چې آیا دا هغه آسماني کتاب دی او که نه؟ ددې تمهیدنه معلومه شوه چې اوس خیر او هدایت ترقیامته پورې په قرآن کریم کې منحصردی. (المرقات ۱/۴۲۳).

**بیضاء نقیّة**: یعنې رڼائي، بې عیبه، واضح، د افراط تفریط، شک او شبهې او هر قسم عیب نه پاک دی. (المرقات ۱/۴۲۳).

**۲۲ محرم الحرام ۱٤۰۹هـ**

## د کامیابۍ درې خبرې

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَكَلَ طَيِّبًا |
| دابو سعید خدري رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کوم کس چې حلال رزق وخوړ |
| وَعَمِلَ فِي سُنَّةٍ وَأَمِنَ النَّاسُ بَوَائِقَهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ فَقَالَ |
| او په سنت طریقه یې عمل وکړاو خلک د هغه د زیاتیونه په امن کې شول نو هغه به جنت ته داخل شي نو وویل |
| رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ هٰذَا الْيَوْمَ لَكَثِيرٌ فِي النَّاسِ قَالَ |
| یو کس یارسول الله صلی الله علیه وسلم! داسې خلک خو نن سبا ډیر زیات دي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل |
| وَسَيَكُونُ فِي قُرُونٍ بَعْدِي (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1]. |
| او زمانه وروسته به هم داسې خلک وي. |

**توضیح: من اکل طیبًا**: په دې حدیث کې حلال رزق مقدم شوی دی او په سنت باندې عمل کول وروسته

---

(۱) اخرجه الترمذي ۵۷۷/٤ رقم الحدیث: ۲۵۲۰.

شوي دي، په دې کې د هغه حقیقت طرف ته اشاره شوې ده چې په سنت باندې عمل هغه کس کولی شي کوم چې حلال رزق خوري، د الله تعالی ارشاد دی: ﴿يَا أَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا﴾ دلته د **طیبات** لفظ استعمال شوی د **حرام** لفظ نه دی ویل شوی، ځکه چې **طیبا** خوشبوي لره متضمن دی، او د حلال رزق نه هم د تقوی خوشبوي راپورته کیږي، په **طیبا** سره دا اشاره هم ده چې هغه کس د مشتبه څیزونو هم ځان ساتي، په دې حدیث کې دوه عجیبه جملې دي په کومو کې چې په **(اکل طیبا)** سره د ټولو حقوق الله طرف ته اشاره شوې ده او په **(وامن الناس بوائقه)** سره د ټولو حقوق العباد طرف ته اشاره شوې ده او د حقوق الله او حقوق العباد د مجموعي نوم اسلام او شریعت دی او په شریعت باندې په عمل کولو سره جنت ملاویږي. (المرقات ۱/۴۲۴).

**بوائقه: دبائقة** جمع ده چې لوی مصیبت او ضرر رسولو ته ویل کیږي. (المرقات ۱/۴۲۴).

**دخل الجنة:** یعنې د دخول جنت حکم شوی، دلته د ماضي صیغه راوړل شوې ده د دخول یقیني جوړ شوی.

**فقال رجل:** یعنې نن سبا خو د نبوي عهد په برکت سره همداسې خلک ډیر زیات دي، آیا په آئنده کې به هم داسې خلک وي که کم به شي او ختم به شي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: په آئنده کې به هم تر یوې مودې پورې داسې خلک وي، یعنې صرف ستاسو تر زمانې پورې خاص ندي، بلکې تر خیرون القرون زمانې پورې به هم وي. شیخ عبد الحق رحمه الله په اشعة اللمعات کې لیکلي دي ددې نه معلومه شوه چې خیر او نیکي به تر قیامته پورې باقي پاتې وي. (المرقات ۱/۴۲۴، اشعة اللمعات ۱/۱۵۵).

## په اول وخت کې د تبلیغ ضرورت زیات ؤ:

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| **(۲۸) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّكُمْ فِي زَمَانٍ** | | | | | | | | |
| دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو به په داسې زمانه کې یاستئ | | | | | | | | |
| مَنْ | تَرَكَ | مِنْكُمْ | عُشْرَ | مَا | أُمِرَ | بِهِ | هَلَكَ | |
| که چیرته ستاسو نه کوم کس د هغو احکامو لسمه حصه هم پریږدي کوم چې درکړی شوي دي نو هغه به هلاک | | | | | | | | |
| ثُمَّ | يَأْتِي | زَمَانٌ | مَنْ | عَمِلَ | مِنْهُمْ | بِعُشْرِ | مَا | أُمِرَ بِهِ |
| شي، لیکن یوه زمانه داسې هم راتلونکې ده چې که چیرته کوم کس ددې احکامو په لسمه حصه هم عمل | | | | | | | | |

| |
|---|
| نَجَا . ( رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ )[1]. |
| وکړي نو نجات به تر لاسه کړي. |

**توضیح**: عشر ما امر به: ددې حدیث په مطلب باندې دپوهیدو نه مخکې په دې سوال پوهیدل ضروري دي چې که چیرته دلته د مامور به نه مراد د اسلام فرائض شي نو د حدیث لومړی جزء خو به صحیح شي چې که چیرته صحابه کرام د فرائضو لسمه برخه هم پریږدي نو د هلاکت ویره ده، مګر د حدیث دویم جزء نه صحیح کیږي، ځکه په وروسته کې د راتلونکو خلکو دپاره هم د اسلام د فرائضو د یوه جزء پرېښودل هم روا نه دي دا خو لا بیله خبره ده چې ۹ برخې پریږدي او په لسمه باندې عمل وکړي نو نجات به تر لاسه کړي، او که چیرته د مامور به نه مستحبات او سنن مراد کړی شي نو د حدیث دویمه برخه به صحیح شي چې د سنتو په لسمه برخه باندې عمل کوونکی به هم کامیاب شي، مګر د حدیث اوله برخه نه صحیح کیږي، ځکه چې صحابه کرام هم د سنتو په معامله کې د عام امت په شان وو ځکه چې د سنتو په پرېښودلو کې انسان د وعید او تهدید په همدې درجه کې نه شي راتلی برابره ده که هغه د اول دور خلک وي او که د دویم دور خلک وي. د دې سوال جواب شارحینو دا ورکړی دی چې دلته د مامورا تو نه عام مامورات او فرائض مراد نه دي، بلکې دلته امر بالمعروف او نهی عن المنکر مراد دي، کوم چې په نورو الفاظو کې د تبلیغ په امورو سره یاد شوي دي، نو ویل شوي دي چې د امر بالمعروف او تبلیغ په حواله تاسو په داسې زمانه کې یې چې که چیرته یو جزء هم پرېښودل شي نو هلاک به شئ، ځکه چې دا وخت د حق حامیان زیات دي او د نبوي عهد مبارک دور دی، که چیرته تاسو د دین په خورولو کې سستیا وکړئ نو اسلام به د عربو تر جزیرې پورې محدود پاتې شي. (المرقات ۱/۴۲۵).

خلاصه دا ده چې د اسلام انصار هم زیات وو او مخلص هم وو او د تبلیغ ضرورت هم زیات وو او د صحابه کرامو رضي الله عنهم شان هم لوړ وو نو د هغوی نه د لس په لسو کې غوښتنه وکړی شوه، په وروسته کې به د اسلام حامیان برای نام پاتې شي، اخلاص او قربانۍ به هم کمه شي، اعمال به هم کمزوري شي او د اسلام انصار به د صحابه کرامو په رنګ پاتې نه شي نو ویل شوي دي چې هغه خلک که چیرته د دین په دې شعبه کې د امر بالمعروف لسمه حصه باندې هم عمل وکړي نو کامیاب به شي.

## که چیرته هدایت په لاس سره وچلیږي نو جګړې به ختمې شي

| |
|---|
| (۲۹) وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا ضَلَّ قَوْمٌ بَعْدَ هُدًى |
| د ابو امامه رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: نه ګمراه کیږي یو قوم پس د هدایت |

(۱) أخرجه الترمذي ۴/۴۵۹ رقم الحديث ۲۲۶۷

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| کَانُوا | عَلَيْهِ | إِلَّا | أُوتُوا | الْجَدَلَ | ثُمَّ | قَرَأَ |
| موندلو نه چې په هدايت باندې قائم وې مګر (هغه وخت کله) چې په هغوکې جګړه پيدا شي . بيا ولوسته | | | | | | |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذِهِ الْآيَةَ مَا ضَرَبُوهُ لَكَ إِلَّا جَدَلًا بَلْ هُمْ | | | | | | |
| رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا آيت (ترجمه) هغوی ستا سو دپاره نه بيانوي مثال مګر د جګړې دپاره بلکې هغه | | | | | | |
| قَوْمٌ خَصِمُونَ[1]. | | | | | | |
| جګړه مار قوم دی. | | | | | | |

**توضيح** : **الجدل** : يعنې خلک کله چې د سنتو پريښودو د وجې ګمراه شي نو د سزا او عذاب په قسم دوی ته جدل، جګړې او منازعې په بدله کې ورکول شوي بيا هغوی په عناد او تعصب سره د خپل موقف بې ځايه حمايت کوي، په مکابره او محاربه باندې لاس پورې کوي کوم چې حرام دي، علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د جدل نه مراد عناد او جګړې دي، او دارنګه د خپل مذهب او مسلک رائج کولو دپاره تعصب کول جدل دی، د خپلو مشائخو او بزرګانو په رأيه او اقوالو باندې په سختۍ سره پابند کيدل کله چې د دوی افعال او اقوال د شريعت تائيد نه کوي دا جدل دی کوم چې حرام دی.خو که چيرته د کومې مسئلې د وضاحت دپاره يا د صحيح صورتحال پيژندلو دپاره يا په معلوماتو کې د زياتوالي د وجې يا سامعينو ته د تعليم ورکولو دپاره يا يې د خبرولو په نيت اوشي نو په دې کې کومه خبره نشته، دا په ممنوع جدال کې داخل نه دي.(المرقات ۱/۴۲۶، الکاشف ۱/۳۷۶).

**ماضربوه لک الا جدلا** : يعنې ستا په مقابله کې وايي چې ﴿ءَآلِهَتُنَا خَيْرٌ أَمْ هُوَ﴾ الله تعالی فرمايي چې دا دوی د جدال په طور يوه جګړه راپورته کړې ده.(المرقات ۱/۴۲۶).

## په اعمالو کې د سختۍ اختيارولو نه پرهيز وکړئ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (۴۰) وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ لَا تُشَدِّدُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ | | | | | | | |
| دانس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: تاسو په خپل نفس باندې سختي مه کوئ | | | | | | | |
| فَيُشَدِّدُ | اللهُ | عَلَيْكُمْ | فَإِنَّ | قَوْمًا | شَدَّدُوا | عَلَى | أَنْفُسِهِمْ |
| ځکه چې بيا خدای هم په تاسو باندې سختي کوي يو قوم (بني اسرائيلو) په خپلو نفسونو باندې سختي کړې | | | | | | | |

(۱) رواه أحمد ۵/۲۵۲، والترمذي ۳۲۵۳، وابن ماجه ۴۸.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَشَدَّدَ | اللهُ | عَلَيْهِمْ | فَتِلْكَ | بَقَايَاهُمْ | فِي | الصَّوَامِعِ | وَ | الدِّيَارِ |

وهلهذا الله تعالى هم په هغوى باندې سختي وكړه پس نن چې كوم خلك په ګرجو او ډيارو كې پاتې كېږي دا

رَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد ٤/٤٧٨)[1].

همدې خلكو پيدا كړي دي مونږ په دوى باندې نه دي فرض كړي.

**توضيح: لاتشددوا**: يعنې د مستحباتو په ترک باندې تشدد او سختي مه كوئ ځكه چې د وحې په زمانه كې د تشدد په غوره كولو سره دا نتيجه راوتلى شي چې هغه حكم به فرض شي او بيا به د هغه د پوره كولو طاقت هم نوي، لهذا رسول الله صلى الله عليه وسلم د يهودو او نصاراو مثال هم وركړ چې هغوى په خپل ځان باندې سختي وكړه رهبانيت يې غوره كړو واړه ماشومان يې وتښتول هغه يې په خپله نګرانۍ كې وساتل او راهبان يې ترې جوړ كړل او په زمكه باندې په پښو سره د تلو پر ځاى په خاپوړو ګرځيدلي وو، د ښځو سره نزديكت يې ګناه او لوى معصيت بللى وو. او د ويښتو نه يې هره ورځ خپل ځانونه په چت پورې ترلي وو دلذائذ و اكل او شرب او د ښځو سره د كوروالي نه يې ځان لرې كړى وو (المرقات ١/۴۲۷).

**صومعه**: د نصاراو د راهب جونګړې ته ويل كيږي جمع صوامع، ديار جمع د دير ده، د يهودو په اصطلاح كې د دوى عبادت خانې ته ويل كېږي. (المرقات ١/۴۲۸).

**بقاياهم يعني ذريتهم وبقيتهم**: يعنې په خالي ځايونو او غارونو كې د قديمه اثارو په شان يو شمير راهبان باقي پاتې وو نور ټول ملت ختم شوى وو. (المرقات ١/۴۲۷).

**رهبانية**: دا لفظ د ابتدعوا عامل د وجې منصوب دې، د ښځو ماشومانو او عامې معاشرې پرېښودل او په غارونو كې د عبادت دپاره تنهاژوند تيرولو عمل ته رهبانيت ويل شوى دى، عيسايانو دا بدعت د خپله ځانه جوړ كړى دى، اسلام د دامې ژوند تيرولو اجازت نه وركوي. (المرقات ١/۴۲۷).

يو شاعر دير ښه ويلي دي:

مصلحت در دين ما جنگ و شكوه ❁ مصلحت در دين عيسى غار و كوه

## په قرآن باندې د عمل كولو طريقه

(۴۱) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَزَلَ الْقُرْآنُ عَلَى

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: نازل شوى دى قرآن كريم په

(۱) اخرجه ابو داود ۵/۲۰۹ رقم الحديث ۴۹۰۴.

| |
|---|
| خَمْسَةِ أَوْجُهٍ حَلَالٍ وَ حَرَامٍ وَ مُحْكَمٍ وَ مُتَشَابِهٍ وَ أَمْثَالٍ فَأَحِلُّوا الْحَلَالَ |
| پنځو صورتونو باندې(۱)حلال(۲)حرام(۳)محكم(۴)متشابه(۵)امثال،لهذا تاسو حلال حلال وګڼئ، |
| وَ حَرِّمُوا الْحَرَامَ وَ اعْمَلُوا بِالْمُحْكَمِ وَ آمِنُوا بِالْمُتَشَابِهِ وَ اعْتَبِرُوا بِالْأَمْثَالِ |
| حرام حرام وګڼئ،په محكم باندې عمل وكړئ،په متشابه باندې ايمان راوړئ او د امثالو(قيصو)نه عبرت |
| ( هٰذَا لَفْظُ الْمَصَابِيحِ وَ رَوَى الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ وَ لَفْظُهُ |
| واخلئ،دا الفاظ د مصابيح دي او بيهقي چې كوم روايت په شعب الايمان كې نقل كړى د هغه الفاظ دادي |
| فَاعْمَلُوا بِالْحَلَالِ وَ اجْتَنِبُوا الْحَرَامَ وَ اتَّبِعُوا الْمُحْكَمَ).[1] |
| لهذا په حلال باندې عمل وكړئ،د حرام نه ځان وساتئ،او د محكم اتباع وكړئ. |

**توضيح**: د متشابه نه كه چيرته مراد د محكم مقابل شي نو په محكم باندې عمل كول او د متشابه بلا تفتيش او بلا كيف منل دي او دا ويل دي چې **مايليق بشانه** او كه چيرته د متشابه نه مراد دا شي چې نه صريح امر دى نه صريح نهي ده په دلائلو كې تشابه ده چې څه دلائل د حلت طرف ته مشير دي او څه په حرمت باندې دلالت كوي نو،وس د هغه فيصله مجتهد كولى شي چې كوم يو ته د اجتهاد په بنياد ترجيح وركوي عامو خلكو ته په هغو كې د توقف حكم دى په متشابهاتو باندې كلام د دې باب نه مخكې باب كې شوى. (المرقات ۱/۴۲۸).

## دين اسلام واضح مذهب دى

| |
|---|
| (۴۲) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْأَمْرُ ثَلَاثَةٌ |
| د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : امر په درې قسمه دى : |
| بَيِّنٌ رُشْدُهُ فَاتَّبِعْهُ وَ أَمْرٌ بَيِّنٌ غَيُّهُ |
| (۱)د هغه امر د كوم چې هدايت ښكاره دى د هغه تابعداري وكړئ(۲) د هغه امر د كوم چې ګمراهي ښكاره |
| فَاجْتَنِبْهُ وَ أَمْرٌ اخْتُلِفَ فِيهِ فَكِلْهُ إِلَى اللهِ عَزَّ وَ جَلَّ .[2] |
| ده د هغه نه ځان وساتئ(۳) هغه امر دى كوم چې مختلف فيه دى هغه خداى ته وسپارئ. |

---

(۱) مصابيح السنة ۱/۱۶۴، رقم الحديث : ۱۴۴.

(۲) رواه أحمد.

**توضيح** : **امر بين رشده** : يعني د كوم څيز هدايت او رشد واضح وي لكه د روژې او مونځ فرائض. (المرقات۱/۴۲۹).

**امر بين غيه**: يعني ممنوع او حرام كيدل يې بالكل ښكاره وي لكه شراب ، سود زنا وغيره. (المرقات ۱/۴۲۹).

**وامر اختلف فيه** : ددې نه مراد يا خو دا دى چې د هغه د حقيقت او ماهيت په باره كې اختلاف دى چې آيا دا د متشابهاتو نه دى او كه د غير متشابهاتو نه دى، يا ددې جملې مطلب دا دى چې خلكو په هغه كې د ځان نه اختلاف پيدا كړى وي د كوم د وجې چې د هغه په حقيقت باندې پوهيدل سخت شي، ځكه چې د هغه اصل حقيقت ورک شي هغه الله تعالى ته وسپارئ. (المرقات۱/۴۲۹، الكاشف ۱/۳۷۹).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث

## د اهل حقو نه د جدا كيدو نقصان

| |
|---|
| (۴۲) عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الشَّيْطَانَ ذِئْبُ الْإِنْسَانِ |
| د معاذ بن جبل رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : شيطان د انسان ليوه دى لكه |
| كَذِئْبِ الْغَنَمِ يَأْخُذُ الشَّاذَّةَ |
| څرنګه چې د ګډو ليوه وي چې دا هغه ګډه پورته كوي كومه چې د رمې نه وتښتي او ترې ووځي يا د |
| وَ الْقَاصِيَةَ وَ النَّاحِيَةَ وَ إِيَّاكُمْ وَ الشِّعَابَ وَ عَلَيْكُمْ بِالْجَمَاعَةِ وَ |
| رمې نه لرې تلې وي يا د رمې په غاړه كې وي او تاسو د ګمراهۍ نه ځان وساتئ د ارنګه د جماعت او مجمع |
| الْعَامَّةِ .(رَوَاهُ أَحْمد)[1]. |
| سره يو ځاى او سيږئ. |

**توضيح** :**ذئب الانسان** : دا تشبيه په افساد اهلاک او د تباهى په خوريدو كې ده لكه څرنګه چې ليوه د ګډو د پاره د هلاكت او فساد سبب دى همدارنګه شيطان د انسان د پاره د ليوه په منزله دى، په ځانګړي طور كله چې ګډه د رمې نه جدا شوې وي نو بيا دا هلاكت او فساد زيات خطرناک صورت غوره كړي، همدارنګه كله چې كوم انسان د حق جماعت نه جدا شي د جمهورو لار پريږدي د حق لارې نه كوږ شي او

د گمراهيو په کندو کې ور ولوېږي نو شيطان ته بيا د هغه ښکار کول آسانه شي. لهذا هر کس ته په کار دي چې هغه د اهل حقو د افعالو سره مخ پر وړاندې لاړ شي ترڅو چې د شيطان د حملو نه وساتل شي. په نورو احاديثو کې د سواد اعظم په نوم چې د کوم جماعت ذکر راغلی دی حق جماعت د هغه نوم دی کوم چې د حضرت آدم عليه السلام نه رانيولې ترنن پورې په حق باندې تلونکی را روان دی. کوم چې د تېرلو اهل باطلو نه زيات دی، ځکه چې حق او اهل حق له تسلسل سره را روان دي، اوس که کوم کس د صحابو جماعت د نظره وغورځوي نو هغه د تابعينو د جماعت نه هم محروم کيږي، او آرام آرام د حق جماعت نه ووځي لکه څرنګه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د ګډو درې قسمونه ذکر کړي دي.(المرقات ۱/۴۳۰).

**الشاذة**: هغې ګډې ته ويل کيږي کومه چې بغير مانوس طور د څناورو نه جدا شي. (المرقات ۱/۴۳۰).

**القاصية**: د ګياه او ونو په لټون کې لرې تلونکې ګډې ته قاصيه ويل کيږي. (المرقات ۱/۴۳۰).

**الناحية**: د غفلت او بې پرواهۍ د وجې کله چې ګډه درمې نه جدا شي هغې ته ناحيه ويل کيږي. (المرقات ۱/۴۳۰).

| |
|---|
| (۴۴) وَ عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَنْ |
| د حضرت ابوذر رضي الله عنه نه روايت دی ويلې يې دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کوم کس چې د |
| فَارَقَ الْجَمَاعَةَ شِبْرًا فَقَدْ خَلَعَ رِبْقَةَ الْإِسْلَامِ مِنْ عُنُقِهِ . (رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ)[1]. |
| جماعت نه دلويشتې په اندازه (يعنې د يوه ساعت د پاره) جدا شي هغه د اسلام حلقه د غاړې نه ويستله. |

**توضيح**: **من فارق الجماعة شبراً**: يعنې چې د حق جماعت نه يوه لويشت جدا شي مطلب دا دی چې په احکاماتو کې لږ شانته جدا شي يا د لږې زمانې د پاره جدا شي. (المرقات ۱/۴۳۱).

**فقد خلع**: يعنې هغه د غاړې نه د اسلام حلقه وويستله، دا حکم په تغليظ او تشديد باندې محمول دی. يا د دې نه مراد دا دی چې کله جدا کېدل د هغه عادت وي نو يوه ورځ نه يوه ورځ به اسلام ته په مخه ښه ووايي، او حلقه به يې د غاړې پريوځي. (المرقات ۱/۴۳۱).

| |
|---|
| (۴۵) وَعَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ مُرْسَلًا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرَكْتُ |
| د حضرت مالک بن انس رضي الله عنه نه مرسلاً روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ما پرېښې دي |

---

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۱۱۸/۵، رقم الحديث ۴۷۵۸، و احمد في المسند ۱۸۰/۵

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيكُمْ | أَمْرَيْنِ | لَنْ | تَضِلُّوا | مَا | تَمَسَّكْتُمْ | بِهِمَا | كِتَابَ | اللهِ | |
| ستاسو په مینځ کې دوه څیزونه ترڅو پورې چې تاسو هغه ونیسئ نو هیڅکله به ګمراه نه شئ هغه کتاب الله | | | | | | | | | |
| وَ | سُنَّةَ | رَسُوْلِهِ | . ( رَوَاهُ فِي الْمُوَطَّأِ )[1]. | | | | | | |
| (قرآن مجید) دي او سنت د رسول الله ﷺ (احادیث) دي. | | | | | | | | | |

**توضیح : مرسلاً** : مرسل هغه روایت ته ویل کیږي چې کوم تابعي براه راست د رسول الله ﷺ حدیث نقل کړي لکه : ﴿قال الاعمش قال رسول الله ﷺ﴾. اوس دلته دا سوال دی چې امام مالک خو تابعي نه دی بلکې تبع تابعي دی، اوس خو دې منقطع روایت ته مرسل ویل شوي دي؟.
خطیب بغدادي د دې دا جواب ورکړی دی چې دا توسعًا او مسامحةً ویل شوي دي.
د مرسل حدیث په قبولیت کې داسې اختلاف دی چې که چیرته د هغه نقل کوونکی راوي ثقه وي او هغه د ثقه راویانو نه روایت کړی وي نو د امام مالک، امام ابوحنیفة او امام احمد بن حنبل په نزد دا روایت مقبول دی. امام شافعي رحمه الله ویلي دي چې که د مرسل روایت په بل صحیح روایت سره توثیق شوی وي نو مقبول دی او که داسې نه وي بیا نه دی، یعنې په کوم بل روایت سره به یې توثیق او تایید شوی وي برابره ده که هغه روایت مرسل ولې نه وي. (المرقات ۱/۴۳۱).

**ماتمسکتم بهما** : یعنې ترڅو پورې چې تاسو په مضبوط شکل کتاب الله او سنت رسول الله ﷺ ونیسئ نو هیڅکله به ګمراه نه شئ، الله تعالی د انسانانو سره د هدایت مهیا کولو وعده کړې ده اوس هدایت به په څه قسم مهیا کیږي؟ کله چې د رسول الله ﷺ نبوت د آخیرني نبي نبوت دی، نوی کوم نبي نه شي راتلی، لهذا د هدایت جاري ساتلو رسول الله ﷺ دا اعلان کړی چې قرآن کریم او زما سنت یعنې احادیث مقدسه زما نه وروسته د هدایت دپاره د هدایت اسباب دي او قرآن کریم چونکه د هر قسم تحریفاتو نه پاک دی، مبارک احادیث هم د قرآن کریم په برکت محفوظ دي نو څوک چې د هدایت دا دوه سرچشمې ونیسي هغه به د ګمراهۍ نه وساتل شي. (المرقات ۱/۴۳۱).

## د بدعت نحوست او څپیره والی :

۲۴ محرم الحرام ۱۴۰۹هـ

| | |
|---|---|
| (۲۶) وَعَنْ غُضَيْفِ بْنِ الْحَارِثِ الثُّمَالِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | |
| د غضیف بن حارث ثمالي رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چې راوباسي | |

(۱) اخرجه مالک في الموطا ۲/۸۹۹ ، رقم الحدیث : ۳ من کتاب القدر

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | أَحْدَثَ | قَوْمٌ | بِدْعَةً | إِلَّا | رُفِعَ | مِثْلُهَا |

نوي خبره (يعني داسې بدعت کوم چې د سنت مزاحم وي) کوم قوم (په دين کې) نو پورته کيږي د هغه په مثل

مِنَ السُّنَّةِ فَتَمَسُّكٌ بِسُنَّةٍ خَيْرٌ مِنْ إِحْدَاثِ بِدْعَةٍ. (رَوَاهُ أَحْمد)[1].

يو سنت لهذا د سنت مضبوط نيول د نوې خبرې د راويستلو (يعني بدعت) نه بهتر دي.

**توضيح: إلا رفع**: يعنې د بدعت په راوړلو او د هغه په رواج کولو سره د هغه په شان يو سنت پورته کيږي ځکه چې بدعت د سنت ضد دی او کله چې د بدعت غلبه راشي نو سنت مخه کوي او ځي او دارنګه د دې عکس دی چې کله د غلبه په طريقې سره سنت عام شي نو بدعت ختميږي دوی دواړه ضدين دي کوم چې سره يو ځای کيدی نه شي. (المرقات ۱/۴۳۲).

**فتمسك بسنة**: يعنې د سنتو په مضبوطي سره نيول د بدعت د پيدا کولو نه بهتر دي، دلته د خير لفظ د اسم تفضيل په معنی سره نه دی بلکې د اصل صيغې په معنی سره استعمال شوی دی، لکه **الصيف احر من الشتاء** دلته د **مثلها** لفظ د ضدين په نسبت د تضاد د وجې ويل شوی دی. (المرقات ۱/۴۳۳).

دلته په سنة کې تنوين د تقليل دپاره دی، يعنې ورکوټی سنت يا کم سنت.

**بدعة**: يعنې لوی بدعت تنوين د تعظيم دپاره دی. (المرقات ۱/۴۳۳).

## د بدعت خپلوونکو نه سنت بيزاره کيږي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (۲۷) وَ | عَنْ | حَسَّانَ | قَالَ | مَا | ابْتَدَعَ | قَوْمٌ | بِدْعَةً. | فِي | دِينِهِمْ |

حضرت حسان رضي الله عنه وايي چې کله پيدا کړي کوم قوم په خپل دين کې نوې خبره (يعني داسې بدعت سيئه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | نَزَعَ | اللهُ | مِنْ | سُنَّتِهِمْ | مِثْلَهَا |

چې د سنت مزاحم وي) نو الله تعالی د سنتو نه د هغه په مثل وباسي (يعني کله چې کوم بدعت سيئه پيدا شي

ثُمَّ لَا يُعِيدُهَا إِلَيْهِمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. (رَوَاهُ الدَّارِمِيّ)[2].

نو د هغه په مثل سنت د دنيا نه پورته کړی شي) او بيا هغه سنت تر قيامته پورې د هغه طرف ته واپس کيدی نه شي

(۱) أخرجه احمد في المسند ۴/۱۰۵.

(۲) أخرجه الدارمي ۱/ ۵۸ رقم الحديث ۹۸

**توضيح: ثم لايعيدها اليهم** : ددې وجه داده چې دا سنت په خپل ځای باندې پائدار او برقرار وو او هغه د ونې په شان په زمکه کې جرړې کړې وې، پس کله چې هغه ویستل شو او زائل کړی شو نو هغه دوباره په هماغه شکل سره نه شي قائم کیدی لکه څرنګه چې یوې ونې په زمکه کې خپلې جرړې مضبوطې کړې وي نو د ویستلو نه وروسته هغه ونه او د هغې جرړې خپل پخواني حالت طرف ته نه شي واپس کیدی او نه هغه ونه مضبوطیدی شي، همدارنګه سنت د ویستلو نه وروسته دوباره د خپل پخواني حالت په شان مضبوط کیدی نه شي اګر که هغه دوباره ژوندی هم کړی شي. (المرقات ۱/۴۳۳).

بهر حال د سزا په طور د هغه نه د بې قدرۍ د وجې نه همدا سنت بیزاره کیږي بیا دا بې قدري ددې نعمتونو نه د تل د پاره محرومیږي.

## د بدعتي اکرام کول غټه ګناه ده:

| |
|---|
| **(۴۸) وَعَنْ إِبْرَاهِيمَ بن ميسرة قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ وَقَّرَ صَاحِبَ بِدْعَةٍ** |
| دابراهيم بن ميسرة رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: چاچې د بدعتي احترام وکړو |
| **فَقَدْ أَعَانَ عَلَى هَدْمِ الْإِسْلَامِ (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ. فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ مُرْسَلًا)[1].** |
| هغه د اسلام د ستنو په غورځولو کې د هغه سره مرسته وکړه. |

**توضيح :من وقر** : يعني چې په خلکو کې يې هغه مقبول وګرځولو او د هغه احترام يې وکړه د هغه اکرام او تعظيم يې وکړو د کوم د وجې چې په هغه باندې د خلکو اعتماد پيدا کيږي نو دغه کس د اسلام د سرحداتو په ماتولو کې مرسته ورسره وکړه.(المرقات ۱/۴۳۳).

**هدم الاسلام** : هر شی په خپلو حدودو باندې قائم اوسيږي، که چيرته حدود نوي نو هغه شی قائم نه شي پاتې کيدی بلکې غورځيږي، نو مبتدع انسان خپل بدعات او نوي نوي شيان په اسلام کې په داخلولو سره د اسلام بيخکندي کوي او د هغه حدود ورانوي.هغه د خپل جهالت په ذريعه سنت ماتوي او د هغه پر ځای بدعات راوړي، نو داسې بدعتي ته عزت ورکول بعينه د اسلام د عمارت ورانولو مترادف دي، لهذا دا کس هم د اسلام د حدودو په ورانولو کې ددې بدعتي مرسته کوونکی شو. (المرقات ۱/۴۳۴).

---

(۱) رواه البيهقي في شعب الايمان ۶۱/۷ رقم الحديث: ۹۴۶۳.

## په قرآن باندې عمل كوونكى ګمراه كيدى نه شي

(۴۹) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ مَنْ تَعَلَّمَ كِتَابَ اللّٰهِ ثُمَّ اتَّبَعَ

ابن عباس رضي الله عنه وېلي دي چې كوم كس د كتاب الله علم حاصل كړه او بيا يې د هغه شي تابعداري وكړه

مَا فِيهِ هَدَاهُ اللّٰهُ مِنَ الضَّلَالَةِ فِي الدُّنْيَا

كوم چې په دې (كتاب الله) كې دننه دي نو الله تعالى به هغه په دنيا كې د ګمراهۍ نه وساتي هدايت به يې په نصيب شي (يعنې هغه به د هدايت په لار باندې ثابت قدم پاتې شي او د ګمراهۍ نه به وساتل شي) او

وَوَقَاهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ سُوءَ الْحِسَابِ وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ مَنِ

په قيامت كې به د حساب نه وساتل شي (يعنې مواخذه به يې نه كيږي) او په يو روايت كې دي چې كوم كس

اقْتَدَى بِكِتَابِ اللّٰهِ لَا يَضِلُّ فِي الدُّنْيَا وَلَا يَشْقَى فِي الْآخِرَةِ

د كتاب الله اتباع وكړه نو نه به په دنيا كې ګمراه شي او نه به په آخرت كې بدبخته شي (يعنې هغه ته عذاب

ثُمَّ تَلَا هٰذِهِ الْآيَةَ فَمَنِ

نه وركول كيږي) د دې نه وروسته ابن عباس رضي الله عنه دا آيت كريمه تلاوت كړو ترجمه: كوم كس چې زما

اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقَى[1]. (رَوَاهُ رَزِيْنٌ).

د هدايت (قرآن) تابعداري وكړه نه به هغه (په دنيا كې) ګمراه شي او نه به (په آخرت كې) بدبخته شي.

## د خپل ايمان ساتنه د هر انسان ذمه واري ده

(۵۰) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا

د ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: الله تعالى يو مثال بيان كړى دى

صِرَاطًا مُسْتَقِيمًا وَعَنْ جَنْبَتَيِ الصِّرَاطِ سُورَانِ فِيهِمَا

(هغه دا دى چې) يوه نيغه لار ده او د هغې دواړو طرفونو ته ديوالونه دي، او په هغو ديوالونو كې

أَبْوَابٌ مُفَتَّحَةٌ وَعَلَى الْأَبْوَابِ سُتُورٌ مُرْخَاةٌ وَعِنْدَ رَأْسِ الصِّرَاطِ دَاعٍ

كولاو شوې دروازې دي په دروازو باندې پردې ځوړندې شوې او د لارې په سرباندې اواز كوونكى ولاړ

(۱) اخرجه البخاري ۱۹۷/۱ رقم الحديث: ۱۰۳، ومسلم ۲۲۰۴/۴، رقم الحديث: ۲۸۷۶.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَقُولُ | اَسْتَقِيمُوا | عَلَى | الصِّرَاطِ | وَلَا | تَعْوَجُوا | وَ |

دی کوم چې په نعرو نعرو سره وايي: په نيغه لاره باندې لاړ شئ په غلطه لاره باندې مه ځئ او په دې نعره

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَوْقَ | ذَٰلِكَ | دَاعٍ | يَدْعُو | كُلَّمَا | هَمَّ | عَبْدٌ | أَنْ |

کوونکي باندې د پاسه (یعنې د ده وړاندې لاړو) يو بل نعره کوونکی دی کله چې کوم بنده په دې دروازو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَفْتَحَ | شَيْئًا | مِنْ | تِلْكَ | الْأَبْوَابِ | قَالَ | وَيْحَكَ |

کې د کومې دروازې خلاصول وغواړي نو هغه (دويم نعره کوونکی) نعره وکړي: په تا افسوس دی! هغه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَا | تَفْتَحْهُ | فَإِنَّكَ | إِنْ | تَفْتَحْهُ | تَلِجْهُ |

خلاصه نه کړې که چیرته ته هغه خلاصه کړې نو ته به هغې ته د ننه داخل شې (او هلته به په سخت تکلیف کې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | فَسَّرَهُ | فَأَخْبَرَ | أَنَّ | الصِّرَاطَ | هُوَ | الْإِسْلَامُ |

شې) بیا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هم دې مثال وضاحت وکړه او ووې فرمایل: د نیغې لارې نه مراد اسلام دی

وَ أَنَّ الْأَبْوَابَ الْمُفَتَّحَةَ

(چې څوک یې غوره کړي نو جنت ته رسیږي) او د خلاصو دروازو نه مراد هغه شیان دي کوم چې الله تعالی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَحَارِمُ | اللهِ | وَ | أَنَّ | السُّتُورَ | الْمُرْخَاةَ |

حرام کړي دي د کومو غوره کول چې د تکمیل ایمان منافي دي او په (دروازو باندې) د ځوړند شوو پردو

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حُدُودُ | اللهِ | وَ | أَنَّ | الدَّاعِيَ | عَلَى | رَأْسِ | الصِّرَاطِ | هُوَ |

نه مراد د الله تعالی قائم شوي حدود دي او د لارې په سر باندې آواز کوونکی چې څوک ولاړ دی د هغه نه

الْقُرْآنُ وَ أَنَّ الدَّاعِيَ مِنْ فَوْقِهِ .

مراد قرآن کریم دی او دويم آواز کوونکی کوم چې د هغه نه وړاندې ولاړ دی د هغه نه مراد د الله تعالی

وَاعِظُ اللهِ فِي قَلْبِ كُلِّ مُؤْمِنٍ.[1] (رَوَاهُ رَزِينٌ وَأَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ عَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سَمْعَانَ وَكَذَا التِّرْمِذِيُّ عَنْهُ إِلَّا أَنَّهُ ذَكَرَ أَخْصَرَ مِنْهُ).

د طرفه نصیحت کوونکې فرښتې دي کومې چې د هر مؤمن په زړه کې دي.

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۱۸۲/۴، البيهقي ۴۴۴/۵.

**توضيح**: **ستور**: پردو ته ويل كيږي، (المرقات ۱/۴۳۵). او مرخاة ځوړندو شوو ته ويل كيږي، يعني ځوړندې شوې پردې په دروازو باندې غوړول شوې دي. (المرقات ۱/۴۳۵).

**ولاتعوجوا**: يعني په غلطه لار باندې مه ځئ (المرقات ۱/۴۳۵).

**تلجه**: يعني ته به هغې ته داخل شې. (المرقات ۱/۴۳۶).

**واعظ الله**: ددې نه مراد هغه فرښتې دي كومې چې د هر مؤمن په زړه كې دي او د مؤمن په زړه كې د خير او نيكۍ الهام كوي، د دې كامل تفصيل په باب الوسوسة كې تير شوی دی. (المرقات ۱/۴۳۶، الكاشف ۱/۳۸۴). بهر حال مكمل حديث مونږ ته دا تعليم راكړی دی چې د انسان يو پټ دښمن دی د كوم نوم چې شيطان دی، كوم چې هر وخت مونږ ته په كمين كې ناست اوسي چې يوه ذره دا مسلمان د حق نه آخوا ديخوا شي نو شيطان هغه په كامل طور هلاک كړي، الله تعالی ددغه پټ دشمن دپاره د فرښتو يوه پټه پيره كينولې ده، كومې چې د نيكۍ نصيحت او الهام كوي.

## د صحابه كرامو رضي الله عنهم شان

| |
|---|
| (۵۱) وَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ مَنْ كَانَ مُسْتَنًّا |
| دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چې كوم كس د كومې طريقې تابعداري كوي هغه ته په كار دي |
| فَلْيَسْتَنَّ بِمَنْ قَدْ مَاتَ فَإِنَّ الْحَيَّ لَا تُؤْمَنُ عَلَيْهِ الْفِتْنَةُ |
| چې د هغو خلكو لار غوره كړي كوم چې مړه شوي دي ځكه چې د ژوندي انسان دين د فتنې نه محفوظ كيدی نه |
| أُولَئِكَ أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| شي او هغه خلک كوم چې مړه شوي دي (او تابعداري كول يې په كار دي) د رسول الله صلى الله عليه وسلم اصحاب |
| كَانُوا أَفْضَلَ هٰذِهِ الْأُمَّةِ أَبَرَّهَا قُلُوبًا وَ أَعْمَقَهَا عِلْمًا |
| دي كوم چې دا امت بهترين خلک وو د زړونو په اعتبار سره دا انتهائي درجې نيک وو د علم په اعتبار سره انتهائي |
| وَ أَقَلَّهَا تَكَلُّفًا اخْتَارَهُمُ اللهُ لِصُحْبَةِ نَبِيِّهِ وَ لِإِقَامَةِ |
| كامل وو او ډير كم تكلف كوونكي وو هغوی الله تعالی منتخب كړي وو د خپل نبي د ملګرتيا او په قائم كيدو |
| دِينِهِ فَاعْرِفُوا لَهُمْ فَضْلَهُمْ وَ اتَّبِعُوهُمْ عَلَى آثَارِهِمْ وَ |
| د خپل دين باندې لهذا تاسو د هغوی بزرګي وپيژنئ او د هغوی د نقش قدم تابعداري وكړئ او د دوی آداب |

تَمَسَّكُوا بِمَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ أَخْلَاقِهِمْ وَسِيَرِهِمْ فَإِنَّهُمْ كَانُوا عَلَى الْهُدَى الْمُسْتَقِيمِ [1].

او اخلاق هم غوره کړئ تر څو چې کيدی شي (ځکه چې هماغه خلک) د هدايت په نيغه لار باندې تللي دي.

**توضيح: مستنًا**: استنان د يو چا تابعداري او د يو چا په نقش قدم باندې تلو ته ويل کيږي، همداسې سنت دي. (المرقات ۱/۴۳۷).

**اعمقها علما: اى اكثرها غوراً فى حقائق العلم**: يعنې صحابه کرام رضي الله عنهم د علم د وسيع کيدو سره سره ژور او عميق هم وو، هر صحابي د علم او معرفت، د فهم او فراست، د تدبر او تفکر، د عقل او پوهې د رڼا مناره وه، په کومې سره چې د دنيا ظلم وهلو او جهالت خوړلو انسانانو د تعليم او ترقی، د تهذيب شرافت او د انساني عظمت درس اخيستی دی، لهذا يو صحابي به په تفسير او حديث کې امام وو بل به د فقه او قرائت امام وو يو به د تصوف نمونه وه بل به د علم الفرائض او علم الحلال والحرام امام وو. (المرقات ۱/۴۳۸).

**واقلها تكلفًا**: يعنې د علم او عرفان غرونه وو ليکن د دې سره سره د صحابه کرامو رضي الله عنهم د بې تکلفۍ دا حال وو هغه که په لوړ منصب باندې فائز ولې نه وو خو په لوڅو پښو ګرځيدو کې يې شرم نه محسوس کولو او نه يې د ځمکې پر مخ باندې په مونځ کولو په ناسته پاسته کې کوم شرم محسوس کولو، په يو لوښي کې به لسو لسو يو ځای خوراک کولو او غټې غټې جامې به يې اغوستلې، حلال خوراک به چې هر قسم هم راغی نو بې تکلفه به يې خوړو او کومه جامه به چې په لاس ورغله اغوستله به يې، لنډه دا چې د تکلف نه دومره لرې وو د کوم چې نور د لرې کيدو تصور ناممکن وو. (المرقات ۱/۴۳۸).
بهر حال که عبادات وو که معاملات، اخلاق وو که عادات يا معشيت وو او که معاشرت، د ژوند په هره برخه کې د دوی خلوص بې تکلفي او سادګي وه.

**فاعرفوا**: يعنې د هغوی فضيلت وپيژنئ، د هغه اعتراف وکړئ او د هغو پيروي وکړئ ځکه چې هغوی د هدايت پر لاره باندې وو. دا د ابن مسعود رضي الله عنه ګواهي ده کومه يې چې د خپلو ملګرو او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د صحابو په باره کې ديوشمير صحابو او د عامو تابعينو پر وړاندې د معيار په طور وړکړې ده. (المرقات ۱/۴۳۹).

**بمن قدمات**: په دې سره د رضي الله عنه هغه صحابه کرام مراد اخستل دي کوم چې د دنيا نه تللي دي، او د

---

(۱) رواه رزين.

(الحق) نه یې د خپلې زمانې تابعین مراد اخیستي دي، ددې ګواهی نه بغیر د هیڅ دښمن د صحابو په باره کې غلطې خبرې لره اعتبار نشته. (المرقات ۱/۴۴۰).

## دا زمانه د اسلام زمانه ده

| |
|---|
| (۵۲) عَنْ جَابِرٍ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَتَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنُسْخَةٍ مِنَ التَّوْرَاةِ |
| د جابر رضي الله عنه نه روایت دی چې یو ځل حضرت عمر رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته د تورات یوه نسخه |
| فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ هٰذِهٖ نُسْخَةٌ مِنَ التَّوْرَاةِ فَسَكَتَ |
| راوړه او عرض یې وکړو: یا رسول الله! دا د تورات نسخه ده، رسول الله صلى الله عليه وسلم چپ پاتې شو، بیا |
| فَجَعَلَ يَقْرَأُ وَ وَجْهُ رَسُوْلِ اللهِ يَتَغَيَّرُ |
| حضرت عمر رضي الله عنه تورات لوستل شروع کړل نو د غسې دوچې نه د رسول الله صلى الله عليه وسلم مبارک مخ بدل |
| فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ ثَكِلَتْكَ الثَّوَاكِلُ |
| شو (دایې چې ولیدل) حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه وویل: عمره! ورک کوونکې دې تاورک کړي، ته د |
| مَا تَرَى مَا بِوَجْهِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَظَرَ عُمَرُ إِلَى وَجْهِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| رسول الله صلى الله عليه وسلم مبارک مخ نه وینې؟ حضرت عمر رضي الله عنه وکتل مخ د رسول الله صلى الله عليه وسلم ته |
| فَقَالَ أَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ غَضَبِ اللهِ وَ غَضَبِ رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| او (د غسې نښې یې پرې ولیدلې) وې ویل: زه د الله د غضب او د هغه د رسول د غضب نه پناه غواړم، |
| رَضِيْنَا بِاللهِ رَبًّا وَ بِالْإِسْلَامِ دِيْنًا وَ بِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا |
| زه د الله په رب کیدو، د اسلام په دین کیدو او د محمد صلى الله عليه وسلم په رسول کیدو باندې راضي یم، نو |
| فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ الَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ |
| رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل: قسم دی په هغه پاک ذات د کوم په قبضه کې چې د محمد روح دی! |
| لَوْ بَدَا لَكُمْ مُوْسٰى فَاتَّبَعْتُمُوْهُ وَ تَرَكْتُمُوْنِيْ |
| که چیرته موسی ستاسو په مینځ کې ښکاره شي او تاسو د هغه تابعداري وکړئ او ما پرېږدئ نو تاسو به د |
| لَضَلَلْتُمْ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيْلِ وَ لَوْ كَانَ حَيًّا وَ أَدْرَكَ نُبُوَّتِيْ |
| نیغې لارې نه کاږه او ګمراه به شئ او (حالانکه) که چیرته موسی ژوندی وی او زما د نبوت زمانه یې موندلې |

لَاتَّبَعَنِي.[1] (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ).

وی نو هغه (به هم) یقینا زما تابعداري کړې وه.

**توضیح**: **ثکلت الثواکل**: **ثکل** د **کاف** په کسرې سره د ورکیدو په معنی دی، **ثواکل** د **ثاکلة** جمع ده هغې ښځې ته ویل کیږي د کومې چې ماشوم ورک شوی وي یا هلاک شوی وي او هغه په چغو چغو وریـــې ژاړي، مطلب دا دی چې تا دې ورکه وونکې مور ورک کړي، یا دې خویندې یا ورونه ورک کړي.

دا محاوره په عربو کې په عامو خبرو اترو کې ویل کیږي ددې نه حقیقي معنی نه شي مراد کیدی.

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حریص او شوقي وو، د حکمت او معرفت قدردان وو، یهودیانو ته به کله کله تلو راتلو، رومبی یې د یوشمیر نیکو خبرو آوریدو اجازت غوښتی وو اوس یې د څه ښو خبرو آوریدو گومان وکړو چې شاید دا غیر محرف او منزل من الله د تورات برخه وي، د ده دا خیال نه وو چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په غوسه شوی دی او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په بې خیالۍ کې پریوتلی وو، یا حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ژړېدونکې ښځه دې په تا وژاړي یعنې تا دې ورک کړي، د کوم کار په بد گڼلو او د ناراضګۍ په وخت کې دا جمله د عربو په محاوره کې ویل کیږي، نو دلته صرف د انکار او تعجب دپاره استعمال شوې ده. (المرقات ۱/۴۴۰).

**فنظر عمر**: حضرت عمر خو بیا عمر وو، مُلهَم او محدث وو اشدهم فی امر الله عمر وو سمدستي یې توبه وکړه او د الهي غضب او د رسول الله د غضب نه یې پناه وغوښتله، د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غصه په دې باندې یخه شوه، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: که چیرته موسی ژوندی وی نو زما له اطاعت نه په غیر بله چاره به یې نه وه ځکه چې دا د اسلام زمانه ده. (المرقات ۱/۴۴۰).

**۲۵ محرم الحرام ۱٤۰۹هـ**

## د ناسخ او منسوخ مسئله

(۵۲) وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلَامِي لَا

د جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی: چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: زما کلام د الله تعالی کلام نه شي

يَنْسَخُ كَلَامَ اللهِ وَكَلَامُ اللهِ يَنْسَخُ كَلَامِي وَكَلَامُ اللهِ يَنْسَخُ بَعْضُهُ بَعْضًا.[2]

منـــوخ کولی او د الله کلام زما کلام منسوخ کولی شي، او د الله کلام بعضې نورو لره منـــوخ کولی شي.

---

(۱) اخرجه الدارمي ۱۲۶/۱، رقم الحدیث: ۴۳۵، الدار قطني ۱۴۵/۴.

(۲) اخرجه الدار قطني في سننه ۱۴۵/۴، الدارمي ۱۴۵/۴.

**توضیح**: په لغت کې د نسخ معنی نقل کول، محوه کول، لیکل، وغیره راغلې ده، او په اصطلاح کې د نسخ تعریف داسې دی: ﴿رفع الحکم الشرعي بدلیل شرعي متأخر﴾ یعنې د مخکني شرعي حکم په راتلونکي دلیل سره ختمول او تلل.

**کلامي لاینسخ کلام الله**: د نسخ ټول څلور صورتونه دي: (۱) چې قرآن کریم د قرآن کریم دپاره ناسخ شي. (۲) چې حدیث د حدیث دپاره ناسخ شي. (۳) چې قرآن کریم د حدیث دپاره ناسخ شي. (۴) چې حدیث د قرآن کریم دپاره ناسخ شي. په اولنیو دریو صورتونو کې د امت اتفاق دی او په اخیرني صورت کې اختلاف دی.

**د فقهاء کرامو اختلاف**: د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد په حدیث سره د قرآن نسخ روا نه ده. د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام ابوحنیفة رَحِمَهُ اللهُ په نزد په حدیث مشهور سره د قرآن نسخ واقع شوې ده، دا حدیث په ظاهره د امام شافعي او امام احمد بن حنبل دلیل دی، لیکن د هغه جواب دا دی چې دلته د کلامي نه مراد کلام اجتهادي دی، په کوم سره چې د کلام الله نسخ نه شي کیدی.

دویم جواب دا دی چې ددې نه مراد دا دی چې زما کلام د الله تعالی د کلام تلاوت نه شي منسوخ کولی حکم یې منسوخ کولی شي.

دریم جواب دا دی چې دا حدیث په خپله منسوخ دی، څلورم جواب دا دی چې په دې روایت کې یو راوي جبران بن واقد دی کوم چې نهایت ضعیف دی بلکې متهم بالکذب دی، لهذا دا روایت ناقابل احتجاج دی، ځکه چې د جمهورو مسلک دا دی په سنت مشهوره متاخره سره په کلام الله کې نسخ راتلی شي. (المرقات ۱/۴۴۱).

**سوال**: یو شمیر جاهلانو دا اعتراض کړی دی چې د نسخ په باره کې مونږ پوښتنه کوو چې مخکې نازل شوی حکم صحیح وو که غلط وو که چیرته صحیح وو نو منسوخ ولې شو؟ او که چیرته غلط وو نو بیا اول ولې نازلیدو؟. **جواب**: د دې جواب واضح دی چې د نسخ مدار په حکمت باندې دی او د حکیم په حکمت باندې اعتراض کول د نادانو خلکو کار دی، وګورئ مثلا یوه ناروغ ته یو حکیم په یو وخت کې یوه نسخه ورکوي، او په بل وخت هماغه طبیب د هغه نسخه بدلوي نو آیا دا مخکنۍ نسخه غلطه وه او که غیر مفید وه؟ داسې نه ده بلکې طبیب د ناروغ د مزاج مطابق نسخه بدله کړې ده.

همدارنګه د حالاتو واقعاتو او ضرورت په تغیر سره د وحې د نزول په وخت په حکم کې تغیر راغلی دی، د روژې او مونځ په احوالو کې تغیر راغلی دی، په جهاد کې د مقاتلینو په شمیر کې تغیر راغلی دی، نو دا تغیر او نسخ زمونږ د علم په اعتبار سره وه د الله تعالی په نزد خو دا حکم د نزول د وخت نه د دومره وخت دپاره نازل شوی وو په کوم وخت کې چې هغه منسوخ شوی دی.

بهر حال نسخ زمونږ په نسبت سره ده، همدارنګه د نسخ ذکر الله تعالی په قرآن کې کړی دی او په هغې کې لوی حکمتونه دي.

| |
|---|
| (۵۲) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَحَادِيثَنَا |
| د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زما (بعضو) احادیثو |
| يَنْسَخُ بَعْضُهَا بَعْضًا كَنَسْخِ الْقُرْآنِ.[1] |
| بعضې داسې منسوخ کړي دي لکه چې (قرآن بعضې نور) قرآن منسوخ کړی دی. |

**توضیح**: **کنسخ القرآن**: د نسخ لفظ دلته مصدر واقع شوی دی کوم چې د قرآن طرف ته مضاف دی، اوس که چیرته دا دې مصدر اضافت د فاعل طرف ته شي نو ترجمه به داسې شي لکه څرنګه د قرآن بعضې برخه بعضې منسوخ کړې ده، او که چیرته اضافت د مفعول طرف ته شي نو ترجمه به داسې شي چې زما احایثو په خپل مینځ کې یو بل داسې منسوخ کړي دي.

**کنسخ القرآن**: لکه څرنګه چې دې حدیثونو قرآن منسوخ کړی دی، ددې ترجمې مطابق دا حدیث د مخکني حدیث دپاره ناسخ جوړیږي، او بیا دا د احنافو او مالکیانو دلیل جوړیږي، لیکن په دې روایت کې هم یو راوي محمد بن حارث کاذب دی. (المرقات ۱/۴۴۲).

## د حدود الله نه تجاوز مه کوئ

| |
|---|
| (۵۳) وَعَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ فَرَضَ فَرَائِضَ |
| دابو ثعلبه رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی څو فرائض فرض کړي دي |
| فَلَا تُضَيِّعُوهَا |
| لهذا هغه ضائع نه کړئ (یعنې هغه پرې نږدئ یا د هغو شرائط او امکانات ترک نه کړئ، یا په دې فرائضو کې |
| وَحَرَّمَ حُرُمَاتٍ |
| نمایش، ریا، اشک، شبه غرور او تکبر ونه کړئ) او څه څیزونه الله تعالی حرام کړي دي (یعنې د هغو اختیارول |
| فَلَا تَنْتَهِكُوهَا وَحَدَّ حُدُودًا |
| یې ګناه ګرځولې ده) لهذا تاسو هغو ته نږدې هم مه ورځئ، او څو حدود یې مقرر کړي (مثلا حدود قصاص |

(۱) الدار قطني ۴/۱۴۵.

| |
|---|
| فَلَا تَعْتَدُوهَا وَ |
| وغيره) لهذا تاسو د هغو نه تجاوز ونه كړئ (يعنې په هغو كې د خپله ځانه كمي زياتي مه كوئ) او د څو |
| سَكَتَ عَنْ أَشْيَاءَ |
| څيزونو په باره كې سكوت غوره شوى (يعنې يو شمير څيزونه داسې دي د كومو په باره كې چې وضاحت |
| مِنْ غَيْرِ نِسْيَانٍ |
| نه دى شوى چې هغه حلال دي كه حرام دي او كه واجب دي) په غير د نسيان نه، لهذا په دې څيزونو كې |
| فَلَا تَبْحَثُوا عَنْهَا . (رَوَى الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ الدَّارَ قُطْنِيُّ).[1] |
| تاسو (د ځان د طرفه) بحث مه كوئ (ذكر شوي درې واړه حديثونه دارقطني روايت كړي دي). |

**د بدعت مثال** : **باب الاعتصام بالكتاب والسنة** : دا آخرنى حديث دى، په دې ټولو احاديثو سره د رڼا ورځې په شان دا خبره واضحه شوې ده چې د اسلام په دين كې د خپلې خوښې شي داخلول لوى جرم دى، ځكه چې په هره زمانه كې يو شمير داسې خلك راغلي دي او په آئنده كې هم راتلونكي دي چې د خواهشاتو به مغلوب وي او د خپلې خوښې خواهشات به د اسلام سره د پيوند كوشش كوي، كه چيرته اسلامي حدودو او سرحدات سره په سختۍ ونه ساتل شي نو معلومه نه ده چې د څومره خواهش پرستانو خواهش به د دين برخه جوړه شي، ليكن الله تعالى د خپل دين د حفاظت ذمه واري اخستې ده.

لهذا په دې امت كې داسې علماء موجود دي كوم چې د هر بدعت خوښوونكي كس بدعت د قرآن او حديث په مضبوطو اصولو سره مسترد كړى دى، ځكه بدعت داسې جرم دى كوم چې د معافۍ لائق نه دى.

د دې په مثال باندې تاسو داسې پوهه شئ چې يو د خطونو ليږلو دفتر دى د هغه نه ډاكې په خطونو او رسيدونو باندې مشتمل يوه كڅوړه د يوې ډاكخانې نه بلې ډاكخانې ته رسوي او س كه چيرته همدغه ډاكې همدا مهر شوې كڅوړه خلاصه كړي د هغې نه كوم خط راوباسي نو هم د وخت حكومت مجرم بللى دى، او كه چيرته په هغه كڅوړه كې يو بل خط ور واچوي نو هم مجرم دى، ځكه چې په كڅوړه كې دننه په موجودو خطونو باندې د حكومت مهر (ټاپه) لګول شوى دى، ډاكې غير تصديق شده د مهر نه په غير لفافه هغې ته ور اچولې ده نو دا د بغاوت او خيانت په شان لوى جرم دى.

---

(۱) الدار القطني ۴/۱۸۴.

د بدعت دویم مثال تاسو داسې زده کړئ چې که چیرته کوم کس په حکومت کې جعلي سکه جوړه کړي او بیا په هغې باندې تاپه ولګوي او په رائج الوقت حکومتي سکو کې یې داخله کړي او چلیږي نو دا کس د حکومت او قانون د مخې څومره لوی مجرم بلل کیدی شي؟.

بالکل داسې یو بدعتي کس دی کوم چې په مستند شریعت کې د ځان د طرفه غیر مستند عمل داخل کړی دی او بیا خلکو ته په دوکه ورکولو سره ددې مصنوعي عمل د اصلي عمل په صورت کې د رواج کولو کوشش کوي، نو تاسو په خپله اندازه ولګوئ چې دا کس د خدای او د خدای د رسول او د اسلام د قانون په نزد څومره لوی مجرم دی؟ لهذا هر مسلمان ته د بدعاتو د پیدا کولو نه ځان ساتل په کار دي.

**و خیر امور الدین ما کان سنة ❁ و شر الأمور المحدثات البدائع**

**ترجمه**: په دین اسلام کې بهترین شیان هغه دي کوم چې سنت دي ، او بد ترین شیان هغه دي کوم چې د ځان نه جوړ شوي بدعات دي.

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

۸ صفر ۱۴۱۰ھ (د سه ماهي امتحان نه پس)

# كِتَابُ الْعِلْمِ

## د علم او د هغه د فضیلت بیان

**کتاب العلم ای تعلمه و تعلیمه و فضله و فضل تعلمه** .(المرقات ۱/۴۴۵).

د **باب الاعتصام بالکتاب والسنة** نه وروسته د **کتاب العلم** راوړل تعمیم بعد التخصیص دی، ځکه چې په علم کې ډیر زیات وسعت دی، د کوم په ضمن کې چې **اعتصام بالکتاب والسنة** هم شته دی، دلته د علم د ماهیت او حقیقت نه بحث نه کیږي، بلکې په احادیثو کې چې د علم کوم فضیلت او ضرورت راغلی د هغه نه بحث کیږي. (المرقات ۱/۴۴۵).

**د علم تعریف**: علم په لغت کې **دانستن** (پوهې) ته ویل کیږي او علم په اصطلاحي تعریف کې د علماؤ دوه رأیې دي، د علماؤ د یوې ډلې رایه دا ده چې د علم تعریف یا خو بیخي کیدلی نه شي او یا مشکل ترین شی دی، لهذا امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي: **لعم تحقیق حقیقته عسیر جدًا**. یعنې د علم حقیت ته رسیدل ډیر سخت دي. امام رازي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چونکه علم د **اجلی البدیهیات** نه دی نو ځکه ناقابل تحدید او تعریف دی. د علماؤ د دویمې ډلې رأیه دا ده چې د علم تحدید او تعریف ممکن دی او د اوچتې مرتبې د وجې دا تعریفات تر اتلسو پورې رسیدلي دي، د کوم نه چې د علم د شان نه اندازه لګیدلی شي، لهذا د فلاسفو په نزد یو تعریف **حصول صورة الشيء** دی، یو تعریف **الصورة الحاصلة عند العقل** دی، یو تعریف **الحاضر عند المدرک** دی.

د اهل شرع په نزد هم د علم ډیر تعریفات دي، لهذا ماتریدیو د علم تعریف داسې کړی دی:

(۱) **العلم صفة مودعة في القلب کالقوة الباصرة في العین والسامعة في الاذن.**

(۲) علامه بدر الدین عیني رَحِمَهُ اللهُ یې داسې تعریف کړی: **العلم صفة توجب تمیزاً لا یحتمل النقیض.**

(۳) ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ د علم داسې تعریف کړی: **العلم نور في قلب المؤمن مقتبس من مصابیح مشکوة النبوة من الاقوال المحمدیة والافعال الاحمدیة یهتدی به الی الله وصفاته واحکامه.** (المرقات ۱/۴۴۵).

(۴) امام ابوحنیفة رَحِمَهُ اللهُ د علم داسې تعریف کړی دی: **معرفة النفس مالها وما علیها.**

په دغه تعریف کې علم فقه او تصوف هم داخل دي.
**د علم اقسام**: مطلق علم په دوه قسمه ده: اول مبادي، دویم مقاصد. **اول قسم**: لکه علم لغت، علم صرف، علم نحو، علم معاني او بیان، علم اشتقاق وغیره. **دویم قسم**: لکه علوم شرعیه، احکام عقائد وغیره.
دا شرعي علوم بیا په دوه قسمه دي: اول کسبي، دویم وهبي، وهبي هغه علوم دي د کومو په حصول کې چې د انسان کسب لره دخل نه وي، همدا وهبي علوم بیا په دوه قسمه دي: اول هغه کوم چې بلا واسطه د وحې په ذریعه حاصل وي دا علوم النبوة دي. دویم هغه کوم چې د کمال اتباع نبي د وجې ترلاسه شي، دا په الهام کشف او فراست باندې مشتمل علوم دي، د الهام دپاره علامات نشته مګر د کشف او فراست دپاره علامات شته. (المرقات ۱/۴۴۵).
دویم قسم کسبي علوم دي، دا د بشر په کسب سره د بشر نه حاصل شوي علوم دي، کومو ته چې علوم الشرعیات ویل شوي دي، په هغو کې یو علم الاحکام دی په کوم سره چې په مقبول او غیر مقبول کې امتیاز کیدلی شي، که یې قبولیت د ظاهر سره متعلق وو نو دا علم الفقه دی او که د باطن سره متعلق وو نو دا علم التصوف دی، نو علم تصوف هم په علوم کسبیو کې داخل دی.
بیا کوم شیان چې فرض دي د هغو علم هم فرض دی او کوم چې سنت دي د هغو علم هم سنت دی، او کوم اعمال چې واجب دي د هغو علم هم واجب دی، کوم شیان چې حرام دي د هغو علم فرض دی، کوم چې مکروه تحریمي دي د هغو علم واجب دی، او کوم چې مکروه تنزیهي دي د هغو علم سنت دی.

او د (طلب العلم فریضة) نه همدا ضروري علم مراد دی، باقي د دیني علومو ماهر یو لوی د دیني عالم وجود په یوه علاقه کې ضروري دی، یعنې د یوه جید دیني عالم وجود په علاقه کې شتون فرض کفایي دي، که چیرته ټولو خلکو دا ضرورت د نظر نه وغورځوه نو ټول ګناه ګار به وي، د فرض درجې نه وړاندې په علومو کې کمال پیدا کول مستحب دي، بهر حال انسان چې په هر حالت کې هم وي د هماغه حالت علم چې آیا دا روا دی او که ناروا دی، هغومره اندازه علم په مسلمان سړي او ښځه باندې فرض دی. (المرقات ۱/۴۴۵).
د علم په فضیلت باندې د قرآن پاک آیتونه او مقدس احادیث او واضح فرمانونه په لوی شمیر کې موجود دي. څومره چې ممکن وي د هغو نه فائده اخیستل په کار دي.
د علم د فضیلت په باره کې حضرت سعدي بابا رحمه الله یو څو د شمار بیتونه ویلي دي:

صاحبدلے بمدرسه آمد ز خانقاه ❁ بشکست عهد صحبت اهل طریق را
گفتم میان عابد و عالم چه فرق بود ❁ که تو کردی اختیار از آن این فریق را
گفت آن گلیم خویش بدر می برد ز موج ❁ واین جهد میکند که بگیرد غریق را

(المرقات ۱/۴۴۶).

۹ صفر ۱٤۱۰هـ

# الْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## علم عام كړئ او دروغ مه خورئ

| |
|---|
| (۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلِّغُوا عَنِّي |
| د عبد الله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: زما د طرفه يې ورسوئ |
| وَ لَوْ آيَةً وَ حَدِّثُوا عَنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَلَا حَرَجَ |
| اګر که يو آيت وي او د بني اسرائيلو چې کومې قيصې واورئ د خلکو پر وړاندې يې بيان کړئ، دا ګناه نه |
| وَ مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ. (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ ٤/٢٠٧)[1]. |
| ده او کوم کس چې قصداً زما طرف ته دروغژنه خبره منسوب کړه هغه دا وسيد وځای په دوزخ کې جوړ کړو. |

**توضيح: بلغوا عني**: يعني علوم زما دي او خورول يې ستاسو كار دى، زما خبره په مستنده طريقه نورو ته ورسوئ. (المرقات ٤٤٦-١/٤٤٧).

**ولو آية**: په دې جمله کې د آية لفظ دوه مفهومه دي، اول دا چې د دې آيت نه مراد قرآني آيت دى، يعنې زما د طرفه قرآني آيت هم ورسوئ، اګر که د هغه د حفاظت وعده الله تعالى کړې ده، او کله چې د داسې محفوظ آيت تبليغ ضروري دى نو بيا خو زما د احاديثو تبليغ د هغه نه هم زيات ضروري دي.

دويم مفهوم دا دى چې آيت په معنى د نښانې خبر، او كلام مفيد دى، د دې نه مراد د احاديثو نه په غير د دين ټولې خبرې دي، حسب موقع او ضرورت د هغو رسول په هر پېژندونکي باندې لازم دي، **آية (هو) قليلة** ويل کيږي يعني که هر څو مره لږ ولې نه وي هغه هم ورسوئ دا لفظ د **كان** محذوف دپاره خبر دى.

بهر حال تبليغ د باب **تفعيل** نه دى، د هغه مفعول ټول دين دى يعنې **تبليغ الدين**، او د رسولو لفظ په خپله دا ښودلې دي چې رسوونکى دې رومبى په خپله هغه ښه زده کړي بيا دې نورو ته ورسوي او کوم کس يې چې په خپله سم زده نه کړي نو نورو ته به يې څنګه په صحيح معنى ور ورسوي، **لكل فن رجال** بهر حال په حديث کې د علم د عام کولو ترغيب ورکړى شوى دى، او د دروغو د خورولو نه منعه شوې ده.

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ٤٩٦/٦، رقم الحديث: ٣٤٦١، والترمذي ٣٩/٥ رقم الحديث: ٢٦٦٩، وأحمد في المسند ١٥٩/٢.

**وحدثوا عن بني اسرائيل** : په باب الاعتصام والسنة کې حدیث نمبر ۳۶ سره په ظاهره د دې حدیث تعارض دی،ځکه هلته په سختئ سره حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تورات د ورقود ویلو نه منعه کړی دی.ددې جواب دادی چې دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په حدیث کې چې کوم ممانعت راغلی دی هغه د احکامو د نقل کولو متعلق دی،او دلته چې کومه اجازه ده داد قصصو او امثالو نقل کولو اجازه ده کوم چې په تاریخي اعتبار سره منقول دي، یا په قرآن او حدیث کې د بني اسرائیلو د واقعاتو ذکر چې د عبرت او نصیحت دپاره راغلی دی د هغو د بیانولو اجازت دی، د احکامو د بیانولو نه دی ، ځکه چې هغه منسوخ دي، په حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې کومه سختي شوې ده هغه د دې دپاره وشوه چې هغه نسخه تحریف شوې وه.

**د حدیث ځان نه جوړولو سخت شدید وعید : فليتبوأ** : دا امر دی انشاء ده په معنی د خبر سره، یعني دې کس په دوزخ کې د ځان دپاره د اوسیدو ځای تیار کړ، په دغه حدیث کې د احادیثو د بدلولو سخت وعید راغلی دی، ددې په نظر کې نیولو د وجې علامه ابو محمد جویني رَحِمَهُ اللَّهُ د حدیث بدلوونکي ته کافر ویلي، لیکن جمهور امت دا لویه ګناه ګرځولې ده، یعني که یو څوک د حدیث بدلول روا وګڼي نو هغه کافر دی او که داسې نه وي بیا کافر نه دی .جمهور امت په دې باندې متفق دی چې وضع د حدیث مطلقاناروا ده، برابره خبره ده که په نیکه اراده وي او که په کومه بله اراده وي، بعضو جاهلانو صوفیانو داسې ګڼلې دی چې د ترغیب او ترهیب دپاره د حدیث بدلول روا دي، په دې کې د دین ګټه ده، خلکو ته ګټه ده هیڅ نقصان نشته.د دې جواب دا دی چې دین د هغې لارې راځي کومه چې د دین لار وي، د بې دینئ د لارې دین نه راځي، نو کومه فائده چې په دین باندې د دروغو تړلو د وجې حاصله شي نو هغه څه فائده شوه؟ هغه خو سراسر نقصان دی، ذویمه خبره دا ده چې اسلام د یو چا فائدې ته نه ګوري بلکې هغې ته ګوري چې دده سره څه معامله کوي چې آیا د هغه بنایسته صورت پر ځای ساتي او که هغه خرابوي.د مرقات په یو ځای کې ملا علي قاري رَحِمَهُ اللَّهُ لیکلي دي چې د حدیث د عبارت لوستونکی طالب العلم کله چې د حدیث په لوستلو کې غلطي کوي هغه هم ددې حدیث په وعید کې راغلی دی، ځکه هغه په دې خبره باندې پوهیږي چې د حدیث په لوستلو کې غلطي ترې کیږي او بیا یې هم وایي، ددې حدیث نه هم معلومه شوه چې د نیم حدیث نقل کول روا دي لکه چې امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ کړي دي. (المرقات ۴۴۷-۱/۴۴۸).

**متعمداً** : ددې لفظ نه معلومه شوې ده چې دا د کذب عمد دپاره وعید دی، که چیرته په غلطئ سره وشي یا په کتاب کې عبارت غلط وي نو هغه ددې نه خارج دی، بعضو محدثینو لیکلي دي چې د معتمدًا لفظ په بعضو روایتونو کې دی او په بعضو کې دا نشته، لهذا دا وعید د عمد او غیر عمد

دواړو صورتونو دپاره دی، علامه دار قطني رَحِمَهُ اللهُ په دغه ځای کې ليکلي دي چې په حديث کې د متعمداً لفظ نشته خلکو دا ورسره زيات کړی دی (بحواله مقدمه موضوعات کبير).

علامه کرماني رَحِمَهُ اللهُ ليکلي دي چې دا وعيد عام دی، که د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په موافقت کې وي او که په مخالفت کې وي په دواړو صورتونو کې لويه ګناه ده، د حديث په اوله جمله کې د تبليغ ترغيب وو نو خطره وه چې څوک په جوش کې راشي بې سره او پښو روايات بيانول شروع نه کړي، نو ځکه په دې جمله کې ووېل شول چې تبليغ وکړئ مګر چا چې بې سنده خبره بيان کړه او په ما پورې يې دروغ وتړل نو دوزخ ته د تلو دپاره دې تيار شي.(المرقات ۱/۴۴۸).

## په دروغو د حديث بيانولو وعيد

| |
|---|
| (۲)وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ وَالْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَا قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د سمره بن جندب او حضرت مغيره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : |
| مَنْ حَدَّثَ عَنِّي بِحَدِيثٍ يُرَى |
| کوم کس چې(زما طرف ته منسوب کوم داسې)حديث بيان کړي دکوم په باره کې چې دهغه ګمان دا وي |
| أَنَّهُ كَذِبٌ فَهُوَ أَحَدُ الْكَاذِبِينَ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| چې هغه دروغژن دی نو دا د دروغژنو کسانو نه يو دروغژن دی. |

**توضيح** : **يرى** : دا د مجهول صيغه د **يظن** په معنى ده، مجهوله مستعمل شوې ده او د **رؤيت** نه مراد رؤيت قلبي دی. (المرقات ۱/۴۴۹).

**احد الکاذبين** : دا د جمعې صيغه ده او همدا راجح ګڼل شوې ده، يعنې د نورو کذابينو نه يو دا کس هم دی، ځکه چې ده هم د هغوی د افتراء په نقل کولو سره د هغوی تاييد کړی دی، بعضو دا د تثنيه صيغه منلې ده، چې يو دروغژن هغه دی کوم چې خراب کړی دی او دويم دروغژن همدا بيانوونکی دی، کوم چې د خرابوونکي سره ملګری شوی دی، علماو ليکلي دي چې د موضوعي حديث بيانول حرام دي، هو که يو څوک يې نقل کړي د دې دپاره چې وښايي چې دا موضوعي دی نو دا طريقه صحيح ده، په موضوعاتو باندې علماؤ ډير کتابونه ليکلي دي. (المرقات ۱/۴۴۹).

---

(۱) أخرجه المسلم في الصحيح ۹/۱ ،والترمذي ۳۵/۵ رقم الحديث : ۲۶۶۲ ، وأحمد في المسند۱۴/۵ . ، وابن ماجة ۱۵/۱، رقم الحديث: ۳۹.

## علم لوی دولت دی

(۲) وَ عَنْ مُعَاوِيَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يُرِدِ اللهُ بِهِ

د معاویه رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: کوم کس ته چې الله تعالی اراده

خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ وَ إِنَّمَا أَنَا قَاسِمٌ وَاللهُ يُعْطِي. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1].

وکړي دخير نو هغه ته ددين پوهه ورکړي او زه د علم تقسیمونکی یم، ورکوونکی خو خدای تعالی دی.

**توضیح: یفقهه في الدین**: د اسرارو د احکامو د علم نوم فقه دی، لهذا فقاهت د هغې ملکې او پوهې نوم شو د کومې په ذریعې سره چې انسان غیر حاصل معلومات راویستلی شي، او دا لوی نعمت دی ﴿ذَٰلِكَ فَضْلُ اللهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ﴾ ملا علی قاري رحمه الله ویلي دي چې دا حدیث د مشهورو فقهاؤ سره خاص نه دی بلکې د دې مفهوم عام دی. (المرقات ۱/۴۵۰).

حسن بصري رحمه الله ته چا وویل چې فقهاو داسې ویلي دي ولې تا نه هیر شوې دی یا تا کله یو فقیه لیدلې هم دی او که نه؟ فقیه خو هغه کیدی شي کوم چې زاهد عن الدنیا راغب في الآخرة شي، د خپل دین بصیرت ولري او همیشه د خپل رب په عبادت کې مصروف اوسي.

**وانما انا قاسم**: یعنې د وحې د علومو زه ویشونکی یم او زه علم تقسیموم، او الله تعالی هر انسان ته په هغه د پوهیدو فهم ورکوي، ددې حدیث تعلق د نبوت د علم د تقسیم سره دی، همدا وجه ده چې محدثینو دا حدیث په کتاب العلم کې راوړی دی. (المرقات ۱/۴۵۰).

**والله یعطي**: د دې مطلب دا دی چې یا الله تعالی انسانانو ته درجه په درجه فهم او ادراک هم ورکړی نو څوک داعلی درجې ذهین دی څوک د متوسطې درجې دی او څوک دادنی درجې دی(المرقات ۱/۴۵۰) دلته په دې حدیث سره بدعتیانو دااثابتول غوښتي دي چې ددې تقسیم نه مراد تقسیم درزق اوارزاقو دی، نو د اهل بدعتو امام احمد رضا خان ویلي دي:

خلق کے حاکم ہو تم رزق کے قاسم ہو تم ❁ تم سے ملا جو تم پہ کروڑوں درود

او دارنگه د شیخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله په باره کې دا هم ویلي دي:

کیوں نہ قاسم ہو کہ تم ابن ابی القاسم ہو ❁ کیوں نہ قادر ہو کہ مختار ہے بابا تیرا

---

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۱/۱۶۴، رقم الحديث: ۷۱، ومسلم في الصحيح ۲/۷۱۹ رقم الحديث: ۱۰۰-۱۰۳۷، واحمد في المسند ۴/۹۲، وابن ماجة ۱/۲۲۰، رقم الحديث: ۲۲۰.

دا هر څه د بدعتيانو د بدفهمۍ نتيجه ده، د احاديثو شارحينو دا شرحه نه ده کړې، او په احاديثو کې چې چيرته د تقسيم او قاسم کيدو نسبت رسول الله ﷺ ته شوی دی نو هغه د مال غنيمت د تقسيم خبره ده.

## د انساني ملکاتو ذکر

| |
|---|
| (۲) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّاسُ مَعَادِنُ |
| د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: دانسانانو داسې کانونه دي |
| كَمَعَادِنِ الذَّهَبِ وَ الْفِضَّةِ خِيَارُهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُهُمْ فِي |
| په شان د کانونو د سرو او سپينو ، کوم خلک چې د جاهليت په ورځو کې بهتر وو هغوی به بهتر وي په |
| الْإِسْلَامِ إِذَا فَقِهُوا . (رَوَاهُ مُسلم)[1]. |
| زمانه د اسلام کې ،مگر کله چې هغوی فقاهت حاصل کړي. |

**توضيح : الناس معادن** : دا د معدن جمع ده کان ته ويل کيږي، يعنې لکه څرنګه چې په زمکه کې سره سپين شته دی تانبه، اوسپنه، زمرود، جواهروغيره شته دی همدارنګه انسانان هم د خپلو اخلاقو د وجې متفاوت دي، د انسان ښه اخلاق، شجاعت، مروت، سخاوت، علم، حياء، ذکاوت، ذهانت وغيره دي.نو لکه څنګه چې په کانونو کې سره سپين او په نورو معدنياتو کې اختلاف دی همدارنګه انسانان هم مختلف دي، په کانونو کې چيرته سره او سپين زيات او چيرته کم وي چيرته اعلی او چيرته ادنی وي همدارنګه انسان هم په خپلو خوبيانو کې اعلی او ادنی دي.

**فخيارهم** : يعنې د اسلام په قبلولو سره د هغوی نسبي ترقي يا ختميږي نه، بلکې په جاهليت کې چې هغوی د نسب په لحاظ کومه برتري لرله او شرافت يې وو، چې اسلام قبول کړي او فقاهت حاصل کړي عالم جوړ شي نو هغه برتري به يې نوره هم زياته شي، څکه چې په حديث کې دي **الاسلام يزيد الشرف شرفا** اسلام خو انساني شرافت زياتوي، هو دا برتري او شرافت په هغه وخت کې دي کله چې په اسلام کې فقاهت حاصل کړي، که چيرته د کوم اعلی خاندان انسان د اسلام د قبلولو نه وروسته علم دين او فقاهت حاصل نه کړي او بل د ادنی درجې انسان اسلام ته راشي او د فقه علم حاصل کړي نو د اعلی خاندان والا نه دا د ادنی خاندان والا او چتيږي، څکه چې شرط فقاهت دی. (المرقات ۴۵۱-۱/۴۵۲).

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۴/۲۰۳۱ رقم الحديث : ۱۶۰-۲۶۳۸.

**اذا فقهوا** : يعني دا ملكات پټ وو اسلام هغه روښانه كړل په دې شرط چې همدا انسان د تعليم په ښايست سره ښايسته شي، په دې حديث كې د سرو سپينو سره د انسان د خوبيانو تشبيه وركړى شوې ده، د كوم نه چې دا معلوميږي لكه څرنګه چې د هغو محفوظو كانونو نه په راويستلو كې كوشش كولو ته ضرورت پيښيږي دارنګه د انساني خوبيانو په پيدا كولو كې هم كوشش كولو ته ضرورت پيښيږي. دارنګه چې سره او سپين اور ته واچول شي محنت ورسره وكړى شي نو زيور ترې جوړيږي، همدارنګه چې انسان په علمي كمالاتو كې محنت وكړي نو خپلې خوبيانې يې ښكاره كيږي، دغه حديث هر انسان ته د كمترۍ د احساس نه د ځان ساتلو تعليم وركړى دى. (المرقات ١/٤٥٢).

بے علم چون شمع باید گداخت ❁ کہ بے علم نتوان خدا را شناخت

## دوه قابل فخر شيان

| |
|---|
| **(٥) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا حَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَتَيْنِ** |
| د ابن مسعود رضي الله عنه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د دوه كسانو په باره كې حسد كول |
| رَجُلٍ آتَاهُ اللهُ مَالًا فَسَلَّطَهُ عَلَى هَلَكَتِهِ فِي الْحَقِّ |
| صحيح دي يو هغه كوم ته چې الله تعالى مال وركړى دى بيا يې هغه ته د حق په لار كې د مصرف كولو توفيق |
| وَ رَجُلٍ آتَاهُ اللهُ الْحِكْمَةَ فَهُوَ يَقْضِيْ بِهَا |
| وركړى دى، دويم هغه كس دى كوم ته چې خداى تعالى علم وركړى دى لهذا هغه د علم مطابق حكم كوي |
| وَيُعَلِّمُهَا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).[1] |
| او نورو ته يې ور زده كوي. |

**توضيح** : **لاحسد** : د بل چا نعمت د زوال كولو تمنا كولو ته حسد ويل كيږي، برابره خبره ده كه دا ته وركړى شي او كه نه، مګر د هغه بل نه زائل شي دا بالاتفاق حرام ده، دويم غبطه ده، هغه دا ده چې د بل چا نعمت ويني دا تمنا وكړي چې د ده په شان شيان ماته هم راكړى شي او د هغه سره هم پاتې شي يعني د بل چا د نعمت تمنا وكړي مګر : هغه نه زوال يې مقصود نه وي.

**سوال**: شبه داده چې حسد خو شرعا روا نه دى نو په دې دوو شيانو كې اجازت ولې وركړى شوى دى؟

**جواب** : د دې سوال دوه جوابونه دي، رومبى جواب خو هغه دى چې دلته په دې حديث كې د حسد لفظ

---

(١) اخرجه البخاري في الصحيح ١/١٦٥، رقم الحديث: ٧١، ومسلم في الصحيح ١/٥٥٩ رقم الحديث: ٢٦٨-٨١٦، واحمد في المسند ١/٤٣٢.

راغلی دی لیکن دا د غبطې په معنی سره مستعمل شوی دی، په دې جواب اعتراض کیدلی شي چې که چیرته د حسد نه مراد غبطه وه نو بیا صرف په دې دوو شیانو کې د اجازت مطلب څه دی؟ تمنا کول چې هر کله روا شی دی نو بیا خو هغه په هر شي کې روا ده.

لهذا دویم جواب دا دی چې دا کلام د فرض او تقدیر په طور دی، چې حسد په هیڅ شي کې روا نه دی، مګر دا دوه نعمتونه داسې دي چې که چیرته فرض کړو چې په کوم شي کې حسد روا شي نو په دې دوو شیانو کې به وي، چونکه هیڅ چیرته روا نه دی نو په دې دواړو کې هم روا نه دی. بعضو دا هم لیکلي دي چې دا دوه خصلتونه دومره لوی دي چې په هغو کې حسد کول روا دي، ګویا چې چې دا دوه شیان د حسد د عامې قاعدې نه مستثنی دي. (المرقات ۱/۴۵۲).

## درې شیان صدقه جاریه دي

﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا مَاتَ الْإِنْسَانُ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې انسان مړ شي

انْقَطَعَ عَنْهُ عَمَلُهُ إِلَّا مِنْ ثَلَاثَةِ أَشْيَاءَ صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ

نو دهغه دثواب دعمل سلسله ختمه شي مګر دریو شیانو دثواب سلسله باقي پاتې کیږي: یو صدقه جاریه

أَوْ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهِ أَوْ وَلَدٍ صَالِحٍ يَدْعُو لَهُ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

دویم علم په کوم سره چې فائده ورسوي دریم نیک اولاد کوم چې دهغه دمرګ نه وروسته دعا ورته کوي.

**توضیح** :**الا من ثلثة** : دنیا د عمل کور دی، آخرت د جزاء کور دی، انسان چې ترڅو پورې په دنیا کې اوسیږي نو د هغه ښه او بد عمل جاري وي، لیکن کله چې انسان مړ شي نو د هغه د عمل سلسله ختمه شي خو درې قسمه اعمال داسې دي چې دانسان د مرګ نه وروسته هم دهماغو اعمالو سلسله روانه وي.

**اول**: صدقه جاریه ده چې کوم کس مثلاً زمکه وقف کړي یا کوم کوهی یا ډنډ جوړ کړي او وقف یې کړي، اوس د ده د مرګ نه وروسته خلک ددې شیانو نه فائده حاصلوي نو د هغو ثواب مرحوم ته رسیږي.

**دویم**: علم نافع دی، یعني یو باعمله عالم وفات شو او په ژوند کې یې د خدای مخلوق ته فائده ورسوله او ثواب یې ترلاسه کولو تردې چې وفات شو نو شاته یې علمي ذخیره پرېښودله نو د خپلو تصنیفاتو یا تحریراتو نه او یا د قابل قدر شاګردانو په ذریعه یا د دیني کتابونو په وقف کولو سره او یا یې خپل اولاد

---

[1]) أخرجه مسلم في الصحيح ۳/۱۲۵۵ رقم الحديث: ۱۴-۱۶۳۱، وأبوداود ۳/۳۰۰ رقم الحديث: ۲۸۸۰، والنسائي ۶/۲۵۱، رقم الحديث: ۳۶۵۱، والترمذي ۳/۶۶۰ رقم الحديث: ۱۳۷۶، وأحمد في المسند ۲/۳۷۲

ته علم ورزده کړه او دعلم نافع ذخيره يې شاته پرېښوده دکومې فائده چې هغه ته دوفات نه وروسته رسيږي.

**دريم:** کوم کس چې په خپله وفات شي خو شاته خپل صالح او نيک اولاد پرېږدي هغه د خپلو مرحومو والدينو دپاره دعاګانې کوي، سبق وايي ايصال ثواب ورته کوي، صدقات ورکوي، دا ټول شيان د مرګ نه وروسته د مړي دپاره د ثواب باعث دي. دلته په حديث کې د يَدْعُوْا له الفاظ دي، د بعضو علماؤ وينا ده چې د نيک اولاد په نيکۍ کې د والدينو برخه ده، برابره خبره ده که هغه دعاء وکړي او که يې ونه کړي. (المرقات ۴۵۳-۱/۴۵۴).

## اسلامي تعليمات

| |
|---|
| (۷) وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَنْ نَفَّسَ عَنْ مُؤْمِنٍ |
| د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: چا چې لرې کړه د يو مؤمن نه يوه |
| كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ الدُّنْيَا نَفَّسَ اللهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَ مَنْ |
| سختي د سختيو د دنيا نه نو الله تعالى به د قيامت په ورځ د هغه ځای سختيو نه يوه سختي لرې کړي، او چا چې |
| يَسَّرَ عَلَى مُعْسِرٍ يَسَّرَ اللهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا وَ الْآخِرَةِ |
| آساني راوسته په يوچاباندې په سختۍ کې نو الله تعالى به آسانتيا راولي په ده باندې په دنيا او آخرت کې |
| وَ مَنْ سَتَرَ مُسْلِمًا سَتَرَهُ اللهُ فِي الدُّنْيَا وَ الْآخِرَةِ |
| او چا چې پرده واچوله په يو مسلمان باندې الله تعالى به په دنيا او آخرت کې د هغه پرده پوشي وکړي، |
| وَ اللهُ فِي عَوْنِ الْعَبْدِ مَا كَانَ الْعَبْدُ فِي عَوْنِ أَخِيهِ |
| او الله تعالى تر هغه وخته پورې د بنده مرسته کوي ترڅوپورې چې هغه د مسلمان ورور سره مرسته کوي، |
| وَ مَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَلْتَمِسُ فِيهِ عِلْمًا سَهَّلَ اللهُ لَهُ بِهِ طَرِيقًا إِلَى الْجَنَّةِ |
| او کوم کس چې د علم په لټون کې په کومه لار باندې لاړ شي نو الله تعالى په هغه باندې د جنت لارې آسانه |
| وَمَا اجْتَمَعَ قَوْمٌ فِي بَيْتٍ مِنْ بُيُوتِ اللهِ يَتْلُونَ كِتَابَ اللهِ وَ يَتَدَارَسُونَهُ بَيْنَهُمْ |
| کړي، او کله چې کومه ډله د خدای په کور (جومات يا مدرسه) کې قرآن شريف وايي او ورزده کوي يې |
| إِلَّا نَزَلَتْ عَلَيْهِمُ السَّكِينَةُ وَ غَشِيَتْهُمُ الرَّحْمَةُ |
| نو په هغه باندې د خدای تعالى د طرف نه تسکين نازليږي، خداوندي رحمت يې په خپل ځان کې پټوي، |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَ حَفَّتْهُمُ | الْمَلَائِكَةُ | وَ ذَكَرَهُمُ | اللهُ | فِيمَنْ | عِنْدَهُ |

دارنگه الله تعالی د هغه جماعت ذکر په هغو (فرښتو) کې کړی کوم چې د هغوی سره پخوا کې اوسي،

وَ مَنْ بَطَّأَ بِهِ عَمَلُهُ لَمْ يُسْرِعْ بِهِ نَسَبُهُ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

او چا چې په عمل کې تاخیر وکړ نو په آخرت کې د هغه نسب کار نه ورکوي.

**توضیح**: په دغه حدیث کې د اسلام اخلاقي تعلیمات او آفاقي هدایت ذکر شوی دی، اول تعلیم دا دی چې که چیرته کوم مسلمان د خپل کوم مصیبت زده مسلمان ورور کوچنی شانته مصیبت لرې کړي نو الله تعالی به د قیامت په ورځ د هغه نه غټ مصیبت لرې کړي، دلته د مؤمن مسلمان د خدمت خبره ده د غیر مسلم نه ده، لهذا کوم خلک چې ایمان او اسلام د نظره وغورځوي یوازې د خلکو د خدمت جذبه په زړه کې ولري نو هغه که په خپل ځای کې هر څنګه وي مګر د همدغه حدیث مصداق نه دی. دویم تعلیم د کوم تنګدست د مرستې سره متعلق دی، یعنې چې د کوم غریب ضرورت په دنیا کې پوره کړي مثلا هغه قرضداری وي نو یا خو قرض ورته معاف کړي یا د هغه د ادا کولو انتظام وکړي نو الله تعالی به د آخرت د تنګیو نه هغه ته نجات ورکړي. دریم تعلیم دا چې د کوم شریف انسان نه بشري کمزوري ښکاره شي او هغه د ګناه ارتکاب وکړي نو د هغه دغه ګرنه ښکاره نه کړي، بلکې په هغه باندې د ستر پرده واچوي ترڅو چې د هغه ژوند وساتل شي که نه نو هغه ختمیږي، هو که چیرته هغه عادي مجرم دی او د هغه ګناه متعدي ده نو بیا د هغې پټول روا نه دي. څلورم تعلیم دا دی چې ترڅو پورې د مسلمان مرسته کیدی شي نو الله تعالی هم د هغه مرسته کوي او د مرستې او نصرت دغه تسلسل جاري وي. پنځم تعلیم دا دی چې کوم کس د دیني علم زده کولو پر لار لاړ شي او د علم حاصلولو دپاره محنت وکړي نو الله تعالی د هغه دپاره د جنت لار آسانه کړي. شپږم تعلیم دا دی چې کله هم د مسلمانانو جماعت په جومات، مدرسه یا خانقاه وغیره کې کښیني او د الله تعالی کتاب تلاوت کوي او د هغه تعلیم او تدریس کوي نو د الله تعالی خصوصي فرښتې په هغه باندې رحمت وروي، او الله تعالی په خپله د هغو ذکر کوي. اوم تعلیم دا دی چې کوم کس همدا نیک اعمال شانته پرېښودل نو خاندان او ښکته پورته حسب نسب د هغه وړاندې کیدی نه شي. (المرقات ۴۵۴-۱/۴۵۵). یو چا ښنتیا ویلي دي:

بنده عشق شدی ترک نسب کن جامی ❀ که درین راه فلان ابن فلان چیزے نیست

---

(۱) اخرجه المسلم في الصحيح ۲۰۷٤/٤ رقم الحديث: ۳۸-۲۶۹۹، وابو داود ۲۳٤/٥ رقم الحديث: ٤٩٤٦، والترمذي ۱۷۹/٥ رقم الحديث: ۲۹٤٥، واحمد في المسند ۲۵۲/۲ ، وابن ماجة ۸۲/۱، رقم الحديث: ۲۲۵

۱۰ صفر ۱٤۱۰ھ

## ریا کاري بده بلا ده

(۸) وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم إِنَّ أَوَّلَ النَّاسِ

دابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چې اولني کس چې (دخلوص نیت

يُقْضَى عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَجُلٌ اسْتُشْهِدَ

ترک کولو) حکم ولګول شي په هغه د قیامت په ورځ هغه څوک به وي کوم چې په دنیا کې شهید شوی وو لهذا

فَأُتِيَ بِهِ فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ فَعَرَفَهَا

(دحشر په میدان کې) هغه به وړاندې کړی شي او الله تعالی به هغه ته خپل (ورکړی شوي) نعمتونه ور یاد

قَالَ فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا

کړي کوم یې چې هغه ته ورکړي وي بیا به الله تعالی هغه ته وو ایي تا د دې نعمتونو په شکر کې کوم کار وکړ؟

قَالَ قَاتَلْتُ فِيكَ حَتَّى اسْتُشْهِدْتُ قَالَ كَذَبْتَ

هغه به وو ایي: زه ستا په لار کې وجنګیدم، تردې چې شهید شوم، الله تعالی به ورته وو ایي ته دروغژن یې،

وَ لٰكِنَّكَ قَاتَلْتَ لِأَنْ يُقَالَ جَرِيءٌ فَقَدْ قِيلَ

ځکه چې ته خو د دې دپاره جنګیدلی چې تا ته بهادر وویل شي، لهذا تا ته بهادر وویل شول (او ستا اصل

ثُمَّ أُمِرَ بِهِ فَسُحِبَ عَلَى وَجْهِهِ حَتَّى

مقصد مخلوق سره ته ورسوه) او س زما نه څه غواړې؟ بیا به حکم وکړی شي چې دا پړمخ کش کړئ تردې چې

أُلْقِيَ فِي النَّارِ وَ رَجُلٌ تَعَلَّمَ الْعِلْمَ وَ عَلَّمَهُ وَ قَرَأَ الْقُرْآنَ

دوزخ ته وا چول شي دویم کس هغه دی کوم چې علم حاصل کړ نورو ته یې تعلیم ورکړ او وي لوستو قرآن مجید

فَأُتِيَ بِهِ فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ فَعَرَفَهَا

لهذا هغه به هم د خدای تعالی حضور ته راوستل شي او الله تعالی به هغه خپل ورکړي نعمتونه ور په یاد کړي

قَالَ فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا

کوم چې هغه ته ورکړی شوي وو بیا به الله تعالی تري پوښتنه وکړي چې تا د دې نعمتونو په شکر کې څه عمل

قَالَ تَعَلَّمْتُ الْعِلْمَ وَ عَلَّمْتُهُ وَ قَرَأْتُ فِيكَ الْقُرْآنَ

کړی دی؟ هغه به ووایي: ما علم حاصل کړو، او نورو ته مې ور زده کړ او ستا د پاره مې قرآن کریم ولوست.

قَالَ كَذَبْتَ وَ لَكِنَّكَ تَعَلَّمْتَ الْعِلْمَ لِيُقَالَ عَالِمٌ

الله تعالی به ورته ووایي ته دروغژن یې تا خو علم خالص ددې د پاره حاصل کړی ؤچې تا ته عالم وویل شي

وَ قَرَأْتَ الْقُرْآنَ لِيُقَالَ هُوَ قَارِئٌ فَقَدْ قِيلَ ثُمَّ

او قرآن دې ددې د پاره لوستلی وو چې تا ته خلک قاري ووایي، لهذا تا ته عالم او قاري وویل شول، بیا به

أُمِرَ بِهِ فَسُحِبَ عَلَى وَجْهِهِ حَتَّى أُلْقِيَ فِي النَّارِ وَ رَجُلٌ

حکم وکړی شي چې پر مخ دې راخکل کړی شي تر دې چې اور ته واچول شي، دریم کس به هغه وي کوم ته چې

وَسَّعَ اللهُ عَلَيْهِ وَ أَعْطَاهُ مِنْ أَصْنَافِ الْمَالِ كُلِّهِ فَأُتِيَ بِهِ

الله تعالی په ژوند کې پراخي ورکړې وي او هر قسم مال یې ورکړی وي هغه به هم د خدای حضور ته راوستل

فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ فَعَرَفَهَا

شي، الله تعالی به خپل ورکړي نعمتونه ورپه یاد کړي کوم چې هغه ته ورکړی شوي دي، بیا به الله تعالی

قَالَ فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا قَالَ مَا تَرَكْتُ مِنْ سَبِيلٍ

هغه ته ووایي چې ددې نعمتونو په شکر کې دې څه اعمال کړي دي؟ هغه به ووایي: ما هیڅ داسې لار نه

تُحِبُّ أَنْ يُنْفَقَ فِيهَا إِلَّا أَنْفَقْتُ فِيهَا لَكَ

ده پرېښې په کومه کې چې تا ته مصرف کول خوښ وو او ستا د رضا د پاره ما په هغې کې مصرف نه وي کړی

قَالَ كَذَبْتَ وَ لَكِنَّكَ فَعَلْتَ لِيُقَالَ هُوَ جَوَادٌ

الله تعالی به ورته ووایي چې ته دروغژن یې، تا خو مصرف د دې د پاره کولو چې تا ته سخي وویل شي او

فَقَدْ قِيلَ ثُمَّ أُمِرَ بِهِ فَسُحِبَ عَلَى وَجْهِهِ ثُمَّ أُلْقِيَ فِي النَّارِ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

تا ته سخي ویل شوي دي. بیا به حکم وکړی شي چې پر مخ دې رابنکلی شي تر دې چې اور ته واچول شي.

---

(۱) أخرجه المسلم في الصحيح ۱۵۱۳/۳ رقم الحديث: ۱۵۲-۱۹۰۵، والنسائي ۲۳/۶، رقم الحديث: ۳۱۳۷، وأحمد في المسند ۳۲۲/۲

**توضيح: اول الناس**: دلته دا اشکال دی چې په دغه حديث کې ويل شوي دي چې د قيامت په ورځ به د تولو نه مخکې حساب او فيصله به ددې نمائشي شهيد وي، په نورو احاديثو کې راغلي دي چې د تولو نه مخکې فيصله به په ناحقه د وينو تويونکي قاتل او مقتول کيږي، په دريم حديث کې ذکر شوي دي چې د تولو نه مخکې د قيامت په ورځ به د مونځ فيصله وي.
چنانچه په عامو جوماتونو کې به مخکې زمانه کې دا فارسي شعر په محراب کې ليکل شوی وو:

روز محشر که جان گداز بود ❁ اولين پرسش نماز بود

ددې اشکال او د احاديثو ددې ظاهري تعارض جواب ورکړی شوی دی چې د قيامت په ورځ به د معاملاتو او حقوق العبادو کې د تولو نه مخکې فيصله به د ناحقه وينو وي، د هغو يو صورت خو ناحقه قتل دی او دويم صورت يې ريا کاري او نمائشي وينه ده، لکه په دې حديث کې د هغه ريا کار شهيد وينه ده، لهذا په حقوق العباد کې د تولو نه مخکې به ددې قسم معاملاتو فيصله کيږي، او په حقوق الله او عبادت کې به د تولو نه اول فيصله به د مونځ کيږي، نو هيڅ تعارض نشته، نو په حديث کې د اول الناس چې کوم اوليت دی په اعتبار د انواعو دی، دانواعو د عبادت فيصلې جدا شوې او د انواعو دمعاملاتو فيصلې جدا شوې. (المرقات ۱/۴۵۹).

**فعرفه نعمته**: په دغه جمله کې دا شبه کيدی شي چې د نعمتونو سلسله خو غير متناهي ده هغه به څنګه ياد کړی شي؟ کله چې په حديث کې راغلي دي چې هغه ته به عام نعمتونه ور په ياد کړی شي او هغه کس به يې په يادولو سره وپيژني، د دې جواب د نن سبا نوو آلاتو آسان کړی دی، ځکه چې په کمپيوټرې سيستم او د تلويزيون په پروګرامونو کې اقوال افعال، حرکات او سکنات، مقامات او زمانيات ټول محفوظ کيدی شي او د ضرورت په وخت کې هر وخت کتلی شي، نو د قادر مطلق خدای دپاره د نعمتونو يادول څه مشکل دي. (المرقات ۱/۴۵۹).

**قرأت فيک**: يعنې ستا د رضا او خوشحالولو دپاره ما قرآن لوستلی او ښودلی وو، علم مې زده کړی وو او علم مې ښودلی وو، په دغه حديث کې صرف دری کسان مراد نه دي بلکې دا دری قسمه خلک دي د کومو شمير چې الله تعالی ته معلوم دی، ددې حديث نه مونږ ته دا تعليم راکړی شوی چې د هر عمل دپاره بنيادي شی خلوص نيت دی، که چيرته نيت خالص نه وي نو د غټ نه غټ عمل هم ضايع دی مثلاً د بدني قرباني په ميدان کې د ځان قرباني کول ډير لوی عمل دی، د الهي معرفت په ميدان کې علم د تولو نه لوی عمل دی، او په مالي قرباني کې مال مصرف کول د تولو نه لوی عمل دی، ليکن که په اخلاص کې نقصان وو يا بيخي اخلاص نه وو نو همدومره ستر عملونه هم د منځه ځي.په دغه حديث کې د رياکاری بدې بيان شوې ده، بهر حال په حديث کې د خراب نيت د خطراتو نه مسلمانان خبردار کړی

شوي دي، مګر دا حدیث بعضو حضراتو د اخلاص نیت دپاره د عوامو پروړاندې پیش کړی دی د کوم نه چې دا تاثر ترلاسه کیږي چې شهید او شهادت هیڅ شی نه دی، علم او علماء د ریاکارۍ ښکار دي، دا قسم بیان ډیر خطرناک دی، حالانکه د اخلاص د ترغیب دپاره ددې حدیث نه غیر نور ډیر زیات احادیث دي. (المرقات ۱/۴۵۹).

## علم د خلکو نه څنګه پورته کیږي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (۹) وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ | | | | | | | |
| د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی به | | | | | | | |
| لَا يَقْبِضُ | الْعِلْمَ | انْتِزَاعًا | يَنْتَزِعُهُ | مِنَ | الْعِبَادِ | وَ | لٰكِنْ |
| علم (په آخرنۍ زمانه کې) داسې نه پورته کوي چې د خلکو د زړونو او دماغونو نه هغه وباسي، بلکې علم داسې | | | | | | | |
| يَقْبِضُ | الْعِلْمَ | بِقَبْضِ | الْعُلَمَاءِ ، | حَتّٰى | إِذَا | لَمْ | يُبْقِ عَالِمًا |
| پورته کیدی شي چې علماء به (ددې دنیا نه) پورته کړی شي، تردې چې هیڅ کوم عالم به پاتې نه شي نو | | | | | | | |
| اتَّخَذَ | النَّاسُ | رُءُوسًا | جُهَّالًا | فَسُئِلُوا | فَأَفْتَوْا | بِغَيْرِ | عِلْمٍ |
| خلک به جاهلان پیشوا جوړ کړي د هغوئ نه به د مسئلو پوښتنې کوي او هغوی به د علم نه بغیر فتوی ورکوي | | | | | | | |
| فَضَلُّوْا وَأَضَلُّوْا. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. | | | | | | | |
| لهذا په خپله به هم ګمراه شي او خلک به هم ګمراه کړي. | | | | | | | |

**توضیح: لایقبض العلم:** الله تعالی چونکه فیاض او سخي بادشاه دی او عام عادت دی چې سخي کله سخاوت وکړي په یو چا مهرباني وکړي نو بیا یې د هغه نه واپس بیرته نه اخلي، الله تعالی چې کله په یو چا باندې د علم انعام وکړي نو بیا د هغه اخیستل کیدی نه شي، هو د علم پورته کیدو او ختمیدو صورت دا کیدی شي چې الله تعالی علماء پورته کړي، نو هر کله چې لوی علماء پورته کړی شي نو د هغوی نه وروسته به د هغو ځای خالي پاتې شي، او چونکه خلک په مسائلو کې د علماؤ طرف ته رجوع کوي نو هر کله چې علماء د ټولې دنیا نه پورته کړی شي نو د مسائلو په معلومولو کې به خلک جاهلان خپل ستر پیشوایان جوړ کړي، او هغوی چونکه جاهلان دي نو غلطې مسئلې به ورزده کوي، او غلطې فتوې به ورکوي، لهذا په خپله به هم ګمراه کیږي او نور به هم ګمراه کوي. (المرقات ۱/۴۶۱).

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۱/۱۹۴، رقم الحديث: ۱۰۰، ومسلم في الصحيح ۴/۲۰۵۸ رقم الحديث: ۱۳-۲۶۷۳، والترمذي ۵/۳۰ رقم الحديث: ۲۶۵۲، وابن ماجة ۱/۲۰، رقم الحديث: ۵۲

رؤسا : يعنې جاهلان به پیشوایان جوړ کړي، دلته د سر لفظ عجیب معنی ورکوونکی لفظ دی، ځکه چې سر د انسان هغه برخه ده کومې ته چې بلد العلماء ویل شوي دي، ځکه چې د علم ټول وسائل او ذرائع په سر کې دي، مثلا قوت مدرکه او ادراک په سر کې دي، قوت باصره قوت شامه قوت سامعه قوت ذائقه قوت لامسه ټول په سر کې دي، نو دا د علماؤ بنار شو، ددې حدیث مطلب دا دی چې خلک به جاهلان د علم مرکز جوړ کړي نو گمراه به شي، ځکه چې د جاهل دماغ چاته رڼائي نه شي ورکولی بلکه هم تیارې ورکولی شي. (المرقات ۱/۴۶۱).

## هره ورځ وعظ او نصیحت مه کوئ

| |
|---|
| (۱۰) وَعَنْ شَقِيقٍ رحمه الله قال كَانَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ يُذَكِّرُ النَّاسَ فِي كُلِّ خَمِيسٍ |
| د شقیق رَحِمَهُ اللّٰه روایت دی چې ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ به د هرې پنجشنبې په ورځ د خلکو پر وړاندې نصیحت |
| فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ لَوَدِدْتُ أَنَّكَ ذَكَّرْتَنَا فِي كُلِّ يَوْمٍ |
| کولو یو کس ورته وویل: ای ابو عبدالرحمن! زما خواهش دی چې ته زمونږ په مینځ کې هره ورځ نصیحت |
| قَالَ أَمَا إِنَّهُ يَمْنَعُنِي مِنْ ذَلِكَ أَنِّي أَكْرَهُ أَنْ أُمِلَّكُمْ |
| وکړې، ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وویل : زه داسې ځکه نه کوم چې په دې سره به تاسو خلک تنگ شئ، زه د |
| وَ إِنِّي أَتَخَوَّلُكُمْ بِالْمَوْعِظَةِ كَمَا كَانَ رَسُولُ اللهِ |
| نصیحت په معامله کې ستاسو خبر داسې اخلم لکه څرنگه چې زمونږ د نصیحت په معامله کې رسول الله |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَوَّلُنَا بِهَا مَخَافَةَ السَّآمَةِ عَلَيْنَا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).[1] |
| صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کړي وو، او زمونږ د زړه تنگیدو به یې هم خیال ساتلو. |

**توضیح** : حضرت شقیق رَحِمَهُ اللّٰهُ تابعي دی ده هره ورځ د ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه د وعظ او نصیحت کولو غوښتنه وکړه، حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ یې مطالبه رد کړه، په کومې سره چې امت ته دا تعلیم ملاویږي چې د وعظ نصیحت دعوت او تبلیغ په معامله کې د اعتدال او احتیاط نه کار اخیستل په کار دي، هر وخت په هر ځای کې وعظ او نصیحت کول نه دي کول په کار. ځکه چې په دې سره د خلکو زړونه تنگیږي او هغوی د دین خبره بوج محسوسوي، او د دین خبره بوج محسوس کول په حقیقت کې د نفرت ذریعه ده، او د دین د خبرې نه نفرت کول د کفر باعث دی، نو کثرت وعظ د یا د وعظ اوږدوالي انجام

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۶۲/۱ ،رقم الحديث :۶۸، ومسلم في الصحيح ۲۱۷۳/۴ رقم الحديث : ۸۳-۲۸۲۱.

څو مره خطرناک شو او د رشد او هدايت پر ځای رحمت زحمت جوړ شي د ګمراهی ذريعه جوړه شي.
نن سبا خلک دديّ خيال نه کوي او مسلسل په وعظ او نصيحت کولو کې اخته وي، د درس او تدريس معامله دديّ نه جدا ده، په هغه کې تسلسل مستند او منقول دی، د پنجشنبې په ورځ ابن مسعود رضي الله عنه د جمعې ورځې د عظمت او قرب د وجهي منتخب کړې وه. (المرقات ۱/۴۶۱).

| |
|---|
| (۱۱) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ أَعَادَهَا ثَلَاثًا |
| د انس رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به کله کومه خبره کوله نو هغه به يې درې ځلې کوله |
| حَتّٰى تُفْهَمَ عَنْهُ وَ إِذَا أَتٰى عَلٰى قَوْمٍ |
| تردې چې خلک په هغې په ښه طور پوهه شي او کله به چې رسول الله صلی الله علیه وسلم کوم جماعت ته راتلو |
| فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ سَلَّمَ عَلَيْهِمْ ثَلَاثًا. (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1]. |
| او د سلام کولو اراده به يې وکړه نو درې ځلې به يې سلام کولو. |

**توضيح: اعادها ثلاثا:** رسول الله صلی الله علیه وسلم هره خبره درې ځلې نه راګرځوله بلکې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د درې ځلو ضرورت په هغه وخت کې پيدا کيده کله به چې نبي علیه السلام سره د آوريدونکو د نه پوهيدو ويره وه. د حديث دويم مطلب دا دی چې مهمه او علمي خبره به يې درې ځلې راګرځوله، ترڅو چې په اول ځل ذکي انسان پوهه شي په دويم وار د متوسط ذهن انسان او په دريم ځل غبي انسان پوهه شي، رسول الله صلی الله علیه وسلم هره خبره نه راګرځوله، په حديث کې قرينه هم موجوده ده، چې خلکو د نبي علیه السلام خبرې زده کولې، دا الفاظ د دې خبرې دليل دی چې هره خبره يې نه راګرځوله. (المرقات ۱/۴۶۲).

**سلم عليهم ثلاثا:** يعنې کله به چې مجلس ته راغی سلام به يې اچولو نو درې ځلې به يې سلام کولو، دا عادت شريفه يې هغه وخت وو کله به چې مجلس غټ وو، نو رومبی سلام به د ده صلی الله علیه وسلم په راتلو باندې وو، دويم سلام د مجلس ښي طرف ته او دريم سلام د مجلس چپ طرف ته.
يا دا مطلب دی چې د مجلس په اوله برخه کې اول سلام او د مينځ په برخه کې دويم سلام او مقام مقصود ته د رسيدو وروسته يا د رخصت په وخت کې دريم سلام وو، دا سې نن سبا هم کيدی شي، د حديث همدا مطلب نه دی چې په يوه ځای کې دې درې ځلې سلام واچول شي. (المرقات ۱/۴۶۲).

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱/۱۸۸، رقم الحديث: ۹۵، واخرجه الترمذي ۵/۶۸ رقم الحديث: ۲۷۲۳.

## د نيکۍ راهنمائي هم نيکي ده

(۱۲) وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دابو مسعود انصاري رضي الله عنه نه روايت دی چې يو کس د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو

فَقَالَ إِنَّهُ أُبْدِعَ بِي فَاحْمِلْنِي فَقَالَ

او وې ويل چې زما سورلی د تللو نه عاجزه شوې ده تاسو ما ته سورلۍ راکړئ رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل

مَا عِنْدِي فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللهِ أَنَا أَدُلُّهُ عَلَى مَنْ

د ما سره سورلۍ نشته (چې تا ته يې درکړم) يو کس وويل يا رسول الله ! زه به دا سې کس ورته وښايم کوم

يَحْمِلُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ دَلَّ عَلَى خَيْرٍ

به چې سورلۍ ورکړي، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې کوم کس د کومې نيکۍ طرف ته رهنمائي وکړي

فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِ فَاعِلِهِ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

نو هغه ته هغو مره ثواب ورکول کيږي څومره چې دې راهنمائي باندې عمل کوونکي ته ورکول کيږي.

**توضيح : ابدع بي:** دا لفظ د ابداع نه ماخوذ دی بديع نوي کار ته ويل کيږي، يعنې د ما سره عجيبه لوبه وشوه عيجبه نوې خبره وشوه، په عربي محاوره کې دا لفظ د اوښ وغيره سورلۍ په لار کې د عاجز کيدو د وجې ويل کيږي، دا حديث د الدال على الخير كفاعله په شان دی. (المرقات ۴۶۲-۱/۴۶۳).

## د فقيرانو د پاره د چندې اعلان

(۱۳) وَعَنْ جَرِيرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا فِي صَدْرِ النَّهَارِ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د جرير رضي الله عنه نه روايت دی چې يو ورځ مونږ وو دورځې په اوله حصه کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره،

فَجَاءَهُ قَوْمٌ عُرَاةٌ مُجْتَابِي النِّمَارِ أَوِ الْعَبَاءِ

نو راغی يو قوم نبي عليه السلام ته چې لغړ وو په څادرو او يا په عبايا کمبلو کې يې ځان راتاو کړی وو او په

ب

(۱) اخرجه مسلم في الصحيح ۱۵۰۶/۳ رقم الحديث: ۱۳۳-۱۸۹۳، وأبو داود رقم الحديث: ۵۱۲۹، والترمذي ۴۰/۵ رقم الحديث: ۲۶۷۱، وأحمد في المسند ۱۲۰/۴.

مُتَقَلِّدِي السُّيُوفِ عَامَّتُهُمْ مِنْ مُضَرَ بَلْ كُلُّهُمْ مِنْ مُضَرَ فَتَمَعَّرَ

غاړو كې يې توري راځوړندې كړې وې، په هغوى كې زياتره بلكې ټول د مضر قبيلې خلك وو نو بدل شو

وَجْهُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لِمَا رَأَى بِهِمْ مِنَ الْفَاقَةِ

رنګ د مخ مبارك د نبي عليه الصلاة والسلام كله يې چې ددوي دلوږې اثر وليد رسول الله صلى الله عليه وسلم (هغوى

فَدَخَلَ ثُمَّ خَرَجَ

ته دډودۍ پيدا كولو دپاره) كورته تشريف ويووړ او (كله يې چې په كور كې څه پيدا نه كړه) بيرته يې تشريف

فَأَمَرَ بِلَالًا فَأَذَّنَ وَ أَقَامَ

راوړ او حضرت بلال رضي الله عنه ته يې (داذان كولو) حكم وكړ حضرت بلال رضي الله عنه اذان وكړ او تكبير يې وويلو

فَصَلَّى ثُمَّ خَطَبَ فَقَالَ

او د (جمعه يا د ماسپښين) مونځ يې راكړو بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم خطبه وويله او دا آيت يې تلاوت كړ

يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ

(ترجمه) اى خلكو ! د خپل پروردګار نه ووېرېږئ كوم چې تاسو د يوه نفس ( آدم ) نه پيدا كړي ياست،

إِلَى آخِرِ الْآيَةِ إِنَّ اللهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا وَ الْآيَةُ الَّتِي

ټول آيت يې تلاوت كړ چې آخرنۍ برخه داده: يقينًا الله تعالى ستاسو ساتونكى دى او بيا يې هغه آيت چې

فِي الْحَشْرِ اتَّقُوا اللهَ وَ لْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَا قَدَّمَتْ لِغَدٍ

په سورت حشر كې دى (ترجمه) اى ايماندارو ! د الله نه ووېرېږئ او هر كس د ځان دپاره سبا (د قيامت)

تَصَدَّقَ رَجُلٌ مِنْ دِينَارِهِ

دپاره چې كومه ذخيره ليږلې ده بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: خيرات وكړئ هر كس د خپلو دينارو نه

مِنْ دِرْهَمِهِ مِنْ ثَوْبِهِ مِنْ صَاعِ بُرِّهِ مِنْ صَاعِ تَمْرِهِ حَتَّى قَالَ

د خپلو درهمو نه، د خپلو جامو نه، د خپلو غنمو له پيمانو نه تردې پورې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل

وَ لَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ قَالَ فَجَاءَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ

خيرات وكړئ اګر كه د كجورې ټوټه ولې نه وي. راوي وايي دي چې يو انصاري كس راووړه (د دينارو يا

| |
|---|
| بِصُرَّةٍ كَادَتْ كَفُّهُ تَعْجَزُ عَنْهَا بَلْ قَدْ عَجَزَتْ ثُمَّ |
| درهمو نه ډکه خلته) د کومې د وزن نه چې د هغه لاس عاجز کېدو ته نزدې وو، بلکې عاجز شوی وو، بيا |
| تَتَابَعَ النَّاسُ حَتَّى رَأَيْتُ كَوْمَيْنِ مِنْ طَعَامٍ وَ ثِيَابٍ حَتَّى رَأَيْتُ |
| خلکو پيوسته د شيانو راوړل شروع کړل تردې چې ما دوه امبارونه د غلې او د جامو وليدل بيا ما وليدل |
| وَجْهَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَهَلَّلُ كَأَنَّهُ مُذْهَبَةٌ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| چې دنبي عليه الصلاة والسلام مبارک مخ (دخوشحالۍ د وجې) پرقيده، بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: |
| مَنْ سَنَّ فِي الْإِسْلَامِ سُنَّةً حَسَنَةً فَلَهُ أَجْرُهَا وَ أَجْرُ مَنْ |
| کوم کس چې په اسلام کې کومه نيکه طريقه رواج کړي د هغې هم ثواب ورکول کيږي او د هغه ثواب هم |
| عَمِلَ بِهَا مِنْ بَعْدِهِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَنْقُصَ مِنْ أُجُورِهِمْ شَيْءٌ ، |
| کوم چې دده نه وروسته په هغې باندې عمل وکړي، ليکن دعمل کوونکي په ثواب کې هيڅ کمی نه راځي |
| وَ مَنْ سَنَّ فِي الْإِسْلَامِ سُنَّةً سَيِّئَةً كَانَ عَلَيْهِ وِزْرُهَا وَ وِزْرُ مَنْ |
| اوکوم کس چې په اسلام کې بده طريقه رواج کړه نو هغه ته دهغې هم گناه شته، اودهغه کس هم کوم چې |
| عَمِلَ بِهَا مِنْ بَعْدِهِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَنْقُصَ مِنْ أَوْزَارِهِمْ شَيْءٌ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| د هغه نه وروسته عمل ورباندې وکړي، ليکن د عمل کوونکي په گناه کې به هيڅ کمی رانه شي. |

**توضيح**: **قوم عراة**: يعني ديو قوم خلک راغلل او هغه خلک په بدن باندې لغړ وو يعني جامه يې کمه وه، د ټول بدن دپاره يې جامه پوره نه وه، هغه جامه د وړې هم وه او شيرې شوې هم وه. (المرقات ۱/۴۶۳).

**مجتابي النمار**: اجتياب په جامه کې د تاويدو په معنی دی، او نمار د نمر نه دی دا هغې جامې ته ويل کيږي په کومه کې چې سپين خطونه وي، او کومه چې د گډو او بزو د ويښتانو نه گډه جوړه شوې وي، دا خلک بنو مضر وو کوم چې اول کافر وو او د قبيلې د عبدالقيس دشمنان وو، دې مجاهدينو جامې نه لرلې، مگر د جهاد دپاره يې توري ترلي وې، په کوم سره چې د نن ورځ د مسلمانانو سترگې خلاصيدل په کار دي، کوم چې د وسلو نه نفرت کوي او د دنيا د عيش سره محبت کوي. (المرقات ۱/۴۶۳).

**فتمعر**: د مخ تغير کيدو ته ويل کيږي، رسول الله صلى الله عليه وسلم د دوی د لوږې د وجې په تکليف کې شو.

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۲/۷۰٤ رقم الحديث: ٦٩-١٠١٧، والترمذي ٥/٧٥ رقم الحديث: ٢٦٧٥، وأحمد في المسند ٤/٣٥٩.

**تصدق**: دا د ماضي صيغه ده کومه چې خبر دی مګر دلته د انشاء په معنی سره راغلې ده. يعني د هر انسان نه چې څه کيدی شي هغه دې صدقه کړي، علامه ابن انباري رَحِمَهُ الله ويلي دي چې دلته په تصدق کې لام امر محذوف دی، په اصل کې ليتصدق وو، لهذا دا د امر غائب صيغه شوه، يعني هر انسان ته صدقه کول په کار دي. (المرقات ۱/۴۶۵، الکاشف ۱/۴۰۵).

**رجل**: نکره مفرد ده کومه چې د جمع په ځای راغلې ده: **(ای ليتصدق کل احد من درهمه من دیناره)**.

**صرة**: خلتې (کڅوړې) ته ويل کيږي، چونکه دا وخت درهم او دينار د سکې په صورت کې وو نو ځکه د خلتې پورته کول د دې کس د پاره مشکل شوي وو. (المرقات ۱/۴۶۶).

**کومين**: کوم ډيري ته ويل کيږي، چونکه د غلې او جامو ډيري جوړيدی شي نو ځکه دلته د ډيري ذکر راغلی دی، او د درهم او دينار عادةً ډيری نه وي نو ځکه يې د هغو ذکر هم نه دی کړی (المرقات ۱/۴۶۶).

## د بدۍ بنياد ايښودل هم بدي ده

| |
|---|
| **(۱۲)** وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُقْتَلُ نَفْسٌ ظُلْمًا |
| دابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: کوم کس چې د ظلم په طريقه قتل |
| إِلَّا كَانَ عَلَى ابْنِ آدَمَ الْأَوَّلِ كِفْلٌ مِنْ دَمِهَا لِأَنَّهُ أَوَّلُ مَنْ |
| کړی شي نو د هغه د وينې يوه برخه د آدم په لومړي زوی (قابيل) باندې ده ځکه چې هغه اولنی کس دی کوم |
| سَنَّ الْقَتْلَ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| چې د قتل طريقه راويستله. |
| وَ سَنَذْكُرُ حَدِيثَ مُعَاوِيَةَ لَا يَزَالُ مِنْ أُمَّتِي فِي بَابِ ثَوَابِ هٰذِهِ الْأُمَّةِ |
| او د معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه حديث د کوم چې ابتداء دا ده: **لايزال طائفة من امتي**، په باب د **ثواب هذه الامة** |
| إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى. |
| کې بيان کړو ان شاء الله (مګر حضرت هير کړی دی). |

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۳۶۴/۶، رقم الحديث: ۳۳۳۵، ومسلم في الصحيح ۱۳۰۳/۳، رقم الحديث: ۲۷-۱۶۷۷، والترمذي ۱/۵، رقم الحديث: ۲۶۷۳، وابن ماجة ۸۷۳/۲، رقم الحديث: ۲۶۱۶

۱۰ صفر ۱٤۱۰ھ

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## د عالمانو او طالبانو فضیلت

| |
|---|
| (۱۵) عَنْ كَثِيرِ بْنِ قَيْسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا مَعَ أَبِي الدَّرْدَاءِ فِي مَسْجِدِ دِمَشْقَ |
| د کثیر ابن قیس نه روایت دی چې زه د (صحابي) ابو الدرداء رضي الله عنه سره په د مشق کې په یو جومات کې ناست |
| فَجَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا أَبَا الدَّرْدَاءِ إِنِّي جِئْتُكَ مِنْ مَدِينَةِ رَسُولِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَدِيثٍ |
| وم چې هغه ته یو کس راغی او وې ویل: ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ښار نه یو حدیث د رته راوړی دی د |
| بَلَغَنِي أَنَّكَ تُحَدِّثُهُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا جِئْتُ |
| کوم په باره کې چې ماته معلومه شوې ده چې هغه تا د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نقل کړی دی تا ته زه ما د راتلو |
| لِحَاجَةٍ قَالَ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د دې نه بغیر بل هیڅ غرض نشته دایې چې واوریده ابو الدرداء رضي الله عنه وویل: ما د نبي علیه السلام نه آوریدلي |
| يَقُولُ مَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَطْلُبُ فِيهِ عِلْمًا |
| چې فرمایل یې: کوم کس چې کوم ه لار (هغه که اوږده وي که لنډه وي) د علم دین حاصلو لو د پاره غوره کړي |
| سَلَكَ اللهُ بِهِ طَرِيقًا مِنْ طُرُقِ الْجَنَّةِ وَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ لَتَضَعُ أَجْنِحَتَهَا رِضًا لِطَالِبِ الْعِلْمِ |
| نو الله تعالی به هغه د جنت په لار روان کړي او فرښتې د طالب العلم د رضا مندۍ د پاره خپل وزرونه غوړوي |
| وَإِنَّ الْعَالِمَ يَسْتَغْفِرُ لَهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ |
| او د عالم د پاره هر هغه شی کوم چې په آسمانونو کې دي (یعني فرښتې) او کوم چې په د ځمکې د پاسه دي |
| وَالْحِيتَانُ فِي جَوْفِ الْمَاءِ وَإِنَّ فَضْلَ الْعَالِمِ |
| (یعني جن او انس) او ماهیان کوم چې په اوبو کې دننه دي د مغفرت دعاګانې کوي، او فضیلت د عالم |
| عَلَى الْعَابِدِ كَفَضْلِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ عَلَى سَائِرِ الْكَوَاكِبِ وَإِنَّ الْعُلَمَاءَ |
| په عابد باندې داسې دی لکه د څوارلسمې سپوږمۍ چې په ټولو ستورو باندې فضیلت لري او علماء د |
| وَرَثَةُ الْأَنْبِيَاءِ وَإِنَّ الْأَنْبِيَاءَ لَمْ يُوَرِّثُوا دِينَارًا وَلَا دِرْهَمًا وَإِنَّمَا وَرَّثُوا الْعِلْمَ فَمَنْ أَخَذَهُ |
| انبیاو وارثان دي، انبیاؤ په میراث کې دینار او دراهم نه دي پرېښي، د هغو میراث علم دی لهذا چې علم |

| |
|---|
| أَخَذَ بِحَظٍّ وَافِرٍ.[1] |
| حاصل كړ هغه كامله برخه حاصله كړه. |
| وَ سَمَّاهُ التِّرْمِذِيُّ قَيْسَ بْنَ كَثِيرٍ. |
| اوترمذي دراوي نوم قيس بن كثير ذكر كړى ليكن صحيح كثير بن قيس دى لكه صاحب د مشكوة نقل كړى دى. |

**توضيح : في مسجد دمشق :** دمشق د صحابه كرامو رضي الله عنهم مركز وو، او د دين د سپاهيانو شاهره او د فوځونو بندرګاه وه، ددې ځاى نه صحابه كرام لاړل په افريقه كې يې جهاد كاوه، د صحابه كرامو دا طريقه امتيازي وه چې هغوى د علم او طلب علم دپاره هر رنګ مشكلات برداشت كول، په دغه باره كې د يوه صحابي دغه سفر دى، شوق او ذوق ته يې اوګورئ چې د مدينې نه تر شام پورې تقريبًا اته سوه كلوميټره سفر يې يوازې ددې حديث دپاره وكړو، بل مقصد يې نه وو. په بعضې روايتونو كې راغلي چې دا صحابي د سورلۍ نه لاندې هم نه دې راكوز شوې ددې د پاره چې دا سفر خالص د علم د پاره وګرځي سبحان الله ! د خلوص نيت يې كوم مقام وُ. (المرقات ۱/۴۶۹).

**انك تحدثه :** داسې معلوميږي چې مجملاً هغه ته حديث معلوم وو، د تفصيل معلومولو په غرض يې دا سفر وكړه، يا د حديث واسطه ورته معلومه وه او هغه غوښتل چې په خپله يې دابو الدرداء رضي الله عنه نه واوري د سند علو هم حاصله كړي او د سند واسطه هم ختمه شي **الاسناد من الدين ولولا الاسناد لقال من شاء ما شاء.** حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه چې د هغه د علم شوق وليده نو هغه ته يې دا حديث د زيرې په شكل واورولو ترڅو چې هغه خوشحاله شي، او د هغه مطلوبه حديث شايد كوم بل يو وُ، او دا احتمال هم شته چې د كوم حديث د آوريدو دپاره دغه صحابي د دمشق په اوږده سفر باندې تلى وو دا هماغه حديث وي، كه چيرته همداسې وي نو دا عجيب اتفاق شو چې حديث هم په لاس ورغى او د حال مناسب زيرى هم په لاس ورغى **وهذا هو اعجب واغرب والاول هو اقرب** (ملا علي قاري).(المرقات ۱/۴۶۸).

**يطلب فيه علماً : اى علم الدين لوجه الله لا لاجل الدنيا.** (المرقات ۱/٤٦٨).

**لتضع :** د اعزاز اكرام او تواضع په طور فرښتې وزر ورته غوړوي لكه د كوم بادشاه د اعزاز دپاره چې د هغه موټر ته ترڅو ميله پورې قالين غوړول كيږي په كومو باندې چې د هغه موټر روان وي. علامه حافظ توربشتي رحمه الله ويلي دي چې په دې كې هيڅ استبعاد نشته چې دا كلام په حقيقت باندې محمول كړى

---

(۱) رواه أحمد ۵/۲۹٦، والترمذي ۵/٤۷، رقم الحديث : ۲٦۸۲، وأبو داود ۳٦٤۱، وابن ماجه ۲۲۳، والدارمي.

شي او مونږ دې هغه نه وينو، ويل شوي دي چې كوم طالب العلم خپله پښه په زوره په زمكه ووهله چې د فرښتې وزر چيرته دي چې زه هغه چكني كړم نو د هغه پښې شلې شوې.
دا احتمال هم شته چې دا حديث په مجاز باندې محمول شي، يعني فرښتې تواضع او انكسار كوي، يعني د وزر غوړول د علم په طلب باندې د الهي رحمت د نزول نه كنايه ده. (المرقات ۱/۴۶۹).

**يستغفر له من في السموات** : په دې كې د فرښتو او د مؤمنانو ارواح داخل دي، دا مغفرت د جنس علماو دپاره غوښتل كيږي.

**سوال** . دلته دا سوال پيدا كيږي چې دغه شيان مثلا **حشرات الارض بهائم او حيتان في البحر** وغيره غير ذي عقل دي (يعني عقل نه لري) نو دوى ته د علماؤ څه معلومات وشو چې د هغوى دپاره استغفار وكړي، همدارنګه هغوى د علماؤ دپاره د استغفار او دعا دا تكليف ولې كوي؟.
**جواب** : د سوال د لومړي شق جواب دا دى چې كومو شيانو ته وجود وركړى شوى دى د هغو د وجود سره سره په محدوده پيمانه باندې يو څه علم هم وركړى شوى دى، لكه څرنګه چې كاڼو په رسول الله ﷺ باندې سلام اچولى دى.
ځناورو او حيواناتو ته د خپل خالق او مالک علم شته دى، دارنګه هغوى ته د مرګ او د قيامت اجمالي علم هم شته، د هغوى په اجمالي علم كې دا هم شته چې د دوى بقاء او د كائناتو بقاء د دين د بقاء سره تړل شوي دي، او د دين اسلام بقاء په علم او علماؤ پورې تړل شوې ده كه چيرته دين پاتې نه شي نو د كائناتو وجود به هم پاتې نه شي. د همدې وجې نه هر مرغه او غير مرغه د علماؤ د بقاء دپاره دعا غواړي.

**علماء په درې قسمه دي** : (۱) **عالم بامر الله** (۲) **عالم بالله** (۳) **عالم بالله وعالم بامر الله**. اول قسم هغه دى كوم چې په مسائلو كې دير ماهر دي ليكن د رب العلمين مظهر جلال او جمال جوړ شوي نه دي.
دويم هغه دي چې فرضي احكام پيژني مګر د احكامو مصادر او مناشي نه پيژني، هو د رب العلمين مظهر جلال او جمال جوړ شوي دي. دريم هغه دي چې د احكامو ماهر هم دي او د احكامو مصادر او مناشي هم پيژني، او د رب العلين مظهر جلال او جمال هم جوړ شوي دي. د اول قسم عالم نه دې صرف د مسائلو تپوس وشي د هغه په مجلس كې كيناستل نه دي په كار. د دويم قسم نه دې د مسائلو تپوس نه كيږي، خو د هغو په مجلس كې كيناستل خامخا په كار دي. او دريم قسم كبريت احمر دي، د هغوى نه د مسائلو تپوس كيږي او د هغوى په مجلس كې كيناستل هم په كار دي، د كائناتو حشرات او حيوانات ددې دريم قسم علماؤ دپاره دعاګانې كوي.

**وان فضل العالم** : يعني كومو ته چې د احكامو د مناشي او مآخذو معلومات هم وي او ورسره ورسره عالم بالله هم وي. (المرقات ۱/۴۷۱).

**کفضل القمر** : دا عجیبه تشبیه ده، ځکه لکه څرنګه چې د سپوږمۍ په رڼائي سره ټول جهان منور وي د داسې عالم په علم سره هم جهان منور وي، او لکه څرنګه چې د سپوږمۍ رڼائي د نمر د رڼائي نه حاصله او مستفاده ده، د همداسې علماؤ د علم رڼائي د نبوت د علم نه مستفاده ده.

د عوامو مثال د ستورو په شان دی او علماء د سپوږمۍ په شان دي او د رسول الله ﷺ رسالت د لمر په شان دی، لکه څرنګه چې د سپوږمۍ پر وړاندې ستوري بې نوره کیږي او د لمر په شتون کې سپوږمۍ نه ښکاري همدارنګه د علماؤ په شتون کې د عوامو علم هیڅ حیثیت نلري، او د رسول الله ﷺ د علم پر وړاندې د علماؤ علم هیڅ حیثیت نه لري. (المرقات ۱/۴۷۱).

**وان العلماء ورثة الانبیاء** : وارث هغه څوک کیدی شي کوم چې د مورث په ټول مال او جایداد کې برخه ولري، که چیرته یوائې په یوه شي کې برخه لرونکی وي هغه وارث کیدی نه شي بلکې قرض غوښتونکی دی، نو د رسول الله ﷺ وارث هغه علماء شول کوم چې د رسول الله ﷺ د اخلاقیاتو، د هغه ﷺ د معاملاتو، د هغه ﷺ د علومو، اماناتو دیاناتو، معاشیاتو او د معاشرت جامع وي، د رسول الله ﷺ د دعوت، جهاد او د هغه ﷺ د عباداتو او ریاضاتو امین شي، په یوه شعبه پسې سریش شوی وارث کیدی نه شي، معلومه شوه چې د علماو نه دلته مراد عالم بامر الله او عالم بالله دي. (المرقات ۱/۴۷۱).

**لم یورثوا دینارا** : ددې جملې نه معلومه شوه چې انبیاء کرامو علیهم السلام مادي میراث نه دی پریښی بلکې روحاني میراث یعنې علم یې پریښی دی، نو روافض په خپل دې قول کې په غلطه دي چې حضرت فاطمې رضی الله عنها ته رسول الله ﷺ میراث نه دی ورکړی، مونږ ترې تپوس کوو کله چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې زما میراث نه شي ویشل کیدی **(ما ترکناه فهو صدقة)** کوم څه چې ما پریښي دي هغه په ټولو مسلمانانو باندې صدقه دي نو میراث د کومه پیدا شو؟ ځکه که فرض کړو چې میراث وو نو رسول الله ﷺ په خپل ژوند کې ولې تقسیم نه کړو؟ یا حضرت علي رضی الله عنه چې کله خلیفه جوړ شو نو هغه ولې تقسیم نه کړو؟ او د فدک باغ یې بیرته واپس ولې وانخستلو؟. (المرقات ۴۷۱-۱/۴۷۲).

## په عابد باندې د عالم فضیلت

| |
|---|
| **(۱۶)** وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ ذُكِرَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلَانِ |
| د ابو امامه باهلي رضی الله عنه نه روایت دی چې د رسول الله ﷺ پر وړاندې د دوه کسانو یادونه وشوه |

| |
|---|
| أَحَدُهُمَا عَابِدٌ وَ الْآخَرُ عَالِمٌ |
| په كوموكې چې يو عابد ؤ او بل عالم ؤ (يعني دهغه ﷺ نه پوښتنه وشوه چې په دوى دواړو كې |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَضْلُ الْعَالِمِ عَلَى الْعَابِدِ كَفَضْلِي |
| كوم يو افضل دى؟) رسول الله ﷺ وفرمايل عالم ته په عابد باندې داسې فضيلت دى لكه زما فضيلت |
| عَلَى أَدْنَاكُمْ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| په هغه كس باندې كوم چې په تاسو كې دادنى درجې وي بيا دې نه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل |
| إِنَّ اللهَ وَ مَلَائِكَتَهُ وَ أَهْلَ السَّمَاوَاتِ وَ الْأَرْضِ حَتَّى النَّمْلَةَ فِيْ جُحْرِهَا |
| دشك نه غير الله تعالى، فرښتې په آسمانونو او زمكه كې ټول مخلوقات تر دې چې ميږيان په خپلو سوړو كې |
| وَ حَتَّى الْحُوتَ لَيُصَلُّونَ عَلَى مُعَلِّمِ النَّاسِ الْخَيْرَ . ( رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1]. |
| او ماهيان دهغه كس دپاره دخير دعا كوي كوم چې خلكو ته نيكي (يعني د دين علم) ورزده كوي. |
| وَ رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ مَكْحُولٍ مُرْسَلًا وَ لَمْ يَذْكُرْ رَجُلَانِ وَ |
| او دارمي دا روايت د مكحول نه په مرسل طريقې سره نقل كړې په كوم كې چې د رجلان لفظ نشته دى، او |
| قَالَ فَضْلُ الْعَالِمِ عَلَى الْعَابِدِ |
| ويل شوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: په عابد باندې د عالم داسې فضيلت دى لكه څرنګه |
| كَفَضْلِي عَلَى أَدْنَاكُمْ ثُمَّ تَلَا هٰذِهِ الْآيَةَ |
| چې زما ستاسو په ادنى كس باندې دى، بيا رسول الله ﷺ دا آيت كريمه تلاوت كړ: ترجمه: د |
| إِنَّمَا يَخْشَى اللهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ وَ سَرَدَ الْحَدِيثَ إِلَى آخِرِهِ . |
| الله تعالى په بندګانو كې علماء د الله نه ويريږي، او بيا يې ټول حديث تر آخره پورې په همدې طريقه بيان كړ. |

**توضيح ، كفضلي على ادناكم:** ددې نه مخكې چې كوم حديث تير شوى دى په هغه كې مكمله تشريح راغلې ده، دا حديث هم د هغه په شان دى صرف دا مذكوره جمله په جدا اندازه سره ده د هغې توضيح دا ده چې دا نسبت د غير متناهي نسبت دى، ځكه چې په كائناتو كې د نبي درجه او رتبه تر هغې اندازې

---

(١) اخرجه الترمذي ٤٨/٥ ، رقم الحديث : ٢٦٨٥.

لوړه ده د كومې نه چې وروسته د الله تعالى شان دى، نو د رسول الله ﷺ د ادنى امتي او د خپلې لوړې مرتبې په تفاوت سره يې د عالم او عابد تشبيه وركړې ده، لهذا لكه څرنګه چې د حديث په تشبيه كې نسبت غير متناهي دى همدارنګه د عالم او غير عالم عابد نسبت هم غير متناهي دى، نو لكه څرنګه چې د رسول الله ﷺ د فضيلت اندازه د يوه ادنى امتي په مقابل كې نه شي لګيدلى همدارنګه د يو عالم د فضيلت اندازه د يو غير عالم په مقابل كې نه شي لګيدلى. (المرقات ۱/۴۳۳).

## د ديني مدارسو طالبان د رسول الله ﷺ ميلمانه دي

| |
|---|
| (۱۷) وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ النَّاسَ لَكُمْ |
| د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل: خلک ستاسو يعنې |
| تَبَعٌ وَ إِنَّ رِجَالًا يَأْتُونَكُمْ مِنْ أَقْطَارِ الْأَرْضِ يَتَفَقَّهُونَ فِي الدِّينِ |
| د صحابو تابع دي او ډير خلک د علم دين زده كولو د پاره د دنيا د اطرافو نه ستاسو طرف ته راځي، |
| فَإِذَا أَتَوْكُمْ فَاسْتَوْصُوا بِهِمْ خَيْرًا . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1]. |
| لهذا كله چې هغوى تاسو ته راشي نو د هغو سره د نيكۍ معامله وكړئ. |

**توضيح : ان الناس لكم تبع** : يعنې په دين كې ستاسو تابع دي، تاسو خلک به د راتلونكو خلكو د پاره متبوع ياست، هغوى به ستاسو په نقش قدم باندې ځي او ستاسو په زمانه كې به تاسو ته راشي هغوى به د تاسو نه علم زده كوي، ددې حديث نه دا خبره په واضح طور ثابته شوې چې صحابه كرام د راتلونكي امت د پاره د حق معيار دى، مودودي صاحب په دې خبره كې د امت لار پريښې ده. (المرقات ۱/۴۷۳).

**فاستوصوا** : د دې جملې يو مطلب دا دى چې زه تاسو ته نصيحت كوم تاسو د هغوى په باره كې زما وصيت قبول كړئ او د هغوى سره نيكي وكړئ، دويم مطلب دا دى هغه خلک چې كله تاسو ته راشي نو هغوى ته د خير او نيكۍ وصيت وكړئ په دې كې كوتاهي ونه كړئ، د هغو ښه تربيت وكړئ، ددې حديث نه ثابته شوه چې د ديني مدارسو طالبان د رسول الله ﷺ ميلمانه دي ، لهذا د دوى بې قدري كول نه دي په كار، الحمد لله د حديث دغه نقشه په مدارسو كې نن هم موجوده ده. (المرقات ۱/۴۷۵).

(۱) أخرجه الترمذي ۵/۳۰، رقم الحديث : ۲۶۵۰.

## علمي نکته ورک شوی متاع دی

| |
|---|
| (۱۸) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَلِمَةُ الْحِكْمَةُ |
| د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : (په دین کې) د فایدې والا خبره |
| ضَالَّةُ الْحَكِيمِ فَحَيْثُ وَجَدَهَا فَهُوَ أَحَقُّ بِهَا. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ)[1]. |
| دعقلمند (اهل علم) مند مطلوب دی لهذا هغه یې چې چیرته هم پیدا کړي هغه یې مستحق دی. |
| وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْفَضْلِ الرَّاوِي |
| او امام ترمذي ویلي دي چې دا حدیث غریب دی او په دې حدیث کې یو راوي ابراهیم بن فضیل دی کوم |
| يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ ). |
| ته چې (په روایت حدیث کې) دضعیف گومان شوی دی. |

**توضیح : الكلمة الحكمة** : حافظ توربشتي رحمه الله ویلي دي چې د حکمت نه مراد فقاهت دی، د دانائي خبره او علمي نکته او علمي مسئله ده. (المرقات ۱/۴۷۵).

**فحيث وجدها** : یعنې چې چیرته هم پیدا شي همدا کس زیات مستحق دی چې هغه قبوله کړي ، ځکه لومړی هغه د نااهله سره وه او س اهل ورته پیدا شو نو د قدر دپاره یې واخیسته، مطلب دا دی چې د دین خبره ده د عمل دپاره نیک او مؤمن کس د هر چا چې هم ښه خبره واوري هغه قبلوي او عمل وربانديې کوي ﴿انظروا الی ما قیل ولاتنظروا الی من قال﴾ داسوچ مه کوه چې دا خبره خودیو کمزوري کس نه آوریدل شوې ده په هغې باندې څنګه عمل وکړم؟ چې د کوم بزرګ نه یې واورم نو عمل به وکړم. (المرقات ۱/۴۷۵). شیخ سعدي رحمه الله دا حقیقت ښکاره کړی دی :

مرد باید که گیرد اندر گوش ✿ گر نوشت است پند بر دیوار

غلط است آنچه مدعی گوید ✿ خفته را خفته کے کند بیدار

یعني انسان ته په کار دي چې هغه نصیحت قبول کړي اگر که هغه په دیوال باندې لیکل شوی وي، مدعي غلط ویلي دي چې ویده کس به ویده څنګه راپیدار کړي (او ګورئ د دیوال د نصیحت نه فایده وشوه ، خلاصه دا چې علمي نکته د مؤمن ورک شوی متاع دی).

---

(۱) اخرجه الترمذي ۵/۴۹ ، رقم الحديث :۲۶۸۷.

## يو عالم په زرو عابدانو باندې درووند دى

| |
|---|
| (۱۹) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقِيهٌ وَاحِدٌ |
| دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: يو فقيه (يعني عالم دين) |
| أَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنْ أَلْفِ عَابِدٍ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1]. |
| په شيطان باندې د زرو عابدانو نه زيات سخت دى. |

**توضيح**: **فقيه واحد**: يعني هغه عالم کوم چې احکام او مناشي هم پيژني عالم بالله او عالم بامر الله وي، د فقاهت نه مراد د اسلام په دين باندې پوهيدل دي، برابره خبره ده که هر چيرته وي او په کومه شعبه کې چې هم وي، دعابد نه مراد هغه عابد دى کوم چې فرائض پيژني، مگر د احکامو مناشي نه پيژني، د عابد نه جاهل عابد مراد نه دى ځکه چې هغه خو ډير خطرناک دى. (المرقات ۱/۴۷۶) يو چا ډير ښه ويلي دي:

فساد كبير عالم متهتک ۞ و اکبر منه جاهل متنسک

يوه قيصه ليکل شوې ده چې يو ځل په خپله ابليس حضرت عبد القادر جيلاني رحمه الله ته په شپه کې راغى او فضاء يې په مختلفو رنگونو روښانه کړه او وې ويل زه فرښته يم او الله تعالى زه را ليږلى يم چې عبد القادر ډير عبادت کړى دى او اوس هغه معاف دى هغه ته د زيات عبادت کولو ضرورت نشته.
شيخ عبد القادر جواب ورکړه چې ورک شه مردوده شيطانه: الله تعالى رسول الله صلى الله عليه وسلم د مرگ پورې د عبادت پابند جوړ کړى وو زه څوک يم کوم چې معاف شو، ابليس وويل اوس اوس ما ځلوينښت پيران په دې طريقه گمراه کړي دي مگر د تا سره لوى علم وو، علم وساتلې. شيخ ورته وويل: څه مردوده په علم سره نه بلکې د خداى په فضل سره وساتل شوم. شيخ سعدي بابا رحمه الله ښتيا ويلي دي:

صاحب دلے بمدرسه آمد ز خانقاه ۞ بشکست عهد صحبت اهل طريق را
گفتم ميان عابد و عالم چه فرق بود ۞ که تو کردی اختيار از آن اين فريق را
گفت آن گليم خويش برون مى برد ز موج ۞ واين جهد ميکند که بگيرد غريق را

**ترجمه**: يو عارف خانقاه پريښوده او مدرسې ته راغلو او د تصوف مخکنى شکل او طريقه يې ماته کړه، ما دده نه پوښتنه وکړه چې په عالم او عابد کې څه فرق وو چې تا صوفيان پريښودل او د علماو رفاقت دې اختيار کړو، هغه وويل چې صوفيان خلک په سمندري چپو او موجونو باندې صرف خپل ځان د بچ کوي او علماء محنت کوي او ډوبيدونکي خلک بچ کوي.

---

[1] أخرجه الترمذي ۵/۴۶، رقم الحديث ۲۶۸۱.

## نا لائق ته د علم ور زده كول د علم توهين دى

| |
|---|
| (۲۰) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَلَبُ الْعِلْمِ فَرِيضَةٌ عَلَى |
| د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: علم حاصلول فرض دي په هر |
| كُلِّ مُسْلِمٍ وَ وَاضِعُ الْعِلْمِ عِنْدَ غَيْرِ أَهْلِهِ كَمُقَلِّدِ الْخَنَازِيرِ |
| مسلمان سړي او هرې مسلمانې ښځې باندې او نا اهل ته علم ور زده كول داسې دي لكه د خنزير په غاړه كې |
| الْجَوْهَرَ وَ اللُّؤْلُؤَ وَ الذَّهَبَ . (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ) وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ إِلَى قَوْلِهِ مُسْلِمٍ |
| د جواهراتو، ملغلرو او د سرو اميل اچول، او بيهقي په شعب الايمان كې دا روايت تر مسلم پورې نقل كړى |
| وَ قَالَ هٰذَا حَدِيثٌ مَتْنُهُ مَشْهُورٌ وَ إِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ وَ قَدْ رُوِيَ مِنْ أَوْجُهٍ |
| او ويلي يې دي چې د دې حديث متن مشهور او اسناد يې ضعيف دى او دا په مختلفو طريقو سره روايت |
| كُلُّهَا ضَعِيفَةٌ. (ابن ماجه)[1]. |
| شوى دى چې ټول ضعيف دي. |

**توضيح : طلب العلم فريضة :** ضروري علوم خو په هر مسلمان باندې فرض دي، يعنې هر عاقل بالغ مسلمان ښځه او سړي باندې تر حالت راهنه پورې علم فرض دى، د حالت راهنه مطلب دا دى چې په كوم حالت كې هم مسلمان دى د هماغه حالت د روا او ناروا تر حد پورې د علم حاصلول فرض دي، د دې نه په غير د مناشي او مصادرو او د ماخذونو معلومول فرض كفايي دي، چې په علاقه كې د دارنګه جيد عالم شتون فرض كفايي دي كه نه نو ټول خلك ګناه ګار دي. (المرقات ۱/۴۷۷).

**غير اهله :** د نا اهل خلكو نه مراد هغه خلك دي كوم چې د دينار طلب كوونكي اهل هواء او اهل بدعت دي، يا د نا اهل نه مراد هغه نا لائق طالب العلم دى په كوم كې چې د علم دين د پوهې صلاحيت نه وي، نو د هغه پر وړاندې د علم وړاندې كول د علم بې قدري ده لكه د خنزير په غاړه كې د ګلونو اميل يا د جواهراتو يا د ملغلرو يا د سرو اميل اچول داسې دي. (المرقات ۱/۴۷۷).

په دغه حديث كې د علم نه مراد علم دين دى، كوم چې په مسلمانانو باندې فرض دى، ځكه چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مكتبونو او كالجونو د علم ترغيب نه دى وركړى او نه دا علوم او فنون هغه وخت په دنيا كې موجود وو، كوم خلك چې همدا شان احاديث د مكتبونو او كالجونو د انګريزي تعليم د حصول

(۱) اخرجه ابن ماجه ۸۱/۱ ، رقم الحديث : ۲۲۴.

دپاره استعمالوي هغوی د اسلام په دین کې تحریف کړی دی، هغوی ته د خدای نه ویره ګول په کار دي.
په اسلامي ملکونو کې چې څومره مکتبونه (سکولونه) او کالجونه دي دا د یهودو او نصارا او نظریاتي مدرسې دي، لکه څرنګه چې علماء کرام د دیني علومو د مدرسو حفاظت ضروري ګڼي یهود او نصاری په ټوله دنیا کې د همدې کالجونو پوهنتونونو او مکتبونو (سکولونو) حفاظت ضروري ګڼي. افسوس ! په دې باندې چې د انګریزي تعلیماتو دپاره د مسلمانانوم دروازې خلاصې دي او د اسلام د دین په تعلیماتو باندې ټولې دروازې بندې دي.

**کمقلد الخنازیر** : په دې جمله کې د نا لائق او بې آدبه طالب العلم ته د علم ور زده کولو مثال بیان شوی دی، چې نا لائق او بې آدبه طالب العلم ته د علم ور زده کول داسې دي لکه یو کس چې د سرو زرو سپینو زرو امیل د ملغلرو او د جواهراتو امیل د خنزیر په غاړه کې ور واچوي، نو لکه څرنګه چې خنزیر یو نالائقه او مبغوض حیوان دی او هغه ته د جواهراتو امیل ور اچول د جواهراتو توهین دی، همدارنګه بې آدبه او ګستاخ طالب ته د علم ور زده کول د علم توهین دی، څکه چې دین د آدب او احترام نوم دی، د عارفانو خبره ده : ﴿الدین کله أدب﴾. (المرقات ۱/۴۷۷).

په دې سلسله کې د شاعرانو یو څه اشعار لیکل هم مناسب دي. یو شاعر ویلي دي :

فَيَا عَجَبًا لِمَنْ رَبَّيْتُ طِفْلًا أُلَقِّمُهُ بِأَطْرَافِ الْبَنَانِ

های تعجب دی په هغه چا باندې چې ما یې په ماشومتوب کې داسې تربیه وکړه چې په خپلو ګوتو باندې به مې دده په خوله کې لقمه ورکوله.

أُعَلِّمُهُ الْمُرُوْءَةَ كُلَّ يَوْمٍ فَلَمَّا طَرَّ شَارِبُهُ جَفَانِيْ

ما هره ورځ ده ته انساني مروت ورښودلو مګر چې کله دده بریت وشو نو ده د ماسره هم بې مروتي وکړه.

أُعَلِّمُهُ الرِّمَايَةَ كُلَّ يَوْمٍ فَلَمَّا اشْتَدَّ سَاعِدُهُ رَمَانِيْ

ما به هره ورځ ده ته د غشو ویشتل ورزده کول مګر چې کله دده متې مضبوطې شوې نو ده زه وویشتم.

أُعَلِّمُهُ الْقَوَافِيْ كُلَّ يَوْمٍ فَلَمَّا قَالَ قَافِيَةً هَجَانِيْ

ما هره ورځ ده ته شاعري ور زده کوله مګر چې کله ده اولنی شعر وویلو نو ده زما بدي بیان کړه.

از خدا خواهیم توفیق ادب — بے ادب محروم گشت از فضل رب

زه د الله تعالی نه د ادب توفیق غوارم، څکه چې بې ادبه د الله تعالی د رحمت نه محروم پاتې کیږي.

چون خدا خواهد که پرده کس درد — میلش اندر طعنه پاکان برد

کله چې الله تعالی د یو چا پرده شکول وغواړي ، نو هغه ته په نیکو خلکو باندې په طعن کولو طرف ته مائله کوي .

ہرچہ گیرد علتے علت شود کفر گیرد کاملے ملت شود

کوم کس چې د نورو خلکو عیبونه لټوي هغه په خپله عیب داره کیږي مګر د کامل انسان د ظاهري غلطۍ نه هم ملت جوړیږي .

کارپاکان برقیاس خود مگیر در نوشتن گرچہ یکسان شیر وشیر

د نیکو خلکو کار په خپل کار باندې مه قیاس کوه اګر چې په لیکلو کې شیر کوم چې ځناور دی او شیر کوم چې پی دي یو شان دي .

کس نیاموخت علم تیر از من کہ مرا عاقبت نشانہ نہ کرد

هیڅ داسې یو چا د ما نه د غشو ویشتل نه دي زده کړي چې په آخر کې یې زه نښه نه یم ګرځولی .

سعدیا شیراز یا پندے مدہ کم زات را کم زات چون ملا شود دشنام داد استاد را

ای سعدي شیرازي ! کم اصله ( او بد ذاته ) ته علم مه زده کوه ځکه چې کم اصله چې کله عالم جوړ شي نو خپل استاد ته کنځلې کوي .

عاقبت گرگ زادہ گرگ شود گرچہ با آدمی بزرگ شود

د لیوه زوي په آخر کې هم لیوه جوړیږي اګر چې دده نه د انسانانو سره بزرګ جوړ شي .

چون بشنوی سخن اہل دل مگو کہ خطا است سخن شناس نہ ئے دلبرا خطا ای جا است

کله چې د عارفانو کلام واورې نو دې ته غلط مه وایه ای زما زړه ! غلطي په دې کې ده چې ته د الله والا خلکو په خبرو باندې نه پوهیږې .

ہزار نکتہ باریک تر ز مو این جا است نہ ہر کہ سر بتراشد قلندری داند

د قلندر جوړیدو د پاره دلته د ویختنه هم ډیرې باریکې زر نکتې دي صرف په سر خریلو سره څوک قلندر نه جوړیږي .

نہ ہر جائے مرکب توان تاختن کہ جاہا سپر باید انداختن

هر ځای کې آس نه شي زغلولی ځکه چې ډیر ځایونه داسې دي چې هلته سامان غورځول راځي .

اصیل مرغ سمجھتے بھی ہیں اور ہیں خاموش سنو گے پٹنیوں میں چون چرا کا جوش وخروش

پـ بازار موندلی نه دی ❁ ډیر عالم مې دی په دې سترګو لیدلې

۱۲ صفر ۱٤۱۰ه

## د دين د پوهې نه منافق محروم وي

| |
|---|
| (۲۱) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَصْلَتَانِ |
| د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دوه خويونه داسې دي |
| لَا تَجْتَمِعَانِ فِي مُنَافِقٍ حُسْنُ سَمْتٍ وَلَا فِقْهٌ فِي الدِّينِ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1]. |
| كوم چې په منافق كې نه شي جمع كيدى يو نيك اخلاق او دويم ديني پوهه. |

**توضيح: حسن سمت**: نيك اخلاق او غوره كردار ته حسن سمت ويل كيږي، د ښو اخلاقو مطلب دا دى چې د خداى تعالى د مخلوق دپاره د خير مجسمه جوړ شي د نيكۍ او اسانۍ ذريعه جوړ شي، دوست او دشمن ټول يې برابر په نظر ورشي، دا اسلامي ښه اخلاق دي كوم چې په منافق كې نه شي پيدا كيدى، يو تاجرانه اخلاق دي كوم چې يو تاجر د يو خريدار سره كوي، په حديث كې دا اخلاق مراد نه دي. دريم قسم د مشن اخلاق دي، لكه په انګريزانو كې چې د مشن اخلاق دي، په كوم كې چې هغوى هرې بې حيائۍ ته دا اخلاقو نوم وركړى مسلمانان يې ورباندې ګمراه كړي، دا خو اخلاق نه دي بلكې بداخلاقي ده.

## طالب العلم د الله په لار كې وي

| |
|---|
| (۲۲) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ خَرَجَ فِي |
| د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: څوك چې ووځي د كور نه د |
| طَلَبِ الْعِلْمِ فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللهِ حَتَّى يَرْجِعَ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَالدَّارِمِيُّ).[2] |
| علم د حاصلولو پسې نو ترڅو پورې چې هغه (كور ته واپس را نه شي) د خداى په لار كې دى. |

**توضيح، فهو في سبيل الله**: يعني ترڅو پورې چې دا طالب العلم د علم د سفر نه واپسې ونه كړي دا د الله په لاره كې دى، د في سبيل الله تشريح او تفصيل به ان شاء الله په كتاب الجهاد كې راشي، دلته دومره خبره زده كړئ چې د في سبيل الله نه خاص د جهاد لار مراد ده، په دغه لار كې يوه روپۍ د اوه سوه نه تر اوه لكو پورې زياتيږي. طالب العلم چونكه د علم په سفر كې ډير غټ تكليفونه برداشت كوي نو ځكه هغه ته د مجاهد في سبيل الله ثواب وركول كيږي، دا مطلب نه دى چې دا طالب العلم مجاهد في سبيل

---

(۱) اخرجه الترمذي ٤٨/٥، رقم الحديث ۲۶۸٤

(۲) اخرجه الترمذي ۲۹/٥، رقم الحديث ۲۶٤۷

الله جوړ شو، بلکې مطلب دا دی چې د هغه د تکلیفونو او سختیو د وجې هغه ته د جهاد في سبيل الله اجر او ثواب ورکول کیږي، ددې حدیث د وجې یوشمیر فقهاؤ د زکوة مصرف په في سبيل الله کې د مجاهدینو سره د علم طالبان هم داخل منلي دي. (المرقات ۱/۴۸۰).

## د طالب العلم نه مخکني ګناهونه محوه کيږي

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ سَخْبَرَةَ الأَزْدِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ |
| د سخبرة الازدي نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم کس چې د علم طلب کوي هغه |
| كَانَ كَفَّارَةً لِمَا مَضَى.[1] (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ) وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ ضَعِيفُ |
| د ده د تيرو شويو (صغيره) ګناهونو د پاره کفاره کيږي، او امام ترمذي ويلي دي چې دا حديث ضعيف |
| الْإِسْنَادِ وَ أَبُو دَاوُدَ الرَّاوِي يُضَعَّفُ). |
| الاسناد دی، يعنې ددې حديث يو راوي د (ابوداؤد په نوم) ضعيف شمار شوی دی. |

**توضيح: كان كفارة**: که چيرته د همدې نيک عمل سره دې کس توبه هم ويستلې وي نو د هغه غټ او واړه ټول ګناهونه معاف کيدی شي، او که يې توبه نه وي ويستلې نو واړه ګناهونه د طلب علم په برکت سره معاف کيږي او غټ ګناهونه کمزوري کيږي. امام ترمذي ددې حديث سند ضعيف کړی دی او ويلي يې دي چې د ابوداؤد په نوم يو راوي ضعيف دی، په ياد ولرئ چې دا ابو داؤد د ابو داؤد شريف مؤلف نه دی بلکې کوم بل کس دی کوم چې ضعيف دی. (المرقات ۱/۴۸۰).

## عالم کله هم په علم سره نه مړيږي:

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنْ يَشْبَعَ الْمُؤْمِنُ |
| دابو سعيد الخدري رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: نه شي مړيدی يو مؤمن |
| مِنْ خَيْرٍ يَسْمَعُهُ حَتَّى يَكُونَ مُنْتَهَاهُ الْجَنَّةَ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[2]. |
| په نيکۍ (يعنې په علم) سره هغه يې اوري (يعنې حاصلوي يې) تردې چې د هغه انتهاء جنت شي. |

---

(۱) أخرجه الترمذي ۲۹/۵، رقم الحديث: ۲۶۴۸.

(۲) أخرجه الترمذي ۴۹/۵، رقم الحديث: ۲۶۸۶.

## د علم پټول ګناه ده:

| |
|---|
| (۲۵) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سُئِلَ عَنْ عِلْمٍ |
| د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دكوم عالم نه چې پوښتنه وشي د |
| عَلِمَهُ ثُمَّ كَتَمَهُ أُلْجِمَ |
| يوې داسې خبرې چې دا هغه ته معلومه وي مګر پټه يې كړي (يعني ورته وې نه ښايي) نوورته به واچولى |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِلِجَامٍ مِنْ نَارٍ[1]. |
| شي په خوله كې لګام د اور نه د قيامت په ورځ، او ابن ماجه همدا حديث د انس رضي الله عنه نه نقل كړى. |

**توضيح**: **أُلجم**: د اور د لګام مطلب دا شو چې دا كس به دوزخ ته ځي، ځكه چې د اور لګام په كوم بل ځاى كې نه شي اچول كيدى. (المرقات ۱/۴۸۱).

**ثم كتمه**: دا وعيد د فرائضو او واجباتو متعلق دى، (المرقات ۱/۴۸۱). مګر يو شمير شرطونه هم علماؤ ذكر كړي دي: **اوله خبره**: خو داده چې دا عالم د مسائلو دپاره متعين شوى وي او صرف دا وي بل نه وي. **دويمه خبره**: دا ده چې دې عالم ته به دا مسئله معلومه هم وي او پرې پوهيږي به هغه به يې پټوي. **دريمه خبره**: داده چې مسئله به د فرائضو او واجباتو سره متعلق وي او په نه ښودلو سره به شرعي حكم ته ضرر رسيږي، خلاصه دا ده چې دا وعيد د مستحباتو او نوافلو له مسائلو سره متعلق نه دى.

## د جګړو او رياكاري علم وبال دى

| |
|---|
| (۲۶) وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ |
| د كعب بن مالک رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: چاچې حاصل كړو علم په دې |
| لِيُجَارِيَ بِهِ الْعُلَمَاءَ أَوْ لِيُمَارِيَ بِهِ السُّفَهَاءَ أَوْ يَصْرِفَ بِهِ وُجُوهَ النَّاسِ |
| غرض چې د هغه په ذريعه په علماؤ باندې فخر وكړي، د بې وقوفانو سره جګړې وكړي او خلک ځان طرف ته |
| إِلَيْهِ أَدْخَلَهُ اللهُ النَّارَ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ) وَ رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنِ ابْنِ عُمَرَ. (ابن ماجه)[2]. |
| متوجه كړي نو الله تعالى به هغه دوزخ ته داخل كړي، او ابن ماجه دا حديث د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت كړى. |

---

(۱) مسند احمد ۲/۲۶۳، و ابوداؤد ۳۶۵۸.

(۲) اخرجه الترمذي ۵/۳۲، رقم الحديث: ۲۶۵۴.

**توضيح : من طلب العلم** : علم يو نور دی او دالله د صفتونو نه يو صفت دی، د هغه په حصول سره د انسان په ظاهري او باطني حالت کې صالح انقلاب راوستل په کار دي، او د علم مقصد دا کيدل په کار دي چې دا کس د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نيابت او علمي وراثت کې د دين رښائي د خدای تعالی د مخلوق په زړونو کې او د هغوی دماغونو ته ورسوي، ددې او چت مقصد برعکس که چيرته يو عالم د شروع نه علم فقط د دې دپاره حاصلوي چې دا سبا عالم جوړ شي د علماؤ سره مناظرې وکړي او د عوامو سره جګړې وکړي، د ده اولين مقصد دا دی چې د خلکو سره مناظره مقابله کول دي، ددې دپاره چې په همدې سره خپل شخصيت جوړ کړي او په خلکو کې سردار جوړ شي او د ده مقابل خلک ذليل وګمل شي، د علماؤ او عوامو سره جګړې وکړي او د هغو درنو خلکو سره کښيني او په ټولو خلکو ځان ومني او بيا د دنيوي اغراضو او اموالو په حاصلولو کې کامياب شي نو داسې کس عالم نه دی ، بلکې د الله تعالی په نزد جاهل دی او د دوزخ برغولی دی، د جنت خوشبويي پرې حرامه ده ځکه چې بنياد يې غلط دی :

خشت اول چون نهد معمار کج ❁ تا ثریا میرود دیوار کج

ليکن که چيرته همدغه کس علم په ښه نيت سره حاصل کړ او عالم جوړ شو بيا د احقاق حق او ابطال باطل دپاره د اهل باطلو سره د مناظرې او مجادلې نوبت راغی نو دا ممنوع نه ده ، بلکې مشروع او محمود ده، بلکې د علماء سوء د مفادو د ازالې دپاره ضروري هم ده.

**ليجاري** : د مجارات نه دی تکبر او تعلی فخر او مباهات ته ويل کيږي. (المرقات ۱/۴۸۲).

**ليماري** : داد ممارات نه دی جنګ کولو او مقابلې کولو ته وايي . (المرقات ۱/۴۸۲).

**ويصرف** : يعني د خلکو توجه ګانې د مدح او تعريف جذبات د ځان طرف ته رابنکل غواړي، ترڅو د دې په څنګ کې خپل فاسد اغراض حاصل کړي، د ديني سوچ او فکر دپاره نه بلکې د دنيوي مقصد دپاره او د خلکو د بې وقوف جوړولو په غرض سره يې علم حاصل کړی دی. (المرقات ۱/۴۸۲).
ګويا چې هغه وايي :

یا اللہ میرے پیری میں زور رہنے دے ❁ چشم عالم کو کور رہنے دے

## د دنيا حاصلولو دپاره علم انسان د جنت نه محرو موي :

| |
|---|
| (۲۷) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَعَلَّمَ عِلْمًا |
| د ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : چا چې هغه علم حاصل کړو په کوم |
| مِمَّا يُبْتَغَى بِهِ وَجْهُ اللهِ لَا يَتَعَلَّمُهُ إِلَّا لِيُصِيبَ بِهِ عَرَضًا مِنَ الدُّنْيَا |
| سره چې دالله تعالی رضا طلب کيدی شي په دې غرض چې د هغه په ذريعه د دنيا غرض او فائده حاصله کړي |

لَمْ يَجِدْ عَرْفَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَعْنِي رِيحَهَا(رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُد، وَابْنُ مَاجَهْ)(۱).

نو د قيامت په ورځ به هغه د جنت خوشبويي هم ونه مومي.

**توضيح : علمًا** : يعني د علم حاصلولو سره غرض صرف او صرف دنيا وي نو د هغه دپاره دا وعيد دى. او كه چيرته د علم په حصول سره د دين ساتنه د الله تعالى رضا او خوشحالول وه او بيا په هغه باندې دنيا مرتب شوه او دنيا هم ورته حاصله شوه نو په دې كې هيڅ خبره نشته. او اكثر داسې شوي دي چې الله تعالى دين او دنيا همداسې عالم ته وركړي دي. (المرقات ۱/۴۸۳).

**لم يجد عرف الجنة** : يعني د جنت خوشبويي به هم پيدا نه كړي . (المرقات ۱/۴۸۴).

**سوال** : دلته دا شبه ده چې هر كله دا كس هيڅكله د جنت خوشبويي هم نه شي موندلى نو د دې مطلب خو دا شو چې دا كس كافر شو او شرعي قاعده خو داسې نه ده ؟.

**جواب** : د دې شبهې دوه جوابونه دي، اول جواب دا دى چې په دخول اولى سره به د جنت خوشبوى پيدا نه كړي ، بلكې د سزا د تيرولو نه وروسته به جنت ته ځي.

**دويم جواب** : دا دى چې كوم كس د الله تعالى د رضا دپاره علم حاصل كړى وي او د دنيوي اغراضو نه بې پروا وي د دين د خدمت دپاره وي هغه به په محشر كې د جنت د داخليدو نه مخكې : جنت خوشبويي پيدا كړي، ځكه چې د هغه مسامات به خلاص وي نو د محشر په ميدان كې به د هغه خوشبوى نه خوند اخلي، ليكن كوم كس چې دين د دنيوي اغراضو دپاره حاصل كړي او په هغه كې د الهي رضا شائبه نه وي نو په همدې فاسدو اغراضو سره د هغه د بدن مسامات بند شوي دي لهذا هغه به د محشر په ميدان كې د جنت خوشبوى پيدا نه كړى شي، دا جدا خبره ده چې هغه به په آئنده كې جنت ته داخل شي. مګر د محشر په ميدان كې به د جنت د خوشبوى نه محروم شي.

**دريم جواب** : دا دى چې دا **تغليظًا تشديدًا** او **تهديدًا** ويل شوي دي. (المرقات ۱/۴۸۴).

## د احاديثو د ښودونكو فضيلت

(۲۸) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَضَّرَ اللهُ عَبْدًا

د ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: الله تعالى دې هغه بنده تازه ولري (يعني د هغه قدر او منزلت دې ډير شي) او هغه دې د دين او دنيا په خوبنې او خوشحالۍ سره وساتي)

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۲/۳۳۸، وأخرجه أبو داود في السنن ۴/۷۱ رقم الحديث ۳۶۶۴.

| |
|---|
| سَمِعَ مَقَالَتِي فَحَفِظَهَا وَ وَعَاهَا |
| څوک چې زما کومه خبره واوري او هغه یاده کړي او همیشه یې په یادولري او هغه چې یې څنګه آوریدلې |
| وَ أَدَّاهَا فَرُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ غَيْرُ فَقِيهٍ |
| وي هم هغه رنګ یې خلکوته ورسوي ځکه چې بعضې دفقه او د علم دین حامل فقیه (یعني پوهه) نه دي |
| وَ رُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ إِلَى مَنْ هُوَ أَفْقَهُ مِنْهُ ثَلَاثٌ |
| او بعضې حامل فقه هغو خلکو ته رسولی شي کوم چې د دوي نه زيات فقهي دي او درې څيزونه داسې دي |
| لَا يَغِلُّ عَلَيْهِنَّ قَلْبُ مُسْلِمٍ إِخْلَاصُ الْعَمَلِ لِلّٰهِ وَ النَّصِيحَةُ لِلْمُسْلِمِينَ |
| په کومو کې چې د مسلمان زړه خیانت نه کوي یو خاص د خدای دپاره عمل کول، دویم د مسلمان خیرخواهي |
| وَلُزُومُ جَمَاعَتِهِمْ فَإِنَّ دَعْوَتَهُمْ تُحِيطُ مِنْ وَرَائِهِمْ (رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي الْمَدْخَلِ وَرَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ |
| غوښتل او دریم د مسلمانانو جماعت لازم نیول ځکه چې د جماعت دعا د دوی څخلور طرفه نیولې دي. |
| وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَةَ، وَالدَّارِمِيُّ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، إِلَّا أَنَّ التِّرْمِذِيَّ، وَأَبَا دَاوُدَ لَمْ يَذْكُرَا ثَلَاثٌ لَا يَغِلُّ عَلَيْهِنَّ إِلَى آخِرِهِ). |

**توضیح** :غیر فقیه : یعني د حدیث د الفاظو په حافظان یو شمیر علماء خو داسې دي کوم چې فقاهت او زیاته پوهه نلري، دوی په الفاظو کې ماهر دي لیکن د استنباط نه قاصر دي، او د مسائلو د استخراج نه عاجز دي، او د الفاظو په حافظانو کې یو شمیر علماء پوهه دي مګر دوی چې کله د کومو پر وړاندې حدیث بیان کړي نو هغه اوریدونکي د دې اورونکي نه زیات پوهه او فقیه کیدی شي، لهذا د حدیث په یاد ساتونکي ته په کار دي چې دوی حدیث د خپلو الفاظو سره په حفاظت سره نورو ته ورسوي. (المرقات ۱/۴۸۵).

په دې حدیث کې د **اداها** الفاظو د تبلیغ او وړاندې د رسولو ترغیب ورکړی دی، لیکن کله د همدې تبلیغ او خورولو په مقابل ډیر رکاوټونه(موانع) پیدا کیږي، مثلا ریا کاري یا حسد یا ګوشه نشیني د همدې تبلیغ نه مانع جوړیږي، د همدې د بیانیدو دپاره راتلونکې جمله ارشاد شوې ده.

**ثلاث لایغل علیهن** : که چیرته **لایغل** د **یاء** له زور سره شي او **غین** د زیر سره شي نو دا غل د حسد او کینې په معنی سره دی، په دغه صورت کې به د حدیث شریف مطلب دا شي چې د الله تعالی د رضا دپاره د عمل اخلاص او مسلمانانو ته د نیکۍ نصیحت، خیرخواهي او د مسلمانانو د جماعت سره اوسیدل دا درې څیزونه داسې دي په کومو باندې چې د هیڅ مسلمان په زړه کې هیڅ قسم حسد او کینه نه شي پاتې کیدی، هیڅ مسلمان هم د دې شیانو په تبلیغ او خورولو کې کوتاهي نه کوي.

او که چیرته **لایغل** د **یاء** په پیش او د **غین** په کسرې سره د باب **افعال** نه وویل شي نو دا لفظ به د **غلول** نه شي او د خیانت په معنی به شي، غلول د غنیمت په مال کې خیانت ته هم ویل شوی دی. په دغه صورت کې به د حدیث شریف مطلب دا شي چې په دې دریو څیزونو کې د مسلمان زړه خیانت نه شي کولی، بلکې هر مسلمان د دې دریو شیانو په تبلیغ او خورولو کې په غیر د خیانت نه دلچسپي لري، په دې تشریح سره د حدیث په ټولو جملو کې ربط پیدا شو. (المرقات ۱/۴۸۶).

**فان دعوتهم** : دا جمله د دې مخکې (**ولزوم جماعتهم**) دپاره تفصیل او علت دی، او **فاء** د تفصیل او تعلیل دپاره راوړل شوې ده، مطلب دا دی چې مسلمان ته په قلبي طور د مسلمانانو د جماعت سره اوسیدل په کار دي، ځکه چې د مسلمانانو د جماعت دعاګانې د ټولو دپاره عامې دي، هغه دې په جماعت کې شامل شي او د دې دعاګانو مستحق دې جوړ شي. (المرقات ۱/۴۸۶).

| |
|---|
| **(۲۹) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ** |
| د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه روایت دی چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه آوریدلي دي چې فرمایل یې |
| **نَضَّرَ اللهُ امْرَأً سَمِعَ مِنَّا شَيْئًا فَبَلَّغَهُ** |
| الله تعالی دې هغه کس تازه ولري (یعنې خوشحاله او باعزته دې ولري) چا چې زمونږ نه خبره واوریده |
| **كَمَا سَمِعَهُ فَرُبَّ مُبَلَّغٍ** |
| او څنګه یې چې آوریدلي وي هماغه شان یې نورو ته ورسوي، لهذا زیاتره هغه خلک کوم ته چې رسول |
| **أَوْعَى لَهُ مِنْ سَامِعٍ .**[1] |
| شوې ده د آورونکي نه زیات په یاد ساتونکي دي، او دارمي دا حدیث د ابوداؤد نه روایت کړی دی. |

## په احادیثو کې دروغ ویل موجب د اور دي

| |
|---|
| **(۳۰) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّقُوا الْحَدِيثَ عَنِّي** |
| د ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې نبي علیه السلام وفرمایل زما د طرفه د حدیث د بیانولو نه ځان وساتئ |
| **إِلَّا مَا عَلِمْتُمْ فَمَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا** |
| مګر هغه حدیث بیان کړئ کوم چې تاسو ښه پیژني وګنئ لهذا چا چې قصدا په ماپورې دروغ وویل نو هغه |

[1] أخرجه الترمذي ۵: ۳۴، رقم الحديث ۲۶۵۷

| |
|---|
| فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1] وَ رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ |
| ته په کار دي چې د خپلو او سيدو ځاى په دوزخ کې ولټوي. او ابن ماجه دا حديث د ابن مسعود رضي الله عنه |
| وَ جَابِرٍ وَ لَمْ يَذْكُرِ اتَّقُوا الْحَدِيثَ عَنِّي إِلَّا مَا عَلِمْتُمْ). |
| او جابر رضي الله عنه نه روايت کړى دى خو د اتقوا الحديث عني الا ما علمتم الفاظ يې نه دي ذکر کړي. |

## د قرآن په تفسير کې رايه مه شاملوئ:

| |
|---|
| (۲۱) وَ عَنْه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ مَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ |
| د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: چا چې خبره وکړه په قرآن مجيد کې |
| بِرَأْيِهِ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ ، وَ فِي رِوَايَةٍ |
| د خپل عقل نه نو هغه ته په کار دي چې خپل د او سيدو ځاى په اور کې ولټوي. په يو بل روايت کې دي: چې |
| مَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِغَيْرِ عِلْمٍ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[2]. |
| کوم کس د علم نه بغير په قرآن کې څه وويل هغه ته په کار دي چې هغه خپل د او سيدو ځاى په اور کې ولټوي. |
| (۲۲) وَعَنْ جُنْدُبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ |
| د جندب رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: چا چې خبره وکړه په قرآن مجيد کې |
| بِرَأْيِهِ فَأَصَابَ فَقَدْ أَخْطَأَ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَ أَبُو دَاوُدَ)[3]. |
| د خپلې رأيې نه او هغه د حقيقت او واقعې مطابق هم وو نو هغه بيا هم غلطي وکړه. |

**توضيح**: برأيه: تفسير هغې ته ويل شوى دى چې د قرآن مطلب د مفسرينو صحابه کرامو رضي الله عنهم احاديثو او د اهل لغتو د لغت مطابق وي، تاويل هغې ته ويل کيږي چې د کوم آيت معاني او مطالب د احتمال په شکل بيان کړى شي، چې زه کومه معنى کوم ممکن ده چې مطلب يې هم دا سې وي، دا تاويل هغه وخت روا دى کله چې د هغه مطلب د لغت او شريعت د قواعدو مطابق وي، او کوم کس چې نه د علماؤ تفسير ليدلى او نه يې د احاديثو او د شريعت او د لغت لحاظ ساتلى محض د خپل عقل او پوهې

---

(۱) أخرجه الترمذي ۱۸۳/۵ ، رقم الحديث ۲۹۵۱

(۲) أخرجه الترمذي ۱۸۳/۵ ، رقم الحديث ۲۹۵۱

(۳) أخرجه الترمذي ۱۸۳/۵ ، رقم الحديث ۲۹۵۲ ، وأبوداود في السنن ۶۳/۴ رقم الحديث ۳۶۵۲

په زور د آيت تفسير وكړي دا غلط او ناروا دي، اګر كه په اتفاقي طور هغه تفسير صحيح هم وي. ځكه همدې كس د ابتدا، نه چې كوم مطلب بيان كړی دی د هغه بنياد صحيح نه وو دا تفسير بالرأيه شو كوم چې صحيح نه دی. (المرقات ۱/۴۹۱).

## په قرآن كې جګړه كول كفر دی

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمِرَاءُ فِي الْقُرْآنِ كُفْرٌ [1]. |
| د ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په قرآن كې جګړه كول كفر دی. |

**توضيح** :**المراء في القرآن كفر** : مراء د جګړې كولو په معنی دی. يعني كوم كس چې د خپل خواهش پوره كولو په غرض د قرآن كريم آيتونه او نصوص په خپل مينځ كې سره ټكر كوي او په هغو كې بې ځايه تاويل كوي يو آيت پرېږدي او يو قبلوي دا كفر دی، مثلا د غه كس آيت ﴿مَا أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ آيت د ﴿وَمَا أَصَابَكُم مِّن مُّصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ﴾ سره متعارض جوړوي او جګړه راپورته كوي، يوه ډله يو آيت نيسي او بله ډله بل آيت نيسي، نو دا صورت د جانبينو د پاره د خطر او كفر باعث دی، ځكه دا يو داسې خطرناک عمل دی چې په آرام آرام د دې نمبر كفر ته رسيږي. (المرقات ۴۹۲-۱/۴۹۳).

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۴﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ | | | | | |
| عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه روايت كړی دی چې واوريده نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يو | | | | | |
| قَوْمًا يَتَدَارَءُونَ فِي الْقُرْآنِ | | | | | |
| جماعت په باره كې چې هغوی په خپل مينځ كې د قرآن كريم په باره كې بحث او جګړې كوي، لهذا رسول | | | | | |
| فَقَالَ | إِنَّمَا | هَلَكَ | مَنْ | كَانَ | قَبْلَكُمْ بِهٰذَا |
| الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: بيشكه د تاسو نه مخكني خلک د همدې وجې نه هلاک شوي وو چې هغوی د | | | | | |
| ضَرَبُوا كِتَابَ اللهِ بَعْضَهُ بِبَعْضٍ | | | | | |
| كتاب الله بعضې حصې په بعضو نورو باندې ويشتلې (يعني په آيتونو كې يې اختلاف ثابت كړو چې فلاني | | | | | |

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۲: ۱۸۵

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَ | إِنَّمَا | نَزَلَ | كِتَابُ | اللهِ | يُصَدِّقُ | بَعْضُهُ | بَعْضًا |

آیت د فلاني آیت مخالف دی) او بیشکه د کتاب الله بعضې حصې د بعضو تصدیق کړی دی. لهذا تاسو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَا | تُكَذِّبُوا | بَعْضَهُ | بِبَعْضٍ | فَمَا | عَلِمْتُمْ | مِنْهُ | فَقُوْلُوا |

د قرآن بعضې حصې په بعضو نورو سره دروغژنې نه کړئ او په دې باره کې چې څومره پوهیږئ هغه بیان کړئ

وَمَا جَهِلْتُمْ فَكِلُوْهُ إِلَى عَالِمِهِ .[1]

او په کوم چې نه پوهیږئ هغه د پیژندونکو طرف ته وسپارئ.

**توضیح : يتدارئون** : دا درءٌ ذ دفع کولو په معنی سره دی مراد بحث او جګړه کول او د قرآن کریم د آیتونو په خپل مینځ کې ټکر کول دي، په دغه حدیث کې ښودل شوي دي چې یو شمیر کم **فهمه او کج فهمه** خلک د خپلې نااهلۍ او ناروغه ذهنیت د وجې په قرآن کې اختلاف پیدا کوي د حق نه سرغړونه او په باطل باندې ټینګ پاتې کیدل غواړي، داسې خلکو ته په کار دي چې کله د قرآن کریم په آیتونو باندې نه شي پوهیدلی نو هغه دې د علم خاوندانو ته پرېښودل شي او د علماؤ نه دې پوښتنه وکړی شي، د دغه حدیث نه د تقلید ښکاره ثبوت ترلاسه شوی دی. (المرقات ۱/۴۹۳).

## د قرآن په اوو لغاتو باندې د نازلیدو مطلب

**(۳۵)** وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُنْزِلَ الْقُرْآنُ عَلَى سَبْعَةِ

دابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: نازل شوی دی قرآن کریم په اوه

أَحْرُفٍ لِكُلِّ آيَةٍ مِنْهَا ظَهْرٌ وَبَطْنٌ وَلِكُلِّ حَدٍّ مُطَّلَعٌ . (رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ).

قسمه باندې د هر یو آیت د پاره ظاهر دی او باطن دی او د هر حد د پاره یو ځای د خبردار کیدو دی.

**توضیح : انزل القرآن على سبعة احرف** : دا حدیث د مشکل ترینو احادیثو نه دی، تردې پورې چې په دې باندې د پوهیدو د پاره په دې کې څلویښت توجیهات شوي دي، دا منل شوی حقیقت دی چې د دنیا په هره ژبه کې د فصاحت بلاغت او د لهجې په اعتبار سره مختلفې طریقې او مختلف لغات وي، همدارنګه په عربي ژبه کې هم اوه لغات په عربي کې مشهور وو، د دې حدیث په تشریحاتو کې د ټولو نه اسانه تشریح او توجیه حضرت شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ کړې ده، زه د هغې خلاصه لیکم ځکه چې هغه د حدیث د مفهوم سره زیاته نزدې او موافق ده، لهذا شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي :**احرف**: داد حرف

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۲/۱۸۵.

جمع ده کوم چې د لغاتو په معنی سره دی (ای سبعة لغات) د قرآن نزول د قریشو په لغت سره شوی وو مګر د هغو نه علاوه په عربو کې شپږ لغات مشهور وو کوم چې دا دي :(۱) لغت قریش (۲) لغت بنوطی(۳) لغت بنو تمیم (۴) لغت هوازن (۵) لغت اهل یمن (۶) لغت ثقیف (۷) لغت هذیل، ددې قبائلو لغات چونکه مختلف وو او هره قبیله د هغې بلې قبیلې په لغت باندې نه پوهیدله د قرآن کریم یادول او لوستل مشکل شوي وو، رسول الله ﷺ د الله تعالی نه دعا وغوښتله نو الله تعالی تر اوو لغاتو پورې آساني وفرمايله او تر اوو لغاتو پورې د لوستلو اجازت ورکړی شو .(المرقات ۱/۴۹۶) دا اجازت داسې نه وو چې په هر لغت کې دې اوه قسمه وویل شي بلکې په مجموعي اعتبار سره ددې لغاتو شمیر اوو ته رسیدلی وو، د قبائلو دا اختلاف داسې وو لکه څرنګه چې په پښتوژبه کې د مختلفو قومونو په نزد د لحاف مختلف نومونه دي مثلا :(۱)برستن(۲)رضائي(۳) تلتک (۴)ترنګړ (۵)نالی وغیره. دا د یوې ژبې ویونکو قبائلو په ژبه کې اختلاف دی.

د اوو لغاتو مصداق د قراء سبعو اوه قراتئونه نه دي، ددې آسان یو مثال هغه واقعه ده چې یوه کوچې عرب ته حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دا آیت لوستلی وو ﴿طَعَامُ الْأَثِيمِ﴾ هغه کس د اثیم لفظ په ژبه باندې نه شو اداء کولی، حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وویل ﴿طعام الفاجر﴾ ووایه چې بیا هغه په همدې طور وویل شو، دا طریقه د رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه له زمانې نه را روانه ده.(المرقات ۴۹۷-۱/۴۹۸).

بیا د حضرت عمر رضي الله عنه په ټینګار باندې حضرت ابو بکر صدیق رضي الله عنه حضرت زید بن ثابت رضي الله عنه ته حکم وکړ چې قرآن کریم ولیکه او یو ځای یې محفوظ کړه، په دې لحاظ سره حضرت عمر رضي الله عنه په جامع قرآن سره مشهور شو، بیا د حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه کې مختلف قبائل په اسلام کې داخل شول او د قرآن د همدې اوو لغاتو له وجې هغوی په خپل مینځ کې منازعات شروع کړل نو د عراق والي حضرت حذیفه بن یمان رضي الله عنه حضرت عثمان رضي الله عنه ته وویل چې دا امت د اختلاف او افتراق نه مخکې مخکې بچ وساته، بیا حضرت عثمان رضي الله عنه وویل چې قرآن کریم په اول کې د قریشو په لغت کې نازل شوی وو، لهذا د هماغه لغت مطابق دې قرآن جمع کړی شي او د قریشو د لغت نه په غیر نور دې ختم کړی شي، لهذا همداسې وشول او په همدې باندې د صحابه کرامو رضي الله عنهم اجماع هم وشوه، او حضرت عثمان رضي الله عنه په جامع قرآن سره مشهور شو .په دې کې د قرآن کریم هیڅ حکم یا هیڅ آیت بدل شوی نه دی لکه څرنګه چې شیعه ګانو غلط فهمي کړې ده، بلکې د اوه قسمه ویلو پر ځای د یو قسم ویلو حکم شوی ترڅو چې اختلاف او افتراق ختم کړی شي.

**لکل آية منها ظهر وبطن**: د دې جملې یو مطلب دا دی چې د هر آیت یوه ظاهري معنی ده او یوه یې

تاویلي او باطني معنی ده، نو تاویل باطن دی او ظاهر ظاهر دی. دویم مطلب دا چې د هر آیت یوه ظاهري معنی ده کومه چې ټولو اهل زبانو او علماو ته رسیدلې ده اویوه باطني معنی ده په کومه چې اهل باطن علماء او اهل معرفت او طریقت پوهیږي. دریم مطلب دا چې د هدایت یو ظاهر دی یعنې د هماغو معناګانو تعلق د ظاهري اعمالو سره دی اویو باطن دی یعنې د باطني احکامو سره هم د هغو تعلق دی. (المرقات ۱/۵۰۰).

**ولکل حد مطلع**: یعنې د هر حد او سرحد دپاره د خبردار کیدو او اطلاع موندلو ځای دی. **حد** د نهایت او طرف په معنی سره دی او **مطلع** د رسیدو مقام ته ویل کیږي، ددې جملې مطلب دا شو چې هر آیت د ظاهر او باطن یو حد او طرف دی، او ددې حد او طرف یو داسې مقام دی کوم ته چې د رسیدو او حاصلیدو نه وروسته انسان په همدې حد او نهایت باندې خبریدی شي، نو د آیت په ظاهر باندې د خبریدو مطلب دا دی چې د عربي ژبې اصول او قواعد زده کړي په علم صرف، نحو او لغت باندې پوهه شي او دآیت د شان نزول ناسخ او منسوخ علم حاصل کړي دا ظاهر ته د رسیدو مطلع او مقام دی او دباطن مطلع دا دی چې ریاضت او مجاهده وکړي د قرآن حکیم په احکامو او معناګانو باندې عمل وکړي، په عبادت سره خپل زړه او دماغ روښانه کړي د قرآن کریم معارف او اسرار حاصل کړي. (المرقات ۱/۵۰۱).

**۱۳ صفر ۱٤۱۰ھ**

## اصل علم د کوم شي نوم دی

| |
|---|
| (۳٦) وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْعِلْمُ ثَلَاثَةٌ آيَةٌ |
| د عبد الله بن عمرو رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې علم درې شیان دي |
| مُحْكَمَةٌ أَوْ سُنَّةٌ قَائِمَةٌ أَوْ فَرِيضَةٌ عَادِلَةٌ وَمَا كَانَ سِوَى ذٰلِكَ فَهُوَ فَضْلٌ.[1] |
| (۱) آیت محکم (یعنې مضبوط) (۲) سنت قائمه (۳) فریضه عادله، او ددې نه بغیر چې څه دي هغه زائد دي. |

**توضیح**: **العلم**: ددې نه مراد علم دین دی نو علم دین په درې قسمه دی. (المرقات ۱/۵۰۱).

(۱) **آیة محکمة**: دا هغه احکام دي کوم چې محکم باتردد او واضح وي او په هغو کې د نسخې امکان نه وي او نه په هغو کې اشتباه وي، لهذا د متشابهاتو رجوع ددې محکماتو طرف ته کیدی شي په دې جملې سره د کتاب الله د حیثیت طرف ته اشاره ده. (المرقات ۱/۵۰۱).

(۱) اخرجه أبوداود في السنن ۳۰٦/۳ رقم الحديث ۲۸۸۵، وابن ماجه ۲۱/۱، رقم الحديث ٥٤.

**(۲) او سنة قائمة** : د سنت قائمه نه مراد غير منسوخ سنت دي . په دې جملې سره سنت رسول الله ﷺ طرف ته اشاره ده. (المرقات ۱/۵۰۱).

**العلم ما قال الله و قال الرسول به ❁ وما سوى ذاک وسواس الشياطين**

**(۳) فريضة عادلة** : يعنې هغه احكام كوم چې د استنباط په طريقه د قرآن او حديث دواړو نه مستخرج شوي دي. (المرقات ۱/۵۰۱).

**عادلة** : يعنې معادلة مساوية كوم چې د كتاب او سنت مساوي وي ددې نه مراد اجماع او قياس دي. دا مساوات په نفس وجوب عمل كې دی په مرتبه او وجوب كې نه دی. (المرقات ۱/۵۰۱).

## د شرعي منصبدار نه بغير د بل چا وعظ جائز نه دی

| |
|---|
| (۲۷) وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقُصُّ |
| د عوف بن مالک شجعي رضي الله عنه روايت دی وايي چې نبي عليه السلام وفرمايل: درې كسان دې قصه بيان |
| إِلَّا أَمِيرٌ أَوْ مَأْمُورٌ أَوْ مُخْتَالٌ [1] (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ) وَ رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ. عَنْ |
| كړي حاكم يا محكوم يا تكبر كوونكی ، او دارمي دا روايت د عمرو بن شعيب نه روايت كړی دی هغه د |
| أَبِيهِ . عَنْ جَدِّهِ . وَ فِي رِوَايَةٍ أَوْ مُرَاءٍ بَدَلَ أَو مُخْتَال . |
| خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه روايت كړی او د دارمي په روايت كې د مختال په ځای مراء (رياكار) دی |

**توضيح** : **لايقص** : **قص يقص قُصاص** او **قاص** د واعظ په معنې سره دی، مطلب دا دی چې د جمعې اخترونو او نورو خطبو حق غير ذمه دار افرادو لره نشته. (المرقات ۱/۵۰۲).

**الا امير**: يعنې هغه امير كوم چې شرعًا د مسلمانانو خليفه او بادشاه وي او په شرعي طور هم ذمه واروي (المرقات ۱/۵۰۲).

**او مامور** : يعنې كوم كس چې د شرعي امير او حاكم له طرفه مامور او مقرر وي يا براه راست د الله تعالی د طرفه مقرر وي لكه چې علماء كرام دي، كله چې حكام په خپله نااهله يا جاهلان وي لكه چې نن سبا د مسلمانانو حاكمان دي، يا خو جاهلان او منافقان دي يا په پټه كافر دي په داسې حالاتو كې د اسلام د ددين د احكامو سمبالولو ذمه واري د الله تعالی د طرفه علماء حقو ته سپارل شوې ده.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱۸۳/٤ رقم الحديث . ۳۶۶۷

**او مختال**: د للفظ د **اختیال** نه د تکبر په معنی سره دی، یو لفظ مراء هم دی د کوم معنی چې ریا کاري ده، خلاصه دا ده چې وعظ او نصیحت درې کسان کولی شي، مګر د دوو دپاره روا دي او دریم متکبر دی او ځان ښودونکی دی ځکه چې کوم خلک د علماو نه په غیر وعظ او بیان کوي او ګرځي هغه په دې دریم قسم کې داخل دي. (المرقات ۱/۵۰۲).

## د علم نه بغیر فتوی ورکول جائز نه دي

| |
|---|
| **(۳۸)** وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أُفْتِيَ بِغَيْرِ عِلْمٍ |
| د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چاته چې د علم نه بغیر فتوی ورکړې |
| كَانَ إِثْمُهُ عَلَى مَنْ أَفْتَاهُ وَ مَنْ أَشَارَ عَلَى |
| شوه نو د هغه ګناه په هغه باندې شوه کوم چې ده ته غلطه فتوی ورکړې ده، او چا چې مشوره ورکړه خپل |
| أَخِيهِ بِأَمْرٍ يَعْلَمُ أَنَّ الرُّشْدَ فِي غَيْرِهِ فَقَدْ خَانَهُ . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[1]. |
| ورور ته داسې مشوره د کوم متعلق چې هغه پوهیدلو چې د هغه خیر په دې کې نشته نو هغه خیانت وکړو. |

**توضیح**: **من افتي**: د فتوی په پوښتونکي مستفتي باندې لازمه ده چې هغه د عالم او ماهر مفتي نه د مسئلې تپوس وکړي دې دپاره چې هغه سمه مسئله ورونبایي، که چیرته پوښتنه کوونکی د کوم نا اهله نه پوښتنه وکړه او هغه غلطه مسئله ورونښودله نو په دغه غلطۍ کې مفتي او مستفتي دواړه ګناه ګار شول، او که پوښتنه کوونکی د ښه تفتیش او تحقیق او اعتماد نه وروسته د یو چا نه د مسئلې پوښتنه وکړه او هغه عالم نما صاحب چپنه او پګړۍ خو یې وه مګر په حقیقت کې سور جاهل وو او هغه ورته غلطه مسئله بیان کړه نو ګناه ګار صرف همدا غیر عالم مفتي صاحب دی، نن سبا دارنګه ناخبره جاهلان هم فتوې ورکوي او خلک د مستندو علماؤ طرف ته رجوع نه کوي. (المرقات ۱/۵۰۳).

## د مشکلو خبرو او معمی حکم

| |
|---|
| **(۳۹)** وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْأُغْلُوطَاتِ (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[2] |
| د حضرت معاویه رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مغالطې ورکولو نه منعه کړې ده. |

**توضیح**: **اغلوطات**: د اغلوطة جمع ده په هره ژبه کې په خپل خپل انداز سره پیچلې خبرې او معماګانې

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ٦٦/٤ رقم الحديث: ٣٦٥٧

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ٦٥/٤ رقم الحديث: ٣٦٥٦.

دي، د دارنګه مغالطو نه منعه شوې ده، مطلب دا شو چې د علماؤ په مغالطه کې د اچولو دپاره د هغوی نه دې د داسې مسائلو تپوس نه کيږي کوم چې د پيچيده والي او ذو معنی والي د وجې د ضرر او تکليف رسولو سبب جوړيږي، مثلا يو چا د بل چا نه پوښتنه وکړه چې ته په فرعون باندې ايمان راوړې او که يې نه راوړې؟ اوس که هغه وايي چې زه په هغه باندې ايمان راوړم نو سائل ورته وايي چې ته خو کافر شوې، او که چيرته هغه وايي چې زه ايمانورباندې نه راوړم نو سائل ورته وايي چې د فرعون قيصه او ذکر خو په قرآن کريم ځای پر ځای راغلی دی تا خو د قرآن نه انکار وکړو، يا يو انسان وايي **(من قال قال الله فقد كفر)** اوس اوريدونکي **قال** د **قول** نه ګڼلی دی او ويونکي د هغه نه قيلوله اخلي په دې کې د ايمان دپاره خطرات دي نو ددې نه منعه شوې ده.(المرقات ۱/۵۰۳).

خلاصه دا ده چې پيچيده والی که چيرته د بل چا د تذليل او توهين دپاره وو نو منعه دی، خو که يې يو څوک د خوش طبعي او د اذهانو د روښانه کولو دپاره وکړي نو هغه روا دی لکه **قال زيد تحت الشجرة فنقض وضوءه يا النار في الشتاء خير من الله و رسوله دلته من** د قسم دپاره دی، يا **اَنَّ زَيْدٌ كَرِيْمٌ** وغيره وغيره.

## د علم ميراث ويلو اهميت

| |
|---|
| **(۴۰) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ** |
| دابو هريره رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: تاسو زده کړئ فرائض علم ميراث |
| **وَ الْقُرْآنَ وَ عَلِّمُوا النَّاسَ فَإِنِّي مَقْبُوضٌ** . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1]. |
| او قرآن کريم او نورو ته يې ور وښايئ ځکه چې زه تلونکی يم (يعنې ددې دنيا نه پورته کيدونکی يم). |

**توضيح: الفرائض:** ددې نه مراد په قرآن او حديث سره ثابت شوي احکام دي، يا د ميراث علم مراد دی، ځکه چې علم الفرائض د علم ميراث نوم دی، او دا منل شوی امر دی چې په علومو کې د ټولو نه مخکې پورته کيدونکی علم د ميراث علم دی. (المرقات ۱/۵۰۴).

**فاني مقبوض:** په دويمه توجيه باندې همدا قرينه ده، چې زه د دنيا نه تلونکی يم نو د ميراث د علم دير زيات اهتمام وکړئ، او نورو ته يې ور زده کړئ.

**والقرآن:** يعني د قرآن مجيد د زده کولو اهتمام وکړئ، ځکه چې د امت دپاره زمانه وروسته قرآن

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۶۰، رقم الحديث: ۲۰۹۱

مجید د هدایت منفرده ذریعه ده، که چیرته د الفرائض نه احکام فرضیه مراد شي نو بیا والقرآن د تاکید په طور ذکر شوی دی، ترڅو چې د هغه اهمیت واضح شي. (المرقات ۱/۵۰۴).

| |
|---|
| (۲۱) وَ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| دابو الدرداء رضي الله عنه نه روایت دی چې یوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم د مونږ سره وو چې هغه صلی الله علیه وسلم |
| فَشَخَصَ بِبَصَرِهِ إِلَى السَّمَاءِ ثُمَّ قَالَ هٰذَا أَوَانٌ يُخْتَلَسُ فِيهِ الْعِلْمُ مِنَ النَّاسِ |
| خپل نظر د آسمان طرف ته پورته کړ او وې فرمایل: دا وخت دی چې علم به د انسانانو نه پورته کړی شي |
| حَتّٰى لَا يَقْدِرُوا مِنْهُ عَلٰى شَيْءٍ . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1]. |
| تردې پورې چې هغوی به د علم په ذریعه په هیڅ شي باندې قدرت ونه لرلی شي. |

**توضیح**: **یختلس**: اختلاس تختولو ته ویل کیږي، او د علم نه مراد د وحې علم دی. (المرقات ۱/۵۰۴).

د رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارک عادت وو چې د وحې په انتظار کې به زیاتره وخت رسول الله صلی الله علیه وسلم د آسمان طرف ته کتل، دا ځل د کتلو په وخت کې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د وحې په ذریعه دده د وفات کیدو خبر ورکړی شو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: اوس وخت راغلی دی چې د وحې راتلل بند کړی شي په دې سره رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپل وفات کیدو طرف ته اشاره وکړه.

## د مدینې عالم به لوی عالم وي

| |
|---|
| (۲۲) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رِوَايَةً يُوشِكُ أَنْ يَضْرِبَ النَّاسُ أَكْبَادَ الْإِبِلِ |
| د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې هغه زمانه نږدې ده چې کله خلک ځیرې کړي جګرونه د اوښانو د |
| يَطْلُبُونَ الْعِلْمَ فَلَا يَجِدُونَ أَحَدًا أَعْلَمَ مِنْ عَالِمِ الْمَدِينَةِ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[2] |
| علم د حاصلولو د پاره مګر د مدینې د عالم نه به زیات لوی عالم څوک پیدا نه کړي. |
| وَ فِي جَامِعِهِ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ إِنَّهُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ وَ |
| او په جامع ترمذي کې د ابن عیینه نه منقول دي چې: د مدینې هغه عالم مالک بن انس رحمه الله دی، او |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۳۱ ، رقم الحديث ۲۶۵۳

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۴۶ ، رقم الحديث ۲۶۸۰

| |
|---|
| مِثْلَهُ عَنْ عَبْدِ الرَّزَّاقِ قَالَ إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى وَ سَمِعْتُ ابْنَ عُيَيْنَةَ |
| عبد الرزاق هم داسې نيكلي او د اسحق بن موسى بيان دى چې ما د ابن عيينه نه داسې آوريدلي دي چې |
| أَنَّهُ قَالَ هُوَ الْعُمَرِيُّ الزَّاهِدُ وَ اسْمُهُ عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللهِ. |
| هغه ع نه عمري زاهد دى (چې د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خاندان نه دى) چې نوم يې عبد العزيز بن عبد الله دى. |

**توضيح :يضرب الناس:** ضرب د وهلو په معنى سره راغلى دى. ليكن دلته مراد سفر دى. الضرب د سفر په معنى سره راغلى دى. (المرقات ١/٥٠٤).

**اكباد :** د كبد جمع ده جگر ته ويل شوى دى. د اوښانو د جگر په لفظ كې د تيز تلو نه كنايه ده. ځكه كله چې ځناور تيز ځغلي نو د هغه په جگر كې حركت راځي گويا چې جگر يې وهل كيږي. بهر حال ددې جملې نه لرې لرې سفر مراد دى. (المرقات ١/٥٠٥).

**من عالم المدينة :** د حديث شريف دا پيشنگوئي د يوې خاصې زمانې د مخصوص عالم په باره كې ده كوم به چې په مدينه منوره كې اوسيدونكى وي. د همدې پيشنگوئي مصداق د زياتره علماؤ په نزد امام دار الهجرة امام مالك دى. سفيان بن عيينه رَحِمَهُ اللهُ او مشهور محدث شيخ عبد الزاق رَحِمَهُ اللهُ هم د حديث مصداق امام مالك گرځولى دى. بعضو ويلي دي چې ددې نه مراد عمريْ زاهدي دى د كوم نوم چې عبد العزيز بن عبد الله رَحِمَهُ اللهُ دى. بعضو ويلي دي چې ددې نه مراد خليفه راشد عمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ دى مگر راجح قول اول دى. ځكه چې د ټولې نړۍ د لرې لرې علاقو نه زرگونه شاگردان د اوښانو په كتارونو كې مدينې ته راغلي وو. او په خپله امام مالك واقعي د مدينې منورې عالم هم وو. ځكه چې د متيازو او قضاء حاجت نه په غير دا هيڅكله د مدينې منورې نه بهر نه دى تلى. داسې بل څوك كيدلى شي؟. (المرقات ١/٥٠٥).

## مجدد څوک كيدې شي؟

| |
|---|
| (٤٣) وَ عَنْهُ فِيمَا أَعْلَمُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ما ته څه معلوم شوي دي هغه دا دي چې |
| قَالَ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَ جَلَّ يَبْعَثُ لِهٰذِهِ الْأُمَّةِ عَلَى رَأْسِ كُلِّ مِائَةِ سَنَةٍ |
| رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : الله تعالى ددې امت د نفع د پاره په سلو كلونو باندې يو كس راليږي |

مَنْ يُجَدِّدُ لَهَا دِينَهَا (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[1].

کوم چې د هغوی دین تازه کوي.

**توضيح**: **يبعث**: د لیږلو او پیدا کولو په معنی سره استعمال شوی دی. (المرقات ۱/۵۰۷).

**من يجدد**: دا لفظ د **تجديد** نه د **جدت** په معنی دی، یعنې د هرې صدی په موقع الله تعالی یو مجدد پیدا او رالیږلی دی، په هره صدی او سلو کلونو باندې یو قرن ختمیږي، کله چې لومړني علماء او صلحاء ختم شي یا کمزوري شي نو بدعات، رسومات او قسما قسم مفاسد په دین کې داخل کړی شي، د هغو د اصلاح د پاره الله تعالی علماء کرام او مجددین پیدا کړي دي کوم چې په دین او غیر دین کې امتیاز کوي رسومات او بدعات ختموي او د دین اصلاح کوي، د ټولې نړۍ د پاره د یو مجدد کیدل ضروري نه دي، بلکې په یو زمانه کې ډیر مجددین کیدلی شي، بلکې یوه صالح جماعت ته هم مجدد ویل کیدی شي، لیکن د مجدد د پاره دا ضروري دي چې د هغه حرکات سکنات اعمال او افعال به د رسول الله ﷺ د سنتو سره برابر وي او د هغو د وجې به په علمي او عملي اعتبار سره د دین غلبه حاصلیږي د کوم به چې په یو لاس کې قرآن او په بل لاس کې به یې احادیث وي او هر محرک مجدد کیدی نه شي. (المرقات ۱/۵۰۷). څکه یو شاعر وايي:

*ہزار نکتہ باریک تر ز مو اینجا است ❁ نہ ہر کہ سر بتراشد قلندری داند*

## د دين ساتنه

| |
|---|
| (۴۴) وَعَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْعُذْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د حضرت ابراهیم بن عبد الرحمن عذری رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د |
| يَحْمِلُ هٰذَا الْعِلْمَ مِنْ كُلِّ خَلَفٍ عُدُولُهُ |
| هر راتلونکي جماعت نه دې د هغوی نیک (یعنې ثقه او معتمد) خلک دا علم (کتاب او سنت) حاصل کړي |
| يَنْفُونَ عَنْهُ تَحْرِيفَ |
| او هم دا خلک دي چې لرې کړي به یې دی د همدې (علم) په ذریعه (په آیتونو او احادیثو) کې تحریف د حد نه د |
| الْغَالِينَ وَ انْتِحَالَ الْمُبْطِلِينَ وَ تَأْوِيلَ الْجَاهِلِينَ (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي كِتَابِ الْمَدْخَلِ) |
| تیریدونکو او د اهل باطله افتراء او د جاهلانو تاویلات، دا حدیث بیهقي په خپل کتاب مدخل کې د عذري نه |

(۱) أخرجه ابو داود في السنن ۴/۱۸۰ رقم الحديث ۴۲۹۱.

**( و سنذکر حدیث جابر فانما شفاء العی السؤال فی باب التیمم ان شاء الله تعالی ).**

بیان کړی دی او د جابر رضي الله عنه روایت **فانما شفاء العی السؤال** به په **باب التیمم** کې بیان کړو ان شاء الله

**توضیح** : **یحمل** : دا لفظ د پورته کیدو په معنی سره هم دی او د ده ترجمه په یحصل سره هم شوې ده، (المرقات ۱/۵۰۸).

د **هذا العلم** لفظ د **یحمل** دپاره مفعول دی او **عدوله** یې فاعل دی، او د **من کل خلف** سره متعلق دی. **عدل** د عادل نه معتدل دافراط او تفریط نه پاک ثقه او معتمد خلک مراد دي، ملاعلي قاري رحمه الله لیکلي دي چې که په **من کل خلف** کې که چیرته **من** زائد شي نو دا د **یحمل** فاعل او **عدوله** یې بدل جوړیږي. (المرقات ۱/۵۰۸).

**خلف** : وروسته راتلونکو بنو خلکو ته ویل کیږي، دلته د بنو خلکو جماعت مراد دی (المرقات ۱/۵۰۸)

**غالین** : د غلو نه د غال جمع ده د حدنه د تیریدو په معنی دی، دلته په دین کې غلو کوونکي مبتدعین او اهل بدعت مراد دي. (المرقات ۱/۵۰۸).

**انتحال** : دروغژن نسبت ته ویل کیږي، یعني د اهل باطل دروغژن نسبتونه کوم چې د علماؤ او بزرګانو طرف ته کوي او دروغژنې حوالې ورکوي. (المرقات ۱/۵۰۸).

**وتاویل الجاهلین** : یعني په آیتونو کې همدا جاهل خلک بې ځایه تاویلونه کوي، او آیتونه د خپل مقصد دپاره بې ځایه استعمالوي.

په دغه حدیث کې د دین اسلام د ساتنې طرف ته اشاره ده، چې په هره زمانه کې به جید علماء کرام افراط او تفریط نه پاک د حق دین د سرحداتو د ساتنې دپاره به موجود وي، کوم به چې په دین کې د درې قسمه غلو سره مقابله کوي :د غلو اوله طبقه هغه ده کومه چې په قرآن او احادیثو کې د خپل مقصد دپاره تحریف کوي لکه قادیاني پرویزي وغیره. او د غلو دویمه طبقه هغه ده کومه چې په هغو کې دروغژنې قیصې او د بزرګانو طرف ته غلط خیالات منسوب کوي او خپل مقاصد حاصلوي، لکه روافض اهل بدعت وغیره. او د غلو دریمه طبقه هغه ده کومه چې جاهل دي او د خپل جهالت د وجې آیتونه د خپلو مقاصدو دپاره استعمالوي، نن سبا د دې مصداق عصري طبقه ده کومه چې په پوهانو، پروفیسرانو او قاضیانو باندې مشتمله، کوم چې د قرآن او حدیث حکمونه د خپل عقل او پوهې تابع کول غواړي او په هغو کې قسما قسم مکروه تاویلات کوي. (المرقات ۱/۵۰۸). ګویا چې :

خود بدلتے نہیں قرآن بدل دیتے ہیں

۱۲ صفر ۱٤۱۰هـ

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د طالب العلم انتهائي فضيلت

| |
|---|
| (۴۵) عَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلًا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَنْ |
| د حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ نه په مرسل طریقه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: کوم کس ته چې |
| جَاءَهُ الْمَوْتُ وَ هُوَ يَطْلُبُ الْعِلْمَ لِيُحْيِيَ بِهِ الْإِسْلَامَ |
| مرګ په داسې حال کې راشي چې هغه علم حاصلوي په دې غرض سره چې دا دې علم په ذریعه اسلام رواج |
| فَبَيْنَهُ وَ بَيْنَ النَّبِيِّينَ دَرَجَةٌ وَاحِدَةٌ فِي الْجَنَّةِ. (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ)(۱). |
| کړي نو په جنت کې به دده او د انبیاء کرامو په درجه کې صرف یو فرق وي (او هغه د نبوت مرتبه ده). |

**توضیح**: **فبینه** :په جنت کې سل درجې دي کومې به چې انبیاء کرامو ته ورکول کیږي، او کوم چې د انبیاء کرامو نائبین علماء کرام دي هغو ته نهه نوي (۹۹) درجې ورکول کیږي، پهدې وجه د دوی او د انبیاء کرامو په مینځ کې یوه درجه فرق بنودل شوی او همدا د نبوت درجه ده، چې د علم دین د ژوندي کولو او خورولو دپاره کوم عالم او طالب محنت کوي او مړ شي نو د نبوت نه په غیر ټولې درجې هغه ته ورکول کیږي.

د حسن نه مراد حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ دی، د تابعینو په طبقه کې کله چې د مطلق حسن نوم راشي د هغه نه مراد حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ دی، او د صحابه کرامو په طبقه کې چې مطلق د عبد الله نوم راشي نو د هغه نه مراد ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی. (المرقات ۵۱۰).

## په عابد باندې د عالم انتهائي فضیلت

| |
|---|
| (۴۶) وَ عَنْهُ مُرْسَلًا قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنْ رَجُلَيْنِ |
| د حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ نه مرسل روایت دی چې پوښتنه وشوه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د دوه کسانو په باره |
| كَانَا فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ أَحَدُهُمَا كَانَ عَالِمًا يُصَلِّي الْمَكْتُوبَةَ ثُمَّ يَجْلِسُ فَيُعَلِّمُ |
| کې د بني اسرائیلو نه په هغو کې یو عالم وو کوم چې فرض مونځ اداء کولو او بیا به کیناست او علم به یې |

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۱۱۲/۱، رقم الحديث ۳۵۴.

| |
|---|
| النَّاسَ الْخَيْرَ وَ الْآخَرُ يَصُومُ النَّهَارَ وَ يَقُومُ اللَّيْلَ |
| خلكو ته ورزده كولو او دويم كس هغه ؤكوم چې دورځې روژې نيولې او ټوله شپه يې عبادت كولو (لهذا د |
| أَيُّهُمَا أَفْضَلُ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نه پوښتنه وشوه) چې په دې دواړو كې كوم يو بهتر دى؟ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| فَضْلُ هٰذَا الْعَالِمِ الَّذِي يُصَلِّي الْمَكْتُوبَةَ ثُمَّ يَجْلِسُ فَيُعَلِّمُ النَّاسَ الْخَيْرَ عَلَى الْعَابِدِ الَّذِي |
| فضيلت د هغه عالم كوم چې فرض مونځ ادآء كوي بيا كيني او خلكو ته علم ورزده كوي په هغه عابد باندې |
| يَصُومُ النَّهَارَ وَ يَقُومُ اللَّيْلَ كَفَضْلِي عَلَى أَدْنَاكُمْ. (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ)[1]. |
| چې دورځې روژې نيسي او دشپې عبادت كوي داسې دى لكه زما فضيلت ستاسو په ادنى كس باندې. |

## عالم ته بې نيازه او سيدل په كار دي

| |
|---|
| ﴿٢٧﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِعْمَ الرَّجُلُ |
| د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: بهتر كس هغه دى كوم چې |
| الْفَقِيهُ فِي الدِّينِ إِنِ احْتِيجَ إِلَيْهِ نَفَعَ وَ إِنِ اسْتُغْنِيَ عَنْهُ |
| په دين باندې پوهيږي كه چيرته هغه ته كوم حاجت راوړى شي نو فائده ورسوي او كه دده نه بې پروائي |
| أَغْنَى نَفْسَهُ.[2] (رَوَاهُ رَزِينٌ). |
| وكړى شي نو دا هم خپل نفس بې پرواه ساتي. |

**توضيح**: ددې حديث مطلب دا دى چې د يو عالم دين دا شان كيدل په كار دي چې هغه دې خپل ځان د خلكو محتاج وګرځوي او خپل حيثيت دې كمزورى نه كړي. او د خپلو غلطو مقاصدو او دنيوي اغراضو د وجې دې د عوامو او ظالمو جاهلانو طرف ته ميلان ونه كړي او نه لالچ وكړي. ليكن د دې مطلب دا هم نه دى چې هغه خپل علوم پټ كړي د خداى تعالى د مخلوق نه بيخي جدا شي او دخپلو علومو نه هغوى محروم كړي، كله چې عوام الناسو ته د هغه علم ته ضرورت وي او دويم كوم عالم نه وي نو په داسې صورت كې د عوامو سره ربط او رابطه ضروري ده.

---

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۱۰۹/۱، رقم الحديث ۳۴۰

(۲) أخرجه رزين

خو كه چيرته عوام بالكل په هيڅ شي كې ددې عالم طرف ته توجه نه كوي اودهغه نه لاپرواهي غوره كوي د هغه نه علمي استفادې ته هيڅ ضرورت نه محسوسوي نو داسې عالم ته هم روا دي چې د هغوى نه مستغني او بې پروا شي، او په خپل عبادت او علمي مشاغلو كې مصروف شي، ځكه چې (ليس للمسلم ان يذل نفسه) هم يو حديث دى. (المرقات ۱/۵۱۱).

## زيات وعظ مه كوئ

| |
|---|
| (۴۸) وَ عَنْ عِكْرِمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ حَدِّثِ النَّاسَ كُلَّ |
| دعكرمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عكرمه ته وويل : ته حديث بيان كړه خلكو ته هره |
| جُمُعَةٍ مَرَّةً فَإِنْ أَبَيْتَ |
| جمعه يو ځل كه چيرته هغه قبول نه كړې (يعنې كه په هفته كې يو ځل وعظ او نصيحت كافي ونه ګڼې) نو |
| فَمَرَّتَيْنِ فَإِنْ أَكْثَرْتَ فَثَلَاثَ مَرَّاتٍ وَلَا تُمِلَّ |
| په (هفته كې) دوه ځلې نو رهم وكړه او په هفته كې درې ځلې (وعظ او نصيحت كولی شی) او تاسو دې تنګ |
| النَّاسَ هٰذَا الْقُرْآنَ |
| نه كړئ خلک په همدې قرآن سره (په هفته كې د دريو ځلو نه زيات نصيحت كولو سره خلک ستړي نه كړئ) |
| وَلَا أُلْفِيَنَّكَ تَأْتِي الْقَوْمَ وَ هُمْ فِي حَدِيثٍ مِنْ |
| او زه دې تاسو په داسې حالت كې پيدا نه كړم چې تاسو د كوم قوم خوا ته ورشئ او هغوى په خپلو خبرو كې |
| حَدِيثِهِمْ فَتَقُصُّ عَلَيْهِمْ فَتَقْطَعُ عَلَيْهِمْ حَدِيثَهُمْ |
| مشغول وي او تاسو د هغوى خبرې پرې نه كړئ چې د هغو پر وړاندې وعظ او نصيحت شروع كړئ (او په |
| فَتُمِلُّهُمْ وَ لٰكِنْ أَنْصِتْ |
| همدې شان) تاسو هغوى خفه كړئ، په داسې موقع باندې تاسو ته په كار دي چې تاسو خاموش اوسئ، |
| فَإِذَا أَمَرُوكَ فَحَدِّثْهُمْ وَ هُمْ |
| البته كه چيرته هغوى تاسو نه د وعظ او نصيحت كولو مطالبه وكړه نو تاسو ورته حديث بيان كړئ ترڅو مره |
| يَشْتَهُونَهُ وَ انْظُرِ السَّجْعَ مِنَ الدُّعَاءِ فَاجْتَنِبْهُ فَإِنِّي |
| چې د هغوى خواهش وي او تاسو په دعاګانو كې د مقفى عبارت نه ځان وساتئ او ددې نه ځان وساتئ ځكه |

عَهِدْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ أَصْحَابَهُ لَا يَفْعَلُونَ ذٰلِكَ (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1].

ماته معلومه شوې ده چې رسول الله ﷺ او د هغه صحابه کرامو رضي الله عنهم هم داسې نه وو کړي (يعنې په دعاګانو کې يې مقفى عبارت نه وو استعمال کړى).

**توضيح : كل جمعة مرة** : په دغه حديث کې په دې خبره باندې زور شوى چې د وعظ او نصيحت په معامله کې د اعتدال د موقع او ماحول رعايت کول ضروري دي، ځکه چې د اثر اندازۍ په اعتبار سره د دعوت اوتبليغ همدا بنيادي کانې دي، په کوم باندې چې د تبليغ د کاميابۍ مکمل دار مدار دى. په دغه حديث کې ابن عباس رضي الله عنه خپل شاګرد ته لومړى خبره دا وښودله چې په جمعه کې د يو ځل نه زيات نه زيات درې ځلې د عوامو په وړاندې وعظ او نصيحت وکړه. دويمه خبره هغه رضي الله عنه دا وښودله چې د قرآن په ذريعه خلک تنګ نه کړئ. دريمه خبره يې دا وښودله چې داسې هيڅکله مه کوئ چې تاسو د کوم قوم خواته راشئ هغوى په خپلو خبرو اترو کې مصروف وي او تاسو سمدستي وعظ او نصيحت ورته شروع کړئ او د هغوى خبرې پرې کړئ، بلکې تاسو چوپ کېنئ د هغوى خبرې واورئ، که چيرته هغوى تاسو ته د وعظ او نصيحت کولو وړانديز وکړي نو تاسو د هغوى د وړانديز مطابق مختصرې خبرې وکړئ. څلورمه خبره دا ده چې کله دعا غواړئ نو د سجعې او قافيې نه ځان وساتئ.

د انظر مطلب دا دى چې د سجعې نه د ځان ساتلو خيال وساتئ، دلته د کاهنانو په شان په تکلف سره د سجع په جوړولو سره د دعا د کولو نه منعه شوې ده، که نه نو بغير د تکلف او تصنع نه که چيرته په دعا کې سجع راغله نو هغه منعه نه ده ، ځکه چې په احاديثو کې دعاګانې راغلې دي په هغو کې په کثرت سره سجع موجوده ده، کومه چې په طبعي کلام کې د تکلف نه په غير راغلې ده، سجع مقفى کلام ته ويل شوي دي.(المرقات ۱/۵۱۲).

## ناکام طالب العلم هم کامياب دى

(۲۹) وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ

د واثله بن اسقع رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم کس چې د علم طالب وي

فَأَدْرَكَهُ كَانَ لَهُ كِفْلَانِ مِنَ الْأَجْرِ فَإِنْ لَمْ يُدْرِكْهُ

او هغه ته علم حاصل هم شي نو هغه ته دوه چنده ثواب ورکول کيږي او که چيرته هغه ته علم حاصل نه شي

(۱) اخرجه البخاري ۱۱/۱۳۸، رقم الحديث : ۶۳۳۷، اخرجه أحمد في المسند ۶/۲۱۷.

| |
|---|
| كَانَ لَهُ كِفْلٌ مِنَ الْأَجْرِ (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ)[1]. |
| نو هغه ته یوه حصه ثواب ورکول کیږي. |

**توضیح**: **کفلان**: دوه ثوابونه داسې ورکول کیږي چې یو ثواب د طالب العلم په محنت او مشقت باندې ورکول کیږي او دویم ثواب د علم په حصول ورکول کیږي، ځکه چې د علم په حاصلولو سره د علم د خورولو لار خلاصیږي او په علم باندې د عمل کولو موقع هم پیدا کیږي، لهذا دوه چنده ثواب ورکول کیږي، او که چیرته د محنت او مشقت باوجود علم ورته حاصل نه شو نو یو ثواب خامخا ورکول کیږي. (المرقات ۱/۵۱۳).

ددې حدیث نه معلومه شوه چې د علم دین طالب العلم ناکام کیدلی نه شي، په دې شرط چې هغه په سم نیت په علم کې مصروف شوی وي، بلکې په هر حالت کې کامیاب دی. یو چا څه ښه ویلي دي:

گرچه نتوان بدوست ره بردن ❀ شرط یاری است در طلب مردن

## د مړي دپاره صدقه جاریه

| |
|---|
| (۵۰) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِمَّا يَلْحَقُ الْمُؤْمِنَ مِنْ |
| دابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هغه څه چې رسي مؤمن ته دهغه د |
| عَمَلِهِ وَ حَسَنَاتِهِ بَعْدَ مَوْتِهِ عِلْمًا عَلِمَهُ |
| کوم عمل یا د کومو نیکو ثواب د هغه د مرگ نه وروسته په هغو کې یو علم دی کوم چې هغه ورښودلی |
| وَ نَشَرَهُ وَ وَلَدًا صَالِحًا تَرَكَهُ أَوْ مُصْحَفًا |
| اورواج کړی. دویم هغه نیک اولاد دی کوم چې ده د ځان نه وروسته پریښی دی، دریم قرآن مجید دی کوم |
| وَرَّثَهُ أَوْ مَسْجِدًا بَنَاهُ |
| یې چې د وارثانو دپاره پریښی دی، څلورم جومات دی کوم یې چې په خپل ژوند کې جوړ کړی دی، پنځم |
| أَوْ بَيْتًا لِابْنِ السَّبِيلِ بَنَاهُ أَوْ نَهَرًا أَجْرَاهُ أَوْ |
| مسافرخانه ده کومه چې هغه په خپله جوړه کړې ده، شپږم هغه نهر دی کوم چې هغه جاري کړی دی، او |

(۱) اخرجه الدارمي في سننه ۱/۱۰۸ رقم الحدیث ۳۳۵.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| صَدَقَةٌ | أَخْرَجَهَا | مِنْ | مَالِهِ | فِيْ | صِحَّتِهِ | وَ حَيَاتِهِ |
| او هغه خيرات دى كوم چې هغه په خپل صحت او ژوند كې د خپل مال نه ويستلى دى. ددې ټولو ثوابونو | | | | | | |
| تَلْحَقُهُ مِنْ بَعْدِ مَوْتِهِ (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ)[1]. | | | | | | |
| ثواب د هغه د مړينې نه وروسته هغه ته رسيږي. | | | | | | |

**توضيح**: ان مما يلحق: انسان چې كله مړ شي نو د هغه د اعمالو سلسله قطعه شي هغه كه چيرته د مرګ نه وروسته په عالم برزخ كې كوم نيک عمل ترسره كړي دى نو په هغه باندې ثواب نه شي وركول كيدى، هو په حديث كې يوڅو اعمال ذكر شوي دي چې د هغو اعمالو ثواب مړي ته رسيږي. دلته حصر كول مقصود نه دي بلكې د خير او نيكۍ چې كومه سلسله وي هغه مراد ده او د هغې ثواب مړي ته رسيږي، په دې سره د ايصال ثواب ثبوت راغلى دى، د كوم نه چې معتزلو انكار كړى دى. (المرقات ۱/۵۱۳).

## د علم د طلب لارې د جنت لارې دي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (۵۱) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّهَا قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ | | | | | | | | | |
| حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه آوريدلي دي چې فرمايل يې: الله تعالى | | | | | | | | | |
| أَوْحَى | إِلَيَّ | أَنَّهُ | مَنْ | سَلَكَ | مَسْلَكًا | فِيْ | طَلَبِ | الْعِلْمِ | سَهَّلْتُ لَهُ |
| زما طرف ته دا وحي (خفي) رالیږلې چې څوک د علم د طلب دپاره لار غوره كړي نو زه آسانوم په هغه باندې | | | | | | | | | |
| طَرِيقَ | الْجَنَّةِ | وَ | مَنْ | سَلَبْتُ | كَرِيمَتَيْهِ | | | | |
| لارې د جنت او د كوم كس چې ما دواړه سترګې اخيستې (يعنې كوم كس روند شي نو د هغه د دنيوي نعمتونو | | | | | | | | | |
| أَثَبْتُهُ | عَلَيْهِمَا | الْجَنَّةَ | وَ | فَضْلٌ | | | | | |
| نه محرومي او په دې باندې صبر او شكر په بناء باندې) زه د دې بدله هغه ته په جنت كې وركوم، او زيادت | | | | | | | | | |
| فِيْ عِلْمٍ خَيْرٌ مِنْ فَضْلٍ فِيْ عِبَادَةٍ وَمِلَاكُ الدِّينِ الْوَرَعُ (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ ۵/۵۳، فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ). | | | | | | | | | |
| په علم كې دا بهتر دى د زيادت نه په عبادت كې او د دين مهر پرهيزګاري ده. | | | | | | | | | |

**توضيح**: سلبت كريمتيه: سلب د راخكلو په معنى سره دى، كريمتيه دواړو سترګو ته ويل كيږي مراد د سترګو د نور تلل دي. ځكه چې د زيات كسب له وجې د نور پټې مراوې كيږي. (المرقات ۱/۵۱۵).

---

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۸۸ رقم الحديث ۲۴۲، والبيهقي في شعب الإيمان ۳/۲۴۷ رقم الحديث ۳۴۴۸.

**وفضل**: ددې نه مراد په علم کې زیاتوالی او زیادت دی، یعنې د علم زیاتوالی د عبادت د زیاتوالي نه بهتر دی. (المرقات ۱/۵۱۵).

**وملاک**: اصل بیخ او بنیاد ته ملاک ویل شوي دي. (المرقات ۱/۵۱۵).

**الورع**: پرهیزګاری ته ویل شوي دي. (المرقات ۱/۵۱۵).

## تدریس کول د تهجدو نه بهتر دی

| |
|---|
| (۵۲) وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ تَدَارُسُ الْعِلْمِ سَاعَةً مِنَ اللَّيْلِ |
| د ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: په شپه کې لږ شان د علم درس ورکول |
| خَيْرٌ مِنْ إِحْيَائِهَا (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ ٢٦٨، ٦١٧)[1]. |
| د ټولې شپې د ژوندي کولو نه بهتر دي. |

**توضیح**: **تدارس العلم**: یعنې دیو ساعت دپاره دعلمي درس او تدریس مشغله د ټولې شپې د عبادت نه بهتره ده ځکه چې دعبادت تعلق ددې کس د ذات سره تړل شوي او علمي مشغله درس تدریس تحریر او تصنیف د مسلمان امت عمومي خدمت دی، دارنګه عابد او دهغه عبادت یو وقتي او عارضي عمل دی، او علمي مشغله دائمي، متعدي او فائده رسونکی عمل دی، نو ځکه دا بهتر دی. (المرقات ۱/۵۱۵).

## رسول الله صلی الله علیه وسلم د معلم په صفت راغلی ؤ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (۵۳) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِمَجْلِسَيْنِ | | | | | | | |
| عبد الله بن عمرو رضي الله عنه وایي دي چې یو ځل د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دوه مجلسونو باندې تیر یدل و شو | | | | | | | |
| فِي | مَسْجِدِهِ | | فَقَالَ | كِلَاهُمَا | عَلَى | خَيْرٍ | |
| کوم چې په مسجد نبوي کې جوړ شوي وو، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: دواړه په نیکۍ باندې دي، | | | | | | | |
| وَ | أَحَدُهُمَا | أَفْضَلُ. | مِنْ | صَاحِبِهِ | أَمَّا | هَؤُلَاءِ | فَيَدْعُونَ |
| لیکن په دوی کې یو په (نیکۍ کې) د بل نه بهتر دی یو ه ډله په عبادت کې مصروفه ده، دعاګانې غواړي د | | | | | | | |

(۱) اخرجه الدارمي ۱/۱۵۷ رقم الحديث: ۱٤.

اللهَ وَ يَرْغَبُونَ إِلَيْهِ

الله تعالى نه او دهغه سره دښېل رغبت اظهار کوي (يعني د مقصد د حصول دپاره د الله طرف ته اميد لرونکي

فَإِنْ شَاءَ أَعْطَاهُمْ

دي او د مقصد حصول په الهي رضا باندې موقوف دی) لهذا که يې خدای وغواړي نو ورته يې کړي او که

وَ إِنْ شَاءَ مَنَعَهُمْ وَأَمَّا هَؤُلَاءِ فَيَتَعَلَّمُونَ الْفِقْهَ أَوِ الْعِلْمَ وَيُعَلِّمُونَ الْجَاهِلَ فَهُمْ

وغواړي نو ورته يې نه کړي، او دويمه ډله فقه يا علم حاصلوي او جاهلانو ته علم ورزده کوي، لهذا دا خلک

أَفْضَلُ وَ إِنَّمَا بُعِثْتُ مُعَلِّمًا ثُمَّ جَلَسَ فِيهِمْ. (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ)[1].

بهتر دي او زه د معلم په صفت رالېږل شوی يم او بيا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله هم په هغو کې کيناست.

**توضیح : فهم افضل** : په دې سره د هغو حضراتو ترغيب مقصود دی که نه په خير او نيکۍ کې خو دواړه دي، مگر د علم مجلس د نفع فائده ورکونکی او متعدي دی، د همدې امله دا بهتر دی، د مجلس عبادت او د عابدينو د فضيلت نفي مقصود نه ده. (المرقات ۱/۵۱۶).

**انما بعثت معلما** : يو تعدادنا خبره خلکو ويلي دي چې په اسلام کې د تعليم او تعلم ذکر راغلی دی، د درس او تدريس نه دی راغلی، لهذا مونږ تعليم کړی دی نو مونږ د همدې فضائلو مستحق يو، دا لغوه اپې فائدې خبره ده، کومه چې د بې علمۍ د وجې د خولو وتلې ده، په قرآن کې د درس لفظ راغلی دی. (المرقات ۱/۵۱٦).

او ددې نه په مخکني حديث کې د تدارس العلم لفظ راغلی دی، لهذا د درس تدريس او مدرسينو توهين کول نه دي په کار.

**ثم جلس فيهم** : ددې دلې د اهتمام شان، اکرام او د اعزاز ظاهرولو په غرض يې هغوی ته تشريف ورووړلو، (المرقات ۱/۵۱٦). ځکه چې:

کلاه گوشهٔ دهقان به آفتاب رسید ❁ که سایه بر سرش انداخت چون تو سلطانی

همدارنگه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د علم په مجلس کې د دې دپاره کيناستلو چې شايد هغوی ته د ديني تعليم ورکولو ضرورت پېښ شي.

---

[1] أخرجه الدارمي ١/١١١ رقم الحديث: ٣٤٩.

## د څلويښتو احاديثو يادولو فضيلت

| |
|---|
| ﴿۵۴﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا حَدُّ الْعِلْمِ |
| دابو الدرداء رضي الله عنه نه روايت دی چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړی شوه چې د علم مقدار څه دی |
| الَّذِي إِذَا بَلَغَهُ الرَّجُلُ كَانَ فَقِيهًا |
| چې کله انسان دومره علم حاصل کړي نو فقيه (عالم) شي (او په آخرت کې د هغه شمار په علماؤ کې وشي) |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَفِظَ عَلَى أُمَّتِي أَرْبَعِينَ حَدِيثًا فِي |
| رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: چا چې ياد کړل زما امت ته د فايدې رسولو د پاره څلويښت حديثونه د |
| أَمْرِ دِينِهَا بَعَثَهُ اللهُ فَقِيهًا وَكُنْتُ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شَافِعًا |
| امر دين نو په قيامت کې به هغه الله تعالى فقيه را پورته کړي او زه به په قيامت کې د هغه شفاعت کوونکی |
| وَ شَهِيْدًا.[1] |
| او (د هغه په اطاعت باندې) گواه جوړ شم. |

**توضيح: من حفظ على امتي**: يعنې زما امت ته د نيکۍ او خيرخواهۍ د پاره څلويښت حديثونه ولولي او هغو ته يې ورسوي برابره خبره ده که يې ورباندې ياد کړي يا يې په تصنيف کولو سره ورسوي او يا يې په کومه بله ذريعه تر هغو پورې ورسوي، ټول په کې داخل دي، ددې حديث د بشارت په نظر کې نيولو د وجې د امت محدثينو او علماؤ د اربعين يا اربعينات په نامه ډير زيات کتابونه ليکلي دي.

**امر دينها**: يعنې کوم احاديث چې د دين د احکامو سره متعلق وي يوازې د واقعاتو سره يې تعلق نه وي. (المرقات ۱/۵۱۷).

## د علم دين عالم د هر چا نه زيات سخي دی

| |
|---|
| ﴿۵۵﴾ وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| دانس رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د (صحابه کرامو په مخاطب کولو سره) وفرمايل |
| هَلْ تَدْرُونَ مَنْ أَجْوَدُ جُودًا قَالُوا |
| آيا تاسو پوهيږئ چې د سخاوت په معامله کې تر ټولو زيات سخي څوک دی؟ صحابه کرامو عرض وکړ: |

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۲/۲۷۰، رقم الحديث ۱۷۲۶

اللهُ وَ رَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ اللهُ تَعَالَى أَجْوَدُ

الله او دهغه رسول رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ښه پوهيږي، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: الله تعالى په سخاوت کوونکو

جُودًا ثُمَّ أَنَا أَجْوَدُ بَنِي آدَمَ وَ أَجْوَدُهُمْ مِنْ بَعْدِي

کې تر ټولو لوی سخي دی او په بني آدمو کې د ټولو نه لوی سخي زه يم، بيا په خلکو کې زمانه تر ټولو لوی

رَجُلٌ عَلِمَ عِلْمًا فَنَشَرَهُ يَأْتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَمِيرًا وَحْدَهُ أَوْ قَالَ

سخي هغه دی کوم چې علم زده کړه او هغه يې خور کړه هغه کس به د قيامت په ورځ يو امير يا يې وفرمايل

أُمَّةً وَاحِدَةً[1].

چې ديوې ډلې په شان به راځي.

**توضيح : اجود جوداً :** يعني په ټولو سخيانو کې د سخاوت په اعتبار سره الله تعالى تر ټولو لوی سخي دی، ځکه چې د دنيا د جوړيدو نه نيولې تر نن پورې ټولو جاندارو ټولو کفارو او ټولو ابرابرو ته خوراک ورکوي او د نعمتونو دسترخوان يې غوړيدلی دی. (المرقات ۱/۵۱۸).

**اميرًا واحداً :** يعني تنها به وي مګر د امير په شکل کې به راځي د هغه لاندې به لويه ډله وي. ځکه هغه چې چاته ور زده کړي او کومو ته يې رسولي او هغوی بيا وړاندې نورو ته رسولي نو د لکهاو خلکو د عمل ثواب هغه ته ورکول کيږي نو ځکه به هغه په تنهائي کې هم امير وي. (المرقات ۱/۵۱۸).

## د علم حريص کله هم مړيدی نه شي

(۵۶) وَ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ مَنْهُومَانِ

دحضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: حرص کوونکي دوه

لَا يَشْبَعَانِ مَنْهُومٌ فِي الْعِلْمِ لَا

کسان دي دکومو خېټه چې نه شي ډکيدلی، يو په علم کې حرص کوونکی چې د هغه خېټه هيڅکله نه شي

يَشْبَعُ مِنْهُ وَ مَنْهُومٌ فِي الدُّنْيَا لَا يَشْبَعُ مِنْهَا

ډکيدلی دعلم نه، دويم د دنيا حرص کوونکی چې دده خېټه د دنيانه هم هيڅکله نه شي ډکيدلی (بره ذکر

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۲/۲۸۱، رقم الحديث ۱۷٦۷.

| |
|---|
| (رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ وَقَالَ قَالَ الْإِمَامُ أَحْمَدُ فِي حَدِيثِ أَبِي الدَّرْدَاءِ |
| شوی حدیث بیهقي په شعب الایمان کې روایت کړی دی، حضرت امام احمد رحمه الله دابو درداء رضي الله عنه |
| هٰذَا مَتْنٌ مَشْهُورٌ فِيمَا بَيْنَ النَّاسِ وَ لَيْسَ لَهُ إِسْنَادٌ صَحِيحٌ)[1]. |
| د روایت په باره کې ویلي دي چې دهغه متن په خلکو کې مشهور دی مګر دهغه اسناد صحیح نه دی). |

**توضیح** : **منهوم** : د حریص په معنی سره دی، **شبع** : د خیټې ډکیدو په معنی سره دی، یعنې دوه قسمه حریصان دي، یو د دنیا حریص دی کوم چې بد دی او دویم د علم حریص دی کوم چې محمود دی، ځکه چې د دنیا غوښتونکی د انجام په اعتبار د الله تعالی د رضا نه لرې هلاکیږي، او د علم غوښتونکی چې څومره وړاندې ځي هغه د الله تعالی د رضا طرف ته ورځي او د هغه انجام کامیابي ده.

د حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه د حدیث متعلق امام احمد بن حنبل رحمه الله ویلي دي : په خلکو کې د دې حدیث متن مشهور دی مګر د هغه سند صحیح نه دی، امام نووي رحمه الله ویلي دي چې دا حدیث د شک نه په غیر ضعیف دی لیکن د هغه طرق متعدد دي، لهذا په هغه کې قوت شته.

بل طرف ته علماو کرامو تصریح کړې ده چې په فضائلو کې یو څه اندازه ضعیف حدیث هم قبلیدی شي، په دې شرط چې هغه د کوم حدیث یا شرعي قاعدې سره متضاد نه وي. (المرقات ۱/۵۱۹).

| |
|---|
| (۵۷) وَ عَنْ عَوْنٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ مَنْهُومَانِ |
| حضرت عون روایت کړی دی وایي چې حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وفرمایل: دوه حریصان دي د |
| لَا يَشْبَعَانِ صَاحِبُ الْعِلْمِ وَ صَاحِبُ الدُّنْيَا وَلَا يَسْتَوِيَانِ |
| کوم خیټه چې هیڅکله نه شي ډکیدلی صاحب د عالم او دویم دنیادار لیکن دوی په درجه کې برابر نه دي |
| أَمَّا صَاحِبُ الْعِلْمِ فَيَزْدَادُ رِضًا لِلرَّحْمٰنِ وَ أَمَّا صَاحِبُ الدُّنْيَا فَيَتَمَادَى فِي الطُّغْيَانِ ثُمَّ |
| ځکه چې عالم خود الله تعالی رضا زیاته کړې ده او دنیادار په سرکشۍ کې زیاتوالی کړی دی، بیا عبد الله |
| قَرَأَ عَبْدُ اللهِ كَلَّا إِنَّ الْإِنْسَانَ لَيَطْغَى |
| بن مسعود رضي الله عنه د دنیادار په حق کې (د دلیل په طور) دا آیت ولوست: ترجمه: خبردار! انسان البته سرکشي |

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الإيمان ۷/۲۷۱ ، رقم الحديث : ۱۰۲۷۹.

| |
|---|
| أَنْ رَآهُ اسْتَغْنَى قَالَ |
| كوي كله چې هغه خپل ځان ته په خپله (د زيات مال په بناء باندې د خلكو نه) غني ووينې، عون رَحِمَهُ الله ويلي |
| وَ قَالَ الْآخَرُ إِنَّمَا يَخْشَى |
| چې عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دويم (يعني عالم) په حق كې دا آيت ولوست (ترجمه) يقينا ويريږي د |
| اللهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ. (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ)(١). |
| الله تعالى نه د الله تعالى په بندګانو كې علماء. |

**توضيح**: دا حديث مرفوع دى ليكن حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حديث مضمون په خپلو الفاظو كې بيان كړى دى، ددې نه مخكې چې كوم حديث تير شوى دى د هغه تشريح او زير بحث حديث تشريح يو شان ده، هغه دې وكتل شي.

## د دنيا دارو نه علماو لره لرې اوسيدل په كار دي

| |
|---|
| (۵۸) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أُنَاسًا مِنْ أُمَّتِي |
| د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: زما په امت كې به ډير خلك په |
| سَيَتَفَقَّهُونَ فِي الدِّينِ وَ يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ ، وَ يَقُولُونَ نَأْتِي الْأُمَرَاءَ |
| دين كې پوهه (يعني د دين علم) به حاصل كړي او قرآن مجيد به ولولي او وايي به چې مونږ د اميرانو خواته |
| فَنُصِيبُ مِنْ دُنْيَاهُمْ وَ نَعْتَزِلُهُمْ بِدِينِنَا وَلَا يَكُونُ ذَلِكَ |
| ورشو د هغوى دنيا او (دولت) نه خپله برخه حاصله كړو او خپل دين د هغوى سره يو شان كړو ليكن دا سې نه |
| شي كيدى (چې دين او دنيا يو ځاى جمع شي ځكه چې د اميرانو په صحبت كې د فائدې په ځاى نقصان دى) |
| كَمَا لَا يُجْتَنَى مِنَ الْقَتَادِ إِلَّا الشَّوْكُ كَذَلِكَ لَا يُجْتَنَى مِنْ قُرْبِهِمْ |
| لكه څنګه چې د ازغي لرونكې ونې نه يوازې ازغي حاصليدى شي د ا رنګه نه شي حاصليدې د صحبت د |
| إِلَّا قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ كَأَنَّهُ يَعْنِي الْخَطَايَا . (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ)(٢). |
| اميرانو نه مګر محمد بن صباح ويلي چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الا د لفظ نه وروسته مراد خطايا وو. |

(١) أخرجه الدارمي ١/١٠٨ رقم الحديث ٣٣٢

(٢) أخرجه ابن ماجه ١/٩٣ رقم الحديث ٢٥٥

**توضيح** : د حديث مطلب دا دی چې په دې امت کې به يو شمير داسې مطلب پرست علماء پيدا شي دکوم
چې اصل مطلب يوازې د دنيا حاصلول وي، ددې غرض حاصلولو دپاره به دوی په سرمايه دارو
مالدارو او جايداد لرونکو پسې تر شا ګرځي او که چيرته دوی ته طعنه ورکړی شي( د اعتراض په
شکل ورته وويل شي) نو وايي به چې ورورہ مونږ خو مالي ګټې ترلاسه کوو ليکن خپل دين مو په خپل
زړه کې محفوظ ساتلی دی.رسول الله ﷺ وفرمايل : داسې نه شي کيدی، دا څکه محال دي
لکه څرنګه يې د يوې ازغي لرونکې ونې نه د ميوې حاصلول، د هغې نه خو يوازې ازغي حاصليدی
شي، او دميوو ترلاسه کول خو محال دي.

**الا** : رسول الله ﷺ دالا نه وروسته کوم لفظ نه دی فرمايلی او په الاباندې يې کلام ختم کړی.د
امام بخاري رحمه الله استاذ محمدبن صباح رحمه الله ويلي دي چې رسول الله ﷺ ګويا چې د
الخطايا لفظ اراده کړې وه مګر په ژبه يې نه دی اداء کړی، په دې کې دانکته هم کيدی شي چې رسول الله
ﷺ همدا جرم مبهم پريخوده اشاره يې وکړه چې دادومره لوی جرم دی کوم چې په ژبه باندې نه
شي راوړل کيدی. (المرقات ۵۲۰-۱/۵۲۱).

## عالم ته د خپل علم حفاظت کول په خپله په کار دي

| |
|---|
| **(۵۹) وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ لَوْ أَنَّ أَهْلَ الْعِلْمِ** |
| د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په باره کې منقول دي چې هغه ويلي دي : که چيرته اهل علم (يعنې |
| **صَانُوا الْعِلْمَ وَ وَضَعُوْهُ عِنْدَ أَهْلِهِ** |
| علماء) د علم ساتنه وکړي او علم د هغه اهل ته (يعنې قدر کوونکو ته) وسپاري نو هغه به د شک نه بغير |
| **لَسَادُوا بِهٖ أَهْلَ زَمَانِهِمْ وَ لٰكِنَّهُمْ بَذَلُوْهُ** |
| د خپل علم په سبب د دنيا والو سردار جوړ شي ليکن (علماء داسې نه کوي بلکې) هغوی علم خرڅ کړي په |
| **لِأَهْلِ الدُّنْيَا لِيَنَالُوا بِهٖ مِنْ دُنْيَاهُمْ** |
| دنيادارو باندې ترڅو چې د هغه په ذريعه خپله دنيا (يعنې جاه او جلال) حاصل کړي (او د علم حقيقي مقصد |
| **فَهَانُوا عَلَيْهِمْ** |
| يعنې دنيادارو ته هدايت او نصيحت کول موقوف کړي) نو هغه د دنيادارو په نظر کې ذليل شي، ما د رسول |
| **سَمِعْتُ نَبِيَّكُمْ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ جَعَلَ الْهُمُوْمَ هَمًّا وَاحِدًا** |
| الله ﷺ نه دا آوريدلي چې فرمايل يې: کوم کس چې په خپلو مقاصدو کې صرف يو مقصد يعنې |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هَمَّ | آخِرَتِهِ | كَفَاهُ | اللهُ | هَمَّ | دُنْيَاهُ | وَ | مَنْ | تَشَعَّبَتْ | بِهِ | الْهُمُومُ |

د آخرت مقصد غوره کړ نو الله تعالى به يې دنيوي مقصد پوره کړي، او دکوم کس چې مقاصد تيت پرک

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيْ | أَحْوَالِ | الدُّنْيَا | لَمْ | يُبَالِ | اللهُ | فِيْ | أَيِّ | أَوْدِيَتِهَا |

وي لکه څنګه چې د دنيا حالات دي نو الله تعالى ته بيا پروا نشته چې هغه د دنيا په کوم ځنګل (صحراء) کې

هَلَكَ [1] (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ. وَرَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ مِنْ قَوْلِهِ مَنْ جَعَلَ الْهُمُومَ إِلَى آخِرِهِ)

(يعني د دنيا په کوم حالت کې) کې هلاک شي.

**توضيح: لو ان اهل العلم:** د دغه روايت ړومبئ حصه د حضرت عبد الله بن مسعود قول دی او د **(سمعت نبيكم)** نه تر آخره پورې مرفوع حديث بيان شوی دی، د روايت مطلب ښکاره دی چې کله عالم د خپل علم قدر او عزت په خپله کوي او د هغه عزت او عظمت پر ځای وساتي نو هغه د دنيا والو په مخکې معزز او مکرم پاتې کيږي، او که چيرته هغه يې په خپله بې قدري وکړي نو د خلکو په مخکې په خپله ذليله کيږي، او بې قدري يې دا ده چې د علم همدا لوی دولت **(نيابة عن رسول الله)** د دين د خدمت په ځای د خپل دنيوي مقصد د پاره استعمال کړي او د خدای تعالى د مخلوق راهنمائي د نظر نه لرې کړي په اغراضو پسې تر شا شي. (المرقات ۱/۵۲۱).

**ومن تشعبت:** د دې ترجمه تيت پرک کيدل، شاخ شاخ کيدل. (المرقات ۱/۵۲۲).

**الهموم:** دا د هم جمع ده د غم په معنی سره راغلی دی، دلته مقاصد او حالات مراد دي.

**احوال الدنيا:** د هغه نه بدل دی کوم چې د حالاتو او د مقاصدو په معنی سره دی، ترجمه دا سې شوه چې مختلفو غمونو او حالاتو په مختلفو لارو باندې ولګوه. (المرقات ۱/۵۲۲).

## د علم ضائع کيدو اسباب

**(۶۰)** وَعَنِ الْأَعْمَشِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آفَةُ الْعِلْمِ النِّسْيَانُ وَ

د اعمش رَحِمَهُ اللهُ نه روايت دی وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د علم آفت هيرول دي او د علم

(۱) أخرجه ابن ماجه ۱/۹۵ رقم الحديث ۲۵۷ ، والبيهقي في شعب الايمان ۲ /۳۰۶ رقم الحديث ۱۸۸۸ .

| |
|---|
| إِضَاعَتُهُ أَنْ تُحَدِّثَ بِهِ غَيْرَ أَهْلِهِ . ( رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ ٦٢٢ مُرْسَلًا [1]). |
| ضائع کول دا دي چې هغه د نا اهله په مخکې بیان کړی شي (دارمي په طریقه د ارسال نقل کړی دی). |

**توضیح: آفة العلم**: د علم حاصلول یو لوی دولت دی او د هر دولت په حاصلولو کې تاخیر هم وي نو د علم په حصول کې لوی لوی موانع شته، لکه چې ویل شوي دي (**لکل شئ آفة وللعلم آفات**) نو د علم د ترلاسه کولو مخکې آفات دي مګر د علم د حصول نه وروسته لوی آفت راځي چې هغه د علم هیرول دي او نسیان دی، د علم د هیرولو ډیر اسباب دي، په هغو کې د ټولو نه لوی سبب دا دی چې د همدې علم بې قدري وکړی شي او د هغه غوښتنې پوره نه کړی شي، یا دا چې نا لائق ته علم ور زده کړی شي یا په هغه باندې عمل ونه کړي شي لکه چې ویل شوي دي (**هتف العلم بالعمل ان اجاب والا فارتحل**). (المرقات ۱/۵۲۳).

امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ خپل استاذ ته د حافظې د کمزورتیا شکایت وکړو نو استاذ ورته نسخه وښوده:

شَكَوْتُ إِلَى وَكِيعٍ سُوءَ حِفْظِي ۞ فَأَوْصَانِي إِلَى تَرْكِ الْمَعَاصِي

فَإِنَّ الْعِلْمَ نُورٌ مِنْ إِلٰهٍ ۞ وَنُورُ اللّٰهِ لَا يُعْطَى لِعَاصِي

## حقیقي عالم څوک کیدلی شي؟

| |
|---|
| (٦١) وَعَنْ سُفْيَانَ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ لِكَعْبٍ |
| د سفیان رَحِمَهُ اللَّهُ نه روایت دی چې حضرت عمر بن الخطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وفرمایل: |
| مَنْ أَرْبَابُ الْعِلْمِ قَالَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ بِمَا يَعْلَمُونَ |
| (ستاسو په نزد) صاحب علم څوک دی؟ کعب جواب ورکړ: هغه خلک کوم چې د خپل علم موافق عمل وکړي |
| قَالَ فَمَا أَخْرَجَ الْعِلْمَ مِنْ قُلُوبِ الْعُلَمَاءِ قَالَ |
| بیا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې کوم شي د عالمانو د زړونو نه علم ویستلی دی؟ کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ |
| الطَّمَعُ. ( رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ [2]). |
| جواب ورکړو چې هغه لالچ دی. |

---

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۱/۱۸۵ ، رقم الحديث ٦٢٤.

(۲) أخرجه الدارمي في السنن ۱/۱۵۲ ، رقم الحديث ٥٨٤.

**توضیح**: **الطمع**: طمع یو داسې بلا او آفت دی د کوم د وجې چې انسان د علم غوښتنې نه شي پوره کولی، کله چې په زړه کې هر وخت د دنیا دار نه د دنیا حاصلولو لالچ موجود وي نو داسې کس حق کله بیانولی شي، او کله چې حق پټ کړی شي نو د علم نور او د هغه عظمت او برکت د هغه د زړه نه محوه او ووځي، په یو حدیث کې دي (کن في الایاس مما في ایدی الناس تکن اغنی الناس). (المرقات ۱/۵۲۴).

## د علماء سوء نه ځان وساتئ

| |
|---|
| (۶۲) وَعَنِ الْأَحْوَصِ بْنِ حَكِيمٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَأَلَ رَجُلٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الشَّرِّ |
| احوص بن حکیم د خپل پلار نه روایت کړی دی چې یو کس د رسول الله ﷺ نه د شر په باره کې پوښتنه |
| فَقَالَ لَا تَسْأَلُونِي عَنِ الشَّرِّ وَ سَلُونِي عَنِ الْخَيْرِ |
| وکړه نو نبي علیه السلام ورته وفرمایل چې د ما نه د شر په باره کې پوښتنه مه کوئ بلکې د خیر په باره کې پوښتنه |
| يَقُولُهَا ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ أَلَا إِنَّ شَرَّ الشَّرِّ شِرَارُ الْعُلَمَاءِ |
| وکړئ او دا جملې یې درې واري راوګرځولې بیایې وفرمایل خبردار! په بدو خلکو کې بدترین بد علماء |
| وَإِنَّ خَيْرَ الْخَيْرِ خِيَارُ الْعُلَمَاءِ (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ)[1]. |
| دي، او په نیکانو کې د ټولو بهتر نیک علماء دي. |

**توضیح**: **لاتسئلونی عن الشر**: یعنې یوازې د شر او بدۍ په باره کې پوښتنه مکوه، مطلب دا دی چې دې کس د بدترین انسان متعلق معلومات غوښتل چې د ټولو نه بدترین انسان څوک دی نو رسول الله ﷺ همدا جواب ورکړ، د حدیث د سیاق او سباق نه دا مطلب ډیر واضح دی. بهر حال رسول الله ﷺ ددې قسم پوښتنې کولو نه منعه کړې ده، چې دا ﷺ ټول رحمت وو نو دده ﷺ نه یوازې د بدۍ په باره کې نه بلکې د بدۍ او نیکۍ دواړو متعلق پوښتنه کول په کار وو. (المرقات ۱/۵۲۴).

**شر الشر**: یعنې د بدترین انسانانو نه بدتر خلک. (المرقات ۱/۵۲۴).

**شر العلماء**: یعنې بد علماء دي کوم چې خپل ځانونو ته علماء هم وایي او د ټولو نه بدتر هم دي، د دې

---

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۱/۱۱۶، رقم الحديث ۳۷۰

سبب دا دي چې د علماؤ شر او د دوی بدي متعدي ده لکه څرنګه چې د دوی خیر متعدی دی. ځکه چې په ټولنه( معاشره) کې د علماؤ ذات د یوې معیاري نمونې حیثیت لري.که چیرته علماء د اعلی معیار وو نو عوام به هم د دوی په تقلید کولو سره د یو بنه مثال قائمولو کوشش وکړي، که نه نو عامه تباهي به راشي، په دغه حدیث کې علماء سوء مراد دي. (المرقات ۵۲۴-۱/۵۲۵). یو چا ویلي دي :

فساد کبیر عالم متهتک ❁ و اکبر منه جاهل متنسک

علماء که چیرته بدي وویني او چپ پاتې شي نو عوام به لا زیات په بدو باندې زړور شي. ذ دې مثال داسې دی مثلا یو کس یو څوک د ګریوان نه نیولی دی هغه خپل یو زوی ولیده مګر جومات ته ولاړ هلته کیناست تسبیح ویل یې شروع کړل، دویم زوی یې راغی هغه هم ولید مګر هغه بده وګڼله او ورنه لاړو او په جومات کې په مونځ کولو شروع وکړه، دریم زوی یې راغی څه ناڅه فیصله یې وکړه او پلار یې په همدې حالت کې پریښود او لاړو، څلورم راغی هغه ټول نفلونه پریښودل هغه کس یې ونیو ټیل یې وهلو او پلار یې خلاص کړو، اوس تاسو ووایئ چې داسې پلار به د کوم زوی نه ډیر خوشحاله وي؟ همدا معامله د فساقو او فاجرانو ده، چې دوی د رسول الله ﷺ ګریوان ته لاس نه وراچولي دي اوس چې کوم عالم دوی د لاسه ونیسي او ټیل یې وهي نو رسول الله ﷺ به د هغه نه خوشحاله شي.
ددې حدیث نه وروسته راتلونکی حدیث هم د دې تشریح ګڼل په کار دي، ددې حدیثونو مصداق که چیرته د اوسنی دنیا هغه علماء شي کوم چې ددنیوي عدالتونوقاضیان دي اودمشرق اومغرب دنیادارو دوی علماء منلي دي نو بیا به مسئله ډیره واضحه شي.

## د بې عمله عالم مذمت

| |
|---|
| (۶۳) وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ إِنَّ مِنْ أَشَرِّ النَّاسِ عِنْدَ اللهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَالِمٌ |
| د ابو درداء رضي الله عنه نه روایت دی چې د قیامت په ورځ د خدای په نزد په مرتبه کې تر ټولو بد هغه عالم دی |
| لَا يَنْتَفِعُ بِعِلْمِهِ . ( رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ )[1]. |
| کوم چې د خپل علم نه ګټه نه وي اخستې. |

## د دین نړوونکي شیان

| |
|---|
| (۶۴) وَ عَنْ زِيَادِ بْنِ حُدَيْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ لِي عُمَرُ هَلْ تَعْرِفُ |
| د حضرت زیاد بن حدیر رحمه الله نه روایت دی چې ماته حضرت عمر رضي الله عنه وویل : آیا ته پوهیږې چې د |

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۱/۹۳، رقم الحديث :۲۶۲

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | يَهْدِمُ | الْإِسْلَامَ | ؟ | قَالَ | قُلْتُ | لَا | قَالَ |

اسلام عمارت غورځوونکې شی څه دی؟ ما وویل : ماته معلوم نه دی . حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل : د

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَهْدِمُهُ | زَلَّةُ | الْعَالِمِ | وَ | جِدَالُ | الْمُنَافِقِ |

عالم ښوییدل (یعني په کومه مسئله کې د عالم غلطي کول او د هغه ګناه کول) او جګړه کول د منافقانو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِالْكِتَابِ | وَ | حُكْمُ | الْأَئِمَّةِ | الْمُضِلِّينَ . (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ)[1]. |

په کتاب الله کې او د ګمراه سردارانو حکم جاري کول، د اسلام (عمارت) تباه کوي.

**توضیح** : **زلة العالم** : یعني داسې لغزش کوم چې تول خلک ګمراه کړي او د اسلام بنیادي پنځه ارکان هم پریوځي. (المرقات ۱/۵۲۵).

**وجدال المنافق** : یعني په ژبه خود اسلام خبرې کوي او په باطني شکل د اسلام بیخ وباسي او د اسلام اصل شکل خرابوي او په نصوصو کې غلط تاویلونه کوي لکه روافض او خوارج او د نورو اهل بدعاتو طبقې کومې چې د علماو په شکل کې د جاهلانو نه بدترې دي، لکه چې ویل شوي دي: **ویل للجاهل مرة وللعالم سبع مرات** . (المرقات ۱/۵۲۵).

## د علم نافع او غیر نافع پیژندنه

(۶۵) وَ عَنِ الْحَسَنِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ الْعِلْمُ عِلْمَانِ فَعِلْمٌ فِي الْقَلْبِ

د حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ نه روایت دی چې علم په دوه قسمه دی: یو هغه علم کوم چې په زړه کې دننه دی،

فَذَاكَ الْعِلْمُ النَّافِعُ وَعِلْمٌ عَلَى اللِّسَانِ فَذَلِكَ حُجَّةُ اللهِ عَزَّوَجَلَّ عَلَى ابْنِ آدَمَ (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ)[2].

دا علم نافع دی او دویم هغه علم دی کوم چې د ژبې د پاسه دی دا علم د الله تعالی حجت دی په انسان باندې.

**توضیح** : **فعلم في القلب** : حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ علم په دوه قسمه ښودلی دی، په هغو کې یو علم ظاهري دی او دویم علم باطني دی، دا دواړه علوم د انجام د کامیابۍ د پاره ضروري دي په دوی دواړو کې ژور ربط دی، کوم چې دیو بل نه جدا کیدلی نه شي. (المرقات ۱/۵۲۶).

حضرت شیخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ وایي دي چې علم نافع هغه دی په کوم سره چې زړه منور کیږي، بیا

---

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۱/۸۲ ، رقم الحديث : ۲۱۴.

(۲) أخرجه الدارمي في السنن ۱/۱۱۴، رقم الحديث : ۳۶۴.

همدا علم نافع په انساني معاملاتو باندې حاوي کيږي نو معاملات سميږي (اشعة اللمعات ۱/۱۹۰).
او دويم علم مکاشفه دی کوم چې دظاهري اعمالو د اثراتو نه دی، دکوم تعلق چې دزړه او باطن سره دی، دويم علم زباني دی کوم چې نه په زړه باندې اثر اچولی شي او نه کوم بل څوک متاثر کولی شي.

علم چون بر دل زند یاری شود ❀ علم چون بر تن زند ماری شود

عالم که تن آسانی وتن پروری کند ❀ اوخویشتن گم است کرا رهبری کند

**حجة الله:** يعني بې عمله صرف زباني علم په بندګانو باندې د الله حجت او دليل دی، چې الله تعالی به بندګان پرې راګير کړي او ورته به وايي چې ما تاته علم درکړی وو تا په هغه باندې عمل ولې ونه کړ؟.

## هر ځای هره مسئله ظاهر کيدی نه شي

| |
|---|
| ﴿٢٦﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ حَفِظْتُ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وِعَاءَيْنِ |
| د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې ما د رسول الله ﷺ نه ياد کړي دي د علم دوه لوښي (يعني |
| فَأَمَّا أَحَدُهُمَا فَبَثَثْتُهُ فِيكُمْ وَ أَمَّا الْآخَرُ فَلَوْ بَثَثْتُهُ |
| دوه قسمه علم) په هغو کې يو ما ستاسو په مينځ کې خور کړی دی او دويم علم هغه دی که چيرته زه هغه بيان |
| قُطِعَ هٰذَا الْبُلْعُومُ يَعْنِي مَجْرَى الطَّعَامِ (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1]. |
| کړم نو زما دا مری به غوڅه کړی شي. |

**توضيح: وعائين:** يعني له رسول الله ﷺ نه ما د علم دوه لوښي په يادولو سره ډک کړي دي، يو علم خو ما په خلکو کې خور کړی دی د کوم تعلق چې د ظاهر او علم الاحکام سره دی. (المرقات ۱/۵۲۶)

**واما الآخر:** د دويم علم دوه مفهومه دي، يو دا چې دا علم د ظاهر په مقابل کې د علم باطن نه ما لوښی ډک کړی دی، دا د عارفانو او اهل الله سره متعلق علوم دي، که چيرته زه د هغو بيانول شروع کړم نو خلک به د نه پوهيدو له وجې زما مری غوڅه کړي. دويم مطلب دا دی چې په هغو کې د دويم علم تعلق له راتلونکو فتنو اچوونکو فتنو جوړوونکو او فتنه ګرو حاکمانو سره دی، که چيرته زه د هغو فتنو نښاني بيان کړم او دا علم ښکاره کړم نو زما غاړه به والوزول شي، حضرت ابو هريره رضي الله عنه دعا غوښتې وه چې الله تعالی دې ما د فتنه ګرو حاکمانو نه مخکې وفات کړي، لهذا د يزيد حکومت د راتلو نه څه موده مخکې وفات شوی و. (المرقات ۱/۵۲۷)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱/۲۱۶ رقم الحديث: ۱۲۰.

**بمثبثه**: دا د بث يبث نه د خورولو په معنی دی. (المرقات ۱/۵۲۷).

**البلعوم**: دا د حلقوم په وزن باندې دی، د حلقوم نه مراد غاړه (مری) ده. (المرقات ۱/۵۲۷).

## والله اعلم ويل هم علم دى

(٦٧) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ مَنْ عَلِمَ شَيْئًا

دعبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: اى خلكو ! كوم كس چې كومه خبره پيژني نو په كار

فَلْيَقُلْ بِهِ وَمَنْ لَمْ يَعْلَمْ فَلْيَقُلِ اللهُ أَعْلَمُ

دي چې هغه بيان كړي او په كومه چې نه پوهيږي نو هغه ته په كار دي چې ووايي الله تعالى زيات پوهيږي

فَإِنَّ مِنَ الْعِلْمِ أَنْ تَقُولَ لِمَا لَا تَعْلَمُ اللهُ أَعْلَمُ

ځكه چې د كوم شي هغه ته علم نه وي د هغه په باره كې (والله اعلم) ويل هم د علم يو قسم دی (يعني د

قَالَ اللهُ تَعَالَى لِنَبِيِّهِ

معلوم د غير معلوم نه بيلول هم د علم يو قسم دی) لهذا الله تعالى د خپل نبي د پاره ويلي دي: اى محمده!

قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).[1]

ووايه چې زه په دې قرآن ستاسو نه كومه بدله نه غواړم او زه د تكلف كوونكو خلكو نه نه يم.

## د هر قسم استاذ نه علم زده كول نه دي په كار

(٦٨) وَعَنِ ابْنِ سِيرِينَ قَالَ إِنَّ هٰذَا الْعِلْمَ دِينٌ

د ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ نه روايت دی چې دا علم (يعني د كتاب او سنت علم) دين دی، لهذا كله (چې تاسو

فَانْظُرُوا عَمَّنْ تَأْخُذُونَ دِينَكُمْ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[2].

هغه حاصلوئ) نو دي ته او ګورئ چې خپل دين د چا نه حاصلوئ.

**توضيح**: **فانظروا**: يعني د علم دين د حصول د پاره ضروري ده چې د كوم علم حاصلول كيږي په هغه باندې دا اطمينان او اعتماد وي چې هغه متدين، متقي، پرهيزګار او د سمې عقيدې درلودونكی دی، د هر كس او ناكس په وړاندې د شاګردۍ زنګنونه وهل هوښياري نه ده ځكه چې د استاذ اثروي لهذا په ديني

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ٨/٥٤٧ رقم الحديث: ٤٨٠٩

(٢) أخرجه مسلم في صحيحه ١/١٤، وأخرجه الدارمي في السنن ١/١٢٤ رقم الحديث ٤١٩

مدارسو کې استاذان دینداره وي، نو د منطق او فلسفې ویلو سره سره تر نن پورې کوم طالب العلم ګمراه شوی نه دی او په مکتبونو او کالجونو کې عمومًا استاذان بې دینه وي او ملحدان وي نو هلته د اسلامیاتو ویونکي استاذان ګمراهان او ملحدان شوي دي ځکه چې د اسلامیاتو ویونکو په خوله د اسلامیاتو خلاف دی. (المرقات ۱/۵۲۸).

## د غلطو قاریانو مذمت

| |
|---|
| (۶۹) وَ عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ يَا مَعْشَرَ الْقُرَّاءِ اسْتَقِيمُوا |
| د حذیفه رضي الله عنه نه روایت دی چې ده (قاریان مخاطب کړل او وې فرمایل) ای د قاریانو ډلې! سم اوسئ، |
| فَقَدْ سَبَقْتُمْ سَبْقًا بَعِيدًا وَ إِنْ أَخَذْتُمْ يَمِينًا وَ شِمَالًا |
| د دې د پاره چې تاسو سبقت کوئ د منډې سبقت (که چیرته تاسو د سمې لارې نه کاږه شئ) آخوا او دیخوا شئ |
| لَقَدْ ضَلَلْتُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا [1]. |
| نو خامخا به په لویه ګمراهۍ کې پریوځئ. |
| (۷۰) وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم (صحابه کرام مخاطب کړل) او وې فرمایل |
| تَعَوَّذُوا بِاللّٰهِ مِنْ جُبِّ الْحَزَنِ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَمَا جُبُّ الْحَزَنِ |
| تاسو د الله نه پناه وغواړئ د غم د کوهي نه، صحابه کرامو عرض وکړو یارسول الله ! د غم کوهی څه دی؟ |
| قَالَ وَادٍ فِي جَهَنَّمَ تَتَعَوَّذُ مِنْهُ جَهَنَّمُ كُلَّ يَوْمٍ أَرْبَعَمِائَةِ مَرَّةٍ |
| نبي علیه الصلاة والسلام وفرمایل: هغه په دوزخ کې یوه نالی ده د کومې نه چې دوزخ په ورځ کې څلور سوه ځلې |
| قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَ مَنْ يَدْخُلُهَا قَالَ |
| پناه غواړي، صحابه کرامو ووېل یارسول الله! هغې ته به څوک داخلیږي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل |
| الْقُرَّاءُ الْمُرَاءُونَ بِأَعْمَالِهِمْ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ) [2]. |
| هغه د قرآن تلاوت کوونکي کوم چې اعمال د ځان ښودنې د پاره کوي. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱/۲۵۰ رقم الحديث: ۷۲۸۲.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۱۲ رقم الحديث: ۲۳۸۳، وأخرجه ابن ماجه ۱/۹۴ رقم الحديث: ۲۵۶.

وَكَذَا ابْنُ مَاجَهُ . وَ زَادَ فِيهِ وَ إِنَّ مِنْ أَبْغَضِ الْقُرَّاءِ إِلَى اللهِ تَعَالَى الَّذِينَ يَزُورُونَ

او د ابن ماجه په روايت کې دا الفاظ زيات دي: د خداى تعالى په نزد بدترين هغه قاري دى کوم چې ملاقات

الْأُمَرَاءَ قَالَ الْمُحَارِبِيُّ يَعْنِي الْجَوَرَةَ. (ابن ماجه).

کوي د سردارانو سره، ددې حديث راوي محاربي ويلي دي چې د سردارانو نه مراد ظالمان سرداران دي.

## د علماء سوء مذمت

(۷۱) وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوشِكُ أَنْ يَأْتِيَ عَلَى النَّاسِ

د حضرت علي رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: نزدې ده چې را به شي په خلکو

زَمَانٌ لَا يَبْقَى مِنَ الْإِسْلَامِ إِلَّا اسْمُهُ وَلَا يَبْقَى مِنَ الْقُرْآنِ إِلَّا رَسْمُهُ

باندې داسې وخت چې په اسلام کې به صرف د هغو نوم پاتې شي او د قرآن به صرف د دوى سره نقوش پاتې

مَسَاجِدُهُمْ عَامِرَةٌ وَ هِيَ خَرَابٌ مِنَ الْهُدَى عُلَمَاؤُهُمْ

شي، د دوى جوماتونه به په ظاهره اباد وي، مګر په حقيقت کې به د هدايت نه خالي وي، د دوى علماء به

شَرُّ مَنْ تَحْتَ أَدِيمِ السَّمَاءِ مِنْ

د آسمان نه لاندې په مخلوق کې به د ټولو نه بدتروي، د دوى (د ظالمانو د حمايت او د کومک د وجهې به) په

عِنْدِهِمْ تَخْرُجُ الْفِتْنَةُ وَ فِيهِمْ تَعُودُ . (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ ۲/۳۱۱ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ).

دين کې فتنه پيدا شي او په دوى به را وګرځي (يعنې په دوى به ظالمان مسلط کړى شي).

**توضيح**: الا رسمه: يعنې مفاهيم به وي مصاديق به نه وي، مثلاً د تقوى لفظ به وي خو تقوى به نه وي، د علم لفظ به وي مګر د علم حقيقت او د هغه وجود به نه وي، د امانت لفظ به وي مګر امانت به نه وي، د خير لفظ به وي مګر خير به پاتې نه شي، د هدايت لفظ به وي خو هدايت به نه وي، نوم به وي کار به نه کيږي. جوماتونه به آباد وي مګر په هغو کې به د شريعت مطابق عبادت نه کيږي، اصل جوماتونه د اصل مقصد نه خالي شول، علماء به خپلو ځانونو ته د امت راهنما او پيشوا وايي ليکن هغه به د ټولو انسانانو نه زيات بد تر وي، ځکه چې هغه به تفرقه پيدا کوي، او د ظالمانو سره به مرسته او حمايت به يې کوي، د خپل باطل مقصد د پاره به قسما قسم فتنې راپورته کوي، ددې نه د آخري زمانې علماء مراد دي، که چيرته د اوسني دور علماء مراد کړى شي نو مطلب به ډير واضح شي، ځکه چې په اوسنۍ زمانه کې قاضيانو ته خلک عالمان وايي. (المرقات ۵۳۱/ ، الکاشف ۱/۲۶۳).

چونکه په حدیث کې د عُلَمَاءُ هُمْ یعني د دوی علماء جمله راغلې ده، او نن سبا د مدارسو فاضلانو ته عصري طبقه عالمان نه وایي، ځکه چې د دوی په نزد قاضیان علماء دي، پروفیسران علماء دي، د اصل علماو د علم دوی تصور هم نه شي کولی، همدارنګه د دوی د علماو متعلق که داسې وویل شي بیخي په ځای ده او ددین د غلطو فیصلو د وجې راتلونکې ورځ چې فتنې راپیدا شي بیا دغو فتنو دوی په غیږ کې نیولې وي.

## د علم د زوال لوی سبب عمل نه کول دي

| |
|---|
| (۴۷) وَعَنْ زِيَادِ بْنِ لَبِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ ذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا |
| د زیاد بن لبید رضی الله عنه روایت دی وایي چې نبي علیه الصلاة والسلام د کوم شي (یعني د فتنې او ابتلاء) ذکر وکړه |
| فَقَالَ ذَاكَ عِنْدَ أَوَانِ ذَهَابِ الْعِلْمِ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ! |
| بیا یې وفرمایل: دا به هغه وخت وي کله چې علم لاړ شي (دا مې چې واوریده نو) عرض مې وکړو یا رسول الله! |
| وَكَيْفَ يَذْهَبُ الْعِلْمُ وَنَحْنُ نَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَنُقْرِئُهُ أَبْنَاءَنَا |
| علم به څنګه لاړ شي؟ حالانکه مونږ قرآن مجید لولو او خپلو بچیانو ته مو هم ور ښودلی دی او زمونږ بچیان |
| وَيُقْرِئُهُ أَبْنَاؤُنَا أَبْنَاءَهُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ فَقَالَ |
| به یې خپلو بچیانو ته ورزده کړي او دا سلسله به تر قیامته پورې روانه وي، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل |
| ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ زِيَادُ إِنْ كُنْتُ لَأَرَاكَ مِنْ أَفْقَهِ رَجُلٍ بِالْمَدِينَةِ أَوَلَيْسَ هَذِهِ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى |
| زیاده! تا دې ستا مور ورک کړي، ما خو د مدینې په خلکو کې ته ډیر پوهه بللې وې، آیا یهود او نصارى |
| يَقْرَءُونَ التَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ |
| تورات او انجیل نه لوستلو؟ لیکن د هغوی په کتابونو کې دننه چې کوم څه وو (یعني احکام) په هغو کې |
| لَا يَعْمَلُونَ بِشَيْءٍ مِمَّا فِيهِمَا (رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَابْنُ مَاجَهْ)[1] |
| هغوی په کوم شي باندې عمل کاوه؟ |
| (وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ عَنْهُ نَحْوَهُ وَكَذَا الدَّارِمِيُّ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ). (الدارمي ۲۴۸). |
| او ترمذي همدارنګه روایت کړی د زیاد نه او همدارنګې دارمي د ابو امامه نه نقل کړی. |

(۱) اخرجه احمد في المسند ۱۶۰/۴ ،واخرجه ابن ماجه في سننه ۱۳۴۴/۲ رقم الحديث : ۴۰۴۸.

**توضيح: لايعلمون**: يعني د تورات او انجيل تعليم روان دى مگر د هغو په مندرجاتو او احكامو باندې عمل كول ختم شوي دي، په دې وجه ددوى د علم عمارت په زمكه باندې پريوتلى دى، كتابونه شته دى د تعليم انتظام هم موجود دى مگر علم لاړ، ځكه چې عمل نشته، ددې حديث نه په واضح طور معلومه شوه چې د عمل په انحطاط سره د علم انحطاط راغلى دى، فكر مند علماء د نصاب د اصلاح كوشش كوي، په مشورو باندې مشورې روانې دي مگر د اصلي ناروغۍ طرف ته د هيچا سترگې نه ور پورته كيږي، چې په ادارو كې صرف عمله او طالبان نه دي بلكې تر انتظاميه او مربي استاذ پورې په مونځونو كې سستيا كوي او په عملي ميدان كې شاته پاتې دي نو هلته چې علمي انحطاط نه راځي نو چيرته به راځي؟ د رسول الله ﷺ پيشگوئي بالكل رشتيني ثابته شوې ده، مونږ ته د عمل اصلاح كول په كار دي. (المرقات ۱/۵۳۳).

## د ميراث علم به د ټولو نه مخكې ضائع شي

| |
|---|
| (۴۳) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَلَّمُوا الْعِلْمَ وَعَلِّمُوهُ |
| د ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ ماته وفرمايل: علم زده كړه او ور وي ښايه |
| النَّاسَ تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ وَ عَلِّمُوهَا النَّاسَ تَعَلَّمُوا الْقُرْآنَ وَ |
| خلكو ته، علم فرائض (يا فرضي احكام) زده كړه او خلكو ته يې ور و ښايه (همدا رنگه) قرآن زده كړه او |
| عَلِّمُوهُ النَّاسَ فَإِنِّي امْرُؤٌ مَقْبُوضٌ وَ الْعِلْمُ سَيَنْقَبِضُ بَعْدِي |
| خلكو ته يې ور و ښايه، ځكه چې بيشكه زه يو كس يم كوم چې تلونكى يم او علم هم پورته كيدونكى دى، |
| وَ تَظْهَرُ الْفِتَنُ حَتَّى يَخْتَلِفَ الْثَنَانِ فِي فَرِيضَةٍ لَا يَجِدَانِ أَحَدًا |
| او فتنې به ښكاره شي تردې چې دوه كسان به په يوه فريضه كې اختلاف وكړي او هيڅوك به دا سې پيدا نه |
| يَفْصِلُ بَيْنَهُمَا. (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ، وَ الدَّارَ قُطْنِيُّ، ترمذي)[1]. |
| كړي چې ددوى دواړو منيځ كې فيصله وكړي (يعني د علم كموالي او د فتنو زياتوالي د وجې به دا حال شي) |

## د بې عمله علم مثال

| |
|---|
| (۴۴) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ عِلْمٍ لَا يُنْتَفَعُ |
| د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د هغه علم مثال د كوم نه چې فائده |

(۱) اخرجه الدارمي ۸۳/۱، رقم الحديث : ۲۲۱ ، واخرجه الدار قطني ۸۱/٤ رقم الحديث : ۴۵.

| |
|---|
| بِهٖ كَمَثَلِ كَنْزٍ |
| وانه خیستل شي (یعنې چې نه نورو ته ورزده کړل شي او نه پرې عمل وکړی شي) د هغې خزانې په شان دی |
| لَا يُنْفَقُ مِنْهُ فِي سَبِيْلِ اللهِ [1]. |
| د کومې نه چې د خدای په لار کې هیڅ هم مصرف نه شي کیدی. |

**توضیح** : **مثل علم** : یعنې د هغه علم مثال د کوم نه چې فائده پورته نه کړی شي د هغې بې فایدې ساتل شوې خزانې په شان دی د کومې نه چې هیڅ روپۍ د خیر په کوم کار کې مصرف نه کړی شي. چې نه يې په خپل اهل او عیال باندې مصرف کړي او نه يې په خپلو ځانونو باندې مصرف کړي، او نه يې په اجتماعي کارونو کې مصرف کړي او نه يې په في سبیل الله جهاد کې مصرف کړي. علامه طیبي رحمه الله ویلي دي چې په دې تشبیه سره صرف دومره ښودل مقصود دي چې د علم نه افاده او استفاده نه کول داسې دي لکه د خزانې نه مصرف کول، علامه طیبي مزید ویلي دي چې که چیرته د دې تشبیه نه عامه تشبیه مراد کړی شي نو بیا د علم تشبیه د خزانې سره نه صحیح کیږي، ځکه چې علم په مصرف کولو سره زیاتیږي او خزانه کمیږي، علم باقي پاتې کیدونکی دی او خزانه فاني ده، د علم غلا نه شي کیدی او خزانه غلا کیدی شي. (المرقات ۱/۵۳۸، الکاشف ۱/۴۶۵)

یو چا د بر بنه ویلي دي:

رضينا قسمة الجبار فينا ❁ لنا علم وللجهال مال

فان المال يفنى عن قريب ❁ وان العلم باق لايزال

د کتاب العلم په اختتام باندې د اکبر اله ابادي یو څو اشعار نقل کول به خالي د فائدې نه، نه وي:

یہ بات تو کھری ہے ہرگز نہیں ہے کھوٹی ☆ مغربی میں ختم ملت بی اے میں صرف روٹی

کیا کہیں احباب کیا کار نمایاں کر گئے ☆ بی اے کیا نوکر ہوئے پنشن ملی اور مر گئے

بچوں میں کیا آئے خو ماں باپ کے اطوار کی ☆ دودھ تو ڈبے کا ہے تعلیم ہے سرکار کی

مسٹر فضلی کو عقبی میں سزا کیسے ملی ☆ شرح اس کی نامناسب ہے ملی جیسے ملی

اس نے بھی لیکن ادب سے کر دیا یہ التماس ☆ چارہ ہی کیا تھا خدا تعلیم ہی ایسی ملی

الحمد لله نن ۱۶ شعبان ۱۴۰۲ هـ د مشکوة شریف د ابتداء نه د کتاب العلم پورې د توضیحات کار مکمل شو آئنده به د کتاب الطهارة نه شروع کیږي ان شاء الله.

---

(۱) أحمد في مسنده ۲/۴۹۹، وأخرجه الدارمي ۱/۱۴۸ رقم الحديث: ۵۵۶.

۱۶ صفر ۱۴۱۰ هـ

# كِتَابُ الطَّهَارَةِ

## د پاکۍ بیان

طهارت په لغت کې نظافت او پاکوالي ته ویل کیږي، او د شرع په اصطلاح کې یې تعریف داسې دی:

**(غسل اعضاء مخصوصة بصفة مخصوصة (كذا في التعريفات).**

صاحب مشکوة د ټولو نه مخکې کتاب الایمان راوړی دی ځکه چې د ایمان نه بغیر هیڅ شي لره اعتبار نشته دی، بیا د علم درجه ډیره مهمه وه، ځکه چې علم د هر شي بنیاد دی، لهذا د کتاب الایمان وروسته یې کتاب العلم راوړو، د علم او ایمان نه وروسته د ټولو مهمه درجه د مونځ وه، ځکه چې شریعت د ایمان نه وروسته مونځ راوړی دی، دا رنګه مونځ د کائناتو ټولو عباداتو لره شامل دی په هغه کې د قیام په حالت کې د ونې سره مشابهت دی، په رکوع کې د حیواناتو د عبادت سره او په سجده کې د تمامو سر بسجود شیانو او فرښتو سره مشابهت دی، او په قعود (ناسته) کې د غرونو د عبادت سره مشابهت دی، یا داسې پوهه شئ چې په مونځ کې د قبلې طرف ته په مخ کولو سره د حج سره یې مشابهت راغلی دی، ځکه چې د حج تعلق د بیت الله سره دی او د نفس د تزکیې حاصلولو د وجې مونځ د زکوة عبادت لره جامع دی، او په مونځ کې د خوراک او څښاک بندیدو د وجې د روژې سره یې مشابهت راغلی دی، او د انتهائي تعظیم او عظمت کیدو د وجهې توحید ته هم شامل دی.

لهذا مونځ جامع العبادات دی نو د ایمان نه وروسته د هغه رتبه او مقام دی، لیکن چونکه طهارت د مونځ دپاره شرط دی او د شرط درجه په مشروط باندې مقدمه ده لهذا د **کتاب الصلوة** نه مخکې یې **کتاب الطهارة** راوړ، دویمه وجه دا ده چې طهات د تخلیې مقام دی او مونځ د تحلیې مقام دی او تخلیه په تحلیه باندې مقدمه ده، نو ځکه یې طهارت مقدم کړی.

امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ طهارت څلورو قسمونو ته تقسیم کړی، ترتیب او تقسیم داسې دی:

**(۱) طهارت البدن من الاخباث والأنجاس.** **(۲) طهارت الجوارح من الاثام.**

**(۳) طهارت القلب من الرذائل والملائم.** **(٤) طهارت السر عما سوى الله.**

یعنې د زړه احساسات خیالات او تصورات د الله تعالی نه په غیر د هر شي نه پاکول ترڅو چې د محبت مرکز صرف د الله تعالی ذات شي او په ما سوی الله هیڅ نظر نه وي، دا د **طهارت السر عما سوى الله** درجه ده.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## پاکي نيم ايمان دی

(۱) عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلطُّهُوْرُ شَطْرُ الْإِيْمَانِ

دابو مالک اشعري رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: پاک اوسيدل نيم ايمان دی

وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ تَمْلَأُ الْمِيْزَانَ وَ سُبْحَانَ اللهِ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ تَمْلَآنِ أَوْ

او الحمد لله ويل (داعمالو) تله ډکوي او سبحان الله والحمد لله يې ډکوي يا يې وفرمايل چې هر يو کلمه

تَمْلَأُ مَا بَيْنَ السَّمَاوَاتِ وَ الْأَرْضِ وَ الصَّلَاةُ نُوْرٌ وَ الصَّدَقَةُ بُرْهَانٌ وَ الصَّبْرُ

يې ډکوي هغه شی کوم چې د آسمان او د زمکې په مينځ کې دي، مونځ نور دی، صدقه دليل دی، صبر کول

ضِيَاءٌ وَ الْقُرْآنُ حُجَّةٌ لَكَ أَوْ عَلَيْكَ كُلُّ النَّاسِ يَغْدُوْ

رڼا ده او قرآن ستاسو د پاره يا په تاسو باندې دليل دی، هر کس کله چې سبا کوي يعنې د خوب نه را پورته کيږي

فَبَائِعٌ نَفْسَهُ فَمُعْتِقُهَا أَوْ مُوْبِقُهَا . ( رَوَاهُ مُسْلِمٌ ).

نو خپل ځان په خپلو کارونو کې مصروف کوي لهذا هغه خپل ځان ازادوونکی دی او يا هلاکوونکی دی.

وَ فِيْ رِوَايَةٍ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَ اللهُ أَكْبَرُ تَمْلَآنِ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَ الْأَرْضِ

او په يوه روايت کې دي چې لا اله الا الله والله اکبر ډکوي هغه شی کوم چې د آسمان او د زمکې په مينځ کې دي

لَمْ أَجِدْ هٰذِهِ الرِّوَايَةَ فِي الصَّحِيْحَيْنِ وَلَا فِيْ كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ وَلَا فِي الْجَامِعِ

(صاحب د مشکوة ويلي) چې ما دا روايت په بخاري او مسلم کې او کتاب حميدي کې نه دی موندلی او جامع

وَ لٰكِنْ ذَكَرَهَا الدَّارِمِيُّ بَدَلَ سُبْحَانَ

جامع الاصول کې ماته دا روايت په لاس را نغلی، ليکن ذکر کړي دی دارمي د همدې روايت پر ځای سبحان

اللهِ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ .(مسلم)[1].

الله والحمد لله (لهذا د صاحب مصابيح د همدې روايت په اولني فصل کې ذکر کول صحيح نه دي).

---

(۱) اخرجه مسلم ۲۰۳/۱ رقم الحديث: ۱-۲۲۳، واخرجه احمد في المسند ۳٤۲/۵، واخرجه الدارمي ۱۷٤/۱ ، رقم الحديث: ٦۵۳، والترمذي ۵۰۱/۵ ، رقم الحديث :۳۵۱۷، والنسائي بنحوه ۵/۵ رقم الحديث :۲٤۳۷.

**توضیح**: **الطهور شطر الایمان**: د طهارت دوه طرفونه دي، یعني طهارت ظاهر او طهارت باطن. او د هر طرف دوه قسمونه دي مثلا طهارت البدن او طهارت الجوارح ددواړو تعلق د ظاهري طهارت سره دی. او په باطني طهارت کې **طهارة القلب عن الرذائل** یو قسم دی او **طهارة السر عما سوی الله** دویم قسم دی کوم چې په حقیقت کې خالص ایمان دی، اوس ظاهري طهات نیم ایمان دي او باطني طهارت هم نیم ایمان دی لهذا ددې ظاهري او باطني طهارتونو په یو ځای کولو سره مکمل ایمان جوړیږی (المرقات ۷،٦/۲)

ځکه چې د ظاهري طهارت متعلق ویل شوي چې ﴿**الطهور شطر الایمان**﴾ او د باطني طهارت متعلق هم تاسو ویلی شئ چې ﴿**الطهور شطر الایمان**﴾ نو صرف په یو قسم طهارت سره ایمان مکمل کیدی نه شي. امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ د طهارت پورته ذکر شوو څلورو درجو ته نیم ایمان ویلی دی، ځکه چې هغه ویلي دي چې د طهارت څلور قسمونه په مقام تخلیه کې دي، یعني د صفائي او پاکی درجه ده د هغې نه وروسته د تحلیه مقام دی نو چې تخلیه او تحلیه سره یو ځای کړی شي نو مکمل ایمان جوړیږي. بعضو علماو شطر د نیم په معنی سره نه دی اخستلی بلکې یوازې د برخې په معنی سره یې اخیستی دی نو مطلب دا شو چې طهارت د ایمان یوه برخه ده، نو دا اعتراض ختم شو چې طهارت نیم ایمان څنګه شو. (المرقات ۲/٦).

**الحمد لله تملأ المیزان**: یعني د ثواب تللو چې کوم ترازو دی هغه د الحمد لله په ثواب سره ډکیږي. اوس دلته دا سوال پیدا کیدی شي چې ثواب خو د اعراضو نه دی د هغه نه د ترازو ډکیدو مطلب څه کیدی شي؟ د دې جواب د تیرې شوې زمانې د علماو د پاره څه قدرې مشکل وو مګر ننسبا د اعراضو تللو مسئله بیخي مشکله نه ده، ځکه چې د اعراضو تلل په مشاهده کې راغلي دي، مثلا په تهرما میټر سره د بخار درجات تلل کیږي په بعضو آلاتو سره نظر تلل کیږي، د برودت او حرارت درجه معلومیدی شي، د دې جدا ترازو دی او په جهاز کې د ارتفاع او انخفاض او د مسافې اوږدوالی او نزدې والی تلل کیدی شي، هر کله چې یو کمزوری انسان دومره څه کولی شي نو د قادر مطلق بادشاه د پاره د اغراضو تلل څه مشکل دي؟. د پخوانی زمانې علماو دا جواب ورکړی دی چې دا اعراض په دنیا کې اعراض دي په عالم آخرت کې به مجسم شي بیا به هغه وتلل شي. بعضو د اعمالو نه دفاتر او د عملنامې رجسټر مراد کړی دی، چې د ګناه او ثواب بندل به تلل کیږي. (المرقات ۲/۷).

**والصلوة نور**: د څرنګه چې پورته بیان شوي دي چې مونځ د ټولو عباداتو د پاره جامع دی نو هغه د عالم دنیا عالم برزخ او عالم آخرت د هرې تاریکۍ د پاره نور دی بس نور دی. (المرقات ۲/۸).

**والصدقة برهان**: یعني په ایمان باندې دلیل دی، ځکه چې د ایمان ښکاره کیدو د پاره تر ټولو معیاري

نمونه مالي قرباني ده، د ښکاره ایمان والا قرباني ورکولو ته تیار وي او ناچل خو هسې هم ناچل دی. د صدقې دغه قرباني فرض، نفل، واجب ټولو قربانیو ته شامل ده او مالي قرباني ډیره مشکله ده. (المرقات ۲/۸). یو شاعر وایي:

گر جان طلبی بتو بخشم گر سر طلبی بتو بخشم ❁ وگر زر طلبی سخن درین است

**الصبر** : د صبر لفظ ټول شریعت ته شامل دی، ځکه چې د صبر درې قسمونه دي : **صبر علی المصیبة، صبر علی الطاعة** او **صبر عن المعصیة**، په دې درېو قسمونو کې ټول شریعت راغی. (المرقات ۲/۸).

**القرآن حجة** : یعنې که قرآن یې ولوست او د هغه په احکامو یې عمل وکړ نو دا د لوستونکي او د عمل کوونکي دپاره دلیل او حجت دی چې هغه مؤمن مسلمان او د جنت مستحق دی، که نه نو **همدا قرآن** په بد عمله باندې دلیل جوړیږي او د هغه خلاف به شکایت کوي نو هغه به ناکامه شي. (المرقات ۲/۹).

**یغدو** : صبا کې وتل، **بائع نفسه** : یعنې خپل ځان یې خرڅ کړی دی د عمل په بدل کې د نیک عمل په بدل کې یا د ناکاره عمل په بدل کې په دې باندې راتلونکې جمله متفرع ده. (المرقات ۲/۹).

**فمعتقها** : یعنې چې نیکي وکړي نو خپل ځان به د دوزخ نه ازاد کړي، او **موبقها** یعنې د بدی په مقابل کې یې خپل ځان په هلاکت کې اچولی دی. (المرقات ۲/۹).

## په درېو څیزونو سره ګناه ختمیږي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د ابو هریره رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د (صحابه کرامو په مخاطب کولو سره) وفرمایل |
| أَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى مَا يَمْحُو اللهُ بِهِ الْخَطَايَا وَ |
| آیا زه تاسو ته هغه شی درونه ښایم چې په هغې سره الله تعالی ستاسو ګناهونه لرې کړي او د کوم په (سبب) |
| يَرْفَعُ بِهِ الدَّرَجَاتِ قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللهِ |
| چې په جنت کې ستاسو درجات لوړ کړي؟ صحابه کرامو وویل ولې نه یا رسول الله! رسول الله صلی الله علیه وسلم |
| قَالَ إِسْبَاغُ الْوُضُوءِ عَلَى الْمَكَارِهِ وَ كَثْرَةُ الْخُطَى |
| وفرمایل: د سختۍ په وخت (یعنې په ناروغۍ یا سخته یخني کې) د اودس پوره کول او ډیر قدمونه اخیستل |
| إِلَى الْمَسَاجِدِ وَ انْتِظَارُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الصَّلَاةِ فَذَلِكُمُ الرِّبَاطُ |
| جوماتونو طرف ته (د کور د لرې والي د وجې) او د (یو) مونځ نه وروسته د بل انتظار کول بس همدا رباط دی، |

وَفِيْ حَدِيْثِ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ فَذَالِكُمُ الرِّبَاطُ فَذَلِكُمُ الرِّبَاطُ رَدَّدَ مَرَّتَيْنِ (رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَفِيْ رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ ثَلَاثًا)[1].

او د مالک بن انس رضي الله عنه په روايت کې بس همدا رباط دی بس همدا رباط دی دوه ځلې دي او په روايت د ترمذي کې درې ځلې دي.

**توضيح: الا ادلکم**: دلته **همزة** د استفهام دپاره ده او د لا کلمه د نفي دپاره ده د تنبيه دپاره نه ده ځکه چې د هغې په جواب کې د (**بلى**) کلمه راغلې ده کومه چې په نفي باندې دليل ده. (المرقات ۲/۱۰).

**يمحو**: د محوه کولو نه مراد معاف کول دي يا د عمل نامې نه ختمول دي. (المرقات ۲/۱۰).

**اسباغ الوضوء**: يعنې پوره اودس کول چې درې ځلې اوبه وبهول شي اندام په مکمل طور وينځل شي او د محل په وينځلو کې د تعويل د غړي نه کار واخيستل شي. (المرقات ۲/۱۰).

**على المکاره**: د **مکره** جمع ده د مشقت په معنی سره دی چې په سخته يخنی کې يا په سخته گرمی کې يا د ناروغی په حالت کې اودس وکړی شي او محنت وکړی شي، يا دا چې د اوبو پيدا کول مشکل وي يا دا چې په ډيره گرانه پيدا کيدی شي دا ټول د مکاره صورتونه دي. (المرقات ۲/۱۱).

**وکثرة الخطا**: **خطوة** د قدم پورته کولو په معنی سره دی مراد په کثرت سره جوماتونه تلل راتلل دي چې د مونځ دپاره يا هسې د عبادت دپاره يا د جومات سره د محبت دپاره بار بار جومات ته ځي راځي، يو مطلب دا هم دی چې ډيرې ليرې علاقه نه جومات ته راځي نو قدمونه زيات پورته کيدی شي په کومو سره چې په ثواب کې زياتوالی کيږي. (المرقات ۲/۱۱).

**انتظار الصلوة بعد الصلوة**: د دې مطلب دا دی چې يو مونځ وکړي او د دويم مونځ دپاره په جومات کې کيني انتظار کوي، دويم مطلب دادی چې يو مونځ وکړي کور يا بل طرف ته لاړ شي ليکن زړه يې د بل مونځ سره لگيدلی وي لکه چې په حديث کې دي **(ورجل قلبه معلق بالمساجد)**. (المرقات ۲/۱۱).

**فذالکم**: دلته په دې خبره پوهيدل په کار دي چې **ذا** اسم اشاره ده او **کم** د ضمير مخاطب په اعتبار سره راغلی دی، که چيرته مخاطب مفرد دی نو **ذالک** راځي که تثنيه وي نو **ذالکما** راځي او که جمع وي نو

---

(۱) اخرجه مسلم ۲۱۹/۱ رقم الحديث: ۴۱-۵۱، واخرجه احمد في المسند ۲۷۷/۲، واخرجه مالک في الموطا ۱۶۱/۱، رقم الحديث: ۵۵، والترمذي ۷۲/۱، رقم الحديث: ۵۱، والنسائي ۸۹/۱ رقم الحديث: ۱۴۳.

ذالکم راځي، د دې ترجمه داسې شوه چې دغه کوم کار چې دی، تاسو يو يا تاسو دوه يا تاسو ټولو ته وايم فذالکن زليخا وويل چې دغه کوم کار چې دی تاسو ټولو ښځو ته وايم، رسول الله ﷺ وفرمايل : کيف ټيکن : يعني دا عائشه څنګه ده تاسو چيرته ياست.

الرباط : په اسلامي سرحدونو باندې د کفر په مقابل کې پيرې کولو ته رباط ويل کيږي، ځکه همدې کس خپل ځان او خپل اسونه هلته پابند کړي دي ګويا چې تړلي يې دي، نو ځکه دا د رابط اصل مفهوم او مصداق دی، بيا چونکه د هغه زيات ثواب ترلاسه کيږي لهذا هغه ثواب دلته د هغه په انتظار کې الله تعالی په خپل فضل او کرم سره ورکړی دی نو دا د ثواب په اعتبار سره رباط دی او اصل رباط په سرحد باندې کيدلی شي. (المرقات ۲/۱۱).

۱۷ صفر ۱۴۱۰ھ

## په اودس سره ګناه ختميږي

| |
|---|
| (۲) وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ |
| دعثمان رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم کس چې اودس وکړي او په ښه |
| الْوُضُوءَ خَرَجَتْ خَطَايَاهُ مِنْ جَسَدِهِ |
| طريقه اودس وکړي (يعني د هغه د سننو او مستحباتو د رعايت سره) نو وبه وېستلی شي دده د بدن نه |
| حَتَّى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ أَظْفَارِهِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| د هغه (صغيره) ګناه تردې پورې چې د هغه د نوکانو لاندې نه به هم ګناه وېستلی شي. |

**توضيح : فأحسن الوضوء** : يعني چې په ښه طريقه اودس وکړي، د ښه اودس نه مراد دا دی چې د فرائضو سننو مستحباتو او آدابو پوره پوره خيال وساتي او په هغې کې د هيڅ کراهيت ارتکاب ونه کړي. (المرقات ۲/۱۲).

**خرجت خطاياه** : په دغه ځای کې هم هغه اعتراض راتلی شي چې ګناه خو د اغراضو د قبيلې نه ده او د خروج لفظ خو د اجسامو او اجرامو دپاره استعمال شوی دی نو ددې سوال هم هماغه جوابونه دي کوم چې ددې نه په مخکښې حديث نمبر (اول) کې تير شوي دي، چې نن سبا اعراض تلل کيدی شي، لهذا

---

(۱) اخرجه مسلم ۲۱۶/۱ رقم الحديث : ۳۳-۲۴۵، واخرجه احمد في المسند ۶۶/۱ .

اوس دا مسئله مشکله نه ده پاتې، دلته دويم جواب دا دی چې د خطايا نه مراد د هغه اثرات دي چې دهغوگناهونوداغ ختميږي،يادا چې په عالم مثال کې د معاصيو يو مجسم شکل دی د هغه په اعتبار سره د خروج لفظ استعمال شوی دی.

**من جسده**: يعنې د ټول بدن نه يا د اودس د اندامونو نه خارجيږي. (المرقات ۲/۷).

**من تحت اظفاره**: دا د مبالغې په طور ويل شوي دي چې ګناه بالکل ختميږي تردې پورې چې د نوکانو د بيخونو نه هم ووځي او ختميږي، دا محاوره داسې ده کله چې وويل شي : ستا شيخې د پوزې د لارې ويستل شوې ده.اوس دلته يو سوال دی هغه دا دی چې ددې خطايا نه کوم ګناهونه مراد دي، آيا کبيره ګناهونه هم معاف کيدی شي.نو علماو جواب ورکړی دی چې ددې نه صغيره ګناهونه مراد دي، کبيره خو د توبې نه بغير نه معاف کيږي، ځکه چې په حديث کې د (**ما لم يؤت کبيرة**) قيد صراحةً موجود دی، هو که چيرته د اودسونو په کولو سره توبه هم وکړي نو کبائر هم معاف کيدی شي، او که توبه ونه کړي نو صغائر ټول معاف کيږي او کبائر کمزوري کيږي.دلته دويم سوال دا شوی دی چې کله په اودس سره صغائر معاف کيدی شي نو شريعت نصوص مطلق ولې پرېښې دي د صغائر د قيد په لګولو سره يې د هغو ذکر ولې نه دی کړی؟.د دې جواب دادی چې د شريعت په نظر کې د مسلمان شان داسې دی چې د هغه په ذمه به هيڅکله کبيره ګناه نوي، يا دا چې د کبيرې ارتکاب به يې نه وي کړی، يا د ارتکاب سره ناقراره شوی به وي او توبه به يې کړې وي، لهذا د اودس په وخت کې صغائر وي کبائر نه وي.

اوس دلته يو بل سوال واردیږي چې کله په اودس سره ټول صغائر ختميږي بيا نو جومات ته په تللو نفلونو او نورو مونځونو سره کوم ګناهونه معاف کيدی شي سره ددې چې هلته هم د صغائرو د معاف کيدو ذکر راغلی دی؟ نو جواب دادی چې د صغائرو ارتکاب په هر وخت کې کيدی شي نو په نورو اعمالو سره هغه معاف کيږي، يا د اودس نه وروسته په نورو اعمالو سره درجات اوچتيږي او په اودس سره صغائر معاف کيږي، يا خاص قسم ګناهونه په اودس سره معاف کيږي او نور قسمونه صغائر په مونځ سره معاف کيږي. (المرقات ۲/۱۲).

| |
|---|
| (۲) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ |
| د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : کله چې د اودس اراده وکړي يو |
| الْعَبْدُ الْمُسْلِمُ أَوِ الْمُؤْمِنُ فَغَسَلَ وَجْهَهُ خَرَجَ مِنْ وَجْهِهِ كُلُّ خَطِيئَةٍ |
| مسلمان بنده يا يې وفرمايل مؤمن او خپل مخ وينځي نو وځي دده د مخ نه هغه ګناهونه کومو ته چې ده |

نَظَرَ إِلَيْهَا بِعَيْنَيْهِ مَعَ الْمَاءِ أَوْ

په سترګو کتلي وي (یعنې کوم ګناهونه چې په سترګو سره کیدلی شي هغه ختمیږي ) په اوبو سره یا یې

مَعَ آخِرِ قَطْرِ الْمَاءِ فَإِذَا غَسَلَ يَدَيْهِ خَرَجَ مِنْ يَدَيْهِ كُلُّ

وفرمایل چې د آخرني څاڅکي سره هغه بیا کله چې دواړه لاسونه ووینځي نو وځي د ده د لاسونو نه ټول

خَطِيئَةٍ كَانَ بَطَشَتْهَا يَدَاهُ

هغه ګناهونه کوم چې د ده لاسونو نیولي وو (یعنې هغه ګناهونه چې په لاسونو سره کیدی شي هغه ختمیږي)

مَعَ الْمَاءِ أَوْ مَعَ آخِرِ قَطْرِ الْمَاءِ فَإِذَا غَسَلَ رِجْلَيْهِ خَرَجَ كُلُّ

په اوبو سره یا یې وفرمایل چې د آخرني څاڅکي سره ، بیا کله چې هغه دواړه خپې ووینځي نو وځي ټول

خَطِيئَةٍ مَشَتْهَا رِجْلَاهُ مَعَ الْمَاءِ أَوْ مَعَ آخِرِ قَطْرِ الْمَاءِ

هغه ګناهونه د کوم طرف ته چې په خپو باندې تلی وو د اوبو سره یا یې وفرمایل چې د آخرني څاڅکي سره

حَتَّى يَخْرُجَ نَقِيًّا مِنَ الذُّنُوبِ (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

تردې پورې چې هغه د ګناهونو نه پاک شي.

**توضیح** : **خرج من وجهه** : علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې غوږونه او خوله دواړه هم په مخ کې داخل دي مګر د هغو ذکر یې دلته نه دی کړی حالانکه د هغو نه هم ګناه کیدلی شي، یوازې د سترګو د ګناه ذکر شوی دی ځکه چې سترګې په بدن کې د زړه دپاره تر ټولو دیر جاسوسي کوونکي دي او د ګناهونو په کولو کې هغو ته امتیازي شان حاصل دی، کله چې د سترګو ګناه په اودس سره ختمه شي نو د پاتې اندامونو مثلا د پوزې خولې او د ژبې ګناهونه خو په طریقه اولی ختمیږي؛ دویمه وجه دا ده چې د خولې او د پوزې ګناه خو په مضمضه او استنشاق سره ختمیږي، او د غوږونو ګناه د مسح په ذریعه ختمیږي، نو ځکه دلته یوازې د سترګو د ګناهونو ذکر شوی دی. (الکاشف۲/۱۰).

**او مع آخر قطر الماء** : یعنې د اوبو په اخیرنی قطرې سره ګناه ختمیږي، دلته (او) د راوي د شک دپاره هم کیدی شي، او بعضو ویلي دي چې (او) د تنویع دپاره هم کیدی شي.

**حتى يخرج**:دلته سوال دا دی چې کله د ټولو ګناهونو نه پاک شي نو بیا **مشيه الى المسجد**او مونځ د کوم

---

(۱) اخرجه مسلم ۲۱۵/۱ رقم الحديث : ۳۲-۲۴۴، واخرجه الدارمي ۱۹۷/۱ ، رقم الحديث :۷۱۸ ، والترمذي۶/۱ ،رقم الحديث :۲.

کوم شي دپاره کفاره جوړیږي؟ دديٖ جواب دادی چې ممکن ده چې یو قسم صغائرپه اودس سره محوه کیږي او بعضې په مونځ سره محوه کیږي. دویم جواب دا دی چې ممکن چې ده مونځ د کبائرو دپاره کفاره جوړیږي کله چې د توبې سره وي، یا دا چې مونځ د کبائرو د کمزورئ کولو کار کوي یا د رفع درجاتو کار کوي. (المرقات ۲/۱۳). **لقیا**: د پاک او صاف په معنی سره راغلی دی. دا حال واقع دی که چیرته د اودس په شروع کې بسم الله وویل شي، بنه نیت وکړي نو ټول بدن پاکیږي که نه نو د اودس اندامونه پاکیږي، لکه چې په بل حدیث کې راغلي دي. (المرقات ۲/۱۳).

## بنه اودس او بنه مونځ د ګناهونو کفاره ده

| |
|---|
| (۵) وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَامِنَ امْرِئٍ مُسْلِمٍ |
| د حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې: رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کوم مسلمان چې د |
| تَحْضُرُهُ صَلَاةٌ مَكْتُوبَةٌ فَيُحْسِنُ وُضُوءَهَا وَ خُشُوعَهَا وَ رُكُوعَهَا |
| فرض مونځ دوخت راتللو سره بنه اودس وکړي او په مونځ کې خشوع وکړي او رکوع په بنه شان ادا کړي |
| إِلَّا كَانَتْ كَفَّارَةً لِمَا قَبْلَهَا مِنَ الذُّنُوبِ مَا لَمْ |
| نو دده دا مونځ د هغو ګناهونو کفاره کیږي کوم چې هغه د مونځ نه مخکې کړي وو په دې شرط چې هغه |
| يُؤْتِ كَبِيرَةً وَ ذٰلِكَ الدَّهْرَ كُلَّهُ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| کبیره نه وي کړي او داسې همیشه کوي (دا فضیلت په هره زمانه کې قائم وي). |

**توضیح**: **فیحسن وضوءها**: ضمیر د مونځ طرف ته راجع دی، چې بنه اودس وکړي په کوم کې چې د فرائضو، سنتو او مستحباتو پوره خیال وساتل شي. **وخشوعها**: یعني د ظاهري او باطني عاجزئ سره مونځ اداکړي اندامونه یې په سکون وي، زړه یې متوجه وي او نظر یې د سجدې په ځای وي (المرقات ۲/۱۴)

**ورکوعها**: د رکوع ذکر یې وکړه د سجدې یې ونه کړه ځکه چې د رکوع نه وروسته سجده راځي نو د جدا ذکر ضرورت نه وو، همدارنګه رکوع د سجدې نه زیاته مشکله وه نو ځکه یې د خصوص سره د هغې ذکر وکړ. قاضي عیاض رَحِمَهُ اللّٰهُ ویلي دي چې د رکوع ذکر یې په خصوصي طور د دې دپاره وکړ چې دا د مسلمانانو خصوصي شعار دی، **من الذنوب**: د دې نه صغائر مراد دي. (المرقات ۲/۱۵).

**مالم يؤت كبيرة**: دا استثنا په ځای کې دی يعنې **الا الكبيرة** د کبيرې نه غير ګناهونه معاف کيږي ځکه چې د کبائرو د مغفرت دپاره توبه کول ضروري دي، بعضو علماؤ ليکلي دي چې د کبائرو او صغائرو معامله الله تعالى ته پرېښودل په کار دي او د احاديثو ظاهري معنى خپلول په کار دي. لهذا متقدمينو علماؤ ويلي دي چې دا معامله الله تعالى ته سپارل شويده، مګر متاخرينو د صغائرو او کبائرو کې فرق کړی ځکه چې په احاديثو کې يې ذکر راغلی دی، لهذا صغائر معاف کيږي کبيره نه. بعضو تطبيق کړی چې د لغت په اعتبار سره د ذنوبو او سيئاتو فرق کول په کار دي، يعنې لکه څرنګه چې په لغت کې ذنب هغې ګناه ته ويل کيږي کومه چې باعث د عيب وي **الذنوب العيوب** او **الخطايا** هغې ګناه ته ويل کيږي کومه چې د صحيح برعکس غلطي وي **معصيت** نافرمانۍ ته ويل کيږي او **سيئات** د بدۍ په معنى سره دی نو د ټولو د اعلى درجې ګناه **المعاصي** دي ددې نه وروسته په دويم نمبر کې **الاثم** دی ددې نه وروسته په دريم نمبر کې **السيئات** دي يا څلورم نمبر **الخطايا** دي او په پنځم نمبر کې **الذنوب** دي، نو کوم لفظ چې چيرته په احاديثو کې راغلی د هغه د مفهوم په اعتبار سره يې معنى اخيستل په کار دي، که چيرته د صغيره لفظ وو نو صغيره اخيستل په کار دي او که د کبيره ذکر وو نو کبيره مراد اخيستل په کار دي.

**وذلک الدهر كله**: يعني د مونځ کفاره کيدل د کومې زمانې سره خاص نه دي او نه د کوم خاص فرض مونځ سره خاص دي، بلکې دا د هرې زمانې دپاره دي او د هر فرض مونځ دپاره دي. (المرقات ۱۵-۲/۱۶).

## د اودس کولو طريقه

| |
|---|
| (٦) وَ عَنْهُ أَنَّهُ تَوَضَّأَ فَأَفْرَغَ عَلَى |
| د حضرت عثمان رضي الله عنه په باره کې منقول دي چې هغه يو ځل اودس وکړ، نو اول يې اوبه واچولې په |
| يَدَيْهِ ثَلَاثًا ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ |
| خپلو لاسونو باندې درې ځلې، بيا يې درې ځلې په خوله کې اوبه واچولې بيا يې پوزې ته اوبه واچولې |
| ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا ثُمَّ |
| (يعنې په پوزه کې د اوبو اچولو نه وروسته يې پوزه سوڼ کړه) بيا يې درې ځلې مخ ووينځلو، بيا يې |
| غَسَلَ يَدَهُ الْيُمْنٰى إِلَى الْمِرْفَقِ ثَلَاثًا ثُمَّ غَسَلَ |
| درې ځلې خپل ښی لاس تر څنګلو پورې ووينځلو (يعنې د څنګلو سره يې ووينځل) بيا يې ووينځلو خپل |

يَدَهُ الْيُسْرَى إِلَى الْمِرْفَقِ ثَلَاثًا ثُمَّ مَسَحَ بِرَأْسِهِ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَهُ الْيُمْنَى ثَلَاثًا

چپ لاس تر څنګلو پورې درې ځلې بيايې په خپل سرباندې مسح وکړه بيايې درې ځلې ښي پښه وينځله

ثُمَّ الْيُسْرَى ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

بيايې چپه پښه وينځله درې ځلې او بيا حضرت عثمان رضي الله عنه وويل: ما وليدلې وو رسول الله صلى الله عليه وسلم

تَوَضَّأَ نَحْوَ وُضُوئِي هٰذَا ثُمَّ قَالَ مَنْ تَوَضَّأَ وُضُوئِي هٰذَا

چې اودس يې كولو زما دا اودس په شان، بيايې وويل كوم كس چې زما ددې اودس په شان اودس وكړي

ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ

(يعني د فرائضو، سنتو، مستحباتو او د آدابو د رعايت سره) بيا دوه ركعته مونځ وكړي او په مونځ كې

لَا يُحَدِّثُ نَفْسَهُ فِيهِمَا بِشَيْءٍ غُفِرَ لَهُ مَا

د ننه د خپل زړه سره كومې خبرې ونه كړي (يعني په پوره پام سره مونځ وكړي) نو بخښل كيږي ده ته ټول

تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ وَلَفْظُهُ لِلْبُخَارِيِّ)[1].

مخكني ګناهونه، د دې روايت الفاظ د صحيح بخاري دي.

**توضيح: ثم مسح برأسه**: په دغه حديث كې د اودس د اندامو سره د درې ځله وينځلو لفظ راغلى دى، ليكن د مسح كولو سره د درې وارې لفظ نه دى راغلى، ددې نه په واضح طور معلومه شوې ده چې درې ځلې مسح كول او په مسح كې تثليث كول هيڅ مسنون حكم نه دى، او دا داحنافو مسلك دى د كوم تفصيل چې په وروسته كې راتلونكى دى، د لاس او مخ په وينځلو كې هيڅ اختلاف نشته، خو په مضمضه او استنشاق كې اختلاف شته دى كوم چې وروسته را روان دى.

**لايحدث نفسه**: يعنې چې دوه ركعته داسې وكړي په كومو كې چې دنيوي خيالات په زړه كې را نه ولي، ددې نه هغه خيالات مراد دي كوم چې اختياري وي غير اختياري خيالات مراد نه دي، ځكه داسې وساوس او خيالات كوم چې د حديث النفس په درجه كې وي هغه شرعًا معاف دي، بهر حال ددې عظيم فضيلت د حاصلولو دپاره د زړه حضور ضروري شرط دى، بعضې اهل الله ددې دوو ركعتونو د فضيلت د حاصلولو دپاره دوه دوه سوه ركعتونه مسلسل كړي دي. (المرقات ۲/۱۷).

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱/۲۹۵ رقم الحديث ۱۵۹، و مسلم ۱/۲۰۴ رقم الحديث ۳-۲۲۶، و أحمد في المسند ۱/۶۶.

## د اودس کولو نه وروسته د دوه رکعاتو نفلو کولو ثواب

(۷) وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَتَوَضَّأُ

دعقبه بن عامر رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: کوم مسلمان چې اودس وکړي

فَيُحْسِنُ وُضُوءَهُ ثُمَّ يَقُومُ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ مُقْبِلًا عَلَيْهِمَا بِقَلْبِهِ وَ وَجْهِهِ

او ښه اودس وکړي بيا ودريږي او دوه رکعته نفل وکړي زړه او مخ متوجه کړي (يعنې په ظاهر او باطن سره

إِلَّا وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

متوجه شي) نو د هغه دپاره جنت واجب شوی دی.

**توضيح**: ركعتين: د مضمون په اعتبار سره دا حديث او ددې نه مخکې حديث يو شان دي. د دوه رکعتونو نه مراد يا خو **تحية الوضوء** دی او يا **تحية المسجد** دی.

**وجبت له الجنة**: يعنې ددې دوو رکعتونو خصوصيت دا دی چې جنت واجبيږي، ليکن په آخرت کې فيصله په معجون مرکب باندې شوې ده، صرف دې دوو رکعتونو ته نه شي کتل کيدی بلکې نور حسنات او سيئات ورسره يو ځای کيدی شي حد اوسط ترې را ويستل کيږي بيا فيصله کيږي، بهر حال د دنيوي خيال نه پاک د دوو رکعتونو کول هم آسانه کار نه دی، **الا من رزقه الله**. (المرقات ۲/۱۸).

## د اودس نه وروسته دعاء

(۸) وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْكُمْ

د حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: په تاسو کې چې

مِنْ أَحَدٍ يَتَوَضَّأُ فَيُبْلِغُ أَوْ فَيُسْبِغُ الْوُضُوءَ

کوم کس اودس وکړي او دهغه (خوبيانې) آخرته ورسوي يا يې دا الفاظ ووېل چې پوره اودس يې وکړه

ثُمَّ يَقُولُ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَ

بيا وواېي: زه ددې خبرې ګواهي ورکوم چې د واحد خدای نه بغير بل هيڅوک د عبادت لائق نشته او

---

(۱) أخرجه مسلم ۲۰۹/۱ رقم الحديث ۷ ۱-۲۳٤، وأخرجه أحمد في المسند ۱۵۳/٤.

| |
|---|
| أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَ رَسُولُهُ وَ فِي رِوَايَةٍ أَشْهَدُ |
| محمد ﷺ د خدای بنده او دهغه رسول دی) او په یو روایت کې دي چې (داسې ووايي) (اشهد |
| أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ وَ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَ رَسُولُهُ فُتِحَتْ لَهُ |
| ان لا اله الا الله وحده لا شريک له و اشهد ان محمدا عبده و رسوله) نو خلاصې به شي دده د پاره |
| أَبْوَابُ الْجَنَّةِ الثَّمَانِيَةُ يَدْخُلُ مِنْ أَيِّهَا شَاءَ. |
| دروازې د جنت اته واړه په کومه دروازه چې د هغه زړه وغواړي جنت ته دې داخل شي. |
| هٰكَذَا رَوَاهُ مُسْلِمٌ فِي صَحِيحِهِ وَالْحُمَيْدِيُّ فِي أَفْرَادِ مُسْلِمٍ وَكَذَا ابْنُ الْأَثِيرِ فِي جَامِعِ الْأُصُولِ. |
| وَ ذَكَرَ الشَّيْخُ مُحْيِي الدِّينِ النَّوَوِيُّ فِي آخِرِ حَدِيثِ مُسْلِمٍ عَلَى مَا رَوَيْنَاهُ وَ زَادَ |
| او ذکر کړي امام نووي رَحِمَهُ اللهُ د مسلم د حدیث په آخر کې کوم چې مونږ روایت کړی دی او زیات کړي دي |
| التِّرْمِذِيُّ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِي مِنَ التَّوَّابِينَ وَ اجْعَلْنِي مِنَ الْمُتَطَهِّرِينَ |
| ترمذي (په شهادتینو باندې د دعا) دا الفاظ ای الله! ما د توبه کوونکو نه جوړ کړه او په پاکي کوونکو کې |
| وَ الْحَدِيثُ الَّذِي رَوَاهُ مُحْيِي السُّنَّةِ فِي الصِّحَاحِ مَنْ تَوَضَّأَ |
| مې شامل کړه او هغه حدیث کوم چې امام محی السنه په صحاح کې نقل کړی دی یعنې چاچې اودس وکړو |
| فَأَحْسَنَ الْوُضُوْءَ إِلَى آخِرِهِ ( رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ فِي جَامِعِهِ بِعَيْنِهِ |
| او ښه اودس یې وکړو تر آخره پورې، هغه امام ترمذي په خپل جامع کې بعینه همدا رنګې نقل کړی دی، |
| إِلَّا كَلِمَةَ أَشْهَدُ فِي أَنَّ مُحَمَّدًا .(مسلم)[1]. |
| صرف هغه د ان محمد نه مخکې اشهد ذکر کړی نه دی. |

**توضیح** :**اللهم اجعلنی** : په دغه حدیث کې د اودس په وخت کې په روایتونو کې مختلفې دعاګانې او مختلف الفاظ راغلي دي، په کومو سره چې په ظاهر کې د تضاد او اضطراب خیال تیر شوی دی، لیکن حقیقت دا دی چې د صاحب مشکوة د مختلفو روایاتو الفاظ یو ځای کولو سره اشاره کړې چې کوم کس

(۱) أخرجه مسلم ۲۰۹/۱ ،رقم الحديث: ۲۲۳/۱، واخرجه احمد في المسند ۳٤۲/۵، واخرجه الدارمي ۱۷٤/۱ ،رقم الحديث: ٦۵۳ ، والترمذي ۵۰۱/۵ ، رقم الحديث ۳۵۱۷، والنسائي بنحوه ۵/۵ رقم الحديث ۲٤۳.

په دې دعاګانو کې د کومې کول وغوارې نو هغه کولی شي، په بعضو روایتونو کې په تقدیم او تاخیر سره هم ددې دعاګانو ذکر راغلی دی، په بعضو کې د شهادتینو ذکر شته او په بعضو کې نشته، مطلب دا دی چې کوم کس دا دعا ولولي نو سنت اداء کیږي، په اخیر کې د مشکوة صاحب په مصابیح باندې اعتراض کړی دی چې ده په صحاح کې کوم روایت ذکر کړی دی هغه دلته نشته ، بلکې د هغو الفاظو سره دا حدیث ترمذي ذکر کړی دی. **ثمانیة ابواب**: داخلیږي خو به په یوې دروازې مګر دداسې جنتیانو داکرام او تعظیم دپاره به اته دروازې خلاصې شي په کومې سره چې تلل وغواړي ځي به(المرقات۲/۱۹)

## په قیامت کې به د اودس اندامونه ځلیږي

| |
|---|
| (۹) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أُمَّتِي يُدْعَوْنَ |
| د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : زما امت به راوبلل شي |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ غُرًّا مُحَجَّلِينَ مِنْ آثَارِ الْوُضُوءِ |
| د قیامت په ورځ په داسې حال کې چې د اودس په وجه به د هغوی تندي روښانه وي او اندامونه به یې پرقیږي |
| فَمَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يُطِيلَ غُرَّتَهُ |
| لهذا په تاسو کې چې کوم کس غواړي چې هغه د خپل تندي روښنائي زیاته کړي نو هغه ته په کار دي |
| فَلْيَفْعَلْ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(۱). |
| چې هم داسې وکړي. |

**توضیح** : **غراً**: دا د اغر جمع ده او غرة په اصل کې هغه سپین داغ ته ویل کیږي کوم چې د آس په تندي باندې وي مراد مغ دی یا د هر روښانه او مشهور شي دپاره استعمال شوی دی. **محجلین** : دا د تحجیل او تحجل نه مشتق دی. کوم اطلاق چې د ځناورو د پښو په سپینوالي باندې شوی دی کوم چې نهایت ښایسته وي او دا په منزله د قید دی، ځکه دا سپینوالی په پښو باندې د قید په شان محیط شوی دی. په دې جمله کې د **یدعون** لفظ د **یسمون** په معنی سره دی، یعنې دوی چې د قیامت په روځ کله را وبلل شي نو له داسې ځلا او پرقیدو سره به وي لکه څرنګه چې د ځناورو د پښو او تندي سپینوالی پرقیږي، ملا علي قاري رحمه الله لیکلي دي چې هغوی ته به داسې نعره وکړی شي **ایها الغر المحجلون**.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحیحه ۲۳۵/۱ ، رقم الحدیث ۱۳۶ ، ومسلم ۲۱٦/۱ رقم الحدیث : ۳۵– ۲٤٦ وأحمد في المسند :۳۳٤/۲.

بعضو په دې حديث سره استدلال کړی دی چې اودس صرف ددې امت د خصوصیاتو نه دی، ځکه چې په دې سره به د قیامت په ورځ د دوی پیژند ګلوي وي. لیکن علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې دا خبره صحیح نه ده، ځکه چې اودس په مخکنیوامتونو کې هم وو، خو! دا روښانه تندی او دا د پښو سپینوالی په دومره لویه پیمانه ددې امت خاصه ده. (المرقات ۲/۲۰).

**فمن استطاع**: دا جمله د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د طرفه مدرجه ده او هغه په خپله په دې باندې عمل کړی وو، د رڼا د اطالت نه مراد دا دی چې کوم اندام دی هغه د معلوم مقدار نه زیات ووینځل شي مثلا لاسونه تر ترخ پورې ووینځل شي او پښې تر ګونډو پورې ووینځل شي، دلته د اطالت رڼا نه د دریو وارو نه د زیات وینځل نه دي مراد ځکه چې هغه اسراف دی کوم چې روا نه دی. (المرقات ۲/۲۱).

| |
|---|
| (۱۰) وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبْلُغُ الْحِلْيَةُ مِنَ الْمُؤْمِنِ |
| د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: رسیدی شي زیور مؤمن |
| حَيْثُ يَبْلُغُ الْوَضُوءُ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| ته په جنت کې تر هغه ځای پورې تر کومه ځایه چې دا اودس اوبه ورسول شي. |

**توضيح**: **الحلية**: په معنی د زیور ده دلته رڼائي مراد ده د کوم ذکر چې ددې نه په مخکني حدیث کې تیر شو، چې مسلمان څومره زیات په اودس کې د اندامونو مقدار نه وراندې ووینځي هغومره به د هغه برخه زیاته روښانه کړی شي. (المرقات ۲/۲۳).

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## د استقامت فضيلت

| |
|---|
| (۱۱) عَنْ ثَوْبَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَقِيمُوا وَ |
| د حضرت ثوبان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: سم اوسئ او تاسو د |
| لَنْ تُحْصُوا وَ اعْلَمُوا أَنَّ خَيْرَ أَعْمَالِكُمُ الصَّلَاةُ وَلَا |
| سم اوسیدو هیڅکله طاقت نه لرئ او پوهه شئ چې ستاسو په اعمالو کې بهترین شی مونځ دی او نه کوي |

(۱) اخرجه مسلم ۲۱۹/۱ ، رقم الحديث . ۰۴۰ - ۲۵۰ واخرجه النسائي في السنن ۹۳/۱ رقم الحديث :۱۴۹ ،واخرجه احمد في المسند :۳۷۱/۲.

| |
|---|
| يُحَافِظُ عَلَى الْوُضُوءِ إِلَّا مُؤْمِنٌ (رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَحْمَدُ . وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ)[1]. |
| حفاظت د اودس مگر مؤمن يې كوي. |

**توضيح**: **استقيموا**: يعنې د افراط او تفريط نه پاک د اعتدال په لار باندې سم او برابر اوسئ او په نيكو اعمالو باندې قائم او دائم اوسئ، د استقامت متعلق رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ويلي دي **شيبتنى هود و اخواتها** او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي استقامت هغې ته ويل كيږي چې **لايروغون روغان الثعالب** يعنې د كيدړانو په څير چلبازى ونه كړي بلكې په حق باندې كلک اوسي، حضت ابو بكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او نورو په فرضي اعمالو باندې قائم اوسيدو ته استقامت ويلى دى او امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ هغه ته د پل صراط نوم وركړى دى، همدا وجه ده چې صوفيانو ويلي دي **(الاستقامة فوق الف كرامة)** چونكه دغه كار ډير زيات مشكل وو نو ځكه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل **(ولن تحصوا)** يعنې دغه كار ستاسو دپاره ډير مشكل دى، كه چيرته تاسو دا نه شئ كولى نو دومره خو وكړئ چې په اودس باندې دوام وكړئ ځكه چې دا د مؤمن شان دى او د محافظ على الصلوة دپاره معاون دى، دويم مطلب ددې حديث دا دى چې په دين باندې د افراط او تفريط نه په غير لاړ شئ كامل حقوق ادا كړئ، چې داخلاقو استقامت راشي د عقائدو او عباداتو استقامت راشي مگر دا مشكل دى محنت او كوشش ته په كې ضرورت شته دى. (المرقات ٢/٢٢).

## د يو اودس په حالت كې د بل اودس فضيلت

| |
|---|
| (١٣) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّأَ |
| د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: كوم كس چې اودس وكړي |
| عَلَى طُهْرٍ كُتِبَ لَهُ عَشْرُ حَسَنَاتٍ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[2]. |
| په اودس باندې د هغه دپاره لس نيكى ليكل كيږي. |

**توضيح**: **على طهر**: دا په اودس باندې دا اودس مسئله ده په دې كې دلس چنده ثواب وركولو وعده شوې ده مگر په دې كې څو شرطونه دي يو دا چې په اول اودس سره څه عبادت وكړي يا د كوم دنيوي كار په كولو

(١) اخرجه مالك في الموطا ٣٤/١ رقم الحديث ٣٦ ،واخرجه احمد في المسند ٢٨٢/٥، واخرجه ابن ماجه في السنن ١٠١/١، رقم الحديث: ٢٧٧ ، واخرجه الدارمي ١٧٤/١ رقم الحديث: ٦٥٥.

(٢) اخرجه الترمذي ٨٧/١ رقم الحديث: ٥٩ . واخرجه ابوداود في السنن ٥٠/١ رقم الحديث: ٦٢ . وابن ماجه في السنن ١٧٠/١ رقم الحديث: ٥١٢.

سره فاصله پيدا كړي په كوم سره چې حد فاصل جوړشي او د مجلس تبديلي هم راشي كه چيرته داسې نه وو نو په يو مجلس كې داودس د كولو نه وروسته د نيک كار د كولو نه په غير بل اودس كول د تحصيل حاصل او د اسراف په زمره كې راغلي دي كوم ته چې د فتح القدير صاحب مكروه ليكلي دي. (المرقات ۲/۲۳).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## اودس د مونځ چابي (كنجي) ده

| |
|---|
| (۱۲) عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِفْتَاحُ الْجَنَّةِ الصَّلَاةُ |
| د حضر جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې : رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : د جنت چابي مونځ دى |
| وَمِفْتَاحُ الصَّلَاةِ الطَّهُورُ (رَوَاهُ أَحْمَدُ)[1]. |
| او د مونځ چابي اودس دى. |

**توضيح** : **مفتاح الجنة** : دا تشبيه ده چې مونځ د يوې خزانې په شان دى او اودس د هغه د پاره د تالې په شان دى، او دا رنگه جنت يوه خزانه ده او مونځ د هغې چابي ده، او قاعده ده چې د خزانې قلف د چابي نه بغير نه شي خلاصيدى، لهذا مونځ د اودس نه بغير ممكن نه دى او جنت د مونځ نه بغير ممكن نه دى. (المرقات ۲/۲۳).

## د مقتدي خراب اودس د امام مونځ خرابولى شي

| |
|---|
| (۱۳) وَعَنْ شَبِيبِ بْنِ أَبِي رَوْحٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت شبيب بن ابى رواح د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په صحابو كې د كوم صحابي نه روايت كړى دى |
| أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى صَلَاةَ الصُّبْحِ فَقَرَأَ الرُّومَ |
| چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (يو ځل) د سهار مونځ اداء كړو او په هغې كې يې سورت روم ولوست (په مينځ |
| فَالْتَبَسَ عَلَيْهِ فَلَمَّا صَلَّى قَالَ مَا بَالُ أَقْوَامٍ |
| كې) هغه ته تشابه وشوه لهذا كله چې هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ وكړو نو وې فرمايل په خلكو څه شوي دي |
| يُصَلُّونَ مَعَنَا لَا يُحْسِنُونَ الطَّهُورَ وَ إِنَّمَا يَلْبِسُ عَلَيْنَا الْقُرْآنَ |
| چې د مونږ سره مونځ كوي او په ښه طريقه اودس نه كوي او اشتباه اچوي په مونږ باندې په قرآن كريم كې |

---

(۱) أخرجه احمد في المسند ۳/۳٤۰.

أُو لَيْلَهٗ. (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ)[1].

د همدې وجې.

## پاکي نیم ایمان دی

(۱۵) وَ عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ قَالَ عَدَّهُنَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

دبنو سلیم د قبیلې نه یو کس روایت کړی دی چې د رسول الله ﷺ خوخبرې (کومې چې وړاندې ذکر

فِيْ يَدِيْ أَوْ فِيْ يَدِهٖ قَالَ التَّسْبِيْحُ

شوې دي) زما په لاس باندې یا یې په خپل لاس باندې شمار کړې (لهذا) هغه وفرمایل: سبحان الله ویل

نِصْفُ الْمِيْزَانِ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ يَمْلَؤُهٗ

(یعنې د دې ثواب) نیمه تله ډکوي او الحمد لله (د سبحان الله سره) ویل (یا صرف الحمد لله) پوره تله ډکوي

وَ التَّكْبِيْرُ يَمْلَأُ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَ الْأَرْضِ وَ الصَّوْمُ نِصْفُ الصَّبْرِ

او الله اکبر ویل یې هم ډکوي هغه شی کوم چې د زمکې او د آسمان په مینځ کې دي، او روژه نیم صبر دی

وَ الطُّهُوْرُ نِصْفُ الْإِيْمَانِ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَ قَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ)[2].

او پاک او سېدل نیم ایمان دی (ترمذي د دې حدیث روایت کړی او ویلي یې دي چې دا حدیث حسن دی).

**توضیح: التسبیح نصف المیزان**: ځکه تسبیح د صفات سلبیو نه د تنزیه لو پاکۍ نوم دی او صفات سلبیه د صفات ثبوتیو مقابل کې نیم دي او الحمد لله له صفات ثبوتیو نه دي، لهذا د دواړو په جمع کیدو سره تله ډکیږي.

**والصوم نصف الصبر**: په روژې سره د فرج شهوت او د خیټې د شهوت ټول مرغوبات ختمیږي لیکن صبر د دریو شیانو د مجموعې نوم دی یعنې **صبر علی الطاعة صبر علی المصیبة** او **صبر عن المعصیة** لهذا په روژه کې د صبر دا ټول اجزاء نه شي موندل کیدی بلکې دوه لوی لوی اجزاء یعنې صبر عن شهوة البطن او صبر عن شهوة الفرج په کې موندل کیږي، لهذا صوم ته نیم صبر ویل شوی دی. (المرقات ۲/۲۵).

---

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۱۵۶/۲ ، رقم الحديث :۹۴۷ أخرجه أحمد في المسند ۳۶۳/۵.

(۲) اخرجه الترمذي ۵۰۱/۵ رقم الحديث :۳۵۱۹ ، أخرجه أحمد في المسند ۳۶۳/۵.

(۱۶) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ الصُّنَابِحِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ

عبد الله صنابحي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت کړی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: کله چې اراده وکړي داودس

الْعَبْدُ الْمُؤْمِنُ فَمَضْمَضَ خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ فِيهِ وَإِذَا اسْتَنْثَرَ خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ أَنْفِهِ

مؤمن بنده او غرغره هم کوي نو ګناه د هغه د خولې نه وځي او کله چې پوزه سونړ کړي نو وځي ګناه د ده د پوزې نه

وَإِذَا غَسَلَ وَجْهَهُ خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ وَجْهِهِ حَتَّى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ أَشْفَارِ عَيْنَيْهِ فَإِذَا

او کله چې مخ ووينځي نو ګناه د هغه د مخ نه وځي تردې چې د هغه د سترګو د بڼو نه هم ګناه ووځي او کله

غَسَلَ يَدَيْهِ خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ يَدَيْهِ حَتَّى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ

چې خپل دواړه لاسونه وينځي نو ګناه د هغه د لاسونو نه وځي تردې چې ووځي ګناه د هغه د دواړو لاسونو

أَظْفَارِ يَدَيْهِ فَإِذَا مَسَحَ بِرَأْسِهِ خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ رَأْسِهِ حَتَّى

د نوکانو نه او کله چې هغه په خپل سر باندې مسح وکړي نو ګناه د هغه د سر نه ووځي تردې چې د هغه د

تَخْرُجَ مِنْ أُذُنَيْهِ فَإِذَا غَسَلَ رِجْلَيْهِ خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ رِجْلَيْهِ

دواړو غوږونو نه هم ګناه ووځي او کله چې هغه خپلې دواړه پښې وينځي نو ګناه د هغه د دواړو پښو نه ووځي

حَتَّى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ أَظْفَارِ رِجْلَيْهِ ثُمَّ كَانَ مَشْيُهُ إِلَى الْمَسْجِدِ وَ صَلَاتُهُ

تردې چې د هغه د پښو د نوکانو د لاندې نه هم ګناه ووځي بيا د جومات طرف ته د هغه تلل او د هغه مونځ

نَافِلَةً لَهُ.[1]

د هغه د پاره (په اعمالو کې) زيادت دي.

**توضيح**: **حتى تخرج من اذنه**: د سر په مسح کولو سره چې کومه ګناه ووځي د هغو لار غوږونه ښودل شوي دي، معلومه شوه چې دواړه غوږونه په مسح کې د سر تابع دي، لهذا د هغو د پاره د نويو اوبو را اخيستل ضروري نه دي، مخکې همدا مسئله را روانه ده. (المرقات ۱/۲۷).

(۱) اخرجه مالک في الموطا ۳۱/۱، رقم الحديث ۳۰، واخرجه النسائي في السنن ۷۴/۱ رقم الحديث: ۱۰۳، واحمد في المسند ۳۴۹/۴.

## اودس كوونكي خلك به د قيامت په ورځ پر قيږي

(۱۷) وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَتَى الْمَقْبَرَةَ

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دي چې (يوه ورځ) رسول الله صلى الله عليه وسلم په مقبره (يعنې جنت البقيع) كې

فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ

(د مغفرت د دعا د پاره) تشريف ويوړ (هلته چې ورسيد) نو وې فرمايل: اى د مؤمنانو ډلې! په تاسو دې سلام

وَ إِنَّا إِنْ شَاءَ اللهُ بِكُمْ لَاحِقُونَ وَدِدْتُ أَنَّا قَدْ رَأَيْنَا إِخْوَانَنَا

وي او مونږ هم ان شاء الله تاسو سره يو ځاى كيدونكي يو او زه د دې خبرې آرزو لرم چې مونږ خپل ورونه وګورو

قَالُوا أَوَلَسْنَا إِخْوَانَكَ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ

صحابه كرامو عرض وكړو: يا رسول الله! آيا مونږ ستا ورونه نه يو؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل:

أَنْتُمْ أَصْحَابِي وَ إِخْوَانُنَا الَّذِينَ لَمْ يَأْتُوا بَعْدُ فَقَالُوا

تاسو زما دوستان يې او زما ورونه هغه دي كوم چې اوس (دنيا ته) نه دي راغلي صحابه كرامو وويل

كَيْفَ تَعْرِفُ مَنْ لَمْ يَأْتِ بَعْدُ مِنْ أُمَّتِكَ يَا رَسُولَ اللهِ

يا رسول الله! ستا په امت كې چې كوم خلك تر اوسه نه دي راغلي هغه به تاسو د قيامت په ورځ څنګه وپيژنئ؟

فَقَالَ أَرَأَيْتَ لَوْ أَنَّ رَجُلًا لَهُ خَيْلٌ غُرٌّ

رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ما ته دا ووائې چې كه چيرته د يو چا سره د سپين تندي او سپينو خپو والا آس

مُحَجَّلَةٌ بَيْنَ ظَهْرَيْ خَيْلٍ دُهْمٍ بُهْمٍ أَلَا يَعْرِفُ خَيْلَهُ

وي او هغه يېخي د تورو رنګو والا آسونو سره يو ځاى شوي وي نو آيا هغه به خپل آسونه ونه پيژني؟ صحابه

قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللهِ

كرامو وويل چې آو يا رسول الله! په دې امتيازي صفتونو سره د شک نه بغير به يې هغه وپيژني، نبي عليه السلام

قَالَ فَإِنَّهُمْ يَأْتُونَ غُرًّا مُحَجَّلِينَ مِنَ الْوُضُوءِ

وفرمايل: هغوى به (د قيامت په ورځ) د اودس د اثره سپين تندي، سپين لاسونه او سپينې پښې راشي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَ | أَنَا | فَرَطُهُمْ | عَلَى | الْحَوْضِ | . ( رَوَاهُ مُسْلِمٌ )[1]. |

(لهذا په دې نښه به هغوی وپیژندل شي) او زه به په حوض کوثر باندې د دوی په کار شم.

**توضيح** : **السلام عليكم** : په قبرستان کې مړو ته سلام کول ثابت دي او مسنونه طريقه ده، مړي سلام آوري په دې باندې د ډيرو شيانو قياس کول قياس مع الفارق دی ، د سماع موتی متعلق انکار کول تفريط دی او بالکل هر وخت د هرې خبرې آوريدلو عقيده لرل افراط دی، اعتدال دا دی چې په کومو نصوصو سره سماع موتی ثابت ده هلته سماع شته او چيرته چې نشته هلته نشته ، د سماع نصوص هم خلاف عقل دي، کوم چې په خپل مورد پورې خاص دي په هغو باندې نور شيان قياس کيدی نه شي.(المرقات ۲/۲۷).

**انتم اصحابي** : يعني تاسو زما د وړونو سره سره ملګري هم يې او په وروسته کې راتلونکي صرف وروڼه دي د ملګري کيدو وصف په هغو کې نشته نو ځکه يې اخواننا وويل، دهم بهم : يعني تک تور. (المرقات ۲/۲۸).

(۱۸) وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَوَّلُ مَنْ

دابو الدرداء رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: زه به اول هغه کس يم هغه خلکو کې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يُؤْذَنُ | لَهُ | بِالسُّجُودِ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | وَ | أَنَا | أَوَّلُ | مَنْ |

کوموته به چې د سجدې اجازت ورکړی شي د قيامت په ورځ او بيا په هغو خلکو کې اول کس زه يم کوموته

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يُؤْذَنُ | لَهُ | أَنْ | يَرْفَعَ | رَأْسَهُ | فَأَنْظُرُ | إِلَى | مَا | بَيْنَ يَدَيَّ |

چې به د سجدې نه د سر پورته کولو اجازت ورکړی شي نو زه به د هغه شي طرف ته وګورم کوم به چې زما وړاندې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَعْرِفُ | أُمَّتِي | مِنْ | بَيْنِ | الْأُمَمِ | وَ مِنْ | خَلْفِي | مِثْلُ | ذٰلِكَ |

وي (يعني د مخلوق مجمع) او زه به د امتونو په مينځ کې خپل امت وپيژنم بيا به زه د خپل شا طرف ته همداشان

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَ عَنْ | يَمِينِي | مِثْلُ | ذٰلِكَ وَ | عَنْ | شِمَالِي | مِثْلُ | ذٰلِكَ |

او خپل ښي او چپ طرف ته (هم) همداشان وګورم (يعني ځلور و طرفونو ته به د خلکو ازدحام وګورم او زه

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۲۱۸ رقم الحديث . ۳۹- ۲٤۹ ،وأخرجه النسائي في السنن ۱/۹۳ رقم الحديث : ۱۵۰ ، وأحمد في المسند :۲/۳۰۰.

| |
|---|
| فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللهِ كَيْفَ تَعْرِفُ أُمَّتَكَ مِنْ بَيْنِ الْأُمَمِ فِيمَا بَيْنَ نُوحٍ إِلَى |
| به خپل امت پيژنم) يو صحابي وويل يا رسول الله! ته به څنګه خپل امت وپيژني د نوح عَلَيْهِ السَّلَام د امت نه تر |
| أُمَّتِكَ قَالَ هُمْ غُرٌّ مُحَجَّلُونَ مِنْ أَثَرِ الْوُضُوءِ |
| خپل امت پورې؟ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: زما د امت خلک به د اودس د اثرد وجې سپين تندي |
| لَيْسَ أَحَدٌ كَذَلِكَ غَيْرَهُمْ وَ أَعْرِفُهُمْ أَنَّهُمْ |
| سپين لاسونه او سپينو خپو سره وي د دې امت نه بغير بل امت به دا شان نه وي او زه به خپل امت په دې هم پيژنم |
| يُؤْتَوْنَ كُتُبَهُمْ بِأَيْمَانِهِمْ وَ أَعْرِفُهُمْ |
| چې (زما د امت خلکو ته) د دوی اعمالنامه به په ښي لاسونو کې ورکړې شي او دا رنګه په دې يې هم پيژنم |
| تَسْعَى بَيْنَ أَيْدِيهِمْ ذُرِّيَّتُهُمْ . (رَوَاهُ أَحْمَدُ)[1]. |
| چې د هغوی وړوکي اولادونه به د هغوی مخې ته منډې وهي. |

**توضيح : بأيمانهم** : سوال دا دی چې په آخرت کې ځومره مسلمانان او مؤمنان وي نو ټولو ته به عمل نامه په ښي لاس کې ورکول کيږي بيا نو د دې امت د مؤمنانو څه خصوصيت پاتې شو؟.
د دې جواب دا دی چې اګر که د نورو امتونو افرادو ته به هم عمل نامه په ښي لاس ورکړې شي مګر دغه امت ته به له يوه ځانګړي شان او اعزاز سره ورکړې شي. (المرقات ۲/۳۰).

**تسعى بين ايديهم** : يعنې د هغو اولادونه به د هغو مختې مختې ته د جنت طرف ته منډې وهي، يا مطلب دا ده چې هغوی به د دوی مخې ته لوبې کوي او منډې به وهي، دا د فراخۍ، خوشحالۍ او بې خوفۍ طرف ته اشاره ده، شايد د نورو امتونو خلک د خوشحالۍ په همدې کيفيت کې نه وي. (المرقات ۲/۳۰).

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۵/۱۹۹.

١٨ صفر ١٤٤٠هـ

# بَابُ مَا يُوجِبُ الْوُضُوءَ

# د اودس ماتوونکو شیانو بیان

## الْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### د اودس نه په غیر مونځ نه صحیح کیږي

(١) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُقْبَلُ صَلَاةُ مَنْ أَحْدَثَ

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : بې اودسه مونځ نه قبلیږي تر څو

حَتَّى يَتَوَضَّأَ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1].

چې اودس ونه کړي .

**توضیح : باب ما یوجب الوضوء ای باب أسباب وجوب الوضوء والا فالموجب حقیقة هو الله تعالی.**

**لاتقبل صلوة :** د لاتقبل یو مطلب او معنی **لاتصح** ده، دویم مطلب او معنی يې **لایترتب علیه الثواب** ده، دلته اوله مراد ده، یعنې چې د اودس نه بغیر مونځ نه صحیح کیږي. (المرقات ٢/٣٠).

په دې خبره اجماع ده چې د بې اودسۍ په حالت کې مونځ کول حرام دي، که چیرته کوم کس د طهارت نه په غیر قصدا مونځ وکړي او هغه روا وګڼي نو د فقهاو په نزد د داسې کس د کافر کیدو ویره ده ، ای **یخشی علیه الکفر**. د اودس په موجباتو کې بعضې داسې دي په کومو باندې چې د صحابه کرامو اتفاق دی، دارنګه د تابعینو او فقهاؤ هم پرې اتفاق دی، لکه متیازې (غټې ورې) د هوا وتل، د مذي وتل وغیره، په دې سره د ټولو په نزد اودس ماتیږي. (المرقات ٢/٣١).

او د اودس په موجباتو کې بعضې داسې دي په کومو کې چې د روایتونو د اختلاف د وجې د صحابه کرامو او تابعینو اختلاف دی، بیا د فقهاء کرامو هم اختلاف پاتې شوی، لکه د وینې وتل، د ښځې مسه کول د ذکر مسه کول او ما خرج من غیر السبیلین وغیره، ددې اسبابو جدا جدا تفصیل راتلونکی دی، ځینې موجبات وضوء داسې دي کوم چې د اسلام په اوائلو کې موجبات وضوء وو بیا په آخر کې نواقض

(١) أخرجه البخاري في الصحيح ٢٣٤/١ ،رقم الحديث: ١٣٥ ،ومسلم في الصحيح ٢٠٤/١ رقم الحديث: ٧٠-٢٨٧٠، وابو داود ٤٩/١ رقم الحديث : ٦٠، والترمذي ١١٠/١ رقم الحديث : ٧٦ ، واخرجه أحمد في المسند ٣٠٣/٢.

وضوء پاتې نه شول، يا هغه هيڅ وخت هم موجبات وضوء نه وو ليکن په روايتونو کې د شبهې د وجې هغه موجبات وضوء ګڼل شوي دي، لکه په **(ما مست النار)** سره د اودس کولو مسئله ده. اوس دا شيان د جمهور امت په نزد موجبات وضوء ندي، د مشکوة مصنف ددې دريو اقسامو ذکر په دې باب کې کړی دی، په پورته ذکر شوي حديث کې د **(لاتقبل صلوة)** لفظ راغلی دی او لکه چې ليکل شوي دي چې د قبول نه لاتصح او عدم جواز مراد دی، اوس دلته د **صلوة** لفظ راغلی دی او ترجمه يې ده چې هيڅ مونځ د اودس نه په غير نه روا کيږي، نو کتل دې ته دي چې آيا د **صلوة** دا لفظ د جنازې مونځ او سجده تلاوت ته هم شامل دی او که نه دی ، نو د جمهور امت په نزد د جنازې مونځ او سجده تلاوت دپاره اودس کول شرط دي، د دې دواړو دپاره د **صلوة لفظ ستعمال شوی دی اګر که دغه اطلاق خفي دی**.د شيخ شعبي رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد د **صلوة** لفظ د جنازې مونځ او سجده تلاوت دواړو ته شامل نه دی . ځکه چې ده په نزد ددې دواړو دپاره اودس ضروري نه دی،اودامام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد د **صلوة** اطلاق په سجده تلاوت باندې نه شي کيدلی، ځکه چې په هغې کې نه رکوع شته او نه هغه مونځ دی، لهذا د امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد سجده تلاوت د اودس نه په غير روا ده، امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ د ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په روايت سره هم په عدم وضوء باندې استدلال کړی دی **كان يسجد على غير وضوء** جمهور امت په **لاتقبل صلوة** سره استدلال کړی دی برابره ده که اطلاق خفي وي که جلي وي، لهذا د جنازې او سجده تلاوت دپاره اودس ضروري دی، په جنازه باندې خو په واضح طور په **(صلوة على اخيكم)** کې د صلوة يعنې د مونځ اطلاق شوی دی، او په سجده تلاوت کې ځکه اودس ضروري دی چې سجده د مونځ رکن اعظم دی، کله چې د مونځ دپاره طهارت شرط دی نو د هغه د رکن اعظم دپاره هم شرط دی، او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په روايت کې تعارض دی، په بعضو نسخو کې **كان يسجد على طهور** الفاظ راغلي دي، لهذا **اذا تعارضا تساقطا** په قاعده سره دا روايت قابل استدلال نه دی او سجده تلاوت د اودس نه په غير روا نه ده.

**د فاقد الطهورين مسئله**: د دې باب د حديث نمبر (اول) او حديث نمبر (دويم) دواړو نه د فاقد الطهورين مسئله را وتلې ده، مثلا يو کس د شيشې په محل کې يا په داسې محل کې بند شوی دی چيرته چې نه اوبه شته چې اودس وکړي او نه خاوره شته چې تيمم ووهي او په هغه باندې د مونځ وخت راغلی دی اوس د مونځ کولو دپاره داسې کس څه وکړي، داسې کس ته فاقد الطهورين ويل کيږي، د داسې کس په مونځ کولو او نکولو کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف** : د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ څلور اقوال منقول دي. اول دا دی چې فی الحال واجب دی او وروسته د اوبو په پیدا کولو سره یې قضاء هم واجب ده. دا صحیح قول دی، دویم قول دا دی چې فی الحال دې نه کوي وروسته یې قضاء واجب ده، دریم قول دا دی چې فی الحال یې کول مستحب دي او وروسته یې قضائي راوړل واجب دي، څلورم قول دا دی چې فی الحال یې کول واجب دي او وروسته هیڅ هم نشته دي. د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد نه یې فی الحال کول واجب دي او نه یې په وروسته کې قضائي شته، بلکې دغه کس معاف دی، امام ابو حنیفة رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې فی الحال دې مونځ نه کوي او وروسته دې وجوبًا قضائي راوړي، د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ یو قول همدا رنګې دی، په احنافو کې صاحبینو ویلي دي چې فی الحال دې تشبیه بالمصلین وکړي او بیا دې په وروسته کې قضائي راوړي. د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ اصح قول هم دا شان دی، او امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ هم ددې قول طرف ته رجوع کړې ده، دا د جمهورو مسلک شو او په همدې باندې فتوی ده.(المرقات ۲/۳۱).

**دلائل** : جمهورو یعنې شافعیانو او صاحبینو ویلي دي چې طهارت بشرط الاستطاعت فرض دی، مګر کله کله فرض هم ساقط کیدی شي لکه قرائت چې د مونځ د فرائضو نه دی مګر د اخرس او ګونګي په حق کې دغه فرض ساقط شوی دی، په مونځ کې قیام فرض دی مګر کله کله د عجز له وجې دغه فرض ساقط شوی دی، دارنګه طهارت هم فرض دی لیکن د مجبورۍ په وخت کې ساقط کیدی شي. لهذا کول واجب دي او قضائي راوړل یې هم واجب دي. امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې په فاقد الطهورین کې د مونځ اهلیت نشته دی، لکه څرنګه چې حائضه ښځه د حیض په حالت کې مونځ او روژه نه شي نیولی د هغې همدا کار کول او نکول برابر دي، دارنګه د فاقد الطهورین کول او نه کول برابر دي. (المرقات ۲/۳۱).

**جواب** : جمهورو چې په قیاس کې کوم تمثیلات وړاندې کړي د هغو جواب دا دی چې دا قیاس مع الفارق دی ځکه هلته په دواړو مسئلو کې نائب موجود دی دا خرس په حق کې نائب تسبیحات دي یا د زړه تصورات دي او په ولاړه (قیام) باندې چې کوم قادر نه دي نو ناسته د هغه نائب دی که نه نو اضجاع (څملاستل) دي. دلته په **فاقد الطهورین** کې نائب نشته ذی لهذا په هغه یې قیاس کول روانه دي بهرحال امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ په دغه مسئله کې د جمهورو طرف ته رجوع کړې ده لهذ مسئله متفق علیها شوه.

**ولاصدقة من غلول** : غلول د غنیمت په مال کې خیانت ته ویل کیږي. دلته د غلول نه مراد حرام مال دی. بهر حال د مال نه صدقه کول د الهي رحمت مظهر دی او د حرام مال نه صدقه کول د الهي قهر مظهر دی نو ځکه قبوله نه ده ، که چیرته د یو چا لاسته حرام مال راغی نو د ثواب په نیت دې هغه نه صدقه کوي. ځکه چې په دې کې د کافر کیدو خطر دی. خو ددې نه د فارغیدو په نیت یې چې مصرف کړي یعنې چې یو چاته یې د ثواب له نیت نه په غیر ورکړي.

د غلول په لفظ سره اشاره وکړی شوه چې د غنیمت په مال کې اګر که د مجاهدینو حق دی بیا هم په هغه کې خیانت کول او د هغه نه صدقه کول دومره لوی جرم دی نو له هغه نه په غیر خالص د حرامو به څه حال وي؟ په یاد ولرئ چې همدا تشریح دراتلونکي حدیث هم ده او همدا اخیرني الفاظ ددې دویم نمبر حدیث دي کوم چې راتلونکی دی. (المرقات ۲/۳۲).

| |
|---|
| (۲) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُقْبَلُ صَلَاةٌ بِغَيْرِ طُهُورٍ |
| د ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د طهارت نه بغیر مونځ نه قبلیږي |
| وَلَا صَدَقَةٌ مِنْ غُلُولٍ (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| او د حرام مال نه خیرات نه قبلیږي. |

## د مذي حکم

| |
|---|
| (۲) وَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ رَجُلًا مَذَّاءً |
| حضرت علي رضي الله عنه وېلي دي چې زما مذي ډېره زياته راتلله چونکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم لور (فاطمه |
| فَكُنْتُ أَسْتَحْيِي أَنْ أَسْأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لِمَكَانِ ابْنَتِهِ |
| رضي الله عنها) زما په نکاح کې وه نو ځکه زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه ددې حکم په تپوس کولو کې شرمیدم (چې آیا په دې سره غسل واجبیږي او که اودس) نو ځکه ما (ددې مسئلې د پوښتنې دپاره) |
| فَأَمَرْتُ الْمِقْدَادَ فَسَأَلَهُ |
| حضرت مقداد رضي الله عنه ته حکم وکړو، لهذا هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه وکړه (چې یو |
| فَقَالَ |
| کس داسې دی د هغه په باره کې څه حکم دی؟) نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: (چې د مذي په وتلو |
| يَغْسِلُ ذَكَرَهُ وَ يَتَوَضَّأُ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]. |
| سره) یوازې د متیازو ځای دې وینځل شي او اودس دې وکړی شي. |

(۱) أخرجه المسلم في الصحيح ۲۰٤/۱ رقم الحديث ۱-۲۲٤، وأبو داود ۴۸/۱ رقم الحديث ۵۹، والنسائي ۸۷/۱، رقم الحديث ۱۳۹، والترمذي ۵/۱ رقم الحديث ۱، وابن ماجة ۱۰۰/۱، رقم الحديث ۲۷۲، وأخرجه أحمد في المسند ۲ ۳۹

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۱۳۰/۱، رقم الحديث ۱۳۲، ومسلم في الصحيح ۲٤۷/۱ رقم الحديث ۱۷-۳۰۳، وأخرجه احمد في المسند ۸۰/۱.

**توضيح**: **كنت رجلا مذاء**: مذي د سپينو اوبو په شان يوه بهيدونكې (سياله) ماده ده كوم چې د ښځې سره د مستې يا د محبوبې سره د لوبو يا د جماع د ذكر په وخت كې د شوق او شهوت د وجې خارجيږي، د مذي په وتلو سره يوازې اودس ماتيږي نو ځكه اودس واجب او غسل نه واجبيږي، په دې مسئله كې د ټولو اتفاق دى خو په دې كې اختلاف دى چې د اودس په وخت كې ځو ځلې د ذكر وينځل ضروري دي، د جمهورو په نزد د نجاست ځاى وينځل ضروري دي او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد د ټول ذكر وينځل ضروري دي، او د امام مالك رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد ذكر مع الانثيين (هګى) وينځل ضروري دي. امام مالك رَحِمَهُ اللّٰهُ د ابوداؤد په دې روايت سره استدلال كړى دى په كوم كې چې د مذاكير او انثيين (هګيو) ذكر راغلى كوم چې د اول جلد په ۲۸ صفحه كې ذكر دى، امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ په دې روايت سره استدلال كړى **واغسل ذكرك** الفاظ راغلي او د ذكر اطلاق په ټول باندې كيدلى شي (المرقات ۳۲-۲/۳۳)

جمهورو ويلي دي چې اصل قاعده او قانون د نجاست ليرې كول دي نو تر كوم ځايه چې نجاست دى تر هماغه ځايه يې وينځل واجب دي د دې نه په غير د زيات ذكر چې راغلى يا د **انثيين** (هګيو) ذكر چې راغلى چې د زياتو اوبو په اچولو سره يخوالى راځي په كوم سره چې د مذي ماده وتل بنديږي دا حكم د مسئلې په توګه نه دى، يا دا چې دغه حكم استحبابي دى وجوبي نه دى.

**لمكان ابنته**: يعني فاطمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا زما په نكاح كې وه، او س د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مخكې د مذي ودي او مني په شان د يټو شيانو ذكر كولو نه حياء مانع وه، د دې حديث په دې جملې سره ديو ډيرو باريكو اخلاقو تعليم ترلاسه كيږي چې زوم ته د سخرپر وړاندې د شهوت سره د متعلق خبرو يادول مناسب نه دي (المرقات ۲/۳۲).

**فأمرت المقداد**: يعني ما حضرت مقداد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته عرض وكړ چې دا مسئله ته ترې معلومه كړه.

**سوال**: دلته دا سوال ذهن ته راتلى شي چې په دغه حديث او نورو احاديثو كې تعارض دى، ځكه چې په يوه روايت كې دي چې حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضرت مقداد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته د سوال كولو او د مسئلې معلومولو دپاره وويل، مګر په يو بل روايت كې دي چې د حضرت عمار رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په ذريعه يې د دې مسئلې پوښتنه وكړه، په دريم روايت كې دي چې حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په خپله د دې مسئلې پوښتنه وكړه لكه چې د دويم فصل په (اول) نمبر حديث كې راغلي دي.

**جواب**: د دې جواب دا دى چې حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په مجلس كې ذكر كړه نو حضرت مقداد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هم پوښتنه وكړه او په مجلس كې ناست حضرت عمار رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هم پوښتنه وكړه نو روايتونه دوه شول او حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په شروع كې د حياء د وجې بالواسطه پوښتنه وكړه بيا يې د اطمينان حاصلولو دپاره له واسطې نه په غير پوښتنه وكړه چې وروسته حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سوچ وكړ چې كه چيرته په

ديني مسائلو کې همدا حياء مانع شي نو ډيرې زياتې مسئلې به نقصاني شي نو ځکه يې په وروسته کې په خپله پوښتنه وکړه ﴿ان الله لايستحي من الحق﴾ حکم دی.

## په ما مست النار سره د اودس مسئله

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ |
| د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه يې دا آوريدلي دي چې فرمايل يې |
| تَوَضَّئُوا مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| کوم شي چې په اور باندې پوخ شي د هغه د خوړلو نه وروسته اودس وکړئ. |
| قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ الْأَجَلُّ مُحْيِ السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللهُ هٰذَا مَنْسُوخٌ بِحَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ |
| امام محی السنه ويلي دي: چې دا حکم د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې حديث باندې منسوخ شوی |
| قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكَلَ كَتِفَ شَاةٍ ثُمَّ صَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ .(مسلم)[2] |
| چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پسه ولی وخوړه بيا يې مونځ وکړ او اودس يې ونه کړ. |

**توضيح : توضئوا مما مست النار** : په اور سره د پاخه شوي شي په خوړلو او استعمالولو سره اودس ماتيږي او که نه په دې باره کې د صحابه کرامو په ابتدائي دور کې لږ شانته اختلاف وو.

**اختلاف** : ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وغيره او بعضې صحابه کرام د دې قائل وو چې اودس ماتيږي لهذا د نوي اودس کول په کار دي ليکن په وروسته کې صحابه کرام هم په عدم وضوء باندې متفق شول نو د جمهورو صحابو جمهورو تابعينو او جمهورو ائمو په نزد ﴿اکل ما مست النار﴾ د اودس ماتوونکي نه دي.

**دلائل** : حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او نورو د دې حديث په ظاهري الفاظو باندې استدال کړی دی په کوم کې چې د **توضئوا** د امر صيغه راغلې ده، جمهورو چې په کومو احاديثو سره په عدم وضوء باندې استدلال کړی دی هغه ډير زيات دي.يو حديث خو د حضرت سويد بن نعمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی کوم چې د مشکوة په شلويښتمه صفحه باندې دی، دويم حديث د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی په يو شلويښتمه صفحه باندې، د هغه سره په همدې صفحه کې د حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی، بيا په دريم فصل

---

(۱) اخرجه المسلم في الصحيح ۱/۳۱۰ رقم الحديث:۲۰۷، والترمذي ۱/۱۱٤ رقم الحديث . ۷۹ . واخرجه احمد في المسند۲/۲٦٥.

(۲) اخرجه البخاري في الصحيح۱/۳۱۰،رقم الحديث:۲۰۷،ومسلم في الصحيح ۱/۲۷۳ رقم الحديث:۹۱-۳٥٤، وابو داود۱/۱۲۳ رقم الحديث ۱۹۰، واخرجه احمد في المسند۱/۲٦۷.

کې د حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه حديث په ۴۱ صفحه باندې دی، يا د هغه سره ملګری روايت هم د حضرت رافع نه دی په کوم کې چې قيصه هم شته او نهايت ډير وضاحت هم شته ، د هغه سره د حضرت انس رضي الله عنه حديث په ۴۱ باندې دی. (الکاشف ۲۶-۲/۲۷).

په دې ټولو روايتونو کې په نهايت وضاحت سره ويل شوي دي چې په **(ما مست النار)** سره د اودس حکم نشته.

**جوابونه** : اوس د حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت ته علماؤ ډير جوابونه ورکړي دي :

**اول جواب** : خو په همدې روايت کې صاحب مصابيح ورکړی دی چې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په راتلونکي روايت سره د ابو هريره رضي الله عنه روايت منسوخ شوی دی، د ابن عباس رضي الله عنه په روايت سره دا نسخه پر ځای ده مګر په هغه کې دومره تصريح نشته څومره تصريح چې د حضرت جابر رضي الله عنه په روايت کې ده کوم چې په ابوداؤد شريف کې دی، هغه رضي الله عنه ويلي دي **(ان آخر الامرين من النبي صلى الله عليه وسلم ترک الوضوء مما مست النار)** د همدې آخر الامرين نه د ټول ژوند دوه آخيرني عملونه مراد دي لهذا دا په واضح طور د مخکني حکم دپاره ناسخ دی په دې کې هيڅ شک نشته. .

**دويم جواب** : دا دی چې د اودس حکم اوس هم شته مګر دا حکم استحبابي دی، ځکه چې اور مظهر د غضب الهي دی نو خواص اودس کوي، هسې هم په پخيدو کې ډير مصيبتونه راغلي دي د اور له تپ نه، خوله ده، د پوزې نه ګرنګ څڅيږي، خيرې ميرې جدا دي، بدبويي جدا ده، دود جدا دی نو د پخوونکي او د پاخه خوړونکي دپاره اودس مستحب دی.

**دريم جواب** : دا دی چې د اودس نه مراد لغوي اودس دی کوم چې د لاس وينځل او مضمضه کول دي، او د ترمذي په دويم جلد کتاب الاطعمه کې حضرت عکراش رضي الله عنه ته رسول الله صلى الله عليه وسلم ويلي دي **(يا عكراش هذا وضوء مما مست النار)** هلته رسول الله صلى الله عليه وسلم صرف لاسونه وينځل په خوله کې يې اوبه غرغره کړې چې د اودس نه مراد لغوي اودس دی، اصطلاحي شرعي اودس نه دی.

## د اوښ غوښې د خوړلو دوجې نه د اودس کولو مسئله

| |
|---|
| (۵) وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| دحضرت جابر بن سمره رضي الله عنه نه روايت دی چې يو کس د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړه چې آيا |
| أَنَتَوَضَّأُ مِنْ لُحُومِ الْغَنَمِ قَالَ إِنْ |
| مونږ د ګډو د غوښې د خوړلو نه وروسته اودس وکړو؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل : که چيرته |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شِئْتَ | فَتَوَضَّأْ | وَ | إِنْ | شِئْتَ | فَلَا تَتَوَضَّأْ | قَالَ |

ستا زړه یې وغواړي نو اودس وکړه او که یې ونه غواړي نو مه یې کوه. بیا هغه کس پوښتنه وکړه چې آیا

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَنَتَوَضَّأُ | مِنْ | لُحُومِ | الْإِبِلِ | قَالَ | نَعَمْ |

د اوښ غوښې د خوړلو نه وروسته مونږ اودس وکړو؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: آو! د

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَتَوَضَّأْ | مِنْ | لُحُومِ | الْإِبِلِ | قَالَ | أُصَلِّي | فِيْ | مَرَابِضِ |

اوښ غوښې د خوړلو نه وروسته اودس وکړه. بیا دې کس پوښتنه وکړه چې آیا زه مونځ وکړم په ځای د

الْغَنَمِ قَالَ نَعَمْ قَالَ

د اوسیدو د ګډو کې؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: آو، بیا دې کس پوښتنه وکړه چې آیا زه

أُصَلِّي فِيْ مَبَارِكِ الْإِبِلِ قَالَ لَا. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

د اوښانو تړلو ځای کې مونځ وکړم؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: نه.

**توضیح**: **انتوضأ من لحوم الابل**: د اوښ غوښې د خوړلو نه وروسته آیا اودس واجب دی او که نه په دې مسئله کې د فقهاؤ اختلاف دی:

**د فقهاؤ اختلاف**: د جمهورو مسلک دا دی د اوښ غوښې په خوړلو سره اودس نه واجبیږي. البته امام احمد بن حنبل رحمه الله د حدیث ظاهر ته په کتلو سره د جمهورو خلاف دا فیصله کړې ده چې د اوښانو غوښې د خوړلو نه وروسته اودس واجبیږي، هغه ویلي دي چې د **(ما مست النار)** حکم عام وو د لحوم الابل حکم خاص دی د ده د **(ما مست النار)** سره هیڅ تعلق نشته دی په دواړو کې فرق دی، لهذا په لحوم الابل سره اودس واجب دی او د **(ما مست النار)** حدیث په ناسخ کیدو سره د لحوم الابل والا حدیث منسوخ کیدی نه شي، د اسحق بن راهویه هم دا مسلک دی. (المرقات ۲/۳۴).

**جواب**: جمهورو د حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه د روایت جواب ورکړی دی چې دلته استحبابي اودس مراد دی وجوبي اودس نه دی مراد، استحبابي اودس د دې دپاره چې د اوښ په غوښه کې سخت غوړوالی او بدبوی او سختوالی دی، نو ځکه اودس کول مستحب ګڼل شوي، دویم جواب دا دی چې دا حکم په ابتداء کې وو بیا د **(ما مست النار)** په منسوخ کیدو سره دا هم منسوخ شو ځکه چې د هغه د

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۲۷۵ رقم الحديث: ۹۷-۳۶۰، واخرجه احمد في المسند ۵/۸۶.

عموم لاندې دا هم داخل دی هیڅ فرق نشته.

**في مرابض الغنم**: یعنې د ګډو، بیزو په غوجل کې که چیرته کوم صفاخای وي نو په هغه کې د مونځ کول جائزدي او که نه؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: چې روا دی او د اوښانو په غوجل کې جائزنه دی، په دوی دواړو کې فرق دادی چې ګډې یو مسکین څناور دی هغې ته نزدې د مونځ په کولو کې هیڅ د تشویش خبره نشته دا رنګه هغه زیاتره په ملاسته متیازې کوي نو دڅاڅکو رسیدو ویره نشته، یا هغه په شګلنه زمکه کې او سیږي هلته متیازې په زمکه کې جذب کیږي او خوریږي نه، ددې برعکس اوښ یو متوحش څناور دی هغه ته نزدې د مونځ په کولو کې تشویش وي، دارنګه هغه د آسمان نه بره داسې متیازې کوي په کوم سره چې دڅاڅکو رسیدو ویره شته هغه په نرمه زمکه کې او سیږي نو متیازې په جذب کیدو سره خوریږي او بل دا چې متیازې یې زیاتې هم دي لهذا د اوښانو په غوجل کې د مونځ کولو نه منعه شوې ده، هسې هم د عربو په نزد د اوښانو غوجل په ناپاک ځای کې وي خلک په خپله هم هلته متیازې کوي. (المرقات ۳۴-۲/۳۵).

## د شک په بنیاد فیصله مه کوئ:

| |
|---|
| (۲) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وَجَدَ أَحَدُكُمْ |
| دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چې پیدا کړي یو کس په تاسو |
| فِي بَطْنِهِ شَيْئًا فَأَشْكَلَ عَلَيْهِ أَخَرَجَ مِنْهُ شَيْءٌ أَمْ لَا |
| کې په خپله خیټه کې کوم څه او په هغه باندې دا خبره مشتبه شي چې کوم شی خارج شوی او که نه؟ نو |
| فَلَا يَخْرُجَنَّ مِنَ الْمَسْجِدِ حَتَّى يَسْمَعَ صَوْتًا أَوْ يَجِدَ رِيحًا. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| تر هغه وخته دې د اودس دپاره د جومات نه نه وځي ترڅو چې آواز وانه وري یا بوی محسوس نه کړي. |

**توضیح: حتی یسمع صوتاً او ریحاً**: دا دوه شیان د نمونې او تمثیل په طور ذکر شوي دي په دې دواړو کې حصر کول ندي، دارنګه په دې کې هم حصر نشته دی چې د آواز آوریدل شرط دي یا د بوی راتلل شرط دي، بلکې اصل مقصد د یقین حاصلول دي، ځکه ترڅو پورې چې یقین رانه شي چې په رښتیا هوا وتلې ده نو د شک په بنیاد باندې کومه فیصله کول نه دي په کار، اصل شی یقین راتلل دي که نه نو که چیرته دیره هوا وي او آواز یې وا نه آوریدل شي یا د هغه قوت شامه خرابه وي نو آیا اودس نه شي ماتیدی؟ خلاصه دا چې دیقین په راتلو سره د اودس ماتیدو حکم لګول کیږي، غیر مقلدین په دې کې نقصان کوي

(۱) اخرجه المسلم في الصحيح ۲۷۶/۱ رقم الحديث ۹۹-۳۶۲. وابو داود ۱۲۳/۱ رقم الحديث ۱۷۷. واخرجه احمد في المسند ۴۱٤/۲.

چې دوی د هوا د وتلو نه وروسته بیا هم د بد بویي یا د آواز آوریدو ته انتظار کوي. (المرقات ۲/۳۵).

## د غوړ لرونکي شي د خوړلو نه وروسته غرغره کول ضروري دي

| |
|---|
| (۷) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَرِبَ لَبَنًا |
| دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې یو ځل رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شودې (پی) وڅکل (د هغې نه وروسته) |
| فَمَضْمَضَ وَ قَالَ إِنَّ لَهُ دَسَمًا .(مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| يې غرغره وکړه او وې فرمایل په شودو کې غوړ شته. |

**توضیح** :ان له دسما :یعني په شودو کې غوړ دی د هغو د لرې کولو دپاره يې غرغره وکړه، د دې حدیث نه معلومه شوه چې هر هغه شی کوم چې په خوله کې خنډ جوړوي د مونځ نه مخکې د هغه لرې کول ضروري دي که نه نو دمونځ په وخت کې به مونځ کوونکی د هغه خوند محسوس کوي څه برخه به يې خیټې ته لاړ شي نو هغه به په مونځ کې خوراک کوونکی شمار شي کوم چې ناروا دي، علماؤ ددې احتمال دپاره غرغره کول مستحب بللي، د یقیني اجزاو لرې کولو دپاره خو غرغره کول ضروري دي، ددې حدیث په راوړلو باندې دا اعتراض دی چې دلته يې د راوړلو مناسبت څه دی؟.

د دې جواب دا ورکړی شوی دی چې غرغره کول د اودس د اعمالو نه یو عمل دی، ځکه چې غرغره کول د اودس د مکملاتو او متمماتو نه ده نو ځکه دا حدیث په نواقض وضوء کې ذکر کړی شو. (المرقات ۲/۳۶)

## په یو اودس سره ډیر مونځونه کیدلې شي

| |
|---|
| (۸) وَعَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الصَّلَوَاتِ يَوْمَ الْفَتْحِ |
| دبریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې دفتح مکې په ورځ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ادا کړل څو مونځونه |
| بِوُضُوءٍ وَاحِدٍ وَ مَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ |
| په یو اودس سره (یعني په یو اودس يې پنځه مونځونه وکړل) او په موزویې مسح وکړه (دایې چې ولیدل) |
| فَقَالَ لَهُ عُمَرُ لَقَدْ صَنَعْتَ الْيَوْمَ شَيْئًا |
| حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې عرض وکړ چې نن تاسو هغه څه وکړل کوم چې |

(۱) اخرجه البخاري في الصحیح ۱/۳۱۳، رقم الحدیث: ۲۱۱، ومسلم في الصحیح ۱/۲۷٤ رقم الحدیث: ۹۵-۳۸۵، وابو داود ۱/۳۵ رقم الحدیث: ۱۹۶، والنسائي ۱/۱۰۹، رقم الحدیث: ۱۸۷، والترمذي ۱/۱۳۹ رقم الحدیث: ۸۹، وابن ماجة ۱/۱۶۷، رقم الحدیث: ۵۰۱، واخرجه احمد في المسند ۱/۲۲۳.

لَمْ تَكُنْ تَصْنَعُهُ فَقَالَ عَمَدًا صَنَعْتُهُ يَا عُمَرُ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

تانو هیڅکله نه وو کړي، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: عمره! ما داسې قصدًا کړي دي.

**توضیح: یوم الفتح**: ددې نه مراد د مکې فتحه ده او د شکر په طور د فتحې مونځ اته رکعته شوی. دلته حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دوو نویو خبرو د وجې سوال کړی دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خو د هر مونځ د پاره نوی اودس کولو دا ځل یې څو مونځونه په یو اودس سره وکړل، دویمه وجه د سوال داوه چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په موزو باندې مسح وکړه نو د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سوال په جواب کې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې ما قصدًا همداسې کړي دي چې د امت دپاره ضابطه جوړه شي او د دین په امورو کې پراخي راشي.

د هر مونځ دپاره اودس کول د جمهورو په نزد باندې مستحب دي، که چیرې یې مخکنی اودس وي او کوم کس که نوی اودس کول وغواړي نو د مستحبو ثواب ورکول کیږي، داؤد ظاهري ویلي دي چې د هر مونځ دپاره نوی اودس کول ضروري او واجب دی او په دې باندې مذکور حدیث حجت دی. (المرقات ۲/۳۶).

## د مامست النار په استعمال سره اودس نه ماتیږي

(۱) وَعَنْ سُوَيْدِ بْنِ النُّعْمَانِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ خَرَجَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ خَيْبَرَ

د سوید بن نعمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې دی د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د خیبر (د فتح) په کال په سفر لاړو

حَتَّى إِذَا كَانُوا بِالصَّهْبَاءِ وَ هِيَ مِنْ أَدْنَى خَيْبَرَ صَلَّى الْعَصْرَ

کله چې صهباء مقام ته ورسید و کوم چې د خیبر سره نزدې دی هلته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ماز دیګر مونځ

ثُمَّ دَعَا بِالْأَزْوَادِ فَلَمْ يُؤْتَ إِلَّا بِالسَّوِيقِ

اداء کړاو بیا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ توښه (زادراه) وغوښتله لهذا د ستو نه غیر بل څه نه وو کوم چې حاضر

فَأَمَرَ بِهِ فَثُرِّيَ فَأَكَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ أَكَلْنَا

کړی شول او دده صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حکم سره لامده کړی شول او بیا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او مونږ هغه وخوړل

---

(۱) أخرجه المسلم في الصحيح ۲۳۲/۱ رقم الحديث:۸۶-۲۷۷، وابو داود۱/۱۲۰ رقم الحديث :۱۸۲، والنسائي ۸۶/۱، رقم الحديث. ۱۳۳ . والترمذي ۸۹/۱ رقم الحديث :۶۱ ،واخرجه احمد في المسند۵/۳۵۱

ثُمَّ قَامَ إِلَى الْمَغْرِبِ فَمَضْمَضَ وَ مَضْمَضْنَا ثُمَّ صَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ. (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1].

بيا د ماښام مونځ د پاره ودريدو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غرغره وكړه مونږ هم وكړه او اودس مو ونه كړو

(معلومه شوه چې په ماسمت النار سره اودس ضروري نه دی).

**توضيح**: **صهباء**: خيبر ته نزدې د يو ځاى نوم دى، سويق ستوانو ته ويل كيږي.

**فثرى**: دا د **ثثريه** نه دى لمدې ختې ته ويل كيږي، دلته د ستوانو په اوبو كې لامده كول مراد دي ترڅو چې خوراک يې آسانه شي. (المرقات ۲/۳۷).

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د هوا په خارجيدو سره اودس ماتيږي

**(۱۰)** عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا وُضُوْءَ إِلَّا مِنْ صَوْتٍ

د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: اودس كول په آواز

أَوْ رِيْحٍ[2].

يا بد بويي سره واجب شوى دى.

**توضيح**: دا حصر اضافي دى، يعنې په جومات كې د ننه خو دا حدث كيدلى شي چې هوا په آواز يا بغير د آوازه خارجه شي، يا دا حصر د كوم سائل د سوال په جواب كې راغلى يعنې (**ما الحدث في المسجد يا ابا هريرة قال لا وضوء الا من صوت او ريح**).

**(۱۱)** وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمَذْيِ

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ما د مقداد په واسطه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د مذي په باره كې پوښتنه

فَقَالَ مِنَ الْمَذْيِ الْوُضُوْءُ وَ مِنَ الْمَنِيِّ الْغُسْلُ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[3].

وكړه نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د مذي په وتلو سره اودس او د مني په وتلو سره غسل لازميږي.

---

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۳۱۲/۱، رقم الحديث ۲۰۹، وابن ماجة ۱۶۵/۱، رقم الحديث ۴۹۲، واخرجه احمد في المسند ۱۸۸/۳.

(۲) أخرجه احمد في المسند ۴۷۱/۲، والترمذي ۱۰۹/۱ رقم الحديث ۷۴، وأخرجه ابن ماجه ۱۷۲/۱ رقم الحديث: ۵۱۵.

(۳) اخرجه احمد في المسند ۱۰۹/۱ رقم الحديث: ۱۱۰، والترمذي ۱۹۳/۱ رقم الحديث: ۱۱۴، واخرجه ابن ماجه ۱۶۸/۱ رقم الحديث: ۵۰۴.

۱۹ صفر ۱۴۱۰ هـ

## د تکبير تحريمه مسئله

| |
|---|
| (۱۲) وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مِفْتَاحُ الصَّلَاةِ الطُّهُورُ وَ |
| د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : د مونځ چابي اودس دی او د |
| تَحْرِيمُهَا التَّكْبِيرُ وَ تَحْلِيلُهَا التَّسْلِيمُ [1] وَ رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهُ |
| مونځ تحريم تکبير (يعنې د الله اکبر ويل) دي، او د مونځ تحليل سلام ګرځول دي (ابن ماجه دا حديث د |
| عَنْهُ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ ). |
| حضرت علي او حضرت ابو سعيد نه روايت کړی). |

**توضيح : وتحريمها التکبير** : په خبر باندې د الف لام په داخليدو سره مسند په مسند اليه کې محصور شوی دی يعنې د مونځ ټول تحريمات صرف له تکبير سره تړل شوي دي. کله چې تکبير وويل شي نو د مونځ نه بهر ټول روا شيان حراميږي، د دې حديث درې اجزاء دي، اول جزء (**مفتاح الصلوة الطهور**) کې هيڅ اختلاف نشته، په نورو دوو اجزاؤ کې د فقهاء کرامو اختلاف وګورئ : (المرقات ۲/۳۹).

**د فقهاء کرامو اختلاف** : په دې کې اختلاف دی چې د دخول صلوة دپاره چې کوم تکبير تحريمه دی آيا صرف د **الله اکبر** د لفظ سره خاص دی او که په نورو الفاظو سره هم **دخول في الصلوة** جائز دی خو تکبير تحريمه د ټولو په نزد فرض دی، په خالي نيت سره دخول صحيح نه دی اګر که ابن شهاب زهري رَحِمَهُ اللهُ صرف په نيت سره هم **دخول في الصلوة** روا بللی دی مګر د جمهورو په دې کې هيڅ اختلاف نشته دی. اختلاف صرف د الفاظو په تخصيص کې دی، لهذا د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد د **دخول في الصلوة** دپاره صرف د **الله اکبر** لفظ خاص دی ددې نه بغير بل هيڅ لفظ جائز نه دی ، په ذکر شوي حديث کې حصر دی. د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد صرف دوه لفظونه **الله اکبر** او **الله الاکبر** جائز دي ددې نه بغير نور جائز نه دي، ده ويلي دي چې د **الله الاکبر** معرفه باللام سره زيات حصر راغلی دی نو دا هم روا دی، ځکه چې په کبريائي کې زياتوالی دی، د امام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد **الله اکبر الله**

---

[1] أخرجه ابوداود في السنن ۱/۴۹ ، رقم الحديث .۶۱ ، وأخرجه الترمذي في السنن ۱/۸ رقم الحديث : ۳. وأخرجه الدارمي في السنن ۱/۱۸۶ رقم الحديث : ۶۸۷ ، وأخرجه احمد في المسند ۱/۱۲۳.

**الاکبر الله کبیر** او **الله الکبیر** دا څلور الفاظ جائز دي ددوي نه په غير روا نه دي، ده ويلي دي چې **الله اکبر** د صفت مشبه صیغه ده د کوم چې معنی ده چې الله ډير لوی دی، دا اسم تفضیل نه دی نو دا صیغه د کبريائي دپاره راغلې ده کومه چې د کبير په معنی سره ده، هر کله چې الله کبير روا شو نو بيا د دې د مادې نور الفاظ هم روا دي کوم چې په لا زياتې کبريائي باندې دال دي.

د امام ابوحنیفة رَحِمَهُ اللَّهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد هر هغه وصف کوم چې لوییې لره مستلزم وي هغه جائز دی په هغه سره د تکبیر تحریمه فرض پوره کیږي، خو په خاص طور د **الله اکبر** ویل واجب دي، لهذا کوم لفظ چې مشعر د تعظیم وي هغه روا دی لکه **الله اعظم** یا **الله عظیم** وغیره الفاظ.

**دلائل**: د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ یو دلیل خو ذکر شوی حدیث دی په کوم کې چې حصر دی چې د تکبیر تحریمه دپاره صرف **الله اکبر** خاص دی، دویم دلیل ﴿**وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ**﴾ دی، دریم دلیل دا دی چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ټول ژوند کې په الله اکبر باندې مداومت کړی دی کوم بل لفظ یې نه دی اداء کړی، د شافعيانو حضراتو هم هماغه دلائل دي کوم چې د مالکیو او حنابلو دي، خو په **الله الاکبر** کې د کبريائي زياتوالی دی هغه هم روا دی. امام ابویوسف رَحِمَهُ اللَّهُ هم د مالکیو او حنابلو په دلیل سره د نورو صیغو نفي کړې ده مګر اکبر د کبیر په معنی سره دی، لهذا څلور صیغې روا شوې، ځکه کله چې **کبیر** جائز شو نو **الکبیر** او **الاکبر** هم جائز شو ځکه چې دا ټول هم معنی (د یوې معنی) الفاظ دي.

د امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ لومړی دلیل ﴿**وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّى**﴾ دی چې دا د تکبیر تحریمه دپاره دی او د **اسم ربه** په لفظ کې عموم دی نو په کوم لفظ سره چې د اسم رب تعظیم وي هغه جائز شو او په هغه سره فرض اداء شول، دلته ددې آیت نه یوه بله مسئله پیدا شوې ده او هغه دا چې د احنافو په نزد تکبیر تحریمه د مونځ رکن نه دی بلکې د مونځ شرط دی، او د نورو ائمو په نزد تکبیر تحریمه د مونځ رکن دی، شرط په خپل مشروط باندې مقدم وي او رکن داخل صلوة وي. دلته په آیت کې (**فصلی**) کې **فاء** د تعقیب مع الوصل دپاره راغلې ده نو وذکر ربه بل شی دی او فصلی د هغه نه وروسته بل شی دی نو تحریمه رکن نه شوه بلکې د مونځ نه خارج د شرط په درجه کې شوه.

**جواب**: احنافو د نورو ائمو د دلیل په جواب کې مالکیه او حنابلو ته دا جواب ورکړی دی چې په **وتحریمها التکبیر** کې د حصر چې کومه قاعده بیان شوې ده دا قاعده اکثریه ده قاعده کلیه نه ده، او

علامه تفتازاني هم ذکر کړې ده، لهذا په زيد العالم کې حصر نشته چې په دنيا کې صرف زيد عالم دى بلکې دا کله کله د اهتمام شان دپاره او د کامل فرد بيانولو دپاره هم راغلى دى. باقي ﴿وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ﴾ خو د احنافو دليل دى ځکه چې په دې کې د تعظيم حکم ورکړى شوى دى چې لويي بيان کړه په هغه کې خصوصيت د الله اکبر نه دى، د مالکيو دريم دليل چې رسول الله صَلَّاللّٰهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ په الله اکبر مداومت کړى دى ددې جواب دادى چې په مداومت سره وجوب ثابت شوى دى او د الله اکبر د تخصيص وجوب د توهم هم قائل دى هغه خو ورته فرض ويلې دي حالانکه د فرض د ثبوت دپاره د قطعي الثبوت او قطعي الدلالة نص ضرورت دى ځکه چې د احکامو په اعتبار سره د اثبات دلائل هم په څلور قسمه دي :

(۱) **قطعي الثبوت قطعي الدلالة**، په دې سره فرض ثابت شوي دي. (۲) **قطعي الثبوت ظني الدلالة**.

(۳) **ظني الثبوت قطعي الدلالة**، په دې دواړو سره واجب ثابت شوي دي.

(٤) **ظني الثبوت ظني الدلالة**، په دې سره سنن مؤکده او مستحباب ثابت شوي دي.

د دې تفصيل داسې دى چې شارع که چيرته مداومت کړى دى مګر کله کله يې ترک کړى هم دى نو دا سنت مؤکده دي او چې کله يې کړي وي او کله يې پرېښي وي نو هغه مستحب دى او چې يو ځل يې د جواز دپاره کړي وي نو هغه مباح دى د جواز د بيان دپاره کله کله د مکروه تنزيهي ارتکاب هم شوى دى. خلاصه دا چې ذکر شوى حديث خبر واحد دى په دې سره فرض نه شي ثابت کيدى، دا تفصيل ددې دلائلو او نصوصو د اثبات په جانب کې شوى او د نفي او عدم په جانب کې په اول قسم سره حرام ثابت شوي او په دويم او دريم قسم سره مکره تحريمي ثابت شوي او په څلورم قسم سره مکروه تنزيهي وغيره ثابت شوي دي.

امام ابويوسف رَحِمَهُاللّٰهُ ته جواب دا دى لکه څرنګه چې تاسو د الله اکبر لفظ کې تعميم لفظي کړى دى څلور الفاظ مو روا ګرځولي دا رنګه تاسو معنوي تعميم هم وکړئ هر هغه لفظ روا وګڼئ کوم چې مشعر تعظيم وي تعميم لفظي چې کله شوى دى نو تعميم معنوي هم بايد وکړى شي.

**وتحليلها التسليم** : د مونځ نه د وتلو دپاره چې کوم لفظ غوره شوى دى په دې کې د فقهاؤ اختلاف دى، د دريو ائمو او د جمهورو په نزد صرف د سلام په لفظ سره مونځ کوونکى د خپل مونځ نه وتلى شي که نه نو مونځ يې نه کيږي، د دوى دليل همدا حديث او همدا الفاظ دي، د امام ابوحنيفة رَحِمَهُاللّٰهُ په نزد خاص د سلام په لفظ سره د مونځ نه وتل واجب دي او د صنع مصلي سره عمدًا د مونځ نه وتل فرض دي برابره ده که هر عمل او هر لفظ هم وي، او دا وتل په حقيقت کې د دويم مونځ دپاره د تياري او کولو د وجې فرض شوي دي، مثلا يو چا د ماښام مونځ دوه مره اوړد کړه چې د ماسخوتن وخت راشي نو اوس

وتل فرض دي ترڅو چې د ماسخوتن مونځ وکړي. (المرقات ۲/۳۹).
امام ابو حنیفة رَحِمَهُ‌الله د حضرت ابن مسعود رَضِيَ‌اللهُ‌عَنهُ په هغه حدیث سره هم استدلال کړی دی په کوم کې چې رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّمَ هغه ته وویل (**فان شئت ان تقوم فقم**. **رواه ابوداؤد**) دارنګه اعرابي ته د تعلیم په وخت کې رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّمَ د فرض سلام ذکر نه دی کړی، د تکبیر تحریمه په بحث کې چې کوم جوابات شوي دي هغه جوابونه دلته هم چلیږي، بهر حال مداومت د سلام د وجې مونږ هم د سلام لفظ ته واجب ویلي دي د فرض قاعده جدا ده.

## د ښځې ښځې سره اغلام بازي (لواطت) کول حرام دي

| |
|---|
| (۱۳) وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ طَلْقٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا فَسَا أَحَدُكُمْ |
| دعلي بن طلق رَضِيَ‌اللهُ‌عَنهُ روایت دی چې رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّمَ وفرمایل: کله چې بې اودسه شي یو څوک |
| فَلْيَتَوَضَّأْ |
| په تاسو کې (یعنې چې د آواز نه بغیر یې هوا خارجه شي) نو هغه ته اودس کول په کار دي، او تاسو د |
| وَلَا تَأْتُوا النِّسَاءَ فِي أَعْجَازِهِنَّ[1]. |
| ښځو سره (خلاف فطرت) (یعنې د غائطو په ځای) کې جماع مه کوئ. |

**توضیح: اذا فسا احدکم: فسوة** د هوا خارج کیدو ته ویلی شي، یعنې کله چې په یقیني طور هوا خارجه شي نو اودس وکړئ، ځکه چې په دې هوا سره ممکن ده چې د دننه نه ذرات وتلي وي، یا دا په خپله ګندګي ده په کومې سره چې اودس ماتیږي، هو له قبل او ذکر نه که چیرته هوا خارجه شي نو په هغې سره اودس نه ماتیږي مګر دا که ښځه مفضاة (مینځنی پرده یې ختمه وي) بیا پته نه لګیږي چې دا هوا د قبل نه راغله او که له دبر نه راغله نو اودس ماتیږي.

**ولاتأتوا النساء في اعجازهن: اعجاز** د **عجز** جمع ده شاته برخې ته ویل کیږي مراد **مقعد** او **دُبر** دی. اوس سوال دا دی چې د دې مسئلې ذکر کولو ته دلته څه ضرورت وو او د دې ددې ځای سره څه مناسبت دی؟ نو علماء کرامو دا جواب ورکړی دی چې کله د هوا خارج کیدو سره د دبر ذکر راغلی دی نو رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّمَ په همدې مناسبت سره په دې مهمه مسئله باندې تنبیه ورکړه. (المرقات ۲/۴۰).

---

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۱/۱۴۱ رقم الحدیث ۲۰۵، والترمذي ۳/۴۶۹ رقم الحدیث ۱۱۶۶

۲۰ صفر ۱۴۱۰هـ

## مسئله : خوب اودس ماتوونكى دى او كه نه ؟

| |
|---|
| (۱۶) وَعَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّمَا الْعَيْنَانِ وِكَاءُ السَّهِ |
| معاويه بن ابى سفيان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مروي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: سترګې د کوناټو سربند |
| فَإِذَا نَامَتِ الْعَيْنُ اسْتَطْلَقَ الْوِكَاءُ[1]. |
| دى لهذا چې سترګې اوده شي نو سربند خلاص شي. |

**توضيح :وكاء السه : وكاء** او كيه هغې تسمې ته ويل كيږي په كومې سره چې لفافه تړل كيږي او السه د سين په فتحې او د **هاء** په سكون سره **دُبر** او **مقعد** ته ويل كيږي، دا په اصل كې **سته** وو **تاء** حذف كړى شوه نو سه پاتې شو، د دې دليل **استاه** دى چې هلته **تاء** موجوده ده، بهر حال **وكاء** سربند او د لفافې تسمې ته ويل كيږي، دلته د انسان تشبيه د يوې مشكيزې سره وركړى شوې ده د كومې تسمه چې د انسان سترګې دي، كله چې سترګې خلاصې وي نو مشكيزه بنده وي او كله چې سترګې پټې شي نو ګويا چې خوله يې خلاصه شي او مشكيزه غير محفوظه شي او د مقعد د خولې نه د هوا وتلو قوي احتمال پيدا شي، اګر چه خوب په خپله ناقض وضوء نه دى ليكن د خوب د وجې په بدن كې د اندامونو ستيا راځي اندامونه سستيږي او د مفاصلو سستيا د هوا وتلو موجب ده او د هوا پته خو نه لګيږي، لهذا شريعت خوب د هوا وتلو قائمقام ګڼلى دى، اوس كه هوا خارج وي او كه خارج نه وي محض خوب داودس ماتيدو نښه او علامه جوړه شوې ده. (المرقات ۲/۴۰).

**د فقهاء كرامو اختلاف** : د خوب په دغه مسئله كې څلور قسمه احاديث راغلي دي او د څلورو واړو رنګ جدا جدا دى، لهذا په فقهاء كرامو كې هم ددې روايتونو د وجې اختلاف راغلى دى، دلته ډير مذاهب دي ليكن مشهور مذاهب پنځه دي :

**اول مسلك**: د ابو موسى اشعري، امام اوزاعي او شعبه دى چې خوب كه كم وي كه ډير وي چې په هر حالت كې وي هغه مطلقا ناقض الوضوء نه دى.

**دويم مسلك**: د اسحق بن راهويه اهل ظواهرو او د ابو عبدالرحمن مزني دى چې خوب مطلقا ناقض الوضوء دى.

**دريم مسلك**: امام مالک او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُمَا اللهُ دى چې كم خوب ناقض نه دى او زيات ناقض دى.

**څلورم مسلک**: د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دی چې هغه خوب کوم چې جالسًا قاعدًا معتمدًا مقعده على الارض وي هغه ناقض نه دی ددې نه بغیر په هر حالت کې ناقض الوضوء دی.

**پنځم مسلک**: د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ دی هغه ویلي دي که انسان په یو هیئت من هیئت الصلاة کې وي نو ناقض نه دی لکه **قائمًا راکعًا جالسًا غیر معتمد على شئ لو ازیل لسقط** ددې هیئتونو نه بغیر ناقض الوضوء دی.

**دلائل** : د حضرت ابو موسی اشعري، امام اوزاعي او د شعبه دلیل د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ظاهري روایت دی (**حتی تخفق رؤسهم**) او د ترمذي روایت په (**ینامون**) سره یې استدلال کړی دی چې دومره اندازه اوده شوی وو، بیا یې هم د اودس کولو نه بغیر مونځ کړی وو، د ترمذي روایت داسې دی: **(کان اصحاب النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ینامون ثم یصلون ولایتوضؤن)** دابوداؤدروایت داسې دی: **(کان اصحاب النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ینتظرون العشاء حتی تخفق رؤسهم ثم یصلون ولایتوضؤن)**.

اسحق بن راهویه، اهل ظواهرو او ابو عبیده مزني تر نظر لاندې روایت (**انما العینان وکاء السه**) سره استدلال کړی دی.

امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په احادیثو کې د تطبیق او جمع بین الاحادیث لار غوره کړې ده، چې چیرته د نقض وضوء حکم دی هلته زیات خوب مراد دی او چیرته چې د عدم نقض وضوء حکم دی هلته کم خوب مراد دی.

امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په **(انما الوضوء على من نام مضطجعا)** سره استدلال کړی دی کوم چې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مروي دی، ده د مفهوم مخالف په طور ویلي دي چې له اضطجاع نه بغیر په بل هر صورت کې هم خوب د اودس ماتوونکی نه دی.

امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ هم د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې روایت سره استدلال کړی دی لیکن په دې حدیث کې چې کوم علت بیان شوی دی احنافو هغه علت بنیاد جوړ کړی دی، هغه علت دا دی **(فانه اذا اضطجع استرخت مفاصله)** نو د اودس ماتیدو دپاره د اندامونو سست کیدل ضروري دي، یعنې د بندونو سست کیدل علت دی او انسان چې کله د مونځ په کوم هیئت باندې ویده شي نو قوت ماسکه یې نه ختمیږي د کوم نه چې واضح کیږي چې د مفاصلو استرخاء نه ده شوې لهذا اودس نه ماتیږي.

**جوابونه** : کومو حضراتو چې مطلقا خوب ته ناقض وضوء نه دی ویلی لکه ابو موسی اشعري امام اوزاعي او شعبه نو د دوی مستدل په کم خوب باندې محمول دی په کوم کې چې د مفاصلو سستیا نه وي.

او د دويم مسلک والاو جواب دا دی چې د دوی دا مسلک چې خوب بالکل ناقض وضوء نه دی دا صحيح نه دی ځکه دا مسلک صريحا د رسول الله ﷺ د قولي او فعلي روايتونو سره په ټکر کې دی په کومو کې چې رسول الله ﷺ د اودس حکم کړی دی يا يې په خپله اودس کړی دی.

د امام مالک رحمه الله او امام احمد رحمه الله جواب دا دی چې تاسو کومه جمع بين الاحاديث کړې ده دا صحيح ده ليکن د قليل او کثير تحديد ضروري دی ترڅو چې په هغه باندې عمل وکړی شي صرف د قليل او کثير په ويلو سره مسئله حل کيدی نه شي.

باقي امام شافعي رحمه الله چې کوم قاعدًا والا خوب دی د مونږ سره ملګری دی او ددې نه بغير په نورو حالتونو کې مخالف دی د ده جواب دا دی چې **(انما الوضوء على من نام مضطجعا)** جمله د سائل په جواب کې واقع شوې ده چې د رسول الله ﷺ نه سوال شوی وو چې ته اوده شوی وې اودس کول غوارې نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې زه خو په ناسته اوده شوی وم او اودس خو د څملاستو په ويده کيدونکي باندې ضروري دی، نو دلته د سائل په جواب کې دا جمله واقع شوې ده په دې کې هيڅ حصر نشته دی چې ددې نه بغير د کوم بل هيئت خوب معاف نه دی بلکې په حديث کې واضح علت موجود دی چې اصل علت د مفاصلو سستيا ده.

نو احنافو ټول حديث ته په کتلو سره عمل کړی دی او شافعيانو وسيع حکم تر يوه لفظ پورې محدود کړی دی کوم چې مناسب نه دی، دا تفصيل د راتلونکو دوو روايتونو دپاره هم کافي شافي دی.

| |
|---|
| **(۱۵) وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وِكَاءُ السَّهِ الْعَيْنَانِ** |
| د حضرت علي رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د کوناتو سربند سترګې دي |
| **فَمَنْ نَامَ فَلْيَتَوَضَّأْ** [1]. |
| لهذا کوم کس چې اوده شي هغه ته په کار دي چې اودس وکړي. |
| **وَقَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللهُ هٰذَا فِي غَيْرِ الْقَاعِدِ** |
| او امام محي السنه رحمه الله ويلي چې دا حکم د هغه کس دپاره دی کوم چې ناست نه وي (بلکې په ملاسته |
| **لِمَا صَحَّ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ** |
| اوده شوی وي) ځکه چې د حضرت انس رضي الله عنه نه په صحيح طور ثابت شوي دي چې ده ويلي دي چې د |

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۱/۱٤۰ رقم الحديث ۲۰۳، وابن ماجه ۱/۱٦۱ رقم الحديث ۱٦۱، وأحمد في المسند ۱/۱۱۱

كَانَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَنْتَظِرُونَ الْعِشَاءَ حَتَّى

رسول الله ﷺ صحابو رضي الله عنهم د ماسخوتن مونځ ته په ناسته انتظار کولو تردې چې د خوب د

تَخْفِقَ رُءُوسُهُمْ ثُمَّ يُصَلُّونَ وَلَا يَتَوَضَّئُونَ [1].

وجې د هغوی سرونه ښکته شوي وو په دې حالت کې هغوی راپورته شو مونځ یې وکړاو دسونه یې ونه کړه

إِلَّا أَنَّهُ ذَكَرَ فِيهِ يَنَامُونَ بَدَلَ يَنْتَظِرُونَ الْعِشَاءَ حَتَّى تَخْفِقَ رُءُوسُهُمْ .(ترمذي ۷۸، ابوداؤد ۲۰۲)

مګر ترمذي په خپل روایت کې د ينتظرون العشاء حتى تخفق رؤسهم په ځای د ينامون لفظ ذکر کړی.

(۱۶) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْوُضُوءَ عَلَى مَنْ

د ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: اودس په هغه کس باندې لازم دی

نَامَ مُضْطَجِعًا فَإِنَّهُ إِذَا اضْطَجَعَ اسْتَرْخَتْ مَفَاصِلُهُ [2].

کوم چې په ملاسته اوده شي ، ځکه کوم وخت کې چې انسان ځملي نو د هغه د بدن بندونه سست شي (او

د هوا خارج کیدو ویره وي).

## مسئله : د ذکر د مسه کولو دوجې اودس کول:

(۱۷) وَعَنْ بُسْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا مَسَّ أَحَدُكُمْ

د بسره رضي الله عنها نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چې مسه کړي په تاسو کې کوم

ذَكَرَهُ فَلْيَتَوَضَّأْ [1] (رَوَاهُ مَالِكٌ ،وَأَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ).

کس خپل ذکر (خاص اندام) په لاس باندې نو هغه ته په کار دي چې اودس وکړي.

**توضیح : اذا مس احدکم ذکره :** د ذکر مسه کولو په مسئله کې د فقهاء کرامو اختلاف دی چې آیا په دې اودس ماتیدی شي او که نه؟

**د فقهاؤ اختلاف :** د دریو ائمو په نزد د ذکر مسه کول ناقض وضوء دی، البته د دوي په مینځ کې د هغه په کیفیاتو کې اختلاف دی، د شافعیانو په نزد چې د ذکر دا مسه بلا حائل وي او د ورغوي په باطن سره

---

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۱۳۷/۱ رقم الحديث : ۲۰۰ ،والترمذي ۱۱۳/۱ رقم الحديث : ۷۸.

(۲) اخرجه ابوداود في السنن ۱۳۹/۱ رقم الحديث :۲۰۲ والترمذي في السنن ۱۱۱/۱ رقم الحديث : ۷۷، واحمد في المسند ۲۵۶/۱.

(۳) اخرجه مالک ۴۲/۱ رقم الحديث : ۵۸ ، ابوداود في السنن ۱۲۵/۱ رقم الحديث :۱۸۱ ،وابن ماجه ۱۶۱/۱ رقم الحديث :۴۷۹ ، واحمد في المسند ۴۰۶/۶.

وي د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد د بشهوة قيد ملحوظ دی، البته د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد هيڅ قيد نشته.

د مس الذکر مطلب دا شو چې په لاس سره د عضو تناسل په مړلو اودس ماتيږي، د جمهورو په نزد د فرج مسه کولو مسئله د ښځو په حق کې د مس الذکر په شان ده چې د ښځو اودس ماتيږي، ائمه احنافو ويلي دي چې د نجاست د وتلو نه بغير اودس نه واجبيږي. (المرقات ۱/۴۲).

**دلائل**: ائمه ثلاثو په خپل استدلال کې د حضرت بسره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روايت وړاندې کړی دی په کوم کې چې د مس الذکر نه وروسته د اودس حکم شوی دی (اذا مس احدکم ذکره فليتوضأ) ائمه حنافو په خپل دليل کې د حضرت طلق بن علي روايت وړاندې کړی دی (قال وهل هو الا بضعة منه) جمهورو او ائمه احنافو دواړو د يو بل په دلائلو باندې اعتراضونه کړي دي. (المرقات ۴۳-۱/۴۴).

لهذا ائمه احنافو د حضرت بسره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په روايت باندې دا اعتراض کړی دی چې عروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا روايت براه راست د بسره نه نه دی آوريدلی بلکې د عروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او بسره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په مينځ کې يا مروان بن الحکم راوي دی او يا د مروان کوم شرطي يعنې عسکر په مينځ کې واسطه دی کوم چې مجهول دی. که چيرته مروان په مينځ کې دی نو په حکومت کې د راتلو نه وروسته د دې قابل نه دی پاتې شوی چې د هغه نه دې روايت واخيستل شي او که چيرته عسکر يې په مينځ کې دی نو هغه د مجهول الحال کيدو نه بغير له مروان نه هم بد حاله دی لهذا دا روايت د استدلال وړ نه دی.

جمهورو د طلق بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روايت باندې دا اعتراض کړی دی چې دا منسوخ دی چې د بسره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روايت حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم نقل کړی دی او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په اوم هجري سنه کې مسلمان شوی وو او طلق بن عَلي چې اسلام قبول کړ په اوله هجري کې ملاقات وکړ د هغه نه وروسته مديني ته نه دی راغلی نو د متاخر الاسلام راوي روايت د متقدم الاسلام راوي د روايت د پاره ناسخ جوړيږي لهذا د طلق روايت منسوخ او د ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت ناسخ دی.

**اصل جواب**: ليکن صحيح خبره دا ده چې دواړه حديثونه صحيح دي، ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې دا دواړه حديثونه د حسن نه د کمې درجې ندي، د بسرې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روايت په څوارلسو وجوهو سره منقول دی نو کوم کوم ته به ضعيف وويل شي؟ او د حضرت طلق بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت ته د کوم واضح دليل نه بغير منسوخ ويل صحيح نه دي د نسخ قول بلا دليل دی، ځکه ممکن ده چې د طلق بن علي ملاقات دوباره شوی وي محض تقدم اسلام د راوي د تقدم روايت دليل نه شي جوړيدی، د نسخ همدا ظابطه که چيرته واخستل شي نو د بسرې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روايت په خپله منسوخ جوړيږي، ځکه چې بسرې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په مکې کې اسلام راوړی وو او طلق بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څو کلونه وروسته په اول هجري کې په مدينه کې مسلمان شوی وو لهذا د تقدم او تاخر خبره نه چليږي، بلکې د دې ثابتول دي چې د اول هجري وروسته د

طلق بن علي ملاقات نه دی شوی حالانکه طلق بن علي په نهمه هجري کې په سنة الوفود کې راغلی وو او د رسول الله ﷺ سره یې ملاقات کړی وو کوم چې طبقات ابن سعد صراحةً ذکر کړي دي، په همدې تقریر سره د محی السنة رحمه الله خبره هم ختمه شوه چې د طلق روایت منسوخ دی، د پورته ذکر شوي تقریر نه معلومه شوه چې دواړه حدیثونه صحیح دي اوس به **فیصله د ترجیحاتو په بنیاد** باندې وي نو د طلق بن علي رضي الله عنه د روایت یوه ترجیح دا ده **چې قیاس ته زیات موافق دی، ځکه کله چې په** احادیثو کې تعارض راشي نو د قیاس طرف ته رجوع کولی شي او قیاس وایي کله چې د **سبیلینو نه د** نجاست خروج نه وي شوی اودس نه واجبیږي او دلته د سبیلینو نه هیڅ هم نه دي خارج شوي. دویمه د ترجیح وجه دا ده چې د بسرې رضي الله عنها روایت محتمل دی ځکه کیدی شي چې د ذکر مسه د متیازو کولو نه کنایه وي او په عربي کې داسې اطلاق کیدی شي، دریمه د ترجیح وجه دا ده چې د بسرې رضي الله عنها په روایت کې چې د اودس ذکر راغلی هغه استحبابي اودس دی د کوم نه چې احناف انکار نه کوي او د طلق بن علي رضي الله عنه په روایت کې چې کوم د عدم وضوء ذکر راغلی هغه قاعده او ظابطه ده.

په آخر کې الزامي جواب دا دی چې د بسرې رضي الله عنها په روایت باندې تاسو هم براه راست عمل نه دی کړی، ځکه په تاسو کې بعضو بباطن کف قید لګولی، او بعضو د بشهوة قید لګولی نو تاسو کله په دې حدیث باندې روایت کړی دی؟. یو بل الزامي جواب داسې دی چې په لاس سره د ذکر مسه کول که چیرته د اودس ماتوونکی دی نو بیا خو دا ذکر د مونځ په دوران کې عورت غلیظه یعنې د ورون سره لګیږي نو په هغه سره بیا ولې اودس نه ماتیږي؟.

د ترجیح د وجوهاتو نه اخیرنی وجه دا ده چې د طلق بن علي رضي الله عنه روایت او د هغه د علت په تایید کې د صحابه کرامو رضي الله عنهم ډیر آثار وارد شوي دي.

(۱) حضرت علي رضي الله عنه ویلي دي **﴿ما اُبالي مسسته اوطرف الفي﴾**.

(۲) حضرت ابن عباس رضي الله عنه د یو سائل په جواب کې ویلي دي **﴿ان کنت تستنجسه فاقطعه﴾**.

(۳) حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د یو کس په جواب کې وویل **﴿الا قطعته﴾** یعنې کله چې دا نجس دی او د لاس په لګولو سره اودس ماتیږي نو تاسو بیا هغه پرېکوئ ولې نه؟.

(۴) د حضرت علي رضي الله عنه نه دا روایت هم منقول دی **﴿ما ابالي الفي مسست او اذني او ذکري﴾**.

(۵) حضرت ابن مسعود رضي الله عنه داسې ویلي دي **﴿وما ابالي ذکري مسست في الصلوة او اذني او الفي﴾**

لهذا په دې تحقیق سره د تیر شوي حدیث او د راتلونکي حدیث تشریح شوې ده.

(۱۸) وَعَنْ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
حضرت طلق بن علي رضي الله عنه ويلي دي چې (يو ځل) د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړی شوه چې
عَنْ مَسِّ الرَّجُلِ ذَكَرَهُ بَعْدَ مَا يَتَوَضَّأُ قَالَ
داودس کولو نه وروسته که چيرته کوم کس خپل ذکر مسه کړي (نو څه حکم دی) نبي عليه الصلاة والسلام وفرمايل
وَهَلْ هُوَ إِلَّا بَضْعَةٌ مِنْهُ[1] (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ) (وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ نَحْوَهُ)
هغه هم د انسان د غوښې يوه ټوټه ده، او ابن ماجه هم دا رنګې روايت کړی دی.
وَقَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ هٰذَا مَنْسُوخٌ لِأَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ أَسْلَمَ بَعْدَ
امام محی السنة رحمه الله ويلي چې دا حديث منسوخ دی ځکه چې ابو هريره رضي الله عنه اسلام راوړی دی پس
قُدُومِ طَلْقٍ وَقَدْ رَوَى أَبُو هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ
دطلق بن علي رضي الله عنه د راتللو نه او دا ابو هريره رضي الله عنه نه د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا روايت منقول دی چې
إِذَا أَفْضَى أَحَدُكُمْ بِيَدِهِ إِلَى ذَكَرِهِ لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا شَيْءٌ
کله په تاسو کې د چا لاس خپل ذکر ته ورسيږي او د لاس او د ذکر په مينځ کې کوم شی حائل نه وي نو
فَلْيَتَوَضَّأْ. (رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ وَالدَّارَ قُطْنِيُّ) (وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ بُسْرَةَ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ
هغه ته په کار دي چې اودس وکړي، او نسائي د بسره رضي الله عنها نه روايت نقل کړی مګر نه يې دي ذکر کړي په
لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا شَيْءٌ). (ابوداؤد ۱۸۲، ترمذي ۸۶، نسائي ۱/۱۰۱).
کې چې (ليس بينه وبينها شئ).

۲۱ صفر ۱۴۱۰ھ

## د ښځې د ښکلولو (مچو کولو) مسئله

(۱۹) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَبِّلُ بَعْضَ أَزْوَاجِهِ ثُمَّ
حضرت عائشې رضي الله عنها ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم خپلې بعضې ښځې ښکل کړې وې او بيا يې

يُصَلِّي وَلَا يَتَوَضَّأُ . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ) وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ لَا يَصِحُّ

بغیر داودس (په مخکښي اودس سره) یې مونځ کړی ؤ او امام ترمذي ویلي دي چې صحیح نه دی زمونږ د

عِنْدَ أَصْحَابِنَا بِحَالٍ إِسْنَادُ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ وَ أَيْضًا إِسْنَادُ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ

علماؤ په نزد په هیڅ حال کې د عروه سند د حضرت عائشې رضي الله عنها او همدا رنګې اسناد د ابراهیم تیمي هم

عَنْهَا وَ قَالَ أَبُو دَاوُدَ هٰذَا مُرْسَلٌ ، وَ إِبْرَاهِيمُ التَّيْمِيُّ

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه صحیح نه دی او ابو داؤد ویلي چې دا مرسل دی ، او ابراهیم تیمي د حضرت

لَمْ يَسْمَعْ عَنْ عَائِشَةَ ). [1].

عائشې رضي الله عنها نه آوریدلي نه دي.

**توضیح: یقبل بعض ازواجه**: دا مسئله د مس الذکر په شان د مس المرأة ده کومې ته چې **تقبیل المرأة** هم ویل شوي دي، د مس الذکر په شان په دې کې هم ډیر غټ اختلاف دی چې آیا د ښځې په مسه کولو سره اودس ماتیږي او که نه ماتیږي؟ په روایتونو کې د اختلاف د وجې په صحابه کرامو بیا په تابعینو او فقهاؤ کې اختلاف شوی دی.

**د فقهاء کرامو اختلاف**: د جمهورو فقهاو په نزد **مس المرأة ناقض الوضوء** دی، البته شافعیانو د بلا حائل قید زیات کړی دی، امام مالک رحمه الله درې قیدونه زیات کړي دي، یعنې چې ښځه اجنبیه وي، بالغه وي او مسه کول په شهوت سره وي، د احنافو ائمو په نزد د ښځې مسه کول او د ښځې خکلول مطلق ناقض الوضوء نه دي، هو که چیرته فاحش ملاعبت او مباشرت وو یا صرف په خکلولو سره د نجاست وتل وو نو بیا ناقض وضوء دي. (المرقات ۲/۴۵).

**دلائل** : د جمهورو سره هیڅ مرفوع حدیث نشته، البته دوی د قرآن کریم د آیت نه د مسئلې د ویستلو کوشش کړی دی او د احنافو په دلیل کې چې کوم حدیث دی د هغه د کمزوري کولو کوشش یې کړی دی، لهذا دوی حضراتو په آیت **(اولامستم النساء)** سره په دې شان استدلال کړی دی چې د دې لمس نه په لاس سره لمس کول مراد دي، جماع مراد نه ده ، لهذا د ښځې په مسه کولو سره اودس لازمیږي.

جمهورو د مشکوة د ۴۱ صفحه په اخیر کې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په اثر سره هم استدلال کړی دی او

---

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۱۲٤/۱ رقم الحديث :۱۷۹، والترمذي في السنن ۱۳۳/۱ رقم الحديث :۸٦.

بيا يې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په اثر او د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په اثر او موقوفو روايتونو استدلال كړى دى، احنافو تر نظر لاندې د حضرت عائشې رضي الله عنها په مرفوع روايت سره استدلال كړى دى، د احنافو دويم دليل په بخاري شريف كې د حضرت عائشې رضي الله عنها حديث دى ويلي دي : **(كنت انام بين يدى رسول الله صلى الله عليه وسلم ورجلاى فى قبلته فاذا سجد غمزنى فقبضت رجلى فاذا قام بسطتها والبيوت يومئذ ليس فيها مصابيح)** (بخاري ج ۱ص ۵۲).

دا حديث بخاري دير ځايه په مختلفو الفاظو سره روايت كړى دى بيا هم دا الفاظ د مسلم دي، د احنافو دريم دليل د مسلم شريف روايت دى كوم چې حضرت عائشې رضي الله عنها داسې نقل كړى دى : **(فقدت رسول الله صلى الله عليه وسلم ليلة من الفراش فالتمسته فوقعت يدى على بطن قدمه وهو فى المسجد)**.

د احنافو څلورم دليل د حضرت ابو امامه رضي الله عنه روايت دى كوم چې ابن عدي په كامل كې ذكر كړى دى، ابو امامه ويلي دي **(قلت يارسول الله صلى الله عليه وسلم الرجل يتوضأ ثم يقبل اهله ويلاعبها اينقض ذلك الوضوء قال لا)**.

جمهورو د حضرت عائشې رضي الله عنها په زير بحث حديث باندې اعتراض كړى دى كوم چې دصاحب مشكوة نقل كړى دى چې زمونږ د ملګرو په نزد د عروه اسناد د حضرت عائشې رضي الله عنها نه په هيڅ حالت كې صحيح نه دى .د مرقاة صاحب ملا علي قاري رحمه الله د صاحب مشكوة دې قول ته غير صحيح ويلي دي ځكه امام ترمذي اګر كه دې سند ته ضعيف ويلي دي ليكن هغه د حضرت عائشې رضي الله عنها نه د عروه د سماع نه انكار نه دى كړى او دا انكار هغه كولى هم نه شي، ځكه چې په بخاري او ترمذي كې ځاى په ځاى د حضرت عائشې رضي الله عنها نه د عروه سماع صراحةً موجوده ده، البته دا اعتراض صحيح دى چې د حبيب بن ثابت سماع د عروه نه ثابته نه ده .د دې حديث په سند باندې د اعتراض صحيح كيدو توجيه په كار ده ترڅو چې د صاحب مشكوة طرف ته د دومره غټې غلطۍ نسبت ونه كړې شي، هغه توجيه دا ده چې د عروه په نوم دوه كسان دي، يو عروه بن زبير دى كوم چې د حضرت عائشې رضي الله عنها خورى دى او دويم عروه بن مزني دى، دلته كه چيرته عروه بن زبير مراد كړى شي نو د هغه سماع خو د حضرت عائشې رضي الله عنها نه ثابته ده، ليكن د حبيب بن ثابت سماع د عروه بن زبير نه ثابته نه ده نو حديث منقطع شو، او كه چيرته دلته عروه بن مزني مراد كړى شي نو د حبيب سماع خو ددې عروه نه شته مګر د حضرت عائشې رضي الله عنها نه يې سماع نشته بيا هم په حديث كې انقطاع راغله، بهر حال دا حديث منقطع دى، احنافو د دې اعتراض دا جواب وركړى دى چې په دې حديث كې د عروه نه مراد عروه بن زبير دى مزني نه دى، او په دار قطني او د احمد په روايت كې د دې تصريح هم موجوده ده چې د عروه نه مراد د حضرت

عائشې رضي الله عنها خوری ابن زبیر دی، بل طرف ته د ابوداؤد په یو روایت کې یوه مضبوطه قرینه ده چې مراد عروه بن زبیر دی، ځکه چې هلته داسې الفاظ دي ﴿من هي الا انت فضحکت﴾(المرقات ۲/۴۵).
په بې تکلفۍ سره دا الفاظ عروه بن زبیر ته ویل شوي دي ځکه چې دا د حضرت عائشې رضي الله عنها خوری دی او عروه بن مزني خو یو اجنبي کس دی هغه څنګه دا الفاظ ویلی شي؟ اوس دا خبره پاتې شوه چې د حبیب سماع او لقاء د عروه سره نشته نو د دې جواب دا دی چې امام ابوداؤد واضحه کړې ده چې د حبیب سماع د عروه بن زبیر نه ثابته ده او عامو محدثینو هم دا سماع منلې ده، اوس د جمهورو لومړی اعتراض ختم شو.
لیکن جمهورو دویم اعتراض کړی دی چې دا حدیث د ابراهیم تیمي د وجې نه د مرسل یو قسم منقطع دی، نو د دې جواب دا دی چې مرسل روایت د جمهورو په نزد قابل استدلال دی، صرف شافعیان په دې کې اختلاف لري نو زمونږ په نزد هم مرسل مقبول دی، همدارنګه په طبراني کې عن ابراهیم التیمي عن عائشة سند دی اوس نو دا حدیث مرسل هم پاتې نه شو ارسال هم ختم شو، جمهورو د آیت الوضوء په لفظ (لامستم) سره استدلال کړی دی آیت داسې دی : ﴿يَآيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوٓا اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوا وُجُوْهَكُمْ وَ اَيْدِيَكُمْ اِلَى الْمَرَافِقِ وَ امْسَحُوا بِرُءُوْسِكُمْ وَ اَرْجُلَكُمْ اِلَى الْكَعْبَيْنِ ۚ وَاِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا ۚ وَاِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰٓى اَوْ عَلٰى سَفَرٍ اَوْ جَآءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ اَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا﴾.(المائدة آیت:۶).
**جواب**: د قرآن په دې آیت سره جمهورو استدلال کړی دی او ویلي یې دي چې احنافو د آیت په مقابل کې حدیث ولې راوړی دی، نو د دې جواب دا دی چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه د ﴿أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ﴾ تفسیر په جماع سره کړی دی.
**دویم جواب**: دا دی چې باب مفاعله اغلبًا د جانبینو نه د فعل د صدور په معنی استعمال شوی دی او د جانبینو نه تحقق د جماع په صورت کې کیدی شي.
**دریم جواب**: دا دی چې په آیت کې د تیمم ذکر دی د اوبو نه پیدا کیدو په صورت کې د طهارت دپاره تیمم کافي دی، اوس تیمم د حدث اصغر او اکبر دواړو دپاره عام کول په کار دي او دا هله کیدی شي چې د ﴿أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ الْغَائِطِ﴾ نه حدث اصغر او د ﴿أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ﴾ نه حدث اکبر مراد واخیستل شي ترڅو چې تیمم د دواړو حدثونو دپاره طهارت جوړ شي او د تاکید پر ځای په آیت کې تاسیس راشي کوم چې د تاکید نه افضل دی، لهذا د ﴿أَوْ لَامَسْتُمْ﴾ نه جماع مراد کړی شوه.
دارنګه لمس د عربو په محاوره کې د جماع دپاره استعمال شوی دی په خصوصي طور کله یې چې

مفعول به لفظ نساء شي لکه په پښتو کې چې ويل کيږي (په ښځه يې لاس ولګولو).
باقي جمهورو چې په کومو آثارو سره استدلال کړی دی هغه د مرفوع احاديثو په مقابل کې نه شي وړاندې کيدی، هسې هم د شافعيانو په نزد په مجتهدينو باندې لازمه نه ده چې هغوی دې د صحابه کرامو د اجتهادي اقوالو پابند وي دوی ويلي دي (نحن رجال وهم رجال).

## په اور باندې د پاخه شوي شي په استعمال سره اودس نه ماتيږي

(۲۰) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ أَكَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتِفًا ثُمَّ مَسَحَ

د ابن عباس رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم د ګډ د ولي غوښه وخوړله بيا يې پاک کړو

بِيَدِهِ بِمِسْحٍ كَانَ تَحْتَهُ ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى (۱).

خپل لاس په ټاټ سره کوم چې د نبي عليه السلام شاته غوړول شوی وو او بيا او دريدو مونځ يې وکړ.

(۲۱) وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّهَا قَالَتْ قَرَّبْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَنْبًا مَشْوِيًّا

حضرت ام سلمه رضي الله عنها ويلي دي چې: ما رسول الله صلی الله عليه وسلم ته يو پوخ کړی شوی طرف ور وليږلو

فَأَكَلَ مِنْهُ ثُمَّ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ وَ لَمْ يَتَوَضَّأْ (۱).

لهذا رسول الله صلی الله عليه وسلم ترې خوراک وکړ بيا د مونځ د پاره ودريده او اودس يې ونه کړه.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

(۲۲) عَنْ أَبِي رَافِعٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ أَشْهَدُ لَقَدْ كُنْتُ أَشْوِي لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابو رافع رضي الله عنه روايت دی وايي چې د دې خبرې قسم کوم چې ما رسول الله صلی الله عليه وسلم ته پخه کړې وه

بَطْنَ الشَّاةِ ثُمَّ صَلَّى

د ګډ خيټه (يعني په خيټه کې د ننه شيان لکه ينه زړه وغيره) نبي عليه السلام (د هغې خوراک وکړه) بيا د مونځ

وَ لَمْ يَتَوَضَّأْ (۳).

د پاره ودريدو او اودس يې ونه کړو.

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۱۳۲/۱ رقم الحديث :۱۸۹ ،وابن ماجه ۱۶۴/۱ رقم الحديث : ۴۸۸.
(۲) أخرجه احمد في المسند ۳۰۷/۶، والترمذي في السنن ۲۴۰/۴ رقم الحديث .۱۸۲۹.
(۳) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۷۴/۱ رقم الحديث ۹۴-۳۵۷.

(۲۲) وَ عَنْهُ قَالَ أُهْدِيَتْ لَهُ شَاةٌ فَجَعَلَهَا فِي الْقِدْرِ

ابو رافع رضي الله عنه راوي دی چې یوه ورځ ماته هدیه کړی شو ګډ نوما (دهغه غوښه دپخید و دپاره) په کټوئ

فَدَخَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ مَا هٰذَا يَا أَبَا رَافِعٍ

کې واچوله (په دې وخت کې) رسول الله صلی الله علیه وسلم تشریف راوړه او وې فرمایل: ابو رافعه دا څه دي؟

فَقَالَ هَاةٌ أُهْدِيَتْ لَنَا يَا رَسُوْلَ اللهِ فَطَبَخْتُهَا فِي الْقِدْرِ

ما عرض وکړ: یارسول الله! دګډ غوښه ده کومه چې ماته دهدیې په طور راغلې وه هغه ما په کټوې کې پخه

قَالَ نَاوِلْنِي الذِّرَاعَ يَا أَبَا رَافِعٍ فَنَاوَلْتُهُ الذِّرَاعَ

کړې ده رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: یو لاس یې ماته هم راکړه لهذا ما یې یو لاس د رسول الله صلی الله علیه وسلم

ثُمَّ قَالَ نَاوِلْنِي الذِّرَاعَ الْآخَرَ فَنَاوَلْتُهُ الذِّرَاعَ الْآخَرَ

په خدمت کې پیش کړ، بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: یو بل لاس هم راکړه ما دویم لاس هم ورکړو

ثُمَّ قَالَ نَاوِلْنِي الذِّرَاعَ الْآخَرَ فَقَالَ لَهُ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّمَا لِلشَّاةِ ذِرَاعَانِ

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: یو لاس بل هم راکړه، ما عرض وکړ یا رسول الله! دګډ خو دوه لاسونه وي

فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

(او دواړه مې ستاسو په خدمت کې پیش کړل اوس بل له کومه پیدا کړم) رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل

أَمَا إِنَّكَ لَوْ سَكَتَّ لَنَاوَلْتَنِي ذِرَاعًا فَذِرَاعًا مَا سَكَتَّ

ابو رافعه! که چیرې ته خاموش پاتې شوی وې نو ماته به په لاس باندې لاس راکول کیدو تر څو چې ته خاموش

ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَتَمَضْمَضَ فَاهُ وَ غَسَلَ أَطْرَافَ أَصَابِعِهِ

وې بیا نبي علیه الصلاة والسلام اوبه وغوښتې او خوله مبارکه یې ووینځله (غرغره یې وکړه) بیا یې ګوتې پوره

ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى ثُمَّ عَادَ إِلَيْهِمْ فَوَجَدَ عِنْدَهُمْ لَحْمًا بَارِدًا

ووینځلې او دریدو او مونځ یې وکړو ابو رافع ته یې تشریف راووړ او د هغه سره یې تازه غوښه ولیدله

فَأَكَلَ ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ

لهذا رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه وخوړله، ددې نه وروسته یې جومات ته تشریف ویووړ او (شکرانه)

| |
|---|
| فَصَلَّی وَ لَمْ یَمَسَّ مَاءً (۱). |
| مونځ یې بیا اداء کړ او اوبه یې هم وانه اچولې یعني نه یې اودس وکړو او نه یې غرغره وکړه. |
| وَ رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ أَبِي عُبَيْدٍ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ إِلَى آخِرِهِ ). |
| (روایت کړې دارمي ددې حدیث د ابو عبید نه مګر ثم دعا بماء نه تر آخره پورې یې نه دی ذکر کړی). |

**توضیح** : **الذراع** : د ګډ مخکینو دوارو پښو ته ذراع ویل شوی دی کوم ته چې په اردو کې دست یا دستي ویل کیږي، رسول الله ﷺ ته ددې ځای غوښه ډیره خوښه وه ځکه چې د غوښې دا برخه خوندوره هم ده او قوت ورکوونکې هم ده. (المرقات ۲/۴۷).

**ذراعًا فذراعًا** : یعني زما په غوښتنه باندې که چیرته ته خاموش پاتې شوی وې نو په معجزاتي طور به د الله تعالی د طرفه د ډیرو لاسونو (ذراع) انتظام به شوی وی، مګر کله چې تا د ظاهري اسبابو تصریح او تشریح شروع کړه نو بیا د غیب پرده موقوفه کړی شوه. (المرقات ۲/۴۸).

**ولم یمس ماء** : یعني رسول الله ﷺ په دې صورت کې اوبه په لاس هم ونه لګولې ځکه چې دا وخت رسول الله ﷺ تازه غوښه خوړلې وه، په لاسونو یې هیڅ هم ونه لګول، نه یې وینځل او نه یې اودس وکړو دا ټول حدیثونه د جمهورو دلائل دي چې په اور سره د پاخه شوو شیانو په خوړلو سره اودس نه ماتیږي. (المرقات ۲/۴۸).

| |
|---|
| (۲۲) وَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ أَنَا وَ أُبَيٌّ وَ أَبُو طَلْحَةَ جُلُوسًا |
| حضرت انس بن مالک رضي الله عنه ویلي چې ما او ابي بن کعب رضي الله عنه او ابو طلحه رضي الله عنه ناست وو مونږ |
| فَأَكَلْنَا لَحْمًا وَ خُبْزًا ثُمَّ دَعَوْتُ بِوَضُوءٍ |
| غوښه او ډوډۍ خوړله (د خوراک نه فارغ شولو) ما د اودس د پاره اوبه وغوښتې، ابي بن کعب رضي الله عنه |
| فَقَالَا لِمَ تَتَوَضَّأُ فَقُلْتُ لِهَذَا الطَّعَامِ الَّذِي أَكَلْنَا |
| او ابو طلحه رضي الله عنه وویل ته اودس ولې کوې؟ ما وویل: دهغې خوراک دوجې کوم چې ما اوس کړی دی |
| فَقَالَا أَتَتَوَضَّأُ مِنَ الطَّيِّبَاتِ لَمْ يَتَوَضَّأْ مِنْهُ |
| دوی دواړو وویل آیا د پاکو شیانو د خوړلو دوجې اودس کوې؟ ددې شیانو په خوړلو سره هغه کس اودس نه |

(۱) اخرجه احمد في المسند ۶/۳۹۲.

| |
|---|
| مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِنْكَ [۱]. |
| دی کړی کوم چې د تانه بهتر دی یعني رسول الله صلی الله علیه وسلم. |
| (۲۵) وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا كَانَ يَقُولُ قُبْلَةُ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ |
| د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په باره کې مروي دي چې هغه ويلي دي چې که يو سړي خپله ښځه ښکل کړه |
| وَ جَسُّهَا بِيَدِهِ مِنَ الْمُلَامَسَةِ وَ مَنْ قَبَّلَ امْرَأَتَهُ أَوْ جَسَّهَا بِيَدِهِ |
| يا د هغې په خپل لاس سره مسه کول ملامست دی او کوم کس چې خپله ښځه خکل کړه يا يې مسه کړه په |
| فَعَلَيْهِ الْوُضُوءُ [۲]. |
| لاس سره نو په هغه باندې اودس واجب دی. |
| (۲۶) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ يَقُولُ مِنْ قُبْلَةِ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ الْوُضُوءُ [۳]. |
| دابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې دخپلې ښځې په ښکلولو سره سړي باندې اودس لازمي دی. |
| (۲۷) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ إِنَّ الْقُبْلَةَ مِنَ اللَّمْسِ |
| د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چې حضرت عمر رضي الله عنه ويلي دي چې خکلول په لمس کې داخل دي |
| فَتَوَضَّئُوا مِنْهَا [۴]. |
| (کوم چې په قرآن کې ذکر شوي) لهذا د خکلولو نه وروسته اودس وکړئ. |

**توضيح: فتوضئوا:** دا روايت اودې نه مخکې دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه روايت او دهغه نه مخکې دحضرت ابن عمر رضي الله عنه روايت نه معلومه شوې ده چې د ښځې په لمس کولو سره اودس لازم دی، شافعيانو دا د دليل په طور اخيستي دي، احنافو ويلي دي چې لومړی خو دا روايتونه موقوف دي او د صحابو اقوال دي کوم چې د مرفوع احاديثو مقابله نه شي کولی، دويم دا چې که چيرته دا قوي او قابل استدلال وګڼل شي نو ممکن ده چې مرفوع احاديث د دوی دپاره ناسخ شي، د ابن عباس رضي الله عنه په مرفوع حديث کې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: **ليس في القبلة وضوء (كذا في مسند ابي**

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۳۹۲/۶.

(۲) اخرجه مالک في الموطا ۴۳/۱، رقم الحديث : ۶۳.

(۳) اخرجه مالک في الموطا ۴۳/۱، رقم الحديث : ۶۵.

(۴) اخرجه الدار قطني في السنن ۱۴۴/۱ رقم الحديث : ۳۷.

حنیفة رَحِمَهُ اللهُ تفصیل یې مخکې تیر شوی دی.

## د هرې بهیدونکې وینې د وجې د اودس مسئله

| |
|---|
| (۲۸) وَعَنْ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ عَنْ تَمِيمِ الدَّارِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| عمر بن عبد العزیز رَحِمَهُ اللهُ د تمیم داري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت کړی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمیلي دي |
| الْوُضُوءُ مِنْ كُلِّ دَمٍ سَائِلٍ (رَوَاهُمَا الدَّارُ قُطْنِيُّ وَ قَالَ |
| د هرې بهیدونکې وینې د وجهې اودس لازم دی. همدا دواړه روایتونه دارمي نقل کړي دي او ویلي یې دي |
| عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ تَمِيمِ الدَّارِيِّ وَلَا رَآهُ . |
| چې حضرت عمر بن عبد العزیز رَحِمَهُ اللهُ د تمیم داري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه، نه آوریدلی دی او نه یې هغه لیدلی دی. |
| وَ يَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ . وَ يَزِيدُ بْنُ مُحَمَّدٍ مَجْهُولَانِ )[1]. |
| همدارنګه د دې روایت دوه راویان یزید بن خالد او یزید بن محمد مجهول دي. |

**توضیح: د فقهاو اختلاف**: د دې حدیث نه مخکې په دې پوهیدل په کار دي چې د سبیلینو نه بغیر د نجاست په وتلو سره اودس ماتیږي او که نه؟ په دې مسئله کې د فقهاو اختلاف دی. بیا د دې عامې قاعدې لاندې د دې حدیث د وینې د وتلو په باره کې یوه اختلافي مسئله پیدا شوې ده. د مالکیانو او شافعیانو په نزد خروج دم سائل ناقض وضوء نه دی، بیا د شافعیانو په نزد که چیرته دا وینه د غیر سبیلینو نه وه نو ناقضه نه ده او که د سبیلینو نه وه یعنې د قبل او دبر نه وه نو د اودس ماتوونکې ده برابره ده که دا وینه معتاد وي او که نوي، د حیض او نفاس وینه معتاده ده. د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد د غیر سبیلینو نه وتونکې وینه مطلقا ناقض وضوء نه ده او د سبیلینو نه که چیرته په غیر معتاد طور راشي مثلا استحاضه وغیره شي نو هغه هم د اودس ماتوونکې نه ده، او که چیرته **ما خرج من سبیلین** معتاد وي لکه د حیض او نفاس وینه نو هغه د اودس ماتوونکې ده. امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ، صاحبین، امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او سفیان ثوري رَحِمَهُ اللهُ د ټولو فقهاؤ په نزد د بهیدونکې وینې وتل مطلقا د اودس ماتوونکې ده، برابره خبره ده که د سبیلینو نه وي که د بدن د کومې بلې حصې نه وي، خو په دې شرط چې وینه د زخم شاوخوا وبهیږي.

**د فقهاؤ دلائل**: د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ دلیل د دوو صحابه کرامو واقعه ده کومه

---

(۱) أخرجه الدار قطني في السنن ۱/۱۵۷ رقم الحدیث ۲۷.

چې ابو داؤد د اول جلد په ۲٦صفحه باب الوضوء من الدم کې بيان کړې ده چې عمار بن ياسر رضي الله عنه مهاجر او عباد بن بشر رضي الله عنه انصاري په غزوه ذات الرقاع کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په فرمان په شپه کې د اسلام په فوجونو باندې په پيره ځاندې مقرر شول عمار بن ياسر رضي الله عنه د شپې په اوله برخه کې آرام کولو او عباد بن بشر رضي الله عنه پيره کوله، هغه مونځ کولو چې يو مشرک ويشتو ده مونځ جاري وساته نو ښکاره ده چې وينه بهيدله که چيرته اودس ماتيدلي نو مونځ به يې پريښي وی، معلومه شوه چې د وينې په وتلو سره اودس نه ماتيږي، او د ذکر شوي حديث په باره کې دوی ويلي دي چې په دې کې انقطاع هم ده او د دې دوه راويان يزيد بن خالد او يزيد بن محمد مجهول هم دي.

ائمه احنافو او جمهورو د فاطمې بنت ابی حبيش بخاري والا روايت سره استدلال کړی دی په کوم کې چې فاطمې بنت حبيش په پوښتنه باندې رسول الله صلى الله عليه وسلم جواب ورکړ حديث دا دی : ﴿عن عائشة رضي الله عنها جاءت فاطمة بنت ابی حبيش الی النبي صلى الله عليه وسلم فقالت انی امرأة استحاض فلا اطهر أفأدع الصلوة قال لا انما ذلک دم عرق ثم توضئ لكل صلوة﴾.(المرقات ۲/۵۱).

او د بخاري د بعضو روايتونو الفاظ داسې دي ﴿توضئ ما بين ذلک حتی يجیء ذلک الوقت﴾.

ددې حديث نه واضحه شوه چې وينه ناقض الوضوء ده ځکه چې د استحاضې د وينې په وتلو سره د هر مونځ دپاره د اودس کولو حکم شوی دی، دا دليل په شافعيانو باندې حجت نه دی بلکې په مالکيانو باندې حجت دی کوم چې د سبيلين او غير سبيلين فرق نه کوي ، خو دم عرق په لفظ کې کله چې عموم دی نو بيا په شوافعو باندې حجت دی، احنافو او حنابلو ددې روايت د دې عموم په نظر کې نيولو سره پيش کړی دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دم عرق ويلی دی نو د بدن د هرې برخې نه چې وينه وبهيږي تولو لره شامل دی. د احنافو او حنابلو دويم دليل د حضرت عائشې رضي الله عنها مرفوع حديث دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : ﴿من اصابه قیء او رعاف او قلس او مذی فلينصرف فليتوضأ ثم ليبن على صلوته وهو فی ذلک لا يتكلم﴾ (رواه ابن ماجه في باب ما جاء في البناء على الصلوة ص ۸۵).

په دې حديث کې د نکسير وينه( پوزه ماتيدل) او قیئ ناقض الوضوء ګرځول شوي دي او دغه دواړه شيان خارج من غير السبيلين دي.

د احنافو دريم دليل هغه استنباطي دليل دی کوم چې د هغه حديث نه مستنبط دی په کوم کې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي د کوم چا چې په مونځ کې اودس مات شي نو هغه دې په پوزه باندې لاس کيږدي د باندې دې لاړ شي .

د استدلال طرز داسې دی چې داسې کس د شرم کولو د وجې بهر وتلی نه شي ځکه چې بيا به خلک وايي چې د ده باد وتلی دی، ددې شرم نه د ځان ساتلو دپاره دا په پوزه باندې لاس کيږدي او خلکو ته دې دا ورونښايي چې زما اودس د باد وتلو د وجې نه دی مات شوی بلکې د پوزې نه د وينې د بهيدو د وجې مات شوی دی، که چيرته د وينې په وتلو سره اودس نه ماتيدلی نو همداسې کس ته بيا رسول الله ﷺ داسې تدبير ولې ورښودلو؟.

د احنافو څلورم دليل همدا د بحث نه لاندې حديث دی، په دې باندې د کتاب صاحب دوه اعتراضونه راپورته کړيدي، لومړی اعتراض دا دی چې دا حديث دارقطني نقل کړی دی او بيا يې ويلي دي چې د عمر بن عبدالعزيز رحمه الله د تميم داري رضي الله عنه نه نه روايت ثابت دی او نه رؤيت ثابت دی لهذا حديث منقطع او مرسل دی.

د دې جواب دا دی چې زيلعي تصريح کړې ده چې ابن عدي دا حديث د سند متصل سره نقل کړی دی، دارنګه مصنف ابن ابی شيبة هم دا حديث په سند متصل سره مذکور دی نو انقطاع او ارسال ختم شوی دی، همدارنګه د کثرت طرق او تعدد سند د وجې په حديث کې قوت راغلی دی، ددې وجې ترمذي ورته د حسن درجه ورکړې ده، هسې هم که دا حديث منقطع شي يا ضعيف شي نو د احنافو د دليل مدار په دې حديث باندې نه دی، ددوي ددليل مدار خود فاطمې بنت ابی حبيش او حضرت عائشې رضي الله عنها د رعاف والا حديث باندې دی، دارنګه دا هم شرعي ضابطه ده چې د نجاست وتل موجب اودس دی او وينه په اتفاقي طور نجسه ده، صاحب د کتاب په زيرنظر حديث باندې دويم اعتراض دا کړی دی چې ددې حديث دوه راويان يزيد بن خالد او يزيد بن محمد مجهول دي لهذا حديث قابل استدلال نه دی، د دې جواب دا دی چې زيلعي د صحيح سند سره د زيد بن خالد نه د دې روايت کړی دی لکه چې په کتاب (کامل ابن عدي) کې دی، او يزيد بن محمد او يزيد بن خالد مجهول الحال خو دي مګر مجهول الذات نه دي او د دوی نه ډيرو ثقه راويانو روايتونه کړي دي لهذا دوی مجهول هم پاتې نه شول.

**جواب:** امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله چې د صحابي په کومې واقعې سره استدلال کړی دی چې وينه يې بهيدله او هغه مونځ کولو نو د دې جواب دا دی چې دا د يوه صحابي جذبات، استغراق او د غلبه حال واقعه ده او د چا په غلبه حال او استغراقي کيفيت سره استدلال نه شي کيدلی، او په دې طاريه جزئيه سره قواعد کليه نه شي جوړيدلی، همدارنګه په دې باندې د رسول الله ﷺ تقرير او تصويب ثابت نه دی، دارنګه په دومره وينې بهيدو سره خو جامې هم سرې کيدلې (پاکې نه پاتې کيدلې) حالانکه د شافعيانو په نزد په نجاست کې کمه اندازه هم معاف نه ده، ددې وجې علامه خطابي شافعي ويلي دي چې په دې حديث سره شافعيان هغه وخت استدلال کولی شي کله چې وينه د فوارې په شکل کې بهر وتله او جامې محفوظې پاتې شوي وي مونږ ورته وايو چې واه واه.

حضرت علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې دا توجیه غلطه ده، بلکې حقیقت دا دی چې ددې صحابي سره نورې جامې وې کومې چې پاکې وې هغه هماغه واغوستې بیا یې مونځ وکړ مونږ وایو شاباس.

کوم وخت چې د همدې صحابي ملګري دا په وینو کې لت پت ولیده نو ورته یې وویل چې زه دې ولې نه راپورته کولم، ده ورته وویل ما سورت کهف شروع کړی وو ما مناسبه ونه ګڼله چې مونځ پرېږدم، معلومه شوه چې په وینو سره هغه جامې لمدې شوې وې په کومو کې چې یې مونځ وکړو.

په دې حدیث کې چې کومه برخه ده د هغې خلاصه داده چې په غزوه ذات الرقاع کې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عباد بن بشر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په پیره باندې مقرر کړي وو، حضرت عباد خو اوده شوی وو او حضرت عمار بن یاسر په خپل نوبت کې پیره کوله او په مونځ کې مشغول شو، بل طرف ته یو کافر وو د کوم ښځه چې د جنګ په میدان کې وژل شوې وه هغه قسم کړی وو چې د محمد په ملګرو کې به کوم یو قتل کوم او د خپلې ښځې بدل به اخلم، د شپې په وخت کې راغی او په همدغه صحابي یې په غشي وویشته صحابي په مونځ باندې قائم پاتې شو، بیا حضرت عمار راپورته شو نو کافر ته معلومه شوه چې اوس به دې دا خلک لټوي نو وتښتیدو.

# بَابُ آدَابِ الْخَلَاءِ
# بيت الخلاء ته د تللو د آدابو بيان

آداب د ادب جمع ده په شرعي طور د دې اطلاق په مستحب باندې هم شوى دى او (**اعطاء كل شئ حقه**) يعنې شى ته د هغه د روا او مناسب ځاى وركولو ته ويل كيږي. ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ د ادب تعريف داسې كړى دى : (**الادب استعمال ما يُحمدُ قولا او فعلًا**) (المرقات ۲/۵۲).

يعنې ادب د هغو شيانو استعمال ته ويل كيږي د كوم استعمال چې ښه وګڼل شي برابره ده كه د هغه تعلق د افعالو سره وي او كه د اقوالو سره وي. لهذا په دې باب كې د هغو شيانو ذكر كيږي كوم چې د استنجاء په حواله ممنوع او مكروه دي، او د هغو شيانو ذكر هم كيږي كوم چې په استنجاء كې مستحب محمود او مطلوب دي.

**الخلاء** : د خاء په فتحې او مد سره خلاء هر هغه ځاى ته ويل كيږي كوم ته چې انسان د قضاء حاجت دپاره ځي، يا دا د خالي په معنى سره دى ځكه انسان هم هلته د ټولو نه خالي او تنها ځي، يا داسې هم ويل شوي دي چې كله انسان هلته نه ورځي نو په عامو وختونو كې هغه مكان خالي پاتې وي. يا دا چې انسان هلته خپله خېټه خالي كوي.

**يوولس آداب** : په دې ځاى كې شاه ولى الله محدث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ يو شمير شيان د خلاء په آدابو كې بيان كړي دي : (۱) د قضاء حاجت په وخت كې د بيت الله او د قبلې د عظمت لحاظ ساتل په كار دي.

(۲) د صفائي خيال دې وساتل شي، لهذا د ډېرو كاڼو دې كم نه وي تر څو چې ښه صفائي راشي.

(۳) خلكو ته د نقصان رسولو دې ځان وساتل شي، لهذا په لار يا د سورې لرونكې ونې يا د ميوې لرونكې ونې لاندې دې قضاء حاجت نه دي كول په كار.

(۴) د خپل نقصان نه دې پرهيز وكړي ، په كومه سوره (سوري) كې دې متيازې نه كوي .

(۵) د ګاونډي او ورونو د حقوقو لحاظ دې وساتل شي په همدې وجه د پيريانو په خوراک هډوكو غوښايو وغيره دې استنجاء نه كوي.

(٦) د نفس د حقوقو لحاظ دې وكړى شي لهذا په چپ لاس سره دې استنجاء وكړى شي.

(۷) د وسوسې نه د ځان ساتلو په خاطر دې په غسل خانه كې متيازې نه كوي.

(۸) د خلكو د ستر ګو نه دې ستر او حجاب غوره كړي.

(۹) د دخول او خروج په وخت كې دې مسنون دعاګانې ووايي.

په دې باب كې د پورته ټولو ذكر شويو آدابو متعلق احاديث راغلي دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### قبلې ته د مخ او شا کولو مسئله

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَيْتُمُ |
| ابو ایوب انصاري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روایت کړی چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کله چې تاسو لاړ شئ بیت |
| الْغَائِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ وَلَا تَسْتَدْبِرُوهَا وَلٰكِنْ شَرِّقُوا أَوْ غَرِّبُوا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). |
| الخلاء ته نو د قبلې طرف ته مخ مه کوئ بلکې د مشرق او مغرب طرف ته مخ او شا کړئ. |
| قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللّٰهُ هٰذَا الْحَدِيثُ فِي الصَّحْرَاءِ وَأَمَّا فِي الْبُنْيَانِ فَلَا بَأْسَ |
| امام محی السنة رَحِمَهُ اللّٰهُ ویلي دي چې دا د صحراء حکم دی په آبادۍ کې په داسې کولو کې څه خبره نشته |
| لِمَا رُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ ارْتَقَيْتُ فَوْقَ بَيْتِ حَفْصَةَ لِبَعْضِ حَاجَتِي |
| ځکه چې عبد الله بن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ویلي دي چې زه د کوم ضرورت په خاطر د حفصې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا کور ته ورغلم نو |
| فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْضِي حَاجَتَهُ مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ |
| ما رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولید و په (بیت الخلاء) کې د قضاء حاجت په حالت کې چې شا یې کړې وه قبلې |
| مُسْتَقْبِلَ الشَّامِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| طرف ته او د شام طرف ته یې مخ کړی وو. |

**توضیح: لاتستقبلوا القبلة:** د غټو او وړو بولو په وخت کې د قبلې طرف ته په مخ او شا کولو کې د فقهاء کرامو اختلاف دی، مشهور او غیر مشهور ټول مسلکونه اته دي، لیکن مشهور او متبوعه مسلکونه څلور دي هغه بیانولی شي، چونکه روایتونه مختلف دي نو ځکه په فقهاء کرامو کې هم اختلاف راغلی دی اګرکه دا فیصله شوې ده چې د ټولو په نزد **اصح ما في الباب** همدا حدیث د ابو ایوب انصاري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دی کوم چې په نفي باندې دال دی، او دویم حدیث د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دی کوم چې په جواز باندې دال دی. (المرقات ۲/۵۲)[1].

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۱۹۸، رقم الحديث: ۳۹٤، ومسلم في الصحيح ۱/۲۲٤ رقم الحديث: ۵۹-۲٦٤، وأبو داود ۱/۱۹ رقم الحديث: ۱۰، والنسائي ۱/۲۱، رقم الحديث: ۲۰-۲۱، والترمذي ۱/۱۳ رقم الحديث ۸.

**د فقهاؤ اختلاف**: (۱) د امام شافعي رَحِمَهُ الله او امام مالک رَحِمَهُ الله په نزد قبلې ته مخ كول او شا كول په آبادۍ كې مطلقا روا دي او په صحراء كې مطلقا ناروا دي، ګويا چې دوى د جمع بين الاحاديث كوشش كړى دى چې د جواز احاديث په آبادۍ باندې محمول دي او د عدم جواز او نهې احاديث په صحراء باندې محمول دي.

(۲) امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ الله استدبار قبله په صحراء او بنيان دواړو كې ناروا ګرځولى دى او استقبال يې په دواړو كې روا ګرځولى دى، كوم احاديث چې د نهې دي هغه په استقبال باندې محمول دي او د كومو احاديثو چې جواز معلوم شوى دى هغه د استدبار دي.

(۳) امام ابو حنيفة رَحِمَهُ الله سفيان ثوري رَحِمَهُ الله جمهور صحابو او جمهورو فقهاؤ په نزد استقبال او استدبار په آبادۍ او صحراء دواړو كې ناروا دي او هيڅيرته يې ګنجايش نشته دى.

(۴) د داؤد ظاهري او د ربيعه الرائي په نزد استقبال او استدبار مطلقا روا دي كه په بنيان كې وي كه په صحراء كې وي، دوى د حضرت جابر رَضِيَ الله عَنْهُ د روايت نه د استقبال د جواز اخذ كړى دى او د حضرت ابن عمر رَضِيَ الله عَنْهُ د روايت نه يې د استدبار جواز اخذ كړى دى، ددې حضراتو وينا ده دا چې روايات متاخر دي لهذا دا ناسخ دي نو د استقبال او استدبار دواړو اصل جواز باقي پاتې شو، په همدې څلورو مذاهبو كې د دلائلو په اعتبار سره د شافعيانو، احنافو او اهل ظواهرو اختلاف ښكاره دى نو ځكه بيان كړى شول. (المرقات ۲/۵۴).

**دلائل**: شافعيانو او مالكيانو د حضرت ابن عمر رَضِيَ الله عَنْهُ تر بحث لاندې حديث باندې استدلال كړى دى په كوم كې چې د رسول الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فعل (**مستدبر القبلة مستقبل الشام**) ښودل شوى دى.

ددې حضراتو دويم دليل د حضرت عراک رَحِمَهُ الله د حضرت عائشې رَضِيَ الله عَنْهَا نه روايت دى په كوم كې چې راغلي چې كله رسول الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وويل شول چې خلكو د قضاء حاجت په وخت كې استقبال قبله مكروه ګڼلى دى نو رسول الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: زما خيال دى چې خلكو همداسې شروع كړې دي تاسو خلک زما د قضاء حاجت ځاى د قبلې طرف ته وګرځوئ، د حديث الفاظ او ګورئ: (**عراک عن عائشة رَضِيَ الله عَنْهَا قالت ذكر عند رسول الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قوم يكرهون ان يستقبلوا بفروجهم القبلة فقال أُراهم قد فعلوها استقبلوا بمقعدتي القبلة**) (سنن ابن ماجه).

ددې حضراتو دريم دليل د مروان اصفر د ابن عمر رَضِيَ الله عَنْهُ نه هغه روايت دى كوم چې د مشكوة په څلور څلويښتمه صفحه كې ذكر دى په كوم كې چې حضرت ابن عمر رَضِيَ الله عَنْهُ ويلي دي چې په ښكاره ميدان كې استقبال قبله منعه دى مګر كله چې كوم حائل په مينځ كې وي نو بيا هيڅ پروا نشته.

اهل ظواهرو په خپل استدلال كې د حضرت جابر رَضِيَ الله عَنْهُ روايت وړاندې كړى دى كوم چې ابو داؤد په

دریمه صفحه کې نقل کړی دی الفاظ يې داسې دي : **(عن جابر قال نهى رسول الله ﷺ ان نستقبل القبلة ببول فرأيته قبل ان يقبض بعام يستقبلها)** (ترمذي و ابو داؤد).
ددې حضراتو دويم دليل هماغه د عراک بن مالک روايت دی په کوم چې شافعيانو هم استدلال کړی دی او د ابن عمر رضي الله عنه په روايت سره هم دې خلکو داستدبار د جواز دپاره استدلال کړی دی، لهذا د دوی په نزد استقبال او استدبار دواړه مطلقا روا دي. د ائمه احنافو، د جمهور فقهاو او د تابعينو يو دليل خو همدا تر بحث لاندې د ابو ايوب انصاري رضي الله عنه حديث دی کوم چې اصح مافى الباب دی په کوم کې چې **مطلقا** د استقبال او استدبار نه منعه شوې ده. د جمهورو دويم دليل د سلمان فارسي رضي الله عنه روايت دی کوم چې د مشکوة په دوه څلويښتمه صحفه کې ذکر شوی دی د کوم الفاظ چې داسې دي : **(قال نهانا رسول الله ﷺ ان نستقبل القبلة لغائط او بول)** (مسلم).
دجمهورو دريم دليل دابوهريره رضي الله عنه روايت دی کوم چې دمشکوة په همدغه(۴۲)صفحه کې ذکر شوی دی د کوم الفاظ چې داسې دي: **(اذا اتيتم الغائط فلا تستقبلوا القبلة ولا تستدبروها)** (دارمي **ابن ماجه**).
د جمهورو څلورم دليل د عبدالله بن الحارث بن جزء مرفوع حديث دی کوم چې ابن ماجه او ابن حبان روايت کړی چې الفاظ يې داسې دي : **(لايبولن احدكم مستقبل القبلة)** (ابن حبان ابن ماجه).
د جمهورو پنځم دليل د ابو ايوب انصاري رضي الله عنه دويم مرفوع حديث دی په کوم کې چې نهايت واضح بيان شوی دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل کله چې تاسو د قضاء حاجت دپاره لاړ شئ نو د متيازو او بولو په وخت کې د قبلې طرف ته مخ نه کړئ، بلکې د مشرق او مغرب طرف ته مخ کړئ (ابو ايوب انصاري رضي الله عنه ويلي دي) چې کله مونږ شام ته راغلو نو هلته مونږ بيت الخلاګانې د قبلې طرف ته وليدې پس مونږ د استعمال په وخت کې د قبلې نه منحرف قضاء حاجت کولو او په (څه کوتاهي باندې) مو د الله تعالى نه بخښنه غوښتله (ابوداؤد ص ۳).
**د احنافو د مسلک ترجيحات** : د استقبال قبله په مسئله کې د احنافو مسلک په ډير وجوهاتو سره راجح دی يو شمير وجوهات وګورئ :
(۱) د حنفي مسلک دلائل قولي احاديث دي د نورو مسلکونو روايتونه فعلي دي، او د قول او د فعل چې کله تعارض راشي نو ترجيح قولي حديث ته ورکولی شي، ځکه چې په فعل کې د خصوصيت احتمال دی او دلته د خصوصيت احتمال قوي دی، ځکه چې د محققينو علماو په نزد په روضه مطهره کې د رسول الله ﷺ مبارک جسد چې د ځمکې د کومې برخې سره چې لګول شوی دی هغه

برخه له عرش نه بهتره ده نو د کعبې سره د نوراني جسد څه نسبت د ی. نو خصوصیت پیغمبري شو، دارنګه د ټولو ائمو په دې باندې اتفاق دی چې د انبیاء کرامو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ فضلات پاک دي او نهې د ناپاک کیدو د وجې ده نو دا هم خصوصیت دی. حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ویلي دي چې زه کله د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وروسته بیت الخلاء ته داخله شوم نو ما ته هلته هیڅ فضله په نظر رانغله او خوشبویي را پورته کیدله، ما د دې یادونه وکړه نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل : آیا تاته معلومه نه ده چې د انبیاء کرامو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ جسم د جنت د ارواح طیبه نه جوړ شوی دی کوم څه چې د دوی د جسم نه خارجیږي زمکه هغه ننباسي (شفاء قاضي عیاض) دارنګه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وینځې واقعه ده چې هغې یو ځل په غلطۍ سره د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ متیازې اوبه وګڼلې او وې څښلې او هغه هیڅ منعه ونه کړه نو دا د فضلاتو د پاکوالي علامه ده. شیخ عبدالحق محدث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ په خپله شرحه لمعات کې د انبیاء کرامو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ فضلات پاک لیکلي دي.(اشعة اللمعات).

(۲) احنافو چې کوم دلائل وړاندې کړي دي دا ټول محرِم دي یعنې حرمت یې ثابت کړی دی، او کله چې په مبیح او محرم کې تعارض راشي نو ترجیح محرم ته ورکول کیږي ترڅو چې د حرمت نه وساتل شي.

(۳) احنافو چې په کومو احادیثو استدلال کړی دی هغه د عام قانون او تشریع حیثیت لري په کومو کې چې د شریعت قاعده او ظابطه کلیه بیان شوې ده، او باقي حضراتو چې په کومو روایتونو سره استدلال کړی دی د هغوی حیثیت جزئي واقعات دي او د جزئي واقعې په مقابل کې قاعده کلیه آختل کیږي، د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ژوند کې دوه څلور ځلې نه دي صرف یو ځل یې استدبار کړی دی او په هغه کې هم اختلاف دی.

(۴) د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت په خپل مقصود او مطلوب باندې په دلالت کولو کې قطعي او یقیني نه دی ځکه چې د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لیدلو کې د غلطۍ احتمال کیدی شي چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نوراني څیره یو طرف ته وي او متیازې بل طرف ته وي. همدارنګه کیدلی شي چې د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ آواز یې اوریدلی وي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخ مبارک بل طرف ته اړولی وي یا کوم بل عذر وي. د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې روایت باندې دا شبه ده چې په هغه کې د ابادۍ ذکر نشته نو صرف په چت باندې قضاء حاجت او صحراء کې یو شانته دي، نو په دې حدیث سره د بنیان په جواز باندې استدلال نه شي کیدی او د چت چاردیوالي ثابتول مشکل دي نو دلیل د دعوه مطابق نه دی . ځکه چې د چت کولاو فضاء بنیان نه دی . (المرقات ۲/۵۳).

**الزامي جواب** : احنافو د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وغیره روایاتو دا جواب ورکړی دی چې وو ایې په احادیثو کې د **نهي عن استقبال القبلة** علت څه دی نو ښکاره خبره ده چې د کعبې ادب علت دی، که چیرته علت همدا دی نو بیا په صحراء او بنیان کې فرق ولې کوئ؟ یا دواړه ځایونه روا وګڼئ یا دې دواړه ناروا

وګڼي، که چیرته تاسو دا فرق کوئ چې په بنیان کې حائل دی او په صحراء کې نشته نو په ادب سره عرض دی چې که چیرته څلور لویشتې دیوال حائل جوړیدی شي نو آیا د صحراء او بیت الله ترمینځ دا دومره لوی لوی غرونه او ځنګلات حائل نه شي جوړیدلی؟ دارنګه که چیرته د کعبې داادب د وجې په زرګونو میله لرې صحراګانو، غرونو او آبادیو کې توکول منعه دي نو آیا متیازې او بولې کول به منعه نه شي؟ دکلام خلاصه داده چې په دې مسئله کې شافعیان او مالکیان ډیر کمزوري دي وجه داده چې حافظ مغرب ابن حزم اندلسي رَحِمَهُ اللهُ د حنفیانو قول خپل کړی دی. قاضي ابوبکر مالکي رَحِمَهُ اللهُ هم دا قول نیولی دی، ابن قیم حنبلي رَحِمَهُ اللهُ هم دا مسلک خپل کړی دی، باقي کومو حضراتو چې د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت سره اُستدلال کړی دی او د هغه د وجې یې د نهې تول احادیث منسوخ ګرځولي دي نو دا ډیره دافسوس خبره ده، ځکه چې د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت د زیاتره محدثینو په نزد ضعیف دی، په هغه کې یو راوي محمد بن اسحاق دی، دویم ثوبان بن صالح دی او دوی دواړه ضعیف دي، نو دا روایت د شیخینو د ابو ایوب انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د صحیح تر روایت دپاره څنګه ناسخ جوړیدی شي؟ اګر که حسن هم وګڼل شي، همدارنګه په دې کې هم هغه احتمالات دي کوم چې د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت کې دي. کومو حضراتو چې د عراک بن مالک رَحِمَهُ اللهُ په روایت سره استدلال کړی دی نو د دوی جواب دا دی چې هغه ته اګر که بعضو حضراتو حسن ویلي دي لیکن زیاتره محدثینو وربانديې کلام کړی دی، لهذا علامه ذهبي، ابن حزم، ابو حاتم، احمد بن حنبل او امام بخاري رَحِمَهُمُ اللهُ په هغه کې کلام کړی دی، ځکه چې خالد بن ابی الصلت منکر الحدیث مجهول او ضعیف دی، دوه ځایه په هغه کې انقطاع هم ده، او بعضو **موقوف علی عائشة** رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ویلي دی، شیخ الهند رَحِمَهُ اللهُ د دې عجیب جواب ورکړی دی هغه دا چې د استقبال او استدبار ممانعت یې چې واوریده نو خلکو په هر ځای کې د بیت الله طرف ته په شا کولو کې غلو کوله او په هره ناسته کې به یې شا ګرځول حرام ګرځول نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې زما نشست د قبلې طرف ته مخ کړئ ترڅو چې شا د قبلې طرف ته وي او په خلکو کې اعتدال راشي، دلته د بیت الخلاء مقعد مراد نه دی بلکې د عامو مجالسو خبره ده.

**الغائط** : علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې غائط په اصل کې د ځمکې ځانله برخې ته ویل کیږي په همدې اعتبار سره دقضاء حاجت ځای او بیت الخلاء ته غائط ویل شوي ، ځکه د عادت مطابق خلک جدا ځای د قضاء حاجت دپاره لټوي ځکه چې په هغه کې پرده زیاته وي بیا په کې توسیع وکړی شوه او بولو ته غائط وویل شول (**تسمیة الحال باسم محله**).

**ولکن شرقوا او غربوا** : دا حکم د اهل مدینو او د بیت الله جنوب یا په شمال کې د اوسیدونکو سره خاص دی، ځکه د دوي سره د بیت الله د جنوب طرف واقع دی او د مشرق او مغرب طرف ته بیت الله

نشته، په خلاف زمونږ د ملکونو کوم چې په مشرق کې واقع دي دا حکم ددې ځایونو دپاره نه دی، ځکه دلته په مغرب کې بیت الله واقع دی، هو کوم ممالک چې د بیت الله په جنوب یا شمال کې واقع دي دا حدیث هغوی لره هم شامل دی، په شریعت کې ځینې احکامات د بعضو خلکو سره خاص شوي راغلي دي دا حکم د همدې قسم نه دی، د استقبال او استدبار دا حکم د راجح قول مطابق د بیت الله سره خاص دی او د بیت المقدس حکم داسې نه دی.

**۲۲ صفر ۱۴۱۰ھ**

## په کاڼرو باندې د استنجاء مسئله

| |
|---|
| (۲) وَ عَنْ سَلْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ نَهَانَا يَعْنِي رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنْ |
| د حضرت سلمان رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ منعه کړي یو ددې نه چې مونږ د |
| نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ لِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ أَوْ أَنْ نَسْتَنْجِيَ بِالْيَمِينِ أَوْ أَنْ |
| متیازو یا دبولو په وخت کې د قبلې طرف ته مخ کړو او ددې نه چې مونږ په ښي لاس سره استنجاء وکړو او ددې |
| نَسْتَنْجِيَ بِأَقَلَّ مِنْ ثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ أَوْ أَنْ نَسْتَنْجِيَ بِرَجِيعٍ أَوْ بِعَظْمٍ [1]. |
| نه چې مونږ د درېو کاڼو نه په کمو استنجاء وکړو او ددې نه چې مونږ په غوشایو او هډوکي سره استنجاء وکړو |

**توضیح: ان نستقبل القبلة:** په دې حدیث کې د درېو مهمو خبرو طرف ته اشاره شوې ده او په درېواړو کې د جدا جدا حقوقو ذکر شوی دی، ددې نه په ماقبل جمله کې د استقبال قبله مسئله ده د هغې تفصیل ددې نه مخکې تیر شوی دی په دې جمله کې د حق الله بیان راغلی دی.

**ان نستنجي بالیمین:** یعني مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم ددې نه منعه کړي یو چې مونږ په ښي لاس سره استنجاء وکړو، په دې جمله کې د حق العبد بیان راغلی دی او په دې کې دویمې مهمې مسئلې طرف ته اشاره ده چې ښی لاس په استنجاء کې استعمال نه کړئ، د اهل ظواهرو او د بعضې شافعیانو په نزد په ښي لاس په استنجاء کولو سره طهارت نه حاصلیږي، لیکن د جمهورو مسلک دا دی چې دا ممانعت د ښي لاس د شرافت د وجې دی که نه نو اصل مقصود خو صفائي حاصلول دي او هغه په ښي او چپ دواړو سره حاصلیدی شي، شریعت ښی لاس د ښو کارونو دپاره او چپ لاس یې د نامناسبه او مکروه کارونو دپاره مقرر کړی دی، نو استنجاء هم مکروه کار دی د کوم چې په چپ لاس کول په کار دي ترڅو چې د خوراک څښاک په وخت کې انسان ته کرکه رانه شي چې همدا اوس اوس مې همدا لاس په متیازو

[1] اخرجه البخاري في الصحيح ۱/ ۲۵۰، رقم الحديث ۱۴۸، ومسلم في الصحيح ۱/ ۲۲۵ رقم الحديث: ۶۲-۲۶۲، والترمذي ۱/ ۱۶ رقم الحديث: ۱۱.

باندې ککړ کړو او اوس پرې دودی خورم او خولې ته يې پورته کوم. بهر حال صفائي خو په هر لاس سره کيدی شي خو ښي لاس د استنجاء نه ساتل د هغه د شرف د وجې دي.

**ان نستنجي باقل من ثلاثة احجار** : په دې جمله کې د حق النفس بيان راغلی دی او په دې کې دريمې مهمې مسئلې طرف ته اشاره شوې ده د کومې عنوان چې **استنجاء بالاحجار** دی او په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاء کرامو اختلاف**: دلته درې شيان قابل لحاظ دي: (۱) **انقاء محل** يعنې د محل صفا کول (۲) **تثليث** يعنې د دريو د شمير لحاظ کول (۳) **ايتار** يعنې د طاق شمير رعايت کول. په دې باندې د ټولو اتفاق دی چې د دريواړو رعايت کول په کار دي، مګر اختلاف په دې کې دی چې د دې حيثيت څه دی؟ د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد تثليث هم واجب دی ايتار هم واجب دی او انقاء يعنې د صفائي حاصلول هم واجب دي، د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ او امام ابو حنيفة رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد تنقيه يعنې صفائي واجب ده تثليث او ايتار مستحب دي. (المرقات ۲/۵۵).

**د اختلاف ثمره** : د اختلاف ثمره هغه وخت ښکاره کيږي مثلا چې يو کس چې په دوه لوټو سره انقاء وکړي اوس د دريمې لوټې استعمال واجب دی او که نه؟ نو د شافعيانو او حنابلو په نزد واجب دی ترڅو چې تثليث حاصل شي، او د مالکيانو او حنفيانو په نزد واجب نه دی.

او که چيرته په څلورو لوټو سره تنقيه راغله نو د شافعيانو او حنابلو په نزد د ايتار د حصول دپاره د پنځمې استعمالول واجب دي، د حنفيانو او مالکيانو په نزد واجب نه دي.

**دلائل** : د شافعيانو او حنبليانو اول دليل زير بحث د سلمان فارسي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث دی په کوم کې چې د دريو کاڼو نه په کمو باندې د اکتفاء کولو نه منعه شوې ده د دوی دويم دليل د مشکوة شريف په ۴۲ صفحه کې د ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت دی **من استجمر فليوتر** په دې کې د ايتار ذکر دی بيا په دې صفحه کې د ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت د دې حضراتو دريم دليل دی په کوم کې چې د **وامر بثلاثة احجار** الفاظ راغلي دي، د دې حضراتو څلورم دليل د مشکوة په څلور څلويښتمه صفحه کې د سلمان فارسي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت دی په کوم کې چې د **ولا لنکتفي دون ثلاثة احجار** الفاظ راغلي دي. ائمه احناف او مالکيو د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په روايت سره استدلال کړی دی کوم چې د مشکوة په درې څلويښتمه صفحه کې مذکور دی په کوم کې چې د **من فعل فقد احسن ومن لا فلا حرج** الفاظ راغلي دي د کوم نه چې اباحت او استحباب معلوم شوی دی.

دې حضراتو دویم دلیل د حضرت عائشې رضي الله عنها روایت دی کوم چې د مشکوة په دوه څلویښتمه صفحه کې راغلی دی **(فانها تجزئ عنه)** الفاظ راغلي دي په کوم سره چې احناف په دې شان استدلال کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم تجزئ ویلي دي، یعنې درې کاڼي کفایت کوي، یعنې د تنقیه دپاره کفي دي، دلته اصل مقصود د انقاء بیانول دي د عدد ایتار او تثلیث ضرورت محسوس شوی نه دی، په همدې طرز دا حدیث زمونږ دلیل جوړیږي که نه په ظاهره د شوافعو دلیل دی.

**جواب**: شوافعو حضراتو چې په کومو احادیثو سره استدلال کړی دی هغه د دریو کاڼو په ثبوت باندې دال او د دریو نه د کمو په ممانعت باندې دال دي، د دې جواب دا دی چې همدا درې او طاق زمونږ په نزد هم مستحب دي نو دا احادیث دې په استحباب باندې حمل کړی شي ترڅو چې په ټولو احادیثو کې تطبیق راشي او تعارض ختم شي. او د دریو نه د کمو کاڼو استعمال دې مکروه تنزیهي وګرځول شي نو تعارض به ختم شي.

**الزامي جواب**: اصل مقصود تنقیه او صفائي ده، درې والی یا طاق والی هیڅ مقصود ندي، که چیرته تثلیث یا ایتار په وجوبي طور مقصود وی نو بیا د شافعیانو په نزد یو داسې کاڼی د کوم چې درې طرفونه وي او هر طرف یې جدا جدا استعمال کړی شي او صفائي حاصله شي بیا د دوی په نزد دا روا ولې وی سره ددې چې په هغې کې نه تثلیث شته او نه په کې ایتار شته، معلومه شوه چې دا شان ضروري نه دي مستحب دي.

**رجیع**: خوشایانو ویل کیږي، رجیع د فعیل په وزن باندې د اسم مفعول مرجوع په معنی سره دی. په خوشایانو سره استنجاء ددې وجې نه روا نه ده چې دا موجب تلویث دي او د پیریانو خوراک هم دی. (المرقات ۲/۵۵).

**بعظم**: هډوکي ته عظم ویل کیږي، په هډوکي سره استنجاء روا نه ده ،یا خو په دې وجه چې ککړ وي او د غوښې پوټې وربانديې لګیدلي وي او بل په هډوکي سره صفائي نه حاصلیږي، او که چیرته وچ پخوانی هډوکی دی نو د ملاست(خویوالی) د وجې صفائي نه حاصلیږي، او یا چې د سرلرونکي هډوکي د وجې د زخمي کیدو خطر دی. لیکن په حدیث کې د ممانعت سبب دا ښودل شوی دی چې دا د پیریانو خوراک دی او همدا ډیره واضحه ده، په استنجاء کې د استعمالیدونکو شیانو او د استعمال شوو شیانو دپاره ظابطه او قاعده د عربي په دې عبارت کې ویل شوي ده **(کل شئ طاهر قالع للنجاسة غیر محترم)** چې د دې تفصیل مخکې را روان دی. (المرقات ۲/۵۵).

## بیت الخلاء ته د تللو دعاء

| |
|---|
| (۳) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ |
| حضرت انس رضی الله عنه ویلي دي کوم وخت به چې رسول الله صلی الله علیه وسلم بیت الخلاء ته داخلید و (یعنې د |
| يَقُولُ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَ الْخَبَائِثِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| داخلیدو اراده به یې وکړه) نو دا دعا به یې ویله: ای الله! زه په تاسره پناه غواړم د نرانو او ښځو پېریانو نه. |

**توضیح: اذا دخل**: یعنې بیت الخلاء ته کله چې انسان د داخلیدو اراده وکړي نو دا دعاء دې ووایي او چه پېنه دې لوړی دننه کړي او که چیرته په صحراء کې وي نو د عورت د ښکاره کولو نه مخکې دې دا دعا ووایي بیا هم قلبي ذکر هر ځای کې روا دی. (المرقات ۲/۵۵).

**الخبث**: د خاء او باء په ضمې سره یا د باء په سکون سره دا د **خبیث** جمع ده ددې نه پېریان او سرکش شیاطین مراد دي د کومو تعلق چې د هغو د ښځو او نرانو سره دی. (المرقات ۲/۵۶).

**الخبائث**: دا د **خبیثة** جمع ده مراد د پېریانو ښځې دي نو د دواړو لفظونو ترجمه (ای ذکورهم واناثهم) ده، پېریان طبعا د مرداری ځایونه خوښوي او په داسې ځایونو کې سره جمع کیږي، نو ځکه په داسې ځایونو کې د هغو نه ځان ساتلو دپاره د داسې دعاء تعلیم ورکړی شوی دی. (المرقات ۲/۵۶).

## په قبرونو باندې د ګلانو خوړولو حکم

| |
|---|
| (۴) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَبْرَيْنِ |
| دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دی چې یو ځل رسول الله صلی الله علیه وسلم د دوه قبرونو په خوا کې تیریدو نو |
| فَقَالَ إِنَّهُمَا لَيُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ |
| هغه (چې دا ولیدل) نو وې فرمایل چې په دې دواړو قبرونو والا باندې عذاب نازل شوی دی او عذاب |
| فِي كَبِيرٍ أَمَّا أَحَدُهُمَا. فَكَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنَ الْبَوْلِ |
| هم په کوم غټ شي باندې نه دی نازل شوی (چې بچ کیدل ترې مشکل وي) په دوی کې یو د متیازو نه ځان نه |

---

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۲٤۲/۱، رقم الحديث: ۱٤۲، ومسلم في الصحيح ۲۸۲/۱ رقم الحديث: ۱۲۲-۳۷۵، وابو داود ۱۵/۱ رقم الحديث: والنسائي ۲۰/۱، رقم الحديث: ۱۹، والترمذي ۱۰/۱ رقم الحديث: ۵، وابن ماجة ۱۰۹/۱، رقم الحديث: ۲۹۸.

| |
|---|
| وَ فِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ لَا يَسْتَنْزِهُ مِنَ الْبَوْلِ وَ أَمَّا الْآخَرُ فَكَانَ يَمْشِيْ بِالنَّمِيمَةِ |
| ساتلو ،د مسلم ديو روايت الفاظ داسې دي : چې د متيازو سره يې احتياط نه کولو او دويم چغل خور وو |
| ثُمَّ أَخَذَ جَرِيدَةً رَطْبَةً فَشَقَّهَا بِنِصْفَيْنِ |
| بيانبي عَلَيْهِ السَّلَام د کهجورې يو لمده څانګه راواخستله او هغه يې په منځ باندې نيمه کړه يوه يوه حصه يې کړ |
| ثُمَّ غَرَزَ فِيْ كُلِّ قَبْرٍ وَاحِدَةً قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ لِمَ صَنَعْتَ هٰذَا |
| په دواړو قبرونو باندې يې ناله کړه (داچې وليدل شول) پوښتنه وشوه يارسول الله! تاسو داسې ولې وکړل؟ |
| فَقَالَ لَعَلَّهُ أَنْ يُخَفَّفَ عَنْهُمَا |
| رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : شايد (په دې عمل سره) د دوی په عذاب کې څه تخفيف وشي (تر هغه |
| مَا لَمْ يَيْبَسَا. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| وخته پورې) تر څو چې دا خاخونه وچ شوي نه وي. |

**توضیح :مر بقبرين:** په دې کې بحث دی چې همدا دواړه قبرونه د مسلمانانو وو او که دا خلک کافر وو بعضو علماؤ ليکلي دي چې دا دواړه کافر وو، ځکه چې په بعضو روايتونو کې د **قبرين** سره د **قديمين** لفظ هم موندل شوی دی، يعنې د پخواني جاهليت قبرونه وو، ليکن حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ ددې دواړو مسلمان کيدو ته ترجيح ورکړې ده،او دابن ماجه په حديث کې دي **(مر النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بقبرين جديدين)** ددې نه معلومه شوه چې دا خلک مسلمانان وو، په بعضو روايتونو کې دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صحابو پوښتنه وکړه تاسو نن دلته څوک خښ کړي دي، ددې هم معلومه شوه چې مسلمانان وو، په بعضو روايتونو کې حصر دی چې **(وما يعذبان الا في الغيبة والبول)** معلومه شوه چې د کفر د وجې عذاب نه وو بلکې دوی مسلمانان وو، د کفر نه بغير د دوو ګناهونو د وجې عذاب شوی وو.

**وما يعذبان في كبير :** يعنې دوی دواړو ته د کومې غټې ګناه د وجې عذاب نه دی رسيدلی.

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۳۱۷،رقم الحديث:۲۱٦، ومسلم في الصحيح۱/۲٤۰ رقم الحديث:۱۱۱-۲۹۲، وابوداود ۱/۲۵ رقم الحديث :۲۰، والنسائي ۱/۲۸، رقم الحديث:۳۱ ، والترمذي ۱/۱۰۲ رقم الحديث :۷۰ ، وابن ماجة ۱/۱۲۵، رقم الحديث. ۳٤۷

**سوال** : اوس دلته دا اعتراض راغلی دی چې د متیازو نه ځان نه ساتل او چغلخوري کول خو کبیره دي دلته نفي څنګه شوې ده؟ دارنګه په بعضو روایتونو کې (**بلی انه لکبیر**) الفاظ راغلي دي نو دلته څنګه د کبیره نفي شوې ده؟.

**جواب** : ددې یو جواب دا دی چې کبیر د شاق په معنی سره دی لکه چې په قرآن کې دي (**وانها لکبیرة الا علی الخاشعین**) هلته د کبیره نه شاق او ګران مراد دی، مطلب دا دی چې دا ګناه اکبر که د نورو ګناهونو په نسبت دومره غټې نه دي مګر في نفسه غټې دي، یا دا مطلب دی چې ستا په نزد خو دا کار او دا ګناه دومره غټه نه ده مګر د الله په نزد غټه ده په ځانګړي طور کله چې پرې مداومت وکړی شي.

اوس دا شبه ده چې ددې ګناهونو د قبر د عذاب سره څه تعلق دی چې په قبر کې پرې عذاب مسلط کړی شو؟.د دې جواب دادی چې د متیازو نه ځان نه ساتل مونځ خرابوي، ځکه هر کله چې ظاهري طهارت نه وي نو مونځ نه کیږي او د مونځ حساب کتاب په قیامت کې د ټولو نه مخکې کیږي، او قبر د آخرت پیش خیمه او لومړی منزل دی نو د قبر نه عذاب شروع شو، همدارنګه د چغلخوری نه ځان ساتل باطني طهارت دی کله چې طهارت ضایع شو نو د قبر نه عذاب شروع شو، یا داسې پوهه شئ چې د چغلخوری نه فساد او فتنه راپورته کیږي د کوم د وجې چې قتل او قتال واقع کیږي او په قیامت کې د ټولو نه مخکې په حقوق العباد کې د ناحقه وینو حساب کیږي او قبر د آخرت لومړی منزل دی نو ددې ځای نه د حقوق الله او حقوق العباد حساب شروع شو. (المرقات ۵۶-۲/۵۷).

**ثم اخذ جریدة رطبة**: قاضي عیاض مالکي رحمه الله ویلي دي چې د کجورې شاخ یې دوه ټوټې کړ رسول الله صلی الله علیه وسلم یو یوه په قبر باندې خښه کړه دا پیغمبري شفاعت مخکې یو عمل وو چې ترڅو پورې خاخ لوند وي زما شفاعت به وي نو عذاب به نوي، نو دا پیغمبري خصوصیت شو، او د مسلم شریف په روایت کې دهغه تصریح ده چې دا شفاعت وو بل چا لره اختیار نشته چې دا عمل وکړي.علامه ابن حجر رحمه الله ویلي دي چې د خانبو نو دا کرل په یو سبب باندې محمول دي او د هغه یو علت وو لهذا دا پیغمبري خصوصیت نه وو، بعضو علماو لیکلي دي چې لوند خاخ د وچیدو پورې تسبیح وایي د کوم اثر چې د صاحب قبر په عذاب باندې شوی دی او تخفیف راغلی دی.همدارنګه بریده بن الخصیب رضی الله عنه د لوند خانبو په خپل قبر باندې د کرلو وصیت کړی وو لهذا دا په یوه سبب باندې محمول دی، نو دا یو علمي بحث وو لیکن نن سبا خلک چې په قبرونو باندې ګل شیندنه کوي او د ګلانو څادرونه ورباندې غوړوي دا هیڅکله هم ثابت نه دي، دا د نن سبا داسې رواجونه دي چې غیر مسلم خلک هم د مشهورو خلکو په قبرونو باندې ګلان اچوي یا د مسلمانانو مشران د غیر مسلمو په قبرونو باندې ګلان اچوي. دا ټول فضول او لغوه عمل دی ددې حدیث سره یې هیڅ تعلق نشته دی. (المرقات ۵۷-۲/۵۸).

علامه خطابي رَحِمَهُ اللَّهُ ويلي دي: **(ما يفعله الناس على القبور لا اصل له)** (نووي) (المرقات ۲/۵۸).
اوس خو په خلکو کې دومره غلو پيدا شوې چې کوم خلک دا کار نه کوي هغو ته وهابيان ويل کيږي او طعن وربانديې ويل کيږي، حالانکه که چيرته د رسول الله اتباع مقصود وي نو بيا د شاخ لګول په کار دي د ګلانو غوړول د کومه ځايه راغلي دي، رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خو د معذبينو په قبرونو باندې دا عمل کړى وو اونن سباد مقربينو سره دا عمل کول کيږي، دارنګه د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اصل متبعين صحابه کرام وو د هغوى نه د ګلانو غوړول او اچول هيڅکله ثابت نه دي، همدارنګه دا عمل د دې قبرونو نه بغير رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بل هيچيرته نه دى کړى، د دې وجې نه د بدعاتو دروازې بندولو د پاره او د دې نه د ځان ساتلو د پاره علماو منعه کړې تر څو چې خبره ګلونو . شالونو ، اميلونو او ديوالونو ته و نه رسيږي.

## د خلکو په لار کې متيازې کول د لعنت موجب دي

| |
|---|
| (۵) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ اتَّقُوا |
| دابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: تاسو د هغو دوه شيانو نه ځان وساتئ |
| اللَّاعِنَيْنِ قَالُوْا وَمَا اللَّاعِنَانِ يَا رَسُولَ اللهِ |
| کوم چې د لعنت سبب دي، صحابه کرامو عرض وکړو يا رسول الله ! هغه دوه شيان کوم دي؟ رسول الله |
| قَالَ الَّذِيْ يَتَخَلَّى فِيْ طَرِيْقِ النَّاسِ أَوْ فِيْ ظِلِّهِمْ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1]. |
| صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: يو د خلکو په لاره کې متيازې کول، دويم د خلکو د سوري لاندې متيازې کول. |

**توضيح**: **اللاعنين**: يعنې هغه دوه کارونه کوم چې د لعنت د پاره سبب او ذريعه جوړ شوي دي ګويا چې همدا دوه کارونه په خپله لعنت کوونکي جوړ شوي دي، په همدې وجه حامل او باعث ته د فاعل درجه ورکړى شوې ده که نه نو په اصل کې خو لعنت کوونکي هغه خلک دي کوم چې د تکليف په رسيدو سره کنځل کوي او لعنت وايي نو دا **(اسناد الى غير ما هو له)** جوړ شو ، صاحب ازهار ليکلي دي چې **(لاعن)** بروزن **(فاعل)** ملعون بر وزن **(مفعول)** په معنى سره دى. (المرقات ۲/۵۸).

**الذي يتخلى**: دلته مضاف محذوف دى اصل عبارت داسې دى **(اى تخلى الذى يتخلى)** او **تخلى** خالي کولو ته ويل کيږي مراد متيازې کول دي. (المرقات ۲/۵۹).

---

[1] أخرجه المسلم في الصحيح ١ ٢٢٦ رقم الحديث ٦٨-٢٦٩، وابو داود ١ ٢٨ رقم الحديث ٢٥، وأخرجه أحمد في المسند ٢/٣٧٢

**في طريق الناس**: ددې نه مراد عامې لارې دي په كومو باندې چې خلک تگ راتگ كوي. كه چيرته په صحراء كې كومه لار وه هغه مراد نه ده، دارنگه په دې سره هغه لار مراد ده كومه چې عامه وي ځكه چې ديو چا په مملوک لار كې د هغه د اجازې نه بغير متيازې كول حرام دي. (المرقات ۲/۵۸).

**او في ظلهم**: دلته او د تنويع دپاره دی او ظل د مستظل په معنی سره دی. يعنې د سوري لرونكې ونې لاندې چيرته چې خلک سوري ته كيني هلته قضاء حاجت كول د لعنت باعث دی، يعنې كه كوم كس داسې حركت كوونكي ته كنځل كوي يا په هغه باندې لعنت وايي نو دا كس د دې مستحق دی. د سوري لرونكې ونې نه په غير د ميوه دارې ونې هم دا حكم دی، دارنگه ددې نه هغه ځايونه هم مراد دي چيرته چې خلک د گرمی نه د بچ كيدو دپاره په سوري كې كيني، يا د عامو مجلسونو دپاره هلته كيني، دارنگه د اوبو ځايونه (گودر) پاركونه وغيره همدا طورتهول ځايونه مراد دي، بعضو علماؤ ليكلي دي چې په دې كې هغه بيت الخلاء هم راغلې ده په كومه كې چې د فلش سسټم نه وي او متيازې په هغې پرتې وي په كومو سره چې نورو ته ضرر رسيږي، هو كله چې مجبوري وي نو بيا په دې كې تخفيف د مجبوری د وجې دی. (المرقات ۲/۵۹).

## په ښي لاس سره د ذكر مسه كول منعه دي

| |
|---|
| (۶) وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا شَرِبَ أَحَدُكُمْ |
| دابو قتاده رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: كله چې اوبه وڅكي په تاسو كې كوم |
| فَلَا يَتَنَفَّسْ فِي الْإِنَاءِ وَ إِذَا أَتَى الْخَلَاءَ فَلَا يَمَسَّ ذَكَرَهُ |
| كس نو (داوبو څكلو) په لوښي كې دې ساه نه اخلي او كله چې متيازو ته لاړ شي نو نه دې مسه كوي ذكر |
| بِيَمِينِهِ وَلَا يَتَمَسَّحْ بِيَمِينِهِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| خپل په ښي لاس سره او نه دې په ښي لاس استنجاء كوي. |
| (۷) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّأَ |
| دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: كوم كس چې اودس كوي نو هغه |
| فَلْيَسْتَنْثِرْ وَ مَنِ اسْتَجْمَرَ |
| ته په كار دي چې هغه پوزه هم سوڼ كړي، او كوم كس (چې د بولو كولو وروسته په لوټه) استنجاء كوي |

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۱/۲۵۳ رقم الحديث: ۱۵۳، ومسلم في الصحيح رقم الحديث ۶۳-۲۶۷، وابو داود ۱/۳۱ رقم الحديث: ۳۱.

فَلْيُوتِرْ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1].

هغه ته په كار دي چې طاق لوټي را واخلي (يعنې درې يا پنځه يا اوه).

(۸) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ الْخَلَاءَ

د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به چې كله د متيازو كولو د پاره تشريف وړلو

فَأَحْمِلُ أَنَا وَ غُلَامٌ إِدَاوَةً مِنْ مَاءٍ وَ

نو ما او يوه هلك (يعنې حضرت بلال رضي الله عنه يا حضرت ابن مسعود رضي الله عنه) به په يوه لوټه كې اوبه او

عَنَزَةً يَسْتَنْجِي بِالْمَاءِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2].

نيزه اخيستله رسول الله صلى الله عليه وسلم (په لوټو باندې د صفائي كولو نه وروسته) په اوبو باندې استنجاء كوله

**توضيح**: **غلام**: ددې نه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه مراد دی. (المرقات ۲/٦۱).

**اداوة**: د څرمنې لوټې ته ويل كيږي، يعنې د څرمنې لوښی. (المرقات ۲/٦۱).

**عنزة**: دا هغه امسا ته ويل كيږي كومه چې د لښتې نه لږ غټه او د نيزې نه وړه وي، هغه د كوم ضرورت د پاره يا د مونځ په وخت كې د سترې د پاره به موو وړله. (المرقات ۲/٦۱).

ددې حديث نه معلومه شوه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم كله اوبه استعمال كړې او كله يې صرف لوټې استعمال كړې او كله يې دواړه استعمال كړي، دلته د اوبو وضاحت دی باقي ټول جائز دي البته **جمع بين الماء والحجر** افضل دي، بيا د اوبو استعمال افضل دی او په آخر كې صرف لوټې دي كوم خلك چې صرف په اوبو باندې استنجاء كول ناجائز ګڼي هغوی په غلطه دي.

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲٦۲/۱، رقم الحديث ۱٦۱، ومسلم في الصحيح ۲۱۲/۱ رقم الحديث: ۲۲-۲۳۷، والترمذي ۴۰/۱ رقم الحديث ۲۷، وابن ماجة ۱۴۳/۱، رقم الحديث ۴۰۹

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۵۰/۱، رقم الحديث ۱۵۰، ومسلم في الصحيح ۲۲۷/۱ رقم الحديث: ۷۰-۲۷۱، والنسائي ۴۲/۱، رقم الحديث: ۴۵.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## قابل احترام شی بیت الخلاء ته مه وړئ

| |
|---|
| (۹) عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ |
| د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې کله به رسول الله صلی الله علیه وسلم بیت الخلاء ته تشریف وړلو |
| نَزَعَ خَاتِمَهُ .(۱) |
| نو خپله ګوتمه به يې لرې کوله |
| وَقَالَ هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ وَقَالَ أَبُو دَاوُدَ هٰذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ وَفِي رِوَايَتِهِ وَضَعَ بَدَلَ نَزَعَ. |
| او ترمذي ويلي دي چې دا حديث منکر دی دارنګه د دې روايت کې د **نزع** لفظ په ځای د **وضع** لفظ دی. |

**توضیح: لزع خاتمه**: په بعضو روایتونو کې د **وضع خاتمه** الفاظ راغلي دي په دې کې هیڅ فرق نشته.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ګوتمه کې **محمد رسول الله** عبارت په دې شان نقش شوی وو چې په پورتني سطر کې د الله لفظ وو بیا د رسول لفظ وو او د ټولو نه لاندې د محمد لفظ وو. نو ځکه یې د قضاء حاجت په وخت کې ویستله، د دې نه معلومه شوه چې هر هغه شی په کوم چې آیت لیکل شوی وي یا د کوم رسول یا فرښتې نوم وي یا د قرآن یا د الله د نومونو نه کوم نوم وي د هغه بیت الخلاء ته وړل مکروه دي، خو که چیرته د تعویذ په شکل کې کوم شی پټ شوی وي نو د هغه جدا حکم دی، ابو داؤد د دې حدیث ته منکر ویلي دي مګر علماؤ ویلي دي چې دا حدیث د دلیل د پاره صحیح دی. (المرقات ۲/۶۲).

| |
|---|
| (۱۰) وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ الْبَرَازَ |
| د حضرت جابر رضي الله عنه نه روایت دی چې کله به رسول الله صلی الله علیه وسلم صحراء ته د قضاء حاجت د پاره تللو |
| انْطَلَقَ حَتَّى لَا يَرَاهُ أَحَدٌ .(۲) |
| نو دومره لرې به تللو چې دوي صلی الله علیه وسلم به هیچا نه لیدلو. |

---

(۱) أخرجه ابو داود في السنن ۲۵/۱ رقم الحديث ۱۹، وأخرجه الترمذي في السنن ۲۰۱/۴، رقم الحديث ۲۰، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱۱۰/۱ رقم الحديث: ۳۰۳.

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱۴/۱ رقم الحديث: ۲، وأخرجه الترمذي في السنن ۳۱/۱، رقم الحديث ۲۰، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱۲۱/۱ رقم الحديث: ۳۳۵.

**توضیح**: البراز : دا لفظ د باء په فتحې سره دی په خلاصه فضاء ته د وتلو په معنی دی، دا د قضاء حاجت نه کنایه ده، د بولو لفظ چونکه پسندیده نه دی لهذا په هره ژبه کې خلک دا په کنایه الفاظو سره استعمالوي بلکې د قضاء حاجت د وجې د هغه ځای نوم هم بدلوي مثلا پخوا یې نوم ټټی وه هغه مکروه شو نو بیت الخلاء شوه، بیا طهارت خانه بیا سنډاس بیا باتهروم شو اوس لټرین پاتې شو، براز د باء د کسرې سره ویل بعضو ورته غلط ویلي دي چې هغه د جګړې په معنی دی مګر هغه هم صحیح دی، هو فتحه ډیره بهتره ده، د قضاء حاجت دپاره لرې تلل د رسول الله ﷺ د حیاء او کریمانه اخلاقو برخه وه کله به چې بیت الخلاء په کور کې نه وه. (المرقات ۲/٦۲).

## په نرم ځای کې د متیازو کول په کار دي

| |
|---|
| (۱۱) وَعَنْ أَبِي مُوسٰى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ |
| دابو موسی رضي الله عنه نه روایت دی چې یوه ورځ زه د رسول الله ﷺ سره وم رسول الله ﷺ |
| فَأَرَادَ أَنْ يَبُولَ فَأَتٰى دَمِثًا فِي أَصْلِ جِدَارٍ |
| د متیازو کولو اراده وکړه نو راغې نبي علیه السلام د یو دیوال په بیخ کې (یعنې هغه ته نږدې) نرمې ځمکې |
| فَبَالَ قَالَ إِذَا |
| ته او متیازې یې وکړې بیا (د متیازو نه دفارغیدو نه وروسته) رسول الله ﷺ وفرمایل کله چې په |
| أَرَادَ أَحَدُكُمْ أَنْ يَبُولَ فَلْيَرْتَدْ لِبَوْلِهِ [1]. |
| تاسو کې یو څوک د متیازو کولو اراده وکړي نو هغه ته په کار دي چې هغه د متیازو دپاره نرمه ځمکه وګوري |

**توضیح**: دمثا : د دال په فتحې او د میم په کسرې سره د سمع یسمع نه نرمې زمکې ته ویل کیږي، دا لفظ صفت دی او موصوف یې مکانا دی، (المرقات ۲/٦٤).

**فليرتد**: دا د ارتاد یرتاد نه د طلب کولو په معنی سره دی، د نرم ځای لټول د دې دپاره وو چې څاڅکي په بدن باندې ونه لګیږي او د لوړوالي نه متیازې د پښو طرف ته رانه شي، د دې وجې نه په لرګي سره به رسول الله ﷺ سخته زمکه نرمه کړه او بیا به یې متیازې کولې، دلته دا شبه ده چې د بل چا د دیوال خواته متیازې کول روا نه دی په دې سره د دیوال بیخ او بنیاد خرابیږي نو دوي ﷺ څنګه وکړې؟

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۱۵ رقم الحديث: ۳. وأحمد في المسند ۳۹٦/٤

د دې جواب دا دی چې دا عام ځای وو نو هغه ځای له خلکو دلته متیازې کولې. یا شاید د دیوال نه همدغه ځای په یو څه فاصله کې وو. یا دا جواب دی چې رسول الله ﷺ په فاصله کې متیازې وکړې. (المرقات ۲/٦۴).

| |
|---|
| (۱۲) وَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا أَرَادَ الْحَاجَةَ |
| د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی، چې کله به رسول الله ﷺ د استنجاء کولو اراده وکړه نو |
| لَمْ يَرْفَعْ ثَوْبَهُ حَتَّى يَدْنُوَ مِنَ الْأَرْضِ[1]. |
| تر څو به چې (د کښیناستو د پاره) زمکې ته نږدې نه شو نو جامې به یې نه اوچتولې. |
| (۱۳) وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: (د تعلیم او نصیحت په باره کې) |
| إِنَّمَا أَنَا لَكُمْ مِثْلُ الْوَالِدِ لِوَلَدِهِ أُعَلِّمُكُمْ إِذَا أَتَيْتُمُ الْغَائِطَ |
| زه ستاسو د پاره داسې یم لکه پلار د زوی د پاره لهذا زه یې در زده کوم چې تاسو کله متیازو ته لاړ شئ نو |
| فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ وَلَا تَسْتَدْبِرُوهَا وَ أَمَرَ |
| د قبلې طرف ته مه مخ کوئ او مه ورته شا کوئ او امر وکړو رسول الله ﷺ (د متیازو وروسته) د |
| بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ وَ نَهَى عَنِ الرَّوْثِ وَ الرِّمَّةِ |
| استنجاء کولو په دریو لوټو (کاڼو) سره او منع یې وکړه دغو شایو او هډوکو سره د استنجاء کولو نه |
| وَ نَهَى أَنْ يَسْتَطِيبَ الرَّجُلُ بِيَمِينِهِ[2]. |
| دا رنګه رسول الله ﷺ د دې نه هم منعه وکړه چې کوم کس په ښي لاس سره استنجاء وکړي. |

## ښي لاس نه د متیازو د پاره نه دي د خوراک د پاره دي

| |
|---|
| (۱۴) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَتْ يَدُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْيُمْنَى لِطُهُورِهِ وَطَعَامِهِ |
| د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی چې د رسول الله ﷺ ښی لاس د اودس کولو او خوراک د پاره |

(۱) أخرجه الترمذي ۲۱/۱ ، وأخرجه أبو داود عن ابن عمر ۲۱/۱ رقم الحديث ۱۴ ، والدارمي ۱۷۸/۱ ، رقم الحديث ٦٦٦.

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۱۴/۱ رقم الحديث ۳۱۳ ، وأخرجه أبو داود في السنن ۱۸/۱ ، رقم الحديث ۸

وَ كَانَتْ يَدُهُ الْيُسْرَى لِخَلَائِهِ وَمَا كَانَ مِنْ أَذًى[1]

او د هغوی چپ لاس به د استنجاء او هر مکروه کار د استعمال دپاره وو.

**توضيح: اليمنی لطهوره:** اسلام يو جامع مذهب دی او د کامل مکمل ملکی د ژوند کمله ضابطه ده. په هغه کې د ژوند د هرې شعبې د هرې مسئلې حل موجود دی. په دې سلسله کې په ډيرو احاديثو کې ويل شوي دي چې د انسان د ښي او چپ لاس جدا جدا فرائض دي. لهذا حضرت عائشه رضي الله عنها ويلي دي چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم ښی لاس د خوراک څښاک او هر نيک او ښه کار دپاره وو او چپ لاس به د ستنجاء او هر هغه کار دپاره وو کوم به چې نه خوښولو. (المرقات ٢٦٥).

شريعت مطهره د انساني طبيعت سره برابر تللی دی. ځکه طبعا انسان په خوراک څښاک کولو کې فرق کول غواړي او د هيڅ انسان طبيعت دا نه غواړي چې هغه لاس او س مې چې کوم لاس په متيازو ککړ کړی وو او س چې هغه خوله ته داخلوم نو د خوراک خوند په دې سره تبه کيږي. په دې وجه چپ لاس د نا خوښۍ د وجې ورته د شيطان لاس ويل شوی دی. يعنې د شيطان په خوښو کارونو کې همدغه لاس استعمالولی شي. او س د متيازو، بولو، د پوزې پاکوالی او د بل گنده شي په پورته کولو کې چپ لاس استعمالولی شي او ښی لاس د نورو ښو کارونو دپاره دی ترڅو چې د هر اندام دپاره جدا جدا کار وي. د کومو خلکو چې طبيعت شيطاني وي هغوی ښی لاس خوښوي په خوراک څښاک او متيازو کې برابر استعمالوي هغوی په گنده او ښو کارونو کې د ښي او گس لاس فرق نه کوي. شريعت د انساني شرافت ډير زيات خيال ساتلی دی، د رحمن ټول نظام د طهارت دی او رحمن د هغه حکم ورکړی دی او د شيطان ټول نظام نجاست دی او هغه خبيث ددې حکم ورکړی دی.

(۱۵) وَ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا ذَهَبَ أَحَدُكُمْ إِلَى

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کله چې لاړ شي يو په تاسو کې د

الْغَائِطِ فَلْيَذْهَبْ مَعَهُ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ يَسْتَطِيبُ بِهِنَّ فَإِنَّهَا تُجْزِئُ عَنْهُ.[1]

متيازو دپاره نو هغه دې ويسي د ځان سره درې کاڼي (يا لوټې) ځکه چې دا کاڼي کافي کيږي دا وبونه.

---

[1] اخرجه ابو داود في السنن ١ / ٣٢ رقم الحديث ٣٣، واحمد في مسنده ٦ / ٢٦٥

[1] اخرجه ابو داود في السنن ١ / ٣٧ رقم الحديث ٤٠، واحمد في مسنده ٦ / ١٠٨

## په كومو شيانو استنجاء روا او په كومو ناروا ده

| |
|---|
| (۱۲) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسْتَنْجُوا |
| د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: تاسو استنجاء مه كوئ |
| بِالرَّوْثِ وَلَا بِالْعِظَامِ فَإِنَّهَا زَادُ إِخْوَانِكُمْ مِنَ الْجِنِّ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ. إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ |
| په غوشايو او هډوكو سره ځكه چې (هډوكي) ستاسو د وروڼو پيريانو خوراک دی، مګر نسائي نه دی ذكر |
| زَادُ إِخْوَانِكُمْ مِنَ الْجِنِّ)[1]. |
| كړي (زاد اخوانكم من الجن) الفاظ. |

**توضيح**: روث او رجيع د خوشايانو په معنی سره دی مګر روث ليد يعني د آسونو فضلاتو ته ويل كيږي او بعرة د ميږو، بزو او اوښانو فضلاتو ته ويل كيږي او سرقين د ميښو، غواګانو وغيرو فضلاتو ته ويل كيږي، د رجيع تشريح تيره شوې ده چې دا عام دی. (المرقات ۶۶-۲/۶۷).
په خوشيانو سره د استنجاء ممانعت خو يوه وجه دا ده چې په حديث كې راغلي دي چې ستاسو د وروڼو پيريانو خوراک دی، په دې كې دا وضاحت هم راغلی دی چې په خوشيانو كې دتنه چې كومې دانې پيدا كيږي هغه پيريان خوري، يا په بعضو احاديثو كې راغلي دي چې خوشايي د پيريانو د ځناورانو ګياه او وانبه دي نو دلته د پيريانو طرف ته نسبت د ادنی ملابست د وجې دی، دلته دا شبه كيدی شي چې هر كله د پيريانو او انسانانو شريعت يو دی نو بيا د پيريانو دپاره خوشايي څنګه روا شول كوم چې حرام شي دی، د دې خو دوه جوابونه پورته تير شوي دي، دريم جواب دا دی چې په بعضو روايتونو كې راغلي دي چې خوشايي ورته په كجورو باندې بدليږي، شيخ الهند رحمه الله دا جواب وركړی دی چې په يو شريعت كې د مختلفو اصنافو خلكو په حق كې حكم بدل شوی دی لكه څرنګه چې د سړيو دپاره وريښمين لباس حرام دی او د ښځو دپاره روا دی نو همدارنګه د پيريانو دپاره خوشايي روا دي، د انسانانو دپاره حرام دي.

**فائده**: د دې د ضمير په مرجع كې كلام دی چې ضمير مفرد ولې دی، سره د دې چې مخكې دوه شيان دي، د دې يو جواب دا دی چې ضمير د عظام طرف ته راجع دی او عظام اګر كه جمع ده ليكن د طعام په معنی سره دی نو د ضمير راجع كول صحيح شول، دويم دا دی چې د هر يو ته ضمير راجع شوی دی يعني د هر يو مذكور همدا حكم دی، بل دا چې په مرقاة كې ملا قاري رحمه الله كومه نسخه چې نقل كړې ده په هغې

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۲۹/۱ رقم الحديث: ۱۸، والنسائي في السنن ۱/ ۳۷ رقم الحديث: ۳۹.

کې انها ضمير مؤنث دی. (المرقات ٦٦/٢، الکاشف ٤٩/٢).

**ولا بالعظام**: په هډوکي سره د استنجاء کولو د ممانعت وجوهات او شرح د دې باب په دويم نمبر حديث کې تير شوي دي، دلته دا خبره په ياد ولرئ چې له بعضو روايتونو نه معلومه شوې ده چې د پيريانو دپاره په دې هډوکو باندې نوې غوښه پيدا کيږي او دوی يې هماغه خوري، او په بعضو روايتونو کې صرف د بوی کولو ذکر راغلی دی، په سوات کې زما محترم استاذ مولانا فضل محمد رَحِمَهُ اللّٰهُ د مشکوة شريف د درس په وخت کې ويل چې ما د يو پيري نه پوښتنه وکړه نو هغه وويل چې مونږ صرف په بوی کولو سره مړيږو نوې غوښه نه راځي. (المرقات ٦٦-٦٧/٢).

په بعضو روايتونو کې د کوټلې (سکرو) نه هم منعه راغلې ده لکه چې د همدې باب په اخيرني حديث نمبر نهه ديرش کې دي، په هغه کې کوټله د پيريانو خوراک ګرځول شوی دی نو د دې مطلب دا دی چې هغوی ترې فائده اخلي لکه څرنګه چې دخوراک په پخولوکې داور بلولو او رڼائي کولوکې استعمالولی شي نو رزقاً په معنی د انتفاعاً دی، پيريان هم عجيب مخلوق دی.

**قاعده**: يوه جامع قاعده زده کړئ چې استنجاء په کومو کومو شيانو سره روا ده نو فرمايي: **يجوز الاستنجاء بكل جامد طاهر منق قالع للنجاسة غير موذ ليس بذی حرمة ولا شرف ولا يتعلق به حق الغير**(شرح نقايه ملا علي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ ج ١ ص٤٩). په دې عبارت کې په **ليس بذی حرمة** قيد سره هغه کپړه ووتله کومه چې د يو چا په کار راتلی شي همدارنګه مالوچ هم ووتل، همدارنګه د يو قسم غله د پخو شوو دانو نه خالي برخه هم ووتله په کومو سره چې عموما ښځې ماشومان صفا کوي، همدارنګه هغه ټول کاغذونه هم ووتل کوم چې په يو لحاظ قابل احترام وي، خو کوم کاغذونه چې د صفائي دپاره جوړ شوي وي لکه نن سبا ټوائلټ پيپر وغيره هغه د دې قاعدې نه مستثنی دي.

## ګيره کې غوټه جوړول منعه دي

| |
|---|
| (١٧) وَعَنْ رُوَيْفِعِ بْنِ ثَابِتٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا رُوَيْفِعُ لَعَلَّ |
| د حضرت رويفع بن ثابت رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: اې رويفعه! شايد |
| الْحَيَاةَ سَتَطُولُ بِكَ بَعْدِي فَأَخْبِرِ النَّاسَ أَنَّ مَنْ عَقَدَ لِحْيَتَهُ أَوْ تَقَلَّدَ |
| ستاژوند اوږد شي لهذا ته خلک خبردار کړه چې کوم کس په خپله ږيره کې غوټه جوړوي يا واچوي په غاړه |
| وَتَرًا أَوِ اسْتَنْجَى بِرَجِيعِ دَابَّةٍ أَوْ عَظْمٍ |
| کې د تار اميل (هار) واچوي يا د څناور په نجاست (خوشائي وغيره) او هډوکي سره استنجاء وکړي نو |

| |
|---|
| فَإِنَّ مُحَمَّدًا مِنْهُ بَرِيءٌ[1]. |
| محمد ﷺ د هغه نه بيزاره دی. |

**توضيح: من عقد لحية**: په جاهليت کې د کفارو عادت وو چې کوم کس به واده وکړ نو ږيرې ته به يې يوه غوټه واچوله، په دويم واده به يې بله غوټه ور واچوله ددې نه منعه شوې ده چې دا د جاهليت يو بې بنياده رواج دی او د هغو سره مشابهت دی، يا به په جاهليت کې خلکو ږيرې تخته کړې ښکته به يې نه ويستلې ددې نه منعه شوې ده، ځکه چې په ږيره کې سنت طريقه د هغې خلاص پرېښودل دي. لهذا نن سبا د مسلمانانو او د سيکهانو ترمينځ همدا فرق دی او په همدې تناظر سره همدا حکم يو عالمي حيثيت جوړ شوی دی او د مسلمانانو پيژندنه په مسنونه ږيرې سره کيدلی شي. (المرقات۲/٦٧).

**عقد وترا**: د دې يو مطلب دا دی چې په جاهليت کې خلکو د نظر او آفاتو دفع کولو دپاره په غاړه کې تارونه اچول او ګنده تعويذونه به يې د آسونو او ماشومانو په غاړو کې اچول ددې نه منعه راغلې ده، ځکه چې په دې کې د عقيدې ضعف او د شرک قوي امکان وو او د اهل شرک سره مشابهت هم وو. بعضو علماؤ د وتر نه د کمان هغه چلې مراد کړې دی کوم چې د تسمو نه جوړ شوي وو او هغه د آسونو په غاړو کې د دفع آفات دپاره اچول شوي وو په هغه کې خالص شرک وو نو منعه ترې وشوه. (المرقات۲/٦٨).

**بريء**: يعنې ددې کس سره د محمد ﷺ او شريعت هيڅ علاقه نشته بلکې د هغه نه بيزار دي، او که چيرته هغه يې حلال وګڼي نو کافر شو که نه نو صرف په يوه عمل سره رسول الله ﷺ د هغه نه بيزاره دی د ټول اسلام بيزاري مراد نه ده. (المرقات۲/٦٨).

## په استنجاء کې د دريو کاڼو استعمال مستحب دی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| (۱۸) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اكْتَحَلَ | | | | | |
| دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم کس چې رانجه لګوي هغه ته | | | | | |
| فَلْيُوتِرْ | مَنْ | فَعَلَ | فَقَدْ | أَحْسَنَ | |
| په کار دي چې طاق سلائي ولګوي چا چې همداسې وکړو (يعنې طاق سلائي يې ولګونه) هغه ښه وکړل | | | | | |

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۳۴، رقم الحديث ۳۶، والنسائي ۸/۱۳۵، رقم الحديث ۵۰٦٧.

| |
|---|
| وَ مَنْ لَا فَلَا حَرَجَ وَ مَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوتِرْ |
| او چا چې همداسې ونه کړل نو هيڅ ګناه نشته او کوم کس چې استنجا، کوي هغه ته په کار دي چې طاق لوټي |
| مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَ مَنْ لَا |
| استعمال کړي (يعني درې يا پنځه يا اوه) چا چې داسې وکړل هغه ښه وکړل او چا چې داسې ونه کړل نو |
| فَلَا حَرَجَ وَ مَنْ أَكَلَ فَمَا تَخَلَّلَ |
| هيڅ ګناه نشته او کوم کس چې کوم شی خوري نو کوم شی چې د خلال په ذريعه ووځي نو هغه ته په کار دي |
| فَيَلْفِظْ وَ مَا لَاكَ بِلِسَانِهِ فَلْيَبْتَلِعْ مَنْ فَعَلَ |
| چې هغه وغورځوي او کوم شی چې په ژبې سره ووځي نو هغه ته په کار دي چې تير يې کړي چا چې داسې |
| فَقَدْ أَحْسَنَ وَ مَنْ لَا فَلَا حَرَجَ وَ مَنْ أَتَى الْغَائِطَ |
| وکړل ښه يې وکړل او چا چې داسې ونه کړل نو هيڅ ګناه نشته، او کوم کس چې د قضاء حاجت د پاره لاړ شي |
| فَلْيَسْتَتِرْ فَإِنْ لَمْ يَجِدْ إِلَّا أَنْ يَجْمَعَ |
| نو هغه ته په کار دي چې پرده وکړي او که چيرته د پردې کولو کوم شی پيدا نه شي (نو کم از کم شګه دې جمع |
| كَثِيبًا مِنْ رَمْلٍ فَلْيَسْتَدْبِرْهُ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَلْعَبُ بِمَقَاعِدِ بَنِي آدَمَ مَنْ |
| کړي) د هغې ټوپې دې شاته کړي ځکه چې شيطان د انسان د متيازو د ځای سره لوبې کوي چا چې داسې |
| فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ [1]. |
| وکړل نو ښه يې وکړل او چا چې داسې ونه کړل نو هيڅ ګناه نشته. |

**توضيح: من استجمر**: استجمار د استنجاء بالحجر په معنی دی او استجمار د رمی جمرات د پاره هم راغلی دی او چې په ګوټو کې عود و اچول شي د خوشبويي کولو په معنی سره هم راغلی دی د لته په استنجاء کې د کاڼو استعمالول مراد دي. (المرقات ۲/۶۹).

**تخلل**: يعني د لرګي په استعمالولو سره چې کومه بوټی بهر راووځي هغه دې نه خوري (المرقات ۲/۶۹)

**يلفظ**: د غورځولو په معنی سره دی او (لاک) يعني چې په ژبه راويستل شي نو هغه دې وخوري، ځکه

چې په اول صورت کې بوتي. دغابنونوپه ککړوالي سره ککړه شوې ده په زورراويستل شوې ده اوپه دويم صورت کې داسې نه ده، نو ککړه شوې بوتي. دې نه خوري غير ککړه دې و خوري(المرقات ۲/۶۹)

**کثيبا :** د شګو توپې مراد ده دې دپاره چې پرده وکړې شي. (المرقات ۲/۶۹).

**يلعب :** يعنې شيطان د متيازو کوونکي په زړه کې وسوسه اچوي چې اوګوره! د شا نه هغه کس راغي او د بل چا په زړه کې وسوسه اچوي چې وګوره دي څنګه لوڅ لغړ ناست دی. (المرقات ۲/۷۰).

## په غسل خانه کې د متيازو کولو حکم

**(۱۹) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَبُولَنَّ**

د عبدالله بن مغفل رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : متيازې دې نه کوي کوم

**أَحَدُكُمْ فِي مُسْتَحَمِّهِ ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيهِ أَوْ يَتَوَضَّأُ فِيهِ**

کس په خپله غسل خانه کې په کومه کې چې بيا هغه لامبي يا اودس په کې کوي ( يعنې داد عقل نه لرې

**فَإِنَّ عَامَّةَ**

ده چې انسان دلامبلو په ځای کې متيازې وکړي او بيا هلته لامبي او اودس په کې کوي) ځکه چې زياتره

**الْوَسْوَاسِ مِنْهُ**[1] .(رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، إِلَّا أَنَّهُمَا لَمْ يَذْكُرَا ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيهِ أَوْ يَتَوَضَّأُ فِيهِ).

وسوسې ددې نه پيدا کيږي ، ترمذي او نسائي د **ثم يغتسل فيه او يتوضأ فيه** الفاظ نه دي ذکر کړي.

**توضيح : في مستحمه :** مستحم د حميم نه مشتق دی د کوم معنی چې د ګرمو اوبو ده او چونکه په غسل خانه کې عموما ګرمې اوبه وي نو ځکه ورته مستحم وويل شول، بيا دا اطلاق عام شو او هر رنګه غسل خانې دپاره دپاره استعمال شو برابره خبره ده که اوبه ګرمې وي که يخې وي. (المرقات ۲/۷۰).

**فان عامة :** عامه د کوم شي غټې برخې يا د ټول شي دپاره استعماليږي، نحاة ددې لفظ د حال په طور استعمال کړی دی او د اضافت سره د هغه استعمال نه دی منل شوی، ليکن صاحب شريعت افصح العرب صلی الله علیه وسلم هغه استعمال کړی دی نو بيا د نحاتو خبرې کولو ګنجايش نشته ، علامه تفتازاني رحمه الله د شرح مقاصد په خطبه کې ليکلي دي چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه هم هغه د اضافت سره استعمال کړی دی. (المرقات ۲/۷۱).

---

(۱) اخرجه أبو داود في السنن ۱/۲۹ ، رقم الحديث :۲۷ ، وابن ماجه ۱/۱۱۱، رقم الحديث ۳۰۴ .

**الوسواس** : قلبي وسوسې او حديث النفس ته ويل شوي دي، بعضو حضراتو د الوسواس نه يو قسم ليونتوب مراد کړی دی کوم ته چې ماليخوليا (جنون، وحشت، خفقان) ويل شوی دی، بعضو ددې نه نسيان مراد کړی دی، حضرت شاه انور شاه کشميري رَحِمَهُ اللهُ يې ترجمه د پيريانو په چيړ چاړ سره کړې ده، په غسل خانه کې د متيازو سره متعلق د فقهاو درې قولونه دي :(۱) د ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ په نزد په غسل خانه کې مطلقا د متيازو کول ناروا دي.(۲) او د بعضو علماؤ په نزد مطلقا مکروه دي.(۳) د جمهورو په نزد په دې کې تفصيل دی چې که چيرته په غسل خانه کې منفذ وو چې سمدستي اوبه وتلې او زمکه هم پخه شوې وه نو په هغې کې متيازې کول روا دي او که چيرته زمکه نرمه او خامه وه او د متيازو وتلو دپاره لار او منفذه هم نه وه نو په هغې کې بيا متيازې کول مکروه تحريمي دي، ځکه چې په بدن باندې د څاڅکو لګيدلو خطر دی، د محاکمې او پريکړې والا خبره دا ده چې په کوم صورت کې د څاڅکو الوتلو ويره وي هلته د متيازو کول مکروه تحريمي دي، او چيرته چې انديښنه نشته هلته مکروه تنزيهي دي، ځکه چې په حديث کې د کوم تفصيل نه بغير ممانعت راغلی دی نو د يو نه يو قسم کراهيت نه خالي نه دي ځکه چې داموجب نسيان دی اودې ته تاثيربالخاصه ويل شوي چې ددې عمل اثرهمدا دی، اوس که چيرته سبب ظاهر شو لکه د اور اثر سوځول دي نو د هغه سبب طرف ته نسبت کول روا دي اوکه چيرته سبب خفي وُنو دهغه طرف ته نسبت کول روانه دي بلکې دشرک خطر دی(المرقات۲/۷۱)

**ربنا الله لاشريک له** : دا جمله په مشکوة کې نشته بلکې په ترمذي کې ده او دا ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ د دې روايت د اوريدو نه وروسته ارشاد کړې، مطلب دا دی چې په غسل خانه کې د متيازو کول د وسوسې پيدا کيدو کې حقيقي سبب ګڼل شرک دی او زمونږ د رب سره هيڅ شريک نشته ، اوس په دې صورت کې د حديث سره معارضه ده مګر حقيقةً معارضه نشته، ځکه چې هغه خو ناروا نه ده بلکې صحابو او تابعينو خو صورةً معارضه هم برداشت کړې نه ده او د داسې کس سره يې مقاطعه کړی دی، إمام ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ ته شايد حديث رسيدلی نه وي نو ځکه يې داسې وفرمايل، يا د ده د قول مطلب دا دی چې که چيرته بول فی المغتسل مؤثر حقيقي وګڼل شي نو دا شرک دی او الله تعالی د شرک نه پاک دی.

**ثم يغتسل فيه** : په دې حديث کې دا **ثم** استبعاديه دی چې عجيبه خبره ده اول په دې کې متيازې کوي بيا په هغې کې اودس هم کوي او غسل هم په کې کوي لکه څرنګه چې په آيت ﴿ثُمَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ﴾ کې **ثم** د استبعاد او تعجب په ځای کې استعمال شوی دی.

**او يتوضأ** : دلته او د تنويع د پاره دی. (المرقات ۲/۷۰).

(۲۰) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَرْجِسَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي جُحْرٍ[1].

د عبدالله بن سرجس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: متيازې دې نه کوي په تاسو کې کوم کس په سوري (سوړه) کې.

**توضيح: في جحر**: جحر، ضمې جيم بيا حاء ده سوري (سوړې) ته ويل کيږي، په سوري کې د متيازو کولو ممانعت ددې وجې نه دى چې هلته ډير خطرونه دي، مثلاً هسې نه چې مار لړم وغيره د سوري نه راووځي او ټک ورکړي، دا ځکه په دې سوړو کې زياتره وخت د پيريانو کورونه وي هغوى بيا د ضرر رسولو د وجې نه را ووځي، لکه چې سعد بن عباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دارنګه واقعه کې پيريانو په غيشي وويشتلو او شهيد يې کړو (المرقات ۲/۷۲). او بيا يې په غائبانه طور وويل:

نحن قتلنا سيد الخزرج سعد بن عباده ❁ رميناه بسهم فلم نخطئ فؤاده

مونږ د خزرج قبيلې سردار سعد بن عبادة ووژلو مونږ هغه داسې په غيشي وويشتلو کوم چې نيغ په زړه ولګيده او په کې ننوت. (المرقات ۲/۷۲).

(۲۱) وَعَنْ مُعَاذٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّقُوا الْمَلَاعِنَ الثَّلَاثَةَ الْبَرَازَ فِي الْمَوَارِدِ وَ قَارِعَةِ الطَّرِيقِ وَ الظِّلِّ[2].

د معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: تاسو ځان وساتئ د هغه دريو شيانو نه چې قابل دلعنت وي: په ګودرونو کې دمتيازو کولو نه، دلارې په مينځ کې، په سوري کې دمتيازو کولو نه

## د قضاء حاجت په وخت کې خبرې کول منعه دي

(۲۲) وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَخْرُجِ الرَّجُلَانِ يَضْرِبَانِ الْغَائِطَ كَاشِفَيْنِ عَنْ عَوْرَتِهِمَا يَتَحَدَّثَانِ

د ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: نه دې وځي دوه کسه (يو ځاى) د متيازو دپاره (په داسې حالت کې) چې دواړو خپلې شرمګاه لغړې کړې وي او خبرې سره کوي

(۱) اخرجه ابو داود في السنن ۳۰/۱، رقم الحديث ۲۹، واحمد في مسنده ۸۲/۵.

(۲) اخرجه ابو داود في السنن ۲۸/۱، رقم الحديث ۲۶، وابن ماجه في السنن ۱۱۹/۱.

| |
|---|
| فَإِنَّ اللهَ يَمْقُتُ عَلَى ذٰلِكَ[1] (رَوَاهُ أَحْمَدُ ٣/٣٦، وَأَبُو دَاوُدَ ١٥، وَابْنُ مَاجَهْ ٣٤٢). |
| ځکه چې په دې سره الله تعالى غصه کيږي. |

**توضيح: يضربان الغائط**: يعني چې د متيازو دپاره روان وي نو يضربان د ضرب نه تللو ته ويل کيږي.

**ضرب في الارض اى ذهب**: کله ورسره الغائط راغى نو دا د يفعلان په معنى سره شو يعني يفعلان الغائط. بعضو علماؤ يضربان د تللو په معنى سره اخستلى دى. ليکن الغائط د للغائط بنزع الخافض په معنى سره نو معنى دا شوه چې دواړه يو ځاى د متيازو دپاره ځي او شرمگاه ښکاره کړي او کيني. (المرقات ٢/٧٣).

**يتحدثان**: او خبرې سره کوي دا د الهي غضب موجب دى، په دې کې سړي هم په کومه زمانه کې مبتلا وو ليکن ننځې خو نن سبا په کلو کې د يوې بلې سره کيني او ښې خبرې سره کوي او په دې سره نه شرميږي دا ډيره لويه بې حيائي ده او الهي غضب ته دعوت ورکولو مترادف کار دى (المرقات ٢/٧٤)

## بيت الخلاء ته د تللو دعاء

| |
|---|
| (٢٣) وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ هٰذِهِ |
| د زيد بن ارقم رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د متيازو ځايونه د شيطانانو |
| الْحُشُوشَ مُحْتَضَرَةٌ فَإِذَا أَتَى أَحَدُكُمُ الْخَلَاءَ |
| او پېريانو د حاضريدو ځايونه دي په دې وجه کله چې په تاسو کې څوک بيت الخلاء ته ځي نو هغه ته په |
| فَلْيَقُلْ أَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الْخُبُثِ وَ الْخَبَائِثِ[2]. |
| کار دي چې دا دعاء ووايي: يعني زه د ناپاکو پېريانو او پېريو نه په الله تعالى سره پناه غواړم. |
| (٢٤) وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَتْرُ مَا بَيْنَ أَعْيُنِ |
| د حضرت علي رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: پرده په مينځ د سترگو د پېريو |

(١) اخرجه ابو داود في السنن ١/٢٢، رقم الحديث ١٥، واحمد في مسنده ٣/٣٦، وابن ماجه في السنن ١/١٢٣ رقم الحديث ٣٤٢.

(٢) اخرجه ابو داود في السنن ١/١٦، رقم الحديث ٦، واحمد في مسنده ٤/٣٦٩

| |
|---|
| الْجِنِّ وَ عَوْرَاتِ بَنِي آدَمَ إِذَا دَخَلَ أَحَدُهُمُ الْخَلَاءَ أَنْ يَقُولَ بِسْمِ اللّٰهِ[1] |
| (شيطان) او دعورت دانسان کې داده چې کله کوم کس دمتيازو ځاى ته داخل شي نو بسم الله دې ووايي. |
| ( رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ . وَ قَالَ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَ إِسْنَادُهُ لَيْسَ بِقَوِيٍّ ). |
| دا حديث ترمذي روايت کړى دى او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دى او سند يې قوي نه دى. |

## دبيت الخلاء نه دوتلو دعاء

| |
|---|
| (۲۵) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ |
| دحضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به چې کله دبيت الخلاء نه بهر تشريف |
| قَالَ غُفْرَانَكَ.[2] ( رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ . وَابْنُ مَاجَةَ . وَالدَّارِمِيُّ ). |
| راوړلو نو فرمايل به يې: اى الله زه ستا د بخشش غوښتونکى يم. |

**توضيح : غفرانک** : دا لفظ د **اغفر** امر دپاره مفعول مطلق دى اى اغفرغفرانک او د صاحب کافيه ويلي دي چې په داسې ځايونو کې د فعل حذف کول واجب دي، اوس دلته سوال دا دى چې ددې عمل نه وروسته د استغفار ضرورت ولې پيښ شو؟ آيا هغه بيت الخلاء ته په تلو سره کومه ګناه وکړه، د دې جواب دا دى چې ترڅو پورې انسان په بيت الخلاء کې وي نو هغه د شيطان په ګاونډ کې وي او دننه د ذکر د کولو نه محروم وي په دې کوتاهۍ باندې استغفار کوي. (المرقات ۲/۷۵).

**دويم جواب** : دا دى چې غذاء وخوړل شي هضم کړى شي او بيا په اسانه متيازې وکړى شي په دې سره انسان ته دير راحت ملاويږي، د دې دير شکر کول په کار دي، په دې لوى شکر کې د کوتاهۍ کولو له وجې استغفار ويل کيږي ترڅو چې د کوتاهۍ اثر هم د منځه لاړ شي، يا دا چې په بيت الخلاء کې قلبي ذکر جاري وو په هغه کې بغير اختياري بې ادبي باندې استغفار غوښتلى شي.

| |
|---|
| (۲۶) وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَى الْخَلَاءَ |
| ابو هريره رضي الله عنه روايت کړى دى چې کله به رسول الله صلى الله عليه وسلم د قضاء حاجت دپاره تللو نو مابه د هغه |

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۲/۵۰۴، وابن ماجه ۱/۱۰۹ رقم الحديث : ۲۹۸.

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۱/۱۲ رقم الحديث ۷ ، واخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۱۱۰ ، رقم الحديث : ۳۰۰، واخرجه الدارمي في السنن ۱/۱۸۳ رقم الحديث : ۶۸۰ ، واخرجه ابو داود ۱/۳۰ ، رقم الحديث : ۳۰

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَتَيْتُهُ | بِمَاءٍ | فِي | تَوْرٍ | أَوْ | رَكْوَةٍ | فَاسْتَنْجَى ثُمَّ |

دپاره په پياله يا د څرمنې په لوټه کې اوبو ورته راوړلې هغه ﷺ به په هغو سره استنجاء کوله بيا به يې

مَسَحَ يَدَهُ عَلَى الْأَرْضِ ثُمَّ أَتَيْتُهُ بِإِنَاءٍ آخَرَ فَتَوَضَّأَ[1] (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَرَوَى الدَّارِمِيُّ وَالنَّسَائِيُّ مَعْنَاهُ).

لاس په ځمکه باندې مږلو بيا مې د دې نه وروسته د اوبو دويم لوښی راوړلو او هغه ﷺ به اودس کولو

**توضيح: في تور**: دا د پيتلو لوښي او لوټې ته ويل کيږي، (او) دا لفظ د راوي د شک په بنياد باندې دی چې د اوبو هغه لوښی د پيتلو وو او د کانړي وو که د څرمنې نه جوړ شوی لوښی وو، دلته (او) د تنويع دپاره هم راوړل کيدی شي چې هغه لوښی د کومې نوعې وو. (المرقات ۲/۷۶).

**ثم مسح**: يعنې د بد بويي لرې کولو دپاره د استنجاء نه وروسته رسول الله ﷺ په ځمکه باندې لاس مښلو دا امت ته د تعليم دپاره وو، که نه د رسول الله ﷺ په قضاء حاجت کې بد بويي نه وه. (المرقات ۲/۷۶).

**بإناء آخر**: علماؤ ليکلي چې د اودس او استنجاء دپاره که چيرته دوه جدا جدا لوښي وي نو دا بهتره او مستحب ده، دلته همدې طرف ته اشاره ده، يا دا چې په رومبي لوښي کې اوبه دومره وې په کومو چې صرف استنجاء کيدلی شوه نو ځکه د اودس دپاره په بل لوښي کې اوبه راوړل شوې. (المرقات ۲/۷۶).

## شرمګاه ته د اوبو ورشيندلو مطلب

(۲۷) وَعَنِ الْحَكَمِ بْنِ سُفْيَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا بَالَ تَوَضَّأَ

د حکم بن سفيان رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ به متيازې وکړې نو اودس به يې وکړه

وَنَضَحَ فَرْجَهُ[2].

او په خپله شرمګاه به يې اوبه وشيندلې.

**توضيح: ونضح فرجه**: انتضاح د شيندلو په معنی سره دی، د دې اول او واضح مطلب دا دی چې کله اودس کولی شي نو د مخې طرف ته چې کوم ازار يا پرتوګ وي په هغه دې اوبه وشيندل شي ترڅو چې د متيازو د څاڅکو وسوسه رانه شي او مزه مزه انسان شکي او وسوسې جوړ نه شي، نو کله چې هغه ته شک راځي چې دا لوند والی د متيازو د څاڅکو نه دی نو وايي به چې دا خو د شيندل شوو اوبو څاڅکي

(۱) اخرجه ابو داود في السنن ۱/۳۹، رقم الحديث: ۱۶۵، واخرجه ابن ماجه ۱/۱۲۸، رقم الحديث: ۳۵۸.

(۲) اخرجه ابو داود في السنن ۱/۱۱۷، رقم الحديث: ۱۶۶، واحمد في مسنده ۳/۴۱۰.

دي كومې چې ما اوس شيندلې دي، دا انتضاح د اودس نه د فارغيدو نه وروسته دی. په راتلونكو حديثونو كې هم دا حكم ذكر شوی دی، د صوفيانو په نزد د دې نوم (بل السراويل) دی په دې عمل سره وسوسه ختميږي، بعضو د نضح نه په شرمګاه باندې د اوبو شيندلو مطلب اخستلی دی ترڅو چې په دې سره د متيازو څاڅكي دفعه كړی شي، بهر حال كومو خلكو ته چې په يقيني طور د همدې څاڅكو د راتلو ناروغي وي هغوی دې داسې نه كوي بلكې د څاڅكو تر بنديدلو پورې دې انتظار وكړي. (المرقات ۲/۷۷).

## د ناروغي يا د مجبوري د وجې په لوښي كې متيازې كول

| |
|---|
| (۲۸) وَعَنْ أُمَيْمَةَ بِنْتِ رُقَيْقَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدَحٌ مِنْ عَيْدَانٍ |
| داميمة بنت رقيقه رضي الله عنها نه روايت دی چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د لرګي يو پياله وه كومه به چې |
| تَحْتَ سَرِيرِهِ يَبُولُ فِيهِ بِاللَّيْلِ [1]. |
| د رسول الله صلى الله عليه وسلم د كټ لاندې ايښې وه رسول الله صلى الله عليه وسلم به په شپه كې په هغې كې متيازې كولې |

**توضيح: من عيدان:** دا لفظ صاحب ازهار د عود نه اخستلی دی يعنې دا پياله به په لرګو كې د كوم لرګي نه جوړه شوې وه، علامه ميرک رحمه الله هم داسې ويلي دي چې عيدان د عود جمع ده او د عود نه مراد لرګی دی، علامه طيبي رحمه الله ويلي دي چې د لرګو د مختلفو اجزاؤ د وجې د جمع صيغه راوړل شوې ده، په دې ټولو صورتونو كې عيدان د عين په كسره سره شو، ملا علي قاري رحمه الله ويلي دي چې محققينو كومه خبره ليكلې ده هماغه صحيح ده او هغه دا ده چې عيدان د عين فتحې سره دی په كسرې سره نه دی، لهذا د قاموس صاحب ليكلي دي چې عيدان د فتحې سره د كجورې اوږدې (لوړې) ونې ته ويل كيږي مفرد يې عيدانه دی او د هغې د لرګي نه همدا پياله جوړه شوې وه. (المرقات ۲/۷۷).

**تحت سريره:** په دارنګه احاديثو باندې بعضو شک كړی دی يا يې عجيب او غريب ګڼلي دي حالانكه دوی ته دا سوچ كول په كار دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د ټولې دنيا دښمن وو دوی صلى الله عليه وسلم ته په شپه كې په وتلو كې د ځان ځومره خطر وو په دې وجه چې هغه صلى الله عليه وسلم په كور كې دننه د متيازو انتظام كړی وو نو دا څه د تعجب خبره ده، آيا نن سبا خلک په نهايت ډير اعلی كمرو كې تشناب نه دی جوړ كړی؟ چيرته چې متيازې نه بلكې غائط هم په كې كوي، همدارنګه په شپه كې په وتلو كې د يخنۍ ځومره تكليف وو. دارنګه د مار او لړم چيچلو ويره ځومره زياته وه، او كيدی شي چې دا معامله د

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۲۸، رقم الحديث ۲۴. وأخرجه النسائي في السنن ۱/۳۱ رقم الحديث ۳۲.

ناروغي په زمانه کې شوې وي بيا خو هيڅ خبره نشته، بهر حال ددې وجوهاتو په بنياد باندې د رسول الله ﷺ د کټ لاندې پياله ايښودل شوې وه او سهار به هغه متيازې غورځول کيدې، د مظاهر حق صاحب ليکلي دي چې يو چا په غلطۍ سره دا متيازې وڅکلې نو د هغه د بدن نه خوشبويي را پورته کيدله. سرير لفظ نه ثابته شوه چې په کټ باندې ويده کيدل روا دي. رسول الله ﷺ کټ استعمال کړی دی اګر که دا به ډله ګله وو. (المرقات ۲/۷۷).

## په ولاړه د متيازو کولو حکم

| |
|---|
| (۲۹) وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ رَآنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ أَنَا أَبُولُ قَائِمًا، |
| دعمر فاروق رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ (يو ورځ) زه په ولاړه په متيازو کولو وليدم |
| فَقَالَ يَا عُمَرُ لَا تَبُلْ قَائِمًا فَمَا بُلْتُ قَائِمًا بَعْدُ.[1] (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ) |
| نو وې فرمايل عمره! په ولاړه متيازې مه کوه لهذا ددې نه وروسته ما هيڅکله په ولاړه متيازې ونه کړې. |
| قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللهُ قَدْ صَحَّ عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ أَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| امام محی السنة رحمه الله وايي چې د حذيفة رضي الله عنه نه منقول دي چې رسول الله ﷺ راغلو د يو |
| سُبَاطَةَ قَوْمٍ فَبَالَ قَائِمًا. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) (قِيلَ |
| قوم د ګندګۍ (ډيران) ځای ته او هلته يې په ولاړه متيازې وکړې (بخاري او مسلم) ويل شوي دي چې د |
| كَانَ ذَلِكَ لِعُذْرٍ)[2]. |
| دې ﷺ دا فعل په ولاړه د متيازو کول د کوم عذر د وجې وو. |

**توضيح : ياعمر لاتبل قائما :** عربو په ناسته د متيازو کولو نه ځان ساتلو او دا يې د ښځو عمل ګڼلو او سرو بلندي او شهامت په دې کې ګڼه چې دوی په ولاړه متيازې وکړې، ددې اصولو ماتحت حضرت عمر رضي الله عنه په ولاړه متيازې وکړې چې رسول الله ﷺ هغه وليد نو منعه يې کړ، حضرت عمر رضي الله عنه وايي دي چې بيا عمر ټول عمر هم داسې ونه کړل، اوس فقهي مسئله دا ده چې په متفقه طور په ولاړه متيازې کول مکروه دي، هو په کې اختلاف دی چې مکروه تحريمي دي او که مکروه تنزيهي دي، د بعضو علماؤ په نزد مکروه تحريمي دي او د بعضو په نزد مکروه تنزيهي دي، ظابطه او قاعده دا ده

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۷/۱، وابن ماجه ۱۱۱/۱، رقم الحديث ۳۰۵

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۳۲۸/۱، رقم الحديث ۲۲۴، ومسلم في الصحيح ۲۲۸/۱ رقم الحديث ۷۳-۲۷۳، وأبو داود ۲۷/۱ رقم الحديث ۲۳.

هو که چیرته د رسول الله ﷺ په ولاړه د متیازو کولو ذکر راغلی دی نو هغه دې په عذر باندې محمول کړی شي، د امام محمد رحمه الله نه د جواز یو قول منقول دی، پورته چې کومه مسئله بیان شوه دا د جمهورو مسلک دی، شاه انور شاه کشمیري رحمه الله ویلي دي چې په ولاړه متیازې کول نن سبا د کفارو د شعائرو نه دی لهذا حرام دي، د زیات تفصیل دپاره راتلونکی روایت وګورئ (المرقات ۲/۷۸)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## په ناسته متیازې کول سنت دي

| |
|---|
| (۲۰) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ مَنْ حَدَّثَكُمْ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د عائشې صدیقې رضي الله عنها نه روایت دی چې کوم کس دا حدیث بیان کړي چې رسول الله ﷺ په |
| كَانَ يَبُولُ قَائِمًا فَلَا تُصَدِّقُوهُ مَا كَانَ يَبُولُ إِلَّا قَاعِدًا[1] |
| ولاړه متیازې کړې وې نو هغه رښتوني ونه منئ رسول الله ﷺ همیشه په ناسته متیازې کولې. |

**توضیح :فلا تصدقوه** : په دې روایت کې او د حضرت حذیفة رضي الله عنه د (سباطة قوم) په روایت کې په ظاهره تعارض دی، په هغه کې د رسول الله ﷺ په ولاړه متیازې کول منقول دي او دلته یې حضرت عائشې رضي الله عنها بالکل نفې کړې ده.

ددې جواب او په دواړو حدیثونو کې تطبیق په دې شان دی چې حضرت عائشې رضي الله عنها د خپلو معلوماتو او د کور د اعمالو او عاداتو متعلق خبره کړې ده دا په خپل ځای کې صحیح ده، او د حضرت حذیفه رضي الله عنه خبره بهر ماحول متعلق ده هغه په خپل ځای سهي ده، یا داسې ووائي چې د حضرت عائشې رضي الله عنها خبره د عام عادت متعلق ده او د حضرت حذیفه رضي الله عنه روایت د یوې نادرې واقعې سره متعلق دی، او نادر د معدوم په حکم کې دی، یا دا چې د حضرت حذیفه رضي الله عنه روایت په استثنائي صورت باندې محمول دی او حضرت عائشې رضي الله عنها قاعده کلیه بیان کړې ده نو هیڅ تعارض نشته دی.په ولاړه په متیازو کولو کې د رسول الله ﷺ عذر څه وو نو بعضو علماو لیکلي دي چې بیان یې د جواز دپاره وو او که کراهیت تنزیهي شو ځکه چې دامت د سهولت دپاره یې کله کله د کراهیت تنزیهي والا کار کړی دی ترڅو چې خلک یې حرام ونه ګڼي نو د رسول الله ﷺ دپاره کراهیت هم نه وو. بعضو لیکلي دي چې د رسول الله ﷺ په زنګون کې تکلیف وو کیناستل ورته مشکل وو،

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۱۹۲/۶، واخرجه الترمذي في السنن ۱۷/۱ رقم الحديث : ۱۲ ، والنسائي ۲٦/۱ رقم الحديث : ۲۹ ،. وابن ماجه ۱۱۲/۱ ، رقم الحديث : ۳۰۷.

بعضو ويلي دي چې د کښيناستو ځای نه وو مجبوري وه، بعضو ويلي دي چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ملا کې تکليف ؤ او دغه د درد علاج په ولاړه په متيازو کولو کې وو. (المرقات ۲/۷۹، الکاشف ۵۸).

(۳۱) وَ عَنْ زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ جِبْرِيلَ

زيدبن حارثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کړی دی چې حضرت جبرئيل عَلَيْهِ السَّلَامُ کله چې د

أَتَاهُ فِي أَوَّلِ مَا أُوحِيَ إِلَيْهِ فَعَلَّمَهُ الْوُضُوءَ

تولو نه مخکې د وحې په موقع نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ته تشريف راوړنو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته يې اودس ورزده کړو

وَ الصَّلَاةَ فَلَمَّا فَرَغَ مِنَ الْوُضُوءِ أَخَذَ غُرْفَةً مِنَ الْمَاءِ

بيا يې د مونځ کول ورزده کړل لهذا کله چې د اودس نه فارغ شو نو يوه لپه اوبه يې واخيستې او هغه يې

فَنَضَحَ بِهَا فَرْجَهُ[1] (رَوَاهُ أَحْمَدُ ۴/۱۶۱، وَالدَّارَقُطْنِيُّ).

په خپله شرمگاه باندې وشيندلې.

(۳۲) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَنِي جِبْرِيلُ

د ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: ماته جبرئيل عَلَيْهِ السَّلَامُ راغی او وي

فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ إِذَا تَوَضَّأْتَ فَانْتَضِحْ .[2] (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)

ويل ای محمده! کله چې ته اودس کوې نو لږې اوبه په شرمگاه باندې د وسوسې دفع کولو د پاره وشينده

وَ قَالَ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَ سَمِعْتُ مُحَمَّدًا يَعْنِي الْبُخَارِيَّ يَقُولُ

او امام ترمذي ويلي چې دا حديث غريب دی او ما د محمد (يعنې امام بخاري) نه اوريدلي دي چې ويل يې

الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْهَاشِمِيُّ الرَّاوِي مُنْكَرُ الْحَدِيثِ).

چې حسن بن علي هاشمي راوي منکر الحديث دی.

(۳۳) وَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ بَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی چې (يو ځل) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ متيازې کولې نو حضرت عمر

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۶/۱۹۲ ، وأخرجه الدارقطني في السنن ۱/۱۱۱،. وابن ماجه ۱/۱۵۷ ، رقم الحديث :۴۶۲.

(۲) أخرج الترمذي في السنن ۱/۷۱ رقم الحديث ۵۰ ، وأخرج ابن ماجه ۱/۱۵۷ رقم الحديث :۴۶۳.

فَقَامَ عُمَرُ خَلْفَهُ بِكُوزٍ مِنْ مَاءٍ فَقَالَ

فاروق رضي الله عنه په لوټه کې اوبه راوړې دهغه صلى الله عليه وسلم شاته او دريده رسول الله صلى الله عليه وسلم پوښتنه وکړه

مَا هٰذَا يَا عُمَرُ فَقَالَ مَاءٌ تَتَوَضَّأُ بِهِ قَالَ مَا أُمِرْتُ

عمره دا څه دي؟ عمر رضي الله عنه ووېل اوبه دي ستا او دس دپاره، هغه صلى الله عليه وسلم وفرمايل ماته دا حکم نه

كُلَّمَا بُلْتُ أَنْ أَتَوَضَّأَ وَ لَوْ فَعَلْتُ لَكَانَتْ سُنَّةً [1]. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَ ابْنُ مَاجَهْ).

دی شوی چې کله هم متيازې وکړم نو اودس به هم کوم که چيرته زه همداسې وکړم نو زما (داکار) به سنت شي.

## د استنجاء آداب

﴿۳۴﴾ وَ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ وَ جَابِرٍ وَ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَنَّ هٰذِهِ الْآيَةَ لَمَّا نَزَلَتْ

دابو ايوب انصاري، حضرت جابر او حضرت انس رضي الله عنهم نه روايت دی چې کله دا آيت نازل شو (ترجمه)

﴿ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا وَ اللهُ

يعنې په مسجد قباء کې داسې خلک دي کوم چې دا خبره خوښوي چې ښه پاکي حاصله کړي او الله تعالى

يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ ﴾ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ! إِنَّ اللهَ

دښې پاکي حاصلونکي خوښوي نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد وفرمايلو اې دانصارو ډلې! الله تعالى

قَدْ أَثْنَى عَلَيْكُمْ فِي الطُّهُورِ فَمَا طُهُورُكُمْ قَالُوا

دپاکۍ په معامله کې ستاسو تعريف کړی دی، ووايي ستاسو پاکي څه ده؟ هغوی عرض وکړو چې مونږ

نَتَوَضَّأُ لِلصَّلَاةِ وَ نَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ وَ

مونځ دپاره اودس کوو او د جنابت (ناپاکي) نه غسل کوو (لکه څرنګه يې چې نور مسلمانان کوي) او د

نَسْتَنْجِي بِالْمَاءِ قَالَ فَهُوَ ذَاكَ فَعَلَيْكُمُوهُ [2]. (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ).

لوټو نه وروسته په اوبو سره استنجاء کوو نبي عليه السلام وفرمايل: آو! هغه همدا ده لهذا هغه لازم ونيسئ.

**توضيح**: ددې حديث نه معلومه شوې چې په اوبو سره استنجاء افضله ده، د استنجاء ټول درې صورتونه دي: (۱) چې صرف په لوټه او کاڼي سره استنجاء وکړی شي. (۲) چې صرف د اوبو په استعمال سره

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۳۸/۱، رقم الحديث ۴۲، وأخرج ابن ماجه ۱۱۸/۱، رقم الحديث ۳۲۷، وأخرج احمد في المسند ۹۵/۶

(۲) أخرجه ابن ماجه ۱۱۵/۱، رقم الحديث ۳۱۶، واحمد في المسند ۴۲۹/۵.

استنجاء وکړی شي. (۳) چې کاڼي او اوبه دواړه استعمال او استنجاء وکړی شي. د فقهاؤ په نزد همدا درېواړه صورتونه روا دي اګر که بعضو مالکیو او سعید بن المسیب رَحِمَهُ اللهُ په اوبو سره صفائي کول ناروا ګرځولې دي خو د جمهورو فقهاؤ په نزد روا او افضل ده، ځکه چې په قرآن کريم او حديث کې د دې تصریح موجوده ده او د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه مداومت په دې باندې ثابت دی. او س د فقهاء کرامو او جمهور امت په نزد چې اوبه او کاڼي جمع کړی شي نو د استنجاء دا صورت د ټولو نه بهتر دی او په ډېرو احادیثو سره همدا جمع کول ثابت دي او د طرقو په تعدد سره په حديث کې قوت راغلی دی، همدارنګه د فقهاؤ په تعامل سره هم حديث قوي شوی دی د دې نه وروسته په اوبو سره استنجاء بهتره ده او بیا صرف د کاڼي درجه ده.

## مسلمان په خپلو معاملاتو کې هیچاته محتاج نه دی

| |
|---|
| (۲۵) وَ عَنْ سَلْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ بَعْضُ الْمُشْرِكِينَ وَ هُوَ يَسْتَهْزِئُ إِنِّي لَأَرَى |
| د سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې په مشرکانو کې یو کس د استهزاء په طور وویل چې ما ولیدو ستاسو |
| صَاحِبَكُمْ يُعَلِّمُكُمْ حَتَّى الْخِرَاءَةَ |
| سردار (محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) چې هغه تاسو ته هر شی درزده کوي تر دې چې په متیازو د کښیناستو صورت |
| قُلْتُ أَجَلْ أَمَرَنَا أَنْ لَا نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ |
| هم (درزده کوي) ما وویل آو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مونږ ته حکم کړی دی چې د استنجاء په وخت قبلې طرف ته مخامخ |
| وَلَا نَسْتَنْجِيَ بِأَيْمَانِنَا وَلَا نَكْتَفِيَ بِدُونِ ثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ |
| مه کیږئ په خپلو ښي لاسونو سره استنجاء مه کوئ د درېو کاڼو نه په کمو باندې استنجاء مه کوئ |
| لَيْسَ فِيهَا رَجِيعٌ وَلَا عَظْمٌ[1]. |
| چې هغو کاڼو کې نجاست (خوشایي وغيره) نه وي او نه به هډوکی وي. الفاظ د احمد دي. |

**توضیح**: الخراءة: د خاء کسره او د راء د مد سره د متیازو دپاره د کیناستلو کیفیت ته ویلې شي او په نفس بولو باندې یې اطلاق د تاء د حذف په وخت کې کیدی شي یعنې **الخِراء والخُراء**.
لیکن زیاتره محدثینو خاء مفتوح او د مد نه بغیر ویلی دی یعنې خرا، په اصل کې دا لفظ د مرغانو د ګندګی دپاره استعمال شوی دی مګر دلته د قضاء حاجت دپاره استعمال شوی دی، د دې لفظ نه

مخکې مضاف محذوف دی یعنې **ادب الخراء** مطلب دا چې تاسو ته دا نبي د متيازو ادب درزده کوي، د ورو ورو شیانو تعلیم درکوي او داد بدیهي شیانو بلا ضرورت تعلیم ورکول دي.دمشرک دطرفه دا خبره دا ستهزاء او توقې په طور وه چې دمتيازو طريقه درزده کوي ستاسو نه یې ماشومان جوړ کړي دي. (المرقات ۲/۸۳).

**قلت اجل**: یعنې هو مونږ ته دا نبي دغه شیان را زده کوي.اوس سوال دا دی چې دغه مشرک دین ته توقه وبللو او اعتراض یې وکړو او حضرت سلمان رضي الله عنه اجل ورته وويل دا یې ورسره ومنله آیا دا جائزوو؟ (المرقات ۲/۸۳).

جواب دا دی چې حضرت سلمان رضي الله عنه دحکيم اسلوب په طريقه جواب ورکړی دی کوم ته چې دعلم المعاني والا **مماشات مع الخصم** او **ارخاء العنان** وايي ترڅو چې هغه د جواب اوريدو د پاره بنه تيار او آماده شي ګویا چې سلمان فارسي رضي الله عنه وويل چې ای څناوره ! واوره دا تعليمات آسماني دي کوم چې په عقل سره نه دي درک کړی شوي، دا بديهيات نه دي ته بې وقوفه يې چې د هغو د عقل په دائره کې د راوستلو کوشش کوې او ګوره! مونږ ته نبي علیه السلام حکم کړی چې مونږ د قضاء حاجت کولو په وخت کې د قبلې طرف ته مخ نه کړو دا حق الله دی.

يا حکم دی چې په ښي لاس سره استنجاء ونه کړئ دا حق النفس دی او يا حکم دی چې په هډوکي او غوشايو سره استنجاء ونه کړئ دا حق الاخوان دی نوپه دې تعليم کې حق الله حق النفس او حق العباد درې واړه راغلل کوم چې مکمل شريعت دی په دې پورې توقې کول حماقت دی.

| |
|---|
| ﴿۳۶﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ حَسَنَةَ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د عبدالرحمن بن حسنه رضي الله عنه نه روايت دی چې (يوه ورځ) رسول الله صلی الله علیه وسلم د (کور نه) راووتلو |
| وَ فِيْ يَدِهِ الدَّرَقَةُ فَوَضَعَهَا |
| او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په لاس کې ډال وو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه (د ځان مخامخ) په زمکه کيښود |
| ثُمَّ جَلَسَ فَبَالَ إِلَيْهَا فَقَالَ بَعْضُهُمْ انْظُرُوا إِلَيْهِ |
| بيا هغه مخامخ يې په ناسته متيازې وکړې يو مشرک چې دا وليدل نو وې ويل وګورئ د هغه طرف ته دا سې |
| يَبُوْلُ كَمَا تَبُوْلُ الْمَرْأَةُ فَسَمِعَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ |
| متيازې کوي لکه څنګه چې ښځې متيازې کوي دا خبره رسول الله صلی الله علیه وسلم واوريدله او وې فرمايل |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيْحَكَ | أَمَا | عَلِمْتَ | مَا | أَصَابَ | صَاحِبَ | بَنِي | إِسْرَائِيلَ |

په تاباندې افسوس دی، آیا ته هغه شی نه پیژنې کوم چې د بني اسرائیلو ملګري ته ورسیده (یعني عذاب)

| | | | |
|---|---|---|---|
| كَانُوا | إِذَا | أَصَابَهُمُ | الْبَوْلُ |

بني اسرائیلو به (چې کله متیازې کولې او هغوی) په بدن او جامو به چې متیازې ولګیدې نو هغه به یې په

| | | |
|---|---|---|
| قَرَضُوهُ | بِالْمَقَارِيضِ | فَنَهَاهُمْ |

قینچې سره غوڅولې لهذا (د بني اسرائیلو نه) یو کس (د همدې حکم د منلو نه) خلک منعه کړل لهذا هغه

| | | |
|---|---|---|
| فَعُذِّبَ | فِي | قَبْرِهِ [1]. |

د قبر په عذاب کې مبتلا کړی شو (او نسائي دا حدیث د عبد الرحمن نه او هغه د ابو موسی نه روایت کړی).

**توضیح: الدرقة**: دا داسې د هال ته ویل کیږي کوم چې خالص د پوستکي او څرمنې نه جوړ شوی وي په کوم کې چې او سپنه او لرګی نه وي. (المرقات ۲/۸۴).

**بعضهم**: ددې نه یا کوم مشرک مراد دی یا کوم منافق وو دویم واضح دی. (المرقات ۲/۸۴).

**کما تبول المرأة**: ښځه په ناسته متیازې کوي ځکه چې په ولاړه متیازې نه شي کولی، په عربو کې سړو په ولاړه متیازې کولې او دا یې د سړي نښه بلله. (المرقات ۲/۸۴).

**ویحک**: دا کلمه واضع د بد دعاء دپاره وضع کړې ده، لیکن د دې زیاتره استعمال د بد دعاء نه په غیر په نورو کې شوی دی. (المرقات ۲/۸۵).

**قرضوه بالمقاریض**: د بني اسرائیلو د سختو او مشکلو احکاماتو نه یو حکم دا وو چې که چیرته به د بدن د کومې برخې سره نجاست ولګیده نو د بدن هغه برخه به غوڅیدله او که به جامې پلیتې شوې نو هغه به هم پریکول کیدلې، په دغه زمانه کې یو کس ددې حکم نه انکار وکړو او خلک یې هم منعه کړل نو دغه کس ددې بې احتیاطۍ د وجې په قبر کې په عذاب شو، ځکه چې هغه د متیازو نه ځان نه ساتلو.

دلته د رسول الله ﷺ د متیازو په وخت کې په کښیناستو باندې اعتراض کوونکی او د بني اسرائیلو په کس کې څه مناسبت دی چې رسول الله ﷺ د هغه کس مثال ورکړه، نو اصل خبره دا شوه چې وګوره د بني اسرائیلو کس د دوی د شریعت د یوه مشهور او ښه کار نه د منعه کولو کوشش وکړو نو انجام یې څومره بد شو چې په عذاب کې مبتلا شو، همدارنګه ته هم د یو نیک کار نه د منعه

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۲۶/۱ رقم الحدیث: ۲۲، ابن ماجه ۱۲۴/۱، رقم الحدیث: ۳۴۶.

کولو کوشش کوي نو تاته به هم د هغه په شان د قبر عذاب وي ځکه چې بې احتياطي کوي او چې متيازې دربانديږ ولګيږي نو بيا به په عذاب شي. (المرقات ۲/۸۵).

| |
|---|
| (۲۷) وَ عَنْ مَرْوَانَ الْأَصْفَرِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ أَنَاخَ |
| د مروان اصفر رضي الله عنه نه روايت دی چې ما (يو ځل) حضرت ابن عمر رضي الله عنه وليده چې کينوه يې خپل |
| رَاحِلَتَهُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ ، ثُمَّ جَلَسَ يَبُولُ إِلَيْهَا فَقُلْتُ |
| اوښ قبلې طرف ته بيا په خپله کيناسته او اوښ طرف ته يې متيازې وکړې ما چې دا (وليده) عرض مې وکړه |
| يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ ، أَلَيْسَ قَدْ نُهِيَ عَنْ هٰذَا |
| ابو عبد الرحمن ! (دا د ابن عمر رضي الله عنه کنيه وه) چې آيا منع نه ده کړی شوې د داسې کولو نه د قبلې طرف |
| قَالَ بَلْ إِنَّمَا نُهِيَ عَنْ ذٰلِكَ فِي الْفَضَاءِ فَإِذَا كَانَ بَيْنَكَ وَ بَيْنَ الْقِبْلَةِ |
| ته په مخ کولو سره؟ هغه وفرمايل په صحراء کې ددې نه منعه شوې ده ليکن کله چې په مينځ ستا او د قبلې |
| شَيْءٌ يَسْتُرُكَ فَلَا بَأْسَ (۱) (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ). |
| کې کوم څيز حائل شي نو بيا څه خبره نشته. |

**توضيح**: دا د يو صحابي خپله رأيه او د هغه عمل دی، د مرفوع احاديثو مقابله نه شي کولی، تفصيل يې تير شوی دی.

| |
|---|
| (۲۸) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ |
| د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دی، چې کله به رسول الله صلى الله عليه وسلم د بيت الخلاء نه را ووتلو نو دا |
| قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَذْهَبَ عَنِّي |
| دعاء به يې کوله: يعنې ټول تعريفونه هغه الله تعالى لره دي چا چې لرې کړه د ما نه ګندګي او تکليف |
| الْأَذٰى وَ عَافَانِي . (۲) ( رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ ). |
| رسوونکي شيان (يعنې غائط) او ماته يې عافيت راکړ. |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱/۲۰ رقم الحديث : ۱۱

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۱۱۰ رقم الحديث ۳۰۱

## په هډوکي او خوشیانو سره د استنجاء نه ممانعت

| |
|---|
| (۳۹) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا قَدِمَ وَفْدُ الْجِنِّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| دابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چې کله دپیريانو ډله د رسول الله صلى الله عليه وسلم خدمت کې حاضره شوه |
| قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنْهَ أُمَّتَكَ أَنْ يَسْتَنْجُوا |
| نو هغوی رسول الله صلى الله عليه وسلم ته عرض وکړو یا رسول الله! منع کړه خپل امت د دې نه چې استنجاء وکړي |
| بِعَظْمٍ أَوْ رَوْثَةٍ أَوْ حُمَمَةٍ فَإِنَّ اللّٰهَ جَعَلَ لَنَا فِيهَا رِزْقًا |
| په خوشایو، هډوکو او وسپنې سره، ځکه چې الله تعالى پیدا کړی دی زمونږ د پاره په دې شیانو کې رزق. |
| فَنَهَانَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ.[1] (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد). |
| لهذا رسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ (د دې شیانو) د استعمال نه منعه کړو. |

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۳۶/۱ رقم الحديث : ۳۹

۲۳ صفر ۱٤۱۰هـ

# بَابُ السِّوَاكِ
# د مسواک بيان

**سواک** : د مسواک استعمالولو ته هم ويلی شي او د مسواک لرگي ته هم ويل شوی دی، ابن مالک ويلي دي چې سواک د مسواک وهلو ته ويل کيږي او مسواک لرگي ته هم ويل کيږي، مسواک د هغه لرگي نوم دی په کوم سره چې د غابنونو صفائي کولی شي **مايدلک به الاسنان** عربو ويلي دي ساک **فاه يسوکه** کله يې چې مفعول به ذکر وي نو ساک **فاه** ويل کيږي او کله چې مفعول به ذکر نه وي نو **استاک** ويل کيږي، سواک د **کتاب** په شان دی د کوم جمع چې **سُوُکٌ** د **کُتُبٌ** په شان راغلې ده، او د مسواک جمع **مساويک** هم راځي.(المرقات ۲/۸۷).

چنانچه امرءالقيس د خپلې محبوبې د گوتو په تعريف کې وايي:

وَتَعْطُوْا بِرَخْصٍ غَيْرِ شَثْنٍ كَاَنَّهَا اَسَارِيْعُ ظَبْيٍ اَوْ مَسَاوِيْكُ اَسْحَلٍ

د ټولو نه بهترين مسواک د زيتون دی يا د پلوشې دی، يعنې په کوم لرگي کې چې تريخوالی زيات وي هغه بنه دی، خوږ مسواک هم ملاويږي کوم چې زيات خوندور وي، په برش او ټوټه پيسټ سره د مسواک سنت نه شي اداء کيدلی اگر که غابنونه پرې صفا کيدی شي، علامه نووي رَحِمَهُ اللهُ د مسواک په سنتيت باندې اجماع نقل کړې ده او په مسواک باندې تواتري عمل دی، علماؤ د مسواک د اويا و(۷۰) نه زياتې فايدې ليکلې ، يوه لويه فائده يې داده چې د مرگ په وخت کې به يې د شهادت کلمه په نصيب شي، د مسواک وهلو مستحبه طريقه په پلنوالي استعمالول دي اگر چې په اوږدوالی يې استعمال هم جائز دی مگر په دې سره د زخم پيدا کيدو ويره ده، د کوم کس چې غابنونه،نه وي د هغه د پاره گوته د مسواک قائمقام ده، بنځې هم مسواک کولی شي مگر د هغوی د پاره دنداسه هم مسواک ده کومه چې زياته مناسب ده د چا سره چې مسواک نه وي نو په روايت سره ثابت دي چې گوته د مسواک پر ځای استعمالولی شي. (المرقات ۲/۸۷).

**د مسواک مقدار** : د مسواک مقدار يوه لويشت په کار دی، په غټوالي کې به د گوتې برابر وي، که چيرته د لويشتې نه اوږد وو نو که اخيستل شوی وي نو د هغه پريکول صحيح نه دي چې اسراف دی، که چيرته چا عطيه نه وي ورکړی نو زيات چې پريکړل شي ضايع به کړی شي، د استعمال نه وروسته کله چې د ځلورو گوتو برابر پاتې شي نو په کوم ځای کې دې دې خښ کړی شي، د استعمال نه وروسته د مسواک ساتلو ادب دا دی چې هغه سرچپه کينودل شي ترڅو چې په خوله کې استعمال شوې برخه په ځمکه

باندې راشي، په دې سره په هغه کې دننه موجودې اوبه بهر نچوړ کړی شي نو بیا نه بدبویه کیږي، دارنګه په ځمکه کې د نوشادر اجزاء دي د هغو سره د لګیدو د وجې د مسواک جراثیم مړه کیږي. جمهورو مسواک سنت بللی دی، صرف داؤد ظاهري ورته واجب ویلي دي(المرقات ۲/۸۷).

د فتح القدیر په پنځو ځایونو کې یې مسواک وهل سنت او ضروري ګڼلي دي :(۱) کله چې غاښونه خیرن شي(۲) کله چې د خولې نه بد بویي راځي(۳) کله چې انسان د خوب نه راپورته شي(۴) کله چې مونځ شروع کوي(۵) کله چې اودس کوي. (المرقات ۸۸-۲/۸۹).

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### د مسواک مسئله

**(۱) عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْلَا اَنْ اَشُقَّ عَلَى اُمَّتِي**

دابوهریره رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: که چیرته نه سختیدلی زما په امت

**لَاَمَرْتُهُمْ بِتَاْخِيرِ الْعِشَاءِ وَ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)**[1].

باندې نو مابه امر کړی وی په وروسته کولو د ماسخوتن مونځ سره او په مسواک کولو سره هر مونځ ته.

**توضیح : لو لا ان اشق :** لو لا د انتفاء ثاني دپاره راغلی دی په سبب د وجود د اول حالانکه وجود اول یعنې مشقت متحقق شوی نه دی ، د دې جواب دا دی چې **لو لا** سره د **(خشية)** عبارت محذوف شوی دی، بیا دلته دویم اشکال دا دی چې انتفاء د ثاني متحقق شوې نه ده ځکه چې د مسواک حکم ختم شوی نه دی بلکې په مسنون طریقه باندې موجود دی او د ماسخوتن د تاخیر حکم هم بر قرار دی، د دې جواب دا دی چې په **امرتهم** کې فرضیت او وجوبي طور باندې د حکم نفي شوې ده او هغه نفي موجوده ده چې مسواک وهل نه فرض دي او نه واجب دي، ترجمه دا شوه چې که چیرته ماته د امت په مشقت کې د لویدلو ویره نه وی نو ما به په فرض او وجوبي طور باندې د مسواک حکم کړی وی، چونکه د امت په مشقت کې د لویدو ویره شته نو ځکه ما په وجوبي طور د مسواک حکم نه دی کړی بلکې د مسنون طریقې حکم مې کړی، همدارنګه د ماسخوتن په تاخیر کې هم دی. (المرقات ۲/۸۸).

**عند کل صلوة:** په دویم روایت کې **(عند کل وضوء)** الفاظ راغلي دي او په دریم روایت کې **(مع کل**

---

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۲/۳۷۵،رقم الحديث : ۸۸۷، ومسلم في الصحيح ۱/۲۲۰ رقم الحديث:۴۲-۲۵۲، وابو داود ۱/۴۰ رقم الحديث :۴۶،والترمذي ۱/۳۴ رقم الحديث : ۲۲ ، وابن ماجة ۱/۱۰۵، رقم الحديث: ۲۸۷.

وضوء) الفاظ راغلي دي، ددې الفاظو د اختلاف د وجې د فقهاء کرامو به څه باره کې اختلاف پيدا شوی دی چې آیا مسواک د اودس د سنتو نه دی او که د مونځ د سنتو نه دی. (المرقات ۲/۸۸).

**د فقهاء کرامو اختلاف**: د ائمه احناف په نزد د اودس د سنتو نه دی، او د شوافعو په نزد د مونځ د سنتو نه دی، د اختلاف ثمره هغه وخت ښکاره کيږي مثلا يو کس د اودس سره مسواک وکړو او بيا يې په دې اودس سره ډير مونځونه وکړل نو د احنافو په نزد دا ټول مونځونه د مسواک والا شول ليکن د شوافعو په نزد د مسواک والا نه شول.

**دلائل**: شافعيانو په خپل استدلال کې هغه روايتونه وړاندې کړيدي په کومو کې چې **عند کل صلوة** الفاظ راغلي دي، زير بحث حديث هم د دوي دپاره دليل دی، ائمه احناف **کثر الله سوادهم** په هغو رواياتو سره استدلال کړی دی په کومو کې چې د **عند کل وضوء** الفاظ راغلي دي يا د **مع کل وضوء** الفاظ راغلي دي، په موطا امام مالک کې د **مع کل وضوء** الفاظ موجود دي، درانگه په مسند احمد او سنن کبری کې هم دا الفاظ موجود دي او دا روايت د ابوهريره رضي الله عنه دی، لهذا کله چې په **مع کل وضوء** کې د ضراحت سره د مقارنت ذکر دی نو په هغه باندې د **عندکل صلوة** حمل کول هم په کار دي او د **عندکل وضوء** الفاظ هم په **مع کل وضوء** باندې حمل کول په کار دي ترڅو چې په ټولو احاديثو کې تطبيق راشي، او د **عند کل صلوة** احتمالي الفاظ د **مع کل وضوء** په يقيني الفاظو باندې محمول کړی شي ترڅو چې اختلاف ختم شي اتفاق راشي، د ائمه احنافو دويم دليل په دويم فصل کې د حضرت عائشې رضي الله عنها روايت دی **السواک مطهرة للفم ومرضاة للرب** د استدلال طرز داسې دی چې د مسواک تعلق د طهارت سره ورکړی شوی دی او طهارت د اودس سره تړل شوی دی دا نقلي دليل هم دی، په عقلي دليل کې ليدل شوي دي چې آيا مسواک مقصودي عبادت يعنې مونځ ته نزدې دی او که د هغه وسيله اودس ته ډير نزدې دی، د کتلو نه وروسته معلومه شوه چې د مسواک تعلق د وسيلې سره زيات دی يعنې د اودس سره زيات دی، او دې حديث د دې تصريح هم کړې ده چې **مطهرة للفم** دارنگه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مسواک باندې مداومت د اودس په وخت کې وو، دارنگه مونږ **قبل الصلوة** هم مسواک منلی دی او **فتح القدير** په پنځو ځايونو کې **قبل الصلوة** د مسواک ذکر کړی دی، ليکن چونکه د احنافو په نزد د وينې وتل د اودس ماتوونکی دی نو احناف **عند الصلوة** د مسواک نه ددې ويرې بچ شوي دي که نه نو مستحب په هغه ځای هم دی، کله چې احنافو په پنځو ځايونو کې مسنون

ومنلو نو بيا خو په مسئله کې اختلاف پاتې نه شو، همدا وجه ده چې امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ د مسواک اختلاف په خپل کتاب شرح معنی الآثار کې نه دی ذکر کړی په کوم سره چې هغه اشاره کړې ده چې په دې کې اختلاف نشته ځکه چې هغه اعرف بالخلافيات دی. (المرقات ۸۸-۸۹/۲).

## د مسواک استعمالولو ځايونه

| |
|---|
| (۲) وَعَنْ شُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ رَحِمَهُ اللهُ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ بِأَيِّ شَيْءٍ |
| د شريح بن هاني رَحِمَهُ اللهُ نه روايت دی چې ما حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه پوښتنه وکړه چې په کوم څيز سره |
| كَانَ يَبْدَأُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ بَيْتَهُ قَالَتْ |
| به شروع کوله رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله به يې کور ته تشريف راوړلو؟ هغې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راته وويل: |
| بِالسِّوَاكِ.[1] |
| تر ټولو نه مخکې به رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مسواک وهلو. |

**توضيح: اذا دخل:** يعنې کور ته د راتلو په وخت کې د ټولو نه اولنی کار مسواک وهلو وو، دا امت ته تعليم ورکړی شوی دی چې کور ته د داخليدو نه وروسته د خپلې ښځې سره د مچو (ښکلول) او غير نيونې موقع راځي نو که چيرته د خولې نه بد بويي راپورته شي نو دا د نفرت باعث کيدی شي او د ښځې او ميړه په مينځ کې نفرت د جدائي باعث جوړيدی شي نو ځکه کور ته د راتلو په وخت کې به مسواک وهل په کار دي ترڅو چې د ممکنه بد بويي راتلو امکان ختم شي.

| |
|---|
| (۳) وَعَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ لِلتَّهَجُّدِ مِنَ اللَّيْلِ |
| د حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې کله په شپه کې د تهجد د پاره پورته |
| يَشُوصُ فَاهُ بِالسِّوَاكِ.[2] (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). |
| شو نو وينځله به يې خوله خپله په مسواک سره. |

(۱) اخرجه المسلم في الصحيح ۲۲۰/۱ رقم الحديث ۴۳-۲۵۲، وابو داود ۴۴/۱ رقم الحديث ۵۱، والنسائي ۱۳/۱، رقم الحديث ۸، وابن ماجة ۱۰۶/۱، رقم الحديث ۲۹۰

(۲) اخرجه البخاري في الصحيح ۳۵۶/۱، رقم الحديث ۲۴۵، ومسلم في الصحيح ۲۲۰/۱ رقم الحديث ۴۶-۲۵۵، وابو داود ۴۷/۱ رقم الحديث ۵۵، والنسائي ۸/۱، رقم الحديث ۲.

## د ږيرې اوږدول او لس فطري شيان

(۲) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرٌ مِنَ الْفِطْرَةِ

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: لس شيان د فطرت نه دي

قَصُّ الشَّارِبِ، وَ إِعْفَاءُ اللِّحْيَةِ، وَ السِّوَاكُ، وَ اسْتِنْشَاقُ

(يعنې د دين خبرې دي)(۱) د بريتونو وينېتان پرېکول (۲) د ږيرې اوږدول (۳) مسواک وهل (۴) په پوزه کې

الْمَاءِ، وَ قَصُّ الْأَظْفَارِ، وَ غَسْلُ الْبَرَاجِمِ، وَ نَتْفُ الْإِبِطِ، وَ حَلْقُ

اوبه اچول (۵) د نوکانو پرېکول (۶) د بند ونو ځايونه وينځل (۷) د تخرګونو وينېتان صفا کول (۸) خريل د

الْعَانَةِ، وَ انْتِقَاصُ الْمَاءِ يَعْنِي الْاِسْتِنْجَاءَ، قَالَ الرَّاوِي: وَ نَسِيتُ

نامه لاندې د وينېتانو (۹) په اوبو سره استنجاء کول راوي يعنې د مصعب ياد زکريا بيان دی چې هېر شوې دی

الْعَاشِرَ إِلَّا أَنْ تَكُونَ الْمَضْمَضَةُ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ) وَ فِيْ رِوَايَةٍ اَلْخِتَانُ بَدَلَ إِعْفَاءُ اللِّحْيَةِ

لسم شی دمانه ممکن ده چې هغه غرغره کول ؤ، او په يو روايت کې د ږيرې اوږدولو په ځای ختنه کول دي

لَمْ أَجِدْ هٰذِهِ الرِّوَايَةَ فِي الصَّحِيحَيْنِ وَلَا فِيْ كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ

او صاحب د مشکوة ويلي چې ما دا روايت نه په صحيحينو کې پيدا کړی او نه مې په کتاب الحميدي کې

وَ لٰكِنْ ذَكَرَهَا صَاحِبُ الْجَامِعِ وَ كَذَا الْخَطَّابِيُّ فِيْ مَعَالِمِ السُّنَنِ

البته دا روايت صاحب د جامع الاصول په خپل کتاب کې ذکر کړی، همدارنګه خطابي په معالم السنن کې

عَنْ أَبِيْ دَاوُدَ بِرِوَايَةِ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ[1]. (مسلم).

د ابو داود په حواله د حضرت عمار بن ياسر په روايت سره نقل کړی.

**توضيح: الفطرة**: د دې لفظ يو مطلب سنن الانبياء دی يعنې د هغوي په خلقت کې داخل وو نو زمونږ په خلقت کې هم داخل دی، د دې دويم مطلب سنن الدين دی، د دې لفظ دريم مطلب انساني فطرت خلقت او طبيعت دی. يعنې دا لس خصلتونه انساني طبيعت او فطرت دی، دا شيان انساني هيئت پر ځای ساتي که نه نو د انسان هيئت غير فطري کيږي. (المرقات ۲/۹۰).

---

(۱)اخرجه المسلم في الصحيح ۱/۲۲۳ رقم الحديث.۵۶-۲۶۱، وابو داود ۱/۴۴ رقم الحديث :۵۳، والترمذي ۵/۸۵، رقم الحديث:۲۷۵۷ ، والنسائي ۸/۱۲۶ رقم الحديث : ۵۰۴۰، وابن ماجة ۱/۱۰۷، رقم الحديث:۲۹۳.

**قص الشارب**: حدیث په ټولو الفاظو سره د بریتونو د وینښتانو پرې کولو اشاره حاصله شوې ده، د خریلو اشاره نه ده حاصله شوې، اگر که فتاوی عالمگیري ورته جائز ویلي، د بریتونو بالکل صفا کول اصل سنت دي د شونډو سره یې برابر اخیستل هم جائز طریقه ده، د پوزې سره د څه وینښتانو پرینښودل او نور صفا کول د مستحب چرچل طریقه ده، او د مینځ نه د څه وینښتانو پریکول دواړو طرفونو ته د کافي وینښتانو پرینښودل د مانکي د شیخانو نا مناسبه طریقه ده. (المرقات ۲/۹۱).

**اعفاء اللحية**: د باب افعال نه د معاف کولو په معنی سره دی، یعنې معاف کولو سره ښه یې پریږدی او په تراشلو او خریلو سره یې مه چیړئ، د ږیرې اوږدولو هیڅ اندازه نشته، هو که چیرته مخ وړوکی وي او د صلحاو په نزد مخ بد ښکاري نو د ږیرې دومره کمول جائز دي چې بده نه ښکاري، لیکن د یو موټي نه کمول یې جائز نه دي، تر یو موټي پورې کمول د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه ثابت دي که نه نو په احادیثو کې د اوږدولو حکم دی، ملا علي قاري رحمه الله په مرقاة کې لیکلي دي چې د ږیرې کمول د عجمو عمل دی او نن سبا دا د ډیرو مشرکانو او فرنگیانو (انگریزانو)، یهودو، ملحدانو خلکو شعار جوړ شوی دی او د قلندریه طائفه هم دا شعار جوړ شوی دی د کوم چې د دین سره هیڅ تعلق نشته، هو که چیرته د ښځې ږیره راشي نو هغې لره یې خریل مستحب دي د ږیرې ساتل واجب دي، هغې ته د سنت ویلو مطلب دا دی چې په سنت طریقې سره ثابت ده، حضور صلی الله علیه وسلم هر نبي او هر صحابي د ږیرې په ساتلو باندې مداومت کړی دی کوم چې د وجوب دلیل دی. (المرقات ۲/۹۱).

**وقص الاظفار**: یعنې د نوکانو پریکول یو فطري عمل دی او کوم کسان چې نوکان غټوي دوی د غیر فطري او غیر انساني عمل مرتکب کوونکي دي، د نوکانو پریکول په هره طریقه جائز دي لیکن بهترینه طریقه داسې ده چې د ښي لاس د شهادت د گوتې نه شروع کړی شي تر کچې گوتې پورې پریکړل شي او بیا دې د چپ لاس د کچې گوتې شروع کړي تر غټې گوتې پورې دې پریکړي، بعضو ویلي دي چې د ښي لاس گوتې دې پریږدي د چپ لاس دې شروع کړي تر کچې دې پریکړي او په اخیر کې دې د ښي لاس په غټې گوتې ختم کړي، او په پښو کې د ښي پښې د کچې گوتې نه نیولې د چپې تر اخیره پورې پریکول عامه او مروجه طریقه ده. (المرقات ۲/۹۱).

**وغسل البراجم**: دا د برجمة جمع ده د گوتو په بندونو کې چې کومې کرخې دي هغو ته ویل کیږي، لیکن دا حکم هر هغه ځای ته عام دی چیرته چې خیرې جمع کیدی شي، مثلاً د غوږ چار چاپیره او د هغه دننه برخه په پوزه کې دننه چې کوم خیرې جمع کیږي یا د بدن باقي برخو کې چیرته چې خیرې جمع کیږي ټول په کې داخل دي. (المرقات ۲/۹۱).

**ولتف الابط** : يعنې د تخرګونو وېښتان صفا کول، نتف د ويستلو په معنی سره دی لهذا همدا لفظ ويل شوی دی چې تخرګونه دې په چاړې سره نه صفا کيږي ځکه چې په هغې سره وېښتان ډير او ځنګلي کيږي او بيا بد بويي پيدا کيږي، په ګوتو سره ويستل کله چې عادت جوړ شي نو بيا په اسانۍ سره دا وېښتان ويستل کيدی شي. (المرقات ۲/۹۱).

**وحلق العانة** : يعنې د نامه د لاندې وېښتانو خريل، ابن مالک (کوم چې يو فقهي دی) ويلي دي چې د نامه نه د لاندې وېښتانو خريل سنت دي، په کومه بله طريقه سره په صفا کولو سنت نه پوره کيږي، ځينې خلکو يې په بال صفا او چونې سره صفا کول هم جائز ګرځولې دي مګر په قينچي سره يې پرې کول جائز نه دي.

د سړو دپاره په چاړې (پترې) سره په خريلو کې قوت باه ده او د ښځو دپاره د نامه نه د لاندې وېښتانو ويستل ډير بهتر دي، په دې سره د هغوی شهوت کنټروليږي خو بيا ښځې بال صفا او چونه استعمالولی شي مګر د دوي دپاره يې خريل خلاف سنت دي.د مسلم شريف په روايت کې دي چې رسول الله صَلَّاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ د صحابه کرامو دپاره د شونډو وېښتانو صفا کول د نوکانو پريکول د تخرګونو صفا کول او د نامه نه د لاندې وېښتانو خريلو دپاره زيات نه زيات څلويښت ورځې وخت ورکړی وو، نو د ټول امت د پاره همدا تعليم دی.

علماؤ دا ترتيب ښودلی دی چې هفته واره صفائي وکړی شي که نه نو په پنځلس ورځو کې دې وکړی شي که نه نو په څلويښتو ورځو کې دې وکړی شي ددې نه زيات وروسته کول مکروه تحريمي دي، په بعضې روايتونو کې راغلي دي چې دا لس شيان هغه وو د کومو په ذريعه چې الله تعالی د حضرت ابراهيم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا امتحان اخيستی وود کومو طرف ته چې په دې آيت کريمه کې اشاره ده ﴿ وَإِذِ ابْتَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ فَأَتَمَّهُنَّ ﴾ نو دا د هغه سنت وو بيا د ټولو انبياء کرامو سنت پاتې شو او د امتونو د فطرت برخه جوړه شوه. (المرقات ۲/۹۲).

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## د مسواک وهلو فايدې

**(۵) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السِّوَاكُ مَطْهَرَةٌ لِلْفَمِ**

د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی چې رسول الله صَلَّاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ وفرمايل: مسواک وهل د خولې د پاکوالي سبب

مَرْضَاةٌ لِلرَّبِّ[1].

دی او د پروردګار د خوشحالی باعث دی، او امام بخاري دا حدیث په (بخاري) کې د سند نه په غیر نقل کړی

(۶) وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعٌ مِنْ سُنَنِ الْمُرْسَلِينَ

د ابو ایوب رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: څلور شیان د رسولانو د طریقو نه دي

الْحَيَاءُ وَ يُرْوَى الْخِتَانُ

(۱) حیاء کول، په یو روایت کې خته کول مروي دي (یعني په دې روایت کې د الحیاء لفظ راغلی او په

وَ التَّعَطُّرُ ، وَ السِّوَاكُ وَ النِّكَاحُ[2].

بعضو روایتونو کې د دې په ځای د الختان لفظ راغلی) (۲) خوشبو لګول (۳) مسواک وهل (۴) نکاح کول

(۷) وَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَرْقُدُ مِنْ

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې کله را پورته شو د خوب نه د

لَيْلٍ وَلَا نَهَارٍ فَيَسْتَيْقِظُ إِلَّا يَتَسَوَّكُ قَبْلَ أَنْ يَتَوَضَّأَ[3].

شپې او یا په ورځ کې نو د اودس کولو نه مخکې به یې مسواک وهلو.

(۸) وَ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَسْتَاكُ فَيُعْطِينِي السِّوَاكَ

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مسواک وهلو بیا یې ماته راکړ تر څو

لِأَغْسِلَهُ فَأَبْدَأُ بِهِ فَأَسْتَاكُ

چې زه هغه ووینځم لهذا ما (د دوي صلی الله علیه وسلم مسواک واخیست) اول مې په خپله په هغه سره مسواک

ثُمَّ أَغْسِلُهُ وَ أَدْفَعُهُ إِلَيْهِ . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[4].

وکړ بیا مې ووینځلو او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته مې ورکړ.

(۱) أخرجه الشافعي في مسنده ص ۱٤ ، وأحمد في المسند ٤٧/٦ ، والدارمي في السنن ١٨٤/١ ، رقم الحديث ٦٨٤ ، والنسائي في السنن ١٠/١ ، رقم الحديث ٦

(۲) الترمذي في السنن ٣٩١/٣ ، رقم الحديث ١٠٨٠ ، وأحمد في المسند ٤٢١/٥.

(۳) أخرجه أبو داود في السنن ٤٧/١ ، رقم الحديث ٥٧ ، وأخرجه أحمد في المسند ٦ ١٦٠

(٤) أخرجه أبو داود في السنن ٤٤/١ ، رقم الحديث ٥٢

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د مسواک اهمیت

| |
|---|
| (۹) عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَرَانِي فِي الْمَنَامِ |
| دابن عمر رضي الله عنه روایت دی چې یو ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ما خپل ځان په خوب کې ولیدو |
| أَتَسَوَّكُ بِسِوَاكٍ فَجَاءَنِي رَجُلَانِ أَحَدُهُمَا أَكْبَرُ مِنَ الْآخَرِ |
| چې زه مسواک وهم (په دې وخت کې) دوه کسان ماته راغلل په هغوی کې یو کس د هغه بل نه مشرؤ ما په |
| فَنَاوَلْتُ السِّوَاكَ الْأَصْغَرَ مِنْهُمَا فَقِيلَ لِي كَبِّرْ |
| هغوی کې وړوکي ته د مسواک ورکولو اراده وکړه مکرماته وویل شول چې مشر ته مسواک ورکړه لهذا |
| فَدَفَعْتُهُ إِلَى الْأَكْبَرِ مِنْهُمَا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| په هغوی کې مې مشر ته مسواک ورکړو. |

**توضیح**: **اراني**: یعنې ما په خوب کې خپل ځان ولیدو، د انبیاء کرامو خوب د وحې درجه لري نو کوم عمل چې دوی په خوب کې کړی دی هغه د امت دپاره شریعت جوړ شوی دی، ګویا چې مسواک د اکرام او اعزاز سبب دی نو رسول الله صلی الله علیه وسلم مشر په همدې اکرام سره مشرف کړو، ددې حدیث نه وروسته د حضرت عائشې رضي الله عنها په حدیث نمبر ۱۲کې همدارنګه قیصه د بیدارۍ په حالت کې ذکر شوې ده چیرته چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د وحې په ذریعه حکم اوشو چې مسواک مشر ته ورکړئ.

ددې حدیث نه وروسته په ډیرو احادیثو کې د مسواک نهایت ترغیب ورکړی شوی دی لهذا په حدیث نمبر لسم کې د **لقد خشیت ان احفی مقدم في** الفاظ راغلي دي، رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي دي چې جبرئیل امین په مسواک باندې دومره زور ورکولو چې ما سره ویره پیدا شوه چې زه د خولې مخکنی برخه غوڅه نه کړم، **في فم** یو لغت دی د شد سره خولې ته ویل کیږي. (المرقات ۲/۹۷).

| |
|---|
| (۱۰) وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا جَاءَنِي جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| دابو امامة رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل جبرئیل علیه السلام چې کله هم ماته راغلی |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۳۵۶/۱ رقم الحديث : ۲۴۶ ، ومسلم في صحيحه ۷۷۹/۴ ، رقم الحديث : ۱۰ - ۲۲۷۱.

إِلَّا أُمِرْتُ بِالسِّوَاكِ لَقَدْ خَشِيتُ

نو ماته يې د مسواک وهلو حکم کړی (تردې چې) ما سره ويره پيدا شوه (چې د مسواک په زيات وهلو سره)

أَنْ أُحْفِيَ مُقَدَّمَ فِيَّ. (رَوَاهُ أَحْمَدُ)[1].

زه د خپلې خولې مخکنۍ برخه غوڅه نه کړم.

(۱۱) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ أَكْثَرْتُ عَلَيْكُمْ

د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ما ډير څه بيان کړي دي تاسو

فِي السِّوَاكِ (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[2].

ته د مسواک وهلو متعلق.

(۱۲) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَنُّ وَعِنْدَهُ

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مسواک وهلو او د دوی صلى الله عليه وسلم

رَجُلَانِ أَحَدُهُمَا أَكْبَرُ مِنَ الْآخَرِ فَأُوحِيَ إِلَيْهِ فِي فَضْلِ

سره دوه کسان وو په کوم کې چې يو د بل نه مشر وو لهذا دوي صلى الله عليه وسلم ته داوحي وشوه په فضيلت د

السِّوَاكِ أَنْ كَبِّرْ أَعْطِ السِّوَاكَ أَكْبَرَهُمَا. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[3].

مسواک کې چې مشر مقدم وساته يعنې په دوی دواړو کې مشر ته مسواک ورکړئ.

## د مسواک لوی فضيلت

(۱۳) وَعَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَفْضُلُ الصَّلَاةُ الَّتِي

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: فضيلت د هغه مونځ د کوم

يُسْتَاكُ لَهَا عَلَى الصَّلَاةِ الَّتِي لَا يُسْتَاكُ لَهَا

د پاره چې مسواک وهلی شي (يعنې دا ودس په وخت کې) په هغه مونځ باندې د کوم د پاره چې مسواک نه

(۱) أخرجه ابن ماجه من حديث طويل ۱۰۶/۱ رقم الحديث ۲۸۹، وأحمد في المسند ۲۶۳/۵.
(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۳۷۴/۲، رقم الحديث: ۸۸۸. وأخرجه النسائي في السنن ۱۱/۱، رقم الحديث: ۶.
(۳) أخرجه أبو داود في السنن ۴۳/۱، رقم الحديث: ۵۰.

سَبْعِينَ ضِعْفًا. (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ)[1].

وي وهل شوی اویا (۷۰) درجې فضیلت حاصل دی.

(۱۴) وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابو سلمه د زید بن خالد جهني رضي الله عنه نه روایت کړی چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا آوریدلي دي

يَقُولُ لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي لَأَمَرْتُهُمْ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ

چې فرمایل یې که چیرته نه سختید و زما په امت باندې نو ما به هغوی ته حکم کولو د هر مونځ د پاره د مسواک

وَ لَأَخَّرْتُ

وهلو (یعني دا اعلان به مې کړی وی چې د هر مونځ په وخت کې مسواک وهل واجب دي) او وروسته کولو

صَلَاةَ الْعِشَاءِ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ قَالَ فَكَانَ زَيْدُ بْنُ خَالِدٍ

به مې د ماسخوتن مونځ د شپې تر دریمې برخې پورې دراوي بیان دی چې (د دې نه وروسته) زید بن خالد

يَشْهَدُ الصَّلَوَاتِ فِي الْمَسْجِدِ وَ سِوَاكُهُ عَلَى أُذُنِهِ

رضي الله عنه د مونځ د پاره جوماتت ته راتلو نو مسواک به د هغه په غوږ ونو کې تومبلی وو لکه څنګه چې کاتب

مَوْضِعَ الْقَلَمِ مِنْ أُذُنِ الْكَاتِبِ لَا يَقُومُ إِلَى الصَّلَاةِ إِلَّا اسْتَنَّ

قلم په غوږ ونو کې تومبلی وي هغه به چې کله د مونځ د پاره ودریده نو سمد ستي به یې مسواک وهلو او

ثُمَّ رَدَّهُ إِلَى مَوْضِعِهِ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ) إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ وَلَأَخَّرْتُ صَلَاةَ الْعِشَاءِ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ وَ

بیا به یې په غوږ کې کینبود، ابو داؤد د لاخرت صلوة العشاء الی ثلث اللیل الفاظ ذکر کړي نه دي او

قَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَاللهُ أَعْلَمُ[2].

امام ترمذي ویلي دي چې دا حدیث حسن صحیح دی.

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۶/۲۷۲.

(۲) اخرجه الترمذي ۱/ ۳۵ رقم الحديث :۲۳، وابوداود ۱/ ۴۰ رقم الحديث :۴۷، وأحمد في المسند : ۴/ ۱۱۶.

# بَابُ سُنَنِ الْوُضُوءِ

## داودس دسنتو بیان

علامه طیبي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې د سنن الوضوء د عنوان نه صرف د اودس سنت نه دي مراد بلکې دلته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقوال، افعال او تقریرات ټول مراد دي هغه که واجب وي که فرض وي او که سنت وي لکه څرنګه چې کله کله د فرضو او واجبو په باره کې هم راغلي چې په سنت کې داسې راغلي دي حالانکه هلته صرف سنت مراد نه دي، بلکې په سنت طریقې سره د شریعت حکم مراد دی لهذا په دې باب کې سنت، فرائض، آدب او مستحبات ټول بیانیږي. (الکاشف ۲/۷۱، المرقات ۲/۱۰۱).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### په لوښي کې د لاس نویستلو مسئله

| |
|---|
| (۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ |
| دابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کله چې راپورته شي یو په تاسو کې |
| مِنْ نَوْمِهِ فَلَا يَغْمِسْ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ حَتَّى |
| دخوب نه (نو هغه ته په کار دي) چې خپل لاس داوبو په لوښي کې دننه نه کړي ترڅو چې هغه تر مروندونو |
| يَغْسِلَهَا فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| پورې درې ځلې ونه وینځي ځکه چې هغه ته معلومه نه ده چې چیرته تیره کړې ده شپه لاس نو دده. |

**توضیح : فلا یغمس یده في الاناء** : دلته د اودس د آدابو نه یو ادب بنودل شوی دی چې کله ویده کس راپورته شي نو د اوبو په لوښي کې د لاس د دننه کولو نه مخکې دې هغه درې ځلې وینځي د وینځلو نه په غیر دې لاس په کې نه ننباسي، اوس د دې لاس وینځل واجب دي او که سنت دي په دې کې تفصیل دی چې که چیرته په لاس باندې د ګندګۍ لګیدلو یقین یا غالب ګمان وو نو بیا یې وینځل واجب دي او که چیرته صرف شک او احتمال وو نو بیا د لاس وینځل سنت دي یا مستحب دي.

امام نووي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې اهل حجاز زیاتره وخت په کانړو باندې استنجاء کوي او هلته ډیره سخته ګرمي وه همدارنګه هغو خلکو د پرتوګ پر ځای لنګ ترلو په دې وجه قوي احتمال وو چې د خوب په

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۲۶۳، رقم الحديث: ۱۶۲، ومسلم في الصحيح ۱/۲۳۳ رقم الحديث: ۸۷-۲۷۸، وأبو داود ۱/۷۸ رقم الحديث: ۱۰۵، والنسائي ۱/۶، رقم الحديث: ۱، والترمذي ۱/۳۶ رقم الحديث: ۲۴، وابن ماجة ۱/۱۳۸، رقم الحديث: ۳۹۳.

حالت کې به لاس د نجاست پر ځای باندې لګيدلی وي او د خولو د وجې به په نجاست سره لاس لوند شوی وي يا به يې بوی ورباندې لګيدلی وي، نو ځکه رسول الله ﷺ حکم وکړو چې د لاس د رينځلو نه بغير لاس په لوښي کې دننه نه کړئ ځکه چې د نجاست احتمال دی، ددې عبارت نه معلومه شوه چې که چيرته په اوبو سره يو څوک استنجاء کوي يا د لنګ پر ځای پرتوګ اغوندي او علاقه هم يخه وي نو د لاس د وينځلو نه بغير هم لاس په لوښي کې دننه کولی شي.

بهر حال چيرته چې د نجاست توهم وي هلته هم د لاس په ننويستلو سره اوبه نه ناپاکه کيږي ځکه چې (اليقين لايزول بالشک) يوه منل شوې قاعده ده، خو د پاکوالي خلاف ده، بهر حال په دغه مسئله کې د فقهاء کرامو اختلاف هم دی د کوم تفصيل چې په لاندې طور دی ، (المرقات ۲/۱۰۲).

**د فقهاء کرامو اختلاف** : د اهل ظواهرو او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد که چيرته د خوب نه راپورته شوی کس په اوبو کې لاس ننباسي نو اوبه ناپاکه کيږي، البته امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ يو تعداد قيدونه زيات کړي دي چې د خوبه راپورته شي لهذا د بيهوشه انسان د لاس په ننويستلو سره هيڅ فرق نه راځي، دويم قيد دا دی چې د شپې اوږد خوب به وي لهذا د ورځې د کم خوب همدا حکم نه دی ، دريم قيد دا دی چې په لوښي کې به يې لاس ننويستلی وي لهذا د لوښي نه بغير د بل شي همداسې حکم نه دی ، ده ويلي دي چې په حديث کې دا قيودات احترازي دي.

د جمهورو فقهاؤ په نزد دا فعل اګر که مکروه دی ليکن د نجاست د احتمال د وجې اوبو ته ناپاکه نه شي ويل کيدی، ځکه چې اوبه په يقيني طور پاکې وې (اليقين لايزول بالشک) يوه قاعده ده، خو که چيرته ظاهري نجاست لګيدلی وي بيا ناپاکه کيږي، جمهورو هم داسې ويلي دي چې په حديث کې کوم قيودات دي هغه احترازي نه دي بلکې اتفاقي دي، لهذا که چيرته بيهوشه انسان د غفلت د وجې په اوبو کې لاس دننه کړي نو دا عمل هم مکروه دی ځکه چې دا هم د غفلت نتيجه ده او (فانه لايدري اين باتت يده) سره ددې علت طرف ته اشاره شوې ده، که چيرته لوښی غټ دی نو اول دې د يوه لاس په ګوتو سره اوبه را واخيستل شي دويم لاس دې ووينځل شي او بيا دې په دې لاس سره دويم لاس ووينځل شي او بيا دې په دواړو لاسونو سره لوټه ډکه کړي او اودس دې وکړي، او که چيرته لوښی وړوکې دی نو په څنګ دې کوږ کړی شي او که چيرته جدا لوټه ده نو په غټ لوښي کې دې واچوي اوبه دې ترې را واخلي. (المرقات ۲/۱۰۲).

## د مضمضې او استنشاق مسئله

| |
|---|
| (۲) وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ |
| د ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چې راپورته شي يو کس په تاسو |

| |
|---|
| مِنْ نَوْمِهِ فَلْيَسْتَنْثِرْ ثَلَاثًا |
| کې د خوب نه او د اودس اراده وکړي نو دري ځلې دې (په پوزه کې اوبه واچوي) ګندګي دې پاکه کړي |
| فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَبِيتُ فِيْ خَيْشُومِهِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| ځکه چې شيطان شپه تيره کړې ده د ده د پوزې په نرميو کې. |

**توضيح** : **فليستنثر ثلاثا** : يعنې درې ځلې دې په پوزه کې اوبه واچوي او سوڼ دې کړي کوم ته چې استنشاق هم ويل شوی دی، په مضمضه او استنشاق کې د فقهاؤ اختلاف هم دی.

د مضمضې او اشتنشاق په اودس او غسل کې څه حيثيت دی په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی، د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد مضمضه او استنشاق دواړه په اودس او غسل کې سنت دي، د اهل ظواهرو او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد مضمضه خو په دواړو کې سنت ده ليکن استنشاق په اودس او غسل دواړو کې فرض دی، يعنې د شافعيانو او مالکيانو په نزد په دواړو ځايونو کې سنت دي او د حنابلو په نزد مضمضه په دواړو ځايونو کې سنت او استنشاق فرض دی، د ائمه احنافو په نزد په اودس کې دواړه سنت دي او په غسل کې دواړه فرض دي.

**دلائل** : د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ اول دليل خو د اودس آيت دی په کوم کې چې د اودس ټول فرائض ذکر شوي، هلته د مضمضې او استنشاق ذکر نه دی شوی، نو که چيرته مونږ په حديث سره فرضيت ثابت کړو نو دا به په خبر واحد سره په کتاب الله باندې زيادت راشي کوم چې ناروا دی لهذا فرض نه دي لکين سنت دي.ددې حضراتو دويم دليل د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روايت دی (عشر من الفطرة) او (عشر من سنن المرسلين) دی چيرته چې مضمضه او استنشاق ته سنت ويل شوي دي نو په اودس او غسل دواړو کې دواړه سنت دي. امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او اهل ظواهرو د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زير بحث حديث باندې استدلال کړی دی په کوم کې چې د (ليستنثر) د امر صيغه راغلې ده او په دې سره فرض ثابت شول، کله چې په حدث اصغر کې فرض شول په حدث اکبر کې په طريقه اولی فرض دي، ائمه احنافو ته د دوو جدا جدا دليلونو ضرورت دی لهذا د دواړو په اودس کې په سنت کيدو باندې د احنافو دليل هماغه ايت دی په کوم سره چې شافعيانو او مالکيانو استدلال کړی دی چې په آية الوضوء کې که چيرته مضمضه او استنشاق ته فرض وويل شي نو په دې سره به په کتاب الله باندې زيادت راشي کوم چې ناروا دی، ليکن په غسل کې د دواړو په فرض کيدو

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۳۳۹/۶،رقم الحديث : ۳۲۹۵، ومسلم في الصحيح ۲۱۲/۱ رقم الحديث:۲۳-۲۳۸.

باندې احنافو د قرآن په آيت **فاطهروا** استدلال کړی دی کوم چې د مبالغې صيغه ده د کوم چې تقاضا دا ده چې په غسل کې دې د ډيرې زياتې مبالغې نه کار واخيستل شي، ددې مبالغه تقاضا دا ده چې په بدن کې کومه برخه چې من وجه ظاهر او من وجه باطن ده هغه هم د غسل په حکم کې راغلې فرض ده، کله چې مونږ وکتل نو په بدن کې داسې ځايونه پوزه او خوله دي، ځکه خوله چې خلاصه کړی شي نو هغه حسًا د بدن ظاهر برخه ده دارنگه که چيرته کوم کس د روژې په حالت کې په خوله کې اوبه واچوي او د مرۍ نه بهر اوبه وساتي نو روژه نه ماتيږي، معلومه شوه چې دا حکمًا د بدن ظاهر دی او که چيرته د خولې نه روژه دار لاړې تيرې کړي نو په دې سره روژه نه ماتيږي دا د دې خبرې دليل دی چې حکما خوله د بدن د باطن برخه ده، همدارنگه چې پوزه پورته کړی شي نو دننه برخه يې تر سترگو کيږي دا د ظاهر بدن کيدو دليل دی، او کله چې ښکته کړی شي نو دننه هيڅ نه تر سترگو کيږي دا د باطن علامه ده، اوس آيت چې د کومې مبالغې ذکر کړی دی د هغه مقصد هلته پوره کيدی شي چې د بدن د ظاهر نه وړاندې لاړ شي هغه برخه هم وينځل شي کومه چې په يوه حيثيت سره باطن گڼل کيږي لهذا د مضمضې او استنشاق الفاظ د قرآن مطابق په غسل کې فرض کيدل په کار دي دا په کتاب الله باندې زيادت نه دی، بلکې دآيت غوښتنه ده خو بيا هم مونږ ددې فرض نه منکر کافر نه جوړوو ځکه چې په دې کې اجتهاد لره دخل دی.

احنافو ددې نه بغير په دې حديث سره هم استدال کړی دی چې **(تحت کل شعرة جنابة)** ځکه چې په پوزه کې يو ويښته نه دی بلکې په سلگونو ويښتان دي او په جنسي تعلقاتو کې لمسوت قبلوت کې د خولې ډير دخل وي نو مضمضه او اشتنشاق ضروري دي.همدارنگه په جماع کې د حيوانيت صفت دې د شريعت په نظر کې په هغې کې ډيرکموالی کول په کار دي نو ځکه شريعت په غسل کې سختي کړې ده ترڅو چې حيوانيت کم شي، د دې هم تقاضا دا ده چې په غسل کې مضمضه او استنشاق فرض دي.

**جواب**: د اهل ظواهرو او حنابلو د دليل جواب دا دی چې امر کله د قرينې نه خالي وي نو هلته د وجوب دپاره راځي دلته خو په عدم وجوب باندې قرينه صارفه مانعه موجوده ده چې په دې سره په آيت باندې زيادت لازميږي.

الزامي جواب دا دی چې که **(فليستنثر)** امر راغلی دی نو په حديث کې **(مضمضه)** هم د امر صيغه ده نو مضمضې ته ولې فرض نه ويل کيږي؟ شوافعو او مالکيانو ته جواب دا دی چې په حديث کې د اودس والا مضمضه او استنشاق مراد دي د غسل والا نه دي، يا د سنن المرسلين نه د هغوي طريقه مراد ده او طريقه فرض واجب او سنت ټولو لره شامله ده.

۲٤ صفر ۱٤۱۰هـ

## د سر د مسح کولو مسئله :

وَ قِيلَ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ

د عبد الله بن زيد بن عاصم رضي الله عنه نه پوښتنه وشوه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم څه قسم اودس کړی وو ؟

فَدَعَا بِوَضُوءٍ

(دا يې چې واوريدل) نو عبد الله رضي الله عنه د اودس اوبه را وغوښتلې (کله چې اوبه راوړل شوې) نو هغه

فَأَفْرَغَ عَلَى يَدَيْهِ فَغَسَلَ يَدَيْهِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ مَضْمَضَ

په دواړو لاسونو باندې اوبه وااچولې او هغه يې مړوندو پورې دوه دوه ځلې ووينځل بيا غرغره وکړه او به

وَ اسْتَنْثَرَ ثَلَاثًا ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا ثُمَّ غَسَلَ يَدَيْهِ

يې واچولې پوزه يې سونړ کړه درې ځلې بيا يې خپل مخ درې ځلې ووينځلو بيا يې ووينځل دواړه لاسونه

مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ ثُمَّ مَسَحَ رَأْسَهُ بِيَدَيْهِ

تر څنګلو پورې دوه دوه ځلې بيا يې په دواړو لاسونو سره د سر مسحه وکړه (داسې) چې دواړه لاسونه يې

فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَ أَدْبَرَ

دمخې د طرف نه د شا طرف ته ويوړل او د شا د طرفه يې بيرته د مخې طرف ته راوړل، يعني هغه د خپل سر د

بَدَأَ بِمُقَدَّمِ رَأْسِهِ ثُمَّ ذَهَبَ بِهِمَا إِلَى قَفَاهُ ثُمَّ رَدَّهُمَا حَتَّى رَجَعَ إِلَى

مخکنۍ برخې نه شروع کړه او دواړه لاسونه يې تر اوږو پورې ورسول بيا يې هغه (بيرته راوګرځول) هغه ځاى

الْمَكَانِ الَّذِي بَدَأَ مِنْهُ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ . (رَوَاهُ مَالِكٌ وَالنَّسَائِيُّ).

ته يې واپس راوستل د کوم ځاى نه يې چې شروع کړې وه بيا يې دواړه پښې ووينځلې.

وَلِأَبِي دَاوُدَ نَحْوُهُ ذَكَرَهُ صَاحِبُ الْجَامِعِ وَفِي الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ قِيلَ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ

په بخاري او مسلم کې دا روايت داسې دى چې عبد الله بن زيد بن عاصم رضي الله عنه ته ويل شو څه رنګه

تَوَضَّأْ لَنَا وُضُوءَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

چې رسول الله صلى الله عليه وسلم اودس کړى وو هماغسې تاسو زمونږ په وړاندې اودس وکړئ، لهذا عبد الله

فَدَعَا بِإِنَاءٍ

بن زيد رضي الله عنه د اوبو لوښى راوغوښت (کله چې د اوبو لوښى راوړى شو) نو ده هغه پورته کړ او د هغه نه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَكْفَأَ | مِنْهُ | عَلَى | يَدَيْهِ | فَغَسَلَهُمَا | ثَلَاثًا | ثُمَّ | أَدْخَلَ | يَدَهُ |

يې په خپل لاس باندې اوبه توی کړې درې ځلې يې وو ينځل بيايې لاس په لوښي کې داخل کړه او دهغه نه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَاسْتَخْرَجَهَا | فَمَضْمَضَ | وَاسْتَنْشَقَ | مِنْ | كَفٍّ | وَاحِدَةٍ |

يې اوبه را واخيستې بيا ده په يوې لپې اوبو سره غرغره وکړه او په پوزه کې يې اوبه واچولې او همداسې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَفَعَلَ | ذٰلِكَ | ثَلَاثًا | ثُمَّ | أَدْخَلَ | يَدَهُ | فَاسْتَخْرَجَهَا | فَغَسَلَ | وَجْهَهُ ثَلَاثًا |

يې درې ځلې وکړل بيا ده خپل لاس په لوښي کې داخل کړه او به يې ترې را واخيستې او درې ځلې يې مخ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | أَدْخَلَ | يَدَهُ | فَاسْتَخْرَجَهَا | فَغَسَلَ | يَدَيْهِ إِلَى |

وو ينځلو بيا ده خپل لاس په لوښي کې داخل کړ او به يې ترې را واخيستې او دواړه لاسونه يې وو ينځل تر

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْمِرْفَقَيْنِ | مَرَّتَيْنِ | ثُمَّ | أَدْخَلَ | يَدَهُ | فَاسْتَخْرَجَهَا | فَمَسَحَ | بِرَأْسِهِ | |

څنګلو پورې دوه دوه ځلې بيا يې لاس په لوښي کې داخل کړ او به يې ترې را واخيستې او د سر مسح يې داسې

فَأَقْبَلَ بِيَدَيْهِ وَ أَدْبَرَ

وکړه چې خپل دواړه لاسونه يې د مخې طرف نه د شا طرف ته ويوړل او بيايې د شا طرف نه مخې طرف ته راوړل

ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا كَانَ وُضُوءُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

او بيايې خپلې دواړه پښې تر ښنګرو پورې وو ينځلې بيايې وويل د رسول الله صلی الله علیه وسلم همدا اودس وو

وَ فِي رِوَايَةٍ فَأَقْبَلَ بِهِمَا

دبخاري او دمسلم په يو روايت کې داسې دي چې د (مسح دپاره يې) خپل لاسونه د مخې طرف نه شا طرف ته

وَ أَدْبَرَ بَدَأَ بِمُقَدَّمِ رَأْسِهِ

ويوړل او بيايې د شا طرف نه مخې طرف ته راوړل يعنې د خپل سر د مخکنۍ برخې يې مسح شروع کړه او

ثُمَّ ذَهَبَ بِهِمَا إِلَى قَفَاهُ ثُمَّ رَدَّهُمَا حَتَّى رَجَعَ إِلَى الْمَكَانِ الَّذِي بَدَأَ مِنْهُ

لاسونه يې د اوږو طرف ته ويوړل بيايې دا وږو د طرفه هغه ځای ته راوړل د کوم ځای نه يې چې مسح شروع کړې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | غَسَلَ | رِجْلَيْهِ . | وَ | فِي رِوَايَةٍ | فَمَضْمَضَ |

وه او بيايې خپل لاسونه وو ينځل، د صحيحينو په يو بل روايت کې دي چې غرغره يې وکړه په پوزه يې کې

وَاسْتَنْشَقَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلَاثَ غَرَفَاتٍ مِنْ مَاءٍ وَفِي رِوَايَةٍ أُخْرَى فَمَضْمَضَ

اوبه واچولې او پوزه يې درې څلې سوڼ کړه په دريو لپو سره، ديو بل روايت الفاظ داسې دي چې پس غرغره

وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفَّةٍ وَاحِدَةٍ فَفَعَلَ ذٰلِكَ ثَلَاثًا وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ

يې وكړه او په پوزه كې يې اوبه واچولې او همداسې يې درې څلې وكړل، د بخاري د روايت الفاظ داسې دي

فَمَسَحَ رَأْسَهُ فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَ

چې د سر مسح يې وكړه (داسې چې) خپل دواړه لاسونه يې د مخې د طرف نه شا طرف ته ويوړل او د شا د

أَدْبَرَ مَرَّةً وَاحِدَةً ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ

طرف نه يې د مخې طرف ته راوړل او دا يې يو ځل وكړل او بيا يې دواړه پښې تر ښنګرو پورې ووينځلې.

وَفِي أُخْرَى لَهُ فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ مِنْ غَرْفَةٍ وَاحِدَةٍ.[1]

دبخاري ديو روايت الفاظ داسې دي چې غرغره يې وكړه او پوزه يې سوڼ كړه درې ځلې صرف په يوه لپه.

**توضيح: ثم مسح برأسه بيديه**: د سر د مسح كولو حكم په قرآن سره ثابت دى د هغې په فرضيت كې د هيڅا اختلاف نشته دى، هو په مقدار كې اختلاف شته چې څومره اندازه فرض ده، په هغې كې د څلورو امامانو اختلاف دارنګه دى:

**د فقهاء كرامو اختلاف**: د امام مالك رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد د ټول سر مسح يو ځل ده، د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد د سر زياتره برخه مسح كول فرض دي، د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد هيڅ خاص مقدار نشته بلكې (**أدنى مايطلق عليه المسح**) فرض ده هغه كه يو څه ويښتان هم وي، هو د ده په نزد په مسح كې تثليث سنت دى، يعنې درې ځلې يې تكرارول سنت دي.

د احنافو په نزد د ناصيه په مقدار فرض ده كوم چې د سر څلورمه برخه د څلورو ګوتو په اندازه ده، استيعاب سنت دى او په مسح كې تكرار نشته دى، د مسح تعريف يې داسې كړى دى (**إمرار اليد المبتلة العضو**) يعنې په اوبو سره د لامده لاس په كوم اندام باندې د تيرولو نوم مسح دى.

---

(١) أخرجه البخاري في الصحيح ٢٨٩/١، رقم الحديث: ١٨٥، ومسلم في الصحيح ٢١٠/١ رقم الحديث: ١٨-٢٣٥، وأبوداود ٨٩/١ رقم الحديث: ١١٨، والنسائي ٧١/١، رقم الحديث: ٩٧.

**دلائل**: د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ دلیل د قرآن کریم آیت دی ﴿وَامْسَحُواْ بِرُؤُوسِكُمْ﴾ دی چې دلته بأء زائده ده نو (وامسحوا رؤسکم) سره د ټول سر مسح فرض شوه، دلته بأء داسې زائده ده لکه څرنګه چې د تیمم په آیت ﴿فَامْسَحُواْ بِوُجُوهِكُمْ﴾ کې زائده ده هلته ټول مخ مراد دی.

د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ نه ډیر روایتونه منقول دي مګر مشهور یې دا دي چې دا د سر زیاتره برخې مسح کول فرض ګڼي، د ده دلیل هم د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په شان دا آیت دی لیکن د (للاکثر حکم الکل) قاعدې مطابق د سر زیاتره برخې مسح کول فرض ګڼي، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې په آیت کې د مطلق مسح ذکر دی او په یوه فرد باندې په عمل کولو سره په مطلق باندې عمل شوی دی لهذا په څو ویښتانو باندې د مسح په کولو سره د مطلق حق اداء کیدی شي.د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ دلیل هم همدا آیت دی په کوم کې چې ﴿وَامْسَحُواْ بِرُؤُوسِكُمْ﴾ دی، د استدلال د طرز یوه طریقه داسې ده چې کله د کوم فعل نه وروسته د هغه مفعول به راشي نو دا ضروري نه ده چې فعل په ټول مفعول به باندې واقع شي بلکې فعل که چیرته د مفعول به په څینې حصه باندې واقع شي نو مقصود پوره کیدی شي مثلا (اضرب زیدا) کې دا مراد نه ده چې د زید دې هر جزء ووهل شي بلکې د زید د بدن په هره برخه باندې چې ضرب واقع شي نو مقصود پوره کیږي اود امر امتثال کیږي، همدارنګه (وامسحوا) کې د امر صیغه صرف دومره غواړي چې د سر په کومه حصه باندې مسح وکړی شي هغه که کمه ولې نه وي نو د مسح په اعتبار سره دا آیت مجمل شو چې څومره برخه مراد ده او د مجمل دپاره د شارع د طرفه تفسیر کول په کار دي، لهذا مغیره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت سره د دې تفسیر شوی دی په کوم کې چې د ناصیه مقدار متعین شوی دی،الفاظ داسې دي (فمسح بناصیته) د ناصیه مقدار او اندازه د سر څلورمه ده یا د څلورو ګوتو برابر برخه نو همدومره فرض ده.

د اصولو په کتابونو کې د استدلال طرز داسې هم لیکل شوی دی چې ﴿وَامْسَحُواْ بِرُؤُوسِكُمْ﴾ کې بأء د آلې دپاره ده کومه چې په ذی آله او محل باندې داخله ده د کومې نه چې استیعاب د محل مقصود نه دی ، مثلا د عربو محاوره ده (مسحت الجدار بالید) نه د ټول جدار مسح کول مراد شوي دي او څه برخه د لاس مراد شوې ده او په (مسحت بالجدار) کې د څه جدار مسح مراد شوې ده ځکه چې دلته بأء په آله باندې داخله نه ده بلکې په محل باندې داخله ده،په آله یا ذی الآله په کومه باندې چې هم داخله شي د هغې بعضې مدخول مراد کیدی شي او په آیت کې بأء په ذی الآله او محل باندې داخله ده لهذا

بعضې محل مراد دی او هغه مجمل برخه ده د کومې تفسیر چې د مغیره بن شعبة رضي الله عنه په روایت سره شوی دی کوم چې ناصیه ده د کوم اندازه چې د سر یوه څلورمه ده او همدا فرض ده.

**اول جواب**: امام مالک رحمه الله ته خو جواب دا دی چې د باء زائده ګرځول خلاف اصل ده، کله چې باء موجوده ده نو هغې ته ولې زائده ویل کیږي، باقي د تیمم په آیت باندې د مسح آیت قیاس کول صحیح نه دي، ځکه چې تیمم د اودس قائمقام دی او په اودس کې ټول مخ فرض دی. لهذا په قائمقام او نائب کې هم د ټول مخ مراد کول ضروري دي ترڅو چې په اصل او نائب کې اختلاف رانه شي.

**دویم جواب**: دا چې که استیعاب ته فرض وویل شي نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم د عمل سره تعارض راځي ځکه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه همیشه استیعاب ثابت نه دی ، دا جواب امام احمد ته هم دی او هغه ته دویم جواب دا دی چې (للاكثر حكم الكل) په هلته وی کله چې باء موجوده نه وی کله چې باء راغلې ده نو د څه برخې مراد کول ضروري دي کوم چې مجمل ده او د هغې تفسیر د مغیره بن شعبة رضي الله عنه په روایت کې دی. شافعیانو ته جواب دا دی چې آیت مطلق نه دی ، ځکه چې د مطلق او مقید مسئله په مفاهیمو او افرادو کې ده په مقادیرو کې نه ده او دلته د مقادیرو بحث دی.

لهذا آیت مطلق نه دی بلکې مجمل دی د کوم چې تفسیر ته ضرورت دی او هغه د مغیره بن شعبة رضي الله عنه روایت دی، همدارنګه که چیرته د شافعیانو مسلک واخیستل شي نو بیا خو په آیت کې د سر مسح یانولو ته ضرورت نه وو بلکې د اودس په وخت کې ممکنه نه ده چې په سلګونو ویښتانو مسح دې رانه شي نو همدا قسم مسح خو خود بخود حاصلیږي بیا قرآني حکم ته څه ضرورت وو، بهر حال د ټول بحث نه وروسته احتیاط د امام مالک رحمه الله او امام احمد رحمه الله په مسلک کې دی چې د ټول سر مسح وکړی شي ترڅو چې اختلاف ختم شي.

**په مسح کې د تکرار حکم**: اوس پاتې شوه دا چې د سر یو ځل مسح کول دي او که درې ځلې دي، په هغې کې تثلیث او تکرار مسنون دی که توحید او عدم تکرار په کې مسنون دی، نو د جمهورو علماؤ په نزد دا یو ځل ده او عدم تکرار مسنون دی، او د شافعیانو په نزد تثلیث او تکرار مسنون دی. امام شافعي رحمه الله د حضرت عثمان رضي الله عنه په بعضو روایتونو سره استدلال کړی دی په کومو کې چې درې ځلې د مسح کولو ذکر راغلی او د ابوداؤد شریف په ۱۴ صفحه باندې همدا حدیث ذکر دی. (المرقات ۲/۱۰۷).

د شوافعو دویم دلیل د مسح په اعضاء مغسوله باندې قیاس کول دي چې هر کله په اعضاء مغسوله کې درې ځلې غسل دی او تکرار دی نو په مسح کې هم تکرار کول په کار دي.

د جمهورو دلائل خو بې شماره احادیث دي په کومو کې چې د اعضاو د درې ځلې وینځلو ذکر دی او په مسح کولو کې د یو ځل ذکر راغلی دی او د رسول الله صلی الله علیه وسلم اودس چیرته هم چې په احادیثو کې

ذکر شوی دی هلته تکرار نشته نو ځکه ابو داؤد شریف دا فیصله اوروليې ده چې احاديث عثمان الصحاح کلها تدل على مسح الرأس انها واحدة.

په دې سره د شافعيانو د دليل جواب وشو چې چيرته د تثليث ذکر راغلی دی هغه روايت قابل استدلال نه دی ، دويم جواب دا دی چې کوم تکرار چې چا ليدلی دی هغه د مسح نه وروسته د وينځلو جوړولو دپاره د لاس تيرول وو تکرار نه وو کتونکي هغه تکرار ګڼلی دی، دريم جواب دا دی چې که چيرته په مسح کې تکرار وکړی شي نو دا غسل جوړيږی حالانکه شريعت د سر دپاره مسح مقرر کړيده دې دپاره چې په هغې کې تخفيف وي، ځکه چې سر د بدن بادشاه دی او دا بلد العلماء دی، يعنې د علم چې څومره اسباب دي هغه په سر کې دي لکه قوت سامعه، قوت باصره، قوت شامه، قوت ذائقه او قوت لامسه، دا ټول په سر کې دي، لهذا د سر اعزاز دا دی چې په هغه باندې خفيفه شانته مسح وکړی شي، اوس که چيرته تثليث راشي نو هغه غسل جوړيږي کوم چې د همدې تخفيف او اعزاز منافي دی.

باقي که چيرته تاسو سر د نورو اندامونو په وينځلو باندې قياس کوئ نو دا قياس مع الفارق دی او په دې سره پورته ذکر شوی حکمت هم نه حاصليږي بلکه ختميږي، او که چيرته د سر مسح په نورو ممسوحه ځايونو باندې قياس کړي مثلا په جبيره او د زخم په پټۍ باندې نو دا قياس هم د تکرار دپاره صحيح نه دی ، ځکه چې هلته خو صرف يو ځل مسح وي تکرار په کې نشته دی، فقهاو دا مسئله هم ليکلې ده چې په يوه اندام کې مسح او غسل دواړه نه شي جمع کيدلی.

**فاقبل بهما وادبر** : د دې جملې لفظي ترجمه داسې ده چې د سر د شا د طرفه په مسح کولو کې لاس راوړی شي او بيا د مخې د طرفه د شا طرف ته يووړل شي، ددې ترجمې مطابق بعضو سلفو عمل هم کړی دی او ويلي يې دي چې د سر د شا د طرفه دې مسح شروع کړی شي، ليکن احناف او جمهور د دې خلاف دي، دوي ويلي چې د سر د مخې طرف نه دې مسح شروع کړی شي او په شا برخه دې ختمه کړی شي. ددې مفهوم د واضح کولو دپاره ددې جملې تفسير په بدأ بمقدم رأسه سره شوی دی ترڅو چې په خلاف واقع مفهوم کې څوک ونه لويږي، دارنګه کومو حضراتو چې د ظاهر الفاظو ترجمه کړې ده هغه ترجمه د عربيت او د عربو د محاورې خلاف ده، ځکه چې د عربو په محاوره کې هميشه د اقبال او اقبل لفظ لره مقدم ذکر کوي، لکه امرءالقيس د خپل آس په تعريف کې د اقبال لفظ لره مخکې ذکر کړی دي:

مکر مفر مقبل مدبر معاً ❁ کجلود صخر حطه السيل من عل

نو په فعل کې ادبار يعنې د شا طرف ته وړل مقدم شويدي او په قول کې اقبال يعنې د مخې طرف ته راوړل مقدم شوي دي، په دې تشريح سره هغه اعتراض هم ختم شو چې دا تفسير د خپل مفسر خلاف دی

اعتراض ځکه ختم شو چې که چيرته محاورې ته وکتل شي نو دا تفسير بالکل د خپل مفسر موافق دی.

**د څټ مسح** : چونکه د سرد مسحې بحث روان دی نو دا اشاره هم مناسبه شوه چې د څټ مسح په شريعت کې څه حيثيت لري د فقهاء کرامو په دې کې اختلاف دی، د احنافو نه بعضې حضراتو دا سنت او بعضو مستحب ليکلې ده، قاضي خان ليکلي چې د څټ مسح نه سنت ده او نه مستحب ده، هو بعضو ورته سنت ويلي او کله چې د فقهاؤ په اقوالو کې اختلاف پيدا شو نو اوس يې د نه کولو نه مسح کول بهتر شول. (قاضي خان ج۱ ص ۱۷).

علامه نووي رَحِمَهُ اللهُ وغيره ورته بدعت ويلي دي، علامه ابن تيميه رَحِمَهُ اللهُ او علامه ابن قيم رَحِمَهُ اللهُ ليکلي دي چې په دې باره کې هيڅ صحيح حديث ثابت نه دی، ليکن د احنافو بعضو علماؤ او د شوافعو هم ډيرو علماؤ د غاړې مسح سنت يا مستحب ګرځولې ده.

نواب صديق خان غير مقلد د بدور الاهله په ۲۸ صفحه کې ليکلي دي چې د غاړې د مسحې حديث ته غير صحيح ويل صحيح نه دي، ځکه چې د څټ د مسحې روايتونه د تعدد د طرقو د وجې د استدلال قابل دي، د احنافو په کتابونو کې دا ذکرشوي چې د **حلقوم** (ستوني) مسح بدعت ده او د څټ مسح روا ده (بهر حال ما لوی لوی علماء د اودس کولو په وخت کې د څټ په مسح کولو نه دي ليدلي).

**د مضمضې کيفيت : من کف واحدة** : د حديث مبارک ددې لفظ نه د مضمضې او استنشاق د کيفيت طرف ته اشاره شوې ده د هغه په کيفيت او طرز عمل کې احنافو او شوافعو په خپل خپل انداز سره جدا جدا طريقې افضل او اولی ګرځولې دي، په دې کې ټولې پنځه طريقې دي، احنافو پنځه واړه طريقې افضل او راجح ګرځولې دي او شوافعو څلورمه طريقه خوښه کړې ده خو جائز ټولې طريقې دي :

اوله طريقه دا ده چې يوه لپه اوبه په لاس کې واخيستل شي په يوه وار خولې او پوزې ته درې ځلې اوبه واچول شي، يعنې د يوې لپې څه اوبه خولې او څه په پوزه کې واچول شي. دويمه طريقه دا ده چې يوه لپه اوبه دي مګر اول په خوله کې د هغې څه برخه درې ځلې واچول شي او بيا پاتې برخه په پوزه کې درې ځلې واچول شي. دريمه طريقه دا ده چې په يوې لپې سره درې ځلې مضمضه وکړی شي بيا په دويمې لپې سره درې ځلې استنشاق وکړی شي. څلورمه طريقه دا ده کومه چې شافعيانو خوښه کړې ده هغه دا ده چې په يوې لپې سره اول مضمضه او استنشاق وکړی شي بيا دويمه لپه را واخيستل شي مضمضه او استنشاق وکړي بيا دريمه لپه را واخلي مضمضه او استنشاق وکړی شي. پنځمه طريقه دا ده چې په جدا جدا دريو لپو مضمضه وکړی شي بيا په جدا جدا دريو لپو سره استنشاق وکړی شي ګويا چې په شپږو لپو دواړو کار وکړی شي دا طريقه د احنافو په نزد غوره ده.

په دې تفصيل باندې تاسو په لنډ طور داسې پوهه شئ چې د مضمضې په کيفيت کې څلور قولونه دي (۱) **غرفة** (۲) **غرفتين** (۳) **ثلاث غرفات** (۴) **ست غرفات**، دا څلورم قول د احنافو په نزد بهتر دی او

دریم قول د شافعیانو په نزد بهتردی.شافعي حضراتو په زیر بحث حدیث **(من کف واحدة)** الفاظو استدلال کړی دی چې په دې کې په غرفات کې د وصل بیان دی نو څلورمه طریقه د دې بهترین مصداق دی.ائمه احنافو په ډیرو روایتونو سره استدلال کړی دی لیکن د ترمذي روایت د ټولو نه واضح دی او هغه په ۱۴صفحه باندې د عبدالله بن زید رضي الله عنه روایت دی (المرقات ۱۰۵-۱۰٦-۲/۱۰۷) **(قال رأیت النبی صلی الله علیه وسلم مضمض واستنشق من واحد فعل ذلک ثلاثا)** (رواه الترمذي).

اوپه ابوداؤد کې هم داالفاظ دي چې صحابي ویلي **فرأیته یفصل بین المضمضة والاستنشاق** (ص۱۹)

ائمه احناف د **(من کف واحدة)** مطلب دا بیان کړی دی چې ددې نه مراد دا دی چې په مضمضه او استنشاق کې یو لاس په استعمال کې راوستل شي یو لاس په لپه کې په کار راوستل شي د مخ په شان دواړه لاسونه استعمال نه کړی شي.دویم جواب دادی چې په یوې لپې سره مضمضه او استنشاق د بیان جواز دپاره دي روا خو یې مونږ.منو او د شوافعو په نزد افضل هم روا دی نو هیڅ اختلاف نشته، د اولی او غیر اولی مسئله ده، دارنګه د قیاس غوښتنه هم دا ده ځکه چې د اودس دټولو اعضاؤ دپاره جدا جدا داوبوراخیستل درې ځلې استعمالول دي نو د پوزې اودخولې هم داسې حکم په کار دی، همدارنګه په زیرنظر روایت کې هم د ثلاث غرفات الفاظ موجود دي کوم چې د احنافو واضح دلیل دی.

## دادنی درجې اودس

| |
|---|
| **(۲) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ تَوَضَّأَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّةً مَرَّةً** |
| د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یو ځل اودس وکړو (یعنې |
| **لَمْ يَزِدْ عَلَى هٰذَا** [1]. |
| د اودس ټول اندامونه یې صرف یو یو ځل ووینځل) او په دې باندې یې زیادت ونه کړ. |

**توضیح**: د ټولو نه افضل او اعلی اودس هغه دی په کوم کې چې درې ځل په هر اندام باندې اوبه واچول شي. که چیرته اوبه کمې وې یا د بدن حالت یا مکان یا مقام یا د بیان جواز حالت تقاضا ددې نه کمه وه نو بیا دوه دوه ځلې استعمالول روا دي، او که چیرته حالات داسې وو چې له یو ځل نه د زیات ګنجایش نه وو نو د جواز په شکل یو ځل هم کافي دي اودس کیږي، په راتلونکو حدیثونو کې همدا مسئله بیان شوې ده.

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۵۸/۱،رقم الحديث :۱۵۷، وأبو داود ۹۵/۱ رقم الحديث :۱۳۸، والنسائي ٦۲/۱، رقم الحديث: ۸۰ ، والترمذي ٦۰/۱ رقم الحديث :٤۲ .

(۴) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ[1]

د حضرت عبد الله بن زيد رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دوه دوه ځلې اودس وکړ (يعنې د اودس اندامونه يې دوه دوه ځلې ووينځل).

## د اعلى درجې اودس

(۵) وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ تَوَضَّأَ بِالْمَقَاعِدِ فَقَالَ

د حضرت عثمان رضي الله عنه په باره کې روايت دى چې هغه په مقام مقاعد کې اودس وکړو او وې ويل چې

أَلَا أُرِيكُمْ وُضُوءَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَوَضَّأَ ثَلَاثًا ثَلَاثًا. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[2].

آيا تاسو د رسول الله صلى الله عليه وسلم اودس ليدلى دى لهذا هغه درې ځلې اودس وکړ (يعنې هغه د اودس اندامونه درې درې ځلې ووينځل او وې ښودله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دا قسم اودس کولو).

**مقاعد:** د نبوي مسجد نه بهر د خبرو دپاره او د ناستې دپاره يو ځاى وو مقاعد د هغه نوم وو، دا عمر فاروق رضي الله عنه جوړ کړى وو ترڅو چې خلک په جومات کې خبرې ونه کړي .(المرقات ۲/۱۰۸).

**۲۵ صفر ۱۴۱۰ھ**

## د خپو وينځلو مسئله

(۶) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ رَجَعْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ مَكَّةَ

د عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دې چې مونږ راواپس شو د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره يو ځاى د مکې

إِلَى الْمَدِينَةِ حَتَّى إِذَا كُنَّا بِمَاءٍ بِالطَّرِيقِ عَجَّلَ قَوْمٌ

مدينې ته تردې کوم وخت چې مونږ او بو ته ورسيدو کومې چې په لار کې وې نو جلتې وکړه څه خلکو د

عِنْدَ الْعَصْرِ فَتَوَضَّئُوا وَهُمْ عُجَّالٌ فَانْتَهَيْنَا إِلَيْهِمْ

ماز ديگر مونځ دپاره په اودس کولو کې او دا خلک ډير جلتى کوونکي وو کله چې مونږ دې خلکو ته ورسيدو

وَأَعْقَابُهُمْ تَلُوحُ لَمْ يَمَسَّهَا الْمَاءُ

نو موليدل چې د هغوى پوندې پرق وهې (يعنې وچې پاتې شوې وې) چې هغو ته يې اوبه نه وې رسولې

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۲۸۵، رقم الحديث: ۱۵۸، وابو داود ۱/۹۴ رقم الحديث: ۱۳۶.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۲۰۸ رقم الحديث: ۲۳۰.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَ | سَلَّمَ | وَيْلٌ | لِلْأَعْقَابِ |

(كله چې يې داوچې پوندې وليدلې) رسول الله ﷺ وفرمايل هلاكت او خرابي ده دپوندو دپاره

مِنَ النَّارِ أَسْبِغُوا الْوُضُوءَ (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1].

د اور نه اودس پوره كړئ.

**توضيح : ويل للاعقاب من النار** : ټول اهل سنت ټول صحابه تابعين ټول فقهاء او صلحاء او علماء سلفًا او خلفًا په دې باندې متفق دي چې د پښو وظيفه په اودس كې غسل دى او د عدم تخفف په حالت كې په پښو باندې مسح كول بالكل جائز نه ده ، شيعه اماميو او روافضو په دې مسئله كې د ټول امت نه مخالفت كړى دى او ويلي يې دي چې د پښو ذمه واري صرف مسح ده غسل نه دى ، بعضو دا مسلک د ابن جرير طبري رحمه الله طرف ته منسوب كړى دى ليكن ابن جرير طبري دوه دي يو سني دى او يو شيعه دى، دلته سني مراد نه دى ، او كه چيرته ابن جرير سني هم وي نو د هغه كلام په دې مسئله كې صريح نه دى صرف په كلام كې وهم دى. (المرقات ۲/۱۱۰).

**د شيعه گانو دلائل**: شيعه روافض په آية الوضوء كې په ﴿وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾ كې د جر والا په قراءت سره استدلال كړى دى چې د جر په صورت كې په رؤسكم باندې عطف دى، يعني په سر باندې مسح وكړئ اوپه پښوباندې هم مسح وكړئ،شيعو ويلي دي چې په أرجلكم كې د نصب والا قراءت بنزع الخافض دى يعني أرجلكم د نصب په صورت كې په حقيقت كې بأرجلكم وو دباء لرې كيدو دوجې نصب راغلى دى. (المرقات ۲/۱۱۰).

د شيعو دويم دليل د ابن عباس رضي الله عنه قول دى د كوم الفاظ چې كم وبيش داسې دي (**لايدل كلام الله الا بالمسح وأبي الناس الا الغسل**) بعضو دا الفاظ نقل كړي دي (**امر الله بالمسح وأبي الناس الا الغسل**) دارنگه شيعو د حضرت علي رضي الله عنه نه هم يو شمير اقوال نقل كړي دي.

**د اهل السنة دلائل** : د اهل السنة والجماعة دليل همدا د اودس آيت دى ليكن دوى په ﴿وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾ كې د نصب والا قراءت اخستلى دى كوم چې په ﴿فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ﴾ باندې عطف دى

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۱۴۲،رقم الحديث:۶۰، ومسلم في الصحيح ۱/۲۱۴ رقم الحديث:۲۶-۲۴۱، وابو داود ۱/۷۳ رقم الحديث : ۹۷، والنسائي ۱/۷۷، رقم الحديث:۱۱۱ .

کوم چې په وینځلو باندې واضح دلیل دی، د جمهورو دویم دلیل زیر بحث حدیث دی په کوم کې چې د پوندو په وچ پاتې کیدو باندې سخت وعید راغلی دې د کوم نه چې معلومه شوه چې د پښو ذمه واري په مکمل طور وینځل دي. (المرقات ۲/۱۱۰).

د جمهورو دریم دلیل د حضرت عمرو بن عبسه رضي الله عنه یو روایت دی کوم چې په حقیقت کې د آیة الوضوء تفسیر دی، حضرت عمرو بن عبسه ویلي دي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د اودس متعلق پوښتنه وکړه هغه صلی الله علیه وسلم د جواب په ضمن کې وویل: ﴿ثم یغسل قدمیه الی الکعبین کما امر الله تعالی﴾ (رواه ابن خزیمة وابو عوانة).

ددې روایت نه په واضح طور معلومه شوې ده چې د الله حکم ﴿وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾ نه غسل او وینځل مراد دي، جمهورو په دې سره هم استدلال کړی دی چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه په ټول ژوند کله هم د لوڅو پښو مسح ثابته نه ده او نه صحابه کرامو داسې کړي دي، بلکې د ټولو عمل په غسل باندې وو ګویا چې همداسې اجماع ده په کومه کې چې اختلاف نه شي کیدی.

**جوابات**: جمهورو د شیعو شنیعو دلائلوته دیر جوابونه ورکړي دي:

**اول جواب**: دا دی په آیت کې چې د جر کوم قرات راغلی دی دا جر جوار دی یعنې د یوې کلمې د ګاونډ د وجې کله کله د هغې اعراب دویمې کلمې ته ورکول کیږي، نو په آیت کې په بِرُءُوسِكُمْ کې جر وو او ﴿وَأَرْجُلَكُمْ﴾ ته هم د هغه د ګاونډ د وجې مجرور شو دا لفظونه د مسح سره دي لیکن د معنی په اعتبار سره د مغسول سره دي، د عربو په کلام کې د جر جوار اعتبار دی. لهذا عبد الرسول لیکي:

ګاه اسمي میشود مجرور از بهر جوار ‌‌‌‌‌‌‌‌ هم ازین جائز د عامه جر ارجل شد روا

یعنې کله کله کوم اسم د جر جوار د وجې مجرور کیدی شي په دې وجه د عامو علماؤ په نزد په ﴿وَأَرْجُلَكُمْ﴾ کې جر راغلی، جر جوار په قرآن کریم سره هم ثابت دی لکه ﴿عَذَابَ يَوْمٍ أَلِيمٍ﴾ الیم د عذاب صفت دی کوم چې مرفوع په کار وو مګر د یوم د ګاونډ د وجې مجرور شوی دی. (المرقات ۲/۱۱۰).

او لکه ﴿عَذَابَ يَوْمٍ مُحِيطٍ﴾ چې محیط د جر جوار د وجې مجرور دی، همدارنګه (جُحْرُ ضَبٍّ خَرِبٍ) (مَاءُ شَنٍّ بَارِدٍ) همدارنګه په حدیث کې (مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ) دلته محرم د جر جوار د وجې مجرور دی. د عربو او د عربیت مشهور شاعر امرء القیس وایي:

کأن ثبیر في عرانین وبله ۞ کبیر اناس في بجاد مزمل

دلته( **مزمل**) د کبیر **الناس** صفت دی دا مرفوع کیدل په کار دي لیکن( **بجاد**) د ګاونډي د وجې نه مجرور ګرځیدلی دی.

عبدالرسول کوم چې مشهور نحوي دی هغه دلته اعتراض کړی دی چې د جر جوار سلسله په محفوظاتو کې ممنوع ده او دلته په آیت کې ﴿وَأَرْجُلَكُمْ﴾ معطوف دی.

د دې جواب روح المعاني ورکړی دی چې د عبدالرسول دا خبره غلطه ده ځکه چې د عربو په محاوره کې د دې ډیر مثالونه موجود دي، په خپله په قرآن کریم کې د ﴿وَحُورٌ عِينٌ﴾ سلسله محفوظاتو کې د جر جوار سره راغلې ده پوره کلام داسې دی ﴿وَلَحْمِ طَيْرٍ مِمَّا يَشْتَهُونَ وَحُورٌ عِينٌ﴾ (**سورة واقعه:۲۲**) دلته د کسائي حمزه او عاصم په قراءت کې په حور عین کې حور مجرور دی د جر جوار سره مجرور دی او د هغه ګاونډ د لحم کلمه ده کومه چې د پخوا نه مجرور را روانه ده، په نورو قراءتونو کې دا مرفوع ده. (**الموقات ۲/۱۱۰**).

د جمهور امت د طرفه شیعو ته دویم جواب دا ورکړی شوی دی چې د عبدالرسول د دې اشکال د وجې ابن حاجب رَحِمَهُ اللَّهُ یوه بله لار غوره کړې ده هغه لیکلي دي چې (**وارجلکم**) په اصل کې د فعل مخذوفه د وجې منصوب دی اصل عبارت داسې دی (**وامسحوا برؤسکم واغسلوا ارجلکم**).

هغه ویلي دي چې دا د علفتها تبنا وماء باردا د قبیلې دی چې د موجوده عامل نه بغیر اصل عامل محذوف دی، ځکه چې موجوده عامل سره معنی صحیح نه پاتې کیږي یعني ما په اوبو وابنه او یخې اوبه وخوړل حالانکه اوبه څکل کیږي خوړل کیږي نه لهذا د معنی د درست کولو د پاره د مناسب فعل محذوف کیدلی شي او هغه سقیتها دی یعنې **سقیتها ماء باردا**، یو بل مثال دی:

**وزججن الحواجب والعیونا**

**اذا ما الغانیات برزن یوما ❁ وزججن الحواجب والعیونا**

**ای واکتحلن العیونا**: یعني کله چې د سندرو ویونکې ښځې یوه ورځ بهر راووتلې نو هغوي ویښتان استرې کړي وو او په سترګو کې یې رانجه اچولې وو، نو دلته د معنی درست کولو د پاره واکتحلن فعل محذوف دی، ځکه چې په سترګو کې استرې نه شي چلیدلی بلکې رانجه په کې اچول کیدی شي، همدارنګه د یوه شاعر دا شعر:

**یا لیت بعلک في الوغی ❁ متقلدا سیفا ورمحا**

اې کاشکې ستا خاوند د جګړې په ورځ توره او نیزه په غاړه کې ځوړند راشي.

دلته د رمځانه مخکې حاملا محذوف دی ترڅو چې مطلب درست شي. يعنې چې توره يې په غاړه کې او نيزه يې په اوږه وي راشي، نو لکه څرنګه چې چه دې ځايونو کې د معمول دپاره مناسب فعل محذوف منل شوی همدارنګه د وارجلکم دپاره د واغسلوا فعل محذوف منل شوی دی. او اول اغسلوا په دې باندې دلالت هم کړی دی، د واغسلوا فعل د دې دپاره محذوف منل کيږي چې د الى الكعبين لفظ کوم چې په آيت کې موجود دی دا قطعا مسح نه قبلوي، ځکه چې په مسح کې په هيچا باندې تر ښنګرو پورې مسح کول لازم نه دي نو معلومه شوه چې دلته د پښو وينځل مراد دي مسح مراد نه ده نو ځکه واغسلوا محذوف راوړل کيږي، همدارنګه د رسول الله ﷺ فعل د صحابه کرامو فعل او ټولو احاديثو هم دا ښودلي دي چې دلته د پښو مسح مراد نه ده، د دې وجوهاتو په بناء خامخا د جر په قراءت کې تاويل کول ضروري دي.

جمهور امت دريم جواب دا ورکړی دی چې د نصب په صورت کې واغسلوا فعل مقدر دی او د جر په صورت کې داسې ويل کيدی شي چې قرآن د تخفف حالت بيان کړی دی، يعنې که چيرته موزې اغوستل شوې وې نو بيا مسح کافي ده، ليکن الى الكعبين چې کوم تحديد کړی دی د هغه په نظر کې نيولو د وجې جواب کمزوری دی، ځکه چې په مسح کې تر کعبين پورې هيڅ قيد نشته او قرآن مقيد دی معلومه شوه چې د مسح صورت نه دی.

**جواب:** اوس پاتې شوه دا خبره چې شيعه ګانو د حضرت ابن عباس رضي الله عنه چې کوم روايت نقل کړی دی نو د اهل جرح او تعديل او د محدثينو وينا ده چې دا روايت تحريف شوی دی کوم چې شيعه ګانو خراب کړی دی کوم لره چې هيڅ اعتبار نشته دی، يا دا چې د صحيح احاديثو په مقابل کې هيڅ هم نه دی، باقي د حضرت علي رضي الله عنه طرف ته منسوب روايت هم ثبوت ته نه دی رسيدلی، يا دا چې هغه د تخفف په حالت يعنې د موزو پښو کولو په حالت محمول دی يا په اودس باندې د اودس صورت دی.

شيخ عبدالحق رحمه الله په لمعات کې د طحاوي په حواله د پښو د مسح او غسل متعلق ليکلي دي چې په آيت کې د نصب او جر دواړه قراءتونه دي او مستند هم دي او په دواړو کې تعارض دی، هر کله چې همدا رنګې تعارض وي نو د دواړو حکم ساقط کيږي د حديث طرف ته رجوع کولی شي او مشهورو زياترو احاديثو هم د ځپو د وينځلو حکم ورکړی دی لهذا وينځل متعين دي مسح نا جائز ده. امام طحاوي رحمه الله ويلي دي چې د مسح حکم که چيرته د محدودې زمانې دپاره وو نو بيا هم هغه منسوخ شوی دی، علماؤ ليکلي دي چې د پښو وينځل الله تعالى د مسحې سره راوړيدي ترڅو چې د ښپو وينځلو په وخت کې د اسراف نه د ځان ساتلو احساس وکړی شي ځکه چې خلک په ځپو باندې ډيرې زياتې اوبه اچوي. (اشعة اللمعات ١/٢٣٦).

بهر حال د احاديث صحيحه او صريحو دومره لويه خزانه موجوده ده بيا د رسول الله ﷺ د صحابه كرامو رضي الله عنهم دائمي اجماعي عمل موجود دی او بيا تابعين فقهاء كرام او د محمدي امت دا متفقه موقف موجود دی د دې باوجود شيعه او روافض د پښو په مسح كولو کې ښويدلي دي دا د دوي لويه گمراهي ده، او په همدا سې كولو سره د دوي هغه مونځونه د كار نه دي كوم يې چې آدا كړي دي.

**ويل:** دا كلمه د هلاكت، بد دعاء دپاره راغلې ده، بعضو ويلي چې په دوزخ كې د يوې خاصې كندې نوم دی. (المرقات ۲/۱۰۹).

**الاعقاب:** دا د عقب جمع ده پوندو ته ويل كيږي، دلته پوندې د امر واقعه د وجهې خاص شوې دي چې پوندې وچې پاتې شوې وې، يا د دې وجهې چې په عام طور پوندې وچې پاتې كيږي، د دې الف لام د استغراق عرفي دپاره دی، يعني د ټولې دنيا د پوندو دپاره بد دعاء نه ده بلكې څوک چې پوندې وچې پريږدي د هغوي دپاره بد دعاء ده. (المرقات ۲/۱۰۹).

دلته مضاف محذوف دی يعني د وچو پوندو والا دپاره ويل او سختي او مشقت او هلاكت دی.

**۱۰ صفر ۱٤۱۰هـ**

## د پګړۍ د مسح مسئله

| |
|---|
| (۷) وَعَنِ الْمُغِيرَةَ بْنِ شُعْبَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ تَوَضَّأَ |
| د مغيره بن شعبة رضي الله عنه نه روايت دی وايي چې رسول الله ﷺ اودس وكړو لهذا نبي عليه السلام |
| فَمَسَحَ بِنَاصِيَتِهِ وَ عَلَى الْعِمَامَةِ وَ عَلَى الْخُفَّيْنِ[1]. |
| د خپل تندي په ويښتانو باندې دپاسه او پګړۍ باندې او په موزو باندې مسح وكړه. |

**توضيح: وعلى العمامة:** په دغه روايت كې د **مسح على الناصية** سره د **مسح العمامة** ذكر راغلی دی په دې وجه د فقهاء كرامو په مينځ كې په **مسح على العمامة** مسئله كې اختلاف راغلی دی.

**د فقهاء كرامو اختلاف:** امام احمد بن حنبل، امام اوزاعي، داؤد ظاهري او د اسحاق بن راهويه په نزد په عمامه باندې مسح روا ده په دې باندې د سر د مسحې فرض پوره كيدی شي، البته امام احمد دا شرط لګولی دی چې پګړۍ به په طهارت باندې په سر كړی شوې وي، دويم شرط دا چې عمامه به محنكه وي يعني يو څه به ښكته تړل شوې وي او په ټول سر باندې به حاوي او محيطه وي لكه څرنګه چې د موزو په

(۱) اخرجه مسلم في الصحيح ۲۳۱/۱ رقم الحديث: ۸۳-۲۷٤، والترمذي ۱۷۰/۱ رقم الحديث: ۱۰۰، والنسائي ۷٦/۱، رقم الحديث: ۱۰۷.

پښو باندې محیط کیدل ضروري دي، د امام مالک، امام ابو حنیفه او امام شافعي یعنې د جمهورو په نزد مسح علی العمامه روا نه ده په دې باندې فرض نه شي پوره کیدی. (المرقات ۲/۱۱۱).

**دلائل**: امام احمد بن حنبل او اهل ظواهر د حضرت مغیره بن شعبه رضي الله عنه په زیر بحث حدیث باندې استدلال کړی دی په کوم کې چې په عمامه باندې د مسحې ذکر موجود دی. ددې نه علاوه د حضرت بلال رضي الله عنه روایت او د حضرت ثوبان رضي الله عنه په روایت سره یې استدلال کړی دی په کوم کې چې عمامه ذکر ده. دې حضراتو په **مسح علی الخفین** باندې قیاس هم کړی دی چې کله د خپو په ځای په موزو باندې مسح جائز ده نو د سر په ځای په عمامه باندې هم مسح روا ده د دواړو حکم یو شان په کار دی. (المرقات ۲/۱۱۱).

د جمهورو اول دلیل خو د قرآن کریم هغه آیت دی په کوم کې چې د ﴿ وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ ﴾ حکم دی چې په سر باندې مسح وکړئ او سر غیر دی او پګړۍ غیر ده د پګړۍ مسح کولو دپاره داسې نه دي ویل شوي د الله تعالی حکم په سر باندې د مسح کولو دی په پګړۍ باندې نه دی، د جمهورو دویم دلیل هغه صریح او صحیح احادیث دي کوم چې تقریبا د اتیا صحابو نه ثابت دي په کومو کې چې د سر د مسحې ذکر موجود دی او د عمامې هیڅ ذکر په کې نشته، جمهورو د **مسح علی العمامة** حدیث ته په ډیرو طریقو سره جواب ورکړی دی هغه هم وګورئ:

**جواب**: د کتاب الله آیت نص قطعي دی او د **مسح علی العمامة** روایات اخبار احاد دي، لهذا مونږ نه په **آیة الوضوء** کې ددې احادیثو محتملو د وجې تخصیص کړی دی نه مو په آیت کې تقیید کړی دی او نه مو په هغه کې تاویل کړی دی. همدارنګه د سر د مسح په مسئله کې د اتیا صحابه کرامو چې کوم روایات دي د آیت په موجودیت کې مونږ نه هغه پرېښودلی شو او د صحیح صریح او ډیرو احادیثو په موجودګۍ کې د مسح عمامه اخبار احاد او غرائب محتمل او مضطرب روایات څنګه واخلو. د مسح عمامه په روایاتو کې یو احتمال دا دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په مقدار ناصیه باندې د مسح کولو نه وروسته په پګړۍ باندې مسح کړې وه او په بعضو روایاتو کې د دې ذکر شوی دی نه صرف په عمامه باندې مسح.

دویم احتمال دا دی چې کیدی شي دا مسح په هغه نرمه کپړه باندې وه کومه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د پګړۍ نه لاندې استعمال کړې وه هماغه کپړه په عمامه سره یاده شوې ده اوداچې هغه کپړه ډیره باریکه وه نو په سر باندې مسح شوې ده.

دریم احتمال دا دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم اصل مسح په سر باندې کړې وه بیا یې په سر باندې د عمامې اېښودلو نه وروسته په هغې باندې لاس راتیر کړی وو دې دپاره چې عمامه سمه کړی شي د

دې ليدونكي په عمامه باندې د مسحې كولو خيال كړى دى.

څلورم احتمال دا دى چې كيدى شي چې دا د وضوء على الوضوء په صورت كې شوې وي او هلته خو د سر مسح ته ضرورت هم نشته لهذا كه يې په عمامه باندې مسح كړې وي نو څه وشول؟ پنځم احتمال دا دى چې د سر مَسح په قصدي طور وه او د عمامې مسح په تبعي طور وه.

امام محمد رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې په عمامه باندې د مسح حكم د اسلام په ابتداء كې وو بيا منسوخ شو. شيخ ابو عمر په تمهيد كې ليكلي دي د عمامې د مسحې ټول روايات معلول دي، عامو علماو ويلي دي چې د عمامې د مسحې روايات دومره قوي نه دي كوم چې د نورو صحيحو احاديثو مقابله وكړى شي په كومو كې چې د مسحې حكم موجود دى.

| |
|---|
| (۸) وَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يُحِبُّ |
| د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دى ويلي يې دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به خوښول د خپلو ټولو كارونو كول |
| التَّيَمُّنَ مَا اسْتَطَاعَ فِيْ شَأْنِهِ كُلِّهِ فِيْ طُهُوْرِهِ وَتَرَجُّلِهِ وَ تَنَعُّلِهِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[۱]. |
| په ښي لاس سره حتى الامكان (مثلا) په طهارت كې، د ګومنځې په وهلو كې، د خپل پيزار په خپو كولو كې |

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

| |
|---|
| (۹) عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا لَبِسْتُمْ |
| د ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: كله چې تاسو اغوندئ (لباس |
| وَ إِذَا تَوَضَّأْتُمْ فَابْدَءُوا بِأَيَامِنِكُمْ[۲]. |
| وغيره) يا اودس كوئ نو د خپل ښي طرف نه شروع وكړئ. |

## د اودس په وخت د بسم الله مسئله

| |
|---|
| (۱۰) وَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د سعيد بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: كوم كس چې د (اودس په وخت) |

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/ ۲۵۳، رقم الحديث : ۴۲۶، ومسلم في الصحيح ۱/ ۲۲۶ رقم الحديث: ۶۷-۲۶۸، وأبو داود ۱/ ۳۷۸ رقم الحديث : ۴۱۴۰.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۴/ ۳۷۹ ، رقم الحديث ۴۱۴۱، واحمد في المسند ۲/ ۳۵۴.

| |
|---|
| لَاوُضُوءَلِمَنْ لَمْ يَذْكُرِاسْمَ اللهِ عَلَيْهِ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ) وَرَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ |
| د الله تعالی نوم وانه اخستلو د هغه اودس ونه شو، احمد او ابوداؤد دا روایت د ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه او |
| وَ الدَّارِمِيُّ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ عَنْ أَبِيهِ وَ زَادُوا فِي أَوَّلِهِ |
| دارمي د ابوسعید خدري نه او هغه د خپل پلار نه روایت کړی، همدارنګه همدې کسانو د خپل روایت په |
| لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَا وُضُوءَ لَهُ)(۱). |
| شروع کې دا الفاظ زیات کړي چې ددې کس مونځ ونه شو چاچې اودس ونه کړو. |

**توضیح: لاوضوء**: په دې باندې ټول امت متفق دی چې د اودس په شروع کې د بسم الله ویل مستحب دي او غوره کار دی، خو د بسم الله په قانوني حیثیت کې اختلاف دی.

**د فقهاء کرامو اختلاف**: د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ د اسحاق بن راهویه او د اهل ظواهرو مسلک دا دی چې د اودس نه مخکې د بسم الله ویل فرض او واجب دي، البته امام احمد رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې که یو کس یې په هیره پریږدي نو اودس یې کیږي، لیکن د اهل ظواهرو او وغیره په نزد په نسیانًا پریښودلو سره هم اودس نه کیږي. جمهورو فقهاؤ او ائمو ویلي دي چې په اودس کې بسم الله مسنون ده که چیرته بسم الله پریښودل شي اودس کیږي. (المرقات ۱۱۳-۲/۱۱۴).

**دلائل**: کوم حضرات چې په اودس کې د تسمیه په فرضیت او وجوب باندې قائل دي د دوي دلیل دا زیر بحث حدیث دی کوم چې د حضرت سعید بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث دی په کوم کې چې د **لاوضوء** لفظ موجود دی د کوم نه چې کلي نفي مراد ده چې د تسمیې نه په غیر اودس صحیح نه دی.

جمهورو د ټولو نه مخکې د قرآن په آیة الوضوء سره استدلال کړی دی چې که چیرته تسمیه فرض یا واجب وی نو په قرآن کې به یې ذکر راغلی وی لکه څرنګه چې د نورو فرائضو ذکر راغلی دی، کله چې قرآن تسمیه د اودس په فرائضو کې نه ده شمار کړې نو په خبر واحد سره یې فرضیت یا واجبوالی اصولًا صحیح نه دی او دا په کتاب الله باندې د زیادت مترادف دي او د نسخ د قبیلې نه دي کوم چې جائز نه دي. د جمهورو دویم دلیل د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صریح حدیث دی کوم چې د مشکوة شریف په اوه څلویښتمه(۴۷) صفحه کې ذکر دی په کوم کې چې ویل شوي دي چې چا د اودس سره بسم الله وویله نو دا اودس د ټول بدن له ګناهونو نه د پاکۍ د پاره ذریعه جوړیږي او چا چې په اودس کې بسم الله ونه ویله نو د هغه اودس صرف د مغسوله اندامونو د طهارت ذریعه جوړیږي.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱/۳۷ رقم الحديث : ۲۵ ، وابن ماجه ۱/۱۴۰ رقم الحديث : ۳۹۸ .

**جواب:** جمهورو د حضرت سعید بن زید رضي الله عنه د زیر بحث حدیث جواب ورکړی دی چې دلته په لا وضوء کې د لا کلمه د اصل شي د نفې دپاره نه ده راغلې بلکې د کمال د نفې دپاره راغلې ده د نفې د کمال مثال لکه (۱) لا ایمان لمن لا امانة له (۲) لا دین لمن لا عهد له (۳) لا صلوة لجار المسجد الا في المسجد (٤) لیس المسکین الذي ترده التمرة والتمرتان (٥) لیس المسلم الذي یبیت وجاره جائع إلی جنبه.

جمهورو ویلي دي چې ددې دلائلو په رڼا کې د بسم الله په اودس کې په سنت باندې حمل کول په کار دي نه دا چې فرض یا واجب ورته وویل شي.

دارنګه اودس په خپله مقصودي عبادت نه دی بلکې د هغه دپاره ذریعه او وسیله ده لهذا کله چې په دې طریقه غیر مقصودي عبادت کې په خبر واحد سره کوم حکم ثابت شوی دی نو هغه په سنت باندې حمل کولی شي په فرض یا واجب باندې نه شي حمل کیدی همدا وجه ده چې په اودس کې واجب نه ده.

**نوټ:** ددې ځای نه تر نبیذ التمر مسئلې پورې ټول مباحث په حرمین شریفین کې د عمرې د زیارت په موقع په مکه مکرمه کې په ۱۷ رمضان ۱۴۲۲ه کې لیکل شروع کړل الحمدلله علی ذلک (المرقات ۲/۱۱۴)

## د ګوتو خلال

| |
|---|
| (۱۱) وَ عَنْ لَقِيطِ بْنِ صَبِرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ |
| د لقیط بن صبره رضي الله عنه نه روایت دی ویلي یې دي چې: ما عرض وکړو: یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! ما |
| أَخْبِرْنِي عَنِ الْوُضُوءِ قَالَ أَسْبِغِ الْوُضُوءَ وَ خَلِّلْ بَيْنَ الْأَصَابِعِ وَ |
| د اودس په باره کې خبر کړه، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ته اودس پوره کوه، د ګوتو خلال کوه او که |
| بَالِغْ فِي الِاسْتِنْشَاقِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ صَائِمًا[1]. |
| چیرته ستا روژه نه وه نو پوزې ته په ښه شان اوبه ورسوه. |
| (وَ رَوَى ابْنُ مَاجَةَ وَالدَّارِمِيُّ إِلَى قَوْلِهِ بَيْنَ الْأَصَابِعِ). (ابن ماجه ۳۹۹). |
| ابن ماجه او دارمي دا حدیث تر بین الاصابع پورې روایت کړی دی. |

**توضیح: اخبرني عن الوضوء:** دغه صحابي د اودس د مکملاتو او ادابو متعلق سوال وکړو ځکه چې نفس اودس خو د هغه په مخکې یو مشهور عمل وو، همدا وجه ده چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د اودس

(۱) اخرجه ابوداود ۹۷/۱ رقم الحدیث: ۱۴۲، والترمذي ۱۵۵/۳، رقم الحدیث: ۲۷۷.

مکملات او محسنات په جواب کې ورته وفرمايل. (المرقات ۲/۱۱۵).

**الاصابع**: ددې نه د پښو او دلاسونو ګوتې مراد دي، په حديث کې د دواړو ذکر دی، د دواړو خلال د جمهورو په نزد سنت دی، البته امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او نورو فقهاو قول دی چې خلال د پښو تر ګوتو پورې خاص دی، ځکه چې د لاس په ګوتو کې د پراخی د وجې نه د خلال ضرورت نشته، همدارنګه که چيرته د پښو خلال هم پرېښودل شي نو پروا نشته، اوس دلته سوال پيدا شوی دی چې که چيرته خلال سنت دی نو بيا په بعضو احاديثو کې په پرېښودلو باندې شديد وعيد ولې راغلی دی د کومو نه چې اندازه لګيږي چې واجب دی.

ددې جواب دا دی چې که چيرته ګوتې پراخې وې نو خلال سنت دی او که چيرته د پښو ګوتې په خپل مينځ کې سره نښتې وې نو بيا خلال واجب دی او د هغه په پرېښودلو باندې وعيد راغلی دی دې دپاره چې په مينځ کې يې وچ ځای پاتې نه شي نو ځکه وعيد په وچ والي باندې راغلی دی. (المرقات ۲/۱۱۵)

| |
|---|
| (۱۲) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأْتَ |
| دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وېلي يې دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کله چې تاسو اودس کوئ |
| فَخَلِّلْ بَيْنَ أَصَابِعِ يَدَيْكَ وَ رِجْلَيْكَ . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ ٣٩) ( وَ رَوَى ابْنُ مَاجَهْ نَحْوَهُ |
| دخپل لاسونو ګوتې او د خپلو پښو د ګوتو په مينځ کې خلال وکړئ (او ابن ماجه هم دارنګه روايت کړی |
| وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ). (ابن ماجه ٤٤٧)[1]. |
| او ترمذي وېلي دي چې دا حديث غريب دی). |

**توضيح**: **فخلل**: د پښو په ګوتو کې د خلال کيفيت دا دی چې د چپ لاس کچې ګوته د ښی پښې د کچې ګوتې په مينځ کې داخل کړي په ترتيب سره د چپې پښې تر کچې ګوتې ورسيږي، او د لاس خلال دا دی چې د دواړو لاسونو ګوتې په يو بل کې سره ورکړی شي او خلال کړی شي. (المرقات ۲/۱۱۶).

| |
|---|
| (۱۳) وَعَنِ الْمُسْتَوْرِدِ بْنِ شَدَّادٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ |
| دمستورد بن شداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليدلو کله يې چې اودس کولو |

---

(۱) أخرجه الترمذي ۵۷/۱ ، رقم الحديث : ۳۹ .

| |
|---|
| يُدَلِّكُ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ بِخِنْصَرِهِ[1]. |
| نو د خپلو پښو ګوتې يې (د چپ لاس) په کچې ګوتې سره مږلې (يعنې د پښو د ګوتو په مينځ کې د چپ لاس په کچې ګوتې سره خلال کولو). |

## د ږيرې خلال

| |
|---|
| (۱۴) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ أَخَذَ كَفًّا مِنْ مَاءٍ |
| د انس رضي الله عنه نه روايت دی ويلي يې دي چې کله به رسول الله صلی الله علیه وسلم اودس کولو نو يوه لپه اوبه به يې |
| فَأَدْخَلَهُ تَحْتَ حَنَكِهِ فَخَلَّلَ بِهِ لِحْيَتَهُ وَقَالَ |
| واخستلې بيا به يې هغه لږ شانته ښکته حصې ته ورسولې او په هغو سره به يې ږيره خلال وله او بيا به يې فرمايل |
| هٰكَذَا أَمَرَنِي رَبِّي[2]. |
| چې زما پروردګار ماته (د وحې خفي په ذريعه) همداسې حکم کړی دی. |

**توضيح** : **فخلل لحيته** : امام شافعي رحمه الله، امام احمد رحمه الله او د اکثرو علماء کرامو په نزد په ږيره کې خلال کول سنت دي، امام مالک رحمه الله د مستحب کيدو قول غوره کړی دی، د احناف ائمو په نزد د ږيرې خلال د راجح قول مطابق سنت دی، امام مزني او په يوه قول کې امام احمد بن حنبل رحمه الله ويلي دي چې دا خلال واجب دی، ټول حديث چې وکتل شي دا خبره لاس ته راځي چې د ږيرې خلال يو ښه کار دی او رسول الله صلی الله علیه وسلم پرې عمل کړی دی.

**په اودس کې د ږيرې حکم** : اوس دا مسئله تر بحث لاندې ده چې د ږيرې څه حکم دی چې آيا وينځل يې دي او که د هغې مسح کول دي؟. جمهورو د کوم تفصيل نه په غير ويلي دي چې د ږيرې وينځل په اودس کې واجب دي، احنافو په دې کې د تفصيل نه کار اخستلی دی چې ږيره په دوه قسمه ده، يوه رنګې او بله ګڼه، رنګې هغه وي په کومه کې چې پوستکی ليدل کيږي او ګڼه هغه وي په کومه کې چې د مخ پوستکی نه ليدل کيږي، د ګڼې ږيرې حکم دا دی چې د هغې بيخ ته د اوبو رسول واجب او ضروري دي.
د ګڼې ږيرې حکم داسې دی چې د هغې د وېښتانو بيخونو ته اوبو رسول ضروري نه دي د پاسه يې وينځل فرض دي او د ږيرې چې کوم وېښتان ښکته ځوړند وي د هغو وينځل ضروري نه دي او نه يې مسح کول ضروري دي، البته خلال کول يې او د خلال دپاره د نويو اوبو را اخيستل ضروري نه دي، د اودس زړې

---

(۱) أخرجه الترمذي ۵۷/۱، رقم الحديث: ٤، وابوداود ۱۰۳/۱، رقم الحديث: ۱۴۸.
(۲) أخرجه ابوداود ۱۰۱/۱ رقم الحديث: ۱۴۵.

اوبه كافي دي، د خلال د مسئلې په ضمن كې دا خبره بالكل واضحه شوه چې په شريعت كې د يوې قبضې نه د كمې ږيرې وجود نشته، ځكه چې په خشخشې (كمه) ږيره كې څرنګ خلال كيدلى شي، ځكه چې د ږيرې د خلال صورت داسې دى چې د وينځلو نه وروسته د لاس ګوتې د ږيرې د لاندې حصې نه داخلې كړى شي پورته طرف ته راكش كړى شي.

| |
|---|
| (۱۵) وَ عَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ كَانَ |
| د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د اودس كولو په وخت كې) په خپله |
| يُخَلِّلُ لِحْيَتَهُ[1]. |
| ږيره كې خلال كړى وو. |
| (۱۶) وَ عَنْ أَبِي حَيَّةَ قَالَ رَأَيْتُ عَلِيًّا تَوَضَّأَ |
| دابو حيه رَحِمَهُ اللهُ نه روايت دى ويلي يې دي چې ما حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اودس كولو په وخت كې وليدو |
| فَغَسَلَ كَفَّيْهِ حَتَّى أَنْقَاهُمَا ثُمَّ مَضْمَضَ ثَلَاثًا وَ اسْتَنْشَقَ |
| نو هغه خپل لاسونه ووينځل تر دې پورې چې هغه يې پاك كړل، بيا يې درې ځلې غرغره وكړه او په پوزه |
| ثَلَاثًا وَ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا وَ ذِرَاعَهُ ثَلَاثًا |
| كې يې اوبه واچولې درې ځلې او درې ځلې يې خپل مخ ووينځلو درې ځلې يې دواړه لاسونه تر څنګلو پورې |
| وَ مَسَحَ بِرَأْسِهِ مَرَّةً ثُمَّ غَسَلَ قَدَمَهُ إِلَى الْكَعْبَيْنِ ثُمَّ قَامَ |
| ووينځل يو ځل يې په خپل سر باندې مسحه وكړه بيا يې دواړه پښې تر ګيټو پورې ووينځلې بيا اودريدو |
| فَأَخَذَ فَضْلَ طَهُورِهِ فَشَرِبَهُ وَ هُوَ قَائِمٌ ثُمَّ قَالَ أَحْبَبْتُ أَنْ أُرِيَكُمْ |
| اود اودس نه زياتې شوې اوبه يې په ولاړه وڅكلې او بيا يې وفرمايل ماته دا خوښه شوه چې تاسو يې ووينځ |
| كَيْفَ كَانَ طُهُورُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[2]. |
| چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اودس څرنګه وو. |

---

(۱) أخرجه الترمذي ۱/۴۶ ، رقم الحديث : ۳۱ ، وابن ماجه ۱/۱۴۸ .

(۲) أخرجه الترمذي ۱/۶۷ رقم الحديث : ۴۸ ، وأخرجه النسائي في السنن ۱/۷۰ رقم الحديث : ۹۶ .

(۱۷) وَ عَنْ عَبْدِ خَيْرٍ قَالَ نَحْنُ جُلُوسٌ نَنْظُرُ إِلَى عَلِيٍّ حِيْنَ

د عبد خير رحمه الله نه روايت دى وايي چې مونږ ناست وو او كتل مو حضرت علي رضي الله عنه ته چې كله يې

تَوَضَّأَ فَأَدْخَلَ يَدَهُ الْيُمْنَى فَمَلأَ فَمَهُ فَمَضْمَضَ

اودس كولو لهذا هغه د لوښي نه په ښي لاس باندې اوبه را واخستلې او په ډكه خوله يې غرغره وكړه او

وَاسْتَنْشَقَ وَ نَثَرَ بِيَدِهِ الْيُسْرَى فَعَلَ هٰذَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ قَالَ

په پوزه كې يې اوبه واچولې او په چپ لاس سره يې پوزه سونګ كړه داسې يې درې ځلې وكړل بيا يې وفرمايل

مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى طُهُوْرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

چا ته چې دا خبره خوښه وي چې هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم اودس ووينې نو (هغه دې وګوري چې) د

فَهٰذَا طُهُوْرُهُ [1].

رسول الله صلى الله عليه وسلم اودس دا دى (يعنې همداسې رسول الله صلى الله عليه وسلم اودس كړى وو).

(۱۸) وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

د عبد الله بن زيد رضي الله عنه نه روايت دى چې ما رسول الله صلى الله عليه وسلم وليدلو چې هغه صلى الله عليه وسلم په

مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفٍّ وَاحِدَةٍ فَعَلَ ذٰلِكَ ثَلَاثًا [2].

يوې لپې سره غرغره وكړه او په پوزه كې يې اوبه واچولې او درې ځلې يې همداسې وكړل.

(۱۹) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسَحَ بِرَأْسِهِ وَأُذُنَيْهِ

د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل سر او دواړو غوږونو مسح وكړه او

بَاطِنَهُمَا بِالسَّبَّاحَتَيْنِ وَ ظَاهِرَهُمَا بِإِبْهَامَيْهِ [3]. (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ).

په غوږونو كې دننه مسح يې په خپلو شهادت ګوتو سره وكړه او د پاسه يې په غټو ګوتو سره وكړه.

---

(۱) أخرجه الدارمي في السنن ۱/۱۹۰.

(۲) أخرجه ابوداود ۱/۸۷ رقم الحديث : ۱۱۹، وأخرجه الترمذي في السنن ۱/۴۱ رقم الحديث : ۲۸.

(۳) أخرجه النسائي من حديث طويل ۱/۷۴ رقم الحديث : ۱۰۲ ، والترمذي نحوه .

(۲۰) وَعَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّهَا رَأَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ

دربيع بنت معوذ رضي الله عنها نه روايت دى چې دې رسول الله صلى الله عليه وسلم د اودس کولو په وخت کې وليدلو

قَالَتْ فَمَسَحَ رَأْسَهُ مَا أَقْبَلَ مِنْهُ وَمَا أَدْبَرَ وَ صُدْغَيْهِ وَ أُذُنَيْهِ

لهذا ويلې يې دي چې نبي عليه الصلاة والسلام د سر په مخکنۍ حصه باندې، په شاتنۍ برخه باندې او په غوږونو

مَرَّةً وَاحِدَةً وَ فِي رِوَايَةٍ أَنَّهُ تَوَضَّأَ

باندې يو ځل مسح وکړه او په يو روايت کې دي چې نبي عليه الصلاة والسلام اودس وکړو لهذا (د مسح د پاره) يې

فَأَدْخَلَ أُصْبُعَيْهِ فِي جُحْرَيْ أُذُنَيْهِ [1].

خپلې دواړه ګوتې د خپلو دواړو غوږونو په سوررو کې داخلې کړې.

(وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ الرِّوَايَةَ الْأُولَى وَأَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَةَ الثَّانِيَةَ).

ترمذي اول حديث او ابن ماجه دويم حديث روايت کړي دي.

## د سر مسح د پاره د نويو اوبو اخيستل

(۲۱) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ

د عبدالله بن زيد رضي الله عنه نه روايت دى چې ما رسول الله صلى الله عليه وسلم د اودس کولو په وخت کې وليدلو

وَ أَنَّهُ مَسَحَ رَأْسَهُ بِمَاءٍ غَيْرِ فَضْلِ يَدَيْهِ [2]. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)

لهذا رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل سر مسح په هغو اوبو سره وکړه کومې چې د لاسونو نه زياتې شوې نه وې

(وَ رَوَاهُ مُسْلِمٌ مَعَ زَوَائِدَ ).[3]

(يعنې نوې او به يې رواخستلې مسح يې وکړه) او مسلم دا روايت زيادت سره نقل کړى (په کوم کې چې د نورو اندامونو د وينځلو ذکر هم شته).

**توضيح : بماء غير فضل يديه** : يعنې رسول الله صلى الله عليه وسلم د سر مسحې د پاره نوې اوبه را واخيستې او د لاس په لوند والي يې اکتفاء ونه کړه، د احناف ائمو په کتابونو کې دا مسئله ذکر ده چې د کوم اندام

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۹۱/۱ ، رقم الحديث : ۱۲۹ ، والترمذي ۴۸/۱ .
(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۵۰/۱ ، رقم الحديث :۳۵
(۳) مسلم ۱/۱۴۵.

د وینځلو نه وروسته په لاس باندې چې کوم لوند والی پاتې شي هغه د کوم اندام د مسح کولو دپاره کافي دي دنویو اوبو را اخیستو ضرورت نشته خو ! که چیرته په لاسونو سره د کوم اندام مسح وکړی شي نو ددې نه وروسته دلاس لوندوالی د کوم بل اندام دپاره کافي نه دی، ددې وجه داده چې د مسح نه وروسته دلاس د لوندوالي او به مستعملې او به ګرځي کومې چې بیا دوباره استعمالیدی نه شي او د وینځلو نه چې کوم لوند والی پاتې شي هغه د مستعملو اوبو په حکم کې نه دی، ځکه چې مستعملې هغه کیدی شي کومې چې د کوم اندام په وینځلو کې وبهیول شي، دا حدیث د احنافو نه په غیر د نورو ائمو دپاره دلیل دی کوم چې د سر د مسح دپاره د نویو اوبو را اخیستل ضروري نه ګڼي، امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ دا روایت دا سې **بماء غیر فضل یدیه** نقل کړی، لیکن ددې سره یې دا هم ذکر کړي دي چې ابن لهیعه په روایت کې د **غیر فضل یدیه** الفاظ دي د کوم مطلب چې دا شو چې دلاسونو نه زیاتې شوې اوبه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر په مسح کې استعمال کړې دي، که چیرته دا روایت صحیح شي نو دا د احنافو دلیل جوړیږي، لیکن امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې ددې روایت نه مخکنی روایت زیات صحیح دی، ځکه چې هغه مشهور دی .بهر حال که چیرته نوې اوبه را واخیستل شي نو زیاته بهتره ده دې دپاره چې د اختلافي صورت نه انسان وساتل شي. (اشعة اللمعات ۱/۲۴۲)

## د غوږونو د مسح مسئله

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ذَكَرَ وُضُوءَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ |
| د ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اودس ذکر کولو په وخت کې وویل چې |
| وَ كَانَ يَمْسَحُ الْمَاقَيْنِ وَ قَالَ الْأُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ. (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهُ ٤٤٤، وَأَبُو دَاوُدَ ١٣٤، وَالتِّرْمِذِيُّ). |
| تاسو د سترګو کونجونه هم ورسره یو ځای کړئ او وې فرمایل چې دواړه غوږونه په سر کې داخل دي. |
| وَ ذَكَرَا قَالَ حَمَّادٌ لَا أَدْرِي الْأُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ |
| او ابوداؤد او ترمذي ذکر کړي دي چې حماد وویل : چې زه په دې نه پوهیږم چې (الاذنان من الرأس) |
| مِنْ قَوْلِ أَبِي أُمَامَةَ أَمْ مِنْ قَوْلِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ[1]. |
| یعنې دواړه غوږونه په سر کې داخل دي چې دا د ابو امامه قول دی او که د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد دی |

**توضیح : الاذنان من الرأس** : په اودس کې د غوږونو څه حکم دی آیا وینځل کیږي او که مسح وربانديې

(۱) اخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۱۵۲ رقم الحدیث ، ٤٤٤ ،وأخرجه أبوداود ۱/۹۳ رقم الحدیث : ۱۳٤ .

کېږي نو په دې باره کې د علماؤ د رأیو اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: (۱) امام زهری رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې د مخ سره دې دواړه غوږونه مکمل ووینځل شي.

(۲) عامر شعبي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې د غوږونو مخکنی حصه دې د مخ سره ووینځل شي او په شاتنی حصه دې د سر د مسحې سره مسح وکړی شي.

(۳) جمهور علماء په دې باندې متفق دي چې په غوږونو باندې د سر د مسحې سره مسح کول په کار دي، البته د دوي په خپل مینځ کې په دې باندې اختلاف دی چې آیا د غوږونو د مسح دپاره د نویو اوبو را اخیستل په کار دي او د لاسونو لوندوالی کافي دی، د مذهب په نقل کې هم اختلاف دی چې څوک په کوم طرف دي، مگر احناف او شوافع په هر حال کې د یو بل مقابل دي، لهذا د شافعیانو په نزد د نویو اوبو را اخیستل بهتر دي او د احنافو په نزد د نویو اوبو را اخیستل بهتر نه دي. (المرقات ۲/۱۲۳).

**د فقهاؤ دلائل**: په مذکور باب کې حدیث د ائمه احناف دلیل دی چې غوږونه د سر سره تړل شوي دي لهذا د نووا اوبو را اخیستلو ته ضرورت نشته، د سر په مسح کې دې د شهادت او بټې گوتې نه استعمالیږي هغه دې په غوږونو کې استعمال کړی شي. د احنافو دویم دلیل هغه حدیث هم دی په کوم کې چې د سر په مسحې سره د گناهونو وتلو لار غوږونه ښودل شوي دي چې **خرجت خطایاه من اذنیه** معلومه شوه چې غوږونه په مسح کې د سر تابع دي نو د نوؤ اوبو ضرورت نشته. د احنافو دریم دلیل د ابن خزیمه روایت دی کوم چې بحر الرائق نقل کړی دی په کوم کې چې راغلي دي (**أخذ غرفة فمسح بها رأسه واذنیه**) دارنگه په دې باب کې دذې نه مخکې د حضرت ربیع بنت معوذ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روایت دی او همدارنگه د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی په کومو نه چې معلومه شوې ده چې د غوږونو مسح د سر سره ده او د هغې تابع دي، د شوافعو حضراتو په نزد په دغه مسئله کوم مرفوع حدیث نشته، دوي صرف عقلي دلیل وړاندې کړی چې غوږونه جدا اندامونه دي اودجدااندام دپاره دجدااوبوضرورت دی لهذادغوږونودپاره دنویو اوبو اخستل په کار دي، دغه حضراتو داحنافود دلیل کمزوري کولودپاره دابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت باندې اعتراض کړی دی. ددوی لومړی اعتراض دا دی چې تراوسه پورې دا معلومه نه ده چې (**الاذنان من الرأس**) جمله آیا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قول دی او که د ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مقوله ده حماد ویلي دي چې ماته معلومه نه ده چې دا د چا قول دی؟.

**جواب**: ائمه احناف د دې اعتراض نه دا جواب ورکړی دی چې په ابن ماجه کې د دې تصریح شته چې (**قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الاذنان من الرأس**) او که چیرته بالفرض والمحال دا د ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول دی نو چونکه دا حکم غیر مدرک بالقیاس دی صحابي د خپله ځانه دا سې خبره نه شي کولی نو بیا هم دا د مرفوع حدیث په حکم کې دی، دارنگه دا حدیث صرف د ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مروي نه دی

بلکې حافظ جمال الدین زیلعي رَحِمَهُ اللهُ په نصب الراية کې د اتو (۸) صحابه کرامو نه تخریج کړی دی.
د شوافع حضراتو دویم اعتراض دا دی چې که چیرته دا مرفوع حدیث هم شي نو ددې مقصد دنویو اوبو را اخیستل او نه را اخیستل نه دي بلکې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مقصود دا بیانول دي چې غوږونه د سر نه دي دوي د سر برخه دي گویا چې دا کوم تشریعي بیان نه دی بلکې تخلیقي بیان دی؟. ددې جواب دا دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شارع دی د خلقت بیانول د دوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منصب او موضوع نه ده، بلکې د شریعت حکم بیانول د دوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مطلوب او مقصود دی، دارنگه که چیرته دا د خلقت او تخلیق بیان شي نو هغه ته ضرورت څه وو دا خو یوه بدیهي معامله ده په کومه چې هر څوک پوهیږي چې غوږونه د سر نه دي او دوه دي او سترگې دوه دي او د سر نه دي، پوزه او خوله د سر برخې دي ددې بیانولو ته څه ضرورت ؤ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بعثت ددې سره هیڅ واسطه نشته. (المرقات ۲/۱۲۳).

| |
|---|
| (۲۳) وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ جَاءَ |
| عمرو بن شعیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه روایت کړی چې هغه ویلي دي چې راغی یو |
| أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَسْأَلُهُ عَنِ الْوُضُوءِ |
| بانډه چي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته او دا اودس د طریقې پوښتنه یې ترې وکړه لهذا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| فَأَرَاهُ ثَلَاثًا ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا الْوُضُوءُ |
| خپل د اودس اندامونه درې ځلې وینځل او ورته یې و ښودل او وې فرمایل چې (کامل) اودس دارنگې دی |
| فَمَنْ زَادَ عَلَى هٰذَا فَقَدْ أَسَاءَ وَ تَعَدَّى |
| لهذا چې په دې باندې زیادت وکړو (یعنې د درې ځلو نه یې زیات ووینځل) هغه بد وکړل تجاوز یې وکړو |
| وَ ظَلَمَ [1]. |
| او ظلم یې وکړو، او ابوداؤد هم ددې مطلب حدیث روایت کړی. |

**توضیح : فمن زاد** : دلته دا سوال دی چې اطالت غره خو مطلوب او مقصود دی حالانکه دلته په اودس کې زیادت ته گناه او ظلم ویل شوي دي؟. ددې جواب دا دی چې د دې حدیث مطلب دا دی چې څوک چا د دې په تبلیغ کې زیادت یا کمی وکړ هغه ظلم وکړ یا دا که چا د دې خلاف عقیده ولرله نو هغه ظلم وکړ، یا دا چې چا د اودس په مراتو کې زیاتی وکړو یعنې د درې ځلو نه یې زیات ووینځل نو هغه ظلم وکړو.

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۱/۸۸ رقم الحديث : ۱۴۰ ، وأخرجه ابن ماجه ۱/۱۴۶ رقم الحديث : ۴۲۲.

اساءه: يعني د ترک سنت د وجې هغه ګناه وکړه بد کاريې وکړو. (المرقات ۲/۱۲۳).

## په دعاګانو کې تجاوز مه کوئ

| |
|---|
| (۲۲) وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْمُغَفَّلِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَهُ يَقُولُ اللّٰهُمَّ إِنِّي |
| د عبدالله بن مغفل رضي الله عنه نه روايت دی چې: د د خپل زوی نه داسې دعا کول واوريدل: ای الله! زه ستا |
| أَسْأَلُكَ الْقَصْرَ الْأَبْيَضَ عَنْ يَمِينِ الْجَنَّةِ قَالَ أَيْ بُنَيَّ سَلِ اللهَ الْجَنَّةَ وَ |
| نه غواړم د جنت ښي طرف ته سپين محل، نو ده ورته وويل: ای زويه! ته د خدای نه جنت وغواړه او (د دوزخ) |
| تَعَوَّذْ بِهِ مِنَ النَّارِ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّهُ فِي هٰذِهِ الْأُمَّةِ |
| داور نه پناه وغواړه، ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه داسې اوريدلي چې فرمايل يې نزدې ده چې په دې امت |
| قَوْمٌ يَعْتَدُونَ فِي الطَّهُورِ وَالدُّعَاءِ.[1] |
| کې به داسې خلک پيدا شي کوم به چې په طهارت او دعاګانو کې غلو او تجاوز کوي. |

**توضيح: القصر الابيض:** سپين محل په انګريزي کې ورته وائټ هاؤس ويل کيږي، همدا لفظ د مشکوة شريف په نورو برخو کې هم راغلی، هلته د فارس بادشاه کسری محل او د هغو د خزانو د فتوحاتو ذکر دی لهذا د مدائن په فتوحاتو کې په ايوان کسری کې **القصر الابيض** هم فتحه شوی وو. (مشکوة ص۴۶۶)

**يعتدون: اعتداء** د تجاوز او زياتي په معنی دی، په طهارت کې تجاوز دا دی چې د درې ځلو نه زيات ووينځل شي، يا بيخي زياتې او به د اسراف تر حده وبيهوي، يا په وينځلو کې دومره مبالغه وکړي چې شک او وسوسې ته خبره ورسيږي دا ټول په طهور کې تجاوز دی، او په دعاء کې تجاوز دا دی چې يا خو ډيره اوږده وغوښتل شي، يا د تکلف سره په هغې کې د وزن سجع او تصنع الفاظ راوړی شي، يا د قيوداتو په لګولو سره تعين وکړی شي لکه په دې حديث کې سپين محل او د جنت ښي طرف ته قيودات. يا داسې دعا وغوښتل شي د کومې چې قبليدل محال وي مثلا يو غريب کوچی سړی د بادشاه جوړيدو دعا کوي دا ټول د تجاوز صورتونه دي. (المرقات ۲/۱۲۶).

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۸۷/٤ ، واخرجه احمد في المسند ۸۷/٤ ، واخرجه ابوداود في السنن ۷۳/۱ رقم الحديث : ۹۶ ،واخرجه ابن ماجه ۱۲۷۱/۲ رقم الحديث ۳۸٦٤

## شیطان په اودس کې وسوسه اچوي

| |
|---|
| (۲۵) وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ لِلْوُضُوءِ شَيْطَانًا |
| دابی بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل : داودس یو شیطان دی کوم ته |
| يُقَالُ لَهُ الْوَلْهَانُ فَاتَّقُوا وَسْوَاسَ الْمَاءِ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ) وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ |
| چې ولهان ویل کیږي لهذا داوبو د وسوسې نه ځان وساتئ، او امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې دا حدیث |
| غَرِيبٌ ، وَ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ لِأَنَّا لَا نَعْلَمُ أَحَدًا |
| غریب دی او د محدثینو په نزد د دې سند قوي نه دی ځکه چې مونږ ته معلومه نه ده چې د خارجه (دیو عالم) |
| أَسْنَدَهُ غَيْرَ خَارِجَةَ . وَ هُوَ لَيْسَ بِالْقَوِيِّ عِنْدَ أَصْحَابِنَا )[1]. |
| نه په غیر بل چا دې د دې سند بیان کړی وي او هغه (خارجه) زمونږ د محدثینو په نزد قوي نه دی. |

**توضیح : الولهان :** **وَلَه صَدَفُ** : په وزن باندې متحرک دی دا لفظ د غم په معنی سره دی یا د غم د وجې د حیران او پاګل په معنی دی، **ولهان** د هغه شیطان نوم دی کوم چې د اودس په اوبو کې د اسراف دپاره حاضریږي، دا لفظ یا په خپله د همدې شیطان صفت دی یا دا د خلکو په وسوسي او شکي جوړولو کې سرګردان ګرځي، یا په حقیقت کې انسان یې په وسوسه کې اچولی دی.

**ولهان :** د همداسې شکي انسان صفت دی لیکن مجازا د دې نسبت د شیطان طرف ته شوی دی، ځکه چې د شیطان د وجې انسان په وسوسه کې غورځیدلی دی. (المرقات ۲/۱۲۶).

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۸۴/۱ ، رقم الحديث : ۵۷ ، وابن ماجه ۱۴۶/۱ ، رقم الحديث : ۴۲۱.

## د اودس نه وروسته د دست پاک (توليه) وغيره استعمال

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ |
| د معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى وايي چې ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليده كله يې چې اودس وكړو |
| مَسَحَ وَجْهَهُ بِطَرَفِ ثَوْبِهِ. (۱) |
| نو د خپلې جامې په كونج (څنډه) يې مخ پاكولو. |

**توضيح**: رقة ينشف بها: د اودس د كولو نه وروسته د اندامونو وچولو دپاره د دسمال (توليه) استعمالول په كار دي او كه نه؟ په دې سلسله كې د بعضو نه د اوبو وچول ثابت دي، په بعضو روايتونو كې راغلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جامې له استعمال نه انكار كړى دى په دې وجه د فقهاء كرامو په اقوالو كې هم اختلاف راغلى دى.د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ نه درې قولونه زيات مشهور دي، يو قول دا دى چې همدا جامه استعمالول او د اوبو وچول مستحب دي، او دويم قول كې مكروه دي، دريم قول دا دى چې په يخنۍ كې استعمالول په كار دي او په ګرمۍ كې استعمالول نه دي په كار، په ائمه احنافو كې بعضو دا د اودس د آدابو ګڼلي دي، بعضو مستحب ليكلي دي او بعضو صرف د مباح قول غوره كړى دى.د احنافو او جمهورو معتمد قول دا دى چې د اودس نه وروسته د جامې(دسمال) استعمالول فقط مباح دي د مستحب كيدو دپاره هيڅ دليل نشته او په مكروه باندې هم هيڅ دليل نشته.
كومو حضراتو چې د اوبو نه وچولو خبره كړې ده چې دا اوبه د قيامت په ورځ په اعمال نامه كې تلل كيږي لهذا نه دې شي وچولى مګر دا هيڅ دليل نه دى، ځكه كه چيرته په جامه باندې يې وچول نقصاني وي نو په بدن باندې هم دا اوبه وچيدلى شي، بهر حال دا يوه طبعي معامله ده كوم تشريعي حكم نه دى، په ګرمۍ كې ضرورت نه پېښيږي او په يخنۍ كې ضرورت پېښيږي، چا ته چې كوم آسان وي هماغه صورت دې غوره كړي.

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَتْ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خِرْقَةٌ |
| د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دى ويلي يې دي چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره يوه كپړه وه په |
| يُنَشِّفُ بِهَا أَعْضَاءَهُ بَعْدَ الْوُضُوءِ. (۲) وَ قَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ |
| كومې به يې چې دا اودس نه وروسته خپل لامده شوي اندامونه وچول، او امام ترمذي ويلي دي چې دا حديث |

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۷۵/۱ ،رقم الحديث : ۵۴ .

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۷۴/۱ ،رقم الحديث : ۵۳ .

لَيْسَ بِالْقَائِمِ ، وَأَبُو مُعَاذٍ الرَّاوِي ضَعِيفٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ).

قوي نه دی ، او د دې يو راوي معاذ د محدثينو په نزد ضعيف دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

(۲۸) عَنْ ثَابِتِ بْنِ أَبِي صَفِيَّةَ قَالَ قُلْتُ لِأَبِي جَعْفَرٍ هُوَ

د ثابت بن ابي صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې: ما حضرت جعفر صادق رَحِمَهُ اللهُ ته د چا د پلار نوم چې

مُحَمَّدٌ الْبَاقِرُ حَدَّثَكَ جَابِرٌ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

محمد باقر رَحِمَهُ اللهُ دی وويل چې تا ته جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا حديث بيان کړی دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

تَوَضَّأَ مَرَّةً مَرَّةً ، وَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ وَ ثَلَاثًا وَ ثَلَاثًا قَالَ نَعَمْ [1].

(کله) يو ځل او (کله) دوه ځلې او (کله) درې ځلې اودس کړی دی ؟ هغه وويل : چې آو.

(۲۹) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ

د عبد الله بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی ويلي يې دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوه ځلې اودس وکړو (يعنې

مَرَّتَيْنِ وَ قَالَ هُوَ نُورٌ عَلَى نُورٍ.

د اودس اندامونه يې دوه ځلې ووينځل) او بيا يې وفرمايل : چې دا په نور باندې دپاسه نور دی.

(۳۰) وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ ثَلَاثًا ثَلَاثًا

د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی ويلي يې دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ درې درې ځلې اودس وکړ

وَ قَالَ هٰذَا وُضُوئِي وَ وُضُوءُ الْأَنْبِيَاءِ قَبْلِي وَ وُضُوءُ إِبْرَاهِيمَ

او بيا يې وفرمايل چې دا زما او زمانه د مخکنيو انبياو اودس دی او د حضرت ابراهيم اودس دی (دا دواړه

(رَوَاهُمَا رَزِينٌ وَ النَّوَوِيُّ ضَعَّفَ الثَّانِيَ فِي شَرْحِ مُسْلِمٍ).

حديثونه رزين روايت کړي او امام نووي رَحِمَهُ اللهُ د مسلم په شرح کې دويم حديث ته ضعيف ويلی دی).

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱/۶۵، رقم الحديث ۴۵، وابن ماجه ۱/۱۴۳ رقم الحديث : ۴۱۰.

(۲۱) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلَاةٍ
د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د هر (فرض) مونځ د پاره اودس کولو

وَكَانَ أَحَدُنَا يَكْفِيهِ الْوُضُوءُ مَا لَمْ يُحْدِثْ.[1]
او مونږ ته يو اودس تر هغه پورې کافي وو ترڅو مو چې اودس مات شوی نه وو.

## دوضوء على الوضوء په بدل کې د مسواک حکم

(۲۲) وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حِبَّانَ قَالَ قُلْتُ لِعُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ
د محمد بن يحی رحمه الله نه روايت دی چې ما د عبد الله بن عمر رضي الله عنه زوی عبيد الله ته وويل چې ماته دا ووايه

أَرَأَيْتَ وُضُوءَ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ لِكُلِّ صَلَاةٍ طَاهِرًا كَانَ أَوْ
چې آيا عبد الله بن عمر رضي الله عنه د هر مونځ د پاره اودس کړې وو برابره خبره ده که هغه په اودس کې وو او

غَيْرَ طَاهِرٍ عَمَّنْ أَخَذَهُ فَقَالَ حَدَّثَتْهُ أَسْمَاءُ
که بې اودسه وُ او هغه دا عمل د چانه حاصل کړی وُ؟ عبيد الله رضي الله عنه وويل چې ماته حديث بيان کړی اسماء

بِنْتُ زَيْدِ بْنِ الْخَطَّابِ أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ حَنْظَلَةَ بْنِ أَبِي عَامِرٍ الْغَسِيلِ حَدَّثَهَا أَنَّ
بنت زيد بن خطاب رضي الله عنها چې عبد الله بن حنظله ابو عامر الغسيل رضي الله عنه هغه نه دا حديث بيان کړی چې

رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ أُمِرَ بِالْوُضُوءِ لِكُلِّ صَلَاةٍ طَاهِرًا كَانَ أَوْ
رسول الله صلی الله علیه وسلم د هر مونځ د پاره د اودس کولو حکم کړی وُ برابره خبره ده که په اودس کې به وُ او که

غَيْرَ طَاهِرٍ فَلَمَّا شَقَّ ذَلِكَ عَلَى رَسُولِ اللهِ أُمِرَ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ
بې اودسه به وُ کله به چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د پاره دا مشکله وه نو د هر مونځ په وخت به يې د مسواک

وَوُضِعَ عَنْهُ الْوُضُوءُ
د حکم کولو او اودس به يې موقوف کولو (د هر مونځ د پاره تازه اودس کول واجب پاتې نه شول) ترڅو

إِلَّا مِنْ حَدَثٍ قَالَ فَكَانَ عَبْدُ اللهِ يَرَى أَنَّ بِهِ
چې اودس مات شوی نه وي، عبيد الله ويلي چې د عبد الله بن عمر رضي الله عنه دا خيال وو چې په ماکې د هر

[1] أخرجه البخاري في الصحيح ۳۱۵/۱ رقم الحديث ۲۱۴، والنسائي ۸۵/۱، رقم الحديث: ۱۳۱، وأخرجه الترمذي ۸۸/۱ رقم الحديث: ۶۰.

تُوَّةً عَلٰی ذٰلِكَ فَفَعَلَهُ حَتّٰی مَاتَ [1].

مونږ د پاره د تازه اوبو د اودس کولو قوت شته دی لهذا ته په دې باندې د مرګ تر وخته پورې عمل وکړه.

## په اودس کښې هم د اوبو اسراف منع دی

(۳۲) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِسَعْدٍ

د عبد الله بن عمرو بن عاص رضی الله عنه نه روایت دی چې یو ځل د رسول الله صلی الله علیه وسلم تیریدل په سعد رضی الله عنه

وَ هُوَ يَتَوَضَّأُ

باندې وشو کله چې هغه اودس کړی وُ (او په اودس کې یې اسراف هم کړی وُ) رسول الله صلی الله علیه وسلم چې

فَقَالَ مَا هٰذَا السَّرَفُ يَا سَعْدُ قَالَ أَفِي الْوُضُوءِ سَرَفٌ

(دا ولیدل) وې فرمایل اې سعد! دا څه اسراف (زیاتی) دی؟ سعد رضی الله عنه وویل آیا په اودس کې هم اسراف

قَالَ نَعَمْ وَ إِنْ كُنْتَ عَلٰی نَهْرٍ جَارٍ [2].

شته؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: آو! اګر که ته په جاري نهر باندې اودس ولې نه کوې.

## د بسم الله ویلو سره په اودس کولو باندې ټول بدن پاکیږي

(۳۳) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَابْنِ مَسْعُودٍ وَابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابو هریره رضی الله عنه، ابن مسعود رضی الله عنه او ابن عمر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کړی دی

قَالَ مَنْ تَوَضَّأَ وَ ذَكَرَ اسْمَ اللهِ •

چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کوم کس چې اودس وکړو او د الله تعالی نوم یې واخیست (یعنې

فَإِنَّهُ يُطَهِّرُ جَسَدَهُ كُلَّهُ وَ مَنْ تَوَضَّأَ وَ لَمْ يَذْكُرِ

بسم الله یې وویله) نو هغه خپل ټول بدن (د ګناهونو نه) پاک کړو او چا چې اودس وکړو او یاد یې نه کړو

اسْمَ اللهِ لَمْ يُطَهِّرْ إِلَّا مَوْضِعَ الْوُضُوءِ [3].

نوم د الله تعالی نو هغه صرف د اودس اندامونه پاک کړل.

(۱) اخرجه احمد في المسند ۲۲۵/۵، واخرجه ابوداود في السنن ۴۱/۱، رقم الحديث: ۴۸.

(۲) اخرجه احمد في المسند ۲۲۱/۲، وابن ماجه ۱۴۷/۱ رقم الحديث: ۴۲۵.

(۳) اخرجه الدار قطني ۷۴/۱، رقم الحديث: ۱۲.

## ګوتمه وخوزوئ اودس وکړئ

| |
|---|
| (٣٥) وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ وُضُوءَ الصَّلَاةِ |
| ابورافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې کله د مونځ دپاره اودس کولونو د |
| حَرَّكَ خَاتَمَهُ فِيْ أُصْبُعِهِ.[1] (رَوَاهُمَا الدَّارَ قُطْنِيُّ وَ رَوَى |
| خپلې ګوتې ګوتمه به يې هم په ګوته کې وخوزوله (دا دواړه حديثونه دارقطني روايت کړي او روايت |
| ابْنُ مَاجَهْ الْأَخِيرَ). |
| کړی دی ابن ماجه صرف دويم حديث). |

**توضيح: وضوء الصلاة:** يعني د مونځ دپاره به چې کله رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اودس کولونو نبه مبالغه به يې کوله او ددې نه بغير جومات ته د ننوتلو يا د تلاوت يا د سجده تلاوت وغيره دپاره به يې چې اودس کولو نو بيا به يې دومره مقدار باندې مبالغه نه کوله، په دې صورت کې د **الصلاة** لفظ احترازي قيد جوړ شوی دی.(المرقات ٢/١٣٣).

**حرک خاتمه:** دا تحريک سنت او مستحب امر دی، علامه ابن همام په زاد الفقير کې ليکلي دي چې که چيرته ګوتمه پراخه وه نو د هغې خوزول سنت دي او که تنګه وه نو د هغې ويستل او حرکت ورکول واجب دي ترڅو چې لاندې وچ ځای پاتې نه شي. (المرقات ٢/١٣٣).

د دې حديث د حکم لاندې په جسم کې د اودس اندامونه چې په کوم شي سره هم پټ شوي وي هغه ته حرکت ورکول ضروري دي هغه که ګهړي (ګينټه) وي يا بل شی، همدارنګه د اودس په اندامونو کې چې چيرته سوری وي لکه د ښځو په پوزه کې نو په هغه کې دې زيور ته حرکت ورکول او د لاندې اوبه رسول ضروري شول، همدارنګه د غوږونو په سوريو کې د غسل کولو په وخت کې په ښځو باندې لازم دي چې دننه اوبه ورته ورسوي او د غوږونو لښتيو ته ښه حرکت ورکړي.

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

---

(١) أخرجه الدار قطني ٧٤/١ ، رقم الحديث : ١٢ .

٢٧ صفر ١٤١٠هـ

# بَابُ الْغُسْلِ

## د جنابت د غسل بيان

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

(١) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَلَسَ أَحَدُكُمْ

دابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: کله چې کينې په تاسو کې کوم کس

بَيْنَ شُعَبِهَا الْأَرْبَعِ ثُمَّ جَهَدَهَا فَقَدْ وَجَبَ الْغُسْلُ

د ښځې د څلورو شاخونو په مينځ کې بيا کوشش وکړي (يعنې جماع وکړي) نو په هغه باندې غسل واجب

وَإِنْ لَمْ يُنْزِلْ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

شو اگر که مني ونه وځي.

### د انما الماء من الماء مسئله

(٢) وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)

ابوسعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: اوبه د اوبو نه دي (يعنې د مني په وتلو سره

قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللهُ هٰذَا مَنْسُوخٌ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ

غسل واجبيږي) او امام محي السنة رَحِمَهُ اللهُ وايي دي چې دا حکم منسوخ دی او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي

إِنَّمَا الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ فِي الْاِحْتِلَامِ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ لَمْ أَجِدْهُ

چې اوبه د اوبو نه دي دا حکم د احتلام د پاره دی امام ترمذي روايت کړی. او ما دا روايت نه دی موندلی

فِي الصَّحِيحَيْنِ). (مسلم)[2].

په بخاري او مسلم کې.

(١) رواه البخاري ٣٩٥/١، رقم الحديث: ٣٩١، ومسلم في الصحيح ٢٧١/١ رقم الحديث: ٨٧-٣٤٨، ، والنسائي ١١٠/١، رقم الحديث: ١٩١ .
(٢) اخرجه المسلم في الصحيح ٢٦٩/١ رقم الحديث: ٨٠-٣٤٣، وابو داود ١٤٨/١ رقم الحديث :٢١٧.

**توضيح: انما الماء من الماء: اى انما وجوب استعمال الماء بالمنى،** نو د اول اوبو نه د غسل اوبه مراد دي او د دويم ماء نه نطفه او د مني اوبه مراد دي، د دې حديث په الفاظو کښې حصر دی چې غسل صرف په هغو صورتونو کښې فرض دی کله چې د منی خروج وشي او د منی د خروج نه بغير غسل نه واجبيږي برابره خبره ده که حشفه غائبه شي او که نه شي او برابره ده که التقاء ختنين وي او که نوي که د مني انزال وي نو غسل شته دی او که نه وي نو غسل نشته دی.(المرقات ۲/۱۳۵).

د دې مسئلې عنوان اکسال هم دی، اکسال د کسل نه د سست کيدو په معنی دی، مطلب دا چې کله انزال وشي نو ذکر سست وغور ځيږي که داسې نوي نو نه غورځيږي، او په زير بحث مسئله کښې د اکسال مطلب دا دی چې يو کس د انزال نه په غير ذکر خارج کړي د سست کولو کوشش يې کوي اوس د ابو سعيد خدري رضي الله عنه روايت په ظاهر کښې د دې مخکښې د حضرت ابو هريره رضي الله عنه د روايت سره بالکل معارض دی په هغه کښې په (**غيبوبت حشفه**) سره غسل واجب ګرځول شوی دی که انزال وي که نوي او دلته انزال د غسل د پاره شرط ګرځول شوی دی، دارنګه دا روايت د حضرت عائشې رضي الله عنها د روايت سره هم متعارض دی په کوم کښې چې د (**اذا جاوز الختان الختان وجب الغسل**) الفاظ راغلي دي کوم چې په وروسته کښې راتلونکی دی، دارنکه په دريم فصل کښې د ابی بن کعب رضي الله عنه د روايت سره هم متعارض دی کوم چې د مشکوة په ۴۹ صفحه کښې راغلی دی. (المرقات ۲/۱۳۵).
د احاديثو د دې تعارض د وجې د اسلام په ابتداء کښې په صحابو کښې په دغه مسئله کښې ډير لوی اختلاف پيدا شوی وو، مهاجرينو صحابو د حضرت ابو هريره رضي الله عنه او د حضرت عائشې رضي الله عنها روايت نيولی وو په(غيبوبت حشفه) يې غسل کولو ،ليکن انصارو صحابو (**انما الماء من الماء**) د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه په روايت باندې عمل کولو، حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خپل خلافت په دور کښې په دغه مسئله کښې د صحابه کرامو د متحد کولو کوشش وکړ ترڅو چې ټول مسلمانان په يو حکم باندې متحد شي، لهذا ده د صحابو نه مشوره واخستله نو دا فيصله وشوه چې د دې مسئلې تعلق د ازدواجي ژوند سره دی، لهذا د ازواج مطهراتو نه پوښتنه په کار ده، حضرت عمر رضي الله عنه حضرت ابو موسی اشعري رضي الله عنه حضرت عائشې رضي الله عنها ته ور وليږلو نو حضرت عائشې رضي الله عنها ورته د التقاء ختانين روايت بيان کړو بيا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه حکومتي (سرکاري) فرمان صادر کړو او انصاريې د اکسال نه په سختۍ سره منعه کړل نو په دغه مسئله باندې اجماع منعقده شوه، او د داؤد ظاهري نه بغير په ټول امت کښې د هيڅا اختلاف پاتې نه شو، اوس که انزال وي که نه وي د حشفې په غائبيدو سره غسل واجبيږي.

دابو سعید رضي الله عنه په روایت کې د صحابه کرامو داجماع او د نورو ډیرو احادیثو په نظر کې نیولو د وجې تاویل کول ضروري شول لهذا امام محی السنة رحمه الله یو تاویل دا کړی دی چې دا حکم منسوخ شوی دی، لهذا په راتلونکي کې د ابی بن کعب رضي الله عنه روایت په دې باندې صریح دلالت کړی دی چې دا حکم د اسلام په ابتداء کې وو بیا منسوخ شو، دویم تاویل ده د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په حواله سره دا کړی دی چې ابن عباس رضي الله عنه ویلي دي چې ﴿انما الماء من الماء﴾ حکم د احتلام په باره کې دی. (المرقات ۲/۱۳۵).

لیکن په دې تاویل او توجیه سره د حدیث د شان ورود د وجې دا اعتراض شوی دی چې حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه ویلي دي چې عتبان بن مالک صحابي مسجد قباء ته نزدې اوسیدلو زه او رسول الله صلی الله علیه وسلم د دوشنبې په ورځ هلته لاړو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دې خلکو ته د دوی د کورنو مخې ته آواز ورکړو زا وی بلل هغوی په جماع کې مشغول وو هغه یې پرېښودله بهر راووتل رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې مونږ خلک په جلتئ کې واچول بهر راغلل او په راتلو سره یې پوښتنه وکړه چې د انزال نه بغیر که چیرته اکسال وکړی شي نو څه حکم دی؟. رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ﴿انما الماء من الماء﴾ یعنې د انزال نه په غیر غسل نه واجبیږي نو دا واقعه د بیدارۍ ده په دې کې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه تاویل څنګه چلیدلی شي چې دا په احتلام باندې محمول دی؟.(المرقات ۲/۱۳۵).

علماو د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د همدې تاویل د درستوالي دپاره یوه توجیه دا کړې ده چې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په نزد هم دا حدیث منسوخ دی لکه څرنګه چې د ټول امت په نزد منسوخ دی، مګر د ده په نزد د دې حدیث یو صورت داسې هم دی کوم چې اوس هم منسوخ نه دی او هغه د احتلام صورت دی چې په احتلام کې اوس هم ﴿انما الماء من الماء﴾ ضروري دی، یعنې د بیدارۍ په حالت کې حقیقةً او حکمًا دواړو صورتونو ته شامل دی، لیکن په خوب کې صرف حقیقي صورت ته شامل دی یعنې د مني وتل د غسل دپاره ضروري دي.بعضو علماو د دې حدیث دریم جواب دا ورکړی دی چې د حضرت ابو هریره رضي الله عنه او د حضرت عائشې رضي الله عنها روایتونه امر حکمي ته شامل دي، یعنې کله چې (غیبوبت حشفه) وکړی شي نو د شریعت حکم دادی چې غسل واجب دی، ځکه چې د حشفې د غیاب په وخت کې د مني وتل خو نه لیدل کیږي لهذا شریعت همدا غیبوبت حکمًا د انزال قائمقام بللی دی.او د ابو سعید خدري رضي الله عنه روایت په امر حقیقي او حکمي دواړو باندې محمول دی چې کله انزال وي نو ﴿انما الماء من الماء﴾ باندې عمل کیږي او چې کله انزال نه وي نو بیا په (غیبوبت حشفه)

باندې عمل کيږي، او د ﴿اذا جاوز الختان الختانان﴾ نه مراد جماع ده، يعنې د ختنه شده ځايونو يو ځاى کيدل. (المرقات ۲/۱۳٦).

**الختانان**: دا د ختان تثنيه ده او ختان د ختن نه د ماشوم ختنه کولو ته ويل کيږي، مراد ختنه شده ځاى دى، په هلکانو کې خو ختنه مشهوره ده او مسنون اسلامي طريقه ده مګر د جينکو ختنې ته هم دا حديث شامل دى او په آئنده کې د جينکو په ختنه کولو کې يو صريح حديث هم راتلونکى دى، حقيقت دا دى چې په خط استواء باندې قائم په ګرمو هيوادونو کې د دې رواج پخوا هم وو او اوس هم په بعضو هيوادونو کې شته دى، او شافعي حضرات په مصر وغيره کې دا ضروري ګڼي ځکه چې په دې ملکونو کې د جينکو په اندام نهاني کې د غوښې او چربۍ (وازدې) يوه ټوټه پيدا کيږي د هغې په پريکولو سره د طرفينو دپاره د جماع په خوند کې زياتوالى راځي، د غوښې او د چربۍ ددې ټوټې پريکولو نوم د ښځو ختنه کول دي، ليکن په ياد ولرئ چې دا مسئله د برصغير ملکونو دپاره نه ده، په دې سره د علماء حق خلاف د اهل بدعاتو لوى طوفان را پورته شوى دى لهذا ددې مسئلې ذکر کول نه دي په کار. (بخاري ۱/۴۴، مسلم ۱/۱۳۲).

## د ښځې د احتلام مسئله

(۳) وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ اللهَ

ام سلمه رضي الله عنها ويلي دي چې ام سليم رضي الله عنها رسول الله صلى الله عليه وسلم ته عرض وکړيا رسول الله! الله تعالى

لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ فَهَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ مِنْ غُسْلٍ إِذَا احْتَلَمَتْ

دحق په معامله کې حياء نه کوي (لهذا داووايه) آيا په ښځه باندې غسل واجب دى کله چې هغه احتلام شي

قَالَ نَعَمْ إِذَا رَأَتِ الْمَاءَ

(يعنې په خوب کې کوروالى ووينې) رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: آو! کله چې هغه اوبه (منى) ووينې،

فَغَطَّتْ أُمُّ سَلَمَةَ وَجْهَهَا وَ قَالَتْ يَا رَسُولَ اللهِ أَوَ تَحْتَلِمُ الْمَرْأَةُ

دا يې چې واوريده ام سلمه رضي الله عنها خپل مخ (د شرم د وجې) پټ کړ او وې ويل يا رسول الله آيا ښځو ته هم احتلام

قَالَ نَعَمْ

کيږي (يعنې آيا د سړي په شان د ښځې هم منى شته او وځي؟) رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: آو! په

تَرِبَتْ يَمِينُكِ فَبِمَ يُشْبِهُهَا وَلَدُهَا . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)

خاورو دې ککړ شي ستا ښى لاس (که چيرته هم دا سې نه وى) نو بيا د هغې ماشوم (بچى) د هغې سره مشابه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَ | زَادَ | مُسْلِمٌ | بِرِوَايَةِ | أُمِّ | سُلَيْمٍ |
| څنګه كيدى شواو امام مسلم رَحِمَهُ اللَّهُ د ام سليم په روايت كې دا الفاظ زيات كړي چې (رسول الله ﷺ | | | | | |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنَّ | مَاءَ | الرَّجُلِ | غَلِيظٌ | أَبْيَضُ | وَ | مَاءَ | الْمَرْأَةِ | رَقِيقٌ | أَصْفَرُ | فَمِنْ أَيِّهِمَا |
| داهم وفرمايل) د سړي مني ټينګه او سپينه وي او د ښځې مني زيړه او نرمه وي لهذا په دوى كې چې د چا | | | | | | | | | | |

| |
|---|
| عَلَا أَوْ سَبَقَ يَكُونُ مِنْهُ الشَّبَهُ)[1]. |
| مني غالبه شي يا سبقت وكړي نو (ماشوم) د هغه سره مشابه كيږي. |

**توضيح : او تحتلم المرأة** : په دې حديث باندې په ظاهره دا اعتراض دى چې **او تحتلم المرأة** جملې نه معلومه شوه چې ښځو ته احتلام نه كيږي ځكه چې ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا د استفهام په انداز كې پوښتنه وكړه چې داسې هم كيدې شي؟ يا د دې حديث په ابتدائي حصه كې ام سليم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا اقرار كړى چې **فهل على المرأة من غسل اذا احتلمت** د كوم نه چې معلومه شوې ده چې دې ښځو ته د احتلام علم وو يا هم ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا پوښتنه وكړه، د دې شبهې د رفع كولو د پاره ډيرجوابات او توجيهات دي، ړومبى سرسري جواب دا دى چې ام المؤمنين ته د باطن د صفائي د وجې احتلام نه وو شوى نو ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا انكار وكړ، دارنګه په احتلام كې شيطان په متشكل شكل كې راځي او د رسول الله ﷺ په شكل كې د شيطان راتلل محال وو او د كوم بل كس په خوب كې د راتللو خو سوال نه پيدا كيږي نو ځكه ازواج مطهراتو ته د احتلام علم نه وو نو ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا انكار وكړو او ام سليم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته معلومه وه نو هغې اقرار وكړ، په دې جواب باندې دا اعتراض دى چې دا هلته صحيح كيدى شي چې په ازواج مطهراتو باندې كله د جاهليت زمانه نه وي راغلې يا يې مخكې د كوم خاوند سره نكاح نه وي كړې حالانكه په دواړو كې معامله برعكس ده نو څه تضمين شته چې د جاهليت په زمانه كې ورلره احتلام نه وو .همدارنګه احتلام خو صرف د شيطان د تشكل د صورت سره خاص نه دى بلكې كله كله د ستړيتوب د وجې هم كيږي، كله د خيټې سره د لګيدو د وجې هم كيږي او كله د مني د زياتيدو د وجې هم كيږي نو ځكه دويم صحيح جواب دا دى چې ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا د ښځو د احتلام د دې عيب پټول غوښتل چې ام سليم هسې د فرضي خبرو پوښتنه كوي ښځولره كله احتلام شته.په دې حقيقت باندې د عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا

---

(١) أخرجه البخاري في الصحيح١/٢٢٦،رقم الحديث : ١٣٠، ومسلم في الصحيح ١/٢٥١ رقم الحديث: ٣٢-٣١٣، والنسائي ١/١١٥، رقم الحديث: ١٩٧ .

روایت هم دلالت کړی دی هغې وویل چې **فضحت النساء** یعني اې ام سلیم تا د ښځو دغه پټ راز ښکاره کړو ښځې دې رسوا کړې، ام سلمه رضي الله عنها ددې حقیقت پټول غوښتل او دا وجه ده چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په سخته لهجه وویل (**تربت یداک**) یعنې ستا دواړه لاسونه دې په خاورو ککړ شي که چیرته د ښځو نطفه نه وی نو بیا کله کله ماشوم مشابه کیدی څنګه شي، په دې جملې سره بعضو هغو طبیبانو باندې رد شوی دی د کوم چې خیال دی چې د ښځو په ذات کې منویه ماده نشته مني صرف په سرو کې دي.(المرقات ۲/۱۳۷).

## د غسل مسنون طریقه

| |
|---|
| (۲) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ |
| عائشې رضي الله عنها ویلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به کله د جنابت غسل (یعنې د ناپاکۍ لرې کولو) اراده |
| بَدَأَ فَغَسَلَ يَدَيْهِ ثُمَّ |
| وکړه نو (غسل) به یې داسې شروع کولو چې اول به یې دواړه لاسونه (ترمړوندونو پورې) ووینځل بیا به |
| يَتَوَضَّأُ كَمَا يَتَوَضَّأُ لِلصَّلَاةِ ثُمَّ يُدْخِلُ أَصَابِعَهُ فِي الْمَاءِ |
| یې اودس وکړه لکه څنګه به یې چې د مونځ د پاره کولو بیا به یې ګوتې (دلمدو لو د پاره) په اوبو کې دننه کړې |
| فَيُخَلِّلُ بِهَا أُصُولَ شَعْرِهِ |
| بیا به یې راویستلې د همدې (ګوتو په لوندوالي) سره به یې د خپلو ویښتانو په بیخونو کې خلال کولو |
| ثُمَّ يَصُبُّ عَلَى رَأْسِهِ ثَلَاثَ غُرَفَاتٍ بِيَدَيْهِ ثُمَّ |
| بیا به یې په خپلو دواړو لاسونو سره درې لپې (اوبه را واخیستې) په سر به یې واچولې او بیا به یې په خپل |
| يُفِيضُ عَلَى جِلْدِهِ كُلِّهِ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [1] (وَ فِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ يَبْدَأُ |
| ټول بدن باندې اوبه توی کړې. او د مسلم په یو روایت کې دا الفاظ دي چې (کله به یې غسل) شروع کولو |
| فَيَغْسِلُ يَدَيْهِ قَبْلَ أَنْ يُدْخِلَهُمَا الْإِنَاءَ ثُمَّ يُفْرِغُ بِيَمِينِهِ عَلَى شِمَالِهِ . يَغْسِلُ فَرْجَهُ |
| نو په خپل ښي لاس سره به یې په خپل چپ لاس باندې اوبه واچولې او بیا به یې خپله شرمګاه وو ینځله |

(۱) أخرجه البخاري في الصحیح ۱/۳۶۰، رقم الحدیث: ۲۴۸، ومسلم في الصحیح ۱/۲۵۳ رقم الحدیث: ۳۵-۳۱۶.

| |
|---|
| ثُمَّ يَتَوَضَّأُ). |
| او ددې نه وروسته به يې اودس وکړ. |

**توضیح: کما یتوضأ للصلوة:** د دې تشبیه وجه دا ده چې وهم کیدی شو چې کله په غسل کې په سر باندې اوبه واچول شي نو شاید په دې اودس کې د سر مسحه نه وي شوې یا دا چې په غسل کې ټولې اوبه په پښو باندې راځي نو شاید په دې اودس کې پښې نه وي وینځل شوې نو ځکه حضرت عائشې رضي الله عنها وویل چې دا اودس بالکل د مونځ د اودس په شان وو. (المرقات ۱/۱۳۸).
دلته دا شبه هم شته چې په دې روایت کې د اودس سره د پښو وینځلو ذکر هم شته او وروسته د حضرت میمونې رضي الله عنها په روایت کې د غسل نه وروسته دپښو وینځلو ذکر نشته دی په دواړو کې تعارض دی؟. د دې جواب دا دی چې دواړه صورتونه روا دي هیڅ تعارض نشته دی، داسې د احنافو یو قول دی چې مطلقا دپښو نه وروسته وینځل په کار دي، شوافع وایي چې د غسل نه مخکې د اودس سره دې ووینځل شي، صاحب د هدایه لیکلي دي چې که چیرته د غسل په ځای کې د قدمینو د تلویث خطر وو نو په وروسته کې دې پښې ووینځل شي او که چیرته ځای صفا وو او مناسبه چوکۍ وغیره وو نو د اودس سره یې وینځل زیات بهتر دي، په غسل کې رومبی په سر باندې اوبه اچول کیږي بیا په ښي اوږه باندې بیا په چپه اوږه باندې اچول کیږي او بیا په ټول بدن باندې اچول کیږي، د طبیبانو په نزد دا ښه طریقه ده.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (۵) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَتْ مَيْمُونَةُ وَضَعْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | | | |
| ابن عباس رضي الله عنه ویلي دي چې میمونې رضي الله عنها ویلي دي، چې ما کیښودې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته | | | | | | | | | |
| غُسْلًا | فَسَتَرْتُهُ | بِثَوْبٍ | وَ | صَبَّ | عَلَى | يَدَيْهِ | | | |
| د غسل د پاره اوبه او کپړه مې و اچوله پرده مې وکړه نو نبي علیه السلام په دواړو لاسونو باندې اوبه واچولې | | | | | | | | | |
| فَغَسَلَهُمَا | ثُمَّ | صَبَّ | بِيَمِينِهِ | عَلَى | شِمَالِهِ | فَغَسَلَ | فَرْجَهُ | | |
| هغه یې ووینځل، بیا یې په ښي لاس سره په خپل چپ لاس باندې اوبه واچولې او شرمګاه یې ووینځله | | | | | | | | | |
| فَضَرَبَ | بِيَدِهِ | الْأَرْضَ | فَمَسَحَهَا | ثُمَّ | غَسَلَهَا | | | | |
| بیا یې خپل چپ لاس (په کوم یې چې شرمګاه وینځلې وه) په زمکه باندې ومږلو او هغه یې ووینځلو بیا یې | | | | | | | | | |
| فَمَضْمَضَ | وَاسْتَنْشَقَ | وَ | غَسَلَ | وَجْهَهُ | وَ | ذِرَاعَيْهِ | ثُمَّ | صَبَّ | عَلَى رَأْسِهِ وَ |
| غرغره وکړه، په پوزه کې یې اوبه واچولې او مخ او لاس یې ووینځل بیا یې په سر باندې اوبه واچولې او په | | | | | | | | | |

أَفَاضَ عَلَى جَسَدِهِ ثُمَّ تَنَحَّى فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ

تول بدن يې وبهولې بيا چرته چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام غسل کړی ؤ د هغه ځاي نه يو طرف ته شو خپې يې ووينځلې

فَنَاوَلْتُهُ ثَوْبًا فَلَمْ يَأْخُذْهُ فَانْطَلَقَ وَ هُوَ

ددې نه وروسته ما بدن وچولو د پاره کپړه ورکړه ليکن دوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کپړه وانخيستله بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَام

يَنْفُضُ يَدَيْهِ.[1] (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) (وَلَفْظُهُ لِلْبُخَارِيِّ).

لاسونه وڅنډل او د هغه ځای نه لاړو ، الفاظ د بخاري دي.

## د حائضې د غسل طريقه

(٦) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ أَنَّ امْرَأَةً مِنَ الْأَنْصَارِ سَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ويلي دي چې (يوه ورځ) يوې انصارې ښځې پوښتنه وکړه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د

عَنْ غُسْلِهَا مِنَ الْمَحِيضِ فَأَمَرَهَا كَيْفَ تَغْتَسِلُ

خپل حيض د غسل په باره کې يې سوال وکړو لهذا نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغې ته د غسل حکم وکړو چې څنګه غسل

وشي (يعني په مخکنيو حديثونو کې د غسل چې کوم کيفيت تير شوی دی نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغه بيان کړ)

ثُمَّ قَالَ خُذِي فِرْصَةً مِنْ مِسْكٍ فَتَطَهَّرِي بِهَا

او بيا يې وفرمايل چې په مشک سره (په لمده شوې کپړه) يا يوه جامه را واخله په هغې سره پاکي حاصله

قَالَتْ كَيْفَ أَتَطَهَّرُ بِهَا قَالَ

کړه، هغې پوښتنه وکړه چې په هغې سره څنګه پاکي حاصليږي؟ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې ته

تَطَهَّرِي بِهَا قَالَتْ كَيْفَ أَتَطَهَّرُ بِهَا

په هغې سره پاکي حاصله کړه، هغې بيا پوښتنه وکړه چې په هغې سره څه قسم پاکي حاصله کړې؟ رسول الله

قَالَ سُبْحَانَ اللهِ تَطَهَّرِي بِهَا

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل سبحان الله (يعني الله پاک دی) ته په هغې سره پاکي حاصله کړه، عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا

---

(١) اخرجه البخاري في الصحيح ١/٢٨٣، رقم الحديث: ٢٧٦، مسلم ١/٢٥٤ رقم الحديث ٣٧-٣١٧، وابوداود ١/١٦٩ رقم الحديث: ٢٤٥.

| | | |
|---|---|---|
| فَاجْتَذَبْتُهَا | إِلَيَّ | |
| ويلي دي چې (رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ همدا الفاظ بار بار وا ورول) ما هغه ښځه د خپل ځان طرف ته راکش کړه | | |
| فَقُلْتُ لَهَا تَتَبَّعِي بِهَا أَثَرَ الدَّمِ [1]. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). | | |
| او هغې ته مې وويل چې (ته هغه کپړه) د وينې په ځای (يعني شرمګاه کې) کيږده. | | |

**توضيح**: **المحيض**: د حيض په معنى سره دى، **فأمرها**: يعني رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې ښځې ته د غسل کيفيت او طريقه وښودله. (المرقات ۴۰-۲/۴۱).

**فرصة**: دا لفظ د فاء په کسرې سره دى دا د اون يا د ورې ټوټې ته ويل کيږي يا د کپړې وړې ټوټې ته ويل کيږي، په بعضو روايتونو کې دا لفظ قرصة د قاف سره راغلى دى د هغې نه هم ټوټه مراد ده. (المرقات ۲/۴۱).

**من مسک**: دا لفظ د ميم په کسرې سره زيات مشهور دى، د ظاهر لفظ نه معلومه شوې ده چې په خپله د مشکو وړه ټوټه د اندام نهاني سره يو ځای کړه چې هلته د بد بويي اثر پاتې نه شي، يا د مشک نه مراد دا چې هغه دې په کومه کپړه باندې ومښل شي او بيا دې په هغې کپړه باندې اندام نهاني صفا کړی شي.

**تطهري**: مطلب دا دى چې صفائي حاصله کړه، مګر په بعضو روايتونو کې توضئي لفظ هم راغلى دى د هغه نه هم صفائي مراد ده. (المرقات ۲/۴۱).

**قال سبحان الله**: يعني رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې دا ښځه ځومره پوهوله نه پوهيدله او پوښتنه به يې کوله بل طرف ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته حجاب وو چې ښکاره الفاظ استعمال کړي په دې باندې يې د تعجب په انداز کې سبحان الله وويله، د دې حديث نه معلومه شوه چې په دې شان د پرده په مسائلو کې ځومره چې ممکن وي د پردې والا الفاظ استعمال کړی شي او د شرم او حياء لمن د ځان نه لرې نه کړی شي. (المرقات ۲/۴۱).

**فاجتذبتها**: دا د راخکلو په معنى سره دى، دا لفظ چې ځومره وا ړول راوا ړول شي معنى يې يوه پاتې کيږي، په بعضو روايتونو کې **فاجتبذتها** دى د هغه مطلب دا دى الله تعالى دې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا درجات لوړ کړي هغې چې کله وليدل چې دا ښځه نه پوهيږي او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يې

---

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۱/۴۱۴، رقم الحديث: ۳۱۴، ومسلم في الصحيح ۱/۲۶۰ رقم الحديث: ۶۰-۳۳۲، وابو داود ۱/۲۲۲ رقم الحديث: ۳۱۵، والنسائي ۱/۱۳۵، رقم الحديث: ۲۵۱.

پریشانه کړي دی نو هغه یې راخکله او په واضحو الفاظو یې پوهه کړه، ځکه چې د ښځو په مینځ کې د دارنګه خبرو کولو ګنجایش وي. (المرقات ۲/۴۲).

## په غسل کې د سر دویښتانو مسئله

(۷) وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ ! إِنِّي امْرَأَةٌ أَشُدُّ ضَفْرَ رَأْسِي

ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ویلي چې ما وویل یا رسول الله زه یوه داسې ښځه یم چې د خپل سر ویښتان ډیر مضبوط کوځی

أَفَأَنْقُضُهُ لِغُسْلِ الْجَنَابَةِ فَقَالَ لَا

کړم، آیا د کوروالي نه وروسته د لامبلو دپاره هغه خلاصې کړم؟ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: نه (د

إِنَّمَا يَكْفِيكِ أَنْ تَحْثِي عَلَى رَأْسِكِ ثَلَاثَ حَثَيَاتٍ

ویښتانو خلاصولو ته ضرورت نشته) بلکې تاته دا کافي دي چې درې لپې اوبه واخلې په سر یې واچوې

ثُمَّ تُفِيضِينَ عَلَيْكِ الْمَاءَ فَتَطْهُرِينَ (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[۱].

او بیا په ټول بدن باندې اوبه وبهیوې نو پاکیږې.

**توضیح**: **اشد**: **شد یشد** د مضبوطوالي او تړلو په معنی سره دی. (المرقات ۲/۴۲).

**ضفر رأسي**: ضفر د ضاد په فتح او د فاء په سکون سره زیات مشهور دی ضفر مفرد دی جمع یې ضفائر ده دا د کمڅو په معنی سره دی، اوس هم په کلو کې شریفې ښځې د سر ویښتان ډیر زیات پټوي او کوځې جوړوي او په دې کار باندې کافي وخت لګیږي نو د هر غسل دپاره د هغو خلاصول آسان کار نه دی، نو ځکه ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د مسئلې پوښتنه وکړه نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ښځو ته د نه خلاصولو اجازت ورکړ اوس دا رخصت د ښځو سره خاص دی، په سړو کې کوم فقیر ملنګ ته د دې اجازت نشته دی، ځکه چې د هغه دپاره د کمڅو جوړول جائز نه دي، د ښځو په غسل کې د فقهاؤ اختلاف دی. (المرقات ۲/۴۲).

**د فقهاؤ اختلاف**: په دې مسئله کې د فقهاؤ اختلاف دی چې د ښځو دپاره د غسل په وخت کې د کوڅیو خلاصول ضروري دي او که نه نو امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد د حیض په غسل کې د کوڅیو خلاصول ضروري دي په باقي غسلونو کې ضروري نه دي، د جمهورو فقهاؤ په نزد په هر قسم غسل کې د ښځو دپاره د کمڅو خلاصول ضروري نه دي، په دې شرط چې اوبه د ویښتانو بیخونو ته ورسول شي.

(۱) اخرجه المسلم في الصحيح ۱/۲۵۹ رقم الحديث: ۵۸-۳۳۰، وابو داود ۱/۱۷۳ رقم الحديث: ۲۵۱، والترمذي ۱/۱۷۵ رقم الحديث: ۱۰۵.

**دلائل** : امام مالک او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ د بخاري په دې روایت سره استدلال کړی دی کوم چې د حجة الوداع په قیصه کې دی په کوم کې چې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ویلي دي چې ماته ماهواري راغله نو د غسل د پاره رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمایل : چې د سر ویښتان خلاص کړه ګومنځ يې کړه او غسل وکړه په مشکوة کې دا الفاظ دي **﴿فامرني النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان انقض راسي وامتشط﴾** او چونکه دا د حیض نه وروسته غسل وو نو ځکه صرف د حیض په غسل کې د کوڅیو خلاصول دي، د جمهورو دلیل زیر نظر د حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا صریح او صحیح حدیث دی. (المرقات ۲/۴۲).

**جواب** :د مالکیو او حنابلو د استدلال جواب دادی چې داد کمځود خلاصولو حکم د حج په موقع د نورو خیرو میرو لرې کولو د وجې شوی وو، د حیض سره یې تخصیص نشته بلکې د حج د محل سره خاص دی.

## په اودس او غسل کې د اوبو مقدار

| |
|---|
| **(۸)** وَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ بِالْمُدِّ وَيَغْتَسِلُ |
| د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په یو مد (اوبو) سره اودس کولو او غسل |
| بِالصَّاعِ إِلَى خَمْسَةِ أَمْدَادٍ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| يې کولو په یو صاع سره تر پنځو مدو پورې (اوبو) سره. |

**توضیح** : **بالمد** : دا لفظ د **میم** په ضمې او د **دال** په تشدید سره دی، دا دوه رطله یعنې د دوه پونډ پیمانه نوم دی او صاع د هغې پیمانې نوم دی په کومه کې چې څلور مده یعنې اته رطله راتلی شي دا د احنافو په نزد دي، آئنده به یې په کوم ځای کې تفصیل ان شاء الله راشي، ددې حدیث او نورو احادیثو نه معلومه شوې ده چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په یو مد اوبو سره اودس او په یو صاع اوبو سره غسل کړی وو. د فقهاء کرامو په دې باندې اتفاق دی چې په اودس او غسل کې د اوبو په استعمال کې هیڅ پابندي نشته البته د اسراف او تقتیر یعنې کمې نه ځان ساتل په کار دي.

د دې وجه دا ده چې دا امور عادي دي، د عادت د وجې بدلیدی شي، کله د زمانې کله د مکان او مقام د وجې په دې کې فرق راتلی شي، کله د اوبو قلت او کثرت او کله د مزاج په تغیر سره په دې کې تغیر راتلی شي، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عمومًا دا مقدار استعمال کړی وو د کوم ذکر چې په دې حدیث کې راغلی دی.(المرقات ۲/۱۴۳).

---

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۱/۳۰۴، رقم الحديث :۲۰۱، و مسلم في الصحيح ۱/۲۵۸ رقم الحديث :۵۱-۳۲۵ ، و ابو داود ۱/۷۲ ، رقم الحديث :۹٤.

## د ښځې او سړي يو ځای غسل کول

| |
|---|
| (۹) وَعَنْ مُعَاذَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَتْ عَائِشَةُ كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د معاذة رضي الله عنها نه روايت دی وايي چې عائشې رضي الله عنها وويل چې غسل کولو ما او رسول الله صلى الله عليه وسلم |
| مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ بَيْنِي وَ بَيْنَهُ |
| د يو لوښي نه چې د دواړو په مينځ کې اينبودل شوی ؤ او نبي عليه الصلاة والسلام (د اوبو په را اخيستو کې) د |
| فَيُبَادِرُنِي حَتَّى أَقُولَ دَعْ لِي دَعْ لِي قَالَتْ |
| ما نه جلتي کوله نو ما ورته وويل چې زما د پاره اوبه پرېږده! زما د پاره هم اوبه پرېږده، معاذې ويلي دي |
| وَ هُمَا جُنُبَانِ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| چې دا دواړه (رسول الله صلى الله عليه وسلم او حضرت عائشه رضي الله عنها) جنب (يعني د ناپاکۍ په حالت کې) وو. |

**توضيح** : **كنت اغتسل انا** : ښځه او سړی کوم چې دواړه ښځه او خاوند وي که چيرته يو ځای غسل کوي نو اتفاقا دا روا دي، په دې کې هيڅ کراهيت نشته، او که چيرته سړي ړومبی غسل وکړي او ښځه يې وروسته وکړي نو په دې کې هم هيڅ کراهيت نشته، که چيرته ښځه په تخليه (ځانله) کې ړومبی غسل وکړي او سړی وروسته د هغې نه پاتې اوبو باندې غسل کول غواړي نو په دې کې د فقهاء کرامو اختلاف دی، د امام احمد بن حنبل رحمه الله او د اهل ظواهرو په نزد دا صورت مکروه دی، د جمهورو فقهاؤ په نزد صرف د ښځې د ړومبي غسل د وجې نه اوبه نه مکروه کيږي لهذا د سړي د پاره په هغو سره غسل کول مکروه نه دي، د دې حضراتو دليل همدا مذکور حديث دی، حنابله او اهل ظواهر په هغو روايتونو سره استدلال کړی دی په کومو کې چې د ښځو نه وروسته د سړو اغتسال ممنوع ګڼل شوی دی. جمهورو د دې روايتونو ته دا جواب ورکړی دی چې هغه د پرديو ښځو په استعمال شده اوبو باندې محمول دي، يعني د اجنبيت د وجې د غير محرم د پاره د التذاذ له وجې منعه شوېده، يا هغه روايتونه د داسې ښځو په باره کې دي کومې چې د غسل کولو په صحيح طريقه باندې نه پوهيږي او په اوبو کې هر څه غورځوي نو هغه ممنوع او مکروه دي او که داسې نه وي بيا نه دي.

باقي حضرت عائشې رضي الله عنها چې کوم منظر بيان کړی دی د هغه پس منظر داسې دی چې په هغه وخت کې د اوبو هم کمی وو جدا جدا اوبه نه پيدا کيدې، همدا رنګه جدا جدا لوښی هم نه پيدا کيده، د تنګ ځای د وجې جدا جدا ځای هم نه پيدا کيده، يا د شپې په تياري کې د يو بل بدن هم نه ليدل کيده په دې

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۲۶۳/۱، رقم الحديث: ۲۵۰، ومسلم في الصحيح ۲۵۷/۱ رقم الحديث: ۴۶-۳۲۱.

کي هیڅ خبره داسې نشته په کومه چې د حدیث منکرینو ته د اعتراض موقع په لاس ورشي. هو د خبث باطن خو هیڅ علاج نشته یو چا دیر ښه ویلي دي:

وعین الرضا عن کل عیب کلیلة ❁ ولکن عین السخط تبدی المساویا

۲۸ صفر ۱٤۱۰هـ

## الْفَصْلُ الثَّانِي

### د احتلام مسئله

| |
|---|
| (۱۰) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الرَّجُلِ |
| عائشې رضي الله عنها ویلي دي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د هغه کس په باره کې پوښتنه وشوه کوم چې (د |
| يَجِدُ الْبَلَلَ وَلَا يَذْكُرُ احْتِلَامًا |
| خوب نه د راپورته کیدو نه وروسته په کپړه باندې دمني) لوندوالی محسوس کړي او ورته یاد نه وي خوب |
| قَالَ يَغْتَسِلُ وَ عَنِ الرَّجُلِ |
| (احتلام) رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې لامبل په کار دي، او د هغه کس په باره کې هم پوښتنه وشوه |
| يَرَى أَنَّهُ قَدِ احْتَلَمَ وَلَا يَجِدُ بَلَلًا |
| چې (کوم د خوب نه د راپورته کیدو نه وروسته) احتلام خو ورته یاد وي مګر لوندوالی نه معلومیږي، رسول الله |
| قَالَ لَا غُسْلَ عَلَيْهِ قَالَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ هَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ |
| صلی الله علیه وسلم وفرمایل په هغه باندې غسل واجب نه دی، ام سلیم رضي الله عنها پوښتنه وکړه که چیرته ښځه هم |
| تَرَى ذَلِكَ غُسْلٌ قَالَ نَعَمْ إِنَّ النِّسَاءَ |
| دا (لوندوالی) ووینې نو په هغې باندې غسل واجب دی؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: آو! ښځې هم |
| شَقَائِقُ الرِّجَالِ[1]. |
| د سړو په شان دي. (ابن ماجه دا حدیث تر (لا غسل علیه، په دوم چې غسل واجب نه دی) ذکر کړي. |

**توضیح: یجد البلل**: په دغه حدیث کې خو یو سوال د هغه کس په باره کې شوی دی کوم چې د راپورته

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۱/۱٦۱ رقم الحدیث: ۲۳٦، والترمذي في السنن ۱/۱۷۹ رقم الحدیث: ۱۱۳، وابن ماجه ۱/۲۰۰ رقم الحدیث: ٦۱۲.

کيدو نه وروسته په بدن يا په جامه باندې لوندوالى ليدلى دى نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې په هغه باندې غسل واجب دى، دويم سوال د هغه کس په باره کې شوى کوم چې خوب ليدلى احتلام هم ورته ياد دى مګر د راپورته کيدو نه وروسته لوندوالى بيخي په نظر نه ورځي نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې په هغه باندې غسل واجب نه دى، په دغه مسئله کې د فقهاؤ خو کوم لوى اختلاف نشته، البته د احنافو په نزد په دې صورتونو کې کافي اوږد تفصيل دى هغه په لنډ (مختصر) طور وړاندې کيدلى شي. (المرقات۲/۱۴۴).

**د احتلام صورتونه**: که چيرته د احتلام نه وروسته د خوبه نه د راپورته کيد نه و وروسته نه مني ويني او نه کوم لوندوالى په نظر ورشي نو په داسې صورت کې غسل نشته، او که چيرته څه وتلي دي او لوندوالى وليدل شي نو بيا څو صورتونه کيږي: (۱) چې د دې کس يقين راشي چې دا مني ده (۲) يا يقين راشي چې مذي ده (۳) يا يقين راشي چې ودي ده، بيا د يقين په دې دريو صورتونو کې دې کس ته احتلام ورپه ياد وي يا احتلام په ياد نه وي نو د يقين دا شپږ صورتونه جوړ شو په دوي کې په دريو صورتونو کې غسل شته او په دريو صورتونو کې غسل نشته، هغه داسې چې دې کس ته يقين وي چې مني ده نو احتلام که ياد وي که هير وي غسل واجب دى، دا دوه صورتونه شو، يا يقين وي چې ودي ده نو که احتلام ياد وي که هير وي په دې کې غسل واجب نه دى، يا يقين وي چې مذي ده نو که په دې کې احتلام په ياد دى نو غسل واجب دى او که په ياد نه دى نو هيڅ نشته، نو د مني دوه صورتونه او د مذي يو صورت په دې دريو صورتونو کې غسل دى او د ودي په دوه صورتونو او د مذي په يو صورت کې په دې دريو صورتونو کې غسل نشته.

اوس که چيرته د شک صورت وي نو د دې تفصيل داسې دى: (۱) چې په دې کې شک وي چې مني ده که مذي (۲) په دې کې شک وي چې مني ده که ودي (۳) په دې کې شک وي چې مذي ده که ودي (۴) په مني مذي ودي درې واړو کې يو ځاى شک دى نو د شک ټول څلور صورتونه جوړ شول.

اوس په همدې څلورو واړو صورتونو کې به احتلام په ياد وي يا به نوي نو دا ټول اته صورتونه شول، په دوي کې د احتلام د ياد په صورت کې د امام مالک رحمه الله او د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد غسل په څلورو صورتونو کې واجب دى، او د احتلام د نه ياديدو په څلورو صورتونو کې غسل نشته دى. د شک او يقين دا ټول څوارلس صورتونه جوړ شول، په اوو کې غسل واجب دى او په اوو کې نه دى واجب، دا تفصيل د احنافو په نزد دى، د باقي ائمو په نزد که چيرته مني دي نو غسل دى او که نه دي نو نشته.

**ان النساء شقائق الرجال**: يعنې په تخليق او طبائعو کې ښځې او سړي يو شان ته دي، کوم څه چې په ښځو کې ښکاره کيږي هغه په سړو کې هم ښکاره کيږي، کوم څه چې په يوه صنف کې موندل کيږي هغه

په بل صنف کې هم موندل کیږي، لهذا څرنګه چې احتلام په سړیو کې شته دی په ښځو کې هم شته . ددې جواب نه معلومه شوې ده چې په ښځو کې د احتلام د نادر او کموالي د وجې حضرت ام سلیم رضي الله عنها پوښتنه وکړه چې آیا د ښځو په احتلام کې هم کوم لوندوالی ښکاره کیږي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم په اثبات سره جواب ورکړو، بعضې علماؤ د شقائق او شقیقه اشتراک في الاحکام معنی اخستې ده چې دواړه د شریعت په احکامو کې یو شان دي، دا مفهوم زیات آسان دی. (المرقات ۲/۱۴۵)

## د حشفې په غائبیدو سره غسل واجبیږي

| |
|---|
| (۲) وَ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِذَا جَاوَزَ الْخِتَانُ |
| عائشې رضي الله عنها ویلي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : کله چې تجاوز وکړي د نر دختنې ځای د |
| الْخِتَانَ وَجَبَ الْغُسْلُ |
| ښځې دختنې د ځای نه (یعنې چې حشفه غائبه شي نو په دواړو باندې) غسل واجبیږي (عائشې رضي الله عنها |
| فَعَلْتُهُ أَنَا وَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَاغْتَسَلْنَا [1]. |
| ویلي دي) چې ما او رسول الله صلی الله علیه وسلم همداسې وکړل او مونږ دواړو ولامبل. |

**توضیح**: د دې حدیث تشریح د باب په ابتدائي حدیثونو کې تیره شوې ده (مؤلف).

## د هر ویښته لاندې جنابت دی

| |
|---|
| (۳) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ كُلِّ شَعْرَةٍ جَنَابَةٌ |
| ابو هریره رضي الله عنه ویلي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : د هر ویښته لاندې (په بیخ کې) جنابت دی |
| فَاغْسِلُوا الشَّعْرَ وَأَنْقُوا الْبَشَرَةَ رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ |
| لهذا ویښتان (به) ووینځئ او بدن پاک کړئ ، او امام ترمذي ویلي دي چې دا حدیث غریب دی . ځکه |
| وَالْحَارِثُ بْنُ وَجِيْهٍ الرَّاوِي وَ هُوَ شَيْخٌ . لَيْسَ بِذٰلِكَ [2]. |
| چې ددې حدیث یو راوي حارث بن وجیه یو داسې دی هغه معتبر نه دی (یعنې د زیات عمر او د نسیان د وجې د هغه روایت قابل اعتماد نه دی یعنې قوي نه دی بلکې ضعیف دی) |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱/۱۸۰ رقم الحديث :۱۰۸ ، وابن ماجه ۱/۱۹۹ رقم الحديث :۶۰۸

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۱/۱۷۱ رقم الحديث :۲۴۸ ،والترمذي في السنن ۱/۱۷۸ رقم الحديث :۱۰۶ ،وابن ماجه ۱/۱۹۶ رقم الحديث :۵۹۷

## چې د یو ویښته ځای وچ پاتې شي غسل نه کیږي

(۱۳) وَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَنْ
حضرت علي رضي الله عنه وېلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کوم کس چې د جنابت په غسل کې د
تَرَكَ مَوْضِعَ شَعْرَةٍ مِنْ جَنَابَةٍ لَمْ يَغْسِلْهَا فُعِلَ بِهَا كَذَا وَ كَذَا -مِنَ النَّارِ
یو ویښته برابر ځای هم (وچ) پرېښود چې ویې نه وینځلو نو په هماغه شان د اور عذاب ورکول کیږي،
وَ قَالَ عَلِيٌّ فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِي
حضرت علي رضي الله عنه وېلي چې د دې وجې نه ما د خپل سر سره دښمني کړې د همدې وجې نه ما د خپل سر سره
فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِي فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِي ثَلَاثًا . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَأَحْمَدُ وَالدَّارِمِيُّ، إِلَّا
دښمني کړې، د همدې وجې نه ما د خپل سر سره دښمني کړې (چې خریم یې) درې ځلې یې داسې ووېل
أَنَّهُمَا لَمْ يُكَرِّرَا فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِي )[1].
مګر احمد او دارمي دا الفاظ چې د همدې وجې ما د خپل سر سره دښمني کړې مکرر نه دي ذکر کړي.

(۱۴) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَتَوَضَّأُ بَعْدَ الْغُسْلِ[2]
حضرت عائشې رضي الله عنها وېلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د غسل کولو نه وروسته اودس نه وو کړی.

**توضیح: لایتوضأ**: یعنې د غسل کولو نه وروسته اودس یې نه دی کړی، ځکه چې د غسل نه مخکې دوی مکمل اودس کولو لکه چې د دې باب په څلورم نمبر حدیث کې حضرت عائشې رضي الله عنها تصریح کړې ده، هسې هم کله چې انسان غسل وکړي نو د حدث اکبر نه پاکیږي نو د حدث اصغر نه پاکي د هغه په ضمن کې شته د هغه بیا راګرځولو ته څه ضرورت دی. (المرقات ۲/۱۴۸).

(۱۵) وَ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَغْسِلُ رَأْسَهُ بِالْخِطْمِيِّ وَ هُوَ جُنُبٌ
حضرت عائشې رضي الله عنها وېلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به وینځلو سر خپل په خطمي سره د جنابت په

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۱/۱۷۳، رقم الحديث: ۲۴۹، وابن ماجه ۱/۱۹۶، رقم الحديث: ۵۹۹.

(۲) أخرجه ابوداؤد في السنن ۱/۱۷۳ رقم الحديث: ۲۵۰، والترمذي في السنن ۱/۱۷۹ رقم الحديث: ۱۰۷، وابن ماجه ۱/۱۹۱ رقم الحديث: ۵۷۹.

يَجْتَزِئُ بِذَٰلِكَ وَلَا يَصُبُّ عَلَيْهِ الْمَاءَ [1].

حالت کې (د غسل په وخت) او په هغه باندې یې کفایت کولو او دوباره یې په سر باندې (خالص) او به اچولې

**توضیح: الخطمي**: د خاء په کسرې سره د یو بوټي نوم دی کوم چې د اوبو سره یو ځای کړی شي نو هغه د صابون کار ورکوي په کوم سره چې سر په خاص طور وینځل شوی وو. (المرقات ۲/۱۴۸).

**يجتزئ بذلک**: یعني د کومو اوبو سره چې خطمي یو ځای کړی شوې وه د هغې استعمالول یې د غسل دپاره کافي ګڼلي وو او د خطمي د جدا وینځلو دپاره یې مزید خالص اوبه نه استعمالولې، دا په هغه صورت کې کیدلی شي چې د اوبو سره خطمي په ډیر کم مقدار کې یو ځای کړی شي نو هغه د خالص اوبو په شان وو او د مزید خالص اوبو ضرورت نه پیدا کیدو. (المرقات ۲/۱۴۸).

په دغه حدیث سره د احنافو د مسلک تایید شوی دی چې که د اوبو سره کوم پاک شی یو ځای کړی شي او د هغه اثر په اوبو کې ښکاره شي او د اوبو طبعیت رقت او سیلان متاثر نه شي نو په هغو سره اودس ژوا دی شوافعو دا نه دي منلي.

**(۱۶) وَعَنْ يَعْلَى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يَغْتَسِلُ بِالْبَرَازِ**

حضرت یعلی رضي الله عنه ویلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یو کس په میدان کې لوڅ لغړ لمبید ونکی ولیدو

فَصَعِدَ الْمِنْبَرَ فَحَمِدَ اللهَ وَ أَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ

نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د (وعظ دپاره) ممبر ته وختلو اول یې د الله تعالی حمد او ثناء بیان کړه بیا یې

قَالَ إِنَّ اللهَ حَيِيٌّ

وفرمایل الله تعالی ډیر زیات حیاء دار دی (یعني د خپلو بندګانو سره د حیادارو معامله کوي دارنګه چې

سِتِّيرٌ يُحِبُّ الْحَيَاءَ وَ

هغوي معاف کوي) او ډیر زیات پرده پوش دی (یعني د خپل بنده ګناه او عیبونه پټ ساتي) او خوښوي حیاء او

التَّسَتُّرَ فَإِذَا اغْتَسَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَسْتَتِرْ [2].

پرده پوشي نو چې کوم کس لامبي په تاسو کې په (میدان کې) نو هغه ته په کار دي چې هغه پرده وکړي.

---

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۱/۱۷۶، رقم الحديث: ۲۵۶، .

(۲) اخرجه ابوداود في السنن ۴/۳۰۲، رقم الحديث: ۴۰۱۲ .

وَ فِي رِوَايَتِهِ قَالَ إِنَّ اللهَ سِتِّيرٌ

او د نسائي په يو روايت کې دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: الله تعالى پرده پوش دی لهذا

فَإِذَا أَرَادَ أَحَدُكُمْ أَنْ يَغْتَسِلَ فَلْيَتَوَارَ بِشَيْءٍ.

کله چې په تاسو کې کوم کس د لامبلو اراده وکړي نو هغه ته په کار دي چې هغه په کوم شي سره پرده وکړي.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

(۱۷) عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ إِنَّمَا كَانَ الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ رُخْصَةً فِي أَوَّلِ

حضرت ابی بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي دا حکم چې غسل د انزال نه وروسته واجبيږي دا رخصت ؤ په اول

الْإِسْلَامِ ثُمَّ نُهِيَ عَنْهَا[1].

د اسلام کې بيا د دې نه منعه وکړی شوه (يعنې دا حکم منسوخ کړی شو).

## د جنابت په غسل کې بايد د بدن کوم ځای وچ پاتې نه شي

(۱۸) وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنِّي اغْتَسَلْتُ مِنَ الْجَنَابَةِ

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی وايي چې يو کس راغی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته او وې ويل چې ما

وَ صَلَّيْتُ الْفَجْرَ فَرَأَيْتُ. قَدْرَ مَوْضِعِ الظُّفُرِ

غسل وکړو د جنابت وکړو او د سهار مونځ مې وکړو بيا ما وليدل چې په (بدن باندې مې) د نوک په اندازه

لَمْ يُصِبْهُ الْمَاءُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لَوْ كُنْتَ مَسَحْتَ

ځای وچ پاتې شوی ؤ چې هلته اوبه نه وې رسيدلې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل که چيرته تا مسح

عَلَيْهِ بِيَدِكَ أَجْزَأَكَ[2].

کړی وو (هماغه ځای په لوند) په لاس سره هم نو کافي به وو.

**توضيح: مسحت عليه:** د دې نه مراد غسل او وينځل دي مسح د مړلو په معنی سره نه ده، او په وينځلو کې مړل شته دی، يعنې که چيرته د غسل نه وروسته په همدغه وچ ځای باندې تا لږې شان اوبه اچولې

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۸۳/۱ رقم الحديث: ۱۱۰، وأخرجه ابوداود في السنن ۱۴۶/۱، رقم الحديث: ۲۱۴.

(۲) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲۱۸/۱ رقم الحديث: ۶۶۴.

وی نو دا به ستا دپاره جائز وو او مونځ به شوی وی، مګر تا داسې نه دي کړي لهذا فرض مونځ نه دی شوی، اوس یې دوباره وکړه، دا مسئله د غسل دپاره هم ده او د اودس د اندامونو دپاره هم ده چې که چیرته کوم ځای وچ پاتې شي یا رنګ پالش یا د پلاستک د وجې یا د تارکولو یا روغن وغیره د وجې اوبه د بدن مطلوبه برخې ته ونه رسول شي نو نه غسل صحیح کېږي او نه اودس صحیح کېږي، د رنګ روغن او پالش لګوونکو ښځو باندې په دغه مسئله کې احتیاط لازمي دی. (المرقات ۱/۱۵۱).

## په څو احکامو کې تخفیف

| |
|---|
| (۱۹) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَتِ الصَّلَاةُ خَمْسِينَ وَ الْغُسْلُ مِنَ |
| د ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې (اول) پنځوس مونځونه فرض شوي وو او همدارنګې غسل د |
| الْجَنَابَةِ سَبْعَ مَرَّاتٍ وَ غَسْلُ الْبَوْلِ مِنَ الثَّوْبِ سَبْعَ مَرَّاتٍ فَلَمْ يَزَلْ |
| جنابت (دناپاکۍ) نه لامبل اوه ځلې وو او د کپړې نه د نجاست وینځل اوه ځلې وو بیا متواتر دعاګانې |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُ حَتَّى جُعِلَتِ الصَّلَاةُ خَمْسًا وَ غُسْلُ |
| کولې رسول الله صلی الله علیه وسلم تر دې چې تخفیف راغی او پاتې شو مونځونه پنځه، او پاتې شو غسل |
| الْجَنَابَةِ مَرَّةً وَغَسْلُ الثَّوْبِ مِنَ الْبَوْلِ مَرَّةً[1]. |
| کول د جنابت نه یو ځل او پاتې شو وینځل د کپړې د نجاست نه یو ځل. |

**توضیح** : **خمسین** : یعنې د معراج په شپه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په امت باندې په شپه او ورځ کې پنځوس مونځونه فرض شوي وو لیکن په هغو باندې د عمل کولو نه مخکې هغه منسوخ او موقوف کړی شول او صرف پنځه پاتې شول، معلومه شوه چې په کوم حکم باندې د عمل د کولو مخکې هغه منسوخ کیدلی شي، د نسخ تعریف او د هغې حکم د دې کتاب په ابتداء کې تیر شوی دي.

**وغسل الثوب مرة** :یعنې د نجاست دلګیدلو نه وروسته د هغه دلرې کولو دپاره اوه ځلې د وینځلو حکم وو بیا د یو ځل وینځلو حکم پاتې شو د امسلک د شوافعو دی چې په یو ځل وینځلو سره کپړه وغیره پاکیدلی شي خودرې ځلې وینځل یې مستحب دي لیکن د احنافو په نزد درې ځلې وینځل واجب دي کله چې نجاست غیر مرئیه وي. (المرقات ۲/۱۵۱).

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۱/۱۷۱ رقم الحدیث : ۲۴۷.

# بَابُ مُخَالَطَةِ الْجُنُبِ وَمَا يُبَاحُ لَهُ

## د جنبي سره د اختلاط بيان

## الْفَصْلُ الْأَوَّلُ

(١) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ لَقِيَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَأَنَا جُنُبٌ

ابو هريره رضي الله عنه وايي چې د رسول الله ﷺ سره زما ملاقات وشو او زه د جنابت په حالت کې وم

فَأَخَذَ بِيَدِي فَمَكَثْتُ مَعَهُ حَتَّى قَعَدَ فَانْسَلَلْتُ

نبي عليه السلام زما لاس ونيولو او زه د نبي عليه السلام سره روان وم تر دې چې نبي عليه السلام کيناستلو نو زه په پټه

فَأَتَيْتُ الرَّحْلَ فَاغْتَسَلْتُ ثُمَّ جِئْتُ وَ هُوَ

راووتلم خپل مکان ته راغلم ومې لامبل او د نبي عليه السلام په خدمت کې حاضر شوم، رسول الله ﷺ

قَاعِدٌ فَقَالَ أَيْنَ كُنْتَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ ؟ فَقُلْتُ لَهُ

ناست وو (چې زه يې وليدم) وې فرمايل ته چرته وې؟ ما ورته (اصل واقعه) ذکر کړه چې زه ناپاک وم نو ځکه

فَقَالَ سُبْحَانَ اللهِ إِنَّ الْمُؤْمِنَ لَا يَنْجَسُ . هٰذَا لَفْظُ الْبُخَارِيِّ

لاړم نبي عليه الصلاة والسلام وفرمايل: سبحان الله ! مؤمن ناپاک کيدی نه شي ، د روايت الفاظ د بخاري دي

وَ لِمُسْلِمٍ مَعْنَاهُ وَ زَادَ بَعْدَ قَوْلِهِ فَقُلْتُ لَهُ

مسلم د دې هم معنی روايت نقل کړی او د ابو هريره رضي الله عنه الفاظ يې زيات نقل کړي چې (هغه وويل) زه

لَقَدْ لَقِيتَنِي وَ أَنَا جُنُبٌ فَكَرِهْتُ أَنْ أُجَالِسَكَ

چونکه د ناپاکۍ په حالت کې وم نو ځکه مناسبه راته معلومه نه شوه چې د دوي ﷺ سره کېنم

حَتَّى أَغْتَسِلَ وَكَذَا الْبُخَارِيُّ فِي رِوَايَةٍ أُخْرَى[1].

ترڅو چې ونه لامبم، همدا رنګې د بخاري په دويم روايت کې هم دا الفاظ منقول دي.

---

(١) أخرجه البخاري في الصحيح ١/٣٩١،رقم الحديث:٢٨٥، ومسلم في الصحيح ١/٢٠٧ رقم الحديث:١٢١ ، وأبو داود ١/١٥٦ رقم الحديث : ٢٣١، والنسائي ١/١٤٥، رقم الحديث: ٢٦٩ ، والترمذي ١/٢٠٧ رقم الحديث : ١٢١ ، وابن ماجة ١/١٧٨، رقم الحديث: ٥٣٤.

## د جنابت په حالت کې د اوده کیدو حکم

(۲) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ ذَكَرَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ

ابن عمر رضي الله عنه ویلي دي چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړو چې زه

تُصِيبُهُ الْجَنَابَةُ مِنَ اللَّيْلِ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

په شپه کې جنب شوم (یعنې په احتلام یا جماع سره غسل واجب شوی وو) رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل

تَوَضَّأْ وَاغْسِلْ ذَكَرَكَ ثُمَّ نَمْ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).[1]

چې (هغه وخت) اودس وکړه عضو تناسل ووینځه او اوده شه.

**توضیح: توضأ**: یعنې اودس وکړه ذکر ووینځه او اوده شه. په شپه کې د جنابت په حالت کې د غسل نه بغیر اوده کیدل د اهل ظواهرو په نزد ناروا دي، جمهورو ویلي دي چې غسل کول مستحب او بهتر دي، که نه نو بیا د اودس درجه ده او بیا صرف د استنجاء درجه ده، شاه انور شاه کشمیري رحمه الله په فیض الباري کې لیکلي دي چې کوم کس همیشه د جنابت په حالت کې اوده کیږي نو د هغه په جنازه کې فرښتې نه شریکیږي، بهر حال په عامو احادیثو کې د غسل نه بغیر د اوده کیدلو اجازه موجوده ده الله تعالی دې رحم وکړي، د غسل کولو په بهترۍ کې څه خبره کیدی شي. (المرقات ۲/۱۵۳).

## جنب کس دې د خوراک څښاک او اوده کیدو د پاره اودس وکړي

(۳) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ جُنُبًا

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به کله د ناپاکۍ په حالت کې وو

فَأَرَادَ أَنْ يَأْكُلَ أَوْ يَنَامَ تَوَضَّأَ لِلصَّلَاةِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).[2]

او اراده به یې وکړه د خوراک کولو یا د اوده کیدو نو د مونځ د اودس په شان به یې اودس کولو.

## د دوباره صحبت کولو د پاره اودس کول مستحب دي

(۴) وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَى

د ابوسعید خدري رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې کله راشي یو

---

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۱/۳۹۳، رقم الحديث: ۲۹۰، ومسلم في الصحيح ۱/۲۴۹ رقم الحديث: ۲۵-۳۰۵.

(۲) اخرجه البخاري في الصحيح ۱/۳۹۳، رقم الحديث: ۲۹۰، ومسلم في الصحيح ۱/۲۴۹ رقم الحديث: ۲۵-۳۰۵.

أَحَدُكُمْ أَهْلَهُ ثُمَّ أَرَادَ أَنْ يَعُوْدَ

کس په تاسو کې خپلې ښځې خواته (يعنې کوروالی وکړي) او بيا اراده وکړي هغې طرف ته دوباره دراتلو

فَلْيَتَوَضَّأْ بَيْنَهُمَا وُضُوءًا . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)(1).

(يعنې د کوروالي کولو) اراده وکړي نو هغه ته په کار دي چې د دواړو په مينځ کې اودس وکړي.

**توضيح**: وضوءا: په دې کې تنوين د تعظيم دپاره دی مراد کامل او مکمل اودس دی، دا حکم وجوبي نه دی بلکې استحبابي دی، په دې سره نشاط پيدا کيږي، که چيرته کوم کس په دې باندې عمل نه کوي نو هيڅ خبره نشته. (المرقات ۲/۱۵۴).

**(۵) وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَطُوفُ عَلَى نِسَائِهِ بِغُسْلٍ وَاحِدٍ (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)(2)**

انس رضي الله عنه وايلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم صحبت کړی وُ په يو غسل سره د خپلو ازواجو مطهراتو سره

**توضيح**: **يطوف على نسائه**: په دغه حديث باندې په ظاهره دا شبه کيدلی شي چې قسم يعنې د نوبت مقررولو په احکامو کې دا ده چې يوه شپه او ورځ کم د کمه د نوبت دپاره ضروري دي نو دلته رسول الله صلى الله عليه وسلم قسم څنګه ترک کړی وو چې په يوه شپه کې ټولو ازواجو مطهراتو ته تشريف وړی وو نوبت يې کله کړی دی؟ د دې شبې ډير جوابونه دي:

**اول**: په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې قسم لازم نه وو.

**دويم**: د ازواج مطهراتو په خوښه همداسې شوي.

**دريم**: دا رنګه واقعې صرف دوه راغلې دي او دواړه د حجة الوداع په موقع د حج په دوارن کې راغلې دي، يوه واقعه د احرام نه مخکې وه دويمه زمانه د قيام د منی کې مخې ته راغلې ده، دا وخت رسول الله صلى الله عليه وسلم په سفر کې وو او په سفر کې نوبت ختميږي. (المرقات ۲/۱۵۵).

**(۶) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ**

د عائشې رضي الله عنها نه روايت دی وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به د الله تعالی په ذکر کې مصروف وو

---

(۱) أخرجه المسلم في الصحيح ۲۴۸/۱ رقم الحديث: ۲۲-۳۰۵، وأبو داود ۱۴۹/۱ رقم الحديث: ۲۲۰، والنسائي ۱۴۲/۱، رقم الحديث: ۲۶۲، والترمذي ۲۶۱/۱ رقم الحديث: ۱۴۱، وابن ماجة ۱۹۳/۱، رقم الحديث: ۵۸۵.

(۲) أخرجه مسلم في الصحيح ۲۴۹/۱ رقم الحديث: ۲۸-۳۰۹، وأبو داود ۱۴۸/۱ رقم الحديث: ۲۱۸، والنسائي ۱۴۳/۱، رقم الحديث: ۲۶۴.

| |
|---|
| عَلٰى كُلِّ أَحْيَانِهِ (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1] وَ حَدِيْثُ ابْنِ عَبَّاسٍ |
| په ټولو وختو کې او حديث د ابن عباس رضي الله عنه کوم چې صاحب مصابيح په دې ځاى کې نقل کړى مونږ |
| سَنَذْكُرُهُ فِيْ كِتَابِ الْأَطْعِمَةِ، إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى). |
| به يې ذکر کړو په کتاب الاطعمة کې ان شاء الله. |

**توضيح : على كل احيانه** : په دغه حديث باندې په ظاهره دا اشکال دى چې په دې کې هر وخت د ذکر الله کولو بيان دى حالانکه په بعضو وختونو کې ذکر الله کول روا ندي، لکه په قضاء حاجت وغيره کې منع دي، د دې اشکال ډير جوابونه دي :

**اول جواب** : دا چې د **احيانه** نه **صالحة للذکر** مراد دى نو نامناسب وختونه يا مقامات د دې نه خارج دي.

**دويم جواب**: دا چې د **احيانه** ضمير د رسول الله صلى الله عليه وسلم طرف ته په رجع کولو سره دا اعتراض راغلى يعني چې دوى په ټولو وختونو کې ذکر کړى وو مګر علامه سندهي رحمه الله وېلي دي چې د **احيانه** ضمير د ذکر الله طرف ته راجع دى کوم چې د دې نه مخکې مذکور دى نو مطلب دا شو چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د ذکر په وختونو کې هر وخت ذکر کولو او د ذکر وختونه هغه جائز وختونه دي.

**دريم جواب** : دا چې د ذکر نه مراد ذکر لساني نه دى بلکې ذکر قلبي دى او هغه هر وخت جاري کيدې شي ليکن شيخ عبدالحق رحمه الله په لمعات کې دا توجيه رد کړيده چې دا د شريعت او لغت دواړو منافي توجيه ده، ځکه چې شريعت او لغت لساني ذکر ته ذکر وېلى دى نه قلبي ذکر ته.(المرقات ۲/۱۵۶).

## الْفَصْلُ الثَّانِيْ

| |
|---|
| (۷) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ اغْتَسَلَ بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ جَفْنَةٍ |
| ابن عباس رضي الله عنه وېلي دي چې (يوه ورځ) غسل وکړو يوې بي بي د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د لګن نه |
| فَأَرَادَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنْ يَتَوَضَّأَ |
| (يعني په لګن کې د د کوشوواوبونه اوبه راواخستې) نو اراده وکړه رسول الله صلى الله عليه وسلم چې اودس وکړي |

(۱) اخرجه مسلم في الصحيح ۱/۱۸۲ ، رقم الحديث : ۱۱۷-۳۷۳، و أبو داود ۱/۲٤ ، رقم الحديث :۱۸، و الترمذي ٥/٤۳۲ ، رقم الحديث : ۳۳۸٤ .

مِنْهُ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي كُنْتُ جُنُبًا

ددې لګن نه په زياتو شوو اوبو سره نو هغې وويل يا رسول الله ! زه جنبه وم (اوما په هغو اوبو سره غسل

فَقَالَ إِنَّ الْمَاءَ لَا يُجْنِبُ [1].

کړې دی) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل اوبه خو جنبې شوې نه وي (يعنې دجنب په لامبلو يا دهغه کوم

وَ رَوَى الدَّارِمِيُّ نَحْوَهُ وَ فِيْ شَرْحِ

اندام په اوبو کې په لويدلو سره اوبه نه ناپاکې کيږي ) او دارمي هم داسې روايت نقل کړی ، او په شرح

السُّنَّةِ عَنْهُ عَنْ مَيْمُوْنَةَ بِلَفْظِ الْمَصَابِيحِ ).

السنه کې دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او هغه د ميمونې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه د مصابيح هم الفاظ روايت نقل کړی دی.

**نوټ**: ددې حديث سره متعلق تشريح د باب الغسل په نهم نمبر حديث کې تيره شوې ده.

**(۸) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ**

عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د ما سره) دصحبت نه د فراغت نه وروسته غسل وکړو

ثُمَّ يَسْتَدْفِئُ بِيْ قَبْلَ أَنْ أَغْتَسِلَ . وَ رَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ

يا زما د لامبلو نه مخکې زما سره (پټ شو) ګرمي يې حاصلوله، او امام ترمذي هم داسې روايت نقل کړی

وَ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ بِلَفْظِ الْمَصَابِيحِ). (ترمذي)[2].

همدارنګه په شرح السنه کې د مصابيح هم لفظ روايت منقول دی.

## بې اودسه انسان په يادو د قرآن تلاوت کولی شي

**(۹) وَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَخْرُجُ مِنَ الْخَلَاءِ**

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قضاء حاجت نه راووتلو (د اودس نه مخکې)

فَيُقْرِئُنَا الْقُرْآنَ وَ يَأْكُلُ مَعَنَا اللَّحْمَ وَ لَمْ يَحْجُبْهُ أَوْ يَحْجُزْهُ عَنِ الْقُرْآنِ

يې مونږ ته قرآن کريم ولوستلو او (د اوخت) يې د مونږ سره غوښه وخوړله او مانع نه وو دلوستلو د قرآن کريم

(۱) اخرجه ابو داود ۱/۵۵ رقم الحديث :۶۸، والنسائي ۱/۱۷۳، رقم الحديث: ۳۲۵ ، والترمذي ۱/۹٤ رقم الحديث : ۶۵، وابن ماجه ۱/۱۳۲ ، رقم الحديث : ۳۷۰ ، واخرجه الدارمي نحوه ۱/۲۰۳ رقم الحديث : ۷۳٤.

(۲) اخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۱۹۲ ، رقم الحديث : ۵۷۰ ، واخرج الترمذي نحوه ۱/۲۱۰ رقم الحديث :۱۲۳

شَيْءٌ لَيْسَ الْجَنَابَةَ .[1] (وَ رَوَى ابْنُ مَاجَهْ نَحْوَهُ).

نه هیڅ کوم شي په غیر د جنابت نه ، او ابن ماجه هم دا روایت نقل کړی دی.

## جنب او حائضې ته د قرآن کریم تلاوت کول

(۱۰) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقْرَأُ الْحَائِضُ

دابن عمر رضي الله عنه نه روایت دی وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: نه دې لولي حائضه (دورخو والا

وَلَا الْجُنُبُ شَيْئًا مِنَ الْقُرْآنِ[2] (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

ښځه) او جنب د قرآن کریم هیڅ کومه برخه.

**توضیح: لاتقرأ الحائض :** د لاتقرأ په همزه باندې ضمه ده، دا د نفي صیغه ده کومه چې د نهي په معنی سره مستعمل شوې ده، بعضو حضراتو د جزم سره ویلې ده په دې صورت کې دا د نفي صیغه ده یعنې حائضه او جنب دې د قرآن نه هیڅ نه لولي. د امام مالک رحمه الله نه یو روایت داسې منقول دی چې د ځان ساتلو او حفاظت دپاره حائضه او جنب انسان قرآن لوستلی شي په دې شرط چې وړوکی آیت وي.
دده نه دویم روایت داسې منقول شوی دی چې جنب انسان قرآن نه شي لوستلی د حائضې او نفاسې دپاره یې لوستل روا دي، د دې وجه داده چې جنابت خو هر وخت راتللی شي او د هغه وخت ډیر کم دی نو غسل دې وکړی شي بیا دې تلاوت وکړي، د حیض او نفاس موده خو ډیره اوږده ده نو ځکه د دوي دپاره ګنجایش شته دی. د جمهورو علماؤ او ټولو احنافو په نزد د جنب، حائضې او نفاسې دپاره د قرآن لوستل روا نه دي، د ټول آیت په نه لوستلو خو د ټولو اتفاق دی، البته مادون الآیة یعنې د نیم آیت په لوستلو او نه لوستلو کې د امام طحاوي رحمه الله او د امام کرخي رحمه الله اختلاف دی، د علامه کرخي په نزد د **مادون الایة** لوستل هم روا نه دي، او د امام طحاوي رحمه الله په نزد د **مادون الایة** لوستل روا دي، ځکه چې په همدې قلیل مقدار باندې د قرآن کریم حکم نه شي لګول کیدی، بعضو علماؤ د علامه کرخي رحمه الله قول ته ترجیح ورکړې ده چې په دې کې احتیاط دی او بعضو د امام طحاوي رحمه الله قول راجح ګڼلی دی چې په دې کې سهولت او اساني ده، په دغه مسئله کې علماء کرام یعنې د جمهورو او نورو علماؤ په اقوالو کې کافي تفاوت دی خاص قاعده نشته په کومه چې اتفاق وکړی شي، نن سبا د

(۱) اخرجه ابو داود ۱/۱۵۵ رقم الحدیث :۲۲۹، والنسائي ۱/۱۴۴، رقم الحدیث:۲۶۵ ، والترمذي ۱/۱۷۳ رقم الحدیث : ۱۴۶ ، وابن ماجة ۱/۱۹۵، رقم الحدیث:۵۹۴.

(۲) اخرجه الترمذي ۱/۲۳۶ رقم الحدیث : ۱۳۱ ، وابن ماجة ۱/۱۹۶، رقم الحدیث:۵۹۶.

بڅو معلماتو دپاره دا مسئله د سر درد جوړه شوې ده نو علماء دې ورته د امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ قول
وايي چې پوره آيت مه لولئ بلکې کټ يې کړئ او وی لولئ، بهر حال د حديث په ظاهر کې ممانعت
دی لهذا په حيله او بهانو کې يې لوستل نه دي په کار، د جمهورو علماؤ په نزد په عدم جواز باندې
فتوی ده. (المرقات ۱/۱۶۰).

## د جنب او حائضې جومات ته د داخليدو مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجِّهُوا هٰذِهِ الْبُيُوتَ |
| عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: وګرځوئ د کورونو دا دروازې |
| عَنِ الْمَسْجِدِ فَإِنِّي لَا أُحِلُّ الْمَسْجِدَ لِحَائِضٍ وَلَا جُنُبٍ[1]. |
| د جومات د طرف نه ځکه چې جائز نه دي جومات ته داخليدل د حائضې او جنب دپاره (برابره خبره ده که. |
| هلته د پاتې کيدو دپاره وي يا د هغه ځای نه د تيريدو دپاره وي). |

**توضيح : فاني لا احل المسجد** : د حائضې، نفساء او جنب دپاره په جومات کې پاتې کيدل يا په کې
تيريدل روا دي او که نه؟ په دې کې د فقهاو اختلاف دی :

**د فقهاء کرامو اختلاف** : د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد صرف عبور او تيريدل روا دي او **مکث** يعني پاتې
کيدل ناروا دي، د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد د اودس د کولو نه وروسته مکث او مرور جائز دی ځکه چې
په اودس سره تقليل د نجاست راغلی دی، د امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد مرور،
عبور، مکث او قعود مطلقا نا جائز دي.(المرقات ۲/۱۶۱).

**دلائل**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ د سورة النساء په دې آيت کريمه سره استدلال کړی دی
﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى حَتَّى تَعْلَمُوا مَا تَقُولُونَ وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِي سَبِيلٍ
حَتَّى تَغْتَسِلُوا﴾. (سورة النساء آيت : ۴۳).

د استدلال طرز يې داسې دی چې د ﴿لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ﴾ نه د مونځ ځايونه يعنې جوماتونه مراد دي،
مطلب دا شو چې د نشې په حالت کې جومات ته نزدې مه ورځئ ترڅو چې نشه ختمه نه وي دا رنګه کله
چې تاسو په جنابت کې ياست نو جوماتونو ته نزدې لاړ نه شئ ترڅو چې غسل ونه کړئ.

﴿إِلَّا عَابِرِي سَبِيلٍ﴾ خو ! که چيرته صرف د لارې عبور کول مقصود وي نو بيا ممانعت نشته، د جنابت

---

(۱) اخرجه ابو داود ۱/۱۵۷ رقم الحديث ۲۳۲.

په حالت کې په مسجد کې عبور کولی شي نو دا استثنا، په **لاتقربوا الصلوة** سره ده او د **صلوة** نه مراد **مواضع الصلوة** دي نو صرف عبور روا شو. د احنافو او مالیکو دلیل زیر بحث صحیح او صریح حدیث دی په کوم کې چې د کوم قید نه په غیر مطلقا عبور او مرور ته ناروا ویل شوي دي.

**جواب**: شوافعو او حنابلو ته جواب دادی چې د **صلوة** نه د **مواضع الصلوة** مراد اخیستو ته هیڅ ضرورت نشته، د **صلوة** نه مراد مونځ دی کومه یې چې حقیقي معنی ده چې هغه پرېښودل شي مجازي معنی واخستل شي دا روا نه دي. همدارنګه په دې آیت کې دوه حکمونه بیان شوي دي. یو دا چې د نشې په حالت کې مونځ ته نزدې مه ورځئ ترڅو چې نشه لاړه شي، دویم حکم دا دی چې د جنابت په حالت کې مونځ مه کوئ ترڅو چې غسل ونه کړئ، ﴿إِلَّا عَابِرِي سَبِيلٍ﴾ یعنې آو! که چیرته تاسو په لار باندې تیریدونکي مسافروئ او اوبه نه پیدا کیدلې نو بیا تاسو د غسل دپاره تیمم کولی شئ. خلاصه دا چې د همدې **عابری سبیل** تعلق د مسافر سره دی او مسافرتړې مراد دی، په جوماتو کې د تیریدونکي سره یې تعلق نشته، همدارنګه دا مسئله دمبیح او دمحرم ده د مبیح او محرم چې کله تعارض راشي نو ترجیح محرم ته ورکول کیږي، لهذا مرور، عبور، مکث او قعود په جوماتو کې د جنب او حائضې دپاره روا نه دي. په صریح حدیث باندې عمل بهتر دی، دارنګه احتیاط د احنافو او مالکیو په مسلک کې دی. (المرقات ۲/۱۶۱).

## د عکسونو ممانعت

| |
|---|
| (۱۲) وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا |
| حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: نه داخلیږي ملائکې هغه کور ته |
| فِيهِ صُورَةٌ وَلَا كَلْبٌ وَلَا جُنُبٌ[1]. |
| په کوم کور کې چې عکس یا سپی یا جنب وي. |

**توضیح**: **لاتدخل الملائكة**: د فرښتو نه مراد د رحمت فرښتې دي ځکه چې د زحمت فرښتې خو هر ځای ته ورځي.

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۱ ۱۵۳ رقم الحديث ۲۲۷، والنسائي في السنن ۱ ۱۴۱رقم الحديث ۲۶۱، وأخرجه ابن ماجه ۱۲۰۳/۲ رقم الحديث ۳۶۵۰، وأخرجه أحمد في مسنده ۸۳/۱

**صورة**: د عکس نه د جاندار او ذی روح عکس مراد دي. د عکس د حرمت په معامله کې يو څه شرطونه او تفصيل شته دی: (۱) د انسان د قد پوره عکس مراد دی يا کم د کم د هغو برخو عکس مراد دی د کومو سره چې د انسان د مرګ او د ژوند تعلق دی، لهذا په کوم عکس کې چې سر نوي يا د ټولې سينې او نامه نه لاندې اعضاء رئيسه نوي نو هغه عکسونه ددې وعيد نه خارج دي. (المرقات۲۶۱-۲/۲۶۲)

(۲)عکس به دومره وړو کي نه وي که چيرته هغه په زمکه باندې واچول شي او ولاړ کس چې ورته ګوري نو د هغه جنس او د هغه اعضاء نه شي معلومولی که چيرته دومره وړو کی وي نو هغه هم د وعيد نه خارج دی.

**ولاكلب**: ددې نه شوقي او ساتل شوی سپی مراد دی د څوکيدارۍ سپی او ښکاري سپی ددې نه مستثنی دي. (المرقات۲/۲۶۲)

**ولا جنب**: د جنب نه هغه جنب انسان مراد دی کوم چې په جنابت کې او سيدل يې خپل عادت جوړ کړی دی او غسل دومره وروسته کوي چې د سهار وغيره مونځونه قضاء کړی شي. صرف د غسل په وروسته کولو باندې وعيد نه دی. (المرقات۲/۲۶۲)

| |
|---|
| (۱۳) وَ عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثٌ |
| حضرت عمار بن ياسر رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: درې کسان داسې دي چې د |
| لَا تَقْرَبُهُمُ الْمَلَائِكَةُ جِيفَةُ الْكَافِرِ وَ الْمُتَضَمِّخُ بِالْخَلُوقِ وَ الْجُنُبُ إِلَّا أَنْ يَتَوَضَّأَ .[1] |
| رحمت فرښتې د وي ته نزدې نه ورځي: د کافر بدن، د خلوق ملاوونکی، جنب تر څو چې اودس ونه کړي . |

## د اودس نه په غير د مصحف د مسح کولو حکم

| |
|---|
| (۱۴) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ أَنَّ فِي الْكِتَابِ الَّذِي |
| عبدالله بن ابی بکر بن محمد بن عمرو بن حزم راوي دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم کومه هدايت نامه د |
| كَتَبَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَمْرِو بْنِ حَزْمٍ أَنْ لَا يَمَسَّ الْقُرْآنَ إِلَّا طَاهِرٌ[2] |
| عمرو بن حزم د پاره ليکلې وه په هغې کې دا حکم هم ليکل شوی وُ چې په قرآنکريم دې پاک خلک لاس لګوي |

**توضيح**: د جمهورو علماو د محدثينو او د فقهاو په نزد د طهارت نه بغير د قرآن کريم مسح کول او د هغه په لاس کې را اخيستل روا نه دي. د امام مالک رحمه الله په نزد لکه څنګه چې د طهارت نه بغير د قرآن

(۱) اخرجه ابوداؤد ص ۱/۰۴ رقم الحديث ۱۱۸۰

(۲) اخرجه مالک في موطا ۱/۱۹۹ کتاب القرآن رقم الحديث ۱

کریم لوستل روا دي دارنګه مسح کول یې هم روا دي. جمهورو په زیر بحث حدیث باندې استدلال کړی دی بیا کوم شی چې ملصق بالقرآن دی هغه هم په مسح کولو کې دقرآن په حکم کې دی مثلاً قمیص وغیره خو کوم شی چې جدا دی او قرآن په هغه کې نغښتل شوی دی لکه غلاف څادر رومال وغیره نو د هغو سره یې مسح کول روا دي، دلستوڼي د انسان د بدن سره تعلق دی لهذا د هغه نه بغیر د کومې بلې کپړې استعمالول په کار دي، واړه ماشومان د ضرورت د وجهې ددې حکم نه مستثنی دي. جمهورو د قرآن کریم په دې آیت سره هم استدلال کړی دی ﴿لَا يَمَسُّهُ إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ﴾ دلته ضمیر قرآن طرف ته راجع دی او د **مطهرون** نه مراد باوضوء خلک مراد دي، ددې تفسیر مطابق دا آیت د جمهورو دلیل دی.

بعضو مفسرینو د **لایمسه** ضمیر **کتاب مکنون** یعنې لوح محفوظ طرف ته راجع کړی او د **المطهرون** نه یې فرښتې مراد اخیستې دي، په دې صورت کې دا آیت د جمهورو دلیل نه پاتې کیږي، امام مالک رحمه الله همدا تفسیر اخیستی دی، بهر حال د صریح او صحیح حدیث د احتیاط او ادب تقاضا دا ده چې د جمهورو په مسلک باندې عمل وکړی شي، او د اودس نه په غیر قرآن ته لاس ور نه وړل شي، البته د یادو یې لوستلی شي. (المرقات ۲/۱۶۴).

## د سلام د جواب د پاره اودس

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَ عَنْ نَافِعٍ قَالَ انْطَلَقْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ فِي حَاجَةٍ |
| حضرت نافع رحمه الله ویلي دي چې یوه ورځ حضرت ابن عمر رضي الله عنه د استنجاء د پاره تللی وو ، زه هم د |
| فَقَضَى ابْنُ عُمَرَ حَاجَتَهُ وَ كَانَ مِنْ حَدِيثِهِ يَوْمَئِذٍ أَنْ |
| هغه سره یو ځای لاړم اول هغه استنجاء وکړه او ددې نه وروسته هغه په همدې ورځ دا حدیث بیان کړو چې |
| قَالَ مَرَّ رَجُلٌ فِي سِكَّةٍ مِنَ السِّكَكِ فَلَقِيَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ خَرَجَ مِنْ غَائِطٍ أَوْ |
| یو کس په کومه کوڅه کې روان ؤ نو مونږ ملاؤ شو د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره چې فارغ شوی ؤ د بولو او یا |
| بَوْلٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ حَتَّى إِذَا كَادَ الرَّجُلُ أَنْ |
| د غائطو نه او سلام یې وکړو رسول الله صلی الله علیه وسلم د سلام جواب ورنه کړو کله چې دغه کس په دویمه |
| يَتَوَارَى فِي السِّكَّةِ ضَرَبَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِيَدَيْهِ عَلَى الْحَائِطِ |
| کوڅه کې تاوید و نکی شو بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم (د تیمم د پاره) خپل دواړه لاسونه په دیوال باندې ووهل |
| وَ مَسَحَ بِهِمَا وَجْهَهُ ثُمَّ ضَرَبَ ضَرْبَةً أُخْرَى فَمَسَحَ ذِرَاعَيْهِ ثُمَّ |
| په مخ یې راخکل بیا یې (دویم ځل) ووهل په خپلو لاسونو تر څنګلو پورې یې راخکل ددې نه وروسته د |

رَدَّ عَلَى الرَّجُلِ السَّلَامَ وَ قَالَ إِنَّهُ لَمْ يَمْنَعْنِي أَنْ أَرُدَّ عَلَيْكَ السَّلَامَ

هغه کس سلام ته یې جواب ورکړ او وې فرمایل: زه تا ته د سلام د جواب د ورکولو نه کوم شي نه وم منعه

إِلَّا أَنِّي لَمْ أَكُنْ عَلَى طُهْرٍ [1].

کړی فقط دا خبره وه چې زه بې اودسه وم.

**توضیح :ثم ضرب ضربة اخرى** : ددې حدیث نه یوه خبره دا په واضح طور معلومه شوې ده چې د تیمم دپاره دوه ضربې دي، دا مسئله به په تیمم کې راشي چې د احنافو په نزد دوه ضربې ضروري دي، ددې نه وروسته ددې حدیث نه دوه ظابطې مستنبط شوې دي: (۱) لومړی قاعده دا مستنبط شوې ده چې که چیرته د کوم عمل دپاره اودس ضروري شو لیکن هغه عمل داسې وو چې د هغه له فوت (قضاء) کیدو وروسته هغه په لاس نه راتلو او نه د هغه بدله وه مثلا جنازه ده یا د اخترونو مونځ دی چې د دوي په فوت کیدو سره نه د دوي بدله پیدا کیدی شي او نه یې قضائي راوړل کیدی شي نو که چیرته دا وخت انسان د لودس په کولو اخته شي او ددې عمل د فوت کیدو خطر وي نو داسې کس ته په کار دي چې د اودس په ځای تیمم ووهي اگر که اوبه موجودې وي، لکه څرنگه چې دلته رسول الله صلی الله علیه وسلم د سلام د جواب دپاره تیمم وکړه ځکه چې ددغه کس د تللو خطره پیدا شوې وه. (۲) دویمه قاعده دا مستنبط شوې ده چې د کوم کار دپاره طهارت شرط نه وي یا هغه عبادت غیر مقصوده وي یعنې د غیر دپاره وسیله وي د هغه دپاره تیمم وهل جائز دي اگر که اوبه نزدې موجودې وي. مثلا جومات ته دداخلیدو دپاره یې تیمم ووهلو، په یادو (حفظ) تلاوت دپاره یې وکړ دفقه په کتابونو باندې د لاس لگولو دپاره یې تیمم ووهلو یا دشپې دویدو کیدو دپاره یې تیمم ووهلو دا ټول جائز او باعث ثواب او برکت دی رسول الله صلی الله علیه وسلم صرف د سلام د جواب دپاره تیمم ووهلو حالانکه د هغه دپاره طهارت شرط نه دی ، درمختار همدغه ظابطه قبوله کړې ده، اگر که امام شافعي رحمه الله ورباندې رد کړی دی، حضرت شاه انورشاه رحمه الله ویلي دي چې دغه ظابطه او قاعده صحیح ده. (المرقات ۲/۱۶۵).

(۱۲) وَ عَنِ الْمُهَاجِرِ بْنِ قُنْفُذٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

دمهاجربن قنفذ رضي الله عنه نه روایت دی چې زه (یوه ورځ) رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلم په هغه وخت کې

وَ هُوَ يَبُولُ . فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ حَتّٰى

حاضر شوکله چې دوي متیازې کړې وې هغه سلام وکړ رسول الله صلی الله علیه وسلم جواب ورنه کړ تردې چې

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱/۲۳۴ رقم الحديث : ۳۳۰.

| |
|---|
| تَوَضَّأَ ثُمَّ اعْتَذَرَ إِلَيْهِ وَ قَالَ إِنِّي كَرِهْتُ أَنْ أَذْكُرَ اللهَ إِلَّا عَلَى طُهْرٍ [1]. |
| نبي عَلَيْهِالسَّلَام اودس وكړاو بيايې داعذربيان كړچې ما دا بده ګڼله چې بې اودسه دالله تعالى نوم واخلم او |
| ( وَ رَوَى النَّسَائِيُّ إِلَى قَوْلِهِ حَتَّى تَوَضَّأَ وَ قَالَ فَلَمَّا تَوَضَّأَ رَدَّ عَلَيْهِ ). |
| نسائي دا روايت د حتى توضأ پورې نقل كړى او ويلي يې دي چې كله دوي اودس وكړنو د سلام جواب يې وركړ |

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د جنابت په حالت كې انسان ويده كيدلى شي

| |
|---|
| (۱۷) عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ يُجْنِبُ ثُمَّ يَنَامُ |
| د حضرت ام سلمه رَضِيَاللَّهُعَنْهَا نه روايت دى چې رسول الله صَلَّىاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ د ناپاكۍ په حالت كې اوده شوى وو |
| ثُمَّ يَنْتَبِهُ ثُمَّ يَنَامُ [2]. |
| بيا راپورته شو او ويده شو. |

## په اودس كې داوه ځلې اوبو بهيولو مطلب

| |
|---|
| (۱۸) وَعَنْ شُعْبَةَ قَالَ إِنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ |
| د حضرت شعبه رَضِيَاللَّهُعَنْهُ نه روايت دى چې ابن عباس رَضِيَاللَّهُعَنْهُ به كله چې د ناپاكۍ غسل كولو نو (اول) |
| يُفْرِغُ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى يَدِهِ الْيُسْرَى سَبْعَ مِرَارٍ ثُمَّ يَغْسِلُ فَرْجَهُ |
| به يې په خپل ښي لاس سره په چپ لاس باندې اوه ځلې اوبه اچولې بيا به يې خپله شرمګاه ووينځله يو ځل |
| فَنَسِيَ مَرَّةً كَمْ أَفْرَغَ فَسَأَلَنِي فَقُلْتُ لَا أَدْرِي |
| دايې هير شوي دي چې اوبه يې څو ځلې اچولې لهذا هغه د ما نه پوښتنه وكړه ما وويل چې ماته په ياد نه |
| فَقَالَ لَا أُمَّ لَكَ وَمَا يَمْنَعُكَ أَنْ تَدْرِيَ ثُمَّ يَتَوَضَّأُ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ |
| دي هغه وفرمايل تا دې مور ورك كړي ته د ياد ساتلو نه كوم شي راګرځولى يې؟ بيا يې د مونځ په شان اودس |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱ ۲۳ رقم الحديث ۱۷

(۲) أخرجه أحمد في مسنده ٦ ۲۹۸

| |
|---|
| ثُمَّ يُفِيضُ عَلَى جِلْدِهِ الْمَاءَ ثُمَّ يَقُولُ هٰكَذَا كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَطَهَّرُ[۱]. |
| وکړېه خپل ټول بدن باندې اوبه وبهيولې او وې ويل چې رسول الله ﷺ هم دا رنګې پاکي حاصلوله. |

**توضيح: سبع مرات**: او ه ځلې دا وبو بهول دلاس وينځلو دپاره هيڅ حديث نشته د رسول الله ﷺ عمل د مطلق وينځلو هم دى او د دوه درې ځلو هم دى، د اوه ځلې ذكر نشته نو شايد حضرت ابن عباس رضي الله عنه د كوم مخصوص ضرورت د وجې داسې كړې وي، ددې نه شرعي ظابطه نه شي جوړېدلى دا كومه مخصوصه جزئي مسئله ده. (المرقات ۲/۱۶۷).

**لا ام لک**: دا كلمه په مذمت كې استعمال شوې ده او **لا اب لک** زياتره وخت په مدح كې استعمال شوې ده، د اولې كلمه مطلب دا دى چې ته لقيط يې ستا مور ته معلومه نه ده او د دويمې كلمه مطلب دا دى چې ته په خپله يو مستقل انسان يې د پلار څه ضرورت دى كه پلار هم نه وي ته پلار يې دا يو قسم مدح ده. (المرقات ۱۶۷–۲/۱۶۸).

| |
|---|
| (۱۹) وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَافَ ذَاتَ يَوْمٍ عَلَى نِسَائِهِ |
| د حضرت ابو رافع رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ يوه ورځ د خپلو ټولو ښځو خوا ته راغى |
| يَغْتَسِلُ عِنْدَ هٰذِهِ وَعِنْدَ هٰذِهِ |
| (يعنې د ټولو سره يې كوروالى وكړ) او د هرې يوې بي بي (د كوروالي نه چې فارغ شو نو جدا جدا) يې غسل |
| قَالَ فَقُلْتُ لَهُ يَا رَسُولَ اللهِ أَلَا تَجْعَلُهُ غُسْلًا وَاحِدًا آخِرًا |
| وکړو ابو رافع رضي الله عنه ويلي دي چې ما وويل يا رسول الله! تاسو په اخير كې يو ځل غسل ولې ونه كړو؟ |
| قَالَ هٰذَا أَزْكَى |
| رسول الله ﷺ و فرمايل: دا (يعنې د هر كوروالي نه وروسته غسل كول) به پاكي ده (نفس) |
| وَأَطْيَبُ وَأَطْهَرُ[۲]. |
| ډېر خوشحالوي او (جسم) ډېر ښه صفا كوي. |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱/۱۷۱ رقم الحديث ۲۴۶۰
(۲) أخرجه أحمد في مسنده ۶/۸ . اخرجه أبوداود في السنن ۱/۱۴۹ رقم الحديث ۲۱۹ . وأخرجه ابن ماجه ۱/۱۹۴ . رقم الحديث ۵۹۰ .

## د ښځې د غسل او اودس نه د زياتو شوو اوبو حكم

| |
|---|
| ﴿٢٠﴾ وَعَنِ الْحَكَمِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَتَوَضَّأَ |
| د حضرت حكم بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع كړې ده چې اودس وكړي |
| الرَّجُلُ بِفَضْلِ طَهُورِ الْمَرْأَةِ [1] وَالتِّرْمِذِيُّ وَزَادَ أَوْ قَالَ بِسُؤْرِهَا. |
| يو سړى په زياتو شوو اوبو باندې، اوترمذي دا الفاظ زيات نقل كړي دي چې دوي منع وكړه د ښځې د |
| وَ قَالَ هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (ترمذي ٦٤) |
| اودس په باقي مانده اوبو سره همدارنګه ترمذي ويلي دي چې دا حديث حسن صحيح دى. |

## ښځه او سړى دې د يو بل نه په زياتو شوو اوبو سره غسل نه كوي

| |
|---|
| ﴿٢١﴾ وَ عَنْ حُمَيْدٍ الْحِمْيَرِيِّ قَالَ لَقِيتُ رَجُلًا صَحِبَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| دحميد حميري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې زه د يو كس سره مخامخ شوم كوم چې دابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په شان |
| أَرْبَعَ سِنِينَ كَمَا صَحِبَهُ أَبُو هُرَيْرَةَ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ |
| څلور كلونه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې تير كړي وو، هغه وويل: چې منع كړې ده رسول الله |
| صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنْ تَغْتَسِلَ الْمَرْأَةُ بِفَضْلِ الرَّجُلِ أَوْ يَغْتَسِلَ الرَّجُلُ |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددې نه چې ښځه د سړي (د غسل) نه په زياتو شويو اوبو باندې ولامبي يا غسل وكړي سړى |
| بِفَضْلِ الْمَرْأَةِ زَادَ مُسَدَّدٌ : |
| دښځې د (غسل) نه په زياتو شوو اوبو باندې، مسدود رَحِمَهُ اللهُ دا الفاظ نقل كړي دي چې دواړه راپورته شي |
| وَ لْيَغْتَرِفَا جَمِيعًا[2]. |
| (جدا جدا) بالتى را واخلي ولامبي (نو جائز دي). |
| وَ زَادَ أَحْمَدُ فِي أَوَّلِهِ فِي أَنْ |
| اوامام احمد رَحِمَهُ اللهُ د همدې روايت په شروع كې دا الفاظ زيات كړي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددې نه |

---

(١) أخرجه أبوداود في السنن ٦٣/١ رقم الحديث: ٨١، والنسائي في السنن ١٣٠/١ رقم الحديث: ٢٣٧، وأخرجه احمد في مسنده: ٦٦/٥.

(٢) أخرجه أبوداود في السنن ٦٣/١ رقم الحديث: ٨١، والنسائي في السنن ١٣٠/١ رقم الحديث: ٢٣٨، وأخرجه احمد في مسنده: ١١٠/٤.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَمْتَشِطَ | أَحَدُنَا | كُلَّ | يَوْمٍ | أَوْ | يَبُولَ | فِيْ | مُغْتَسَلِ | وَ | رَوَاهُ |

هم منع کړي ده چې کوم کس هره ورځ ګومنځ وهي او د لامبلو په ځای کې متیازې وکړي، او روایت کړی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ابْنُ مَاجَهْ | عَنْ | عَبْدِ | اللّٰهِ | بْنِ | سَرْجِسَ). |

دی ابن ماجه رَحِمَهُ اللّٰهُ دا روایت د عبدالله بن سرجس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه.

۲۹ صفر ۱٤۱۰هـ

# بَابُ أَحْكَامِ الْمِيَاهِ

## د اوبو مسائل

اسلام د ژوند یوه مکمله ظابطه ده، په هغه کې د ژوند د هرې شعبې مسائل موجود دي. او به د ژوند دپاره مهم ضرورت دی، د هغو د پاک کیدو او ناپاک کیدو او ړده او ړده مسائل دي. اسلام د مسلمانانو د راهنمائي دپاره د اوبو ټول مسائل فضائل آداب او مستحبات په واضح طور بیان کړي دي.

دلته میاه د جمع صیغه راوړل شوې ده په کومې سره چې اشاره شوې ده چې اوبه برابره خبره ده که د باران وي د کوهي وي د نهر وي که د سمندر وي که د دریاب یا د چینو نه راوتلې وې کمې وې که زیاتې وي مستعملې وي که غیر مستعملې وي د ټولو احکام بیانیږي. د اسلام په احکامو کې عجیب حکمت دی، مثلا د اودس په ابتداء کې د لاس وینځلو حکم دی ترڅو چې په لاسونو سره اندازه وکړی شي چې اوبه خو د هوا د وجې ډیرې ګرمې یا ډیرې یخې خو ندي، کله چې معلومې شي چې قابل استعمال دي نو بیا یې په خوله کې د اچولو حکم دی ترڅو چې معلومه شي چې اوبه دي ښورا یا شربت وغیره نه دي. بیا یې په پوزه کې د اچولو حکم دی ترڅو چې معلومه شي چې بد بویي لرونکې او خوسا شوې خو نه دي، کله چې ښه اطمینان وشي نو حکم دی چې اوس مخ وربانديې ووینځې.

# الْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## په اوبو کې متیازې کول نه دي په کار

| |
|---|
| (۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ |
| د ابو هریره رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: متیازې دې نه کوي یو کس په تاسو |
| فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ الَّذِي لَا يَجْرِي ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيهِ. [1] (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) |
| کې په هغو ولاړو اوبو کې کومې چې رواني نه وي چې بیا په هغو غسل کوي (یعنې د کوم هو ښیار نه دا |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۳٦٤، رقم الحديث ۲۳۹، ومسلم في الصحيح ۱:۲۳۵ رقم الحديث ۹۰-۲۸۲، وأبو داود ۱/٥٦ رقم الحديث ٦۹، والنسائي ۱/٦٤، ، والترمذي ۱/۱۰۰ رقم الحديث ٦۸

| |
|---|
| وَ فِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ |
| لري ده چې هغه په اوبو کې متيازې وکړي بيا په هماغو اوبو سره غسل وکړي)او د مسلم په روايت کې دي |
| قَالَ لَا يَغْتَسِلُ أَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ وَ هُوَ جُنُبٌ |
| چې رسول الله ﷺ وفرمايل: غسل دې نه کوي يو کس په تاسو کې په ولاړو اوبو کې چې دا جنب |
| قَالُوا كَيْفَ يَفْعَلُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ |
| وي (ترڅو چې اوبه ناپاکې نه شي) خلکو وويل: اى ابو هريره رضي الله عنه! بيا نو څنګه لامبل په کار دي؟ |
| قَالَ يَتَنَاوَلُهُ تَنَاوُلًا ). (بخاري ۱/۶۸، مسلم ۱/۱۶۲). |
| هغه وويل: د هغو نه دې لږ لږ اوبه په لوښي کې را واخستل شي (د اوبو نه بهر لامبل په کار دي). |

**توضيح: في الماء الدائم**: په دغه روايت کې د **الدائم** لفظ دى او د حضرت جابر رضي الله عنه راتلونکي روايت کې د راکد لفظ راغلى دى، د عامو علماؤ په نزد د دائم او راکد مطلب **(الذي لايجري)** دى. د د دائم دپاره صفت کاشفه دى چې د دائم نه مراد غير جاري اوبه مراد دي. (المرقات ۱۷۰–۲/۱۷۱).

ليکن شاه انور شاه کشميري رحمه الله ويلي دي چې د ماء دائم او راکد نه مراد هغه اوبه دي کومې چې غير منقطع وي يعني دائمې نه وي نه ختميدونکې اوبه وي برابره ده که جاري وي که جاري نوي، نو دلته چې کوم **الذي لايجري** الفاظ راغلي دي دا کوم احترازي قيد نه دى دا د بيان تعريف دپاره دى.

بلکې د ماء دائم يو قسم دپاره دا قيد لګول شوى دى چې د دائم يو قسم هغه دي کومې چې **الذي لايجرى** دي. (المرقات ۲/۱۷۱).

د قائم دائم او راکد اوبو کې د متيازو د کولو نه ځکه منعه شوې چې که چيرته هغه کمې اوبه وي نو د متيازو په کولو سره پليتيږي او که چيرته زياتې وي نو چې يو متيازې ووينې نو بل راځي متيازې په کې کوي. همدا رنګې بالاخر اوبه خرابيږي. هسې هم په اوبو کې متيازې کول د انساني شرافت منافي دي لهذا منعه دي.

**ثم يغتسل فيه**: د **يغتسل** صيغه د مشهور روايت مطابق مرفوع ده يعني **لايبل ثم هو يغتسل فيه.** نو دا د **لايبولن** په ټولې جملې باندې عطف دى، بعضو علماؤ دا صيغه په جزم سره ويلې ده او هغه يې د لا نهي ماتحت په **يبولن** باندې عطف کړې ده او داړه جملې يې د نهي ماتحت داخل کړې دي.

بهر حال په اول صورت کې مفهوم دا شو چې کوم کس دې په ولاړو اوبو کې متیازې نه کوي او دا ځومره غیر معقول خبره ده چې اول یې په کې متیازې وکړې او بیا په هغو سره غسل کوي، په دغه صورت کې ثم د استبعاد او تعجب دپاره کیدی شي، په دویم صورت کې د حدیث مفهوم داسې شو چې کوم کس دې نه په ولاړو اوبو کې متیازې کوي او نه دې په ولاړو اوبو کې غسل کوي، په دغه صورت کې د دواړو خبرو نه منعه شوې ده، بعضو علماؤ د ثم نه وروسته (ان) مقدر کړی دی منصوب یې ویلی دی. (المرقات ۲/۱۷۱).

| |
|---|
| (۲) وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُبَالَ فِي الْمَاءِ الرَّاكِدِ[1] (رَوَاهُ مُسْلِمٌ). |
| د جابر رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په ولاړو اوبو کې د متیازو د کولو منعه کړې ده. |
| (۳) وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ ذَهَبَتْ بِي خَالَتِي إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د سائب بن یزید رضي الله عنه نه روایت دی چې زما خاله زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر کړم |
| فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ ابْنَ أُخْتِي وَجِعٌ فَمَسَحَ رَأْسِي وَ |
| هغې ووېل یا رسول الله! (دا) زما خوری ناروغ دی لهذا هغه زما په سر باندې مبارک لاس را تیر کړ او |
| دَعَا بِالْبَرَكَةِ ثُمَّ تَوَضَّأَ فَشَرِبْتُ مِنْ وَضُوئِهِ ثُمَّ |
| زما دپاره یې د برکت دعا وکړه، بیا هغه اودس وکړو او ما د هغه د اودس اوبه وڅښلې د دې نه وروسته |
| قُمْتُ خَلْفَ ظَهْرِهِ، نَظَرْتُ إِلَى خَاتَمِ النُّبُوَّةِ بَيْنَ كَتِفَيْهِ |
| بیا زه د هغه شاته ودریدم د نبوت مهر مې ولیدلو کوم چې د هغه صلی الله علیه وسلم د ولو په مینځ کې وو او د |
| مِثْلَ زِرِّ الْحَجَلَةِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]. |
| ناوې د پالنګ په شان یې (پړق وهلو). |

**توضیح**: **فشربت من وضوئه**: په وضوء کې که چیرته د واو ضمه ووېل شي نو د هغه نه د وضوء عمل او نوم مراد کیدی شي او که په واو باندې فتحه ووېل شي د اودس لوبنی مراد کیدی شي، دلته که چیرته د واو فتحه ده نو مراد دا دی چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اودس نه زیاتې شوې اوبه د تبرک

(۱) أخرجه مسلم في الصحیح ۱/۲۳۵ رقم الحدیث ۹۴-۲۸۱.

(۲) أخرجه البخاري في الصحیح ۱/۲۹۶ رقم الحدیث: ۱۹۰.

د پاره وڅکلي په دې کې هیڅ قسم د قیل او قال ګنجایش نشته دی او د حدیث د دې مطلب طرف ته ډیر علماء کرام تللي دي. (المرقات ۲/۱۷۲).

شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې لیکلي دي چې د دې حدیث دویم مفهوم دا دی چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اودس د اندامونو نه بښکته کومې اوبه څڅیدلې ما هغه ترلاسه کړې او ومې څکلې، شیخ ویلي دي چې ډیرو زیاتو علماو دا مفهوم اخستی دی، د دې ځای نه د مستعملو اوبو په استعمال کې د فقهاو د اختلاف مسئله مختې ته راغلې ده د کومې تفصیل چې وروسته ان شاء الله راتلونکی دی.

دلته خو ماء مستعمل ویل هم مشکل دي ځکه چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له مبارکو اندامونو نه جدا شوې اوبه خو د برکت باعث وې په کومو باندې چې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ جګړې کولې دا د هغه خصوصیت وو، شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ د دې حدیث په تشریح کې لیکلي دي چې د زیاتره علماؤ په نزد د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فضلات پاک وو نو د مستعملو اوبو څه خبره ده. (اشعة اللمعات ۱/۲۶۱).

**خاتم النبوة**: دا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نبوت نښه وه هغه ته مهر نبوت او ختم نبوت ویل شوی دی، دا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ولو په مینځ کې د چپ طرف غضروف هډوکي لاندې وو، دا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مبارک بدن ډیره ښایسته او خوشنما برخه وه، په مخکنیو کتابونو کې یې ذکر موجود وو نو ځکه اهل کتابو په ځانګړي طور هغه کته. د بعضو علماو رأیه دا ده چې دا د نبوت مهر د پیدایښت په وخت کې د دوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په پاک جسد باندې موجود وو یو ضعیف قول دی چې د نبوت په مهر باندې دا عبارت لیکل شوی وو (سرفانت منصور) د بعضو علماو خیال دی چې د شق صدر په وخت کې دا مهر ښکاره شوی وو او د وفات په وخت کې د بدن نه ورک شو. (المرقات ۲/۱۷۴).

**زرالحجلة**: حجله هغې تکیه ته ویل کیږي کومه چې د ناوې په مجلس کې د هغې د پاره تیاره شوې وي، په هغه باندې ښایسته پردې لګول کیږي جمع یې ازرار ده. (المرقات ۲/۱۷۴). یو شاعر ویلي دي:

**لا تعجبوا من بلى غلالته ۞ قد زر ازراره على القمر**

بعضو دا لفظ د راء په تقدیم سره رزالحجلة ویلی دی، رز هګۍ ته ویل کیږي او حجله زرک ته ویل کیږي یعني د زرک د هګۍ برابر ختم نبوت وو، د مهر نبوت د مقدار او حجم په باره کې مختلف الفاظ راغلي دي په ټولو کې تعارض معلومیږي لیکن دا کوم تعارض نه دی هر چا د خپلې خپلې اندازې مطابق د خیال اظهار کړی دی تشبیه یې ورکړې ده، زیاترو د زرک او کبوترې د هګۍ سره تشبیه ورکړې ده.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## د بير بضاعة او حديث قلتين مسئله

(۴) عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَنِ الْمَاءِ

د ابن عمر رَضِحَالِلّهُعَنهُ نه روايت دى چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د هغو اوبو متعلق پوښتنه وکړی شوه

يَكُونُ فِي الْفَلَاةِ مِنَ الْأَرْضِ وَمَا يَنُوبُهُ مِنَ الدَّوَابِّ وَ السِّبَاعِ

کومې چې په صحراء کې په زمکه کې جمع شوې وي او اکثر وخت ورته درنده ګان او څناورخي راځي

(يعنې څناور همدې اوبو ته راځي اوبه ترې څښني او متيازې وغيره په کې کوي) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَقَالَ إِذَا كَانَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ لَمْ يَحْمِلِ الْخَبَثَ [1].

وفرمايل: که چيرته اوبه د دوو قلو برابرې وې نو هغه ناپاکي نه قبلوي (يعنې د نجاست وغيره په لويدو

وَ فِيْ أُخْرَى لِأَبِيْ دَاوُدَ فَإِنَّهُ لَا يَنْجُسُ ). (احمد ۲/۱۲، ابوداؤد ٦٤).

سره نه ناپاکې کيږي) (او د ابوداؤد د يو بل روايت الفاظ دا دي چې هغه نه ناپاکه کيږي).

(۵) وَ عَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ

د ابو سعيد خدري رَضِحَالِلّهُعَنهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته چا عرض وکړ چې يا رسول الله!

أَنَتَوَضَّأُ مِنْ بِئْرِ بُضَاعَةَ وَ هِيَ بِئْرٌ يُلْقَى فِيهَا الْحِيَضُ

آيا مونږ د بضاعه کوهي (په اوبو سره) اودس کولی شو کله چې دې کوهي کې د حيض (دوينو) کپړې،

وَ لُحُومُ الْكِلَابِ وَ النَّتْنُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِنَّ الْمَاءَ طَهُورٌ

د سپيو غوښې او ګندګي اچول کيږي، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: (د دې کوهي) اوبه پاکې دي

لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ [2].

(ترڅو چې د هغه په رنګ خوند او بوی کې فرق رانه شي) هغه هيڅ شي ناپاک کولی نه شي.

(۱) أخرجه احمد في مسنده ۲۷/۲، وأبوداود ۱/۵۱ رقم الحديث ٦٣، والنسائي ۱/ ٦٤، رقم الحديث ۵۲، وابن ماجة ۱/ ۱۷۲، رقم الحديث ۵۱۷

(۲) أخرجه احمد في مسنده ۳/ ۳۱، وأبو داود ۱/ ۵۳ رقم الحديث ٦٦، والنسائي ۱/ ۱۷٤، رقم الحديث ۳۲٦.

**توضیح : اذا کان الماء قلتین الخ** : حدیث بئر بضاعه او حدیث قلتین چونکه دواړه په اوبو کې د نجاست غورځیدو بیا د اوبو پاک کیدو او ناپاک کیدو سره متعلق دي نو ځکه په عمومي طور د دواړو تشریح یو ځای شوې ده او د ترتیب په اعتبار سره د حدیث بئر بضاعه تفصیل مخکې شوی دی او د حدیث قلتین وروسته شوی دی، حالانکه په مشکوة کې د ذکر کولو په اعتبار سره د قلتین حدیث مخکې راغلی دی او د بئر بضاعه حدیث وروسته راغلی دی، لیکن ددې مشهور ترتیب په لحاظ سره دلته هم اول د بئر بضاعه په حدیث باندې بحث او تحقیق لیکل شوی دی د دې مسئلې عنوان داسې دی :

**په اوبو کې د نجاست غورځیدو مسئله** : اوبه بالطبع طاهرې او مطهرې دي. ځکه چې د الله تعالی فرمان دی: ﴿وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً طَهُورًا﴾ په دې وجه که چیرته د اوبو سره کوم پاک شی یو ځای شي او د اوبو رقت او سیلان باقي وي او د اوبو اسم زائل نوي او د پاک شي په اختلاط او غلبې سره د اوبو په طبیعت کې تغیر رانه شي نو اوبه پاکې دي، د اوبو طبیعت رقت او سیلان دی او همدا د اوبو ماهیت او ذات دی، او که د اوبو سره کوم نجاست یو ځای شي نو بیا به کتلی شي که چیرته اوبه جاري دي یا د جاري په حکم کې دي نو ترڅو چې **احد الاوصاف** کې تغیر رانه شي اوبه نه نجسې کیږي بلکې پاکې پاتې کیږي. د **احد الاوصاف** مطلب دا دی چې د اوبو درې اوصاف دي، رنګ بوی خوند چې په دوی کې په کوم یوه کې تغیر رانه شي نو اتفاقًا پاکې پاتې کیږي په دې کې د هیچا اختلاف نشته.او که چیرته اوبه کمې دي یعنې نه جاري دي او نه د جاري په حکم کې دي او په هغو کې نجاست وغورځیږي نو په دې کې د فقهاء کرامو اوږد اختلاف دی، د اهمو او مشهورو مذاهبو په بیانولو باندې اکتفاء شوې ده.

**د فقهاء کرامو اختلاف** : د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د اهل ظواهرو په نزد د اوبو قلیل او کثیر کیدو لره اعتبار نشته د احد الاوصاف تغیر لره اعتبار دی، نو ترڅو پورې چې کوم وصف یعنې رنګ بوی او خوند کې تغیر نه وي راغلی نو اوبه پاکې پاتې کیږي، ائمه جمهورو ویلي دي چې قلیل اوبه صرف د نجاست په لویدو سره ناپاکې او پلیتې کیږي د احد الاوصاف تغیر لره هیڅ اعتبار نشته ، لیکن ددې حضراتو په خپل مینځ کې د قلت او کثرت په تحدید او تعین کې اختلاف دی، د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد کله چې اوبه د قلتین مقدار ته ورسیږي نو هغه کثیر دي که نه نو قلیل دي او په هغو کې دوي دومره غلو او تجاوز کړی دی چې مثلا په قله یا مشک کې نجسې اوبه دي او په دویمې کې هم نجسې اوبه دي مګر کله چې دواړه سره یو ځای کړی شي او دوه قلي شي نو اوس پاکې شوې او کله چې جدا جدا کړی شي نو بیا نجسې کیږي. علامه نووي رَحِمَهُ اللهُ د مسلم شارح همداسې لیکلي دي.

د امام ابوحنیفة رَحِمَهُ اللهُ او امام ابویوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد د قلت او کثرت په فیصله کولو کې د هغه کس رأیې لره اعتبار دی کوم چې په دغه مسئله کې مبتلاء شوی وي، یعنې رأیه د مبتلی به لره اعتبار دی، که چیرته د هغه یقین دی چې اوبه کثیرې دي او د یو طرفه حرکت او نجاست بل طرف ته نه ځي نو کثیرې دي او که داسې نه وي نو قلیلې دي، د حنفي فقهې په کتابونو کې کوم چې دا مشهور دي چې **(عشر في عشر)** یعنې لس په لسو کې مقدار کثیر دی که نه نو قلیل دی نو مدار د مذهب په اصل کې په دې باندې نه دی البته د هغه د شهرت د وجې داسې شوي دي چې امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په خپل نزد د اوبو د قلت او کثرت مسئله بیان کړې ده او د کثیر اوبو باره کې یې ویلي دي **کحوض مسجدي هذا** یعنې د مسجد د حوض چې کومې اوبه دي دا کثیرې دي، سلیمان جوزجاني رَحِمَهُ اللهُ د ده د تلو نه وروسته دا حوض ناپ کړ نو لس په لسو کې شو نو په عوامو کې دا مسئله مشهوره شوه او په دې کې د عوامو دپاره آسانې هم ده.

**د مالکیو دلائل**: امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او اهل ظواهرو د خپل مسلک په استدلال کې د بئر بضاعه حدیث وړاندې کړی دی د کوم چې دا الفاظ دي **﴿ان الماء طهور لاینجسه شئ﴾** په دې کې **الف لام** د جنس دپاره دی او شئ نکره تحت النفی واقع ده په کوم کې چې عموم دی، مطلب دا شو چې جنس اوبه پاکې دي، کوم شی هغه ناپاکې کولی نه شي ترڅو چې د اوبو ذات باقي وي او تغیر په کې رانه شي .

دې حضراتو د تغیر احد الاوصاف د قاعدې دپاره د ابن ماجه په یو روایت سره استدلال کړی دی په کوم کې چې دا استثناء ده **﴿الا ما غیر لونه او ریحه او طعمه﴾** دا دوي د امت په اجماع سره هم تغیر احد الاوصاف اخیستی دی چې د رنګ بوی او خوند په بدلیدلو سره اجماعًا اوبه ناپاکه کیږي.

ددې حضراتو دویم دلیل د مشکوة شریف په یو پنځوسم فصل باندې د یحیی بن عبد الرحمن رَحِمَهُ اللهُ روایت دی او په دغه فصل کې د حضرت ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی، په دغو روایتونو کې په واضح طور ذکر شوي دي چې اوبه درندګانو، خرو او سپیو استعمال کړې وې لیکن بیا هم صحابه کرامو بلکې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه نجسې نه دي ګرځولې.

**د جمهورو دلائل**: (۱) ائمه جمهورو د مشکوة شریف په پنځوسمه(۵۰) صفحه حدیث **﴿لایبولن احدکم في الماء الدائم﴾** سره استدلال کړی دی هلته د اوصافو د تغیر ذکر نشته بلکې صرف د وقوع نجاست ذکر دی معلومه شوه اصل مدار د نجاست په وقوع باندې دی د اوصافو تغیر په کمو اوبو کې هیڅ اعتبار ورلره نشته.

(۲) جمهورو د مشكوة په پنځه څلويښتمه صفحه باندې مذكور حديث **﴿اذا استيقظ احدكم من نومه فلا يغمسن يده في الاناء﴾** سره هم استدلال کړی دی، دلته هم په اوبو کې د لاس د ننويستلو نه منعه شوې ده چې د نجاست احتمال دی حالانکه په دې سره د اوصافو تغير نه کيږي.

(۳) د جمهورو دريم دليل د مشكوة په دوه پنځوسمه(۵۰) صفحه باندې د حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت دی: **اذا شرب الكلب في اناء احدكم فليغسله سبع مرات**، ددې روايت نه صفا ښکاره شوې ده چې اصل اعتبار د نجاست وقوع ته دی د اوصافو تغير ته نه دی،دلته په ولوغ کلب سره اوبه نجسې شوې او اوه ځلې د لوښي د وينځلو حکم شوی حالانکه په کوم وصف کې په دې سره تغير نه دی راغلی او نه راتلی شي.

(۴) د جمهورو څلورم دليل د مشكوة په درې سوه يو شپيتمه(۳۶۱) صفحه باندې د ابوهريره صلى الله عليه وسلم روايت دی د کوم الفاظ چې داسې دي **﴿اذا وقعت الفارة في السمن فان كان جامدا فالقوها وما حولها وان كان مائعا فلا تقربوه﴾** (سنن ابو داؤد).

په دغه حديث کې په واضح طور ذکر شوي دي چې غوړي که چيرته مائع (نرم) وي سيال وي نو د موږې په غورځيدو سره نجس کيږي حالانکه په دې سره د اوصافو تغير نه شي کيدی، په دې باب مايحل ومايحرم کې د مشكوة صاحب د حضرت ميموني رضي الله عنها روايت هم نقل کړی دی د کوم مضمون چې د ذکر شوي حديث په شان دی کوم چې په درې سوه شپيتمه(۳۶۰) صحفه کې ذکر شوی.

**جواب**: د بئر بضاعه روايت ته جمهورو ډير جوابونه ورکړي دي نمبر واريې ملاحظه کړئ :

(۱) د بيربضاعه حديث دصحت په اعتبار سره د هغو احاديثو مقابله نه شي کولی کوم چې جمهورو پيش کړي دي داوجه ده چې بخاري او مسلم د بير بضاعه حديث په خپلو کتابونو کې نه دی ذکر کړی.

(۲) د بير بضاعه حديث امام احمد رحمه الله وغيره اگر که صحيح کړی دی مگر يحيى بن سعد القطان رحمه الله د سند د اضطراب د وجې ضعيف کړی دی او کله چې په صحيح او ضعيف کې مقابله راشي نو ضعيف ته ترجيح ورکول کيږي.

(۳) دريم جواب د فتح القدير صاحب ورکړی دی چې دا حکم د عامو اوبو نه دی بلکې سوال د بير بضاعه سره متعلق وو جواب هم د هغه متعلق ورکړی شوی دی چې موجودې اوبه پاکې دي، د هغه نه د آينده دپاره عامه قاعده نه شي جوړيدی ځکه چې دلته الف لام عهدي دی خاص او معهود اوبه مراد دي.

د دې خبرې وضاحت د علامه تفتازاني رحمه الله په تحقيق سره هم شوی دی ده او مير سيد سند رحمه الله دواړو ليکلي دي چې په الف لام کې اصل عهد خارجي دی که چيرته په هغه باندې عمل ممکن وي نو د

نورو طرف ته تلل مناسب ندي، د دې قاعدې مطلب هم دا شو چې دلته د خاصو اوبو متعلق سوال وو لهذا د خاصو اوبو متعلق جواب ورکړی شو لهذا دا عامه ضابطه نه ده.

(۴) د صحابه کرامو سوال د ماضي زمانې سره متعلق وو چې اول په هغه کې ګندګي اچول کیدله اوس نشته نو آیا مونږ اودس وربانديې کولی شو، رسول الله ﷺ وفرمایل چې اوبه طبعًا پاکې دي هغه هیڅ شی ناپاکې کولی نه شي.

(۵) بلاذري او علامه سیوطي رحمه الله لیکلي دي چې بیر بضاعه غدیر وو او غدیر لوی کوهي ته ویل کیږي یعنې دا کمې اوبه نوې بلکې ډیرې اوبه وې، په دې کې زمونږ هم کوم اختلاف نشته چې ډیرې اوبه ناپاکه کیدی نه شي.

(٦) امام طحاوي رحمه الله د امام التاریخ علامه واقدي رحمه الله په حواله لیکلي دي چې بیر بضاعه چشمه دار کوهی وو په هغه سره نزدې باغونه خړوب کولی شول، په دې قول دا خبره ثابته شوه چې د بیر بضاعه اوبه کمې نوې بلکې ډیرې او د جاري په حکم کې وې، په علامه واقدي باندې اګر که په روایت حدیث کې اعتراض دی لیکن په تاریخ کې دا امام عندالانام دی.

(۷) د سوچ خبره دا ده چې که چیرته د بیر بضاعه اوبه کمې وې نو د دومره نجاستونو باوجود رسول الله ﷺ د هغو د استعمال حکم څنګه ورکولو او هغه دوي ﷺ په خپله څنګه استعمالولې حالانکه دا بدیهي خبره ده چې د دومره ګندګۍ ولیدلو نه وروسته داسې اوبه څوک نه استعمالوي او نه په کې دکې ډکې توکرۍ ګندګي اچولو سره اوبه د اوصافو د تغیر نه محفوظ کیدی شي.

همدارنګه کافر او مسلمان دواړه د اوبو په صفائي او پاکۍ باندې متفق دي، بیا د یو عقلمند په عقل کې دا خبره نه شي راتلی چې خلکو قصدا په هغه کې ګندګي اچوله او واقعي ګندګي په کې پرته وه او دوي هماغه اوبه استعمالولې، خامخا په دې روایت کې ډیر احتمالونه شته دی، په دغو ټولو احتمالاتو باندې غور کول په کار دي او بیر بضاعه د دې جزئي واقعې ضابطه جوړول نه دي په کار.

(۸) د صحابو دا سوال په توهم او وهم باندې بناء وو ځکه چې دا کوهی په نالۍ کې وو او د سیلاب د اوبو سره د ګندګي راتلو خطر وو نو رسول الله ﷺ د اسلوب حکیم په طور جواب ورکړ چې اوبه کوم شی ناپاکه کولی نه شي تاسو وهمونه او احتمالات پریږدئ ځکه چې **(الیقین لایزول بالشک)** یوه مسلمه قاعده ده.

(۹) شاه انور شاه کشمیري رحمه الله د بیر بضاعه په چشمه دار کوهي او ډیرو اوبو باندې د بخاري شریف په یوه حدیث سره داسې استدلال کړی دی چې هلته یوه زړه ښځه اوسیدله او بیر بضاعه ته نزدې د هغې د چقندرو باغ وو هغې به د غه باغ د دې کوهي په اوبو سره اوبه کولو او د جمعې د مونځ نه وروسته به یې ددې باغ چقندر پخول او په صحابه کرامو به یې خوړل، صحابه به د جمعې په انتظار کې اوسیدل ترڅو

چې د زړې مور چقندر وخوري، ددې واقعې نه ښکاره شوې چې بیر بضاعه چشمه دار کوهی وو د کوم اوبه چې جاري وې نو ځکه رسول الله ﷺ وفرمایل چې د هغه اوبه پاکې دي هغه کوم شی ناپاکه کولی نه شي.

باقي په ابوداؤد کې مؤلف د بیر بضاعه واقعه لیکلې ده په هغې کې څو راویان مجهول دي هغه قابل استدلال نه دي، او په مشکوة شریف کې د حوضونو متعلق د حضرت عمر رضي الله عنه او د نورو چې کوم واقعات دي د هغو جواب دا دی چې هغه لوی حوض وو کوم چې د جاري اوبو په حکم کې وو، ځکه چې د مدینې منورې زمکې په نظر کې نیولو سره هلته واړه کوهیان باقي نشو پاتې کیدلی.

**لغات**: **بیر بضاعه** د مشهور روایت مطابق د **باء** په ضمې سره دی، بعضو کسره هم روا ګرځولې ده، **ضاد** مشهور دی بعضو **صاد** هم ویلی دی، دا په مدینه منوره کې د یو کوهي نوم دی کوم چې د مسجد نبوي سره د احد په طرف د حضرت حمزه رحمه الله د قبر سره په اولنۍ لارکې نبي طرف ته وجود لري په یو روایت کې راغلي دي چې رسول الله ﷺ په خپله د هغه د اوبو نه یو ډولچه ډکه کړه او په هغو سره یې اودس وکړاو پیایې دا ودس نه د زیاتو اوبو سره د خولې لعاب ملګرې کړې او کوهي ته یې ور واچولې د صحابه کرامو په زمانه کې د هغه په اوبو سره د شفاء دپاره ناروغانو ته غسل ورکول کیده الله تعالی به شفاء ورکوله د بیر بضاعه دمالک ابن سید رحمه الله بیان دی چې کله رسول الله ﷺ د خولې لعاب دې کوهي ته واچول د هغې نه وروسته مونږ د هغه اوبه د تبرک په طور استعمالولې (کذا في اللمعات ج ۱ ص ۱۳۸).

**الحیض**: د **حاء** د کسرې او د **یاء** د فتحې سره دا د **حیضة** جمع ده ددې نه مراد په حیض کې استعمال شوې کپړې او ټوټې دي.

**النتن**: بد بویي ته ویل کیږي، دلته مراد بد بویي لرونکي شیان دي.

**لحوم الکلاب**: یعنې مړه شوي سپي او د هغو غوښ شوي اندامونه په کې غورځول شوي وو.

**۳۰ صفر ۱٤۱۰هـ**

**د حدیث قلتین بحث : اذا بلغ الماء قلتین**: د جمهورو او مالکیانو په مینځ کې په ماء قلیل او کثیر کې د نجاست لویدلو متعلق اختلاف وو، اوس د ائمه احنافو، شوافعو او حنابلو ترمینځ د ماء قلیل او کثیر په تحدید او تعیین کې غټ اختلاف دی، شافعیانو د قلیل او کثیر دپاره قلتین معیار جوړ کړی دی، او احنافو د مبتلاء به کس رأیه معیار جوړه کړې ده، د دې تشریح په مخکنې درس کې تیره شوې ده، دلته ددې حضراتو دلائل وړاندې کولی شي.

**دلائل** : امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په خپل استدلال کې د قلتین حدیث وړاندې کړی دی چې د کثیرو اوبو حد قلتین دي او په حدیث کې دي ﴿اذا بلغ الماء قلتین لم یحمل الخبث، ای لم یقبل الخبث﴾ یعنې د نجاست په پرېوتلو سره هغه نه ناپاکه کیږي.

د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ دلیل د حضرت عبدالله بن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې یو زنګي (حبشي) د زمزم په کوهي کې ولوېده او مړ شو نو حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او نورو صحابه کرامو د ټولو اوبو ویستلو حکم ورکړو، په روایت کې دي چې د زمزم کوهی چشمه دار وو او اوبه یې نه ختمیدلې او خلکو ویستلې او د ناپاکه ګڼلو په وجه یې کوهي خالي کولو په دغه کوهي کې په زرګونو بوقې اوبه وې بیا هم هغه ناپاک وګرځول شو او د ټولو صحابو په موجودګئ کې په دې باندې عمل اوشو هیچا اعتراض ونه کړو نو دا یو قسم اجماع شوه او د قلتین حدیث ګویا چې د اجماع خلاف دی هغه د اوبو د تحدید دپاره معیار نه شي جوړیدلی.

**جواب** : د قلتین حدیث جواب احنافو داسې ورکړی دی چې دا حدیث (۱) سندًا (۲) متنًا (۳) او معنًا مضطرب دی د کوم دوجې چې حدیث ضعیف کیدلی شي،سندًا اضطراب دادی چې د دې حدیث د روایت مدار په دریو کسانو باندې دی، اول محمد بن اسحاق، دویم ولید بن کثیر او دریم حماد بن سلمه.د محمد بن اسحاق په باره کې تقریبا ټول محدثین متفق دي چې هغه ضعیف دی، بلکې امام مالک د دجال من الدجاجلة په نوم سره ذکر کړی دی، لهذا د حدیث د سند دا طریقه قابل استدلال پاتې نه شوه.د ولید بن کثیر په طریق کې دوه اضطرابه دي، بعضې ځایونو د محمد بن جعفر ذکر دی او بعضو کې د محمد بن عباد بن جعفر ذکر دی او بعضو ځایونو کې د عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ذکر دی او څه ځایونو کې د عبید الله بن عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ذکر دی، په دې وجه شیخینو دا روایت نه دی اخیستی او امام ابوداؤد په خپل کتاب کې دا اضطراب ذکر کړی کوم چې د هغه د عادت مطابق د حدیث د ضعیف کیدو علامه ده.

دارنګه د ابوداؤد په زړو نسخو کې دا خبره ترلاسه شوې ده چې ابوداؤد ورته ضعیف ویلي دي، په معارف السنن کې د ابو داؤد په نسخو باندې محدث العصر حضرت بنوري رَحِمَهُ اللهُ خبره کړې ده او ویلي یې دي چې په مخکنیو نسخو کې دا خبره موجوده ده چې امام ابوداؤد دې حدیث ته ضعیف ویلي دي، د هدایې صاحب د دوو وجوهاتو د وجې د ابوداؤد حواله ورکړې ده چې هغه د قلتین حدیث ته ضعیف ویلي دي، د حماد بن سلمه په طریق کې د دې حدیث په موقوف او مرفوع کې اختلاف دی دا جدا اضطراب دی،لهذا د قلتین حدیث سندًا مضطرب دی او مضطرب ضعیف دی قابل استدلال نه دی.

**متنًا اضطراب** : دا چې په بعضو روایتونو کې د قلتین ذکر دی په بعضو کې د ثلاث قلال ذکر دی په بعضو کې د اربع قلال ذکر دی په بعضو کې اربعین قلة دی په بعضو روایتونو کې اربعین غربًا دی او په بعضو کې اربعین دلوًا دی او د مازاد الفاظ دي، لهذا دا روایت د متن په اعتبار سره هم مضطرب دی کوم چې د ضعیف کیدو دلیل دی.

**معنا اضطراب**: داچې د قلة لفظ په ډیرو معناګانو سره استعمال شوی دی (۱) **قامة الرجل** (۲) **رأس الجبل** (۳) **الجرة الکبيرة** یعنې لویه جاتۍ، شوافعو ویلي دي چې مونږ چاتۍ مراد کړې ده، احنافو ویلي دي چې چاتۍ هم غټې او وړې وي، شوافعو ویلي دي چې د پنځو مشکیزو والا دوه چاتۍ مراد دي، یعنې یوه چاتۍ په دوه دوه نیمو مشکیزو سره ډکیږي په دوو کې پنځه مشکیزه کومې چې تقریبا پاو باندې شپږ منه اوبه جوړیږي، احنافو ویلي دي چې د مشک هم علم نشته چې د مینې دی که د اوښ دی که د پسه دی، دوي ویلي دي چې په کوم مشک کې دیرش یا پنځوس استار اوبه راشي هغه مراد ده، احنافو ویلي دي چې په استار کې هم تفاوت دی، او که چیرته د **قلة** نه **رأس الجبل** مراد کړی شي نو دا ستاسو هم خلاف دی نو په جهالت کې جهالت راغی نو **فأين التحديد؟** یو اضطراب باعث تضعیف کیدی شي دلته خو درې اضطرابه راغلل.

دویم جواب دادی چې د دې حدیث په صحت او عدم صحت کې هم د علماو اختلاف دی، ډیرو **محققینو** ورته صحیح ویلي دي، لیکن د مذاهب اربعو د علم غرونو یې تضعیف هم کړی دی، علي المدیني ویلي دي چې دا حدیث ثابت شوی نه دی ، امام ابن تیمیه رَحِمَهُ اللهُ او امام ابن القیم رَحِمَهُ اللهُ کوم چې د علم اوچتې پایې دي دوي ورته ضعیف ویلي دي.بدرالدین عیني رَحِمَهُ اللهُ او د صاحب هدایه په شان محققینو ورته ضعیف ویلي، دارنګه په دې حدیث کې یو علت قادحه هم شته په کوم سره چې حدیث معلل جوړ شوی او هغه علت دا دی چې د اوبو استعمال کله چې په عامو شیانو کې روایت راغلی دی نو د صحابو په جماعت کې صرف عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت کړی دی کوم بل صحابي نه دی کړی، او بیا د ده په شاګردانو کې صرف عبدالله یا عبیدالله د ده نه روایت نقل کړی دی دا خفي علت دی په کوم سره چې حدیث معلول جوړیږي، امام طحاوي دا ویلي دي چې حدیث صحیح دی لیکن مونږ یې په معنی باندې نه پوهیږو ، حضرت ګنګوهي رَحِمَهُ اللهُ د دوه قلو اوبو دپاره یوه کنده ژوره کړه او بیا یې په هغې کې دوه قلې اوبه واچولې هغه ویلي دي چې دا دوه قلې اوبه لس په لسو کې اوبه وې، لهذا په دې کې د احنافو او شافعیانو اختلاف پاتې نه شو د دواړو په نزد دا د کثیرو اوبو په حکم کې شوې.

**د حدیث قلتین مصداق**: بهر حال اګر که حدیث ثابت شو او صحیح شو نو بیا د هغه اصل مصداق څه کیدل په کار دي؟ امام ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ همدا په زړه کې وساتل امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ ته یې تشریف وروړلو او پوښتنه یې وکړه چې که چیرته دا حدیث صحیح دی نو د دې اصل مصداق څه دی او د ده محمل څه کیدل په کار دي؟ امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ ویل چې د دې مصداق د صحراء هغه لږ شاته اوبه دي کومې چې څاڅکی څاڅکی په یوه ژور ځای کې را څڅیږي او هلته جمع کیږي او له همدې ژور ځای نه همدا اوبه یو څه وړاندې چې لاړې شي نو وچیږي او عادةً په دغه ژور ځای کې دوه قلې اوبه جمع

کیږي نو دا نه نهر دی نه لوی حوض دی نه جاري چینه ده لیکن پلیتیږي ددې وجې نه چې په دې کې نجاست و دریدلی نه شي ځکه چې لږ لږ شانته بهیږي نو د جاري په حکم کې دي، دا یې چې واوریدل امام ابویوسف رَحِمَهُ اللهُ ودریده امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ یې د خوشحالۍ د وجې نه په تندي باندې ښکل کړو او وې ویل تاته الله تعالی ډیر لوی منصب درکړی دی.

بنده عاجز عرض کوي چې ما باربار همداسې اوبه او جمع شده ژورځایونه دښکارکولو په موقع لیدلي دي هغه په ربښتیا د دوه قلو برابر وي او په صحراء کې وجود لري جمع هم دي او جاري هم دي او دا حدیث نعرې وهي چې د قلتین نه دارنګه کوهی مراد دی کوم چې په صحراء کې وجود لري او ښاري اوبه مراد نه دي ځکه چې په حدیث کې ددرندګانو تګ راتګ اود ځښلو ذکر موجود دی نو آیا کوم درنده د کراچۍ امپریس مارکیټ راتلی شي یا په منګي کې خوله ننویستې شي دکوم دوجې چې دامسئله راپورته شوې؟ الله تعالی دې په امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ باندې په کروړونو رحمتونه نازل کړي دا د نبوت د علومو امین وو.

۱ ربیع الاول ۱٤۱۰ هـ

## د دریاب د اوبو او د مرداري مسئله

(٦) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَأَلَ رَجُلٌ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّا

دابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې یو کس د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړه یا رسول الله! مونږ

نَرْكَبُ الْبَحْرَ ، وَ نَحْمِلُ مَعَنَا الْقَلِيلَ مِنَ الْمَاءِ ،

په (تروش) دریاب کې دکشتۍ په ذریعه سفرکولو او (خوږې) اوبه مودځان سره اخیستې وی په دې وجه

فَإِنْ تَوَضَّأْنَا بِهِ عَطِشْنَا ، أَفَنَتَوَضَّأُ بِمَاءِ الْبَحْرِ ؟

که چیرته مونږ په دې اوبو سره اودس کوو نو تږي پاتې کیږو نوآیا مونږ د دریاب په اوبو سره اودس کولی

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ هُوَ الطَّهُورُ مَاؤُهُ الْحِلُّ مَيْتَتُهُ[1]

شو (یاتیمم وو هو) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: دسمندر اوبه پاکوونکې دي او مرداره یې حلاله ده.

**توضیح**: سأل رجل: بعضو ویلي دي چې د دغه کس نوم عبد وو کوم چې مدلجي وو کوم چې د سمندر اوبو متعلق پوښتنه کړې وه، بعضو ویلي دي د هغه نوم عبد العزی وو، بعضو ویلي د هغه نوم عرکی

(۱) اخرجه احمد في مسنده ۲/۳٦۱، وابو داود ۱/٦٤ رقم الحديث: ۸۳، والنسائي ۱/۵۰ برقم الحديث: ۵۹، وابن ماجة ۱/۱۳٦، رقم الحديث: ۳۲٦.

وو، ويل شوي دي چې سوال کوونکی دغه کس په سمندر کې د کشتۍ بانۍ کار کولو.

**سوال: المتوضأ بماء البحر**: دلته قابل غور خبره دا ده چې د سمندر د اوبو سره متعلق دا پوښتنه دلته څنګه شوې ده د دې منشاء څه وه کله چې صحابه او عرب په ذهانت کې ډیر مخکې وو هغوی د وړو وړو کوهیانو متعلق علم لرلود نو د سمندر د پاک او ناپاک کیدو په باره کې ورته اشکال څنګه پیدا شو؟.

**اول جواب**: د سوال محرکات او اسباب دري وو، اول دا چې دا د ابوداؤد شريف په روايت کې دي چې (وان تحت البحر ناراً) دا رنګه د قرآن کريم آيت ﴿ وَإِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ ﴾ او ﴿ وَالْبَحْرِ الْمَسْجُورِ ﴾ دا ټول په دې باندې دال دي چې د سمندر لاندې اور دی او د قيامت په ورځ به دا اور راپورته شي او همدا د سمندر لاندینۍ برخه به دوزخ جوړېږي، کله چې د همدې اوبو لاندې اور دی او اور مظهر د غضب الهي دی نو د سره په سمندري اوبو کې د پاکۍ او ناپاکۍ شائبه کيدی شي نو ځکه صحابي دا سوال وکړ بهر حال دا جواب ډير کمزوری دی.

**دويم جواب**: دا چې په سمندر کې ډير غټ غټ ځناور او سيږي کوم چې د غټو غټو غرونو برابر کيدی شي ځکه چې ماهيان د هغو حيواناتو نه دي د کومو د جسم د غټ کيدو چې هيڅ اندازه نه شي کيدی.

او ښکاره ده چې همدا حيوانات په سمندر کې مره کيږي هم نو د سمندر اوبو د نجس کيدو شائبه پيدا شوه نو سوال يې وکړ، دا وجه يو څه غنيمت ده.

**دريم جواب**: کوم چې قوي هم دی او په حقيقت باندې مبنی هم دی هغه دا ده چې د سمندر اوبه د خپلو دريو اوصافو رنګ، بوی، خوند کې د عامو اوبو نه مختلفې وي نهايت تروشې او بد بوی لرونکې وي نو ځکه صحابي ته شائبه پيدا شوه نو سوال يې وکړ د کوم په جواب کې چې رسول الله ﷺ د هغه د انکار صورت د نهايت حصر او تاکيد سره رد کړو (هوالطهور مائه) يې وفرمايل چې که پاکې اوبه دي نو د سمندر اوبه دي.

**سوال**: رسول الله ﷺ د دې صحابي په جواب (نعم) مختصر لفظ پر ځای دومره اوږده جمله د څه د پاره وويله؟.

**جواب**: د نعم په ويلو سره خو د سوال کوونکي جواب کيدی شو چې اودس جائز دی مګر د اوبو حيثيت او په هغو سره د عموم طهارت د حصول حکم ظاهريدی نه شو او کله يې چې دا اوږده جمله وويله نو د شريعت يوه قاعده وراندې راغله چې په دې اوبو سره اودس، غسل او د جامو وينځل ټول روا دي.

**والحل ميتته**: په ميتة کې ټول ميتات البحر مراد نه دي بلکې د دې نه صرف انواع د سمک مراد دي، يعنې دلته اضافت د استغراق د پاره نه دی، بلکې اضافت عهدي دی او صرف معهود حيوان يعنې ماهيان مراد دي.(المرقات ۲/۱۸۱).

**سوال** : دلته دا شائبه کیدی شي چې د رسول الله ﷺ نه دغه سوال کوونکي صرف د اوبو متعلق پوښتنه کړې وه نو دوي ﷺ داوبو متعلق جواب سره د سمندري ځناورو متعلق د جواب ضرورت ولې محسوس کړ او د دې جملې د ماقبل سوال سره څه ربط جوړ شوی دی؟

**جواب** : د دې سوال جواب دا دی چې کوم کس د سمندر په اوبو د اودس د مسئلې پوښتنه کړې وه هغه په سمندر کې د کشتۍ بان په شان کار وبار کولو او زیاتره وخت به هغه په سمندر کې وو نو لکه څرنګه چې د اوبو د استعمال مسئله د هغه دپاره ضروري وه همدارنګه د خوراک مسئله هم د هغه دپاره ضروري وه نو رسول الله ﷺ د هغه د حالت او د هغه د ضرورت په نظر کې نیولو سره د سمندري ځناورو د حلت او حرمت متعلق مسئله بیان کړه چې په دغه سمندر کې ستا اوبه دې په دې کې ستا خوراک دی، همدارنګه د دې تفصیلي جواب نه دا هم معلومه شوه چې سمندري اوبه صرف د ضرورت په وخت کې نه دي بلکې هر وخت قابل استعمال دي.

**د سمندري ځناورو شرعي حکم** : میتة البحر : یعنې د سمندري ځناورو په حل او حرمت کې د فقهاء کرامو اختلاف دی، د ماهیانو ټول اقسام حلال دي، په دې کې د هیڅا اختلاف نشته، د ماهیانو نه بغیر په نورو ځناورو کې اختلاف دی.

ائمه ثلاثه یعنې مالک شافعي او د احمد بن حنبل رحمهم الله تعالی په دې مسئله کې درې اقوال دي:

**اول قول** : دادی چې کوم شیان په وچه کې حلال دي د هغو مثل په بحر کې حلال دي او کوم چې په وچه کې حرام دي د هغو مثل په بحر کې هم حرام دي.

**دویم قول** : دادی چې بحري شیان ټول حلال دي حتی چې بحري انسان بحري سپی او بحري خنزیر هم حلال دي، یو چا د امام ملاک رحمه الله نه پوښتنه وکړه چې سمندري انسان که چیرته خبرې کولې د هغه خوړل هم حلال دي؟ نو ده جواب ورکړ (نعم ولو یتکلم بالعربیة الفصحی) یعنې اګر که فصیحه عربي هم کوي نو د هغه خوړل هم حلال دي، ددې حضراتو په نزد د سمندري ځناورو نه درې شیان د نصوصو د وجې مستثنی دي اول ضفدع چینډخ، دویم سلحفاة شمشتی او دریم تمساح مګر مچ، ددې حضراتو په نزد دا دویم قول د ټولو نه ډیر مختار دی.

**د جمهورو دریم قول** : دا دی چې کوم شیان زهر لرونکي دي هغه حرام دي باقي نور شیان حلال دي، بهر حال د جمهورو ددې دریو اقوالو کې کوم ضبط او انضباط نشته دی په کوم چې هر عام او خاص په اسانۍ سره پوهه شي او په هغه باندې عمل وکړي.

امام ابوحنیفه رحمه الله ویلې دي چې د انواع سمک نه په غیر ټول سمندري شیان حرام دي.

**دلائل** : (۱) د جمهورو اول دلیل زیر بحث حدیث دی په کوم کې چې د (والحل میتته) الفاظ راغلي

دي، دغو حضراتو په دي کې اضافت د استغراق دپاره اخستی دی یعنې د سمندر ټول میتات حلال دي.

(۲) د جمهورو دویم دلیل ﴿أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهُ مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ﴾. (مائدة: ۹٦)

(۳) د جمهورو دریم دلیل د عنبر قیصه ده چې صحابه کرام رسول الله ﷺ په یوه سریه کې لیږلي وو کله چې د هغوی سره خوراک ختم شو نو د پاڼوپه خوړلو یې شروع وکړه بیا الله تعالی یو سمندري (دابه) را ولیږله کومې ته چې عنبر ویل کیده صحابه کرامو هغه وخوړه، جمهورو ویلي دي چې دلته د دابه لفظ راغلی د کوم نه چې مراد ځناور دی او صحابه کرامو خوړلی دی، او په بخاري کې دا حدیث موجود دی، د امام ابو حنیفه رحمه الله دلیل د قرآن کریم آیت ﴿ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ ﴾ (اعراف ۱۵۷) دی هغه ویلي دي چې د انواعو سمک نه په غیر ټول بحري شیان په خبائث کې داخل دي کوم چې ضرر رسونکي او خبائث دي بلکې ځینې خو دومره زهرجن دي چې د هغو په خوړلو سره انسان فورا مړ کیږي.

**د چینجي حکم**: دلته په مختصر طور په ضمني انداز سره د چینجیو متعلق هم یو څه اوګورئ، بیا به د جمهورو دلائلوته جواب وشي. په چینجي کې د شوافعو، مالکیو او حنابلو نه بغیر د ائمه احنافو هم په خپل مینځ کې اختلاف دی، ځینې احناف کوم چې بالخصوص د ساحلي علاقو اوسیدونکي دي هغوی چینجي حلال ګڼي او اکثر حنفي علماء هغه حلال نه ګڼي، د اختلاف بنیاد دا دی چې آیا چینجی د ماهي په اقسامو کې داخل دی او که ورنه خارج دی، که چیرته د ماهي په اقسامو کې داخل دی نو بیا د هغه په حلال کیدو کې هیڅ شبه نشته، لیکن که چیرته د ماهي د اقسامو نه خارج دی نو بیا د هغه په حرام کیدو کې هیڅ شبه نشته، ځکه چې احناف د انواعو د سمک نه بغیر نور سمندري حیوانات حلال نه ګڼي نو بیا چینجي ته هم حلال ویل نه دي په کار، اوس دا مسئله د حیواناتو د علماؤ طرف ته لاړه چې د حیواناتو ماهرین دا فیصله وکړي چې چینجی ماهي دی او که بل څه دی، حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهي رحمه الله هغه د وچې چینجی ګڼلی دی په فتاوی رشیدیه کې داسې لیکل شوي دي:

حضرت اشرف علي تهانوي رحمه الله حیواناتو علماو ته حواله کړی دی چې هغوی یې په کوم کې شماري که چیرته ماهي دی نو حلال دی او که نه دی نو حرام دی، د علماء حیواناتو خبره ده چې په ماهي کې د هډوکي وجود ضروري دی په چینجي کې هډوکي نشته همدرانګه په ماهي کې یوتعداد نورې علامې دي کومې چې په چینجي کې نشته د کوم نه چې معلومه شوې ده چې چینجی د ماهي د قسم نه نه دی کوم بل شی دی.

دلته دا خبره هم د یادولو ده چې د دې مسئلې تحقیق غیر جانبدار علماوته په کار دی کوم علماء چې سهار ماښام چینجي اخلي او په خوند سره یې خوري، ښکاره خبره ده چې دوی به د حلال جوړیدو دپاره هر قسم غوړ دلائل جوړوي، لهذا کتل کیږي به چې شوافعو حضراتو د کومو شیانو په حلت باندې

استدلال کړی دی دچینجیو خوړونکي حضرات دا دلائل د جواز د استدلال دپاره وړاندې کړي دي، حالانکه د زیر بحث حدیث په تشریح کې حنفي علماؤ په شد او مد سره د شافعي حضراتو همدې دلائلو ته په مدلل انداز سره د جوابونو په ورکولو سره را روان دي، په کومو کې چې د دې حدیث جواب هم دی، د چینجیو خواهشمند او شوقي حضرات زیاتره وخت د لغت کتابونو حواله وړاندې کړې ده چې چینجی حلال دی او ویلي یې دي چې اوګورئ د لغت فلاني فلاني کتاب ورته ماهي ویلي دي، نودلته دا خبره یاد ساتل په کار دي چې د لغاتو همدا زیاتره کتابونه د شافعي حضراتو د مسلک دي په هغو سره احناف څنګه استدلال وکړي، دارنګه دا د خوړلو او نه خوړلو حلال او حرام مقابله ده او په داسې صورتحال کې ترجیح حرام ته ورکول کیدی شي، ترڅو چې د حرامو په خوړلو کې د واقع کیدو نه انسان وساتل شي. دلته زه د لغت د علماو دوه درې حوالې هم درکوم ترڅو چې د چینجیو نه خوړونکو حضراتو ته تسلي اوشي او د خوړونکو دپاره د سوچ کولو څه اسباب برابر کړی شي.

جهینګا (کوني کبر) ته په عربي کې (روبیان) ویل کیږي لهذا د لغت والا هغه په باب الراء کې لیکلی دی په لغت کې ورته (اربیان) هم ویل کیږي لهذا د الف په باب کې یې هم ذکر موندل کیږي، لهذا مؤلف المنجد الابجدي په حرف الراء کې لیکلی دی: **الروبیان جنس سرطان بحري من القشریات العشاریة الاقدام ویعرف بالقریدس**، یعني جهینګا سمندري چینجی او سرطان دی او د هغه لسو ته نژدې پښې دي او قریدس یعني د کوني کبر په نوم سره مشهور دی.

د لغت یو کتاب یعني کتاب **المنجد في اللغة** په ۸ صحفه باندې د هغه مصنف لیکلي دي: **اربیان وروبیان جنس سرطان بحري من القشریات العشاریة الاقدام ویعرف بالقریدس اصناف عدیدة لذیذ الطعم**، په دې عبارت کې دا آخرني الفاظ زیات راغلي دي، چې د همدې چینجي دیر زیات اقسام دي او دا یو خوندور شی دی. د لغت مشهور کتاب **المنجد في اللغة والادب والعلوم** کې د هغه عیسائي مصنف لویس معلوف د رویبان متعلق لیکلي دي : **اربیان نوع من السرطان بحري**، یعني دا د چینجیو یو قسم دی (المنجد في اللغة والعلوم ص ۷).

د لغت یو بل کتاب د (**الاروس**) په ۵٦ صفحه کې لیکل شوي (**روبیان برغوث البحر**) یعني دا یو وینه زیښونکی چینجی دی.

خلاصه دا راووتله چې دې ته چینجی وویل شو ورته کوني کبر وویل شو د هغه خوړونکو ته اوس په خپله سوچ کول په کار دي چې دوی کوم شی خوري او خوړلي یې دي، په قیمت او خوند کې یې خبره

کول نه دي په کار، حضرت مولانا مفتي محمود رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې چینجي ته حرام نه وایم لیکن په دسترخوان یې زما پر وراندې رانه وړئ، بهر حال خو ښه خپله خپله او نصیب خپل خپل اجتهادي مجاهده ده هر طرف ته د ګنجایش را ویستلو کوشش مسلسل روان دی څوک یې خوري او څوک یې بد ګڼي.

**د احنافو د طرفه جمهورو ته جواب** : بهر حال د چینجي د جملې معترضه نه وروسته اوس د زیر بحث حدیث **والحل میتته** جواب احنافو دا ورکړی دی چې دلته د **میتة** نه د سمندر عام ځناوران مراد نه دي بلکې ددې نه صرف ماهیان مراد دي او په ماهي باندې د **میتة** اطلاق ددې وجې شوی دی چې د هغه دپاره د ذبحې ضرورت نشته ، په حدیث شریف کې راغلي دي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي : **﴿احلت لنا المیتتان السمک والجراد والدمان الکبد والطحال﴾**.ترمذي دا روایت نقل کړی دی او ابن ماجه او نسائي هم دالفاظو د تغیر سره نقل کړی دی.

د جمهورو دویم دلیل **﴿أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ﴾** جواب دا دی چې دلته **صید** د **مصید** په معنی ندی د کوم معنی چې د ښکار شده شي ده بلکې دا لفظ په خپله مصدري معنی **اصطیاد** د ښکار کولو په معنی دی نو د آیت نه د محرم (حالت احرام) دپاره د سمندري ښکار کولو اجازت حاصل شوی دی، د خوراک خبره دلته نشته او ښکار خو د حرامو ځناورو هم کیدی شي او که چیرته د ښکار کولو او خوراک هم خبره شي نو د **صید البحر** مصداق د ماهیانو ښکار دی کوم چې مشهور دی روا هم دی او حلال هم دی.

د جمهورو دریم دلیل د عنبر والا حدیث وو په دې کې چې د دابه والا لفظ راغلی دی د هغه جواب دا دی چې د بخاري په بعضو روایتونو کې په عنبر باندې د سمک اطلاق هم موجود دی، دابه ځکه ورته ویل شوې ده چې هغه ډیر غټ ماهي وو چې درې سوه صحابو تر میاشتې پورې خوړلو د هغه د سترګې په خانه کې نهه کسان ناست وو او د هغه هډوکي یوه صحابي په زمکه کې ښخ کړل په اوښ باندې سور شو د هډوکو لاندې په ارام سره تیر شو دومره غټ ماهي وو ځکه د دابه اطلاق ورباندې شوی دی، که نه نو د هغه نوم عنبر وو او عنبر د ماهیانو یو قسم دی.

## د نبیذ التمر مسئله

| |
|---|
| **(۷) وَعَنْ أَبِي زَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ** |
| ابو زید د حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت کړی دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وویل ده ته د |
| **لَيْلَةَ الْجِنِّ : مَا فِي إِدَاوَتِكَ ؟ قَالَ : قُلْتُ :** |
| لیلة الجن(د پیریانو شپه) ستا په مشک کې څه دي؟ عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې ما ورته وویل |

| |
|---|
| نَبِيذٌ . قَالَ : تَمْرَةٌ طَيِّبَةٌ ، وَ مَاءٌ طَهُورٌ[1]. |
| نبيذ (يعني د کهجورو شربت) دی نبي عليه السلام وفرمايل: کهجورې پاکې دي او اوبه پاک کوونکي دي. |
| وَ زَادَ أَحْمَدُ ، وَ التِّرْمِذِيُّ : فَتَوَضَّأَ مِنْهُ . وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ : |
| امام احمد او امام ترمذي دالفاظ زيات کړي پس هغه په هغو سره اودس وکړو او امام ترمذي داهم ويلي |
| أَبُو زَيْدٍ مَجْهُولٌ وَ صَحَّ عَنْ عَلْقَمَةَ ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، |
| چې ابوزيد ته معلومه نه ده چې دا څوک دی او علقمه په صحيح روايت سره د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه |
| قَالَ : لَمْ أَكُنْ لَيْلَةَ الْجِنِّ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ ۱/۳۳۳)(احمد ۱/۴۰۲) |
| نه نقل کړي چې هغه ويل چې زه په ليلة الجن کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره نه وم. |

**توضيح** : **فتوضأ منه** : ددې حديث نه د **نبيذ التمر** مسئله راوتلې ، **نبيذ فعيل** بمعنی **مفعول** يعنې **منبوذ** دی د هغه معنی د غورزولو او غورزول شوي شي ده که چيرته **تمر** وي نو **نبيذ تمر** ويل کيدی شي که **زبيب** وي نو **نبيذ زبيب** ويل کيدی شي.په اصل کې په عربو کې د تريخوالي ختمولو او د خوندور کيدو د پاره کهجورې په خوراک کې ګډولی شي او دڅوورڅوورسته هغه اوبه استعماليدی شي داد نبيذ حقيقت دی، ليکن د هغه ښې قسمونه درې دي، دوه قسمه اتفاقي دي او په يو کې اختلاف دی.

(۱) چې کجورې په اوبو کې واچول شي د حلاوت د راتلو نه مخکې مخکې اودس وکړی شي دا د ټولو په نزد روا دی.(۲) کجورې په اوبو کې واچول شي د اوږدې مودې د وجې په هغو کې زګ راشي او د سکر حد ته ورسيږي نو بالاتفاق په هغو سره اودس کول ناروا دي.(۳) په اوبو کې کجورې واچول شي او په هغو کې حلاوت راشي ليکن تراوسه اوبه مزيد شوې نه دي او رقت يې هم پاتې دی پخې شوې هم نه دي نو په دې کې د فقهاء کرامو اختلاف دی. (المرقات ۲/۱۸۲)..

**د فقهاء کرامو اختلاف** : امام محمد رحمه الله ويلي دي چې د نبيذ التمر دا قسم که چيرته موجود وي نو انسان دې په هغو سره اودس هم وکړي او بيا تيمم هم وکړي امام ابو يوسف رحمه الله د جمهورو فقهاؤ سره دی او د جمهورو مسلک دا دی چې ددې قسم د اوبو په شتون کې په هغو سره اودس کول روا نه دي بلکې تيمم وهل فرض دي.امام ابو حنيفه رحمه الله او سفيان ثوري رحمه الله ويلي دي چې په دې قسم اوبو سره اودس کول روا دي د هغو په موجودګۍ کې تيمم وهل روا نه دي، نوح بن ابی مريم د امام ابو حنيفه

---

(۱) أخرجه احمد في مسنده ۱/۴۵۰، وأبو داود ۱/۶۶ رقم الحديث : ۸۴.

رَحِمَهُ اللهُ د جمهورو د قول طرف ته رجوع نقل کړې ده او د احنافو په نزد فتوی د عدم جواز ده لهذا اوس د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او د جمهورو په مینځ کې کوم اختلاف پاتې نه شو، لیکن مخالفینو اعتراض کړی دی چې امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ دا فتوی سمه نه ده ورکړې ددې وجې د دلائلو بحث او تحقیق تر حده پورې د دې مسئلې بیان کیږي ترڅو چې د دلائل دنیا دلائلو وویني. (المرقات ۱۸۳-۲/۱۸۴).

**دلائل**: جمهورو د قرآن کریم په ﴿فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا﴾ آیت سره استدلال کړی دی د استدلال طریقه داسې ده چې کله مطلق اوبه نشته نو د تیمم طرف ته د تللو حکم قرآن ورکړی، د طهارت دپاره اوبه دي یا خاورې دي دا د نبیذ التمر واسطه په مینځ کې د کومه راغلې ده د هغې هیڅ حیثیت نشته.د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ دلیل د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زیر بحث حدیث دی د کوم د ظاهري الفاظو او ظاهري مطلب نه چې صفا ثابته شوې ده چې په نبیذ التمر سره اودس کول روا دي ځکه چې د حدیث الفاظ (**تمرة طيبة وماء طهور فتوضأ منه**) کې هیڅ قسم شائبه نشته. (المرقات ۲/۱۸۴).

**اعتراض**: جمهورو په دې حدیث باندې دوه اعتراضونه کړي دي، اول اعتراض دا دی چې د دې حدیث یو راوي ابو زید دی او هغه مجهول دی، دویم اعتراض دا دی چې په خپله حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددې واقعې نه انکار کړی دی چې (**ماشهدها منا احد**) یعنې د مونږ نه څوک هم په لیلة الجن کې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره نه وو، کله چې په خپله د واقعې صاحب ترې انکار کړی دی نو تاسو په دې سره څنګه استدلال کولی شئ؟.

**جواب**: د اول اعتراض جواب دا دی چې مونږ ستاسو نه پوښتنه کوو چې که چیرته په ابو زید کې جهالت عینیه او ذاتیه دی چې د هغه ذات مجهول دی نو مونږ وایو چې د ترمذي مشهور شارح ابن عربي رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي چې ابو زید د عمرو بن حریث غلام وو او رشاد بن کیسان رَحِمَهُ اللهُ او ابو ورق رَحِمَهُ اللهُ د هغه نه روایت کړی دی او د فن اصول حدیث قاعده ده چې کله د کوم کس نه دوه ثقه راویانو روایت کړی دی نو هغه مجهول الذات نه شي پاتې کیدی بلکې معلوم الذات جوړیږي، او که چیرته د اعتراض مطلب دا دی چې ابو زید معلوم الوصف نه دی یعنې مجهول الصفة دی نو معلومه نه ده چې ثقه دی او که نه دی؟ نو د دې جواب دا دی چې په دغه روایت کې ابو زید تنها نه دی بلکې څوارلس کسان د هغه متابع دي او څوارلس کسان چې د چا متابع وي نو هغه په خپله څنګه ثقه کیدلی نه شي او د هغه روایت لره اعتبار ولې کیدی نه شي.

پاتې شو د دویم سوال جواب چې حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپله ویلي دي چې په مونږ کې په لیلة الجن کې هیڅوک هم د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره نه وو نو د دې جواب دا دی چې ترمذي په ابواب الامثال دویم جلد کې تصریح کړې ده چې حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لیلة الجن کې وو او دا روایت

یې حسن بللی دی، دویم جواب د دې سوال دا دی چې (آکام المرجان في أحکام الجان) کې علامه بدر الدین شبلي رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي چې د لیلة الجن واقعه یو ځل نه ده بلکې شپږ ځلې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په موجودګۍ کې مخته راغلې ده، تفصیل یې داسې دی :(۱) په مکه مکرمه کې پېښه شوې ده په کوم کې چې (اظلیل واستطیر) الفاظ راغلي دي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې کې تنها وو.
(۲) په مقام حجون کې پېښه شوې ده.(۳) په اعلی د مکه کې پېښه شوې ده.(۴) په مدینه منوره کې په بقیع الغرقد کې پېښه شوې ده.(۵) په خارج المدینه کې پېښه شوې ده په کومه کې چې زبیر بن العوام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ور سره ملګری وو.(٦) د سفر په حالت کې مخته راغلې ده په کوم کې چې حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وسره ملګری وه.نو په دریو ځایونو کې حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وو او په دریو ځایونو کې نه وو نو د لم اکن لیلة الجن نفې صرف د دریو واقعاتو سره متعلق ده مطلق نفې مراد نه ده . (المرقات ۲/۱۸۴).
یاجواب دا چې حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د لیلة الجن په واقعه کې وو لیکن د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په خاص مقام کې نه وو، بلکې د حصار په کرښه کې دی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بهر کېنولی وو او د جناتو سره د ننه په خپله تلی وو.باقي جمهورو چې په کوم آیت سره استدلال کړی دی چې مطلق اوبه کله نه وي نو تیمم وکړئ نو د هغه جواب دا دی چې د مطلق اوبو نه څه مراد دي؟ او د مقید مطلب څه دی؟
که چېرته د اوبو اضافت د کوم طرف ته په کېدو سره تاسو هغه ته مقید وایی مثل ماء النبیذ نو بیا ماء السماء ماء البحر، ماء البیر وغیره د ټولو د اضافت د وجې هم د ټولو مقید منل دي نو بیا خو هیڅ مطلق اوبه پاتې نه شوې حالانکه دا خو ستاسو په نزد هم مطلق اوبه دي او مقید ندي.
او که د مطلق اوبو نه مراد دا چې کوم کس کومې اوبه غواړي او هغه کس اوبه وړاندې کړي او خلک دا کس په غلطه باندې ونه ګڼي بلکې داتسلیم کړي خودا مطلق اوبه دي نو په نبیذ کې هم داسې صورت دی چې د هغه په وړاندې کولو د ټولنې خلک هغه په غلطی باندې نه ګڼي، لهذا لنبیذ التمر هم د مطلق اوبو په حکم کې دي، بهر حال د امام صاحب رجوع ثابته ده زیات شور کولو ته ضرورت نشته، احتیاط د جمهورو په مذهب کې دی، دارنګه دا اختلاف هم صرف په لنبیذ التمر کې دی زبیب شعیر وغیره په نبیذ سره اودس اتفاقًا روا دی. (المرقات ۲/۱۸۳).

## د سؤر الهرة مسئله

| |
|---|
| (۸) وَ عَنْ كَبْشَةَ بِنْتِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَكَانَتْ تَحْتَ ابْنِ أَبِي قَتَادَةَ أَنَّ |
| د حضرت کبشه بنت کعب بن مالک کومه چې د حضرت ابو قتاده د زوی ښځه وه، ددې نه روایت دی چې |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَبَا قَتَادَةَ | دَخَلَ | عَلَيْهَا | . | فَسَكَبَتْ | لَهُ | وَضُوءًا . |
| (یوورځ) دهغې خسر ابو قتاده دهغې خواته راغی (کبشه وایي چې) ما هغه ته اوبه کېښودې داودس دپاره | | | | | | |
| فَجَاءَتْ | هِرَّةٌ | تَشْرَبُ | مِنْهُ | . فَأَصْغَى | لَهَا | الْإِنَاءَ |
| (په یولوښي کې) نو یوه پیشو راغله دهغو اوبو نه یې اوبه ځکلې نو ابو قتاده دهغې طرف ته لوښي ورکوږ | | | | | | |
| حَتَّى | شَرِبَتْ | . | قَالَتْ | كَبْشَةُ : | فَرَآنِي | |
| کړو (ترڅو چې په آسانۍ سره اوبه وڅکي) لهذا پیشو اوبه وڅکلې کبشه وایي چې کله ابو قتاده ماته وکتل | | | | | | |
| أَنْظُرُ | إِلَيْهِ . | فَقَالَ : | أَتَعْجَبِينَ | يَا | ابْنَةَ | أَخِي ؟ |
| چې زه په (تعجب سره) د هغه طرف ته ګورم نو هغه وویل زما وریرې آیا ته په دې باندې تعجب کوې؟ ما | | | | | | |
| قَالَتْ : فَقُلْتُ : نَعَمْ . فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ، إِنَّهَا | | | | | | |
| ورته وویل چې آو، ابو قتاده وویل رسول الله ﷺ فرمایلي چې پیشوګانې ناپاکه نه دي ځکه دوي | | | | | | |
| مِنَ | الطَّوَّافِينَ | عَلَيْكُمْ | أَوِ | الطَّوَّافَاتِ .[1] | | |
| په تاسو کې تلونکې راتلونکې دي یا یې دا فرمایلي چې د تلونکو او راتلونکو نه دي. | | | | | | |

**توضیح : یا ابنة اخي** : حضرت ابو قتاده رضي الله عنه د عربو د عادت مطابق حضرت کبشې رضي الله عنها ته د وررور لور وویله ددې نه اسلامي وررولي مراد ده د رشته دارۍ خبره نه ده .(المرقات ۲/۱۸۴).

**انها لیست بنجس** : دلته سوال دا دی چې د **نجس** لفظ مذکر دی نو د **هرة** دپاره څنګه استعمال شوی ؟

ددې یو جواب په عام طور د لطیفې په طور داسې دی چې **زید ها هو** یعنې ددې نه که لفظ مراد کړی شي نو ضمیر د مذکر راوړی شي ځکه چې زید مذکر دی لیکن د زید نه د (کلمة) اراده وکړی شي نو د مؤنث ضمیر هم روا دی دا لطیفه په هر ځای کې چلیږي، د سوال حقیقي جواب شیخ عبدالحق رحمه الله په لمعات کې ورکړی دی هغه ویلي دي چې د مشکوة او مصابیح په ټولو نسخو کې دا لفظ داسې مذکر دی لیکن

په شروحاتو کې **انها لنجسة** د تانیث سره راغلی ، شیخ ویلي دي چې د ترمذي په بعضو ورو نسخو کې دا لفظ د تذکیر سره راغلی دی داسې معلومه شوې ده چې د حدیث اصل لفظ نجس مذکر دی یو چا په

کې تغیر کړی دی **لنجسة** کړی یې دی او شروحاتو هغه ذکر کړی دی د راتلونکي حدیث معامله هم داسې

(۱) اخرجه احمد في مسنده ۵/۳۰۳، وابوداود ۱/۶۰ رقم الحدیث: ۷۵، والنسائي ۱/۵۵، رقم الحدیث: ۶۸، وابن ماجة ۱/۱۳۱، رقم الحدیث: ۳۶۷.

ده.شیخ رحمه الله ویلي دي چې د مؤنث دپاره د مذکر صیغه ددې وجې استعمال شوې ده چې د هرة نه پیشو مراد شوې ده په راتلونکې د حضرت عائشې رضي الله عنها په قیصه کې لفظ هریسه راغلی دی چې د غوښې ټوټې، مصالحه او څه نور شیان سره یو ځای کړی شي د یوې شیرې په رقم شي نوم یې (هریسه) دی په عربو کې اوس هم یو خوندور خوراک دی.(اشعة اللمعات ۲/۲۹۶).

**په سؤر الهرة کې د فقهاؤ اختلاف** : د پیشو په جوټه (پس خورده) کې دفقهاء کرامو اختلاف دی او د اختلاف منشاء د کراهیت علت دی چې د دې علت څه دی، بعضو چې د پیشو غوښې ته په کتلو سره حکم ورکړی بعضو همدا علت بیان کړی چې پیشو په ناپاکو شیانو کې د خولې د ننویستلو سره احتیاط نه کوي نو د ناپاکۍ احتمال شته.

دریو امامانو او امام ابویوسف او امام محمد یعني د جمهورو په نزد که چیرته پیشو فی الوقت کوم نجس شی خوړلی نه وي او په کوم نجس شي کې یې خوله نه وي ننویستې نو جوټه یې پاکه ده.

امام ابو حنیفه رحمه الله امام کرخي رحمه الله او د امام طحاوي رحمه الله په نزد د پیشو جوټه مکروه ده، بیا علت ته کتل شوي دي امام طحاوي رحمه الله د مکروه تحریمي قول غوره کړی دی، امام کرخي د مکروه تنزیهي قول غوره کړی دی او دا قول راجح او قابل فتوی دی، په دې سره د ټولو امامانو اختلاف ختم شوی ځکه چې د مکروه تنزیهي هیڅ حیثیت نشته. (المرقات ۲/۱۸۶).

**دلائل** : د جمهورو دلیل زیر بحث د حضرت کبشې رضي الله عنها او بیا د حضرت عائشې رضي الله عنها حدیث دی دوي ویلي دي چې په طوافین او طوافات سره د علت طرف ته اشاره شوې ده کوم چې موجب تخفیف دی او هغه عدم کراهیت دی.امام ابو حنیفه رحمه الله ویلي دي چې د پیشو متعلق مختلف احادیث دي کوم چې په خپل مینځ کې متعارض دي، په یو حدیث کې دي (الهرة سبع) د کوم چې تقاضا ده چې د پیشو جوټه حرامه ده، ترمذي د اول جلد په ۲۷ صفحه باندې د ابو هریره رضي الله عنه د روایت په اخیر کې دا الفاظ راوړي دي :اذا ولغت فیه الهرة غسل مرة، دا هم د تنجیس دلیل دی چې د هغې جوټه ناپاکه ده نو ځکه د یو ځل وینځلو حکم شوی دی،امام طحاوي رحمه الله یو حدیث نقل کړی دي ویلي یې دي :**طهور الاناء اذا ولغ فیه الهر ان یغسل مرة او مرتین**، د دې حدیث تقاضا هم دا ده چې د پیشو جوټه ناپاکه ده.

همدارنګه قیاس تقاضا هم ده ځکه چې د پیشو غوښه اتفاقا حرامه ده او لعاب د غوښې نه پیدا کیږي نو قیاس ویلي دي چې د هغې پس خورده ناپاکه ده، لیکن چونکه په جواز او عدم جواز او پاک او ناپاک کیدو کې په روایتونو کې تعارض دی بیا په مجتهدینو کې هم د جواز او عدم جواز اختلاف شوی دی لهذا (اختلاف امتي رحمة) د قاعدې په برکت سره خبره د حرمت د طرفه د کراهیت طرف ته راغله.

مګر امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ قياس ته ترجيح ورکړې ده او ويلي يې دي چې د پيشو جوټه مکروه تحريمي ده، ځکه چې د غوښې نه پيدا شوې ده او غوښه حرامه ده لهذا جوټه حرامه ده، امام کرخي رَحِمَهُ اللهُ علت ته کتلي دي کوم چې طوافات دی نو په دې سره تخفيف معلوم شو نو ده د کراهيت تنزيهي فتوی ورکړې ده او دا قول راجح دی او په دې باندې فتوی ده، د طوافين او طوافات په علت سره د شريعت دا ضابطه حاصله شوه چې (**الحرج مدفوع في الشرع**) او **المشقة تجلب التيسير** يعنې حرج او مشقت آساني راکاږي. (المرقات ۱۸۶-۲/۱۸۷).

| |
|---|
| **(۹) وَ عَنْ دَاوُدَ بْنِ صَالِحِ بْنِ دِينَارٍ ، عَنْ أُمِّهِ ، أَنَّ مَوْلَاتَهَا أَرْسَلَتْهَا بِهَرِيسَةٍ** |
| داؤدبن صالح بن دينار رَحِمَهُ اللهُ د خپلې والدې نه روايت کړې چې (يو ورځ) ددې آزادونکې مالکې هريسه |
| **إِلَى عَائِشَةَ . قَالَتْ : فَوَجَدْتُهَا** |
| يعنې (حريره) ورکړه د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خدمت ته يې ورولېږله د هغه والده وايي چې زه هلته ورسيدم نو |
| **تُصَلِّي ، فَأَشَارَتْ إِلَيَّ : أَنْ ضَعِيهَا.** |
| عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مونځ کولو عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اشارې په کولو سره د هغې د ايخودلو د پاره ما ته وويل |
| **فَجَاءَتْ هِرَّةٌ ، فَأَكَلَتْ مِنْهَا ، فَلَمَّا انْصَرَفَتْ** |
| (لهذا ما د هريسې لوښی کيښود نو دې وخت کې) پيشو راغله د هغې نه يې خوراک وکړ کله چې فارغه شوه |
| **عَائِشَةُ مِنْ صَلَاتِهَا ، أَكَلَتْ مِنْ حَيْثُ أَكَلَتِ الْهِرَّةُ .** |
| عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د مونځ نه نو حريره چې پيشو د کوم طرف نه خوړلې وه د هماغه طرف نه دې هم وخوړله، |
| **فَقَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ، إِنَّهَا مِنَ الطَّوَّافِينَ عَلَيْكُمْ** |
| بيا يې وويل چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي چې پيشو ناپاکه نه ده او هغه په تاسو کې د تلونکو راتلونکو |
| **وَ إِنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ تَوَضَّأُ بِفَضْلِهَا[1].** |
| نه ده او ما په خپله رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پيشو په جوټه باندې د اودس په کولو ليدلی دی. |

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۶۱/۱ رقم الحديث :۷۶ .

## دوحشي ځناورو د جوټي بيان

| |
|---|
| (۱۰) وَ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنَتَوَضَّأُ |
| د جابر رضي الله عنه نه روایت دی چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پو ښتنه وشوه چې آیا مونږ اودس کولی شود |
| بِمَا أَفْضَلَتِ الْحُمُرُ ؟ قَالَ : نَعَمْ، |
| هغو اوبو نه کومې چې خرو جوټه کړې وي نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل آو (په هغو اوبو سره اودس |
| وَ بِمَا أَفْضَلَتِ السِّبَاعُ كُلُّهَا [1]. ( رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ ). |
| کول جائز دي) او په هغو اوبو سره هم (اودس کول جائز دي) کومې چې درندګانو جوټه کړې وي. |

**توضیح**: **السباع**: درندګانو ته په عربي کې سباع ویل کیږي لکه زمری، پړانګ، لیوه ګیدړه وغیره ددې ځناورو جوټه کې اختلاف دی. **د فقهاء کرامو اختلاف**: د ځنګلي درندګانو جوټه د مالکیو او شافعیو په نزد پاکه ده د احنافو او د یو قول مطابق د حنابلوّ په نزد ناپاکه ده. (المرقات ۲/۱۸۸).

**دلائل**: شافعیانو په مذکور روایت استدلال کړی دی کوم چې په خپله مدعی باندې واضح دلیل دی، همدارنګه په حدیث نمبر دولسیم او دیارلسم سره هم دوي استدلال کړی دی.

احنافو د شریعت په دې ضابطې سره استدلال کړی دی په کومه کې چې لیکل شوي دي چې د کوم شي غوښه حرامه وي د هغه جوټه هم حرامه ده، ځکه چې لعاب د غوښې نه پیدا کیږي، همدارنګه احنافو د مشکوة په دریم فصل کې د حضرت عمرو بن عاص رضي الله عنه په روایت سره هم استدلال کړی دی په کوم کې چې دا الفاظ دي (**هل ترد حوضک السباع**) دا سوال ددې خبرې دلیل دی چې عمرو بن العاص رضي الله عنه د درندګانو جوټه ناپاکه ګڼلې وه که نه نو د سوال څه ضرورت وو، دا حدیث د شافعیانو دلیل دی اګر که په مذکور الفاظو سره احنافو استدلال کړی دی.

**جواب**: د شافعیانو د دلائلو جواب دا دی چې دلته د یقین خبره نه ده بلکې صرف یوه احتمالي خبره ده چې شاید درندګانو په اوبو کې خوله وهلې وي ده هغه رد کړې وي ځکه چې (**الیقین لایزول بالشک**) شیخ عبدالحق رحمه الله په لمعات کې دا جواب ورکړی دی چې په طهارت باندې دلالت کوونکي روایتونو کې کلام دی، دریم جواب دا دی چې دا روایتونه د غټو حوضونو سره متعلق دي په کومو کې چې دیرې اوبه وي او په هیڅ طور ناپاک کیدی نه شي. (المرقات ۲/۱۸۸، اشعة اللمعات ۱/۲۶۷).

---

(۱) رواه الشافعي في مسنده ص۸ ، شرح السنة ۷۱/۲ رقم الحديث : ۲۸۷.

**بما أفضلت الحمر** : د احنافو په نزد د خره جوټه مشکوک ده، يعنې د دلائلو په تناظر کې چې کوم شک او شبه راغلې ده د هغې د وجې مشکوک ده، که نه نو د شريعت د حکم په اوريدلو کې هيڅ شک نشته، په پوهيدو کې شک داسې راغلی دی چې د خره غوښه حرامه ده د کوم چې تقاضا دا ده چې لعاب او خوله دواړه دې نجس شي، ليکن رسول الله ﷺ په خره باندې سورلي کړې ده نو خامخا به خوله ورباندې لګيدلې وي دوي ﷺ د هغې د نجاست هيڅ خبره نه ده کړې نو خوله پاکه شوه، او چونکه د خولې په شان لعاب هم د غوښې نه پيدا کيږي نو لعاب هم دا شان پاک په کار دي نو ځکه شک راغی نو مسئله مشکوکه شوه، لهذا د مشکوکو اوبو نه مخکې دې اودس وکړی شي بيا دې تيمم ووهل شي د موجوده حديث تعلق شايد د وحشي خر سره وي او هغه حلال دی. (المرقات ۲/۱۸۸).

| |
|---|
| (۱۱) وَعَنْ أُمِّ هَانِئٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: اغْتَسَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ وَمَيْمُونَةُ |
| د حضرت ام هاني رضي الله عنها نه روايت دی چې غسل وکړو رسول الله ﷺ او حضرت ميمونې رضي الله عنها |
| فِيْ قَصْعَةٍ فِيْهَا أَثَرُ الْعَجِيْنِ [1]. |
| په يوه داسې کاسه کې په کومه کې چې د لامده شوو (پاسته شو) اوړو څه اثر وو. |

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| (۱۲) وَعَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: إِنَّ عُمَرَ خَرَجَ فِيْ رَكْبٍ فِيْهِمْ |
| د يحيى بن عبد الرحمن رحمه الله نه روايت دی چې عمر فاروق رضي الله عنه د يوې قافلې سره ووتلو په کومه کې |
| عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ حَتَّى وَرَدُوْا حَوْضًا. فَقَالَ عَمْرٌو: يَا صَاحِبَ الْحَوْضِ. هَلْ تَرِدُ حَوْضَكَ |
| چې عمرو بن العاص رضي الله عنه هم ؤ ده د ډنډ والا نه پوښتنه وکړه چې ای د ډنډ مالکه! آيا راځي ستا دې ډنډ ته |
| السِّبَاعُ؟ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: يَا صَاحِبَ الْحَوْضِ. لَا تُخْبِرْنَا، |
| (د اوبو څښلو د پاره) درندګان هم دا يې چې وا اوريدل عمر رضي الله عنه وويل ای د ډنډ مالکه د دې ښودلو ته |
| فَإِنَّا نَرِدُ عَلَى السِّبَاعِ وَتَرِدُ عَلَيْنَا [2]. |
| ضرورت نشته ځکه چې مونږ په درندګانو باندې ورځو او درندګان په مونږ باندې راځي (يعنې کله مونږ |

(۱) أخرجه النسائي في السنن ۱۳۱/۱ برقم الحديث: ۲۴۰، وابن ماجه في السنن ۱۳۴/۱، رقم الحديث: ۳۷۸، وأخرجه أحمد في مسنده ۳۴۲/۶.

(۲) أخرجه مالك في الموطا ۲۳/۱، رقم الحديث: ۱۴ من كتاب الطهارة.

اوبو ته راځي او کله درندګان او بو ته راځي او په دغو کې او به زياتي دي نو ځکه د درندګانو په څښلو نه ناپاکه

وَ زَادَ رَزِينٌ . قَالَ : زَادَ بَعْضُ الرُّوَاةِ فِي قَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ :

کيږي) او زيات کړي زرين چې بعضو راويانو د حضرت عمر رضي الله عنه په دې قول کې دا الفاظ زيات کړي چې

وَ إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ : لَهَا مَا

(عمر رضي الله عنه ويلي دي) چې ما په خپله د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي و وچې درندګان کوم څه په خپلو

أَخَذَتْ فِي بُطُونِهَا ، وَمَا بَقِيَ فَهُوَ لَنَا طَهُورٌ وَ شَرَابٌ.

خيټو کې يوسي هغه د هغوي دي او کوم څه چې ترې پاتې شي هغه زمونږ د څښلو قابل او پاکوونکي دي.

(۱۳) وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ الْحِيَاضِ الَّتِي

د ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دى چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د هغو ډنډونو باره کې پوښتنه وشوه

بَيْنَ مَكَّةَ وَ الْمَدِينَةِ تَرِدُهَا السِّبَاعُ وَ الْكِلَابُ وَ الْحُمُرُ

کوم چې د مدينې او مکې په مينځ کې واقع دي او هغو ته د (اوبو څکلو د پاره) درندګان خره سپي راځي

عَنِ الطُّهْرِ مِنْهَا : فَقَالَ : لَهَا مَا

چې آيا په هغو سره کوم شى پاک کيدلى شي او که نه؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: کوم څه چې هغوي

حَمَلَتْ فِي بُطُونِهَا ، وَ لَنَا مَا غَبَرَ طَهُورٌ . (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ ۵۱۹).

په خيټو کې يوسي هغه د هغوي دي او کوم څه چې باقي پاتې شي هغه زمونږ د پاره پاکوونکي دي.

(۱۴) وَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ، قَالَ : لَا تَغْتَسِلُوا

د عمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: تاسې غسل مه کوئ په نمر

بِالْمَاءِ الْمُشَمَّسِ ، فَإِنَّهُ يُورِثُ الْبَرَصَ . (رَوَاهُ الدَّارَ قُطْنِيُّ)[1].

باندې ګرمو شوو اوبو سره ځکه چې دا د برص (يعنې د سپينوالي ناروغي) سبب کيدى شي.

(۱) أخرجه الدار قطني في سننه ۳۹/۱ رقم الحديث : ٤ باب الماء المسخن .

۲ ربیع الاول ۱٤۱۰هـ

# بَابُ تَطْهِيرِ النَّجَاسَاتِ
## د نجاستونو د پاکولو بیان

**نجاسات** د طهارت ضد ته ویل کیږي، **نجاسات** یې د جمع په صیغې سره ځکه ذکر کړي دي چې د نجاستونو ډیر زیات اقسام دي او د هغو جدا جدا احکام دي، د اوبو احکام او د نجاستونو پاکولو په احکامو کې په فقهي لحاظ سره د ټولو نه زیاتې اوړدې او لنډې مسئلې بیان شوې دي.

د **نجس** لفظ باب **سمع یسمع** او **کرم** دواړو نه راغلی دی، صاحب قاموس لیکلي دي چې د **نجس** په **جیم** باندې کسره او فتح دواړه ویل کیدی شي، د فقهاء کرامو په اصطلاح کې که چیرته د **جیم** کسره وه نو دا عین او ذات نجاست ته ویل کیږي او که د **جیم** فتحه وه نو دا عام دی نجاست ته هم ویل کیږي او هغه شي ته هم ویل کیږي د کوم سره چې نجاست لګیدلی وي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ
### د سپي د جوټې مسئله

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا شَرِبَ الْكَلْبُ

دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې وڅکي سپي په تاسو کې

فِي إِنَاءِ أَحَدِكُمْ فَلْيَغْسِلْهُ سَبْعَ مَرَّاتٍ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) وَ فِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ:

دچا په لوښي کې نو هغه (لوښی) دې اوه ځلې ووینځي ،او د مسلم په روایت کې دي: په تاسو کې چې

طُهُورُ إِنَاءِ أَحَدِكُمْ إِذَا وَلَغَ فِيهِ الْكَلْبُ أَنْ يَغْسِلَهُ سَبْعَ مَرَّاتٍ

دچا په لوښي کې کوم سپي اوبه وڅکلې د هغه د پاکولو صورت دا دی چې هغه ووینځل شي اوه ځلې او

أُولَاهُنَّ بِالتُّرَابِ[1].

اول وار په خاورو سره ووینځل شي.

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۲۷٤/۱۰،رقم الحديث : ۱۷۲، ومسلم في الصحيح ۲۳٤/۱ رقم الحديث: ۹۰-۲۷۹، وأبو داود ۵۷/۱ رقم الحديث :۷۱، والنسائي ۵۲/۱، رقم الحديث:٦۳ .

**توضیح : اذا شرب الکلب** : د سپي او د درندګانو په لوښي کې د خولې ننویستلو ته په عربي کې یو شمیر مخصوص الفاظ راغلي دي :(**ولغ یلغ ولغا وولوغا اذا ادخل الکلب والسبع لسانه في الماء حرکه فیه ولحس الکلب لحسًا فاذا کان الاناء خالیا فهو لحس واذا کان فیه شئ فهو ولغ**). یعنې د ژبې په څوکه چې سپی، درنده یا وغیره او به په څټلو سره وڅکي دې ته ولغ ویل شوي دي.

**د سپي په جوټه کې اختلاف**: دسپي دجوټې نه په پاکۍ کې مختلف احادیث راغلي دي په بعضو کې **دسبع مرات** ذکر دی په بعضو کې د اته ځلې وینځلو ذکر دی، په دارقطني کې د درې، پنځه او اوه ځلو روایت هم شته دی په کوم کې چې په هر یوه باندې عمل کول غوره شوي دي، په بعضو روایتونو کې د وینځلو سره د خاورو ذکر هم شته دی او په بعضو کې نشته، بیا په بعضو روایتونو کې په اول کې په خاورو سره د وینځلو ذکر دی، په بعضو کې په آخر کې دی، په بعضو کې اوه ځلې په خاورو سره د وینځلو تعلیم دی، په بعضو کې اته وارې په خاورو سره د وینځلو خبره ده، د روایتونو ددې اختلاف د وجې په فقهاء کرامو کې هم اختلاف راغلی دی، لیکن دا په یاد لرئ چې دلته په دوه مسئلو کې جدا جدا اختلاف دی.یو اختلاف د سپي د جوټې په پاک او ناپاک کیدو کې دی او دویم اختلاف د هغه د نجس کیدو په صورت کې د لوښي د پاکولو په طریقه کې دی، په اوله مسئله کې جمهورو فقهاء یو طرف ته دي او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ بل طرف ته دی، په دویمه کې د جمهورو په خپل مینځ کې اختلاف دی.

لهذا د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ مسلک دا دی چې د سپي جوټه پاکه ده، بیا په دې حضراتو باندې اعتراض شوی دی چې کله پاکه ده نو تاسو حضرات بیا د لوښي وینځل ولې ضروري ګڼئ؟ د دې جواب دې حضراتو دا ورکړی دی چې دا وینځل تعبدي حکم دی یعنې د شریعت حکم دی د نجاست د وجې نه دی ، بلکې شریعت د وینځلو خبره کړې ده نو مونږ یې وینځو ، دا شی په عقل کې راتلونکی نه دی او دا نص غیر معقول المعنی او خلاف القیاس دی.د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد رَحِمَهُمَا اللهُ په نزد دسپي د جوټې تطهیر په اوه ځلو وینځلو باندې موقوف دی ددېنه په کم وینځلو نه پاکیږي ، امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې د سپي د جوټې پاکي په درې ځلې وینځلو سره کیږي هو تر اوه وارې پورې په وینځلو کې مبالغه کول مستحب دي. (المرقات ۲/۱۹۳).

**دلائل** : د سپي د جوټې په پاک کیدو باندې امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ د قرآن مجید په آیت باندې استدلال کړی دی، د ښکاري سپیو په باره کې د قرآن حکم دی چې کوم سپي ښکار وکړي ستاسو دپاره یې وساتي تاسو هغه وخورئ.﴿ فَكُلُوا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ ﴾ د استدلال طرز داسې دی کله چې سپي ښکار په خوله کې نیولی دی نو دهغه لعاب ضرور ورباندې لګیدلي دي او په قرآن کې د هغه د خوړلو ذکر دی د وینځلو نه دی،معلومه شوه چې دسپي په جوټې سره هغه ښکار نجس نه شو نو د

هغه جوته پاکه شوه، دویم دلیل د بخاري روایت دی کوم چې صاحب مشکوة په دریم فصل ۵۳ صفحه کې دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت سره نقل کړی دی چې: **كانت الكلاب تقبل وتدبر في المسجد في زمان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فلم يكونوا يرشون من ذلك** (المرقات ۲/۲۱۲).

نوښکاره ده کله چې سپي جومات ته تلل راتلل نو لعاب یې په جوماتٓ کې لویدل او د وینځلو ذکر نشته نو معلومه شوه چې د سپي جوته پاکه ده، دریم دلیل د بخاري شریف هغه حدیث دی په کوم کې چې د یوې فاجرې ښځې د مغفرت ذکر دی چې هغې په خپله موزه کې تږي سپي ته د کوهي نه اوبه را ویستلې پرې وی څکلې، د استدلال طرز داسې دی چې په دغه موزه کې دې ښځې مونځ وکړ او د وینځلو هیڅ ذکر نشته، معلومه شوه چې د سپي جوته پاکه ده. جمهورو د سپي د جوتې په نجاست باندې مذکور صریح او صحیحو احادیثو سره استدلال کړی دی، جمهورو ویلي دي چې د نجس کیدو د وجې نه د پاکي حاصلولو دپاره د غسل او وینځلو واضح الفاظ موجود دي د هغه په امر تعبدي باندې حمل کولو ته څه ضرورت دی په کوم کې چې تحصیل حاصل دی چې پاک خو دی مګر بیا یې هم وینځو، داسې ولې نه ویل کیږي چې نجس دی نو ځکه یې د وینځلو حکم شوی دی، جمهورو عقلي دلیل هم وړاندې کړی دی چې سپی بدترین نجس دی د هغه غوښه بالاتفاق حرامه ده نو د هغه نه پیدا شوې لعاب څنګه پاک کیدی شي.

**جواب**: امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ په قرآن سره چې کوم استدلال کړی دی د هغه جواب دادی چې که چیرته د **(كلوا)** امر د کوم قید د لحاظ کولو نه غیر مطلق واخلو نو بیا داسې ووائي چې خامه غوښه وخورئ او په وینو ککړه یې وخورئ؟ ځکه چې په قرآن کې **(كلوا)** راغلی دی یعنې وخورئ که چیرته د وینځلو قید نشته نو د هغو ټولو شیانو هم قید نشته حالانکه د آیت مطلب د اقتضاء النص په طور دادی چې د هغه ښکار غوښه جوړه کړئ، وی وینځئ، پخه یې کړئ او بیا یې وخورئ، نو بغیر د وینځلو د خوړلو حکم د کومه راغلی، کله چې آیت په لازمي طور مقید دی نو بیا د وینځلو قید هم شته د کوم نه چې د جوتې نجاست ثابت شو. تر کومه ځایه چې جومات ته د سپو تلل راتلل او د لعاب لویدو دلیل دی د هغه جواب دا دی چې هغه نوی جومات وو شګه په کې پرته وه کومه چاردیوالي یې نه وه د شپې به سپي راغلل سهار به یې د لعاب او متیازو معلومات نه کیدو تلي به وو، ګرم ملک وو د سختې ګرمۍ د وجې ځمکه پاکیدله او په **زكاة الارض يبسها** باندې عمل کیده. (المرقات ۲/۲۱۲).

مونږ دلته مالکیانو ته الزامي جواب ورکړی دی چې که چیرته لعاب لویدلي وي نو سپي خو متیازې هم کړې وې د هغو د وینځلو ذکر هم نشته هغه هم پاکې شوې؟ علامه خطابي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي کیدی شي چې هغو سپو متیازې بهر کولې بیا به دننه راتلل نو تاسو ورته ووایئ چې شاباس. باقي د هغې فاجرې

ښځې د موزې معامله هم مطلق نه ده بلکې د وینځلو سره مقیده ده که چیرته د وینځلو ذکر نشته نو د نورو شیانو ذکر هم هلته نشته، همدا رنګه د هغې د مونځ ذکر هم نشته دی چې هغې د هغې سره مونځ کړی دی.

**دتطهیر په طریقه کې اختلاف:** د سپي د جوټې د تطهیر په طریقه کې د جمهورو په خپل مینځ کې اختلاف دی

**دلائل:** امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې اوه ځلې وینځل یې واجب دي، دوي په مذکور حدیث سره استدلال کړی په کوم کې چې د اوه ځلې ذکر دی، امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ ویلي چې په درې ځلې وینځلو سره پاکي حاصلیږي، دا عامه ضابطه ده کومه چې د سپي جوټې ته هم شامله ده.

احنافو د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت سره استدلال کړی کوم چې ابن عدي په خپل کتاب **الکامل** کې ذکر کړی چې الفاظ یې داسې دي: **اذا ولغ الکلب في اناء احدکم فلیهرقه ولیغسله ثلاث مرات.**

دارنګه احنافو د ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په فتوی استدلال کړی دی په کومه کې چې د درې وارې وینځلو ذکر دی، طحاوي او دارقطني هغه نقل کړې ده، دوي دا هم لیکلي دي چې د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل عمل هم د درې وارې وینځلو وو، په دې روایتونو سره د شوافعو استدلالات منسوخ پاتې شول. (المرقات ۲/۱۹۳).

**جواب:** احنافو شافعیانو ته دا جواب ورکړی دی چې د اوه ځلې وینځلو حکم د اسلام په ابتداء کې وو ترڅو چې د سپو نفرت د خلکو په زړونو کې پیدا شي، وروسته په دې حکم کې تخفیف راغی، دا یو جواب شو د شوافعو د دلیل، دویم جواب دا دی چې د اوه ځلې وینځلو روایت په استحباب باندې محمول دی او د درې وارې وینځلو روایت په فرضیت باندې محمول دی په دې کې زمونږ هم اختلاف نشته دی. دریم جواب دا دی چې د بحث په ابتداء کې دا خبره تیره شوې ده چې په بعضو روایتونو کې درې وارې پنځه وارې اوه وارې وینځلو کې اختیار هم ورکړی شوی دی لکه چې د دارقطني په روایت کې دي کله چې اختیار دی نو اوه ځلې وینځلو ته واجب نه شي ویل کیدی. څلورم جواب دا دی چې دا درې ځلې وینځل د حصول طهارت د پاره دي او اوه ځلې د طب او حکمت او د علاج د پاره دي د دې وجې نه په اخیر کې د خاورې ذکر شوی ځکه چې په خاوره کې د (المونیم وغیره) اجزاء شامل دي په کوم سره چې د سپي د خولې جراثیم ختمیدی (مره) شي، په همدې وجه د همدغه حکمت تحقیق کله چې یو ډاکټر وکړو نو مسلمان شو چې دا حکمت صرف په وحې سره معلومیدی شي. پنځم جواب دا دی چې اغلظ النجاسات د خنزیر جوټه او د هغه غلاظت په خپله د سپي غلاظت، د حیض وینه او نور نجاسات ټول په درې وارې وینځلو سره پاکیږي نو د سپي جوټه ولې پاکیدی نه شي؟ حالانکه په هغې کې خو اختلاف هم دی چې امام مالک رَحِمَهُ اللهُ ورته پاکه ویلې ده. په آخر کې الزامي جواب دا دی چې که یې نه منئ نو د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت کې د اتو ځلو ذکر دی د ترتیب ذکر هم دی نو تاسو په خپله په حدیث باندې پوره عمل نه دی کړی. (المرقات ۱۹۳-۲/۱۹۴).

**لطیفه**: که چیرته کوم سپي د چا کپړه په خوله کې ننویستله نو که یې د غسې په حالت کې ننویستله نو کپړه نه نجسه کیږي او که یې په مینه ننویستله نو نجسه کیږي، فرق دا دی چې د غسې په حالت کې لعاب وچیږي دارنګه په غسه کې غابنونه کار کوي په کومو کې چې لعاب نشته او په مینه په ژیبنلو کې لعاب هم زیات وي او په شونډو سره یې چې ژیبني نو لعاب په کپړه باندې لګیږي نجسه کیږي.

## د زمکې د پاکوالي مسئله

| |
|---|
| (۲) وَ عَنْهُ قَالَ : قَامَ أَعْرَابِيٌّ ، فَبَالَ فِي الْمَسْجِدِ ، |
| دابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې (یوه ورځ) یو بانډ چي جومات کې اودرید و متیازې یې وکړې (دا |
| فَتَنَاوَلَهُ النَّاسُ. فَقَالَ لَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : ( دَعُوهُ وَ هَرِيقُوا |
| یې چې ولیدل) خلک پسې ترشاه ولګیدل نو رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: هغه پرېږدئ او واچوئ |
| عَلَى بَوْلِهِ سَجْلًا مِنْ مَاءٍ أَوْ ذَنُوبًا مِنْ مَاءٍ فَإِنَّمَا بُعِثْتُمْ مُيَسِّرِينَ، |
| دده په متیازو باندې یو ډولچه اوبه (بیایې و فرمایل) تاسو خلک د آسانۍ کولو دپاره رالیږل شوي یاست |
| وَ لَمْ تُبْعَثُوا مُعَسِّرِينَ [1]. |
| او تاسې نه رالیږل شوي تنګي کوونکي. |

**توضیح**: **قام اعرابي**: دعربو صحراء کې اوسیدونکو ته اعراب ویل کیږي دهغه طرف ته نسبت اعرابي دی یعنې کلیوال کوچی، ددغه کوچي نوم بعضو ذوالخویصرة ښودلی دی دترمذي په روایت کې دي چې هغه په مسجدنبوي کې دمونځ کولو نه وروسته په دعا کې وویل: **اللهم ارحمني وارحم محمدًا ولاترحم معنا احدًا**، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل تا دپراخه رحمت بندلو کوشش وکړدې نه وروسته دغه کس پورته شو په مسجد کې یې متیازې وکړې، داکس وروسته دخوارجو سردار جوړشو، بعضو ویلي چې نوم یې اقرع بن حابس وو. بهرحال همدې ته ورته حدیثونو باندې منکرین حدیث پرویزیان خلک ټوقې کوي اودصحیح احادیثو نه انکارکوي چې دا څنګه کیدلی شي چې کوم عقلمند په جومات کې متیازې وکړي، بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم دمتیازو کولو مهلت او اجازت څنګه ورکړه معلومه شوه دانقلونه دي حدیثونه نه دي. دې د عقل نه خلاصو د هغې پخوانۍ زمانې ماحول د نن ورځې په ماحول باندې قیاس کړی دی حالانکه په هغه وخت کې د جوماتونو کچه زمکې وې د

---

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱/۳۲۳، رقم الحديث : ۲۲۰، وأبو داود ۱/۲۶۳ رقم الحديث : ۳۷۰.

مسجد او غير مسجد د زمکې امتياز ډير مشکل وو د شګو او خاورو امبارونه به پراته وو دا کس د احکامو زده کولو په غرض نزدې ودريده چې زر فارغ شي هغه ته معلومه هم نوه چې دا مسجد دی، اوس که چيرته هغه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې اخيستی وی نو نور ډير ځايونه به يې هم لړلي وی او د متيازو بندولو د وجې د ناروغی خطره هم وه، ځای که ناپاک شي نو وينځل يې لازمي دي نو ځکه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : اوس هغه مه منعه کوئ ميتازې دې وکړي وروسته ځای وينځئ دا سمه نقشه ده، اوس که چيرته کوم کس د نقشې خرابول غواړي د صحابو د زمانې مسئله او واقعه د نن ورځې په ماحول او زمانه قياس کوي نو همدا د يو انسان د ګمراهي د پاره کافي دي.

**تناوله الناس** : يعنې خلکو په ژبو سره هغه راګير کړ په هغه باندې يې د منعه کيدو آوازونه وکړل. (المرقات ۲/۱۹۴).

**مه مه** : مه کوه مه کوه دا ټول د تناول مفهوم دی په لاس سره نيول وهل مراد نه دي، لکه په پښتو کې ويل کيږي : مه کوه مه کوه. (المرقات ۲/۱۹۴).

**ذلوبا** : غټې بوقې ته ذنوب ويل کيږي په کومه کې چې ښې اوبه ځايږي. (المرقات ۲/۱۹۴).

**د زمکې د طهارت په طريقه کې د فقهاو اختلاف** : جمهورو ويلي دي که چيرته زمکه ناپاکه شي نو د هغې د پاکولو صرف يوه طريقه ده چې په اوبو سره هغه و وينځل شي، امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د ناپاکې زمکې د پاکولو درې طريقې دي، اوله دا ده چې په اوبو سره و وينځل شي دا اتفاقي صورت دی، دويمه دا ده چې هماغه برخه زمکه ژوره کړی شي او هغه خاوره ويستل شي او نوې خاوره راوړل شي په هغه ژور ځای کې واچول شي، دريمه طريقه دا ده چې په ګرمي سره زمکه وچه کړی شي، په وچيدلو سره زمکه پاکيدی شي.اوس که چيرته د جومات په مينځ کې يو چا متيازې وکړې نو هغه ته به کتل کيږي که چيرته فرش غوړول شوی دی نو رومال يا کپړه به راواخستل شي اول به يې وچې کړي يا به يې په کپړه وينځي په اوبو به يې لمده کړي په هغه نجس ځای باندې به يې ومښي او په درې ځلې مښلو سره ځای پاکيږي، د جومات په مينځ کې اوبه اچول يا يې په ټول فرش باندې خورول او بيا يې وينځل صحيح نه دي، او که چيرته متيازې د پاخه فرش په غاړه باندې دي نو داسې ځای په هر حال کې وينځل کيدی شي او اوبه يې بهر ويستلی کيدی شي، او که چيرته فرش کچه دی نو که چيرته خاوره مضبوطه ده نو هغه دې ژوره کړی شي بهر دې ويستل شي او پاکه خاوره دې هلته راوړل شي، او که چيرته خاوره شګلنه ده او اوبه په کې جذب کيدی نو په هغې دې اوبه واچول شي او تر جذب کيدو پورې دې انتظار وکړی شي درې ځلې په داسې کولو سره ځمکه پاکيږي، او که چيرته لمر (ګرمي) پرې ولګيږي نو په وچيدو سره هم زمکه پاکيدی شي، البته جمهورو انکار کړی دی.

**دلائل**: جمهورو په زیر بحث حدیث سره استدلال کړی دی په کوم کې چې د اوبو د استعمال ذکر دی،
احنافو په هغه حدیث سره استدلال کړی دی په کوم کې چې ذکر شوي دي چې سپي مسجد نبوي ته تلل
راتلل او هغه وینځل شوی نه وو، احنافو ویلي دي چې دا په **(زکاة الارض یبسها)** باندې عمل شوی وو،
احنافو د مصنف ابن ابی شیبة رَحِمَهُ اللهُ په یوه روایت سره هم استدلال کړی دی کوم چې د محمد بن حنفیه
اثر دی ویلي یې دي چې **(اذا جفت الارض فقد ذکت)** یعنې کله چې زمکه وچه شي نو پاکیږي. خو په
داسې زمکه باندې مونځ کیدلی شي، لیکن په هغې باندې تیمم نه شي وهل کیدی، ځکه چې په تیمم
کې په قرآن کریم کې په قطعي نص سره د پاکې خاورې قید لګول شوی دی او **(ذکاة الارض یبسها)** خبر
واحد دی کوم چې د تیمم د جواز د پاره کافي نه دی. (المرقات ۱۹۴-۱۹۵-۲/۱۹۶).

**(۲) وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: بَيْنَمَا نَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،**

د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې (یوه ورځ) د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په جومات کې ناست وو چې

**إِذْ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ، فَقَامَ يَبُولُ فِي الْمَسْجِدِ.**

ناڅاپه یو بانډه چې راغی او په جومات کې یې په ولاړه متیازې وکړې (دا یې چې ولیدل) د رسول الله

**فَقَالَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَهْ مَهْ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه کرامو هغه ته وویل ودریږه ودریږه: رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې دا واوریدل وې فرمایل

**لَا تُزْرِمُوهُ، دَعُوهُ".**

د متیازو د کولو نه یې مه منعه کوئ بلکې هغه پرېږدئ چې متیازې وکړي (ځکه چېرته هغه ستاسو په تنبیه
باندې متیازې ودروي نو دا به د هغه د پاره تکلیف رسوونکې شي یا دا چې یا د هغه متیازې کومې چې اوس

**فَتَرَكُوهُ حَتَّى بَالَ.**

پریوځای دي څو ځایه به خورې شي) صحابه کرامو هغه پرېښود او دغه بانډه چې (کله چې تولې) متیازې

**ثُمَّ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَاهُ. فَقَالَ لَهُ: إِنَّ هٰذِهِ الْمَسَاجِدَ**

وکړې نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه را وغوښت او په (شفقت او مهربانۍ سره یې) وفرمایل چې مسجد

**لَا تَصْلُحُ لِشَيْءٍ مِنْ هٰذَا الْبَوْلِ وَالْقَذَرِ، إِنَّمَا هِيَ لِذِكْرِ اللهِ، وَالصَّلَاةِ، وَقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ أَوْ**

د متیازو ګندګۍ وغیره د پاره نه دي بلکې د الهي ذکر مونځ او د قرآن تلاوت کولو د پاره دي یا یې داسې

كَمَا قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

داسې وفرمایل (یعنې راوي ته شک پیدا شوی چې دوې ﷺ باندې چې ته هغسې الفاظ ویل

قَالَ : وَ أَمَرَ

او که یې نور الفاظ وویل) حضرت انس رضي الله عنه ویلې دي چې ددې نه وروسته رسول الله ﷺ په

رَجُلًا مِنَ الْقَوْمِ فَجَاءَ بِدَلْوٍ مِنْ مَاءٍ، فَسَنَّهُ عَلَيْهِ[1]. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

مجلس کې یو کس ته یې حکم وکړو چې هغه یو دولچه اوبه راوړې په متیازو یې توی کړې.

(۴) وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَتْ: سَأَلَتِ امْرَأَةٌ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،

د اسماء بنت ابي بکر رضي الله عنها نه روایت دی چې یوې ښځې د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه او

فَقَالَتْ : يَا رَسُولَ اللهِ ، أَرَأَيْتَ إِحْدَانَا إِذَا أَصَابَ ثَوْبَهَا الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ،

وې ویل یا رسول الله! دا و ښایه که چیرته په مونږ کې په چا باندې د حیض وینه په کپړه باندې ولګیږي نو

كَيْفَ تَصْنَعُ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا أَصَابَ ثَوْبَ إِحْدَاكُنَّ الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ

څه وکړي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: که چیرته په تاسو کې د چا په کپړه باندې د حیض وینه ولګیږي

فَلْتَقْرُصْهُ ، ثُمَّ لِتَنْضَحْهُ بِمَاءٍ ، ثُمَّ

نو هغې ته په کار دي چې اول هغه د کوم شي څه سره ومږل شي بیا په اوبو سره ووینځل شي او په همدې

لِتُصَلِّي فِيهِ . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2].

کپړې سره (برابره خبره ده که لمدې ولې نوي) مونځ دې وکړي.

## د مني مسئله

(۵) وَ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ ، قَالَ : سَأَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عَنِ الْمَنِيِّ

د سلیمان بن یسار رضي الله عنه نه روایت دی چې ما پوښتنه وکړه د عائشې رضي الله عنها نه د هغه مني په باره کې

---

(۱) اخرجه البخاري في الصحیح ۱/۳۲۲، رقم الحدیث: ۲۱۹، ومسلم في الصحیح ۱/۲۳٦ رقم الحدیث: ۹۹-۲۸٤، والترمذي ۱/۲۷٦ رقم الحدیث: ۱٤۸.

(۲) اخرجه البخاري في الصحیح ۱/٤۱۰، رقم الحدیث : ۳۰۷، ومسلم في الصحیح ۱/۲٤۰ رقم الحدیث: ۱۱۰-۲۹۱، وابو داود ۱/۲۵۵ رقم الحدیث : ۳٦۱.

يُصِيبُ الثَّوْبَ فَقَالَتْ : كُنْتُ أَغْسِلُهُ مِنْ ثَوْبِ

چې په کپړه باندې لګيدلې وي ، نو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا وفرمايل : چې ما وينځلې وه مني د کپړو د

رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَيَخْرُجُ إِلَى الصَّلَاةِ وَ أَثَرُ الْغَسْلِ فِي ثَوْبِهِ[1].

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نو کله به چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام مونځ ته وتلو نو په کپړه باندې يې د وينځلو نښه پاتې وه

(٦) وَعَنِ الْأَسْوَدِ وَهَمَّامٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا. قَالَتْ: كُنْتُ أَفْرُكُ الْمَنِيَّ مِنْ ثَوْبِ رَسُولِ اللهِ

اسود او همام رَحِمَهُمَا اللهُ روايت کړی چې عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا وويل ما مږلې وه (وچه) مني د کپړو د رسول الله

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ (وَ بِرِوَايَةِ عَلْقَمَةَ وَ الْأَسْوَدِ . عَنْ عَائِشَةَ نَحْوَهُ .

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه، او مسلم د دې نه بغير د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا علقمه رَحِمَهُ اللهُ او اسود رَحِمَهُ اللهُ په شان يو روايت

وَ فِيهِ ثُمَّ يُصَلِّي فِيهِ )[2].

هم نقل کړی په کوم کې چې دا الفاظ هم شته چې دوی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په همدې کپړه کې مونځ کړی وو.

**توضيح : سألت عائشه عن المني :** د پورته ذکر شوو دواړو حديثونو تعلق د مني سره دی چې آيا دا پاک دي او که نجس او د هغو د لرې کولو او تطهير طريقه څه ده؟ سليمان بن يسار رَحِمَهُ اللهُ چونکه د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا شاګرد دی نو ځکه ده د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه د مني متعلق پوښتنه وکړه او حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا جواب ورکړی دی، د دواړو روايتونو تعلق د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا سره دی، دا خبره په پرده کې شوې وه.

**د فقهاء کرامو اختلاف :** د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد او د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ د اصح قول مطابق مني پاک دي، د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد مني نجس دي، هو په دوی دواړو کې دومره فرق دی چې د امام صاحب په نزد که چيرته مني په کپړه باندې وچه شي او بيا ومګل شي نو کپړه پاکيږي دا هم د تطهير يوه طريقه ده او که چيرته مني لمده وه نو په هر حال وينځل يې ضروري دي، ليکن امام مالک رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې مني که لمده وه که وچه وه په هر حال کې د هغو وينځل فرض دي په مږلو سره کپړه نه پاکيږي. (المرقات ١٩٦-٢/١٩٧).

---

(١) اخرجه البخاري في الصحيح ٢٣٢/١ ،رقم الحديث : ٢٣٠، ومسلم في الصحيح ٢٣٩/١ رقم الحديث:١٠٨-٢٧٩، وابو داود ٢٦٠/١ رقم الحديث :٣٠٣، والنسائي ١٥٦/١، رقم الحديث: ٢٩٥ .

(٢) اخرجه مسلم في الصحيح ٢٣٨/١ رقم الحديث:١٠٦-٢٨٨ ،والترمذي ١٩٨/١ رقم الحديث : ١١٦.

**دلائل**: امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په خپل استدلال کې ویلي دي :(۱) په حدیث کې د مني د ازالې په باره کې د (حکّ او حت) الفاظ راغلي دي کوم چې د مږلو په معنی دي او دا خبره واضحه او ښکاره ده چې په مږلو سره پوره نجاست لرې کیدی نه شي بلکې یو څه باقي پاتې کیدی شي او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مګلو باندې اکتفاء کړېده، معلومه شوه چې مني پاکه ده بیا هم د هغو قلیل اجزاء برداشت کړی شوي دي.(۲) ګویا چې مني د تیونو د شیدو په شان دي.(۳) په مني سره د مور په خیټه کې ماشوم غذاء پیدا کوي نو هغو ته پاک ویل په کار دي.(۴) همدارنګه د هغو نه انبیاء او اولیاء پیدا شوي دي نو د انبیاؤ او اولیاؤ اصل ته څنګه نجس ویل کیدی شي؟.(۵) دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دارقطني داسې نقل کړی: ﴿سئل النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عن المني یصیب الثوب فقال انما هو بمنزلة المخاط والبذاق﴾. یعنې د مني تشبیه دوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پوزې د ګړنګو سره ورکړې ده ښکاره ده ګړنګ پاک دي نو مني هم پاکه ده. (المرقات ۲/۱۹۹).

امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې په هیڅ حدیث سره هیڅکله دا ثابته نه ده چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې د مني سره مونځ کړی وي، هو د مني د ازالې طریقې مختلفې دي، کله په غسل او وینځلو سره زائل شوي دي، کله د وچیدو په صورت کې په مګلو سره او کله د فرک په طریقې سره د هغو ازاله شوې ده، د ازالې چې هر صورت هم وي دا خبره فیصله شوې ده چې د مني سره یې کله هم مونځ نه دی کړی کوم چې د هغو د نجاست غټ دلیل دی، که چیرته هغه پاک وی نو د بیان جواز دپاره یو نیم ځل به رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ازالې نه بغیر د هغو سره مونځ کړی وی، معلومه شوه چې مني نجس ده.

که چیرته شوافع دا وایي چې په حک، فرک او حت سره د مني ازاله بالکل کیدی نه شي یو څه اجزاء یې باقي پاتې کیږي او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حک باندې اکتفاء کړې ده نو معلومه شوه چې پاک دي، د دې الزامي جواب احنافو دا ورکړی دی چې د قضاء حاجت نه وروسته په کاڼو سره استنجاء مکمل ازاله نه شي کیدی یو څه اجزاء خو پاتې کیدی شي کوم چې د قلیل کیدو د وجې برداشت شوي دي لهذا تاسو انساني غلاظت ته پاک ویلي دي.

دلته دا خبره هم په یاد ولرئ چې د احنافو په نزد د درهم د اندازې نه کم نجاست معاف دی، لیکن د شافعیانو په نزد هیڅ اندازه معاف نه ده په دې وجه دوي مجبور شوي دي او دوي ته ویلی شو چې مني پاک دي لیکن په کاڼو باندې په استنجاء کې دوي څه کوي، دا خبره په یاد ولرئ چې په نرمو شیانو سره نجاست ګرول کیږي او په مګلو سره د هغه ازاله کیدی شي لکه په آئینه چاقو وغیره ددې مائع شیانو په پاکي باندې شافعیان هم قائل دي نو دا ضروري نه ده چې ووینځل شي نو هغه پاک دي ، احنافو او

مالکیانو د ترمذي په دې واضح روایت سره استدلال کړی دی د کوم چې الفاظ دا دي **﴿واغسله اذاكان رطباً وافركه اذاكان يابسا﴾**. شوافعو حضراتو چې کوم
دلائل وړاندې کړي دي د هغو جوابونه احنافو په دې طریقه ورکړي دي (المرقات ۲/۱۹۹).

**جواب**: د مني د تیونو په شیدو باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دی، ځکه چې د شیدو د راوتلو لار بله ده او د مني د وتلو لار بله ده، د شیدو لار پاکه ده او د منیو د وتلو لار د میتازو، مذي، ودي او د نجسو شیانو د وتلو لار ده، همدارنګه کله چې یو حلال خوراک په خیټه کې منقلب شي خوشایي ترې جوړېږي نو هغه نجس ګڼل کیږي دارنګه مني هم د طعام نه جوړ شوي نجس دي، دارنګه مني موجب حدث دی او کوم شی چې موجب حدث وي هغه نجس وي نو مني هم نجس دي بلکې په دوی سره حدث اصغر نه واجیبږي بلکې حدث اکبر واجیبږي.

باقي د ماشوم د غذاء چې کوم جوابونه دي نو په هغو سره د مني په طهارت باندې دلیل نه شي راوړل کیدی، ځکه ماشوم خو د حیض په وینې سره هم غذاء حاصلوي نوآیا د حیض وینه هم پاکه شوه، باقي ددې حضراتو دادلیل چې د مني نه انبیاء او اولیاء پیدا شوي دي نو واورئ چې د مني تحلیل د دم طرف ته دی د دم تحلیل د غوښې طرف ته دی او د غوښې تحلیل او تحویل د هډوکي طرف ته دی نو ددې تحویل تحول او تبدیل او د تبدل او ماهیت د تغیر د وجې شی پاکیدی شي.

باقي حضرت ابن عباس رضي الله عنه چې د مني تشبیه د ګرنګ سره ورکړې ده نو دا په پاکۍ کې نه ده بلکې د ازالې طریقه یې ښودل شوې ده چې زه هغه د ګرنګ په شان لرې کوم نو هغه زائلیږي، د ګرنګو په شان سخت دي غلیظ دي څخیدونکی شی دی، په یاد ولرئ په موجوده زمانه کې د مني دا کیفیت نه دی پاتې شوی بلکې د چای وغیره وغیره خوراکونو د وجې مني تینګ شوي دي نو اوس د هغو د ازالې دپاره د اوبو استعمالول په کار دي، هسې هم احتیاط د احنافو او مالکیانو په مسلک کې دی.

| |
|---|
| (۷) وَعَنْ أُمِّ قَيْسٍ بِنْتِ مِحْصَنٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّهَا أَتَتْ بِابْنٍ لَهَا صَغِيرٍ لَمْ يَأْكُلِ الطَّعَامَ |
| دام قیس بنت محصن رضي الله عنها نه روایت دی چې دې خپل ورکوټی ماشوم کوم چې تردې وخته خوراک نه |
| إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . فَأَجْلَسَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حِجْرِهِ، |
| شو کولی د رسول الله صلی الله علیه وسلم خدمت ته راوړ نو نبي علیه السلام د غه ماشوم په خپله غیږ کې کښینولو |
| فَبَالَ عَلَى ثَوْبِهِ ، فَدَعَا بِمَاءٍ ، فَنَضَحَهُ |
| ماشوم د دوی په کپړو باندې متیازې وکړې نبي علیه الصلاة والسلام اوبه وغوښتې او په کپړو باندې یې چهکاو |

| |
|---|
| **وَلَمْ يَغْسِلْهُ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)**[1]. |
| كړې او بيې يې ونه وينځلې. |

**توضيح** : وركوټى ماشوم يا ماشومه كوم چې تردې وخته د شودو نه بغير نور خوراک نه كوي د هغه د متيازو په باره كې د ټولو اتفاق دى چې ناپاكې دي، صرف داؤد ظاهري د ماشوم متيازو ته پاكې ويلي دي كوم لره چې هيڅ اعتبار نشته دى، هو په فقهاؤ كې د ماشوم د متيازو د تطهير په طريقه كې اختلاف دى په كوم سره چې وهم كيدى شي چې په نزد د شافعيانو د ماشوم متيازې پاكې دي دا وهم صحيح نه دى ځكه چې د شافعيانو په كتاب كې د هغو د ناپاكى تصريح موجوده ده. بول الغلام په باره كې د احاديثو مختلف الفاظ راغلي دي چيرته **رشح الماء** چيرته **نضح الماء** چيرته د **رش الماء** الفاظ ذكر دي، چيرته د **اتباع الماء** الفاظ او چيرته د **صب الماء** او چيرته د **لم يغسله غسلا** جمله ده د همدې اختلاف د وجې د فقهاء كرامو په مينځ كې هم اختلاف راغلى دى.

**د فقهاء كرامو اختلاف** : د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په نزد د غلام په بولو باندې صرف د اوبو شيندل كافي دي وينځلو ته يې ضرورت نشته، د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد يې وينځل ضروري دي، ليكن خفيف غسل كافي دى، د خفيف غسل ضرورت د دې وجې دى چې په احاديثو كې د **رشح، رش، نضح، صب** او **لم يغسله غسلا** الفاظ راغلي دي نو د هغو دپاره داسې معنى اخستل په كار دي كومه چې په ټولو الفاظو باندې صادقه راشي او هغه د غسل خفيف الفاظ دي كومه چې په ټولو الفاظو باندې صادقه راتلى شي او د ټولو روايتونو تعارض هم ورباندې ختم شوى دى، شوافعو او حنابلو ډير احتجاج كړى چې صريح حديث دى د كوم چې احناف او مالكيانو خلاف تللي دي. (المرقات ۲۰۰-۲/۲۰۱).

امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د ماشوم متيازې پاكې دي او كه نجسې دي؟ كه چيرته نجسې ومنل شي نو بيا خو د اوبو په شيندلو سره لا زياتې خورېږي لهذا د دې الفاظو نه د خفيف غسل معنى اخستل ډير ضروري دي، شوافعو حضراتو دا اعتراض كړى دى چې د ام قيس رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په روايت كې **فنضحه ولم يغسله** الفاظ راغلي دي په كوم كې چې د نضح نه وروسته د وينځلو صريح نفې ده او نضح د اوبو د شيندلو نه په غير په كومه بله معنى كې نه شي اخستل كيدى دواړه د يو بل مقابل دي.

---

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۳۲۶/۱، رقم الحديث : ۲۲۳، ومسلم في الصحيح ۲۳۸/۱ رقم الحديث: ۱۰۳-۲۸۷، وابو داود ۲۶۱/۱ رقم الحديث : ۳۷۴.

**جواب**: احنافو د دې دا جواب ورکړی دی چې د نضح نه مراد خفيف غسل دی او د **لم يغسله** نه مراد د مبالغې سره د وينځلو نفې ده ځکه چې د مسلم شريف په روايت کې د **لم يغسله غسلا** الفاظ راغلي دي نو دا مفعول مطلق د تاکيد دپاره راغلی دی او نفې ددې تاکيد طرف ته متوجه ده کومه چې د مؤکد او تاکيد مشهوره قاعده ده يعنې **لم يغسله غسلا مؤکدا** دارنګه د ابوداؤد شريف په روايت کې دي **فصب الماء ولم يغسله** او د صب لفظ په عربي کې د بهيولو دپاره استعمال شوی دی لکه په آيت کې دي﴿**أَنَّا صَبَبْنَا الْمَاءَ صَبًّا**﴾ کله چې د بهيولو لفظ موجود دی نو بيا صرف په رش رشح يا نضح سره کار نه جوړيږي. دارنګه د نضح لفظ په عربي کې د وينځلو دپاره هم راغلی دی لهذا ددې نه مخکې د حضرت اسماء بنت ابی بکر رَضِيَ اللهُ عَنهَا په روايت کې د **ثم لتنضحه** لفظ د حيض وينې د وينځلو دپاره راغلی دی کله چې هلته د اوبو شيندلو معنی نه شي اخستل کيدی. بهر حال په غسل خفيف سره ټولو احاديثو باندې عمل هم کيدی شي او د نجاست وينځلو شرعي ضابطه هم محفوظه پاتې کيدی شي او په احتياط باندې عمل هم کيدی شي نو دا بهتره ده، باقي د ماشوم د متيازو وينځلو ضابطه هغه ده کومه چې د عام نجاست ده، اوس سوال دادی چې د هلک او جينۍ په متيازو کې څه فرق دی چې شريعت په يو کې سهولت ورکړی او په دويم کې يې نه دی ورکړی په کوم باندې چې ښځو احتجاج کړی دی چې زمونږ حقوق ضايع شوي دي. علماؤ د دې يو جواب دا ورکړی چې د طبيعت او مزاج د فرق د وجهې د مسئلې په حيثيت کې فرق راغلی دی د جينۍ په متيازو کې تعفن او بد بويي ده او په هلک کې داسې نه ده . ليکن بهتر جواب هغه دی کوم چې شيخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې ورکړی دی چې دا فرق په اصل کې د خلکو د عادت او مجبورۍ د وجې دی ځکه چې هلکان مجلس ته راوړل کيږي په اوږه باندې پورته کيږي په غيږ کې نيول کيږي نو په دې کې مشقت او حرج دی چې د هغو متيازې بار بار ووينځل شي لهذا شريعت په هلک کې سهولت ورکړی دی او په جينکو کې دا مشقت او مجبوري نشته نو ځکه شريعت سهولت نه دی ورکړی، ښځو ته په خپله هره برخه او قسمت باندې صبر کول په کار دي کوم چې شريعت دوي ته ورکړي دي په هغو باندې شکر کول په کار دي. تقسيم کوونکي مونږ نه يو شريعت دی.(اشعة اللمعات ۲/۲۷۲).

## د مردارو پوستکو د دباغت حکم

| |
|---|
| (۸) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا. قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ |
| دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دی وايي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا آوريدلي دي چې فرمايل يې |

| |
|---|
| إِذَا دُبِغَ الْإِهَابُ فَقَدْ طَهُرَ[1]. |
| چې کله څرمن دباغت کړی شي نو پاکیږي. |

**توضیح: اذا دبغ الاهاب:** د دباغت تعریف داسې دی: **الدباغ هو اصلاح الجلد بما یمنع النتن والفساد.** دباغت په ډیرو طریقو سره کیدلی شي، یعنې په خاورې سره، په لمر سره یعنې ګرمی ته په اچولو سره په تقریظ یعنې د بعضو ونو په پوستکي سره او د مالګې په یو ځای کولو سره. د دباغت دپاره ضروري ده چې پوستکی د دباغت قابل هم وي لهذا د مار او مږې پوستکی قابل دباغت نه کیدو د وجې ددې نه خارج دي، بیا د حلت حرمت او دباغت دا حکم د مردارو ځناورو د پوستکو دپاره دی حلال خو حلال دي. د انسان پوستکی د عظمت او د خنزیر پوستکی د سخت نجاست د وجې قابل دباغت ندي.

**د فقهاؤ اختلاف:** د انسان او خنزیر د پوستکي نه بغیر د جمهورو فقهاؤ په نزد هر پوستکی په دباغت سره پاکیږي او د هغه نه فائده اخستل جائز دي د انسان پوستکی د انساني شرافت د وجې ممنوع دی او د خنزیر د نجس العین کیدو د وجې ممنوع او ناپاک دی. امام شافعي د سپي د پوستکي په باره کې لیکلي دي چونکه سپی نجس العین دی لهذا د هغه پوستکی په دباغت سره پاکیدی نه شي. د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد په دباغت سره د مردار ځناور پوستکی پاکیدی نه شي لهذا د هغه نه فائده اخستل جائز نه دي.

**دلائل:** جمهورو د زیر بحث حدیث نه بغیر تقریبا په راتلونکو شپږو احادیثو سره استدلال کړی دی په کومو چې په واضح طور د مردار پوستکي نه انتفاع او استفاده جائز ګرځول شوی دی کله چې دباغت کړی شي. امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ د عبد الله بن حکیم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په راتلونکي روایت سره استدلال کړی دی په کوم کې چې **(ان لاتنتفعوا من المیتة باهاب ولاعصب)** الفاظ راغلي دي. (المرقات ۲/۲۰۸).

**جواب:** جمهورو ددې دا جواب ورکړی دی چې داد مردار ځناور هغه پوستکی دی کوم ته چې دباغت نه شي ورکول کیدی او اهاب په لغت کې داسې غیر مدبوغ پوستکي ته ویل کیږي. همدارنګه د امت تعامل هم په جواز باندې دی او د هغه د یو حدیث په مقابل کې د ډیرزیات حدیثونه دي کوم چې تواتر ته نزدې دي دا حدیث د هغو سره معارض کیدی نه شي. (المرقات ۲/۲۰۸).

**ولاعصب:** د پلو (پټو) حکم هم د پوستکي په شان دی ځکه چې په پټو کې ژوند دی ځکه چې د هغې په پریکیدو سره درد وي او په هډوکي کې حیات نشته د هغه حکم د پوستکي په شان نه دی کومو حضراتو چې په پټو (پلو) کې د حیات نه انکار کړی هغه صحیح نه دی. (المرقات ۲/۲۰۸).

---

(۱) أخرجه مسلم في الصحیح ۲۷۷/۱ رقم الحدیث: ۱۰۵-۳۶۶، وأبو داود ۳۶۷/۴ رقم الحدیث: ۴۱۲۳، والنسائي ۱۷۳/۷، رقم الحدیث: ۴۲۴۱، والترمذي ۱۹۳/۴ رقم الحدیث: ۱۷۲۸.

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : تُصُدِّقَ عَلَى مَوْلَاةٍ لِمَيْمُونَةَ بِشَاةٍ |
| دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې میمونې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا یوې ازادې شوې وینزې ته ګډه په صدقه کې ورکړې |
| فَمَاتَتْ ، فَمَرَّ بِهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ . فَقَالَ : هَلَّا |
| (اتفاقا) هغه ګډه مړشوه تیرشو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې ګډه باندې اوویې فرمایل چې تاسوولې نه دی |
| أَخَذْتُمْ إِهَابَهَا فَدَبَغْتُمُوهُ فَانْتَفَعْتُمْ بِهِ " . |
| ویستلې پوستکی ددې ګډه نه هغه پوستکې ته به دې دباغت ورکړی وو فائده به دې ترې اخیستې وه |
| فَقَالُوا : إِنَّهَا مَيْتَةٌ . فَقَالَ إِنَّمَا حُرِمَ أَكْلُهَا . (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]. |
| خلکو عرض وکړو دا خو مردار دی دوې صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل صرف د هغه خوړل حرام دي. |
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ سَوْدَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا . زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ : مَاتَتْ لَنَا شَاةٌ . |
| درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زوجې مطهرې سودې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی فرمایې چې زمونږ یو ګډه مړشوې ؤ |
| فَدَبَغْنَا مَسْكَهَا ، ثُمَّ مَا زِلْنَا نَنْبِذُ فِيهِ |
| وومونږ دهغه نه پوستکی وویستلو او دباغت مو ورکړو او همیشه مو په هغه کې نبیذ (داوبو او دکهجورو |
| حَتَّى صَارَ شَنًّا [2]. |
| شربت) جوړولو تردې چې هغه مشک زوړ شو. |

## الْفَصْلُ الثَّانِي

## د جینې متیازې مکمل وینځل کیږي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ عَنْ لُبَابَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ الْحُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فِي حِجْرِ رَسُولِ اللهِ |
| د لبابه بنت حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی ، وایې چې: حضرت حسین بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په غیږ د رسول الله |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۳۵۵/۱، رقم الحديث ۱۴۹۲. ومسلم في الصحيح ۲۷۶/۱ رقم الحديث: ۱۰۰-۳۶۳. وأبو داود ۳۶۵/۴ رقم الحديث: ۴۱۲۰، والنسائي ۱۷۲/۷، رقم الحديث: ۴۲۳۶.

(۲) أخرجه البخاري في الصحيح ۵۶۹/۱۱، رقم الحديث ۲۲۸۹. والنسائي ۱۷۳/۷، رقم الحديث ۴۲۴۰.

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ . فَبَالَ عَلَى ثَوْبِهِ . فَقُلْتُ :

صَلَّاللّٰهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ کې وو چې هغه د رسول الله صَلَّاللّٰهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ جامه باندې متيازې وکړې ما عرض وکړو چې تاسو

اِلْبَسْ ثَوْبًا ، وَ أَعْطِنِي إِزَارَكَ حَتَّى أَغْسِلَهُ ، قَالَ : إِنَّمَا يُغْسَلُ مِنْ بَوْلِ الْأُنْثَى ،

بله جامه واغوندئ دا ماته راکړئ چې وې وينځم رسول الله صَلَّاللّٰهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ و فرمايل : د جينۍ متيازې وينځل

وَ يُنْضَحُ مِنْ بَوْلِ الذَّكَرِ.[1]

کيږي او د هلک په متيازو باندې د اوبو شيندل کافي دي.

وَ فِيْ رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ ، وَ النَّسَائِيِّ ، عَنْ أَبِي السَّمْحِ قَالَ يُغْسَلُ مِنْ بَوْلِ الْجَارِيَةِ ،

په ابو داؤد او نسائي کې د ابو سمح نه دا الفاظ نقل دي چې نبي عَلَيۡهِٱلسَّلَامُ و فرمايل د جينۍ متيازې وينځل

وَ يُرَشُّ مِنْ بَوْلِ الْغُلَامِ.

کيږي او د هلک په متيازو د اوبو شيندل کافي دي.

## د لارې د ګندګۍ حکم

(۱۲) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وَطِئَ أَحَدُكُمْ بِنَعْلِهِ

د ابو هريره رَضِيَٱللَّهُعَنۡهُ نه روايت دی چې نبي عَلَيۡهِٱلسَّلَامُ و فرمايل: څوک چې وخيجي په تاسو کې د خپلو چپړو

الْأَذَى فَإِنَّ التُّرَابَ لَهُ طَهُوْرٌ [2]. (وَلِابْنِ مَاجَهْ مَعْنَاهُ).

سره په ګندګۍ باندې نو خاوره د هغو پاکوونکې ده. او ابن ماجه هم د دې هم معنی روايت نقل کړی.

**توضيح : اذا وطئ :** که چيرته په پيزار يا موزې باندې د لارې ګندګي ولګيږي نو : هغه په حکم کې د ائمو اختلاف دی. تفصيل يې دا سې دی چې دا نجاست به يا جسم لرونکی وي يا به نرم وي، که چيرته د شرابو يا وينې يا د متيازو په شان نرم وي نو د ټولو په نزد د پيزار په اوبو سره وينځل دي د وينځلو نه په غير نه پاکيږي. او که چيرته نجاست جسم لرونکی وي نو په هغه کې خاورې واچول شي بـه جذب کړی شي او بيا ومګلی شي نو په دغه صورت کې د ائمو اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف :** د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُٱللَّهُ اوزاعي او امام ابو يوسف رَحِمَهُٱللَّهُ په نزد دا نجاست که

---

(۱) أخرجه أبوداؤد في السنن ۱/۲٦۱ رقم الحديث ۳۷۵. و اخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۱۷٤ رقم الحديث ۵۲۲ . وأخرجه أحمد في المسند ٦/۳۳۹.

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۲۲۷ رقم الحديث ۳۸۵ .

لوند وي او که وچ وي په دواړو صورتونو کې په مګلو سره پاکي حاصلیږي. د امام شافعي یو قول هم داسې دی. امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او په یوه قول کې د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد که چیرته د غه نجاست وچ وي نو په مګلو سره پاکي راځي او که لوند وي نو د وینځلو ضرورت دی. څرمنه او پیزار که چیرته نرم وو نو د کپړې په شان دې ځلې به وینځل او نچوړ کولی شي او که پیزار یا موزه سخته وه نو بیا په مګلو سره وینځل کیږي چې دپاسه پرې اوبه واچول شي او اوبه وبهیږي. ددې نه په غیر که چیرته نجاست د انسان په کپړه یا بدن باندې ولګیږي نو هغه په مساماتو کې ننوځي نو ځکه صرف وینځل دي. مږل کافي نه دي. باقي مذکور حدیثونه د ټولو ائمو خلاف دي نو بعضو علماؤ جواب ورکړی دی چې دلته حقیقي خبره نښته بلکې دا احادیث په توهم نجست باندې محمول دي. بعضو ویلي دي چې دا حکم د وچ نجاست متعلق دی مګر د دریم فصل د روایت تفصیل د دې خلاف دی. بعضو ویلي دي چې ددې احادیثو تعلق د طین شارع یعني د لارې د خټو سره دی. ځکه چې هغه د مجبورۍ د وجې د پاکو په حکم کې دي. په راتلونکي روایت کې هم دارنګه تشریح ده. (المرقات ۲۰۴–۲/۲۰۵).

## د نجاست توهم هیڅ شی نه دی

| |
|---|
| (۱۳) وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ لَهَا امْرَأَةٌ: إِنِّي امْرَأَةٌ أُطِيلُ ذَيْلِي، وَأَمْشِي فِي الْمَكَانِ الْقَذِرِ. |
| دام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی چې هغې ته یوې ښځې وویل زما لمن اوږده ده او زه په ناپاکه ځای کې ګرځم |
| قَالَتْ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: |
| (په دې خیال چې په لمن مې ناپاکي لګیږي) ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل چې فرمایلي ؤ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| يُطَهِّرُهُ مَا بَعْدَهُ [1]. |
| (د همدارنګه یو سوال په جواب کې) چې دا هغه شی پاکولی شي کوم چې په هغې پسې وروسته دی. |
| وَ قَالَا : الْمَرْأَةُ أُمُّ وَلَدٍ لِإِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ. |
| امام ابوداؤد او دارمي ویلي چې سوال کوونکې ښځه د ابراهیم بن عبد الرحمن بن عوف ام ولد وه چې نوم یې حمیده ؤ |

## د درنده په پوستکي باندې د کیناستلو حکم

| |
|---|
| (۱۴) وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِ يكَرِبَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. قَالَ نَهَى رَسُولُ اللهِ عَنْ لُبْسِ جُلُودِ |
| دمقدام بن معدیکرب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړې ده دا غوستلو د پوستکي |

(۱) أخرجه مالک في الموطا ۲٤/۱ رقم الحديث ۱٦ من كتاب الطهارة، وأخرجه أحمد في مسنده ٦/۲۹۰، وأخرجه الترمذي في السنن ۱/۲٦٦ رقم الحديث ۱۳۲، وأبو داود في السنن ۱/۲٦٦، رقم الحديث ۳۸۳

| |
|---|
| السِّبَاعِ ، وَ الرُّكُوبِ عَلَيْهَا [1]. |
| د درندګانو نه او په هغو باندې د سوریدلو نه . |
| (۱۵) وَعَنْ أَبِي الْمَلِيحِ بْنِ أُسَامَةَ عَنْ أَبِيهِ ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ جُلُودِ |
| ابو مليح بن اسامه رضي الله عنه د خپل پلار نه روایت کړی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم منع کړې ده د پوستکو د |
| السِّبَاعِ [2]. وَ زَادَ التِّرْمِذِيُّ ، وَ الدَّارِمِيُّ : |
| درندګانو نه،امام ترمذي او دارمي په دې روايت کې دا الفاظ زيات نقل کړي چې (رسول الله صلى الله عليه وسلم |
| أَنْ تُفْتَرَشَ ). |
| ددې نه هم منعه کړې ده چې) د درندګانو له پوستکي فرش جوړ کړی شي. |

**توضيح : نهى عن جلود السباع :** په دواړو حديثونو کې د درندګانو په پوستکي باندې د کېنیاستلو یا سوریدلو یا اغوستلو نه منعه شوې ده، په دې وجه د علماؤ د فتوی مطابق د درندګانو په پوستکي باندې کیناستل مکروه تحريمي دي، ځکه چې په هغه باندې په کیناستو سره د انسان په طبیعت کې د درندګانو صفت پیدا کیږي.

د درندګانو پوستکي د دباغت نه وروسته خرڅول کیدی شي او دا جائز دي ليکن د دباغت نه مخکې د هغې خرڅول او اخستل ناجائز دي، ښکاريانو خلکو ته سوچ کول په کار دي کوم چې د دباغت نه مخکې د زمري او نورو درندګانو پوستکي خرڅوي.(المرقات ۲/۲۰۷).

| |
|---|
| (۱۶) وَ عَنْ أَبِي الْمَلِيحِ أَنَّهُ كَرِهَ عَنْ جُلُودِ السِّبَاعِ. [3] |
| د حضرت ابو المليح په باره کې منقول دي چې هغه د درندګانو د پوستکو قيمت هم مکروه بللی وه. |
| (۱۷) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُكَيْمٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: أَتَانَا كِتَابُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| د عبد الله بن عکیم رضي الله عنه نه روایت دی وايي چې راغی يو مکتوب د رسول الله صلى الله عليه وسلم د طرف نه |

(۱) اخرجه ابو داود في السنن ۳۷۳/٤ رقم الحديث : ٤١٣١.

(۲) اخرجه ابو داود في السنن ۳۷٤/٤ رقم الحديث : ٤١٣٢ ، وأخرجه احمد في المسند ٧٤/٥.

(۳) ترمذي ۱۷۷۰.

أَنْ لَا تَنْتَفِعُوا مِنَ الْمَيْتَةِ بِإِهَابٍ وَلَا عَصَبٍ .[۱]

(په هغه کې دا ليکل شوي وو) چې تاسو د مردارو د څرمنو او د هغو د پلو نه فائده مه اخلئ.

(۱۸) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا . أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ أَنْ يُسْتَمْتَعَ

د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې فائده اخيستل کيدې شي د

بِجُلُودِ الْمَيْتَةِ إِذَا دُبِغَتْ[۲]

څرمنې د مردارې نه د دباغت نه وروسته.

(۱۹) وَعَنْ مَيْمُونَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا . قَالَتْ: مَرَّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رِجَالٌ مِنْ قُرَيْشٍ

د ميمونې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی چې تيريدل په رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې څه کسان د قريشو نه چې خپل

يَجُرُّونَ شَاةً لَهُمْ مِثْلَ الْحِمَارِ . فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :

يو مړ شوی ګډې په اوږو باندې بار کړې ؤ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې (دا وليدل) هغوي ته يې وفرمايل

لَوْ أَخَذْتُمْ إِهَابَهَا . قَالُوْا : إِنَّهَا مَيْتَةٌ .

کاش! تاسو د دې څرمنه ويستلې وی (نو هغه به مو په کار راغلې وه) هغوي وويل دا خو مردار دی (يعنې

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : يُطَهِّرُهَا الْمَاءُ وَ الْقَرَظُ (رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ).

ذبحه شوی نه دی) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمايل د دغه کيکر پانې او اوبه يې پاکولی شي (يعنې د دې.

دواړو شيانو په دباغت سره څرمن پاکيدلی شي).

(۲۰) وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبِّقِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ

د سلمه بن محبق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راغلو د تبوک د جنګ په موقع باندې

عَلَى أَهْلِ بَيْتٍ ، فَإِذَا قِرْبَةٌ مُعَلَّقَةٌ . فَسَأَلَ الْمَاءَ .

يو کور ته نو يو ناڅاپه (سمدستي) يې نظر په يوه راځوړند شوي مشک باندې ولګيده دوي او به وغوښتلې

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱۹٤/٤ ،أخرجه أبوداؤد في السنن ٤/۳۷۰ رقم الحديث:٤۱۲۷، واخرجه ابن ماجه في السنن ۱۱۹٤/۲ رقم الحديث : ۳٦۱۳.

(۲) أخرجه مالک في الموطا ۴۹۸/۲ رقم الحديث ۱۸ من كتاب الصيد ،و أبو داود في السنن ۳٦۸/٤ رقم الحديث : ٤۱۲٤ . وأخرجه ابن ماجه في السنن ۱۷٦/۷ رقم الحديث ٤۲٥۲.

فَقَالُوا : يَا رَسُولَ اللهِ ، إِنَّهَا مَيْتَةٌ . فَقَالَ :

خلکو عرض وکړ یارسول الله! دا (دباغت شوی دی) د مرداري پوستکی دی دوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل

دِبَاغُهَا طَهُورُهَا.[1]

په دباغت سره هغه پاک شوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### دوچې ګندګۍ په لګیدو سره اودس نشته

(۲۱) عَنِ امْرَأَةٍ مِنْ بَنِي عَبْدِ الْأَشْهَلِ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : قُلْتُ : يَا رَسُولَ اللهِ،

د بنو عبد اشهل د یوې ښځې بیان دی چې ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته عرض وکړو : چې یا رسول الله !

إِنَّ لَنَا طَرِيقًا إِلَى الْمَسْجِدِ مُنْتِنَةً ، فَكَيْفَ نَفْعَلُ إِذَا مُطِرْنَا ؟

جومات ته د راتلو زما چې کومه لار ده هغه ګنده ده کله چې باران وشي نو زه څه وکړم؟ هغې وویل چې

فَقَالَ : أَلَيْسَ بَعْدَهَا طَرِيقٌ هِيَ أَطْيَبُ مِنْهَا ؟ قُلْتُ : بَلَى

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : آيا دديې لارې نه وروسته کومه بله صفا لار نه شي راتلی ؟ ما وويل هو

قَالَ فَهٰذِهِ بِهٰذِهِ.[2]

وې فرمايل دغه پاکه لار د هغې ناپاکې لارې بدله ده.

(۲۲) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : كُنَّا نُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت کړی دی ويلي يې دي چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مونږ مونځ کولو

وَلَا نَتَوَضَّأُ مِنَ الْمَوْطِئِ.[3]

او په زمکه باندې د تلو د وجې مو اودس نه وو کړی.

**توضيح : لانتوضأ من الموطئ :** علماؤ ليکلي دي چې دلته د وضوء نه مراد لغوي وضوء دی يعنې د پښو

(۱) رواه أحمد، وأبو داؤد ۱۱۲۵

(۲) أخرجه أبو داود في السنن ۱/۲٦٦ رقم الحديث ۳۸٤ ، وأخرجه ابن ماجه في السنن ۱ ۱۷۷ رقم الحديث ۵۳۳

(۳) أخرجه الترمذي ۱ ۲٦۷ بعد الحديث ۱٤۳ ، و أخرجه أبو داود في السنن ۱ ۱٤۰ رقم الحديث ۲۰٤

وينځل نو په دې صورت کې مطلب دا شو چې که چیرته نجاست وچ وو نو په هغه وخت کې مونږ لغوي اودس هم نه دی کړی یعنې پښې مو نه دي وينځلې ځکه چې نجاست لګيدلی نه دی صرف په ټکر (ټچ) کیدو سره مو پښې نه دي وينځلې. او که چیرته د اودس نه شرعي اودس مراد شي نو مطلب دا شو چې کله نجاست لوند وي نو د هغې ګندګۍ د لګیدو د وجې مونږ شرعي اودس نه دی کړی بلکې صرف پښې مو وينځلې ځکه چې د ګندګۍ په لګیدلو سره اودس نه ماتیږي. (المرقات ۲/۲۱۱).

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَتِ الْكِلَابُ تُقْبِلُ وَتُدْبِرُ فِي الْمَسْجِدِ فِيْ زَمَانِ رَسُولِ اللهِ |
| د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې سپي به تلل راتلل په جوماتَ کې په زمانه د رسول الله |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ، فَلَمْ يَكُونُوا يَرُشُّونَ شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ [1]. (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ). |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې او صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د هغو د تلو راتلو د وجې نه هیڅ هم نه وو وينځلي. (ځکه |
| په ذکاة الارض یبسها باندې یې عمل کوه چې تفصیل یې مخکې تیر شوی دی). |

## د مایؤکل لحمه د متیازو مسئله

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا بَأْسَ |
| د براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي وو هیڅ خبره نشته د هغه شي |
| بِبَوْلِ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ ، وَ فِيْ رِوَايَةِ جَابِرٍ ، قَالَ : مَا |
| په متیازو کې د کوم شي چې غوښه خوړل کیږي او د جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت کې دا سې دي چې د کوم ځناور |
| أُكِلَ لَحْمُهُ فَلَا بَأْسَ بِبَوْلِهِ. (رَوَاهُ أَحْمَدُ، والدَّارَقُطْنِيُّ فِي سننه كتاب الطهارة). |
| غوښه خوړل کیدی شي د هغه په متیازو کې هیڅ خبره نشته. |

**توضیح**: **لابأس ببول مایؤکل لحمه**: د غیر ماکول اللحم ځناورو متیازې بالاتفاق ناپاکې دي. د ماکول اللحم ځناورو د متیازو په حکم کې د فقهاؤ اختلاف دی. (المرقات ۲/۲۱۱).

**د فقهاء کرامو اختلاف**: د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او د امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد د ماکول اللحم ځناورو متیازې پاکې دي. د امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابویوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد د ماکول اللحم ځناورانو متیازې نجسې دي. البته د امام ابویوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد د ماکول اللحم ځناورو په متیازو سره تداوي او علاج کول مطلقا جائز دي برابره خبره ده که د اختیار

حالت وي که د اضطرار حالت وي، مګر د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد په هغو سره علاج صرف د اضطرار په حالت کې جائز دی، یعنې د ځان د بچ کولو دپاره کله چې یې ماهر او دیندار طبیب ورته ووایي چې د متیازو په څکلو کې علاج دی نو جائز دي که داسې نه وي نو بیا ناجائز دي. په یاد لرئ کله چې د فقهاؤ د دلائلو په رڼائي کې د کوم شي په طاهر او نجس کیدو کې اختلاف را شي نو په هغه کې نجاست غلیظه باقي نه پاتې کیږي لهذا د ماکول اللحم څناورو متیازې ددې اختلاف د وجې د نجاست غلیظه نه د نجاست خفیفه درجې ته راغلې دي دې ته ویل کیږي (اختلاف امتي رحمة). (المرقات ۲/۲۱۲).

**دلائل**: د اول فریق دلیل زیر بحث حدیث دی په کوم کې چې **لابأس ببول مايوكل لحمه** الفاظ راغلي دي د دوي دويم دلیل د عرنیین قصه ده په کومه کې چې **اشربوا من البانها وابوالها** الفاظ دي.

د دويم فریق اول دلیل **استنزهوا عن البول فان عامة عذاب القبر منه** حدیث دی په کوم کې چې **البول** عام دی برابره خبره ده که د انسان وي که د حیوان وي هر کله چې د هغو نه د دومره بچ کیدو حکم دی نو هغو ته پاک څنګه ویل کیدی شي. ددويم فریق دويم دلیل دقرآن کریم په آیت کې اشارة النص دی: ﴿نُسْقِيكُم مِّمَّا فِي بُطُونِهِ مِن بَيْنِ فَرْثٍ وَدَمٍ لَّبَنًا خَالِصًا سَائِغًا لِلشَّارِبِينَ﴾ (النحل: ٦٦)

د استدلال طرز داسې دی چې د شودو د دوو نجسو شیانو دمینځ نه په صفا کیفیت د راوتلو ذکر دی نو دوه نجس شیان متیازې خوشایي او وینه دي. ددوی حضراتو دریم دلیل کې استقذار طبعي دی چې فطرت سلیمه او طبعیت د دې شي سوچ هم نه شي کولی.

**جواب**: د اول فریق د استدلال جواب دا دی چې زیر بحث روایت قابل استدلال نه دی ځکه چې ابن حزم رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي (**هذا الخبر باطل موضوع، كذا في آثار السنن**).

دارنګه په دې کې د لابأس لفظ دی کوم چې د قاعدې مطابق د خلاف افضل طرف ته اشاره کړې ده، باقي د عرنیین حدیث منسوخ دی ځکه چې په هغه کې د مثلې حکم وو کوم چې بالاتفاق منسوخ شوی دی نو د بولو حکم هم منسوخ شو په دې شرط چې دا فیصله وکړی شي چې په تاریخ کې د استنزهوا حدیث متاخر دی. همدارنګې عرنیین ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شودو څکلو ویلي وو او د بول نه یې ورته استنشاق ویلی وو هغوی څکل شروع کړل یا هغه خلک مرتد کیدونکي وو نو د وحې په ذریعه همدې نجسو ته د نجس څکل مقرر کړی شول.

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

۵ ربیع الاول ۱٤۱۰هـ

# بَابُ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ

## په موزو باندې د مسح بیان

په موزو باندې مسح کول چونکه د کتاب الله د آیة الوضوء سره په ظاهرې طور متعارضه وه ځکه چې په قرآن کریم کې د پښو د وینځلو سره د الی الکعبین لفظ راغلی دی او تر ښنګرو پورې مسح د هیچا په نزد نشته دې قید د پښو د وینځلو نه بغیر هر حکم رد کړی دی، په همدې وجه په پښو باندې د مسح کولو حکم امت په ډیر سوچ او فکر سره قبول کړی دی، په صحابه کرامو کې په پښو باندې د مسح کولو روایت کوونکی صحابي حضرت جریر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د تعجب په طور پوښتل شوي وو چې آیا په پښو باندې د مسح کولو حکم د سورة مائدې د آیت د نزول نه وروسته راغلی دی نو هغه ویلي وو چې وروره د سورة مائدې د نزول نه مخکې مونږ اسلام قبول کړی نه وو زه د هغه نه وروسته مسلمان شوی یم لهذا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په موزو باندې مسح کول د سورة مائدې نه وروسته دي.

ګویا چې د احادیث کثیرو مشهورو د وجې د قرآن په آیت کې تخصیص شوی او په موزو باندې مسح د هغه نه وروسته امت قبوله کړې ده، حضرت عبد الله بن مبارک رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې ما د مسح علی الخفین په باره کې په صحابه کرامو کې هیڅ اختلاف نه دی موندلی او نه په وروسته کې علماؤ په دې کې اختلاف کړی دی، بعضو د مسح علی الخفین راویان جمع کړي دي نو معلومه شوه چې د اتیاو (۸۰) نه زیاتو صحابه کرامو د دې روایت کړی دی په کومو کې چې عشره مبشره بالجنة علماء هم شامل دي، حضرت حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې زه د اویا (۷۰) نه د زیاتو داسې صحابه کرامو سره ملاو شوی یم کومو چې په موزو باندې د مسح کولو عقیده لرله، حضرت ابن عبد البر ویلي دي چې په دغه مسئله کې په سلف صالحینو کې هیچا انکار نه دی کړی. د امام کرخي رَحِمَهُ اللهُ قول دی چې کوم کس په موزو باندې د مسح کولو نه انکار وکړي او دا ناجائز وګڼي ماته د هغه د کفر خطره ده ځکه چې په دې باره کې احادیث تواتر ته رسیدلي دي، امام نووي رَحِمَهُ اللهُ په موزو باندې د مسح کولو اجماع نقل کړي ده. (المرقات ۲/۲۱۳).

امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې ما په موزو باندې مسح کول هغه وخت قبول کړل کله چې د نیمې ورځې د واضح لمر په شان احادیث ماته ورسیدل بیا ده په موزو باندې مسح کول د اهل السنة والجماعة نښه وګڼله ده د اهل السنتو د پاره درې شیان لازمي و ګرځول او وې فرمایل: ان تُفَضِّلَ الشیخین وتحب الختنین وتری المسح علی الخفین په یوه روایت کې د نحب نه تر آخره پورې د مخاطب د

صيغې سره د تحب راغلى دى پر ځاى حب يعنې د سني كيدو د پاره دا ضروري دي چې تاسو د رسول الله ﷺ دوه زومانو د حضرت علي رضي الله عنه سره او د حضرت عثمان رضي الله عنه سره محب وساتئ او په موزو باندې مسح كول جائزو گڼئ او شيخين يعنې صديق اكبر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه د ټولو نه بهتر وگڼئ، خلاصه دا ده چې په موزو باندې مسح كول شرعًا جائز دي دد ې نه انكار كوم مبتدع او بد باطن كولى شي لكه روافضو خذلهم الله كړى دى او خوارجو هم كړى دى.بيا دا خبره ياد ولرئ چې په موزو باندې مسح كول رخصت دى او د پښو وينځل بهتر دي او عزيمت دى، ليكن كه ځوك تكلف كوي او د مشقت سره پښې وينځي نو دا قسم وينځل بهتر نه دي، هو كه ځوك يې د تكلف نه بغير وينځي نو وينځل يې بهتر دي، د سفر السعادة صاحب ليكلي دي چې كوم عمل د رسول الله ﷺ پر وړاندې راغلى دى نو بغير د كوم تكلف نه هغه وړباندې عمل كړى دى او ذره يې هم د تكلف نه كار نه دى اخيستى. (المرقات ٢/٢١٣).

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## د توقيت في المسح مسئله

| |
|---|
| (١) عَنْ شُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: سَأَلْتُ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ |
| د شريح بن هاني رضي الله عنه روايت دى چې ما تپوس وكړو د حضرت علي رضي الله عنه د مسحې كولو په موزو |
| فَقَالَ: جَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَ لَيَالِيَهُنَّ |
| باندې هغه وفرمايل رسول الله ﷺ مقرر كړې ده موده د مسحې درې ورځې او درې شپې د |
| لِلْمُسَافِرِ، وَيَوْمًا وَلَيْلَةً لِلْمُقِيمِ [1] (رَوَاهُ مُسْلِمٌ). |
| مسافر د پاره او يوه ورځ او يوه شپه د مقيم د پاره. |

**توضيح : ثلاثة ايام : توقيت في المسح :** دا چې شريعت كله په موزو باندې د مسح كولو حكم كړى نو اوس دا كتل په كار دي چې آيا دا مسح كول تر كوم معلوم وخت پورې دي يا دا چې د هغې د پاره كوم وخت مقررشوى نه دى.دا مسئله د مسح د توقيت او عدم توقيت په عنوان سره بيان شوې ده په دې كې د فقهاء كرامو اختلاف دى.

(١) أخرجه مسلم في الصحيح ١/٢٣٢ رقم الحديث ٧٥-٢٧٦،والنسائي ١/٨٤، رقم الحديث: ١٢٨ ، وابن ماجة ١/١٨٣، رقم الحديث:٥٥٢.

**د فقهاء كرامو اختلاف** : د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد **مسح على الخفين** غير موقت ده د هغې دپاره هيڅ وخت مقرر شوی نه دی انسان چې كله مسح كول غواړي كولی يې شي په دې كې د مقيم او د مسافر هم كوم فرق نشته، د ائمه ثلاثه او د جمهور محدثينو او د جمهورو صحابو په نزد **مسح على الخفين** موقت ده دمقيم دپاره يوورځ او يو شپه ده او د مسافر دپاره درې ورځې او درې شپې ده. (المرقات ۲/۲۱۴).

**د مالكيو دلائل** : امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ او هغه حضرات كوم چې د مسح په عدم توقيت قائل دي دوي د ابوداؤد شريف په **باب التوقيت في المسح** په دوه روايتونو استدلال كړی دی، يو د حضرت خزيمة بن ثابت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت دی په كوم كې چې دا الفاظ موجود دي **(ولو استزدناه لزادنا)** يعنې كله چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د **مسح على الخفين** مسئله بيان كړه نو د مقيم دپاره يې يوه ورځ او يوه شپه مقرر كړل او د مسافر دپاره يې درې ورځې او درې شپې مقرر كړې او كه چيرته مونږ ددې نه د زياتو ورځو اجازت غوښتی وی نو دوي به د زياتو ورځو اجازت هم كړی وی.

د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ دويم دليل هم د سنن ابو داؤد د ابی بن عماره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت دی يوه صحابي پوښتنه وكړه **(امسح على الخفين؟ قال نعم قال يومًا قال يومين قال وثلاثة قال وماشئت)** د دې په اخيرنۍ جملې سره په عدم توقيت باندې مالكيانو استدلال كړی دی چې انسان څومره ورځې مسح كول وغواړي كولی يې شي(ابوداؤد ۱/۲۱)

په ابوداؤدكې دداسې يوحديث په سندكې ددې الفاظو زيادت هم شته **حتى بلغ سبعًا قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نعم مابدا لک** يعنې تر څه وخته پورې چې وغواړې كولی شې.

د مالكيانو دريم دليل د حضرت عقبه بن عامر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قيصه ده، دغه صحابي ډير زيات تيز رفتاره وو د شام نه تر مدينې پورې د يوې مياشتې سفر يې په يوه هفته كې كړی وو صحابه كرامو د جنګ په دوران كې د بعضو ضروورياتو دپاره مدينې منورې ته دا ليږلی وو، يو ځل ده د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې ما د يوې جمعې نه نيولې تر بلې جمعې پورې مسلسل مسح كړې ده.

**د جمهورو دلائل** : په دغه مسئله كې د جمهورو ډير زيات دلائل دي:(۱) په زير نظر د حضرت شريح بن هاني په حديث كې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مسافر دپاره درې ورځې او درې شپې او د مقيم دپاره يوه ورځ او يوه شپه مقرر كړي دي دا د مسلم روايت دی.

(۲) ددې سره د حضرت مغيره بن شعبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت دی هغه هم مسلم نقل كړی دی.

(۳) بيا د دويم فصل د حضرت ابوبكره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ صريح حديث او روايت دی په كوم كې چې د مسافر دپاره يوه ورځ او يوه شپه او د مقيم دپاره درې ورځې او درې شپې مقرر شوې دي دا روايت دارقطني او

ابن خزيمه نقل كړې دى.(۳) بيا د هغه سره روايت د حضرت صفوان بن عسال دى په كوم كې چې تر دريو ورځو پورې د موزو نه ويستلو وضاحت او تصريح ده. ددې نه بغير نور هم ډير دلائل دي مگر دا كافي دي.(المرقات ۲۱۴-۲۱۵-۲/۲۱۶).

**جواب**: د امام مالك رَحِمَهُ اللهُ دليل د حضرت خزيمه بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت جواب دا دى چې ابن دقيق العيد تصريح كړې چې په دې روايت كې د (**لو استزدناه لزادنا**) جمله زياتوالى ثابت نه دي ، **او كه** چيرته دا جمله ثابته هم شي نو دا د صحابي يو خيال دى د هغه رأيه ده د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مرفوع حديث نه دى ، بيا لو د انتفاء ثانى دپاره راغلى دى په سبب د انتفاء اول نو دلته د زيادت سوال هم نه دى شوى او نه زيادت شوى دى.باقي تر اوه ورځو پورې د مسحې د مودې والا حديث ضعيف هم دى او په خپل مقصود كې متعين هم نه دى بلكې محتمل دى په هغه كې دوه راويان مجهول دي امام بخاري او بيهقي ورته ضعيف ويلي دي، او محتمل داسې دى چې تر اوه ورځو پورې يوه مسح كافي گڼل شوې وه يا تر اوه ورځو پورې د ترتيب سره مسح شوې وه دا دواړه احتماله دي، يعنې د مسح د قاعدې مطابق په سفر كې د دريو ورځو نه وروسته موزې ويستل شوې پښې وينځل شوې بيا مسح شروع شوې نو اوه ورځې د يوې جمعې نه تر بلې جمعې پورې موزې په پښو كې وې او د ترتيب سره د قاعدې مطابق مسح

وه لكه څرنگه چې د تيمم په باره كې حديث دى :**الصعيد طيب طهور المسلم الى عشر سنين** نو تر لسو كلونو پورې يو تيمم نه شي چليدلى بلكې مطلب دا دى چې كه تر لسو كلونو پورې اوبه پيدا نه شي نو د قاعدې او ترتيب مطابق د تجديد سره په تيمم باندې تر لسو كلونو پورې عمل كيدلى شي، بالكل دا شان د مسح مذكور حديث هم دى، دا جواب په همدې شان د عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت پوهيدو دپاره هم كافي دى، د دې مطلب دا هم دى چې د ترتيب او قاعدې مطابق تر اتو ورځو پورې په موزو باندې مسح كيدله، د راتلونكي روايت د تشريح دپاره همدا تشريح كافي ده.

## د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه يو ركعت تلى ؤ

(۲) وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ غَزَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزْوَةَ تَبُوكَ

دمغيره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې ده د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د تبوك په غزا كې شركت كړى ؤ

قَالَ الْمُغِيرَةُ : فَتَبَرَّزَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قِبَلَ الْغَائِطِ ،

لهذا هغه ويلي چې (په همدې ورځو كې يو ورځ) د سهار نه مخكې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د قضاء حاجت دپاره تشريف

فَحَمَلْتُ مَعَهُ إِدَاوَةً قَبْلَ الْفَجْرِ ، فَلَمَّا رَجَعَ

ويوړلو ما هم داوبو مشكوله را واخيستو او ددوي دپاره مې راوړو كله چې دوي (د قضا حاجت نه) واپس راغلل

أَخَذْتُ أُهَرِيقُ عَلَى يَدَيْهِ مِنَ الْإِدَاوَةِ . فَغَسَلَ يَدَيْهِ

(او او دس د پاره كيناست) نو ما د نبي عليه السلام په لاسونو اوبه وراچولې لهذا دوي خپل دواړه لاسونه وويتخل

وَ وَجْهَهُ ، وَ عَلَيْهِ جُبَّةٌ مِنْ صُوفٍ ، ذَهَبَ يَحْسِرُ عَنْ ذِرَاعَيْهِ ،

او مخ يې ووينځلو نبي عليه السلام يوه د وړۍ چوغه اغوستې وه د هغې لستوڼي يې را پورته کول غوښتل

فَضَاقَ كُمُّ الْجُبَّةِ ، فَأَخْرَجَ يَدَيْهِ مِنْ تَحْتِ الْجُبَّةِ ،

ليكن لستوڼي تنګ وو (نو ځکه پورته نه کړې شو) دوي خپل دواړه لاسونه د چېنې د دننه نه راوويستل

وَ أَلْقَى الْجُبَّةَ عَلَى مَنْكِبَيْهِ ، وَ غَسَلَ ذِرَاعَيْهِ ، ثُمَّ مَسَحَ بِنَاصِيَتِهِ

چوغېي په اوږو باندې واچوله او دواړه لاسونه يې ترڅنګلو پورې ووينځل بيا يې مسح وکړه د سر په څلورمه

وَ عَلَى الْعِمَامَةِ ثُمَّ أَهْوَيْتُ ، لِأَنْزِعَ خُفَّيْهِ ،

حصه او په پګړۍ باندې بيا (کله) چې ما د نبي عليه السلام نه د موزو ويستلو اراده وکړه چې خپې ووينځي نو

فَقَالَ : دَعْهُمَا ؛ فَإِنِّي أَدْخَلْتُهُمَا طَاهِرَتَيْنِ

نبي عليه السلام وفرمايل چې هغه پرېږده ځکه چې ما (دخپو) د پاکې په حالت کې په هغو باندې مسح کړې وه

فَمَسَحَ عَلَيْهِمَا ، ثُمَّ رَكِبَ وَ رَكِبْتُ ،

(يعني داودس د کولو نه وروسته مې اغوستې) او په دواړو موزو يې مسح وکړه بيا زه او نبي عليه السلام سواره

فَانْتَهَيْنَا إِلَى الْقَوْمِ ، وَ قَدْ قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ ، وَ يُصَلِّي بِهِمْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ ،

شو خلکو ته راغلو نو د سهار مونځ د پاره جماعت ودرول شوي ؤ او عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه مونځ ورکولو

وَ قَدْ رَكَعَ بِهِمْ رَكْعَةً ، فَلَمَّا أَحَسَّ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

او يو رکعت يې کړې هم ؤ کله چې هغه ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د تشريف راوړلو احساس وشو نو هغه

ذَهَبَ يَتَأَخَّرُ ، فَأَوْمَأَ إِلَيْهِ ،

شاته راتللو (ترڅو چې رسول الله صلى الله عليه وسلم امامت وکړي) مګر نبي عليه السلام هغه ته اشاره وکړه (چې

فَأَدْرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِحْدَى الرَّكْعَتَيْنِ مَعَهُ ،

په خپل ځای او درېږه او مونځ ورکړه) لهذا رسول الله صلى الله عليه وسلم د مونځ يو رکعت د هغه سره وکړو (رسول

الله صلى الله عليه وسلم دويم رکعت د عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه په اقتداء کې اداء کړو) کله چې هغه سلام

فَلَمَّا قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قُمْتُ مَعَهُ . فَرَكَعْنَا الرَّكْعَةَ الَّتِيْ سَبَقَتْنَا [1].

وکړځولونو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اودريده او زه هم ورسره اودريدم اوکوم اول رکعت چې پاتې شوی ؤ هغه موو کړو

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## د مقیم او مسافر دپاره د مسحې موده

(۲) عَنْ أَبِي بَكْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَنَّهُ رَخَّصَ لِلْمُسَافِرِ

د ابوبکره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په موزو باندې د مسحې کولو اجازت د مسافر د

ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَ لَيَالِيَهُنَّ ، وَ لِلْمُقِيمِ يَوْمًا وَ لَيْلَةً ، إِذَا تَطَهَّرَ

پاره تر دریو ورځو او درې شپو پورې او مقیم ته تر یوې ورځې او یوې شپې پورې ورکړی کله چې یې اودس

فَلَبِسَ خُفَّيْهِ أَنْ يَمْسَحَ عَلَيْهِمَا . [2]

وي او په اودس کې یې موزې اغوستې وي.

وَ قَالَ الْخَطَّابِيُّ : هُوَ الْإِسْنَادُ ، هٰكَذَا فِي الْمُنْتَقَى .

خطابي ویلي چې دا حدیث د اسناد په لحاظه صحیح دی او په منتقي کې هم داسې منقول دي.

**توضیح** : **اذا تطهر** : د ابوبکره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې روایت کې او ددې نه مخکې د مغیره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت کې داسې قسم الفاظ راغلي دي چې په موزو باندې مسح هغه وخت صحیح ده کله چې هغه په کامل طهارت کې اغوستل شوې وي یعنې چې اودس وکړي او دا وخت په اودس کې وي او موزه په پښو کړي نو آینده مسح کولی شي ځکه چې موزه په طهارت باندې اغوستل شوې ده او د بهرنه چې نوی نجاست یا کوم حدث راغلی دی هغه په موزو کې د ننه سرایت نه دی کړی لهذا صرف مسح کافي ده، په دغه مسئله کې امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې ترڅو پورې پوره اودس نه وي شوی تر هغه وخته مسح جائز نه ده بلکې په کامل طهارت باندې موزه اغوستل د آینده مسحې دپاره شرط دي. امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي که چیرته کوم کس د اودس کولو په موقع رومبی پښې ووینځي او بیا موزې په پښو کړي او باقي اودس مکمل کړي نو په دغه صورت کې هم آینده مسح جائز ده، ځکه چې ده د خپود طهارت په صورت کې موزې اچولي دي. په اصل کې دا اختلاف په هغه اختلاف باندې مبني دی چې آیا په اودس کې ترتیب

(۱) أخرجه مسلم في الصحيح ۱/ ۳۱۷ رقم الحديث ۱۰۵-۲۷۴، وأبو داود ۱/ ۱۰۳ رقم الحديث ۱۴۹، والنسائي ۱/ ۸۳، رقم الحديث ۱۲۵ .

(۲) أخرجه الدار قطني في السنن ۱/ ۱۹۴ ، وأخرجه ابن ماجه في السنن ۱/ ۱۸۴ رقم الحديث ۵۵۶

یعني مرتب اودس فرض دی او که ترتیب فرض نه دی ، نو د امام شافعي په نزد په اودس کې ترتیب فرض دی اوس چا چې روميی پښې ووينځلې نو هغه غیر مرتب اودس وکړ کوم چې صحیح شوی نه دی نو موزې يې په طهارت باندې کله اغوستې دي؟ لیکن د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد چونکه غیر مرتب اودس هم صحیح دی لهذا دغه موزې په طهارت باندې اغوستل شوې دي نو مسحه جائز شوه،احتیاط د شافعي په مسلک کې دی او د حدیث ظاهر هم دې طرف ته اشاره کړې ده. (المرقات ۲/۲۱۷).

| |
|---|
| (۴) وَعَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا إِذَا كُنَّا |
| دصفوان بن عسال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته حکم کړی وُ چې کله به مونږ |
| سَفَرًا أَنْ لَا نَنْزِعَ خِفَافَنَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَ لَيَالِيَهُنَّ |
| په سفر کې وو چې موزې مه وباسئ تر دريو ورځو او دريو شپو پورې (د اودس کولو په وخت د خپو وينځلو |
| إِلَّا مِنْ جَنَابَةٍ ، وَ لٰكِنْ |
| دپاره) البته د جنابت د وجې (يعني د غسل واجب کېدو په صورت کې د لامبلو دپاره يې وباسئ) خومه |
| مِنْ غَائِطٍ وَبَوْلٍ وَنَوْمٍ [1]. |
| يې وباسئ د بولو یاد متیازو او یا د خوب د وجې نه. |

## مسئلة محل المسح في الخف

| |
|---|
| (۵) وَ عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ : وَضَّأْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةِ تَبُوكَ . |
| د مغیره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې ما په غزوه تبوک کې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته اودس کولو |
| فَمَسَحَ أَعْلَى الْخُفِّ وَأَسْفَلَهُ (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ) وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ مَعْلُولٌ |
| او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په موزو د لاندې او د پاسه مسح کړې وه ،او امام ترمذي وېلي چې دا حدیث معلول دی |
| وَ سَأَلْتُ أَبَا زُرْعَةَ وَ مُحَمَّدًا يَعْنِي الْبُخَارِيَّ عَنْ هٰذَا الْحَدِيثِ ، |
| او تپوس مې وکړو د ابو ذرعه رَحِمَهُ اللهُ او د محمد يعني امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ نه د دې حدیث په باره کې نو |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۱/۱۵۹ رقم الحديث ۹۶ ، والنسائي في السنن ۱/۸۳ ، رقم الحديث : ۱۲۷ ، وابن ماجه في السنن ۱/۱۶۰ رقم الحديث :٤۷۸ ، وأحمد في المسند ٤/۲۳۹.

فَقَالَا : لَيْسَ بِصَحِيْحٍ ، وَ كَذَا ضَعَّفَهُ أَبُو دَاوُدَ )[1].

دواړو وویل چې دا حدیث صحیح نه دی، همدارنګه امام ابوداؤد رَحِمَهُ اللّٰهُ هم دا حدیث ضعیف کړی دی.

**توضیح : فمسح اعلی الخف واسفله** : په موزو باندې د مسحې د محل په باره کې اختلاف دی، ټول درې صورتونه دي په دوو کې اتفاق دی په یو کې اختلاف دی.

١ **اختلاف** : په دې باندې د ټولو اتفاق دی چې اسفل خف یعنې لاندینې برخې په مسح باندې که چا نو اودس ونه شو لهذا مونځ هم ونه شو او په دې باندې هم د ټولو اتفاق دی چې که چیرته یو په برنۍ برخه باندې مسح کړې ده نو اودس اوشو او مونځ هم اوشو اګر که یې د موزو په باندې مسح نه وي کړې فریضه اداء شوه، اختلاف په دې دریم صورت کې دی چې د موزو باندې د مسحې سره د لاندینۍ برخې د مسح حیثیت او رتبه څه ده یعنې د دواړو په جمع لاف دی. دامام مالک او د امام شافعي رَحِمَهُمَا اللّٰهُ په نزد په اعلی او اسفل دواړو باندې کار دي امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ ددې په وجوب باندې قائل دی لیکن امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ په اندې د وجوب او په اسفل باندې د سنت کیدو قائل دی، امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ او صاحبینو د موزو په برنۍ برخه باندې مسح کول فرض ګڼي او په اسفل باندې نه فرض ده نه واجب ده او نه سنت. (المرقات ٢/٢٢١).

**دلائل** : دامام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ او دامام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ دلیل زیربحث دحضرت مغیره بن شعبه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د تبوک والاروایت دی، دامام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ او دامام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ دلیل د همدغه حدیث سره دمغیره بن شعبه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هغه حدیث دی په کوم کې چې په ظاهر الخف باندې دمسح ذکر دی، دارنګه د دې حضراتو مضبوط دلیل هغه روایت هم دی کوم چې حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نقل کړی دی او په کوم کې چې د مسئلې دعلت طرف ته هم اشاره شوې ده، دا حدیث ددې باب آخرنی حدیث دی چې دین که چیرته د عقل لاندې شي نو د موزو په لاندینۍ برخه دې مسح وکړی شي مګر رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسې نه دي کړي.

**جواب** : احنافو او حنابلو د دې حضراتو د روایت جواب دا ورکړی دی چې دا روایت معلول دی او امام بخاري او ابو زرعه ضعیف بللی دی لهذا هغه قابل استدلال نه دی . (المرقات ٢/٢٢١).

(٢) وَ عَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَمْسَحُ

د حضرت مغیره بن شعبه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی چې ما رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لیدلی دی چې مسح به یې

---

(١) اخرجه ابو داود في السنن ١/١١٦ رقم الحديث : ١٦٥

عَلَى الْخُفَّيْنِ عَلَى ظَاهِرِهِمَا .[۱]

كوله په موزو باندې د پاسه .

## په جورابو باندې د مسحې مسئله

(۷) وَ عَنْهُ ، قَالَ : تَوَضَّأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ، وَ مَسَحَ

د حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم اودس وكړو او مسح يې وكړه

عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَالنَّعْلَيْنِ .[۲]

په جوربين او نعلين باندې.

**توضيح : مسح على الجوربين : جوربين** تثنيه ده واحد يې **جورب** دی د كوم ترجمه چې جراب ده، جورب معرب دی دا په اصل كې فارسي لفظ گورپ دی او د هغه اصل گورپا دی د كوم معنی چې د پښو قبر دی، جورابې هم د پښو دپاره قبر دی، جوربين داسې تثنيه ده څرنگه چې خفين تثنيه ده مفرد يې خف دی او خف موزې ته ويل كيږي، د دوی دواړو تثنيه ځكه راوړل شوې چې دا مسئله د تثنيې سره خاص ده په يوه جورابه او يوه موزه باندې مسح نه شي كيدلی، بهرحال د خفينو او جرموقينو نه په غير د يخنۍ نه د ځان ساتلو دپاره جورابې هم استعماليدی شي، اوس سوال دا دی چې په هغو باندې مسح كيدی شي او كه نه شي كيدی نو په دې باندې د پوهيدو دپاره د جوربينو په اقسامو پوهيدل ضروري دي، يا به د فقهاؤ اختلاف په پوهه كې راشي، په احاديثو كې د خفينو او جوربينو نه په غير د جرموقينو نوم هم راغلی دی، دا د خفينو د حفاظت دپاره په خفينو دپاسه اغوستل كيدی شي او په جوربينو كې د فقهاؤ اختلاف وكوری، ليكن د جوربينو يو شمير اقسام هم وگورئ. (المرقات ۲/۲۲۳).

**د فقهاء كرامو اختلاف** : د جوربينو څلور قسمه دي : (۱) جوربين مجلدين دا هغه دي د كومو چې دپاسه او ښكته څرمن لگول شوې وي د تمامو فقهاؤ اتفاق دی چې دا جوربين د خفينو په حكم كې دي په هغو باندې مسح جائزده. (۲) جوربين منعلين دا هغه جوربينو دي د كومو چې صرف په لاندې تلي باندې يا صرف په پوړتنۍ برخه باندې څرمن لگول شوې وي په دې كې هم اتفاق دی چې په هغو باندې مسحه جائزده. (۳) جوربين رقيقين دا داسې جوربين دي چې دپاسه او د لاندې قدم تر پښه ليدل كيږي په كومو كې چې مسلسل انسان د پيزار نه په غير نه شي گرځيدلی نو په دې كې هم اتفاق دی چې په داسې

---

(۱) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ ۹۸، وَأَبُو دَاوُد ۱۶۱

(۲) أخرجه احمد في المسند ۲۵۲/۴ رقم الحديث : ۱۵۹ ، وابن ماجه في السنن ۱۸۵/۱ رقم الحديث ۵۵۹ .

جوربينو باندې مسح جائزنه ده . (۴) او که چيرته جوربين نه منعلين وي او نه مجلدين وي او نه رقيق وي بلکې ثخينين وي نو په همدې ثخينينو کې اختلاف دی ليکن د ثخينينو دپاره د څلورو شرطونو موندل ضروري دي :(۱) چې دومره پيړې او مضبوطې وي چې د پيزار نه بغير درې ميله مسلسل د هغو سره تګ ممکن وي.(۲) د کوم طرف نه کاشف قدمين نه وي بلکې ساتر قدمين وي.(۳) داسې ثخينين وي چې په اوبو باندې د قدم په ايښودلو سره په هغو کې اوبه نه جذب کيږي.(۴) د کوم ربړ تسمې وغيره سره د هغو استمساک نه وي شوی بلکې په خپله جوختې وي داسې جوربين کومې چې ثخينين وي په هغو باندې د جمهورو او صاحبينو په نزد باندې مسح جائزده، امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې ترڅو پورې جوربين مجلدين يا منعلين نه وي په هغو باندې مسح جائز نه ده ، ځکه چې د قرآن د آيت نه د پښو وينځل معلوم شوي دي ليکن په احاديثو مشهورو سره د خفينو مسحه هم منل شوې ده لهذا کله چې جوربين منعلين يا مجلدين وي نو هغه د خفينو په حکم کې راځي نو ددې مشهورو احاديثو د وجې د قرآن په حکم کې تخصيص شوی دی ليکن که چيرته جوربين همدا قسم منعلين يا مجلدين نه وي نو هغه بيا د خفينو په حکم کې نه شي راتلی لهذا د قرآن په آية الوضوء باندې د جوربينو په خبر واحد سره زيادت روانه دی، بيا په دې حديث کې ابهام او ډير احتمالونه هم شته چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په کوم قسم جوربينو باندې مسح کړې وه آيا رقيق وې مجلدين وې که منعلين وې دا ټول تفصيل نامعلوم دی، بهر حال امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ قطع نظر د همدې دلائلو د ده رجوع د جمهورو مذهب طرف ته ثابته ده او په دې باندې فتوی ده چې په ثخينينو جوربينو باندې مسح جائز ده، دلته دا افسوسناکه خبره هم اوريدل شوې ده چې اهل ظواهر حضرات کوم چې خپل ځانونه اهل حديث شماري دوی د کوم شرط نه بغير په هر قسم جورابو باندې مسح کوي او بنې مزې کوي حالانکه ټول امت په دې باندې متفق دی چې جوربين که چيرته رقيق وي نو په هغو باندې مسح جائزنه ده .

مادا مسئله ۲۶ رمضان ۱۴۰۲هجري کې مکه مکرمه کې ليکله چې ددې نه يو څو ورځې مخکې مې حرم کې يو پوليس وليد وچې ډيرې نرې جورابو باندې مسحه کوله إنا لله وإنا اليه راجعون احتياط، دعبادت، محنت، محبت او مشقت او ديانتداري چيرته لاړل.

**والنعلين:** په پيزار باندې په مستقل طور د هيچا په نزد مسح کول جائزنه دي لهذا ټولو فقهاؤ په دې روايت کې تاويل کړی بعضو ويلي دي چې اصل مسح په جوربين باندې وه مګر رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسې پيزار په پښو کړی ؤ چې د هغه سره په جوربينو باندې مسح کيدی شوه نو څه مسح په نعلين باندې تبعًا وشوه په دې وخت کې واو په معنی د مع شو بعضو دا حديث منسوخ بللی لکه په سنن دارمي کې چې دي.

## الفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| (۸) عَنِ الْمُغِيرَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: مَسَحَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلَى الْخُفَّيْنِ. |
| د مغیره بن شعبه رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په موزو باندې مسح وکړه (دامې چې |
| فَقُلْتُ : يَا رَسُولَ اللهِ ، نَسِيتَ ؟ |
| ولیدل) ما وویل یارسول الله! ستاسو هیرشوي دي (یعنې موزې موونه ویستلې اوخپې موونه وینځلې) |
| قَالَ : بَلْ أَنْتَ نَسِيتَ، |
| رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل بلکې ستا هیر شوي دي (چې زما طرف ته د نسیان نسبت کوې) ځکه |
| بِهٰذَا أَمَرَ رَبِّي عَزَّ وَ جَلَّ[1]. |
| چې خدای عزوجل ماته همداسې حکم کړی دی. |
| (۹) وَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، أَنَّهُ قَالَ : لَوْ كَانَ الدِّينُ بِالرَّأْيِ |
| د حضرت علي رضي الله عنه نه روایت دی چې که چیرته دین (صرف) په رأیه او عقل باندې موقوف شي نو |
| لَكَانَ أَسْفَلُ الْخُفِّ أَوْلَى بِالْمَسْحِ مِنْ أَعْلَاهُ ، وَ قَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ |
| واقعې چې په موزو باندې دپاسه نه د ښکته برخې مسح به بهتره وای ، او یقینا ما لیدلی دی رسول الله |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ عَلَى ظَاهِرِ خُفَّيْهِ[2]. |
| صلی الله علیه وسلم دپاسه په موزو باندې مسح کوونکی. |

الحمد لله حمدا کثیرا نن ۲۶ رمضان ۱۴۲۲ هـ په مکه مکرمه کې تر دې ځای پورې د مشکوة شرح مکمل شوه.

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۱/۱۰۸ رقم الحديث : ۱۵۶، واحمد في مسنده ۴/۲۵۳.

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۱/۱۱۴ رقم الحديث : ۱۶۲.

۶ ربیع الاول ۱۴۱۰ھ

# بَابُ التَّيَمُّمِ
## د تیمم بیان

تیمم په لغت کې د قصد په معنی دی (المرقات ۲/۲۲۵) د قرآن کریم آیت ﴿وَلَا آمِّينَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ﴾ **(مائدة: ۲)** کې (**امین ای قاصدین البیت الحرام**) د قصد په معنی سره راغلی دی.

**رمی بصدور العیس منخرق الصبا ۞ فلم یدر خلق بعده این یمما**

د شرع په اصطلاح کې د تیمم تعریف داسې شوی: (**قصد التراب ومایقوم مقامه علی وجه مخصوص بنیة الطهارة**). (المرقات ۲/۲۲۵)

بعضې علماو د تیمم د نیت الفاظ داسې نقل کړي دي (**لویت ان اتیمم لرفع الحدث واستباحة الصلوة**). لیکن د دې داستان ویلو ته هیڅ ضرورت نشته، بلکې د زړه نیت کافي دی.

د تیمم حکم په پنځمه هجري کې هغه وخت راغلی وو کوم وخت چې رسول الله ﷺ د بنو مصطلق د غزا په سفر کې وو حضرت عائشې رضي الله عنها د دې تولو قیصه په خپله اورولې ده امام بخاري هغه نقل کړې ده ترجمه یې او ګورئ: حضرت عائشې رضي الله عنها ویلي چې زه د رسول الله ﷺ سره د دوي په بعضو سفرونو کې وتلې وم مونږ مقام بیدا یا مقام ذات الجیش کې وو چې زما هار (امیل) مات شو کوم ځای کې ورک شو د هار موندلو دپاره رسول الله ﷺ هم پاتې شو او صحابه کرام هم پاتې شول د مونځ وخت شوی وو بل طرف ته د خلکو سره اوبه بالکل نوې خلکو د دې شکایت حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته وکړ چې د عائشې د وجې خلک پاتې شوي دي اورسول الله ﷺ هم پاتې شوی دی حالانکه د هیچا سره اوبه نشته په دې وجه حضرت ابو بکر صدیق رضي الله عنه ماته راغی دا وخت رسول الله ﷺ ویده شوی وو او د دوي ﷺ مبارک سر زما په ورانه باندې وو حضرت ابو بکر صدیق رضي الله عنه ماته وویل چې تا رسول الله ﷺ او خلک را ایسار کړي دي او د هیچا سره اوبه نشته عائشې رضي الله عنها ویلي دي چې ابو بکر صدیق رضي الله عنه ماته ښه غوسه وکړه بیا یې زه په خپل لاس سره زه په ولو کې ووهلم ما حرکت د دې دپاره ونه کړو چې رسول الله ﷺ زما په پتون باندې مبارک سر ایښی وو چې هسې نه دوي ته تکلیف ونه رسیږي، په دې وخت کې رسول الله ﷺ راپورته شو او دا وخت اوبه بالکل نوې چې یو ناڅاپه الله تعالی د تیمم حکم نازل کړ او خلکو تیمم شروع کړ (دا سهولت یې چې ولید) حضرت اسید بن حضیر وفرمایل (**ماهی**

**باول بزکتکم یا آل ابي بکر**) ای د ابو بکر اولاده دا ستاسو لومړی برکت نه دی . په یو روایت کې د حضرت اسید بن حضیر داسې الفاظ دي ای عائشې! الله تعالی دې تاته د خیر جزاء درکړي په خدای قسم په تا چې کله هم پریشانو ونکی حالت راغلی دی په هغه کې الله تعالی ستا سره د ټول امت دپاره نیکي اچولې ده، عائشې رضي الله عنها ویلي دي چې زه په کوم اوښ باندې سوره وم هغه ناست وو مونږ چې هغه پورته کړو نو د هغه لاندې هار (امیل) پیدا شو .

## الْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### په ټولو امتونو باندې د امت محمدیه فضیلت

| |
|---|
| (۱) عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ . قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : فُضِّلْنَا |
| د حذیفه رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل مونږ ته فضیلت راکړی شوی په مخکنیو |
| عَلَى النَّاسِ بِثَلَاثٍ : جُعِلَتْ صُفُوفُنَا كَصُفُوفِ الْمَلَائِكَةِ ، |
| امتونو باندې په دریو شیانو سره (۱) ګرځول شوي زمونږ صفونه (په مونځ یا جهاد کې) د فرښتو د صفونو په |
| وَ جُعِلَتْ لَنَا الْأَرْضُ كُلُّهَا مَسْجِدًا ، |
| شان (۲) زمونږ دپاره ټوله زمکه مسجد (جومات) ګرځولې شوې دی (چې چیرته وغواړې مونځ کولی شې) |
| وَ جُعِلَتْ تُرْبَتُهَا طَهُورًا إِذَا لَمْ نَجِدِ الْمَاءَ [1]. |
| (۳) کوم وخت چې مونږ اوبه پیدا نه کړو نو خاوره زمونږ دپاره پاکوونکې ده. |

**توضیح : فضلنا علی الناس بثلاث** : دا فضیلت او دا خصوصیت د امت محمدیه علی صاحبها الف الف تحیة دی دلته. درې خصوصیتونه ذکر دي، په نورو روایتونو کې ددې نه زیات هم ذکر شوي دي لیکن په شمار او تعداد کې تعارض نه شي کیدی ځکه عدد اقل د عدد اکثر نفې نه شي کولی همدارنګه په فضائلو کې زیاتی د الله د طرفه نه دی، نو روسبې د دریو ذکر راغلی بیا زیات شول.

**الناس** : ددې نه مراد د مخکنیو امتونو خلک دي ځکه راتلونکي خلک تر قیامته پورې ددې امت د اول دور د حضراتو صحابه کرامو تابع دي. لهذا د الناس نه مراد د امت راتلونکي خلک مراد کیدی نه شي. (المرقات ۲/۴۲۵).

---

(۱) اخرجه مسلم في الصحيح ۳۷۱/۱ ، رقم الحديث ٤-٥٢٢، وأخرج احمد في المسند ۳۸۳/۵

**د سید المرسلین ﷺ خصوصیات**: دلته په دې پوهیدل ضروري دي چې د رسول الله ﷺ خصوصیت او د دوي د امت خصوصیات ډیر زیات دي لیکن دلته صرف د دریو ذکر شوی دی په باب هذه الامة او باب فضائل سید المرسلین کې د هغو ټولو خصوصیاتو ذکر دی دیو څو دلته هم ذکر کول مناسب دي چنانچه دوي ﷺ ویلي دي :

(۱) د یوې میاشتې تر مسافې پورې لرې په دښمن باندې د رعب اچولو خصوصیت راکړی شوی دی
(۲) غنیمتونه زما دپاره حلال شوي دي (۳) ماته د شفاعت کبری اعزاز راکړی شوی دی۔
(۴) زه د ټولې نړۍ د انسانانو دپاره رسول جوړ شوی رالیږل شوی یم
(۵) زه خاتم النبیین یم (۶) زما په ذریعه د نبوت برکات پوره شوي دي
(۷) ماته جوامع الکلم راکړی شوي دي (۸) ماته د ټولې زمکې کونجیانې راکړی شوې دي
(۹) زما نوم احمد ایښودل شوی دی (۱۰) او زما امت د ټولو نه بهتر امت ګرځول شوی دی
(۱۱) زما مخکښې وروستنې ګناهونه (لعزشونه) معاف کړی شوي دي
(۱۲) د عرش عظیم لاندې خزانې نه ماته د سورة بقرې اخیرنې آیتونه راکړی شوي دي
(۱۳) ماته حوض کوثر راکړی شوی دی (۱۴) د قیامت په ورځ به ماته داسې بیرغ راکړی شي د کوم لاندې به حضرت آدم علیه السلام او د هغه نه بغیر ټول خلک وي.

ابو سعید نیشاپوري رحمه الله په خپل کتاب شرف المصطفی کې د رسول الله ﷺ شپیته خصوصیات ذکر کړي دي حقیقت دا دی چې :

**فأن فضل رسول الله لیس له ۞ حد فیعرب عنه ناطق بفم**

**صفوفنا**: ددې نه د جنګ میدان او د معرکې د میدان صفونه مراد دي بعضو د مونځ د صفونو خبره هم کړې ده. (المرقات ۲/۲۲۵).

**الارض کلها مسجداً**: یعنې ټوله ځمکه ددې قابل جوړه شوې چې په هغې باندې مونږ مونځ کولی شو کله چې ځای پاک وي برابره خبره ده که هغه د مسجد خاوره وي او که د مسجد نه بغیر نوره وي، په بنی اسرائیلو باندې دومره تنګي وه چې هغوي د مسجد نه بهر په هیڅ ځای کې مونځ نه شو کولی او په مسجد کې هم د جماعت نه بغیر ورته جائز نه وو، د غنیمت مال به یې د خوړلو پر ځای سوځولو او د جامې نه به یې د نجاست لګیدو ځای غوڅولو د شپې پټه ګناه به یې د ورځې په دروازه باندې لیکل شوې وه چې دغه کس دا ګناه کړې ده، په غوښه کې یې وازده نه شوه خوړلی وغیره وغیره. (المرقات ۲/۲۲۶).

**وجعلت تربهتا لنا طهورا**: یعنې د زمکې خاوره یې د اوبو قائم مقام ګرځولې ده یا لکه څرنګه چې په اوبو سره پاکي حاصلیدلی شي د تیمم په صورت کې په خاورو سره هم طهارت حاصلیدلی شي، په دې

حدیث او دې نه وروسته په نورو احادیثو کې د تیمم فضائل او یو شمیر اخلاقي مسائل وړاندې راغلي دي، د تیمم په مسائلو کې څلور داسې لوی مقامونه دي چیرته چې د فقهاء کرامو اختلاف دی. (المرقات ۲/۲۲٦).

**د تیمم په مسائلو کې د فقهاء کرامو اختلاف**: (۱) اول اختلاف په دې کې دی چې په کومو شیانو باندې تیمم جائز دی او په کومو باندې ناجائز دی نو دا امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ د مشهور قول مطابق تیمم صرف په تراب منبت یعنې زرخیزه خاوره باندې جائز دی، امام ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې د تراب منبت سره سره په شګه باندې هم تیمم جائز دی، د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد هر هغه شی کوم چې د زمکې د جنس نه وي په هغه باندې تیمم جائز دی، بیا امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د جنس الارض متعلق ویلي دي چې هر هغه شی کوم چې د زمکې سره متعلق وي هغه هم په جنس الارض کې شامل دی لهذا د ده په نزد په هغه لرګي باندې هم تیمم جائز دی د کوم چې یوه برخه د زمکې سره پیوسته وي.

امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په **جنس الارض** کې دا قید لګولی دی چې کوم شی په سوځولو سره نه سوځول کیږي په حل کولو سره نه حل کیږي په هغه باندې تیمم جائز دی، لهذا د ده په نزد په لرګي، سرو زرو، سپینو زرو، پیتل، اوسپنه، تانبا، مالګه وغیره شیانو باندې تیمم جائز نه دی، هو که چیرته په همدغو شیانو باندې ګرد او غبار پریوځي نو بیا جائز دی او هغه د تراب منبت په حکم کې دي.(المرقات ۲/۲۲٦)

**دلائل**: د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ، امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ دلیل ﴿ **فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا** ﴾

**ای ترابا منبتا** په کوم کې چې صرف د زرخیزې ځمکې ذکر دی، هو امام ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ د یو حدیث د وجې په شګه باندې هم تیمم وهل جائز ګرځولي دي، حدیث داسې دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته یو وفد راغی او هغه عرض وکړو: (**فقالوا انا نکون بالرمال الاشهر الثلاثة والاربعة ویکون فینا الجنب والحائض والنفساء ولا نجد الماء فقال عَلَيْهِ السَّلَامُ علیکم بالارض**) (**احمد بیهقي طبراني**).

د احنافو او مالکیانو دلیل هم د قرآن دا آیت دی ﴿ **فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا** ﴾ لیکن د دوي په نزد صعید عام دی د هغه نه د زمکې مخ مراد دی د تراب منبت سره خاص نه دی ځکه چې په دویم آیت کې ﴿ **صَعِيدًا جُرُزًا** ﴾ او ﴿ **صَعِيدًا زَلَقًا** ﴾ الفاظ راغلي دي کوم چې د **وجه الارض** دپاره عام دي د تراب منبت سره خاص نه دي.

دویم عقلي دلیل دا دی چې د تیمم د جواز اصلي علت آساني او سهولت دی او په **تراب منبت** قید سره یسر په عسر سره بدلیږي خصوصا د عربستان په ریګستان کې د تراب منبت پیدا کیدل د او بو د پیدا

کولو نه ډیر زیات سخت دي.
دریم دلیل دا دی چې رسول الله ﷺ د تیمم د حکم د راتلو نه وروسته هم نه په حضر کې او نه په سفر کې د تراب منبت تلاش کړی دی او نه یې د دې حکم ورکړی دی، بعضو حضراتو د خاورو په شتون کې په خالص نرم ملائم کاڼي باندې تیمم وهلی دی که چیرته په خاوره باندې وکړی شي نو دا اختلاف به هم ووځي او په احتیاط به هم عمل وکړی شي.
(۲) اختلاف په دې کې دی چې تیمم طهارت مطلقه اصلیه دی که طهارت ضروریه دی، یعنې په یو تیمم سره ډیر مونځونه اداء کیدلی شي او که صرف یو مونځ په یوه تیمم سره اداء کیدلی شي.

امام شافعي رحمه الله په نزد تیمم طهارت ضروریه دی (والضرورة تقدر بقدر الضرورة) لهذا په یو تیمم سره یو فرض مع لواحقه جائزدي نورناجائزدي، ائمه احنافو ویلي دي چې تیمم داودس قائمقام او خلیفه دی اودس اصل او تیمم د هغه فرع ده نو کوم کار چې د اصل وو هغه کار د قائم او خلیفه هم شو په اودس سره کله چې ډیر مونځونه کیدلی شي نو په یو تیمم سره ډیر مونځونه هم کیدلی شي دا د احنافو لومړی عقلي دلیل دی کوم چې د شرعي نص نه مستنبط دی، د احنافو دویم دلیل دا دی چې د تیمم والا سړي پسې شاته د اودس والا مونځ د شافعیانو په نزد هم جائزدی ددې نه دا خبره واضحه شوې ده او د ظابطې مطابق دا منلی شي چې د تیمم طهارت د اودس په شان طهارت مطلقه اصلیه دی هو یوه خبره شته چې که چیرته تیمم د عبادت غیر مقصوده دپاره وو نو په هغه سره عبادت مقصوده اداء کیدی نه شي.
دلته د لطیفې په طور دا مسئله هم زده کړې چې د عبادت غیر مقصوده دپاره د اوبو په موجودګۍ کې هم تیمم جائزدی ثواب ورکول کیږي مثلا یو کس جومات ته ځي صرف کیناستل غواړي نو اګرچې په حوض کې اوبه شته یاهم دغه کس د حصول برکت او طهارت دپاره تیمم کولی شي یا په شپه کې د خوب دپاره د اودس پر ځای تیمم وکړي نو جائز دی، یا د دیني او فقه کتابونو لمس کولو دپاره تیمم کول غواړي نو کولی یې شي او له ګناه نه بچ کیدی شي هغه که صغیره ولې نه وي او د تقوی مقام حاصلولی شي.
(۳) دریم اختلاف د تیمم په کیفیت کې دی چې آیا د تیمم په فعل کې ضربتین دي او که ضربة واحدة ده؟
نو د امام احمد بن حنبل رحمه الله، داوُد ظاهري، اسحاق بن راهویه او د اکثرو محدثینو په نزد په تیمم کې **ضربة واحدة** کافي ده یعنې یو ځل لاس په خاورو باندې ووهل شي په مخ او بازو باندې مسح وکړی شي، د امام ابو حنیفه رحمه الله، امام شافعي رحمه الله او د صاحبینو یعنې د جمهورو په نزد په تیمم کې ضربتین ضروري دي، ضربة للوجه وضربة لليدين إلى المرفقين. (المرقات ۲/۲۲۶).
**دلائل**: احنافو مالکیو او شوافعو یعنې جمهورو یو دلیل د مسند بزار روایت دی په کوم کې چې حضرت عمار بن یاسر رضي الله عنه ویلي دي: **قال كنت في القوم حين نزلت الرخصة في المسح بالتراب**

**اذا لم تجد الماء فامرنا فضربنا بواحدة للوجه ثم ضربة اخرى لليدين الى المرفقين.** (مسند بزار). (المرقات ۲/۲۲۷).

په دې روایت کې د تیمم دپاره دوه ضربونه په واضح طور ذکر شوي دي، د جمهورو دویم دلیل هم د بزار د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی په کوم کې چې دا الفاظ دي: **ان النبی صلی الله علیه وسلم قال التیمم ضربتان ضربة للوجه وضربة لليدين الى المرفقين** نصب الرایه).

د جمهورو دریم دلیل د حضرت جابر رضي الله عنه روایت دی د کوم تخریج چې حاکم کړی دی دارقطني هم نقل کړی دی په دې مرفوع حدیث کې دا الفاظ دي: **(قال التیمم ضربتان ضربة للوجه وضربة للذراعين الى المرفقين)** نصب الرایه).

د جمهورو څلورم دلیل د مشکوة شریف د باب التیمم فصل ثالث کې د حضرت عمار بن یاسر رضي الله عنه روایت دی په کوم کې چې د دوه ضربو تصریح موجوده ده **(ثم عادوا فضربوا فاكفهم)**.

د جمهورو پنځم دلیل د مشکوة په ۵۰ صفحه باندې د حضرت نافع روایت دی د کوم چې الفاظ دا دي:

**ضرب رسول الله صلی الله علیه وسلم بيديه على الحائط ومسح بهما وجهه ثم ضرب ضربة فمسح ذراعيه.**

د حنابلو اهل ظواهرو او د محدثینو دلیل د حضرت عمار بن یاسر رضي الله عنه روایت دی په کوم کې چې د یوه ضرب ذکر دی او بیا په مخ او په کفینو باندې د مسح ذکر دی، همدارنګه د حضرت ابو جهیم رحمه الله روایت کې هم د یو ضرب ذکر دی، دې حضراتو د جمهورو په روایتونو باندې اعتراض هم کړی دی چې هغه ضعیف دي د کومو جواب چې راتلونکی دی. (المرقات ۲/۲۲۶).

**جواب:** جمهورو ویلي دي چې د عمار رضي الله عنه په روایت سره د یو ضرب په صراحت سره پته نه لګیږي دلته صرف دومره دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په مخ او لاسونو باندې په یو وار مسح وکړه دا چې په یو ضرب یې کړې ده که په دوه ضربونو یې کړې ده دا په حدیث کې نشته، همدارنګه د تعلیم په دوران کې رسول الله صلی الله علیه وسلم د نمونې په طور وښودل چې د غسل دپاره په خاورو رغښتلو ته ضرورت نشته بلکې دا ښودل وو چې د جنابت دپاره هم د اودس په شان تیمم کول کافي وو صرف همدا ښودل مقصود وو، باقي د جمهورو دلائل که څه هم کمزوي دي نو پروا نشته د کثرت روایاتو د وجې نه په هغو کې ډیر زور شته، دویمه خبره دا هم ده چې د یو ضرب په حدیث باندې په عمل کولو سره د دوه ضربونو په حدیث باندې عمل نه شي کیدلی او که چیرته د دوو ضربونو په حدیث باندې عمل وکړی شي نو د یو ضرب په حدیث باندې خود بخود عمل راځي نو احتیاط په دې کې دی.

دریمه خبره دا هم ده چې په تیمم کې خاوره استعمالیږي کومه چې د اصل په اعتبار سره مطهره نه ده

بلکې ملوثه ده او اوبه د اصل په اعتبارسره مطهرې دي کله چې يو اوبه د استعمال نه وروسته بيا استعماليدی نه شي نو د يوې خاورې اثر او استعمال شده اجزاء تاسو د دويم اندام دپاره دوباره څنګه استعمالوئ بهر حال د جمهورو په مسلک کې ډير زيات احتياط دی. (المرقات ۲/۲۲٦).

(۴) اختلاف د تيمم په محل کې دی ځکه چې د يد لفظ په لغت کې د تخرګونو پورې ويل شوی دی او د الى المرافق قيد خو په قرآن کې د اودس دپاره شته دی د تيمم دپاره نشته نو ځکه په دې کې د فقهاء کرامو رايې مختلفې شوې دي، امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او د اسحاق بن راهويه مسلک دا دی چې تيمم صرف تر مړوندونو پورې دی تول لاس مراد نه دی. (المرقات ۲/۲۲۷).

د راجحو اقوالو مطابق د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ يعنې د جمهورو په نزد د ټول لاس تر څنګلو پورې مسح ضروري ده، البته امام مالک رَحِمَهُ اللهُ يې تر مړوندونو پورې فرض ګڼي او تر څنګلو پورې يې سنت ګڼي، ابن شهاب زهری تر اوږو پورې د مسح قائل دی، بهر حال د دريو يا څلورو ضربونو او همدارنګه تر اوږو پورې د مسح کولو ائمه اربعو کې هيڅوک پرې قائل نه دي لهذا دارنګه روايات په ابتدائي دور باندې محمول دي کله چې د تيمم نوی نوی حکم راغلی ؤ او په تيمموا باندې هر صحابي د خپل خپل انداز موافق عمل کړی وو دا کومه ضابطه نه وه په وروسته کې ضابطه هغه جوړه شوه چې دوه ضربونه دي تر څنګلو پورې مسح ده په دې باندې د جمهورو عمل دی د حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حديث کې اضطراب هم دی امام احمد رَحِمَهُ اللهُ تر مړوندونو پورې مسح کول په قطع يد باندې قياس کړي دي چې هلته هم د مطلق يد ذکر دی مګر امت تر مړوند پورې مراد اخستلی دی نو دلته هم داسې مراد اخستل په کار دي، د دې جواب جمهورو دا ورکړی دی چې قطع د يد د زجراتو نه دی او تيمم د عباداتو نه دی په زجراتو کې شريعت کم نه په کمې سزا باندې د عمل حکم کړی دی ليکن په عباداتو کې زيات نه په زيات باندې د عمل حکم شوی دی لهذا دا قياس مع الفارق دی.

## د جنابت غسل دپاره تيمم

| |
|---|
| (۲) وَعَنْ عِمْرَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا فِي سَفَرٍ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د حضرت عمران رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې (يو ځل) مونږ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په سفر کې وو |
| فَصَلَّى بِالنَّاسِ . فَلَمَّا انْفَتَلَ مِنْ صَلَاتِهِ . إِذَا هُوَ بِرَجُلٍ مُعْتَزِلٍ |
| خلکو ته يې مونځ ورکړو کله چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مونځ نه فارغ شو نو څه ګورو چې يو کس تنها ناست |
| لَمْ يُصَلِّ مَعَ الْقَوْمِ . فَقَالَ : مَا مَنَعَكَ يَا فُلَانُ |
| دی د خلکو سره يې مونځ نه وو کړی لهذا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ای فلانيه! ته څه شي منع کړی يې |

أَنْ تُصَلِّيَ مَعَ الْقَوْمِ ؟ قَالَ : أَصَابَتْنِي جَنَابَةٌ ، وَلَا مَاءَ .

د خلکو سره د مونځ کولو نه؟ هغه وویل چې ماته د لامبلو ضرورت وو او اوبه پیدا نهشوې رسول الله

قَالَ عَلَيْكَ بِالصَّعِيدِ فَإِنَّهُ يَكْفِيكَ .(مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1].

ﷺ وفرمایل (په داسې صورت کې) تاته په خاورو تیمم وهل لازم وو او تاته هغه کافي وو.

(۲) وَعَنْ عَمَّارٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَقَالَ: إِنِّي أَجْنَبْتُ

عمار رضي الله عنه ویلي دي چې یو کس حضرت عمر رضي الله عنه ته راغی او وې ویل ماته د لامبلو ضرورت دی او

فَلَمْ أُصِبِ الْمَاءَ .. فَقَالَ عَمَّارٌ لِعُمَرَ :

اوبه نه پیدا کیږي (نو او س زه تیمم وکړم او که نه؟) عمار رضي الله عنه چې دا او ریدل عمر رضي الله عنه ته یې وویل چې

أَمَا تَذْكُرُ أَنَّا كُنَّا فِي سَفَرٍ أَنَا وَ أَنْتَ ؟ فَأَمَّا أَنْتَ فَلَمْ تُصَلِّ ،

تاسو ته په یاد نه دي چې زه او ته په سفر کې وو (او دواړو ته د لامبلو ضرورت وو) نو تاسو مونځ نه وو کړی

وَ أَمَّا أَنَا فَتَمَعَّكْتُ فَصَلَّيْتُ ، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

ما په زمکه باندې غښتلو راغښتلو سره مونځ کړی وو بیا مار سول الله ﷺ ته صورتحال ذکر کړو

فَقَالَ إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيكَ هٰكَذَا " فَضَرَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الْأَرْضَ

نو نبي عليه السلام وفرمایل چې تاسو ته داسې کول کافي ؤ لهذا دوې دواړه لاسونه په زمکه باندې ووهل بیا

وَ نَفَخَ فِيهِمَا ، ثُمَّ مَسَحَ وَجْهَهُ وَ كَفَّيْهِ [2]. (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ) وَلِمُسْلِمٍ نَحْوُهُ، وَفِيهِ: قَالَ إِنَّمَا

یې هغه پوک کړل (یعنې خاورې یې پاکې کړې) په هغو سره یې په خپل مخ او لاسونو باندې مسح وکړه.

يَكْفِيكَ أَنْ تَضْرِبَ بِيَدَيْكَ الْأَرْضَ ثُمَّ تَنْفُخَ ثُمَّ تَمْسَحَ بِهِمَا وَجْهَكَ وَكَفَّيْكَ)

**توضیح : اصابتنی جنابة ولاماء :** د پورته دواړو حدیثونو نه دا خبره واضحه شوې ده چې تیمم لکه څرنګه چې په حدث اصغر کې د اودس قائمقام دی په حدث اکبر یعنې جنابت کې هم د غسل قائم مقام دی برابره ده که غسل د جنابت وي که د حیض یا د نفاس وي د جمهورو صحابو، تابعینو او د ائمه اربعو دا مسلک دی چې د اوبو نه پیدا کیدو په صورت کې تیمم د غسل جنابت دپاره جائز دی، بیا کله چې

---

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۴۴۷/۱ ،رقم الحديث : ۳۴۴، ومسلم في الصحيح ۴۷۴/۱ رقم الحديث:۳۱۲-۶۸۲.

(۲) اخرجه البخاري في الصحيح ۴۴۳/۱ ،رقم الحديث :۳۳۸، وابو داود ۲۲۸/۱ رقم الحديث :۳۲۲، والنسائي ۱۶۵/۱، رقم الحديث: ۳۱۲ .

انسان په اوبو باندې قادر شي نوغسل دې وكړي، پورته دواړه حديثونه د جمهورو دليل دى، دا رنگه د دې باب په اول حديث كې هم دا فرمايل شوي دي چې خاوره د هر نجاست دپاره پاكوالى دى لهذا د حدث اصغرا و اكبردواړو دپاره خاوره طاهره او مطهره ده، د صحابه كرامو په طبقه كې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسلک دا دى چې تيمم د جنابت غسل دپاره جائزنه دى ليكن د دومره صريح احاديثو په موجودگى كې د دوى قول پرينبودل شوى دى، دويم جواب دا دى چې د دوي رجوع نقل شوې ده كله چې رجوع وكړى شوه نو د ټولو صحابه كرامو او جمهورو مسلک يو شو. بعضو محققينو ويلي دي چې ددې حضراتو مسلک د اول نه د جمهورو سره دى ليكن دوي دا قول سدًا للذرائع لاندې غوره كړى دى ترڅو چې خلک ددې نه نامناسب گټه پورته نه كړي چې معمولي شان عذر راشي او لږه شان يخني وي نو هغه به د جنابت غسل دپاره تيمم وهل شروع كړي د خلكو ددې ستيا د وجې دې حضراتو خلک د تيمم وهلو نه منعه كړي وو. (المرقات ۲/۲۲۶).

ابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بحث په دوران كې ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته اصل حقيقت داسې رو ښانه كړه او وى فرمايل : **لو رخصت لهم فى هذا كان اذا وجد احدهم البرد هكذا يعني تيمم وصلى (بخاري ۱/۵۰)** د پورته حديث پس منظر داسې دى چې د سائل په جواب كې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه د تيمم نه منعه كړو نو حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ټوله واقعه واوروله چې زما او ستا تنازع شوې وه مگر رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تيمم جائز كړه لهذا همدې سائل ته هم د تيمم حكم كول په كار دي.

## د سلام د جواب دپاره تيمم

| |
|---|
| **(۴) وَعَنْ أَبِي الْجُهَيْمِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الصِّمَّةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ مَرَرْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** |
| د ابو جهيم بن حارث بن صمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې (يو ځل زه) د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره نزدې تيريدم |
| **وَ هُوَ يَبُولُ ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ ، فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ** |
| دوي داوخت متيازې كولې ما ورته سلام وكړو، دوي جواب رانه كړو (او چې د متيازو نه فارغ شو) د يو |
| **حَتَّى قَامَ إِلَى جِدَارٍ ، فَحَتَّهُ بِعَصًى كَانَتْ مَعَهُ ، ثُمَّ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى الْجِدَارِ** |
| ديوال سره ودريده او په يوه امساء سره كومه چې د دوي سره وه ديوال يې ورباندې وكرولو دواړه لاسونه يې |
| **فَمَسَحَ وَجْهَهُ وَ ذِرَاعَيْهِ ، ثُمَّ رَدَّ عَلَيَّ** |
| ورباندې ووهل بيا يې په خپل مخ او دواړو لاسونو باندې ترڅنګلو پورې مسح وكړه زما د سلام جواب يې راكړو |
| **( وَ لَمْ أَجِدْ هٰذِهِ الرِّوَايَةَ فِي الصَّحِيحَيْنِ وَلَا فِيْ " كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ ،** |
| د مشكوة مصنف ويلي دي چې ما نه دى پيدا كړى دا روايت په صحيحينو كې او نه د حميدي په كتاب كې |

| |
|---|
| وَ لٰكِنْ ذَكَرَهُ فِيْ : شَرْحِ السُّنَّةِ " قَالَ : هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ ). |
| خومحی السنة په شرح السنه کې ذکر کړی او ویلي دي چې دا حدیث حسن دی) لهذا صاحب مصابیح |
| ته په کار وه چې دا روایت یې په اول فصل کې ذکر کړی نه وی. |

**توضیح** : **فسلمت علیه** : ددې نه مخکې دوه ځلې دا مسئله لیکل شوې ده چې د عبادت غیر مقصوده د پاره کوم تیمم وکړی شي په هغه سره عبادت مقصوده اداء کیدلی نه شي، د مقصوده مطلب دا دی چې هغه عبادت په خپله اصل او مقصود وي او د کوم بل عبادت دپاره وسیله او ذریعه نه وي لکه مونځ تلاوت وغیره، او غیر مقصوده هغه عبادت دی کوم چې د غیر دپاره وسیله او ذریعه وي یا داسې پوهه شئ چې عبادت مقصوده هغه دی کوم چې په خپله مقصود او اصل وي او عبادت غیر مقصوده هغه دی کوم چې په خپله اصل نه وي بلکې د کوم عبادت مقصوده په ضمن کې وي لکه تیمم اودس او غسل چې دي، دارنګه دا خبره مخکې تیره شوې ده چې تیمم د داسې عبادت دپاره هم کیدی شي د کوم چې د مکمل فوت کیدو خطر وي او د هغه کوم خلیفه او نائب نه وي لکه د اخترونو او جنازې مونځ یا د سلام جواب، دلته د سلام د جواب دپاره رسول الله ﷺ تیمم د دې دپاره وکړو چې دجواب فوت کیدو خطره وه.(المرقات ۲۲۸-۲/۲۲۹).

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## چې اوبه پیدا نه شي نو تیمم کوئ

| |
|---|
| ﴿۵﴾ عَنْ أَبِيْ ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الصَّعِيْدَ الطَّيِّبَ وَضُوْءُ |
| دحضرت ابوذر رضی الله عنه نه روایت دی وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: پاکه خاوره دا اودس |
| الْمُسْلِمِ وَ إِنْ لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ عَشْرَ سِنِيْنَ فَإِذَا وَجَدَ الْمَاءَ فَلْيُمِسَّهُ |
| دی د مسلمان دپاره اګر که هغه لس کاله اوبه پیدا نه کړي او کوم وخت چې اوبه پیدا کړي نو ودې وینځي |
| بَشَرَتَهُ فَإِنَّ ذٰلِكَ خَيْرٌ[1]. |
| بدن خپل ځکه چې دا بهتر دی. |
| ( وَ رَوَى النَّسَائِيُّ نَحْوَهُ إِلٰى قَوْلِهٖ عَشْرَ سِنِيْنَ). |
| او نسائي هم دارنګه روایت تر عشر سنین پورې نقل کړی دی. |

(۱) اخرجه الإمام احمد في المسند ۱۵۵/۵ ، واخرجه الترمذي في السنن ۱ ۲۱۱ رقم الحديث ۱۲٤.

## د علم نه بغير مسئله مه بيانوئ

| |
|---|
| (٦) وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ . قَالَ : خَرَجْنَا فِيْ سَفَرٍ . فَأَصَابَ رَجُلًا مِنَّا حَجَرٌ، |
| جابر رضي الله عنه ويلي دي چې مونږ په سفر روان وو چې په مونږ کې يو کس په کاڼړي ولګيدو په کوم سره |
| فَشَجَّهُ فِيْ رَأْسِهِ . فَاحْتَلَمَ فَسَأَلَ أَصْحَابَهُ : |
| چې د هغه سر زخمي شو اتفاقاً هغه ته دلا مبلو ضرورت هم پيښ شو نو د خپلو ملګرو نه يې پوښتنه وکړه چې |
| هَلْ تَجِدُوْنَ لِيْ رُخْصَةً فِي التَّيَمُّمِ ؟ قَالُوْا : مَا نَجِدُ لَكَ |
| ستاسو په نزد په همدا سې حالت کې ماته تيمم کول جائز دي؟ هغو ورته ووېل: مونږ نه شو پيدا کولی ستا د |
| رُخْصَةً وَ أَنْتَ تَقْدِرُ عَلَى الْمَاءِ . فَاغْتَسَلَ فَمَاتَ . فَلَمَّا |
| دپاره رخصت چې کله ته اوبه استعمالولی شې، لهذا هغه کس غسل وکړو او هغه مړ شو، کله چې مونږ د |
| قَدِمْنَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أُخْبِرَ بِذٰلِكَ ، |
| سفر نه واپس راغلو د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو نو دا واقعه مو ورته بيان کړه نو نبي |
| قَالَ : قَتَلُوْهُ ، قَتَلَهُمُ اللهُ . |
| عليه السلام (په ډېر خفګان او تکليف سره) وفرمايل: خلکو هغه وژلی دی، خدای دې هغوي ووژني (بيا يې |
| أَلَا سَأَلُوْا إِذَا لَمْ يَعْلَمُوْا ، فَإِنَّمَا |
| وفرمايل) هغوته چې کوم خبره معلومه نه وه هغوی د هغې پوښتنه د پوهيدونکي نه ولې نه کوله؟ ځکه |
| شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَالُ . إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيْهِ أَنْ يَتَيَمَّمَ ، وَ يَعْصِبَ |
| چې د ناپوهې د بيماري علاج پوښتنه کول دي او هغه د پاره دا کافي وه چې تيمم يې کړی وی او تړلي يې |
| عَلٰى جُرْحِهِ خِرْقَةً ، ثُمَّ يَمْسَحَ عَلَيْهَا ، وَ يَغْسِلَ سَائِرَ جَسَدِهِ[1]. |
| وي په زخم باندې پټي او په هغې يې مسح کړې وی او بيا يې ټول بدن وينځلی وی. |
| ( وَ رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِيْ رَبَاحٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ). |
| ابن ماجه دا روايت د عطاء بن ابي رواح نه او هغه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه نقل کړی دی. |

(١) اخرجه ابوداود في السنن ٢٣٩/١ رقم الحديث ٣٣٦ ، واخرجه الدار قطني في السنن ١٨٨/١ رقم الحديث :٣ من باب جواز التيمم لصاحب الجرح .

**توضيح : قتلوه قتلهم الله** : دلته دا سوال پيدا شوی دی چې دې حضراتو دې مريض ته کومه مسئله چې بيان کړې وه په دې کې د هغوی غلطي وه او دا مسئله حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ښودلې وه هلته هم د دوی نه غلطي شوې ده چې د جنابت غسل دپاره تيمم کافي نه دی .مگر دلته رسول الله صلی الله علیه وسلم همدا خلک وويرول دا سې جمله يې وويله کومه چې پورته ذکر شوې ده او هلته حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه هيچا ويرولي نه دي حالانکه په دواړو ځايونو کې يوه مسئله وه چې تيمم د غسل دپاره جائز نه دی او د حضرت عمر رضي الله عنه نه خو مونځ هم قضاء شوی وو، د دې جواب علماو دا ورکړی دی چې دا حضرات د اجتهاد اهل وو او صالح للاجتهاد کسان کله چې اجتهادي غلطي وکړي نو هغو ته يو اجر ورکول کيږي ويرول کيږي نه، او دلته د دې خلکو نه چې کومه غلطي شوې ده دا هم اجتهادي غلطي وه ليکن دا خلک صالح للاجتهاد نه وو کله چې دوي د اجتهاد قابل نه وو او په اجتهاد کې يې غلطي وکړه نو د هغوی ويرول ضروري وو .دا خلک څنگه اهل نه وو دا څنگه معلومه شوه نو په حديث کې لفظ د العی راغلی دی د هغه ترجمه عاجز او علمي ده او مراد جهل دی، معلومه شوه چې دا خلک اهل نه وو او کله چې په خپله اهل علم نه وو اهل اجتهاد نه وو نو دوی ولې فتوی ورکړه په کومې سره چې انسان مړ شو، دوی به د کوم عالم نه پوښتنه کړې وی هغه به صحيح مسئله ور ښودلې وی د دې نه معلومه شوه کله چې مسئله په خپله درته معلومه نه وي نو د صاحب علم نه پوښتنه په کار ده او د هغه تقليد په کار دی او دا تقليد دی، مسلمانانو خپل ائمه شارعين نه دي جوړ کړي بلکې په خپله د نه پوهيدو د وجې يې د زمانې د ټولو نه د لوی عالم مجتهد خبره يې منلې ده، همدغه تقليد مونږ منلی دی، غير مقلد هم يو څه همداسې کوي مگر خپل ځان ته مقلدين نه وايي، رسول الله صلی الله علیه وسلم ويرونه وکړه مگر تاوان يې د اجتهاد د وجې وانخيست.

## تيمم يې ووهلو او مونځ يې وکړ بيا اوبه پيدا شوې نو څه دې وکړي؟

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (۷) وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: خَرَجَ رَجُلَانِ فِي سَفَرٍ . فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ | | | | | | | |
| دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی چې دوه کسان په سفرروان شو (د سفرپه وخت کې)د مونځ وخت شو | | | | | | | |
| وَ لَيْسَ | مَعَهُمَا | مَاءٌ . | فَتَيَمَّمَا | صَعِيدًا | طَيِّبًا . | فَصَلَّيَا . | |
| مگر ددوي سره اوبه نه وې لهذا پاکې خاورې سره يې تيمم وکړواومونځ يې اداءکړ(وراندې چې لاړل) | | | | | | | |
| ثُمَّ | وَجَدَا | الْمَاءَ | فِي الْوَقْتِ | فَأَعَادَ | أَحَدُهُمَا | الصَّلَاةَ | بِوُضُوءٍ . وَ |
| دوي اوبه پيدا کړې او د مونځ وخت هم پاتې وُ لهذا په دوی کې يوه اودس وکړ مونځ يې راوگرځولو مگر | | | | | | | |

لَمْ يُعِدِ الْآخَرُ . ثُمَّ أَتَيَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ، فَذَكَرَا ذَلِكَ.

دويم راونه ګرځولو کله چې دواړه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو نو واقعه يې ذکر کړه

فَقَالَ لِلَّذِيْ لَمْ يُعِدْ :

رسول الله ﷺ (تپوله واقعه واوريدله) هغه کس ته کوم چې مونځ نه وو راګرځولی وفرمايل: تا په

أَصَبْتَ السُّنَّةَ ، وَ أَجْزَأَتْكَ صَلَاتُكَ ، وَ قَالَ لِلَّذِيْ تَوَضَّأَ وَ أَعَادَ :

سنت باندې عمل کړی ستا دپاره هغه مونځ کافي دی او کوم کس چې اودس کړی ؤ او مونځ يې راګرځولی

لَكَ الْأَجْرُ مَرَّتَيْنِ .[1]

ؤ هغه ته يې وفرمايل: ستا دپاره دوه چنده اجر دی.

وَرَوَى النَّسَائِيُّ نَحْوَهُ وَقَدْ رَوَى هُوَ وَأَبُو دَاوُدَ أَيْضًا عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ مُرْسَلًا)

**توضيح**: مسئله داده که يو کس په تيمم سره مونځ وکړي وروسته اوبه پيدا شي نو مونځ کېږي او که چيرته د تيمم نه وروسته او د مونځ نه مخکې اوبه پيدا شي نو اودس دې وکړي په دواړو مسئلو کې اتفاق دی، او که يې تيمم وکړ او مونځ يې شروع کړ بيا په مينځ کې اوبه وليدل شوې نو په دغه دريم صورت کې د فقهاؤ اختلاف دی، د احنافو او حنابلو په نزد مونځ باطلېږي دا کس دې اودس وکړي او مونځ دې اداء کړي، د امام مالک رحمه الله امام شافعي رحمه الله مسلک دا دی چې همدغه کس دې د تيمم سره مونځ پوره کړي، احنافو او حنابلو په هغو روايتونو سره استدلال کړی دی په کوم کې چې (ان لم يجد الماء) الفاظ د شرط په طريقه مذکور دي او (فاذا وجد الماء فليمس بشرته) الفاظ دي نو کله چې هم اوبه پيدا شي تيمم ختمېږي نو د مونځ په دوران کې د اوبو په ليدلو سره مونځ هم ختمېږي. (المرقات ۲/۲۳۳)

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

(۸) عَنْ أَبِي الْجُهَيْمِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الصِّمَّةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: أَقْبَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دابو جهيم بن حارث ابن صمه رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ تشريف ويوړلو په مدينه

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۱/۲٤۰ رقم الحديث ۳۳۸ ، واخرجه الدارمي في السنن ۱/۱۹۰ رقم الحديث ۷٤٤

مِنْ نَحْوِ بِئْرِ جَمَلٍ ، فَلَقِيَهُ رَجُلٌ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ ،

منوره کې د جمل کوهي طرف ته دوي سره يو کس (يعنې په خپله ابو جهيم) مخامخ شو او سلام يې ورکړو

فَلَمْ يَرُدَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ حَتَّى أَقْبَلَ عَلَى الْجِدَارِ ،

رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته د سلام جواب ورنه کړو او د يوه ديوال خواته يې تشريف ويوړو لهذا اول

فَمَسَحَ بِوَجْهِهِ وَ يَدَيْهِ ، ثُمَّ رَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ .(مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1].

دوي مخ او لاسونه مسح کړل (يعنې تيمم يې وکړ) بيا يې د سلام جواب ورکړ.

## د تيمم د پاره د دوه ضربتينو ثبوت

(۹) وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ أَنَّهُمْ تَمَسَّحُوا وَهُمْ مَعَ رَسُولِ اللهِ

د حضرت عمار بن ياسر رضي الله عنه نه روايت دی بيان کوي چې : يو ځل يې تيمم وکړو او دوي د رسول الله

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِالصَّعِيدِ لِصَلَاةِ الْفَجْرِ ، فَضَرَبُوا بِأَكُفِّهِمُ الصَّعِيدَ ،

صلی الله علیه وسلم سره وو په پاکو خاورو سره د سهر د مونځ د پاره اول يې خپل لاسونه په خاورو باندې ووهل په

ثُمَّ مَسَحُوا بِوُجُوهِهِمْ مَسْحَةً وَاحِدَةً، ثُمَّ عَادُوا، فَضَرَبُوا بِأَكُفِّهِمُ الصَّعِيدَ مَرَّةً أُخْرَى ، فَمَسَحُوا

خپلو مخونو يې راخکل يو ځل ، بيا يې په دويم ځل لاسونه په خاورو باندې ووهل نو مسح يې کړل خپل

بِأَيْدِيهِمْ كُلِّهَا إِلَى الْمَنَاكِبِ وَ الْآبَاطِ مِنْ بُطُونِ أَيْدِيهِمْ .[2].

پوره لاسونه يعنې تر ځنګلو او تخرګونو پورې کړل د لاسونو د ننه له طرف نه.

**توضيح: ثم عادوا فضربوا:** د غه حديث ډېر وضاحت سره دا خبره ښودلې ده چې د تيمم د پاره دوه ضربونه دي. (المرقات ۲۳۴-۲/۲۳۵).

**المناکب:** تر اوږو پورې په تيمم کې مسح کول او د تخرګونو پورې تيمم کول دا د صحابه کرامو د آيت په ظاهر سره يو اجتهادي استنباطي حکم وو، يعنې په (يد) سره دوي ټول لاس تر تخرګونو پورې مراد کړو ځکه چې په لغت کې د يد اطلاق همدا سې شوی دي ليکن چونکه د شارع علیه السلام په فعل سره د

---

(۱) اخرجه البخاري في السنن ۱/۴۴۱، رقم الحديث : ۳۳۷، ومسلم في الصحيح ۱/۲۸۱ رقم الحديث: ۱۱۴-۳۶۹، وابوداود ۱/۲۳۳ رقم الحديث :۳۲۹، والنسائي ۱/۱۶۵، رقم الحديث: ۳۱۱ .

(۲) اخرجه ابوداود في السنن ۱/۲۲۴ رقم الحديث : ۳۱۸ ، واخرجه النسائي في السنن ۱/۱۶۷ رقم الحديث : ۳۱۴، واخرج احمد في مسنده ۴/۱۶۹.

څنګلو پورې حکم ترلاسه شوی دی نو ځکه په هغه باندې عمل کیږي، ددې نه معلومه شوه چې د لغت په زور سره او د عربیت په قوت سره په شریعت باندې په کامل طور پوهیدل انتهائي مشکل دي.
نن سبا یو څه په عربي باندې پوهیدونکي پروفیسرانو حضراتو هم دا مشکل په مشکل کې اچولی دی، دلته په دې هم پوهیدل په کار دي چې تیمم د اودس قائمقام دی کله چې په اودس کې لاسونه تر څنګلو پورې وینځل کیدی شي نو د هغه په قائمقام کې هم داسې کول په کار دي، (المرقات ۲/۲۳۵).
د تیمم د جواز دپاره څلور شرطونه دي :
(۱) د اوبو د استعمال نه حقیقةً یا حکمًا عاجز کیدل.
(۲) په کوم شي چې تیمم کولی شي د هغه پاکیدل.
(۳) د تیمم د اندامونو په ټولو برخو باندې په داسې کیفیت لاس راخکل چې کوم ځای د مسح کولو نه پاتې نه شي.
(۴) د عبادت مقصوده په نیت سره تیمم کول.

۷ ربیع الاول ۱٤۱۰ھ

# بَابُ الْغُسْلِ الْمَسْنُوْنِ

## د مسنون غسل بیان

صاحب مشکوة ددې نه مخکې د باب الغسل په عنوان سره یو باب راوړی دی لیکن د هغه نه وروسته يې د مسنون غسل په عنوان سره دلته یو بل باب راوړی دی په کوم سره چې اشاره حاصلیږي چې اول د هغه غسل احکام وو کوم چې د فرض او واجب د قسم نه وو او دلته د هغه غسل بیان دی کوم چې د سنت یا مستحب د قسم نه دی، لهذا په دې باب کې صاحب مشکوة د څلور قسمه غسلونو ذکر کړی دی، اول د جمعې د ورځې غسل دویم مړي ته د غسل ورکولو نه وروسته په خپله غسل کول دریم د حجامې کولو نه وروسته غسل کول او څلورم د اسلام قبلولو په وخت کې غسل کول.

ددې نه په غیر د اخترونو دپاره غسل کول فقهاؤ مسنون لیکلی دی مګر د هغه دپاره چې کوم دوه یا زیات روایتونه راغلي دي هغه ضعیف دي شاید په همدې وجه مصنف هغه ذکر کړي نه وي خو بیا هم د صحابه کرامو د وخت نه رانیولې په امت کې د اخترونو د غسل معمول را روان دی، دارنګه د یوم عرفې دپاره او د احرام په وخت کې غسل کول فقهاو مستحب لیکلي دي، د اسلام عام حکم ټولو مسلمانانو ته دا دی چې په یوه هفته کې کم نا کم یو غسل وکړي، الله تعالی مسلمانانو ته د پاکوالي دا لویه تحفه ورکړې ده د کومې نه چې غیر مسلم محروم دي.

**الغسل**: د غین ضمه او د سین په سکون سره د جسم د سر نه نیولې تر پښو پورې د ټولو اندامونو وینځلو نوم غسل دی او د غین په فتحې سره د هر شي وینځلو ته غسل ویل شوي دي او د غین او سین د دواړو په ضمې سره نو دا غسل اوبو ته ویل کیږي او د غین کسره او د سین سکون سره په اوبو سره په وینځلو کې دننه د صابون استعمال یا سرف یا اشنان وغیره یو ځای کړی شوو شیانو ته ویل کیږي.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د جمعې په ورځ غسل

(۱) عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمُ

دابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې راځي په تاسو کې یو څوک

| |
|---|
| الجُمُعَةَ فَلْيَغْتَسِلْ [1]. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). |
| د جمعې مونځ کولو دپاره نو هغه ته په کار دي چې غسل وکړي. |
| (۲) وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُسْلُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ |
| د ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: غسل د جمعې په ورځ |
| وَاجِبٌ عَلَى كُلِّ مُحْتَلِمٍ [2] (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). |
| واجب دی په هر بالغ باندې. |

**توضيح: اذا جاء احدكم الجمعة فليغتسل**: د جمعې دپاره د غسل کولو په باره کې د **فليغتسل** لفظ هم راغلی دی کوم چې د امر صيغه ده د **حق** کلمه هم راغلې ده او د **واجب** لفظ هم موجود دی همدا رنګه د تاکيد نور الفاظ هم راغلي دي نو په همدې وجه د فقهاو اختلاف راغلو چې آيا دا غسل واجب دی که مسنون دی او که مستحب دی.

**د جمعې په غسل کې د فقهاو اختلاف**: د اهل ظواهرو په نزد د جمعې غسل فرض او واجب دی، د جمهورو فقهاؤ په نزد د جمعې غسل سنت دی، جمهور صحابه کرام هم د سنت کيدو قائل وو، بيا هم حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمار بن ياسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د واجب کيدو قائل وو او دا مسلک د حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وو. (المرقات ۲۳۵-۲/۲۳۶).

**دلائل**: د اهل ظواهرو او د جمعې د غسل د وجوب دقائلينو دليل د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديثونه دي د کومو د ظاهر نه چې د وجوب معلومات کيږي، بلکې د وجوب واضح الفاظ دي او دا درې واړه حديثونه د **باب الغسل المسنون** په اول فصل کې دي. (المرقات ۲۳۵-۲/۲۳۶).

**جمهورو فقهاؤ** د مشکوة په پنځه پنځوسمه(۵۵) صفحه باندې د حضرت سمره بن جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روايت سره استدلال کړی دی کوم چې د دويم فصل اول حديث دی په کوم کې چې د **(فالغسل افضل)** الفاظ راغلي دي او په همدغه صفحه باندې د حضرت عکرمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روايت سره يې استدلال کړی

---

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۲/۳۵۶،رقم الحديث : ۸۷۷، ومسلم في الصحيح ۲/۵۷۹ رقم الحديث:۱-۸۴۴، وابو داود ۱/۲۴۲ رقم الحديث :۳۴۰، والنسائي ۳/۹۳، رقم الحديث: ۲۰۵۱ ، والترمذي ۲/۳۶۴ رقم الحديث : ۴۹۲، وابن ماجة ۱/۳۴۶، رقم الحديث:۱۰۸۸.

(۲) اخرجه البخاري في الصحيح ۲/۳۸۲،رقم الحديث :۸۹۵، ومسلم في الصحيح ۲/۵۸۰ رقم الحديث:۵-۸۴۶، وابو داود ۱/۲۴۳ رقم الحديث :۳۴۱، والنسائي ۳/۹۳، رقم الحديث:۱۳۷۷ .

دی ددې حضراتو دريم دليل د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه او د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه مکالمه ده چې حضرت عمر رضي الله عنه د جمعې خطبه وويله چې په دې وخت کې حضرت عثمان رضي الله عنه تشريف راوړلو حضرت عمر رضي الله عنه هغه په تاخير سره په راتلو باندې تنبيه کړ نو ده په جواب کې وفرمايل چې اى امير المؤمنين! ما اودس کولو ځکه تاخير وشو حضرت عمر رضي الله عنه وويل (الوضوء ايضاً) (اشعة اللمعات ۱/۲۸۷، ۲/۲۴۱) يعنې په تاخير سره هم راغلې او غسل دې هم نه دی کړی صرف اودس دې کړی دی او راغلې؟ بس دومره مکالمه وه حضرت عثمان رضي الله عنه کيناست او جمعه يې وکړه، جمهورو ويلي دي چې که چيرته غسل واجب يا فرض وی نو حضرت عثمان رضي الله عنه به حضرت عمر رضي الله عنه خامخا د غسل دپاره ليږلی وی، معلومه شوه چې واجب نه دی ، جمهورو د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په دې تفصيلي خبرو سره هم استدلال کړی دی کوم چې د باب الغسل په اخير کې راتلونکې دي او حضرت عکرمه رحمه الله کوم چې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه شاګرد دی او تابعي دی هغه دا روايت نقل کړی دی، ددې ټولو روايتونو په رڼائي کې جمهورو د جمعې غسل مسنون او مستحب ګڼلی دی. (المرقات ۲/۲۴۱).

**جواب** : جمهورو د قائلين وجوب غسل دلائلو ته ډير جوابونه ورکړی دي ويلي يې دي چې چيرته د امر صيغه راغلې ده هلته د غسل نورو روايتونو ته په کتلو سره امر په استحباب باندې حمل کړی شوی دی ځکه چې قرينه صارفه موجوده ده چې همدا امر په وجوب باندې حمل کيدی نه شي نو دا امر ﴿ وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا ﴾ د امر په شان په استحباب باندې محمول دی.

او چيرته چې په حديث کې د **حق** يا د **واجب** لفظ راغلی دی هلته د ثابت په معنی سره دی يا د حق نه مراد د سنت مؤکده حکم اخستل شوی دی يا دا روايتونه موقوف او منسوخ دي، يعنې حکم ختم شو په سبب د ختميدو د علت باندې، د هغه قيصه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه روايت د مشکوة په پنځه پنځوسمه صفحه دريم فصل کې د همدې باب په اخير کې په ډير تفصيل سره ذکر ده، په کوم کې چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه د هغې زمانې کامله نقشه وړاندې کړې ده، ګويا چې غسل واجب د اسلام په ابتداء کې وو بيا موقوف شو بهر حال دلائل که هر څنګه هم وي ليکن بهتر او افضل د غسل کول دي او احتياط د هغو حضراتو په مسلک کې دی کوم چې د جمهورو نه بغير دي، او د جمعې غسل يې ضروري ګڼلی دی.

## د جمعې غسل دورځې دپاره دی او که د مونځ د پاره؟

(۲) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: حَقٌّ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ

دابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په هرعاقل بالغ مسلمان حق دی

أَنْ يَغْتَسِلَ فِي كُلِّ سَبْعَةِ أَيَّامٍ يَوْمًا يَغْسِلُ فِيهِ رَأْسَهُ وَ جَسَدَهُ [1].

(يعنې ثابت لازم يالائق) دي چې په هفته کې يوه ورځ (يعنې په جمعه) ولامبي او خپل سرا وبدن ووينځي.

**توضيح**: د جمعې په غسل کې دويم اختلاف په دې کې دی چې آيا دا غسل د جمعې ورځې دپاره دی او که د مونځ دپاره دی د جمهورو په نزد د جمعې د ورځې دپاره دی او د احنافو په نزد د جمعې مونځ دپاره دی د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ دوه قولونه مروي دي يو قول د جمهورو موافق دی دويم د احنافو سره دی.

**داختلاف ثمره**: د دې اختلاف ثمره هغه وخت ظاهريدی شي کوم حضرات چې غسل د جمعې مونځ دپاره سنت ګڼي د دوی په نزد دا سنت هلته پوره کيدی شي کله چې د دې غسل سره مونځ اداء کړی شي، که چيرته سهار وختي غسل وکړي بيا يې اودس مات شي او په دې غسل سره مونځ ونه کړي نو سنت نه پوره کيږي، او کومو حضراتو چې دا غسل د جمعې د ورځې دپاره ګڼلی دی د دوی په نزد که چيرته د جمعې په ورځ سهار غسل وکړی شي نو سنت اداء شول که مونځ په دې غسل سره وشي او که ونه شي، او که چيرته کوم کس له مونځ وروسته غسل وکړي نو هيچا په نزد سنت نه اداء کيږي.

په احاديثو کې **يوم جمعة صلوة جمعة** او هفته کې يو ځل د غسل کولو حکم راغلی دی نو په ظاهره په دې کې تعارض معلوميږي مګر په احاديثو کې تعارض نشته، بلکې درې قسمه غسل مستحب دی او د دريواړو دپاره مختلف احاديث راغلي دي، اوس د جمعې مونځ دپاره چې د کوم غسل حکم راغلی دی که چيرته په هغه کې دا نيت وکړی شي چې د جمعې د ورځې او د مونځ غسل هم کوم او دا نيت هم وکړي چې هفته وار غسل هم کوم نو هيڅ تعارض پاتې نه شو او په ټولو احاديثو باندې عمل وکړی شو.

---

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۳۸۲/۲، رقم الحديث: ۸۹۷، ومسلم في الصحيح ۵۸۲/۲ رقم الحديث: ۹-۸۴۹.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## د جمعې په غسل کې نرمي

| |
|---|
| (۴) عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ تَوَضَّأَ |
| د سمره بن جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی، چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: چا چې اودس وکړو د |
| يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَبِهَا وَ نِعْمَتْ . وَ مَنِ اغْتَسَلَ |
| جمعې په ورځ نو هغه فرض اداء کړل او دا ډير ښه فرض دي او کوم کس چې د جمعې مونځ دپاره غسل |
| فَالْغُسْلُ أَفْضَلُ.(۱) |
| وکړه نو دا غسل ډير ښه دی. |
| (۵) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ غَسَّلَ مَيِّتًا |
| دابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: کوم کس چې مړي ته غسل ورکړي |
| فَلْيَغْتَسِلْ . (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ) وَ زَادَ أَحْمَدُ وَ التِّرْمِذِيُّ وَ أَبُو دَاوُدَ : |
| په خپله هم لامبل ورته په کار دي او زيات کړي احمد ترمذي او ابوداؤد په دې حديث کې دا الفاظ: چې رسول |
| " وَ مَنْ حَمَلَهُ فَلْيَتَوَضَّأْ " (۲). |
| الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا هم فرمايلي کوم کس چې د جنازې پورته کولو ته اراده وکړي هغه ته اودس کول په کار دي |

## د څلورو شيانو دوجې غسل کول

| |
|---|
| (۶) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَغْتَسِلُ مِنْ أَرْبَعٍ: |
| دعائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د څلورو شيانو دوجې نه دغسل کولو |
| مِنَ الْجَنَابَةِ، وَيَوْمِ الْجُمُعَةِ، وَمِنَ الْحِجَامَةِ، وَمِنْ غُسْلِ الْمَيِّتِ (۳). |
| حکم کړی وو (۱) د جنابت (۲) د جمعې دپاره (۳) د حجامې نه (۴) او مړي ته د غسل ورکولو له وجې. |

(۱) اخرجه احمد في المسند ۵/۱۶، واخرجه ابوداود في السنن ۱/۲۵۱ رقم الحديث: ۳۵۴، واخرجه الترمذي في السنن ۲/۳۶۹، رقم الحديث: ۴۹۷.

(۲) اخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۴۷۰ رقم الحديث: ۱۴۶۳، واحمد في المسند ۲/۴۵۴.

(۳) اخرجه ابو داود في السنن ۱/۲۴۸ رقم الحديث: ۳۴۸.

**توضيح** : په دې حديث کې د څلورو شيانو د وجې نه د غسل کولو حکم شوی دی، مړي ته د غسل د ورکولو نه وروسته په غسل ورکوونکي باندې د جمهورو په نزد غسل نشته ، همدارنګه په هغه کس باندې هم غسل نشته کوم چې د مړي جنازه پورته کړې او نه په هغه کس باندې غسل شته کوم چې ښکر لګولی وي هو په جنابت والا باندې غسل شته.

د اهل ظواهرو په نزد د جنازې پورته کوونکي ته، مړي ته د غسل په ورکوونکي باندې په خپله غسل واجب دی، همدې حضراتو د حضرت ابو هريره رضي الله عنه په روايت سره استدلال کړی دی په کوم کې چې دي (**من غسل ميتاً فليغتسل**) الفاظ دي او دويم استدلال يې د حضرت عائشې رضي الله عنها په روايت سره کړی دی په کوم کې چې د (**من غسل الميت**) الفاظ دي، د جمهورو په نزد په دې خلکو باندې د دې وجې غسل نشته چې د غسل موجب کوونکی کوم شی موجود نه دی محض د دې وهم په بنياد باندې چې هسې نه د څاڅکو په الوتلو سره په بدن باندې نجاست نه وي لګيدلی دا د وجوب غسل د پاره کافي ندي، ځکه دا کومه يقيني خبره نه ده .(المرقات ۲/۲۳۹).

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه يو روايت دی :﴿**كنا نغسل الميت فبعضنا يغتسل وبعضنا لايغتسل**﴾ (**اخرجه الخطيب**).

ددې نه معلوميږي چې که چيرته نجاست ولګيږي نو غسل دې وکړي او که ونه لګيږي نو نه دې کوي.

د ابو هريره رضي الله عنه په روايت (**من حمله فليتوضأ**) کې د حمل نه مراد دا دی چې کله همدا کس جنازه پورته کوي او ور سره ځي نو هغه ته په کار دي چې اودس وکړي ځکه چې ور سره لاړ شي نو د هغه د جنازې مونځ به هم کوي نو تيار به وي، ابوداؤد ويلي دي چې دا روايت منسوخ دی يا امر استحبابي دی.

**و من غسل الميت** :يعني د مړي د لمبولو نه وروسته غسل يې کړی وو ،يادولړئ رسول الله صلى الله عليه وسلم په ټول ژوند کې مړي ته په خپله غسل نه دی ورکړی،دلته اسناداونسبت مجازي دی لکه **بنى الامير القصر** کې **اسناد إلى غير ماهو له** ته دی يالکه حديث دی: **ان النبي صلى الله عليه وسلم رجم ماعزًا** ای **امر برجمه**. (المرقات ۲/۲۳۹).

| |
|---|
| (۷) وَ عَنْ قَيْسِ بْنِ عَاصِمٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، أَنَّهُ أَسْلَمَ ، فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ |
| د حضرت قيس بن عاصم رضي الله عنه په باره کې مروي دي چې کله ده اسلام راوړونو حکم وکړو ده ته نبي کريم |

| |
|---|
| صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنْ يَغْتَسِلَ بِمَاءٍ وَ سِدْرٍ [۱] |
| ﷺ چې دا په اوبو او د بيرې په پاڼو سره ولامبي. |

**توضيح : اله اسلم** : د اسلام نه مخکې که چيرته کافر د جنابت په حالت کې وي نو د اسلام د قبلولو نه وروسته په هغه باندې غسل کول فرض دي او که چيرته د اسلام د قبلولو نه وروسته هغه کس په جنابت کې نه وي نو غسل کول مستحب دي، خلاصه دا ده چې اسلام د غسل کولو نه بغير هم قبليدی شي. (المرقات ۲/۴۰).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د جمعې د غسل پس منظر

| |
|---|
| (۸) عَنْ عِكْرِمَةَ قَالَ إِنَّ نَاسًا مِنْ أَهْلِ الْعِرَاقِ جَاءُوا فَقَالُوا : يَا ابْنَ عَبَّاسٍ أَتَرَى |
| د عکرمه رَحِمَهُ اللّٰهُ نه روايت دی چې د عراق نه څو کسان راغلل او وي ويل چې يا ابن عباس! آيا ستا په رأيه |
| الْغُسْلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاجِبًا ؟ قَالَ لَا وَ لٰكِنَّهُ أَطْهَرُ |
| کې د جمعې په ورځ لامبل واجب دي؟ هغه ورته وويل چې نه ! مګر د جمعې په ورځ لامبل ډيره صفائي ده |
| وَ خَيْرٌ لِمَنِ اغْتَسَلَ ، وَ مَنْ لَمْ يَغْتَسِلْ فَلَيْسَ عَلَيْهِ بِوَاجِبٍ. |
| او کوم کس چې غسل وکړي د هغه د پاره بهتر دي او کوم کس چې ونه لامبي په هغه باندې واجب هم نه دی |
| وَ سَأُخْبِرُكُمْ كَيْفَ بَدْءُ الْغُسْلِ : |
| اوزه تاسو ته وايم چې د جمعې په ورځ د غسل ابتدا مولې وشوه؟ (يعنې د جمعې په ورځ غسل د کومې وجې |
| كَانَ النَّاسُ مَجْهُودِينَ يَلْبَسُونَ الصُّوفَ ، |
| شروع شوی دی) نو اصل خبره دا وه چې د اسلام د شروع په زمانه کې بعضو غريبو صحابو وړيا اغوستې وي |
| وَ يَعْمَلُونَ عَلَى ظُهُورِهِمْ ، وَ كَانَ مَسْجِدُهُمْ ضَيِّقًا مُقَارِبَ السَّقْفِ ، إِنَّمَا هُوَ عَرِيشٌ ، |
| او په شا باندې د بوج پورته کولو کارونه به يې کول د هغوي جومات تنګ ؤ د کوم چت چې ښکته او د کجورو |

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۲/۵۰۲، رقم الحديث : ۶۰۵.

| |
|---|
| فَخَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي يَوْمٍ حَارٍّ . |
| تنې وي يوه ورځ د جمعې په ورځ كله چې ډيره سخته گرمي وه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جومات ته تشريف |
| وَ عَرِقَ النَّاسُ فِي ذَلِكَ الصُّوفِ ، حَتَّى ثَارَتْ مِنْهُمْ رِيَاحٌ ، |
| راوړو (د سختې گرمۍ دوجې خلک په خولو كې لامده شوي وو چې د خولو بدبويي خوره وه د كومود |
| آذَى بِذَلِكَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا . فَلَمَّا وَجَدَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ تِلْكَ الرِّيَاحَ ، |
| وجې چې خلكو په خپل مينځ كې تكليف محسوسولو كله چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د بدبويي احساس |
| قَالَ: أَيُّهَا النَّاسُ! إِذَا كَانَ هَذَا الْيَوْمُ فَاغْتَسِلُوا، وَلْيَمَسَّ أَحَدُكُمْ أَفْضَلَ مَا يَجِدُ مِنْ دُهْنِهِ وَطِيبِهِ |
| وشونو وې فرمايل: اى خلكو! چې د جمعې ورځ شي نو غسل كوئ بلكې په تاسو كې چې د چاسره تيل يا |
| خوشبوي شتون ولري هغه هم ولگوئ (يعني په ويښتانو باندې تيل ولگوئ او په جامو باندې خوشبوي |
| " قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ : ثُمَّ جَاءَ اللهُ بِالْخَيْرِ ، |
| ولگوئ لكه عطر وغيره) ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي چې ددې نه وروسته الله تعالى مال او دولت ډير كړل |
| وَ لَبِسُوا غَيْرَ الصُّوفِ ، وَ كُفُوا الْعَمَلَ ، |
| نو خلكو ورې پريښودې د غوره جامو استعمال يې شروع كړ د محنت او مشقت كارونه يې هم پريښودل، |
| وَ وُسِّعَ مَسْجِدُهُمْ ، وَ ذَهَبَ بَعْضُ الَّذِي كَانَ يُؤْذِي بَعْضُهُمْ بَعْضًا مِنَ الْعَرَقِ (۱) |
| جومات هم پراخه شو او د خولو د وجې به چې خلكو ته كوم تكليف وو هغه هم د منځه لاړلو. |

## د شكريې اظهار:

الحمد لله د غسل دا توضيح او تشريح په ۲۹ رمضان ۱۴۲۲ھ د جمعې په ورځ په مسجد حرام كې بيت الله ته مخامخ ليكم.

الحمد لله على العامه

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲۵۱/۱ رقم الحديث : ۳۵۳.

۸ ربیع الاول ۱٤۱۰هـ

# بَابُ الْحَيْضِ
# د حیض بیان

په فقهاؤ کې دا بحث روان دی چې حیض د انجاسو نه دی او که د احداثو نه دی دواړو طرفونو ته د فقهاؤ رأیې شته مګر ددې اختلاف د وجې په مسئله باندې کوم فرق نه دی غورزیدلی، البته د حیض په تعریف باندې یې اثر غورزیدلی دی، کومو حضراتو چې حیض په انجاسو کې شمار کړی دی د حیض یې چې کوم تعریف کړی دی هغه نقل شوی دی. (المرقات ۲/۲٤۳).

**د حیض تعریف**: د حیض لغوي معنی د بهیدولو ده عربو ویلي دي (**حاض الوادی ای سال**) او په دغه مفهوم سره حوض دی د کوم طرف ته چې اوبه بهیږي او په شریعت کې د حیض تعریف فقهاؤ داسې کړی دی (**هو دم ینفضه رحم امرأة بالغة من غیر داء**) په دغه مرض کې مبتلاء ښځې ته حایضه هم ویل کیږي او **حائض** هم ورته ویل کیږي، بعضو دا فرق کړی دی چې په **الحائض** کې د دوام مفهوم پروت دی او په **الحائضة** کې د حدوث او جدت مفهوم پروت دی **الحیضة** د حاء په فتحې سره یو ځل حیض راتلو ته ویل کیږي او که په حاء باندې کسره راشي نو دا د حیض نوم هم دی او هغه حالت هم دی په کوم حالت کې چې دا ښځه مبتلا ده. الله تعالی د ماشوم د غذاء دپاره د مور په رحم کې د وینې انتظام کړی دی لهذا د ځلورو میاشتو نه وروسته په ماشوم کې روح راځي نو هغه ددې وینې نه غذاء حاصلوي، همدا وجه ده چې د ځلورو میاشتو کومه وینه چې په رحم کې جمع شوې وې هغه د ماشوم د پیدا کیدو نه وروسته د نفاس په شکل کې بهر راووځي او د ځلورو میاشتو نه وروسته وینه ماشوم خوري، لیکن الله تعالی د انسان خوله پاکه ساتلې ده دې دپاره چې په هغې باندې د الله تعالی پاک نوم یاد کړي، لهذا ماشوم د خولې د لارې نه بلکې د نامه د نالې د لارې دا غذاء حاصلوي او خوله د الله تعالی د مقدس نوم د یادولو دپاره پاکه ساتل شوې. یو چا ویلي دي:

هزار بار بشویم دهن بمشک وگلاب ❁ هنوز نام تو گفتن کمال بے ادبی است

**د حیض پس منظر**: د حیض ابتداء څنګه کیږي او دا ناروغي ښځوته ولې لګیدلې، په دې باره کې یو خو د رسول الله ﷺ حدیث دی چې الله تعالی د حیض همدا ناروغي د آدم علیه السلام لوڼو ته لګولې ده (اشعة اللمعات ۲۸۹-۲/۲۹۰) ګویا چې حیض د ښځې طبیعت او بشري تقاضا ده او دا د دوي د فطرت حصه ده. بعضو دا هم ویلي دي چې د ټولو نه مخکې حیض د بني اسرائیلو ښځو ته راغلی وو، په مصنف عبد الرزاق کې د ابن مسعود رضی الله عنه یو حدیث دی چې د بني اسرائیلو ښځې او سړي به یو ځای

جومات ته تلل او مونځ به یې کولو نو ښځو دا شرارت شروع کړو چې د شا نه به یې د سړو مستور اندامونه بربنډول او کتل به یې ورته الله تعالی په دوی باندې د حیض ناروغي راوستله.

د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې کله الله تعالی حوا عَلَيْهَا السَّلَامُ د جنت نه زمکې ته راوستله نو د هغې سره یې د حیض ناروغي ولګوله دا هر څه په لمعات کې شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي، په بعضو کتابونو کې دا هم شته چې په جنت کې کله چې حوا د غنم د بوټي نه د دانې حاصلول وغوښتل بې بي حوا چې کله هغه راونیوله نو هغه ماته شوه او د هغې نه وینې روانې شوې هغې څانګې ښیرې وکړې چې الله تعالی دې د ستا نه همداسې وینې روانې کړي لکه څرنګه وینې چې تا زما نه روانې کړې ددې ښیرو نه وروسته ښځو ته د حیض راتلل شروع شول، بهر حال حیض د ښځو د صحت دپاره ډیر ضروري دی او د اولاد نظام هم د ښځو سره لګول شوی دی، کومې ښځې ته چې حیض نه راځي هغه ناروغه هم وي او اولاد یې هم نه کیږي، ګویا چې دا یو طبعي نظام دی کوم چې د ښځو د فطرت او تخلیق برخه ده.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## د حیض مباحث

| |
|---|
| (۱) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ . قَالَ : إِنَّ الْيَهُودَ كَانُوا إِذَا حَاضَتِ الْمَرْأَةُ فِيهِمْ |
| د انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې په یهودو کې به چې کله ښځې په حیض کې شوې نو خلکو به |
| لَمْ يُؤَاكِلُوهَا ، وَ لَمْ يُجَامِعُوهُنَّ فِي الْبُيُوتِ ، فَسَأَلَ |
| خوراک نه کولو ددوي سره او نه به ددوی سره په کورونو کې اوده کیدل او نه کیناستل ، نو تپوس وکړو |
| أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| اصحابو د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه په دې باره کې (چې د ښځو په باره کې د یهودو همدا عمل مونږ وکړو) |
| فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى : ﴿ وَ يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ ﴾ الْآيَةَ . |
| نو نازل کړو الله تعالی دا آیت: یعنې خلک ستا نه د حیض په باره کې پوښتنه کوي (د آیت د نازلیدو نه وروسته) |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : اصْنَعُوا كُلَّ شَيْءٍ إِلَّا النِّكَاحَ |
| رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې تاسو د خپلو ښځو سره چې حائضه وي بغیر د کوروالي نه هر څه کولی شئ |
| فَبَلَغَ ذَلِكَ الْيَهُودَ . فَقَالُوا : مَا يُرِيدُ هَذَا الرَّجُلُ أَنْ يَدَعَ مِنْ أَمْرِنَا شَيْئًا |
| نو کله چې دا خبر یهودو ته ورسیده نو وې ویل دا کس (رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) زمونږ په شان دینې امر طرف ته |

إِلَّا خَالَفَنَا فِيهِ .

متوجه شوی په دې کې به زمونږ مخالفت خامخا وکړي (د یهودو د خولې نه دا خبرې د وه صحابه کرامو

فَجَاءَ أُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ وَ عَبَّادُ بْنُ بِشْرٍ . فَقَالَا : يَا رَسُولَ اللّٰهِ .

واوریدې) نو راغلل اسید بن حضیر او عباد بن بشر رضي الله عنهما نبي علیه الصلاة والسلام ته وویل: یا رسول الله !

إِنَّ الْيَهُودَ تَقُولُ كَذَا وَ كَذَا .

یهودو داسې ویلي دي (یعنې دوی دیهودو خبرې نقل کړې او بیایې داوویل) که چیرته اجازت وي

أَفَلَا نُجَامِعُهُنَّ ؟

(نو دیهودو د موافقت د پاره) مونږ د خپلو ښځو سره (د حیض په ورځو کې) او سیدل پریږدو دایې چې واوریده

فَتَغَيَّرَ وَجْهُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنْ قَدْ وَجَدَ عَلَيْهِمَا ،

د رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارک مخ متغیر شواو زمونږ دا ګمان شو چې نبي علیه السلام دې دواړو نه خفه شو

فَخَرَجَا ، فَاسْتَقْبَلَتْهُمَا هَدِيَّةٌ مِنْ لَبَنٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ،

لهذا دوی دواړه هم ووتل د دوي د تلو په وخت کې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د کوم ځای نه په تحفه کې پې

فَأَرْسَلَ فِي آثَارِهِمَا فَسَقَاهُمَا ،

راغلې دوي د دواړو شاته (د کوم کس د رابللو د پاره) ولیږلو کله چې دوي راغلل نو دوي ورباندې پې

وڅکلې (تر څو د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د لطف او کرم احساس وکړي لهذا دوي د پښو د څکلو نه وروسته)

فَعَرَفَا أَنَّهُ لَمْ يَجِدْ عَلَيْهِمَا [1].

پو هه شول چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مونږ نه ناراضه نه دی .

**توضیح** : د حیض سره متعلق دیر بحثونه دي او په اکثرو کې اخـ ـف دی :

**اول بحث** : د حیض سره متعلق اول بحث د هغه په موده کې دی نو په کمه موده د حیض او په زیاته موده د حیض دواړو کې اختلاف دی، لهذا د همدې اختلاف تفصیل داسې دی :

**په حیض کې د فقهاو اختلاف** : د امام مالک رحمه الله په نزد کمه موده د حیض د یو قول مطابق دفعة واحدة

---

(۱) اخرجه مسلم في الصحيح ۱/۲٤٦ رقم الحديث: ۱٦-۳۰۲، وابو داود ۱/۱۷۷ رقم الحديث : ۲٥۷، والنسائي ۱/۱٥۲، رقم الحديث: ۲۸۸.

ده یعنې یو ځل د وینې روانیدل کافي دي، دویم یوم ولیلة ده، د امام شافعي او امام احمد قول هم یوم ولیلة ده، د امام ابویوسف رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد اقل د حیض دوه ورځې او د دریمې اکثر دی، د امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد کمه موده د حیض درې ورځې او درې شپې ده نو په کمه موده د حیض کې ددې حضراتو احتلاف دی، اوس په اکثره موده د حیض کې هم اختلاف دی، د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد اکثره موده د حیض اوولس(۱۷) ورځې ده، د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد اکثر موده د حیض پنځلس ورځې ده او د احنافو په نزد اکثر موده د حیض لس ورځې ده.

**دلائل**: د امام شافعي او امام احمد سره د حیض کمې مودې دپاره د دلیل په طور هیڅ حدیث یا شرعي نص نشته او د اکثرې مودې د حیض دپاره یې په **تقعد احدا کن شطر عمرها لاتصلي ولاتصوم** باندې استدلال کړی، دا حضرات د شطر لفظ د نصف په معنی سره اخلي او د هرې میاشتې نصف پنځلس ورځې دي.د احنافو استدلال په هغو روایتونو سره دی کوم چې د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه مرفوع روایت شوي دي.

د هدایې صاحب د دارقطني او طبراني په روایت سره استدلال کړی دی د کوم چې الفاظ دا دي :

(۱) **﴿اقل الحیض للجاریة البکر ثلاثة ایام ولیالیها واکثره عشرة ایام﴾** (۲) **﴿عن معاذ رفعه قال لاحیض دون ثلاثة ایام ولاحیض فوق عشرة ایام﴾** (اخرجه ابن عدی).عقیلي په یو بل سند سره برنی حدیث په مختصر متن سره داسې نقل کړی دی (۳) **﴿ولا حیض اقل من ثلاث ولا اکثر من عشر﴾**.همدارنګه د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روایت هم دی : (۴) **﴿عن عائشة مرفوعاً اکثر الحیض عشر واقله ثلاث﴾** (اخرجه ابن حبان فی الضعفاء).

**جواب**: د شوافعو دلیل ته احنافو دا جواب ورکړی دی چې شطر د نصف دپاره متعین نه دی بلکې د شطر اطلاق په جزء باندې هم شوی دی، همدارنګه په دې سره په اقل حیض یوم ولیلة باندې کوم ځای کې دلالت شوی دی نو تقریب تام نه دی همدارنګه دا روایت ضعیف دی.

**له حایضې نه د استمتاع مسئله : دویم بحث**: د فقهاء کرامو په مینځ کې دویم اختلاف په دې کې دی چې د حیض په حالت کې د ښځې سره څه قسم معامله کول په کار دي، کوم قسم تعلق جائز دی او کوم ناجائز دی ځکه چې یهودیانو د حیض په حالت کې ښځې ګڼلې او جدا کړې یې وې چې په کور کې ورسره اوسیدل، د هغوي سره ملاویدل، د هغوي په لاس د خوراکي شیانو پخول ټول یې ناجائز او ممنوع ګڼل ګویا چې د حیض په ورځو کې یې د ښځو سره غوڅ پریکون کړی وو، بل طرف ته عیسایانو دا هر څه جائز ګرځول تردې چې کوروالی یې هم ورسره جائز بللو او د حیض نه یې انکار کولو، اسلام چونکه معتدل د افراط او تفریط نه پاک مهذب مذهب دی نو ځکه یې مسلمانانو ته د اعتدال لار روښودله نه

يې غوڅ پرېكون وكړو او نه يې ورسره كوروالى كول جائز وبللو ، رسول الله ﷺ په خپل قول او فعل سره د امت پر وړاندې يو معيار كېښود د كوم تفصيل چې فقهاء كرامو داسې بيان كړى دى :

**د فقهاء كرامو اختلاف** : د حيض په حالت كې د ښځو سره د راشه درشه او تعلق ساتلو څو صورتونه دي :

(۱) د حيض په حالت كې د خپلې ښځې سره غېږ نيول خوراک كول خكلول د ټولو په نزد جائز دي، په اهل اسلام كې د هيچا په دې كې اختلاف نشته.

(۲) د حيض په حالت كې د ښځې سره همبستري او كوروالى كول په اجماع سره حرام دي.

(۳) د حيض په حالت كې استمتاع ماتحت الازار بايد وكړى شي او كه نه په دې كې د فقهاء كرامو اختلاف دى، د امام احمد بن حنبل رحمه الله د امام محمد رحمه الله او د سفيان ثوري رحمه الله په نزد دا استمتاع جائز ده په دې شرط چې د جماع نه انسان ځان وساتي او د وينې د ځاى نه پرهيز وكړي، د جمهورو ائمو په نزد استمتاع ماتحت الازار نا جائز ده.(المرقات ۲/۲۴۴).

**دلائل** : امام احمد رحمه الله او امام محمد رحمه الله د حضرت انس رضي الله عنه په هغه روايت سره استدلال كړى دى په كوم كې چې داسې الفاظ راغلي دي ﴿**اصنعوا كل شئ الا النكاح**﴾ نو تحت الازار استمتاع جائز شوه ځكه چې د جماع نه بغير د هر څه اجازت وركړى شوى دى. (المرقات ۲/۲۴۴).

د جمهورو دليل د مشكوة په ۵۶ صفحه باندې د حضرت عائشې رضي الله عنها روايت دى كوم چې په دريم فصل كې دى او الفاظ يې داسې دي ﴿**فلم نقرب رسول الله ﷺ ولم ندن منه**﴾.(المرقات ۲/۲۵۲).

په دغه صفحه او همدغه فصل كې د حضرت زيد بن اسلم رضي الله عنه حديث دى په كوم كې چې دا الفاظ راغلي دي **ثم شأنک بأعلاها** يعنې د بند ازار دپاسه فائده واخلئ د لاندې نه نه، دارنګه د حضرت معاذ رضي الله عنه روايت دى په كوم كې چې دا الفاظ راغلي : **قال مافوق الازار** دا حديثونه په اصل كې د سوال كوونكي د سوال په جواب كې دي د كوم انداز جواب چې نظر انداز كيدلى نه شي. (المرقات ۲/۲۵۲).

**جواب** : **اصنعوا كل شئ الا النكاح**، مطلب د يهودو د غلو ماتيدل وو كومو چې كلكه مقاطعه كړې وه نو رسول الله ﷺ وفرمايل: **اصنعوا كل شيء** يعنې بالكل پرېكون مه كوئ بلكې خكلول، غېږ نيونه، راشه درشه كوئ مګر كوروالى مه كوئ .

دويم جواب دادى چې په دې سره جماع او دواعيو د جماع د دواړو نفي او نهي مراد ده او تحت الازار چې كومه استمتاع ده هغه خو خالص دجماع د دواعيو نه ده لهذا ځكه چې جماع ممنوع ده دارنګه دواعي يې هم ممنوع دي.بهرحال د فوق الازار صريح حديثونه موجود دي اوتحت الازار استمتاع كول يقينا داعي د جماع دى نو دا هم ناجائز ده، د نامه نه ښكته او د زنګنونو نه علاوه دې مينځ نه ماتحت

الازار ويل شوي دي او ددې نه بغير ورته فوق الازار ويل شوي دي، ځکه چې په شپه کې د ازار بندولو همدا ځای دی.

**افلا نجامعهن** : د دې دوه مطلبونه دي، يو دا دی چې آيا مونږ د هغوي سره جدا اوسيدل غوره نه کړو ترڅو چې د يهودو سره موافقت راشي، د حديث په ترجمه کې همدا مطلب مراد دی.

دويم مطلب دا دی چې آيا مونږ ددې حائضو ښځو سره جماع ونه کړو ترڅو چې يهود وسوځول شي، علماؤ همدا دويم مطلب راجح بللی دی او په دې وجه رسول الله ﷺ ناراضه شوی وو. (المرقات ۲/۲۴۷).

## د حائضې ښځې سره د ناستې ولاړې اجازت دی

| |
|---|
| (۲) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ |
| د عائشې رضي الله عنها نه روايت دی وايي چې غسل به کولوما اورسول الله ﷺ د جنابت په حالت کې د |
| إِنَاءٍ وَاحِدٍ، وَكِلَانَا جُنُبٌ، وَكَانَ يَأْمُرُنِي، فَأَتَّزِرُ، |
| يو لوښي نه لامبل اورسول الله ﷺ به ماته حکم کولو (د ازار تړلو) کله به چې ما پرتوګ وتړلو نو |
| فَيُبَاشِرُنِي وَأَنَا حَائِضٌ. |
| رسول الله ﷺ به زما سره (د نامه نه پورته) خپل بدن لګولو او زه به په حالت د حيض کې وم، او |
| وَكَانَ يُخْرِجُ رَأْسَهُ إِلَيَّ وَهُوَ مُعْتَكِفٌ، |
| کله به چې نبي عليه السلام په اعتکاف کې ؤ او خپل مبارک سر به يې (د جومات نه) بهر را ويستلی ؤ نو ما |
| فَأَغْسِلُهُ وَأَنَا حَائِضٌ[1]. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). |
| به د خپلو ورځو په دحالت د نبي عليه السلام سر مبارک وينځلو. |
| (۳) وَعَنْهَا قَالَتْ: كُنْتُ أَشْرَبُ وَأَنَا حَائِضٌ، ثُمَّ أُنَاوِلُهُ النَّبِيَّ |
| د عائشې رضي الله عنها نه روايت دی چې ما د حيض په حالت کې اوبه وڅکلې بيا مې ورکړو همدا لوښی نبي کريم |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَضَعُ فَاهُ عَلَى مَوْضِعِ فِيَّ، فَيَشْرَبُ وَأَتَعَرَّقُ الْعَرْقَ، |
| ﷺ ته بيا دوی په هغه ځای خوله کيخوده په کوم ځای چې ما خوله ايښې وه او اوبه يې وڅکلې او |

(۱) اخرجه البخاري في الصحيح ۱/۴۰۳، رقم الحديث: ۲۹۹-۳۰۰-۳۰۱، ومسلم في الصحيح ۱/۲۴۳ رقم الحديث ۵-۲۹۶.

وَ أَنَا حَائِضٌ ، ثُمَّ أُنَاوِلُهُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

کله به ما د حیض په ورځو کې د هډوکي غوښه وشکوله بیا به مې هماغه هډوکي نبي عَلَیْهِ السَّلَام ته ورکړو نو

فَيَضَعُ فَاهُ عَلَى مَوْضِعِ فِيَّ [1].

دوی به هماغه ځای خوله کېښودله او غوښه به یې وشکوله په کوم چې ما خوله اېښې وه او غوښه مې شکولې وه

(۴) وَ عَنْهَا قَالَتْ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَتَّكِئُ فِي حِجْرِي وَ أَنَا

د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما په غېږ کې تکیه کړې وه ناست ؤ او زه د

حَائِضٌ ، ثُمَّ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ .(مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). (بخاري ۱/۸۲،مسلم ۱/۱۶۹)

حیض په حالت کې وم او قرآن مجید یې لوستلو.

(۵) وَ عَنْهَا ، قَالَتْ : قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : نَاوِلِينِي الْخُمْرَةَ مِنَ الْمَسْجِدِ.

د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمایل چې را پورته کړه جانماز د جومات

فَقُلْتُ : إِنِّي

نه او ماته یې راکړه (یعني د جومات نه بهر او دربره لاس ورد ننه کړه او جانماز را پورته کړه) ما وویل چې زه

حَائِضٌ فَقَالَ إِنَّ حَيْضَتَكِ لَيْسَتْ فِي يَدِكِ [2].

خو حائضه یم (نو جومات ته لاس څنګه داخل کړم) نبي عَلَیْهِ السَّلَام وفرمایل ستا په لاس کې خو حیض نشته.

**توضیح:** د دې حدیث نه دا قاعده راوتلې ده چې د هر انسان د قیام مقام او مکان اعتبار د هغه په قدمینو او پښو باندې دی په کوم باندې چې د هغه ټول بدن متوازن و دریدلی دی، اوس که چېرته انسان په پښو باندې د جومات نه بهر ولاړ دی او د بدن بوج یې په پښو باندې دی نو دا کس د جومات نه بهر شمارل کیږي اګر که د هغه لاس یا سر په جومات کې دننه ولې نه وي دا کس خارج مسجد دی، نو جنب سړی یا حائضه ښځه که چېرته همداسې وکړي نو د دې ګنجایش شته او که مسجد ته د نه داخلیدو که کوم کس قسم وکړي او بیا همداسې عمل وکړي نو هغه نه حانث کیږي.

همدارنګې که چېرته په جومات کې دننه ولاړ دی او سر بهر کړي یا لاس بهر کړي نو هغه لره اعتبار نشته اعتبار خپو لره او په هغو باندې قیام لره دی، پورتنیو حدیثونو او راتلونکو حدیثونو امت ته د

(۱) اخرجه مسلم في الصحيح ۱/۲٤٥ رقم الحديث: ۱٤-۳۰۰، وابو داود ۱/۱۷۸ رقم الحديث :۲۵۹، والنسائي ۱/۱٤۹، رقم الحديث: ۲۸۲ .

(۲) اخرجه مسلم في الصحيح ۱/۲٤۲ رقم الحديث: ۱۱-۲۹۸، وابو داود ۱/۱۷۹ رقم الحديث :۲٦۱، والترمذي ۱/۲٤۱ رقم الحديث : ۱۳٤.

حائضې سره د ناستې ولاړې راشه درشه تعلیم ورکړی دی او د کوروالي نه يې منعه کړې دي، په یهودو او نصاراو دې د خدای لعنت وي. (المرقات ۲/۲۴۷)

| |
|---|
| (۶) وَعَنْ مَيْمُونَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا. قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي مِرْطٍ، |
| د میمونې رضي الله عنها نه روایت دی چې رسول الله ﷺ په يو داسې څادر کې مونځ وکړلو د کوم |
| بَعْضُهُ عَلَيَّ وَ بَعْضُهُ عَلَيْهِ ، وَ أَنَا حَائِضٌ.[۱] (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). |
| څه برخه په دوي باندې د پاسه وه او څه برخه يې په ما باندې وه او زه د حیض په ورځو کې وم. |

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### په دريو افعالو باندې د کفر حکم

| |
|---|
| (۷) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَتَى حَائِضًا، |
| دابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: چاچې کوروالی وکړو د حیض په |
| أَوِ امْرَأَةً فِي دُبُرِهَا ، أَوْ كَاهِنًا ، |
| ورځو کې يا يې د ښځې سره د شا د طرفه بد فعلي وکړه يا کوم کاهن ته د (غيبو خبرو د پوښتنې) د پاره ورغی نو |
| فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ.[۲] |
| دغه کس (ګويا چې) په محمد ﷺ باندې نازل شوي دين نه انکار وکړو. |
| وَ فِي رِوَايَتِهِمَا : " فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ ؛ |
| دابن ماجه او دارمي په روايتونو کې دا الفاظ هم شته چې د کاهن لخوا ويل شوو خبرو تصديق هم وکړي |
| فَقَدْ كَفَرَ . وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ : لَا نَعْرِفُ هٰذَا الْحَدِيثَ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ حَكِيمٍ |
| نو هغه کافر دی، او امام ترمذي ويلي ماته دا حديث معلوم نه دی په غير د هغه سند نه کوم چې حکيم |

(۱) هذا الحديث غير موجود في الصحيحين ولا في احدهما وقد أخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۲۱٤ رقم الحديث : ۶۵۳.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۱/۲٤۲، رقم الحديث :۱۳۵، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۱/۲۰۹ رقم الحديث:۶۳۹، والدارمي في السنن ۱/۲۷۵ رقم الحديث : ۱۱۳۶.

| |
|---|
| الْأَثْرَمِ عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ). (۱) |
| اثرم د ابو تمیمه نه روایت کړی دی او هغه د ابو هریره نه. |

**توضیح: من اتی حائضا**: یعنې چې د حیض په حالت کې جماع حلاله وګڼي نو هغه کافر دی، ځکه چې د دې حرمت په قطعي نص سره ثابت دی، همدارنګه دا د صحت د پاره تباهي ده. (المرقات ۲۴۸-۲/۲۴۹)

**في دبرها**: د دې نه د ښځې سره بد فعلي مراد ده د دې حلال ګڼونکی هم کافر دی، بعضو شعیو امامیو جائز ګڼلی څه خلکو ته یې د قرآن په آیت ﴿فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ﴾ سره دوکه ورکړې ده دارنګه په هغه روایت سره یې هم دوکه ورکړې ده په کوم کې چې د آنی شئتم یو صورت ښودل شوی دی کوم چې د دبر د طرف نه په قبل کې جماع کول دي نو جماع په هر حال کې په قبل کې ده د کوم طرف پابندي او تعین نشته، روافضو همدا قبیح عمل د حضرت ابن عمر رضی الله عنه طرفته منسوب کړی دی حالانکه هغه رضی الله عنه ویلي دي آیا کوم مسلمان د بد فعلی همدا عمل کولی شي؟. (المرقات ۲/۲۴۸)

**کاهنا**: کاهن هغه دی کوم چې د غیبو راتلونکي خبرې خلکو ته بیانوي، کله کوم پیری هغه ته خبر راوړي نو دغه دروغجن کاهن د هغه سره ملاو شي د آئنده پیشنګویانې کوي دا هم حرام دي. (المرقات ۲/۲۴۸)
اقبال مرحوم وایي:

تیرے تقدیر کو انجم شناس کیا جانے     تو خاک زندہ ہے تو تابع ستارہ نہیں

سعدي شیرازي یو نجومي ته وویل:

تو بر اوج فلک چہ دانی چیست     چون نہ دانی کہ در سرائے تو کیست

**فقد کفر**: د دې یو مطلب دا دی چې دا حدیث په تشدید او تغلیظ باندې محمول دی ځکه چې د کبیرې مرتکب د اهل سنت په نزد کافر نه دی. (المرقات ۲۴۸-۲/۲۴۹)

| |
|---|
| (۸) وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ. مَا يَحِلُّ لِي مِنِ امْرَأَتِي |
| د معاذ بن جبل رضی الله عنه نه روایت دی چې ما عرض وکړو یارسول الله! څه حلال دي زما د پاره زما د ښځې |
| وَهِيَ حَائِضٌ؟ قَالَ: مَا فَوْقَ الْإِزَارِ، وَالتَّعَفُّفُ عَنْ ذٰلِكَ أَفْضَلُ (۲). (رَوَاهُ رَزِينٌ) |
| سره د حیض په حالت کې؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ما فوق الازار او د دې نه ځان ساتل هم بهتر دي |

(۱) ترمذي ۱۳۵، ابن ماجه ۶۳۹.
(۲) اخرجه ابوداود في السنن ۱/۱۴۶.

وَ قَالَ مُحْيِي السُّنَّةِ : إِسْنَادُهُ لَيْسَ بِقَوِيٍّ.

او محی السنه ویلي دي چې د دې حدیث سند قوي نه دی.

## د حیض په حالت کې د جماع کفاره

(۹) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وَقَعَ الرَّجُلُ

د ابن عباس رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي که چیرته کوم کس جماع وکړي

بِأَهْلِهِ وَ هِيَ حَائِضٌ ، فَلْيَتَصَدَّقْ بِنِصْفِ دِينَارٍ.[1]

د خپلې ښځې سره د حیض په حالت کې نو هغه ته د نیم دینار صدقه کول په کار دي.

(۱۰) وَ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : إِذَا كَانَ

د ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل (د حیض په ورځو کې) که چیرته

دَمًا أَحْمَرَ فَدِينَارٌ ، وَ إِذَا كَانَ

د وینې رنګ سور وو (او په دې حالت کې که څوک کوروالی وکړي) نو یو پوره دینار او که د وینې رنګ

دَمًا أَصْفَرَ فَنِصْفُ دِينَارٍ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[2].

زیړ وو نو نیم دینار (صدقه کول لازم دي).

**توضیح : اذا کان دماً احمر** : دا فرق په دې وجه دی چې وینه د حیض په ابتداء کې سره وي نو د داسې وینې په دوران کې د جماع مطلب دا شو چې اوس اوس ښځه حائضه شوې ده دې سره لږ وخت مخکې خاوند جماع کړې وه اوس یوه ورځ هم نه ده تیره شوې چې خاوندیې بې قاعدګي او بې صبري کړې ده لهذا په هغه باندې جرمانه هم زیاته ده چې یو دینار ورکړي، لیکن کله چې کافي وخت تیر شوی دی لهذا دا کس څه ناڅه معذور دی چې څو ورځې یې رخصتي کړې ده نو اوس په هغه باندې نیم دینار جرمانه راغله. دفرق یوه وجه دا هم ده چې کله وینه سره وي نو دا د حیض د ځوانۍ زمانه ده په دې وخت کې جماع کول زیات جرم دی نو د پوره دینار ورکول دي که نه نو نیم دینار دی.

**د دې معمولي شان جرمانې لګولو مطلب دا دی چې دې کس ته دا احساس ورکړی شي چې شرم وکړه مړ شه چې د حیض په حالت کې دې کوروالی کړی اوس د هغه تاوان هم ورکړه، کله چې یو ځل تاوان**

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲۴۴/۱، رقم الحديث : ۱۳۶، وأخرجه ابن ماجه في سننه ۲۱۰/۱ رقم الحديث: ۶۴۰.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۲۴۵/۱، رقم الحديث : ۱۳۷.

ورکړي بیا به جرم ته نزدې نه ورځي، د جرمانې فرق د حیض د قوت او ضعف په بناء باندې دی. دارنګې دصدقې حکم په دې وجه ورکړی شوی دی چې **الصدقة تطفیٔ غضب الرب** نوصدقه جرم سپکوي دارنګه دجمهوروپه نزد دصدقې حکم استحبابي دی اصل شی استغفار دی او په رښتیني زړه سره توبه کول دي. (المرقات۲/۲۵۱).

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د حائضې سره غیر نیول او خکولول جائز دي

| |
|---|
| (۱۱) عَنْ زَیْدِ بْنِ أَسْلَمَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: إِنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: |
| د زید بن اسلم رضي الله عنه نه روایت دی چې یو کس د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه وکړه او وې ویل چې |
| مَا يَحِلُّ لِيْ مِنَ امْرَأَتِي وَ هِيَ حَائِضٌ ؟ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| زما د پاره زما د ښځې سره کله چې هغه په حالت د حیض کې وي څه روا دي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل |
| تَشُدُّ عَلَيْهَا إِزَارَهَا، ثُمَّ شَأْنُكَ بِأَعْلَاهَا(۱). |
| د هغې تهبند (ازار) دې ښه مضبوط وتړل شي بیا د تهبند د پاسه ستا کار دی (یعنې د نامه نه پورته تا ته اختلاط مباح دی او د نامه نه ښکته حرام دی). |

## د حیض اثرات

| |
|---|
| (۱۲) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ، قَالَتْ : كُنْتُ إِذَا حِضْتُ نَزَلْتُ عَنِ الْمِثَالِ |
| دعائشې رضي الله عنها نه روایت دی وایي چې کله به زه په حالت د حیض کې وم نو د بسترې نه به راکوزه شوم |
| عَلَى الْحَصِيرِ ، فَلَمْ يَقْرَبْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ ، وَ لَمْ تَدْنُ مِنْهُ حَتَّى |
| او پوزي (چټائي) ته به راغلم نو نزدې به نه راتلو رسول الله صلی الله علیه وسلم او نه به زه نزدې ورتلم ترڅو به |
| تَطْهُرَ(۲). |
| چې پاکه شوې نه وم. |

(۱) اخرجه مالک في الموطا ۵۳/۱ رقم الحديث . ۹۳ من كتاب الطهارة واخرجه الدارمي في السنن ۲۵۸/۱ رقم الحديث :۱۰۳۲.

(۲) اخرجه ابوداود في السنن ۱۸٦/۱ رقم الحديث : ۲۷۱ .

**توضیح** : حیض په ډیرو شیانو باندې اثر کړی دی او د ډیرو شیانو د پاره مانع دی ، څو شیان یې دلته وګورئ :

(۱) حیض د مونځ د پاره مانع دی ترڅو چې حیض دی طهارت نه شي راتلی.

(۲) د **وجوب الصلوة** د پاره مانع دی دارنګه د **صحة الصلوة** د پاره هم مانع دی.

(۳) د **صحة الصوم** نه هم مانع دی، یعنې روژه اګر که واجبه شوې ده لیکن د هغې په همدې حالت کې ساتل صحیح نه دي.

(۴) د تلاوت قرآن او مسح مصحف نه مانع دی.

(۵) د دخول مسجد نه مانع دی.

(٦) د جماع نه مانع دی.

ددې نه وروسته په دې پوهیدل په کار دي چې دا حدیث د مخکنو ډیرو احادیثو سره متعارض دی په کومو کې چې د حایضې سره ناسته پاسته د خکلولو او غیره نیولو ذکر شوی.

د دې جواب دا دی چې مونږ د رسول الله ﷺ د اجازت نه بغیر نزدې نیو تللي په اجازت سره خکلول او غیره نیونه وه.

دویم جواب دا دی چې دا حدیث منسوخ دی یا ضعیف دی.

دا خبره هم محفوظ نظر ده چې په دې حدیث کې یوه نسخه (**قلم یقرب**) ده مذکوره ترجمه د همدې نسخې مطابق ده.(المرقات ۲/۲۵۷).

۹ ربيع الاول ۱٤۱۰هـ

# بَابُ الْمُسْتَحَاضَةِ

## د مستحاضې بيان

د مستحاضې مسائل د فقې د مهماتو نه عميق او مشكل مسائل دي، علماؤ په هره زمانه كې په دې باندې مستقل كتابونه ليكلي دي، مثلا امام نووي رَحِمَهُ اللهُ په دې باندې مستقل كتاب ليكلى دى، امام محمد رَحِمَهُ اللهُ مستقل كتاب ليكلى دى او امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ هم په دې باندې مستقل كتاب ليكلى دى، د مستحاضې او استحاضې متعلق څو بحثونه جدا جدا ليكل ضروري دي ددې نه وروسته تمام احاديث به د هغو په رڼا كې ډير آسانه شي.

**اول بحث** : اول بحث په دې كې دى چې د استحاضې لغوي مفهوم او حقيقت څه دى نو **استحاضه** د باب افعال مصدر دى د هغه مجرد حيض دى كوم چې د باب **حاض يحيض حيضًا** نه راغلى دى، په بب **استفعال** كې چې د كوم **سين** او **تاء** زيات شوي دي د هغې ډير خواص دي، دلته **سين** او **تاء** يا خو د زياتې مبالغې دپاره دي يعنې د ډيرې زياتې وينې بهيدل او يا دا د مصدر تحول دپاره راغلي دي يعنې ديو حقيقت نه وتل دويم حقيقت ته لاړل مثلا :**استنوق الجمل اى تحول الجمل الى الناقة** يا ويل شوي دي **كان حماراً فاستتن اى صار الحمار اتاناً**، يعنې مخكې خر وو اوس خره شوه دلته هم استحاض يعنې **صار الحيض شيئًا اخر اى تحول الحيض استحاضة** يا ويل شوي **استحجر الطين اى صار الطين حجرا**.

اوس د علمي لطيفې په طور دا خبره وپيژنئ چې د استحاضې د مادې او صيغې نه چې تاسو كوم هم استعمال كړى هغه به مجهول وي د معلوم صيغه نه شي راتلى، همدارنګه اسم فاعل نه شي استعماليدى بلكې د هغه دپاره اسم فاعل ماتيږي اسم مفعول به جوړ كړى شي.نو **استحاضت المرأة** نه شي ويل كيدى بلكې **تستحاض المرأة** يا **استحيضت المرأة** د مجهول صيغه ويل كيدى شي د **امرأة مستحيضة** ويل صحيح نه دي بلكې **مستحاضة** ضروري دى كوم چې اسم مفعول دى نو دا د استحاضة لفظ لغوي تحقيق وو.

د استحاضې اصطلاحي تعريف دا دى چې د حيض او نفاس نه بغير د ښځې د قبل نه چې كومه وينه راځي هغې ته استحاضه ويل كيږي. (المرقات ۲/۲۵۳).

په احاديثو كې د استحاضه وجه او د اسبابو په باره كې مختلف الفاظ راغلي دي،په يو ځاى كې د **انها**

**ركضة الشيطان** الفاظ دي، په دويم ځای کې **عرق القطع** الفاظ دي ددې په تشريح کې په يو حديث کې د **داء عُرِضَ** الفاظ دي.

شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې دا يو رګ دی د کوم نوم چې **عاذل** دی او حضرت شاه انور شاه رَحِمَهُ اللهُ ورته د **فم رحم** نوم ورکړی دی، که هر څه وي دا وينه بهر حال د رحم نه راځي، البته دا غير طبعي وينه ده کومه چې د مزاج د فساد د وجې راځي، په حديث کې د **داء عرض** چې کوم الفاظ راغلي دي دا د همدې غير طبعي طرف ته اشاره ده اوس **ركضة الشيطان** دې دوه اخيرو اسبابو لره شامل دی چې شيطان دا کله د عرق انقطع په صورت کې ښکاره کوي او کله يې د داء عرض په صورت کې ښکاره کوي، د عرق عاذل اصطلاح د طبيبانو په نزد نشته په باقي شيانو کې هغوی متفق دي، بهر حال کله کله دا وينه په رحم کې دننه د کوم رګ نه هم راځي،دا هم يو سبب دی مستحاضه ښځه د اصحاب اعذارو اوشرعي معذورينو په حکم کې ده، لهذا هغه به د نورو معذورانو په شان مونځ کوي ټول عبادات به اداء کوي خاوند ورسره جماع کولی شي، ګويا چې استحاضه **سلسل البول. رعاف دائم، استطلاق البطن،** او **انفلات الريح** د ناروغيو په شان ناروغي ده کومه چې د کوم شرعي امر دپاره مانع نه ده .

**دويم بحث : د مستحاضې اقسام** : د ائمه احنافو په نزد د مستحاضې ټول درې قسمونه دي، معتاده، مبتدأه او متحيره، د هرې يوې دپاره جدا جدا احکام دي، د جمهورو علماو هم دغه رأيه ده، ليکن د دوي په نزد د مستحاضې يو څلورم قسم هم شته کومه چې د مميزې په نوم سره مشهوره ده، وروسته يې تفصيل راروان دی.

**د معتادې حکم** : معتاده هغه ښځه ده د کومې د حيض موده چې معلومه او مشهوره وي چې مثلا اته يالس يا پنځه ورځې حيض ورته راځي دا د هغې عادت دی، د ائمه احنافو په نزد درې وارې کله چې په يو اندازسره حيض راشي نو د عادت د ثبوت او تقرر دپاره همدا کافي دي، د معتادې حکم دا دی چې د عادت تر مودې پورې حيض شمارل کيږي او د هغې نه وروسته مستحاضه شمارل کيږي، د حيض په ورځو کې دغه ښځه شرعي احکام نه شي ترسره کولی او په استحاضه کې دې ټول اداء کوي د کومو معتادو ښځو بيان چې راغلی دی د احنافو په نزد زياتره معتادې وې.

**د مبتدئې حکم** : مبتداه هغې مستحاضې ښځې ته ويل کيږي کومې ته چې د بلوغ په وخت کې په رومبي وار حيض راشي هغه دومره اوږد شي چې د حيض د اکثرې مودې نه هم واوړي، د مبتدئې حکم د احنافو په نزد دا دی چې لس ورځې د هغې حيض ده باقي استحاضه ده، د شافعيانو په نزد پنځلس ورځې حيض ده باقي مستحاضه ده، د مالکيانو په نزد اوولس ورځې حيض دی باقي مستحاضه ده په هره مياشت کې

په د هغې همدا حکم وي.

**د متحيرې حکم**: متحيره هغه مستحاضه ښځه ده کومه چې د خپل حيض او د استحاضې په ورځو کې تميز نه شي کولی او په خپله حيرانه پاتې وي چې اوس زه څه وکړم يا د ديني عالم او فقيه دقيقو مسائلو هغه حيرانه کړې وي يا ددې متحيرې د حيرانۍ او پريشانۍ د وجې د هغې درې قسمونه دي. يعنې يو قسم متحيره في مدة الزمان ده چې څومره ورځې وينه راغلې وه په دې کې حيرانه او پريشانه ده، دويمه متحيره في اوقات الزمان ده چې د کله نه وينه شروع شوې وه آيا د مياشتې په شروع کې وه په مينځ کې وه که په اخير کې وه، د متحيرې دريم قسم دا دی چې په ټولو کې حيرانه او پريشانه ده، د دې حکم په اجمالي طور زده کړئ چې دا ښځه دې په خپلو مسائلو کې سوچ فکر او تحري وکړي او بيا دې په ظن غالب باندې عمل وکړي، د حنفي فقهاؤ همدا خلاصه ده، ددې نه زيات په مسائلو کې په لويدلو سره حيراني پيدا کيدو نه په غير بل څه نه ترلاسه کيږي، ځکه چې همدې متحيرې ته ضاله هم ويل شوي دي کومه چې په خپله حيرانه شوې يا مضله ده کومه چې عالم بې لارې پريږدي.

**دريم بحث: د وينې په رنګونو کې فرق کول**: د احنافو په نزد د مستحاضې هماغه درې قسمونه دي د کومو چې ذکر شوی دی، د نورو فقهاؤ په نزد د مستحاضې يو څلورم قسم هم شته کومې ته چې مميزه ويل کيږي کومه چې د خپلې وينې رنګونو ته په کتلو سره د ورځو تعين کولی شي، د احنافو په نزد دې لره هيڅ اعتبار نشته دی. (المرقات ۲/۲۵۴).

بهر حال دلته دابحث دی چې کوم رنګونه د حيض دي او کوم رنګونه د استحاضې دي، په فتح القدير کې ليکل شوي چې د وينې ټول شپږ رنګونه دي(۱)حمرة(۲)صفرة(۳)خضرة(۴)کدرة(۵)تربة(۶) سواد. په دې اقسامو کې دوه يعنې حمرة او سواد بالاتفاق د حيض وينه ده او د خضرة او صفرة په باره کې هم د علامه نووي رَحِمَهُ اللَّهُ وينا ده چې هغه هم د حيض وينه ده.

**د فقهاؤ اختلاف**: اوس په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی د وينې رنګونو لره اعتبار شته او که نشته، يعنې د وينې د رنګ په صاحب دم باندې اثر لويږي او که نه؟ د جمهورو په نزد د وينو د رنګونو اختلاف ته اعتبار دی يا په خپل مينځ کې د دوی اختلاف دی چې که چيرته د عادت او د وينې په رنګ کې اختلاف راشي نو ترجيح به کوم ته ورکول کيږي، يعنې د عادت تقاضا يوه ده او د رنګ تقاضا بله ده نو ترجيح به کوم ته وي؟ امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ ويلي دي چې عادت لره به ترجيح وي او امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ ويلي دي چې د مميزې تميز لره به ترجيح وي، بهر حال د جمهورو په نزد رنګونو لره اعتبار دی او د هغو نه د دوی په نزد مميزه پيدا شوې ده چې يوه مستحاضه مميزه هم ده کومه چې د وينې رنګ ته وګوري فيصله کولی شي چې دا د حيض وينه ده او که د مستحاضې وينه ده، د احنافو په نزد رنګونو لره هيڅ اعتبار نشته ځکه دا اکثره دومره مشکل شي چې ډاکټران او طبيبان يې هم فرق نه شي کولی. (المرقات ۲/۲۵۵)

**دلائل**: جمهورو د فاطمې بنت ابی حبيش رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا په روايت سره استدلال کړی دی، په کوم کې چې دا

الفاظ راغلي :فأنه دم اسود يعرف يعني د حيض وينه توره وي کومه چې پيژندل کيدی شي د دې تميز ښځه کولی شي، لهذا په رنګونو سره تميز لره اعتبار شته دی او مميزه يو منل شوی حقيقت دی، د جمهورو په نزد مميزه او تميز بالالوان د ضابطې او قاعدې په طور منل شوي دي، ائمه احنافو د حضرت عائشې رضي الله عنها په روايت سره استدلال کړی دی کوم چې امام مالک په موطا کې نقل کړی دی :(كان النساء يبعثن الدرجة الى عائشة فيها الكرسف فيه الصفرة من دم الحيض يسئالنها عن الصلوة قالت لاتعجلن حتى ترين القصة البيضاء) (موطأ مالک ص ٤٣).

يعني ښځو به خپل د حيض کرسف په ډبي کې بند کړ د حضرت عائشې رضي الله عنها خدمت ته به يې ورو ليږه تر څو چې هغه فيصله وکړي چې دا وينه د حيض ده او که د استحاضې ده تر څو چې د مونځ کولو حکم معلوم شي، حضرت عائشې رضي الله عنها ويلي چې تاسو ښځې جلتي مه کوئ تردې پورې چې خالص سپين والی وويني کله چې سپين والی راشي نو هغه د حيض وينه نه ده تاسو مونځ کولی شئ (المرقات ۲/۲۵۴)

ترجمه: احنافو د فاطمه بنت ابي حبيش رضي الله عنها په روايت :اذا كان دم الحيض فأنه دم اسود يعرف باندې دوه اعتراضونه کړي دي د اول اعتراض تعلق د جمهورو د استدلال د الفاظو او سند سره دی :

(۱) بيهقي ويلي دي چې دا الفاظ مضطرب دي.

(۲) ابن ابی حاتم ويلي دي چې ما د خپل پلار نه ددې الفاظو په باره کې پوښتنه وکړه نو هغه وويل چې دا روايت منکر دی.

(۳) يحيی بن سعيد قطان ويلي دي چې دا منقطع دی طحاوي دا روايت شاذ ګڼلی دی.

دويم اعتراض احنافو دا کړی دی چې د رنګونو اختلاف د غذاء ځايونو او زمانو د وجې هم کيدی شي لهذا د غوښې خوړونکې ښځې د حيض وينه توره راځي او د زياتې سبزۍ خوړلو د وجې نه په وينه کې د سبزۍ رنګونه راتلی شي د ګرمۍ او يخنۍ په ځايونو کې د ښار آب او هوا اثر په انسان باندې په طبعي طور غورزيدی شي لهذا د وينې رنګ د حيض او استحاضې دپاره ضابطه نه شي جوړيدی، بلکې عادت يو مضبوط طبعي نظام دی د هغه د معيار په طور قبلول په کار دي، همدارنګه د حديث زياتره الفاظو اشاره د عادت طرف ته ده صرف دا يوه جمله کومه چې پورته ذکر شوې ده په هغې کې د رنګونو ذکر دی ليکن دا روايت قابل استدلال نه دی خصوصا کله يې چې په مقابل کې نور احاديث هم شته دی.

جمهورو د اول فصل اول حديث (فأذا اقبلت حيضتک فدعى الصلوة) سره هم استدلال کړی دی ليکن په دغه حديث سره د وينې په رنګ باندې استدلال کول قابل فهم دي لهذا د هغه جواب ته هم ضرورت نشته.

**څلورم بحث : د احادیثو مصداق** : په باب الاستحاضه کې د مستحاضې په باره کې په احادیثو کې مختلف احکام ذکر شوي دي د تتبع او تالاش نه معلومه شوې ده چې دلته درې قسمه احکام ذکر شوي:

(۱) د مستحاضه دپاره د رسول الله صلی الله علیه وسلم رومبی حکم دا دی چې **(تدع الصلوة ایام اقرائها)** چې د حیض په ورځو کې دې دا ښځې مونځ پرېږدي.

**(۲) اذا اقبلت حیضتک فدعی الصلوة واذا دبرت فاغسلي عنک الدم.**

په دې روایت کې د حیض تلو راتلو وقتونو طرف ته اشاره ده او د ښځې عمل ښودل شوی دی په کوم سره چې د معتاده طرف ته اشاره کیدی شي.

**(۳) لتنظر عدد اللیالي والایام التي کانت تحیضهن من الشهر.**

په دې روایت کې هم اشاره ده چې ښځې ته د خپلو ورځو ښه حساب کول په کار دي.

د ائمه احناف په نزد ددې ټولو روایتونو تعلق د معتادی سره دی او دا احکام هم د معتادې بیان شوي دي او د شوافعو په نزد په دویم روایت کې هم د معتادې او ممیزې دواړو احتمال دی او دریم روایت د ممیزې دپاره دی، د احنافو او حنابلو په نزد د ممیزې وجود نشته بلکه مستحاضه یا معتاده ده یا مبتدأه ده یا متحیره ده کومې ته چې ضالة او مضلة هم ویل کیږي ځکه چې دا ښځه یا د حقیقت د موندلو نه په خپله ورکه شوې ده یا کوم فقیه گمراه کړې ده. (المرقات ۲/۲۵۴).

**پنځم بحث : د مستحاضې د اودس حکم** : د باب المستحاضه په روایتونو کې د مستحاضه ښځې د اودس احکامو او غسل په باره کې ډیر قسمه الفاظ راغلي دي، مثلا په یو روایت کې **تتوضأ لکل صلوة** الفاظ راغلي په دویم روایت کې **تغتسل لکل صلوة** الفاظ راغلي دي په یو روایت کې **تتوضأ لوقت کل صلوة** - الفاظ دي او په یو روایت کې **تجمع بین الصلوتین بغسل واحد** الفاظ دي، د مشکوة شریف د روایتونو مفهوم هم دا رنګه لیکل شوی دی، اګر که د پورتنو الفاظو نه د مشکوة الفاظ مختلف دي.

**د فقهاء کرامو اختلاف** : د انقضاء حیض نه وروسته په مستحاضې باندې یو غسل بالاتفاق فرض دی، د اودس په باره کې امام مالک رحمه الله ویلي دي چې د استحاضې په وینې سره اودس نه ماتیږي او په کومو روایتونو کې چې د اودس حکم راغلی دی هغه د مالکیو په نزد په استحباب باندې محمول دی، د ائمه ثلاثو په نزد د استحاضې وینې وتل موجب اودس دی، مستحاضې ته د اودس کول دي، بیا د همدې حضراتو په خپل مینځ کې د اودس په باره کې اختلاف شوی دی چې آیا د هر مونځ دپاره مستحاضه اودس وکړي او که د هر وخت دپاره یې وکړي. د شافعیانو په نزد په مستحاضه باندې لازم دي چې د هر مونځ دپاره اودس وکړي او که چیرته په یو وخت کې د څو مونځونو کول وي نو د هر فرض

مونځ دپاره به نوی اودس کولی شي، هو د وختي مونځ سره چې کوم توابع سنت دي هغه په همدې اودس سره ترسره کولی شي ګویا چې د فرض مونځ نه وروسته د مستحاضې اودس مات شو. د ائمه احنافو او حنابلو په نزد مستحاضه دې د مونځ د وخت دپاره اودس وکړي کله چې د مونځ وخت تیر شي نو د هغې اودس ماتیږي، وخت چې ترڅو پورې موجود دی په هغه وخت کې هر رنګه مونځ کولی شي که نفلونه وي که فرائض وي. (المرقات ۲۵۴-۲/۲۵۵).

**دلائل**: امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ د **تتوضأ لکل صلوة** او **تتوضأ عند کل صلوة** روایت سره استدلال کړی دی او حکم یې لګولی دی چې مستحاضه کله هم مونځ کوي نو اودس دې وکړي په ډیرو زیاتو احادیثو کې د اودس کولو حکم راغلی دی او د مشکوة په دویم فصل کې د عدي بن ثابت په روایت کې: **تتوضأ لوقت کل صلوة** الفاظ راغلي دي، په بعضو روایتونو کې **حتی یجئ ذلک الوقت** الفاظ راغلي دي په دې سره هم احنافو استدلال کړی دی چې د وخت دپاره اودس دی ځکه چې د وخت صراحت موجود دی. (المرقات ۲۵۴-۲/۲۵۵).

ترجمه: ائمه احنافو او حنابلو کله چې د **تتوضأ لوقت کل صلوة** په روایت سره استدلال کړی نو اوس **تتوضأ لکل صلوة** او **عند کل صلوة** والا روایتونو نه د دوي دپاره مسئله راپورته شوې ده چې په دوی باندې څنګه عمل وکړی شي او د دې جواب څه جوړیدی شي.

د احنافو مشهور محقق ابن همام رَحِمَهُ اللّٰهُ ویلي دي چې په احادیثو کې دری قسمه الفاظ دي: **لوقت کل صلوة، لکل صلوة، عند کل صلوة**، ړومبی لفظ د وخت دپاره متعین دی او په اخیرنو دواړو جملو کې د وخت او مونځ دواړو معناګانو احتمال دی ځکه چې لام او عند تعلیلیه هم کیدی شي نو معنی دا شوه چې مستحاضه دې د هر مونځ د وجهې نه اودس وکړي او وقتیه هم کیدی شي.

نو مطلب دا سې کیږي چې مستحاضه دې د مونځ د هر وخت دپاره اودس وکړي، اوس د همدې محتمل کلماتو په متعین کلماتو باندې حمل کول په کار دي په کومو کې چې د وخت تعین شوی دی لکه **تتوضأ لوقت کل صلوة** دي خلاصه دا ده چې مجمل او محتمل په مفسر او متعین حمل کړی شي او په عربي لغت کې لام د وخت دپاره استعمال شوی دی د قرآن کریم آیت دی ﴿**أَقِمِ الصَّلَاةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ**﴾ دلته لام د وخت دپاره دی (ای **وقت دلوک الشمس**) همدارنګه عرب وایي **آتیک للظهر اي في وقت الظهر** خلاصه دا راووتله چې د حدیث تمام الفاظ د وقت په معنی باندې په اسانۍ سره حمل شوي دي او د مونځ په معنی که چیرته واخیستل شي نو په هغو روایتونو باندې حمل کیدی نه شي په کومو کې د

وخت لفظ راغلی دی، امام طحاوي په شوافعو باندې دا اعتراض کړی دی چې مثلا یوې مستحاضې ښځې د مونځ دپاره خو اودس وکړ مگر مونځ یې ونکړ او د مونځ وخت تیر شو نو اوس ووایې چې د هغې اودس څنګه ماتیږي کله چې د هغې دپاره تاسو حضرات مونځ ناقض الوضوء بللی دی؟.

دارنګه طحاوي دا اشکال هم کړی دی چې په شریعت مطهره کې دا حبره خو مشهوره ده چې د وخت په ختمیدو او د وخت په تیریدو سره اودس ماتیږي مثلا یو کس په موزو باندې مسح کړې ده اوس د مقیم او د مسافر د مسح موده چې ختمه شي او وخت تیر شي نو اودس ماتیږي نو **خروج الوقت ناقض الوضوء** شو، مگر په شریعت کې فراغ عن الصلوة چیرته هم ناقض الوضوء نه دی ګرځول شوی او نه د دې کوم نظیر پیدا شوی، دارنګه د هر مونځ دپاره د اودس په کولو کې احتیاط خو شته لیکن په دې کې دې مسکینو ته تکلیف هم دی که چیرته د حدیث شریف نه سهولت ترلاسه کیدی شي نو حرج مدفوع في الشرع دی،په حرج اچولو ته څه ضرورت دی؟.

**د مستحاضې د غسل مطلب**: د مستحاضې سره متعلق چې کوم احادیث وارد دي په هغو کې د بعضو نه په واضح طور معلوم شوي دي چې رسول الله ﷺ مستحاضې ته د هر مونځ دپاره د غسل کولو حکم کړی وه، امام طحاوي رحمه الله هم د سهله بنت سهیل رضي الله عنها متعلق نقل کړي دي چې هغې ته رسول الله ﷺ د هر مونځ دپاره د غسل کولو حکم کړی وو، د مشکوة شریف په دریم فصل کې اسماء بنت عمیس رضي الله عنها په حدیث کې دا الفاظ دي **لما اشتدت علیها الغسل** یعنې د هر مونځ دپاره غسل کول کله چې په فاطمه بنت ابی حبیش باندې سخت شو نو رسول الله ﷺ هغې ته د دوو مونځونو دپاره د غسل کولو حکم وکړو ددې نه هم د هر مونځ دپاره د غسل کولو حکم معلوم شوی دی، یعنې د ظهر او عصر دپاره یو غسل د مغرب او عشاء دپاره دویم غسل او د فجر دپاره دریم غسل نو د دې پنځو مونځونو دپاره د درې غسلونو حکم دی دارنګه د پنځو مونځونو دپاره د دریو غسلونو حکم ددې باب په اخیري حدیث کې هم دی د کوم روایت چې اسماء بنت عمیس رضي الله عنها کړی دی.ددې غسلونو نه په غیر د هر مونځ دپاره د اودس کولو حکم هم په ډیرو احادیثو کې راغلی دی، اوس د ائمه اربعو مسلک د اودس دی نو د غسل دې حدیثونو ته جواب ورکول او د هغو په صحیح محمل باندې حمل کول د ائمه اربعو ذمه واري ده، لهذا ددې احادیثو ائمه اربعو او د جمهورو فقهاو د طرفه علماو ډیر توجیهات کړي دي:

(۱) لومړی توجیه او جواب دا دی چې د غسل تمام احادیث په استحباب باندې محمول دي چې غسل واجب خو نه دی لیکن که یې وکړي نو مستحب دی چې د هر مونځ دپاره جدا جدا یا د دوارو مونځونو دپاره یو غسل وکړي.(۲) د غسل د تمامو احادیثو تعلق د علاج سره دی مطلب دا چې دې مستحاضو ښځو ته د غسل حکم ددې وجې شوی ترڅو چې د یخو اوبو په استعمال سره په وینه کې کمی راشي او

وينه ودرېږي.(۳) د احاديثو تعلق د متحيري د بعضو صورتونو سره دی د کومو د غسل چې احناف م قائل دي.(۴) د غسل او اودس د تمامو احاديثو نقشه په ښه طريقه امام طحاوي وړاندې کړې ده، ويلي يې دي چې سهله بنت سهيل رضي الله عنها ته رسول الله صلى الله عليه وسلم په ابتداء کې د هر مونځ دپاره د غسل کولو حکم کړی وو بيا دوي په دې کې نرمي وکړه د دوه مونځونو دپاره د يوه غسل حکم يې وکړ کله چې دا هم ورباندې سخت شو نو دوي صلى الله عليه وسلم د هر مونځ دپاره د اودس حکم وکړ نو د دوه مونځونو دپاره د يوه غسل حکم سره د هر مونځ دپاره د غسل حکم منسوخ شو بيا د هر مونځ دپاره د اودس کولو په حکم سره غسل کولو حکم منسوخ شو او که چيرته د غسل کولو حکم منسوخ شوی نه دی نو علماؤ دا جواب ورکړی دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د علاج په طور د تبريد حاصلولو دپاره د غسل حکم کړی ؤ والله اعلم.

ددې پنځو مباحثو نه الحمد لله د باب الاستحاضه د ټولو احاديثو آسانه تشريح مخې ته راغله او داد کتاب الطهارة آخري تفصيلي توضيح وه کومه چې په مکه مکرمه کې په ۳ شوال ۱۴۲۲ھ کې مکمل شوه او په دې سره د توضيحات اردو شرح مشکوة اولني جلد مکمل شو چې ددې شروع تير کال ۱۴۲۱ھ په مکه مکرمه او مدينه منوره کې شوې وه.

اللهم لک الحمد کما ينبغي لجلال وجهک و عظيم سلطانک لک الشکر علی ما انعمت ولک الشکر علی ما مننت و لک الشکر اولًا و آخرًا و لک الشکر ظاهرًا و باطنًا انت الخالق و انت المالک و انت الرازق لا رب الا انت ولا مالک الا انت ولا ناصر الا انت بيدک الخير و انک علی کل شيء قدير و صلی الله تعالی علی اشرف الخلق و خاتم النبيين جيش الانبياء و المرسلين و علی آله و اصحابه اجمعين آمين يا رب العالمين

فضل محمد بن نور محمد يوسف زئی

استاذ جامعه بنوري ټاون کراچي

حال نزيل مکة المکرمة زادها الله عزة و عظمة و هيبة و مهابة

۳ شوال ۱۴۲۲ھ

## الْفَصْلُ الْأَوَّلُ

| |
|---|
| (۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَتْ: جَاءَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ أَبِي حُبَيْشٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. |
| د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه روايت دى چې راغله فاطمه بنت ابى حبيش رَضِيَ اللهُ عَنهَا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته او وې |
| فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنِّي امْرَأَةٌ أُسْتَحَاضُ . فَلَا أَطْهُرُ . |
| ويل يا رسول الله! زه داسې ښځه يم چې داستحاضې وينه مې ډيره راځي لهذا زه هيڅ وخت نه پاکيږم . نو |
| أَفَأَدَعُ الصَّلَاةَ ؟ فَقَالَ: لَا ، إِنَّمَا ذَلِكِ عِرْقٌ وَ لَيْسَ بِحَيْضٍ ، فَإِذَا |
| آيا زه مونځ پريږدم؟ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل نه! دا ديو پاک رګ وينه ده د حيض وينه نه ده کله چې |
| أَقْبَلَتْ حَيْضَتُكِ فَدَعِي الصَّلَاةَ، وَإِذَا أَدْبَرَتْ فَاغْسِلِي عَنْكِ الدَّمَ ثُمَّ صَلِّي[1]. |
| تا ته حيض راشي نو ته مونځ پريږده او کله چې حيض ختم شي نو د بدن نه وينه وويېنځه ولامبه او مونځ کوه. |

## الْفَصْلُ الثَّانِي

| |
|---|
| (۲) عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ ، عَنْ « فَاطِمَةَ بِنْتِ أَبِي حُبَيْشٍ رَضِيَ اللهُ عَنهَا ، أَنَّهَا |
| د حضرت عروه بن زبير رَحِمَهُ اللهُ (تابعي) د فاطمه بنت ابى حبيش رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه روايت کړى دى چې هغې ته |
| كَانَتْ تُسْتَحَاضُ . فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : إِذَا كَانَ دَمُ الْحَيْضِ |
| داستحاضې وينه راتلله لهذا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې په باره کې وفرمايل چې کله د حيض وينه راشي |
| فَإِنَّهُ دَمٌ أَسْوَدُ يُعْرَفُ . فَإِذَا كَانَ ذَلِكِ ، فَأَمْسِكِي عَنِ الصَّلَاةِ ؛ فَإِذَا كَانَ الْآخَرُ، |
| چې پېژندنه يې داده چې هغه تور رنګې وي نو دې وخت د مونځ د کولو منعه شه او کله چې داستحاضې وينه |
| فَتَوَضَّئِي وَ صَلِّي ، فَإِنَّمَا |
| راشي (يعنې د تور رنګ وينې نه بغير کوم بل رنګ وي) نو اودس وکړه مونځ کوه ځکه چې (دا حيض نه |

(۱) أخرجه البخاري في الصحيح ۱ /۳۳۱ رقم الحديث ۲۲۸، ومسلم في الصحيح ۱ /۲۶۲ رقم الحديث ۶۲-۳۳۳، وابو داود ۱ /۱۹٤ رقم الحديث ۲۸۲، والنسائي ۱ /۱۸٤

هُوَ عِرْقٌ (۱)

دی) د یو رګ وینه کیدی شي.

(۲) وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا. قَالَتْ: «إِنَّ امْرَأَةً كَانَتْ تُهَرَاقُ الدَّمَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ

د ام سلمه رضي الله عنها نه روايت دی وايي چې يوې ښځې ته د استحاضې وينه راتلله په زمانه د رسول الله

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَفْتَتْ لَهَا أُمُّ سَلَمَةَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

صلی الله علیه وسلم کې (او هغه معتاده وه) ام سلمه رضي الله عنها د هغې په باره کې د نبي علیه السلام نه فتوی وغوښتله

فَقَالَ: لِتَنْظُرْ

(چې د هغې څه حکم دی؟) رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هغې ته په کار دي چې هغه وګوري چې د

عَدَدَ اللَّيَالِي وَالْأَيَّامِ الَّتِي كَانَتْ تَحِيضُهُنَّ مِنَ الشَّهْرِ قَبْلَ أَنْ يُصِيبَهَا الَّذِي أَصَابَهَا.

هغې دنا روغۍ نه مخکې په څمدې میاشت کې د حیض وینه څو ورځې او شپې راغلې وه (کله چې معلومه

فَلْتَتْرُكِ الصَّلَاةَ قَدْرَ ذَلِكَ مِنَ الشَّهْرِ، فَإِذَا خَلَّفَتْ ذَلِكَ فَلْتَغْتَسِلْ.

شي) نو هره میاشت کې دې د هغو مره ورځو مونځ پرېښودل شي او کله چې هغه ورځې تېرې شي نو ودې لامبي

ثُمَّ لِتَسْتَثْفِرْ بِثَوْبٍ. (رَوَاهُ مَالِكٌ ٢٦، وَأَبُودَاوُدَ ٢٧٤) (وَرَوَى النَّسَائِيُّ ١/١١٩، مَعْنَاهُ).

او (په پاجامه کې دننه دې) کپړه وتړي مونځ دې وکړي، او نسائي همدا روایت بالمعنی نقل کړی دی:

(۳) وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ قَالَ

دعدي بن ثابت رحمه الله نه روايت دی چې دده پلار د خپل پلار (د عدي د نيکه) نه نقل کړي دي چې ويلي دي

يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ: جَدُّ عَدِيٍّ اسْمُهُ دِينَارٌ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ

يحيى بن معين د عدي د نيکه نوم دينار دی هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روايت کړی چې دوي وفرمايل

فِي الْمُسْتَحَاضَةِ: تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا الَّتِي كَانَتْ تَحِيضُ فِيهَا.

ديوې مستحاضې په باره کې چې پرېږدي به مونځ په هغه ورځو کې چې هغې ته د عادت موافق حيض راشي

---

(۱) اخرجه أبوداود في السنن ۱/۱۹۷، رقم الحديث ۲۸٦، واخرجه النسائي في السنن ۱/۱۸٦ رقم الحديث ۳٦۲

ثُمَّ تَغْتَسِلُ ، وَ تَتَوَضَّأُ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ ، وَ تَصُوْمُ ،

بیا (دې ددې ورځونه وروسته) ولامبي او د هر مونځ دپاره دې تازه اودس وکړي او روژه دې ونیسي او

وَ تُصَلِّي. (۱)

مونځ دې هم وکړي.

**(۵) وَعَنْ حَمْنَةَ بِنْتِ جَحْشٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كُنْتُ أُسْتَحَاضُ حَيْضَةً كَثِيرَةً شَدِيدَةً. فَأَتَيْتُ**

د حمنه بنت جحش رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی چې ما ته د استحاضې وینه ډیره زیاته راتلله. نو ځکه زه راغلم

**النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَسْتَفْتِيهِ وَ أُخْبِرُهُ. فَوَجَدْتُهُ فِي بَيْتِ أُخْتِي زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ.**

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ترڅو چې د دوي نه د دې پوښتنه وکړم نو ما پیدا کړو د خپلې خور زینب بنت جحش

**فَقُلْتُ : يَا رَسُولَ اللهِ ، إِنِّي أُسْتَحَاضُ حَيْضَةً كَثِيرَةً شَدِيدَةً.**

په کور کې نو ما ورته وویل یا رسول الله! ما ته د استحاضې وینه ډیره په کثرت سره راځي نو د دې باره کې

**فَمَا تَأْمُرُنِي فِيهَا ؟ قَدْ مَنَعَتْنِي الصَّلَاةَ وَ الصِّيَامَ . قَالَ**

تاسو ما ته څه حکم کوئ؟ کومې چې زه د مونځ او روژې نه هم راګرځولې یم رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل

**"أَنْعَتُ لَكِ الْكُرْسُفَ ، فَإِنَّهُ يُذْهِبُ الدَّمَ .**

زه ستا د پاره د مالوچو خبره کوم ځکه مالوچ وینه وچوي (یعني د وینې راوتلو په ځای کې مالوچ کیږده

**قَالَتْ : هُوَ أَكْثَرُ مِنْ ذَلِكَ .**

چې هغه بهر رانه شي ) حمنې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل : هغه په دې سره نه شي بندیدی ځکه چې بیخي زیاته ده ،

**قَالَ : فَتَلَجَّمِي . قَالَتْ :**

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: (مالوچ کیږده) په هغو باندې د لګام په شان کپړه وتړه هغې وویل چې

**هُوَ أَكْثَرُ مِنْ ذَلِكَ . قَالَ : فَاتَّخِذِي ثَوْبًا .**

هغه په دې سره هم نه شي بندیدی ډیره زیاته ده رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل بیا د لاندې نه یوه کپړه وتړه

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۲۰۸/۱ رقم الحديث ۲۹۷ . وأخرجه الترمذي في السنن ۲۲۰/۱ رقم الحديث ۱۲۶ . وأخرجه ابن ماجه في السنن ۲۰٤/۱ رقم الحديث : ٦۲٥.

قَالَتْ : هُوَ أَكْثَرُ مِنْ ذٰلِكَ . إِنَّمَا أَثُجُّ ثَجًّا .

هغې وويل په دې سره هم نه شي بنديدى ځکه چې ډيره ده تردې چې وينه د باران د څاڅکو په شان راځي.

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ سَآمُرُكِ بِأَمْرَيْنِ ، أَيُّهُمَا صَنَعْتِ

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل بيانو زه تاته د دوه خبرو حكم كوم په هغو كې چې ته كومه هم غوره كړې

أَجْزَأَ عَنْكِ مِنَ الْآخَرِ ، وَ إِنْ قَوِيتِ عَلَيْهِمَا ، فَأَنْتِ

د دويمې ضرورت نه پاتې كيږي او كه چيرته په تا كې د دننه په دواړو باندې د عمل كولو طاقت وي نو ته په

أَعْلَمُ

خپله هوښياره يې چې ډير لوى اجر ملاويږي لهذا ته خپل حالت ته وګوره كوم چې وغواړې وې كړه لهذا

قَالَ لَهَا : إِنَّمَا هٰذِهِ رَكْضَةٌ مِنْ رَكَضَاتِ الشَّيْطَانِ

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حمنې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ته وويل چې دا استحاضه د شيطان د لتو نه يوه لته وهل دي لهذا

فَتَحَيَّضِي سِتَّةَ أَيَّامٍ أَوْ سَبْعَةً فِي عِلْمِ اللّٰهِ ، ثُمَّ

هره مياشت شپږ يا اوه ورځې د كومو علم چې الله ته دى د حيض ورځې وګڼه او بيا د دې مودې د تيريدو نه

اغْتَسِلِي، حَتّٰى إِذَا رَأَيْتِ أَنَّكِ قَدْ طَهُرْتِ وَاسْتَنْقَأْتِ ، فَصَلِّي ثَلَاثًا وَعِشْرِينَ لَيْلَةً أَوْ أَرْبَعًا وَعِشْرِينَ

وروسته ولامبه او كله چې ته پوهه شې چې زه پاكه شوم نو مونځ كوه درى ديرش ورځې او شپې يا څلور ديرش

لَيْلَةً ، وَ أَيَّامَهَا ، وَ صُومِي ، فَإِنَّ ذٰلِكَ يُجْزِئُكِ ، وَ كَذٰلِكَ فَافْعَلِي كُلَّ شَهْرٍ

شپې او ورځې او روژې نيسه ځكه چې دا دتا نه كافي كيږي او همدارنګې كوه هره مياشت (چې شپږ يا اوه

كَمَا تَحِيضُ النِّسَاءُ

ورځې د حيض ورځې وګڼه او باقي ورځې د پاكى ورځې وګڼه) لكه څنګه چې عامې ښځې حائضې كيږي

وَ كَمَا يَطْهُرْنَ ، مِيقَاتُ حَيْضِهِنَّ وَ طُهْرِهِنَّ . وَ إِنْ قَوِيتِ عَلَى أَنْ تُؤَخِّرِينَ الظُّهْرَ

او پاكيږي.په اندازه د حيض او طهر د دوي او كه چيرته تا كې دومره طاقت وي چې د ظهر وخت په آخر كې

وَ تُعَجِّلِينَ الْعَصْرَ . فَتَغْتَسِلِينَ وَ تَجْمَعِينَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ الظُّهْرِ وَ الْعَصْرِ ، وَ تُؤَخِّرِينَ

ولامبې او په مازيګر كې جلتې وكړې او جمع وكړې په مينځ د ماسپښين او مازيګر كې او وروسته كوې

| |
|---|
| الْمَغْرِبَ وَ تُعَجِّلِينَ الْعِشَاءَ . ثُمَّ تَغْتَسِلِينَ وَ تَجْمَعِينَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ، |
| ماښام او بیره وکړې په ماخوستن کې بیا غسل وکړې او یو ځای کړې په مینځ د دواړو مونځونو کې نو ته |
| فَافْعَلِي وَ تَغْسِلِينَ مَعَ الْفَجْرِ فَافْعَلِي ؛ وَ صُومِي إِنْ قَدَرْتِ عَلَى |
| همداسې وکړه او غسل وکړه د سهر مونځ سره نو ته همداسې وکړه او روژې ونیسه که چیرته طاقت لرې په |
| ذَٰلِكَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهٰذَا أَعْجَبُ الْأَمْرَيْنِ إِلَيَّ.(۱) |
| دې باندې . بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : او آخرنی خبره ما ته خوښه ده. |

**توضیح** : حمنه بنت جحش رضي الله عنها دا صحابیه د رسول الله ﷺ خینه ده د حضرت زینب بنت جحش رضي الله عنها نه بغیر د حضرت جحش ټولې لورګانې د استحاضې په ناروغۍ مبتلاء وې. په مدینه منوره کې تقریبا دولس ښځې د استحاضې د ناروغۍ ښکار وې په هغو کې د حضرت حمنه بنت جحش رضي الله عنها بیان په دې حدیث کې شوی دی. (المرقات ۲۵۸-۲/۲۵۹).

**انعت لک الکرسف**: په فرج کې دننه د مالوچو مناسب غوټې ایښودلو نوم کرسف دی (المرقات۲/۲۵۹)

**فتلجمی** : لګام لګولو ته ویل کیږي په فارسي کې لګام دی په عربي کې لجام دی د کتاب په وزن باندې دی دا هغه کپړې ته ویل کیږي کومه چې حائضې او مستحاضې ښځې په کرسف د پاسه د وینې بندیدو د پاره تړلې وي. (المرقات۲/۲۵۹).

**فاتخذی ثوبا** : یعني د کپړې مضبوط بندل جوړ کړه د ورنونو په مینځ کې په فرج باندې کیږده د پاسه پرې لګام وتړه. (المرقات۲/۲۵۹).

**الثج : ثجا** یعني د سیلاب په شان وینې را روانې دې په حدیث کې دي (**الحجّ العج الثج**) یعني حج په زور سره د تلبیې ویلو او د وینې د بهیدو نوم دی په قرآن کې د ﴿**مَاءً ثَجَّاجًا**﴾ لفظ راغلی دی.

**فتحیضی** : یعني ځېل ځان حایضه شمار کړه او د حیض ورځې لازمې ونیسه. (المرقات۲/۲۶۰).

**او سبعة ایام** : او د شک د پاره نه دی بلکې رسول الله ﷺ دې ښځې ته د دوه کارونو حکم کړی دی ګویا چې او د تنویع د پاره دی چې د الله تعالی په علم کې کوم څه دي په هغه باندې عمل وکړه برابره ده که شپږ ورځې حیض وي که اوه ورځې وي نو تحری وکړه او عمل وکړه. (المرقات۲/۲۶۰).

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ٦/٤٣٩، واخرجه ابو داود في السنن ١/١٩٩ رقم الحديث ٢٨٧ ، واخرجه الترمذي في السنن ١/٢٢١، رقم الحديث ١٢٧، واخرجه ابن ماجه في سننه ١/٢٠٢ رقم الحديث ٦٢٢

**اعجب الامرين**: دلته دا سوال دى چې هغه دوه امرين كوم دي؟ نو د ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ او امام ابوداؤد رَحِمَهُ اللهُ رجحان دې طرف ته دى چې په اعجب الامرين كې رومبى امر خو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داوركړى وو چې د هر مونځ دپاره مستقل غسل كول په كار دي ليكن بيا د حرج د وجې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې دوه مونځونو دپاره يو غسل وكړه يعنې د ظهر او عصر دپاره يو غسل او د مغرب او عشاء دپاره بل او د سهار دپاره جدا غسل وكړه نو د پنځو مونځونو دپاره د پنځو غسلونو ځاى په دريو غسلونو كې حرج كم دى. (المرقات ۲/۲۶۷).

د استحاضې په يو حديث كې د (لتستثفر) لفظ راغلى دى استثفار په آسونو او خرو باندې د سامان راوړلو په موقع د لكۍ لاندې يوه مضبوطه پټۍ وتړل شي ترڅو چې په چړائي كې سامان د سر طرف ته ونه خوښږي بيا د سپي د كيناستلو په وخت كې كله چې هغه لكۍ د ورنونو طرف ته تاو كړي او پرې كيني نو دې ته استثفار ويل كيږي، مستحاضه ښځې ته هم دا حكم دى چې په آرام سره كينه د كپړې بنډل جوړ كړه په فرج كې يې كيږده په هغه باندې لګام وتړه چې وينه بنده شي دا د استثفار نه دى.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

| |
|---|
| (۶) عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ، قَالَتْ : قُلْتُ : يَا رَسُولَ اللهِ، |
| د اسماء بنت عميس رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دى چې ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته عرض وكړو يارسول الله ! |
| إِنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ أَبِي حُبَيْشٍ اسْتُحِيضَتْ مُنْذُ كَذَا وَ كَذَا |
| فاطمه بنت حبيش ته (په اول ځل) د دومره مودې نه استحاضه راروانه ده د دې وجې نه هغه ګمان كوي |
| فَلَمْ تُصَلِّ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : سُبْحَانَ اللهِ ، |
| چې شايد دا هم د حيض په حكم كې وي) مونځ نه كوي، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : سبحان الله !دا |
| إِنَّ هٰذَا مِنَ الشَّيْطَانِ . لِتَجْلِسْ فِي مِرْكَنٍ ، فَإِذَا |
| د مونځ پريښودل خو د شيطان اثر دى هغې ته په كار دي چې په يو لګن كې اوبه واچوي كيني كوم وخت |
| رَأَتْ صُفَارَةً فَوْقَ الْمَاءِ فَلْتَغْتَسِلْ لِلظُّهْرِ وَ الْعَصْرِ غُسْلًا وَاحِدًا ، وَ تَغْتَسِلُ لِلْمَغْرِبِ |
| چې په اوبو باندې زيړوالى معلوم شي نو د ظهر او عصر دپاره دې يو غسل وكړي او غسل دې وكړي د مغرب |
| وَ الْعِشَاءِ غُسْلًا وَاحِدًا ، وَ تَغْتَسِلُ لِلْفَجْرِ غُسْلًا وَاحِدًا . |
| او عشاء دپاره دې بل غسل وكړي او د فجر دپاره دې جدا غسل وكړي (او كله چې ضروت شي نو) د دوي |

| |
|---|
| وَ تَوَضَّأُ فِيمَا بَيْنَ ذٰلِكَ .[1] وَ قَالَ رَوَى مُجَاهِدٌ عَنِ ابْنِ |
| په مینځ کې دې اودس وکړي. دا روایت ابوداؤد نقل کړی او ویلي یې دي چې مجاهد نقل کړي دي د ابن |
| عَبَّاسٍ لَمَّا اشْتَدَّ عَلَيْهَا الْغُسْلُ . |
| عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې کله فاطمې ته د هر مونځ د پاره غسل کول سخت معلوم شو نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| أَمَرَهَا أَنْ تَجْمَعَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ ). |
| ورته په یو غسل سره د دوه مونځونو په یو ځای حکم ورکړ. |

**توضیح** : **تجلس** : یعنې د غسل د پاره دې په یو لګن کې کیني یا د ظهر د اخیري وخت او د عصر د اول وخت معلومولو د پاره دې د یو لګن سره کیني.

**مرکن** : لګن او لوی خانک ته ویل کیږي. (المرقات ۲/۲۶۳).

**رأت صفارة فوق الماء** : یعنې چې د لمر رنګ متغیر شي او په اوبو باندې د پاسه د لمر رنګ ښکاره شي یعنې د ظهر اخیري وخت شي او د عصر اول وخت راشي نو هغه وخت دې غسل وکړي دواړه مونځونه دې په خپل خپل وخت اداء کړي، د رنګ د زیړوالي نه مکروه وخت مراد نه دی بلکې د ظهر آخري وخت مراد دی په کوم کې چې لمر یو قسم متغیر کیدی شي. (المرقات ۲/۲۶۴).

**وتوضأ فيما بين ذلک** : یعنې د ظهر او عصر د پاره کله چې یو غسل وکړي نو د عصر د پاره د همدې غسل باوجود اودس دې هم وکړي او کله چې د مغرب او عشاء د پاره یو غسل وکړي نو د عشاء د پاره دې یو اودس هم وکړي او د فجر د پاره دې جدا یو غسل وکړي. د مستحاضې د غسل په احکامو کې دا تخفیف لومړی مرحله ده ددې نه وروسته تخفیف تر اودس پورې شو. شکر الحمد لله چې اول جلد مکمل شو. (المرقات ۲/۲۶۴).

**ربنا تقبل منا إنک أنت السميع العليم وتب علينا إنک أنت التواب الرحيم**

**وصلی الله علی نبيه الکريم محمد وعلی آله وصحبه أجمعين**

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۱/۲۰۷ رقم الحديث ۲۹۶

# اعتذار

محترمو ورونو !

د توضيحات پښتو شرح مشکوة کتاب نسبت د آحاديثو سره دی او په آحاديثو کې په کار وي چې ښه پوره پوره کوشش وشي ترڅو د غلطيانو څخه محفوظ وي ، نو بنده حقير هم ددې کتاب د آحاديثو په متن ، اعراب ، ترجمه او تشريح کې پوره پوره کوشش کړې دی خو بيا هم خُلِقَ الْإِنْسَانُ ضَعِيْفًا .

نو د انساني ضعف په اساس ممکن يو څه لفظي کمپيوټري او يا علمي غلطې پاتې شوې وي نو که چيرته د مطالعې په دوران کې درته کومې غلطې په مخه درغللې نو که هغه مو نوټ کړلې او مونږ مو پرې خبر کړلو تر څو په آئينده او راتلونکي ايډيشن کې يې تصحيح وشي نو په دې سره به تاسې هم په تعاون على البر و التقوى کې راسره شريک شئ او دې سره سره د الدال على الخير کفاعله مصداق وګرځيږئ او د يو څه ثواب ګټونکي به شئ و أجرکم على الله .

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد و على آله و اصحابه أجمعين

